## مقدمه

انساني كمالات پر دوه قسمه دي: (١) كمالِ علمي، (٢) او كمال عملي، بيا د كمال علمي دوه قسمه دي: (١) ديني علم، (٢) او دنيوي علم، او دا خبره حقيقت ده چي د كومو دنيوي او عصري علومو سره چي د دين هيڅ تعلق نه وي، هغه بالكل جهل او د نبوت په ژبه ملعون دي.

بيا چي په ديني علومو كي "علمِ فقه" ته كوم ارزښت حاصل دى، هغه له هيچا څخه پټ نه دى، زموږ په تعليمي نصاب كي په قرآن او په حديث د پوهولو پېل له فقهي څخه كيږي، او بيا همدا فقه د دې دواړو نتيجه او ثمره هم ده، كه يو طالب يا عالم په فقه كي تكړه نه وي، نو هغه په قرآنِ پاك او حديث شريف كي هيڅكله كاميابي نه سي ترلاسه كولاى، همدارنگه كه څوک تر حديثو او قرآن وړلو وروسته علمِ فقه ته نه ورسيږي، او د هغه سره شوق او رغبت نه ولري، نو بېشكه هغه "اسلام" د ژوند ديو بشپړ نظام او قانون په توگه نه پېژني، او نه په دې د ځان پوهولو كوښښ كوي، بلكي د هغه سري په څير پاتيږي چي صرف پوستكى ويني، او د قرآن و حديث تر مغز پوري نه ورسيږي.

**د فقهي حقيقت**: څرنگه چي د ځيني خلكو له ستر گو څخه د فقهي حقيقت پټ دى، نو ځكه هغوى ته دا اشتباه كېدى سي چي د دين سرچينه فقط قرآن او حديث دي، اسلامي امت ته د فقهي څه ضرورت نسته، دا شبهه هغه خلكو ته كېدى سي چي هغوى فقه له قرآن وحديث څخه عليحده د شريعتِ محمدي يوه مستقله سرچينه او مأخذ گڼي، لېكن دا خيال بالكل غلط او بې بنسټه دى، په اصل كي پرته له دې د فقهي بل هيڅ حقيقت نسته چي هغه تر يو خاص ضابطې لاندي د قرآن وحديث بشپړه او جامع شرحه ده، هغه له قرآن و حديث څخه عليحده نه ده، بلكي له قرآن و حديث څخه را اخيستل سوې ده، كومي خبري چي قرآن و حديث په اجمالي او مختصره توگه بيان كړي دي، هغه خبري فقهي او د فقهي امامانو په تفصيل سره د فروعاتو او جزئياتو په توگه ښكاره كړي دي، لكه څرنگه چي د شافعي مسلک باني او لاربنوونكى امام محمد بن ادريس الشافعي رَحِمَهُ الله فرمايي: جميع ما تقوله الائمة شرح للسنة وجميع السنة شرح للقرآن، (ټولې هغه خبري چي امامان بيانوي [خصوصًا د فقهي امامان] هغه ټوله د حديثو شرحه ده، او د حديثو ټوله ذخيره د قرآنِ كريم شرحه ده)، او حافظ جلال الدين سيوطي په خپل كتاب الاشباه والنظائر كي د فقهي په باره كي ليكي: إن الفقه معقول من منقول، (فقه يو عقلي علم دى كوم چي له منقول[يعني له قرآن او حديث] څخه حاصل سوى دى)؛ معلومه سوه چي فقه صرف د قرآن او حديث يوه جامع شرحه ده، لهذا د قرآن و حديث او د فقهي په مينځ كي د تفريق كوښښ صرف د اسلامي دښمنانو دسيسه او مكر دى.

**د فقهي مبادي**: د هر فن او كتاب تر وړاو مخكي د هغه فن له لازمي مباحثو او د كتاب د مصنف له حالاتو څخه خبرېدل ډېر ضروري دي، څرنگه چي دا كتاب د فقهي دى، نو د دې تر شروع كولو مخكي هم د څو شيانو پېژندل ډېر مهم دي:

(١) د فقهي تعريف، (٢) موضوع، (٣) غرض وغايت، (۴) مأخذ، (۵) حكم، (۶) د كتاب د مصنف ژوند ليک.

**د فقهي لغوي تعريف:** فقه له کرُم او سمِع دواړو بابونو څخه راځي، کله چي له سمع څخه راسي، يعني فَقِهَ يَفْقَهُ فِقْهًا، نو معنیٰ يې کيږي: العلم بالشئ (په يو شي پوهېدل)، پېژندل، او کله چي له کرم څخه راسي، يعني فَقُهَ يَفْقُهُ فَقَاهَةً، نو معنیٰ يې راځي: فقيه او عالم کېدل، هوښيار کېدل.

د "فقه" لفظ په قرآن کريم کي شل(٢) ځايه استعمال سوی دی، لېکن چيري هم ماضي او مصدر نه دي ذکر سوی، بلکي هرځای مضارع استعمال سوی دی، او بيا صرف يو ځای د "تفعّل" له باب څخه راغلی دی، نور ټوله ځايونه د"سمع" له باب څخه استعمال سوی دی.

**د فقهي اصطلاحي تعريف:** العلم بالأحكام الشرعية الفرعية المكتسبة من أدلتها التفصيلية. (فقه د شريعت د فرعي احکامو هغه علم ته ويل کيږي چي د احکامو د تفصيلي دلائلو په ذريعه حاصل کړی سي).

**د فقهي د اصطلاحي تعريف پوره تشريح:**

الاحكام الشرعية الفرعية: شرعي احکام پر دوه تسمه دي: (١) اصلي (٢) فرعي.

اصلي احکام: هغه احکامو ته ويل کيږي چي تعلق يې د عقيدې سره وي، يعني اعتقادي احکامو ته اصلي احکام ويل کيږي، لکه د الله عز وجل وحدانيت(يووالی)، د رسول الله ﷺ رسالت، د آخرت علم، دا ټوله احکام اعتقاديه دي، چي اصلي احکام هم ورته ويل کيږي، علمِ فقه د دې سره تعارض او نښته نه لري، بلکه له فرعي احکامو څخه بيان کوي.

فرعي احکام: هغه احکامو ته ويل کيږي چي تعلق يې د عمل سره وي، لکه لمونځ، روژه، حج، خرڅول او رانيول، په علمِ فقه کي همدغه احکام بيانيږي.

أدلتها التفصيلية: د دې عبارت اصلي مطلب دا دی چي فقه هغه علم دی چي په هغه کي د احکامو تفصيلي دلائل هم معلوم کړای سي، مثلاً يو څوک ووايي چي حج فرض دی، نو دليل به يې هم ورته معلوم وي چي دا آيت دی: وأتموا الحج والعمرة لله [البقرة:١٩٦]، يا مثلاً دا مسئله بيان کړي چي لمونځ او زکاة فرض دی، نو دا به هم ور ته معلومه وي چي دليل يې دا آيت دی: أقيموا الصلوٰة و آتوا الزكوٰة واركعوا مع الراكعين [البقرة: ٤٣]، لنډه دا چي د انسان د اعمالو پر هره جزئيه د حلت، حُرمت، کراهت او د وجوب حکم لګولو او د هريوه دليل بيانولو ته علمِ فقه ويل کيږي.

**د فقهي موضوع:** فعل المكلف ثبوتًا أو سلبًا، يعني د حلالېدلو او حرامېدلو په اعتبار سره د مکلف فعل د علمِ فقه موضوع ده، يعني د مکلف انسان له فعل او عمل څخه دا بحث کول چي دا فرض، يا سنت مؤکده، يا نفل دی، يا مثلاً حرام، يا مکروه تحريمي، يا مباح دی.

**د فقهي غرض و غايت:** الفوز بسعادة الدارين، يعني په دنيا او آخرت کي نېک بختي او کاميابي حاصلول د فقهي غرض و غايت دی، د دنيا کاميابي خو دا ده چي فقيه د خدای مخلوق ته ديني فايده رسوي، چي آخر د هغه په وجه د عزت ځای او لوړو درجو ته ورسيږي، او د آخرت نېک بختي دا ده چي شفاعت او جنت به حاصل کړي، او د خپل پروردګار په سپېڅلي ديدار به مشرف سي.

**د فقهي مأخذ:** کتاب، سنت، اجماع او قياس د فقهي مأخذونه دي.

**د فقهي حکم:** يعني په شريعت کې د فقهي حيثيت څه دئ؟ جواب يې دا دی چې د دين د ضروري مسئلو زده کړه فرض عين ده، او له هغه څخه ماسوا د نورو مسئلو زده کړه مستحب ده.

## د هدايې د مصنف لنډ ژوند ليک

**نوم او نسب:** د هدايې د مصنف نوم علي دی، کنيت يې ابوالحسن دی، لقب يې برهان الدين او د پلار نوم يې ابوبکر دی، د نسب سلسله يې داسې ده: ابوالحسن علي بن ابي بکر بن عبد الجليل بن الخليل المرغيناني الفرغاني الحنفي (کشف الظنون)، او نسب يې د حضرت ابو بکر صديق رضي الله عنه سره يو ځای کيږي.

**د پيدايښت ځای او نېټه:** د هدايې مصنف علامه مرغيناني رحمه الله د دوشنبې په ورځ د مازيګر په وخت کې د رجبُ المرجب په اتمه(۸) ورځ، په سنه: ۵۱۱ هـ کې دې دنيا ته سترګې پرانيستلې، په عامه توګه د ده د نوم سره مرغيناني ليکل کيږي چې له هغه څخه دا وهم کيږي چې د ده د وطنِ اصلي او د پيدايښت ځای مرغينان دی، لېکن صحيح دا ده چې مرغينانْ د ده وطنِ اصلي او د پيدايښت ځای نه دی، بلکې د مرغينان د "رُشد" په نامه يو کلي(محله) کې د ده پيدايښت وسو، نو ځکه ځينې خلک تر مرغيناني وروسته رشداني هم ليکي، مرغينان د فرغانه ولسوالی سره مربوطه يوه غټه سيمه وه چې اوس هغه په ازبکستان کې ده، لېکن په دې نامه سره اوس شهرت نه لري.

**يادونه:** مَرغينان د ميم په فتحه سره دی، او فَرغانه د فاء په فتحه سره دی.

**تعليم او پالنه:** د علامه مرغيناني رحمه الله پلار د ده په کم عمری او ماشومتوب کې وفات سو، نو اوله تعليمي پالنه يې مورني نيکه قاضي امام بن حسيب بن علي وکړه، دا بزرګ د مرغينان د سيمې قاضي وو، او د شمس الائمه سرخسي رحمه الله له شاګردانو څخه وو، په فقه، علمِ کلام او قضاء کې يې ډېر مهارت درلودی.
صاحب د هدايې د مورني نيکه تر مړيني وروسته د علم فقه او علم کلام حاصلولو لپاره فرغانه ته سفر وکړی، تر هغه وروسته سمرقند، بخارا، نيشاپور، مرو، بلخ، حرمين شريفين، بغداد او همدان ته هم ولاړی.

**استاذان:** په فرغانه کې يې له ابو المعاني ظهير الدين بن زياد بن الياس څخه استفاده وکړه، په سمرقند کې يې له علامه نجم الدين عمر نسفي څخه علمي استفاده وکړه، علامه نسفي ډېر ستر مفتي، فقيه، محمد او مفسر وو، چې په فقه او حديث کې يې ډېر کتابونه ليکلي دي، د عقائدو پر موضوع يې هم يو مختصر کتاب ليکلی دی، چې علامه تفتازاني د هغه شرحه ليکلې ده، کوم چې د(شرح عقائد) په نامه سره مشهوره دی، په نيشاپور کې د ده استاذ شيخ صفي الدين ابو البرکات عبد الله بن محمد صاعدي وو، او په مرو کې يې له محمد بن ابی بکر الخطيب، شيخ ضياء الدين محمد بن الحسين البنديجي، او شيخ ابو الفتح محمد بن عبدالرحمن مروزي څخه علمِ فقه او علمِ حديث حاصل کړی، په بلخ کې يې له قاضي سعيد بن يوسف حنفي، ابو شجاع ضياء الاسلام عمر بن محمد بسطامي څخه د حديثو روايت حاصل کړی، په بخارا کې يې له برهان الائمه الصدر الشهيد عمر بن عبد العزيز بن مازه(مؤلف محيط البرهان) څخه د علمِ کلام او د علمِ فقه تعليم حاصل کړی، همدارنګه يې له شيخ احمد بن العزيز، شيخ محمد بن عبد الرحمن بخاري، شيخ ابوعمر عثمان بن علي بيکندي او علامه ابو الرضا محمد بن محمود طرازي څخه هم استفاده وکړه.

**شاګردان:** په ماوراء النهر کې د فقهي د نشر کېدلو اصلي لامل علامه مرغيناني رحمه الله وو، او بې شمېره خلکو له دوی څخه استفاده وکړه، چې له هغو څخه ديو څو نومونه دا دي: (۱) شمس الائمه محمد بن عبدالستار کردي، (۲) شيخ

جلال الدين محمد بن الحسين الاستروشني، (۳) امام عمربن محمود بن محمد، (۴) قاضي القضاة محمد بن علي بن عثمان سمرقندي، (۵) برهان الاسلام علامه زرنوجي (مولف تعليم المتعلم) او داسې نور.

**تصنيفونه**: د هدايې د مصنف يو څو مهم تصنيفونه دا دي: (۱) بداية المبتدى، (۲) كفاية المنتهى، (۳) نشر المذهب، (۴) التجنيس، (۵) المزيد، (۶) مختارات النوازل، (۷) منتقى الفروع، (۸) كتاب الفرائض، (۹) مناسک الحج، (۱) شرح الجامع الصغير.

**علم او كمال**: صاحب د هدايې په خپله زمانه كې ډېر ستر عالم وو، تاسو له دې څخه اندازه وكړئ چې هغه د هدايې په شير عظيم الشان تصنيف ليكلى دې چې په فقهي نړۍ كې يې هيڅ ساری نه ليدل كيږي، همدا راز د ده د علم او كمال تعريف له نورو نامتو علماؤ څخه علاوه د ده همعصره (همدوره) علماؤ هم كړې دی، او انسان ډېر كم د خپل همعصر د فضل او كمال تعريف كوي، لكه څرنګه چې علامه عبدى الحي لكنوي رَحِمَهُ الله ليكلي دي: وأقرّ له (لصاحب الهداية) بالفضل والتقدّم أهل عصره كالإمام فخر الدين قاضي خان وصاحب المحيط، وصاحب الفتاوى الظهيرية وغيرهم (فوائد البهية ص: ۱۴۱)، او د جواهرِ مضيه مصنف د دوی فضل او كمال داسې بيان كړى دى: كان إمامًا فقيها حافظا محدثا مفسرا جامعا للعلوم ضابطا للفنون متقنا محققا نظارا مدققا زاهدا ورعًا بارعا فاضلا ماهرا أصوليا أديبا شاعرا لم تر العيون مثله في العلم والأدب.

**د مړيني نېټه**: شيخ الاسلام علامه مرغيناني رَحِمَهُ الله د سېشنبې په ورځ د ذوالحجې په څوارلسم (۱۴) تاريخ په سنه: ۵۹۳ هـ كې له دې فاني نړۍ څخه كوچ وكړى، او د سمرقند په "كروين" ښار كې د علم او كمال دا ځلانده لمر د تل لپاره پټ سو.

**الباقيات الصالحات**: صاحب د هدايې درې زامن پرېښوول: عماد الدين، نظام الدين عمر، ابو الفتح جلال الدين محمد، او درې سره د فضل و كمال خاوندان او د خپل پلار تربيه سوي ول.

## صاحب د هدايې يو ستر محدث او حافظ الحديث وو

صاحب د هدايې فقط د فقهي نه بلكې د حديثو امام او حافظ هم وو، علامه ظفر احمد عثماني رَحِمَهُ الله ليكي چې: "د علامه مرغيناني رَحِمَهُ الله د ستر محدث كېدلو ښكاره دليل دا دى چې دوی په خپل تصنيفونو كې خصوصاً په هدايه كې په زياته اندازه حديثونه رانقل كړي دي.

همدا رنګه نامتو محدث مولانا محمد عبد الرشيد نعماني صاحب د هدايې په باره كې له اعلام الأخيار څخه د علامه محمود بن سليمان كفوي دا قول رانقل كړی دی چې: كان (صاحب الهداية) اماما فقيها حافظا محدثا مفسرا (ابن ماجه اور علم حديث ص: ۱۹۷)

خو د بعضي كم نظرو يا متعصّب علماؤ له ستر ګو څخه د حنفيه وو د دې ستر امام دغه ځلانده اړخ (حديثي اړخ) پټ دی، او د هدايې او حنفيت په باره كې په ناپوهی مبتلا دي.

## د هدايې د مصنف طبقه

ابن كمال باشا صاحب د هدايې له اصحابُ الترجيح څخه شمېرلی دی، او بعضو له اصحابُ التخريج څخه شمېرلی دی، د علامه لكنوي رَحِمَهُ اللهُ په فكر صاحب د هدايې يو مجتهد دی د مذهب له مجتهدينو څخه. (مقدمه نصب الرايه ج: ۱، ص: ۱۴)

## د هدايې د ليکلو وجه

مخکې تر هدايې علامه مرغيناني (صاحب د هدايې) د خپلې فقهي تندې د بشپړتيا لپاره د بداية المبتدی په نامه يو کتاب وليکی، او په دې تصنيف سره د هغه مقصد دا وو چې په مختصره عبارت کې فقهي احکام او مسائل راجمع کړای سي چې خلکو ته يې کتل آسانه وي، او د ډېرو پانو اړولو پر ځای په يو کتاب کې په مختصر وخت کې په ديني احکامو او مسائلو سره خلک خبر سي، خو دا کتاب خلاف توقع زيات مختصر سو، نو ځکه يې د کفاية المنتهي په نامه د دې کتاب يوه بله غټه شرحه وليکله؛ خو دا شرح دومره اوږده سوه چې اتيا (٨٠) جلدو ته ورسېدل. لنډه دا چې صاحب د هدايې په ايجاز (لنډوالي) کې هم مبالغه وکړه، او په طوالت (اوږدوالي) کې يې هم مبالغه وکړه؛ تر دې وروسته هغه ته دا احساس وسو چې داسې نه د ډېر اوږدالي په سبب خلک اصل کتاب پرې نه ږدي، او محنت به مې خاوري و ضايع سي، نو دويم ځل يې بيا خپل عزم او همت ګرندی کړی، او په سنه: ٥٧٣ هـ کې د ذي القعده په مياشت کې د چهارشنبې په ورځ د الهداية په نوم بل تصنيف شروع کړی، او په دې ځل يې دا کوښښ وو چې دا تصنيف نه دومره مختصر سي چې لوستونکو ته هيڅ په لاس ور نه سي، او نه دومره اوږد سي چې د خلل سبب جوړ سي.

الحمدلله! د ديارلسو کالو په اوږده موده کې د سخت پرليسې کوښښ او زيار په نتيجه کې د هغه دا کتاب بشپړ سو، او د لمر د ځلا په څېر د فقهي آسمان پر څنډو وغوړېدی، او د عوامو و خواصو مرجع جوړ سو.

## د هدايې دليکلو زمانه

علامه مرغيناني رحمه الله د هدايې تصنيف په سنه: ٥٧٣ هـ کې د ذی القعده په مياشت د چهارشنبې په ورځ د ماپښين تر لمانځه وروسته شروع کړی، او په ډېر کوښښ او زيار سره يې د ديارلس (١٣) کالو په موده کې دا ستر کتاب پوره کړی.

او د تصنيف په وخت کې د ده د اخلاص، تعلق مع الله او د عبادت دا حال وو چې د ديارلس کالو په دې اوږده موده کې يې همشېه روژې هم نيولې، او پوره کوښښ يې کوی چې څوک يې په روژو خبر نه سي، کله چې به خادم خوراک راوړی.

نو ده به يو طالب يا مېلمه ته ورکړی، چې په هغه سره به د خادم دا خيال سو چې خوراک ده په خپله خوړلی دی. سبحان الله! (کشف الظنون ج:٢، ص: ٢٠٣٢؛ ومقدمه نصب الرايه ج:١، ص: ١٤)

## د هدايې د بابونو او فصلونو شمېر

د هدايې د هر جلد د کتابونو، بابونو او فصلونو د پېژندګلوۍ لپاره لاندې نقشه وګورئ!

| جلد | کُتب | ابواب | فصول |
|---|---|---|---|
| هدايه اول | ٥ | ۴۶ | ٣۶ |
| هدايه ثانی | ١۴ | ٥٢ | ٣٩ |
| هدايه ثالث | ٢٢ | ۴۴ | ۴٢ |
| هدايه رابع | ١۶ | ٢٣ | ٣٧ |

له دې نقشې څخه معلومه سوه چې د هدايې ټوله کُتب ٥٧. ټوله بابونه يې ١۶٥ او ټوله فصلونه يې ١٥٥ دي.

## د هدايې شروح او حواشي

کوم کتاب چي د علماؤ په نېز څومره معتبر او مهم وي، هومره يې د شروحاتو او حواشي وو زيات بندوبست سوی وي، څرنګه چي هدايه هم يو معتبر او منلی کتاب دی، نو ځکه په هر دور او زمانه کي سترو علماؤ هدايې ته هم ډېر غټ ارزښت ورکړی دی، او د هغې لپاره يې په ډېره زياته اندازه شروحات او حواشي ليکلي دي، چي شمېر يې تقريباً تر څلوېښتو(۴۰) اوړي، له هغو څخه يو څو مهمي شرحي دا دي:

| شمېر | د شرحي نوم | مؤلف |
|---|---|---|
| ۱ | النهاية | د هدايې د مصنف شاګرد امام حسام الدين المعروف بالصغناقي الحنفي (متوفی سنه: ۷۱۰هـ) |
| ۲ | غاية الكفاية في دراية الهداية | الامام تاج الشريعة عمر بن صدر الشريعة الاول عبيد الله المحبوبي الحنفي (متوفی سنه: ۶۷۲هـ) |
| ۳ | العناية | شيخ اكمل الدين محمد بن محمود البابرتي الحنفي (متوفی سنه: ۷۸۶هـ) |
| ۴ | البناية | الحافظ بدر الدين العيني الحنفي صاحب عمدة القاري شرح البخاري (متوفی سنه: ۸۵۵هـ) |
| ۵ | فتح القدير للعاجز الفقير | الشيخ امام كمال الدين محمد بن عبد الواحد المعروف بابن الهمام (متوفی سنه: ۸۶۱هـ) |
| ۶ | الكفاية | العلامه السيد جلال الدين الخوارزمي (متوفی سنه: ۷۶۷هـ) |
| ۷ | الفوائد | العلامه الفهامه مولانا حميد الدين علي بن محمد ضرير (دا د هدايې تر ټولو مخکنی شرحه ده، ليکن علامه سيوطي وايي چي د هدايې اوله شرحه "غايه" ده) |
| ۸ | غاية البيان ونادرة الأقران | الشيخ قوام الدين امير كاتب بن عمر الاتقاني |
| ۹ | غاية السروجي | ابو العباس احمد بن ابراهيم السروجي (متوفی سنه: ۷۱۰هـ) |
| ۱۰ | التوشيح | الشيخ سراج الدين عمر بن اسحاق الغزنوي الهندي (متوفی سنه: ۶۹۰هـ) |
| ۱۱ | شرح الهداية | العلامه علاء الدين المعروف بابن التركماني المارديني (متوفی سنه: ۷۵۰هـ) |
| ۱۲ | شرح خلاطي | العلامه علاءالدين علي بن محمد بن حسن خلاطي (متوفی سنه: ۸۵۸ هـ) |
| ۱۳ | معراج الدراية إلى شرح الهداية | الامام قوام الدين محمد بن احمد المخجندي البخاري السكاكي |
| ۱۴ | نصب الراية لأحاديث الهداية | حافظ جمال الدين زيلعي حنفي (متوفی سنه: ۷۶۲) |
| ۱۵ | الدراية في منتخب تخريج أحاديث الهداية | حافظ ابن حجر عسقلاني شافعي (متوفی سنه: ۸۵۲) |
| ۱۶ | حاشيه قارئ الهداية | الشيخ سراج الدين عمر بن علي كناني (متوفی سنه: ۸۲۹ هـ) |
| ۱۷ | حاشيه مولانا عبد الحي لكنوي | الشيخ مولانا عبد الحي لكنوي (متوفی سنه: ۱۳۰۴هـ) |

## د هدايې مقبوليت، ارزښت او عظمت

د علامه مرغيناني رحمه الله ډېر او ناياب اخلاص، تقویٰ او محنت ثمره دا سوه چې الله ﷻ هدايې ته هغه مقبوليت ور وبخښی چې تصور یې هم انسان کولای نه سي، همدا وجه ده چې تر قرآن وروسته له زياتو لوستل سوو کتابونو څخه هدايه هم يو کتاب شمېرل کيږي، ډېر کم به يو داسي کتاب فروشي پيدا سي چې په هغه کي هدايه نه وي، د هدايې د دې مقبوليت په ليدلو سره يو شاعر ډېر ښه ويلي دي:

إِنَّ الْهِدَايَةَ كَالْقُرْآنِ قَدْ نَسَخَتْ

مَاصَنَّفُوْا قَبْلَهَا فِي الشَّرْعِ مِنْ كُتُبِ

فَاحْفَظْ قَوَاعِدَهَا وَاسْلُكْ مَسَالِكَهَا

يَسْلِمْ مَقَالَكَ مِنْ زَيْغٍ وَمِنْ كَذِبِ (كشف الظنون ج:٢، ص: ٢٠٣٢)

**ژباړه:** لکه څرنګه چې قرآن کريم مخکني آسماني کتابونه منسوخ کړل. همدارنګه هدايې د فقهي مخکني کتابونه منسوخ کړل؛ نو (اې طالبه!) د دې قواعد او ضوابط ياد کړه، او طريقې يې خپلي کړه، چې ستا خبري له دروغ او کږوالي څخه خوندي سي.

همدارنګه د علامه مرغيناني رحمه الله زوی ابوحفص محمد بن علی عمادالدين د هدايې په باره کي ليکلي دي:

كِتَابُ الْهِدَايَةِ يَهْدِى الْهُدٰى

إِلٰى حَافِظِيْهِ وَيَجْلُو الْعَمٰى

فَلَازِمْهُ وَاحْفَظْهُ يَا ذَا الْحِجٰى

فَمَنْ نَالَهُ نَالَ أَقْصَى الْمُنٰى

**ژباړه:** هدايه خپلو يادونکو ته د هدايت لار ورښيي، او ړوندالی په بينايي (او څير کتوب) بدلوي. نو اې د عقل څښتنه! دا ټينګه ونيسه او ياده يې کړه، څکه چا چي دا حاصله کړه، هغه خپلي ارزوګاني پوره کړې.

## هدايه يو ډول معجزه ده

صاحب د تنظيم الداريه حضرت مولانا محمد ابو الحسن رحمه الله ليکلي دي چې "هدايه" او "حجة الله البالغه" د سردار کونين محمد ﷺ له هغه معجزو څخه دي کوم چې د نبي ﷺ تر وفات وروسته د هغه د امتيانو په لاس ښکاره سوي دي. د "حجة الله البالغه" په باره که همدا قيمتي خبره له علامه سيد ابو الحسن علي ندوي څخه هم رانقل سوې ده. (تنظيم الدراية ص: ٣١)

## هدایه د دماغي تمرین(ورزش) او د ذهن د پیاوړتیا لپاره یوه کامیابه نسخه ده

هسې خو هدایه د فقهې کتاب دی، لېکن که دې ته د "پوهې کتاب" وویل سي، نو بې ځایه به نه وي، ځکه چې د دې کتاب هره لیکه له عقل او پوهې څخه ډکه ده. دا خبره بالکل ښکاره ده چې د هدایې د یوې صفحې عقل او حکمت د "قاضي" په سلهاوو صفحه کي نه سي ترلاسه کېدلی، خاص همدارنګه د ارسطاطالیس د ټوله ژوند عقل د امام ابو حنیفه رَحِمَهُ الله د یوې ورځې د عقل مقابله نه سي کولای.

د دماغي ورزش(سپورټ) او د ذهن تېزولو لپاره زموږ په نصاب کي ډېر کتابونه ویل کیږي، لېکن حقیقت دا دی چې د هدایې په عجیب و غریب او فصیح و بلیغ عبارتونو سره چې څومره ذهن تیزیږي، او دماغ ته څومره تمرین ورکول کیږي، یو کتاب هم په دې مقصد کي د دې عظیم کتاب سره نه سي برابرېدلی، د دې کتاب تر زده کړې او ښه پوهنې وروسته د ستونزمنو مباحثو او د مشکلو نکتو یوه عجیبه ملکه او همت په انسان کي پیدا کیږي(هغه که د هر فن مشکلي نکتې او مباحث وي)، هیڅ سلیمُ الفکر او د عقل څښتن هم چې د هدایې سره یې پوره تعلق وي له دې خبرو څخه انکار نه سي کولای. (تنظیم الدرایة ص: ۳۱)

## د هدایې په اړه یو نظر

د هدایې د شرحه لیکلو په وخت کي دا اندازه را ته وسوه چې صاحب د هدایې اصل متن قدوري جوړ کړی دی، او زیاتي مسئلې یې له قدوري څخه را اخیستي دي، او د هغه تشریح یې کړې ده، کله نا کله یې د باب په مینځ کي د جامع صغیر او کتابُ الاصل(مبسوط) عبارت هم متن جوړ کړی وي، او د هغه تشریح یې کړې وي، نو ګواکي د هدایې متن د دې درې کتابونو مجموعه ده: ① مختصر القدوري، ② جامع صغیر، ③ مبسوط.

## د هدایې د حدیثونو په اړه یو ضروري نظر

صاحب د اثمار الهدایه وایي: د هدایې لیکوال چې کوم حدیثونه راوړي دي، هغه عمومًا روایت بالمعنیٰ دي، له کتاب څخه یې مخامخ لیکلي نه دي، همدا وجه ده چې هغه پوره حدیث نه لیکي، بلکي د استدلال لپاره صرف د حدیث یوه ټوکړه(قطعه) لیکي، او په هغه سره دلیل نیسي، لېکن پر دې موقع بعضي خلګ دا اشکال کوي چې موږ تر ډېري پلټنې وروسته هم داسي حدیث پیدا نه کړی؛ اوس موږ هغه وجهې ذکر کوو چې د هغو په سبب بعضي خلګو ته دا شبهه کیږي چې داسي حدیث بالکل نسته یا دا حدیث غریب یا موضوعي دی.

(۱) اوله وجه دا ده چې صاحب د هدایې کله نا کله داسي قطعه لیکلې وي، چې په دوو حدیثونو کي هم ترلاسه کیږي، خلګ پر هغه اعتراض کوي چې دا جمله په هیڅ یو حدیث کي نسته، یا دا بالکل حدیث نه دی، لېکن دې ته نه ګوري چې دا جمله په دوو حدیثونو کي غوړېدلې ده.

(۲) کله نا کله داسي هم سوي وي چې تر یوې جملې مخکي یې قوله علیه السلام لیکلي وي، چې له هغه څخه دا معلومیږي چې دا د حدیث ټوکړه ده، لېکن تر تحقیق او پلټني وروسته معلومه سوه چې دا حدیث نه دی، خو د صحابي یا تابعي قول خامخا دی، کوم ته چې حدیث مرسل وایي، لېکن ځیني خلګ د داسي جملې د لیدلو په وخت کي دا شبهه کوي چې دا بالکل حدیث نه دی، او بغیر له تحقیق څخه پر صاحب د هدایې دا مُهر لګوي چې هغه موضوعي حدیث رانقل کوي، لېکن دې ته نه ګوري چې دا که حدیث نه دی، لېکن د صحابي یا تابعي قول حتمًا دی.

(۳) کله داسي هم سوي وي چي صاحب د هدايې داسي لفظ ليکلی وي چي په حديثو کي نه وي. لېکن د هغه په معنیٰ(هَمْ معنیٰ) لفظ وي، چي دليل په ونيول سي، په دې وخت کي هم ځيني خلکو ته اشکال وي چي دا حديث نه دی، لېکن خيال يې نه وي چي صاحب د هدايې دلته د حديث الفاظو ته ور ته نور الفاظ ذکر کړي دي.

(۴) داسي هم سوي دي چي مثلاً حديث يا قول د حضرت عبدالله بن عمر وي، او صحاب د هدايې د عبدالله بن عباس نوم ذکر کړی وي، چي د هغه په وجه بعضي حضراتو دا ليکلي وي، چي دا حديث نه دی، لېکن تر پلټنې وروسته معلومه سوه چي دا د بل صحابي حديث يا قول دی، نو ځکه دا سي حديثونه او آثار هم بې بنياده نه دي، صرف د راوي په نوم کي تبديلي راغلې ده.

**يادونه:** د کومو مسئلو لپاره چي صاحب د هدايې يو حديث يا دحديث يوه ټوټه ذکر کړې وي، صاحب د اثمار الهدايه کوم چي په اوسني وخت کي د ديوبند ستر فاضل دی، د هغه لپاره درې درې پوره حديثونه د حوالو سره ذکر کړي وي. نو که څوک د هدايې د حديثونو په باره کي پوره معلومات غواړي اثمار الهدايه ته دي رجوع وکړي. او دا شبهه دي نه کوي چي د حنفي مسئلو لپاره حديثونه نسته.

## په هدايه کي د هدايې د مصنف عادتونه او طريقې

(۱)... مصنف د هدايې چي کله قال رَضِيَ اللهُ عَنْهُ وايي، نو له دې څخه د هغه خپل ذات مراد وي، همدا راز شيخ محدث دهلوي رَحِمَهُ الله فرمايلي دي، لېکن ابو السعود رَحِمَهُ الله فرمايي چي د خپل ځان ذکر کولو لپاره صاحب د هدايې داسي ليکلي دي: قال العبد الضعيف عفى عنه، لېکن تر وفات وروسته يو شاګرد د هغه پر ځای قال رَضِيَ اللهُ عَنْهُ ليکلي دي. ځکه چي د خپل ځان لپاره قال رَضِيَ اللهُ عَنْهُ ليکل ښه نه دي، د تېرو مشرانو هم دغه طريقه ده.

(۲)... د هدايې د مصنف دا عادت هم دی چي د اقوالو د ليکلو په وخت کي قوي قول مخکي ذکر کوي. لېکن د دلائلو د ليکلو په وخت کي چي کوم مذهب د ده په نېز مختاره وي، د هغه دليل وروسته بيانوي، چي دا دليل د مخکي دلائلو جواب هم سي.

(۳)... صاحب د هدايې چي کله قال مشائخنا ذکر کړي، نو له دې څخه د بخارا، سمرقند او فرغانه علماء مراد وي. د بخارا، سمرقند، ترمذ، فرغانه او ماوراء النهر علماء به په هغه زمانه کي يو ستر حيثيت درلودی. او په فتویٰ کي به د هغو يو ځانګړی مقام وو، په دې خاطر صاحب د هدايې د خپلو مشائخو رايي ته اهميت ورکوي. اوس د دې ښارونو هيڅ حيثيت نسته، دا ښارونه په اوسني وخت کي د ازبکستان د دريائي سيحون او دريائي جيحون په مينځ کي پراته دي.

(۴)... صاحب د هدايې چي کله ديارنا ذکر کوي، نو له دې څخه د ده خپل ښار مراد وي، او د ده ښار د ماوراء النهر سره نژدې په فرغانه کي وو.

(۵)... کوم آيت چي مخکي تېر سوی وي. دويم ځل د هغه و طرف ته د اشاره کولو لپاره صاحب د هدايې بما تلونا ذکر کوي.

(۶)... کوم حديث چي مخکي ذکر سوی وي، دويم ځل د هغه و طرف ته د اشاره کولو لپاره بما روينا ذکر کوي.

(۷)... کوم عقلي دليل چي مخکي تېر سوی وي، دويم ځل د هغه و طرف ته د اشاره کولو لپاره بما ذکرنا يا ما بينا ذکر کوي.

(۸)... کله داسي هم کيږي چي د آيت، حديث او دليلِ عقلي ټولو و طرف ته د اشاره کولو لپاره لما بينا ذکر کوي.

(۹)... کله نا کله عقلي دليل د "فقه" په لفظ سره ذکر کوي، مثلاً وايي: الفقه فيه کذا.

(۱۰)... او کله چي تر يو عقلي دليل وروسته بل عقلي دليل ذکر کړي، نو له دې دويم دليل ځخه د اول دليل علت او سبب بيانول مقصود وي.

(۱۱)... او کله چي د "الاصل" لفظ ذکر کړي، نو له دې ځخه مراد د امام محمد رحمه الله کتابُ الاصل وي، چي هغه ته د امام محمد رحمه الله مبسوط هم وايي.

(۱۲)... کله چي د لفظ د "المختصر" ذکر کړي، نو له دې ځخه مراد مختصر القدوری وي.

(۱۳)... کله چي لفظ د "الکتاب" ذکر کړي، نو له دې ځخه مراد د امام محمد رحمه الله جامعِ صغير وي.

(۱۴)... صاحب د هدايې د قدوري مسئلې اول ذکر کوي، وروسته د جامعِ صغير مسئلې ذکر کوي، او کله نا کله دا تصريح هم کوي چي دا مسئله له جامعِ صغير ځخه را اخيستل سوې ده، خو په عامه توګه دا تصريح نه کوي.

(۱۵)... کله چي لفظ د قالوا ذکر کړي، نو مطلب يې دا وي چي په دې مسئله کي د علماؤ اختلاف دی، او د زياتره مشائخو قول همدغه دی.

(۱۶)... چيري چي هٰذا الحديث محمول على كذا ذکر کړي، نو مقصد يې دا وي چي د حديثو امامانو دغه حديث پر دې معنیٰ حمل کړی دی، او کله چي نحمله على كذا ذکر کړي، نو مقصد يې دا وي چي امامانو خو پر دې معنیٰ حمل کړی نه دي، لېکن پر دې معنیٰ حمل کول پکار دي.

(۱۷)... کله چي عند فلان ذکر کړي، نو مقصد يې دا وي چي دا قول د فلان مذهب دی، او کله چي عن فلان ذکر کړي، نو مقصد يې دا وي چي دا قول د فلان روايت دی، علامه عيني رحمه الله په شرح هدايه کي ليکلي دي چي د عن کلمه په غيرِ ظاهر الروايه کي استعماليږي، او ابن الهمام رحمه الله فرمايي چي کلمه د عند پر مذهب دلالت کوي.

(۱۸)... صاحب د هدايې د نحويانو د بعضي اقوالو اتباع کوي، او د أما په جواب کي فاء نه ذکر کوي.

(۱۹)... له ان وصليه ځخه واو ساقطوي، حال دا چي پر ان وصليه واو داخليږي.

(۲۰)... او کله چي د يو مسئلې لپاره تر يو ځل مثال ذکر کولو وروسته دويم ځل بيا د هغه مسئلې يا مثال و طرف ته اشاره کول وغواړي، نو د مثال و طرف ته د اشاره کولو لپاره اسم اشاره بعيد ذالك استعمالوي، او د مسئلې و طرف ته د اشاره کولو لپاره اسم اشاره قريب هٰذا استعمالوي.

(۲۱)... کله چي د يو مقدار سوال جواب ورکوي، نو د سوال تصريح نه کوي، داسي نه وايي: فان قيل كذا؛ فقط جواب ذکر کوي، په داسي وخت کي د سوال را ايستل ضروري وي، صرف په درې ځايونو کي يې سوال ذکر کړی دی: چي له هغو څخه دوه ځايه په کتاب ادب القاضي کي دي، او يو ځای په کتاب الغصب کي دی. (اثمار الهدايه ج:۱، ص: ۳)

(۲۲)... له ظاهر الرواية څخه مراد د امام محمد رحمه الله دا شپږ کتابونه دي: ① المبسوط، ② الجامع الصغير، ③ الجامع الکبير، ④ الزيادات، ⑤ السير الصغير، ⑥ السير الکبير.

## د هدايې د مصنف مسامحات

د هيڅ مصنف او مؤلف په باره کي دا دعویٰ کېدلی نه سي چي د ده علم قطعي او غيرِ مشتبه دی، يو مصنف که هر څومره ستر اديب او مضمون ساز هم وي، دا نه سي ويلای چي زما فلان تصنيف يا فلان کتاب له هر ډول غلطی، شک او تېروتني څخه پاک دی، دا صفت صرف او صرف د لوی څښتن ﷻ د پاک کلام قرآن کريم دی، چي د هغه علم قطعي او بالکل غيرمشتبه دی، او په هغه کي د شک، تعارض او تېروتني ذره قدر هم نسته، په خپله په قرآن کريم کي راغلي دي: لا يأتيه الباطل من بين يديه ولا من خلفه (حمٓ السجدة)، دا د قرآن کريم يو داسي خصوصيت دی چي په هيڅ انساني کتاب کي نه سي راتلی، ښکاره دي وي چي د هدايې د بې شمېره ځانګړنو، فني خصوصياتو او د نورو کمالاتو او فضائلو باوجود د هدايې د مصنف په څېر له ستر محقق عالم، فقيه او حافظ الحديث څخه هم په دې کتاب کي څه مسامحات(تېروتني) سوي دي، او د هغو شمېر بعضي شارحينو ۲۳ ښوولی دی، چي له هغو څخه ۱۳ په هدايه اولين او پاته ۱۰ په آخرين کي دي. (د تفصيل لپاره د علامه عبد الحي لکنوي هدايه وګورئ!)

په دې عظيم کتاب کي د څو تېروتنو وجود هيڅ د پټولو خبره نه ده، ځکه چي آخر دا هم د انسان کتاب دی، او بيا خو دا صرف د هدايې د مصنف خصوصيت نه دی، په خپله د امام بخاري رحمه الله په څېر له ستر شخصيت څخه د تصنيف او تحقيق په ميدان کي هم ډېر اوهام او مسامحات سوي دي، لکه څرنګه چي حافظ ابو بکر خطيب بغدادي په "موضح اوهام مجمع والتفريق" کي د امام بخاري ۷۲ اوهام ذکر کړي دي، چي له هغوی څخه په بېلابېلو ځايونو کي صادر سوي دي.

نو د ذٰلك الكتاب لا ريب فيه دعویٰ صرف د الهي کلام لپاره خاص ده، يو کتاب هم په دې کي د قرآن پاک سره شريک کېدلای نه سي.

## د امامانو د لنډ ژونده لیک په اړه یوه مهمه نقشه

| نومونه | امام ابو حنیفه | امام مالک | امام شافعي | امام حنبل | امام ابو یوسف | امام محمد |
|---|---|---|---|---|---|---|
| خپل اصلي نوم او د پلار نوم | نعمان بن ثابت | مالک بن انس | محمد بن ادریس | احمد بن محمد بن حنبل | یعقوب بن ابراهیم | محمد بن حسن |
| د پیدایښت ځای | کوفه | حمیري مدینه | په عسقلان کې د غزه | په بغداد کې د مروزي سیمه | کوفه | په کوفه کې د شیبان سیمه |
| د پیدایښت نېټه | سنه: ۸۰ﻫ | سنه: ۹۵ﻫ | سنه: ۱۵۰ﻫ | سنه: ۱۶۴ﻫ | سنه: ۱۱۳ﻫ | سنه: ۱۳۲ﻫ |
| د مړیني ځای | بغداد | مدینه | مصر | بغداد | بغداد | رَی |
| د مړیني نېټه | سنه: ۱۵۰ﻫ | سنه: ۱۷۹ﻫ | سنه: ۲۰۴ﻫ | سنه: ۲۴۱ﻫ | سنه: ۱۸۲ﻫ | سنه: ۱۸۹ﻫ |
| شیوخ او استاذان | ابراهیم نخعي، حماد بن سلیمان | تر نهه سوه (۹۰۰) زیات شیوخ، نافع | امام مالک، امام محمد، سفیان بن عیینه | امام ابو یوسف، امام شافعي، یحیی بن قطان | امام ابو حنیفه | امام ابو حنیفه، امام ابو یوسف، سفیان ثوری |
| شاګردان | امام ابو یوسف، امام محمد، | ابن مبارک، قطان | احمد بن حنبل، علی بن مدینی، اسحاق بن راهویه | بخاري، مسلم، ابو داؤد، عبد الله بن احمد | احمد بن حنبل، امام محمد، یحیی بن معین | امام شافعي، ابو حفص، یحیی بن معین |
| تألیفونه | - | موطأ امام مالک | موسوعة الامام الشافعي، کتابُ الأم | مسند امام احمد ۲۷۱۰۰ حدیثونه | کتاب الآثار، کتاب الخراج | موطأ امام محمد، الجامع الصغیر الجامع الکبیر |
| خدمتونه | د فقه، او اصول الفقه تدوین، او د حنفي مذهب باني- | د مالکي مذهب باني | د شافعي مذهب باني | د حنبلي مذهب باني | فقهي ته یې ترتیب ورکړی | د حنفي مسلک زیاتره کتابونه دوی لیکلي دي |

## د علم فقه مدوّن او باني

که څه هم د اسلامي علومو پیل د اسلام سره یو ځای وسو، او د نزولِ وحي له زمانې څخه د عقائدو، حدیث، تفسیر او فقه تعلیم شروع سو، خو څرنګه چې په ځانګړي ترتیب او خاص طرز سره په اوله هجري سدۍ (پېړۍ) کې د "علم الفقه" تدوین نه وسو، او نه دې ته د یو ځانګړي فن حیثیت حاصل وو، نو ځکه په اوله پېړۍ کې د یو ځانګړي انسان وطرف ته د فقه تدوین نه منسوب کیږي، خاص همدغه حال د نورو علومو او فنونو هم دی.

لېکن کله چې په دویمه هجري پېړۍ کې تر ټولو مخکې امام اعظم ابوحنیفه رَحِمَهُ الله (مولد سنه: ۸۰ﻫ، متوفی سنه: ۱۵۰ﻫ) په ځانګړي انداز او ترتیب سره تر اصولو او ضوابطو لاندې "فقه" مدونه کړه، او هغه ته یې د مستقل فن شکل ورکړی، نو ځکه هغوی ته د دې أهم فن باني ویل کیږي.

لکه څرنګه چې حافظ جلال الدين سيوطي شافعي (متوفی سنه: ٩١١هـ) په خپل کتاب (تبييض الصحيفة بمناقب أبي حنيفة) کې له ځينې سترو علماؤ څخه رانقل کړې دي چې: "د امام صاحب له ځانګړي مناقبو څخه دا هم دي چې امام صاحب تر ټولو مخکې هغه کس دی چې د شريعت علم يې سره راټول او مدوّن کړی، او هغه ته يې د فقهي بابونو ترتيب ورکړی، بيا د هغه په اتباع کې امام مالک رَحِمَهُ الله (موطأ امام مالک) وليکی". (تبيض الصحيفة ص: ٣٦).

ښکاره دې وي چې له تدوينِ شريعت څخه مراد د شريعت مسائلو ته د فقهي بابونو ترتيب ورکول دي، چې د هغه دويم نوم تدوينِ فقه ده، همدارنګه د صحاح سته وو مشهور راوي او محدث نضر بن شسيل فرمايلي دي چې: "خلګ له علمِ فقه څخه غافل وو، د امام صاحب انقلابي حرکت دوی راويښ کړه".

له دې معتبرو روايتونو څخه ښکاره سوه چې د علم فقه باني او مدوّن امام ابو حنيفه رَحِمَهُ الله دی.

## د حنفي فقهې ځانګړتياوي

د فقه حنفي ډېري ځانګړني او خصوصيات دي، چې پر دې موقع د هغو شمېرل مشکل دي، دلته صرف د ښوونې په توګه صرف درې خصوصيات ذکر کوو:

① د حنفي فقهې يو عظيم خصوصيت دا دی چې د دې فقهې باني او لاربښوونکي امام ابوحنيفه رَحِمَهُ الله تابعي دی، او د الله ﷻ په دې قول والذين اتبعوهم بإحسان رضي الله عنهم و رضوا عنه [التوبه: ١٠٠] کې داخل دی، دا يو داسي امتياز دی. چې بل مذهب يا فقهې ته حاصل نه دی، ځکه چې امام صاحب ته د تابعيت شرف حاصل وو، او په کتابونو کې د دې ډېر شواهد او دلائل ليکل سوي دي.

② د حنفي فقهې يو بل خصوصيت دا دی چې څومره فقهي مذهبونه په دې نړۍ کې مدوّن سوي دي، په هغو کې حنفي مذهب تر ټولو مخکې مدوّن سوی دی، لکه څرنګه چې مخکې معلومه سوه، او په دې لړ کې علامه امام شعراني شافعي رَحِمَهُ الله (متوفی سنه: ٩٧٣) په خپل ناياب کتاب (الميزان) کې د يوې عجيبې خبرې وطرف ته اشاره کړې ده. هغه دا چې څرنګه حنفي مذهب تر ټولو مخکې په وجود کې راغلی دی، همدارنګه به د فناء کېدلو په اعتبار سره تر ټولو آخر وي، فرمايي: فكما كان مذهب الإمام أبي حنيفة أوّل المذاهب المدونة تدوينًا فكذلك يكون آخرها انقراضًا وبذلك قال أهل الكشف. (الميزان للشعراني ج:١، ص: ٢٥)

③ د حنفي فقهې يو بل خصوصيت او امتياز کوم چې ډېر اعلیٰ دی، دا دی چې فقه حنفي صرف د يو سړي رايه نه ده. بلکې دې فقهې ته د امام اعظم ابو حنيفه تر نګراني لاندې د څلوېښتو (٤٠) علماؤ په شوریٰ او جرګه کې ترتيب ورکول سوی دی.

امام طحاوي دا خبره په سند سره رانقل کړې ده چې د امام صاحب د شوریٰ مجلس به پر څلوېښتو (٤٠) غړو (اراکينو) مشتمل وو، له دې غړو څخه به د يحيیٰ بن زکريا بن ابی زائده، حفص بن غياث، حبان او مندل رَحِمَهُمُ الله په څېر د حديثو حافظان، د حمزة الزيات او عافية الازدی رَحِمَهُمَا الله په څېر د قرآن ماهرين، د امام ابو يوسف او امام زفر رَحِمَهُمَا الله په څېر د قياس خاوندان؛ د امام محمد بن الحسن او قاسم بن معن رَحِمَهُمَا الله په څېر د لغت امامان او د داؤد طائي او

فضیل بن عیاض رَحِمَهُمَا الله په څیر ستر پرهېزګاران هم ول، تر دې شوریٰ لاندي د حنفي فقهي تدوین پیل سو، او دا لړۍ تر سنه: ۱۵۰ هـ پوري مسلسل روانه وه (کوم چي د امام صاحب د مړیني کال دی).

## د حنفي فقهي د تدوین طریقه

په دې مجلسِ شوریٰ که به د تدوین طریقه دا وه چي د یو خاص باب په باره کي به مسئلې وړاندي کېدلې، بیا که به د هغه مسئلو په جواب کي د مجلس ټوله غړي متفق سول، نو هغه مسئلې به په هغه ګړي لیکل کېدلې، بحث به ډېر په آزادي سره شروع کېدی، کله کله به تر ډېره پوري د بحث لړۍ روانه وه، امام صاحب به په ډېر غور او تحمل سره د ټولو تقریرونه اورېدل، او په آخر کي به یې داسي پرېکړه وکړه چي ټولو به تسلیم کړه، کله به داسي هم کېدل چي تر امام صاحب وروسته به نور غړي پر خپله رایه ټینګ پاتې وه، نو په دې وخت کي به د ټولو مختلف اقوال لیکل کېده.

## په حنفي مذهب کي د غلطی امکانات بیخي کم دي

د شوریٰ او جرګې نظام د حنفي فقهي یو ځانګړی او اَهم خصوصیت وو، چي د نورو امامانو په مذهب کي نه وو، نو ځکه تر دې نظام لاندي په استنباط کړی سوو مسئلو کي د غلطی امکانات بیخي ډېر کم دي، دا زما دعویٰ نه ده، بلکي د امام احمد رَحِمَهُ الله د خاص استاد وکیع بن الجرّاح دعویٰ ده (کوم چي د صحاح سته وو راوي او جلیل القدر محدّث دی)، څرنګه چي خطیب بغدادي په تاریخ بغداد (ج: ۱۴، ص: ۲۴۷) کي لیکلي دي چي یو ځل وکیع رَحِمَهُ الله ته یو چا وویل چي امام صاحب غلطي کړې ده، پر دې خبره وکیع رَحِمَهُ الله ډېر په غصه سو، او ویې ویل چي امام صاحب به څرنګه غلطي وکړي، حال دا چي (په بحث او تحقیق کي به) د ده سره امام ابو یوسف، امام زفر، یحییٰ بن ابی زائده، حفص بن غیاث، قاسم بن معن رَحِمَهُمُ الله او داسي نور ډېر ستر عالمان او محدثین موجود وو، د کوم سرې سره چي داسي خلک کښېني هغه به څرنګه غلطي وکړي، او که بالفرض له هغه څخه غلطي وسي، نو دا حضرات به فوراً هغه ته تنبیه ورکوي.

## د امام صاحب د استنباط کړی سوو مسئلو شمېر

صاحب د تنظیم الدرایه فرمایي چي زموږ ګران استاذ ستر محدث علامه محمد یوسف بنوري رَحِمَهُ الله به د علامه بابرتي (صاحبِ عنایه) په حواله سره فرمایل: إن المسائل التی دوّنها ابوحنیفة الف الف و مائتا الف وسبعون الفًا ونیفًا، یعني د امام صاحب د استنباط کړی سوو مسئلو شمېر له دولس لکه اویا زرو (۱۲۷۰۰۰۰) څخه څه زیات دی. (مقدمه تنظیم الدرایه ص: ۲۴)

## حنفیت د درې سره وو امامانو د مجموعي نوم دی

صاحب د اثمار الهدایه فرمایي چي زما استاذ به ویل چي حنفیت صرف د امام ابو حنیفه رَحِمَهُ الله د مسلک نوم نه دی، بلکي د امام ابو حنیفه، امام ابو یوسف او امام محمد رَحِمَهُمُ الله د مسلکونو د مجموعې نوم دی، که څوک په دې ټولو کي د یوه پر مسلک عمل کوي، نو هغه به پر حنفي مسلک عمل کونکی ګڼل کیږي، او که چا د امام محمد یا امام ابو یوسف رَحِمَهُ الله پر مسلک فتویٰ ورکړه، نو د حنفیت له مسلک څخه به خارج نه شمېرل کیږي، همدا وجه ده چي د قدوري او هدایې په څیر مهمو کتابونو کي د دې دواړو امامانو مسلک هم ذکر سوی دی، او د ضرورت پر وخت د هغه مطابق فتویٰ هم ورکول کیږي.

## د حنفي فقهي سند

مشهور محدث د ترمذي راوي خلف بن ايوب فرمايي چي: له الله تعالی څخه علم حضرت محمد ﷺ ته ورسېدی، نبي ﷺ صحابه وو ته ورسوی، صحابه وو تابعينو ته ورسوی، تر تابعينو وروسته امام ابو حنيفه او د هغه ملګرو ته ورسېدی، په دې خبره که څوک خوشحاله کيږي، او که ناراضه کيږي! (همدا خبره په معارف السنن ج: ۳، ص: ۲۶۱ کي هم ذکر سوې ده).

په درمختار کي د حنفي فقهي د سند نقشه داسي ښوول سوې ده چي: د فقهي کښت حضرت عبد الله ابن مسعود ؓ وکری، او علقمه بن قيس دا کښت اوبه کړی، ابراهيم بن يزيد النخعي ورېبی، غوبل يې حماد بن ابی سليمان وکړی، او امام ابوحنيفه ميده کړی، اوړه يې څني جوړه کړه. امام ابو يوسف يعقوب دا اوړه خيشته کړه، او امام محمد بن الحسن الشيباني له دې څخه ډوډۍ پخې کړې، او اوس يې ټوله خلک خوري، دا سند يو شاعر په نظم کي داسي بيان کړی دی:

اَلْفِقْهُ زَرْعُ ابْنِ مَسْعُوْدٍ وَعَلْقَمَةُ　　حَصَّادُهُ ثُمَّ اِبْرَاهِيْمُ دَوَّاسُ

نُعْمَانُ طَاحِنُه، يَعْقُوْبُ عَاجِنُه　　مُحَمَّدُ خَابِزٌ وَالْآكِلُ النَّاسُ

(درمختار ج: ۱، ص: ۳۵ - ۳۷)



الٰہی بگردان تو مکتوب من　　تو معمول عالم کنی خیر من

من پئ راه راست نعمانم　　پیر من امام ابو حنیفه اعظم

چار صد ویک ہزار سنه رسید　　دُرِ گردان مایۂ از صدف برمید

## مُقَدّمه

بِسْمِ اللهِ الرَّحْمٰنِ الرَّحِيْمِ
شروع كوم د الله (ﷻ) په نامه چې ډېر مهربان او زيات رحم كونكى دى

| |
|---|
| اَلْحَمْدُ لِلّٰهِ الَّذِىْ أَعْلٰى مَعَالِمَ الْعِلْمِ وَأَعْلَامَه ټوله تعريفونه د هغه الله (ﷻ) لپاره دي چا چې د علم علامات (نښې) او بيرغونه لوړ كړل وَأَظْهَرَ شَعَائِرَ الشَّرْعِ وَ أَحْكَامَه او د شريعت (محمدي ﷺ) شعائر او احكام يې ښكاره كړل وَبَعَثَ رُسُلًا وَ أَنْبِيَاءَ صَلَوَاتُ اللهِ عَلَيْهِمْ أَجْمَعِيْنَ إِلٰى سُبُلِ الْحَقِّ هَادِيْنَ او انبياء او رسولان عليهم الصلوٰة والتسليمات يې د حق لارو وطرف ته ښوونكي را واستول وَأَخْلَفَهُمْ عُلَمَاءَ او عالمان يې نايبان (ځاى ناستي) جوړ كړل د پېغمبرانو إِلٰى سُنَنِ سُنَنِهِمْ دَاعِيْنَ چې هغوى د انبياوو د عادتونو د طريقو وطرف ته بلونكي دي يَسْلُكُوْنَ فِيْمَا لَمْ يُؤْثَرْ عَنْهُمْ مَسْلَكَ الْاِجْتِهَادِ (او) په هغو خبرو كې داجتهاد لاره جاري كوي كوم چې له پېغمبرانو څخه منقولې نه وي مُسْتَرْشِدِيْنَ مِنْهُ فِيْ ذٰلِكَ او په دې باره كې له الله ﷻ څخه د هدايت غوښتونكي دي وَهُوَ وَلِيُّ الْإِرْشَادِ او بې شكه الله ﷻ د صحيح لارې ښوولو مالک دى (له يَسْلُكُوْنَ څخه تر آخره پورې بله معنىٰ داسې هم كېداى سي چې: (عالمان) له انبياؤ او رسولانو څخه په غير منقول (شرعي) امورو كې له الله تعالىٰ څخه د هدايت طلب كوي او پر اجتهادي ډگر ځي، او بېشكه الله تعالىٰ د هدايت والي دى). |

**تشريح**: تر هر څه له مخه مصنف رَحِمَهُ الله د قرآن او حديث په اقتداء كې د خپل عظيم او نا اشنا كتاب "هدايې" شروع په بسم الله او الحمد لله سره وكړه، په حديث كې راځي: كل كلام لايبدأ فيه بالحمد لله فهو أجذم، او د ابن ماجه په روايت كې د أجذم پر ځاى د أقطع لفظ راغلى دى او په ځينو رواياتو كې راغلي دي: كل أمر ذى بال لم يبدأ فيه ببسم الله فهو أقطع، مطلب دا چې كوم كار د الله ﷻ په نامه او د الله ﷻ په حمد سره شروع نه كړى سي هغه ناقص پاتېږي، د سلفو صالحينو هم دا عادت وو چې هغوى به د خپلو كتابونو شروع په بسم الله او د الله تعالىٰ په حمد سره كوله؛ نو ځكه مصنف رَحِمَهُ الله تر بسم الله وروسته په "اَلْحَمْدُ" سره د الله ﷻ تعريف بيانوي، لېكن په تعريف كې يې داسې جمله راوړې چې په هغې سره د الله ﷻ د تعريف تر څنگ د فقهي او د أصول الفقهي د علم د ارزښت او تعريف و طرف ته هم اشاره وسي، په خطبه كې داسې جمله راوړل چې په هغې سره د كتاب د مضمون و طرف ته اشاره وسي، و دې ته "براعتِ استهلال" وايي؛ نو فرمايي: چې ټوله تعريفونه د هغه الله لپاره دي چا چې د علم اثرات او د علم بيرغونه پورته كړي دي، او د شريعت علامات او احكام يې څرگند كړي دي، او د هغه الله حمد بيانوم چا چې د حق لارې د ښوونې لپاره انبياء او رسولان را استولي دي، پر دوى ټولو دې درود او سلام وي.

و أخلفهم الخ بيا فرمايي: چي الله ﷻ علماء د انبياؤ ځای ناستي(خليفه ګان) جوړ کړي دي، چي هغوی د انبياؤ د سنتونو او عادتونو و طرف ته دعوت ورکوي، په اصل کي دا عبارت داسي دی: وَأَخْلَفَهُمْ عُلَمَاءَ الَّذِيْنَ يَدْعُوْنَ إِلَىٰ سُنَنِ سُنَنِهِمْ (يعني الله ﷻ داسي علماء د انبياؤ خليفه ګان جوړ کړل چي هغوی دانبياؤ د لارو وطرف ته دعوت ورکوي) وروسته فرمايي: لېکن دکومو خبرو يا د کومو سنتونو په باره کي چي له انبياؤ څخه يوه خبره را نقل سوې نه وي، علماء په هغه کي د اجتهاد لاره اختياروي، او د انبياؤ له منقول سنتونو څخه استنباط کوي، او د اجتهاد لپاره له الله ﷻ څخه رُشد او هدايت غواړي، ځکه چي صرف لوی څښتن ﷻ هادی او لارښوونکی دی.

**د لغاتو حل او د نکتو بيان:** د الحمد لام د اهل السنة په نېز د جنس لپاره دی، نو په دې صورت کي به يې مطلب دا وي چي "د حمد هر فرد او د هغه حقيقت د الله لپاره دی"، د جمهورو علماؤ رايه دا ده چي د استغراق لپاره دی نو بيا به يې مطلب دا وي چي "د دنيا او آخرت ټوله تعريفونه د الله لپاره دي"، لېکن معتزله وايي چي د عهد لپاره دی، نو د دوی په نېز د الحمد مطلب دا سو چي "هغه معلوم او معهود تعريفونه کوم چي په قرآن و حديث کي دي، د الله لپاره دي"، ځکه چي د معتزله وو په نېز د افعالو خالق بندګان دي، نو د هغوی په نېز چي کوم حمد د بندګانو د افعالو په مقابله کي وي، د هغه مستحق به بندګان وي نه الله تعالیٰ، او څرنګه چي د اهل السنة په نېز د ټولو افعالو خالق الله تعالیٰ دی نو ځکه د حمد د ټولو افرادو مستحق به هم هغه وي.

○ **د حمد تعريف:** لغتيوهانو د حمد تعريف داسي کړی دی: "اَلْحَمْدُ هُوَ الثَّنَاءُ بِاللِّسَانِ عَلَى الْجَمِيْلِ الْاِخْتِيَارِيْ نِعْمَةً كَانَ أَوْ غَيْرَهَا" (د انسان اختياري ښېګڼي په ژبه سره بيانول هغه که د نعمت په مقابله کي وي، او که نه وي)يعني د صاحب اختيار و طرف ته د منسوبه ښه او صافو په ژبه سره اداء کولو ته حمد وايي، بيا که دا حمد اداء کول د نعمت په مقابله کي وي لکه: حمدته على إنعامه، او که د نعمت په مقابله کي نه وي لکه: حَمِدْتُهُ عَلَىٰ شَجَاعَتِهِ.

○ **الله:** په دې باره کي د علماؤ اختلاف دی چي دا اسم منقول دی او که مرتجل، مشتق دی او که غير مشتق، عَلَم دی او که غيرِ عَلَم، الله هغه ذات ته ويل کيږي چي هغه واجبُ الوجود وي او د ألوهيت ټولو صفاتو ته جامع وي.

○ **أعلىٰ معالم العلم:** أعلیٰ د افعال له باب څخه د واحد مذکر غائب ماضي صيغه ده: پورته کول، لوړول، معالم جمع د مَعْلَم ده، معنیٰ يې ده: مَوضِع عَلَم يا مَوضِع علامت؛ دلته له معالم څخه مراد د شريعت څلور أصول دي، يعني: کتاب، سنت، اجماع، قياس، يعني هغه الله لره دي حمد وي چا چي د شريعت اصول پورته کړل، د دې أصولو پورته کېدل په دا ډول دي چي الله تعالیٰ موږ ته د دې د پيروي کولو او په دې باندي د عمل کولو حکم کړی دی، لکه څرنګه چي الله تعالیٰ فرمايي: اِتَّبِعُوْا مَآ أُنْزِلَ إِلَيْكُمْ - وَمَآ آتَاكُمُ الرَّسُوْلُ فَخُذُوْهُ - وَمَنْ يُّشَاقِقِ الرَّسُوْلَ مِنْ بَعْدِ مَا تَبَيَّنَ لَهُ الْهُدٰى وَيَتَّبِعْ غَيْرَ سَبِيْلِ الْمُؤْمِنِيْنَ - فَاعْتَبِرُوْا يَا أُولِى الْأَبْصَارِ، او بعضي حضراتو فرمايلي دي چي له معالم څخه مراد علماء دي او د علماؤ پورته والی او لوړوالی ښکاره دی، لکه څرنګه چي الله تعالیٰ فرمايي: يَرْفَعِ اللّٰهُ الَّذِيْنَ آمَنُوْا مِنْكُمْ وَالَّذِيْنَ أُوْتُوا الْعِلْمَ دَرَجَاتٍ.

○ **وأعلامه:** أعلام جمع د عَلَم ده، عَلَم علامت ته هم وايي، غره او بيرغ ته هم وايي، په اول صورت کي به دليل ځيني مراد وي او په دويم صورت کي به علماء او په دريم صورت کي به ذاتِ عَلَم ځيني مراد وي په دې توګه چي د عَلَم تشبيه

د هغه بادشاه سره ورکول سوې ده چې د هغه په لاس کې بيرغ وي، او وجه د تشبيه يې واجبُ الاطاعت او واجبُ الانقياد کېدل دي.

صاحب د فتح القدير شيخ ابن الهمام ويلي دي چې له أعلام څخه مراد اسبابِ شرعيه دي، لکه: د لمر لوېدل چې د ماښام د لمانځه سبب دی، او د نصاب مالک کېدل د زکوٰة د وجوب، او د مياشتې ليدل د روژې د وجوب او شرافتِ مکان د حج د وجوب سبب دی، دليل يې دا دی چې عَلَم په معنیٰ سره د علامت دی او اسبابِ شرعيه هم د احکامو د واجب کېدلو علامت وي، او د بعضو رايه دا ده چې له أعلام څخه مراد هغه علماء دي چې د هغوی اقتداء کيږي، او په زياترو ځايونو کې له أعلام څخه مراد علماء وي.

O **وأظهر شعائر الشرع**: أظهر دا هم د افعال له باب څخه د واحد مذکر غائب ماضي صيغه ده: څرګندول. شعائر جمع د شعيرة ده لکه صحائف چې جمع د صحيفة ده. شعيرة هغه شی ته ويل کيږي کوم چې د الله د عبادت نښه وي، او بعضي حضراتو ويلي دي چې له شعائر څخه مراد هغه عبادتونه دي چې د شُهرت په توګه اداء کيږي لکه اذان، د جمعې لمونځ، د اختر لمونځ، قرباني کول، د عرفات په ميدان او مزدلفه کې د حاجيانو جمع کېدل. شرع د فتح يفتح له باب څخه د شَرَعَ يَشْرَعُ مصدر دی لغوي معنیٰ يې ده: قانون، ضابطه، او له شرع څخه مراد دلته مشروعات دي نه شارع.

O **أحكامه**: احکام د حکم جمع ده، حکم اثر مرتب على الشئ ته ويل کيږي لکه جواز، فساد، حُرمت، حِلت او نور. يا حکم د الله تعالیٰ هغه خطاب ته ويل کيږي کوم چې د بندګانو سره متعلق وي يا نسبت تامه ته حکم ويل کيږي. (ملا عبد الغفور)
په خطبه کې د احکامو ذکر د براعتِ استهلال په توګه دی يعنې له احکامو څخه و دې طرف ته اشاره ده چې دا کتاب پر احکامو او مسائلو مشتمل دی.

O **وبعث رسلا وانبياء**: رسول هغه ته ويل کيږي چې د هغه سره کتاب وي لکه حضرت موسیٰ عليه السلام. او نبي هغه ته ويل کيږي چې د الله تعالیٰ د احکامو تبليغ کوي که څه هم د هغه سره کتاب نه وي لکه حضرت يوشع عليه السلام. (کشاف)

O **هادين**: د انبياؤ صفت دی، او اسم فاعل دی، د هدايت دوه قسمه دي: "بې له واسطې تر مقصده رسول"، د هدايت دا قسم صرف د الله له طرفه ثابتيږي، او په اهدنا الصراط المستقيم کې هم د دغه معنیٰ و طرف ته اشاره ده. او دويم قسم "بالواسطه يعنې د واسطې په مرسته تر مقصده رسول"، دا منصب د انبياؤ عليهم السلام دی.

O **أخلفهم علماء**: أخلف د خلف فلان فلانًا څخه اخيستل سوی دی، کله چې دا ماده د إفعال په باب کې استعمال سي نو په دوو مفعولانو سره متعدي کيږي، يعنې الله تعالیٰ علماء د انبياؤ خليفه ګان جوړ کړل. په حديث کې راځي: العلماء ورثة الانبياء او وراث د خپل مورث خليفه او ځای ناستی وي.

O **علماء**: د عالِم جمع ده لکه شعراء چې د شاعر جمع ده.

O **إلى سنن سننهم**: سنن جمع د سنّت ده په معنیٰ سره د لارې دی، يا په معنیٰ سره د عادت. په دې عبارت کې له اول سنن څخه مراد طُرق دي او له دويم سنن څخه مراد عادات دي، ترجمه يې دا ده: "چې علماء د داسې لارو وطرف ته رابلونکي دي چې هغه لارې د انبياؤ د عاداتو وطرف ته رسوونکي دي".

وَخَصَّ أَوَائِلَ الْمُسْتَنْبِطِينَ بِالتَّوْفِيْقِ او اولني مجتهدينو ته الله تعالیٰ يو ځانګړی توفيق ورکړی حَتّٰی وَضَعُوْا مَسَائِلَ مِنْ کُلِّ جَلِيٍّ وَدَقِيْقٍ چي د هغه په نتيجه کي هغوی هر ډول ښکاره او باريکي(پټي) مسئلې وضع کړې غَيْرَ أَنَّ الْحَوَادِثَ مُتَعَاقِبَةُ الْوُقُوْعِ ليکن(بيا هم) د زمانې واقعات پرلپسې واقع کېدونکي دي وَالنَّوَازِلَ يَضِيْقُ عَنْهَا نِطَاقُ الْمَوْضُوْعِ او(نوي) پېښېدونکي مسئلې د يوې موضوع په رسۍ کي تړل مشکل دي وَاقْتِنَاصُ الشَّوَارِدِ بِالْاِقْتِبَاسِ مِنَ الْمَوَارِدِ او (د شريعت) له أصولو څخه د نا اشنا مسئلو أخذ او استنباط د ځنګلي حيوانانو د ښکارولو په ډول ستونزمن دي [بله معنیٰ يې داسي کيږي: او د ځنګلي حيوانانو په ډول (نا اشنا مسائل دي) چي په ښکلو(دړو) کي د هغوی قابو کول (او ښکارول) ګران کار دی] وَالْاِعْتِبَارُ بِالْاَمْثَالِ مِنْ صَنْعَةِ الرِّجَالِ او پر مثالونو (د دې مسئلو) قياسول د ماهرو خلکو کار دی وَبِالْوُقُوْفِ عَلَی الْمَآخِذِ يَعَضُّ عَلَيْهَا بِالنَّوَاجِذِ او په هغه مأخذونو خبرېدل چي په غاښو سره نيول کيږي (د ماهرو خلکو کار دی) [او بله معنیٰ يې داسي ده چي: د احکامو په مأخذونو ځان خبرول ډېر سخت او ستونزمن کار دی] وَقَدْ جَرَی عَلَيَّ الْوَعْدُ فِيْ مَبْدَاِ بِدَايَةِ الْمُبْتَدِیْ او (حقيقت دا دی) چي د بداية المبتدي په سريزه کي زما له طرفه دا وعده سوې وه أَنْ أَشْرَحَهَا بِتَوْفِيْقِ اللهِ تَعَالٰی شَرْحًا أَرْسُمُهُ بِکِفَايَةِ الْمُنْتَهِیْ چي د الله په توفيق سره به زه د دې شرح کوم چي نوم به يې کفاية المنتهی اږدم.

**تشريح:** مصنف رَحِمَهُ الله له دې ځايه دا بيانوي چي د اول قرن (پېړی) امامانو د ډېرو مسئلو استنباط کړی دی، خو بيا هم د زمانې د بدلون او د نورو ډېرو پېښېدونکو واقعاتو په وجه نوي نوي مسئلې را پيدا کيږي چي د هغوی شمېر ناممکنه دی نو ځکه د هغوی لپاره أصول ټاکل او د هغوی لپاره کتاب ليکل ضروري دي او وروسته يې يو تشبيه بيان کړې ده، د تشبيه پوره خلاصه دا ده: چي څرنګه د ځنګلي او وحشي حيوانانو نيول او د هغو ښکارول ډېر ګران کار دی. هوبهو دغه ډول له أصول اربعه وو څخه د مسائلو استخراج او استنباط هم ګران کار دی، او دا د عام سړي کار نه دی، بلکي فقط هغه څوک يې پوره کولای سي چا ته چي بيدار مغزي، حاضرباشي او پوره مهارت ورکول سوی وي، او د علامه ابن الهمام تحقيق دا دی چي مصنف رَحِمَهُ الله د وَالْاِعْتِبَارِ بِالْاَمْثَالِ...الخ څخه خپل د کسر نفس او عاجزۍ طرف ته اشاره کړې ده، او دا باور يې کړی دی چي د استخراج او استنباط په ډګر کي قدم ايښوول ډېر ستونزمن کار دی او زما په ډول کمزوري او ناتوان ته په دې ډګر کي قدم ايښوول خو پرېږده په دې اړه سوچ کول هم تعجب پاروونکي دي، خو څرنګه چي د بداية المبتدي په شروع کي ما وعده کړې وه چي پر دې موضوع به زه يو څه کار کوم (فشرعت فيه) نو ځکه مي په دې شروع وکړه.

**د لغاتو حل او د نکتو بيان:** له اوائل مستنبطين څخه مراد امام اعظم رَحِمَهُ الله او د ده ملګري دي ځکه همدغه حضرات له نصوصو څخه د دلائلو په استنباطولو کي تر نورو مخکي دي او د مسائلو په وضع کولو سره د فضيلت حاصلونکي دي، او وروستني ټولو امامانو د دوی پيروي کړې ده. د استنباط معنیٰ ده: مځکه کيندل. اوبه را ايستل. او لفظ د استنباط له نصوصو څخه د وصف مؤثر د را ايستلو په معنیٰ هم مستعمل دی، ځکه په دواړو ځايونو کي کُلفت او مُشقت دی. همدا وجه ده چي د استنباط په وجه سره د علماؤ درجې او مرتبې پورته کيږي. او د اُوبو او علم په مينځ کي مشابهت هم

په دې وجه دی چې اُوبه د اجسامو د حیات او ژوند سبب دی او علم د اُرواحو د ژوند سبب دی، لکه څرنګه چې په دې آیتونو کې هم ودې طرف ته اشاره ده: وَأَحْيَيْنَا بِهِ بَلْدَةً مَّيْتًا ـ اَوَ مَنْ كَانَ مَيْتًا فَأَحْيَيْنَاهُ .

○ **من كل جلى ودقيق**: له دې څخه مسائلِ قیاسیه او مسائل استحسانیه مراد دي، د مثال په توګه په څاه کې پچه ولوېدله نو د قیاس مطابق اوبه ناپاکې سوې، ځکه چې په ماء قلیل کې نجاست لوېدلی دی او استحسان دا دی چې اُوبه نه دي ناپاکه سوې، ځکه چې د صحرا پر څاه ګانو باندې سرونه نه وي او څارویان د څاه ګانو پر شاو خوا پچې کوي او هواګانې هغه پورته کوي په څاه کې یې اچوي، نو د پچو مقدارِ قلیل (لږ اندازه) د ضرورت په وجه سره معاف سو. او په مقدار کثیر (ډېره اندازه) کې هیڅ ضرورت نسته نو ځکه هغه معاف نه کړی سو.

**غیر أنّ الحوادث**: دا عبارت د یو اعتراض جواب دی، اعتراض دا دی چې کله جلي او خفي ټولې مسئلې وضع سوې نو بیا وروستني حضرات د دلائلو په استنباط او د مسائلو په وضع کولو ولې پسې دي؟ او د "هدایه" د تصنیف کولو اړتیا ولې پیدا سوه؟ په دې عبارت کې د هغه جواب ورکول سوی دی، د جواب حاصل دا دی: لکه څرنګه چې واقعات او حوادث هره ورځ مخ ته راځي، او ټوله مسائل په یوه موضوع کې را اخیستل هم ګران کار دی. نو ځکه په هره زمانه کې د دې واقعاتو او حوادثو لپاره مسائل وضع کیږي، او د هغه مطابق کتابونه لیکل کیږي.

○ **واقتناص الشوارد بالإقتباس من الموارد**: اقتناص: د افتعال د باب مصدر دی ښکار کول، شوارد جمع د شاردة ده معنیٰ یې ده: وحشي او ځنګلي حیوان، له دې څخه مراد نا اشنا او نادره مسائل دي، اقتباس هم د افتعال د باب مصدر دی: له علم څخه استفاده کول، أخذ کول، پر یو أصول باندې یو شی قیاسول او له هغه څخه نوې مسئله استنباطول موارد: له دې څخه أصول مراد دي، په دې عبارت کې د ګرانو مسئلو د استنباطولو تشبیه د ځنګلي حیوانانو د ښکارولو سره ورکول سوې ده.

○ **والإعتبار بالإمثال من صنعة الرجال**: یعني احکام خپل پر مثالونو قیاسول د ماهرو خلکو او غټو املماتو کار دی، دا کار دومره آسانه نه دی

○ **يعض عليها بالنواجذ**: عض: په غاښول، په غاښ نیول، نواجذ جمع د ناجذة ده معنیٰ یې ده: زامه (ژامه). یعني د شریعت داسې أصول او مآخذ (چې هغه دومره سخت وي چې په غاښو سره تر نیولو وروسته په قابو کې راځي نو داسې أصول) په علم او پوهه کې راویستل د ماهرو او غټو خلکو کار دی، دعام سړي کار نه دی.

| فَشَرَعْتُ فِيهِ نو په هغې مې شروع وکړه وَالْوَعْدُ يَسُوْغُ بَعْضَ الْمَسَاغِ او په وعده کې خو څه ګنجایش او وسعت وي وَ حِيْنَ أَكَادُ أَتَّكِئُ عَنْهُ اتِّكَاءَ الْفَرَاغِ او کله چې د شرحې فراغت ته نژدې سوم تَبَيَّنْتُ فِيهِ نُبْذًا مِنَ الْإِطْنَابِ نو ما محسوسه کړه چې په دې کې خبره یو څه اوږده سوې ده خَشِيْتُ أَنْ يُهْجَرَ لِأَجْلِهِ الْكِتَابُ او زما دا اندېښنه سوه چې د اوږدوالي په وجه اصل کتاب(بداية المتبدي) پاته نه سي فَصَرَفْتُ عِنَانَ الْعِنَايَةِ إِلَىٰ شَرْحٍ آخَرَ مَوْسُوْمٍ بِالْهِدَايَةِ نو ځکه مې د توجه قیزه د دویمې شرحې و طرف ته وګرځوله چې د هغې نوم "هدایه" ده أَجْمَعُ فِيهِ بِتَوْفِيْقِ اللهِ تَعَالَىٰ چې په هغه کې د الله په توفیق سره جمع کوم بَيْنَ عُيُوْنِ الرِّوَايَةِ وَ مُتُوْنِ الدِّرَايَةِ ښه روایاتونه او مضبوطه عقلي دلیلونه تَارِكًا لِلزَّوَائِدِ فِي كُلِّ بَابٍ د دې په هر باب کې مې د زوائدو د پرېښوولو اراده ده مُعْرِضًا عَنْ هٰذَا النَّوْعِ مِنَ |
|---|

الْإِسْهَابِ او له دې ډول اوږدوالي څخه مې د ځان ژغورلو نيت دى مَعَ مَا أَنَّهُ يَشْتَمِلُ عَلَى أُصُولٍ يَنْسَحِبُ عَلَيْهَا فُصُولٌ سره د دې چې هغه به پر داسې أصولو مشتمله وي چې پر هغه نور فروع متفرع کېدای سي.

**تشريح**: د هدايې مصنف رَحِمَهُ الله اول په فقه کې د متن کتاب وليکی چې په هغه کې يې په ډېر ارزښت سره د قدوري مسئلې را جمع کړې، او چيرې چې به يې مسئلې نه کړې تر لاسه هلته به يې د امام محمد له کتاب "جامع صغير" څخه مسئلې را اخيستلې، او د دواړو په مجموعه سره يې د "بداية المبتدي" تصنيف وکړی. د "بداية المبتدي" په سريزه (مقدمه) کې يې وعده وکړه چې زه به د "بداية المبتدي" شرح هم ليکم، نو په اتيا (۸۰) جلده کې يې د "بداية المبتدي" شرح په نامه د "كفاية المنتهي" سره وليکله، کله چې له شرح څخه فارغېدلو ته نژدې سو نو دا يې محسوسه کړه چې کتاب دومره اوږد سوی دی چې څوک به يې نه ووايي، او خيال يې وکړی چې هسې نه خلک اصلي کتاب "بداية المبتدي" نه پرېږدي، نو ځکه يې د "بداية المبتدي" دويمه شرح په نامه د "هدايه" سره وليکل چې هغه ستاسو په لاس کې ده، او وروسته فرمايي چې دا کتاب "هدايه" به دومره نه اوږدوم خو بيا هم په دې کې به د احاديثو او د قرآن مضبوطه دلائل جمع کوم، او عقلي دلائل به هم وي. او داسې أصول به وي چې پر هغه به ډېر جزئي مسائل متفرع کېدای سي، مګر په دې کې به اوږدې خبرې، لايعني او زيات کلام نه وي.

**د لغاتو حل او د ټکتو بيان**: يسوغ: دا ډېر متنازع فعل دی بعضي وايي چې دا د تفعيل له باب څخه دی او بعضي وايي چې د نصر له باب څخه دی خولنډه دا چې معنیٰ يې دا ده: مباح کول، مهلت ورکول، روا کېدل، او د مَسَاغ معنیٰ ده: ګنجايش، او دلته د عبارت مطلب دا دی چې په وعده کې د تأخير کولو ګنجايش وي، او دويم مطلب يې دا دی چې تر وعدې کولو وروسته هغه کار روا کيږي چې وعده يې سوې وي، نو ځکه مې د وعدې مطابق د دې شرح ليکل شروع کړه، او دريم مطلب يې صاحب د "احسن الهدايه" دا ليکلی دی چې: ما خو د خپلې وعدې مطابق د كفاية المنتهي شرح شروع کړه، اوس به دا ګورو چې دا کله پوره کيږي، ځکه وعده خو په هرحال کې وعده ده".

- نبذاً: نَبْذٌ مصدر دی معنیٰ يې ده: معمولي، لږغوندي.
- إطناب: د افعال د باب مصدر دی: هغه کلام ته ويل کيږي چې د يوې نکتې په وجه له مقصود څخه اوږد او زيات سي، او که هيڅ فايده پکښې نه وه نو هغه ته تطويل ويل کيږي. إِسْهَاب دا هم د افعال د باب مصدر دی: په معنیٰ سره د إِكْثَار دی يعني خبره اوږدول.
- عيون الرواية: عين الشئ غوره شي ته وايي. رواية په معنیٰ سره د مرويات دی، دا د اضافة الصفة الى الموصوف له قبيلې څخه دی يعني غوره مرويات (ښه رواياتونه).
- متون الدراية: متون د متن جمع ده، په معنیٰ سره د مضبوط او ټينګ. له متون الدراية څخه مراد عقلي دلائل دي.

وَأَسْأَلُ اللهَ تَعَالَى أَنْ يُوَفِّقَنِيْ لِإِتْمَامِهَا او له الله تعالیٰ څخه غواړم چې ما ته د دې د پوره کولو توفيق راکړي وَيَخْتِمَ لِيْ بِالسَّعَادَةِ بَعْدَ اخْتِتَامِهَا او چې د دې تر ختمولو وروسته زما خاتمه بالخير کړي حَتَّى أَنَّ مَنْ سَمَتْ هِمَّتُهُ خو که د چا همت (او عزم) لوړ سي إِلَى مَزِيْدِ الْوُقُوْفِ د زياتې خبرتيا حاصلولو لپاره يَرْغَبُ فِي الْأَطْوَلِ وَالْأَكْبَرِ نو هغه دې د اوږدې

اوغتي شرحي (كفاية المنتهي) و طرف ته رغبت وكړي وَمَنْ أَعْجَلَهُ الْوَقْتُ عَنْهُ او كه ديو چا وخت تنګ وي (او فرصت يې كم وي) يَقْتَصِرُ عَلَى الْأَقْصَرِ نو هغه دي په كوچنى شرح (هدايه) اكتفا وكړي. وَلِلنَّاسِ فِيمَا يَعْشَقُونَ مَذَاهِبُ او د خلكو خوښه مختلفه او ډول ډول وي وَ الْفَنُّ خَيْرٌ كُلُّهُ او دا فن (علمُ الفقه) ټوله خير دى. [او بله معنىٰ يې ده: هر فن پر خپل ځاى غوره او ښه دى] ثُمَّ سَأَلَنِيْ بَعْضُ إِخْوَانِيْ أَنْ أُمْلِيَ عَلَيْهِمُ الْمَجْمُوْعَ الثَّانِيَ بيا زما بعضي ملګرو زما څخه د دويمي مجموعې (هدايه) د املاء كولو غوښتنه وكړه فَافْتَتَحْتُهُ نو ځكه په هغه (اوس) شروع كوم مُسْتَعِيْنًا بِاللهِ تَعَالىٰ فِيْ تَحْرِيْرِ مَا أُقَاوِلُهُ او د كلام په ليكلو كي له الله تعالىٰ څخه مدد غوښتونكى يم مُتَضَرِّعًا إِلَيْهِ فِي التَّيْسِيْرِ لِمَا أُحَاوِلُهُ او د هدف د آسانه كېدلو لپاره په عاجزۍ سره سوال كونكى يم إِنَّهُ الْمُيَسِّرُ لِكُلِّ عَسِيْرٍ بې شكه صرف هغه مشكل آسانه كونكى دى وَ هُوَ عَلىٰ مَا يَشَاءُ قَدِيْرٌ او څه چي غواړي پر هغه قدرت لري وَ بِالْإِجَابَةِ جَدِيْرٌ او د سوالونو قبلول د هغه د شان سره لايق دي وَحَسْبُنَا اللهُ وَنِعْمَ الْوَكِيْلُ او زموږ لپاره الله كافي دى او هم هغه ډېر ښه كار ساز دى.

**تشريح:** صاحب د هدايې رَحِمَهُ الله مخكي خپل د كسرِ نفس او عاجزۍ اظهار وكړى، او په آخر كي خپل ټوله أمور الله تعالىٰ ته سپاري او وروسته فرمايي: د چا وخت چي تنګ نه وي او زيات واقفيت او خبرتيا ترلاسه كول غواړي هغه دي زما غټه او اوږده شرحه كفاية المنتهى وګوري، او د چا سره چي وخت كم وي هغه دي زما مختصره شرح هدايه وګوري (او له دې څخه دي پوره استفاده وكړي او د دې هر باب دي خپل د دماغ او ذهن په قالب كي كښېږدي او د دې له هر ګل څخه دي د جوهر را ايستلو كوښښ وكړي)، لېكن د هرچا خوښه جلا جلا وي، د چا چي كومه شرحه خوښه وي هغه دي وګوري، او دا فن د علم الفقه ټوله او سر تر پايه خير دى.

**د لغاتو حل او د نكتو بيان:**

○ **لإتمامها...... بعد اختتامها:** دواړه ضميرونه د مفرد دي، د "هدايه" و طرف ته راجع دي او په بعضي نسخو كي دا ضميرونه د تثنيې دي نو په هغه صورت كي به دواړو شروحو ته يعني "هدايه" او "كفايه" ته راجع وي.

**وللناس فيما يعشقون مذاهب:** يعشقون د سمع له باب څخه د جمع مذكر غائب مضارع صيغه ده: ډېره مينه كول. د يو چا سره ډېر محبت ساتل، له مذاهب څخه مراد طُرُقِ مُختلفه دي، دا د عربي د نامتو شاعر ابو فراس د شعر دويمه مصرع ده، پوره شعر يې داسي دى:

وَمِنْ عَادَتِيْ حُبُّ الدِّيَارِ لِأَهْلِهَا
وَلِلنَّاسِ فِيْمَا يَعْشَقُوْنَ مَذَاهِبُ

○ **الفن:** له فن څخه د علامه ابن الهمام رَحِمَهُ الله په نيز د فقهي علم مراد دى. او بعضي وايي چي له دې څخه د هر چا خوښه مراد ده ځكه چي كوم سړى د كوم فن سره اړيكي لري دا فن هغه ته ډېر او تر اندازې زيات ګران او خوښ وي. له مجموعهٔ ثاني څخه مراد "هدايه" ده.

○ **أقاول، أحاول:** أقاول من المقاولة د مفاعلې له باب څخه دى په معنىٰ د بحث او مباحثه كولو سره دى. دلته ويل او إملا كول ځيني مراد دي. أحاول من المحاولة دا هم د مفاعلې له باب څخه دى معنىٰ يې ده: كوښښ كول. اراده كول. متضرعًا د

تفعل له باب څخه د اسم فاعل صيغه ده معنیٰ يې ده په عاجزۍ سره د يو شي غوښتنه کول، جدير له جدر څخه مشتق دی معنیٰ يې ده: لائق کېدل.

رَبَّنَا تَقَبَّلْ مِنَّا إِنَّكَ أَنْتَ السَّمِيْعُ الْعَلِيْمُ وَ تُبْ عَلَيْنَا إِنَّكَ أَنْتَ التَّوَّابُ الرَّحِيْمُ

وَصَلَّى اللهُ عَلَى خَيْرِ خَلْقِهِ مُحَمَّدٍ وَّ صَحْبِهِ أَجْمَعِيْنَ

وَالْحَمْدُ لِلّٰهِ رَبِّ الْعَالَمِيْنَ



# كِتَابُ الطَّهَارَات

## (دا) كتاب د پاكيو (د احكامو په بيان كي) دى

**تشريح**: كتاب الطهارات په دې جمله كي درې بحثونه دي: (۱) نحوي تركيب (۲) د كتاب د لفظ سره اړوند (۳) د طهارات د لفظ سره اړوند.

(۱) د نحوي تركيب په اعتبار سره (په دې جمله كې) درې احتماله دي: اول دا چي كتاب الطهارات خبر دى د محذوفي مبتداء چي "هٰذا" دى يعني: هذا كتاب الطهارات، دويم دا چي مبتداء ده د محذوف خبر يعني كتاب الطهارات هٰذا، دريم دا چي مفعول دى د محذوف فعل يعني: خُذْ كتاب الطهارات يا اِقرَأْ كتاب الطهارات.

**د كتاب لغوي او اصطلاحي معنىٰ:**

(۲) د دريم بحث خلاصه دا ده چي د كتاب او كتابت لغوي معنىٰ ده: "يو شى سره جمع كېدل"، او كتاب ته هم ځكه كتاب ويل كيږي چي په دې كي حروف سره را جمع كيږي، او كتاب د مكتوب په معنىٰ سره هم استعماليږي، لكه خلق چي د مخلوق په معنىٰ سره استعماليږي، او په اصطلاح كي كتاب د مسائلو هغه "مجموعه" ته وايي چي هغه مستقلاً معتبره وي او پر مختلفه انواعو مشتمله وي كه نه وي.

**يادونه**: د فقهي په كتابونو كي درې ډوله الفاظ ذكر كيږي: ① كتاب ② باب ③ فصل، په كتاب كي د مختلفه اقسامو او مختلفه انواعو مسئلې ذكر كيږي، په باب كي د يوه قسم مسئلې ذكر كيږي، او په فصل كي د يوې نوعي مسئلې ذكر كيږي.

(۳) د دريم بحث خلاصه دا ده چي په لغت كي طُهارت د طاء په ضمه سره هغو اُوبو ته ويل كيږي چي په هغو سره پاكي حاصله سي (يعني چي تر پاكي حاصلولو وروسته كومي اوبه پاته سي)، او طِهارت په كسره د طاء سره د پاكولو آلې ته ويل كيږي، لكه اوبه او خاوري، او طَهارت مصدر دى معنىٰ يې ده: پاكول، او په اصطلاح كي طهارت له حدث (حكمي مرداري) يا له خبث (حقيقي مرداري) څخه پاكېدلو ته ويل كيږي، او ځيني علماؤ ويلي دي چي طهارت د دريو (۳) اندامونو پرېوللو او د سر مسح كولو ته ويل كيږي.

مولانا عبدالحى رَحِمَهُ الله د علامه حلبي رَحِمَهُ الله په حواله سره په السعايه شرح الوقايه كي ليكلي دي چي د طهارت شرائط پر دوه قسمه دي: (۱) شرائط د وجوب (۲) شرائط د صحت.

شرائط د وجوب (يعني چي كله دا شرطونه وي نو طهارت واجب دى) نهه [۹] دي: (۱) اسلام (۲) عقل (۳) بلوغ (۴) د حدث (بي اودسي) واقع كېدل، هغه كه حدث اصغر وي او كه اكبر (۵) پر ټوله اندامونو پاكي اُوبه (ماء مطلق) تېرول (۶) حيض به نه وي (۷) نفاس به نه وي (۸) د اوبو يا خاورو پر استعمال قادره كېدل (۹) په وقت كيَ د ګنجايش لو پراخي نه كېدل.

او شرائط د صحت يعني د طهارت د صحيح كېدلو شلور شرطونه دي: (۱) پر ټولو اندامونو اُوبه تېرول (۲)حيض به نه وي (۳)نفاس به نه وي (۴)د طهارت د حاصلولو په صورت كي به په غير معذور انسان كي يو حكم ناقض د طهارت(د اودس ماتيوونكى) نه وي.

**سوال:** كيږي چي صاحب د هدايې طهارات د جمع په صيغه سره ذكر كړى دی، حال دا دی چي طهارت مصدر دی او د مصادرو تثنيه او جمع نه راځي، جواب دا دی چي كه د مصادرو په آخر كي د تانيث تاء وي نو د هغوی تثنيه او جمع را وړل صحيح دي.

او دلته يې طهارات د جمع په صيغه سره ځكه راوړی چي د طهارت د مختلفه انواعو او قسمونو و طرف ته اشاره وسي، ځكه رفعِ نجاست هم طهارت دی او رفعِ خُبث هم طهارت دی، حال دا دی چي دواړه مختلفه نوعي دي.

**كتاب الطهارات ولي تر نورو مخكي سو:**

پاته سوه دا خبره چي كتاب الطهارات ولي مخكي كړی سو؟ نو د دې وجه دا ده چي مشروعات شلور دي: (۱) يوازي حقوقُ الله (۲)يوازي حقوقُ العباد (۳)چي دواړه حقونه سره جمع سي لېكن حقُ الله غالبه وي (۴)چي دواړه حقونه سره جمع سي لېكن حقُ العبد غالبه وي، مصنف د هدايې په ترتيب كي حقوقُ الله(يعني عبادات) د خپل عظمت په وجه سره مخكي كړل، بيا په عباداتو كي لمونځ مخكي بيان كړی، ځكه لمونځ د اسلام په اركانو كي تر ايمان وروسته تر ټولو قوي ركن دی، الله ﷻ فرمايي: فَإِنْ تَابُوا وَ أَقَامُوا الصَّلٰوةَ، او نبي ﷺ فرمايي: الصلوة عماد الدين من أقامها فقد أقام الدين ومن هدمها فقد هدم الدين؛ همدارنګه د اسلام په اركانو كي تر توحيد وروسته اول لمونځ فرض سوی دی.

او څرنګه چي طهارت د لمانځه شرط دی، په حديث كي راځي: مفتاح الصلوٰة الطهور، او شرط د شي په خپله تر شي مخكي وي نو ځكه يې طهارت تر لمانځه(صلوٰة) مخكي بيان كړی.

قَالَ اللهُ تَعَالٰى: يٰٓأَيُّهَا الَّذِيْنَ اٰمَنُوٓا إِذَا قُمْتُمْ إِلَى الصَّلٰوةِ فَاغْسِلُوْا وُجُوْهَكُمْ.....الْاٰيَةُ [سورة المائدة:٦] اې مؤمنانو! كله چي تاسو د لمانځه لپاره د درېدلو اراده وكړی نو خپلي څېرې(مخان) پرېولئ.....الآية

**تشريح:** مصنف رَحِمَهُ الله د كتاب پېل د اوداسه په آيت سره وكړی، حال داچي په دعوىٰ كي قاعده دا ده چي مدعىٰ مخكي وي، او دليل يې وروسته ذكر كيږي لېكن دلته د الله ﷻ كلام د تبرك او تيمّن لپاره مخكي كړی سوی دی كه څه هم دا له مروّجه قاعدې څخه خلاف كار دی، پوره آيت دا دی: يٰٓأَيُّهَا الَّذِيْنَ اٰمَنُوٓا إِذَا قُمْتُمْ إِلَى الصَّلٰوةِ فَاغْسِلُوْا وُجُوْهَكُمْ وَ أَيْدِيَكُمْ إِلَى الْمَرَافِقِ وَ امْسَحُوْا بِرُءُوْسِكُمْ وَ أَرْجُلَكُمْ إِلَى الْكَعْبَيْنِ، ( اې مسلمانانو! كله چي تاسو د لمانځه اراده وكړی نو پرېولئ خپل مخونه او خپل لاسونه تر څنګلو پوري او مسح كوئ خپل پر سرونو او [پرېولئ] خپلي پښې تر بجلكو پوري).

تر دې آيت لاندي يو څو شيان د ذكر وړ دي: اول دا چي په دې آيت كي "إذا" ذكر سو، او "إذا" په أمورِ يقينيه وو كي استعماليږي، او "إن" ذكر نه سو، ځكه چي په أمورِ مشكوكه (متردده) وو كي استعماليږي، ځكه د ايمان تقاضا دا ده چي قيام الى الصلوٰة دي له أمورِ يقينيه وو څخه وي، دوېم شی دا چي دا آيت بالاجماع مدني دی ځكه په بخاري كي راغلي دي چي حضرت عائشي رَضِيَ اللهُ عَنْهَا د خپل هار(امېل) د وركېدلو تر قصې وروسته وفرمايل: فنزلت يا أيها الذين امنوا إذا قمتم إلى الصلوٰة..... الى قوله: لعلكم تشكرون.

او د هار (امېل) قصه بالاتفاق تر هجرت يو څه زمانه وروسته پېښه سوې ده، نو ثابته سوه چي دا آيت مدني دی او دا خبره هم تسليم سوې ده چي اودس هم د لمانځه د فرض کېدلو په وخت کي په مکه مکرمه کي فرض سوی دی، لکه څرنګه چي ابن عبد البر ويلي دي چي تمام اهلِ مغازی ته دا خبره معلومه ده چي نبي ﷺ تر فرض لمانځه وروسته يو لمونځ بغير له اودس څخه نه کړی نه دي، او له دې څخه انکار يو جاهل او ضدي سړی کولای سي، اوس پاته سوه دا خبره چي کله پر اودس له مخکي څخه عمل موجود وو نو د دې آيت په نازلولو کي څه حکمت دی:

حضرت مولانا عبد الحی رَحِمَهُ الله په سعايه کي ليکلي دي چي د دې حکمت دا دی چي د اوداسه فرضيت متلو بالقرآن سي (يعني په قرآن کي د اودسه فرضيت تلاوت کړی سي) او دا احتمال هم سته چي د آيت اوله حصه يعني په کومه حصه کي چي د اودسه ذکر دی په مکه کي د اودسه د فرضيت په وخت کي رانازل سوی وي او پاته آيت چي په هغه کي د تيمّم ذکر دی په مدينه منوره کي رانازل سوی وي. (كذا في الاتقان)

**کوم سړی چي د قيام الی الصلوٰة (لمانځه ته د ولاړېدلو) اراده وکړي پر هغه اودس فرض دی:**

دريم شی دا دی چي د آيت ښکاره د دې خبري تقاضا کوي چي اودس پر هر هغه سړي فرض دی کوم چي د قيام الی الصلوٰة اراده وکړي هغه که مُحدث وي او که غير مُحدث، د اصحابِ ظاهر دغه مذهب دی. لېکن د جمهورو علماؤ مذهب له دې څخه خلاف دی، جمهور علماء وايي چي په آيت کي عبارت مُقدّر دی يعني: إذا قمتم الی الصلوٰة و أنتم محدثون، او دا دليل هم سته چي حَدَثُ د اودسه د وجوب لپاره شرط دی او دا دليل په دلالة النص سره ثابت دی. په دې توګه چي الله تعالیٰ په آيت: وَإِنْ كُنْتُمْ مَرْضٰى أَوْ عَلٰى سَفَرٍ أَوْ جَآءَ أَحَدٌ مِّنْكُمْ مِّنَ الْغَآئِطِ أَوْ لٰمَسْتُمُ النِّسَآءَ فَلَمْ تَجِدُوْا مَآءً فَتَيَمَّمُوْا صَعِيْدًا طَيِّبًا کي تيمّم د حدث سره يو ځای ذکر کړی دی، نو معلومه سوه چي د تيمّم د واجبېدلو لپاره حدث شرط دی او تيمّم د اودسه بدل او نايب دی، او قاعده دا ده چي کوم شی په بدل کي نص وي هغه به په اصل کي هم نص وي، نو ثابته سوه چي حدث د اودسه د واجبېدلو لپاره شرط دی.

## د اودسه فرائض، د غسل او مسح معنیٰ او د مخ اندازه

> فَفَرْضُ الطَّهَارَةِ غَسْلُ الْأَعْضَاءِ الثَّلَاثَةِ نو د اودسه فرض د دريو اندامونو پرېولل دي وَمَسْحُ الرَّأْسِ او د سر مسح کول دي بِهٰذَا النَّصِّ (او دا درې اندامونه پرېولل او د سر مسح کول) په دې نص سره (ثابت) دي وَ الْغَسْلُ هُوَ الْإِسَالَةُ لو غسل د اُوبو بيولو ته ويل کيږي وَالْمَسْحُ هُوَ الْإِصَابَةُ او مسح د اُوبو رسولو ته ويل کيږي وَحَدُّ الْوَجْهِ او د مخ حد مِنْ قُصَاصِ الشَّعْرِ إِلٰى أَسْفَلِ الذَّقَنِ (د سر) د وېښتيانو د را شنه کېدلو له آخري حصې څخه تر لاندي زنې پوري وَإِلٰى شَحْمَتَيِ الْأُذُنَيْنِ او د دواړو غوږونو تر نرميو پوري دی لِأَنَّ الْمُوَاجَهَةَ ځکه چي مواجهت (مخامخ کېدل) تَقَعُ بِهٰذِهِ الْجُمْلَةِ په دې ټولو سره راځي وَهُوَ مُشْتَقٌّ مِنْهَا او وجه له مواجهت څخه را اخيستل سوې ده.

**اللغات**: ﴿إِسَالَة﴾ د افعال له باب څخه مصدر دی: اوبه يا يو بل شی بيول (بهول)، ﴿إِصَابَة﴾ دا هم د فعال له باب څخه مصدر دی: رسول، ﴿قُصَاص الشَّعْر﴾ د وېښتيانو د راشنه کېدلو ځای، ﴿ذَقَن﴾ زنه. ﴿شَحْمَة﴾ د غوږ نرمی (پوځکی).

**تشريح**: فرض ډېرې معناوې لري: (۱)قطع: لکه ویل سوي چې دي: فرض الخياط الثوب یعني خیاط(درزي) جامه پرېکړه (۲)تقدیر: الله تعالیٰ فرمایلي دي: فَنِصْفُ مَا فَرَضْتُمْ یعني قَدَّرْتُمْ (۳) تفصیل: الله تعالیٰ فرمایلي دي: سُوْرَةٌ أَنْزَلْنَاهَا وَفَرَضْنَاهَا یعني فَصَّلْنٰهَا (۴)بیان: الله تعالیٰ فرمایلي دي: قَدْ فَرَضَ اللهُ لَكُمْ تَحِلَّةَ أَيْمَانِكُمْ یعني بَيَّنَ لكم كفارة أيمانكم (۵) حد: قال الله تعالى: لَأَتَّخِذَنَّ مِنْ عِبَادِكَ نَصِيبًا مَفْرُوضًا یعني محدودا (۶) انعام او تحفه: لکه: فَرَضْتُ الرَّجُلَ یعني ما و سړي ته انعام ورکړی (۷) د بوډاتوب او زوړوالي په معنیٰ سره: لکه: فُرِضَتِ الْبَقَرَةُ یعني غوا زړه سوه، او هم له دې معنیٰ څخه لَا فَارِضٌ وَلَا بِكْرٌ دی (۸) د عظمت او لويي په معنیٰ سره: ویل کیږي: فُلَانٌ فَارِضٌ یعني رَئِيسٌ.

زموږ په نېز فرض هغه حکم ته وايي چې په داسي قطعي دليل سره ثابت وي چې په هغه کي هيڅ شک او شبهه نه وي او د دې حکم دا دی چې کولو والا به يې د ثواب مستحق (حقداره) وي او پرېښوولو والا به يې د عذاب مستحق وي. او واجب هغه حکم ته وايي چې د هغه لزوم په ظني دليل سره ثابت وي او اداء کولو والا به يې د فرضو له اداء کونکي څخه د کم(او لږ) ثواب مستحق وي، او پرېښوونکي به يې د فرضو له پرېښوونکي څخه د کم عذاب مستحق وي.

**د دلالت قسمونه**: ښکاره دي وي چې د دلالت څلور قسمونه دي: (۱) قطعي الثبوت او قطعي الدلالة لکه قرآني آيتونه، متواتر او صريح حديثونه چې هغه د تأويل احتمال نه لري. (۲) قطعي الثبوت ظني الدلالة لکه مؤوله آيتونه او حديثونه. (۳) ظني الثبوت قطعي الدلالة لکه صريح اخبارِ أحاد. (۴) ظني الثبوت او ظني الدلالة لکه هغه اخبار أحاد چې د ډېرو معناوو احتمال لري؛ اول يقين فايده کوي، دويم ظن فايده کوي، دريم وجوب او مکروه تحريمي فايده کوي او څلورم سنيّت او استحباب فايده کوي. (حاشيه شرح نقايه)

○**وضؤ**: د واو په ضمّه سو يو ځانګړي فعل يعني اودس ته ويل کيږي، او د واو په فتحه سره هغه أوبو ته ويل کيږي چې د اوداسه لپاره تياري سوي وي.

صاحب د هدايې د وضؤ احکام د ډېر حاجت او اړتيا په وجه سره مخکي کړي دي او دويمه وجه يې دا ده چې د وضؤ محل د غسل د محل جزء دی او جزء پر کُل مخکي وي نو ځکه يې وضؤ پر غسل مخکي کړی، دريمه وجه يې دا ده چې الله تعالیٰ هم وضؤ پر غسل مخکي کړی دی په دې توګه چې اول يې فرمايلي دي: فاغسلوا وجوهكم...الآية. او تر دې وروسته يې: وإن كنتم جنبا فاطهروا فرمايلي دي.

○ **غســـــل**: د غين په ضمّه سره هغه أوبو ته وايي چې په غسل په کيږي، او د ټوله بدن پرېولو ته هم غُسل ويل کيږي، غِسل: د غين په کسره سره هغه شی ته ويل کيږي چې په هغه سره يو شی پرېولل کيږي لکه خطمي(صابون)، او غَسل: د غين په فتحه سره مصدر دی په معنیٰ سره د پرېوللو.

صاحب د هدايې فرمايلي دي چې په وضؤ(اوداسه) کي څلور فرض دي: د دريو اندامونو پرېولل او د سر مسح کول. او د دې څلورو د فرضيت ثبوت په ذکر سوي آيت سره سوی دی، همدارنګه يې فرمايلي دي چې د غسل معنیٰ أوبه بيول دي په دې خبره سره پر امام مالک رَحِمَهُ الله رد کوي، ځکه د هغه په نېز أوبه بيول کافي نه دي بلکي دَلْك يعني مُږل هم شرط دی او د مسح معنیٰ بغير له أوبو څڅولو څخه أوبه رسول او تېرول دي.

وحد الوجه الخ صاحب د هدايې د مخ (وجه) اندازه طولًا او عرضًا داسې بيان کړې دی چې د سر د وړېښتانو د راشنه کېدلو له ځای څخه د زنې تر لاندې حصې پورې او د يوه غوږ له نرمۍ څخه د بل غوږ تر نرمۍ پورې د مخ پرېولل فرض دي، دليل دا دی چې وجه مشتق دی له مواجهت څخه او مواجهت په دې ټوله حصه سره واقع کيږي نو ځکه د ټولې حصې پرېولل فرض دي(ځکه چې د مواجهت معنیٰ ده: مخامخ کېدل. او مخامخ کېدل دې ته وايي چې انسان دا ټوله حصه (يعني د سر له وړېښتيانو څخه تر لاندې زنې پورې او د يوه غوږ له نرمۍ......) د بل چا سره مخامخ کړي).

## د څنګلو او بجلکو حکم او په دې باره کې د فقهاؤ اقوال

وَالمِرْفَقَانِ وَالْكَعْبَانِ دواړه څنګلې او دواړه بجلکې يَدْخُلَانِ فِي الْغَسْلِ عِنْدَنَا په پرېوللو کې داخل دي زموږ په نيز خِلَافًا لِزُفَرَ رَحِمَهُ الله خلاف دی د زفر رَحِمَهُ الله هُوَ يَقُوْلُ: اَلْغَايَةُ لَا تَدْخُلُ تَحْتَ الْمُغَيَّا هغه فرمايي: چې غايه په مغيا کې نه داخليږي كَاللَّيْلِ فِي بَابِ الصَّوْمِ لکه شپه د روژې په باب کې وَلَنَا أَنَّ هٰذِهِ الْغَايَةَ لِإِسْقَاطِ مَا وَرَاءِهَا او زموږ دليل دا دی چې دا غايه خو د ما وراء د اسقاط لپاره ده إِذْ لَوْلَاهَا لَاسْتَوْعَبَتِ الْوَظِيْفَةُ الْكُلَّ ځکه که غايه نه وای نو پرېوللو به ټوله اندام کښېپاسلی(يعني ټوله اندام به پرېولل کېدلی) وَفِيْ بَابِ الصَّوْمِ لِمَدِّ الْحُكْمِ إِلَيْهَا او د روژې په باب کې (غايه) تر شپې پورې د حکم رسولو لپاره ده إِذِ الْإِسْمُ يُطْلَقُ عَلَى الْإِمْسَاكِ سَاعَةً ځکه چې د صوم اطلاق پر يوه ګړۍ امساک باندې هم کيږي وَالْكَعْبُ هُوَ الْعَظْمُ النَّاتِئُ او کعب هغه را پورته سوی هډوکی دی هُوَ الصَّحِيْحُ وَمِنْهُ الْكَاعِبُ همدا صحيح ده او هم له دغه لفظ څخه کاعب (مشتق) دی.

**اللغات**: ﴿مِرفَق﴾ څنګله، ﴿كَعب﴾ بجلکه ﴿غاية﴾ انتها، پای، ﴿مُغيّا﴾ د کوم شي لپاره چې غايت مقرر سوی وي. يا له ابتداء څخه واخله د انتها څخه تر مخکې پورې، ﴿وَظِيْفَة﴾ ټاکل سوې اندازه، لازمي مقدار، ﴿عظم﴾ هډوکی، ﴿ناتئ﴾ را پورته سوی، لوړ.

**تشريح**: مرفق: د ميم په کسره او د فاء په فتحه سره دی، او د دې پرعکس هم جائز دی يعني د ميم په فتحه سره او د فاء په کسره سره، د مټ او ليڅې بند(جوړ)ته مِرفَق وايي، کعب: د امام محمد رَحِمَهُ الله په نيز د پښې په بنکاره باندې د تسمې د تړلو د ځای و بند ته ويل کيږي، خو دا صحيح نه ده، صحيح دا ده چې تر پنډۍ لاندې د را پورته سوي هډوکي نوم کعب دی، او هم له دې څخه کاعب مشتق دی چې د هغه جمع کواعب راځي، کواعب هغه انجونو ته ويل کيږي چې سينې يې را پورته سوي او مخته را وتلي وي.

**صورت د مسئلې**: دا دی چې فقهاء حضرات خو پر دې متفق دي چې په اوداسه کې د دواړو لاسونو او دواړو پښو پرېولل فرض دي. لېکن په دې باره کې اختلاف دی چې مرفقين د لاسونو په پرېوللو او کعبين د پښو په پرېوللو کې داخل دي او که خارج. يعني د لاسو په ډول د څنګلو پرېولل او د پښو په ډول د بجلکو پرېولل هم شرط دي او که نه، ائمه ثلاثه يعني

د امام صاحب او صاحبينو مذهب دا دی چې د لاسو سره د څنګلو او د پښو سره د بجلکو پرېولل هم فرض دي، د امام شافعي رَحِمَهُ الله او د امام احمد رَحِمَهُ الله قول هم دا دی، او د امام مالک رَحِمَهُ الله يو روايت هم دغه رنګه دی.
لېکن امام زفر رَحِمَهُ الله فرمايي چې مرفقين او کعبين په پرېوللو کې داخل نه دي يعني د څنګلو او بجلکو پرېولل فرض نه دي، او د امام مالک رَحِمَهُ الله بل روايت بيا دغه رنګه دی.

**د امام زفر دليل:** دا دی چې په آيت کې مرافق او کعبين غايت (غايه) ده او غايت مطلقًا د مغيا په حکم کې داخله نه وي لکه په اتموا الصيام الى الليل کې چې ليل د روژې په حکم کې داخل نه دی همدارنګه به مرافق د يدين په حکم کې او کعبين د رجلين په حکم کې داخل نه وي.

**زموږ دليل:** دا دی چې د امام زفر رَحِمَهُ الله دا قول موږ نه تسليمو چې غايت د مغيا په حکم مطلقًا داخله نه ده، ځکه د غايت دوه قسمونه دي، اول دا چې غايت د خپل ماقبل يعني د مغيا له جنس څخه وي، يعني که غايت جلا کړی سي نو صدر د کلام يعني مغيا غايت او ماوراء د غايت ټولو ته شامل وي، دويم دا چې غايت د خپل ما قبل يعني د مغيا له جنس څخه نه وي يعني د غايت تر جلا کولو وروسته صدر د کلام يعني مغيا غايت او ماوراء د غايت ته نه شامليږي. اوس که چيري غايت له اول قسم څخه وي نو غايت په مغيا کې داخليږي او که چيري له دويم قسم څخه وي نو غايت د مغيا په حکم کې نه داخليږي، نو څرنګه چې ليل د صوم (روژې) له جنس څخه نه دی نو ځکه به د روژې په حکم کې نه داخليږي. او مرفقين د يدين له جنس څخه او کعبين د رجلين له جنس څخه دي نو ځکه به دا دواړه غايتونه خپل د مغيا په حکم کې داخليږي، يعني څنګلي به د لاسو په پرېوللو کې او بجلکي به د پښو په پرېوللو کې داخليږي.
صاحب د هدايې چې کوم دليل وړاندي کړی دی د هغه حاصل دا دی چې غايت کله کله په دې وجه ذکر کيږي چې حکم را کش کړی سي او تر غايت پوري را ورسول سي او کله کله غايت د ماوراء د ساقطولو لپاره ذکر کيږي، لنډه دا چې د غايت دوه قسمونه دي: غايت اثبات او غايت اسقاط. او په دې دواړو کې مابه الامتياز دا دی: که غايت صدر د کلام يعني مغيا ته شامل وي نو دا به غايت اسقاط وي او که شامل نه وي نو دا به غايت اثبات وي، او غايت اثبات د مغيا په حکم کې نه داخليږي لکه په اتموا الصيام الى الليل کې ليل د صوم په حکم کې نه داخليږي، او په غايت اسقاط کې ماوراء د غايت ساقطيږي، نو به غايت د مغيا په حکم کې داخل وي لکه په أيدکم الى المرافق کې چې غايت يعني مرافق ذکر سوی دی د مرفق د ماوراء د ايستلو لپاره، نو ځکه به د پرېوللو حکم په مرفق کې پاته وي.

**راجح قول:** په دې دواړو قولونو کې د ائمه ثلاثه وو قول راجح دی، چې هغوی وايي: دواړه څنګلي د لاسو په پرېوللو کې او دواړه بجلکي د پښو په پرېوللو کې داخل دي، او علامه ابن عابدين رَحِمَهُ الله فرمايي: چې پر دغه د علماؤ اجماع ده.
[القول الراجح: ص:۱، ج:۱]

## د سر د مسحې (مسح) اندازه او په دې باره کې د فقهاؤ اقوال

قَالَ: وَالْمَفْرُوْضُ فِيْ مَسْحِ الرَّأْسِ مِقْدَارُ النَّاصِيَةِ فرمايي او د سر په مسحه کې د تندي مقدار فرض دی وَهُوَ رُبُعُ الرَّأْسِ او د تندي مقدار څلورمه حصه د سر ده لِمَا رَوَى الْمُغِيْرَةُ بْنُ شُعْبَةَ رَضِيَ اللهُ عَنْهُ د هغه حديث په وجه کوم چې مغيره بن شعبه رضي الله عنه روايت کړی دی أَنَّ النَّبِيَّ أَتَى سُبَاطَةَ قَوْمٍ چې نبي ﷺ د يو قوم انبار (ډېران) ته راغلی فَبَالَ وَتَوَضَّأَ بيا نبي ﷺ متيازې وکړې او اودس يې وکړی وَمَسَحَ عَلَى نَاصِيَتِهِ وَخُفَّيْهِ او مسح يې وکړه پر خپل تندي او موزو باندې وَالْكِتَابُ مُجْمَلٌ او د قرآن (آيت) مجمل دی فَالْتَحَقَ بَيَانًا بِهِ نو ځکه دا حديث د بيان په توګه په هغه پسې لاحق سو وَهُوَ حُجَّةٌ عَلَى الشَّافِعِيِّ رَحِمَهُ اللهُ او همدا حديث د امام شافعي رَحِمَهُ الله په خلاف حجت دی فِي التَّقْدِيْرِ بِثَلَاثِ شَعَرَاتٍ د درېو وېښتيانو په اندازه لګولو کې وَعَلَى مَالِكٍ رَحِمَهُ اللهُ او د امام مالک رَحِمَهُ الله (په خلاف حجت دی) فِي اشْتِرَاطِ الْإِسْتِيْعَابِ د ټوله سره د کښېباسلو (نيولو) په شرطولو کې (يعني امام مالک فرمايي چې مسحه به ټوله سر نيسي يعني د ټوله سر مسحه شرط او فرض ده) وَفِيْ بَعْضِ الرِّوَايَاتِ قَدَّرَهُ بَعْضُ أَصْحَابِنَا بِثَلَاثِ أَصَابِعِ الْيَدِ او په ځينې روايتونو کې د تندي اندازه زموږ بعضي ملګرو په درې ګوتو سره لګولې ده لِأَنَّهَا ځکه چې درې ګوتې أَكْثَرُ مَا هُوَ الْأَصْلُ فِيْ آلَةِ الْمَسْحِ اکثر (زياتې) دي د هغه شي چې هغه د مسحې په آله کې اصل دی.

**اللغات:** ﴿نَاصِيَة﴾ تندی. ﴿سُبَاطَة﴾ خاشاک او ردي شيان، د ګندګيو د اچولو ځای (يعني په کوم ځای کې چې خلک ګندګي اچوي هغه ځای ته هم سُبَاطَة وايي) ﴿فَبَالَ﴾ د نصر له باب څخه د ماضي صيغه ده: شاشې کول، متيازې کول، بولې کول. ﴿تَقْدِيْر﴾ اسم مصدر دی د تفعيل له باب څخه معنیٰ يې ده: مقرر کول، ټاکل.

**تشريح:** مسح ويل کيږي د لانده لاس را تېرولو ته. هغه که په اوبو لوند سوی وي او که له يو مغسول اندام څخه وروسته لوندوالی پاته سوی وي. د سر مسح بالاتفاق فرض ده، ځکه چې دا په صريح آيت سره ثابته ده خو په فرض مقدار کې يې اختلاف دی: (١) د احنافو په نيز د سر د څلورمې حصې مسح کول فرض دي، هغه که د سر مخکې حصه وي او که د شا له راسته طرف څخه څلورمه حصه وي او که له چپه طرف څخه، امام شافعي رَحِمَهُ الله فرمايي چې مطلق سر مسح کول فرض دي، نو د ده په نيز که د درېو وېښتيانو او په يوه روايت کې د يوه وېښته په اندازه مسح وسي نو هم فرض ادا کيږي، لېکن امام مالک رَحِمَهُ الله او امام احمد رَحِمَهُ الله فرمايي چې د ټوله سر مسح فرض ده.

**د امام مالک دليل:** د الله تعالیٰ دا قول: وامسحوا برؤسكم دی، امام مالک رَحِمَهُ الله فرمايي چې "باء" زائده ده يعني آيت داسې دی وامسحوا رؤسكم يعني خپل پر سرو مسح کوئ، او ښکاره ده چې د رأس (سر) اطلاق په ټوله سر باندې کيږي نه پر بعضي، نو معلومه سوه چې د ټوله سر مسح کول فرض دي، صاحب د شرح نقايه ليکلي دي چې امام مالک رَحِمَهُ الله په احتياط باندې عمل کړی دی.

**د امام شافعي دليل:** امام شافعي رَحِمَهُ الله فرمايي چې ذکر سوی آيت د مسح د مقدار په سلسله کې مطلق دی نو د المطلق يجری علی إطلاقه د قاعدې مطابق به د مطلق سر مسح فرض وي، لهذا د امام شافعي رَحِمَهُ الله په نيز د سر د ادنیٰ حصې په مسح کولو سره فرض ادا کيږي او په ادنیٰ حصه کې يو ورېښته هم معتبر دی يا په قول د علامه مرغيناني رَحِمَهُ الله درې وېښته معتبر دي.

**زموږ دليل:** د احنافو علماء فرمايي چې د مسح د مقدار په سلسله کې آيت مُجمل دی، مجمل د بيان محتاج وي، او دلته بيان د مغيره رضی الله عنه حديث دی، يعني مغيره بن شعبه رضی الله عنه فرمايلي دي: ان النبی (ص) اتی سباطة قوم فبال و توضأ ومسح علی ناصيته وخفيه، د علامه مرغيناني رَحِمَهُ الله دا ذکر سوی حديث د دوو حديثونو يعني د مغيره رضی الله عنه له حديث او د حذيفه رضی الله عنه له حديث څخه مرکب دی، حديث د مغيره کوم چې مسلم روايت کړی دی د هغه الفاظ دا دي: أن النبی (ص) توضأ فمسح بناصيته وعلی العمامة وعلی خفيه او حديث د حذيفه کوم چې شيخينو روايت کړی دی د هغه الفاظ دا دي: اتی النبی (ص) سباطة قوم فبال قائما ثم دعا بماء فجئته بماء فتوضأ، د دې حديثونو خلاصه دا ده چې نبي کريم ﷺ تر متيازو کولو وروسته اودس وکړی او پر مقدار ناصيه باندې يې مسح وکړه، مقدار ناصيه او د سر څلورمه حصه يوه خبره ده نو په دې وجه د احنافو علماء له دې آيت څخه استدلال کوي فرمايي چې پر څلورمه د سر مسح کول فرض دي.

او د دې تائيد په يو بل حديث سره هم کيږي چې هغه ابو داؤد روايت کړی دی: عن انس رضی الله عنه رأيت رسول الله (ص) يتوضأ وعليه عمامة قطرية فادخل يديه من تحت العمامة فمسح مقدم رأسه، (له حضرت انس رضی الله عنه څخه روايت دی چې ما رسول الله ﷺ د اودس کولو په حال کې وليدی او د ده پر سر قطري لنګوټه وه، نو ده ﷺ خپل دواړه لاسونه د لنګوټې دلاندې حصې څخه ور داخل کړل او بيا يې د سر مخکنۍ حصه مسحه کړه)، ښکاره دې وي چې نبي ﷺ د سر ټوله مخکنۍ حصه مسح کړې ده، او د ټولې مخکنۍ حصې اندازه د سر څلورمه حصه ده چې هغې ته ناصيه ويل کيږي.

نو دا حديثونه د امام مالک رَحِمَهُ الله او د امام شافعي رَحِمَهُ الله په خلاف حجت دي، د امام مالک رَحِمَهُ الله په خلاف ځکه چې که د ټوله سر مسح فرض وای نو نبي ﷺ به د سر د څلورمې حصې پر مسح اکتفاء څنګه کولای؟ او د امام شافعي رَحِمَهُ الله په خلاف ځکه حجت دی چې که د سر له څلورمې حصې څخه پر کمه حصه ب مسح جائز وای نو نبي ﷺ به يو وار د جواز د بيان لپاره ضرور داسې کولای، حال دا چې له نبي ﷺ څخه د سر له څلورمې حصې څخه پر کمه حصه باندې مسح ثابته نه ده.

وفی بعض الروايات الخ د احنافو ځينې عالمانو د مقدار ناصيه تقدير په درېو ګوتو سره کړی دی، دليل يې دا دی چې مسح په لاس سره کيږي او په لاس کې ګوتې اصل دي او درې ګوتې د يوه لاس زياته (اکثره) حصه ده، او قاعده داده چې للاکثر حکم الکل، نو په دې وجه به درې ګوتې د کُل قائم مقام وي، او دا حکم به کيږي چې که څوک د درې ګوتو په اندازه مسح وکړي نو هغه به شرعًا کافي وي.

## د اودس سنتونه..... اول سنت

قَالَ: وَسُنَنُ الطَّهَارَةِ غَسْلُ الْيَدَيْنِ فرمايي: او د اودس سنتونه: د دواړو لاسونو پرېولل دي قَبْلَ إِدْخَالِهِمَا الْإِنَاءَ مخکې تر دننه کولو د دوی دواړو په لوښي کې إِذَا اسْتَيْقَظَ الْمُتَوَضِّئُ مِنْ نَوْمِهِ کله چې اودس کونکی له خپل خوب څخه

راويښ سي لِقَوْلِهِ عَلَيْهِ الصَّلَاةُ وَالسَّلَامُ ❶ ځکه د نبي ﷺ قول دی إِذَا اسْتَيْقَظَ أَحَدُكُمْ مِنْ مَنَامِهِ کله چي په تاسو کي يو له خپل خوب څخه راويښ سي فَلَا يَغْمِسَنَّ يَدَهُ فِي الْإِنَاءِ نو خپل لاس دي په لوښي کي نه داخلوي حَتَّى يَغْسِلَهَا ثَلَاثًا تر څو چي درې واره يې پرېولي فَإِنَّهُ لَا يَدْرِي أَيْنَ بَاتَتْ يَدُهُ ځکه هغه خبر نه دی چي لاس يې د شپې چيري پاته سوی دی وَلِأَنَّ الْيَدَ آلَةُ التَّطْهِيرِ او ځکه چي لاس د پاکولو آله ده فَتُسَنُّ الْبِدَايَةُ بِتَنْظِيفِهَا نو د هغه په پاکولو سره به شروع کول هم سنت وي وَهَذَا الْغَسْلُ إِلَى الرُّسْغِ او دا پرېولل به ترمړوندلو پوري وي لِوُقُوعِ الْكِفَايَةِ فِي التَّنْظِيفِ ځکه (تر مړوندلو پوري په پرېوللو سره) په پاکولو کي کفايت حاصلیږي.

**اللغات**: ﴿إِنَاء﴾ لوښی، ﴿اسْتَيْقَظ﴾ له باب استفعال څخه د ماضي صيغه ده، مصدري معنیٰ يې ده: ويښېدل، له خوب څخه را پورته کېدل، ﴿فَلَا يَغْمِسَنَّ﴾ نه دي ډوبوي، د ضرب له باب څخه د مضارع صيغه: غَمَسَ يَغْمِسُ: ډوبول، په اوبو کي اچول. ﴿بَاتَتْ﴾ د ضرب له باب څخه د ماضي صيغه ده بَاتَ يَبِيْتُ: شپه تېرول، ﴿بداية﴾ شروع کول ﴿تَنْظِيف﴾ د تفعيل د باب اسم مصدر دی: پاکول، ﴿رُسْغ﴾ مړوند.

**تشريح**: سُنن جمع د سنت ده، سنت په دين کي داسي رواج سوي طريقې ته وايي چي هغه نه فرض وي او نه واجب وي، او اداء کونکی يې د ثواب مستحق وي او پرېښوونکی يې د ملامت او عقاب مستحق وي، علامه ابن الهمام رَحِمَهُ الله ويلي دي چي سنت هغه ته ويل کيږي چي پر هغه نبي ﷺ د کله نا کله پرېښوولو سره سره همېشتوب کړی وي.

پاته سوه دا خبره چي صاحب د هدايې فرض په صيغه سره د واحد او سنن په صيغه سره د جمع ولي ذکر کړل، نو د دې جواب دا دی چي فرض په اصل کي مصدر دی او مصادر له تثنيې او جمع څخه مستثنیٰ دي، او د دې پر عکس سنت مصدر نه دی نو ځکه سنت په صيغه سره د جمع ذکر کړی سو.

**صورت د مسئلې**: دا دی چي کله اودس کونکی له خوب څخه را ويښ سي، نو د هغه لپاره تر ټولو اول سنت دا دی چي خپل دواړه لاسونه دي په لوښي کي تر اچولو مخکي درې واره تر مړوندلو پوري پرېولي، او د پرېوللو طريقه يې دا ده چي که اوبه په يو کوچني لوښي کي وي نو اول دي په چپه لاس لوښي را پورته کړي پر راسته لاس دي اوبه واچوي، بيا دي په راسته لاس سره پر چپه لاس اوبه واچوي، او که لوښی دومره غټ وي چي د هغه د پورته کولو امکان نه وي، نو په يو کوچني لوښي کي دي له هغه څخه اوبه را واخلي، او که کوچنی لوښی هم نه وي نو د چپه لاس ګوتي دي سره يو ځای کړي د غټ لوښي څخه دي اوبه په را واخلي پر راسته لاس دي يې واچوي، ورغوی دي په اوبو کي نه دننه کوي، بيا دي په راسته لاس سره اوبه را واخلي چپه لاس دي په پرېولي.

دليل حديث د ابو هريره ﷺ دی، چي د هغه روايت شيخينو کړی دی: اذا استيقظ احدکم من نومه فلا يغمس يده في الاناء حتی يغسلها فانه لايدری اين باتت يده، او د مسلم الفاظ دا دي: حتی يغسلها ثلاثا، او په بعضي رواياتو کي فلا يغمسن په تأکيد د

❶ تخريج: هذا الحديث قد اتفق عليه اصحاب الكتب الستة فأخرجه البخاری في الوضوء، باب رقم:١٦، ومسلم في الطهارات حديث رقم:٨٧، و ابو داؤد في الطهارة باب:٨٩، و ترمذي في الطهارة باب:١٩.

نون سره دی، لدې دا چې نبي ﷺ وفرمایل: چې کله په تاسو کې یو سړی له خوب څخه راویښ سي نو اول دې خپل لاسونه پرېولي، ځکه ده ته معلومه نه ده چې د ده لاسونه د شپې چیرې پاته سوي دي.

په مبسوط کې راغلي دي چې تر اوداسه مخکې د دواړو لاسونو پرېولل مطلقًا سنت دي که له خوب څخه را ویښ سوی وي، که نه وي، ځکه د لاس پرېوللو علت په ویښ سړي کې هم راتلاسی، یعني کېدای سي چې ده لاس د بدن و رګو ته ور وړی وي، لدې دا چې د لاس پرېوللو علت نجاست دی او هغه خو په دواړو صورتونو کې سته که له خوب څخه را ویښ سوی وي او که له مخکې څخه لا ویښ وي، او دا هغه وخت سنت دي ترڅو چې نجاست ښکاره نه وي کنې نجاست لیرې کول فرض دي.

ولأن الید الخ دویم دلیل دا دی چې لاس د پاکولو آله ده، نو ځکه اول پخپله تر مړوندو پورې د هغو پاکول سنت دي ځکه چې په پاکي حاصلولو کې دغومره اندازه کافي ده.

## دویم سنت..... بسم الله سنت ده او که مستحب

| قَالَ: وَتَسْمِيَةُ اللّٰهِ فِي اِبْتِدَاءِ الْوُضُوْءِ فرمایي: او بِسْمِ الله ویل د اودس په پیل کې (هم سنت دي) لِقَوْلِهِ عَلَيْهِ السَّلَامُ ځکه نبي ﷺ فرمایلي دي لَا وَضُوْءَ لِمَنْ لَمْ يُسَمِّ اللّٰهَ د هغه سړي اودس نه کیږي شوک چې بسم الله نه ووایي وَالْمُرَادُ بِهِ او له دې څخه مراد نَفْيُ الْفَضِيْلَةِ د فضیلت نفي دی وَالْأَصَحُّ او صحیح دا ده أَنَّهَا مُسْتَحَبَّةٌ چې بسم الله ویل مستحب دي وَإِنْ سَمَّاهَا فِي الْكِتَابِ سُنَّةً که څه هم په کتاب کې یې دې ته سنت ویلي دي وَيُسَمِّيْ او بسم الله دي وایي قَبْلَ الْإِسْتِنْجَاءِ وَبَعْدَهُ تر استنجاء مخکې هم او وروسته هم هُوَ الصَّحِيْحُ همدا صحیح ده. |
|---|

**اللغات:** ﴿تَسْمِيَة﴾ له باب تفعیل څخه مصدر دی معنیٰ یې ده: بسم الله ویل.

**تشریح:** د اوداسه له سنتونو څخه یو مهم سنت دا دی چې اودس کونکی دې اودس د الله په نامه سره شروع کړي او د تسمیې ادنیٰ درجه دا ده چې بسم الله ووایي، او اعلیٰ درجه یې دا ده چې بِسْمِ اللهِ الرَّحْمٰنِ الرَّحِيْمِ ووایي. او علامه ابن الهمام فرمایلي دي چې امام طحاوي رَحِمَهُ الله فرمایي: بسم الله العظیم والحمد لله علی دین الاسلام دې وایي او دغه له سلفو څخه منقول دي، او بعضو ویلي دي چې دا د رسول الله ﷺ څخه مرفوعًا منقول دي. خلاصه دا ده چې زموږ په نېز د اوداسه په پیل کې تسمیه سنت ده. لیکن د اصحاب ظواهر او د امام احمد رَحِمَهُ الله په نېز تسمیه د اوداسه شرط ده. دوی وایي چې بغیر له تسمیې څخه اودس نه کیږي، دلیل یې هغه حدیث دی کوم چې حاکم او ابو داؤد روایت کړی دی: عن ابی هریرة رضی الله عنه أن النبي(ص) قال لا صلوٰة لمن لا وضوء له ولا وضوء لمن لم یذکر اسم الله علیه. (له حضرت ابو هریره رضی الله عنه څخه روایت دی چې نبي ﷺ وفرمایل: د هغه چا لمونځ نه کیږي د چا چې اودس نه وي او د هغه چا اودس نه کیږي چا چې د الله نوم ذکر کړی نه وي)

اصحاب ظواهر له دې حدیث څخه په دې توګه دلیل نیسي چې په حدیث کې لا د جنس د نفي لپاره دی یعني بغیر له تسمیې څخه اودس نه کیږي. لیکن زموږ له طرفه جواب دا دی چې په حدیث کې د اودس د فضیلت نفي سوې دې یعني بغیر له تسمیې څخه خو اودس کیږي خو افضل به نه وي. لکه په: لا صلوٰة لجار المسجد الا فی المسجد کې چې د صلوٰة

د کمال او فضیلت نفي سوي دي، نه د صلوٰة د صحت، او لکه په: لا ایمان لمن لا عهد له کي د کمال ایمان نفي سوي دي نه د نفسِ ایمان، نو همدارنګه به د تسمیې په حدیث کي د وضوء د فضیلت او کمال نفي سوي وي نه د اودس د جواز او صحت، زموږ تائید د علي بن یحییٰ بن خلاد په حدیث سره هم کیږي، حدیث دا دی: أن النبي(ص) قال للمسيئ صلاته إذا قمتَ فتوضأ كما أمرك الله، (یعني نبي ﷺ هغه سړي ته وویل کوم چي د لمانځه ارکان په صحیح توګه سره نه اداکول: کله چي ته د لمانځه اراده وکړې نو داسي اودس کوه څرنګه چي تاته الله حکم کړی دی)، او الله چي د کوم اودس حکم کړی دی په هغه کي تسمیه نشته.

او د دارِ قطني په روایت کي راغلي دي: من توضأ وذكر اسم الله فانه يطهر جسده ومن توضأ ولم يذكر الله لم يطهر الا موضع الوضوء، (یعني چا چي اول په اودس کي د الله نوم ذکر کړی نو د هغه ټوله بدن پاکیږي او چاچي د الله تعالیٰ نوم ذکر نه کړی نو د اوداسه له اندامونو څخه ماسوا یې نور هیڅ نه پاکیږي)، له دې حدیثونو څخه معلومیږي چي تسمیه په اودس کي شرط نه ده.

والأصح الخ صاحب د هدایې فرمایي: أصح دا ده چي تسمیه په اوداسه کي مستحب ده که څه هم په قدوري کي دې ته سنت ویل سوي دي، شارح د هدایې علامه بدرالدین عیني رَحِمَهُ الله فرمایلي دي چي د تسمیې د استحباب قول به څرنګه صحیح سي حال دا دی چي ډېر احادیث د دې په سنتوالي باندي دلالت کوي، صاحب د هدایې فرمایي چي تسمیه دي له استنجاء څخه مخکي هم وایي او وروسته هم، او همدغه قول صحیح دی. د بعضو رایه دا ده چي صرف تر استنجاء مخکي دي یې وایي او د بعضو رایه دا ده چي صرف تر استنجاء وروسته دي یې وایي.

کوم حضرات چي وایي چي تر استنجاء مخکي دي بسم الله وایي د هغو دلیل دا دی چي استنجاء د اوداسه په سنتونو کي یو سنت دی نو ځکه دي تر استنجاء مخکي بسم الله وایي د دې لپاره چي د اودس ټوله افعال هغه که فرض وي او که سنت په بسم الله سره واقع سي، او کوم چي تر استنجاء وروسته د بسم الله قائل دي د هغو دلیل دا دی چي تر استنجاء مخکي د کشفِ عورت حالت دی او د کشفِ عورت په حالت کي د الله ذکر کول مناسب نه دي نو ځکه دي تر استنجاء وروسته بسم الله وایي، او د أصح قول دلیل دا دی چي د نبي ﷺ دا قول: كل أمر ذي بال لم يُبدأ فيه بذكر الله... د دې خبري تقاضا کوي چي د اودس په شروع کي دي بسم الله ویل کیږي، او څرنګه چي استنجاء هم د اودس له ملحقاتو څخه ده. نو ځکه به تر استنجاء کولو مخکي هم بسم الله ویل مستحب وي.

## دریم سنت (مسواک وهل)

| والسِّوَاكُ او مسواک (وهل سنت دی) لِأَنَّهُ عَلَيْهِ الصَّلَاةُ وَالسَّلَامُ كَانَ يُوَاظِبُ عَلَيْهِ ځکه چي نبي ﷺ به پر دې همېشتوب کوی وَعِنْدَ فَقْدِهِ او د مسواک د نشتوالي په صورت کي دي يُعَالِجُ بِالْأُصْبُعِ له ګوتي څخه کار اخلي لِأَنَّهُ ﷺ فَعَلَ كَذَالِكَ ځکه نبي ﷺ همداسي کړي دي |
|---|

**اللغات:** ﴿يواظب﴾ له باب مفاعله څخه د مضارع صيغه ده: پابندي كول، يو كار همېشه كول. ﴿يعالج﴾ له باب مفاعله څخه د مضارع صيغه ده: كوښښ كول، تدبير كول، دلته مراد په ګوته سره مږل دي. ﴿أصبع﴾ دا په ضمه د همزې سره هم استعمالیږي او په كسره سره هم معنیٰ يې ده: ګوته، جمع يې أَصَابِع راځي.

**تشريح: صورت د مسئلې:** دا دی چې د اوداسه له سنتونو څخه يو سنت مسواک وهل دي، دليل يې دا دی چې نبي كريم ﷺ د مسواک پر استعمالولو همېشتوب كړی دی خو دا چې كله كله به يې پرېښوی، او كه مسواک نه وي نو د راسته لاس په ګوته سره دي غاښونه مږي، ځكه چې دا هم له نبي ﷺ څخه ثابت دي، او مواظبت مع الترک يعني همېشتوب سره د پرېښوولو د سنت دليل دی او مواظبت بلا ترک د وجوب دليل دی، او د مسواک په ترک باندي دليل دا دی چې يو ځل نبي ﷺ ديو كلي (محلې) خلكو ته د اوداسه او لمانځه تعليم وركړی چې په هغه كي د مسواک د تعليم ذكر نسته، كه مسواک وهل واجب وای نو نبي ﷺ به دوی ته د مسواک وهلو تعليم ضرور وركولای. (عنايه)

او د مسواک د نشتوالي په صورت كي ګوته د مسواک قائم مقامه ده، د دې دليل يې دا دی چې نبي ﷺ فرمايلي دي: يجزئ من السواك الاصابع (رواه البيهقي عن انس ﷺ) يعني د مسواک پر ځای ګوتي كفايت كوي.

او طبراني له حضرت عائشې رَضِيَ اللهُ عَنْهَا څخه روايت كړی دی: قالت قلت يا رسول الله الرجل يذهب فوه يستاك قال نعم قلت كيف يصنع قال يدخل اصبعه في فيه، (حضرت عائشه رَضِيَ اللهُ عَنْهَا فرمايي چې ما وويل اې رسول الله ﷺ! د كوم چا په خوله كي چې غاښونه نه وي هغه به مسواک وهي، وېې فرمايل هو! ما وويل: څرنګه به يې وهي، وېې فرمايل: چې خپله ګوته دي په خوله كي داخلوي). (فتح القدير. شرح نقايه)

**د مسواک په سنيت كي درې قولونه:** ښكاره دي وي چې د مسواک په سنتوالي كي درې قولونه دي: ① اول قول دا دی چې مسواک د اوداسه سنت (سنتِ وضوء) دی ځكه چې په نسائي كي د ابو هريره ﷺ حديث دی: لو لا أن أشق على أمتي لأمرتهم بالسواک عند كل وضوء، (يعني كه زما پر امت تكليف نه وای نو ما به دوی ته د هر اوداسه سره د مسواک حكم كولای)

او ابو داؤد له حضرت عائشې رَضِيَ اللهُ عَنْهَا څخه روايت كړی دی: أنه عليه السلام كان لا يرقد من ليل او نهار فيستيقظ الا تسوک قبل أن يتوضاء (يعني نبي ﷺ چې به كله په شپه يا ورځ كي له خوب څخه را پورته كېدی نو تر اوداسه مخكي به يې مسواک ضرور استعمالوی)

② دويم قول دا دی چې مسواک د لمانځه سنت (سنتِ صلوٰة) دی، دليل د ابو هريره ﷺ دا حديث دی: لو لا أن أشق على أمتي لأمرتهم بالسواک عند كل صلوٰة يا مع كل صلوٰة.

③ دريم قول دا دی چې مسواک د دين سنت دی دا قول ډېر قوي دی او له امام ابو حنيفه رَحِمَهُ الله څخه هم دغه قول را نقل سوی دی، دليل د ابو ايوب ﷺ حديث دی كوم چې ترمذي ذكر كړی دی: أربع من سنن المرسلين: الختان والتعطر والسواک والنكاح، (يعني څلور شيان د رسولانو سنت دي: ختنه (سنت كول). عطر (خوشبويي). مسواک او نكاح) او له حضرت عائشې رَضِيَ اللهُ عَنْهَا حديث دی: "لس شيان له فطرت څخه دي" چې له هغو څخه يو مسواک هم شمېرل سوی دی.

په حديثونو کي د مسواک ډېر فضائل بيان سوي دي، په مسند احمد کي راغلي دي: أنه عليه السلام قال صلوٰة بسواك أفضل من سبعين صلوٰة بغير سواك. (يعني د مسواک يو لمونځ تر هغه لمانځه په ثواب کي اويا(٧٠) چنده زيات دی چي بغير له مسواک څخه وي)، تر استقراء او تتبع وروسته پنځه ځايه د مسواک استحباب ثابت سوی دی: (١) د غاښو د ژړ والي په وخت کي، (٢) د خولې د بدبويي په وخت کي، (٣) له خوب څخه د را پورته کېدلو په وخت کي، (۴) لمانځه ته د تللو په وخت کي، (۵) د اودس په وخت کي.

## مسواک باید څرنګه وي او څه ډول باید ووهل سي

مسواک بايد نرم او پوست وي، ډېر کلک به نه وي، د ګوتي په اندازه به پنډ او يوه لوېشت به اوږد وي.. سيده به وي. غوټي(کوټونه) او کوږوالی به پکښې کم وي، د ترخې درختي به وي چي د بلغمو مخنيوی وکړي او سينه صفا کړي او خوارک ژر هضم کړي؛ د مسواک وهلو طريقه دا ده چي مسواک به عَرضًا (په بره، په پسور)هم وهي او طولًا (په اوږدول) به يې هم وهي، او که غواړي چي صرف په يوه باندي اکتفاء وکړي نو طولًا به يې وهي، او بعضو ويلي دي چي عرضًا به يې وهي، نه طولًا، ښکاره دي وي چي د غاښونو عرض(بر) د خولې طول(اوږدول) دی. (شرح نقايه)

## خلورم او دريم سنت(مضمضه او استنشاق)

وَالْمَضْمَضَةُ وَالْإِسْتِنْشَاقُ خوله پرېولل او پزه پرېولل(هم سنت دي) لِأَنَّ النَّبِيَّ ﷺ ❶ فَعَلَهُمَا عَلَى الْمُوَاظَبَةِ ځکه نبي ﷺ په پابندي سره دا دواړه کړي دي وَكَيْفِيَّتُهُمَا او د دواړو طريقه دا ده أَنْ يُمَضْمِضَ ❷ ثَلَاثًا چي درې واره به خوله پرېولي يَأْخُذُ لِكُلِّ مَرَّةٍ مَاءً جَدِيدًا او د هر وار لپاره به نوي اوبه را اخلي ثُمَّ يَسْتَنْشِقُ كَذٰلِكَ او بيا به دغه ډول پزه (هم درې واره) پرېولي وَهُوَ مَحْكِيٌّ مِنْ وُضُوئِهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ او د نبي ﷺ د اوداسه هم دغه طريقه را نقل سوې ده.

**اللغات**: ﴿المضمضة﴾ د فَعْلَلَه د باب مصدر دی: په خوله اوبه غر غره کول(چي په عامه اصطلاح خوله پرېولل ورته وايي) ﴿الإستنشاق﴾ د استفعال د باب مصدر دی: په پزه کي اوبه اچول (چي په عامه اصطلاح پزه پرېولل ورته وايي). او د دې مخالف لفظ راځي: إِسْتِنْثَار: له پزي څخه اوبه څنډل.

**تشريح**: خوله او پزه پرېولل هم په اوداسه کي سنت دي، او اودس کونکي به په دواړو کي مبالغه کوي. د خولې په پرېوللو کي مبالغه دا ده چي ټولي خولې ته به اوبه ورسوي، او شيخ الاسلام رَحِمَهُ الله فرمايلي دي چي د خولې په پرېوللو کي مبالغه دا ده چي غرغره دي وکړي يعني د ستوني تر آخري حصې پوري دي اوبه ورسوي. خو په دې شرط چي د دې سړي روژه نه وي، او شمس الائمه حلواني رَحِمَهُ الله فرمايلي دي چي مبالغه دا ده چي اوبه دي د خولې له يوه طرف څخه پر بل طرف وباسي، او د پزي په پرېوللو کي مبالغه دا ده چي اوبه دي د پزي تر نرمي حصې(تير) پوري ورسوي. همدارنګه ويل سوي دي چي په پزه کي دي اوبه واچوي او ساه دي پورته کش کړي چي اوبه لوړي ولاړي سي.

---

❶ تخريج: أخرجه الامام البخاری فی الوضوء باب رقم:٣٩، ومسلم فی الطهارة حديث رقم:١٨، و ابود داؤد فی الطهارة باب رقم:٥١.

❷ تخريج: روی هٰذا الحديث امام طبرانی فی المعجم ج:١، ص:٢٣٢.

**دليل**: د مضمضه او استنشاق پر سنت كېدلو دليل دا دی چي نبي ﷺ پر دې دوارو همېشتوب كړی دی څرنګه چي له دوويشت(۲) صحابه وو څخه د نبي ﷺ اودس را نقل سوی دی. او ټولو د خولې او پزې پرېوللو بيان كړی دی، خو د پرېوللو د عدد(شمېر) په باره كي بعضي چپ پاته سوي دي، او بعضو يې ذكر كړی دی چي نبي ﷺ يو وار مضمضه او استنشاق وكړل، او بعضو درې درې واره ذكر كړی دی.

صاحب د هدايې رَحِمَهُ الله دا ذكر نه كړه چي نبي ﷺ به د همېشتوب سره سره، كله نا كله مضمضه او استنشاق پرېښوول هم، لكه څرنګه چي په يو حديث كي راغلي دي چي نبي ﷺ يوه اعرابي ته د اودس ور ښوولو په وخت كي د مضمضه او استنشاق ذكر نه وكړی، همدارنګه حضرت عائشې رَضِيَ اللهُ عَنْهَا د نبي ﷺ اودس را نقل كړی دی خو د مضمضه او استنشاق ذكر يې نه دي كړی، نو كله چي د دې دوارو كله كله(أحيانًا) پرېښوول ثابت سو، نو دا دواړه به په اوداسه كي سنت وي، نه دا چي واجب او فرض، لكه څرنګه چي اهل حديث د نبي ﷺ په مواظبت او همېشتوب سره دليل نيسي.
او دا دواړه په غسل او اودس كي فرض بولي، همدارنګه له حضرت ابن عباس رَضِيَ اللهُ عَنْهُمَا څخه موقوفًا او مرفوعًا روايت سوی دی چي: هما سنتان في الوضوء واجبتان في الغسل(يعني مضمضه او استنشاق په اودس كي سنت دي او په غسل كي واجب دي). (عنايه، كفايه)

## د خولې او پزې د پرېوللو طريقه

صاحب د هدايې فرمايي: چي د خولې او پزې د پرېوللو كيفيت دا دی چي اول دي درې واره خوله پرېولي. او هر وار دي نوي اوبه استعمالوي، بيا دي درې واره پزه پرېولي، او هر وار دي نوي اوبه استعمالوي، ځكه چي له نبي ﷺ څخه اودس همدغه ډول را نقل سوی دی، لېكن امام شافعي رَحِمَهُ الله فرمايي: چي اوبه دي يو وار را اخلي او په هغه دي خوله او پزه دواړه پرېولي، د امام شافعي دليل د ابو داؤد دا روايت دی چي حضرت علي رضي الله عنه د نبي ﷺ د اودس بيانولو په وخت كي يو وار اوبه را واخيستلې په هغه سره يې خوله هم پرېولل او پزه هم، نو معلومه سوه چي د دواړو لپاره يو وار اوبه را اخيستل كافي دي. (شرح نقايه)

زموږ له طرفه جواب دا دی چي نبي ﷺ به كله كله د جواز د بيانولو لپاره داسي كړي وي كنې افضل هغه دی كوم چي موږ اختيار كړي دي. (د جواز بيانولو مطلب دا چي نبي ﷺ به كله كله په يو وار اوبو سره خوله او پزه دواړه په دې وجه پرېولل چي اُمت ته معلومه سي چي دا جائز دي، مكروه يا حرام نه دي. كنې افضل . . .)
او صاحب د عنايې(عنايه) په جواب كي وايي چي خوله او پزه جلا جلا دوه اندامونه دي نو ځكه به دواړه په يوه وار لوبو كي نه جمع كيږي لكه څرنګه چي نور اندامونه په يوه وار اوبو كي نه جمع كيږي.
**فوائد**: صاحب د شرح نقايه ليكلي دي: څرنګه چي مضمضه او استنشاق سنت دي همدغه رنګه مضمضه پر استنشاق مخكي كول سنت دي او دا يې هم ليكلي دي چي مضمضه او استنشاق دي دواړه په راسته لاس سره كوي لو بعضو ويلي دي چي استنشاق دي په چپه لاس سره كوي، خو صحيح دا ده چي په پزه كي دي اوبه په راسته لاس سره اچوي. او په چپه لاس سره دي يې څنډي.

## پنځم سنت (دغوږونو مسح کول)

وَمَسْحُ الْأُذُنَيْنِ او د دواړو غوږونو مسح کول (هم سنت دي) وَهُوَ سُنَّةٌ بِمَاءِ الرَّأْسِ او هغه د سر په اوبو سره (مسح کول) سنت دي خِلَافًا لِلشَّافِعِيِّ رَحِمَهُ اللهُ په خلاف د امام شافعي رَحِمَهُ الله لِقَوْلِهِ عَلَيْهِ السَّلَامُ ځکه نبي ﷺ فرمایلي دي الْأُذُنَانِ مِنَ الرَّأْسِ چې دواړه غوږونه له سر څخه دي وَالْمُرَادُ بَيَانُ الْحُكْمِ دُوْنَ الْخِلْقَةِ او (په دې فرمان سره د نبي ﷺ) مراد حکم بیانول دي نه پیدایښت.

**حل لغات:** ﴿أُذُن﴾ غوږ، تثنیه یې: أُذُنَيْن راځي.

**تشریح:** دا وداسه له سنتونو څخه یو سنت د دواړو غوږونو مسح کول دي.

**د غوږونو د مسح کولو طریقه:** د غوږونو د مسح کولو طریقه د علامه حلواني او شیخ الاسلام د قول مطابق دا ده: چې خپله خچنه (خنصر) ګوته دې په غوږ دننه کړي، او حرکت دې ورکړي (یعني ودې یې ښوري)، او فرمایلي یې دي چې نبي ﷺ هم داسې کړي دي، او ابن ماجه په صحیح اسناد سره د ابن عباس رَضِيَ اللهُ عَنْهُمَا څخه روایت کړی دی: أنه عليه الصلوٰة والسلام مسح اذنيه فأدخلهما السبابتين وخالف إبهاميه الى ظاهر اذنيه فمسح ظاهرهما وباطنهما. (یعني نبي ﷺ خپل دواړه غوږونه مسح کړه، (هغه داسې چې) خپلې دواړې د شهادت ګوتې یې په غوږو دننه کړې او دواړې بټې (غټې) ګوتې یې پر غوږو سربېره تیرې کړې، (مطلب دا چې) د غوږو د ښکاره او پټې دواړو حصو مسح یې وکړه) همدغه اولیٰ او بهتره ده. (فتح القدير)

وهو سنة بماء الخ د غوږونو مسح زموږ په نېز د سر په اوبو سره سنت ده او د امام مالک رَحِمَهُ الله، امام شافعي رَحِمَهُ الله او امام احمد رَحِمَهُ الله فرمایلي دي چې: د غوږونو د مسح لپاره تازه اوبه را اخیستل سنت دي.

**د امام شافعي دلیل:** دلیل هغه حدیث دی کوم چې حبان ابن واسع له خپل پلار څخه روایت کړی دی: أنه سمع عبد الله بن زيد يذكر أنه رأى رسول الله ﷺ يتوضأ فأخذ لأذنيه ماء خلاف الماء الَّذِىْ أخذ لرأسه (یعني واسع له عبد الله بن زید څخه اورېدلي دي چې هغه نبي ﷺ د اودس کولو په وخت کې ولیدی چې د غوږونو د مسح کولو لپاره یې له هغه اوبو څخه علاوه نورې اوبه را واخیستلې کومې چې یې د سر د مسح کولو لپاره را اخیستې وې) له دې حدیث څخه معلومه سوه چې د غوږونو د مسح کولو لپاره نوې اوبه را اخیستل سنت دي.

**زموږ دلیل:** د ابن عباس رَضِيَ اللهُ عَنْهُمَا حدیث دی: أن النبي ﷺ قال الأذنان من الرأس. او له دې حدیث څخه مراد د حکم بیانول دي مطلب دا چې د غوږونو او سر دواړو حکم یو دی، د پیدایښت بیان یې مقصود نه دی (چې غوږونه د سر سره یو ځای پیدا سوي دي) ځکه چې نبي ﷺ د احکامو د بیانولو لپاره را استول سوی دی، د موجوداتو د حقائقو لو خلقت د بیانولو لپاره نه دی را استول سوی.

**سوال:** لېکن که یو څوک سوال وکړي چې کله د دواړو یعني د سر او غوږونو حکم یو دی نو باید پر دواړو غوږونو مسح کول د سر قائم مقام وای حال دا چې داسې نه ده.

**جواب:** دا دی چې د سر د مسحې وجوب په قطعي دليل سره ثابت دی او د غوږونو مسحه په خبر واحد سره ثابته ده چې دا سنت ده او په سنت سره فرض نه سي ادا کېدلای، لکه څرنګه چې نبي ﷺ فرمايلي دي: الحطيم من البيت يعنی حطيم په کعبه کې داخل دی، نو څرنګه چې د بيت الله طواف کيږي دغه ډول به د حطيم طواف هم کيږي، خو صرف په حطيم اکتفاء کول او د هغه و طرف ته مخ کول او لمونځ اداء کول جائز نه دي ځکه چې وجوب الصلوٰة الی الکعبة په قطعي دليل سره ثابت دي او حطيم په کعبه کې داخلېدل په خبر واحد سره ثابت دي، او په خبر واحد عمل کول هغه وخت واجبيږي چې د هغه په وجه په قطعي دليل باندې عمل کول باطل نه سي، او که په خبر واحد باندې په عمل کولو سره په دليل قطعي باندې عمل باطلېدی، نو په خبر واحد باندې به عمل نه کيږي.

**دويم دليل:** هغه حديث کوم چې حاکم، ابن خذيمه او ابن حبان له ابن عباس څخه روايت کړی دی: أنه قال ألا أخبركم بوضوء رسول الله ﷺ ثم غرف غرفة فمسح بها رأسه و أذنيه، (يعني ابن عباس رضي الله عنهما وفرمايل: آيا زه تاسو د رسول الله ﷺ په اودس باندې خبر نه کړم [بيا يې ټوله اودس وکړی او په هغه کې يې د سر او غوږونو مسح داسې وکړه] چې يوه لپه اوبه يې را واخيستې په هغه سره يې د خپل سر او دواړو غوږونو مسح وکړه) له دې حديث څخه هم دا ښکاره سوه چې د غوږونو د مسحې لپاره د ماء جديد (نوې اوبو) را اخيستلو ضرورت نسته، والله اعلم.

## شپږم سنت (د ږيرې خلالول)

قَالَ (القدوري): **وَتَخْلِيْلُ اللِّحْيَةِ** فرمايي: د ږيرې خلالول (هم سنت دی) لِأَنَّ النَّبِيَّ (ص) أَمَرَهُ جِبْرَئِيْلُ عليه السلام بِذٰلِكَ ځکه چې نبي ﷺ ته جبرئيل عليه السلام د تخليل لحيه (د ږيرې د خلالولو) حکم کړی وو وَقِيْلَ هُوَ سُنَّةٌ عِنْدَ أَبِيْ يُوْسُفَ● رَحِمَهُ اللهُ او ويل سوي چې تخليل لحيه د امام ابو يوسف رحمه الله په نېز سنت دي جَائِزٌ عِنْدَ أَبِيْ حَنِيْفَةَ رَحِمَهُ اللهُ وَ مُحَمَّدٍ رَحِمَهُ اللهُ او د طرفينو په نېز جائز دي لِأَنَّ السُّنَّةَ إِكْمَالُ الْفَرْضِ فِيْ مَحَلِّهِ ځکه چې په اودس کې سنت دا دي چې په خپل محل (او ځای) کې فرض پوره کړل سي (او دلته په خلال سره د فرضو پوره کېدل په خپل محل کې نه راځي) وَالدَّاخِلُ لَيْسَ بِمَحَلِّ الْفَرْضِ (ځکه چې) د ږيرې دننه حصه د فرضو محل نه دی.

**اللغات:** ﴿تخليل﴾ له باب تفعيل څخه اسم مصدر دی: خلالول، ﴿إكمال﴾ له باب افعال څخه اسم مصدر دی: پوره کول، بشپړ کول.

**تشريح:** امام قدوري رحمه الله وفرمايل چې د ږيرې خلالول هم سنت دي، دليل يې دا دی چې جبرئيل عليه السلام نبي ﷺ ته د ږيرې د خلالولو حکم کړی دی، لکه څرنګه چې صاحب د عنايه دا الفاظ را نقل کړي دي: قال ﷺ نزل جبرئيل عليه السلام و أمرني أن أخلل لحيتي إذا توضأت، (يعني نبي ﷺ وفرمايل: چې ما ته جبرئيل عليه السلام راغلی او د اودس کولو په وخت کې د ږيرې د خلالولو حکم راته وکړی)

---

● القول الراجح: قول أبي يوسف رحمه الله، كذا في فتح القدير ج:١، ص:٢٦. [القول الراجح، ج:١، ص:٢]

همدارنګه ترمذي او ابن ماجه له حضرت عثمان ﷺ څخه روايت کړی: ان رسول الله ﷺ کان يخلل لحيته. (يعني نبي ﷺ به خپله ږيره خلالوله) او د حضرت انس ﷺ حديث دی: قال کان عليه الصلوٰة والسلام إذا توضأ خلل لحيته (يعني حضرت انس ﷺ وفرمايل: کله چي به رسول الله ﷺ اودس کوی نو خپله ږيره به يې خلال کړه). (رواه البزاز)

وقيل هو سنة الخ او بعضو حضراتو ويلي دي چي د ږيري خلالول د امام ابو يوسف رحمه الله په نيز سنت دی او د طرفينو په نيز جائز دی، د طرفينو دليل دا دی چي په اوداسه کي سنت دا دی: چي په خپل محل (ځای) کي فرض پوره کړل سي او د ږيري دننه حصه د فرضو خپل محل نه ده، ځکه چي ودننه حصې ته بالاتفاق اوبه رسول واجب نه دي. نو کله چي د ږيري دننه حصه محل د فرضو نه سوه، نو په خلال سره د دې پوره کول (تکميل) هم سنت نه سو او څرنګه چي له نبي ﷺ څخه خلال ثابت دی نو بدعت هم نه سو، حاصل دا چي کله خلال نه سنت دی او نه بدعت، نو جائز دی.

**يادونه**: که ږيره ګڼه نه وه، نو د مخ تر پوستکي اوبه رسول ضروري دي، او که ږيره ګڼه وه، نو اوبه رسول ضروري نه دي بلکي د ږيري پورتنی حصه دي پرېولل سي. او په دغه وخت کي خلال سنت دی.

**راجح قول**: په پورتنی مسئله کي راجح قول د امام ابو يوسف رحمه الله دی. يعني د ږيري خلالول سنت دی، کما قال ابن الهمام رحمه الله في فتح القدير بعد بحث طويل فيترجح قول أبي يوسف رحمه الله كما رجحه في المبسوط (فتح القدير ج:١، ص:٢٦). [القول الراجح، ج:١، ص:٣]

## اووم سنت (د ګوتو خلالول)

قال (القدوري): **وَتَخْلِيْلُ الْأَصَابِعِ** فرمايي چي د ګوتو خلالول (هم سنت دي) لقوله ﷺ: ځکه نبي ﷺ فرمايلي دي خَلِّلُوْا أَصَابِعَكُمْ تاسو خپلي ګوتي خلال کړئ كَيْ لَا تَتَخَلَّلَهَا نَارُ جَهَنَّمَ چي د دوی په مينځ کي د دوږخ اور داخل نه سي وَلِأَنَّهُ إِكْمَالُ الْفَرْضِ فِيْ مَحَلِّهِ او په دې وجه هم (دا عمل سنت دی) چي دا پوره کول دي د فرضو په خپل محل کي.

**اللغات**: ﴿أَصَابِع﴾ جمع ده، واحد يې إِصْبَع راځي معنیٰ يې ده: ګوتي. ﴿لَا تَتَخَلَّلَهَا﴾ د تفعل له باب څخه د فعل مضارع نفي صيغه ده تَخَلَّلَ يَتَخَلَّلُ تَخَلُّلًا: داخلېدل، نفوذ کول.

**تشريح**: د اوداسه له سنتونو څخه د پښو او لاسونو د ګوتو خلالول هم دي، او د دې دوطريقې دي: ① يوه طريقه يې دا ده: چي اودس کونکی دي د يوه لاس ګوتي د بل لاس په ګوتو کي د ورغوي له خوا سره واچوي (او دواړه ورغوي دي نښه سره يو ځای کړي) ② او په شرح نقايه کي ليکل سوي دي چي لولیٰ دا ده چي د چپه لاس ورغوی دي د رلسته لاسه د ورغوي پر شا باندي کېښېږدي، او د راسته لاس ورغوی دي د چپه لاس د ورغوي پر شا باندي کېښېږدي. (او د ګوتو له سرونو او نوکانو څخه دي خلال شروع کړي). او د پښو د ګوتو د خلال طريقه دا ده: چي خپل چپه لاس دي تر راسته پښې لاندي کړي او خمچه (خچنه) ګوته دي د ګوتو په مينځ ور ننه کړي. د راسته پښې له خمچي ګوتي څخه دي يې شروع کړي او د چپه پښې پر خمچه ګوته دي يې ختم کړي. (شرح نقايه)

**دليل**: يو دا حديث دی کوم چي صاحب د هدايې ذکر کړی دی. دويم د ابن عباس رضي الله عنهما حديث دی: قال قال رسول الله ﷺ إذا توضأت فخلل أصابع يديك ورجليك. (ابن عباس ووايل: چي رسول الله ﷺ وفرمايل: کله چي ته اودس

کوي نو د خپلو لاسو او پښو ګوتي خلالوه). او په طبرني کي راغلي دي: من لم يخلل أصابعه بالماء خللها الله بالنار يوم القيمة، (يعني څوک چي د خپلو ګوتو په مينځ کي اوبه داخلي نه کړي الله تعالیٰ به د قيامت په ورځ د دوی په مينځ کي أور داخل کړي)، صاحب د فتح القدير علامه ابن الهمام صاحب ويلي دي: د تخليل په أحاديثو کي له ټولو څخه زيات مناسب هغه حديث دی کوم چي لقيط بن صبره په سنن اربعه وو کي روايت کړی دی: قال قال رسول الله ﷺ إذا توضأت فاسبغ الوضوء وخلل بين الأصابع. (رسول الله ﷺ وفرمايل: کله چي ته اودس کوې نو إسباغ کوه (يعني پوره اودس کوه) او د ګوتو په مينځ کي خلال کوه).

**سوال:** دلته يو سوال کيږي هغه دا چي په دې ټولو أحاديثو کي د خلالولو حکم د أمر په صيغه سره سوی دی او أمر د وُجوب لپاره راځي نو بايد د ګوتو خلال واجب وای، سنت نه وای؟

**جواب:** يو جواب دا ورکول سوی دی چي که د ګوتو مينځ ته اوبه نه ورسيږي نو په هغه وخت کي خلال واجب دی. او سنت په هغه وخت کي دی چي اوبه ورسيږي؛ حضرت مولانا عبد الحی رَحِمَهُ الله دا جواب ورکړی دی چي د أمر د صيغې په وجه سره خو پکار دا وو چي د ګوتو خلال واجب وای، لېکن څرنګه چي په ا وداسه کي هيڅ واجب نسته. نو ځکه به خلال واجب نه وي، او په اودس کي په دې وجه واجب نسته چي اودس د لمانځه لپاره شرط دی. نو ګواکي اودس د لمانځه تابع سو، نو اوس که په وادا سه کي هم واجب ومنل سي نو تابع به د اصل سره برابر سي، او دا هيڅ ډول مناسب نه دي.

**عقلي دليل:** دا دی چي د لاسونو او پښو پرېولل فرض دي او په خلالولو سره په فرضو کي إکمال (پوره والی) راځي. او په اوداسه کي چي په کوم شی سره په خپل ځای کي د فرضو إکمال راځي، هغه شی سنت وي، نو په دې وجه به د ګوتو خلال هم سنت وي.

## اتم سنت (تثليث يعني درې واره پرېولل)

قَالَ (القدوری): وَتَكْرَارُ الْغَسْلِ إِلَى الثَّلاثِ فرمايي: او پرېولل درې واره (ځله) مکرر کول (هم سنت دي) لِأَنَّ النَّبِيَّ عَلَيْهِ الصَّلَاةُ وَالسَّلَامُ تَوَضَّأَ مَرَّةً مَرَّةً ځکه چي (يو وخت) نبي ﷺ په يو، يو وار پرېوللو سره اودس وکړی وَقَالَ: هٰذَا وُضُوءٌ لَا يَقْبَلُ اللهُ تَعَالَى الصَّلَاةَ إِلَّا بِهِ او وېې فرمايل: چي دغه داسي اودس دی (يعني داسي د کمي درجې اودس دی) چي بغير له دې څخه الله تعالیٰ لمونځ نه قبلوي وَتَوَضَّأَ مَرَّتَيْنِ مَرَّتَيْنِ او اودس يې وکړی دوه. دوه واره وَقَالَ هٰذَا وُضُوءُ مَنْ يُضَاعِفُ اللهُ لَهُ الْأَجْرَ مَرَّتَيْنِ او وېې فرمايل: چي دا اودس د هغه چا دی چي د هغه لپاره الله ثواب دوچنده کوي وَتَوَضَّأَ● ثَلَاثًا ثَلَاثًا او اودس يې وکړی درې درې واره وَقَالَ هٰذَا وُضُوئِي وَوُضُوءُ الْأَنْبِيَاءِ مِنْ قَبْلِي او وېې فرمايل: دا زما اودس دی او زما څخه له مخکني نبيانو اودس دی فَمَنْ زَادَ عَلَى هٰذَا چا چي پر دې زياتوب وکړی أَوْ نَقَصَ يا يې (له دې څخه) کمبوت وکړی فَقَدْ تَعَدَّى وَظَلَمَ نو هغه له حد څخه تېر سو او ظلم يې وکړی وَالْوَعِيدُ لِعَدَمِ رُؤْيَتِهِ سُنَّةً او دا وعيد د درې واره سنت نه ګڼلو په وجه دی (يعني دا وعيد هغه وخت دی چي يو څوک درې واره پرېولل سنت نه وګڼي).

● تخريج: أخرجه البيهقي في السنن الكبرىٰ في باب الوضوء مرة مرة ج:١، ص: ٨٠، وايضاً ابن ماجه في السنن كتاب الطهارة باب رقم:٤٣، حديث رقم:٤١٩

● تخريج: أخرجه دار قطني باب وضوء رسول الله ﷺ باب رقم:٢٧، حديث رقم:٢٦ ايضاً البخاري في الوضوء باب رقم:٣٨، حديث رقم:١٨٥.

**اللغات:** ﴿يُضَاعِفُ﴾ له باب مفاعله څخه د مضارع صيغه ده: دوچنده كول. ﴿تَعَدّٰى﴾ له باب تفعّل څخه ماضي ده: له حد څخه تېرېدل، سرکښي كول.

**تشريح:** د اوداسه له سنتونو څخه درې درې واره د اوداسه د اندامونو (مغسوله اندامونو) پرېولل هم دي، د پرېوللو د قيد په لګولو سره يې و دې طرف ته اشاره وکړه چې د مسح تکرار سنت نه دی، ښکاره دي وي چې د بعضو فقهاؤ قول دا دی چې اول وار پرېولل فرض دي، دويم وار پرېولل سنت دي او دريم وار پرېولل د سنت إکمال (پوره كول) دي. او بعضو ويلي دي چې دويم او دريم وار پرېولل سنت دي او بعضو ويلي دي چې دويم وار سنت او دريم وار نفل دي. او بعضو ويلي دي چې هويم وار نفل او دريم وار سنت دي، او له ابوبکر اسکاف رَحِمَهُ الله څخه را نقل سوي دي چې په درې سره وارو فرض واقع کيږي، لکه څرنګه چې قيامه (ولاړه) يا رکوع که اوږده کړل سي نو هغه به ټوله (يعني له اوله تر آخره) فرض شمارل کيږي.

**دليل:** د تکرار الغسل الى الثلث پر سنتوالي خو يو حديث صاحب د هدايې ذکر کړی دی، چې نبي ﷺ د اندامونو تر يو، يو وار پرېوللو وروسته وفرمايل چې له دې څخه ماسوا لمونځ نه قبليږي، او تر دوو وارو پرېوللو وروسته يې وفرمايل چې دا داسي اودس دی چې په دې سره انسان ته دوچنده أجر رسيږي، او تر درې واره وروسته يې وفرمايل چې دا زما او د مخکني انبياؤ اودس دی، او دا وعيد يې هم بيان کړی: چې که يو چا پر دې اضافه وکړه هغه لهحد څخه تجاوز وکړی او چا چې له دې څخه کمبوت وکړی هغه ظلم وکړی، په حديث کي د تعدى لفظ د زاد سره تعلق لري. او د ظلم لفظ د نقص سره تعلق لري، او د ظلم معنیٰ هم په "نقص" سره راځي، يعني يو شی له خپلي درجې څخه کمول. الله تعالیٰ فرمايلي دي: وَلَمۡ تَظۡلِمۡ مِّنۡهُ شَيۡـًٔا (سورة الكهف: ٣٣) يعني لم تنقص.

والوعيد لعدم الخ صاحب د هدايې فرمايي: چې دا وعيد هغه وخت دی چې كله يو څوک دا عقيده ولري چې پوره سنت په درې وارو سره نه حاصليږي نو د هغه لپاره دا وعيد دی چې هغه تعدى او ظلم وکړی، او که چيري يې د شک په وجه. يا د هيري په وجه، يا د زړه د اطمينان لپاره له درې وارو څخه زيات وب وکړي يا يې د ضرورت په وجه د درې وارو څخه کمبوت وکړي نو هيڅ پروا نه لري، ځکه چې نبي ﷺ به په خپله بعضي وخت درې. درې واره اندامونه پرېولل. او بعضي وخت دوه، دوه واره او بعضي وخت يو، يو واز.

**دويم دليل:** د تکرار الغسل الى الثلث پر سنتوالي دويم دا حديث دی کوم چې ابوداؤد، نسائي او ابن ماجه روايت کړی دی:

عن عمرو بن شعيب عن أبيه عن جده أن رجلاً أتى النبي ﷺ فقال: يا رسول الله كيف الطهور فدعا بماء في اناء فغسل كفيه ثلاثا فذكر صفة الوضوء ثلاثا ثلاثا إلا الرأس ثم قال هكذا الوضوء فمن زاد على هذا او نقص فقد أساء و ظلم أو ظلم و أساء.

او د ابن ماجه په روايت کي دي: فقد تعدى و ظلم او د نسائي په روايت کي دي: فقد اساء وتعدى وظلم د حديث ترجمه آسانه ده.

## د اوداسه مستحبات (په اوداسه او تيمم کي د نيت حکم، او د فقهاؤ قولونه)

قَالَ: وَيُسْتَحَبُّ لِلْمُتَوَضِّئِ فرمايي: او د اودس کونکي لپاره مستحب دي أَنْ دا چي يَنْوِيَ الطَّهَارَةَ د طهارت (اودسه) نيت وکړي فَالنِّيَّةُ فِي الْوُضُوْءِ سُنَّةٌ عِنْدَنَا نو نيت په اوداسه کي زموږ په نېز سنت دی وَعِنْدَ الشَّافِعِيِّ رَحِمَهُ اللهُ فَرْضٌ او د

امام شافعي رَحِمَهُ الله په نېز فرض دی لِأَنَّهُ عِبَادَةٌ ځکه چې اودس عبادت دی فَلَا تَصِحُّ بِدُوْنِ النِّيَّةِ كَالتَّيَمُّمِ نو بغير له نيته به عبادت نه صحيح كيږي لکه تيمم وَلَنَا أَنَّهُ لَا يَقَعُ قُرْبَةً إِلَّا بِالنِّيَّةِ او زموږ دليل دا دی چې بغير له نيته خو به اودس عبادت نه وي لَكِنَّه يَقَعُ مِفْتَاحًا لِلصَّلَاةِ لیکن د لمانځه لپاره خو به کيلي(او ذريعه) وي لِوُقُوْعِهِ طَهَارَةً بِاسْتِعْمَالِ الْمُطَهِّرِ ځکه چې دغه اودس د پاکونکي شي يعني اوبو د استعمال په وجه سره طهارت وګرځېدی بِخِلَافِ التَّيَمُّمِ په خلاف د تيمّم لِأَنَّ التُّرَابَ غَيْرُ مُطَهِّرٍ إِلَّا فِيْ حَالِ إِرَادَةِ الصَّلَاةِ ځکه چې خاوري خاص د لمانځه د ارادې په وخت کي پاکونکي دي أَوْ هُوَ يُنْبِئُ عَنِ الْقَصْدِ يا دا چې تيمم (په خپله) د ارادې خبر ورکوي.

**اللغات:** ﴿يَنْوِي﴾ نَوىٰ يَنْوِي د ضرب د باب څخه مضارع ده: نيت كول، اراده كول، ﴿مِفْتَاح﴾ كيلي(چابي) مجازاً هر هغه شی ته ويل كيږي چې د هغه په ذريعه سره بل شی ته رسول کيږي، ﴿تُرَاب﴾ خاوري.

**تشريح: صورت د مسئلي:** صورت د مسئلې دا دی چې کله انسان د اودس کولو اراده وکړي نو هغه ته پکار دي چې د طهارت او د طهارت د حاصلولو نيت وکړي، يا دي د بې اودسی د زوال نيت وکړي، يا دي د داسې عبادت د ادا کولو نيت وکړي چې هغه له طهارت څخه بغير نه صحيح کيږي، دا خو د نيت کولو پړاؤ سو، پاته سوه دا مسئله چې د نيت څه حکم دی؟ په دې باره د علماؤ اختلاف دی: د احنافو په نېز په اوداسه کي نيت کول سنت دي، او د امام مالک رَحِمَهُ الله او امام شافعي رَحِمَهُ الله او امام احمد رَحِمَهُ الله په نېز فرض دی.

**دليل:** د ائمه ثلاثه وو دليل د نبي ﷺ حديث دی: إنما الأعمال بالنيات، (يعني اعمال په نيتونو باندي موقوف دي) او اودس هم يو عمل دی نو ځکه به دا هم پر نيت موقوف وي، دويم دليل يې دا دی چې اودس يو عبادت دی او عبادت بغير له نيت څخه نه صحيح كيږي، د الله تعالىٰ فرمان دی: وَمَا أُمِرُوا إِلَّا لِيَعْبُدُوا اللهَ مُخْلِصِيْنَ لَهُ الدِّيْنَ (سورة البينة:٥) او اخلاص له نيت څخه بغير ممکن نه دی، نو ځکه به هيڅ يو عبادت له نيت څخه بغير معتبر نه وي لکه په تيمّم کي چې بالاتفاق نيت فرض دی.

**زموږ دليل:** دا دی چې يو سړي له نبي ﷺ څخه د اودس په باره کي پوښتنه وکړه نو نبي ﷺ هغه ته(د اوداسه د تعليم په وخت کي) د نيت تعليم نه ورکړی. (شرح نقايه)، له دې څخه معلومه سوه چې نيت په اوداسه کي فرض نه دی کنې نبي ﷺ به هغه ته ضرور د دې تعليم ورکړی وای.

**دويم دليل:** دا دی چې اودس د لمانځه شرط دی او د لمانځه باقي شرطونه د نيت محتاجه نه دي نو ځکه به اودس هم د نيت محتاجه نه وي، ولنا الخ دريم دليل کوم چې د امام شافعي د دليل جواب هم دی، دا دی چې بې شکه د اودس عبادت کېدل بغير له نيت څخه نه سي کېدلای، لیکن اودس بغير له نيت څخه مفتاحِ صلوٰة (د لمانځه كيلي) كېدلای سي، ځکه چې د لمانځه مفتاح طهارت دی او طهارت هر ډول متحقق کيږي يعني د نيت سره هم او بغير له نيت څخه هم، ځکه چې اوبه په خپل ذات کي پاکونکي دي، الله تعالىٰ فرمايلي دي: وَأَنْزَلْنَا مِنَ السَّمَاءِ مَاءً طَهُوْرًا (سورة الفرقان:٤٨) نو ځکه د پاکونکو اوبو په استعمال سره د اودس طهارت کېدل ثابت سوه، هغه که يې د طهارت نيت کړی وي، که نه وي.

بخلاف التيمم الخ له دې ځاى ځخه د امام شافعى رَحِمَهُ الله د قياس جواب دى، حاصل د جواب دا دى چې اودس پر تيمم قياسول قياس مع الفارق دى ځکه چې اودس په اوبو سره کيږي او اوبه بذاته پاکونکي دي، او تيمم په خاورو سره کيږي او خاوري بذاته پاکونکي نه دي، بلکې د لمانځه د ارادې په حالت کې پاکونکي دي، نو په خاورو سره پاکېدل أمر تعبدى (خلاف القياس) دى، او أمور تعبديه د نيت محتاجه وي، نو په دې وجه سره يې پر تيمم قياس کول صحيح نه دي.

دويم جواب دا دى چې د تيمم لغوى معنىٰ د قصد او ارادې ده او په أمور شرعيه وو کې لغوي معنىٰ ته کتل کيږي. نو ځکه په تيمم کې په خپله د نيت او قصد شرط ولګول سو.

او د دې حديث: إنما الأعمال بالنيات جواب دا دى چې په حديث کې له اعمالو ځخه مراد عبادات دي ځکه چې ډېر مباحات شرعًا بغير له نيت ځخه معتبر وي مثلاً: نکاح، طلاق. بلکې له دې ځخه طاعات مستقله مراد دي. او اودس طاعت مستقله نه دى بلکې د لمانځه لپاره وسيله او ذريعه ده.

او صاحب د شرح وقايه ويلي دي: چې له الأعمال ځخه مخکې لفظ د ثواب مقدر دى، نو اوس به يې مطلب داسي: چې د اعمالو ثواب پر نيت موتوف دى، او په خپله عمل پر نيت موقوف نه دى.

## د ټوله سر د مسح کولو حکم او د سر په مسح کې د عدم تثليث بيان

وَيَسْتَوْعِبُ رَأْسَهُ بِالْمَسْحِ او اودس کونکي به خپل د ټوله سر مسح کوي وَهُوَ سُنَّةٌ او همدغه سنت دى وَقَالَ الشَّافِعِيُّ رَحِمَهُ اللهُ: اَلسُّنَّةُ التَّثْلِيْثُ بِمِيَاهٍ مُخْتَلِفَةٍ امام شافعى رَحِمَهُ الله فرمايي چې په مختلفه (اوجلا جلا) اوبو سره درې واره مسح کول سنت دي اِعْتِبَارًا بِالْمَغْسُوْلِ (امام شافعي رَحِمَهُ الله) پر مغسول اندام باندې قياس کوي وَلَنَا أَنَّ أَنَسًا● رَضِيَ اللهُ عَنْهُ تَوَضَّأَ ثَلَاثًا ثَلَاثًا او زموږ دليل دا دى چې انس رَضِيَ اللهُ عَنْهُ درې درې واره اودس وکړى وَمَسَحَ بِرَأْسِهِ مَرَّةً وَاحِدَةً خو پر سر يې يو وار مسح وکړه وَقَالَ: هٰذَا وُضُوْءُ رَسُوْلِ اللهِ (ص) او ويې فرمايل: چې دا د رسول الله ﷺ اودس دى وَالَّذِيْ يُرْوٰى مِنَ التَّثْلِيْثِ● مَحْمُوْلٌ عَلَيْهِ بِمَاءٍ وَاحِدٍ او (په حديث کې چې) کوم د درېو وارو (مسح کولو) روايت سوى دى هغه محمول دى په يوه اوبو سره (په درې واره مسح کولو باندې) وَهُوَ مَشْرُوْعٌ عَلٰى مَا رَوَى الْحَسَنُ عَنْ أَبِيْ حَنِيْفَةَ رَحِمَهُ اللهُ او دا (طريقه) مشروع هم ده لکه ځرنګه چې حضرت حسن رَحِمَهُ الله له امام ابو حنيفه رَحِمَهُ الله ځخه روايت کړى دى وَلِأَنَّ الْمَفْرُوْضَ هُوَ الْمَسْحُ او په دې وجه هم چې (د سر) مسح فرض ده وَبِالتَّكْرَارِ يَصِيْرُ غَسْلًا او په تکرار کولو سره هغه غسل (پرېولل) ګرځي (يعني په تکرار سره مسح داسي ګرځي لکه پرېولل) وَلَا يَكُوْنُ مَسْنُوْنًا نو ځکه داسي مسح به سنت نه وي فَصَارَ كَمَسْحِ الْخُفِّ نو (د سر مسح) د موزې د مسحي په ډول سوه بِخِلَافِ الْغَسْلِ د غسل په خلاف لِأَنَّهُ لَا يَضُرُّهُ التَّكْرَارُ ځکه چې غسل ته تکرار ضرر نه رسوي.

---

● تخريج: أخرجه بيهقى باب التكرار فى مسح الرأس رقم: ٧٠، حديث رقم: ٢٩٢ وايضاً الدار قطنى فى سننه.

● قال الزيلعى فى تثليث المسح أحاديث بعضها صريحة وبعضها بالمفهوم ثم نقل من الصريحة حديث عامر بن شقيق بن حمزة عن شقيق بن سلمة قال رأيت عثمان بن عفان رَضِيَ اللهُ عَنْهُ غسل ذراعيه ثلاثا ثلاثا ومسح رأسه ثلاثا ثم قال رأيت رسول الله ﷺ فعل هذا وعزاه الى ابو داؤد (نصب: ج: ١، ص ٢٧)

**اللغات:** ﴿يَسْتَوْعِبُ﴾ له باب استفعال څخه مضارع ده: يو شي په بشپړه توګه پټول، ټوله اخيستل، ټوله نيول.
﴿تَثْلِيث﴾ د تفعيل مصدر دی: يو کار درې واره کول. يعني درې واره د سر مسح کول او يا درې اندامونه پرېولل. ﴿مِيَاه﴾ جمع د ماء ده: اوبه، ﴿الخُفّ﴾ موزه، ﴿غَسْل﴾ په فتحه د غين سره: پرېولل.

**تشريح: صورت د مسئلې:** دا دی چې د اودس له سنتونو څخه يو سنت دا هم دی چې اودس کونکی به خپل ټوله سر مسح کوي، يعني د سر د څلورمي حصې مسح کول خو فرض دي او د ټوله سر مسح کول سنت دي او په دې سنت کې زموږ په نېز تثليث نسته، لېکن د امام د شافعي په نېز د استعياب سره سره په جلا جلا اوبو سره تثليث هم سنت دی.

**د امام شافعي دليل:** قياس دی هغه فرمايي: څرنګه چې د اوداسه د اندامونو يعني د لاس، مخ، پښو اونورو په جلا جلا اوبو سره درې واره پرېولل سنت دي، همدغه ډول په جلاجلا اوبو سره درې واره د سر مسح کول هم سنت دي.

**زموږ دليل:** دا دی چې حضرت انس بن مالک ﷺ درې درې واره اودس وکړی، خو مسح يې يو وار وکړه، او ويې فرمايل چې دا د رسول الله ﷺ اودس دی، اياته سو هغه حديث په چې په هغه کې حضرت عثمان ﷺ او حضرت علي ﷺ د نبي ﷺ اودس را نقل کړی دی، چې نبي ﷺ درې درې واره اندامونه پرېولل، او درې درې واره يې مسح وکړه، نو د هغه جواب دا دي چې نبي ﷺ په يو اوبو سره (يعني په يو وار ابو راخيستلو سره) درې واره مسح وکړه او داسې د امام ابو حنيفه رَحِمَهُ الله په نېز هم صحيح دي.

**دويم دليل:** دا دی چې فرض خو مسح ده، او د تکرار په وجه سره به مسح غَسل وګرځيږي او دا د کتاب، سنت او اجماع ټولو خلاف دي، نو ځکه به په مسح کې تکرار سنت نه وي، لهذا د سر مسح د موزو د مسحې په څير سوه. يعني څه رنګه چې د موزو په مسح کې تثليث سنت نه دی دغه رنګه به د سر په مسح کې هم تثليث سنت نه وي، د دې په خلاف غَسل دی ځکه چې هغه د تکرار په وجه نه فاسديږي يعني د تکرار باوجود غَسل، غَسل پاتيږي نو ځکه به په غَسل کې تکرار الی الثلث سنت وي.

## په اوداسه کې د ترتيب حيثيت (او له راسته طرف څخه د اودس شروع کولو حکم)

قَالَ: وَيُرَتِّبُ الْوُضُوْءَ فرمايي: او (اودس کونکی به) په ترتيب سره اودس کوي فَيَبْدَأُ بِمَا بَدَأَ اللهُ تَعَالٰى بِذِكْرِهٖ نو شروع به کوي په هغه اندام سره چې د هغه په ذکر(يادوني) سره الله تعالیٰ شروع کړې ده وَبِالْمَيَامِنِ او (شروع به کوي) له راسته طرف څخه وَالتَّرْتِيْبُ فِي الْوُضُوْءِ سُنَّةٌ عِنْدَنَا او ترتيب په اوداسه کې زموږ په نېز سنت دی وَقَالَ الشَّافِعِيُّ رَحِمَهُ اللهُ فَرْضٌ او امام شافعي رَحِمَهُ الله فرمايي: فرض دی لِقَوْلِه تَعَالٰى: فَاغْسِلُوْا وُجُوْهَكُمْ الْاٰيَةَ ځکه چې الله تعالیٰ فرمايلي دي: "فاغسلوا وجوهکم" (نو تاسو خپل مخونه پرېولئ) وَالْفَاءُ لِلتَّعْقِيْبِ او فاء د تعقيب لپاره ده وَلَنَا أَنَّ الْمَذْكُوْرَ فِيْهَا حَرْفُ الْوَاوِ او زموږ دليل دا دی چې په آيت کې د واو حرف ذکر سوی دی وَهِيَ لِمُطْلَقِ الْجَمْعِ بِإِجْمَاعِ أَهْلِ اللُّغَةِ او د لغتپوهانو په اتفاق سره واو د مطلق جمعي لپاره دی فَتَقْتَضِيْ إِعْقَابَ غَسْلِ جُمْلَةِ الْأَعْضَاءِ نو دا تقاضا کوي چې ټوله

انداموته به په پرېوللو کي وروسته وي وَالْبَدَايَةُ بِالْمَيَامِنِ فَضِيلَةٌ او له راسته طرف څخه شروع کول غوره دي (يعني فضيلت لري) لِقَوْلِهِ عَلَيْهِ الصَّلَاةُ وَالسَّلَامُ ځکه نبي ﷺ فرمايلي دي إِنَّ اللهَ تَعَالَى يُحِبُّ التَّيَامُنَ فِي كُلِّ شَيْءٍ چي الله تعالىٰ په هر شي کي راسته طرف خوښوي حَتَّى التَّنَعُّلِ وَالتَّرَجُّلِ تر دې چي د څپلي په پښه کولو او په ږمنځولو کي هم.

**اللغات**: ﴿تيامن﴾ اسم جمع ده، واحد يې ميمن دی، له يمين څخه مشتق دی، معنیٰ يې ده: راسته، ﴿تعقيب﴾ د تفعيل د باب مصدر دی: شاته کول، يو شی تر بل شي وروسته کول، ﴿إعقاب﴾ د افعال د باب اسم مصدر دی: شاته کېدل، وروسته کېدل، ﴿التنعل﴾ د تفعّل د باب مصدر دی: څپلي په پښو کول، ﴿الترجل﴾ دا هم د تفعّل د باب مصدر دی: سر يا ږيره ږمنځول.

**تشريح**: په دې عبارت کي د دوو مسئلو په اړه بحث سوی دی: (۱) د ترتيب په اړه (۲) او د ابتداء بالتيامن په اړه.

**اوله مسئله**: په اوداسه کي د فرض اندامونو (اعضاء مفروضه وو) په مينځ کي د ترتيب مسئله مختلف فيه ده، د احنافو په نيز د اوداسه د فرض اندامونو په مينځ کي ترتيب سنت دی، او د امام مالک، امام شافعي او امام احمد رَحِمَهُمُ الله په نيز فرض دی.

**دليل**: د دې حضراتو دليل د الله تعالىٰ دا قول دی: إِذَا قُمْتُمْ إِلَى الصَّلٰوةِ فَاغْسِلُوا وُجُوهَكُمْ.... (سورة المائدة: ۶)، وجه د استدلال يې دا ده چي فاء د تعقيب لپاره راځي، او تعقيب د ترتيب پر معنیٰ دلالت کوي، ځکه چي د تعقيب معنیٰ ده: د فاء ما بعد پر ماقبل باندي مرتب کېدل، نو له دې آيت څخه د قيام الى الصلوٰة او د غسل وجه په مينځ کي ترتيب ثابت سو، او کله چي په غسل وجه کي ترتيب ثابت سو نو په پاته نورو اندامونو کي هم ترتيب ثابت سو، ځکه چي پاته نور اندامونه پر غسل وجه باندي معطوف دي، او مَعْطُوف عَلَى الْمُرَتَّب مُرَتَّب وي (يعني په کوم شي کي چي ترتيب ثابت وي، که پر هغه بل شی عطف کړی سي، نو په دې بل کي شي به هم ترتيب ثابتېږي) نو په دې وجه په پاته اندامونو کي هم ترتيب ثابت وي، همدارنگه که په پاته اندامونو کي ترتيب ثابت نه سي نو د اوداسه د فرض اندامونو په مينځ کي به فصل راسي، حال دا چي د فصل هيڅوک هم قائل نه دی، بلکي يا خو د ټولو اندامونو په مينځ کي د ترتيب قول سته يا د عدمِ ترتيب، د دې هيڅوک هم قائل نه دی چي په بعضو اندامونو کي دې ترتيب وي او په بعضو کي دې نه وي.

**زموږ دليل**: دا دی چي په آيت کي د اوداسه د فرض اندامونو په مينځ کي (واو) ذکر سوی دی او د لغتپوهانو پر دې خبره اجماع ده چي واو د مطلق جمع لپاره راځي، نو که چيري موږ دا تسليم هم کړو چي فاء د تعقيب لپاره ده نو مطلب به يې داسي چي د اعضاءِ اربعه وو (يعني د فرض اندامونو) د مجموعې غَسل پر قيام الى الصلوٰة مرتّب دی، نو د قيام الى الصلوٰة او د اعضاء اربعه وو د مجموعې په غَسل کي به ترتيب ثابت سي نه دا چي په اعضاء اربعه وو کي، حال دا چي کلام د اعضاء اربعه وو په ترتيب کي دی او په اعضاء اربعه وو کي واو داخل دی او هغه د ترتيب فايده نه ورکوي، نو ځکه موږ وويل چي د اودس د اعضاء اربعه (فرض اندامونو) په مينځ کي ترتيب فرض نه دی خو څرنگه چي نبي کريم ﷺ د قرآن په ذکر سوي ترتيب سره اودس کړی دی نو ځکه به په اودس کي ترتيب سنت وي، نه فرض.

---

● تخريج: هذا الحديث اتفق عليه أصحاب الكتب الستة، بخاری فی الصلوٰة باب رقم:۴۷ مسلم فی الطهارة حديث رقم:۶۶ باب النهی عن الاستنجاء باليمين رقم:۱۹.

**سوال:** دلته یو اعتراض کیږي هغه دا چې د هدایې د مصنف دا دعویٰ صحیح نه ده چې "واو د مطلق جمع لپاره دی او پر دې باندې اجماع ده"، ځکه چې د بعضي حضراتو په نیز واو د ترتیب لپاره دی، او د بعضو په نیز د قران لپاره دی.

**جواب:** ابو علي فارسي ذکر کړي دي چې د نحاتو پر دې اجماع ده چې واو د مطلق جمع لپاره دی او امام النحو سیبویه په خپل کتاب کې اوولس ځایه ذکر کړي دي چې واو د مطلق جمع لپاره راځي، نو مصنف د هدایې پر دغه خبره اعتماد کړی دی چې د اجماع دعویٰ یې کړې ده، او د یو څو خلکو اختلاف د اجماع مانع نه دی.

**دویمه مسئله:** د ابتداء بالیمن ده، نو د پښو او لاسونو په پرېوللو کې له راسته طرف څخه شروع کول افضل او مستحب دي، صاحب د شرح نقایه لیکلي دي چې صحیح دا ده چې دا سنت دي لکه څرنګه چې په تحفه کې دي، ځکه چې پر ابتداء بالیمین نبي کریم ﷺ همېشتوب کړی دی، همدارنګه نبي ﷺ فرمایلي دي: إذا توضأتم فابدؤا بميامنكم (رواه ابو داؤد وابن ماجه وابن خزيمه وابن حبان)، (یعني کله چې تاسو اودس کوئ نو خپل له راسته طرف څخه شروع کوئ). همدارنګه نبي ﷺ فرمایلي دي: إن الله تعالى يحب التيامن في كل شيء حتى التنعل والترجل، او په یو بل حدیث کې راځي: حتى في طهوره وتنعله وترجله وشانه كله، (یعني الله تعالیٰ په هر شي کې ابتداء بالیمین خوښوي حتی په اودسه کې او د څپلې په پښو کولو او په ږمنځولو کې (مطلب) په هر شي کې).



## فَصْلٌ فِيْ نَوَاقِضِ الْوُضُوْءِ

(دا) فصل د اودس د ماتوونکو شیانو (په بیان کې) دی

**تشریح:** مخکې تر دې صاحب د کتاب د اودسه فرائض، سنتونه، او مستحبات بیان کړل، اوس له دې ځایه هغه شیان بیانوي چې د هغو په وجه اودس ماتیږي، او څرنګه چې اودس اصل دی، او بې اودسي یو عارض دی، او اصل پر عارض مخکې وي، نو ځکه یې مخکې اودس بیان کړی، اوس د اودس ماتېدلو بیان کوي.

نواقض جمع د ناقضة ده، لغوي معنیٰ یې ده: إبطال التأليف في البناء، یعني د عمارت (ودانۍ) ترکیب او جوړښت ماتول. او څرنګه چې نقض دلته د معاني و طرف منسوب دی، نو معنی یې راځي: د اودس باطلونکي او ماتونکي شیان، یعني د کومو نجاستو په وتلو یا داخلېدلو سره چې اودس ماتیږي هغو ته معاني ناقضة وایي.

### د اودسه د نواقضو بیان

اَلْمَعَانِي النَّاقِضَةُ لِلْوُضُوْءِ کوم شیان چې د اودس ماتوونکي دي كُلُّ مَا يَخْرُجُ مِنَ السَّبِيْلَيْنِ (له هغو څخه یو) هر هغه شی دی چې د سبیلینو (یعني د متیازو یا د غایطه موادو د لارې) څخه را وځي لِقَوْلِهِ تَعَالَى ځکه الله تعالیٰ فرمایلي دي أَوْ جَاءَ أَحَدٌ

مِنْكُمْ مِنَ الْغَائِطِ (يا چې يو په تاسو كې غايطه مولاٌ ‌ځكې متيازې) وكړې او راسې) وَقِيْلَ لِرَسُوْلِ اللهِ (ص): مَاالْحَدَثُ او رسول الله ﷺ ته ووېل سوه: چې حدث څه شى دى؟ قَالَ●: مَا يَخْرُجُ مِنَ السَّبِيْلَيْنِ نبي ﷺ وفرمايل: كوم شى چې د متيازو او غايطو د لارې څخه را ووځي وَكَلِمَةُ مَا عَامَّةٌ او كلمه د "ما" عامه ده فَتَتَنَاوَلُ الْمُعْتَادَ وَغَيْرَهُ نو معتاد نجاست او غير معتاد نجاست دواړو ته به شامله وي(يعني كوم چې له دې دواړو لارو څخه عادتاً راوځي او كوم چې عادتاً نه راوځي دواړو ته به د "ما" كلمه شامله وي) وَالدَّمُ وَالْقَيْحُ إِذَا خَرَجَا مِنَ الْبَدَنِ فَتَجَاوَزَ إِلَى مَوْضِعٍ او وينه او زوې (هم د اودس ماتوونكي دي) كله چې دواړه له بدن څخه ووځي او هغه ځاى ته ورسېږي يَلْحَقُهُ حُكْمُ التَّطْهِيْرِ چې د هغه ځاى سره د پاكولو حكم ملحق سوى وي وَالْقَيْءُ مِلْءُ الْفَمِ او په ډكه خوله قى (هم د اودس ماتوونكى دى) وَقَالَ الشَّافِعِيُّ رَحِمَهُ اللهُ: الْخَارِجُ مِنْ غَيْرِ السَّبِيْلَيْنِ لَا يَنْقُضُ الْوُضُوْءَ لمام شافعي رَحِمَهُ الله فرمايي: چې له غير سبيلينو څخه راوتونكى شى د اودس ماتوونكى نه دى لِمَا رُوِيَ● څكه روايت سوى دى أَنَّهُ عَلَيْهِ السَّلَامُ قَاءَ فَلَمْ يَتَوَضَّأْ چې نبى ﷺ قى وكړى خو اودس يې نه وكړى وَلِأَنَّ غَسْلَ غَيْرِ مَوْضِعِ الْإِصَابَةِ أَمْرٌ تَعَبُّدِيٌّ او په دې وجه هم چې له نجاست څخه علاوه د بل ځاى پرېولل أمر تعبدي دى(يعني د قياس خلاف دى) فَيَقْتَصِرُ عَلَى مَوْرِدِ الشَّرْعِ نو پر مورد د شرع باندې به منحصره وي وَهُوَ الْمَخْرَجُ الْمُعْتَادُ او مورد د شرع مخرج معتاد دى(يعني هغه ځاى دى چې له هغه څخه عادتاً نجاست راوځي) وَلَنَا قَوْلُهُ (ص)● او زموږ دليل د نبى ﷺ دا قول دى الْوُضُوْءُ مِنْ كُلِّ دَمٍ سَائِلٍ له هرې بهېدونكې وينې څخه اودس (ضروري) دى وَقَوْلُهُ عَلَيْهِ السَّلَامُ● او د نبى ﷺ دا قول دى: مَنْ قَاءَ چا چې قى وكړى أَوْ رَعَفَ فِي صَلَاتِهِ يا يې په لمانځه كې پزه وينې سوه فَلْيَنْصَرِفْ وَلْيَتَوَضَّأْ نو هغه دې واپس وګرځي او اودس دې وكړي وَلْيَبْنِ عَلَى صَلَاتِهِ او پر خپل لمانځه دې بنا وكړي مَالَمْ يَتَكَلَّمْ تر څو چې يې خبرې نه وي كړي وَلِأَنَّ خُرُوْجَ النَّجَاسَةِ مُؤَثِّرٌ فِي زَوَالِ الطَّهَارَةِ او بل دا چې د نجاست خروج(وتل) د طهارت په زوال كې مؤثر دي وَهٰذَا الْقَدْرُ فِي الْأَصْلِ مَعْقُوْلٌ او دا اندازه په اصل(خارج من السبيلين) كې معقوله ده(يعني دومره اندازه خو په اصل كې په پوهه كې راځي) وَالْاِقْتِصَارُ عَلَى الْأَعْضَاءِ الْأَرْبَعَةِ غَيْرُ مَعْقُوْلٍ او په څلورو اندامونو باندې اكتفا كول غير معقول دى(يعني په پوهه كې نه راځي) لٰكِنَّهُ يَتَعَدَّى ضَرُوْرَةَ تَعَدِّي الْأَوَّلِ ليكن دا به متعدى كيږي د اول د متعدى كېدلو په وجه غَيْرَ أَنَّ الْخُرُوْجَ إِنَّمَا يَتَحَقَّقُ بِالسَّيَلَانِ إِلَى مَوْضِعٍ مګر دا چې خروج (وتل) د داسې ځاى وطرف ته په بهېدلو سره ثابتيږي يَلْحَقُهُ حُكْمُ

---

● تخريج: أخرجه عبد الحى اللكنوى فى التعليق الممجد تحت حديث رقم:٣٢ عن مالك عن ابن عمر مرفوعًا.

● تخريج: لم أجده و قال الزيلعى غريب جداً تحت حديث رقم ستة عشر، أما عدم فرضية الوضوء من القيئ فثابت من السنة رواه الدار قطنى فى السنن باب رقم:٥٩.

● تخريج: أخرجه دارقطنى فى باب الوضوء من الخارج من البدن رقم:٥٦ حديث رقم:٥٥٨

● تخريج: أخرجه دارقطنى فى باب الوضوء من الخارج من البدن رقم:٥٦ حديث رقم:٥٥٨.

التَّطْهِيْرِ چې په هغه ځای پورې د پاکولو حکم ملحق وی وَبِمِلْءِ الْفَمِ فِي الْقَيْئِ او (همدارنګه) په ډکه خوله قی سره (خروج ثابتیږي) لِأَنَّ بِزَوَالِ الْقِشْرَةِ تَظْهَرُ النَّجَاسَةُ فِيْ مَحَلِّهَا ځکه چې د پوستکي په لیرې کېدلو سره نجاست په خپل محل کې ښکاره کیږي فَتَكُوْنُ بَادِيَةً نو هغه ته ښکاره نجاست وایي لَا خَارِجَةً نه خارج (وتونکی) نجاست بِخِلَافِ السَّبِيْلَيْنِ په خلاف د دوو لارو لِأَنَّ ذَاكَ الْمَوْضِعَ لَيْسَ بِمَوْضِعِ النَّجَاسَةِ ځکه چې دا د نجاست ځایونه نه دي فَيُسْتَدَلُّ بِالظُّهُوْرِ عَلَى الْإِنْتِقَالِ وَالْخُرُوْجِ نو ځکه به په ښکاره کېدلو سره پر منتقل کېدلو او وتلو دلیل نیول کیږي وَمِلْءُ الْفَمِ أَنْ يَّكُوْنَ بِحَالٍ لَا يُمْكِنُ ضَبْطُهُ إِلَّا بِتَكَلُّفٍ او په ډکه خوله سره قی دا دی چې بې له تکلفه د هغه قابو کول (نیول) ممکن نه وي لِأَنَّهُ يَخْرُجُ ظَاهِرًا ځکه چې هغه د ښکاره کېدلو په حالت کې راوځي فَاعْتُبِرَ خَارِجًا نو ځکه به خارج ګڼل کیږي وَقَالَ زُفَرُ رَحِمَهُ اللهُ قَلِيْلُ الْقَيْئِ وَكَثِيْرُهُ سَوَاءٌ او امام زفر رَحِمَهُ الله فرمایي: د قی لږ او ډېر دواړه سره برابر دي وَكَذَا لَا يُشْتَرَطُ السَّيَلَانُ او همدارنګه (د ده په نیز) سیلان هم شرط نه دی إِعْتِبَارًا بِالْمَخْرَجِ الْمُعْتَادِ (ځکه چې امام زفر رَحِمَهُ الله) پر مخرج معتاد باندې قیاس کوي وَلِإِطْلَاقِ قَوْلِهِ عَلَيْهِ السَّلَامُ ● او د نبي ﷺ د دې قول د مطلق والی په وجه اَلْقَلْسُ حَدَثٌ (چې) قی حدث دی وَلَنَا قَوْلُهُ (ص) ● او زموږ دلیل دا قول د نبي ﷺ دی لَيْسَ فِي الْقَطْرَةِ وَالْقَطْرَتَيْنِ مِنَ الدَّمِ وُضُوْءٌ د وینې په یوه څاڅکي یا دوو څاڅکو کې اودس نسته إِلَّا أَنْ يَّكُوْنَ سَائِلًا مګر دا چې هغه (وینې) بهېدونکې وي وَقَوْلِ عَلِيٍّ ﷺ او د حضرت علي ﷺ (دا) قول دی حِيْنَ عَدَّ الْأَحْدَاثَ جُمْلَةً چې کله هغه ټوله نواقض شمار کړل (نو ویې فرمایل) أَوْ دَسْعَةٌ تَمْلَأُ الْفَمَ یا قی چې په ډکه خوله وي وَإِذَا تَعَارَضَتِ الْأَخْبَارُ نو چې کله روایات متعارض سول يُحْمَلُ مَا رَوَاهُ الشَّافِعِيُّ رَحِمَهُ اللهُ عَلَى الْقَلِيْلِ نو د امام شافعي رَحِمَهُ الله روایت به پر قلیل حمل کیږي وَمَا رَوَاهُ زُفَرُ رَحِمَهُ اللهُ عَلَى الْكَثِيْرِ او د امام زفر رَحِمَهُ الله روایت به پر کثیر حمل کیږي وَالْفَرْقُ بَيْنَ الْمَسْلَكَيْنِ او د دواړو مسلکونو په مینځ کې فرق هغه دی مَا قَدَّمْنَاهُ کوم چې مخکې موږ بیان کړی، (په دې جمله کې و دې طرف ته اشاره ده چې زموږ مسلک د دواړو مسلکونو په مینځ کې دی).

**اللغات:** ﴿غائط﴾ غایطه مواد، ډکې متیازې، کښته ځکه، ﴿تناول﴾ تناول یتناول د تفاعل له باب څخه د مضارع صیغه ده: شاملیدل. ﴿معتاد﴾ د افتعال له باب څخه اسم مفعول دی: د عادت او معمول مطابق ﴿قيح﴾ نَو. زوې (هغه ژړې اوبه چې له دانو یا زخمونو څخه راوځي) ﴿ملء﴾ ډک. دا لفظ په عامه توګه مضاف راځي لکه: مِلْءُ إِنَاءٍ یعني ډک لوښی. ﴿قاء﴾ د ضرب له باب څخه ماضي ده: خوا ګرځېدل. قی کول. ﴿تكلّفي﴾ اسم منسوب دی معنیٰ یې ده: د بندګي په وجه. خلاف القیاس. ﴿مورد﴾ اسم ظرف دی: داسې ځای یا وخت چې هلته یو څوک راسي، د واردېدلو ځای. دلته مراد ځنې د شریعت د واردېدلو ځای دی. ﴿رعف﴾ د نصر او فتح له باب څخه دی: د پزې څخه وینې بهېدل. پزه وینې کېدل. ﴿ليبن﴾ صیغه د امر غائب ده د ضرب له باب

---

● تخریج: أخرجه دارمی فی باب الوضوء من الخارج من البدن باب رقم:۵۶، حدیث رقم:۵۶۳.

● تخریج: أخرجه دار قطنی فی باب الوضوء من الخارج من البدن رقم:۵۶، حدیث رقم:۵۷۲

شخه: عبارت جوړول، ﴿إِقْتِصَار﴾ اسم مصدر: اکتفا کول، منحصر کېدل، ﴿سِيَلَان﴾ بهېدل، ﴿قِشْرَة﴾ پوستکی، ﴿بَادِيَة﴾ د نصر له باب څخه مؤنث اسم فاعل دی: ښکاره کېدونکی، ﴿قَلَس﴾ قی، ﴿مِلَّة﴾ توله، ﴿الأَخْبَار﴾ حدیثونه، ﴿دَسْعَة﴾ قی.

**تشریح**: په دې اوږده عبارت کې صاحب د کتاب د لمانځه د نواقضو څخه درې نواقض ذکر کړي دي او هر يو يې په خپل دليل او د ائمه وو په مسلک او د دوی په بيان سوي تعليل باندي ښايسته کړی دی، نواقض جمع د ناقضة ده، او نقض که د أجسامو وطرف ته منسوبه سي نو معنیٰ يې راځي: چي د أجسامو جوړښت او ترکيب باطلول، او که د معاني و طرف ته منسوبه سي نو معنیٰ به يې دا وي: معاني له دې څخه ايستل چي مطلوب فايده کړي، يعني معنیٰ چي د کوم مطلب فايده ورکوي له هغه مطلب څخه د معنیٰ ايستلو ته نقض وايي، او دلته د اوداسه مطلب د لمانځه مباح کېدل دي، او له معاني څخه مراد د اوداسه ماتوونکي اسباب او علتونه دي، په حديث کي راځي: لا يحل دم امرئ مسلم إلا باحدى ثلث، (يعني د يو مسلمان وينه به حلاله نه وي مګر د درې علتونو په وجه). لنډه دا چي د لمانځه د نواقضو څخه يو هر هغه شی دی کوم چي د متيازو د يا د غايطه موادو (پاخانې) د لاري څخه را وځي.

**دليل**: دا آيت دی: أَوْ جَاءَ أَحَدٌ مِّنكُم مِّنَ الْغَائِطِ (سورة المائدة: ٦)، او غائط هغه کښته ځکي ته ويل کيږي چي هلته انسان د حاجت د پوره کولو لپاره ځي، حاصل دا چي الله تعالیٰ فرمايلي دي: چي که په تاسو کي يو له قضاء حاجت څخه راسي او اوبه نه وي نو تيمّم دي کوي، لهذا ثابته سوه چي د خروج من السبيلين په وجه سره اودس ماتيږي، ځکه که اودس نه ماتېدلای نو د اوبو د نشتوالي په صورت کي به تيمّم حکم ولي ورکول کېدی؟ دويم دليل يې دا دی چي له نبي ﷺ څخه پوښتنه وسوه چي اې د الله رسوله! حدث څه شی دی؟، نبي ﷺ وفرمايل: ما يخرج من السبيلين (کوم شی چي هم د متيازو يا غايطو د لاري څخه را ووځي هغه حدث دی) په دې حديث کي د مَا کلمه پر عموم دلالت کوي چي معتاد او غير معتاد ټولو ته عامه ده، معتاد يعني کوم چي عادتا را وځي لکه: متيازي (شاشې)، غايطه مواد (غول) او غير معتاد يعني کوم چي عادتاً نه را وځي لکه: شګه او د استحاضې وينه دا ټوله د اودس ماتوونکي شيان دي.

**د امام مالک مسلک**: حضرت امام مالک رَحِمَهُ الله فرمايلي دي چي غير معتاد شيان لکه: چينجی، شګه، د استحاضې وينه، سلسل البول، د نس اسهال او داسي نور د اودس ماتوونکي نه دي ځکه چي الله تعالیٰ په غائط سره کنايةً د قضاء حاجت (بول او براز) ذکر کړی دی او قضاء حاجت معتاد دی، لېکن موږ وايو چي نبي ﷺ فرمايلي دي: المستحاضة تتوضأ لوقت كل صلوٰة (يعني مستحاضه ښځه به د هر لمانځه د وخت لپاره اودس کوي) او د استحاضې وينه غير معتاد ده، نو معلومه سوه چي غير معتاد شيان کوم چي د سبيلينو څخه وځي هغه هم د اودس ماتوونکي دي.

او د اوداسه په نواقضو کي دا هم دي چي د ژوندي سړي له بدن څخه وينه يا زوې (نو) را ووځي او ښکاره سي، داسي ځای ته تجاوز وکړي چي په اودس يا غسل کي د هغه د پاکولو حکم سوی وي، يعني له سبيلينُ څخه ماسوا له بل ځای څخه د نجاست په راوتلو کي صرف د نجاست ښکاره کېدل کافي نه دي بلکي سيلان (بهېدل) شرط دی، نو که وينې د زخم پر سر باندي راسي خو نه وبهيږي نو اودس نه ماتيږي، او د اودس له نواقضو څخه په ډکه خولې قی هم دی او په ډکه خوله قی دا دی چي بغير د تکليف او زور څخه بند نه سي.

**د قيء په باره کې اختلاف:** امام شافعي رَحِمَهُ الله فرمايي چې له غير سبيلين څخه وتونکی شی اودس نه ماتوي، د امام زفر رَحِمَهُ الله په نېز له غير سبيلين څخه وتونکی شی مطلقاً اودس ماتوي، برابره خبره ده که په هغه کې سيلان وي او که نه وي، او که قی په ډکه خوله وي يا نه وي، دا قوالو حاصل دا چې خارج من غير السبيلين د امام شافعي رَحِمَهُ الله په نېز مطلقاً اودس نه ماتوي. او د امام زفر رَحِمَهُ الله په نېز مطلقاً اودس ماتوي، او د احنافو څخه د ائمه ثلاثه وو په نېز اودس ماتوي په دې شرط چې په ډکه خوله وي.

**د امام شافعي دليل:** دا دی چې نبي ﷺ قی وکړی لېکن اودس يې نه وکړی نو ثابته سوه چې قی اودس نه ماتوي؛ دويم عقلي دليل يې دا دی چې د خروج النجاسة من السبيلين په صورت کې د اعضاء اربعه (څلورو اندامونو) د پرېوللو حکم أمر تعبدی (خلاف القياس) دی، ځکه د عقل تقاضا خو دا ده چې پر کوم ځای نجاست ولګېږي هغه به پرېولل کېږي، لېکن دلته د څلورو اندامونو د پرېوللو حکم خلاف القياس دی او صرف د بندګی د ښکاره کولو لپاره دی، او قاعده دا ده چې پر أمر تعبدی يعني پر خلاف القياس شي باندي بل شی نه سي قياسېدلای، نو ځکه به د څلورو اندامونو حکم د شرع تر مورد پوري خاص وي، او د شرع مورد مَخرج معتاد دی، يعني له مخرج معتاد(دوو لارو) څخه که نجاست راووځی نو د څلورو اندامونو د پرېوللو حکم به وي او که له مخرج معتاد څخه ماسوا يعني له غير سبيلين څخه نجاست راووځی نو د څلورو اندامونو د پرېوللو حکم به نه وي، نو معلومه سوه چې خارج من غير السبيلين اودس نه ماتوي.

**زموږ دليل:** زموږ دليل دا دی چې نبي ﷺ فرمايلي دي: اودس(ضروري دی) د هر هغه ويني په وجه چې له بدن څخه راووځی او وبهېږي، په دې حديث سره موږ په دې توګه دليل نيسو چې د حديث له ترکيب او مفهوم څخه وجوب فهمول کېږي لکه د نبي ﷺ له دې قول: في خمس من الابل شاة څخه بالاتفاق فرضيت فهمول کېږي، او إنما الماء من الماء بالاتفاق د منی وو د خروج په وجه د غسل پر وجوب دلالت کوي، نو د دې حديث معنیٰ به وي: توضؤا من كل دم سائل من البدن (يعني له هر هغه ويني څخه اودس کوئ چې له بدن څخه راووځی او وبهېږي).

**دويم دليل:** دا دی چې نبي ﷺ فرمايلي دي: څوک چې قی وکړي يا په لمانځه کې يې پزه ويني سي نو هغه دي واپس ولاړ سي، اودس دي وکړي او خپل پر لمانځه دي بنا وکړي تر څو پوري چې يې خبري کړي نه وي. حاصل د استدلال دا دی چې په حديث کې د اودس أمر سوی دی او أمر د وجوب لپاره راځي، نو معلومه سوه چې تر قی وهلو او د پزي تر ويني کېدلو وروسته اودس واجبېږي.

**عقلي دليل:** کوم چې په حقيقت کې د امام شافعي رَحِمَهُ الله د عقلي دليل جواب دی، دا دی چې دا خبره معقوله ده يعني په فهم کې راځي چې له سبيلين څخه د نجاست وتل د طهارت په زوال کې مؤثر دي، يعني له سبيلين څخه د نجاست وتلو په صورت کې اودس ماتېږي، نو دا صورت اصل او مقيس عليه دی، او څرنګه چې په حديثونو کې د پزي ويني او قي ته هم د اودس ماتونکي ويل سوي دي، او دا شيان له غير سبيلن څخه وځي، نو معلومه سوه چې له سبيلين څخه وتونکی شی هم اودس ماتوي، او له غير سبيلين څخه وتونکی شی هم اودس ماتوي، او په دواړو صورتونو کې طهارت زائلېږي، او د طهارت تر زوال وروسته به څلور اندامونه خامخا پرېولل کېږي، او څرنګه چې په اصل او مقيس عليه يعني په خارج من السبيلين کې د طهارت حاصلولو لپاره څلور اندامونه پرېولل کېږي، نو پر دې باندي په قياسولو سره به په فرع کې هم د طهارت حاصلولو لپاره د څلورو اندامونو د پرېوللو حکم لګېږي، کنې اصل يعني خارج

من السبيلين او فرع يعني خارج من غير السبيلين خو به برابر پاته سي، لېکن د طهارت د حاصلولو په طريقو کي به اختلاف راسي، کوم چي صحيح نه دی.

غيرأن الخروج الخ له دې ځای څخه د يو سوال جواب ورکوي.

**سوال:** دا دی چي کله له غير سبيلين څخه د نجاست وتل داسي دي لکه له سبيلين څخه د نجاست وتل، نو څرنګه چي په سبيلين کي صرف خروج (وتل) معتبر دي، يعني د نجاست په خروج سره اودس ماتيږي، دغه ډول په غير سبيلين کي هم بايد خروج معتبر وای حال دا چي تا په غير سبيلن کي د خروج سره د سيلان شرط هم لګولی دی؟

**جواب:** صاحب د هدايې په جواب کي فرمايي: چي معتبر خو په اصل او فرع دواړو کي صرف خروج دی لېکن خبره د اده چي په وينه او زوې(زړ اوبو) کي خروج هلته متحقق کيږي چي کله سيلان د داسي ځای و طرف ته وسي چي په اوداسه يا غسل کي په هغه ځای پوري د پاکولو حکم لاحق سوی وي، او په قی کي خروج هغه وخت متحقق کيږي چي کله هغه په ډکه خوله وي، دليل يې دا دی چي د څرمني د نري(باريک) پوست په ليري کېدلو سره د نجاست خروج نه کيږي، بلکي په خپل محل کي ښکاره کيږي، نو په دې وخت کي دې ته نجاسة باديه يعني ښکاره کېدونکی نجاست ويل کيږي، نه دا چي خارجېدونکی، په خلاف د سبيلين، ځکه چي سبيلين د نجاست پاته کېدلو ځای نه دی، نو هلته به د نجاست له ښکاره کېدلو څخه دا فهمول کيږي چي نجاست له خپل ځای څخه منتقل سوی دی او خارج سوی دی، حاصل دا چي په حقيقت کي خروج معتبر دی، او د خروج په سبيلين کي په دا ډول ثابتيږي چي نجاست له خپل ځای څخه را نقل سي او د سبيلين پر خوله باندي راسي؛ او له سبيلين څخه ماسوا صرف د نجاست په ښکاره کېدلو سره دغه (خروج) نه ثابتيږي، ځکه چي تر هري څرمني لاندي وينه وي نو د څرمني د باريک پوست په ليري کېدلو سره صرف وينه په نظر راځي، لېکن دلته له ځای څخه منتقل کېدل هلته ثابتيږي چي کله وينه وبهيږي.

وملء الفم أن يكون الخ او په قی کي خروج هغه وخت ثابتيږي چي کله په ډکه خوله وي او په ډکه خوله دا دی چي بغير له تکلّف او زور څخه د هغه بندول ممکن نه وي، او بعضو ويلي دي چي په ډکه خوله سره قی دا دی چي په خبرو کولو کي تکلّف وي، او بعضو ويلي چي له نيمي خولې څخه زيات وي(نهايه)، او د دې خبري دليل چي که قی په ډکه خوله وي نو خروج ثابتيږي، دا دی چي د خولې د دننه حصې دوه حيثيته دي: ظاهر او باطن، ځکه که خوله خلاصه کړی سي نو د ظاهر سره مشابه ده او که خوله بنده کړی سي نو باطن سره مشابه ده، نو موږ د دواړو اعتبار وکړی، او دا مو وويل: که په خوله کي قی په ډکه خوله نه وو نو د باطن د مشابهت اعتبار به کيږي ويل کيږي به: چي خروج نه دي سوی ځکه په دې صورت کي عدم خروج غالب دی، نو ځکه به په دې صورت کي اودس نه ماتيږي، او که قی په ډکه خوله وو نو د ظاهر د مشابهت اعتبار به کيږي ځکه چي په دې صورت کي خروج غالب دی، نو به په دې صورت کي به اودس ماتيږي.

وقال زفر الخ د حضرت امام زفر رَحِمَهُ الله د مذهب بيان وسو چي د ده په نېز خارج من غير سبيلين مطلقاً د اودس ماتوونکي دي، يعنی قی که قليل وي او که کثير، د اودس په ماتېدلو کي دواړه برابر دي، همدارنګه د ده په نېز سيلان هم شرط نه دی د سيلان پر نه شرط کېدلو د امام زفر رَحِمَهُ الله دليل قياس دی، يعني څه رنګه چي له مخرج معتاد يعني له سبيلين څخه په راوتونکي شي سره په اودس ماتېدلو کي سيلان شرط نه دی همدغه ډول له غير سبيلين څخه په راوتونکي شی سره د اودس په ماتېدلو کي هم سيلان شرط نه دی، او پر دې خبره يې دليل چي د قی کثير او قليل مقدار دواړه په نقض د

وضوء کي سره برابر دي د نبي ﷺ دا قول دی: القلس حدث، د قلس معنیٰ ده: قی، وجه د استدلال یې دا ده چې نبي ﷺ قی ته مطلقاً حدث یعني "اودس ماتوونکی" ویلي دی.

او زموږ دلیل پر دې خبره چې په خارج من غیر سبیلین کي د اودس ماتولو لپاره سیلان شرط دی د نبی ﷺ دا قول دی: چې دوینو په یوه څاڅکي او دوو څاڅکو سره اودس نه واجبیږي خو دا چې کله وینه بهېدونکې وي. (دارقطني از شرح نقایه)

او پر دې خبره چې د قي لږ اندازه اودس نه ماتوي، د نبی ﷺ دا قول شاهد دی: یعاد الوضوء من سبع: من إقطار البول والدم السائل والقیح ومن دسعة تملأ الفم ونوم المضطجع وقهقهة الرجل فی الصلوٰة وخروج الدم (یعني له اوو شیانو په وجه به اودس راګرځول کیږي: د متیازو له څڅېدلو څخه، او له بهېدونکو وینو څخه او له زوو (ژړو اوبو) څخه او له قی څخه چې په ډکه خوله وي، او له خوب څخه چې په تکیه او پروتي وي، او په لمانځه کي په قهقهه خندا سره، او د وینې په راوتلو سره).

له دې حدیث څخه معلومه سوه چې په ډکه خوله قي سره اودس ماتیږي، همدا رنګه صاحب د هدایې فرمایلي دي چې حضرت علي ؓ د اودس ټوله نواقض شمار کړل، چې له هغو څخه یې یو دا ذکر کړی: او دسعة تملأ الفم یعنی هغه قی چې په ډکه خوله وي هم ناقض د وضوء دی (یعني اودس ماتوي)؛ ښکاره دې وي چې د قی په ناقضوالی کي روایات سره متعارض سول ځکه د امام شافعي رَحِمَهُ الله له ذکر سوي حدیث قاء فلم یتوضأ څخه معلومیږي چې قی مطلقاً ناقض د وضوء نه دی، او د امام زفر رَحِمَهُ الله له حدیث القلس حدث څخه معلومیږي چې قی مطلقاً ناقض د ضوء دی، نو د دوی په مینځ کي د تطبیق صورت دا دی چې د امام شافعي رَحِمَهُ الله ذکر سوی حدیث قاء فلم یتوضأ به پر قلیل مقدار محمول کیږي، او د امام زفر رَحِمَهُ الله ذکر سوی حدیث القلس حد به پر کثیر مقدار محمول کیږي، نو اوس هیڅ تعارض پاته نه سو، او موږ د دواړو مسلکونو په مینځ کي وي، هم د دې و طرف ته صاحب د هدایې په دې جمله سره اشاره وکړه: والفرق بین المسلکین ما قدمناه.

## په متفرقه (بېلابېلو) ځایونو کي د قي په اړه د صاحبینو اختلاف

وَلَوْقَاءَ مُتَفَرِّقًا او که یو سړي جلا جلا (او څو واره) قی وکړی بِحَيْثُ لَوْجُمِعَ په دې توګه که جمع کړل سو يَمْلَأُ الْفَمَ (نو) خوله به ډکه کړي فَعِنْدَ أَبِي يُوسُفَ رَحِمَهُ اللهُ يُعْتَبَرُ اِتِّحَادُ الْمَجْلِسِ نو د امام ابو یوسف رَحِمَهُ الله په نېز د مجلس یووالی معتبر دی وَعِنْدَ مُحَمَّدٍ رَحِمَهُ اللهُ● يُعْتَبَرُ اِتِّحَادُ السَّبَبِ او د امام محمد رَحِمَهُ الله په نېز د سبب یو والی معتبر دی وَهُوَ الْغَثَيَانُ او سبب (دقي راتللو) جوش دی ثُمَّ مَا لَا يَكُوْنُ حَدَثًا لَا يَكُوْنُ نَجَسًا بیا هر هغه شی کوم چې حدث نه وي هغه به نجس هم نه وي يُرْوَى ذٰلِكَ عَنْ أَبِي يُوسُفَ● رَحِمَهُ اللهُ دا حکم له امام ابو یوسف رَحِمَهُ الله څخه روایت سوی دی وَهُوَ الصَّحِيْحُ او همدا صحیح دی لِأَنَّهُ لَيْسَ بِنَجَسٍ حُكْمًا ځکه لږ قی حکمًا نجس نه دی حَيْثُ لَمْ تَنْتَقِضْ بِهِ الطَّهَارَةُ ځکه چې په هغه سره اودس نه ماتیږي.

---

● القول الراجح: قول محمد رَحِمَهُ الله، كذا في الدر المختار ج:١، ص:١٠٣. [القول الراجح، ج:١، ص:٢]

● القول الراجح: قول أبي يوسف رَحِمَهُ الله، كذا في فتح القدير ج:١، ص: ٧. [القول الراجح، ج:١، ص:٥]

**اللغات**: ﴿مُتَفَرِّقًا﴾ د تفعّل له باب څخه د اسم فاعل صيغه ده معنیٰ یې ده: جلا جلا، بیل بیل، مختلف. ﴿يَغْلِي﴾: د فتح له باب څخه د مضارع صيغه ده: ډکېدل. ﴿غَثَيَان﴾ د قی جوش، قی راتلل، د قی لپاره زړه کېدل.

**تشريح**: صورت د مسئلې: دا دی که یو سړی په اوداسه وو، قی یې وکړی، (یعني قی یې ووهی)، لیکن په یو وار او ډکه خوله سره یې نه ووهی، بلکې لږ لږ او څو واره یې ووهی، او دا معلومه سوه چې که ټوله جمع کړل سي، نو خوله به په ډکه سي، نو د دې اوداسه څه حکم دی؟

په دې سلسله کې د امام ابو یوسف رَحِمَهُ الله په نېز د مجلس اتحاد معتبر دی، نو که په یوه مجلس کې یې څو وار قی وکړی بیا که د هغه سبب یو وو او که نه وو نو اودس په ماتیږي، ځکه چې د متفرقاتو (او بېلا بېلو شیانو) په جمع کولو کې مجلس لره ډېر غټ دخل سته. مثلاً که یو څوک په یوه مجلس کې یو آیت د سجدې څو واره ووایي نو یوه سجده واجبیږي، او د امام محمد رَحِمَهُ الله په نېز د سبب اتحاد معتبر دی او د قی سبب جوش دی، نو که هر وار د قی سبب یو وو هغه که په یوه مجلس کې وو او که په ډېرو کې وو نو هغه به جمع کیږي، که خوله په ډکه سوه نو اودس په ماتیږي، دلیل یې دا دی چې حکم د سبب د ثابتېدلو مطابق وي (یعني څرنګه چې سبب ثابت سي، هغه رنګه به حکم وي)، نو په دې وجه به د سبب په متحد کېدلو سره حکم متحد وي.

ثم ما لا یکون الخ صاحب د هدایې یوه ضابطه بیان کړې ده چې روایت یې له امام ابو یوسف رَحِمَهُ الله سوی دی، ضابطه دا ده: کوم شی چې حدث یعني د اودس ماتوونکی نه وي هغه به نجس او مردار هم نه وي، نو لږ قی لاوا نه بهېدونکې وینه (دم غیرِ سائل) به هم نجس نه وي ځکه دا ناقض (ماتوونکي) نه دي او دا قول زیات صحیح دی ځکه چې د شرعي حکم په روی سره دا نجس نه دي، همدا وجه ده چې په دې سره اودس نه ماتیږي، په وهو الاصح سره د امام محمد رَحِمَهُ الله له قول څخه احتراز دی ځکه چې امام محمد رَحِمَهُ الله لږ قی او دم غیر سائل ته هم نجس وایي.

**راجح قول**: په پورتنی عبارت کې دوې مسئلې ذکر سوې په اوله مسئله کې یعني د متفرق قي په مسئله کې راجح قول د امام محمد رَحِمَهُ الله دی یعني د سبب اتحاد به معتبر وي، كما قال العلامة جلال الدين الخوارزمي رَحِمَهُ الله: والاصح قول محمد رَحِمَهُ الله.... (الكفايه ج:١، ص:٤٠). [القول الراجح ج:١، ص:٤]. او په دویمه مسئله کې راجح قول د امام ابو یوسف رَحِمَهُ الله دی، یعني کوم شی چې د اودس ماتوونکي نه وي هغه به نجس هم نه وي، نو لږ قی به نجس نه وي ځکه چې لږ قی لودس نه ماتوي او داسي نور، كما قال العلامة ابن الهمام رَحِمَهُ الله وجماعة اعتبروا قول أبي يوسف رَحِمَهُ الله رفقاً بأصحاب القروح حتى لو أصاب ثوب أحدهم أكثر من قدر الدرهم لاتمنع الصلاة فيه (فتح القدير ج:١، ص:٤٠). [القول الراجح، ج:١، ص:٥]

## د قي قسمونه او احكام (او په دې سره د اودس د ماتېدلو په اړه اختلاف)

وَهٰذَا إِذَا قَاءَ مِرَّةً أَوْ طَعَامًا أَوْ مَاءً او دا حکم هغه وخت دی چې کله یې د ترخو لوبو (صفرا) یا د خوراک یا د اوبو قی کړی وي فَإِنْ قَاءَ بَلْغَمًا او که د بلغمو قی یې کړی وو فَغَيْرُ نَاقِضٍ عِنْدَ أَبِي حَنِيفَةَ وَمُحَمَّدٍ رَحِمَهُ اللهُ نو د طرفينو په نېز لودس نه ماتوي وَقَالَ أَبُو يُوسُفَ رَحِمَهُ اللهُ: نَاقِضٌ او امام ابو يوسف رَحِمَهُ الله فرمايي: چې لودس ماتوي إِذَا كَانَ مِلْءَ الْفَمِ (خو) چې کله په ډکه خوله وي وَالْخِلَافُ فِي الْمُرْتَقِي مِنَ الْجَوْفِ او اختلاف په هغه بلغم کې دی چې د نس له مینځ څخه راختلی وي (او قی کړی سوی وي) أَمَّا النَّازِلُ مِنَ الرَّأْسِ او پاته سو هغه بلغم چې له سر څخه راغلی

وي(او قی کړی سوی وي) فَغَيْرُ نَاقِضٍ بِالْإِتِّفَاقِ نو هغه په اتفاق سره اودس نه ماتوي لِأَنَّ الرَّأْسَ لَيْسَ بِمَوْضِعِ النَّجَاسَةِ ځکه چي سرد نجاست ځای نه دی لِأَبِي يُوسُفَ رَحِمَهُ اللهُ: أَنَّهُ نَجِسٌ بِالْمُجَاوَرَةِ دابو يوسف رَحِمَهُ الله دليل دا دی: چي (له نس څخه را ختونکي) بلغم د (نجاست سره د) اتصال(يو ځای کېدلو) په وجه نجس دي وَلَهُمَا: أَنَّهُ لَزِجٌ او د طرفينو دليل دا دی: چي بلغم ښوی(او غوړ) شی دی لَا تَتَخَلَّلُهُ النَّجَاسَةُ (چي)نجاست نه سي په ننوتلی وَ مَا يَتَّصِلُ بِهِ قَلِيْلٌ او کوم نجاست چي د هغه سره موښتی وي هغه لږ وي وَالْقَلِيْلُ فِي الْقَيْئِ غَيْرُ نَاقِضٍ او په قی کي لږ (مقدار) اودس نه ماتوي.

**اللغات:** ﴿مرة﴾ صفرا (ژړي ترخې اوبه)، د جسم له څلورو أخلاطو څخه يو خلط دی، ﴿بلغم﴾ ريزش، نزله، دا هم د جسم له څلورو أخلاطو څخه يو خلط دی، ﴿مرتقي﴾ ختونکی، ﴿مجاورة﴾ اسم مصدر دی له باب مفاعله څخه: همسايتوب، يو ځای کېدل، اتصال، ﴿لزج﴾ ښوی، سرېښناکه(مجازاً غوړ).

**تشريح:** د دې عبارت تعلق د هغه يملأالفم سره دی چي په تېر عبات کي ذکر سو، او د عبارت حاصل دا دی چي په ډکه خوله سره قی په دې شرط اودس ماتوي چي دغه قی د ترخو اوبو يا د خوراک يا د چېناک وي، لېکن که يو سړي له دې شيانو څخه ماسوا بلغم قی کړي چي په هغه کي د خوراک اونورو ګډون نه وي نو د دې دوه صورتونه دي: يا به دا بلغم له ماغ څخه راغلی وي يا به د معدې له مېنځ څخه را پورته سوي وي، اول صورت خو په اتفاق سره ناقض د وضوء (د اودس ماتونکی) نه دی ځکه سر او دماغ د نجاست ځای نه دی، او دوېم صورت د طرفينو په نېزي ناقض د وضوء نه دی، لېکن د امام ابو يوسف رَحِمَهُ الله په نېز ناقض دی په دې شرط چي په ډکه خوله وي.

**د امام ابو يوسف دليل:** دا دی چي بلغم که څه هم په خپله نجس نه دي، خو د معدې د نجاست سره د اتصال په وجه نجس کيږي او له هغه ځای څخه راوځي چي په غسل کي د هغه سره د پرېوللو حکم لاحق سوی وي (چي هغه نو خوله ده)، يعني په غسل کي خوله پرېولل(مضمضه) فرض ده، نو کله چي خروج د نجاست راغلی نو ناقض د وضوء به وي لکه د خوارک او د ترخو اوبو قی.

**د طرفينو دليل:** دا دی چي بلغم ښوی او سرېښناکه شی وي، نجاست نه ور سره مښلي، او کوم نجاست چي هم ور سره لګېدلی او موښتي وي هغه لږ وي، او په قی کي لږ مقدار ناقض د وضوء نه دی، نو ځکه به د بلغم قی ناقض د وضوء نه وي.

## د وينو د قي حکم( او په دې اړه اختلاف)

وَلَوْقَاءَ دَمًا او که يې د وينو قی وکړی وَهُوَعَلَقٌ په داسي حال کي چي وينه ټوټه(او کلکه) وه يُعْتَبَرُفِيْهِ مِلْءُ الْفَمِ نو په دې کي به ډکه خوله معتبره وي لِأَنَّهُ سَوْدَاءُ مُحْتَرِقَةٌ ځکه چي دا ټوټه وينه سوځلې سوداء ده وَإِنْ كَانَ مَائِعًا او که

وینه بهېدونکی (او نری) وه، فَكَذٰلِكَ عِنْدَ مُحَمَّدٍ رَحِمَهُ اللهُ نو د امام محمد رَحِمَهُ الله په نېز هم دغه حکم دی إِعْتِبَارًا بِسَائِرِ أَنْوَاعِهِ د قی پر ټولو قسمونو باندې په قیاسولو سره وَعِنْدَهُمَا إِنْ سَالَ بِقُوَّةِ نَفْسِهِ يَنْتَقِضُ الْوُضُوْءُ او د شیخینو رحمهما الله په نېز که وینه په خپل زور سره وبهېدله نو اودس ماتیږي وَإِنْ كَانَ قَلِيْلًا که څه هم لږ وي لِأَنَّ الْمِعْدَةَ لَيْسَتْ بِمَحَلِّ الدَّمِ ځکه چې معده د وینې ځای نه دی فَيَكُوْنُ مِنْ قُرْحَةٍ الْجَوْفِ نو دا به د نس له زخم څخه راغلې وي.

**اللغات:** ﴿علق﴾ ټوټه، ګاټه، سختې او جمع سوې وینې، ﴿سوداء﴾ د جسم له څلورو اخلاطو څخه یو خلط دی، ﴿قرحة﴾ زخم، دانه، ﴿جوف﴾ د هر خالي شي دننه حصه.

**تشریح: صورت د مسئلې:** دا دی که یو سړي د وینو قی وکړې نو دا وینې په دوه قسمه وي: یا به دا وینې ولاړې او ټوټه ټوټه وي یا به بهېدونکې وي، که ټوټه ټوټه وي نو په دې کې د خولې ډکوالی معتبر دی، ځکه چې دا ټوټه او سختې وینې سوځل سوې سوداء وي او له معدې څخه راوځي، او له معدې څخه را وتونکی شی اودس ماتوي، په دې شرط چې هغه په ډکه خوله وي، او که وینې بهېدونکې وي نو امام محمد رَحِمَهُ الله په دې کې د خولې د ډکوالي اعتبار کوي، یعني که دومره وینې وي چې خوله ډکه کړي نو اودس ماتوي کنې نه یې ماتوي.

**د امام محمد دلیل:** قیاس دی، یعني امام محمد رَحِمَهُ الله د وینو قی پر نورو قیانو باندې قیاسوي، نور قیان پنځه دي: (١) د خوراک قی، (٢) د اوبو قی، (٣) د ترخو اوبو قی، (۴) د صفراء قی، (۵) د سوداء قی

یعني څه رنګه چې په دې پنځو کې د اودس د ماتېدلو لپاره ډکه خوله شرط ده همدغه رنګه به د وینو په قي کې د خولې ډکوالی معتبر وي.

او شیخین رَحِمَهُمَا الله فرمایي: که وینې په خپل قوت سره را ووځي او وبهیږي نو اودس ماتیږي، که څه هم لږ وي.

**د شیخینو دلیل:** دا دی چې معده د وینو ځای نه دی، نو کله چې له معدې څخه وینې راسي، نو مطلب یې دا دی چې په معده کې یو زخم دی چې له هغه څخه وینې را رواني دي، نو دا به پر هغو وینو قیاسیږي چې هغه له ښکاره زخم څخه را وځي، او کومې وینې چې له ښکاره زخم څخه راوځي نو په هغه کې د اودس د ماتېدلو لپاره سیلان (بهېدل) معتبر دی، نو په دې وجه به دلته هم سیلان معتبر وي که څه هم په ډکه خوله نه وي.

**راجح قول:** په پورتنې عبارت کې راجح قول د شیخینو دی، یعني که وینې په خپل قوت سره را ووځي او وبهیږي نو اودس ماتیږي. [القول الراجح، ج:١، ص:٧٠]

## د وینو د قي نور تفصیل

وَلَوْ نَزَلَ مِنَ الرَّأْسِ او که وینه له سر څخه راغله إِلٰى مَا لَانَ مِنَ الْأَنْفِ د پزې نرمې حصې ته (یعني د پزې و نرمې ته) نَقَضَ بِالْإِتِّفَاقِ نو په اتفاق سره اودس مات سو لِوُصُوْلِهِ إِلٰى مَوْضِعٍ يَلْحَقُهُ حُكْمُ التَّطْهِيْرِ ځکه چې وینه داسې ځای ته ورسېدله چې د هغه سره د پاکولو حکم لاحق دی فَيَتَحَقَّقُ الْخُرُوْجُ نو خروج (سیلان) ثابت سو.

**اللغات:** ﴿لان﴾ د ضرب د باب ماضي صیغه ده: نرمېدل.

---

● القول الراجح: قول الشیخین، کذا فی رد المحتار ج:١، ص:١٠٣. [القول الراجح، ج:١، ص:٧]

**تشريح**: د عبارت حاصل دا دی چې که وینه له سر څخه را ووځي او د پرې تر نرمۍ پورې را ورسیږي، نو په دې سره بالاتفاق اودس ماتیږي. دلیل دا دی چې دا وینې تر داسې ځایه پورې را رسېدلې دې چې (په اودس او غسل کې) پر هغه د پاکولو حکم لاحق سوی دی (یعني په اودس او غسل کې د پزې د پرېوللو حکم سوی دی)، او کله چې تر داسې ځایه وینه را ورسیږي، نو پوه سه چې خروج او سیلان متحق سو، یعني دوینو را وتل او بهېدل ثابت سوه.

## څه ډول خوب اودس ماتوي..... (د اودس د نواقضو دویم قسم)

وَالنَّوْمُ مُضْطَجِعًا او خوب په داسې حالت کې چې پر بغل (پړه) وي اَوْمُتَّكِئًا یا (خوب) په داسې حالت کې چې تکیه یې کړې وي اَوْمُسْتَنِدًا اِلٰى شَيْءٍ یا یې پر یو داسې شي شنګ وهلی وي لَوْاُزِيْلَ عَنْهُ که هغه شی له ده څخه لیرې کړی سي لَسَقَطَ نو دا بیده سړی به غوزار (را ایله) سي لِاَنَّ الْاِضْطِجَاعَ سَبَبٌ لِاِسْتِرْخَاءِ الْمَفَاصِلِ ځکه پر بغل پرېوتل د بندونو (جوړونو) د سستوالي سبب دی فَلَا يَعْرٰى عَنْ خُرُوْجِ شَيْءٍ عَادَةً نو د عادت په توګه به دیوشی له وتلو څخه خالي نه وي وَالثَّابِتُ عَادَةً او کوم شی چې په عادت سره ثابت وي كَالْمُتَيَقَّنِ بِهٖ هغه داسې دی لکه په یقیني توګه سره چې ثابت وي وَالْاِتِّكَاءُ يُزِيْلُ مُسْكَةَ الْيَقْظَةِ او تکیه لګول د وېښتوب بندیز (کنټرول) ختموي لِزَوَالِ الْمَقْعَدِ عَنِ الْاَرْضِ ځکه چې مقعد (کوناټي) له مځکې څخه لیرې سي وَيَبْلُغُ الْاِسْتِرْخَاءُ فِي النَّوْمِ غَايَتَهٗ بِهٰذَا النَّوْمِ مِنَ الْاِسْتِنَادِ او په خوب کې په دا ډول تکیه لګولو سره سستیا خپل انتها ته رسیږي غَيْرَ اَنَّ السَّنَدَ يَمْنَعُهٗ مِنَ السُّقُوْطِ خو تکیه دغه بیده سړی له غوزار بدلو څخه منع کوي (یعني غوزار بدلو ته یې نه پرېږدي) بِخِلَافِ النَّوْمِ حَالَةَ الْقِيَامِ وَالْقُعُوْدِ وَالرُّكُوْعِ وَالسُّجُوْدِ فِي الصَّلَاةِ وَغَيْرِهَا په خلاف د خوب د ولاړې، ناستې، رکوع او سجدې په حالت کې په لمانځه کې یا په بل حالت کې هُوَ الصَّحِيْحُ همدا صحیح ده (چې په داسې خوب سره اودس نه ماتیږي) لِاَنَّ بَعْضَ الْاِسْتِمْسَاكِ بَاقٍ (دا) په دې وجه چې یو څه استمساک (کنټرول) لا پاته وي اِذْلَوْزَالَ لَسَقَطَ ځکه که استمساک ختم سي نو هغه به غوزار سي فَلَمْ يَتِمَّ الْاِسْتِرْخَاءُ نو (معلومه سوه چې) استرخاء پوره نه سوه وَالْاَصْلُ فِيْهِ قَوْلُه● عَلَيْهِ الصَّلَاةُ وَالسَّلَامُ لو دلیل په دې باره کې د نبي ﷺ دا قول دی لَاوُضُوْءَ عَلٰى مَنْ نَامَ قَائِمًا اَوْ قَاعِدًا اَوْ رَاكِعًا اَوْ سَاجِدًا (چې) پر هغه سړي اودس (واجب) نه دی کوم چې د ولاړې یا ناستې یا رکوع یا سجدې په حالت کې بیده سي اِنَّمَا الْوُضُوْءُ عَلٰى مَنْ نَامَ مُضْطَجِعًا (بلکې) اودس پر هغه چا (واجب) دی چې پر بغل بیده سي فَاِنَّهٗ اِذَا نَامَ مُضْطَجِعًا ځکه کله چې هغه پر بغل بیده سي اِسْتَرْخَتْ مَفَاصِلُهٗ نو بندونه (جوړونه) یې سست سي.

● تخريج: أخرجه الترمذي في الطهارة باب رقم:٥٧، حديث رقم:٧٧ وايضاً ابو داؤد في الطهارة باب رقم:٧٩ والبيهقي ايضاً في السنن الكبرى باب رقم:٥٧ حديث رقم:٥٨٩، ٥٨٦، ٥٨٧ بمعناه.

**اللغات**: ﴿مُضْطَجِعٌ﴾ پر بغل (اړخ) پرېټونکي، پر بغل بیدېدونکی، ﴿مُتَّکِئٌ﴾ ټېک لګوونکی، تکیه وهونکی، ﴿اِسْتِرْخَاء﴾ د باب استفعال مصدر دی: سستېدل، کمزوري کېدل، ﴿يَعْرِيْ﴾ عَرِيَ يَعْرِيْ د ضرب مضارع ده: خالي کېدل، لڅېدل، ﴿مُسْکَة﴾ بندېز، کنټرول، خنډ، ﴿مَقْعَدٌ﴾ د سړي آخرینۍ حصه، سُرین (کوناټي)، د کښېنستلو ځای، ﴿فَلَمْ يَتِمَّ﴾ تَمَّ، يَتِمُّ د ضرب له باب څخه د جحد صیغه ده: پوره کېدل، د إفعال او تفعیل له بابونو څخه هم راځي: تَمَّمَ أَتَمَّ: پوره کول.

**تشریح**: تر دې مخکې د هغه نواقضو بیان وو کوم چې حقیقتًا او واقعي د انسان له بدن څخه را وځي، دلته د هغه نواقضو بیان دی چې هغه خو حقیقتًا د انسان له بدن څخه نه را وځي، خو د بدن سره تعلق لري، د عبارت حاصل دا دی چې: که یو اودس لرونکی سړی پر بغل بیده سو، یا یې یو شي ته تکیه ووهل او بیده سو، یا یې پر یو داسې شی څنګ ووهی بیده سو چې که هغه شی له ده څخه لیرې سي نو دی به پر مځکه را ایله سي، نو په دې ټولو صورتونو کې د ده اودس ماتیږي، په بغل باندې په پروتې سره د اودس ماتېدلو وجه دا ده چې دغسې پروته د بندونو د سستوالي سبب دی او د بندونو د سستوالي په صورت کې د عادت موافق او په عامه توګه څه ناڅه شی وځي، او کوم شی چې عادتًا ثابت وي هغه داسې دی لکه په یقیني توګه چې ثابت سوی وي، نو دا خبره تسلیم سوه چې په بغل باندې په پرېوتلو سره د بندونو د سستوالي په وجه ریح (باد) وځي، او د باد په وتلو سره اودس ماتیږي، او څرنګه چې په دې صورت کې هم استرخاء د مفاصلو راځي، نو ځکه به په دې صورت کې هم اودس ماتیږي.

والإتّكاء (تکیه لګول) ځکه اودس ماتوي چې د تکیه لګولو په وخت کې د بیداری او وینوالي په حالت کې هم مقعده له مځکې څخه پورته کیږي، او استرخاء د مفاصلو راځي، نو کله چې د بیداری په حالت کې دا حال دی، نو د خوب په حالت کې خو په درجه اولیٰ سره استرخاء د مفاصلو راځي، او استرخاء د مفاصلو د اودس د ماتوالي سبب دی، نو ځکه به په دې صورت کې هم اودس ماتیږي.

او پر یو شي تکیه لګول او بیدېدل، په دې کې پوره استرخاء راځي، او استرخاء خپلې انتهاء ته رسیږي صرف دومره خبره ده چې تکیه لګولو دغه بیده سړی له غوزارېدلو څخه راګرځولی دی، که هغه شی لیرې سي پر کوم چې ده تکیه لګولې ده نو دی به غوزار سي، څرنګه چې د اودس د ماتېدلو مدار په استرخاء باندې وو، او هغه دلته پیدا سو، نو ځکه به په دا صورت کې هم اودس ماتیږي.

بخلاف حالة النوم الخ د دې صورتونو په خلاف که یو سړی د ولاړې په حالت کې بیده سو یا د ناستې په حالت کې یا د رکوع او سجدې په حالت کې بیده سو نو اودس یې نه ماتیږي، بیا که دا کیفیت په لمانځه کې وو، یا بغیر له لمانځه څخه په بل حالت کې وو (دواړه سره برابر دي)، همدغه صحیح ده، یعني ظاهر الروایه همدغه دی، دلیل یې دا دی چې په دې حالتونو کې بیا هم څه ناڅه استمساک (کنټرول او ټینګېدنه ) پاته وي، ځکه که بالکل استمساک ختم سي، نو دا سړی به غوزار سي، نو معلومه سوه چې په دې حالتونو کې پوره استرخاء نه راځي، او کله چې پوره استرخاء نه راځي نو اودس هم نه ماتیږي، دا خو عقلي دلیل سو، اصلي او نقلي دلیل هغه حدیث دی کوم چې په دې باب کې ذکر سو، چې نبي ﷺ وفرمایل: کوم سړی چې د قیام (ولاړې) په حالت کې بیده سي یا د قعود (ناستې)، یا د رکوع، یا د سجود په حالت کې بیده سي نو پر هغه اودس نه واجبیږي، بلکې اودس پر هغه سړي واجبیږي چې پر بغل بیده سي ځکه کله چې انسان پر بغل پرېوځي نو ټوله بندونه یې سست سي.

## په بې هوښۍ (بېرانۍ) او لېونتوب سره د اودس ماتېدلو حکم

وَالْغَلَبَةُ عَلَى الْعَقْلِ بِالْإِغْمَاءِ وَالْجُنُونِ اوغلبه په عقل باندي د بې هوښي په وجه سره او لېونتوب (دا دواړه اودس ماتوي) لِأَنَّهُ فَوْقَ النَّوْمِ مُضْطَجِعًا فِي الِاسْتِرْخَاءِ ځکه چي په دې دواړو کي (يعني په اغماء او جنون کي) د بندونو سستوالی د بغل تر خوب زيات دی وَالْإِغْمَاءُ حَدَثٌ فِي الْأَحْوَالِ كُلِّهَا او بې هوښي په ټولو حالتونو کي حدث دی (يعني په ټولو حالتونو کي اودس ماتوي) وَهُوَ الْقِيَاسُ فِي النَّوْمِ او په خوب کي (هم) د قياس دغه تقاضا ده (چي په ټولو حالتونو کي به اودس ماتوي) إِلَّا أَنَّا عَرَفْنَاهُ بِالْأَثَرِ لېکن موږ دا خبره په اثر سره معلومه کړې ده (چي د رکوع او سجدې په حالت کي خوب اودس نه ماتوي) وَالْإِغْمَاءُ فَوْقَهُ او بې هوښي له خوب څخه (هم) لوړه ده (يعني په بې هوښي کي تر خوب زيات عقل زائليږي) فَلَا يُقَاسُ عَلَيْهِ نو ځکه به بې هوښي پر خوب نه قياسيږي.

**اللغات:** ﴿إِغْمَاء﴾ د افعال د باب مصدر دی: بې هوښه کېدل، بې سده کېدل، يعني هغه حالت چي د انسان قواوي کمزوري سي، هوښ او حس يې بالکل ختم سي، ﴿الْجُنُون﴾ لېونتوب، پاګلتوب، د إغماء په حالت کي عقل مغلوب کيږي او د جنون په حالت کي عقل سلب کيږي، همدغه وجه ده چي د نبيانو په حق کي إغماء جائز ده خو جنون جائز نه دی، ﴿يُقَاسُ﴾ د ضرب له باب څخه مضارع مجهول صيغه ده: پوهېدل، قياسول، په دوو جلا جلا شيانو کي د مشترکي خبري إدراک کول، شعور استعمالول.

**تشريح: صورت د مسئلې:** دا دی چي که د إغماء (بې هوښي) په وجه د يو سړي عقل مغلوب سي يا د جنون او لېونتوب وجه د يو چا عقل مسلوب (زائل) سي نو دا دواړه صورتونه ناقض د وضوء دي (يعني اودس ماتوي)

**دليل:** دا دی چي له اغماء او جنون څخه هر يو په استرخاء مفاصل کي د بغل تر خوب زيات دی (يعني څومره استرخاء چي په بغل باندي په خوب کولو کي راځي تر هغه زياته استرخاء په بې هوښي او لېونتوب کي راځي)، او إغماء په ټولو حالتونو کي اودس ماتوي يعني په قيام، قعود او نورو حالتونو کي هم، د قياس تقاضا خو په خوب کي هم دغه وه چي خوب دي په ټولو حالتونو کي ناقض د وضوء وي، خو د رسول الله ﷺ د حديث په وجه موږ قياس پرېښووی، او څرنګه چي إغماء له خوب څخه قوی ده نو په دې وجه إغماء پر خوب نه سي قياسېدلای، او د إغماء د قوي والي دليل دا دی: چي پر چا باندي إغماء راسي هغه په هر ډول بيداره کولو سره نه بيداره کيږي (او هر څومره چي وښوروول سي نه خبريږي) د دې په خلاف بيده سړی دی چي هغه په بيداره کولو سره خبريږي، او څرنګه چي جنون تر إغماء هم قوي دی، نو ځکه به جنون په درجه اولی سره ناقض د وضوء وي.

### د إغماء په تعريف کي مختلفه قولونه

علامه عيني رَحِمَهُ الله په بنايه کي د إغماء په باره کي څو قولونه ذکر کړي دي:

① دا يو داسي مرض دی چي د هغه په وجه د انسان قواوي کمزوري کيږي.

② اغماء يو ډول سهوه ده چي د اندامونو د سستوالي په وجه انسان ته ور پيښيږي.

③ د بعضو خلکو رايه دا ده چي د يخ او سخت بلغم په وجه د دماغ دننه حصه متأثره سي او د انسان عقل مغلوبه سي.

او د جنون په باره کي فقط دا رانقل سوي دي: الجنون زوال العقل وفساده. (بنايه، ج۱، ص۲۲۵)

## په قهقهه خندا سره د اودس ماتېدلو حکم(او په دې باره کې د فقهاؤ قولونه او دليلونه)

وَالْقَهْقَهَةُ فِي كُلِّ صَلَاةٍ ذَاتِ رُكُوْعٍ وَ سُجُوْدٍ او قهقهه خندا په هر د رکوع او سجدې والا لمانځه کې(هم اودس ماتوي) وَالْقِيَاسُ أَنَّهَا لَا تَنْقُضُ او قياس دا دی چې قهقهه دې اودس نه ماتوي وَهُوَ قَوْلُ الشَّافِعِيِّ رَحِمَهُ اللهُ او همدغه د امام شافعي رَحِمَهُ الله قول دی لِأَنَّهُ لَيْسَ بِخَارِجٍ نَجِسٍ ځکه چې قهقهه يو را وتونکې نجس شی نه دی وَلِهٰذَا لَمْ يَكُنْ حَدَثًا فِي صَلَاةِ الْجِنَازَةِ وَ سَجْدَةِ التِّلَاوَةِ وَ خَارِجِ الصَّلَاةِ همدا وجه ده چې قهقهه د جنازې په لمانځه کې او په سجدهٔ تلاوت کې اوله لمانځه څخه دباندې حدث نه ده(يعني اودس نه ماتوي) وَلَنَا قَوْلُهُ عَلَيْهِ الصَّلَاةُ وَالسَّلَامُ او زموږ دليل د نبي ﷺ دا قول دی أَلَا مَنْ ضَحِكَ مِنْكُمْ قَهْقَهَةً خبردار! څوک چې په تاسو کې په قهقهه سره وخندي فَلْيُعِدِ الْوُضُوْءَ وَالصَّلَاةَ جَمِيْعًا نو هغه دې اودس او لمونځ دواړه را وګرځوي وَبِمِثْلِهِ يُتْرَكُ الْقِيَاسُ او په داسې نص(حديث) سره به قياس پرېښوول کيږي وَالْأَثَرُ وَرَدَ فِي صَلَاةٍ مُطْلَقَةٍ او نص وارد سوی دی په مطلق لمانځه کې فَيُقْتَصَرُ عَلَيْهَا نو پر دې به اکتفاء کيږي وَالْقَهْقَهَةُ مَا يَكُوْنُ مَسْمُوْعًا لَهُ او قهقهه دا ده چې سړی يې په خپله (هم) واوري وَلِجِيْرَانِهِ او د ده همسايه ګان يې (هم) واوري (يعني څوک چې د ده ته نژدې وي هغه يې هم واوري) وَالضِّحْكُ يَكُوْنُ مَسْمُوْعًا لَهُ دُوْنَ جِيْرَانِهِ او ضحک هغه دی چې سړی يې په خپله واوري، نه همسايه ګان (يعني نژدې خلک يې نه واوري) وَهُوَ عَلَى مَا قِيْلَ يُفْسِدُ الصَّلَاةَ دُوْنَ الْوُضُوْءِ او ديوه قول مطابق ضحک لمونځ فاسدوي نه اودس.

**اللغات:** ﴿قَهْقَهَةٌ﴾ د شدّت او زور په اعتبار سره د خندا تر ټولو لوړي درجې ته قهقهه ويل کيږي، (يعني په زوره خندا) ﴿فَلْيُعِدْ﴾ د إفعال د باب أمر غائب دی أَعَادَ يُعِيْدُ: را ګرځول. ﴿جِيْرَان﴾ جمع ده، واحد يې جارٌ دی: همسايه ګان، ګاونډيان(دلته مراد ځيني هغه کسان دي چې په لمانځه کې انسان ته نژدې ولاړ وي).

**تشريح:** صورت د مسئلې: دا دی که يو سړی د رکوع او سجدې والا په لمانځه کې په زوره (قهقهه) خندا وکړي نو زموږ په نېز د هغه اودس هم ماتيږي او لمونځ يې هم باطليږي، خو د قياس تقاضا دا ده چې په قهقهه سره دې په اودس کې هيڅ فرق رانه سي، ځکه چې قهقهه صرف يو آواز دی، او يو را وتونکې نجاست نه دی(يعني داسې نجاست نه دی چې د انسان له بدن څخه را ووځي)، او په آواز سره د اودس ماتېدل له عقل څخه لوره خبره ده، هم په دې وجه د ائمه ثلاثه وو په نېز قهقهه اودس نه ماتوي.

**دليل:** د ائمه ثلاثه وو دليل دا دی چې په قهقهه کې خو نه يو نجاست راوځي او نه د جنازې په لمانځه او سجدهٔ تلاوت او نورو کې په دې سره اودس ماتيږي، نو ځکه موږ وايو چې په دې سره اودس نه ماتيږي.

**زموږ دليل:** دا دی چې يو وار نبي ﷺ لمونځ ورکوی، يو اعرابي(صحرايي) چې نظر يې کمزوری وو راغلی او غوځار سو، کوم صحابه چې په لمانځه کې ول، هغوی وخندل، نو نبي ﷺ له لمانځه څخه تر فراغت وروسته وويل: واورئ! چاچې قهقهه خندا کړې وي هغه دې خپل لمونځ او اودس را وګرځوي، دا مشهور حديث دی، او د مشهور حديث په وجه سره به قياس پرېښوول کيږي، ځرنګه چې دا حديث د صلوة کامله يعني د رکوع او سجدې والا لمانځه په باره کې وارد سوی دی، نو ځکه به پر دې اکتفاء کيږي، او بغير له دې څخه به د جنازې په لمانځه کې، په سجدهٔ تلاوت کې او له

لمانځه څخه دباندې په قهقهه خندا سره اودس نه ماتيږي، ځکه چې خلاف القياس حکم خپل له مورد څخه نه متجاوز کيږي.

## له مقعد، ذکر، فرج څخه د چينجي او باد د وتلو حکم

وَالدَّابَّةُ تَخْرُجُ مِنَ الدُّبُرِ نَاقِضَةٌ او د غټو بولو د لارې څخه را وتونکی چينجی هم اودس ماتوي فَإِنْ خَرَجَتْ مِنْ رَأْسِ الْجُرْحِ أَوْ سَقَطَ اللَّحْمُ مِنْهُ او که چينجی د زخم له سر څخه را ووتی يا له زخم څخه غوښه ولوېدله لَا يَنْقُضُ نو اودس نه ماتوي وَالْمُرَادُ بِالدَّابَّةِ الدُّوْدَةُ او له دابه څخه مراد چينجی دی وَهٰذَا لِأَنَّ النَّجَسَ او دا (فرق) په دې وجه دی چې نجاست هغه دی مَا عَلَيْهَا کوم چې پر چينجي باندې وي وَذٰلِكَ قَلِيْلٌ او هغه لږ وي وَهُوَ حَدَثٌ فِي السَّبِيْلَيْنِ دُوْنَ غَيْرِهِمَا او دا (لږ نجاست) په سبيلينو کې حدث دی (او) له دوی څخه علاوه په بل ځای کې حدث نه دی فَأَشْبَهَ الْجُشَاءَ وَالْفُسَاءَ نو (د چينجي راوتل) د اروې (ډېغ) او باد (پسکی) سره مشابه سو بِخِلَافِ الرِّيْحِ الْخَارِجَةِ مِنْ قُبُلِ الْمَرْأَةِ وَذَكَرِ الرَّجُلِ په خلاف د هغه باد کوم چې د ښځې له فرج او د سړي له ذکر څخه را ووځي لِأَنَّهَا لَا تَنْبَعِثُ عَنْ مَحَلِّ النَّجَاسَةِ ځکه چې هغه د نجاست له محل څخه نه را وځي حَتّٰى لَوْ كَانَتِ الْمَرْأَةُ مُفْضَاةً خو که ښځه مفضات وه يُسْتَحَبُّ لَهَا الْوُضُوْءُ نو د هغې لپاره اودس کول مستحب دي لِاحْتِمَالِ خُرُوْجِهَا مِنَ الدُّبُرِ ځکه (دا) احتمال سته چې باد به د هغې له دبر څخه راوتلی وي.

**اللغات:** ﴿دَابَّةٌ﴾ هر هغه ساکښ(جاندار) کوم چې پر ځمکه حرکت کوي، چينجی، ﴿جُرْح﴾ زخم، ﴿دُوْدَةٌ﴾ چينجی، پر ځمکه ښکېدونکی حیوان، ﴿جُشَاء﴾ د معنې هغه هوا چې د خولې له لارې څخه را ووځي، اروې(ډېغ) ﴿فُسَاء﴾ د معنې هغه هوا چې د مقعد له لارې څخه را ووځي، پسکی ﴿تَنْبَعِثُ﴾ د انفعال له باب څخه مضارع ده: را پورته کېدل، ﴿مُفْضَاةٌ﴾ هغه ښځه چې د هغې د غايطو او د متيازو د لارې په مينځ کې پرده ختمه سوې وي.

**تشريح:** د عبارت حاصل دا دی چې هغه چينجی کوم چې د مقعد له لارې څخه را ووځي اودس ماتوي، لکه څرنګه چې د باد او ښکې را وتل اودس ماتوي، او که چينجی له دبر څخه ماسوا د يو بل ځای له زخم څخه را ووځي يا له زخم څخه غوښه را ایله سي نو په دې سره اودس نه ماتيږي، په متن کې له دابه څخه مراد چينجی دی، د دې دواړو صورتونو په مينځ کې د فرق وجه دا ده چې په خپله چينجی نجس نه دی بلکې پر ده چې کوم شی لګېدلی دی هغه نجس دی(يعني غايطه مواد نجس دي) او پر ده لګېدلی نجاست، نجاست قليل دی، او قليل نجاست په سبيلينو کې سبب د حدث دی يعني اودس ماتوي، لېکن په غير سبيلينو کې قليل مقدار اودس نه ماتوي، نو ځکه موږ وويل چې که چينجی د غايطو(غايطه موادو) له لارې څخه را ووځي نو اودس ماتوي او که د يو بل ځای له زخم څخه را ووځي نو اوس نه ماتوي، لهذا دغه د اروې او پسکی په ډول سو، يعني څرنګه چې اروې له غير سبيلينو څخه دی نو ځکه اودس نه ماتوي، او پسکی له دبر څخه را وځي نو ځکه اودس ماتوي، د دې په خلاف هغه باد کوم چې د ښځې له فرج يا د سړي له ذکر څخه راووځي اودس نه ماتوي، ځکه چې دا باد د نجاست له ځای څخه نه راوتلی نه دی، لېکن که يو څوک اعتراض وکړي چې:

**سوال:** نبي ﷺ كل ما يخرج من السبيلين ته ناقض ويلي دي هغه كه ريح وي او كه غير ريح نو له فرج او ذكر څخه را وتونكي باد ته هم بايد ناقض وويل سي؟

**جواب:** د ټولو مجتهدينو اتفاق دى چي په حديث كي له كل ما يخرج څخه كل نجس يخرج مراد دي، او له فرج او ذكر څخه را وتونكى باد نجس نه دى، نو ځكه به هغه ناقض هم نه وي.

حتى لوكانت المرأة الخ او كه يوه ښځه مفضاة وه يعني قُبُل او دُبُر يې دواړه سره يو ځاى سوي وه او د مينځ پرده يې شكېدلې وه، يا يې په فرج (شرمګاه) كي داسي سورى چي د غايطو نالى (لاري) ته تللى، نو كه د داسي ښځي له فرج څخه باد را ووتي نو د هغې لپاره اودس كول مستحب دي، واجب نه دي، ځكه دا امكان سته چي د دې له دُبر څخه دي باد را وتلى وي، او واجب ځكه نه دى چي يقين يې نسته، او داودس په يقيني دليل سره ماتيږي، نه په خالي احتمال سره.

## له تناكي او داني څخه د وينو او زړو اوبو را وتلو مختلفه صورتونه او د هغوى حكمونه

فَإِنْ قُشِرَتْ نَفْطَةٌ كه له دانې (يا تناكي) څخه پوستكى (خور) جلاسو فَسَالَ مِنْهَا مَاءٌ أَوْ صَدِيدٌ أَوْ غَيْرُهُ او له هغې څخه اوبه يا زوي (نو) يا داسي نور را وبهېدل إِنْ سَالَ عَنْ رَأْسِ الْجُرْحِ نو اوس كه هغه د زخم له سر څخه را و بهېدل نَقَضَ نو اودس ماتو سو وَإِنْ لَمْ يَسِلْ او كه (د زخم له سر څخه) نه و را بهېدل لَا يَنْقُضُ نو اودس نه ماتيږي وَقَالَ زُفَرُ رَحِمَهُ اللهُ●: يَنْقُضُ فِي الْوَجْهَيْنِ او امام زفر فرمايي: چي په دواړو صورتونو كي اودس ماتيږي وَقَالَ الشَّافِعِيُّ رَحِمَهُ اللهُ: لَا يَنْقُضُ فِي الْوَجْهَيْنِ او امام شافعي فرمايي: چي په دواړو صورتونو كي اودس نه ماتيږي وَهِيَ مَسْأَلَةُ الْخَارِجِ مِنْ غَيْرِ السَّبِيلَيْنِ او دا د خارج من غير السبيلين مسئله ده وَهٰذِهِ الْجُمْلَةُ نَجِسَةٌ او دا ټوله شيان (زوي او نور) نجس دي لِأَنَّ الدَّمَ يَنْضِجُ فَيَصِيرُ قَيْحًا ځكه چي (اول خرابه) وينه پخه سي نو كچه (اومه) زوي ځني جوړ سي ثُمَّ يَزْدَادُ نَضْجًا بيا (وينه) نوره پخه سي فَيَصِيرُ صَدِيدًا نو زوي (نوونه) ځني جوړ سي ثُمَّ يَصِيرُ مَاءً او بيا (په آخر كي) اوبه ځني جوړي سي هٰذَا او دا لوړ ذكر سوى حكم هغه وخت دى إِذَا قَشَرَهَا فَخَرَجَ بِنَفْسِهِ چي كله سړى له دانې څخه پوستكى (خور) جلا كړي او دا (زوي، وينه او نور) پخپله وبهيږي وَأَمَّا إِذَا عَصَرَهَا فَخَرَجَ بِعَصْرِهِ خو كه سړى دانه نځوړ كړي (يعني كښېښې يې كاږي) او ده په كښېښكاږلو سره (زوي او نور) را ووځي لَا يَنْقُضُ نو اودس نه ماتيږي لِأَنَّهُ مُخْرَجٌ ځكه چي دا را ايستل سوي دي وَلَيْسَ بِخَارِجٍ او په خپله نه دي راوتلي وَاللهُ أَعْلَمُ او الله زيات خبر لرونكى دى.

**اللغات:** ﴿قُشِرَتْ﴾ له نصر او ضرب دواړو بابونو څخه راځي: تراشل، پوستكى لرول (يعني له يو شي څخه پوستكى جلا كول) ﴿نَفْطَةٌ﴾ تناكه، مجازاً هر ډول دانې ته ويل كيږي. ﴿صَدِيدٌ﴾ هغه زوي (ژړي اوبه) چي د وينو ګلون پكښې وي، ﴿قَيْحٌ﴾ هغه زوي (ژړي اوبه) چي د وينو ګلون پكښې نه وي (اول په دانه كي ګنده وينه سره يو ځاى سي او بيا پخه سي نو له دې ګنده وينې څخه كچه زوي جوړ سي چي په هغه كي د وينو هيڅ ګلون نه وي، وروسته دا كچه زوي هم پاخه سي نو اصلي

---

● القول الراجح: قول الجمهور أى لاينقض، كذا فى رد المحتار ج:١، ص:١٠٣. [القول الراجح، ج:١، ص:٨]

زوي ځني جوړ سي او د وينو څه ناڅه ګڼون پکښې وي، وروسته تر دې لا پاخه سي چي آخر نرۍ اوبه ځني جوړي سي. او دا يې آخري حد دی) ﴿يُفْصَلُ﴾ د ضرب د باب مضارع ده: په قدرتي سبب سره د يو شي پخېدل (يعني له لږ او ماسي نورو شيانو څخه بغير د يو شي پخېدل).

**تشريح**: **مسئله**: دا ده كه له دانې څخه پوستكی(خيرن) جلا سو، بيا زوي او ژړي اوبه يا له دې څخه ماسوا نور شيان ځني را ووتل نو په دې كي دوه صورته دي: سيلان(بهېدل) به پكښې راغلی وي يا نه وي، كه سيلان پكښې راغلی وو(يعني زوي بهېدلي وه) نو اودس ماتيږي، او كه سيلان نه وو راغلی نو اودس نه ماتيږي، دا مسلک له امام زفر رَحِمَهُ الله څخه ماسوا د نورو احنافو دی.

او امام زفر رَحِمَهُ الله فرمايي چي په دواړو صورتونو كي اودس ماتيږي كه سيلان راغلی وي او كه نه وي، امام شافعي رَحِمَهُ الله فرمايي چي په دواړو صورتونو كي اودس نه ماتيږي، په حقيقت كي دا مسئله د خارج من غير سبيلين ده، يعني د متيازو او د غايطو له لاري څخه علاوه چي له يو بل ځای څخه يو شی را ووځي، نو دا د امام زفر رَحِمَهُ الله په نېز مطلقاً اودس ماتيږي، كه سيلان راغلی وي او كه نه وي، او د امام شافعي رَحِمَهُ الله په نېز مطلقاً اودس نه ماتيږي، او زمونږ په نېز كه سيلان راغلی وي نو اودس ماتيږي، كنې نه ماتيږي.

وهذه الجملة الخ صاحب د هدايې فرمايي چي دا ټوله يعني له دانې او زخم څخه را وتلي اوبه، پاخه زوي، او كچه زوي ټوله نجس دي، ځكه كله چي خرابه او ګنده وينه پخه سي نو كچه زوي ځني جوړيږي، بيا نوره پخه سي نو پاخه زوي ځيني جوړيږي، بيا په آخر كي دا پاخه زوي ډېر نري سي اوبه وګرځيږي، نو كله چي دا ټوله ناپاكه دي. نو خروج د نجاست پيدا سو، او خروج د نجاست په شرط د سيلان اودس ماتوي، نو ځكه به په دغه صورتونو كي لودس مات وي.

هذا إذا قشرها...الخ د دې حاصل دا دی چي په مخكني صورت كي دا د اودس ماتېدلو حكم په هغه وخت كي صحيح دی چي كله سرې له دانې څخه پوست(خوږ) واړوي او مواد په خپله راووځي، (او د ده په كښېكاږلو سره نه راووځي) او كه مواد په خپله نه راووځي بلكي د ده په كښېكاږلو سره را ووځي نو په دې صورت كي لودس نه ماتيږي ځكه دا په خپله نه دي راوتلي بلكي را ايستل سوي دي، (خو غوره دا ده چي كه په دې صورت كي هم د سيلان اندازې ته ورسيږي، نو اودس به ماتيږي، له مخكني دلائلو څخه همدغه معلوميږي) والله اعلم.

**راجح قول**: په پورتنۍ مسئله كي راجح قول د جمهورو دی، يعني كه له دانې څخه زوي او اوبه نه را وبهيږي. نو لودس نه ماتيږي، كما قال العلامة ابراهيم الحلبي رَحِمَهُ الله وان لم يسل عن رأس الجرح لاينقضه (الحلبي ص:۱۳۱). (القول الراجح ج:۱، ص:۸۱



# فَصْلٌ فِي الْغُسْلِ

## (دا) فصل د غسل (د احکامو په بیان کي) دی

**تشريح:** صاحب د هدایې د غسل بیان د اوداسه تر بیان وروسته ذکر کړی، د دې څلور وجهي دي: ① د غسل په نسبت اودس ته حاجت زیات دی ② د اودس محل (ځای) د بدن جزء دی او د غسل محل د بدن کُل دی او جزء پر کل مخکي وي ③ په قرآن کریم کي هم مخکي د اوداسه او بیا د غسل د احکامو بیان سوی دی ④ په اوداسه کي د حدث اصغر (کوچنۍ بې اودسي) په وجه طهارت حاصلیږي او په غسل کي د حدث اکبر (غټي بې اودسی) په وجه طهارت حاصلیږي، او د اکبر په مقابله کي و اصغر ته اولیّت او وړاندیتوب حاصل دی.

### د غسل فرضونه

وَفَرْضُ الْغُسْلِ او د غسل فرض الْمَضْمَضَةُ وَالْاِسْتِنْشَاقُ خوله او پزه پرېولل دي وَغَسْلُ سَائِرِ الْبَدَنِ او د ټوله بدن پرېولل دي وَعِنْدَ الشَّافِعِيِّ هُمَا سُنَّتَانِ فِيْهِ او د امام شافعي رَحِمَهُ الله په نېز دا دواړه سنت دي په غسل کي لِقَوْلِهِ عليه السلام ● ځکه نبي ﷺ فرمایلي دي عَشْرٌ مِنَ الْفِطْرَةِ لس شیان له فطرت (یعني له سنت) څخه دي وَ ذَكَرَ مِنْهَا الْمَضْمَضَةَ وَ الْاِسْتِنْشَاقَ او له هغو څخه یې مضمضه او استنشاق (هم) ذکر کړل وَلِهٰذَا كَانَا سُنَّتَيْنِ فِي الْوُضُوْءِ همدا وجه ده چي دا دواړه په اودس کي سنت دي وَلَنَا قَوْلُهُ تَعَالىٰ او زموږ دلیل د الله تعالیٰ (دا) قول دی وَإِنْ كُنْتُمْ جُنُبًا فَاطَّهَّرُوْا او که تاسو ناپاکه (جنب) واست نو ښه پاکي کوئ أَمَرَ بِالْاِطِّهَارِ (الله تعالیٰ په دې آیت کي) د اطهار (یعني د پاکی حاصلولو) حکم کړی دی وَهُوَ أَمْرٌ بِتَطْهِيْرِ جَمِيْعِ الْبَدَنِ او اِطهار حکم دی د ټوله بدن د پاکولو إِلَّا أَنَّ مَا تَعَذَّرَ إِيْصَالُ الْمَاءِ إِلَيْهِ مګر هغه ځای چي هغه ته د اوبو رسول ممکن نه وي خَارِجٌ عَنِ النَّصِّ هغه د دې آیت (له حکم) څخه خارج دی بِخِلَافِ الْوُضُوْءِ په خلاف د اوداسه لِأَنَّ الْوَاجِبَ فِيْهِ غَسْلُ الْوَجْهِ ځکه چي په اوداسه کي واجب د مخ پرېولل دي وَالْمُوَاجَهَةُ فِيْهِمَا مُنْعَدِمَةٌ او په دې دواړو (مضمضه او استنشاق) کي مواجهت (مخامخ والی) نسته وَالْمُرَادُ بِمَا رُوِيَ او مراد له هغه څخه چي (امام شافعي) یې روایت کړی دی حَالَةُ الْحَدَثِ د بې اودسی حالت دی بِدَلِيْلِ قَوْلِهِ عليه السلام ● د نبي ﷺ (د دې) قول په دلیل سره إِنَّهُمَا فَرْضَانِ فِي الْجَنَابَةِ (چي) دا دواړه په جنابت کي فرض دي سُنَّتَانِ فِي الْوُضُوْءِ (او) په اوداسه کي سنت دي.

---

● تخريج: أخرجه أصحاب الصحاح إلا البخاري، مسلم في الطهارات حديث رقم:٥٦، ابو داؤد في كتاب الطهارة باب رقم:٢٩، ترمذي في الأدب باب رقم:١٤، نسائي في الزينة باب رقم:١ وابن ماجه في الطهارة باب رقم:٨ و ايضاً الامام احمد في المسند.

● تخريج: أخرجه دارقطني في باب المضمضة والاستنشاق باب رقم:٤٢، حديث رقم:٢٠٣ لا بلفظه ولكن بمعناه.

**اللغات**: ﴿سائر﴾ ټوله، تمام. ﴿إطهار﴾ د افتعال له باب څخه اسم مصدر دی په اصل کې إطتهار وو، د صرفي قوانينو په وجه سره إطهار سو معنیٰ يې ده: په پرېولو کې مبالغه کول، يو شی په بشپړه توګه پرېولل. ﴿إيصال﴾ د افعال له باب څخه اسم مصدر دی: رسوول. ﴿المنعدمة﴾ د انفعال له باب څخه مؤنث اسم فاعل دی: نه ختمېدل، نه پيدا کېدل، د وجود ضد.

**تشريح**: صاحب د هدايې د اوداسه تر بيان وروسته د غسل بيان او تفصيلات وړاندي کوي نو وايي چي د احنافو په نيز (په غسل کي) درې شيان فرض دي: ① خوله پرېولل ② پزه پرېولل ③ ټوله بدن پرېولل.

امام مالک او امام شافعي رَحِمَهُمَا الله فرمايي چي خوله پرېولل سنت (مسنون) دي لکه څرنګه چي په اوداسه کي سنت دي.

**دليل**: د امام مالک او امام شافعي رَحِمَهُمَا الله دليل دا دی چي نبي ﷺ فرمايلي دي: لس شيان له فطرت څخه دي يعني سنت دي، بعضو ويلي دي چي په دې لسو شيانو کي د پنځو تعلق د سر (رأس) سره دی او د پنځو تعلق د بدن سره دی. نو د کومو شيانو تعلق چي د سر سره دی هغه دا دي:

① د سر په مينځ کي لار ايستل، ② مسواک وهل، ③ خوله پرېولل، ④ پزه پرېولل، ⑤ برېتونه غچي کول (کوچني کول).

او د کومو شيانو تعلق چي د بدن سره دی هغه دا دي:

① ختنه (سنتونه)، ② تر نامه لاندي وربښتيان خريل، ③ د بغل وربښتيان کښل، ④ نوکان پرېکول، ⑤ په اوبو سره استنجاء کول.

له دې حديث څخه معلومه سوه چي خوله او پزه پرېولل سنت دي.

**عقلي دليل**: د امام شافعي او امام مالک عقلي دليل دا دی چي دوی د غسل د مضمضې او استنشاق قياس د اوداسه پر مضمضې او استنشاق باندي کوي، يعني څرنګه چي په اوداسه کي خوله او پزه پرېولل سنت دي، همدغه رنګه به په غسل کي هم سنت وي.

**زموږ دليل**: دا دی چي الله تعالیٰ فرمايلي دي: که تاسو د جنابت په حالت کي ياست نو ښه پاکي حاصله کړئ. يعني الله رب العزت مکلفينو ته على سبيل المبالغه (د مبالغې په توګه) د ټوله بدن د پرېوللو حکم کړی دی. ځکه چي فرمايلي يې دي: فَاطَّهَّرُوا، او د مبالغې په توګه تطهير د ټوله بدن پرېوللو ته ويل کيږي، خو که يو ځای ته اوبه رسول ناممکنه وي نو هغه له دې حکم څخه خارج دي لکه د سترګو دننه حصه، او چيري چي د اوبو په رسولو کي تکليف او سختي نه وي هغه تر دې حکم لاندي راځي، نو څرنګه چي پزي او خولې ته دننه اوبه سول آسانه دي او هيڅ حرج پکښي نسته نو ځکه به د دواړو پرېولل د کتابُ الله په حکم سره فرض وي.

بخلاف الوضوء الخ له دې ځای څخه د امام شافعي رَحِمَهُ الله جواب ورکوي، چي غسل پر اوداسه قياسول صحيح نه دي. ځکه چي په اوداسه کي د مخ (وجه) پرېولل په دې آيت کي په وجوهکم سره فرض سوي دي، او وجه له مواجهت څخه مشتق ده، او مواجهت يعني مخامخوالي خو په مخ کي سته او په مضمضه او استنشاق (يعني د خولې او پزي په پرېوللو) کي مواجهت نسته (ځکه چي هر ليدونکي انسان ته د بل انسان مخ په نظر راځي، خو د خولې او پزي دننه حصه يې په نظر نه ورځي) نو کله چي په مضمضه او استنشاق کي مواجهت سته نه، نو دا به د مواجهت والا پر صورت قياسول څرنګه صحيح وي؟

والمراد بما روی الخ او د امام شافعي رَحِمَهُ الله ذکر سوی حديث به پر اودسه حمل کيږي، ځکه چي له ابن عباس او جابر رضي الله عنهم څخه روايت سوی دی چي مضمضه او استنشاق د جنابت په غسل کي فرض دي او په اودس کي سنت دي.

## د غسل سنت طريقه

وَسُنَّتُهُ أَنْ يَبْدَأَ الْمُغْتَسِلُ او د غسل (سنت) طريقه دا ده چي (کله) غسل کونکی (غسل) شروع کړي فَيَغْسِلَ يَدَيْهِ وَفَرْجَهُ نو خپل دواړه لاسونه او شرمګاه (فرج) دي پرېولي وَيُزِيْلُ نَجَاسَةً إِنْ كَانَتْ عَلَى بَدَنِهِ او نجاست دي ليري کړي که د هغه پر بدن نجاست وو ثُمَّ يَتَوَضَّأُ وُضُوْءَهُ لِلصَّلَاةِ بيا دي د لمانځه د اودس په څېر اودس وکړي إِلَّا رِجْلَيْهِ خو پښې (دي نه پرېولي) ثُمَّ يُفِيْضُ الْمَاءَ عَلَى رَأْسِهِ وَسَائِرِ جَسَدِهِ ثَلَاثًا بيا دي پر خپل سر او ټوله بدن درې واره اوبه واچوي ثُمَّ يَتَنَحّٰى عَنْ ذٰلِكَ الْمَكَانِ بيا دي له هغه ځای څخه ليري سي فَيَغْسِلُ رِجْلَيْهِ نو خپلي پښې دي پرېولي هٰكَذَا حَكَتْ مَيْمُوْنَةُ رَضِيَ اللهُ عَنْهَا همدغه ډول رانقل کړی دی حضرت ميمونې رَضِيَ اللهُ عَنْهَا اِغْتِسَالَ● رَسُوْلِ اللهِ (ص) د نبي ﷺ غسل وَإِنَّمَا يُؤَخِّرُ غَسْلَ رِجْلَيْهِ او د دواړو پښو پرېولل به په دې وجه وروسته کوي لِأَنَّهُمَا فِيْ مُسْتَنْقَعِ الْمَاءِ الْمُسْتَعْمَلِ ځکه چي دواړه پښې د مستعملو اوبو د جمع کېدلو په ځای کي وي فَلَا يُفِيْدُ الْغَسْلُ نو (د نه وروسته کولو په صورت کي) د هغو پرېولل هيڅ فايده نه کوي حَتّٰى لَوْ كَانَ عَلَى لَوْحٍ (همدغه وجه ده) که (غسل کوونکی) پر يوه تخته (ولاړ) وو لَا يُؤَخِّرُ نو (د پښو پرېولل به) نه وروسته کوي وَإِنَّمَا يَبْدَأُ بِإِزَالَةِ النَّجَاسَةِ الْحَقِيْقِيَّةِ او د حقيقي مرداري په ليري کولو به ځکه شروع کوي کي لَا تَزْدَادُ بِإِصَابَةِ الْمَاءِ چي د اوبو د رسېدلو په وجه نجاست نور زيات نه سي (يعني ونه خورېږي).

**اللغات**: ﴿يُفِيْضُ﴾ د افعال له باب څخه مضارع ده: أفاض يُفِيْضُ إفاضةً: بيول (بهول)، ﴿يَتَنَحّٰى﴾ د تفعّل له باب څخه مضارع ده: ليري کېدل، ايسته کېدل، ﴿مُسْتَنْقَعْ﴾ د اوبو د ربدلو ځای، د اوبو د راټولېدلو ځای، هغه تالاب چي په هغه کي زياتره اوبه ولاړي وي.

**تشريح**: صاحب د هدايې رَحِمَهُ الله په دې عبارت کي د غسل سنت طريقه بيان کړې ده، يعني دا طريقه له نبي کريم ﷺ څخه رانقل سوې ده، فرمايي: په غسل کي سنت طريقه دا ده (۱) چي له ټولو څخه مخکي دي دواړه لاسونه تر مړوندو پوري پرېولي ځکه همدغه دواړه د پاکولو آلې دي، (۲) او بيا دي په اوبو سره شرمګاه پرېولي، ځکه چي شرمګاه د نجاست محل دی، نو دا احتمال سته چي نجاست دي پر لګېدلی وي، (۳) او که پر بدن باندي نجاست حقيقيه لګېدلی وي، هغه دي هم ليري کړي چي د اوبو په بهولو سره هغه نشر نه سي او نور زيات نه سي، (۴) بيا دي داسي اودس وکړي لکه څرنګه چي د لمانځه لپاره اودس کوي خو پښې دي نه پرېولي (۵) بيا دي پر سر درې واره اوبه وبهوي (۶) او درې واره دي پر ټوله بدن باندي اوبه تيري کړي (۷) بيا دي له دې ځای څخه ليري سي (۸) او دواړه پښې دي پرېولي (دغه اته کارونه په همدغه ترتيب سره سنت دي).

---

● تخريج: أخرجه أصحاب الصحاح، البخاري في الغسل باب رقم:۸، حديث رقم:۲۵۸، ومسلم في الحيض حديث رقم:۳۸۳۷، وابو داؤد في الطهارة باب رقم:۹۷، حديث رقم:۲۴۵.

**د اوبو په بهولو کې دري قولونه:** ① شمس الائمه حلواني رَحِمَهُ الله ويلي دي چې اول دې پر راسته وږه او بيا دې پر چپه وږه باندې اوبه واچوي او بيا دې پر ټوله بدن درې واره اوبه تيرې کړي. ② او بعضو ويلي دي چې له سر څخه دې شروع وکړي، د قدوري له عبارت څخه همدغه معلوميږي. ③ او بعضو ويلي دي چې له راسته اوږې څخه دې شروع وکړي بيا دې پر سر او بيا دې پر چپه اوږه اوبه واچوي.

**د نبي ﷺ د غسل طريقه:** صاحب د هدايې فرمايي چې حضرت ميمونې رَضِيَ اللهُ عَنْهَا د نبي ﷺ غسل همداسې بيان کړی دی، د فتح القدير مصنف شيخ ابن الهمام پوره حديث داسې ذکر کړی دی:

روى الجماعة عنها قالت: وضعت النبي ﷺ ماء يغتسل به فافرغ على يديه فغسلهما مرتين او ثلثا ثم افرغ بيمينه على شماله فغسل مذاكيره ثم دلك يده بالارض ثم تمضمض واستنشق ثم غسل وجهه ويديه ثم غسل رأسه ثلاثا ثم افرغ على جسده ثم تنحى عن مقامه فغسل قدميه.

(له حضرت ميمونې رَضِيَ اللهُ عَنْهَا څخه يو جماعت روايت کړی دی چې حضرت ميمونه رَضِيَ اللهُ عَنْهَا فرمايي: ما د نبي ﷺ لپاره د غسل اوبه کېښودلې، نو (اول ځل) نبي ﷺ پر خپلو دواړو لاسو اوبه واچولې، دوه يا درې واره يې خپل لاسونه پرېولل، بيا دوی ﷺ په خپل راسته لاس سره پر چپه لاس اوبه واچولې بيا يې خپله شرمګاه پرېوله بيا يې خپل لاس پر مځکه ومږی، بيا يې خوله او پزه پرېولل، بيا يې مخ او لاسونه پرېولل بيا يې درې واره خپل سر پرېولی بيا يې پر ټوله بدن اوبه تيرې کړې بيا له دې ځای څخه لېرې سو خپلې پښې يې پرېولې.

وإنما يؤخر الخ صاحب د هدايې فرمايي چې (په پرېوللو کې به) پښې ځکه وروسته کيږي چې هغه د ماء مستعمل د جمع کېدلو په ځای کې وي، نو که يو څوک پر لوړ ځای يا پر تخته يا ډبره يا نورو باندې ودريږي نو د پښو وروسته کولو هيڅ ضرورت نسته.

**په غسل کې د ښځې د کوڅې (کوسې) د خلاصولو حکم (او د ږيرې د پرېوللو حکم)**

| وَلَيْسَ عَلَى الْمَرْأَةِ أَنْ تَنْقُضَ ضَفَائِرَهَا فِي الْغُسْلِ او پر ښځې په غسل کې خپلې کوڅې خلاصول واجب نه دي إِذَا بَلَغَ الْمَاءُ أُصُولَ الشَّعْرِ (په دې شرط) چې اوبه د ورېښتيانو وبېخو ته ورسيږي لِقَوْلِهِ ﷺ لِأُمِّ سَلَمَةَ رَضِيَ اللهُ عَنْهَا ځکه نبي ﷺ حضرت أم سلمی رَضِيَ اللهُ عَنْهَا ته وفرمايل يَكْفِيكِ إِذَا بَلَغَ الْمَاءُ أُصُولَ شَعْرِكِ ستا لپاره (دا) کافي دي چې اوبه ستا د ورېښتيانو وبېخو ته ورسيږي وَلَيْسَ عَلَيْهَا بَلُّ ذَوَائِبِهَا او پر ښځې د خپلو زلفو (څنو) لندول هم واجب نه دي هُوَ الصَّحِيحُ همدا صحيح ده لِمَا فِيهِ مِنَ الْحَرَجِ ځکه چې په دې کې تکليف دی بِخِلَافِ اللِّحْيَةِ په خلاف د ږيرې لِأَنَّهُ لَا حَرَجَ فِي إِيصَالِ الْمَاءِ إِلَى أَثْنَائِهَا ځکه چې د ږيرې مينځ ته په اوبو رسولو کې هيڅ تکليف نسته. |
|---|

**اللغات:** ﴿تنقض﴾ د نصر له باب څخه مضارع ده: نَقَضَ يَنْقُضُ: ماتول، د اوبدل سوي (وودل سوي) رسۍ ول خلاصول.
﴿ضفائر﴾ جمع د ضفيرة او ضفار ده: کوڅې، چوټي، او د ضفيرة معنیٰ ده: د ښځې د اوبدل سوو ورېښتيانو يو ول.

---

● تخريج: أخرجه مسلم بهذا اللفظ حديث رقم: ۳۳۰، باب في الحيض، و ابو داؤد في كتاب الطهارة باب رقم: ۹۹، حديث رقم: ۲۵۱، وترمذي في الطهارة باب رقم: ۷۷، حديث رقم: ۱۰۳.

﴿أُصُوْل﴾ جمع د أصْل ده: بنیاد او بیخ، ﴿بَلّ﴾ د نصر له باب څخه مصدر دی: لندول، خیشتول، ﴿ذَوَائِب﴾ د وربښتیانو ول، زلفي (څنې)، له بیخ څخه لیري وربښتیان، ﴿أَثْنَاء﴾ مینځ، دوران.

**تشریح: مسئله**: دا ده چي که د ښځي د سر د وربښتیانو و بیخ ته اوبه ورسیږي نو پر دې باندي دا واجب نه دي چي خپلي کوڅي یعني وودل سوي وربښتیان خلاص کړي، دلیل یې په صحیح مسلم او نورو کي د أم سلمه رضي الله عنها حدیث دی: قلت یا رسول الله إني أمرأة أشدّ ضفر رأسي أفأنقضه في غسل الجنابة فقال لا إنما یکفیك أن تحثي علی رأسك ثلاث حثیات ثم تفیضین علیك الماء فتطهرین. (فتح القدیر)

(أم سلمه رضي الله عنها وویل یا رسول الله! زه یو داسي ښځه یم چي خپل وودل سوي وربښتیان ټینګ ترم. نو آیا د جنابت په غسل کي دا خلاصوم. نبي ﷺ وفرمایل: چي نه! بلکي ستا لپاره دغه کافي ده چي پر خپل سر درې لپې اوبه واچوې بیا پر خپل بدن باندي اوبه وبیوې (وبهوې) نو ته به پاکه سې). له دې حدیث څخه معلومه سوه چي پر ښځي باندي د وربښتیانو لندول واجب نه دي.

ولیس علیها...الخ صاحب د هدایې فرمایي: څرنګه چي پر ښځه باندي د وودل سوو وربښتیانو خلاصول ضروري نه دي، همدغه ډول پر دې باندي د څنو (زلفو) لندول هم واجب نه دي، همدغه صحیح ده. دلیل یې دا دی چي د ښځي په حق کي د زلفو (څنو) لندول تکلیف دی، د دې په خلاف ږیره چي د ږیري ومینځ ته اوبه رسول اسانه دي او هیڅ تکلیف پکښي نسته، نو ځکه د ږیري ومینځ ته اوبه رسول واجب دي، همدغه ډول که د ښځي وربښتیان خلاص وه، نو د هغو مینځ ته هم اوبه رسول واجب دي، ځکه چي اوس په دې کي هیڅ حرج او تکلیف نسته.

## د غسل واجبوونکي اسباب

قال (القدوري): وَالْمَعَانِي الْمُوْجِبَةُ لِلْغُسْلِ امام قدوري فرمایي: او هغه اسباب کوم چي غسل واجبوي إِنْزَالُ الْمَنِيِّ عَلٰی وَجْهِ الدَّفْقِ وَالشَّهْوَةِ انزال د مني وو دی په طریقه د ټوپ او شهوت سره مِنَ الرَّجُلِ وَالْمَرْأَةِ د سړي له طرفه وي او که د ښځي حَالَةَ النَّوْمِ وَالْيَقْظَةِ د خوب په حالت کي وي او که د وېښتوب وَعِنْدَ الشَّافِعِيِّ رَحِمَهُ اللهُ خُرُوْجُ الْمَنِيِّ كَيْفَمَا كَانَ يُوْجِبُ الْغُسْلَ او د امام شافعي رَحِمَهُ الله په نېز چي مني هر ډول ووځي غسل واجبوي لِقَوْلِهِ عليه السلام ● ځکه نبي ﷺ فرمایلي دي اَلْمَاءُ مِنَ الْمَاءِ (چي) اوبه له اوبو څخه واجبیږي أَيْ الْغُسْلُ مِنَ الْمَنِيِّ یعني غسل د مني په وجه واجبیږي وَلَنَا أَنَّ الْأَمْرَ بِالتَّطْهِيْرِ يَتَنَاوَلُ الْجُنُبَ لو زموږ دلیل دا دی چي د بدن پاکولو حکم جنب ته شامل دی وَالْجَنَابَةُ فِي اللُّغَةِ خُرُوْجُ الْمَنِيِّ عَلٰی وَجْهِ الشَّهْوَةِ او جنابت په لغت کي وتلو د مني ته وایي په طریقه د شهوت سره يُقَالُ: أَجْنَبَ الرَّجُلُ ویل کیږي أجنب الرجل (هغه وخت) إِذَا قَضٰی شَهْوَتَهُ مِنَ الْمَرْأَةِ کله چي سړی له ښځي څخه

---

● تخریج: اخرجه مسلم في الحیض حدیث رقم: ۸۱، و ابو داؤد في کتاب الطهارة باب رقم: ۸۳

خپل شهوت پوره کړي وَالْحَدِيْثُ مَحْمُوْلٌ عَلٰى خُرُوْجِ الْمَنِيِّ عَنْ شَهْوَةٍ او حديث محمول دی په شهوت سره د مني وو پر وتلو باندي ثُمَّ الْمُعْتَبَرُعِنْدَ● أَبِيْ حَنِيْفَةَ وَمُحَمَّدٍ رَحِمَهُمَا اللهُ تَعَالٰى اِنْفِصَالُه عَنْ مَكَانِهٖ عَلٰى وَجْهِ الشَّهْوَةِ بيا د طرفينو په نيز مني په شهوت سره له خپل محل څخه جلا کېدل معتبر دي وَعِنْدَ أَبِيْ يُوْسُفَ رَحِمَهُ اللهُ ظُهُوْرُهٗ أَيْضًا او د امام ابو يوسف رَحِمَهُ الله په نيز د مني وو ښكاره کېدل (هم معتبر) دي اِعْتِبَارًا لِلْخُرُوْجِ بِالْمُزَايَلَةِ (ځكه امام ابو يوسف رَحِمَهُ الله) خروج (راوتل) پر جلا کېدلو باندي قياسوي إِذَ الْغُسْلُ يَتَعَلَّقُ بِهِمَا ځكه چي غسل د دواړو سره تعلق لري وَلَهُمَا أَنَّهٗ مَتٰى وَجَبَ مِنْ وَجْهٍ او د طرفينو دليل دا دی چي هر كله په يوه وجه سره (غسل) واجب سو فَالْاِحْتِيَاطُ فِي الْاِيْجَابِ نو بيا احتياط (د هغه) په واجبولو كي دی.

**اللغات**: ﴿إنزال﴾ د افعال د باب مصدر دی معنیٰ يې ده: کښته راتلنه، مني راوتل، دا په اصل كي له نُزاله څخه را اخيستل سوی دی چي معنیٰ يې ده: د نارينه اوبه، ﴿الدَّفق﴾ په جوش او فشار سره راوتل، د اوبو او نورو شيانو په زور او فشار سره بهېدل يا ايشېدل، ﴿اليقظة﴾ ويښتوب، بيداري، ﴿المزايلة﴾ د مفاعلې د باب مصدر دی: د دوو شيانو يو تر بله سره جلا کېدل.

**تشريح**: مصنف رَحِمَهُ الله په دې عبارت كي د غسل واجبونكي شيان بيان كړي دي، اول سبب په شهوت او توپ (را غورځېدلو) سره د مني وو وتل دي هغه كه د نارينه له شرمګاه څخه راووځي او كه د ښځي، د خوب په حالت كي وي او كه د ويښوالي، په هر صورت كي غسل واجبيږي، امام شافعي رَحِمَهُ الله او امام مالک رَحِمَهُ الله فرمايي چي مطلقًا د مني وو په راوتلو سره غسل واجبيږي هغه كه په شهوت سره راووځي او كه بغير له شهوته، نو كه د درانه شي او وزن پورته كولو په وخت كي مني را ووځي يا له لوړ ځای څخه د رالوېدلو په وجه مني راووځي يا پر ملا باندي دي د چلاخي يا بل شي د لګېدلو په وجه مني راووځي نو په دې ټولو صورتونو كي زموږ په نيز غسل نه واجبيږي، او د امام مالک رَحِمَهُ الله او امام شافعي رَحِمَهُ الله په نيز واجبيږي.

**دليل**: د امام مالک او امام شافعي دليل د نبي ﷺ دا قول دی: الماء من الماء، (يعني غسل د مني د راوتلو په وجه واجبيږي)، دوی فرمايي چي دا حديث د شهوت له قيد څخه مطلق دی، (يعني دا قيد پكښې نسته چي كه مني په شهوت سره را ووځي نو غسل واجبيږي، كنې نه واجبيږي) نو ځكه به دا حديث د المطلق يجری علی اطلاقه مطابق پر خپل اطلاق پاته وي.

**زموږ دليل**: دا دی چي الله تعالیٰ فرمايي: وَإِنْ كُنْتُمْ جُنُبًا فَاطَّهَّرُوا [سورة المائدة: ٦] په دې آيت كي د تطهير (پاكولو) حكم د جُنُب سړي ته سوی دی، او په لغت كي جنابت وايي په شهوت سره د مني را وتلو ته، او كله چي يو سړی له ښځي څخه خپل شهوت پوره كړي نو عرب وايي: أجنب الرجل، نو معلومه سوه چي په شهوت سره د مني راوتلو ته جنابت وايي، نو ځكه به په شهوت سره د مني وو د انزال په وجه غسل واجبيږي.

---

● القول الراجح: هو قول أبي حنيفه و محمد رحمهماالله كذا في فتح القدير ج:١، ص:٤٥، و رد المحتار ج:١، ص:١١٩. [القول الراجح ج:١، ص:٩]

**د دليل جواب:** د امام مالک او امام شافعي د دليل جواب دا دی چې دا حديث پر خروج المني بالشهوة باندي حمل کيږي، ځکه چې دا حديث د خپلو الفاظو په اعتبار سره عام دی، هغه په دې وجه چې دا حديث متيازو، مذی، ودي، مني بالشهوة او بغير الشهوة ټولو ته شامل دی، او په اتفاق سره په حديث کې ټوله شيان مراد نه دي، ځکه چې د ټولو شيانو په وجه غسل نه واجبيږي، نو څرنګه چې په مني بالشهوة سره بالاتفاق غسل واجبيږي، نو ځکه به حديث هم پر هم دغه حمل کيږي.

**زموږ د مسلک تائيد:** حضرت عائشې رَضِیَ اللهُ عَنْهَا چې کوم تعريف د مني وو کړی دی په هغه سره هم زموږ د مذهب تائيد کيږي، فرمايلي يې دي: المنی خاثر أبيض ثخين ينكسـر منه الذكر يعني مني خټ(ګاټه) او سپين وي چې د هغه په وتلو سره آله د تناسل(ذکر) ماتيږي ( يعني چې مني ووځي نو ذکر مړ سي او را وځړيږي)، او دا خبره ښکاره ده چې انکسار(مړوالی او ځړېدل) تر شهوت وروسته وي، نو معلومه سوه چې بغير له شهوت څخه چې کوم مني راوځي هغه ګر سره داسي مني نه دي چې د هغه په وجه غسل واجب سي.

**د طرفينو او د امام ابو يوسف په مينځ کې اختلاف:** د أحنافو علماء خو پر دې خبره متفق دي چې د غسل واجبېدلو لپاره دا ضروري دي چې مني کله له خپل ځای څخه را جلا سي نو شهوت به ور سره وي، خو کله چې له ذکر څخه راووځي(او ښکاره سي) نو په دې وخت کې به شهوت ور سره وي، که نه؟ په دې باره کې اختلاف دی، د طرفينو په نيز د مني وو د ښکاره کېدلو په وخت کې د شهوت شتون(وجود) ضروري نه دی، او د امام ابو يوسف رَحِمَهُ الله په نيز په دې وخت کې هم د شهوت شتون ضروري دی.

**دليلونه:** د امام ابو يوسف رَحِمَهُ الله دليل قياس دی يعني څرنګه چې له خپل ځای يعني ملا څخه د جلا کېدلو په وخت کې شهوت ضروري دی دغه ډول به له ذکر څخه د وتلو په وخت کې هم شهوت ضروري وي، او د دواړو په مينځ کې جامع خبره دا ده چې د غسل تعلق د دواړه سره دی.

د طرفينو دليل دا دی چې کله له (ملا څخه د) جلا کېدلو په وخت کې چې شهوت وي، نو د دې تقاضا دا ده چې غسل دي واجب وي او کله چې له (ذکر څخه د) را وتلو په وخت کې شهوت نه وي، نو د دې تقاضا دا ده چې غسل دي واجب نه وي، نو په دې صورت کې د غسل دواجب کېدلو او نه واجب کېدلو دواړه احتماله سته، خو موږ دلته پر احتياط عمل کوو، او غسل واجبوو.

**ثمره د اختلاف:** دا ده چې مثلاً يو سړي موټ ووهی او خپل ذکر(د تناسل آله) يې ونيول، بيا چې کله شهوت ختم سو، نو ذکر يې ايله کړی او مني بغير له شهوته را ووتل نو په دې صورت کې د طرفينو په نيز غسل واجبيږي، او د امام ابو يوسف رَحِمَهُ الله په نيز غسل نه واجبيږي.

**راجح قول:** په دې مسئله کې راجح قول د طرفينو دی، علامه ابن عابدين رَحِمَهُ الله فرمايي چې: زياتره کتابونه د امام ابو يوسف رَحِمَهُ الله په خلاف دي حتی بحرا الرائق او نهر هم، هغو ويلي دي چې د امام ابو يوسف رَحِمَهُ الله قول قياس دی او د طرفينو قول استحسان دی او په استحسان کې ډېر احتياط سته. (رد المحتار ص:۱۱۹) او وګورئ: (القوال الراجح ج:۱، ص:۹۰)

### د ودي او مذي حکم

دلته درې الفاظ د يادوني وړ دي: (۱) مني، (۲) مذي، (۳) ودي، د اول په وجه غسل واجبيږي، د دويم او دريم په وجه اودس واجبيږي، د دوی په مينځ کې فرق عبد الرزاق په خپل کتاب کې له قتاده او عکرمه څخه روايت کړی دی فرمايي

چې مني هغه را څوروځېدونکي وابه دي چې په هغه کې شهوت وي او بچی ځيني پيدا کيږي، او مذي هغه اوبه دي کوم چې د خپلې ښځې سره د بازۍ په وخت کې را وځي، او ودي هغه اوبه دي چې د متيازو په وخت کې او له متيازو څخه وروسته را وځي. (عيني)

## التقاء د ختانينو غسل واجبوي که نه؟

وَالْتِقَاءُ الْخِتَانَيْنِ مِنْ غَيْرِ إِنْزَالٍ او د ښځې او سړي شرمګاوي (ختانين) په خپل مينځ کې سره مونښتل (جنګېدل هم غسل واجبوي) لِقَوْلِهِ الطَّيِّلَا ځکه نبي ﷺ فرمايلي دي إِذَا الْتَقَى الْخِتَانَانِ وَ غَابَتِ الْحَشْفَةُ چې کله دواړه ختانين سره يو ځای سي (ومنبلي) او حشفه پټه سي وَجَبَ الْغُسْلُ نو غسل واجب سو أَنْزَلَ أَوْ لَمْ يُنْزِلْ که انزال سوی وي، که نه وي وَلِأَنَّهُ سَبَبُ الْإِنْزَالِ او په دې وجه (هم) چې التقاء د ختانينو سبب د انزال دی وَ نَفْسُه يَتَغَيَّبُ عَنْ بَصَرِهِ او په خپله انزال د انسان له نظر څخه پټ وي وَ قَدْ يَخْفٰى عَلَيْهِ لِقِلَّتِهِ (بلکي) کله کله انزال هم د مني وو د کمښت په وجه پټ وي فَيُقَامُ مَقَامَهُ نو التقاء د ختانينو د انزال قائم مقام سو وَكَذَا الْإِيلَاجُ فِي الدُّبُرِ او همدارنګه (غسل واجبيږي) په دُبر کې په داخلولو سره لِكَمَالِ السَّبَبِيَّةِ ځکه چې سبب کامل دی وَيَجِبُ عَلَى الْمَفْعُوْلِ بِهِ احْتِيَاطًا او احتياطًا پر مفعول هم (غسل) واجب دی بِخِلَافِ الْبَهِيْمَةِ وَ مَا دُوْنَ الْفَرْجِ په خلاف د حيوان (څاروي) او له فرج څخه علاوه په بل ځای کې (په حشفه پټېدلو سره) لِأَنَّ السَّبَبِيَّةَ نَاقِصَةٌ ځکه چې (په دې شيانو کې) سبب ناقص دی.

**اللغات:** ﴿خِتَان﴾ د ختنه کولو (سنتولو) ځای، او مجازاً فرج څني مراد ده (هغه که د ښځې وي او که د نر). ﴿حَشْفَة﴾ د نارينه د ذکر سر کوم چې تر سنتولو وروسته ښکاره کيږي، ﴿إِيلَاج﴾ د باب افعال مصدر دی: داخلول، اچول. ﴿دُبُر﴾ د غايطه موادو ځای، د مقعد سوری، ﴿بَهِيْمَة﴾ څاروي، له درنده ګانو څخه ماسوا نور حيوانان. ﴿فَرْج﴾ د ښځې عورت يعني شرمګاه (شرم ځای).

**تشريح:** د مسئلې تر صورت مخکې په دې خبره پوه سئ چې ختان هغه ځای ته ويل کيږي کوم چې د ختنه کولو (سنتولو) په وخت کې پرېکول کيږي، څرنګه چې به عربو د نارينه وو په ډول ښځې هم سنتولې، نو ځکه لوس صرف يو لفظ (ختان) د دواړو يعني د نر او ښځې د سنتېدلو ځای ته ويل کيږي، او حشفه د ذکر سر ته ويل کيږي کوم چې تر سنتېدلو وروسته ښکاره کيږي، ابن الهمام ويلي دي چې ختنه (سنتول) د نارينه لپاره سنت دي او د ښځې لپاره مکرمت (يعني ښه کار) دی، ځکه چې د ختنه سوي ښځې سره په جماع کې زيات خوند وي، ښکاره دي وي چې که يو سړی ختنه کول پرېږدي نو پر دې به مجبوره کيږي، که نه؟، هو! که له ختنه کولو څخه د هلاکت غالب ګومان وو، نو نه به مجبوره کيږي، او که ښځې ختنه نه کول، نو دا به په هيڅ وخت کې نه مجبوره کيږي.

---

● تخريج: أخرجه البخاري في باب الغسل، باب رقم:۲۸، وأخرجه دار قطني حديث رقم:۳۸۶ باب في وجوب الغسل بالتقاء الختانين وإن لم ينزل باب رقم:۴۱، حديث رقم:۳۸۶.

**صورت د مسئلې:** په عبارت کې د بیان سوي مسئلې صورت دا دی چې کله د نارینه او ښځې ختانین یو تر بله سره یو ځای سي (وجنګیږي) او حشفه (د ذکر سر) د عورت په شرمګاه کې پټ سي نو پر دواړو غسل واجبیږي که انزال سوی وي، که نه وي.

**دلیل:** دا حدیث دی: إذا التقى الختانان وغابت الحشفة وجب الغسل أنزل أو لم ينزل. (یعني دواړه ختانین (شرمګاوي) چې کله په خپل مینځ کې سره یو ځای سي او حشفه غائبه سي نو غسل واجبیږي که انزال وسي، او که نه وسي).

ولأنه سبب الخ دویم دلیل یې دا دی چې پر کوم شی حکم مرتب وي که هغه پټ (خفي) وي او د هغه یو سبب ښکاره (ظاهر) وي نو دا ښکاره سبب به د دې خفي أمر قائم مقام وي، او حکم به پر دې سبب باندې مرتب وي. نو دلته التقاء ختانین د انزال سبب دی او په خپله انزال پر کوم چې غسل مرتب کیږي هغه یو خفي شی دی، ځکه چې له سترګو څخه پټ وي او کله نا کله یې د مني د کمښت په وجه احساس هم نه کیږي چې آیا انزال وسو که نه وسو، نو ځکه به التقاء ختانین د انزال قائم مقام وي او غسل به پر التقاء ختانین مرتب کیږي، نه پر انزال.

وكذا الإيلاج الخ او که علاوه له فرج څخه یې په مقعد (یعني د شا په خوا) کې دخول وکړی نو به هم غسل واجب وي ځکه په دې کې هم پوره سببیّت موجود دی (یعني شومره خوند چې په فرج کې دی تقریباً هغومره خونده په دبر کې هم سته)، تر دې چې ډېر فاسقان په دې توګه قضاء شهوت ته ترجیح ورکوي، هم په دې وجه بعضي فقهاؤ ویلي دي چې په لمانځه کې د لغړزنو هلکانو تر څنګ دریدل همدغه رنګه لمونځ فاسدوي، څه رنګه چې د ښځو تر څنګ دریدل لمونځ فاسدوي.

**پر مفعول باندې هم احتیاطا غسل واجب دی:** صاحب د هدایې فرمایي چې احتیاطًا پر مفعول هم غسل واجب دی ځکه دا احتمال هم سته چې مفعول به هم لذت محسوس کړی وي او مني به یې خارج سوي وي، او دا احتمال هم سته چې هغه به لذت محسوس کړی نه وي، مني به یې خارج سوي نه وي، خو څرنګه چې په طهارت کې احتیاط مطلوب دی نو ځکه به پر مفعول غسل واجب وي، د دې په خلاف که یو سړی په حیوان دخول وکړي، یا له سبیلنو څخه علاوه په ورون یا بل ځای کې یې دا حرکت وکړی نو بغیر له انزاله صرف د ادخال په وجه غسل نه واجبیږي ځکه چې په دې صورتو کې سببیت ناقص دی. او سبب په دې وجه ناقص دی چې فطرتِ سلیمه (سالم طبیعت) له دې څخه نفرت کوي.

## د حیض او نفاس حکم

| |
|---|
| **وَالْحَيْضُ** او حیض (هم غسل واجبوي) **لِقَوْلِهِ تَعَالَى** ځکه الله تعالیٰ فرمایلي دي **حَتَّىٰ يَطَّهَّرْنَ** تر دې چې ښځې ښه پاکې سي **بِالتَّشْدِيدِ** (دا صیغه) په تشدید سره (ده) **وَكَذَا النِّفَاسُ بِالْإِجْمَاعِ** او همدارنګه نفاس (غسل واجبوي) د ټولو په نیز. |

**اللغات:** ﴿حَيْض﴾ هغه متعینه ناروغي کوم چې هره میاشت ښځې ته راځي، ﴿نِفَاس﴾ د ماشوم تر زیږیدلو وروسته چې کومه وینه راځي هغه ته نفاس وایي.

**تشریح:** د غسل له واجبونکو شیانو څخه یو شی په خپله حیض دی، او بعضو ویلي دي چې د حیض انقطاع (ختمیدل) د غسل سبب دی، دلیل د الله تعالیٰ دا قول دی: حَتَّىٰ يَطَّهَّرْنَ (د طاء او هاء په شد سره) یعني حیض والا ښځو ته نژدې مه ورځئ تر دې چې هغه ښه پاکې سي، او دا ښه پاکیدل به هغه وخت وي چې کله تر وینو ختمیدلو

ودروسته غسل هم وکړي، لیکن که دا اعتراض وسي چي يطهرن بغير له تشديد څخه خو قرائت متواتره دی (نو په دي قرائت دي عمل وکړی سي)، جواب دا دی چي دوه قرائتونه په منزله د دوو آيتونو دي، نو امام صاحب رَحِمَهُ الله پر دواړو عمل کړی دی هغه دا رنګه چي کله پوره لس ورځي د حيض تيري سي، او وینې بندي سي نو د خاوند لپاره د ښځي سره وطي کول جائز دي که څه هم غسل نه وکړي، په دې صورت کي به د بې له تشديده قرائت دليل وي، ځکه چي کله وينې بندي سي نو ښځه پاکه سوه، او کله چي له لسو ورځو څخه په کمه موده کي وينې بندي سي نو د وطي د جائز کېدلو لپاره پر دې غسل واجب دی، نو په دې صورت کي به د تشديد قرائت دليل وي، او همدغه حکم د نفاس دی يعني دا ئمه وو په اجماع سره نفاس هم غسل واجبوي.

## د مسنون(سنت) غسل ځايونه

قال: وَسَنَّ● رَسُوْلُ اللهِ (ص) الْغُسْلَ لِلْجُمُعَةِ وَالْعِيدَيْنِ وَعَرَفَةَ وَالْإِحْرَامِ او رسول الله ﷺ د جمعې، اخترونو، عرفات او احرام لپاره غسل سنت ګرځولی دی صَاحِبُ الْكِتَابِ نَصَّ عَلَى السُّنِّيَّةِ صاحب د کتاب (يعني قدوري) د دې غسلونو د سنتوالي تصريح وکړه (يعني ويې ويل: چي دا غسلونه سنت دي) وَقِيلَ هٰذِهِ الْأَرْبَعَةُ مُسْتَحَبَّةٌ (ليکن) ويل سوي دي: چي دا څلور (سره غسلونه) مستحب دي وَسَمَّى مُحَمَّدٌ رَحِمَهُ اللهُ الْغُسْلَ يَوْمَ الْجُمُعَةِ حَسَنًا فِي الْأَصْلِ او امام محمد رَحِمَهُ الله په (خپل) کتاب "الاصل" کي د جمعې د ورځي غسل ته حسن ويلي دي وَقَالَ مَالِكٌ رَحِمَهُ اللهُ: هُوَ وَاجِبٌ او امام مالک رَحِمَهُ الله فرمايي: چي هغه واجب دی لِقَوْلِهِ عليه السلام ځکه نبي ﷺ فرمايلي دي مَنْ أَتَى● الْجُمُعَةَ فَلْيَغْتَسِلْ کوم سړی چي د جمعې په ورځ راسي نو غسل دي وکړي وَلَنَا قَوْلُه● عَلَيْهِ الصَّلَاةُ وَالسَّلَامُ او زموږ دليل د نبي ﷺ (دا) قول دی مَنْ تَوَضَّأَ يَوْمَ الْجُمُعَةِ چا چي د جمعې په ورځ اودس وکړی فَبِهَا وَنِعْمَتْ نو ډېر ښه وَمَنِ اغْتَسَلَ فَهُوَ أَفْضَلُ او چا چي غسل وکړی نو دا ډېر فضيلت لري وَبِهٰذَا يُحْمَلُ مَا رَوَاهُ عَلَى الْإِسْتِحْبَابِ أَوْ عَلَى النَّسْخِ او د دغه حديث په وجه به د امام مالک روايت سوی حديث پر استحباب يا پر نسخ باندي حمل کيږي ثُمَّ هٰذَا الْغُسْلُ لِلصَّلَاةِ عِنْدَ أَبِيْ يُوْسُفَ رَحِمَهُ اللهُ هُوَ الصَّحِيْحُ بيا دا غسل د امام ابو يوسف په نيز د لمانځه لپاره دی همدا صحيح ده لِزِيَادَةِ فَضِيْلَتِهَا عَلَى الْوَقْتِ ځکه د لمانځه فضيلت پر وخت باندي زيات دی (يعني لمونځ تر وخت زيات فضيلت لري) وَاخْتِصَاصِ الطَّهَارَةِ بِهَا او طهارت (هم) خاص دی د لمانځه سره وَفِيْهِ خِلَافُ الْحَسَنِ او په دې کي د حضرت حسن رَحِمَهُ الله اختلاف دی وَالْعِيدَانِ بِمَنْزِلَةِ الْجُمُعَةِ او دواړه اخترونه د جمعې په درجه کي دي لِأَنَّ فِيْهِمَا الْإِجْتِمَاعُ ځکه چي په دې دواړو کي اجتماع ده (يعني خلک سره جمع کيږي) فَيُسْتَحَبُّ الْإِغْتِسَالُ دَفْعًا لِلتَّأَذِّيْ بِالرَّائِحَةِ نو د بدبويي ليري کولو لپاره به

● تخريج: أخرجه البخاري في كتاب الجمعة باب فضل الجمعة، وابن ماجه في كتاب اقامة باب ما جاء في اغتسال في العيدين حديث رقم:١٣١٦.

● تخريج: أخرجه البخاري في الجمعة حديث رقم:٨٧٧ ــ ٧٩٢، و مسلم في باب الجمعة حديث رقم:١٩٥١؛ وترمذي في باب الجمعة حديث رقم:٤٩٦.

● تخريج: أخرجه ابو داؤد في كتاب الطهارة باب رخصة في ترک الغسل حديث رقم:٣٥٤، وترمذي في باب وضوء يوم الجمعة حديث رقم:٤٩٧

غسل کول مستحب وي وَأَمَّا فِي عَرَفَةَ وَالْإِحْرَامِ پاته سو په عرفه او احرام کي (د غسل مسئله) فَسَنُبَيِّنُهُ فِي الْمَنَاسِكِ إِنْ شَاءَ اللهُ تَعَالَى نو هغه به موږ انشاء الله په "كتاب المناسک" کي بيان کړو.

**اللغات:** ﴿التَّأَذِّي﴾ د تفعّل د باب مصدر دی: تکليف او رنځ زغمل، تکليف محسوسول. ﴿كَالمحكة﴾ بوی (هغه که ښه وي، که بد).

**تشريح:** صاحب د هدايې د واجب غسل تر بيان وروسته په دې عبارت کي د سنت غسل وختونه بيانوي، د ده او د امام قدوري د صراحت مطابق په څلورو وختونو کي غسل کول سنت دي: ① د جمعې په ورځ ② د اخترونو په ورځ ③ د عرفات په ورځ ④ تر احرام ترلو مخکي.

وقيل الخ د بعضي حضراتو په نيز په دې وختونو کي غسل کول مستحب دی لکه څرنګه چي امام محمد رَحِمَهُ الله په خپل كتاب المبسوط کي د جمعې په ورځ غسل مستحسن ګرځولی دی، لېکن د امام مالک رَحِمَهُ الله په نيز د جمعې په ورځ غسل واجب او ضروري دی.

**د امام مالک دليل:** د حضرت ابن عمر رَضِيَ اللهُ عَنْهُمَا حديث دی: من أتى الجمعة فليغتسل او په حديث سره دليل په دې توګه نيسي چي په حديث کي په صيغه د امر (فليغتسل) سره د غسل حکم سوی دی او أمر د وجوب لپاره راځي، نو ځکه به د جمعې په ورځ غسل واجب وي.

**زموږ دليل:** هغه حديث دی کوم چي په کتاب کي ذکر سو يعني: من توضأ يوم الجمعه فبها ونعمت ومن اغتسل فالغسل أفضل، د دې حديث راوي حضرت سمرة بن جندب رضي الله عنه دی، په دې حديث سره موږ په دې توګه دليل نيسي، چي نبي ﷺ د جمعې په ورځ غسل کول أفضل ګرځولي دي، که غسل واجب او ضروري وای نو پر أفضل ويلو به نبي ﷺ اکتفاء نه کولای، بلکي د وجوب او لزوم صراحت به يې خامخا کولای.

**د امام مالک د دليل جواب:** کوم روايت چي امام مالک رَحِمَهُ الله په دليل کي ذکر کړی، فقهاؤ په خپلو تأويلونو له هغه څخه د غسل أفضيلت او سنتوالی ښکاره کړی دی، او داسي تطبيق يې ورکړی دی چي هيڅ تعارض پاته نه سي: اول تطبيق خو دا دی چي په فليغتسل کي چي د أمر کومه صيغه ده، دا د وجوب لپاره نه ده بلکي د استحباب لپاره ده، ځکه أمر به هغه وخت د وجوب لپاره منل کېږي چي کله ذيو شرعي اصول سره د هغه تعارض نه وي او دلته د حديث سره هم د هغه تعارض سته او د عقل سره هم، د حديث تعارض خو تاسو وليدی، عقلي تعارض په دې توګه دی چي که موږ د جمعې په ورځ غسل واجب وګرځوو نو د ډېر ېخ لرونکي سيمو خلک به د پاکوالي سره سره د جمعې له لمانځه څخه محروم پاته سي، په ځانګړي توګه هغه ضعيفه سپين ږيري چي په اوسني وخت کي يې مسجدونه آباد کړي دي د هغو لپاره خو به نوره هم مسئله درنه سي، نو ځکه په فليغتسل کي چي کوم أمر دی هغه خو به د وجوب لپاره ومنل سي، لېکن مصداق او محمل به يې هغه زمانه ومنل سي کوم چي د اسلام د ابتداء او شروع زمانه وه، او د دې خبري موږ هم قائل يو چي د اسلام په ابتداء کي د جمعې او اجتماعاتو پر موقع غسل واجب وو، لېکن وروسته دا حکم منسوخ سو.

او پر دې نسخ باندي ډېر دلائل او شواهد سته، لکه څرنګه چي له حضرت عائشې رَضِيَ اللهُ عَنْهَا او له حضرت ابن عباس رَضِيَ اللهُ عَنْهُمَا څخه روايت سوی دی: أنهما قالا كان الناس عمال أنفسهم وكانوا يلبسون الصوف ويعرقون فيه

والمسجد قريب السقف فكان يتأذى بعضهم برائحة بعض، فأمروا بالاغتسال، ثم انتسخ حين لبسوا غير الصوف وتركوا العمل بأنفسهم (یعني د اسلام په شروع کي به خلکو خپل کارونه په خپله پوره کول، دوړی کالي به يې اغوستل، چي په هغه کي به دوی خولې کولې او د مسجد بام به هم نژدې وو چي د هغه په وجه به يوه او بل ته د خولې (عرق) له بدبويي څخه تکليف وو، نو ځکه دوی ته د غسل لازمي حکم وسو، ليکن کله چي په خلکو کي پراخي پيدا سوه او د دوړی جامې او د کارونو په خپله کول يې پرېښوول نو بيا دا لازمي حکم په استحبابي حکم سره بدل سو او د وجوب حکم منسوخ سو) دغه رنګه يو روايت په ابو داؤد شريف کي له حضرت عکرمه څخه هم را نقل سوی دی.

ثم هذا الغسل...الخ له دې ځايه دا را ښيي چي د جمعې په ورځ د غسل د فضيلت او سنت والي تعلق د لمانځه سره دی که د جمعې د ورځي سره دی؟ په دې باره کي د فقهاؤ اختلاف دی، نو د امام ابو يوسف رَحِمَهُ الله په نېز د جمعې غسل د جمعې د لمانځه په وجه سره مسنون او مستحب دی، او همدا صحيح ده، ځکه دې ورځي ته چي کوم فضيلت او عظمت حاصل دی هغه ټوله د جمعې د لمانځه په وجه سره دی، او بيا غسل هم د طهارت لپاره وي او د طهارت تعلق د لمانځه سره دی نه د ورځي سره.

صاحب د کتاب په هو الصحيح سره د حسن بن زياد رَحِمَهُ الله د قول رد کوي چي هغه وايي د جمعې غسل د جمعې د ورځي په وجه سنت دی، ليکن دا قول اهميت نه لري، ځکه چي د جمعې ورځي ته چي کوم فضيلت او لوړوالی حاصل دی هغه هم د لمانځه په وجه سره دی.

والعيدان بمنزلة الجمعة...الخ د دې عبارت حاصل دا دی چي څرنګه د جمعې په ورځ غسل کول سنت دي همدغه رنګه د کوچني او لوی اختر په ورځ هم غسل سنت دی، او له نبي ﷺ څخه را نقل سوی دی، لکه څرنګه چي په ابن ماجه کي له حضرت ابن عباس رضي الله عنهما څخه دا حديث را نقل سوی دی: كان رسول الله ﷺ يغتسل يوم العيدين، او بيا عقلاً هم دا خبره په ذهن کي راځي چي د غسل د ترغيب چي کوم مقصد په جمعه کي سته (یعني د خلکو د خولو د بدبويي ختمېدل) نو هغه په اخترونو کي هم سته، نو ځکه به په اخترونو کي غسل کول هم سنت وي او د قياس مطابق به هم وي.

## د مذي او ودي تعريف او حکم

قال: وَلَيْسَ فِي الْمَذِيِّ وَالْوَدِيِّ غُسْلٌ فرمايي: او نسته په مذي او ودي کي غسل وَفِيْهِمَا الْوُضُوْءُ (بلکي) په دې دواړو کي اودس سته لِقَوْلِهِ عَلَيْهِ السَّلَام ځکه نبي ﷺ فرمايلي دي كُلُّ فَحْلٍ● يُمْذِيْ هر سړی مذي کوي وَفِيْهِ الْوُضُوْءُ او په مذي کي اودس سته وَالْوَدِيُّ الْغَلِيْظُ مِنَ الْبَوْلِ او ودي هغه سختي (ګاټه) متيازي دي يَتَعَقَّبُ الرَّقِيْقَ چي هغه تر نرمو متيازو وروسته راوځي فَيَكُوْنُ مُعْتَبَرًا بِهِ نو ځکه به دا پر هغه قياسيږي وَالْمَنِيُّ خَاثِرٌ أَبْيَضُ او مني سخت (ګاټه) او سپين دي يَنْكَسِرُ مِنْهُ الذَّكَرُ چي د هغو په را وتولو سره ذکر (آله د تناسل) مړه کيږي (او راځريږي) وَالْمَذِيُّ رَقِيْقٌ يَضْرِبُ إِلَى الْبَيَاضِ او مذي نری او به دي چي سپينوالي ته مائله دي يَخْرُجُ عِنْدَ مُلَاعَبَةِ الرَّجُلِ أَهْلَهُ (او) هغه وخت را وځي چي

---

● تخريج: أخرجه ابو داؤد فی کتاب الطهارة باب فی المذی، حدیث رقم: ۲۱۱.

كله سرى د خپلې ښځې سره لوبې كوي وَالتَّفْسِيْرُ مَأْثُوْرٌ عَنْ عَائِشَةَ رَضِيَ اللهُ عَنْهَا او دا تفسير له حضرت عائشې رَضِيَ اللهُ عَنْهَا څخه را نقل سوى دى.

**اللغات**: ﴿فحل﴾ هر نر ساكښ (جاندار)، ﴿يتعقب﴾ د تفعّل د باب مضارع ده، تعقّب يتعقب: وروسته كېدل، ﴿خاثر﴾ له سمع او فتح او نصر ټولو څخه راځي، اسم فاعل دى: سختېدل (خنډېدل)، ګاټه كېدل، درېدل، له شيدو څخه مستې جوړېدل، ﴿يضرب إلى﴾ د ضرب د باب صله چې كله إلى راسي نو بيا يې معنىٰ راځي: مائله كېدل، كږېدل، مشابه كېدل، ﴿مأثور﴾ د نصر د باب اسم مفعول دى: أَثَرَ يَأْثُرُ: نقل كول، مأثور: منقول، را انقل سوي.

**تشريح**: صاحب د كتاب فرمايي چې د مذي او د ودي د راوتلو په صورت كي غسل نه واجبيږي لېكن اودس واجبيږي، دليل د نبي ﷺ دا قول كل فحل يمذى وفيه الوضوء دى.

**سوال**: دلته يو سوال كيږي هغه دا چې كله په مذي او ودي سره اودس واجبيږي او غسل نه واجبيږي نو دا دواړه په فصل فى الوضوء كي ذكر كول پكار وو، نه په فصل فى الغسل كي.

**جواب**: دا دى چې دا دواړه د مني سره مشابه دي نو ځكه دا دواړه په فصل فى الغسل كي ذكر سول، خو غوره توجيه يې دا ده چې دلته يې د دې دواړه يادونه ځكه وكړه چې امام احمد رَحِمَهُ الله په يو روايت كي د دوى په وتولو سره غسل واجبوي، نو د امام احمد رَحِمَهُ الله د قول د ترديد لپاره يې دلته دواړه ذكره.

**سوال**: دويم سوال دا كيږي چې كله مخكي دا خبره معلومه سوه چې كل ما خرج من السبيلين (يعني چې كوم شى د متيازو او غايطو د لاري څخه وځي) هغه اودس ماتوي نو په هغه كي د مذي او ودي ذكر هم سته (ځكه چې دا له سبيلينو څخه وځي) نو د جلا بيانولو يې څه ضرورت وو؟

**جواب**: دا دى چې دلته د امام مالك رَحِمَهُ الله د قول د ترديد لپاره د دواړو صراحةً ذكر سوى دى، ځكه امام مالك رَحِمَهُ الله د دې دواړو په وتولو سره اودس نه واجبوي.



# بَابُ الْمَاءِ الَّذِيْ يَجُوْزُ بِهِ الْوُضُوْءُ وَمَا لَا يَجُوْزُ بِهِ

(دا) باب د هغو اوبو (په بیان کي) دی چي په هغو سره اودس جائز دی
او د هغو اوبو (په بیان کي) دی چي په هغو سره اودس جائز نه دی

**تشريح:** کله چي مصنف رَحِمَهُ الله د طهارت تینو یعني د اودس او د غسل له بیان څخه فارغ سو نو په دې باب کي هغه شی بیانوي چي په هغه سره طهارت (پاکي) حاصلیږي یعني ماءِ مطلق، له ماءِ مطلق څخه مراد د باران، شلو، څاه ګانو، دریابونو، او د چینو اوبه دي، او دلیل پر دې خبره (چي دا ټولي اوبه پاکوونکي او مُطهِري دي) د الله تعالیٰ دا قول دی: وَأَنْزَلْنَا مِنَ السَّمَاءِ مَاءً طَهُوْرًا، او د نبي ﷺ دا قول دی: الماء طهور لا ینجسه شئ إلا ما غیّر لونه أو طعمه أو ریحه.

## په کومو اوبو سره طهارت (پاکي) حاصلول صحیح دي؟

| |
|---|
| اَلطَّهَارَةُ مِنَ الْأَحْدَاثِ جَائِزَةٌ له بې اودسیو څخه پاکي حاصلول جائز دي بِمَاءِ السَّمَاءِ د آسمان په اوبو سره وَالْأَوْدِيَةِ او د شلو په اوبو سره وَالْعُيُوْنِ او د چینو په اوبو سره وَالْآبَارِ او د څاه ګانو په اوبو سره وَالْبِحَارِ او د دریابو په اوبو سره لِقَوْلِهِ تَعَالَى ځکه الله تعالیٰ فرمایلي دي وَأَنْزَلْنَا مِنَ السَّمَاءِ مَاءً طَهُوْرًا [سورة الفرقان:٤٨] موږ له اسمانه پاکونکي اوبه نازلي کړي دي وَقَوْلُهُ عَلَيْهِ السَّلَامُ● او نبي ﷺ فرمایلي دي وَالْمَاءُ طَهُوْرٌ لَا يُنَجِّسُهُ شَيْءٌ اوبه پاکي دي هیڅ شی یې نه سي ناپاکه کولای إِلَّا مَا غَيَّرَ لَوْنَهُ أَوْ طَعْمَهُ أَوْ رِيْحَهُ لیکن دا چي د اوبو رنګ یا خوند یا بوی ور بدل کړي وَقَوْلُهُ (ص) فِي الْبَحْرِ● (همدارنګه) د دریاب د اوبو په باره کي نبي ﷺ فرمایلي دي هُوَ الطَّهُوْرُ مَاؤُهُ د دریاب اوبه پاکي دي وَالْحِلُّ مَيْتَتُهُ او د دریاب مردار حلال دي وَمُطْلَقُ الْإِسْمِ يُطْلَقُ عَلَى هٰذِهِ الْمِيَاهِ او پر دغه اوبو د ماءِ مطلق اطلاق (هم) کیږي. |

**اللغات:** ﴿أَوْدِيَة﴾ جمع ده واحد یې وادي دی: هغه لار چي دغرونو په مینځ کي وي (چي په عام عرف کي شله [شپله] ورته ویل کیږي)، د باراني یا دریابي اوبو د تېریدلو لار، ﴿عُيُوْن﴾ جمع ده واحد یې عَيْن دی: چینه، ﴿آبَار﴾ جمع ده واحد یې بِئْر دی: څاه، ﴿بِحَار﴾ جمع ده واحد یې بَحْر دی: دریاب (سمندر)، ﴿لَوْن﴾ رنګ، ﴿طَعْم﴾ خوند (مزه)، ﴿رِيْح﴾ بوی، ﴿مِيَاه﴾ جمع ده واحد یې مَاءٌ دی: اوبه.

**تشريح:** أحداث جمع د حدث ده، (حدث بې اودسی ته ویل کیږي هغه که کوچنۍ بې اودسي وي او که غټه بې اودسي وي لکه جنابت، مطلب دا چي) حدث پر دوه قسمه دی: حدث أصغر او حدث أکبر، یا داسي دي وویل سي چي د حدث دوه قسمونه دي: حدثِ غلیظ او حدثِ خفیف، او له أحداثو څخه پاکي حاصلول جائز دي د اسمان په اوبو سره، د شلو په اوبو سره، د چینو په اوبو سره، د څاه ګانو او دریابو په اوبو سره، دلیل د الله تعالیٰ دا قول دی: وَأَنْزَلْنَا مِنَ السَّمَاءِ مَاءً طَهُوْرًا

---

● تخريج: أخرجه ابن ماجه في كتاب الطهارة باب في الحياض، حديث رقم:٥٢١، و دار قطني في كتاب الطهارة، باب الماء المتغير حديث رقم:٤٧.

● تخريج: أخرجه ابو داؤد في الطهارة باب الوضوء بماء البحر، حديث رقم:٨٣، والترمذي في الطهارات، باب في الماء البحر، حديث رقم:٦٩.

(سورة الفرقان:۴۸)، (يعني موږ له اسمان څخه پاکي اوبه را نازلي کړي دي)، او د نبي ﷺ دا قول دی: الماء طهور لاينجسه شئ الا ما غيّر لونه أو طعمه أو ريحه. (يعني اوبه پاکي دي هيڅ شی يې نه سي ناپاکه کولی خو دا چي د دې رنګ يا خوند يا بوی ور بدل کړي).

او اصحاب د سنن اربعه وو لهحضرت ابو هريره رضی الله عنه څخه روايت کړی دی: أن رجلاً سأل رسول الله ﷺ فقال يا رسول الله إنا نركب البحر ونحمل معنا القليل من الماء فإن توضأنا به عطشنا افنتوضأ من البحر. فقال ﷺ هو الطهور ماءه والحل ميتته. (يعني له ابو هريره رضی الله عنه څخه روايت دی چي يو سړي له نبي ﷺ څخه پوښتنه وکړه، اې د الله رسوله! موږ د دريابونو سفر کوو او زموږ سره اوبه لږ وي، نو که موږ په دې اودس وکړو، تږي به پاته سو، آيا موږ د درياب په اوبو اودس کوو؟، نبي ﷺ وفرمايل: د درياب اوبه پاکي دي، او مردا يې حلال دي).

له دې حديث څخه معلومه سوه چي د سمندر او درياب اوبه پاکي دي، د چينو، څاه ګانو او شلو اوبه هم په حقيقت کي د اسمان اوبه دي لکه څرنګه چي ارشاد دی: أَلَمْ تَرَ أَنَّ اللهَ أَنْزَلَ مِنَ السَّمَاءِ مَاءً فَسَلَكَهُ يَنَابِيعَ فِي الْأَرْضِ (سورة الزمر: ۲۱)، (آيا ته نه وينې! چي الله له آسمانه اوبه را نازلي کړي دي، او په مځکه کي يې د چينو په توګه ته ايستلي دي).

صاحب د هدايې چي کوم درې نصوص ذکر کړل، په دې ټولو کې لفظ د طهور سته له دې څخه پخپله د اوبو پاکېدل ثابتيږي، خو دا نه څنې ثابتيږي چي د بل شي لپاره دي هم پاکونکي وي، نو څکه غوره دا ده چي د الله په دې قول وأنزلنا من السماء ماء ليطهركم به سره دليل ونيول سي، يعني موږ له آسمان څخه اوبه را نازلي کړي د دې لپاره چي تاسو پاک کړي، له دې آيت څخه د اوبو مطهر کېدل ثابتيږي، خو صاحب د فتح القدير ليکلي دي چي د شريعت په اصطلاح کي طهور دې ته وايي چي بل شی پاک کړي، نو د طهور د دې تفسير مطابق به د صاحب د هدايې مذکوره نصوص په دليل کي ذکر کول صحيح وي.

## د درختو او مېوو په رس (را ايستل سوو اوبو) سره د اودس حکم

وَلَا يَجُوزُ: فرمايي: او اودس جائز نه دی بِمَا اعْتُصِرَ مِنَ الشَّجَرِ وَالثَّمَرِ په هغو اوبو سره چي هغه له درختي يا مېوې څخه نځوړل سوي وي لِأَنَّهُ لَيْسَ بِمَاءٍ مُطْلَقٍ څکه چي دا ماءِ مطلق (مطلقي اوبه) نه دي وَالْحُكْمُ عِنْدَ فَقْدِهِ مَنْقُولٌ إِلَى التَّيَمُّمِ او د ماءِ مطلق د نشتوالي په صورت کي حکم د تيمّم طرف ته منتقل سوی دی وَالْوَظِيفَةُ فِي هٰذِهِ الْأَعْضَاءِ تَعَبُّدِيَّةٌ او وظيفه په دې اندامونو کي تعبّدي (يعني خلاف القياس) ده فَلَا تَتَعَدّٰى إِلَى غَيْرِ الْمَنْصُوصِ عَلَيْهِ نو د غير منصوص عليه و طرف ته به نه منتقل کيږي وَأَمَّا الْمَاءُ الَّذِي يَقْطُرُ مِنَ الْكَرْمِ پاته سوې هغه اوبه کوم چي د انګورو له درختي څخه را څڅيږي فَيَجُوزُ التَّوَضُّؤُ بِهِ نو په هغه سره اودس کول جائز دي لِأَنَّهُ مَاءٌ خَرَجَ مِنْ غَيْرِ عِلَاجٍ څکه چي دا اوبه بغير له نځوړولو څخه راوتلي دي ذَكَرَهُ فِي جَوَامِعِ أَبِي يُوسُفَ رَحِمَهُ اللهُ دا مسئله يې په جوامع د امام ابو يوسف رَحِمَهُ الله کي ذکر کړې ده وَفِي الْكِتَابِ إِشَارَةٌ إِلَيْهِ او په کتاب (هم) کي د دې و طرف ته اشاره ده حَيْثُ شَرَطَ الْاِعْتِصَارَ نو څکه يې د اعتصار شرط لګولی دی.

**اللغات:** ﴿أُعْتُصِرَ﴾ د افتعال له باب څخه د ماضي مجهولي صيغه ده اعتصر يعتصر: نځوړل، نستېړل، له يو شي څخه اوبه را ايستل، ﴿فُقِدَ﴾ ورکېدل، نيستي کېدل، ﴿وَظِيفَة﴾ لازمي مقدار، هغه اندازه چي د هغې خيال ساتل ضروري وي، ﴿يَقْطُرُ﴾ د نصر د باب مضارع ده، قطر يقطر: څڅېدل، په قطره قطره سره د اوبو را لوېدل، ﴿كَرْم﴾ انګور.

**تشريح: مسئله:** دا ده چي کومي اوبه د درختې يا له يو بلې مېوې څخه را وېستل سي په هغه اودس کول جائز نه دي ځکه دا ماء مطلق نه دي، دليل يې دا دی چي که بالفرض د يو انسان په کور کي د څاه او درياب اوبه هم وي. او له مېوې يا درختې څخه را ايستل سوي اوبه هم وي بيا دغه انسان بل چا ته ووايي چي زموږ له کوره اوبه را وړه، نو د دې سري ذهن به د اولو اوبو و طرف ته منتقل سي نه د دويمو اوبو و طرف ته، نو ثابته سوه چي را ايستل سوي اوبه ماء مطلق نه دي، او د اوبو د نشتوالي په صورت کي حکم د تيمّم و طرف ته منتقل کيږي، لکه څرنګه چي الله تعالیٰ فرمايلي دي: فلم تجدوا ماء فتيمموا صعيدا طيبا، لهٰذا معلومه سوه چي له درختې يا مېوې څخه را ايستل سوي اوبه د اوداسه لپاره مناسب نه دي.

وَالوظيفة في هٰذه الأعضاء الخ له دې عبارت څخه د يوه اعتراض جواب ورکوي، اعتراض دا دی چي نځوړل سوي (را ايستل سوي) اوبه که څه هم ماء مطلق نه دي خو د ماء مطلق په حکم کي دي، ځکه چي د شيخينو په نېز په دې سره د حقيقي نجاست ليري کول صحيح دي، نو کله چي د حقيقي نجاست په ليري کولو کي نځوړل سوي اوبه د ماء مطلق سره لاحق سوي دي نو بيا د حکمي نجاست په ليري کولو کي نځوړل سوي اوبه په طريقه اولی د ماء مطلق سره لاحقول پکار دي.

تر جواب مخکي دا خبره په ذهن کي ونيسئ چي د قياس د صحيح کېدلو شرط دا دی چي د اصل يعني د مقيس عليه حکم د قياس خلاف نه وي نو اوس د جواب حاصل دا دی چي د څلورو اندامونو (اعضاء اربعه) د پاکولو لپاره د ماء مطلق استعمال د قياس خلاف دی، ځکه چي د محدث (بې اودسه سړي) اندامونه حقيقتًا هم پاک دي او حکماً هم، حقيقتًا خو په دې وجه پاک دي چي هيڅ حقيقي نجاست د هغه د اندامونو سره لګېدلی نه دی، او حکماً ځکه پاک دي چي که يو سړی يو بل بې اودسه يا جنب سړی پر اوبو کېنېنوي او لمونځ وکړي نو د هغه لمونځ صحيح دی، حال دا که بې اودسه سړی نجس وای نو د هغه لمونځ به نه صحيح کېدلای، لنډه دا چي د بې اودسه سړي اندامونه پاک دي او د پاک شي پاکول ناممکنه دي ځکه چي دا تحصيل د حاصل دی، او ماء مقيد من کل الوجوه د ماء مطلق په معنیٰ سره هم نه دی، ځکه چي د ماء مطلق د بندولو لپاره تدبيرونه هم نه کيږي، او بې له قيمته (موت) تر لاسه کيږي، او د ماء مقيد د بندولو لپاره تدبيرونه کيږي، او ډېر کم تر لاسه کيږي، حاصل دا چي کله د ماء مطلق استعمال په اندامونو کي د قياس خلاف دی او ماء مقيد من کل الوجوه د ماء مطلق په معنیٰ سره هم نه دي نو په دې وجه ماء مقيد پر ماء مطلق نه سي قياسېدلای، نو ځکه موږ وويل چي د ماء مطلق حکم به د نورو پاکو بهېدونکو شيانو يعني د ماء مقيد و طرف ته نه متعدي کيږي.

او د دې په خلاف حقيقي نجاست دی چي په ماء مطلق سره د هغه ليري کول د قياس مطابق دي نو ځکه به د ماء مقيد يعني د نورو بهېدونکو شيانو قياس هم پر دې صحيح وي، او علتِ مشترکه حقيقي نجاست ليري کول دي.

وأما الماء الَّذِي الخ او هغه اوبه چي هغه په خپله له انګورو څخه را څڅيږي نو په هغو سره اودس جائز دی ځکه چي دا يو داسي اوبه دي کوم چي بغير له يو لاس وهني او نځوړلو څخه را وتلي دي، دا مسئله د امام ابو يوسف رَحِمَهُ الله په جوامع کي (هم) ذکر سوې ده او په قدوري کي هم و دې طرف ته اشاره ده چي که اوبه په خپله له مېوې څخه را څڅېدلي وي، نو په هغو سره اودس کېدلای سي، همدا وجه ده چي په متن کي د اعتصار شرط لګول سوی دی.

## په هغو اوبو سره د اودس حکم چې یو شی په ګډ سوی وي

وَلَا يَجُوزُ بِمَاءٍ غَلَبَ عَلَيْهِ غَيْرُهُ او اودس جائز نه دی په داسې اوبو سره چې بل شي غلبه پر کړې وي فَأَخْرَجَهُ عَنْ طَبْعِ الْمَاءِ او اوبه يې له خپل طبیعت څخه ایستلي وي كَالْأَشْرِبَةِ وَالْخَلِّ لکه شربت او سرکه وَمَاءِ الْبَاقِلَّاءِ وَالْمَرَقِ او د لوبیا اوبه او ښوروا وَمَاءِ الْوَرْدِ وَمَاءِ الزَّرْدَجِ او د ګلاب اوبه او د زردکي اوبه لِأَنَّهُ لَا يُسَمَّى مَاءً مُطْلَقًا ځکه په دې (شیانو) کې یوه ته هم ماء مطلق نه ویل کیږي وَالْمُرَادُ بِمَاءِ الْبَاقِلَّاءِ مَا تَغَيَّرَ بِالطَّبْخِ او د لوبیا له اوبو څخه مراد (هغه اوبه) دي چې په پخېدلو سره بدلې سوې وي فَإِنْ تَغَيَّرَ بِدُونِ الطَّبْخِ لیکن که بغیر له پخېدلو څخه بدلې سوې وې يَجُوزُ التَّوَضُّؤُ بِهِ نو په هغه (اوبو) سره اودس جائز دی.

**اللغات**: ﴿طبع﴾ فطرت، اصلیت، طبیعت، ﴿أشربة﴾ جمع ده واحد يې شَرَابٌ دی: د چیښلو شی لکه شربت او نور، ﴿خل﴾ سرکه، ﴿ورد﴾ ګل ګلاب، ﴿باقلاء﴾ په دې کې درې الفاظ راځي: بَاقِلَّاء، بَاقِلَّى، بَاقِلَى: لوبیا، ﴿مرق﴾ ښوروا، ﴿زردج﴾ زردکه، ﴿طبخ﴾ د فتح د باب مصدر دی: پخول.

**تشریح**: **صورت د مسئلې**: دا دی که په اوبو یو شی ګډ سو یا یو شی په اوبو کې پوخ سو نو په دې اوبو سره د اودس د جواز او عدم جواز په سلسله کې به "غالب" ته کتل کیږي، یعني دا به کتل کیږي چې په اوبو کې د یو شي د ګډېدلو او یا د اوبو تر پخولو وروسته د اوبو څه حالت دی؟، که پر اوبو دویم شی غالب وو، او اوبه یې له خپل طبعي حالت یعنې: له رقت(نرموالی) او سیلان(بهېدلو) څخه ایستلي وې نو په دې صورت کې په دې اوبو سره اودس جائز نه دی، لکه څرنګه چې د ګلاب، لوبیا، زردکي او د داسې نورو شیانو اوبه دي، همدارنګه ښوروا، شربت او سرکه ده، ښکاره خبره ده چې په دا ډول اوبو سره اودس جائز نه دی، ځکه چې نه دوی ته ماء مطلق ویل کیږي او نه پر دوی باندې د اوبو اطلاق کیږي، بلکې تر دې چې د دوی نوم هم بدل دی، (او طبیعت يې هم بدل دی)، همدا وجه ده که یو سړی له یو چا څخه د چیښلو لپاره اوبه وغواړي او هغه سرکه یا ښوروا ورته راوړي، نو یقیناً دا غوښتونکی به دې سړي ته حیران او په غصه سي.

والمراد بماء الباقلاء...الخ فرمايي: چې له ماء باقلاء څخه مراد هغه اوبه دي چې په هغو کې لوبیا، یا یوه بله سابه(سبزي)، یا یو بل شی پوخ سي، او له اوبو څخه یې ښوروا جوړه سي، یعنې په دې شیانو سره اوبه متغیري سي نو په دې سره اودس صحیح نه دی، (ځکه چې دلته د اوبو نوم هم بدل سو او طبیعت یې هم بدل سو) او که دا شیان په اوبو کي واچول سي، او پاخه نه کړل سي، لیکن بیا هم اوبه متغیري کړي نو په دې سره بیا اودس جائز دی، (ځکه چې تر اوسه لا د اوبو طبیعت بدل سوی نه دی).

## د هغه اوبو حکم چې د یو شی په ګډون سره یې یو وصف بدل سوی وي

قَالَ: وَيَجُوزُ الطَّهَارَةُ او پاکي حاصلول جائز دي بِمَاءٍ خَالَطَهُ شَيْءٌ طَاهِرٌ په هغو اوبو چې یو پاک شی په ګډ سوی وي فَغَيَّرَ أَحَدَ أَوْصَافِهِ او د اوبو په صفتونو کې یې یوصفت ور بدل کړی وی كَمَاءِ الْمَدِّ لکه د سیلاب اوبه وَالْمَاءِ الَّذِي اخْتَلَطَ بِهِ اللَّبَنُ أَوِ الزَّعْفَرَانُ أَوِ الصَّابُونُ أَوِ الْأُشْنَانُ او هغه اوبه چې زعفران یا صابون یا اشنان په ګډ سوی وي قَالَ رحمه الله: أُجْرِيَ فِي الْمُخْتَصَرِ مَاءُ الزَّرْدَجِ مَجْرَى الْمَرَقِ صاحب د هدایې فرمایي: چې په مختصرالقدوري کې امام

قدوري رَحِمَهُ الله د زردکي اوبه د بنوروا د اوبو په ډول ګڼلي دي وَالْمَرْوِيُّ عَنْ أَبِي يُوسُفَ رَحِمَهُ الله او له امام ابو يوسف رَحِمَهُ الله څخه را نقل سوي دي أَنَّهُ بِمَنْزِلَةِ مَاءِ الزَّعْفَرَانِ چي د زردکي اوبه د زعفران د اوبو په درجه کي دي وَهُوَ الصَّحِيْحُ همدا صحيح قول دی كَذَا اخْتَارَهُ النَّاطِفِيُّ وَالْإِمَامُ السَّرَخْسِيُّ همدغه قول امام ناطفي او امام سرخسي رَحِمَهُمَا الله غوره کړی دی وَقَالَ الشَّافِعِيُّ رَحِمَهُ اللهُ: لَايَجُوْزُ التَّوَضُّوُ بِمَاءِ الزَّعْفَرَانِ وَ أَشْبَاهِهِ مِمَّا لَيْسَ مِنْ جِنْسِ الْأَرْضِ امام شافعي فرمايي: چي د زعفران او د زعفرانو په ډول د نورو هغو شيانو په اوبو سره چي د مځکي له جنس څخه نه وي، اودس جائز نه دی لِأَنَّهُ مَاءٌ مُقَيَّدٌ ځکه چي دا ماء مقيد (مقيدي اوبه) دي أَلَا تَرَى أَنَّهُ يُقَالُ مَاءُ الزَّعْفَرَانِ آيا ته نه ګوري چي دې ته ماءُ الزعفران (د زعفران اوبه) وايي بِخِلَافِ أَجْزَاءِ الْأَرْضِ په خلاف د مځکي د اجزاوو لِأَنَّ الْمَاءَ لَايَخْلُوعَنْهَا عَادَةً ځکه چي د مځکي له اجزاوو څخه عادةً هيڅ ډول اوبه خالي نه وي وَلَنَا أَنَّ اِسْمَ الْمَاءِ بَاقٍ عَلَى الْإِطْلَاقِ او زموږ دليل دا دی چي د اوبو نوم على الاطلاق پاته دی أَلَا تَرَى أَنَّهُ لَمْ يَتَجَدَّدْ لَهُ اِسْمٌ عَلَى حِدَةٍ آيا ته نه ګوري چي د دې لپاره عليحده يو نوی نوم نسته وَإِضَافَتُهُ إِلَى الزَّعْفَرَانِ كَإِضَافَتِهِ إِلَى الْبِئْرِ وَالْعَيْنِ او د زعفران و طرف ته د اوبو نسبت داسي دی لکه څاه او چينې ته د اوبو نسبت وَلِأَنَّ الْخَلْطَ الْقَلِيْلَ لَا يُعْتَبَرُبِهِ او په دې وجه هم چي د لږ غوندي ګډون هيڅ اعتبار نسته لِعَدَمِ إِمْكَانِ الْإِحْتِرَازِ عَنْهُ ځکه چي له هغه څخه ځان ساتل ناممکنه دي كَمَا فِي أَجْزَاءِ الْأَرْضِ لکه د مځکي په اجزاوو کي فَيُعْتَبَرُ الْغَالِبُ نو د غالب اعتبار به کيږي وَالْغَلَبَةُ بِالْأَجْزَاءِ لَا بِتَغَيُّرِ اللَّوْنِ او د غلبې اعتبار په اجزاوو سره دی د رنګ په بدلېدلو سره نه دی هُوَالصَّحِيْحُ همدا صحيح ده.

**اللغات:** ﴿مَدّ﴾ سيلاب (سېلاو)، ﴿أُشْنَان﴾ د جامو يا د لاس پرېوللو بوټی (زمی)، ﴿خلط﴾ ګډون، د مرکب شي يو جزء.

**تشريح:** حاصل د عبارت دا دی چي که په اوبو يو شی ګډ سو او د اوبو له دريو صفتونو رنګ، خوند، بوی څخه يې يو صفت بدل کړی نو په دې اوبو اودس جائز دی، لکه د سيلاب اوبه يا هغه اوبه چي زعفران يا صابون يا أشنان په ګډ سوی وي، أشنان يو تريو (ترش) بوټی دی چي په تروه مځکه کي را شين کيږي او د صابون په ډول جامې صفا کوي. د امام قدوري رَحِمَهُ الله عبارت و دې طرف ته اشاره کوي چي که د اوبو له صفتونو څخه دوه يا درې سره صفتونه بدل سي نو بيا په هغو سره اودس جائز نه دی، او په نهايه کي يې ليکلي دي چي زموږ استاذان په هغو سره اودس جائز ګڼي، تر دې چي کله به د منّي (خزان) په زمانه کي په حوضونو کي د درختي پاڼي را ولوېدلې، او په دې سره به د اوبو درې سره صفتونه يعني رنګ، خوند، بوی بدل سول، نو هم به دې حضراتو په دغه اوبو سره بغير له څه انکاره اودس کوی، نو معلومه سوه چي د درو سره وو صفتونو د تغيّر (بدلون) په وخت کي هم اودس جائز دی.

په شرح طحاوي کي هم و دې طرف ته اشاره سوې ده خو شرط دا دی چي د اوبو رقّت (نرموالی) به پاته وي، نو که د يو شي په ګډون سره اوبه خنډې (کلکي او ګاټه) سي، نو په داسي اوبو سره اودس د دې حضراتو په نيز هم جائز نه دی، علامه ابن الهمام په فتح القدير کي ليکلي دي چي له فقيه احمد بن ابراهيم الميداني رَحِمَهُ الله څخه د هغه اوبو په باره کي پوښتنه وسوه چي رنګ يې د ډېرو پاڼو په وجه متغير سوی وي، نو ده وفرمايل چي په داسي اوبو سره اودس جائز نه دی

لیکن د دې چینبل او نور شیان په پرېولل جائز دي، ځکه دا پاکي دي، او اودس کول ځکه په جائز نه دي چې کله پر اوبو د پانو رنګ غالب سي نو هغه ماءِ مقیّد سوې، لکه د لوبیا اوبه. او مخکي تېر سوه چې په ماءِ مقید سره اودس کول جائز نه دي.

**سوال:** دلته د مصنف رَحِمَهُ الله پر عبارت يو اعتراض کېږي هغه دا چې مخکي د نبي ﷺ قول إلا ما غيّر طعمه أو لونه أو ريحه تېر سو چې د هغه تقاضا دا ده چې که د اوبو يو وصف هم متغير سي، نو اودس په کول جائز نه دي، حال دا چې امام قدوري رَحِمَهُ الله فرمايي چې جائز دي.

**جواب:** دا دی چې په حديث کي له شي څخه مراد نجس شی دی يعني لا ينجسه شيء نجس. او دا حديث د روانو اوبو (ماء جاري) په باره کي راغلی دی، نو اوس به د حديث مطلب دا سي چې جاري اوبه پاکي دي يو ناپاکه شی دا نه سي مردارولای، خو دا چې د دې رنګ يا خوند يا بوی بدل سي، يعني که نجاست پر ښکاره سي يا د نجاست خوند يا بوی محسوس کړی سي نو بيا د دې اوبو استعمال جائز نه دی ځکه چې دا صفتونه د نجاست پر قيام دلالت کوي (يعني پر دې دلالت کوي چې په دې اوبو کي نجاست سته).

أجرى في المختصر...الخ صاحب د هدايې فرمايي چې امام قدوري رَحِمَهُ الله په مختصر القدوري کي د زردکي اوبه د ښوروا په بول ګرځولي دي يعني په دواړو سره اودس جائز نه دی، او له امام ابو يوسف رَحِمَهُ الله څخه روايت سوی دی چې د زردکي اوبه د زعفران د اوبو په بول دي يعني د يوه صفت د تغيّر په صورت کي په دواړو سره اودس جائز دی، امام ناطفي رَحِمَهُ الله او امام سرخسي رَحِمَهُ الله هم دا روايت اختيار کړی دی.

**د امام شافعي رَحِمَهُ اللهُ مسلک:** امام شافعي رَحِمَهُ الله فرمايي چې زعفران او د زعفران په بول نور شيان کوم چې د مځکي له جنس څخه نه وي، د دوی په اوبو سره اودس جائز نه دی، (يعني که دا شيان په اوبو ګډ سول نو په دغه اوبو اودس جائز نه دی) دليل يې دا دی چې دا ماء مقيّد (مقيّدي اوبه) دي، همدا وجه ده چې دې ته ماء زعفران يعني د زعفران اوبه ويل کيږي او ځرنګه چې اضافت د تقييد سبب دی (يعني د مقيّد کېدلو معنیٰ ورکوي) لکه ماء شجر، ماء ثمر او ماءِ زردج، نو ځکه به ماءِ زعفران هم ماءِ مقيد وي، نه دا چې ماءِ مطلق، او د ماءِ مطلق د نشتوالي په صورت کي د تيمّم حکم سوی دی لکه ځرنګه چې الله تعالیٰ فرمايلي دي: فلم تجدوا ماءً يعني ماءً مطلقا فتيمموا، نو ثابته سوه چې د زعفران او نورو اوبو د شتون په صورت کي هم تيمّم جائز دی، په خلاف د مځکي د اجزاوو (يعني که په اوبو د مځکي اجزاء ګډ سي نو په دې اوبو اودس جائز دی) ځکه چې عادتًا تولي اوبه د مځکني اجزاوو له ګډون څخه خالي نه وي، نو کله چې تولي اوبه له مځکني اجزاوو څخه خالي نه سوې نو معلومه سوه چې د مځکني اجزاوو په ګډون سره په مطلقو اوبو (ماء مطلق) کي فرق نه راځي، لنډه دا چې که په اوبو کي مځکني اجزاء ګډ سول نو بيا به هم دا اوبه ماء مطلق وي، او اودس به په جائز وي، او که د مځکي له اجزاوو څخه علاوه يو بل شی په اوبو ګډ سو، نو هغه به مقيدي اوبه (ماء مقيد) وي او اودس به په جائز نه وي.

**زموږ دليل:** (پر دې خبره چې د زعفران په اوبو سره اودس جائز دي) دا دی چې د (زعفران د ګډېدلو په صورت کي هم د) اوبو نوم على الاطلاق پاته دی، لکه ځرنګه چې د دې لپاره عليحده بل نوی نوم (هم) ايښوول سوی نه دی، بلکي د زعفران اوبه ورته وايي.

ولأن الخلط...الخ (له دې ځای څخه زموږ دریم دلیل بیانوي) دریم دلیل دا دی چي لږغوندي ګډون یو داسي شی دی چي د هغه اعتبار نه کیږي، ځکه چي له دې څخه احتراز (ځان ساتل) امکان نه لري لکه څرنګه چي د مځکي له خاکي اجزاؤ څخه احتراز امکان نه لري، نو به خامخا د غالب اعتبار کیږي، پاته سوه دا خبره چي غلبه څه ډول معتبر ده، د اجزاؤ په اعتبار سره یا د رنګ په اعتبار سره، نو فرمایي چي غلبه د اجزاؤ په اعتبار سره معتبره ده، نه د رنګ په بدلېدلو سره، همدا صحیح ده، (یعني که یو شی د اجزاؤ په اعتبار سره پر اوبو غالب وو، نو په هغه اوبو اودس جائز نه دی، او که د اجزاؤ په اعتبار سره مغلوب وو نو اودس په جائز دی).

## په هغه اوبو سره د اودس حکم چي یو شی پکښي پوخ سوی وي

| |
|---|
| فَإِنْ تَغَيَّرَ بِالطَّبْخِ بَعْدَ مَا خُلِطَ بِهِ غَيْرُهُ او که اوبه د یو بل شي په ګډون د پخولو په وجه بدلي سي (یعني که په اوبو یو شی ګډ کړی سي او پخې سي نو که د پخولو په وجه بدلي سوې) لَا يَجُوزُ التَّوَضُّؤُ بِهِ نو په هغه اوبو اودس جائز نه دی لِأَنَّهُ لَمْ يَبْقَ فِي مَعْنَى الْمُنَزَّلِ مِنَ السَّمَاءِ ځکه چي داسي اوبه له اسمان څخه د را نازله سوو اوبو په معنیٰ پاته نه سوې إِلَّا إِذَا طُبِخَ فِيهِ مَا يُقْصَدُ بِهِ الْمُبَالَغَةُ فِي النَّظَافَةِ خو دا چي کله په دې اوبو کي داسي شی پوخ سي چي په هغه شي سره په نظافت (پاکوالي) کي مبالغه مقصود وي كَالْأُشْنَانِ وَنَحْوِهِ لکه أشنان او د دې په ډول نور شیان (نو بیا په دې اوبو سره اودس جائز دی) لِأَنَّ الْمَيِّتَ قَدْ يُغْسَلُ بِالْمَاءِ الَّذِي أُغْلِيَ بِالسِّدْرِ ځکه چي مړي ته په هغو اوبو غسل ورکول کیږي چي هغو ته د بیرو په پاڼو کي جوش ورکړی سوی وي بِذَٰلِكَ وَرَدَتِ السُّنَّةُ [●] او د دې طریقې مطابق حدیث راغلی دی إِلَّا أَنْ يَغْلِبَ ذَٰلِكَ عَلَى الْمَاءِ فَيَصِيرُ كَالسَّوِيقِ الْمَخْلُوطِ مګر دا چي هغه شی پر اوبو غالب سي او په اوبو کي د ګډو سوو نینو په ډول سي (یعني داسي وګرځي لکه په اوبو چي نینې ګډي سي) لِزَوَالِ اِسْمِ الْمَاءِ عَنْهُ ځکه چي له داسي اوبو څخه د اوبو نوم ختم سو. |

**اللغات:** ﴿نَظَافَة﴾ پاکوالی، صفایي، ﴿أُغْلِيَ﴾ د افعال د باب ماضي مجهول صیغه ده، أَغْلَىٰ يُغْلِي: ایشول، جوش ورکول، ﴿سِدْر﴾ د بېرې درخته، بېره، ﴿سَوِيق﴾ نینې سوي غنم (یعني پر اُور کباب سوي غنم)، د نینې سوو غنمو یا اوربشو اوړه.

**تشریح:** صورت د مسئلې: دا دی که په اوبو کي یو شی ګډ کړی سو او بیا دغه اوبه پر اُور پخې سوې نو په دې اوبو سره اودس جائز نه دی ځکه چي د اودس د جائز کېدلو لپاره ماءمطلق ضروري دي او دا اوبه د ګډون او پخوالي په وجه د ماء مطلق او د باراني اوبو په درجه کي نه دي، نو ځکه به په دې سره اودس هم صحیح نه وي، لېکن که خالي اوبه پخې کړی سي (یعني یو بل شی په ګډ نه کړی سي) او (صرف) د پخولو په وجه متغیري سې نو په دې سره اودس جائز دی، ځکه چي په ژمي کي د ګرمو اوبو ډېر ضرورت وي.

● قال الزيلعي رحمه الله غريب و لم يحسن شيخنا علاء الدين.

خو که په اوبو کې يو داشی پرخ سي چې په هغه سره زياته پاکي حاصلول مقصود وي، لکه أشنان(زمی) او نور، نو په دې اوبو سره اودس جائز دی، ځکه مړي ته په داسې اوبو غسل ورکول کيږي چې په هغو کې د بېرو پاڼو ته جوش ورکول سوی وي، صاحب د هدايې فرمايي په دې باره کې حديث هم سته.

لېکن صاحب د شرح نقايه ليکلي دي چې په حديث خو الله ښه خبر دی مگر په صحيحينو کې د هغه سړي په باره کې (کوم چې له خپلې اوښې څخه را ولوېدی، مغزی يې مات سو او مړ سو) دا راغلي دي: اغسلوا بماء وسدر. يعني دې سړي ته په اوبو او بېري سره غسل ورکړئ، په حديث کې أغلى بالسدر نسته، لکه صاحب د هدايې چې ذکر کړي، لېکن موږ جواب ورکوو: د اوبو او بېري په پاڼو سره غسل ورکول هغه وخت ممکن دي، چې کله دا دواړه سر ګډ سي، او ګډون بغير له پخېدلو څخه نه سي کېدای، نو ځکه فاضل مصنف رَحِمَهُ الله أغلى بالسدر ووايي، او د حديث مراد يې بيان کړی، هو! دومره ضروري دي چې په نظافت او پاکوالي کې د مبالغې لپاره که يو شی په اوبو کې ايشول سوی وي نو هغه به پر اوبو غالب نه وي، خو که هغه غالب وي نو بيا په دې ابو اودس جائز نه دی، لکه په اوبو چې د نينې سوو غنمو اوړه ګډ کړل سي نو په داسي اوبو سره هم اودس جائز نه دی، ځکه چې په دې صورت کې د اوبو نوم هم زائل سي.

## په ولاړو(غير جاري) اوبو کې نجاست لوېدل؟ او په داسې اوبو سره د اودس حکم

وَكُلُّ مَاءٍ وَقَعَتْ فِيهِ النَّجَاسَةُ لَمْ يَجُزِ الْوُضُوءُ بِهِ او هري هغه اوبه چې نجاست پکښې ولوېږي په هغو اوبو اودس جائز نه دی قَلِيلًا كَانَتِ النَّجَاسَةُ أَوْ كَثِيرًا هغه نجاست لږ وي او که زيات وَقَالَ مَالِكٌ رَحِمَهُ اللهُ: يَجُوزُ مَا لَمْ يَتَغَيَّرْ أَحَدُ أَوْصَافِهِ امام مالک رَحِمَهُ الله فرمايي: چې(تر هغه وخته پوري اودس په) جائز دی ترڅو چې د اوبو په صفتونو کې يو صفت بدل سوی نه وي لِمَا رَوَيْنَا د هغه حديث په وجه کوم چې موږ روايت کړی وَقَالَ الشَّافِعِيُّ رَحِمَهُ اللهُ: يَجُوزُ إِذَا كَانَ الْمَاءُ قُلَّتَيْنِ امام شافعي رَحِمَهُ الله فرمايي: که اوبه دوه منکيه(خومه) وي نو (اودس په) جائز دی لِقَوْلِهِ عَلَيْهِ السَّلَامُ● ځکه نبي ﷺ فرمايلي دي إِذَا بَلَغَ الْمَاءُ قُلَّتَيْنِ کله چې اوبه دوو قلتينو ته ورسيږي لَا يَحْمِلُ خُبْثًا نو (بيا) نجاست نه راپورته کوي(يعني نه مراداربري) وَلَنَا● حَدِيثُ الْمُسْتَيْقِظِ مِنْ مَنَامِهِ او زموږ دليل د مستيقظ من منامه حديث دی وَقَوْلُهُ عَلَيْهِ السَّلَامُ:● لَا يَبُولَنَّ أَحَدُكُمْ فِي الْمَاءِ الدَّائِمِ او د نبي ﷺ (دا) قول دی چې په تاسو کې دې څوک په ولاړو اوبو کې متيازي(شاشې) نه کوي وَلَا يَغْتَسِلَنَّ فِيهِ مِنَ الْجَنَابَةِ او نه دي يې په ولاړ اوبو کې د جنابت غسل کوي مِنْ غَيْرِ فَصْلٍ بغير له څه تفصيله(يعني په دې حديث کې د زياتو او کمو اوبو په باره کې څه تفصيل نسته) وَالَّذِي رَوَاهُ مَالِكٌ رَحِمَهُ اللهُ وَرَدَ فِي بِئْرِ بُضَاعَةَ او د امام مالک بيان سوی روايت د "بُضاعه" څاه په باره کې راغلی دی وَمَاؤُهَا كَانَ جَارِيًا فِي الْبَسَاتِينِ او د "بُضاعه" څاه اوبه به په باغونو کې جاري وې وَمَا رَوَاهُ الشَّافِعِيُّ رَحِمَهُ اللهُ ضَعَّفَهُ أَبُودَاودُ او د امام

● تخريج: أخرجه أبو داؤد في كتاب الطهارة باب ما ينجس الماء، حديث رقم:٦٣، والترمذي في كتاب الطهارة باب ما جاء أن الماء لاينجسه شيء، حديث رقم:٦٣.

● تخريج: قدمه تخريجه، راجع تحت حديث رقم:٢.

● اخرجه أبو داؤد في كتاب الطهارة باب البول في الماء الراكد حديث رقم:٦٩، والبخاري في كتاب الوضوء باب البول في الماء الدائم، حديث رقم:٢٣٩.

شافعي بيان سوی روايت امام ابو داؤد ضعيف ګرځولی دی أَوْ هُوَيَضْعَفُ عَنْ إِحْتِمَالِ النَّجَاسَةِ يا (د هغه) روايت معنیٰ دا ده چې اوبه له نجاست پورته کولو (زغملو) څخه کمزوري دي (مطلب دا چې دوه قلې اوبه نجاست نه سي زغملای).

**اللغات:** ﴿قُلّة﴾ منګی، خوم، د سړي قد (تنه)، ﴿مُسْتَيْقِظ﴾ د استفعال اسم فاعل دی: وېښېدونکی، ﴿بَسَاتِين﴾ جمع ده واحد يې بستان دی: باغ.

**تشريح:** د عبارت تر حل مخکې په دې خبره پوه سئ چې په متن کې له "ماء" څخه مراد "ماءِ راكد" (ولاړې اوبه) دي، "ماءِ جاري" مراد نه دي، او دا ډېره اختلافي مسئله ده، حاصل يې دا دی: چې که په ولاړو اوبو کې نجاست ولوېدی نو زموږ په نېز په دې اوبو اودس کول مطلقًا جائز نه دي، برابره خبره ده که نجاست لږ وي، که زيات وي. امام مالک رَحِمَهُ الله فرمايي: که د اوبو له درو صفتونو څخه يو صفت بدل سي، نو په دې اوبو سره اودس جائز نه دی، لېکن که يې يو صفت بدل نه سي، بيا په دې سره اودس جائز دی. امام شافعي رَحِمَهُ الله فرمايي که د اوبو مقدار دوې قلې (منګيه) وو، نو په دې سره اودس جائز دی، کنې؛ نو جائز نه دي.

**د امام مالک دليل:** هغه حديث دی کوم چې مخکې تېر سو يعني: الماء طهور لاينجسه شئ إلا ما غيّر لونه أو طعمه أو ريحه، او په دې حديث سره دليل په دې توګه نيسي چې په حديث کې تر هغه وخته پوري اوبه پاکي ګرځول سوي دي تر کومه وخته چې يو ناپاک شی نه وي پکښې لوېدلی، چې له د درو صفتونو څخه يې يو صفت ور بدل کړي، نو څکه موږ هم دا خبره کوو چې د نجاست تر لوېدلو وروسته چې تر څو پوري د اوبو له درې صفتونو څخه يو صفت بدل سوی نه وي، تر هغه وخته اوبه پاکي دي.

**د امام شافعي دليل:** د قُلّتين حديث دی چې که اوبه دوې قُلې وي، نو هغه نجاست نه سي پورته کولای (يعني نه مرداربېږي)، او د استدلال طريقه يې دا ده چې د قُلّتين مقدار کثير مقدار دی، که په دومره مقدار اوبو کې نجاست ولوېږي نو هغه اوبه له نجاست څخه نه متأثره کيږي، نو معلومه سوه چې اوبه که له قُلّتين څخه لږ وي او نجاست پکښې ولوېږي نو بيا اودس په صحيح نه دی، لېکن که د قُلّتين په اندازه وي نو بيا اودس په صحيح او جائز دی.

**زموږ دليل:** حديث د مستيقظ دی، تفصيل يې دا دی چې نبي ﷺ وفرمايل: إذا استيقظ أحدكم من منامه فلا يَغْمِسَنّ يده في الإناء حتى يغسلها ثلاثا، (که په تاسو کې يو سړی له خوب څخه را وېښ سي نو خپل لاس دې په لوښي کې تر اچولو مخکې درې وار پرېولي)، موږ له دې حديث څخه استدلال په دې توګه کوو چې (فقط) د نجاست د احتمال په وجه په لوښي کې د لاس اچولو څخه منع سوې ده، نو کله چې د نجاست يقين وي نو په هغه صورت کې خو به په بطريق اولیٰ سره منع کيږي، کنې نو يقينًا اوبه ناپاکه کيږي.

**دويم دليل:** دا حديث دی: لايبولنّ أحدكم في الماء الدائم و لايغتسلن فيه من الجنابة، او له دې څخه استدلال په دې توګه کوو چې په حديث کې صراحتًا په ولاړو اوبو کې له متيازو کولو څخه منع سوې ده، که ماءِ راكد (ولاړې اوبه) د نجاست په لوېدلو سره نه ناپاکه کېدلای نو په دومره صراحت سره به په دې کې له متيازو کولو څخه منع نه کېدلای.

زموږ دواړه ذکر سوي حديثونه د امام مالک رَحِمَهُ الله او د امام شافعي رَحِمَهُ الله په خلاف حجت دي، د امام مالک رَحِمَهُ الله په خلاف خو څکه حجت دی چې په ماءِ راكد کې د جنابت له غسل څخه منع سوې ده، حال دا چې په غسل کولو سره د

لوبو يو صفت هم نه بدلیږي، او د امام شافعي رَحِمَهُ الله په خلاف ځکه حجت دی چي په دې حديثونو کي د قلتين لو داسي نورو هيڅ تفصيل نسته. او په مطلق ماءِ راکد کي له متيازو کولو څخه منع سوې ده، او که يو چا پکښې وکړې نو اوبه ناپاکه کيږي، هغه که دوې قلې وي، يا له دې څخه لږ وي.

**د امام مالک د دليل جواب:** صاحب د هدايې فرمايي چي امام مالک کوم حديث ذکر کړی دی دا حديث د "بئر بضاعه" په باره کي راغلی دی، پوره حديث په ترمذي او نسائي شريف کي داسي ذکر سوی دی:

عن أبي سعيدن الخدري ﷺ قال: قيل يا رسول الله أنتوضأ من بير بضاعة وهي بير تلقى فيها الحيض ولحوم الكلاب والنتن. فقال النبي ﷺ: إن الماء طهور لاينجسه شيء، (يعني اوبو سعيد خدري ﷺ فرمايي چي له نبي ﷺ څخه پوښتنه وسوه چي آيا موږ د بئر بضاعه [په اوبو] اودس کوو حال دا چي په دې کي د حيض جامې [کپړې]، د سپيانو غوښې او بدبويه شيان[ګندګياني] ور لويږي، نبي ﷺ وفرمايل: چي اوبه پاکي دي هيڅ شی يې نه سي ناپاکه کولای)؛ او دا خبره تسليم سوې ده چي د بئر بضاعه اوبه ماءِ راکد نه وې، بلکي ماءِ جاري وې، او پنځه باغونه په اوبه کېدل (عنايه، بنايه)، نو کله چي د بئر بضاعه اوبه ماءِ جاري وې نو په دې سره د ماءِ راکد په سلسله کي دليل نيول څرنګه صحيح کيږي؟

**د امام شافعي د دليل جواب:** دا دی چي د امام شافعي د حديث سند ضَعيف دی، امام ابو داؤد او سليمان بن الاشعث رَحِمَهُمَا الله دې ته ضعيف ويلي دي، او د محمد بن اسماعيل البخاري رَحِمَهُ الله استاد علي ابن مديني رَحِمَهُ الله وايي: لم يثبت حديث القلتين، او دې ته نژدې رايه په خپله د حضرت امام شافعي رَحِمَهُ الله هم ده، فرمايي: بلغني بإسناد لايحضرني من ذكره (يعني دا حديث تر ما پوري په داسي سند را رسېدلی چي د هغه راوي زما په ياد کي نه راځي).

د حديث په متن کي هم اضطراب سته، لکه څرنګه چي په بعضي رواياتو کي راغلي دي: إذا بلغ الماء قلتين أو ثلاثا، او په بعضو کي راغلي دي: أربعين قلة، او په بعضو کي راغلي دي: أربعين دلواً، همدارنګه د دې حديث دويم جزء په بعضي رواياتو کي لايحمل الخبث دی، او په بعضو کي لم ينجس دی، او په بعضو کي لم ينجسه شيئ دی، او په بعضو کي لم يحمل خبثاً دی، همدارنګه له دې تولو څخه ماسوا د قُله مقدار او مصداق هم نامعلوم او مجهول دی ځکه کله له قُله څخه انساني قامت او تنه مراهوي، او کله د غره سر ځني مراد وي، او کله منګی ځني مراد وي، او که موږ دلته منګی ځني مراد کړو، نو بيا هم دا جهالت پاته کيږي چي څومره منګی مراد دی، نو د دومره اضطراباتو او احتمالاتو په سبب په دې سره استدلال کېدلای نه سي.

## په روانو اوبو کي د نجاست لوېدل (او په هغو سره د اودس حکم)

وَالْمَاءُ الْجَارِيْ إِذَا وَقَعَتْ فِيْهِ نَجَاسَةٌ او په روانو اوبو کي چي کله نجاست ولوېږي جَازَ الْوُضُوْءُ مِنْهُ نو له هغو څخه اودس جائز دی إِذَا لَمْ يُرَلَهَا أَثَرٌ (په دې شرط) چي د نجاست څه اثر ليدل سوی نه وي لِأَنَّهَا لَا تَسْتَقِرُّ مَعَ جَرَيَانِ الْمَاءِ ځکه چي نجاست د اوبو د بهېدلو په وجه نه سي درېدلای وَالْأَثَرُ هُوَ الرَّائِحَةُ أَوِ الطَّعْمُ أَوِ اللَّوْنُ او له اثر څخه مراد خوند، يا بوی، يا رنګ دی وَالْجَارِيْ مَا لَا يَتَكَرَّرُ اِسْتِعْمَالُه او جاري اوبه هغه دي چي استعمال يې نه مکرر کيږي وَقِيْلَ مَا يَذْهَبُ بِتِبْنَةٍ او يو قول دا دی: چي خاشه يوسي.

**اللغات:** ﴿جريان﴾ مصدر دی: بهېدل، د رُکُود ضد. ﴿تبنة﴾ خاشه، د وچو وښو کوچنی ټوکره، مجازاً هر لږ غونډي شي ته ويل کيږي.

**تشريح:** د مسئلې حاصل دا دی چې که په راونو اوبو کې نجاست ولوېږي نو تر څه وخته چې په دې روانو اوبو کې د دغه نجاست يو اثر ښکاره نه سي، يا په نورو الفاظو: چې تر څه وخته د دې اوبو له درو صفتونو څخه يو صفت بدل نه سي تر هغه وخته له دغه اوبو څخه اودس کول صحيح او جائز دي، ځکه که اوبه جاري(رواني) وي نو دا خبره مثل سوې ده چې په دې کي نجاست هيڅ اثر نه کوي، ځکه چې په جاري اوبو کي نه نجاست درېدلی سي او نه خپل رنګ ښکاره کولای سي، فرمايي: په عبارت کي چې کوم د أثر لفظ راغلی دی له هغه څخه دغه درې صفتونه يعني رنګ، بوی او خوند مُراد دی.

## د ماءِ جاري تعريف

د ماء جاري په تعريف کي د فقهاؤ مختلفه اقوال دي، د بنايه او فتح القدير په حواله سره يې موږ لاندي ذکر کوو:

① ماءِ جاري هغه اوبه دي چې د هغو استعمال مکرر(څو ځلي) نه وي، د دې مطلب دا دی چې مثلاً يو سړی له والې يا داسي نورو څخه په لاس کي اوبه را واخلي او هغه استعمال کړي بيا هغه اوبه هلته توی کړي(يعني په واله کي چې يې له کومه ځايه را اخيستي وي پر هغه ځای يې توی کړي) او دوباره چې بيا اوبه را اخلي نو دا توی سوي او استعمال سوي اوبه دي دده په لاس کي نه راځي بلکي بهېدلي وي او مخته تللي وي، نو دغه اوبه ماءِ جاري دي.

② دويمه رايه دا ده چې ماءِ جاري هغه اوبو ته ويل کيږي چې يوه وچه خاشه يووسي.

③ دريمه رايه دا ده چې ماءِ جاري هغه اوبو ته ويل کيږي چې خلک يې رواني(جاري) بولي، صاحب د عنايه دې ته أصح ويلي دي.

④ څلورمه رايه دا ده چې جاري هغه اوبو ته ويل کيږي چې که يو سړی خپل لاس په اوبو کي عرضاً(يعني په بره) کښېږدي نو په دې سره د اوبو بهېدل نه ودرېږي، والله اعلم. (عنايه ج:۱، ص:۸۶).

## د ماءِ کثير تعريف، د لوی تالاب(حوض) اندازه، او له هغه څخه د اودس حکم

قَالَ: وَالْغَدِيرُ الْعَظِيمُ الَّذِيْ فرمايي: او لوی حوض هغه دی لَا يَتَحَرَّكُ أَحَدُ طَرَفَيْهِ بِتَحْرِيْكِ الطَّرَفِ الْآخَرِ چې د هغه يو طرف نه ښوري د بل په ښورولو سره إِذَا وَقَعَتْ نَجَاسَةٌ فِيْ أَحَدِ جَانِبَيْهِ جَازَ الْوُضُوْءُ مِنَ الْجَانِبِ الْآخَرِ (نو) که د داسي حوض په يوه طرف کي نجاست ولوېږي، له بل طرف څخه يې اودس کول جائز دی لِأَنَّ الظَّاهِرَ أَنَّ النَّجَاسَةَ لَا تَصِلُ إِلَيْهِ ځکه ښکاره دا ده چې نجاست بل طرف ته نه رسيږي إِذْ أَثَرُ التَّحْرِيْكِ فِي السِّرَايَةِ فَوْقَ أَثَرِ النَّجَاسَةِ ځکه چې د حرکت ورکولو(ښورولو) اثر په سرايت کولو کي د نجاست تر اثر زيات دی ثُمَّ عَنْ أَبِيْ حَنِيْفَةَ رَحِمَهُ اللهُ أَنَّهُ يُعْتَبَرُ التَّحْرِيْكُ بِالْاِغْتِسَالِ بيا له امام ابو حنيفه رَحِمَهُ الله څخه روايت دی چې په غسل سره ښورول معتبر دي وَهُوَ قَوْلُ أَبِيْ

يُوْسُفَ رَحِمَهُ اللهُ او همدا د امام ابو يوسف قول دی وَعَنْهُ التَّحْرِيْكُ بِالْيَدِ او له امام صاحب څخه يو قول د تحريک باليد دی (يعني په لاس سره ښوورول معتبر دي) وَعَنْ● مُحَمَّدٍ رَحِمَهُ اللهُ بِالتَّوَضِّيْ او له امام محمد رَحِمَهُ الله څخه تحريک بالتوضئ (په اودس کولو سره ښورول) را نقل سوي دي وَوَجْهُ الْأَوَّلِ أَنَّ الْحَاجَةَ إِلَى الْاِغْتِسَالِ فِي الْحِيَاضِ أَشَدُّ مِنْهَا د اول قول وجه دا ده چي په حوضونو کي د غسل حاجت زيات وي إِلَى التَّوَضُّئِ په نسبت سره و اودس کولو ته وَبَعْضُهُمْ قَدَّرُوْا بِالْمَسَاحَةِ او ځيني عالمانو د لوی حوض اندازه په پېمايش (ګزونو) سره کړې ده عَشْرًا فِي عَشْرٍ بِذِرَاعِ الْكِرْبَاسِ چي هغه د جامو (کالو) په ګز سره لس په لس کي دي (له دراع څخه مراد شرعي ګز دی چي هغه يو لاس کيږي، نو معنی يې دا سوه چي: څټ حوض هغه دی چي لس لاسه يې اوږدوالی او لس لاسه يې بر وي) تَوْسِعَةً لِلْأَمْرِ عَلَى النَّاسِ پر خلکو د پراختيا (آسانتيا) په خاطر وَعَلَيْهِ الْفَتْوٰى او هم پر دې قول فتوی ده وَالْمُعْتَبَرُ فِي الْعُمْقِ أَنْ يَّكُوْنَ بِحَالٍ او په ژوروالي کي دومره اندازه معتبره ده چي حوض په داسي حالت کي وي لَا يَنْحَسِرُ بِالْاِغْتِرَافِ چي په لپه را اخيستلو سره يې ځمکه نه ښکاره کيږي هُوَ الصَّحِيْحُ همدا صحيح روايت دی وَقَوْلُهُ فِي الْكِتَابِ وَجَازَ الْوُضُوْءُ مِنَ الْجَانِبِ الْاٰخَرِ او په قدوري کي د امام قدوري رَحِمَهُ الله دا قول چي جاز الوضوء من الجانب الآخر (نه بل طرف څخه يې اودس جائز دی) إِشَارَةٌ إِلَى أَنَّهُ يَنْجُسُ مَوْضِعُ الْوُقُوْعِ (د دې خبري و طرف ته) اشاره ده چي په کوم طرف کي نجاست ولوېږي په هغه طرف کي د نجاست ځای مرداريږي (نجس کيږي) وَعَنْ أَبِيْ يُوْسُفَ رَحِمَهُ اللهُ● أَنَّهُ لَا يَنْجُسُ او له امام ابو يوسف رَحِمَهُ الله څخه روايت دی چي د نجاست نولېدلو ځای هم نه مرداريږي إِلَّا بِظُهُوْرِ أَثَرِ النَّجَاسَةِ فِيْهِ خو دا چي نجاست پکښې ښکاره سي كَالْمَاءِ الْجَارِيْ لکه رواني اوبه (يعني لکه په روانو اوبو کي چي کله نجاست ښکاره سي نو بيا مرداريږي).

**اللغات:** ﴿غدير﴾ تالاب (حوض)، ﴿سراية﴾ د ضرب د باب مصدر دی، سَرَى يَسْرِي: خورېدل. نوتل. رسېدل. ﴿حياض﴾ جمع د حوض ده: د اوبو ذخيره، د اوبو ډنډ. ﴿مساحة﴾ پېمايش (پېمانه)، ﴿كرباس﴾ په اصل کي د کِرْبَاس دا تولي معناوي راځي: پمبيزه جامه، ورين ټوکر، کشميره، کراسته، هغه سپينسين ټوکر چي ډول ډول رنګونه لري. (خو په عام عرف کي ټوکر او کپړه ځني مراد ده، يعني د کپړو ګز) ﴿ينحسر﴾ د انفعال د باب مضارع صيغه ده: خلاصېدل، ليري کېدل، دورېښتيانو رژېدل. ﴿اغتراف﴾ مصدر دی: لپه ډکول.

**تشريح:** تر دې مخکي دا خبره څرګنده سوه چي که په لږو اوبو (ماء قليل) کي نجاست ولوېږي نو هغه مرداريږي. خو که په ماء کثير (ډېرو اوبو) کي ولوېږي نو بيا د دې دوه صورتونه دي: (۱) دا ماء کثير به جاري (رواني) وي، (۲) جاري به نه وي، که دا ماء کثير جاري وي نو هم د نجاست په لوېدلو سره نه مرداريږي، د دې تفصيل هم تېر سو. دلته دا بيانوي چي هغه ماء کثير چي په تالاب يا حوض يا نورو کي جمع وي (او جاري نه وي)، که په دې کي که نجاست ولوېږي نو د دې پاکوالی او ناپاکوالی به څرنګه معلوميږي؟ په دې سلسله کي تر ټولو مخکي په دې خبره پوه سه! چي د لوی حوض

---

● القول الراجح: قول محمد رَحِمَهُ الله، كذا في رد المحتار ج:۱، ص:۲۱. [الفوائد الراجح ج:۱، ص:۱۰]

● القول الراجح: قول أبي يوسف رَحِمَهُ الله، كذا في فتح القدير ج:۱، ص:۷۲ و الدر المختار ج:۱، ص:۱۲۰ . [الفوائد الراجح ج:۱، ص:۱۲]

او لوی تالاب اندازه دا ده چې که د ده یوه طرف (خوا) ته حرکت ورکول سي نو په دویم طرف کې حرکت پیدا نه سي، نو دا وبه دومره اندازه ډېره ده، یعنې دا اوبه ماءِ کثیر دی، او دا تالاب او حوض غدیرِ عظیم دی، او که حوض او تالاب له دې اندازې څخه کوچنی وو او د یوه طرف په ښورولو سره یې په بل طرف کې حرکت پیدا سو نو دا اندازه ماءِ قلیل ده، او د لږ غوندې نجاست په لوېدلو سره هم ټوله اوبه ناپاکه کیږي.

ثم عن أبي حنيفة الخ د امام صاحب په نېز د ښورولو مطلب دا دی چې په یوه طرف کې د اودس یا غسل کولو په وجه د دویم طرف اوبه پورته او کښته سي، پاته سوه دا مسئله چې د کومې درجې او کوم تحریک (ښورول) معتبر دی، نو په دې سلسله کې د احنافو فقهاؤ مختلفه اقوال دي:

(۱) اول قول دا دی چې د غسل تحریک (ښورول) معتبر دی، یعنې که یو سړی د حوض په یوه طرف کې غسل کوی او په دویم طرف کې حرکت پیدا سو نو دا حوض به کوچنی وي، او که حرکت پیدا نه سو نو دا حوض به غټ وي، دا قول امام ابو یوسف له امام اعظم رَحِمَهُ الله څخه را نقل کړی دی.

(۲) امام ابو یوسف د امام صاحب رَحِمَهُ الله دویم قول دا بیان کړی دی چې د حوض او تالاب د ښورولو په سلسله کې په لاس سره ښورول معتبر دی، یعنې که اوبه په لاس سره وښورول سي او په دې ښورولو سره د دویم طرف اوبه په حرکت کې را غلې، نو دا غدیرِ عظیم دی، کنې نو صغیر دی.

(۳) او د امام محمد رَحِمَهُ الله په نېز "تحریک توضئ" یعنې د اودس ښورول معتبر دی، یعنې که یو سړی د حوض په یوه طرف کې اودس کوی نو که په دویم طرف کې حرکت پیدا سو نو دا غدیرِ صغیر دی او که حرکت پیدا نه سو نو دا غدیرِ عظیم دی.

**د متأخرینو رایه:** له احنافو څخه د متأخرینو فقهاؤ رایه دا ده چې له یوه طرف څخه و بل طرف ته اوبه رسېدل به له حرکت ورکولو څخه ماسوا په بل شي سره معلومیږي، نو بعضې متأخرین وایي چې خړوالي به معتبر وي، یعنې که د حوض په یوه طرف کې غسل وکړی سي او د غسل په وجه د اوبو رنګ خړ سي، نو که دا خړوالی دویم طرف ته ورسېدی نو دا ماءِ قلیل دي او که نه ورسېدی نو ماءِ کثیر دي.

او له ابو حفص کبیر څخه روایت دی چې د رنګ اعتبار به وي یعنې د حوض په یوه طرف کې به زعفران واچول سي نو که د زعفرانو اثر دویم طرف ته ورسېدی نو دا ماءِ قلیل دي کنې ماءِ کثیر دي، لېکن ابو سلیمان جوزجاني رَحِمَهُ الله د مساحت (پېمایش) اعتبار کړی دی یعنې که حوض لس په لس کې وو (یعنې لس شرعي ګزه اوږد او لس شرعي ګزه پراخ وو) نو دا ماءِ کثیر دي او که له دې څخه کم وو نو دا ماءِ قلیل دي.

**د عشر في العشر د روایت اصل:** روایت سوی دی چې کله له امام محمد رَحِمَهُ الله څخه د غدیرِ عظیم په اړه پوښتنه وسوه نو ده وفرمایل چې حوض که زما د دې مسجد په اندازه وو، نو هغه به غدیرِ عظیم وي (یعنې د هغه اوبه به ماءِ کثیر وي، کنې نو ماءِ قلیل به وي) نو کله چې د امام محمد رَحِمَهُ الله مسجد پېمانه سو، نو د یوه روایت مطابق هغه لس په لس (۱۰×۱۰) کې وو، او بعضې حضراتو ویلي دي چې دننه حصه یې اته په اته کې وه، او له دباندې څخه چې کله پېمانه سو نو لس په لس کې وو، خو لنډه دا چې عامو مشائخو د ابو سلیمان جوزجاني قول اختیار کړی دی، پاته سوه دا خبره چې کوم ګز معتبر دی، نو د فتاویٰ قاضي خان والا رایه دا ده چې د مساحت (پېمایش) ګز معتبر دی، او د مساحت ګز اووه موټه دی چې پر هر موټ به یوه ولاړه ګوته هم زیاته وي، او د مصنف رَحِمَهُ الله په نېز د جامو (کپړو) ګز معتبر دی، او د جامو ګز

(فقط) اووه موټه دی، او پر هر موټ ولاړه ګوته نه زیاتیږي، د اثمار الهدایه والا لیکلي دي چي له دې څخه شرعي ګز مراد دی کوم چي یو لاس کیږي، (تفصیل به یې لاندي ذکر سي). صاحب د هدایې فرمایي چي د ماءِ کثیر په معلومولو کي د پیمایش اعتبار د خلکو د آسانی لپاره سوی دی او فتوی هم پر دغه ده.

## د اوسنی زماني په اعتبار سره د غټ حوض اندازه

مولانا ثمیر الدین قاسمي په خپله شرحه "اثمار الهدایه" کي لیکلي دي: چي په دې ځای کي له عشر فی العشر څخه مراد دا دی چي لس لاسه به اوږد او لس لاسه به پراخ وي، او یو لاس "یو نیم فوټ" یعني اتلس(۱۸) اینچه کیږي. نو کوم حوض چي پنځلس فوټه اوږد او پنځلس فوټه پراخ وي، هغه به غټ حوض (غدیر عظیم) وي، او پنځلسو ته چي په پنځلس کي ضرب ورکړل سي، نو دوه سوه پنځویشت(۲۲۵) مربع فوټه حوض جوړیږي، یعني د مربع والي په اندازه چي ۲۲۵ فوټه وي نو هغه غټ حوض دی.

**یادونه**: اوږدوالي (طول) ته چي په پراخوالي (عرض) کي ضرب ورکول سي نو مربع را وځي.

او د اوسنی زماني د ګز په اعتبار سره یو لاس نیم ګز کیږي، نو لس لاسه پنځه ګزه سوه، نو که پنځه ګزه اوږد او پنځه ګزه پراخ وو، هغه غټ تالاب او حوض دی.

## د ګردي حوض اندازه

او د ګردي(ګول) حوض مینځنی حصه چي په اوږدول ۹۲، ۱۶ فوټه وي یعني تقریبا چي تر شپاړس فوټه څه زیاته وي، نو هغه غټ حوض دی، مطلب دا چي د ګردي حوض اندازه به د حوض له مینځ څخه په اوږدول معلومیږي. لو تر معلومولو وروسته که تر شپاړس فوټو څه زیات سو نو هغه غدیرِ عظیم دی.

والمعتبر فی العمق الخ او د حوض د ژورتیا په سلسله کي دومره ژور والی معتبر دی، چي په ډکه لپه اخیستلو سره د حوض مځکه ښکاره نه سي، همدا صحیح ده، او د بعضو رایه دا ده چي لږ تر لږه یو شرعي ګز(ذراع) ژوروالی ضروري دی، او بعضو د دوو ذراعو مقدار معتبر کړی دی، او بعضو د یوې لوېشتي اعتبار کړی دی.

وقوله فی الکتاب الخ صاحب د هدایې فرمایي چي مختصر القدوري دا خبره چي د غدیرِ عظیم په دویم طرف کي لودس جائز دی، دا و دې طرف ته اشاره کوي چي په کوم طرف کي نجاست ولویږي، د هغه طرف د نجلست لوېدلو ځای به ناپاکه وي، هغه نجاست که مرئي وي، که غیرِ مرئي وي(یعني که په سترګو لیدل کیږي او که نه لیدل کیږي). لیکن له امام ابو یوسف رَحِمَهُ الله څخه دا روایت سوی دی چي د نجاست لوېدلو ځای هم نه دی ناپاکه. مګر په هغه صورت کي چي هلته نجاست ولیدل سي(یعني مرئي وي) لکه په ماءِ جاري(روانو اوبو) کي چي دا حکم دی.

**راجح قول**: په دې عبارت کي د احنافو فقهاؤ په مینځ کي دوه ځایه اختلاف دی:

(۱) اول اختلاف د تحریک په سلسله کي دی یعني کوم تحریک معتبر دی، نو په دې باره کي د امام صاحب، امام ابو یوسف او امام محمد رَحِمَهُمُ الله قولونه مخکي په تفصیل سره بیان سول، خو په دې قولونو کي راجح قول د امام محمد رَحِمَهُ الله دی چي د اودس تحریک (ښورول) به معتبر وي. [القوال الراجح: ج:۱، ص:۱۰]

(۲) دویم اختلاف په دې باره کي دی چي د غټ حوض په کوم طرف کي نجاست ولویږي، نو دا د نجاست لوېدلو ځای به ناپاکه وي، که نه؟، نو په دې باره کي راجح قول د امام ابو یوسف رَحِمَهُ الله دی یعني ناپاکه به نه وي، لکه څرنګه چي علامه ابن همام رَحِمَهُ الله هم په فتح القدیر کي د دې صراحت کړی دی. [القوال الراجح: ج:۱، ص:۱۲]

## غوماشي، مچيان، غالبوزي، لړم او داسي نور بېويني شيان په اوبو کي لوېدل

قَالَ: وَمَوْتُ مَا لَيْسَ لَهُ نَفْسٌ سَائِلَةٌ فِي الْمَاءِ لَا يُنَجِّسُهُ او په اوبو کي د داسي شي مرګ چي وينه پکښې نه وي، اوبه نه مرداروي كَالْبَقِّ وَالذُّبَابِ لکه غوماشه او مچ وَالزَّنَابِيرِ وَالْعَقْرَبِ او غالبوزي او لړم وَنَحْوِهَا او د دې په ډول (نور شيان) وَقَالَ الشَّافِعِيُّ رَحِمَهُ اللهُ يُفْسِدُهُ او امام شافعي رَحِمَهُ الله فرمايي: چي د داسي شيانو مرګ هم اوبه خرابوي (مرداروي) لِأَنَّ التَّحْرِيمَ لَا بِطَرِيقِ الْكَرَامَةِ آيَةُ النَّجَاسَةِ ځکه هغه تحريم کوم چي د کرامت (او احترام) په توګه نه وي هغه د نجاست نښه (علامه) ده بِخِلَافِ دُودِ الْخَلِّ په خلاف د مچمچۍ د چنجيانو (يعني په خلاف د مچمچيو د بچيانو) وَسُوسِ الثِّمَارِ او (په خلاف د) مېوو د چنجيانو لِأَنَّ فِيهِ ضَرُورَةً ځکه چي په هغه کي ضرورت دی وَلَنَا قَوْلُهُ عَلَيْهِ السَّلَامُ[1] فِيهِ او زموږ دليل په دې باره کي د نبي ﷺ دا قول دی هٰذَا هُوَ الْحَلَالُ أَكْلُهُ وَشُرْبُهُ وَالْوُضُوءُ مِنْهُ چي د دې خوړل چيښل او له دې څخه اودس کول حلال دي وَلِأَنَّ الْمُنَجِّسَ هُوَ اخْتِلَاطُ الدَّمِ الْمَسْفُوحِ بِأَجْزَائِهِ او په دې وجه (هم) چي د اوبو د اجزاؤ سره د بهېدونکي ويني ګډون مردارونکی دی (يعني د دم مسفوح ګډون اوبه مرداروي) حَتَّى حَلَّ الْمُذَكَّى (هم په دې وجه) ذبح سوی ښکاروی (زموږ لپاره) حلالیږي لِانْعِدَامِ الدَّمِ فِيهِ چي په هغه کي وينه نه وي وَلَا دَمَ فِيهَا او په دې شيانو کي (هم) وينه نسته (نو ... وبو کي د دوی په مرګ سره اوبه نه مرداریږي) وَالْحُرْمَةُ لَيْسَتْ مِنْ ضَرُورَتِهَا النَّجَاسَةُ كَالطِّينِ او د (يو شي د) حرام کېدلو لپاره دا ضروري نه دي چي هغه دي مردار وي لکه خاوره.

**اللغات:** ﴿سَائِلَةٌ﴾ د ضرب د باب مؤنث اسم فاعل دی، سَالَ يَسِيْلُ: بهېدل. ﴿بَقٌّ﴾ غوماشه. (منګوړ او کتمل ته هم ويل کيږي) ﴿ذُبَابٌ﴾ مچ. ﴿زَنَابِيْر﴾ جمع ده واحد يې زُنْبُوْرٌ دی: غالبوزه. ﴿عَقْرَبٌ﴾ لړم. ﴿دُوْدُ الْخَلِّ﴾ د شاتو هغه کوچنو مچمچيو ته ويل کيږي کوم چي د چينجيو په ډول وي. ﴿سُوْسُ الثِّمَارِ﴾ د مېوو چينجيان. ﴿الدَّمُ الْمَسْفُوْحُ﴾ دَم ويني ته ويل کيږي او مَسْفُوْحٌ د فتح د باب اسم مفعول دی يعني بهېدل. نو د دم مفسوح معنیٰ سوه: بهېدونکې وينه. ﴿مُذَكّٰى﴾ د تفعيل د باب اسم مفعول دی. ذَكّٰى يُذَكِّيْ: پاکول. ذبح کول (حلالول. سر پرېکول) نو د مُذَكّٰى معنیٰ سوه: حلال سوي حيوان. ﴿لِانْعِدَامِ﴾ په دې کي لام جاره دی او اِنْعِدَامٌ د انفعال د باب مصدر دی: معنیٰ يې ده: نشتون. نشتوالی. نيستي والی.

**تشريح: مسئله:** دا ده که په اوبو کي داسي حيوان مړ سو چي په هغه کي بهېدونکې وينه نه وه. نو د هغه په مرګ سره اوبه نه مرداریږي. د مثال په توګه غوماشه. مچ. غالبوزه. لړم او داسي نور. امام شافعي رَحِمَهُ الله فرمايي چي د داسي حيوان مرګ هم اوبه مرداروي. چي په هغه کي وينه نه وي.

---

[1] تخريج: أخرجه دارقطني في كتاب الطهارة، باب كل طعام وقعت فيه دابة ليس لها دم، باب رقم:۶، حديث رقم:۸۱.

**د امام شافعي دليل:** دا دی چې داسي حيوان حرام دی، ځکه الله تعالیٰ فرمايي: حُرِّمَتْ عَلَيْكُمُ الْمَيْتَةُ (سورة المائدة: ٣)، او تحريم (حراميدل) که د کرامت او بزرګی په توګه نه وو نودا تحريم د نجاست علامه ده، په لا بطريق الكرامة سره انسان وځي، ځکه چې انسان که جنب وي او په اوبو کي مړ سي نو د ده په مرګ سره اوبه نه مرداريږي، ځکه چې د انسان تحريم د کرامت او بزرګی په توګه دی.

او که د مچمچيو بچيان يا د مېږو چنجيان مړه سي نو په دې سره شات (عسل) او مېوې نه مرداريږي، دليل يې دا دی چې د قياس تقاضا خو دا ده چې دا شيان دي هم نجس وي ليکن د ضرورت په وجه دوی پاک ګرځول سوي دي.

**زموږ دليل:** د حضرت سلمان فارسي ﷺ حديث دی: أن النبي سئل عن إناء فيه طعام او شراب يموت فيه ما ليس له دم سائل فقال هذا هو الحلال أكله و شربه والوضوء منه (کفايه)، (يعني له نبي ﷺ څخه د هغه لوښي په باره کي پوښتنه وسوه چې په هغه کي د خوراک، چښناک شيان وي، او په هغه کي داسي حيوان مړ سي چې بهېدونکې وينه پکښي نه وي، نو نبي ﷺ وفرمايل: چې د دې خوراک، چښناک حلال دي او له دې څخه اودس کول جائز دی).

په دارقطني کي دا حديث داسي ذکر سوی دی: يا سلمان كل طعام و شراب وقعت فيه دابة ليس لها دم سائل فمات فيه فهو حلال أكله و شربه و وضوئه، (يعني اې سلمانه! هر هغه د خوړلو او چيښلو شی چې داسي حيوان پکښي ولوېږي چې په هغه کي وينه نه وي او بيا په پکښي مړ سي نو د دې شي خوړل چيښل او اودس ځيني کول حلال دي).

دار قطني د دې حديث تر روايت کولو وروسته ويلي يې دي چې هيڅ يو راوي دې ته مرفوع نه دي ويلي بغير له سعيد بن أبي سعيد الزبيدي څخه او هغه (هم) ضعيف دی.

**عقلي دليل:** دا دی چې په اصل کي د اوبو مردارونکی او نجس کونکی شی د حيوان د مرګ په وخت کي د اوبو د اجزاؤ سره د دم مسفوح (بهېدونکي ويني) يوځای کېدل دي (يعني په اصل کي اوبه هغه وخت مراداريږي چې په اوبو د مردار سوي حيوان بهېدونکې وينه ګډه سي)، خو څرنګه چې په دې شيانو (يعني غوماشو، لړم، غالبوزو او نورو) کي بهېدونکې وينه ګرسره نسته، نو ښکاره خبره ده چې د دوی په مرګ سره به په اوبو وينه هم نه ګډيږي، لهذا کله چې په اوبو کي د وينو ګډون نسته، نو اوبه هم نه مرداريږي، لأن المنجس هو اختلاط الدم المفسوح ...الخ. وهو لم يوجد ههنا.

حتی حلّ المزکّی الخ صاحب د هدايې عقلي دليل د يو مثال په ذريعه مضبوطوي، فرمايي: چې د حلال سوی (ذبح کړی سوي) حيوان خوړل هم په دې وجه زموږ حلال وي، چې له هغه څخه دم مسفوح (بهېدونکې وينه) وتلې وي، نو کله چې د دم مفسوح تر وتولو وروسته حيوان پاکيږي، لهذا هغه حيوان چې په هغه کي دم مفسوح ګرسره نه وي، نو هغه خو به بدرجه اولیٰ پاک وي.

**د امام شافعي د دليل جواب:** صاحب د هدايې له والحرمة ليست...الخ څخه د امام شافعي رَحِمَهُ الله د دليل جواب ورکوي، حاصل د جواب دا دی چې د يو شي د حراميدلو لپاره نجاست ضروري نه دی، يعني دا ضروري نه ده چې يو شی دي حرام وي نو هغه دي نجس هم وي، د مثال په توګه خاوره، ګُولا، او داسي نور شيان حرام دي، خو په دوی کي يو هم نجس او مردار نه دی.

## د ماهي، چونګښې، چنګاښ او د داسې نورو په مرګ سره اوبه مرداريږي، که نه؟

قَالَ: وَمَوْتُ مَا يَعِيْشُ فِي الْمَاءِ فِيْهِ او په اوبو کې د هغه حيوان مرګ چې په اوبو کې ژوند تېروي لَا يُفْسِدُهُ اوبه نه فاسدوي (نه مرداروي) كَالسَّمَكِ وَالضِّفْدَعِ وَالسَّرَطَانِ لکه ماهی، چونګښه او چنګاښ وَقَالَ الشَّافِعِيُّ رَحِمَهُ اللهُ: يُفْسِدُهُ إِلَّا السَّمَكُ او امام شافعي فرمايي چې له ماهي څخه علاوه (د نورو شيانو مرګ) اوبه مرداروي لِمَا مَرَّ د هغه دليل په وجه کوم چې تېر سو وَلَنَا أَنَّهُ مَاتَ فِي مَعْدَنِهِ زموږ دليل دا دی چې دا حيوان خو خپل د اوسېدلو په ځای کې مړ سوی دی فَلَا يُعْطَى لَهُ حُكْمُ النَّجَاسَةِ نو ځکه به دې حيوان ته د نجاست حکم نه ورکول کيږي كَبَيْضَةٍ حَالَ مُحُّهَا دَمًا لکه هغه هګۍ چې ژړ (ژېړ) يې وينې سوی وي وَلِأَنَّهُ لَا دَمَ فِيْهَا او په دې وجه (هم) چې په دې (دريابي حيوانانو) کې وينه نسته إِذِ الدَّمَوِيُّ لَا يَسْكُنُ الْمَاءَ ځکه چې ويني والا په اوبو کې نه سي اوسېدلای وَالدَّمُ هُوَ النَّجِسُ او مردار شی وينه ده وَفِي غَيْرِ الْمَاءِ قِيْلَ او له اوبو څخه علاوه (په بل شي) کې يو قول (دا) دی غَيْرُ السَّمَكِ يُفْسِدُهُ لِانْعِدَامِ الْمَعْدَنِ (چې) د مسکن د نشتوالي په وجه له ماهي څخه علاوه نور دريابي حيوانان دا شی مرداروي وَقِيْلَ او يو قول (دا) دی لَا يُفْسِدُهُ لِعَدَمِ الدَّمِ (چې) د وينې د نشتوالي په وجه يې نه مرداروي وَهُوَ الْأَصَحُّ او همدا صحيح قول دی وَالضِّفْدَعُ الْبَحْرِيُّ وَالْبَرِّيُّ سَوَاءٌ او چونګښه که د اوبو وي، که د وچې مځکې وي (د دواړو حکم) برابر دی وَقِيْلَ او يو قول (دا) دی الْبَرِّيُّ يُفْسِدُ چې د وچې چونګښه (اوبه) مرداروي لِوُجُوْدِ الدَّمِ وَعَدَمِ الْمَعْدَنِ د وينې د شتون په وجه او د مسکن د نشتوالي په وجه (يعني اوبه د دې د اوسېدلو ځای نه دی) وَمَا يَعِيْشُ فِي الْمَاءِ مَا يَكُوْنُ تَوَالُدُهُ وَمَثْوَاهُ فِي الْمَاءِ او کوم حيوان چې په اوبو کې ژوند تېروي هغه دی (يعني دريابي حيوان دې ته ويل کيږي) چې زېږېدنه او د استوګنې ځای يې په اوبو کې وي وَمَائِيُّ الْمَعَاشِ دُوْنَ مَائِيِّ الْمَوْلِدِ مُفْسِدٌ او هغه حيوان چې په اوبو کې اوسيږي لېکن زېږېدنه يې په اوبو کې نه وي نو هغه هم اوبه مرداروي.

**اللغات:** ﴿ضفدع﴾ چونګښه (چيندخه)، ﴿سرطان﴾ چنګاښ، ﴿معدن﴾ د اوسېدلو ځای، د پيداکېدلوی ځای، ﴿مخ﴾ د هګۍ ژړ، مُخَّةٌ هم ورته ويل کيږي، او مُخّ يعني په خاء سره د يو شي مغز ته ويل کيږي، ﴿توالد﴾ د تفاعل مصدر دی: زېږېدنه، پيدايښت، دلته مراد ځني د سمندري حيوانانو هګۍ اچول او زېږېدل دي، ﴿مثوی﴾ استوګن ځای، پناځای، د آرام کولو ځای.

**تشريح:** صورت د مسئلې: دا دی چې کوم حيوانان چې په اوبو کې ژوند تېروي لکه ماهي، چونګښه، چنګاښ او داسې نور، که له دوی څخه يو په اوبو کې مړ سي نو زموږ په نيز اوبه نه مرداريږي هغه که لږ اوبه وي، که ډېرې، (يعني که ماء قليل، او که ماء کثير وي) او امام شافعي رَحِمَهُ الله فرمايي چې له ماهي څخه ملسوا که يو بل حيوان مړ سي نو د هغه په مرګ سره اوبه مرداريږي.

**د امام شافعي دليل:** هغه دی کوم چې مخکې تېر سو يعني چې تحريم که په طريقه د کرامت نه وو نو دا د نجاست نښه ده، او څرنګه چې دا شيان حرام دي، نو ځکه به د دوی حرمت د نجاست دليل وي.

**اعتراض:** لېکن دلته پر امام شافعي دا اعتراض کيږي چې په کتاب الذبائح کې ذکر دي چې د امام شافعي رَحِمَهُ الله په نېز چونګښه او چنګاښ خوړل حلال دي نو دا دليل څرنګه صحيح کېدای سي.

**جواب:** دا ورکول سوی دی چې په کتاب الذبائح کې چې کوم څه ذکر دي هغه شوافع نه تسليموي، لکه څرنګه چې امام نووي شافعي رَحِمَهُ الله ويلي دي کوم حيوان چې په اوبو کې ژوند تېروي که هغه داسې وو چې خوړل کېدای سو نو په دې کې شک نسته چې هغه اوبه نه مرداروي او که داسې وو چې نه سو خوړل کېدلای لکه چونګښه او داسې نور نو که هغه په لږ اوبو کې يا په يو بل بهېدونکې نری شي کې هغه که لږ وو او که ډېر، مړ سو، نو هغه يې مرداروي، او د چنګاښ په باره کې يې هم دغه خبره کړې ده، نو معلومه سوه چې د امام شافعي رَحِمَهُ الله په نېز د چونګښې او چنګاښ حراموالی راجع دی.

**زموږ دليل:** دا دی چې دريابي حيوان که په اوبو کې مړ سو نو هغه خو په خپل معدن او مسکن کې مړ سو (يعني په هغه ځای کې مړ سو چې دی په هغه کې پيدا کيږي او هلته اوسيږي) او کوم حيوان چې په خپل معدن کې مړ سي نو هغه به په خپل معدن کې مردار (نجس) وي، او کوم شی چې په خپل معدن کې نجس وي نو پر هغه د نجاست حکم نه سي لګېدلی، ځکه که په خپل معدن کې پر نجاست د نجاست حکم ولګيږي نو هيڅ يو انسان نه سي پاکېدلای. ځکه چې د انسان ټولو رګونه له وينو څخه ډک دي، نو تر څو چې نجاست په خپل معدن کې وي پر هغه به د نجاست حکم نه لګيږي، لکه هغه هګۍ چې ژړ يې ويني سوی وي نو تر څو چې ويني سوي ژړ په هګۍ کې دننه وي. تر هغه وخته به هګۍ نجسه نه وي، حتی که يو څوک داسې هګۍ په جېب کې کښېږدي او لمونځ وکړي نو لمونځ يې جائز دی، د دې په خلاف که نجاست په خپل معدن کې نه وو نو پر هغه به د نجاست حکم لګيږي. لکه يو څوک چې په ښيښه (يا بوتل) کې ويني واچوي او په جيب کې يې کښېږدي، او لمونځ وکړي، نو لمونځ يې جائز نه دی. ځکه چې ښيښه د دې وينو معدن نه دی. (عنايه)

نو معلومه سوه چې دريابي حيوان که په اوبو کې مړ سو نو هغه نجس نه دی، او اوبه نه مرداريږي. ځکه چې اوبه د ده معدن دی او نجاست چې تر څه وخته په خپل معدن کې وي تر هغه وخته به هغه ته د نجاست حکم نه ورکول کيږي.

**زموږ دويم دليل:** دا دی چې نجسه او مرداره خو په اصل کې بهېدونکې وينه ده. د ويني مزاج ګرم دی او اوبه يخې دي. په دواړو کې تغاير او فرق سته، همدا وجه ده چې په کوم حيوان کې وينه وي هغه به د اوبو اوسېدونکی نه وي او کوم حيوان چې د اوبو اوسېدونکی وي په هغه کې به وينه نه وي، او د ويني پر نشتوالي بل دليل دا دی چې وينه په لمر کې تور رنګ ته اوړي (يعني توريږي) او له دې سمندري حيواناتو څخه چې کوم شي راوبهيږي هغه په لمر کې سپين رنګ ته اوړي. نو معلومه سوه چې په دې سمندري حيواناتو کې وينه نسته، او نجس شی خو وينه ده. نو کله چې په دوی کې وينه نسته نو ځکه زموږ په نېز (هم) بالاتفاق د دې حيواناتو په مرګ سره اوبه نه مرداريږي. اوبه که لږ وي، که زياتې.

وفي غير الماء الخ او که له دې دريابي حيواناتو څخه يو حيوان له اوبو څخه ملسوا په يو بل نرم او بهېدونکي شي کې مړ سو د مثال په توګه په سرکه، شيدو، څوښا او نورو کې، نو په دې کې اختلاف دی، بعضي فقهاء وايي چې له ملعې څخه ماسوا نور دريابي حيوانان دا شی مرداروي. ځکه چې ها په خپل معدن کې نه دي مړه سوي. او د بعضو خيال دا دی چې دا شی نه مرداروي، ځکه چې په دريابي حيواناتو کې وينه نه وي. حال دا چې په اصل کې وينه شی مرداروي.

مصنف د هدايې دويم قول ته ترجيح ورکړې ده فرمايي: چې چونګښه که د اوبو وي او که د وچې دواړه په دې حکم کې برابر دي، يعني د دواړو په مرګ سره اوبه نه مردارېږي.

**د برې او بحرې چونګښې په مينځ کې فرق:** د دريابي يعني د اوبو د چونګښې او د وچې مځکې د چونګښې په مينځ کې فرق دا دی چې د دريابي چونګښې د ګوتو په مينځ کې د بطې په شان نرمه پرده وي، او د وچې مځکې د چونګښې د ګوتو په مينځ کې دا پرده نه وي. (عنايه)

ومائي المعاش الخ پاته سوه دا خبره چې دريابي (سمندري) حيوان کوم حيوان ته ويل کيږي، نو مصنف د هدايې فرمايي چې په دريابي حيوان کې دوه صفتونه معتبر دي: (۱) يو دا چې د ده استوګن ځای (مسکن) به اوبه وي، (۲) دويم دا چې د ده د پيدايښت او زېږېدنې ځای به اوبه وي، يعني هګۍ او بچيان به يې په اوبو کې وي، او هغه حيوان چې د هغه استوګن ځای اوبه وي، خو د پيدايښت ځای يې اوبه نه وي نو د هغه په مرګ سره اوبه مردارېږي.

## په ماءِ مستعمل (مستعملو اوبو) سره د طهارت حاصلولو حکم

قَالَ: وَالْمَاءُ الْمُسْتَعْمَلُ لَا يُطَهِّرُ الْأَحْدَاثَ فرمايي: او استعمال سوي (کارول سوي) اوبه احداث (ناپاکياني) نه پاکوي خِلَافًا لِمَالِكٍ وَالشَّافِعِيِّ په خلاف د امام مالک او امام شافعي رَحِمَهُمَا الله هُمَا يَقُوْلَانِ: إِنَّ الطَّهُوْرَ مَا يُطَهِّرُ غَيْرَهُ مَرَّةً بَعْدَ أُخْرٰى دوی فرمايي: چې طهور هغه ته ويل کيږي چې يو شی له يوه وار وروسته بل وار هم پاک کړي (يعني طهور هغو اوبو ته ويل کيږي چې يو شی بار بار پاک کړي) كَالْقَطُوْعِ لکه قطوع (د قطوع معنیٰ ده: بار بار پرېکوونکی، نو دوی فرمايي چې لکه څرنګه په قطوع کې د بار بار معنیٰ سته، همدغه معنیٰ په طهور کې هم سته) وَقَالَ زُفَرُ رَحِمَهُ اللهُ وَهُوَ أَحَدُ قَوْلَيِ الشَّافِعِيِّ رَحِمَهُ اللهُ: إِنْ كَانَ الْمُسْتَعْمِلُ مُتَوَضِّئًا فَهُوَ طَهُوْرٌ امام زفر فرمايي (او د امام شافعي يو قول هم دا دی): چې که استعمالوونکی انسان په اوداسه وو نو بيا هغه اوبه طهور دي وَإِنْ كَانَ مُحْدِثًا فَهُوَ طَاهِرٌ غَيْرُ طَهُوْرٍ او که بې اودسه وو نو هغه اوبه طاهري دي، مُطهِّري نه دي لِأَنَّ الْعُضْوَ طَاهِرٌ حَقِيْقَةً ځکه چې اندام خو په حقيقت کې پاک دی وَبِاعْتِبَارِهٖ يَكُوْنُ الْمَاءُ نو په دې اعتبار سره به اوبه پاکې وي لٰكِنَّهٗ نَجِسٌ حُكْمًا لېکن اندام حکماً نجس دی (يعني د نجس په حکم کې دی) وَبِاعْتِبَارِهٖ يَكُوْنُ الْمَاءُ نَجِسًا او په دې اعتبار سره به اوبه ناپاکې (مرداري) وي فَقُلْنَا بِانْتِفَاءِ الطَّهُوْرِيَّةِ وَبَقَاءِ الطَّهَارَةِ نو موږ وايو چې طهوريت منتفي سو او طهارت پاته دی عَمَلًا بِالشَّبَهَيْنِ په دواړو مشابهتونو باندې د عمل کولو لپاره وَقَالَ مُحَمَّدٌ رَحِمَهُ اللهُ وَهُوَ رِوَايَةٌ عَنْ أَبِيْ حَنِيْفَةَ رَحِمَهُ اللهُ * امام محمد رَحِمَهُ الله فرمايي (او د امام اعظم رَحِمَهُ الله يو راويت هم دا دی) هُوَ طَاهِرٌ غَيْرُ طَهُوْرٍ (چې) مستعملې اوبه طاهري غير مُطهِّري دي لِأَنَّ مُلَاقَاةَ الطَّاهِرِ الطَّاهِرَ لَا تُوْجِبُ التَّنَجُّسَ ځکه چې د پاک شي سره د بل پاک شي يوځای کېدل ناپاکي نه پيدا کوي (يعني پاکې اوبه چې د پاک اندام سره ولګيږي نو په دې سره ناپاکي نه پيدا کيږي) إِلَّا أَنَّهٗ أُقِيْمَتْ بِهٖ قُرْبَةٌ خو (څرنګه چې) په دې ابو سره يو عبادت اداء سوی دی فَتَغَيَّرَتْ بِهٖ صِفَتُهٗ نو ځکه به په دې سره د

---

* القول الراجح: قول محمد رَحِمَهُ الله كذا فى رد المحتار ج:۱، ص:۱۴۷ والكفايه: ج:۱، ص:۷۵ . [القول الراجح ج:۱، ص: ۱۳]

اوبو (د پاکولو) صفت بدلیږي كَمَالِ الصَّدَقَةِ لکه د صدقې مال وَقَالَ أَبُوْحَنِيْفَةَ وَ أَبُوْيُوْسُفَ رَحِمَهُمَا اللهُ: هُوَنَجَسٌ او شیخین فرمايي چې دا مرداري دي لِقَوْلِه الطَيْلا• ځکه نبي ﷺ فرمایلي دي لَا يَبُوْلَنَّ أَحَدُكُمْ فِي الْمَاءِ الدَّائِمِ په تاسو کې دې څوک په ولاړو اوبو کې متیازې نه کوي وَلَا يَغْتَسِلَنَّ فِيْهِ مِنَ الْجَنَابَةِ او نه دې په دې کې د جنابت غسل کوي وَلِأَنَّهُ مَاءٌ أُزِيْلَتْ بِهِ النَّجَاسَةُ الْحُكْمِيَّةُ (او په دې وجه هم) چې ماءِ مستعمل داسې اوبه دي چې په هغو سره حکمي نجاست لیرې سوی دی فَيُعْتَبَرُ بِمَاءٍ نو ځکه به پر داسې اوبو قیاسیږي أُزِيْلَتْ بِهِ النَّجَاسَةُ الْحَقِيْقِيَّةُ چې په هغو سره حقیقي نجاست لیرې سوی وي ثُمَّ فِيْ رِوَايَةِ الْحَسَنِ عَنْ أَبِيْ حَنِيْفَةَ رَحِمَهُ اللهُ بيا له امام صاحب څخه د حضرتِ حسن رَحِمَهُ الله په روایت کې دا دي أَنَّهُ نَجَسٌ نَجَاسَةً غَلِيْظَةً چې (مستعملې) اوبه نجسې دي په نجاست غلیظه سره اِعْتِبَارًا بِالْمَاءِ الْمُسْتَعْمَلِ فِي النَّجَاسَةِ الْحَقِيْقِيَّةِ پر هغو مستعملو اوبو باندې په قیاسولو سره چې هغه په حقیقي مرداري کې استعمال سوي وي وَفِيْ رِوَايَةِ أَبِيْ يُوْسُفَ عَنْهُ رَحِمَهُ اللهُ او له امام صاحب څخه د امام ابو یوسف رَحِمَهُ الله روایت دا دی وَ هُوَ قَوْلُهُ او دا د امام ابو یوسف رَحِمَهُ الله قول هم دی نَجَاسَةٌ خَفِيْفَةٌ لِمَكَانِ الْاِخْتِلَافِ (چې) د اختلاف په وجه (مستعملې اوبه نجسې دي) په نجاست خفیفه سره.

**اللغات**: ﴿الْمَاءُ الْمُسْتَعْمَلُ﴾ کارول سوي اوبه (یعني استعمال سوي اوبه)، ﴿بَوْلُوْع﴾ اسم مبالغه ده، معنیٰ یې ده: ډېر پرېکونکی، په وار وار پرېکونکی، ﴿دَائِم﴾ د نصر د باب اسم فاعل دی، دَامَ يَدُوْمُ: همېشه پاته کېدل، د زوال ضد، دلته مراد ځنې ولاړې او نه بهیدلې اوبه دي.

**تشریح**: فاضل مصنف رَحِمَهُ الله د مستعملو اوبو په باره کې درې بحثه کړي دي:
(۱) د مستعملو اوبو د حکم په باره کې، (۲) د مستعملو اوبو د سبب په بیان کې، (۳) د مستعملو اوبو د وخت په بیان کې، په دې عبارت کې په تفصیلي توګه د مستعملو اوبو حکم بیانوي.

مصنف رَحِمَهُ الله د مستعملو اوبو بیان په دې وجه مخکې کړی چې مستعملې اوبه مقصود دي، حاصل د بحث دا دی چې مستعملې اوبه پر درې قسمه دي:

(۱)... اول دا چې که اوبه د پاکو شیانو د پرېوللو لپاره استعمال سي مثلاً د غلې، سابه جاتو او پاکو کالو د پرېوللو لپاره اوبه استعمال سي، نو تر استعمال وروسته بالاتفاق دا اوبه پاکې دي.

(۲)..... دویم دا چې که د حقیقي نجاست (نجاست حقیقیه) د لیرې کولو لپاره اوبه استعمال سي، لکه د استنجاء یا د مردارو کالو د پرېوللو لپاره، نو دا اوبه بالاتفاق نجسې (مرداري) دي، دا دوه مخکې قسمونه خو متفق علیه دي.

(۳)... دریم دا چې که د حکمي نجاست د لیرې کولو لپاره اوبه استعمال سي، یا د قربت او ثواب په نیت استعمال سي نو په دې کې اختلاف دی، امام مالک او امام شافعي رَحِمَهُمَا الله فرمايي چې داسې اوبه طاهر مُطهر دي یعني په خپله هم پاکې دي او بل شی هم پاکوي، امام زفر فرمايي چې که د ماءِ مطلق (مطلقو اوبو) استعمالوونکی په اوداسه وو (یعني

---

• تخریج: د دې تخریج مخکې تېر سوی.

اودس يې درلودی) او بيا يې پر دغه اودس باندې بل اودس وکړی نو دغه استعمال سوي اوبه طاهر او مُطهر دي يعني خپله هم پاکي دي او نور شيان هم پاکوي، او که بې اودسه وو نو دا استعمال سوي اوبه طاهر غير مُطهر دي، يعني خپله خو پاکي دي مګر نور شيان نه پاکوي، او همدغه قول د امام شافعي دی، امام محمد فرمايي (او د امام اعظم ابو حينفه رَحِمَهُ الله يو قول همدغه رنګه دی) چي مستعملي اوبه طاهر غير مُطهر دي.

او شيخين فرمايي چي نجسي دي، بيا د حسن بن زياد مذهب دا دی چي مستعملي اوبه نجسي دي خو په نجاست غليظه سره، دا يې له امام ابو حنيفه رَحِمَهُ الله څخه روايت کړي دي، او د امام ابو يوسف مذهب دا دی چي دا نجسي دي په نجاست خفيفه سره، او دا هم د امام صاحب رَحِمَهُ الله يو روايت دی.

**د امام مالک او امام شافعي دليل:** دا دی چي الله تعالیٰ په خپل کلام کي ماءِ مطلق(مطلقو اوبو) ته طهور ويلي دي، فرمايي: وَأَنْزَلْنَا مِنَ السَّمَاءِ مَاءً طَهُورًا (سورة الفرقان: ۴۸) او طَهُور د فَعُوْل پر ون د مبالغې صيغه ده، معنیٰ يې ده: په وار وار پاکول، لکه د قَطُوْع معنیٰ چي ده: په وار وار پرېکول، نو د طهور لفظ د دې خبر ورکوي چي اوبه تر يو وار استعمالولو وروسته دويم وار هم پاکېدل کوي، او دريم وار هم پاکېدل کوي، نو معلومه سوه چي مستعملي اوبه مُطهّر (د بل شي پاکونکي) دي او کوم شی چي مُطهّر وي هغه به طاهر خامخا وي، نو ثابته سوه چي مستعملي اوبه طاهر هم دي او مُطهّر هم دي.

**جواب:** د هند ستر عالم مولانا عبد الحي رَحِمَهُ الله په خپله شرحه کي د امام مالک او د امام شافعي د دليل يو څو جوابونه را نقل کړي دي:

(۱) اول جواب دا چي دا موږ نه منو چي فعول د مبالغې په معنیٰ سره دی، بلکي طَهُور (پر وزن د فعول) مصدر دی د طهارت په معنیٰ سره دی، لکه په حديث کي چي راځي: لا صلوٰة إلا بطهور يعني بالطهارة، او په بل حديث کي راځي: مفتاح الصلوٰة الطهور يعني الطهارة، او په آيت شريف کي راځي: وَسَقَاهُمْ رَبُّهُمْ شَرَابًا طَهُورًا (سورة الإنسان: ۲۱) يعني شَرَابًا طَاهِرًا، نحوي امامانو لکه سيبويه، خليل، مبرد، اصمعي او ابن السکيت هم د دې تصريح کړې ده، نو کله چي طهور مصدر دی نو معنیٰ يې به د وار وار پاکولو نه وي، او کله چي طهور په معنیٰ د وار وار پاکولو نه سو، نو د مستعملو اوبو مُطهّر والی هم ثابت نه سو. (۲) دويم جواب دا دی چي طهور هغه شی ته ويل کيږي چي په هغه سره طهارت حاصل سي لکه سحور هغه خوراک ته ويل کيږي چي له سهار څخه لږ مخکي وخوړل سي، نو په دې صورت کي هم طهور د اوبو پر وار وار مطهّر والي باندې دلالت نه کوي.

(۳) دريم جواب دا دی چي موږ دا منو چي د فعول وزن د مبالغې لپاره دی خو طهور له طهر لازمي څخه مشتق دی نه له طهرِ متعدي څخه، نو په دې صورت کي به د طهور معنیٰ سي: ډېر پاک، حاصل دا چي د مبالغې صيغه که له فعلِ لازم څخه اخيستل سوې وه، نو هغه به په فاعل کي د مبالغې لپاره وي او د مفعول به هيڅ تعلق ور سره نه وي. او که له فعلِ متعدي څخه اخيستل سوې وه لکه قطوع، نو په مفعول کي به مبالغه او اضافه مطلوب وي، نو په دې صورت کي هم د اوبو ښه پاکېدل خو ثابتيږي، لېکن د وار وار پاکول يې نه ثابتيږي. (سعيه)

**د امام زفر دليل:** دا دی چې د محدث(بې اودسه انسان) اندامونه خو په حقيقت کې پاک دي ځکه چې پر ښکاره اندامونو يې هيڅ نجاست نشته، لېکن د شريعت د حکم په روی سره نجس دي ځکه چې شريعت پر محدث باندې اودس فرض کړی دی، نو مستعملې اوبه په اول اعتبار سره پاکې او په دويم په اعتبار سره نجسې دي، او په دواړو باندې عمل کول اولیٰ او غوره دي په نسبت د دې ته چې پر يوه باندې عمل وکړی سي او دويم پرېښوول سي، نو موږ په دواړو صورتونو باندې د عمل کولو په وجه وايو چې مستعملې اوبه طاهر غير مُطهّر دي، يعني د اندامونو و حقيقت ته چې وګورو نو دې ته طاهر وايو، او د شريعت حکم ته چې وګورو نو غير مُطهّر ورته وايو، نو ځکه به دا مستعملې اوبه په خپله پاکې وي خو نور به نه پاکوي.

**د امام محمد د دليل حاصل:** دا دی چې اندامونه هم پاک دي او په کومو اوبو سره چې اودس کيږي هغه اوبه هم پاکې دي، او دا خبره منل سوې ده چې پاک شی که د پاک شي سره يو ځای سي نو په هغه سره ناپاکي نه پيداکيږي، لېکن څرنګه چې دلته په دې اوبو سره يو عبادت(اودس) اداء سوی دی نو ځکه دا اوبه د لوړې درجې نه سوې، او د دې په وصف کې تغير راغلی دی، لکه څرنګه چې د صدقې او زکاة مال دی ځکه مال خو په خپل ذات کې مُطهّر دی، الله تعالیٰ فرمايي: خُذْ مِنْ أَمْوَالِهِمْ صَدَقَةً تُطَهِّرُهُمْ وَتُزَكِّيهِمْ بِهَا (سورة التوبة: ١٠٣)، نو په کوم مال سره چې زکاة ادا کړی سي، شريعت هغه ته چټل او خيرن ويلي دي، همدا وجه ده چې د زکاة مال پر نبي ﷺ او د ده پر اولاد شرعًا حرام دي، نو همدا راز چې کله په اوبو سره يو قربت (عبادت) ادا سوی وي يا حدث په ليرې سوی وي نو هغه د نجاست حکميه په وجه سره خيرنيږي، او له خپلې اصلي مرتبې څخه را کښته کيږي، نو په دې وجه به دا له مُطهر والي څخه خارج وي، که څه هم پر طهارت به اوس هم پاته وي، نو ثابته سوه چې مستعملې اوبه طاهر غير مُطهّر دي، نجسې نه دي، دا خبره هم په صحت سره ثابته ده چې صحابه وو به د نبي ﷺ د مستعملو اوبو لپاره ډېر کوښښ کوی او پر مخانو به يې تېرولې، نو که مستعملې اوبه نجسې وای نو نبي ﷺ به صحابه خامخا منع کولای، لکه څرنګه چې يې ابو طيبه(ښکر لګولو والا) د خپل بدن د را ايستل سوو وينو له چيښلو څخه منع کړی وو. (عنايه)

**د شيخينو دليل:** د مستعملو اوبو پر نجسوالي(مرداروالي) باندې د شيخينو دليل دا دی چې: څرنګه نبي ﷺ په ولاړو اوبو کې له نجاست حقيقيه يعني له متيازو کولو څخه منع کړې ده، همدغه رنګه يې په ولاړو اوبو کې له نجاست حکميه يعني له غسل کولو څخه هم منع کړې ده، نو په ولاړو اوبو کې غسل کول داسې دی لکه متيازې کول، نو ثابته سوه چې څرنګه متيازې ماء راکد (ولاړې اوبه) مرداروي، همدغه رنګه يې غسل هم مرداروي، او دويم دليل يې دا دی چې مستعملې اوبه هغه دي چې په هغو سره نجاست حکميه ليرې سوی وي، نو دا پر هغه اوبو قياسيږي چې په هغو سره نجاست حقيقيه ليرې سوی وي، او په کومو اوبو چې نجاست حقيقيه ليرې سوی وي هغه ناپاکه دي، نو ځکه به مستعملې اوبه هم ناپاکه وي.

ښکاره دي وي چې امام حسن بن زياد رَحِمَهُ الله د مستعملو اوبو په نجاست غليظه کېدلو باندې په قياس سره دليل نيولی دی يعني څرنګه چې هغه اوبه کومې چې په نجاست حقيقيه کې استعمال سوې وي، د نجاست غليظه په حکم کې دي، همدا رنګه هغه مستعملې اوبه چې په نجاست حکميه کې استعمال سوې وي هغه به هم د نجاست غليظه په حکم کې وي.

او امام ابو يوسف رَحِمَهُ الله د مستعملو اوبو په نجاست خفيفه کېدلو باندې دا دليل وړاندې کوي چې د مستعملو اوبو په طهارت او نجاست کې د علماؤ اختلاف دی او د علماؤ اختلاف تخفيف پيدا کوي، نو ځکه به مستعملې اوبه هم د نجاستِ خفيفه په حکم کې وي نه د نجاست غليظه. والله اعلم.

## د ماء مستعمل په تعريف کې تر ټولو راجح قول

د مستعملو اوبو په تعريف کې چې مخکې شومره اقوال هم را نقل سول، په هغو ټولو کې ښه او راجح قول د امام محمد رَحِمَهُ الله دی، او د هغه د دليل طريقه تر ټولو قوي ده، او په دې زمانه کې د عمومِ بلوىٰ په وجه سره فتوىٰ هم د هغه پر قول ده، چې مستعملې اوبه طاهر (پاکې) دي، لېکن مُطهّر (پاکونکې) نه دي، علامه خوارزمي رَحِمَهُ الله فرمايي: قال فی المحيط: واختلفوا فی طهارة ماء المستعمل، قال محمد: رَحِمَهُ الله هو طاهر وهو رواية عن أبي حنيفة رَحِمَهُ الله وعليه الفتوىٰ. (الكفايه ج:۱، ص:۷۵)، علامه ابن الهمام رَحِمَهُ الله فرمايي: واختار المحققون من مشائخ ماوراء النهر طهارته وعليه الفتوىٰ. [القول الراجح ج:۱، ص:۱۳]

## د ماء مستعمل تعريف او سبب (او اوبه څه وخت مستعملې ګرځي)

قَالَ: وَالْمَاءُ الْمُسْتَعْمَلُ هُوَ فرمايي: او ماءِ مستعمل هغه دي مَا أُزِيلَ بِهِ حَدَثٌ چې په هغو سره يو حدث (بې اودسي) لېرې سوې وي أَوِ اسْتُعْمِلَ فِي الْبَدَنِ عَلَى وَجْهِ الْقُرْبَةِ او يا (هغه اوبه دي) چې په نيت د تقرّب (عبادت) پر بدن استعمال سوي وي قَالَ: وَهٰذَا عِنْدَ أَبِي يُوسُفَ رَحِمَهُ اللهُ صاحب د هدايې فرمايي: چې دا د امام ابو يوسف په نېز دی وَ قِيلَ هُوَ قَوْلُ● أَبِي حَنِيفَةَ رَحِمَهُ اللهُ أَيْضًا او ويل سوي دي: چې دا د امام صاحب قول هم دی وَقَالَ مُحَمَّدٌ رَحِمَهُ اللهُ: لَا يَصِيرُ مُسْتَعْمَلًا او امام محمد فرمايي: چې دا (اوبه) مستعملې نه ګرځي إِلَّا بِإِقَامَةِ الْقُرْبَةِ مګر د قربت (عبادت) په ادا کولو سره (يعني د قربت له اداء کولو څخه بغير اوبه نه مستعملې کيږي) لِأَنَّ الْإِسْتِعْمَالَ بِانْتِقَالِ نَجَاسَةِ الْآثَامِ إِلَيْهِ ځکه چې اوبه په دې وجه مستعملېږي چې د ګناهونو نجاست د اوبو و طرف ته منتقل سي وَإِنَّهَا تُزَالُ بِالْقُرْبَةِ او دا نجاست صرف په عبادت (اداء کولو) سره لېرې کيږي وَ أَبُويُوسُفَ رَحِمَهُ اللهُ يَقُولُ إِسْقَاطُ الْفَرْضِ مُؤَثِّرٌ أَيْضًا او امام ابو يوسف فرمايي چې فرض ساقطول هم (د اوبو په مستعملولو کې) مؤثر دي فَيَثْبُتُ الْفَسَادُ بِالْأَمْرَيْنِ نو فساد به په دواړو خبرو سره ثابتيږي وَ مَتَى يَصِيرُ الْمَاءُ مُسْتَعْمَلًا او اوبه کله مستعملې ګرځي؟ اَلصَّحِيحُ أَنَّهُ كَمَا زَايَلَ الْعُضْوَ نو (په دې باره کې) صحيح خبره دا ده چې کله له اندام څخه جلاسي صَارَ مُسْتَعْمَلًا نو مستعملې ګرځي لِأَنَّ سُقُوطَ حُكْمِ الْإِسْتِعْمَالِ قَبْلَ الْإِنْفِصَالِ لِلضَّرُورَةِ ځکه چې (له اندام څخه) تر جلا کېدلو مخکې د استعمال حکم ساقطېدل د ضرورت (اړتيا) په وجه دی وَلَا ضَرُورَةَ بَعْدَهُ او تر جلا کېدلو وروسته هيڅ ضرورت نسته.

● القول الراجح: قول الشيخين كذا في تبيين الحقائق ج:۱، ص:۲۳ والهندية ج:۱، ص:۲۲ [القول الراجح ج:۱، ص:۱۲]

**اللغات:** ﴿قُربَة﴾ نېکي، عبادت، ثواب، هغه شی یا کار چي د هغه په وجه د الله ﷻ نژدېکت حاصلیږي، ﴿آثام﴾ جمع ده، واحد يې إثم دی: ګناه. ﴿إنفصال﴾ د باب إنفعال مصدر دی: جلا کېدل.

**تشریح:** په دې عبارت کي د مستعملو اوبو د حقیقت او سبب په باره کي بیان سوی دی، نو د شیخینو په نېز د اوبو د مستعملېدلو سبب دوه شیان دي: (١) حدث لیري کول. (٢) د قربت او ثواب نیت کول. که دا دواړه شیان پیدا سي، یا په دواړو کي یو پیدا سي، په دواړو صورتونو کي اوبه مستعملي ګرځي، او د امام محمد رَحِمَهُ الله په نېز د مستعملو اوبو سبب فقط نیت دی، او د امام زفر او امام شافعي په نېز د اوبو د مستعملېدلو سبب فقط حدث لیري کول دي، نو که یوه محدث (بې اودسه سړی) د ثواب او قربت په نیت سره اودس وکړی نو په اتفاق سره اوبه مستعملي ګرځي، او که اودس لرونکی سړی د یخوالي حاصلولو (یا تازګی) لپاره اودس وکړی نو په اتفاق سره اوبه مستعملي نه ګرځي، او که محدث (بې اودسه سړي) د یخوالي د حاصلولو لپاره اودس وکړی، نو د شیخینو او امام زفر په نېز اوبه مستعملي ګرځي، او د امام محمد او امام شافعي په نېز مستعملي نه ګرځي، د امام محمد په نېز خو ځکه چي د قربت او عبادت اراده نسته، او د امام شافعي په نېز ځکه چي بې له نیته حدث نه لیري کیږي، او که یو اودس لرونکی سړی د قربت او عبادت په نیت سره اودس وکړي نو د امام ابو حنیفه، امام ابو یوسف، او امام محمد رَحِمَهُمُ الله په نېز اوبه مستعملي ګرځي، او د امام زفر او امام شافعي رَحِمَهُمَا الله په نېز مستعملي نه ګرځي. (عنایه)

**د امام محمد دلیل:** دا دی چي اوبه ځکه مستعملي ګرځي چي د ګناهونو نجاست د اوبو وطرف ته منتقل سي، او دا نجاست صرف د عبادت او ثواب په نیت سره لیري کیږي، نو معلومه سوه چي اوبه د ثواب له نیت څخه بغیر نه مستعملیږي.

**د امام ابو یوسف دلیل:** امام ابو یوسف فرمایي چي فرض ساقطول یعني حدث (بې اودسي) لیري کول هم مؤثر دي، مطلب دا چي د امام صاحب او امام ابو یوسف په نېز د اوبو صفت هغه وخت بدلیږي چي کله نجاست حکمیه له خپل محل څخه لیري سي او د اوبو وطرف ته منتقل سي، او نجاست حکمیه په دواړو صورتونو کي د اوبو وطرف ته منتقل کیږي، یعني د حدث لیري کولو په وخت کي هم، او د ثواب د نیت په وخت کي هم، نو ځکه به د اوبو فساد یعني د اوبو استعمال له د دواړو خبرو څخه ثابتیږي.

**اوبه کله مستعملي ګرځي؟:** صاحب د هدایې له ومتی یصیر الماء مستعملا...الخ څخه په همدې باره کي بیان کوي، د عبارت حاصل دا دی چي أحناف خو پر دې خبره متفق دي چي تر څو چي اوبه پر اندام وي تر هغه وخته پر اوبو د استعمال حکم نه پر لګیږي، لېکن کله چي له اندام څخه جلا سي، او تر اوسه لا په یو ځای یا لوښي کي درېدلي نه وي، نو د دی په استعمال کي اختلاف دی، سفیان ثوري، ابراهیم نخعي او بعضي نورو مشائخو ویلي دي چي په دې وخت کي هم مستعملي نه ګرځي، تر څو چي په یو ځای کي درېدلي نه وي، او احناف وایي چي څرنګه له بدن څخه جلا سي، نو مستعملي ګرځي، او په یو ځای کي جمع کېدل شرط نه دي، معتمد قول د احنافو دی.

د معتمد قول دلیل دا دی چي کله اودس کونکي په اوبو سره خپل یو اندام پرېولی نو په ښکاره هغه مستعملي سوې، لېکن له اندام څخه تر جلا کېدلو مخکي به په دې وجه و دې ته مستعملي نه ویل کیږي چي اودس کول یو ضرورت دی، او د اودس په دوران کي پر اندام باندي د اوبو لګېدل هم ضروري دي، نو ځکه د دغه ضرورت پر بنیاد تر جلا کېدلو مخکي و دې ته مستعملي نه ویل کیږي، خو کله چي اوبه له اندام څخه را جلا سي نو پر دې به د مستعمل والي مُهر لګیږي، ځکه چي تر جلا کېدلو وروسته د دې هیڅ ضرورت نسته.

## جنب سړی چې په ځاه (يا تالاب) کې د سولاغې راکښلو لپاره غوټه ووهي نو څه حکم دی؟

وَالْجُنُبُ إِذَا انْغَمَسَ فِي الْبِئْرِ لِطَلَبِ الدَّلْوِ او که جُنُب سړی د سولاغې راکښلو لپاره په ځاه کې غوټه ووهل فَعِنْدَ أَبِي يُوسُفَ رَحِمَهُ اللهُ الرَّجُلُ بِحَالِهِ نو د امام ابو يوسف رَحِمَهُ الله په نيز دا سړی پر خپل حال پاتـه دی (يعني هغـسي جنب دی ځرنګه چې مخکې وو) لِعَدَمِ الصَّبِّ ځکه (پر ده باندې د اوبو) بهېدل نه راغله (يعني ده پر ځان اوبه نه وبيولې) وَهُوَ شَرْطٌ عِنْدَهُ لِإِسْقَاطِ الْفَرْضِ حال دا چې د امام ابو يوسف رَحِمَهُ الله په نيز د فرضو د ساقطولو لپاره (پر ځان د اوبو بيول) شرط دي وَ الْمَاءُ بِحَالِهِ او اوبه هم پر خپل حال پاته دي (يعني پاکې دي) لِعَدَمِ الْأَمْرَيْنِ ځکه چې (بيـول او نيت) دواړه نسته وَ عِنْدَ مُحَمَّدٍ رَحِمَهُ اللهُ كِلَاهُمَا طَاهِرَانِ او د امام محمد رَحِمَهُ الله په نيز دواړه پاک دي الرَّجُلُ لِعَدَمِ اشْتِرَاطِ الصَّبِّ انسان خو په دې وجه (پاک دی) چې (د ده په نيز) اوبه بيول شرط نه دي وَالْمَاءُ لِعَدَمِ نِيَّةِ الْقُرْبَةِ او اوبه د قربت (عبادت) د نيت د نشتوالي په وجه (پاکې دي) وعِنْدَ أَبِي حَنِيفَةَ رَحِمَهُ اللهُ● كِلَاهُمَا نَجِسَانِ او د امام ابو حنيفه رَحِمَهُ الله په نيز (سړی او اوبه) دواړه مردار دي الْمَاءُ لِإِسْقَاطِ الْفَرْضِ عَنِ الْبَعْضِ بِأَوَّلِ الْمُلَاقَاةِ اوبه په دې وجه (مرداري دي) چې په اول ملاقات (اتصال) سره له بعضې اندامونو څخه فرض ساقط سو وَالرَّجُلُ لِبَقَاءِ الْحَدَثِ فِي بَقِيَّةِ الْأَعْضَاءِ او سړی ځکه (ناپاک دی) چې د ده په باقي اندامونو کې (تر اوسه لا څه) حدث پاته دی وَقِيلَ عِنْدَهُ نَجَاسَةُ الرَّجُلِ بِنَجَاسَةِ الْمَاءِ الْمُسْتَعْمَلِ او ويل سوي دي چې د امام صاحب رَحِمَهُ الله په نيز د سړي نجاست د مستعملو اوبو د نجاست په وجه دی وَ عَنْهُ أَنَّ الرَّجُلَ طَاهِرٌ او له امام صاحب رَحِمَهُ الله څخه يو روايت دا (هم) دی چې سړی پاک دی لِأَنَّ الْمَاءَ لَا يُعْطَى لَهُ حُكْمُ الْاِسْتِعْمَالِ قَبْلَ الْاِنْفِصَالِ ځکه چې تر جلا کېدلو مخکې اوبو ته د استعمال حکم نه سي ورکول کېدلای وَهُوَ أَوْفَقُ الرِّوَايَاتِ عَنْهُ او د امام صاحب له ټولو روايتونو څخه دا روايت (د فقهي سره) زيات موافق دی.

**اللغات**: ﴿اِنْغَمَسَ﴾ د إنفعال له باب څخه د ماضي صيغه ده: غوټه وهل، ډوبېدل. ﴿صَبّ﴾ د نصَرَ له باب څخه مصدر دی صَبَّ يَصُبُّ: بيول (بهول).

**تشريح**: د الجنب څخه مراد هغه جُنُب سړی دی چې پر بدن يې هيڅ حقيقي نجاست نه وي، او د ځاه څخه مراد هغه ځاه (يا تالاب) دی چې د لس تر لسه څخه کم وي.

**صورت د مسئلې**: دا دی چې که يو جنب سړي د سولاغې را ايستلو لپاره يا د يخوالي حاصلولو لپاره په ځاه کې غوټه ووهل، خو پر بدن يې اوبه نه وبهېلې، نو د امام ابو يوسف رَحِمَهُ الله قول دا دی چې اوس هم دا جنب سړی پر خپل مخکني حال پاته دی يعني هغسي جنب دی او اوبه هم پر خپل مخکني حال پاته دي يعني هغسي پاکې دي، او په غوټه وهلو سره نه په سړي کې طهارت راغلی دی او نه په اوبو کې نجاست راغلی دی، د امام محمد رَحِمَهُ الله په نيز سړی هم پاک دی

---

● القول الراجح: قول أبي حنيفه رَحِمَهُ الله يعني الرواية الأخيرة، قال العلامة ابن الهمام رَحِمَهُ الله: وعنه أن الرجل طاهر وهذه الرواية هي صحيحة كذا في فتح القدير ج:۱، ص:۸۰ و رد المحتار ج:۱، ص:۱۴۸ [القول الراجح ج:۱، ص:۱۶]

او اوبه هم پاکي دي، او له امام صاحب څخه په دې باره کي دوه روايتونه را نقل شوي دي: (۱) سړی او اوبه دواړه ناپاکه دي، (۲) سړی پاک دی، اوبه ناپاکه دي.

**د امام ابو يوسف دليل:** دا دی چي پرېدل اوبه بيول د فرضو د ساقطولو لپاره شرط دي او هغه دلته نسته، نو ځکه د جنب سړي فرض ساقط نه سو او کله چي فرض ساقط نه سو نو سړی پر هغه خپل جنابت پاته سو، او اوبه ځکه پاکي دي چي د امام ابو يوسف رَحِمَهُ الله په نېز د ابو د مستعملېدلو لپاره دوه سببونه دي: (۱) حدث ليري کول، (۲) د قربت او ثواب نيت کول، نو څرنګه چي دلته دواړه سببونه نسته، نو ځکه به اوبه مستعملي نه وي بلکي پر خپل مخکني حال به پاکي پاته وي.

**د امام محمد دليل:** دا دی چي اوبه بيول د فرضو د ساقطولو لپاره شرط نه دي، نو بغير له اوبو بيولو فقط په غوټه وهلو سره د ده جنابت ساقط سو، او دی پاک سو، او اوبه په دې وجه پاکي دي چي ده د قربت او ثواب نيت کړی نه دي، حال دا چي د امام محمد رَحِمَهُ الله په نېز د اوبو د مستعملېدلو لپاره د قربت نيت کول شرط دي، د قربت له نيته بغير د ده په نېز اوبه نه مستعملېږي.

**د امام ابو حنيفه دليل:** دا دی چي اوبه خو په دې وجه ناپاکه دي چي کله د دې جنب سړي بعضي اندامونه د اوبو سره ولګېدل نو له هغه بعضي اندامونو څخه فرض ساقط سو، او د هغه په وجه اوبه مستعملي سوې که څه هم د ده نيت نه وو، ځکه چي د فرضي غسل د ساقطولو لپاره نيت شرط نه دی، او سړی ځکه ناپاکه دی چي تر اوسه يې لا په بعضي اندامونو کي حدث پاته دی، ځکه چي باقي اندامونه په ناپاکه اوبو سره پاک نه سول، او يو قول دا هم دی چي سړی ځکه ناپاکه دی چي د امام صاحب په نېز د فرضو د ساقطولو لپاره نيت شرط نه دی نو فرض غسل خو له نيت څخه بغير ساقط سو، لېکن د مستعملو اوبو په وجه د ده بدن ناپاکه سو، د دې قول پر بناء خو د ده لپاره د قرآن قرائت کول جائز دي خو لمونځ نه سي کولی.

او د امام صاحب رَحِمَهُ الله يو روايت دا دی چي سړی پاک سو ځکه چي له بدن څخه تر جلا کېدلو مخکي پر اوبو د مستعملېدلو حکم نه سي لګېدلای، لېکن کله چي دا سړی له اوبو څخه جلا سو نو هلته بيا دا اوبه مستعملي و ګرځېدلې، او وروسته تر دې سړی بيا په دې مستعملو اوبو غوټه نه سو، نو په دې وجه دا سړی پاک دی، او اوبه ناپاکه دي.

صاحب د هدايې فرمايي چي دا روايت د امام صاحب رَحِمَهُ الله د أصولو سره زيات مناسبت لري، نو ځکه به دا روايت راجح وي.

**راجح قول:** په پورتنۍ مسئله کي د امام صاحب آخري قول راجح دی يعني دا چي سړی پاک دی، او اوبه ناپاکه دي،

علامه شبلي رَحِمَهُ الله د تبيين الحقائق په حاشيه کي وايي: (قوله وهو أوفق الروايات) أي القياس. وقال الكافي أي أسهل. وفي شرح المجمع وهذه الرواية صحيحة. [القول الراجح ج۱، ص:۱۶]

## په دباغت سره پوست (څرمن) پاکېږي، که نه؟ او له پوست څخه مَسَـله (مُصلیٰ) جوړول

قال: **وَكُلُّ إِهَابٍ دُبِغَ فَقَدْ طَهُرَ** فرمايي او هره څرمن (پوست) چي رنګ کړل سي (يعني پخه کړل سي) نو هغه پاکه سوه **وَجَازَتِ الصَّلَاةُ فِيهِ** او پر دغه رنګ سوي څرمن لمونځ جائز دی **وَالْوُضُوءُ مِنْهُ** او له دې څخه اودس (هم جائز دی) **إِلَّا جِلْدُ الْخِنْزِيرِ وَالْآدَمِيِّ** ما سوا د خنزير او د انسان له څرمني څخه **لِقَوْلِهِ عَلَيْهِ السَّلَامُ** ځکه نبي ﷺ فرمايلي دي **أَيُّمَا إِهَابٍ● دُبِغَ فَقَدْ طَهُرَ** کومي څرمني ته چي رنګ ورکړل سي هغه پاکه سوه **وَهُوَ بِعُمُومِهِ حُجَّةٌ عَلَى مَالِكٍ رَحِمَهُ اللهُ فِي جِلْدِ الْمَيْتَةِ** او

● تخريج: أخرجه الترمذي في كتاب اللباس باب ما جاء في جلود الميتة إذا دُبغت، حديث رقم:۱۷۲۸، والنسائي في كتاب الفرع والعتيرة، باب جلود الميتة حديث رقم:۴۲۳۶.

دا (حديث) د خپل عموم په وجه د مردار حيوان د څرمني په باره کي د امام مالک رَحِمَهُ الله په خلاف حجت دی وَلَا يُعَارِضُ بِالنَّهْيِ الْوَارِدِ عَنِ الْإِنْتِفَاعِ مِنَ الْمَيْتَةِ او له مردار حيوان څخه چي د نفعي حاصلولو (په باره کي) کوم د منعي حديث راغلی دي هغه د پورتني حديث معارض نه دی وَهُوَ قَوْلُهُ عَلَيْهِ السَّلَامُ او هغه د نبي ﷺ دا قول دی لَا تَنْتَفِعُوْا مِنَ الْمَيْتَةِ بِإِهَابٍ د مردار حيوان له څرمني څخه فايده مه اخلئ لِأَنَّهُ اِسْمٌ لِغَيْرِ الْمَدْبُوْغِ ځکه چي إهاب د هغه څرمني نوم دی چي دباغت ورکول سوی نه وي وَحُجَّةٌ عَلَى الشَّافِعِيِّ رَحِمَهُ اللهُ فِيْ جِلْدِ الْكَلْبِ او (ذکر سوی حديث) د سپي د څرمني په باره کي د امام شافعي رَحِمَهُ الله په خلاف حجت دی وَلَيْسَ الْكَلْبُ بِنَجِسِ الْعَيْنِ حال دا چي سپی نجسُ العين (هم) نه دی أَلَا تَرَىٰ أَنَّهُ يُنْتَفَعُ بِهِ حِرَاسَةً وَإِصْطِيَادًا آيا ته نه ګوري چي له سپي څخه د پېره داری (څوکېداری) او ښکار کار اخيستل کېږي بِخِلَافِ الْخِنْزِيْرِ په خلاف د خنزير لِأَنَّهُ نَجِسُ الْعَيْنِ ځکه خنزير نجس العين دی إِذِ الْهَاءُ فِيْ قَوْلِهِ تَعَالَىٰ: فَإِنَّهُ رِجْسٌ [سورة الانعام: ۱۴۵] مُنْصَرِفٌ إِلَيْهِ ځکه چي د الله تعالیٰ په دې قول فَإِنَّه رِجْسٌ کي د هاء ضمير وخنزير ته راجع دی لِقُرْبِهِ د نږدېکت په وجه (يعني ځکه چي خنزير د هاء و ضمير ته نږدې) وَحُرْمَةُ الْإِنْتِفَاعِ بِأَجْزَاءِ الْآدَمِيِّ لِكَرَامَتِهِ او د انسان له اجزاوو څخه د نفعي اخيستلو حرمت د هغه د کرامت (بزرګی) په وجه دی فَخَرَجَا عَمَّا رَوَيْنَا نو دا دواړه (څرمني) زموږ له بيان سوي روايت څخه ووتلې ثُمَّ مَا يَمْنَعُ النَّتْنَ وَالْفَسَادَ فَهُوَ دِبَاغٌ بيا چي کوم شی (هم د څرمني) بدبويي او خرابېدل ختموي نو هغه دباغت دی وَإِنْ كَانَ تَشْمِيْسًا که څه هم هغه په لمر کي وچول وي أَوْ تَتْرِيْبًا يا په خاورو لړل وي لِأَنَّ الْمَقْصُوْدَ يَحْصُلُ بِهِ ځکه چي په دې سره (هم) مقصود حاصلېږي فَلَا مَعْنَىٰ لِاشْتِرَاطِ غَيْرِهِ نو د بل شي د شرط لګولو هيڅ فايده نسته ثُمَّ مَا يَطْهُرُ جِلْدُهُ بِالدِّبَاغِ يَطْهُرُ بِالذَّكَاةِ بيا چي د کوم حيوان څرمن په دباغت سره پاکيږي، (د هغه څرمن) په ذبح کولو (حلالولو) سره هم پاکيږي لِأَنَّهَا تَعْمَلُ عَمَلَ الدِّبَاغِ فِيْ إِزَالَةِ الرُّطُوْبَةِ النَّجِسَةِ ځکه چي د مردارو رطوباتو په لېري کولو کي ذبح کول (هم) د دباغت کار کوي وَكَذٰلِكَ يَطْهُرُ لَحْمُهُ او دغه رول په ذبح کولو سره د هغه حيوان غوښي هم پاکيږي هُوَ الصَّحِيْحُ او همدا مذهب صحيح دی وَإِنْ لَمْ يَكُنْ مَأْكُوْلًا که څه هغه حيوان داسي نه وي چي غوښي يې خوړل کيږي.

**اللغات:** ﴿إِهَاب﴾ د يو حيوان لنده څرمن (پوست)، هغه پوست چي وچ کړی سوی نه وي. ﴿دُبِغَ﴾ د مجهول صيغه ده: پوست پخول، رنګ ورکول. ﴿حِرَاسَة﴾ پېره داري (څوکيداري)، ﴿إِصْطِيَاد﴾ د افتعال د باب مصدر دی: ښکار کول، ﴿نَتْن﴾ بدبويي، تعفّن (بوېناکه کېدنه) ﴿تَشْمِيْس﴾ د تفعيل د باب مصدر دی: په لمر کي وچول، لمر ته

● تخريج: أخرجه أبو داؤد في كتاب اللباس، باب روى ان لايستنفع بإهاب الميتة، حديث رقم: ۴۱۲۷، والنسائي في كتاب الفرع والعشورة، باب مايدبغ به جلود الميتة، حديث رقم: ۴۲۵۶.

اچول. ﴿تَتْرِيب﴾ د تفعيل د باب مصدر دی: په خاورو لړل، خاورې پر اچول. ﴿الذَّكَاة﴾ ذبح کول(سر ور پرېکول، حلالول).

**تشريح**: د عبارت تر وضاحت مخکې په لنډه توګه دا خبره په ذهن کې ونيسه چې د رنګ ورکړل سوي (يعني مدبوغ) پوست(څرمن) نوم جلا دی او د اُوم(کچه) پوست نوم جلا دی، همدا رنګه د دوی احکام هم جلا دي، نو په عربي کې د اُوم او غيرِمدبوغ پوست لپاره د إهاب لفظ استعمالېږي، او د مدبوغ او رنګ ورکړل سوي پوست لپاره د أديم يا أدم نوم استعمالېږي (بنايه ج:۱، ص:۳۵۹)، همدا رنګه له انسان او خنزير څخه ماسوا پر هر ډول رنګ ورکړل سوي(مدبوغ) پوست باندې لمونځ کول، يا اغوستل جائز دي، همدارنګه له دې پوست څخه ژی جوړول او له هغه څخه اودس کول هم جائز دي، د دې په خلاف پر اوم او غيرِمدبوغ پوست باندې نه لمونځ جائز دی او نه له هغه ژي څخه چې له اُوم پوست څخه جوړ کړی سوی وي اودس جائز دی. (اوس د عبارت حل ته ګورئ).

**صورت د مسئلې**: دا دی چې زموږ په نېز له خنزير او انسان څخه ماسوا د هر حيوان پوست(څرمن) په رنګ ورکولو سره يا د پوډرو او نورو شيانو په ذريعه د بدبويي او رطوبت په ليري کولو سره هغه پاکېږي، همدارنګه د هغه اغوستل يا لمونځ پر کول يا ژی ځني جوړول او له هغه څخه اودس کول صحيح او جائز دي، او په دې باره کې دليل د نبي ﷺ دا فرمان دی: أيما إهاب دبغ فقد طهر يعني هر ډول پوست په دباغت ورکولو سره پاکېږي، دا حديث عام دی او د خپل عموم په اعتبار سره د امام مالک رَحِمَهُ الله او د امام شافعي رَحِمَهُ الله په خلاف حجت دی، د امام مالک رَحِمَهُ الله په خلاف ځکه حجت دی چې امام مالک رَحِمَهُ الله د مرداري پوست تر دباغت ورکولو وروسته هم ناپاکه بولي.

**د امام مالک دليل**: امام مالک رَحِمَهُ الله د خپل قول په تائيد کې د نبي ﷺ هغه فرمان را نقل کوي چې دوی ﷺ له خپل وفات څخه يوه مياشت مخکې د جهينة قوم ته ليکلی وو چې د هغه مضمون دا وو: لا تنتفعوا من الميتة بإهاب ولا عصب، (چې د مرداري له پوست او پلو څخه فايده مه اخلئ)، له دې فرمان څخه خو همدا معلومېږي چې د مرداري پوست ناپاکه دی، ځکه که هغه پاک وای نو له دې څخه به د فايدې اخيستلو منع نه کېدلای.

**جواب**: زموږ له طرفه د امام مالک رَحِمَهُ الله له وړاندې سوي روايت څخه دا جواب ورکول کېږي چې دا حکم د إهاب په باره کې دی (يعني د هغه پوست په باره کې دی چې رنګ ورکړل سوی نه وي)، او زموږ کلام د أديم(رنګ ورکړل سوي پوست) په باره کې دی، نو زموږ د مذهب او روايت په مېنځ کې هيڅ تعارض نسته. او زموږ بيان سوی حديث د امام شافعي رَحِمَهُ الله په خلاف ځکه حجت دی چې د امام شافعي رَحِمَهُ الله په نېز د سپي پوست تر دباغت وروسته هم ناپاکه پاتېږي.

**د امام شافعي دليل**: قياس دی يعني سپی پر خنزير قياسوي، يعني څرنګه چې د خنزير پوست په دباغت سره نه پاکېږي، همدغه رنګه د سپي پوست هم په دباغت سره نه پاکېږي.

**جواب**: زموږ له طرفه د امام شافعي رَحِمَهُ الله د قياس جواب دا دی چې ستا قياس صحيح نه دی، ځکه چې خنزير نجس العين دی، او د صحيح قول مطابق سپی نجس العين نه دی، ځکه چې هغه د څوکيدارۍ، ښکار او د داسې نورو فايدو په خاطر ساتل کېږي، که سپی نجس العين وای نو د خنزير په ډول به له هغه څخه د هر ډول انتفاع(فايدې اخيستلو) منع کېدلای، د دې په خلاف د خنزير نجس العين کېدل خو په قرآن کې راغلي دي: قُل لَّا أَجِدُ فِي مَا أُوحِيَ إِلَيَّ مُحَرَّمًا عَلَىٰ طَاعِمٍ

يطعمه إلا أن يكون ميتة أو دما مسفوحا أو لحم خنزير فإنه رجس (سورة الأنعام:١٤٥)، (يعني اې نبي (ﷺ) ووايه(دوی ته) چي نه وينم زه په هغه شی کي چي وحي کړل سوي دي ماته (تر اوسه پوري) (يو شی) حرام کړی سوی د يو خوړونکي (لپاره) مګر که وي دا شی مرداره يا وينه بهېدونکې يا غوښه د خنزير نو بېشکه دغه خنزير پليت دی) [تفسير کابلي، ج:١، ص:٨٢٢] له دې آيت څخه دليل په دې توګه نيول کيږي چي په فإنه کي ضمير د "ه" د خنزير و طرف ته راجع دی، ځکه چي هغه و ضمير ته نژدې دی، او د آيت د آخري جزء مفهوم دا دی چي خنزير بالکل ناپاک او نجس دی، نو چي کله خنزير نجس دی، نو سپی کوم چي نجس العين نه دی پر خنزير قياسول قياس مع الفارق دی.

په هر حال دا خبره تسليم سوې ده چي د خنزير او د انسان له پوست څخه ماسوا هر پوست تر دباغت ورکولو وروسته پاکيږي، او که څه هم د أيما إهاب دبغ...الخ عموم تر دباغت وروسته د خنزير او د انسان د پوست د پاکوالي تقاضا کوي، مګر بيا هم دا دواړه پوستونه له دې عموم څخه خارج او مستثنیٰ دي، ځکه چي خنزير د خپل نجاست او خباثت په وجه نجس دی، او انسان د خپل شرافت او کرامت په وجه د احترام هغه مقام ته رسېدلی دی چي له هيڅ يو جزء څخه يې فايده اخيستل صحيح نه دي، قرآن کريم د انسان کرامت په دې الفاظو سره اعلان کړی دی: ولقد كرمنا بني آدم (سورة الإسراء:٧٠)، نو ځکه به دا دواړه د أيما إهاب له عموم څخه مستثنیٰ وي، ليکن په پاته شيانو کي به د دې عموم باقي او پر خپل ځای وي.

(صاحب د فتح القدير) بغير له أيما إهاب دبغ...الخ څخه نور هم ډېر حديثونه د مدبوغ پوست د پاکوالي په باره کي ذکر کړي دي، د دار قطني په حواله سره يې د حضرت عائشې رضي الله عنها دا روايت بيان کړی دی: قال رسول الله ﷺ استمتعوا بجلود الميتة إذا هي دبغت...الخ، يعني که د مرداري پوست ته دباغت ورکړل سو نو له هغه څخه فايده حاصله کړئ، همدغه رنګه له أم سلمه رضي الله عنها څخه روايت سوی دی چي نبي ﷺ وفرمايل: لابأس بمسك الميتة إذا دبغ، يعني که د مرداري پوست ته دباغت ورکړل سي نو د هغه استعمالول هيڅ پروا نه لري. (فتح القدير ج:١، ص:١٠١)

ثم ما يمنع الخ له دې ځايه صاحب د هدايې د دباغت تعريف بيانوي، حاصل يې دا دی چي هر هغه شی کوم چي د پوست (څرمني) بدبويي ليري کړي او څرمن له خرابوالي او وروستوالي څخه وساتي نو د هغه نوم دباغت دی، هغه که دا کار د مالګي په ذريعه وکړی سي، يا د خاورو په ذريعه وکړی سي، يا د لمر په ذريعه وکړی سي، ځکه مقصود خو په اصل کي د دا دی چي د پوست بدبويي ختمه سي، او هغه له خرابوالي او روستوالي څخه خوندي سي، نو ځکه به نظر صرف پر مقصود وي او د يو بل شي شرط به نه اينبوول کيږي.

ثم ما يطهر الخ د دې عبارت حاصل دا دی چي د کوم حيوان پوست په دباغت سره پاکيږي، د هغه پوست په ذبح کولو سره هم پاکيږي، ليکن په ذبح کي شرط دا دی چي داسي سړي به ذبح کړی وي چي هغه د ذبحي أهل وي، لو د ده ذبيحه به حلاله هم وي، په ذبح سره د پوست د پاکوالي دليل دا دی چي څرنګه په دباغت سره نجس او مردار رطوبتونه ختميږي همدغه رنګه په ذبح سره هم دا رطوبتونه ختميږي، او پر مقصود د طهارت حکم لګيږي، نو ځکه مونږ دلته هم په ذبح شرعي سره د پوست د طهارت حکم ولګوی.

دان لم يكن مأكولا الخ په ذبح کي د پوست د پاکوالي بلاوجود يوه بله غټه فايده دا هم سته چي په ذبحي سره د حيوان غوښي هم حلاليږي، بلکي فقهاؤ خو تر دې پوري ليکلي دي چي له وينو څخه ماسوا يې نور ټول شيان پاکيږي،

بيا برابره ده که هغه داسي حيوان وي چي غوښې يې خوړل کيږي، يا داسي حيوان وي چي غوښې يې نه خوړل کيږي، خو په هر حال غوښې يې پاکيږي، همدا وجه ده که داسي حيوان ذبح کړی سي چي غوښې يې نه خوړل کيږي، او بيا دا غوښې يو سړی په خپل جېب کي د ځان سره کښېږدي، او لمونځ ور سره وکړي نو بې له شکه د هغه لمونځ صحيح کيږي.

## د مرداري وړښته او هډوکي پاک دي، که نه؟ (په دې باره کي د فقهاؤ قولونه او دليلونه)

قَالَ: وَشَعْرُ الْمَيْتَةِ وَعَظْمُهَا طَاهِرٌ فرمايي: او د مردار حيوان وړښته او هډوکي پاک دي وَ قَالَ الشَّافِعِيُّ رَحِمَهُ اللهُ: نَجَسٌ امام شافعي فرمايي: چي (دواړه) نجس دي لِأَنَّه مِنْ أَجْزَاءِ الْمَيْتَةِ ځکه چي دا د مرداري اجزاء دي وَلَنَا أَنَّهُ لَا حَيَاةَ فِيهِمَا او زموږ دليل دا دی چي په دې دواړو (يعني وړښته او هډوکو) کي ژوند نه وي وَلِهٰذَا لَا يَتَأَلَّمُ بِقَطْعِهِمَا (همدا وجه ده) چي د دې په پرېکولو سره حيوان درد(او تکليف) نه محسوسوي فَلَا يَحُلُّهُمَا الْمَوْتُ نو په دوی کي به مرګ هم اثر نه کوي إِذِ الْمَوْتُ زَوَالُ الْحَيَاةِ ځکه چي مرګ خو د ژوند ختمېدلو ته ويل کيږي وَ شَعْرُ الْإِنْسَانِ وَعَظْمُهُ طَاهِرٌ او د انسان وړښته او هډوکي پاک دي وَقَالَ الشَّافِعِيُّ: نَجَسٌ او امام شافعي فرمايي: چي نجس دي لِأَنَّه لَا يُنْتَفَعُ بِهِ ځکه چي په دې سره فايده نه اخيستل کيږي وَلَا يَجُوزُ بَيْعُه او نه يې خرڅلاو جائز دی وَلَنَا أَنَّ عَدَمَ الْإِنْتِفَاعِ وَالْبَيْعِ لِكَرَامَتِهِ او زموږ دليل دا دی چي د انتفاع او خرڅلاو ممانعت د انسان د کرامت(او تعظيم) په وجه دی فَلَا يَدُلُّ عَلَى نَجَاسَتِهِ نو دا(ممانعت) به د دوی پر نجاست دلالت نه کوي.

**اللغات:** ﴿عظم﴾ هډوکی، ﴿يحل﴾ د نصر د باب مضارع صيغه ده: داخلېدل، حلول کول، يو ځای ته ننوتل.

**تشريح:** صورت د مسئلې: دا دی چي زموږ په نېز د مردار حيوان وړښته، هډوکي همدارنګه ښکر، نوکان او ښونګري او داسي نور ټوله پاک دي، لېکن امام شافعي رَحِمَهُ الله فرمايي چي دا شيان ناپاکه(مردار) دي.

**د امام شافعي دليل:** دا دی چي دا ټوله شيان د مرداري له اجزاؤ څخه دي، او مرداره د خپلو ټولو اجزاؤ سره ناپاکه ده، نو ځکه به د دې وړښتيان، هډوکي، او داسي نور ناپاکه او مردار وي.

**زموږ دليل:** دا دی چي د مرداري ټوله اجزاء ناپاکه نه دي بلکي صرف هغه اجزاء يې ناپاکه دي چي ژوند پکښې وي او د مرګ په وجه ختم سي، او دا شيان کوم چي لوړ ذکر سول په دې کي ژوند نه وي ځکه که له دوی څخه يو شی پرېکړل سي نو حيوان تکليف او درد نه محسوسوي، نو چي کله په دوی کي ژوند نسته، نو مرګ هم نه سي پر راتلی، ځکه چي مرګ خو د ژوند ختمېدلو ته ويل کيږي.

**دويمه مسئله:** په دې لړ کي يو بله مسئله دا ده چي زموږ په نېز د انسان وړښته او هډوکي پاک دي، لېکن امام شافعي رَحِمَهُ الله د انسان وړښته او نورو ته هم ناپاک وايي.

**د امام شافعي دليل:** دا دی چي د انسان له هيڅ يو جزء څخه نه فايده اخيستل صحيح دي او نه يې د يو جزء خرڅول او رانيول صحيح دي، که د انسان وړښته، هډوکي او داسي نور پاک وای نو بيا به په شريعت کي د دې له خرڅولو او رانيولو څخه منع نه کېدلای، نو معلومه سوه چي د مرداري په ډول د انسان وړښته او نور هم نجس او ناپاکه دي.

**زموږ دليل:** دا دی چي د انسان له يو جزء څخه د فايدې اخيستلو ممانعت يا يې د خرڅولو او رانيولو حُرمت د انسان د نجاست په وجه نه دي، بلکي د دې شيانو ممانعت د انسان د کرامت او شرافت په وجه دي، ځکه چي الله تعالیٰ خپل ستر امانت د انسان په غاړه ورکړی دی، او انسان ته يې د بزرګۍ او لوړوالي هغه مقام وربخښلی دی، چي هغه ته بل مخلوق رسېدلای نه سي، اوس که موږ د انسان د اجزاوو د خرڅولو او رانيولو يا له دې څخه د ګټي او فايدې اخيستلو اجازت ورکړو نو ښکاره ده چي دا د انسان په حق کي توهين او سپکوالی دی، او موږ ته د دې هيڅ حق نسته.

ليکن له دې څخه دا نه لازميږي چي د انسان وربښته او نور دي د طهارت په صفت سره متصف نه وي، ځکه که په دې کي طهارت نه وای نو نبي ﷺ به په هيڅ حال کي هم خپل وربښته مبارک پر صحابه کرامو نه تقسيمولای، څرنګه چي په ډېرو روايتونو کي را نقل سوي دي چي نبي ﷺ خپل سر مبارک وخرېی، او وربښته يې پر صحابه کرامو تقسيم کړل، دا د دې خبري ښکاره دليل دی چي د انسان وربښته او نور پاک دي، ځکه که دا نجس وای نو نبي ﷺ به هيڅکله تقسيم کړي نه وای.



## فَصْلٌ فِي الْبِئْرِ

### دا فصل د څاه (د احکامو په بيان) کي دی

**تشريح:** تر دې مخکي دا بيان وو چي که په لږ اوبو کي نجاست ولوېږي نو ټولي اوبه مردارېږي، خو د څاه مسئله له دې څخه جلا ده، ځکه چي په بعضي صورتونو کي په نجاست سره د څاه ټولي اوبه هم نه مردارېږي، د همدې صورتونو او شکلونو د لا څرګندتيا او وضاحت لپاره صاحب د هدايې دا فصل جلا بيانوي.

### د څاه احکام، په ماء قليل (لږ اوبو) کي نجاست لوېدل

| |
|---|
| وَإِذَا وَقَعَتْ فِي الْبِئْرِ نَجَاسَةٌ او څه وخت چي په څاه کي نجاست (مرداري) ولوېږي نُزِحَتْ وَكَانَ نَزْحُ مَا فِيهَا مِنَ الْمَاءِ راکښل کيږي به هغه (ټولي) اوبه کوم چي په څاه کي دي طَهَارَةً لَهَا د څاه د پاکوالي لپاره (يعني د ټولو اوبو راکښل د دې څاه لپاره پاکوالی دی) بِإِجْمَاعِ السَّلَفِ د سلفو په اجماع سره وَمَسَائِلُ الْآبَارِ مَبْنِيَّةٌ عَلَى اتِّبَاعِ الْآثَارِ دُونَ الْقِيَاسِ او د څاه مسئلې د آثارو پر تابعداری مبني دي نه پر قياس. |

**اللغات:** ﴿البئر﴾ څاه جمع يې آبار راځي، ﴿نُزِحَتْ﴾ د فتح له باب څخه واحده مؤنثه غائبه ماضي مجهول صيغه ده، نَزَحَ يَنْزَحُ: اوبه راکښل.

**تشريح:** د عبارت تر حلّ مخکي په دې خبره پوه سه! چي په متن کي د نُزِحَتْ صيغه مؤنث ده، نو په دې کي د مې ضمير مرجع څه شي دی؟ او دا ولي مؤنث راوړل سوه؟ په دې بله کي د فتح القدير والا رايه دا ده چي د دې مرجع نجاست ګرځول ډېر غوره دي، صاحب د عنايه رَحِمَهُ الله ليکلي دي چي دا تأنيث د ظاهري اسناد په اعتبار سره دی، يعني تر دې

مخکي د نجاسة لفظ راغلی دی (چي هغه مؤنث دی)، نو ځکه یې دا هم د مؤنث په صیغه سره بیان کړه. (خو په اصل کي یې نجاست ته اسناد نه دي سوی).

**صورت د مسئلې:** دا دی چي که په څاه کي نجاست ولوېږي نو له هغه څخه به پوره اوبه را کښل کېږي د دې لپاره چي وروسته کومي لوبه را وڅي هغه هم پاکي سي، او خپله څاه هم پاکه سي، یعني علیحده د څاه او د څاه د دېوالونو صفا کولو ضرورت نسته، ځکه چي د صحابه وو او تابعینو رضوان الله علیهم اجمعین همدغه عمل وو، او پر دې طریقه د دوی اجماع هم وه.

ومسائل الخ صاحب د هدایې فرمایي چي د څاه مسائل له سلفو څخه د را نقل سوو آثارو پر اتباع او پیروي باندي مبني دي، عقل او قیاس لره په دې کي هیڅ دخل نسته، ځکه یو طرف ته د قیاس تقاضا دا ده چي هر څومره نجاست څاه ته ور لوېږي څاه دي نه مردارېږي، ځکه چي هر وخت او همېشه د څاه له مځکي څخه اوبه را وڅي او را رواني وي، او بل طرف ته د قیاس تقاضا دا ده چي که څاه ته نجاست ور ولوېږي، نو هیڅکله دي نه پاکېږي، ځکه څرنګه چي د نجاست ور لوېدلو په وجه، په اوبو کي نجاست خورېږي، همدغه رنګه د څاه د دېوالونو او نورو سره هم مبتلي، او بیا چي څرنګه هر ګړی له مځکي څخه اوبه را رواني دي، نو د پاکو او مردارو اوبو په مینځ کي فرق کول (هم) مشکل وي، لهذا د قیاس په ذریعه یوه حتمي فیصله کول ستونزمن سو، نو ځکه به په دې باره کي قیاس لره هیڅ دخل نه وي، او هر څه به له سلفو څخه را نقل سوو آثارو ته پرېږدو.

## که په څاه کي د اوښ، بزې (او پسه) یوه یا دوې پچي یا خوشایې او داسي نور ولوېږي نو څه حکم دی؟

فَإِنْ وَقَعَتْ بَعْرَةٌ أَوْ بَعْرَتَانِ مِنْ بَعْرِ الْإِبِلِ أَوِ الْغَنَمِ بیا که په څاه کي د اوښ یا د بزې (یا د پسه) یوه یا دوې پچي ولوېدې لَمْ تُفْسِدِ الْمَاءَ اِسْتِحْسَانًا نو په دلیل د استحسان اوبه نه مرداروي وَالْقِيَاسُ أَنْ تُفْسِدَهُ او قیاس دا دی چي مرداروي یې لِوُقُوعِ النَّجَاسَةِ فِي الْمَاءِ الْقَلِيْلِ ځکه چي په لږ اوبو کي نجاست ولوېدی وَجْهُ الْاِسْتِحْسَانِ أَنَّ آبَارَ الْفَلَوَاتِ لَيْسَتْ لَهَا رُءُوْسٌ حَاجِزَةٌ د استحسان وجه دا ده چي د دښت پر څاه ګانو باندي منع کونکي سرونه نه وي (یعني پر سرونو یې داسي شی نه وي چي نجاست را وګرځوي) وَالْمَوَاشِي تَبْعَرُ حَوْلَهَا او څارویان د څاه پر شاوخوا پچي کوي فَتُلْقِيْهَا الرِّيْحُ فِيْهَا چي هواګاني دا پچي په څاه کي اچوي فَجُعِلَ الْقَلِيْلُ عَفْوًا لِلضَّرُوْرَةِ نو د ضرورت په وجه لږ غوندي نجاست معاف کړی سو وَلَا ضَرُوْرَةَ فِي الْكَثِيْرِ او په کثیر (ډېر نجاست) کي هیڅ ضرورت نسته وَهُوَ مَا يَسْتَكْثِرُهُ النَّاظِرُ إِلَيْهِ فِي الْمَرْوِيِّ عَنْ أَبِي حَنِيْفَةَ رَحِمَهُ اللهُ او د امام صاحب د روایت مطابق ډېر نجاست هغه دی چي کتونکي یې په خپله ډېر وګڼي وَعَلَيْهِ الْاِعْتِمَادُ او هم پر دې روایت اعتماد دی وَلَا فَرْقَ بَيْنَ الرَّطْبِ وَالْيَابِسِ او د لندې او وچې (پچې) په مینځ کي هیڅ فرق نسته وَالصَّحِيْحِ وَالْمُنْكَسِرِ او نه د روغي او ماتي (پچي) په مینځ کي هیڅ فرق سته وَالرَّوْثِ وَالْخِثْيِ وَالْبَعْرِ او نه د خوشایو، خرشینو او پچو په مینځ کي فرق سته لِأَنَّ الضَّرُوْرَةَ تَشْمُلُ الْكُلَّ ځکه چي ضرورت په ټولو کي سته وَفِيْ شَاةٍ تَبْعَرُ فِي الْمِحْلَبِ بَعْرَةً أَوْ بَعْرَتَيْنِ او (په هغه صورت کي) چي بزه د شیدو د لوښلو په لوښي کي

يوه يا دوې پچې وکړي قَالُوا: تُرَى الْبَعْرَةُ (نو) مشايخ فرمايي چې پچه دي وغورځول سي وَيُشْرَبُ اللَّبَنُ او شيدې دي وڅيښل سي لِمَكَانِ الضَّرُوْرَةِ د ضرورت په وجه وَلَا يُعْفَى الْقَلِيْلُ فِي الْاِنَاءِ او په (عام) لوښي کي لږ غوندي نجاست هم نه معافيږي عَلَى مَا قِيْلَ لِعَدَمِ الضَّرُوْرَةِ لکه څرنګه چې ويل سوي دي چې ضرورت نسته وَعَنْ أَبِي حَنِيْفَةَ رَحِمَهُ اللهُ أَنَّهُ كَالْبِئْرِ فِيْ حَقِّ الْبَعْرَةِ وَالْبَعْرَتَيْنِ او له امام صاحب څخه (دا) روايت دی چې ديوې يا دوو پچو په حق کي لوښی هم د څاه په ډول دی.

**اللغات:** ﴿بَعْرَةٌ﴾ يوه پچه، جمع يې بَعْرٌ راځي، ﴿فَلَوَاتٌ﴾ جمع ده، واحد يې فَلَاةٌ دی: بيابان (دښت)، صحراء، ځنګل، ناآباد سوی ځای. ﴿حَاجِزَةٌ﴾ بنديز، پرده، ﴿مَوَاشِيْ﴾ جمع ده، واحد يې مَاشِيَةٌ دی: څارويان (هغه حيوانات کوم چې وابنه خوري). ﴿تُلْقِيْ﴾ د إفعال د باب مضارع صيغه ده، أَلْقَى يُلْقِيْ: اچول، راغورځول. ﴿رَوْثٌ﴾ وچ خوشايي، ﴿خِثْيٌ﴾ او خُثْيٌ هم راځي: خرشينه (په عامه توګه رَوْث د غوا فضله يعني خوشايو ته ويل کيږي او خِثْي د خره او آس فضله يعني خرشينو ته ويل کيږي، او کله نا کله ديو بل پر ځای هم استعماليږي). ﴿مِحْلَبٌ﴾ هغه لوښی چې شيدې پکښي را لوښل کيږي.

**تشريح: صورت د مسئلې:** دا دی چې که په څاه کي د اوښ، بزې (يا پسه) يوه يا دوې پچې ولوېږي نو د استحسان په وجه اوبه پاکي دي، او د قياس په وجه مرداري دي، له يوه يا دوو پچو څخه مراد مقدار قليل (يعني لږ اندازه) ده.

**د قياس وجه:** د قياس وجه دا ده چې دلته په لږ اوبو کي نجاست لوېدلی دی او مخکې تېر سوه چې لږ اوبه په نجاست سره مرداريږي، نجاست که ډېر وي، که لږ وي، او دلته له څاه څخه هغه څاه مراد ده چې تر لس په لسه کمه وي.

**د استحسان وجه:** د استحسان دوې وجهې دي: يوه وجه دا ده چې د دښت او صحراء د څاه ګانو پر سرو باندي يو مخ نيونکی شی نه وي يعني سرونه يې نه وي، او څارويان د هغو پر شاوخوا پچې کوي بيا د هوا په ذريعه دا پچې څاه ګانو ته لوېږي، نو ځکه د ضرورت په وجه مقدار قليل (لږ مقدر) معاف کړی سو، او څرنګه چې په کثير (ډېر مقدار) کي هيڅ ضرورت نسته نو ځکه هغه نه معاف کيږي.

وهو ما يستكثره الخ پاته سوه دا خبره چې د قليل او کثير حد څه دی؟ نو په دې باره کي د علماؤ مختلفه قولونه دي، بعضو ويلي دي چې کثير (ډېرمقدار) دا دی چې دومره پچې وي چې د اوبو څلورمه حصه يې نيولې وي. (يعني پر څلورمه حصه يې غوړېدلي وي) او يو قول دا دی چې کثير هغه دی چې د اوبو دريمه حصه يې نيولې وي، بل قول دا دی چې د اوبو زياتره حصه يې نيولې وي، بعضو ويلي دي چې ټوله اوبه يې نيولي وي، بعضو ويلي دي چې په هره سولاغه کي پچه راووځي، او بعضو ويلي دي چې درې پچې کثير دي.

او له امام ابو حنيفه رَحِمَهُ الله څخه روايت دی چې که کتونکی (ناظر) دا پچې ډېرې وګڼي، نو کثير دي، کنې نو قليل دي، او هم پر دې قول اعتماد دی، ځکه امام ابو حنيفه رَحِمَهُ الله داسي مسائل کوم چې د تقدير او اندازې سره تعلق لري، هغه سړي ته سپاري چې هغه ته دا مسائل ور پېښ سوي وي.

ولا فرق الخ صاحب د هدايې فرمايي چې د استحسان په وجه وچې او لندې، روغي او ماتي ټوله پچې سره برابري دي، همدغه رنګه د خوشايو، خرشينو او پچو ټولو حکم يو ډول دی، ځکه چې ضرورت ټولو ته شامل دی، ځکه څرنګه چې د دې څاه ګانو پر شاوخوا د بزو او پسونو راوستلو ضرورت سته، همدغه رنګه د اوښانو، اسانو، ګاميښو او غواوو

رلوستلو ضرورت هم سته. او د دې شيانو خوشايي او خرشينه هم دې څاه ګانو ته ور ولوېږي، هم پر دې بناء د صحراګانو او ښارونو د څاه ګانو په مينځ کې فرق سته. ځکه که د صحرا د څاه ګانو سرونه نسته، خو د ښار او آبادی د څاه ګانو سرونه سته چې د ګندګی او نجاست مخنيوی وکړي. نو په دې وجه د صحرا په څاه ګانو کې د نجاست د لږ اندازې معافولو ضرورت سته. لېکن د ښار په څاه ګانو کې د دې د معافولو هيڅ ضرورت نسته. (عنايه)

ولى شاة تبعر الخ صاحب د هدايې بله مسئله دا بيانوي چې د شيدو لوښلو په وخت کې که بزه (يا مېږه) يوه يا دوې پچې د شيدو لوښلو په لوښي کې وکړي نو پچې دې څينې را وکښل سي، او شيدې دې وچښل سي، ځکه په دې کې ضرورت دی. ځکه چې د بزو (او مېږو) دا عادت دی چې د لوښلو په وخت کې پچې کوي، او که دا پچې په اېښول سوي لوښي کې ولوېږي (يعني دا لوښی په لاس کې نيول سوي نه وي، بلکې د ځاروي څخه لږ ليري پر مځکه پروت وي، او شيدې په بل شي کې لوښل کيږي، او دې لوښي ته ور اچول کيږي) نو بيا دا لږ مقدار هم معاف نه دی، ځکه دلته هيڅ ضرورت نسته، ځکه چې د پروت لوښي سر ور پټول ممکن دي.

او له امام ابو حنيفه رَحِمَهُ الله څخه يو روايت دا دی چې لوښی هم د يوې يا دوو پچو په حق کې د څاه په څير دی يعني څرنګه چې څاه په يوه يا دوو پچو سره نه مرداريږي، همدغه رنګه شيدې هم په يوه يا دوو پچو سره نه مرداريږي.

## په څاه کې د کوترې او مرغۍ د فضلې (ګندګی) لوېدلو حکم

قَالَ وَلَوْ ذَرَقَ فِيهَا حَمَامٌ أَوْ عُصْفُورٌ که په څاه کې د کوترې يا چوغکې (مرغۍ) ګندګي ولوېدله لَا يُفْسِدُهُ نو څاه نه مرداروي خِلَافًا لِلشَّافِعِيِّ رَحِمَهُ اللهُ د امام شافعي رَحِمَهُ الله (په دې کې) اختلاف دی لَهُ د امام شافعي دليل دا دی أَنَّهُ اِسْتَحَالَ إِلَى نَتْنٍ وَفَسَادٍ چې دا (د کوترې او مرغۍ) ګندګي په بدبويي او ګندګي سره بدله سوه فَأَشْبَهَ خُرْءَ الدَّجَاجَةِ نو (د دوی ګندګي) د چرګې د ګندګۍ سره مشابه سوه وَلَنَا إِجْمَاعُ الْمُسْلِمِينَ عَلَى اقْتِنَاءِ الْحَمَامَاتِ فِي الْمَسَاجِدِ او زموږ دليل دا دی چې مسلمانانو (صحابه وو او تابعينو) په مسجدونو کې د کوترو پر ساتلو اجماع کړې ده (يعني پر دې باندې اجماع کړې ده چې په کوترو به څوک کار نه لري، بلکې ايله به وي) مَعَ ● وُرُودِ الْأَمْرِ بِتَطْهِيرِهَا سره د دې چې د مسجدونو د پاک ساتلو حکم سوی دی وَاسْتِحَالَتُهُ لَا إِلَى نَتْنٍ رَائِحَةٍ او دا ګندګي په بدبويي سره نه بدليږي فَأَشْبَهَ الْحَمْأَةَ نو دا د تورو خټو (ېلو) سره مشابه سوه (يعني لکه څرنګه چې د تورو او خرابو خټو بوی لږ وي او که په لوښو کې ولوېږي، اوبه نه په مرداريږي، همدارنګه د کوترې فضله هم ده).

**اللغات:** ﴿خُرْء﴾ د مرغيو فضله او ګندګي (پيخاله). ﴿عُصْفُور﴾ مرغۍ (چوغکه). ﴿اِقْتِنَاء﴾ د افتعاب د باب مصدر دی: جمع کول، ساتل، چڼل، حاصلول. ﴿أَشْبَهَ﴾ ورته کېدل، مشابه کېدل. ﴿الْحَمْأَة﴾ توري خاوري (ختې)، لوشي (ېلي)، عامو خټو ته هم وېل کيږي.

**تشريح:** په عبارت کې د بيان سوي مسئلې حاصل دا دی چې که د کوترې يا چوغکې ګندګي (فضله) څاه ته ور ولوېږي نو زموږ په نېز اوبه نه مرداريږي، لېکن د امام شافعي رَحِمَهُ الله په نېز مرداريږي.

● تخريج: أخرجه ابو داؤد في كتاب الصلوة باب اتخاذ المساجد في الدور، حديث رقم:٤٥٥، و ترمذي في كتاب الجمعة باب ما ذكر في تطيب المساجد، حديث:٥٩٤.

**د امام شافعي دليل:** دا دی چي د کوترۍ يا چوغکي ګندګي چي کله اوبو ته ور ايله سي نو د بدبويي او خرابۍ وطرف ته منتقله سي، نو دا د چرګي د ګندګۍ سره مشابه سوه، او د چرګي ګندګي په اتفاق سره نجسه ده، نو ځکه به دا ګندګي هم نجسه او مرداره وي.

**زموږ دليل:** دا دی چي د صحابه وو له وخت څخه واخله تر اوسه په مسجدونو کي د کوترو په پرېښولو باندي د سلفو او خلفو علماوو اجماع را روانه ده (يعني په مسجدونو کي په کوترو باندي هېڅوک کار نه لري، بلکي په آزاده ګرځي) او په يوه زمانه کي هم له دې څخه انکار نه دي سوی، او حال دا چي د مسجدونو د پاکولو او صفا ساتلو حکم په سختي سره سوی دی، نو په داسي صورت کي په مسجدونو کي د کوترو په آزاده پرېښوول د دې خبري ښکاره دليل دی چي د دې ګندګي مرداره نه ده، ځکه که مرداره وای نو بيا به د مسجد په ډول پاک ځای کي د کوترو اجازه نه ورکول کېدی، نو معلومه سوه چي د کوترۍ ګندګي مرداره نه ده، او کله چي دا مرداره نه ده، نو د دې په ور لوېدلو سره به اوبه هم نه مرداريږي.

**جواب:** د امام شافعي د دليل جواب دا دی چي د مرداربدلو لپاره دوه شيان ضروري دي: (۱) بدبويي، (۲) فساد(خرابتيا)، او دا خبره منل سوې ده چي د کوترۍ په فضله کي بدبويي نشته، نو معلومه سوه چي د نجاست له دوو جزوو څخه يوه جزء منتفي سوه(يعني د نجس کېدلو لپاره چي کوم دوه شيان ضروري دي په هغو کي يو شی يعني بدبويي د کوترۍ په فضله کي نسته) نو کله چي يو شی منتفي سو نو ټوله سبب منتفي سو، او کله چي د کوترۍ له فضلې څخه د نجاست سبب منتفي سو نو د کوترۍ فضله به مرداره نه وي.

## په څاه کي د ماکول اللحم او غير ماکول اللحم ځاروي د متيازو د حکم

فَإِنْ بَالَتْ فِيهَا شَاةٌ او که په څاه کي بزې(وزې) متيازي وکړې نُزِحَ الْمَاءُ كُلُّهُ نو ټولي اوبه به را کښل کيږي عِنْدَ أَبِي حَنِيفَةَ رَحِمَهُ اللهُ وَأَبِي يُوسُفَ رَحِمَهُ اللهُ د شيخنو په نېز وَقَالَ مُحَمَّدٌ رَحِمَهُ اللهُ: لَا يُنْزَحُ امام محمد فرمايي چي نه به راکښل کيږي إِلَّا إِذَا غَلَبَ عَلَى الْمَاءِ خو که متيازي پر اوبو غالبه سوې فَيَخْرُجُ مِنْ أَنْ يَكُونَ طَهُورًا نو اوبه له مُطهّروالي څخه وځي(يعني له دې څخه وځي چي بل شی پاک کړي) وَأَصْلُهُ أَنَّ بَوْلَ مَا يُؤْكَلُ لَحْمُهُ طَاهِرٌ عِنْدَهُ او د دې اختلاف اصل دا دی چي د کوم حيوان غوښي خوړل کيږي د هغه متيازي د امام محمد په نېز پاکي دي نَجِسٌ عِنْدَهُمَا او د شيخينو په نېز مرداري دي لَهُ د امام محمد دليل دا دی أَنَّ النَّبِيَّ (ص) أَمَرَ الْعُرَنِيِّينَ● بِشُرْبِ أَبْوَالِ الْإِبِلِ وَأَلْبَانِهَا چي نبي ﷺ عرنيينو ته د اوښانو د متيازو او شيدو چيښلو حکم کړی وو وَلَهُمَا قَوْلُهُ عَلَيْهِ الصَّلٰوةُ وَالسَّلَامُ● او د شيخينو دليل دا حديث دی اِسْتَنْزِهُوا مِنَ الْبَوْلِ خپل ځانونه له متيازو څخه ساتئ فَإِنَّ عَامَّةَ عَذَابِ الْقَبْرِ مِنْهُ ځکه چي د قبر زياتره عذاب د دې په وجه دی مِنْ غَيْرِ فَصْلٍ (دا حديث) بغير له څه تفصيل څخه دی (يعني په حديث کي د ماکول اللحم او غير ماکول اللحم هيڅ تفصيل نسته) وَلِأَنَّهُ يَسْتَحِيلُ إِلَى نَتْنٍ وَفَسَادٍ او په دې وجه (هم) چي د ماکول اللحم ځاروي

---

● تخريج: أخرجه الائمة الستة، بخارى فى كتاب الوضوء، باب ابوال الابل والدّواب، حديث رقم:۲۳۳، ومسلم كتاب القسامة باب حكم المحاربين والمرتدين، حديث رقم:۴۳۵۳.

● تخريج: أخرجه دارقطنى فى كتاب الطهارة باب نجاسة البول والأمر با التنـزه منه، حديث رقم:۴۵۳.

متيازې د بلبوږې او خرابۍ و طرف ته نقل كيږي فَصَارَ كَبَوْلِ مَا لَا يُؤْكَلُ لَحْمُه نو دا د غير مأكول اللحم حيواناتو د متيازو په ډول سوې وَتَأْوِيْلُ مَا رُوِيَ او د امام محمد رَحِمَهُ الله د روايت سوي حديث تأويل دا دی أَنَّه عُرِفَ شِفَاؤُهُمْ وَحْيًا چې نبي ﷺ ته د وحي په ذريعه د عرنيينو شفاء په دې کې معلومه سوې وه ثُمَّ عِنْدَ أَبِيْ حَنِيْفَةَ رَحِمَهُ اللهُ لَا يَحِلُّ شُرْبُه لِلتَّدَاوِيْ بيا د امام ابو حنيفه رَحِمَهُ الله په نېز د مأكول اللحم ځاروي متيازې د شفاء لپاره چيښل هم جائز نه دي لِأَنَّه لَا يُتَيَقَّنُ بِالشِّفَاءِ فِيْهِ ځکه چې په متيازو کې د شفاء يقين نسته فَلَا يُعْرَضُ عَنِ الْحُرْمَةِ نو ځکه به د هغو له حراموالي ځخه اعراض نه کيږي وَعِنْدَ أَبِيْ يُوْسُفَ رَحِمَهُ اللهُ● يَحِلُّ لِلتَّدَاوِيْ او د امام ابو يوسف رَحِمَهُ الله په نېز د دواء لپاره د هغو چيښل حلال دي (د عرنيينو د قصې په وجه) وَعِنْدَ مُحَمَّدٍ رَحِمَهُ اللهُ يَحِلُّ لِلتَّدَاوِيْ وَغَيْرِهٖ او د امام محمد رَحِمَهُ الله په نېز د دواء او غير دواء دواړو لپاره هغو چيښل حلال دي لِطَهَارَتِه عِنْدَه ځکه چې د مأکول اللحم ځارويانو متيازې د هغه په نېز حلالې دي.

**اللغات**: ﴿اِسْتَوْخَمُوْا﴾ د استفعال له باب ځخه د أمر جمع صيغه ده: پرېز کول، ځان ژغورل، ﴿تَدَاوِيْ﴾ د تفاعل د باب مصدر دی: دوايې کول، درملنه، د علاج لپاره يو شی استعمالول.

**تشريح: صورت د مسئلې**: دا دی که په ځاه کې بزې متيازې وکړې نو د شيخينو يعني د امام ابو حنيفه او امام ابو يوسف رَحِمَهُمَا الله په نېز به د ځاه ټولې اوبه را کښل کيږي، او امام محمد رَحِمَهُ الله فرمايي که متيازې په دومره اندازه وې چې پر اوبو غالبه سوې، نو په دې صورت کې د ځاه اوبه مرداري دي، او را ايستل کيږي به، لېکن که متيازې لږ غوندې وې نو په دې صورت کې نه اوبه مرداري دي، او نه به را ايستل کيږي.

و أصله أنّ الخ د دې اختلاف اصل دا دی چې د کوم حيوان غوښې خوړل کيږي د هغه متيازې د امام محمد رَحِمَهُ الله په نېز پاکې دي، که په ماءِ قليل (لږ اوبو) کې ولوېږې نو اوبه نه مرداري بلکې له هغو ځخه به اودس جائز وي، هو! که متيازې پر اوبو غالبه سوې، نو دا اوبه به طاهر غير مطهر وي (يعني خپله خو به پاکې وي لېکن بل شی نه سي پاکولی) او د شيخينو په نېز چې د کوم حيوان غوښې خوړل کيږي د هغه متيازې ناپاکه دي، که د هغو د متيازو يو ځاځکي هم په اوبو کې ولوېږې نو اوبه مرداريږي.

**د امام محمد دليل**: د عرنيينو حديث دی، عُرَيْنَه د عُرَنَةُ تصغير دی او عرنة د عرفات سره نژدې د يوې شلې (وادي) نوم دی، هغه ځای ته د نسبت په وجه دې خلکو ته عرنيين ويل کيږي.

**د عرنيينو قصه**: دا ده چې د عُرينې خلک مدينې ته راغلل، اسلام يې راووړی، لېکن پر دوی د مدينې هوا سمه نه ولګېدله، تر دې چې د دوی رنګونه ژړ سول، نسونه يې وپړسېدل، بيا نبي ﷺ دوی ته حکم وکړی چې د صدقې د اوښانو متيازې او شيدې وچيښئ، دې خلکو همداسې وکړه، په دې سره دوی روغ رمټ سوه، خو بيا دوی مرتد سوه، شپنيان يې قتل کړه، اوښان يې غلا کړه، بيا نبي ﷺ يوه ډله ور واستوله چې دوی ونيسي، هغه ډلې دوی ونيول، را يې وستل،

● القول الراجح: قول أبي يوسف رَحِمَهُ الله، كذا في الدر المختار ج:۱، ص:۱۵۲ [القول الراجح ج:۱، ص:۱۸]

پښې او لاسونه ور پړسکړل، او د دوی په سترګو کې يې په اُور ګرمې سوې سلايې ور تيرې کړې، او پر ډېر ګرم ريګ يې پرې ايستل تر دې چې ټوله مړه سول.

امام محمد په دې حديث سره په دې ډول دليل نيسي چې نبي ﷺ دوی ته د متيازو چيښلو حکم وکړی، لهذا که د مأکول اللحم حيوان متيازې مرداري وای نو دې خلکو ته به د دې د چيښلو حکم نه کېدلای، ځکه چې د مرداروالي په صورت کې به هغه حرامې وای، او د حرام په باره کې نبي ﷺ فرمايلي دي: ان الله تعالی لم يجعل شفاءکم فيما حرم عليکم (يعني الله تعالیٰ په حرامو شيانو کې ستاسو لپاره شفاء پيدا کړې نه ده).

**د شيخينو دليل:** د نبي ﷺ دا قول دی: إستنزهوا من البول فان عامة عذاب القبر منه. (يعني له متيازو څخه ځان وژغورئ ځکه چې د قبر زياتره عذاب د متيازو په وجه دی. (په دې حديث کې مطلقاً له متيازو څخه د ځان ساتلو حکم سوی دی، متيازې که د مأکول اللحم وي او که د غير مأکول اللحم وي).

په حديث کې صيغه د امر ده، او امر د وجوب لپاره وي، نو معلومه سوه چې متيازې مرداري دي کنې له دې څخه به د ځان ساتلو حکم نه کېدلای، او د دې تائيد په دې حديث سره هم کيږي: أن رسول الله ﷺ شيع جنازة سعد بن معاذ وکان يمشي علی رؤس أصابعه من زحام الملائکة التي حضرت الصلاة عليه فلما وضع في القبر ضغطته الارض ضغطةً کادت تختلف أضلاعه فسئل رسول الله ﷺ عن سببه فقال أنه کان لايستنزه من البول. (روايت سوی دی چې نبي ﷺ د سعد بن معاذ ﷺ د جنازې سره روان وو، او نبي ﷺ د هغو ملائکو چې د سعد بن معاذ ﷺ د جنازې د لمانځه لپاره راغلې وې د ډېرښت او رش په وجه خپل د ګوتو پر سرو روان وو، کله چې سعد په قبر کې کښېښول سو، نو مځکې دومره کښېکاږی نژدې وه چې پښتی يې پر له تيرې سي، نو له نبي ﷺ څخه په دې اړه پوښتنه وسوه، نبي ﷺ وفرمايل چې سعد د متيازو په سلسله کې احتياط نه کوی(يعني له متيازو څخه يې ځان نه ساتی)، د دې حديث تر را نقل کولو وروسته صاحب د عنايه ليکلي دي چې په حديث کې خپلې متيازې مراد نه دي، ځکه کوم سړی چې له خپلو متيازو څخه ځان نه ساتي د هغه لمونځ هم نه صحيح کيږي، بلکې د اوښ متيازې مراد دي يعني سعد ﷺ به د اوښانو د څارولو په وخت کې د اوښانو د متيازو په سلسله کې احتياط نه کوی، چې د هغه په وجه پر ده په قبر کې سختې راغله، نو دا قصه هم پر دې ګواهي ورکوي چې د مأکول اللحم حيوانانو متيازې ناپاکه دي.

**د شيخينو عقلي دليل:** دا دی چې د مأکول اللحم حيوانانو متيازې هم د خرابی او بدبويي و طرف ته انتقال کوي، نو ځکه دا هم د غير مأکول اللحم حيوانانو د متيازو سره مشابه سوې، نو څرنګه چې د غير مأکول اللحم متيازې مرداري دي، همدغه رنګه به د مأکول اللحم متيازې هم مرداري وي.

**جواب:** د امام محمد رَحِمَهُ الله د بيان سوي حديث (۱) اول جواب خو صاحب د هدايې ورکړی دی، چې نبي ﷺ ته د وحي په ذريعه معلومه سوې وه چې د دې خلکو شفاء او روغتيا په متيازو کې ده، په دې وجه سره دوی ته د متيازو چيښلو حکم وکړی سو، او څرنګه چې اوس دا خبره نه معلوميږي(چې په دې کې شفاء سته او که نسته) نو ځکه به اوس په دې سره علاج او دوا هم نه کيږي.(۲) دويم جواب دا دی چې په حديث کې د أبوال لفظ نسته، بلکې صرف د ألبان لفظ سته، يعني نبي ﷺ دوی ته د شيدو چيښلو حکم کړی وو، نه د متيازو چيښلو.(۳) دريم جواب يې دا دی چې دا حديث منسوخ دی، نو ځکه اوس په دې حديث سره دليل نيول کېدلی نه سي.

ثم عند أبي حنيفة الخ ښکاره دي وي چې د امام ابو حنيفه رَحِمَهُ الله په نېز متيازې د علاج او دوا په توګه چيښل هم جائز نه دي، ځکه چې اوس په متيازو کې شفاء او روغتيا يقيني نه ده، نو ځکه به د دې له حراموالي څخه مخ نه اړول کيږي، او امام ابو يوسف رَحِمَهُ الله ويلي دي چې د علاج په توګه متيازې چيښل جائز دي، او دليل يې د عرنيينو قصه ده، لېکن د امام محمد رَحِمَهُ الله په نېز چې ځرنګه د مأکول اللحم حيوان متياز پاکې دي، نو ځکه هغه وويل چې مطلقاً جائز دي، يعني د علاج په توګه هم او بغير له علاجه هم. والله اعلم بالصواب.

**راجح قول:** په پورتنۍ مسئله کې راجح قول د امام ابو يوسف رَحِمَهُ الله دی، چې د هغه په نېز په متيازو او بل حرام شي سره علاج کول صحيح دي، لکه ځرنګه چې علامه حصکفي رَحِمَهُ الله ليکي: اختلف في التداوي بالمحرم وظاهر المذهب المنع كما في رضاع البحر لكن نقل المصنف رَحِمَهُ الله هنا عن الحاوي وقيل: يرخص إذا علم فيه الشفاء ولم يعلم دواء كما رخص الخمر للعطشان. وعليه الفتوى، (الدر المختار ج:۱، ص:۱۵۴). [القول الراجح ج:۱، ص:۱۸۰]

## هغه کوم حيوانان دي چې د هغو په مرګ به له څاه څخه شل يا دېرش سولاغې را کښل کيږي؟

قَالَ: وَإِنْ مَاتَتْ فِيهَا فَأْرَةٌ او که په څاه کې موږک مړ سو أَوْ عُصْفُورَةٌ يا چوغکه (مرغی) مړه سوه أَوْ سُوْدَانِيَّةٌ يا کناځه مړه سوه أَوْ صَعْوَةٌ يا ژرانکه (ژرانه) مړه سوه أَوْ سَامُّ أَبْرَصَ يا خرمبنکی مړه سوه نُزِحَ مِنْهَا مَا بَيْنَ عِشْرِيْنَ دَلْوًا إِلَى ثَلَاثِيْنَ نو له څاه څخه به له شلو سولاغو څخه تر دېرشو سولاغو پورې (اوبه) راکښل کيږي بِحَسْبِ كِبَرِ الدَّلْوِ وَصِغَرِهَا د سولاغې د غټوالي او کوچنيوالي په اعتبار سره يَعْنِيْ بَعْدَ إِخْرَاجِ الْفَأْرَةِ يعني د موږک (او نورو) تر را کښلو وروسته لِحَدِيْثِ أَنَسٍ رَضِيَ اللهُ عَنْهُ ● د حضرت انس رَضِيَ اللهُ عَنْهُ د حديث په وجه أَنَّهُ قَالَ فِي الْفَأْرَةِ إِذَا مَاتَتْ فِي الْبِئْرِ وَأُخْرِجَتْ مِنْ سَاعَتِهِ چې هغه د داسې موږک په باره کې وفرمايل چې په څاه کې مړ سي او په هغه ګړۍ را وکښل سي يُنْزَحُ مِنْهَا عِشْرُوْنَ دَلْوًا چې له څاه څخه به شل سولاغې اوبه را ايستل کيږي وَالْعُصْفُوْرَةُ وَنَحْوُهَا تُعَادِلُ الْفَأْرَةَ فِي الْجُثَّةِ او مرغی او د دې په ډول (نور شيان) په جثه (صورت او بدن) کې د موږک سره برابر دي فَأَخَذَتْ حُكْمَهَا نو ځکه هغو هم د موږک حکم واخيستی وَالْعِشْرُوْنَ بِطَرِيْقِ الْإِيْجَابِ او د شلو سولاغو را کښل په طريقه د واجبوالي دی وَالثَّلَاثُوْنَ بِطَرِيْقِ الْإِسْتِحْبَابِ او د دېرشو سولاغو راکښل په طريقه د مستحبوالي دی.

● تخريج: صاحب د نصب الراية فرمايي چې د حضرت انس رَضِيَ اللهُ عَنْهُ حديث مې نه دی ليدلی چې په هغه سره د دېرشو سولاغو دليل ثابت سي، لېکن د څلوېښتو سولاغو اثر مې ليدلی دی، هغه دا دی: أخبرني من سمع الحسن يقول: إذا مات الدابة في البئر أخذ منها أربعون دلواً، (مصنف عبد الرزاق، باب البئر تقع فيه الدابة ج:۱، ص:۸۱) په دې اثر کې دا دي چې که په څاه کې يو حيوان مړ سي نو څلوېښت سولاغې به راکښل کيږي، او بعضو علماؤ د شلو سولاغو د ثبوت لپاره اثر د عطاء وړاندې کړی دی کوم چې د شرح معجم الآثار په اول ټوک، ۱۷ صفحه کې په كتاب الطهارة، باب الماء الذي يقع فيه النجاسة کې داسې ذکر سوی دی: إذا وقع الجزاذ (نوع من الفأرة) في البئر نزح منها عشرون دلوا فان تفسخ فأربعون دلوا فإذا وقع الشاة نزح منها أربعون دلوا فان تفسخت نزحت كلها او مائة دلوا.

**اللغات:** ﴿سُوْدَانِيَّةٌ﴾ کارګه ته ورته يوه کوچنۍ مرغۍ ده چي ډېر ښکلي آواز لري، (ځيني خلګ يې د کارګه يو قسم ګڼي) په انګريزي کي king crow (کينګ کرو) ورته وايي، خوراک يې زياتره وخت انګور او ملخان وي، (تر ډېر لتون وروسته مي هم په پښتو کي د دې خپل نوم پيدا نه کړی، اصل وجه يې دا ده چي دا مرغۍ زموږ سيمو کي نه سته، او د هغه پر ځای مي کناخه وليکله، ځکه چي کناخه هم د کارګه يو قسم دی) ﴿حَمَوِيَّةٌ﴾ له دې څخه مراد هغه ژړه مرغۍ ده چي زياتره وخت د اوبو پر غاړه ژوندکوي، او هر وخت لکۍ کښته پورته ښوروي، چي په پښتو کي ژرانکه، ژرانه، مامولکه او داسي نور هم ورته وايي، ﴿سَامُ أَبْرَص﴾ څرمښکۍ (چرمښکۍ) ته ويل کيږي، او کربوړي ته وَزَغ او داسي نور ويل کيږي، ﴿جُثَّة﴾ بدن، صورت، قواره.

**تشريح:** په عبارت کي د ذکر سوو مسئلو حاصل دا دی چي کوم حيوان په څاه کي ولوېږي د هغه اووه صورتونه دي: ځکه چي هغه حيوان به يا موږک، يا به د موږک په څېر وي، يا به چرګه، يا به د دې په څېر وي، يا به بزه او يا به د دې په څېر وي، بيا به يا په دوی کي هر يو ژوندی را ګښل سوی وي يا به مړ، که مړ وو، نو بيا يې دوه صورته دي: پړسېدلی به وي يا به نه وي، اوس که هغه حيوان ژوندی را اګښل سوی وو نو څاه مرداره نه ده، او که حيوان مړ را ګښل سوی وو نو په اول صورت کي يعني که مړ سوی موږک وو، يا د دې په څېر بل حيوان وو، نو حکم يې دا دی چي د دې مړسوي موږک يا د دې په څېر د بل حيوان تر را ګښلو وروسته شل سولاغې را ګښل واجب دي، او د دېرشو سولاغو را ګښل مستحب دي، دا حکم له يوه موږک څخه تر څلورو موږکانو پوري دی، او له پنځو څخه تر نهو پوري څلوېښت سولاغې را ګښل واجب دي، او د لسو موږکانو په صورت کي ټوله اوبه را ګښل واجب دي.

**دليل:** د حضرت انس ﷺ حديث دی، فرمايي: چي کله يو وار په څاه کي موږک ولوېږي، او په هغه کړی را وښتل سي نو شل سولاغې اوبه به را ګښل کيږي. او د ابن عباس ﷺ په حديث کي د دېرشو سولاغو حکم سوی دی، نو په دواړو حديثونو کي د توافق لپاره د حضرت انس ﷺ حديث پر وجوب حمل کړی سو، او د حضرت ابن عباس ﷺ حديث پر استحباب حمل کړی سو.

## د اوبو د را ګښلو لپاره کومه سولاغه معتبره ده؟

د اوبو د را ګښلو لپاره د اوسط (مينځوی) درجې سولاغه معتبره ده، د اوسط درجې سولاغه هغه ده کوم چي په ښار کي په عامه توګه کارول کيږي، يا هغه چي پر دغه څاه باندي په عامه توګه کارول کيږي، (نو له څاه څخه به په دغه سولاغه اوبه را ګښل کيږي).

## هغه کوم حيوانان دي چي د هغو په مرګ به له څاه څخه څلوېښت يا پنځوس سولاغې را ګښل کيږي؟

| |
|---|
| فَإِنْ مَاتَتْ فِيهَا حَمَامَةٌ أَوْ نَحْوُهَا که په څاه کي کوتره مړه سوه يا د دې په څېر (بل حيوان مړ سو) كَالدَّجَاجَةِ وَالسِّنَّوْرِ لکه چرګه او پيشي نُزِحَ مِنْهَا مَا بَيْنَ أَرْبَعِينَ دَلْوًا نو له څاه څخه به څلوېښت سولاغې را ګښل کيږي إِلَى سِتِّينَ تر شپېتو پوري وَفِي الْجَامِعِ الصَّغِيرِ: أَرْبَعُونَ أَوْ خَمْسُونَ او په جامع صغير کي دي: چي څلوېښت يا پنځوس سولاغي به (را ګښل کيږي) وَهُوَ الْأَظْهَرُ او همدغه قول زيات ظاهر دی لِمَا رُوِيَ عَنْ أَبِي سَعِيدٍ الْخُدْرِيِّ ﷺ • ځکه له ابو سعيد |

• تخريج: عن الشعبي في الطير والسنور و نحوهما يقع في البئر قال نزح منها أربعون دلوا طحاوي، باب الماء تقع فيه النجاسة ص:۱۶، مصنف عبد الرزاق، باب البئر تقع فيه الدابة ج:۱، قم:۲۷۲ و أخرجه الطحاوی عن حماد بن أبي سليمان أنه قال في دجاجة وقع في البئر فماتت قال ينزح منها قدر أربعين دلوا أو خمسين.

خدري ﷺ څخه روایت دی أَنَّهُ قَالَ فِي الدَّجَاجَةِ إِذَا مَاتَتْ فِي الْبِئْرِ يُنْزَحُ مِنْهَا أَرْبَعُوْنَ دَلْوًا (چي) هغه د چرګي په اړه وفرمایل چي کله په څاه کي مړه سي نو له څاه څخه به څلوېښت سولاغي اوبه را ایستل کیږي هٰذَا لِبَيَانِ الْإِيْجَابِ دا (د څلوېښتو سولاغو) اندازه د وجوب (واجبوالي) د بیان لپاره ده وَالْخَمْسُوْنَ بِطَرِيْقِ الْإِسْتِحْبَابِ او د پنځوسو سولاغو اندازه د استحباب لپاره ده ثُمَّ الْمُعْتَبَرُ فِيْ كُلِّ بِئْرٍ دَلْوُهَا الَّذِيْ يُسْتَقٰى بِهِ مِنْهَا بیا د هري څاه هغه سولاغه معتبره ده چي له هغه څاه څخه اوبه په راکښل کیږي وَقِيْلَ: دَلْوٌ يَسَعُ فِيْهَا صَاعًا او یو قول دا دی چي داسي سولاغه معتبره ده چي په هغه کي یو صاع (اوبه) ځاییږي وَلَوْنُزِحَ مِنْهَا بِدَلْوٍ عَظِيْمٍ مَرَّةً مِقْدَارَ عِشْرِيْنَ دَلْوًا او که په یوه ځل په غټه سولاغه د شلو سولاغو په اندازه اوبه راوکښل سي جَازَ (نو دا هم) جائز دي لِحُصُوْلِ الْمَقْصُوْدِ ځکه چي مقصود په حاصلیږي.

**اللغات:** ﴿بِئْر﴾ پیشي، ﴿دَلْو﴾ سولاغه، ﴿يَسَعُ﴾ ځاییدل، ګنجایش کېدل، ﴿صَاع﴾ یوه پیمانه ده چي د هغه اندازه ۳،۵۳۸ کیلو ګرامه ده، او د لیټر په حساب سره ۵،۸۸ لیټره ده.

**تشریح:** څرنګه چي مخکي بیان سوه چي که په څاه کي یو حیوان مړ سي نو اووه صورتونه جوړیږي چي په اصل کي دري صورتونه دي، اول صورت په مخکني عبارت کي بیان سو، دویم صورت په دې عبارت کي بیانیږي.

**صورت د مسئلې:** دا دی چي که په څاه کي کوتره ولوېږي او مړه سي یا د کوتري په ډول بل شی ور ولوېږي او مړ سي د مثال په توګه چرګه یا پیشي او داسي نور، نو په دې صورت کي د څاه د پاکوالي لپاره له څلوېښتو سولاغو څخه تر شپېتو سولاغو پوري راکښل واجب دي، او شپېته سولاغې راکښل مستحب دي.

وفي الجامع الخ امام محمد رَحِمَهُ الله په جامع صغیر کي بیان کړي دي چي څلوېښت یا پنځوس سولاغې به راکښل کیږي، یعني څلوېښت سولاغې واجب دي او پنځوس مستحب دي، صاحب د هدایې همدغه قول ته أظهر ویلي دي ځکه چي جامع صغیر د امام محمد رَحِمَهُ الله آخري تصنیف دی، نو په هغه کي چي څه ذکر سوي وي، هغه د امام محمد رَحِمَهُ الله آخري او مرجوع الیه قول وي.

**دلیل:** د ابو سعید خدري ﷺ روایت دی چي دوی ﷺ وفرمایل: که په څاه کي چرګه مړه سي، نو له څاه څخه به څلوېښت سولاغې اوبه را کښل کیږي، ښکاره دي وي چي په هره څاه کي خپله سولاغه معتبره ده (یعني د اوبو په را کښلو کي به د هري څاه د خپلي سولاغې اعتبار کیږي، لکه څرنګه چي مخکي ذکر سوه).

وقيل الخ او یو ضعیف قول دا دی چي هغه سولاغه معتبره ده چي په هغې کي یو صاع یعني تر شپږو لیټرو لږ کمي اوبه ځاییږي، صاحب د هدایې فرمایي چي د څاه په پاکولو کي به د سولاغې د عدد (شمېر) اعتبار نه کیږي، بلکه د هغو اندازو او مقدارونو اعتبار به کیږي کوم چي مخکي بیان سول، نو که یو چا له څاه څخه د غټي سولاغې په ذریعه په یوه وار شل سولاغې را وکښلې نو دا جائز دي، او مقصود حاصل سو، ځکه کوم مقدار چي تاکل سوی وو هغه راوکښل سو.

## په څاه کې د انسان يا د سپي د مړه کېدلو حکم

وَإِنْ مَاتَتْ فِيهَا شَاةٌ أَوْ كَلْبٌ أَوْ آدَمِيٌّ او که په څاه کې بزه (يا پسه) يا انسان يا سپی مړ سو نُزِحَ جَمِيعُ مَا فِيهَا مِنَ الْمَاءِ نو کومې اوبه چې په څاه کې دي هغه ټولې به را وکښل سي لِأَنَّ ابْنَ عَبَّاسٍ رَضِيَ اللهُ عَنْهُمَا وَابْنَ الزُّبَيْرِ رَضِيَ اللهُ عَنْهُمَا أَفْتَيَا بِنَزْحِ الْمَاءِ كُلِّهِ ځکه چې ابن عباس رض او ابن زبير رض د ټولو اوبو را کښلو فتویٰ ورکړې وه حِينَ مَاتَ زِنْجِيٌّ فِي بِئْرِ زَمْزَمَ کله چې د زمزم په څاه کې يو حبشي مړ سو.

**تشريح:** ﴿شَاةٌ﴾ بزې او پسه دواړو ته ويل کيږي، ﴿زِنْجِيٌّ﴾ حبشي، تک تور.

**تشريح:** درېم صورت دا دی چې که په څاه کې پسه يا انسان يا سپی مړ سو نو د څاه ټولې اوبه راکښل واجب دي، دليل يې دا دی چې يو حبشي د زمزم په څاه کې مړ سو نو ابن عباس رَضِيَ اللهُ عَنْهُمَا او ابن زبير رَضِيَ اللهُ عَنْهُمَا د ټولو اوبو را ايستلو فتویٰ جاري کړه.

## په څاه کې د حيوان د پړسېدلو حکم

فَإِنِ انْتَفَخَ الْحَيَوَانُ فِيهَا که په څاه کې حيوان وپړسېدی أَوْ تَفَسَّخَ يا وشوړېدی (رېزه رېزه سو) يُنْزَحُ جَمِيعُ مَا فِيهَا نو په څاه کې چې څومره اوبه دي هغه ټوله به راوکښل سي صَغُرَ الْحَيَوَانُ أَوْ كَبُرَ (برابره خبره ده) حيوان که کوچنی وو او که غټ لِانْتِشَارِ الْبَلَّةِ فِي أَجْزَاءِ الْمَاءِ ځکه چې د دې (حيوان) د نجاست لوندوالی د اوبو په ټولو اجزاؤ کې خور سي (نشر سي).

**اللغات:** ﴿اِنْتَفَخَ﴾ د افتعال د باب ماضي صيغه ده: پړسېدل، ډکېدل، ﴿تَفَسَّخَ﴾ د تفعّل د باب ماضي صيغه ده: شوړېدل، رژېدل، د يو شی اجزاء سره جلا کېدل، ﴿بَلَّة﴾ لوندوالی.

**تشريح:** **مسئله:** دا ده که په څاه کې يو حيوان مړ سي او وپړسيږي يا وشوړيږي او رېزه رېزه سي، نو که ممکنه وي نو د څاه ټولې اوبه دي را وکښل سي، حيوان که کوچنی وي او که غټ، دليل يې دا دی چې په پړسېدلو او شوړېدلو سره د حيوان د مردارو او نجسو اجزاؤ لوندوالی په اوبو کې وغوړيږي، نو په دې وجه ټولې اوبه مرداري سي، لکه په اوبو کې چې د وينو يا شرابو يوه قطره ولوېږي نو په ټولو اوبو کې د نشر کېدلو په وجه ټولې اوبه مرداريږي.

## د جاري او چينه داري څاه د پاکولو حکم

وَإِنْ كَانَتِ الْبِئْرُ مَعِينَةً او که څاه چينه داره وه بِحَيْثُ لَا يُمْكِنُ نَزْحُهَا په دې توګه چې د ټولو اوبو راکښل يې نا ممکنه وه أَخْرَجُوا مِقْدَارَ مَا كَانَ فِيهَا مِنَ الْمَاءِ نو په دې کې چې څومره اوبه (د نجاست لوېدلو په وخت کې) وي د هغه په اندازه اوبه به را وکاږي وَطَرِيقُ مَعْرِفَتِهِ أَنْ تُحْفَرَ حُفْرَةٌ مِثْلَ مَوْضِعِ الْمَاءِ مِنَ الْبِئْرِ او د دې د پېژندګلوۍ طريقه دا ده چې د څاه د اوبو مطابق دي کنده (کډی) وکښل سي وَيُصَبُّ فِيهَا مَا يُنْزَحُ مِنْهَا او له څاه څخه چې کومې اوبه راکښل کيږي هغه دي په دې کنده (کډي) کې اچول کيږي إِلَى أَنْ تَمْتَلِئَ تر دې چې هغه کنده ډکه سي أَوْ تُرْسَلَ فِيهَا قَصَبَةٌ يا دي په څاه کې يو بانس (يا لرګی) ور وځړول سي وَتُجْعَلُ لِمَبْلَغِ الْمَاءِ عَلَامَةٌ او اوبه چې (د بانس) تر کومه ځايه پورې را

ورسيږي پر هغه ځای دي نښه جوړه کړی سي (يعني نښان دي پر ولګوي) ثُمَّ يُنْزَحُ مِنْهَا مَثَلًا عَشْرُ دِلَاءٍ بيا دي له څاه څخه د مثال په توګه لس سولاغې را وکښل سي ثُمَّ تُعَادُ الْقَصَبَةُ بيا دي دوايم وار (په څاه کي) بانس ور وځړول سي فَيُنْظَرُ نو ودي کتل سي كَمِ انْتَقَصَ چي څومره اوبه کمي سوي دي فَيُنْزَحُ لِكُلِّ قَدْرٍ مِنْهَا عَشْرُ دِلَاءٍ نو د هر مقدار لپاره دي له څاه څخه لس سولاغې را وکښل سي وَ هٰذَانِ عَنْ أَبِي يُوسُفَ رَحِمَهُ اللهُ او دا دواړه طريقې له امام ابو يوسف رَحِمَهُ الله څخه را نقل سوي دي وَعَنْ مُحَمَّدٍ رَحِمَهُ اللهُ● نُزِحَ مِائَتَا دَلْوٍ إِلَى ثَلَاثِ مِائَةٍ له امام محمد رَحِمَهُ الله څخه را نقل سوي دي چي له دوو سوو (۲۰۰) سولاغو څخه به تر درې سوو سولاغو پوري را کښل کيږي فَكَأَنَّهُ بَنَى قَوْلَهُ عَلَى مَا شَاهَدَ فِي بَلَدِهِ ګواکي امام محمد رَحِمَهُ الله د خپل قول بنياد پر هغه څه کښېښوی کوم څه چي يې د خپل ښار په څاه کي ليدلي دي وَعَنْ أَبِي حَنِيفَةَ رَحِمَهُ اللهُ فِي الْجَامِعِ الصَّغِيرِ فِي مِثْلِهِ: يُنْزَحُ حَتَّى يَغْلِبَهُمُ الْمَاءُ او له امام ابو حنيفه رَحِمَهُ الله څخه په جامع صغير کي د داسي چينه داري څاه په باره کي را نقل سوي دي: چي په دومره اندازه دي اوبه را وکښل سي چي پر خلګو غالبې سي (يعني خلګ ستړي کړي) وَلَمْ يُقَدِّرِ الْغَلَبَةَ بِشَيْءٍ (خو) امام صاحب په هيڅ شي سره د غلبې اندازه معلومه کړې نه ده كَمَا هُوَ دَأْبُهُ لکه څرنګه چي دا د امام صاحب عادت دی وَقِيلَ: يُؤْخَذُ بِقَوْلِ رَجُلَيْنِ او ويل سوي دي: چي (په دې سلسله کي دي) د دوو داسي (عادلانو) خلګو په قول عمل وکړی سي لَهُمَا بَصَارَةٌ فِي أَمْرِ الْمَاءِ چي هغوی ته د اوبو په کار کي مهارت (او تجربه) وي وَهٰذَا أَشْبَهُ بِالْفِقْهِ او دا قول د فقهي سره زيات مشابه دی.

**اللغات:** ﴿مُعِيْنَة﴾ هغه څاه ته ويل کيږي چي په بيخ کي يې چينه را بهيږي. يعني د روانو اوبو څاه. ﴿يُنْظَرُ﴾ د ضرب د باب مضارع صيغه ده: کيندل، کنده (او کډی) کښل. ﴿تَنْتَقِصُ﴾ د افتعال د باب مضارع صيغه ده. اِمْتَلَأَ يَمْتَلِئُ: ډکول. ﴿قَصَبَةٌ﴾ بانس، هغه لرګی چي نس (مېنځ) يې خالي وي. ﴿دَأْبٌ﴾ عادت، طرز، طريقه.

**تشريح: مسئله:** دا ده چي څاه که چينه داره وه يعني اوبه يې نه دربېدلې، نو په داسي صورت کي حکم دا دی چي د نجاست ور لوېدلو په وخت کي چي په دې کي څومره اندازه اوبه وي هغه دي را وکښل سي. پاته سوه دا خبره چي دا به څنګه پېژندل کيږي چي په څاه کي څومره اندازه اوبه دي، نو د دې پېژندلو لپاره صاحب د کتاب پنځه طريقې ذکر کړي دي، چي اولي دوې طريقې له امام ابو يوسف رَحِمَهُ الله څخه را نقل سوي دي:

(۱) اوله طريقه دا ده چي د څاه داوږدول، پراخول او ژور والي اندازه به معلومه کړي. تر دې وروسته به د څاه تر څنګ په هغه اندازه کډی وکاږي، او له څاه څخه دي اوبه را کاږي په دې کډي کي دي يې اچوي. کله چي هغه کډی ډک سي، نو پوه دي سي چي د څاه ټوله اوبه را وکښل سوې.

(۲) دوېمه طريقه يې دا ده چي څاه ته دي يو بانس ور واچوي، يا پر رسۍ دي ډبره وتړي لو څاه ته دې ور واچوي. نو څه وخت چي بيخ ته ورسيږي، را دې کاږي، او ودې ګوري چي اوبه د لرګي يا رسۍ تر کومه ځايه را رسېدلې دي پر هغه ځای دي نښان ولګوي، بيا دي له څاه څخه په يوه وار لس سولاغې را وکاږي، لو بانس يا رسۍ دي بيا څاه ته ور واچوي

---

● القول الراجح: قول محمد رَحِمَهُ الله كذا في رد المحتار ج:۱، ص:۱۵۸ [القول الراجح ج:۱، ص:۱۹]

او ودې ګوري چې اوبه څومره کمې سوې دي، د مثال په توګه په څاه کې لس فوټه اوبه وې، په اول وار چې يې لس سولاغې را وکښلې په هغه سره يو فوټ اوبه کمې سوې، نو معلومه سوه چې ټولې اوبه سل سولاغې دي، نو ځکه دې نوي (۹۰) سولاغې نورې را وکاږي، چې سل سولاغې پوره سي، کله چې سل سولاغې پوره سوې، نو پوه دې سي چې د نجاست ورلوېدلو په وخت کې چې څومره اندازه اوبه په څاه کې وې هغه ټوله را وکښل سوې.

(۳) له حضرت امام محمد رَحِمَهُ الله څخه چې کومه طريقه را نقل سوې ده د هغې خلاصه دا ده چې په داسې وخت کې دې له دوو سوو سولاغو څخه تر درو سوو سولاغو پورې اوبه راکښل کېږي، صاحب د هدايې فرمايي: چې د امام محمد رَحِمَهُ الله دا قول په اصل کې د ده پر خپلې کتنې او ليدنې باندې مبني دی، کوم چې ده په خپل ښار "بغداد" کې (دا کتنه) کړې ده، ځکه چې د بغداد د څاه ګانو اوبه به په عامه توګه په همدومره اندازه وې، (يعني له دوو سوو سولاغو څخه تر درو سوو سولاغو پورې به وې).

(۴) څلورمه طريقه له امام صاحب رَحِمَهُ الله څخه را نقل سوې ده، هغه دا چې له داسې چينه داره څاه څخه دې دومره اوبه را وکښل سي چې د اوبو راکښونکې په ډېرو راکښلو سره ستړي او مغلوبه سي، نو څه وخت چې هغه ستړي او مغلوبه سي نو پوه دې سي چې د څاه ټولې اوبه را وکښل سوې، صاحب د هدايې فرمايي چې امام صاحب رَحِمَهُ الله د خپل عادت مطابق دلته هم د مغلوب والي او ستړيا هيڅ مقدار نه دی معلوم کړی، ځکه چې د هغه عادت دا دی چې په دا ډول مسئلو کې د حکم مدار د مبتلی به سړي ليباره پرېږدي.

(۵) پنځمه طريقه کوم چې ابو نصر بن محمد رَحِمَهُ الله ذکر کړې ده، دا ده: چې په داسې وخت کې دې دوه تجربه کاره او د اوبو په کارو ماهر او عادل خلک را وغوښتل سي او د هغو سره دې په دې باره کې مشوره وکړل سي، نو هغوی چې د اوبو راکښلو کومه اندازه وټاکي پر هغه دې عمل وکړی سي.

صاحب د هدايې فرمايي چې دا قول د فقهي سره زيات مشابهت لري، ځکه چې په شريعت کې هم په داسې نورو ځايونو کې دغه ډول فيصله سوې ده، لکه د ښکار د قيمت په باره کې چې په خپله قرآن کريم دا صراحت کړی دی چې فَجَزَاءٌ مِّثْلُ مَا قَتَلَ مِنَ النَّعَمِ يَحْكُمُ بِهِ ذَوَا عَدْلٍ مِّنكُمْ (سورة المائدة:۹۵)، او د شهادت په بيان کې راغلي دي: وَأَشْهِدُوا ذَوَيْ عَدْلٍ مِّنكُمْ (سورة الطلاق:۲). [بنايه ج:۱، ص:۴۱۹، عنايه ج:۱، ص:۱۱۰]

له دې څخه دا هم معلومه سوه چې په دا ډول حالاتو او مسئلو کې د ماهره او تجربه کاره خلکو پر مشوره او رايه عمل کول ډېر غوره دي.

**راجح قول**: په پورتنۍ مسئله کې د امام محمد رَحِمَهُ الله قول راجح دی، لکه څرنګه چې علامه حصکفي رَحِمَهُ الله د دې قول په اړه ليکلي دي: وقيل يفتى بمائة الى ثلاثمائة وهذا أيسر و ذاك أحوط. او علامه ابن العلاء الهذلي رَحِمَهُ الله ليکي: إذا غلب الماء ولم ينزح يفتى بقول محمد رَحِمَهُ الله بثلاثمائة دلو.

## که څاه ته د حيوان ور لوېدلو وخت معلوم نه وو، نو څه حکم دی؟

قَالَ: وَإِنْ وَجَدُوا فِي الْبِئْرِ فَأْرَةً أَوْ غَيْرَهَا فرمايي: او که خلکو په څاه کې موږک يا بل حيوان (مړ سوی) وليدی وَلَا يَدْرِي مَتَى وَقَعَتْ او معلومه نه وه چې دا حيوان کله ور لوېدلی دی وَلَمْ تَنْتَفِخْ او تر اوسه پورې پړسېدلی (هم) نه وو أَعَادُوا صَلَاةَ يَوْمٍ وَلَيْلَةٍ نو دا خلک دې د يوې ورځې او شپې لمونځونه را وګرځوي إِذَا كَانُوا تَوَضَّئُوا مِنْهَا (په هغه صورت

کي) چي د دې څاه په اوبو يې اودسونه کړي وي (او په دغو اودسو يې لمونځونه کړي وي) وَغَسَلُوْا كُلَّ شَيْءٍ أَصَابَهُ مَاؤُهَا او هر هغه شی دي پرېولي چي د دغه څاه اوبه ور رسېدلي وي وَإِنْ كَانَتْ قَدِ انْتَفَخَتْ أَوْ تَفَسَّخَتْ او که دا حيوان پړسېدلی او شوربدلی وو أَعَادُوْا صَلَاةَ ثَلَاثَةِ أَيَّامٍ وَلَيَالِيْهَا نو دا خلک دې د دريو ورځو او دريو شپو لمونځونه را وګرځوي وَهٰذَا عِنْدَ أَبِيْ حَنِيْفَةَ رَحِمَهُ اللهُ دا حکم د امام ابو حنيفه رَحِمَهُ الله په نېز دی وَقَالَا● : لَيْسَ عَلَيْهِمْ إِعَادَةُ شَيْءٍ او صاحبين فرمايي: چي پر دوی د هيڅ شي را ګرځول واجب نه دي حَتّٰى يَتَحَقَّقُوْا أَنَّهَا مَتٰى وَقَعَتْ تر څو چي دوی (پوره) تحقيق وکړي چي دا کله ور لوېدلې دی لِأَنَّ الْيَقِيْنَ لَا يَزُوْلُ بِالشَّكِّ ځکه چي يقين په شک سره نه زائلېږي وَصَارَ كَمَنْ رَأٰى فِيْ ثَوْبِهٖ نَجَاسَةً نو دا داسي سو لکه يو سړی چي په خپل جامو (کالو) کي نجاست ووېني وَلَا يَدْرِيْ مَتٰى أَصَابَتْهُ لېکن په دې نه وي خبر چي دا نجاست کله ور سره لګېدلی دی وَلِأَبِيْ حَنِيْفَةَ رَحِمَهُ اللهُ أَنَّ لِلْمَوْتِ سَبَبًا ظَاهِرًا او د امام صاحب رَحِمَهُ الله دليل دا دی چي د مرګ سبب ښکاره دی وَهُوَ الْوُقُوْعُ فِي الْمَاءِ او هغه په اوبو کي لوېدل دي فَيُحَالُ بِهٖ عَلَيْهِ نو ځکه به مرګ پر دغه حمل کيږي إِلَّا أَنَّ الِانْتِفَاخَ وَالتَّفَسُّخَ دَلِيْلُ التَّقَادُمِ لېکن د حيوان پړسېدل او شوربدل د مخکي والي دليل دی (يعني چي دا حيوان ډېر مخکي ور لوېدلی دی) فَيُقَدَّرُ بِالثَّلَاثِ نو د دريو ورځو اندازه به کيږي وَعَدَمُ الِانْتِفَاخِ وَالتَّفَسُّخِ دَلِيْلُ قُرْبِ الْعَهْدِ او نه پړسېدل او نه شوربدل د نژدې زماني (وخت) دليل دی (يعني چي دو رلوېدلو يې ډېر وخت نه کيږي) فَقَدَّرْنَاهُ بِيَوْمٍ وَلَيْلَةٍ نو ځکه موږ په يوه ورځ او شپه سره د دې اندازه وکړه لِأَنَّ مَا دُوْنَ ذٰلِكَ سَاعَاتٌ لَا يُمْكِنُ ضَبْطُهَا ځکه چي له دې مقدار څخه کم (وخت) خو يو څو ساعتونه (ګېنټې) وي چي په ضبط کي د هغو راوستل امکان نه لري وَأَمَّا مَسْأَلَةُ النَّجَاسَةِ فَقَدْ قَالَ الْمُعَلّٰى: هِيَ عَلَى الْخِلَافِ او پاته سوه د (کالو د) نجاست مسئله نو معلیٰ ويلي دي: چي دا هم اختلافي ده فَيُقَدَّرُ بِالثَّلَاثِ فِي الْبَالِيْ نو په زوړ (اوپخواني) نجاست کي به د دريو ورځو اندازه کيږي وَبِيَوْمٍ وَلَيْلَةٍ فِي الطَّرِيِّ او په تازه (او نوي) نجاست کي به د يوې ورځي او شپې (اندازه کيږي) وَلَوْ سُلِّمَ فَالثَّوْبُ بِمَرْأَى عَيْنِهٖ او که دا ومنل سي هم (چي په دې کي اختلاف نسته) نو کالي خو د انسان په سترګو کي دي (يعني هر وخت انسان خپل کاليويني) وَالْبِئْرُ غَائِبَةٌ عَنْ بَصَرِهٖ او څاه د ده له سترګو څخه پټ دی فَيَفْتَرِقَانِ نو ځکه به دواړه صورتونه سره جلا کيږي.

**اللغات:** ﴿فَأرَةٌ﴾ موږک، ﴿يَتَحَقَّقُوْا﴾ د تفعّل مضارع ده: تحقيق او پلټنه کول، ﴿تَقَادُمٌ﴾ د تفاعل مصدر دی: مخکي کېدل، زوړ کېدل، ﴿بَالِيْ﴾ زوړ، پخوانی، ﴿طَرِيّ﴾ تازه، نوی.

---

● القول الراجح: هوقول أبي حنيفه رَحِمَهُ الله كذا في البحر ج:١، ص:١۶١، ورد المحتار ج:١، ص:١۶١ . [القول الراجح ج:١، ص:٢٠]

**تشريح: صورت د مسئلې:** دا دی چې که خلکو په یو څاه کې مردار سوی حیوان ولیدی او دا یې معلومه نه کړل چې کله ور لوېدلی دی او تر اوسه پوري پړسېدلی او شوړېدلی هم نه وو، نو په دې صورت کې حکم دا دی چې که د دې څاه په اوبو یې اودسونه کړي وي او په دې اودسو یې لمونځونه کړي وي نو د یوې ورځې او شپې لمونځونه دې را وګرځوي. او کوم شي ته چې د دې څاه اوبه رسېدلي وي(یعني ور سره لګېدلي وي) هغه دې پرېولي، لېکن که حیوان پړسېدلی یا شوړېدلی او اجزاء یې نشر سوي وه، نو د دریو ورځو او دریو شپو لمونځونه دې را وګرځوي. دا حکم د امام اعظم رَحِمَهُ الله په نېز دی، او د صاحبینو مذهب دا دی چې پر دې خلکو د هیڅ شي را ګرځول واجب نه دي، تر دې چې په تحقیق او پلټنې سره دا ثابته نه سي چې دا حیوان کله ور لوېدلی دی.

**د صاحبینو دلیل:** دا دی چې مخکې خو د څاه اوبه یقیني پاکي وې، خو په دې کې د مردار سوي حیوان د لیدلو په وجه په تیرو ورځو کې د دې د اوبو په مردار والي کې شک واقع سو، ځکه دا احتمال هم سته چې دا حیوان دې اوس یو څه ګړی له مخه څاه ته ور لوېدلی وي، او تر اوسه دې د دې اوبه استعمال سوي نه وي، او دا امکان هم سته چې یو څو ورځې مخکې دې ور لوېدلی وي او د اودسونو او داسې نورو شیانو لپاره دې یې اوبه استعمال سوي وي، خو په هر حال په تیرو ورځو کې د دې په ناپاکۍ کې شک واقع سو، او یقین د شک په وجه سره نه زائلیږي، نو تر څو چې په باور او یقین سره دا معلومه نه سي چې دا حیوان کله ور لوېدلی دی، تر هغه وخته په تیرو ورځو کې د دې څاه د ناپاکۍ حکم نه سي کېدلای، هو! که د حیوان د لوېدلو وخت معلوم سي، نو د لوېدلو له وخت څخه به څاه ناپاکه وي، ځکه چې یقین په یقین سره زائلیږي، او دا حکم داسي دی لکه یو څوک چې پر خپلو جامو(کالو) نجاست ووېني، او دا ور ته معلومه نه وي چې دا کله پر لګېدلی دی، نو پر دې سړي د لمونځونو را ګرځول نسته.

**د امام صاحب دلیل:** دا دی چې په څاه کې د دې حیوان لوېدل د دې خبرې ښکاره سبب او دلیل دی چې دی په دې څاه کې مړ سوی دی، او دا قاعده ده چې مسبب که پټ وي نو پر ښکاره سبب به حکم لګول واجب وي، نو ځکه به د دې حیوان مرګ په اوبو کې د لوېدلو و طرف ته منسوبه کیږي یعني دا به ویل کیږي چې دا حیوان په دې اوبو کې مړ سوی دی، که څه هم دا احتمال هم سته چې په یو بل سبب سره دې مړ سوی وي لېکن دا احتمال موهوم دی (یعني په دې احتمال کې وهم دی)، او دا داسي دی لکه زید چې خالد زخمي کړي، او خالد د دې زخم په وجه صاحب فراش سي(یعني د بستري خاوند سي، ټوله وخت پر بستره پروت وي) تر دې چې په دغه کې مړ سي، نو همدا به ویل کیږي چې خالد د زید د زخمي کولو په وجه مړ سوی دی، که څه هم بغیر له دې څخه یې نور احتمالات هم سته، لېکن د دې حیوان پړسېدل او شوړېدل د دې خبرې دلیل دی چې دا حیوان مخکې مړ سوی دی(یعني زوړ دی او ډېر وخت کیږي چې ور لوېدلی دی) او د مخکې والي(او زوړوالي) کمه موده درې ورځې ده، لکه څرنګه چې یو سړی بغیر د جنازې له لمانځه څخه پټ کړی سوی وي نو تر دریو ورځو پوري د هغه د جنازې لمونځ کېدلای سي، او له دریو ورځو څخه وروسته یې د جنازې لمونځ صحیح نه دي، ځکه چې د دریو ورځو په موده کې بدن پړسیږي او شوړیږي(او د بدن اجزاء یې سره بېل او ذره ذره کیږي)، نو په دې وجه د زوړوالي(او ځنډوالي) کمه موده په درې ورځو سره اندازه سوې ده.

او په کوم صورت کې چې پړسېدل او شوړېدل راغلي نه وي نو دا د دې خبرې دلیل دی چې حیوان په دا نژدې وخت کې ور لوېدلی او مړ سوی دی، او د مقدار کمه موده یوه ورځ او یوه شپه ده، ځکه چې له دې څخه بیا کم ساعتونه(ګېنټې) دي چې د هغو ضبطول او پلټنه یې کول امکان نه لري، نو په دې وجه سره موږ د دې کمه اندازه یوه ورځ او یوه شپه ټاکله.

**جواب:** صاحب د هدایې له و أما مسئلة النجاسة څخه د صاحبینو د قیاس جواب ور کوي، دوه جوابونه یې ور کړي دي:

(۱) اول جواب دا چي پر جامو د نجاست لګېدلو مسئله هم اتفاقي نه ده، بلکي مختلف فيه ده، ځکه چي د خپل وخت نامتو فقيه معلیٰ بن منصور رَحِمَهُ الله فرمايلي دي چي دا مسئله هم اختلافي ده، نو ځکه به د امام صاحب رَحِمَهُ الله په نېز په پخواني (او زوړ) نجاست کي د دريو ورځو او شپو مقدار، او په تازه نجاست کي به د يوې ورځي او شپې مقدار تاکل کيږي، حتی که په دغه ناپاکه جامو کي يې لمونځونه کړي وي نو د هغو راګرځول به واجب وي.

(۲) دويم جواب دا چي که موږ دا ومنو چي دا مسئله اتفاقي ده او په دې کي اختلاف نشته نو هم د څاه مسئله پر دې جامو بلندي قياسول صحيح نه دي، ځکه چي جامه هر وخت د انسان په سترګو کي وي، او هر وخت د انسان پر بدن وي (د ده له نظر څخه پټه نه وي)، نو که نجاست مخکي پر لګېدلی وای نو ده به په هغه وخت کي ليدلی وای. نو په اوس وخت کي د نجاست ليدل د دې خبري دليل دی چي اوس پر لګېدلی دی، او څاه د انسان له سترګو څخه پټه وي، کېدای سي چي حيوان مخکي مر سوی وي خو ده ته به يې خبر (او علم) نه وي، خلاصه دا چي په دې دواړو صورتونو کي فرق سته، نو کله چي په دواړو کي فرق سته، نو ځکه به د څاه مسئله د جامو پر مسئله نه قياسيږي، ځکه چي قياس مع الفارق صحيح نه دی، والله أعلم.

**راجح قول:** په پورتنۍ مسئله کي د امام صاحب رَحِمَهُ الله قول راجح دی، علامه ابن عابدين رَحِمَهُ الله په دې باره کي ليکي: ورجح دليله في جميع المصنفات وصرح في البدائع بان قولهما قياس وقوله استحسان وهو الأحوط في العبادات (رد المحتار ج:۱، ص:۱۶۱). [القول الراجح ج:۱، ص:۲۰]



## فَصْلٌ فِي الْأَسَارِ وَغَيْرِهَا

(دا) فصل د پسخوردو او نورو (په بيان کي) دی

**تشريح:** تر دې مخکي صاحب د هدايې رَحِمَهُ الله په اوبو کي د حيوان لوېدلو احکام بيان کړل. اوس له دې ځايه په اوبو کي د انسان او حيوان د پسخوردې لوېدلو احکام بيانوي، آسار جمع د سُؤر ده. معنیٰ يې ده: پاته سوی خوراک او اوبه (چي په عام عرف کي پسخورده ور ته ويل کيږي) زموږ په نېز د پسخوردې څلور قسمونه دي:

① پاکه پسخورده، لکه د انسان او هغه حيوان پسخورده چي غوښي يې خوړل کيږي.

② مکروه، لکه د پيشي پسخورده.

③ مړداره، لکه د خنزير او درندګانو (ځيرونکو حيوانانو) پسخورده.

④ مشکوک فيه (شکمنه) لکه د خره او قاټري پسخورده.

## د حيوان د خولې(عرق) حکم

وَعَرَقُ كُلِّ شَيْءٍ مُعْتَبَرٌ بِسُؤْرِهِ او د هر حيوان خوله(خوېله) به د هغه پر پسخوردې قياسيږي لِأَنَّهُمَا يَتَوَلَّدَانِ مِنْ لَحْمِهِ ځکه چې خوله او پسخورده(يعني لاړې[1]) دواړه د هغه له غوښو څخه پيدا کيږي فَأَخَذَ أَحَدُهُمَا حُكْمَ صَاحِبِهِ نو ځکه يوه د بل حکم واخيستی(يعني يو به د بل په حکم کې وي).

**اللغات:** ﴿عَرَقٌ﴾ خوله(خوېله)، ﴿يَتَوَلَّدَانِ﴾ د تفعّل له باب څخه د تثنيې صيغه ده: پيداکېدل، زېږېدل.

**تشريح:** صاحب د کتاب د پسخوردې په ضمن کې د خولې(عرق) احکام هم بيانوي، نو ځکه يې د وسؤر کل شئ پر ځای د وعرق کل شئ عبارت ذکر کړی، چې په يوه غشي سره دوه ښکاره وکړي[2]، او د خولې(عرق) لپاره يې يو بل جلا فصل بيان نه کړی. (عنايه)

په هر حال د عبارت خلاصه دا ده چې د شرعي حکم او مسئلې د پېژندګلوي لپاره به د هر حيوان خوله(عرق) د هغه پر پسخوردې(لانو) باندې قياسيږي. يعني کوم حکم چې د حيوان د پسخوردې دی، هغه حکم به يې د خولې هم وي. ځکه چې دا دواړه له غوښو څخه پيدا کيږي، نو ځکه به د دوی حکم هم يو وي.

## د مسلمان، کافر او د ماکول اللحم حيوانانو د پسخوردې حکم

وَسُؤْرُ الْآدَمِيِّ وَمَا يُؤْكَلُ لَحْمُهُ طَاهِرٌ فرمايي: د انسان او د ماکول اللحم حيوان پسخورده پاکه ده لِأَنَّ الْمُخْتَلِطَ بِهِ اللُّعَابُ ځکه چې په پسخورده لانې(لاړې) ګډې وي وَقَدْ تَوَلَّدَ مِنْ لَحْمٍ طَاهِرٍ او لانې له پاکو غوښو څخه پيدا سوي دي فَيَكُونُ طَاهِرًا نو ځکه به دا پاکي وي وَيَدْخُلُ فِي هَذَا الْجَوَابِ الْجُنُبُ وَالْحَائِضُ وَالْكَافِرُ او په دې حکم کې جنب سړی، حائضه ښځه او کافر ټوله داخل دي.

**اللغات:** ﴿سُؤْرٌ﴾ پسخورده، ﴿اللُّعَابُ﴾ لانې(لاړې)، ﴿لَحْمٌ﴾ غوښې.

**تشريح:** صورت د مسئلې: دا دی چې د انسان پسخورده هغه که مسلمان وي، که کافر، پاک وي، که جنب. او که حائضه ښځه وي د ټولو پسخورده پاکه ده، همدارنګه د هغو حيوانانو چې غوښې يې خوړل کيږي پسخورده پاکه ده. که له دوی څخه ديوه لانې يا پسخورده او داسې نور په اوبو ګډ سي نو د اوبو پاکوالي ته هيڅ تاوان نه رسوي. دليل يې دا دی چې اوبه د لانو د ګډېدلو په وجه پسخورده جوړيږي، او لانې له غوښو څخه پيدا دي، او د ماکول اللحم حيوان غوښې خو پاکي دي، نو لانې به يې هم پاکي وي. او کله چې لانې پاکي سوې نو په کوم شي چې دا لانې ګډې سي هغه به هم پاک وي. دا دليل خو د ماکول اللحم حيوانانو د پسخورې پر پاکوالي وو، او د انسان د پسخوردې پر پاکوالي دا حديث دليل دی: أن النبي ﷺ أتى بقدح من لبن فشرب وناول الباق اعرابيا كان من يمينه فشربه ثم ناول أبابكر فشربه. (يعني نبي ﷺ د شيدو يوه پياله راوړه چې له هغه څخه نبي ﷺ خپله هم شيدې وڅښلې. بيا يې يو

---

[1] دلته د "هُمَا" ضمير عرق او سؤر(پسخوردې) ته راجع دی، پسخورده خو له غوښو څخه نه پيدا کيږي، بلکې لانې له غوښو څخه پيدا کيږي، نو دلته له غوښو څخه مجازاً لانې مراد دي. ځکه چې د پسخوردې د مردار بدلو اصلي سبب هم د حيوان لانې دي. (ژباړن)

[2] د اردو ژبې يو متل دی "ايک تير سے دو شکار کرنا" يعني په يوه غشي دوه ښکاره کول. دا متل په هغه وخت کې ويل کيږي چې کله انسان په يوه کار سره يا په يوې خبرې سره په يو ځل د يوې فايدې پر ځای دوې فايدې تر لاسه کړي.

صحرايي (کوچي) ته ورکړې هغه هم وچيښلې او بيا يې حضرت ابوبکر ﷺ ته ورکړې هغه هم وچيښلې)، له دې حديث څخه صفا ښکاره کيږي چې د انسان پسخورده پاکه ده، او عقلي خبره دا ده چې د انسان ذات پاک دی نو ځکه به د ده پسخورده هم پاکه وي.

د حائضې ښځې د پسخوردې د پاکوالي دليل د حضرت عايشې رَضِيَ اللهُ عَنْهَا دا روايت دی: عن عائشة رَضِيَ اللهُ عَنْهَا شربت من إناء في حال حيضها فوضع رسول الله ﷺ فمه على موضع فمها و شرب. (يعني حضرت عائشې رَضِيَ اللهُ عَنْهَا د حيض په حالت کې له يو لوښي څخه اوبه وچيښلې، بيا نبي ﷺ هم د لوښي پر هغه ځای خوله کښېښول او اوبه يې وچيښلې پر کوم ځای چې عايشې رَضِيَ اللهُ عَنْهَا خوله ايښې وه).

او په خپله د کافر پاکوالی هم له حديث څخه ثابت دی: روى أن رسول الله ﷺ أنزل وفد ثقيف في المسجد و كانوا مشركين. (روايت سوی دی چې د ثقيف قبيلې يو هيئت (پله) مسجد ته راغله، حال دا وو چې هغوی مشرکان وو)، نو که مشرک نجس وای، نبي ﷺ به دوی مسجد ته پرې ايښي نه وای، پاته سو د الله دا قول: إِنَّمَا الْمُشْرِكُونَ نَجَسٌ (سورة التوبة:۲۸)، نو له دې څخه مراد اعتقادي نجاست دی نه د ښکاره بدن.

## د سپي د پسخوردې حکم (او سپي چې په کوم لوښي کې خوراک کړی وي د هغه د پاکولو طريقه)

وَسُؤْرُ الْكَلْبِ نَجَسٌ او د سپي پسخورده مرداره ده وَيُغْسَلُ الْإِنَاءُ مِنْ وُلُوغِهِ ثَلَاثًا او د هغه د خولې په وهلو (اچولو) سره به لوښی درې واره پرېولل کيږي لِقَوْلِهِ عَلَيْهِ الصَّلَاةُ وَالسَّلَامُ ● ځکه نبي ﷺ فرمايلي دي يُغْسَلُ الْإِنَاءُ مِنْ وُلُوغِ الْكَلْبِ ثَلَاثًا د سپي له خولې وهلو څخه به لوښی درې واره پرېولل کيږي وَلِسَانُهُ يُلَاقِي الْمَاءَ دُونَ الْإِنَاءِ او (د خولې وهلو په وخت کې) د سپي ژبه د اوبو سره مښلي نه د لوښي سره فَلَمَّا تَنَجَّسَ الْإِنَاءُ فَالْمَاءُ أَوْلَى نو کله چې لوښی مردار سو نو اوبه خو به خامخا مرداريږي وَهَذَا يُفِيدُ النَّجَاسَةَ وَالْعَدَدَ فِي الْغَسْلِ او دا حديث د (اوبو د) مردار والي او (د لوښي) په پرېوللو کې د دريو د شمېرې (د ضروري کېدلو) فايده ورکوي وَهُوَ حُجَّةٌ عَلَى الشَّافِعِيِّ رَحِمَهُ اللهُ فِي اشْتِرَاطِ السَّبْعِ او دا حديث د اوو (۷) وارو د شرط لګولو په باره کې د امام شافعي رَحِمَهُ الله په خلاف حجت دی وَلِأَنَّ مَا يُصِيبُهُ بَوْلُهُ يَطْهُرُ بِالثَّلَاثِ او په دې وجه هم چې پر کوم شي د سپي متيازې ولګيږي هغه (لا) په دريو وارو سره پاکيږي فَمَا يُصِيبُهُ سُؤْرُهُ وَهُوَ دُونَهُ نو هغه شی چې د سپي پسخورده پر ولګيږي حال دا چې د سپي پسخورده د سپي تر متيازو (په نجاست کې) کمه ده أَوْلَى (نو) هغه شی به په طريقهٔ اولیٰ سره (په دريو وارو) پاکيږي وَالْأَمْرُ الْوَارِدُ ● بِالسَّبْعِ مَحْمُولٌ عَلَى ابْتِدَاءِ الْإِسْلَامِ او د اوو (۷) وارو پرېوللو چې کوم حکم راغلی دی هغه د اسلام پر ابتداء (شروع) باندې حمل کيږي وَسُؤْرُ الْخِنْزِيرِ نَجَسٌ او د خنزير پسخورده مرداره ده لِأَنَّهُ نَجَسُ الْعَيْنِ ځکه چې خنزير نجس العين دی عَلَى مَا مَرَّ لکه څرنګه چې مخکې (دا حکم) تېر سو.

---

● تخريج: أخرجه دار قطني في كتاب الطهارة، باب ولوغ القلب في الاناء، حديث رقم: ۱۹۳.

● تخريج: أخرجه دار قطني في كتاب الطهارة، باب ولوغ القلب في الاناء، حديث رقم:۱۷۸.

**اللغات:** ﴿وَلَوغ﴾ دفتح د باب مصدر دی: په لوښي کي خوله وهل(اچول) د سپي او درنده لپاره استعماليږي، ژبه ښورول يا دژبي په طرف سره اوبه چيښل، ﴿مَرّ﴾ دنصرب دباب ماضي صيغه ده: تېرېدل، دوخت تېرېدل.

**تشريح: صورت د مسئلي:** دا دی چي که سپي په يو لوښي کي خوله ووهل هغه لوښی هم مرداريږي، او په دې لوښي کي که اوبه يا يو بل پاک شی وو هغه هم مرداريږي، له امام مالک رَحِمَهُ الله څخه ماسوا نور د ټولو په نېز د سپي پسخورده مرداره ده، او هغه لوښی چي سپي خوله پکښې وهلې وې درې واره پرېولل واجب دي، ځکه په حديث کي راغلي دي: که سپي په لوښي کي خوله ووهل نو دغه لوښی دي درې واره پرېولل سي، په دې حديث سره په دې توګه دليل نيول کيږي، چي د سپي ژبه د اوبو سره مښلي نه دلوښي سره، نو کله چي د سپي د خولې وهلو په وجه لوښی مردار سو، نو اوبه خو به خامخا مرداريږي؛ ځينو حضراتو اعتراض کړی دی چي ممکنه ده له ولوغ څخه مراد څټل وي، نو د څټلو په وخت کي خو ژبه دلوښي سره مښلي نه د اوبو سره، نو ځکه به په دې حديث سره د اوبو په باره کي دليل نيول صحيح نه وي، جواب دا دی چي د ولوغ حقيقي معنیٰ ده: دژبي په طرف سره اوبه يا بل شی چيښل، او قاعده دا ده چي تر څو پوري د حقيقي معنیٰ په خلاف يوه قرينه پيدا نه سي نو حقيقي معنیٰ به مراديږي، حاصل دا چي له حديث څخه دوې خبري ثابتي سوې: يوه دا چي د سپي لا ني مرداري دي، دويم دا چي د لوښي د پرېوللو شمېر درې دی، او دا حديث د امام شافعي رَحِمَهُ الله په خلاف حجت دی، ځکه د امام شافعي رَحِمَهُ الله په نېز اووه واره پرېولل ضروري دي.

**د امام شافعي دليل:** د عبد الله بن مغفل ﷺ حديث دی: أنه ﷺ قال: إذا ولغ الكلب فی إنائكم فاغسلو سبعا وعفّروه الثامنة بالتراب، (يعني نبي ﷺ وفرمايل: چي کله سپی ستاسو په لوښي کي خوله ووهي نو تاسو يې اووه واره پرېولئ او اتم واريې په خاورو صفا کړئ).

**جواب:** زموږ له طرفه د امام شافعي رَحِمَهُ الله د دې حديث جواب دا دی چي دا د اوو(۷) وارو د پرېوللو حکم د اسلام په شروع کي وو، بيا وروسته منسوخ سو، او په اصل کي خبره دا وه، چي نبي ﷺ به پر خلکو د اسلام په شروع کي د سپيانو په باره کي سختي کوله، چي د سپيانو له را جمع کولو څخه بند سي، خو څه وخت چي د دوی دا عادت ختم سو، نو دا حکم هم منسوخ سو.

ولأنّ ما يصيبه الخ صاحب د هدايې له دې ځايه پر امام شافعي رَحِمَهُ الله الزامي دليل وړاندي کوي فرمايي: پر کوم شي چي د سپي متيازي ولګيږي هغه په درې وارو پرېوللو سره پاکيږي، نو پر کوم شي چي د هغه پسخورده ولګيږي حال دا چي پسخورده يې له متيازو څخه کمه ده، نو دا شی خو به خامخا په درې وارو پرېوللو سره پاکيږي، د سپي پسخورده د هغه له متيازو څخه په دې وجه کمه ده، چي د سپي متيازي د هيچا په نېز هم پاکي نه دي، لېکن پسخورده يې د امام مالک رَحِمَهُ الله په نېز پاکه ده.

## د درندګانو د پسخوردې حکم

وَسُؤْرُ سِبَاعِ الْبَهَائِمِ نَجِسٌ او د ښيرونکو حيواناتو پسخورده مرداره ده خِلَافًا لِلشَّافِعِيِّ رَحِمَهُ اللهُ فِيمَا سِوَى الْكَلْبِ وَالْخِنْزِيرِ لېکن له سپي او خنزير څخه په علاوه کي د امام شافعي رَحِمَهُ الله اختلاف دی لِأَنَّ لَحْمَهَا نَجِسٌ ځکه چي د دې ښيرونکو حيواناتو غوښه مرداره ده وَمِنْهُ يَتَوَلَّدُ اللُّعَابُ او لا ني هم له غوښو څخه پيدا کيږي وَهُوَ الْمُعْتَبَرُ فِي الْبَابِ او په دې باب کي هم د لا نو اعتبار دی.

**اللغات:** ﴿سِبَاعٌ﴾ جمع ده، واحد يې سَبُعٌ دی: درنده(ځيرونکي حيوان).
**تشريح: صورت د مسئلې:** دا دی چې زموږ په نېز د درندګانو (ځيرونکو حيواناتو لکه شېر، پړانګ، لېوه او د داسې نورو) پسخورده مرداره ده، او په کوم لوښي يا اوبو کې چې دوی خوله ووهي هغه مرداريږي، او د امام شافعي رَحِمَهُ الله په نېز له خنزير او سپي څخه ماسوا د نورو درندګانو او ښارويانو پسخورده پاکه ده.
**د امام شافعي دليل:** دا دی چې له حضرت ابو هريره رضي الله عنه څخه روايت دی چې له نبي ﷺ څخه د هغو حوضونو په باره کې پوښتنه وسوه چې د مکې او مدينې په مينځ کې وه، او نبي ﷺ ته دا هم وويل سوه چې هلته د اوبو چيښلو لپاره سپيان او درندګان هم راځي، نبي ﷺ وفرمايل: لها ما أخذ في بطونها ولنا ما بقي شراب و طهور. (يعني دې درندګانو چې کوم شه په خپلو نسو کې واخيستل هغه د دوی لپاره دي او کوم شه چې پاته سوه هغه زموږ د چيښلو لپاره دي او پاک دي).
او په بل حديث کې راځي أنتوضأ بما أفضلت الحمر فقال نعم و بما أفضلت السباع كلها، (يعني آيا موږ د خرو له پاته سوو اوبو څخه اودس کوو (که نه؟)، نبي ﷺ وفرمايل: هو! او د درندګانو له پاته سوو اوبو څخه هم (اودس کوئ). له دې دواړو حديثونو څخه معلومه سوه چې د درندګانو پسخورده پاکه ده.
**زموږ دليل:** دا حديث دی: أن عمر رضي الله عنه و عمرو بن العاص رضي الله عنه وردا حوضاً فقال عمرو بن العاص يا صاحب الحوض أترد السباع ماء هذا فقال عمر يا صاحب الحوض لا تخبرنا فلو لا أنه كان إذا أخبر بورود السباع يتعذر عليهما استعماله لما نهاه عن ذالك، (يعني حضرت عمر فاروق او عمرو بن العاص يوه حوض ته ولاړل، عمرو بن العاص رضي الله عنه وفرمايل چې اې د حوض خاونده! آيا ستا دې اوبو ته درندګان راځي (د هغه له جواب څخه مخکې) حضرت عمر رضي الله عنه وويل: اې د حوض خاونده! موږ ته خبر مه راکوه، ځکه که موږ ته د درندګانو د راتګ خبر راکړی سو نو پر موږ دواړو به د دې استعمال ستونزمن سي، ځکه چې نبي ﷺ له دې څخه منع کړې ده). له دې واقعې څخه معلومه سوه چې د درندګانو پسخورده مرداره ده.
**عقلي دليل:** زموږ له طرفه عقلي دليل دا دی چې د درندګانو غوښې مرداري دي، او لاړې له غوښو څخه پيدا کيږي، او د لاړو په پاکوالي او مرداروالي کې غوښې معتبرې دي، يعني که غوښې يې مرداري وې نو لاړې به يې هم مرداري وي، او که غوښې يې پاکې وې نو لاړې به يې هم پاکې وي.
**جواب:** د امام شافعي رَحِمَهُ الله د حديث جواب دا دی چې د درندګانو د اوبو د پاکوالي حکم د اسلام په شروع کې د دوی د غوښو له تحريم څخه مخکې وو (يعني د اسلام په شروع کې چې کله د درندګانو غوښې حرامې سوي نه وې نو د درندګانو اوبه او پسخورده هم پاک وه خو وروسته) بيا دا حکم منسوخ سو. دويم جواب يې دا دی چې د کومو حوضونو په باره کې چې له نبي ﷺ څخه پوښتنه وسوه، هغه ټول لوی جوضونه وه، او دا خبره موږ هم منو چې لوی حوض نه مرداريږي.

## د پيشي د پسخوردې حکم (او په دې باره کې د فقهاؤ قولونه)

وَسُؤْرُ الْهِرَّةِ طَاهِرٌ مَكْرُوهٌ او د پيشي پسخورده پاکه ده (خو) مکروه ده وَعَنْ أَبِي يُوسُفَ أَنَّهُ غَيْرُ مَكْرُوهٍ او له امام ابو يوسف رَحِمَهُ الله څخه را نقل سوي دي چې مکروه نه ده لِأَنَّ النَّبِيَّ عَلَيْهِ الصَّلَاةُ وَالسَّلَامُ كَانَ يُصْغِي● لَهَا الْإِنَاءَ ځکه

● تخريج: أخرجه دار قطني في كتاب الطهارة باب سؤر الهرة، حديث رقم: ١٩٥

چي نبي ﷺ به پیشي ته لوښی را کړوي فَتَشْرَبُ مِنْهُ نو پیشي به له هغه څخه اوبه چیښلې ثُمَّ يَتَوَضَّأُ مِنْهُ او بیا به نبي ﷺ له هغه څخه اودس کوی وَلَهُمَا ●قَوْلُهُ عَلَيْهِ الصَّلَاةُ وَالسَّلَامُ او د طرفینو دلیل د نبي ﷺ دا حدیث دی الْهِرَّةُ ●سَبُعٌ (چي) پیشي درنده دی وَالْمُرَادُ بَيَانُ الْحُكْمِ دُوْنَ الْخِلْقَةِ وَالصُّوْرَةِ او له حدیث څخه مراد د حکم بیانول دي، پیدایښت او بڼه يې (بیانول) مقصود نه دي إِلَّا أَنَّهُ سَقَطَتِ النَّجَاسَةُ لِعِلَّةِ ●الطَّوَافِ خو (د پیشي له پسخوردې څخه) د طواف(یعني په کورکي د ګرځېدلو) د علت په وجه نجاست ساقط سو فَبَقِيَتِ الْكَرَاهَةُ او کراهت پاته سوه وَمَا رَوَاهُ مَحْمُوْلٌ عَلَى مَا قَبْلَ التَّحْرِيْمِ او د امام ابو یوسف رَحِمَهُ الله روایت له تحریم څخه پر مخکي حکم باندي حمل کیږي ثُمَّ قِيْلَ: كَرَاهَتُهُ لِحُرْمَةِ اللَّحْمِ بیا ویل سوي دي: چي د پیشي د پسخوردې کراهت د هغې د غوښو د حرام والي په وجه دی وَقِيْلَ: لِعَدَمِ تَحَامِيْهَا النَّجَاسَةَ او ویل سوي دي: چي له نجاست څخه د ځان نه ساتلو په وجه دی وَهٰذَا يُشِيْرُ إِلَى التَّنَزُّهِ او دا قول د مکروه تنزیهي و طرف ته اشاره کوي وَالْأَوَّلُ إِلَى الْقُرْبِ مِنَ التَّحْرِيْمِ او اول قول مکروه تحریمي ته زیات نژدې دی.

**اللغات**: ﴿هرة﴾ پیشي، ﴿يُصْغِيْ﴾ د إفعال د باب مضارع معلوم صیغه ده، أَصْغٰى يُصْغِيْ: کږول، کښته کول، ﴿تحامي﴾ د تفاعل د باب مصدر دی: پرېز کول، ځان ژغورل، لیري اوسېدل.

**تشریح**: **صورت د مسئلې**: دا دی چي د پیشي د پسخوردې د طهارت او نجاست په لړ کي د أحنافو فقهاوو په مینځ کي اختلاف دی: د امام ابو یوسف رَحِمَهُ الله قول دا دی چي د پیشي پسخورده پاکه ده.

**د امام ابو یوسف دلیل**: دا دی چي نبي ﷺ به پیشي ته د اوبو لوښی راکږوي اوبه به يې ورکولې. بیا چي به کله پیشي له دې څخه اوبه وچیښلې نو نبي ﷺ به په همدغه اوبو اودس کوی، که د پیشي په پسخورده کي یو قسم کراهت یا بدي وای نو نبي ﷺ به هیڅکله داسي نه کولای، د نبي ﷺ دا عمل د دې خبري ښکاره ثبوت دی چي د پیشي پسخورده پاکه ده.

په دې لړ کي د طرفینو رایه دا ده چي د پیشي پسخورده خو پاکه ده لېکن مکروه ده(یعني بالکل پاکه نه ده بلکي کراهت پکښي سته).

**د طرفینو دلیل**: دا حدیث دی چي: پیشي درنده دی، او د دې حدیث مقصد دا دی چي کوم حکم د درندګانو دی، هغه حکم د پیشي هم دی، او د درندګانو پسخورده مرداره ده، نو ځکه به د پیشي پسخورده هم مرداره وي، له دې حدیث څخه د حکم معنیٰ ځکه اخیستل کیږي چي نبي ﷺ د أحکامو د تبلیغ او د مسئلو د تشریح لپاره را استول سوی وو، د بڼې، شکل او صورت بیانولو لپاره نبي ﷺ را استول سوی نه وو.

---

● القول الراجح: في هذه المسئلة قولهما أبي حنيفة و محمد رحمهماالله، كما قال علامه ابن نجيم في البحر ج:١، ص:٢٢٩ و كذا في الدر المختار: ج:١، ص:١٥۶. [القول الراجح ج١، ص:٢١]

● تخريج: أخرجه دار قطني في كتاب الطهارة، باب سؤر الهرة، حديث رقم:٢١٧.

● تخريج: أخرجه دار قطني في كتاب الطهارة، باب سؤر الهرة، حديث رقم:٢١۶.

خو په هر حال دا خبره فيصله سوې ده چې د پيشي د پسخوردې هم هغه حکم دی کوم چې د درندګانو د پسخوردې حکم دی، او د درندګانو پسخورده مرداره ده، نو په دې اعتبار سره د پيشي پسخورده هم مردارېدل پکار دي، خو موږ بيا هم دې ته مرداره نه وايو، ځکه چې نبي ﷺ پيشياني په کورو کې ګرځيدونکي(او د کورو ګښت کونکي) ګرځولي دي(يعني نبي ﷺ فرمايلي دي چې پيشياني په کورونو کې ګرځي او را ګرځي(طواف کوي)، لکه څرنګه چې له حضرت عائشي رَضِيَ اللهُ عَنْهَا څخه روايت دی، هغه فرمايي: سمعت رسول الله ﷺ يقول: الهرة ليست بنجسة إنما هي من الطوّافين عليكم أو الطوّافات، دې حديث ته په کتني سره د پيشي د پسخوردې نجاست ساقطيږي او کراهت پې پاتيږي، صاحب د هدايې له إلّا أنه أسقطت څخه تر ما رواه پوري همدا خبره بيان کړې ده.

**جواب:** صاحب د هدايې له وما رواه ...الخ څخه د امام ابو يوسف رَحِمَهُ الله د حديث جواب ورکوي، فرمايي: چې دا حديث د هغه زمانې پر حالاتو حمل کيږي کله چې د درندګانو په سلسله کې د حرمت فرمان صادر سوی لا نه وو، خو کله چې وروسته د دوی د تحريم فيصله راغله، نو پيشي هم په دې سلسله کې تر دې فيصلې لاندې داخله سوه.

ثم قيل الخ د دې حاصل دا دی چې له أحنافو څخه امام طحاوي رَحِمَهُ الله د پيشي د غوښو په وجه د پيشي پسخورده مکروه تحريمي ګرځوي، ځکه چې د دې غوښې حرامې دي، او امام کرخي رَحِمَهُ الله د پيشي پسخورده له نجاست څخه د نه تنزّه (نه خوندي کېدلو) په وجه مکروه تنزيهي ګرځوي،(يعني پيشي له نجاست څخه ځان نه ژغوري)، ځکه د نه تنزه او نه احتياط په وجه چې کوم حرمت پيدا کيږي هغه به تنزيهي وي، د پيشي د پسخوردې مکروه والی له دې خبرې څخه هم معلوميږي چې د امام ابو يوسف رَحِمَهُ الله له را نقل سوي روايت څخه د دې پاکوالی او د طرفينو له را نقل سوي روايت څخه د دې ناپاکوالی ښکاره کيږي، او دا د فقهي مشهوره قاعده ده چې إذا اجتمع الحلال والحرام أو المحرم و المبيح غلب الحرام والمحرم. (يعني د حلالو او د حرامو يا د محرّم او مبيح د يو ځای والي په صورت کې به د حرمت اړخ ته ترجيح ورکول کيږي). (الاشباه والنظائر ص:۱۳۳)

**راجح قول:** په پورتني مسئلهٔ کې د طرفينو قول راجح دی، لکه څرنګه چې علامه ابن نجيم رَحِمَهُ الله د دې مسئلې تر تفصيل وروسته فرمايي: قالوا وهو الأصح وظاهر ما في الأصل فإنه قال وإن توضأ بغيره أحبّ إليّ. [القول الراجح: ج۱، ص:۲۱]

## پيشي که تر موږک خوړلو وروسته سمدستي په اوبو کې خوله ووهل نو څه حکم دی؟

| |
|---|
| **وَلَوْ أَكَلَتِ الْفَأْرَةَ** او که پيشي موږک وخوړی **ثُمَّ شَرِبَتْ عَلَى فَوْرِهِ الْمَاءَ** او بيا يې سمدستي اوبه وڅيښلې **يَتَنَجَّسُ** نو اوبه مرداريږي **إِلَّا إِذَا مَكَثَتْ سَاعَةً** خو که لږ ګړی وډرېدله(او بيا يې اوبه وڅيښلې نو نه مرداريږي) **لِغَسْلِهَا فَمَهَا بِلُعَابِهَا** ځکه چې پيشي خپله خوله په خپلو لاړو باندې پرېولې **وَالْإِسْتِثْنَاءُ عَلَى مَذْهَبِ أَبِي حَنِيفَةَ وَأَبِي يُوسُفَ رَحِمَهُمَا اللهُ تَعَالَى●** او دا استثناء د شيخينو په مذهب کې ده **وَيَسْقُطُ اعْتِبَارُ الصَّبِّ لِلضَّرُورَةِ** او د بيولو اعتبار به د ضرورت په وجه ساقطيږي. |

**اللغات:** ﴿مَكَثَتْ﴾ د نصر له باب څخه د ماضي معلوم صيغه ده: ځنډېدل، درېدل، درنګ کول.

---

● القول الراجح: قول الشيخين دفعًا للضرر عن الناس، وكذا قال العلامه ابن عابدين رَحِمَهُ الله رد المحتار ج:۱، ص:۱۶۴. [القول الراجح ج:۱، ص:۲۳]

**تشريح: صورت د مسئلې**: دا دی چې که پیشي موږک وخوړی او سمدستي يې په يو لوښي کي خوله ووهل،له هغه ځخه يې اوبه وڅيښلې نو په اتفاق سره هغه اوبه مرداري دي دا حکم خو متفق عليه دی، اختلافي مسئله دا ده چې که پيشي موږک وخوړی او تر يو څه ځنډ وروسته يې اوبه وڅيښلې نو په دې صورت کي د شيخينو په نېز اوبه مرداري نه دي، لېکن د امام محمد رَحِمَهُ الله په نېز په دې صورت کي هم اوبه مرداري دي.

**د شيخينو دليل**: دا دی چې د دوی په نېز په بهېدونکو پاکو شيانو سره نجاست لیري کول جائز دی، نو کله چې پيشي موږک وخوړی او څه ډېر ځنډ يې وکړی نو په دومره وخت کي به دې (خامخا) په ژبه د خولې او شونډانو نجاست صفا کړی او تېر کړی وي، او تر هغه وروسته به يې په لوښي کي خولې وهلې وي.

ويسقط الخ له دې ځايه د يو مقدر سوال جواب ورکوي:

**سوال**: دا دی چې د امام ابو يوسف رَحِمَهُ الله په نېز دلته هم اوبه مرداربدل پکار دي، ځکه چې د ده په نېز د نجاست ليري کولو لپاره صب يعني د اوبو بيول شرط دی او هغه دلته نسته؟

**جواب**: دا دی چې د ضرورت په وجه د بيولو اعتبار ساقط سو، او څرنګه چې د امام محمد رَحِمَهُ الله په نېز بغير له اوبو ځخه نجاست نه ليري کيږي، نو ځکه به د داسي پيشي پسخورده په هر حال کي مرداره وي، هغه که يې په لانو خوله پاکه کړې وي او که نه وي.

**راجح قول**: راجح او غوره قول د شيخينو دی، ځکه چې په دې قول کي د خلګو لپاره اسانتي ده، لکه څرنګه چې علامه ابن عابدين رَحِمَهُ الله هم د دې صراحت کړی دی. [القول الراجح، ج:۱، ص:۲۳]

## د چرګي د پسخوردې حکم

| |
|---|
| وَسُؤْرُ الدَّجَاجَةِ الْمُخَلَّاةِ مَكْرُوهٌ او په چټلو شيانو کي د ګرځېدونکي (کوڅه ګرځنې) چرګي پسخورده مکروه ده لِأَنَّهَا تُخَالِطُ النَّجَاسَةَ ځکه چې دا د نجاست سره ګډون کوي (يعني په نجاست لړلې وي) وَلَوْ كَانَتْ مَحْبُوسَةً بِحَيْثُ لَا يَصِلُ مِنْقَارُهَا إِلَى مَا تَحْتَ قَدَمَيْهَا خو که چرګه په دا ډول ترل سوې وه چې مښوکه يې د پښو لاندي (حصې) ته نه رسېدله لَا يُكْرَهُ نو (بيا يې) پسخورده مکروه نه ده لِوُقُوعِ الْأَمْنِ عَنِ الْمُخَالَطَةِ ځکه چې (اوس) د نجاست له ګډون ځخه خوندي (په أمن) ده وَكَذَا سُؤْرُ سِبَاعِ الطَّيْرِ او همدارنګه د ښکاري مرغانو پسخورده (مکروه) ده لِأَنَّهَا تَأْكُلُ الْمَيْتَاتِ ځکه چې ښکاري مرغان مردار حيوانان خوري فَأَشْبَهَ الْمُخَلَّاةَ. نو د مخلات چرګي سره مشابه سوه وَعَنْ أَبِي يُوسُفَ رَحِمَهُ اللهُ او له امام ابو يوسف رَحِمَهُ الله ځخه روايت دی أَنَّهَا إِذَا كَانَتْ مَحْبُوسَةً چې که دا ښکاري مرغان بند ساتل کېدل يَعْلَمُ صَاحِبُهَا أَنَّهُ لَا قَذَرَ عَلَى مِنْقَارِهَا (او) د دوی مالک ته دا معلومه وه چې د دوی پر مښوکو نجاست نسته لَا يُكْرَهُ نو (بيا يې) پسخورده مکروه نه ده لِوُقُوعِ الْأَمْنِ عَنِ الْمُخَالَطَةِ ځکه چې (اوس هغوی) د نجاست له اختلاط ځخه په أمن دي وَاسْتَحْسَنَ الْمَشَايِخُ هَذِهِ الرِّوَايَةَ او مشايخو دا روايت غوره ګڼلی دی. |

**اللغات: ﴿مخلاة﴾** د تفعيل د باب اسم مفعول دی، خَلَّى يُخَلِّي: پرېښوول، خلاصول، يوازي کول. شړل. نو مُخَلَّاةٌ هغه چرګي ته ويل کيږي چي هغه آزاده پرېښوول سوې وي، او په کوڅو او انبارو کي ګرځي، چي په علم عرف کي کوڅه

ګنبته چرګه ورته وایي، ﴿مِقْار﴾ منبوکه، ﴿قَذَر﴾ په فتحه د ذال او کسره د ذال سره هم راځي یعني: قَذَر او قَذِر، ګندګي، نجاست.

**تشریح: صورت د مسئلې:** دا دی چې: کومه چرګه په چټلتیاوو او مردارپو کې ګرځي د هغې پسخورده مکروه ده، ځکه چې په مردارپو کې د ګرځېدلو او مبنوکه وهلو په وجه دې ټوله وجود په ګندګي او نجاست ککړ وي، نو ځکه د دې پسخورده په هیڅ حال کې هم نه سي پاکېدلای، هو! که یو څوک د چرګو داسې پالنه او کتنه وکړي چې د ګندګۍ و طرف ته ولاړې نه سي، او داسې یې قید کړي چې مبنوکې یې د پښو تر لاندي حصې پوري نه را ورسیږي، نو په دې صورت کې یې پسخورده مکروه نه ده بلکې پاکه ده (پښو لاندي حصه یې په دې وجه ذکر کړه ځکه چې چرګې هم په خپل ګندګۍ کي خیږي چې هغه د پښو پر لاندي حصه مښلي، نو که یې مبنوکه د پښو لاندي حصې ته رسېدل نو معلومه ده چې په دې وخت کې به یې هم مبنوکه په ګندګۍ ککړه وي، ځکه یې دا شرط ولګوی چې که مبنوکه یې د پښو لاندي حصې ته نه رسېدل، نو پسخورده یې پاکه ده)، او په دې وجه پاکه ده ځکه چې کراهت د اختلاط او ککړتوب په وجه راغلی وو، او کله چې اختلاط او ککړتوب نسته نو کراهت به له کومه راسي؟

وكذا سؤر سباع الخ صاحب د قدوري وايي: چې همدغه حکم د ښکاري مرغانو هم دی یعني د دوی پسخورده هم مکروه ده ځکه چې دوی مردار حیوانان خوري او څرنګه چې په ګندګۍ کې نجاست سته، همدغه رنګه په مردار حیوان کې هم نجاست سته، او پر ګندګیو د ګرځېدونکي چرګې پسخورده مکروه ده، نو ځکه به د دوی پسخورده هم مکروه وي.

او له امام ابو یوسف رَحِمَهُ الله څخه روایت دی چې که ښکاري مرغان قید کړل سي او مالک (ساتونکي) ته یې دا یقین وي چې پر مبنوکو یې ګندګي نسته نو د دوی پسخورده هم مکروه نه ده، ځکه چې په دې صورت کې هم د نجاست له اختلاط او ککړتوب څخه دوی خوندي دي، صاحب د هدایې فرمایي چې مشایخو دا روایت خوښ کړی او هم پردغه یې فتویٰ ورکړې ده، لکه څرنګه چې فقیه ابو اللیث ویلي دي: چې حسن بن زیاد رَحِمَهُ الله له امام اعظم څخه روایت کړی دی چې که ښکاري مرغه مردار حیوانان نه خوړل، نو د هغه په پسخورده اوبو سره اودس کول مکروه نه دي.

## د خزندو او په کور کي د عامو اوسېدونکو حیوانانو د پسخوردې حکم

وَسُؤْرُ مَا يَسْكُنُ الْبُيُوْتَ او د هغو حیوانانو (او خزندو) پسخورده چې په کورونو کي اوسیږي كَالْحَيَّةِ وَالْفَأْرَةِ لکه مار او موږک مَكْرُوْهٌ مکروه ده لِأَنَّ حُرْمَةَ اللَّحْمِ أَوْجَبَتْ نَجَاسَةَ السُّؤْرِ ځکه چې د دوی د غوښو حُرمت د دوی د پسخوردې ناپاکوالی واجب کړی إِلَّا أَنَّهُ سَقَطَتِ النَّجَاسَةُ لِعِلَّةِ الطَّوَافِ لېکن د طواف (ګرځېدلو) د علت په وجه دا نجاست ساقط سو فَبَقِيَتِ الْكَرَاهَةُ خو کراهت پاته سو وَالتَّنْبِيْهُ عَلَى الْعِلَّةِ فِي الْهِرَّةِ او د علت خبرتیا یې د پیشي په مسئله کي ورکول سوه.

**اللغات:** ﴿حيّة﴾ مار.

**تشریح:** د عبارت خلاصه دا ده چې هغه حیوانان کوم چې په عامه توګه په کورو کې اوسیږي لکه مار، موږک او داسې نور، نو د هغوی پسخورده هم مکروه ده، ځکه چې د هغوی غوښې حرامې دي او د غوښو حراموالی د پسخوردې د حراموالي او مرداروالي تقاضا کوي، خو د طواف د علت یعني په کورونو کي د دوی د ګرځېدلو او ګښت کولو په وجه د دوی له پسخوردې څخه نجاست ختم سو، او کراهت پاته سو.

والتنبيه على الهرة الخ فرمايي چې مخکې د پیشي په مسئله کې د پورتني مسئلې علت بیان سو. چې د پیشي پسخورده هم په کورونو کې د ګرځېدلو په وجه نجسه نه ده، خو کراهت یې پاته دی.

## د خره او غاترې د پسخوردې حکم

قَالَ: وَسُؤْرُ الْحِمَارِ وَالْبَغْلِ مَشْكُوكٌ فِيهِ فرمايي: د خره او غاترې پسخورده مشکوکه (شکمنه) ده قِيلَ: الشَّكُّ فِي طَهَارَتِهِ (نو) یو قول دا دی: چې په پاکېدلو کې یې شک دی لِأَنَّهُ لَوْكَانَ طَاهِرًا ځکه که پاکه وای لَكَانَ طَهُورًا مَا لَمْ يَغْلِبِ اللُّعَابُ عَلَى الْمَاءِ نو تر څو چې یې لاړې پر اوبو غالبه سوې نه وای نو هغه به پاکونکې هم وای وَقِيلَ: الشَّكُّ فِي طَهُورِيَّتِهِ او یو قول دا دی: چې د دې په مُطهِّر والي کې شک دی لِأَنَّهُ لَوْ وُجِدَ الْمَاءُ الْمُطْلَقُ لَا يَجِبُ عَلَيْهِ غَسْلُ رَأْسِهِ ځکه که (په شکمنو اوبو سر پرېولل سي او بیا) اوبه پیدا سي نو پر هغه د سر پرېولل واجب نه دي وَكَذَا لَبَنُهُ طَاهِرٌ او همدغه رنګه د (خرې) شیدې هم پاکې دي وَعَرَقُهُ لَا يَمْنَعُ جَوَازَ الصَّلَاةِ او د خره خولې د لمانځه له جواز څخه مانع نه دي وَإِنْ فَحُشَ که څه هم زیاتې وي فَكَذَا سُؤْرُهُ نو پسخورده به یې هم دغه ډول وي وَهُوَ الْأَصَحُّ او صحیح روایت همدغه دی وَيُرْوَى[*] نَصُّ مُحَمَّدٍ رَحِمَهُ اللهُ عَلَى طَهَارَتِهِ او روایت سوی دی چې امام محمد رَحِمَهُ الله د خره د پاکوالي صراحت کړی دی سَبَبُ الشَّكِّ تَعَارُضُ الْأَدِلَّةِ فِي إِبَاحَتِهِ وَحُرْمَتِهِ او د شک سبب د دې په مباحوالي او حراموالي کې د دلایلو تعارض دی أَوِ اخْتِلَافُ الصَّحَابَةِ رَضِيَ اللهُ عَنْهُمْ فِي نَجَاسَتِهِ وَطَهَارَتِهِ یا د دې په پاکوالي او ناپاکوالي کې د صحابه وو اختلاف دی وَعَنْ أَبِي حَنِيفَةَ رَحِمَهُ اللهُ أَنَّهُ نَجِسٌ او له امام حنیفه رَحِمَهُ الله څخه را نقل سوي دي چې د خره پسخورده مرداره ده تَرْجِيحًا لِلْحُرْمَةِ وَالنَّجَاسَةِ د حرمت او نجاست جانب ته په ترجیح ورکولو سره وَالْبَغْلُ مِنْ نَسْلِ الْحِمَارِ فَيَكُونُ بِمَنْزِلَتِهِ او غاتره هم د خره له نسل څخه ده نو دا به هم د خره په ډول وي.

**اللغات:** ﴿حِمَار﴾ خر، ﴿بَغْل﴾ غاتره (خچره)، ﴿تَرْجِيح﴾ غوره والی. بنه ګڼنه.

**تشریح:** په عبارت کې له خره څخه مراد پالل سوی او کورنی خر دی. او له غاترې څخه مراد هغه غاتره ده چې له خرې څخه پیدا سوې وي، اوس صورت د مسئلې واورئ:

**صورت د مسئلې:** دا دی چې د پالل سوو خره او غاترې پسخورده شکمنه ده. پر دې خبره د زیاتره مشائخو اتفاق دی. خو په دې لړ کې د مشائخو اختلاف دی چې د دوی د پسخوردې په طهارت (پاکېدلو) کې شک دی او که په مُطهِّر کېدلو (د بل شي په پاکولو) کې یې شک دی؟ نو د ځینو حضراتو رایه دا ده چې د خره د پسخوردې په طهارت (پاکوالي) کې شک دی، یعني دا ښکاره نه ده چې د خره پسخورده پاکه ده او که مرداره. ځکه که پاکه وای نو په اوبو کې به د دې د لوېدلو په وجه اوبه تر هغه وخته نه مردارېدلای تر څو چې پسخورده پر دې اوبو غالبه سوې نه وای. حال دا چې له غلبې څخه ماسوا هم په اوبو کې د خره د پسخوردې د ور لوېدلو په وجه له دې اوبو څخه اودس کول او طهارت حاصلول صحیح نه دي. له دې څخه همدا خبره په ذهن کې راځي چې په خپله د خره د پسخوردې په پاکوالي او ناپاکوالي کې شک دی.

---

[*] القول الراجح: في هذه المسئلة قول محمد رَحِمَهُ الله كذا في رد المحتار ج:۱، ص:۱۶۶ [القول الراجح ج:۱، ص:۳۲]

له مشائخو څخه د بعضو حضراتو رايه دا ده چي د خره پسخورده خو يخپله پاکه ده، مګر د دې په مُطهِّروالي کي شک دی (يعني په دې کي يې شک دی چي آيا بل شی پاکوي او که نه) او دليل پر دې دا دی چي که مثلاً يو سړی اودس کوي او د خره د پسخوردې په اوبو سره د سر مسح وکړي، او تر هغه وروسته پاکي اوبه ور ته حاصلي سي نو اوس د دې سړي لپاره دويم وار د سر مسح کول ضروري نه دي، نو له دې څخه معلومه سوه چي د خره پسخورده خو يخپله پاکه ده لېکن په دې کي يې شک دی چي نور شيان پاکولای سي، که نه.

وكذا لبنه...الخ فرمايي: چي د خرې شيدې هم پاکي دي، ځکه چي د شيدو په جوړولو، زياتېدلو او راوتولو کي د غوښو هيڅ اثر او اغېز نسته، همدارنګه د خره او نورو خوله (عرق) هم پاکه دي، که څه هم زياته وي، او دا سې نه ده چي لمونځ دې ور سره جائز نه وي، تر ټولو ښه او معتمد قول همدغه دی، کنې په دې لړي کي له امام اعظم رَحِمَهُ الله څخه درې رواياتونه را نقل سوي دي چي په يوه روايت کي د خره خوله نجاست خفيفه او په بل روايت کي نجاست غليظه ګرځول سوې ده، ليکن مشهور روايت همدغه دی چي پاکه ده، نو کله چي يې خوله پاکه ده نو پسخورده او لانې به يې هم پاکي وي. (عنايه ج:١، ص:١١٩)

ويروٰى الخ د دې خلاصه دا ده چي له امام محمد رَحِمَهُ الله څخه دا صراحت هم را نقل سوی دی چي د خره پسخورده پاکه ده، نو په دې سره دا خبره نوره ټينګيږي چي شک د خره د پسخوردې په پاکوالي کي نه دی، بلکي په مُطهِّر والي کي يې دی.

وسبب الشك الخ صاحب د هدايې فرمايي چي د خره په پسخورده کي د شک دوه سببه دي: اول خو دا چي د دې په روايبنت او حرام والي کي د دلائل سره مختلف دي، لکه څرنګه چي روايت سوی دی: أن غالب بن أبجر سأل رسول الله ﷺ وقال لم يبق لي مال إلا حميرات فقال ﷺ كل من سمين مالك. (يعني غالب بن ابجر له نبي ﷺ څخه پوښتنه وکړه چي زما سره له خرو څخه علاوه نور هيڅ پاته نه دي (زه څه وکړم) نبي ﷺ وفرمايل چي له خپل چاغ مال څخه يې خوره)، دا حديث د خره د غوښي پر حلالوالي دلالت کوي.

او په بل روايت کي راغلي دي: أن رسول الله ﷺ حرم لحوم الحمر الأهلية يوم خيبر. (يعني د خيبر په ورځ نبي ﷺ د کورني (پالل سوو) خرو غوښي حرامي کړي دي)، په دې حديث کي په ډاګه ويل سوي دي چي د خرو غوښي حرامي دي.

دويم سبب دا دی چي د خره د پسخوردې په پاکوالي او مرداروالي کي د صحابه وو اختلاف دی، لکه څرنګه چي له حضرت ابن عمر رَضِيَ اللهُ عَنْهُمَا څخه د دې مرداروالی را نقل سوی دی، او له حضرت ابن عباس رَضِيَ اللهُ عَنْهُمَا څخه د دې پاکوالی را نقل سوی دی، لنډه دا چي کله د اسلام په شروع کي لا په دې کي اختلاف سته، نو آخر ته ورځ څوارلس سوه کاله وروسته موږ څنګه دې نتيجې ته رسېدلای سو، نو ځکه موږ د دې په مُطهِّر کېدلو کي د شک او شبهې قائل يو. (عنايه ج:١، ص:١١٩ بنايه ج:١، ص:٤٥٧)

وعن أبي حنيفة الخ له امام صاحب څخه يو روايت دا هم را نقل سوی دی چي د خره پسخورده مرداره ده ځکه چي جانب د حرمت او نجاست يې راجح دی. او څرنګه چي غاتره د خره له نسل څخه ده، نو ځکه به د غاترې هم هغه حکم وي کوم چي د خره دی.

**راجح قول**: په پورتنۍ مسئله کې د امام محمد رَحِمَهُ الله قول راجح دی، په فتاویٰ هنديه کې د دې په اړه داسې ذکر سوي دي: وسؤر البغل والحمار مشکوك والصحيح أنه طاهر وإنما الشك في طهوريته كذا في فتاوى قاضيخان (الهندية ج:۱، ص:۲۴).
[القول الراجح، ج:۱، ص:۲۴]

## له شکمنو اوبو څخه ماسوا که نوري اوبه نه وي نو د اودس حکم

فَإِنْ لَمْ يَجِدْ غَيْرَهُمَا او که اودس کونکي له دې دواړو (يعني د خره او غاټري د پسخوردې له اوبو) څخه ماسوا نوري پیدا نه کړې يَتَوَضَّأُ بِهِمَا وَيَتَيَمَّمُ نو په دې دواړو دي اودس (هم) وکړي او تيمّم دي هم په وکړي وَيَجُوزُ أَيُّهُمَا قَدَّمَ او (د هغه لپاره) له اوداسه او تيمّم څخه هر يو مخکې کول جائز دي وَقَالَ زُفَرُ رَحِمَهُ الله: لَا يَجُوزُ إِلَّا أَنْ يُقَدِّمَ الْوُضُوْءَ امام زفر رَحِمَهُ الله فرمايي: چې صرف اودس مخکې کول جائز دي لِأَنَّهُ مَاءٌ وَاجِبُ الْاِسْتِعْمَالِ ځکه چې دا واجبُ الاستعمال اوبه دي فَأَشْبَهَ الْمَاءَ الْمُطْلَقَ نو د ماءِ مطلق (مطلقو اوبو) سره مشابه سوې وَلَنَا أَنَّ الْمُطَهِّرَ أَحَدُهُمَا او زموږ دليل دا دی چې په دې دواړو کې يو پاکونکی دی فَيُفِيْدُ الْجَمْعَ دُوْنَ التَّرْتِيْبِ نو ځکه د جمعې فايده ورکوي نه د ترتيب وَسُؤْرُ الْفَرَسِ طَاهِرٌ عِنْدَهُمَا او د آس پسخورده د صاحبينو په نيز پاکه ده لِأَنَّ لَحْمَهُ مَأْكُوْلٌ ځکه چې (د صاحبينو په نيز) د آس غوښه خوړل کېدلای سي وَكَذَا عِنْدَهُ فِي الصَّحِيْحِ همدارنګه د امام صاحب په روايت کې (هم د آس پسخورده پاکه ده) په صحيح قول کې لِأَنَّ الْكَرَاهَةَ لِإِظْهَارِ شَرَفِهِ ځکه چې د آس د غوښو کراهت د هغه د شرافت د ښکاره کولو په وجه دی.

**اللغات**: ﴿الفَرَس﴾ آس، ﴿إظهار﴾ ښکاره کول، ښکاره کول، ﴿شَرَف﴾ عزت، ستروالی، شريف والی.

**تشريح**: **صورت د مسئلې**: دا دی که اودس کونکي ته د خره او غاټري د پسخوردې له اوبو څخه ماسوا نوري اوبه تر لاسه نه سوې نو په دې صورت کې د ده لپاره حکم دا دی چې په دغه اوبو دي اودس هم وکړي او تيمّم دي هم وکړي، او زموږ په نيز له اوداسه او تيمّم څخه چې کوم يو وغواړي هغه مخکې کولای سي، لېکن امام زفر رَحِمَهُ الله فرمايي چې صرف اودس مخکې کول جائز دي.

**د امام زفر دليل**: دا دی چې شکمني اوبه واجبُ الاستعمال دي، نو دا د مطلقو اوبو سره مشابه سوې.

**زموږ دليل**: دا دی چې له شکمنو اوبو څخه اودس کول او تيمّم کول په دې دواړو شيانو کې يو شی پاکونکی دی، په دواړو کې به په يوه سره طهارت ثابتيږي، نو که په شکمنو اوبو سره طهارت ثابت سو نو د خاورو استعمال هيڅ فايده نه وکړه، هغه که خاوري مخکې کړي او که يې وروسته کړي، او که پاکونکي صرف خاوري سوې نو تقديم او تأخير هيڅ ضرر نه رسوي، لنډه دا چې کله له دواړو څخه يو مُطَهِّر (پاکونکي) دی، نو د دوی دواړو جمع کول مفيد دي، ترتيب مفيد نه دی.

وسؤر الفرس الخ آس که نر وي، که ښځه، پسخورده يې د صاحبينو په نيز پاکه ده ځکه چې د هغه غوښې خوړل کيږي، او د کوم حيوان غوښې چې خوړل کيږي د هغه پسخورده پاکه وي، خو په دې باره کې له امام صاحب څخه څلور روايتونه دي:

① اول دا چې له دې څخه ماسوا په نورو اوبو اودس کول غوره دي.
② دويم دا چې د ده د غوښو په څېر، د ده پسخورده هم مکروه ده.
③ دريم دا چې د خره د پسخوردې په څېر شکمنه ده.

④ څلورم دا چي دا پاکه ده. او صحيح مذهب همدغه دی.

پاته سوه دا خبره چي د امام صاحب رَحِمَهُ الله په نيز د آس غوښې مکروه دي نو د ده پسخورده څرنګه پاکېدای سي؟ د دې جواب دا دی چي د آس د غوښو کراهت د ده د عزت او شرافت په وجه دی ځکه چي هغه د جهاد ذريعه او آله ده. او د غوښو کراهت يې د نجاست په وجه نه دی. نو ځکه يې د غوښو کراهت په پسخورده کې أثر نه کوي.

## په نبيذ تمر سره د اودس او غسل حکم (او په دې باره کي د فقهاؤ قولونه)

فَإِنْ لَمْ يَجِدْ إِلَّا نَبِيذَ التَّمْرِ که اودس کونکي له نبيذ تمر څخه علاوه نوري اوبه پيدا نه کړې قَالَ أَبُو حَنِيفَةَ تَعَالَى: يَتَوَضَّأُ بِهِ وَلَا يَتَيَمَّمُ نو امام ابو حنيفه رَحِمَهُ الله فرمايي: چي په دې سره دې اودس وکړي او تيمّم دې نه کوي لِحَدِيثِ لَيْلَةِ الْجِنِّ د ليلة الجن (د پېرانانو د شپې) د حديث په وجه فَإِنَّ[1] النَّبِيَّ عَلَيْهِ الصَّلَاةُ وَالسَّلَامُ تَوَضَّأَ بِهِ ځکه نبي ﷺ په دې اوبو سره اودس کړی وو حِينَ لَمْ يَجِدِ الْمَاءَ کله چي يې اوبه پيدا نه کړې وَقَالَ أَبُو يُوسُفَ رَحِمَهُ الله[2]: يَتَيَمَّمُ وَلَا يَتَوَضَّأُ بِهِ او امام ابو يوسف رَحِمَهُ الله فرمايي: چي دا سړی دې تيمّم وکړي او په نبيذ تمر سره دې اودس نه کوي وَهُوَ رِوَايَةٌ عَنْ أَبِي حَنِيفَةَ رَحِمَهُ اللهُ او دا سي يو روايت د امام صاحب رَحِمَهُ الله هم دی وَبِهِ قَالَ الشَّافِعِيُّ رَحِمَهُ اللهُ او امام شافعي رَحِمَهُ الله هم دا خبره کوي عَمَلًا بِآيَةِ التَّيَمُّمِ د تيمّم په آيت باندي د عمل کولو په وجه لِأَنَّهَا أَقْوَى ځکه چي آيت (تر حديث) زيات قوي دی أَوْ هُوَ مَنْسُوخٌ بِهَا يا دا چي حديث د آيت په وجه منسوخ دی لِأَنَّهَا مَدَنِيَّةٌ ځکه چي د تيمّم آيت مدني دی وَلَيْلَةُ الْجِنِّ كَانَتْ مَكِّيَّةً او د ليلة الجن (واقعه) مکي ده وَقَالَ مُحَمَّدٌ رَحِمَهُ الله: يَتَوَضَّأُ بِهِ وَيَتَيَمَّمُ او امام محمد رَحِمَهُ الله فرمايي: چي په نبيذ سره دې اودس وکړي او (بيا دې) تيمّم (هم) وکړي لِأَنَّ فِي الْحَدِيثِ اضْطِرَابًا ځکه چي په حديث کي اضطراب دی وَفِي التَّارِيخِ جَهَالَةً او په تاريخ کي جهالت دی (يعني تاريخ نامعلومه دی) فَوَجَبَ الْجَمْعُ احْتِيَاطًا نو د احتياط په توګه د اودس او تيمّم جمع کول واجب دي قُلْنَا: لَيْلَةُ الْجِنِّ كَانَتْ غَيْرَ وَاحِدَةٍ موږ جواب ورکوو: چي ليلة الجن څو واره (پېښه سوې) وه فَلَا يَصِحُّ دَعْوَى النَّسْخِ نو د نسخ دعوی کول صحيح نه دي وَالْحَدِيثُ مَشْهُورٌ عَمِلَتْ بِهِ الصَّحَابَةُ رَضِيَ اللهُ عَنْهُمْ او حديث مشهور دی چي پر هغه صحابه وو عمل کړی دی وَبِمِثْلِهِ يُزَادُ عَلَى الْكِتَابِ او په دا ډول حديث سره پر کتابُ الله اضافه (زياتوب) کېدلای سي وَأَمَّا الْاِغْتِسَالُ بِهِ پاته سو په نبيذ تمر سره د غسل کولو مسئله فَقَدْ قِيلَ: يَجُوزُ عِنْدَهُ نو يو قول دا دی: چي د امام صاحب رَحِمَهُ الله په نيز په دې سره غسل کول جائز دي اعْتِبَارًا بِالْوُضُوءِ (امام صاحب) پر اودس باندي قياس کوي وَقِيلَ: لَا يَجُوزُ لِأَنَّهُ فَوْقَهُ او يو قول دا دی چي غسل په کول جائز نه دي ځکه چي غسل (په درجه کي) له اودس څخه لوړ دی.

---

[1] تخريج: أخرجه ابو داؤد في كتاب الطهارة، باب الوضوء بالنبيذ، حديث رقم:٨٤، وترمذي في كتاب الطهارة، باب الوضوء بالنبيذ، حديث رقم:٨٨.

[2] القول الراجح: في هذه المسئلة قول أبي يوسف رَحِمَهُ الله كما قال العلامة الحصكفي رَحِمَهُ الله في رد المحتار ج:١، ص:١٦٧. [الفتوى الراجح ج:١، ص:٢٥]

**اللغات:** ﴿نبيذ﴾ له انګورو يا خرماوو څخه جوړ سوی شربت چې په ژر نه استعمالولو سره نشه پکښې راځي. ﴿تمر﴾خرما، کجوره. ﴿لَيْلَةُ الْجِنّ﴾ د پېرانانو شپه. لَيْلَةُ الْجِنّ هغه شپې ته ويل کيږي چې په هغه کې نبي کريم ﷺ د پېرانانو د تبليغ لپاره له مکې شريفې څخه دباندې ولاړی. ﴿جَهَالَة﴾ ناخبرتيا. ﴿يُزَاد﴾ د ضرب له باب څخه د مضارع مجهول صيغه ده، زَاد يَزِيْدُ: زياتېدل، که يې په صله کې علىٰ راسې نو معنىٰ يې "زياتول" راځي (يعني متعدي کيږي).

**تشريح: مسئله:** دا ده چې که له نبيذ تمر څخه ماسوا نوري اوبه پيدا نه سوې، نو له امام ابو حنيفه رَحِمَهُ الله څخه په دې باره کې درې روايتونه را نقل سوي دي: (۱) په جامع صغير کې ذکر سوي دي چې په نبيذ تمر سره دې اودس وکړي او تيمّم دې نه وهي. (۲) بل روايت دا دی چې امام صاحب رَحِمَهُ الله فرمايي چې زما په نېز په نبيذ تمر سره اودس کول او په خاورو سره تيمّم وهل زيات غوره دي. شيخ الاسلام ويلي دي چې په دې قول کې د دې طرف ته اشاره ده چې که صرف په نبيذ تمر سره اودس وکړي او تيمّم نه وکړي نو جائز دي او که د دې برعکس وکړي نو جائز نه دي. لېکن د دواړو جمع کول مستحب دي. (۳) نوح بن أبي مريم او حسن بن زياد روايت کړی دی چې تيمم دې وکړي او په نبيذ تمر سره دې اودس نه کوي، همدغه قول امام ابو يوسف رَحِمَهُ الله اختيار کړی دی او دا قول د امام شافعي رَحِمَهُ الله هم دی. او امام محمد رَحِمَهُ الله فرمايي چې په نبيذ تمر سره دې اودس هم وکړي او تيمّم دې هم وکړي.

**د امام صاحب دليل:** د امام ابو حنيفه رَحِمَهُ الله د اول روايت دليل حديث د ليلة الجن دی. هغه دا دی:

عن ابن عباس رض أن النبي ﷺ خطب ذات ليلة ثم قال ليقم معي من لم يكن في قلبه مثقال ذرة من كبر فقام ابن مسعود رضي الله عنه فحمله أي أخذه رسول الله ﷺ مع نفسه فقال عبد الله بن مسعود رضي الله عنه خرجنا من مكة و خط رسول الله ﷺ حولي خطا وقال لا تخرج عن هذا الخط فانك إن خرجت عنه لم تلقني إلى يوم القيمة ثم ذهب يدعو الجن إلى الإيمان و يقرأ عليهم القرآن حتى طلع الفجر ثم رجع بعد طلوع الفجر وقال لي هل بقي معك ماء اتوضأ به فقلت لا إلا نبيذ التمر في أداوة فقال رسول الله ﷺ تمرة طيبة وماء طهور وأخذه وتوضأ به و صلى الفجر. (عنايه)

(له حضرت ابن عباس رَضِيَ اللهُ عَنْهُمَا څخه روايت دی چې يوه شپه نبي ﷺ خطبه وويل، بيا يې وفرمايل چې زما سره دې هغه سړی ولاړ سي چې په زړه کې يې د يوې ذرې په اندازه کبر نه وي، نو ابن مسعود رضي الله عنه ولاړ سو، نبي ﷺ دی له خپل ځان سره روان کړی. نو عبد الله ابن مسعود رضي الله عنه فرمايي چې موږ له مکې شريفې څخه ووتلو او نبي ﷺ پر ما شاوخوا يوه ليکه را کش کړل او ويې فرمايل چې له دې ليکې څخه مه وځه. ځکه که له دې ليکې څخه ووتلې نو تر قيامته به ته ما نه وويني، بيا نبي ﷺ پېرانانو ته د ايمان دعوت ورکړی، او د دوی مخ ته يې قرآن ووايی. تر دې چې د سهار سپيدې را وختلې (يعني طلوع فجر سو). بيا نبي ﷺ تر طلوع فجر وروسته واپس را روان سو او ما ته يې وفرمايل چې آيا ستا سره څه اوبه سته چې له هغه څخه اودس وکړم. ما ورته وويل چې نسته خو په لوښي کې نبيذ تمر سته. نو نبي ﷺ وفرمايل چې خرما پاکه ده او اوبه مُطهِرَ (پاکوونکې) دي. بيا نبي ﷺ نبيذ تمر واخيستل. اودس يې په وکړی او د سهار لمونځ يې وکړی).

له دې حديث څخه معلومه سوه چې که له نبيذ تمر څخه ماسوا مطلقې اوبه (ماء مطلق) نه وې نو په نبيذ تمر سره دې اودس وکړی سي او د تيمّم کولو ضرورت نسته لکه څرنګه چې د الله رسول ﷺ کړي دي.

**د امام ابو يوسف او امام شافعي دليل:** دا دی چې د تيمّم په آيت: فَلَمْ تَجِدُوا مَاءً فَتَيَمَّمُوا صَعِيدًا طَيِّبًا (سورة المائدة: ۶) کې د تطهير (پاکولو) حکم د ماء مطلق د نشتوالي په صورت کې د خاورو و طرف ته منتقل سوی دی او نبيذ تمر ماء

مطلق نه دي، نو ځکه دا حديث د تيمّم دآيت په وجه ردّ کيږي، ځکه چي آيت د حديث په مقابله کي قوي دی، يا داسي دي ووېل سي چي حديث د ليلة الجن د تيمّم په آيت سره منسوخ دی ځکه چي آيت د تيمّم په مدينه منوره کي تر هجرت وروسته را نازل سوی دی او د ليلة الجن قصه په مکه کي پېښه سوې ده، او دا خبره ښکاره ده چي وروستنی حکم د مخکني حکم لپاره ناسخ وي، نو ځکه به په نبيذِ تمر سره د اودس کولو حکم د تيمّم په آيت سره منسوخ وي.

**د امام محمد دليل:** دا دی چي د ليلة الجن په حديث کي اضطراب (او ختلاف) سته، لکه څرنګه چي بعضي حديثونه پر دې خبره دلالت کوي چي په ليلة الجن کي ابن مسعود ﷺ د نبي ﷺ سره وو، او بعضي حديثونه پر دې دلالت کوي چي ابن مسعود ﷺ د نبي ﷺ سره نه وو، همدارنګه د ليلة الجن د قصې په تاريخ کي هم جهالت سته، دا سمه معلومه نه ده چي دا واقعه کله پېښه سوې ده، نو ځکه احتياط هم په دې کي دی چي په دواړو عمل وکړئ، يعني په نبيذِ تمر سره دي هم اودس وکړي او بيا دي تيمّم هم وکړي.

**د امام ابو يوسف د دليل جواب:** دا دی چي ليلة الجن فقط يوه نه ده بلکي ډېري دي، صاحب د عنايه د "تيسير" په حواله ليکلي دي چي پېريان دوه واره نبي ﷺ ته راغلي دي، نو ممکنه ده چي دويم وار دي په مدينه کي د تيمّم تر آيت وروسته راغلي وي.

همدارنګه صاحب د فتح القدير ليکلي دي چي په دې باره کي چي کوم ښکاره حديثونه راغلي دي په هغو کي د دې قصې شپږ واره ذکر راغلی دی، يوه په (بقيع الغرقد) کي دا قصه پېښه سوې ده، چي په هغه کي ابن مسعود ﷺ د نبي ﷺ سره وو، او دوه واره په مکه شريفه کي او څلورم وار له د مديني څخه د باندي پېښه سوې ده، چي په هغه کي زبير بن العوام د نبي ﷺ سره وو، نو د ليلة الجن قصه څو واره پېښه سوې ده، نو ځکه کېداى سي چي په کومه قصه کي چي په نبيذِ تمر سره د اودس کولو ذکر سوی وي، هغه دي په مدينه منوره کي د تيمّم د آيت تر نازلېدلو وروسته وي نو په داسي حالت کي د تيمّم په آيت سره د دې حديث د منسوخ والي دعویٰ څرنګه صحيح کېداى سي.

**دويم جواب:** صاحب د هدايې دويم جواب دا ورکوي چي دا حديث مشهور دی او د صحابه وو يوې ډلې به په دې باندي عمل کوی، لکه څرنګه چي له حضرت علي ﷺ څخه روايت دی چي: الوضوء بنبيذ التمر وضوء من لم يجد الماء، (يعني په نبيذ تمر سره هغه سړی اودس کوي چي هغه مطلقي اوبه تر لاسه نه کړي)، او په مختلفه طريقو له حضرت علي ﷺ څخه روايت سوی دی أنه كان لايرىٰ بأسا بالوضوء بنبيذ التمر حال عدم الماء، (يعني حضرت علي ﷺ به د اوبو د نشتوالي په صورت کي په نبيذِ تمر سره په اودس کولو کي هيڅ حرج (ضرر) نه ليدی)، همدارنګه نور حديثونه هم سته.

، وأما الاغتسال الخ يا ته سوه دا خبره چي د امام ابو حنيفه رَحِمَهُ الله په نېز په نبيذِ تمر سره غسل کول جائز دی او که ناجائز، نو په دې باره کي د أحنافو علماؤ اختلاف دی: بعضي وايي چي په اودس باندي د قياس کولو په وجه د امام صاحب په نېز په نبيذِ تمر سره غسل هم جائز دی، او دويم قول دا دی چي په نبيذِ تمر سره غسل جائز نه دی، ځکه چي د جنابت حدث د اودسه له حدث څخه غټ او زيات دی، نو ځکه به اودس پر غسل نه قياسيږي.

**راجح قول:** په پورتني مسئله کي راجح قول د امام ابو يوسف رَحِمَهُ الله دی، په فتاویٰ هنديه کي راغلي دي: والفتوىٰ على قول أبي يوسف رَحِمَهُ الله كذا في العيني شرح الكنز (هنديه ج:۱، ص:۲۲). [القول الراجح، ج:۱، ص:۲۵]

## د نبیذ تعریف (او اختلاف په مینځ کي د امام صاحب او صاحبینو رحمهم الله)

وَالنَّبِيْذُ الْمُخْتَلَفُ فِيْهِ او په کوم نبیذ کي چي د فقهاوو اختلاف دی أَنْ يَّكُوْنَ حُلْوًا رَقِيْقًا (هغه دا دی) چي خوږ او نرم (نری) وي يَسِيْلُ عَلَى الْأَعْضَاءِ كَالْمَاءِ (او) چي د اوبو په څېر پر اندامونو بهیږي وَمَا اشْتَدَّ مِنْهَا صَارَ حَرَامًا او کوم نبیذ چي سخت وي نو هغه حرام دی لَا يَجُوْزُ التَّوَضُّؤُ بِهِ په هغه سره اودس کول جائز نه دي وَإِنْ غَيَّرَتْهُ النَّارُ او که اور نبیذ (لږ) بدل کړی وو (یعني که په اور کي د پخېدلو په وجه په نبیذ کي څه تبعیلي راغلې وه) فَمَا دَامَ حُلْوًا رَقِيْقًا فَهُوَ عَلَى الْخِلَافِ نو تر څو چي هغه خوږ او نری وي تر هغه وخته اختلاف پکښي سته وَإِنِ اشْتَدَّ فَعِنْدَ أَبِي حَنِيْفَةَ رَحِمَهُ الله يَجُوْزُ التَّوَضُّؤُ بِهِ او که سخت (او ګاټه) سو نو د امام صاحب په نېز اودس په جائز دی لِأَنَّهُ يَحِلُّ شُرْبُهُ عِنْدَهُ ځکه چي د هغه په نېز د دې چیښل حلال دي وَعِنْدَ مُحَمَّدٍ رَحِمَهُ الله لَا يَتَوَضَّأُ بِهِ او د امام محمد رَحِمَهُ الله په نېز په دې باندي اودس جائز نه دی لِحُرْمَةِ شُرْبِهِ عِنْدَهُ ځکه چي د هغه په نېز یې چیښل حرام دي وَلَا يَجُوْزُ التَّوَضُّؤُ بِمَا سِوَاهُ مِنَ الْأَنْبِذَةِ او له نبیذ تمر څخه ماسوا په نورو نبیذونو اودس جائز نه دی جَرْيًا عَلَى قَضِيَّةِ الْقِيَاسِ د قیاس په مقتضا باندي د عمل کولو په وجه.

**اللغات:** ﴿حُلْوٌ﴾ خوږ، شیرین. ﴿رَقِيْقٌ﴾ نری، نرم. ﴿اِشْتَدَّ﴾ د إفتعال د باب ماضي صیغه ده: سختېدل، مضبوطه کېدل، چي له نبیذ سره راسي نو معنی یې راځي: د نبیذونو سختېدل (ګاټه کېدل) او نشه کونکي جوړېدل، او که د شیدو سره راسي نو معنی یې راځي: د شیدو سختېدل (ګاټه کېدل) چي مستې یا نور څني جوړ سي، ﴿أَنْبِذَةٌ﴾ جمع ده، واحد یې نَبِيْذٌ دی: (په تېر سبق کي یې معنی بیان سوه).

**تشريح:** په دې عبارت کي د نبیذ حقیقت بیان سوی دی چي د امام صاحب او صاحبینو پکښي اختلاف دی، په نوادر کي امام محمد رَحِمَهُ الله ذکر کړي دي چي په کوم نبیذ سره چي د اودسه په جائزوالي او ناجائزالي کي د درو (۳) امامانو اختلاف دی هغه نبیذ دا دی چي په اوبو کي خرماوي واچول سي تر دې چي اوبه خوږي سي او داسي نری پاته سي چي پر اندامونو باندي د اوبو په څېر وبیول سي، نه ګاټه (خټي) وي او نه نشه کونکي، څو که هغه ګاټه (خټي) او ترخي سوې نو بالاجماع اودس په جائز نه دی، ځکه چي هغه نشه کونکي او حرام دي، او که نبیذ پر اور پاخه سوي وي نو تر څو چي هغه خواږه او نرم وي، او پر اندامونو د اوبو په څول بهیږي نو په هغه کي هم د امام صاحب او صاحبینو اختلاف دی، هغه دا چي که په پخولو سره ګاټه سوي وه نو د امام صاحب په نېز اودس په جائز دی، ځکه چي د ده په نېز د دې چیښل حلال دي، او څرنګه چي د امام محمد رَحِمَهُ الله په نېز د دې چیښل حرام دي، نو ځکه د هغه په نېز په دې سره اودس کول هم جائز نه دي.

ولا يجوز التوضؤ الخ صاحب د هدایې وایي چي له نبیذ تمر څخه ماسوا په نورو نبیذونو اودس کول جائز نه دي، د مثال په توګه د کشمشو او انځرو په نبیذ، دلیل یې دا دی چي د ليلة الجن په حدیث سره د قیاس خلاف په نبیذ تمر سره لودس جائز وګرځول سو، لېکن نور نبیذونه به پر دې قیاس پاته وي، یعني په دوی سره به اودس جائز نه وي.

# بَابُ التَّيَمُّمِ

## (دا) باب د تیمم (په بیان کي) دی

**تشریح**: تر دې مخکي صاحب د هدایې د اصل احکام یعني په اوبو سره د اودس او غسل کولو احکام او فروع په پوره تفصیل سره بیان کړل، اوس دلته د فرعي او بدل احکام یعني په تیمّم سره د پاکي حاصلولو احکام او مسائل بیانوي. او د تیمّم د وروسته کولو غټه وجه دا ده، چي په قرآن کریم کي (هم) الله تعالیٰ مخکي د اودس او وروسته د تیمّم احکام بیان کړي دي، لکه څرنګه چي ارشاد دی: يَا أَيُّهَا الَّذِينَ آمَنُوا إِذَا قُمْتُمْ إِلَى الصَّلَاةِ فَاغْسِلُوا وُجُوهَكُمْ تر دې وروسته فرمايي: فَإِنْ لَمْ تَجِدُوا مَاءً فَتَيَمَّمُوا صَعِيدًا طَيِّبًا [سورة المائدة: ۶]. او دویمه وجه یې دا ده چي اودس اصل دی او تیمّم د اودس فرع او بدل دی، او ښکاره ده چي اصل تر بدل مخکي وي، نو په دې وجه یې هم مخکي د اصل یعني د اودس احکام بیان کړل. او اوس دلته د بدل یعني د تیمّم احکام بیانوي.

**د تیمّم لغوي او اصطلاحي تعریف**: د تیمّم لغوي معنیٰ ده: قصد کول، اراده کول. او اصطلاحي تعریف یې دی:

القصد إلى الصعيد الطاهر للتطهر (د طهارت حاصلولو لپاره د پاکو خاورو اراده کول)؛

تیمّم په قرآن، حدیث او جماع ټولو سره ثابت دی. په قرآن کي خو په ښکاره لفظونو سره د تیمم مشروعیت په ډاګه سوی دی، او تر څو چي په حدیث کي د دې د مشروعیت ثبوت دی، نو صاحب د فتح القدیر او صاحب د عنایه وایي: چي د غزوۀ مریسیع پر موقع (کوم چي په سنه: ۵ هـ کي پېښه سوې ده) د تیمّم حکم نازل سو. چي پر هغه موقع د حضرت عائشې رَضِيَ اللهُ عَنْهَا هار هم ورک سوی وو. دویم حدیث دا دی: جعلت لي الأرض مسجدا و طهورا. أينما أدركتني الصلاة تيممت و صليت. (مځکه زما لپاره مسجد او پاکونکې جوړ سوې ده کله چي هم د لمانځه وخت راسي نو زه تیمّم وهم او لمونځ کوم (عنايه ج:۱. ص:۱۲۵)). او له اجماع څخه یې ثبوت په دا ډول دی چي له کومه وخته تیمّم مشروع سوی دی له هغه وخته تر اوسه پوري د اُمت محمدي عمل پر دې را روان دی.

### د تیمّم د جائز والي شرطونه

وَمَنْ لَمْ يَجِدِ الْمَاءَ او کوم سړی چي اوبه پیدا نه کړي وَهُوَ مُسَافِرٌ په داسي حال کي چي هغه مسافر وي أَوْ خَارِجَ الْمِصْرِ بَيْنَهُ وَبَيْنَ الْمِصْرِ نَحْوُ مِيلٍ أَوْ أَكْثَرَ یا له ښار څخه دباندي وي، (او) د هغه او د ښار تر مینځ یو میل یا تر دې زیاته مسافه (فاصله) وي يَتَيَمَّمُ بِالصَّعِيدِ نو (د هغه لپاره جائز دي چي) پر پاکه خاوره تیمّم وکړي لِقَوْلِهِ تَعَالَى ځکه الله تعالیٰ فرمایلي دي فَلَمْ تَجِدُوا مَاءً فَتَيَمَّمُوا صَعِيدًا طَيِّبًا که تاسو اوبه پیدا نه کړې نو په خاوره تیمّم وکړئ وَقَوْلِهِ عَلَيْهِ الصَّلَاةُ وَالسَّلَامُ او د نبي ﷺ دا فرمان هم (دلیل) دی التُّرَابُ طَهُورُ الْمُسْلِمِ خاوره د مسلمان لپاره پاکونکې ده وَلَوْ إِلَى عَشْرِ حِجَجٍ مَا لَمْ يَجِدِ الْمَاءَ که څه هم تر لسو کالو پوري اوبه پیدا نه کړي وَالْمِيلُ هُوَ الْمُخْتَارُ فِي الْمِقْدَارِ او د مقدار په

سلسله کي ميل غوره دی لِأَنَّهُ يَلْحَقُهُ الْحَرَجُ بِدُخُولِ الْمِصْرِ ځکه چي ښارته په تللو سره انسان ته تکليف پېښېږي وَالْمَاءُ مَعْدُومٌ حَقِيقَةً او اوبه په حقيقت کي نسته وَالْمُعْتَبَرُ الْمَسَافَةُ دُوْنَ خَوْفِ الْفَوْتِ او معتبر (د يوه ميل) مسافه ده، نه د(لمانځه) دفوت کېدلو ېره لِأَنَّ التَّفْرِيْطَ يَأْتِيْ مِنْ قِبَلِهِ ځکه کوتاهي(بې پروايي)خو دهغه له طرفه راغلې ده.

**اللغات:** ﴿مِيْل﴾ ميل پر دوه قسمه دی: ① شرعي ② انګريزي. شرعي ميل دوه زره(۲۰۰۰) ګزه کيږي. او په اوسني حساب سره ۱,٦ کيلو متره کيږي (يعني يوه اعشاريه شپږ کيلو متره کيږي) او (د ميټر په حساب سره) ۱۸۲۸ ٫٦۹ ميټره کيږي، او د شرعي ذراع په اعتبار سره څلور زره ۴۰۰۰ ذراعه کيږي، او انګريزي ميل ۱۷٦۹ ګزه کيږي. نو انګريزي ميل تر شرعي ميل کوچنی دی، او دلته شرعي ميل مراد دی. نو که اوبه دوه زره ګزه يعني ۱۸۲۸ ميټره ليري وي، نو بيا تيمّم کولای سي. ﴿صَعِيْد﴾ خاوره، د ځمکي مخ، لوړه ځمکه. ﴿حِجَج﴾ جمع د حجّة ده يعني: کال. ﴿تَفْرِيْط﴾ د تفعيل دباب مصدر دی: کمول. ضايع کول. بې پروايي کول.

**تشريح: صورت د مسئلې:** دا دی که ديو سړي سره دومره اوبه نه وي چي د اودس يا غسل لپاره کافي سي. يا اوبه خو وي لېکن په کوم ځای کي چي وي هغه له ده څخه يو ميل ليري وو. نو د داسي سړي لپاره شريعت دا آساني جوړه کړې ده چي د اوبو پر ځای دي خاورو ته متوجه سي او په خاورو دي تيمّم وکړي او لمونځ دي وکړي. د دې حکم اول دليل خو د قرآن مجيد دا آيت دی: فَلَمْ تَجِدُوا مَاءً فَتَيَمَّمُوا صَعِيدًا طَيِّبًا (سورة المائدة: ۶). او دويم دليل هغه حديث دی کوم چي په کتاب کي ذکر سو، چي په هغه کي د اوبو د نشتوالي په صورت کي تر لسو کالو پوري د تيمّم اجازه ورکول سوې ده.

والميل الخ فرمايي چي د اوبو د ليري والي په باره کي چي کوم د يوه ميل مسافه ټاکل سوې ده. همدغه صحيح ده. ځکه چي د يوه ميل مسافه کافي مسافه ده. او دومره اندازه مسافه د انسان لپاره پرېکول ستونزمن او د تکليف سبب دي. او د تيمّم د مشروعيت مقصد هم له انسان څخه ستونزه او تکليف ليري کول دي، نو له دې څخه معلومه سوه چي که اوبه له يوه ميل څخه پر کمه مسافه وي نو په دې صورت کي د تيمّم اجازه نسته. لېکن کله چي اوبه د يوه ميل په اندازه ليري وي نو داسي به ويل کيږي. چي اوس په حقيقت کي اوبه نسته، او په حقيقيت کي چي اوبه نه وي نو په هغه صورت کي د تيمّم اجازه وي، نو ځکه به د يوه ميل ليري والي په صورت کي هم د تيمّم اجازه وي.

والمعتبر المسافة الخ له دې ځای څخه دا بيانوي چي د تيمّم د جائز والي لپاره به د يوه ميل يا له دې څخه د زياتي مسافې اعتبار کيږي. او همدغه صحيح ده. لېکن څه چي امام زفر رَحِمَهُ الله فرمايي چي د لمانځه د قضاء کېدلو اعتبار به کيږي (يعني که اوبه له يوه ميل څخه پر کمه مسافه وي خو د انسان دا ېره وه چي که ځان ورسوم نو لمونځ به را څخه قضاء سي نو په دې وخت کي د امام زفر په نېز تيمّم جائز دی) دا صحيح نه دي. بلکي صحيح دا ده که اوبه يو ميل ليري وي نو بيا به د تيمّم اجازه وي که څه هم د لمانځه د قضاء کېدلو ېره وه. ځکه چي د دومره اندازه وخت تنګولو بې پروايي خو د ده له طرفه راغلې ده. او دا حالت ده خپل له ځانه جوړ کړی دی. (يعني له ځانه يې دا پلان جوړ کړی دی چي که اوبو ته ځان رسوم نو لمونځ به را څخه قضاء سي. يا مطلب دا چي تفريط او کمښت يعني د وخت تأخير په خپله د ده له طرفه راغلي دي، يعني په خپله ده وخت تنګ کړی، که ده کوښښ کړی وای نو رسېدلی به وای) نو ځکه به دی په دې باره کي معذور نه ګڼل کيږي او نه به د ده لپاره د تيمّم اجازه وي.

## د مريض لپاره د تيمم حکم

وَلَوْكَانَ يَجِدُ الْمَاءَ إِلَّا أَنَّهُ مَرِيْضٌ او که هغه سړي اوبه پيدا کړې خو مريض (ناروغه) وو يَخَافُ إِنِ اسْتَعْمَلَ الْمَاءَ اِشْتَدَّ مَرَضُهُ او ډېرېدی چې که اوبه استعمال کړي نو مرض به يې نور سخت (زيات) سي يَتَيَمَّمُ نو هغه دې تيمم وکړي لِمَا تَلَوْنَا د هغه دليل په وجه کوم چې موږ بيان کړی وَلِأَنَّ الضَّرَرَ فِيْ زِيَادَةِ الْمَرَضِ فَوْقَ الضَّرَرِ فِيْ زِيَادَةِ ثَمَنِ الْمَاءِ او په دې وجه (هم) چې د مرض زياتېدلو تاوان د اوبو د نرخ د زياتېدلو له تاوان څخه ډېر دی وَذٰلِكَ يُبِيْحُ التَّيَمُّمَ او دا (د نرخ زياتېدلو تاوان) تيمم روا کوي فَهٰذَا أَوْلٰى نو دا خو به يې په طريقهٔ اولیٰ سره روا کوي وَلَا فَرْقَ بَيْنَ أَنْ يَشْتَدَّ مَرَضُهُ بِالتَّحَرُّكِ او په دې کي هيڅ فرق نسته چې که د دې سړي مرض په حرکت کولو سره زيات سي أَوْ بِالْاِسْتِعْمَالِ او که د اوبو په استعمال سره (زيات سي) وَاعْتَبَرَ الشَّافِعِيُّ رَحِمَهُ اللهُ خَوْفَ التَّلَفِ او امام شافعي رَحِمَهُ الله د هلاکت د ډېري اعتبار کړی دی وَهُوَ مَرْدُوْدٌ بِظَاهِرِ النَّصِّ لېکن هغه د نص د ظاهر په وجه رد کړی سوی دی.

**اللغات:** ﴿ضرر﴾ تاوان، تکليف، سختي، ﴿ثمن﴾ قيمت، نرخ، رېټ، بيه، ﴿تلف﴾ هلاک کېدل، ضايع کېدل.

**تشريح: صورت د مسئلې:** دا دی که د يو سړي سره اوبه وي خو مريض وو او د اوبو په استعمال سره يې د مرض زياتېدلو خطره وه، يا يې په جوړوالي کي د تأخير او ځنډ امکان وو، نو په داسي صورت کي دې سړي لره تيمم کول جائز دي، دليل يې د الله تعالیٰ دا قول دی: وَإِنْ كُنْتُمْ مَرْضَىٰ أَوْ عَلَىٰ سَفَرٍ أَوْ جَاءَ أَحَدٌ مِنْكُمْ مِنَ الْغَائِطِ أَوْ لَامَسْتُمُ النِّسَاءَ فَلَمْ تَجِدُوا مَاءً فَتَيَمَّمُوا صَعِيدًا طَيِّبًا (سورة النساء:٤٣)، دويم دليل يې دا دی چې که يو څوک مريض نه وو، خو اوبه په نرخ تر لاسه کېدلې (يعني خرڅېدلې)، نو که خرڅوونکي اوبه له ثمن مثل (عام نرخ) څخه ګراني خرڅولې، نو په داسي صورت کي د نرخ د زياتوب له تکليف او تاوان څخه د ځان ژغورلو لپاره تيمم روا دی، ښکاره دې وي چې د مرض تکليف او تاوان د نرخ له تاوان څخه زيات دی، نو کله چې د کم ضرر او تاوان ليري کولو لپاره تيمم جائز دی نو د غټ او لوی ضرر ليري کولو لپاره خو به په طريقهٔ اولیٰ تيمم جائز وي.

ولا فرق الخ صاحب د هدايې فرمايي چې په پورتنۍ مسئله که د مرض زياتېدل د بدن د حرکت په وجه وو، يا د اوبو د استعمال په وجه وو، دواړه برابر دي، يعني په دواړو صورتونو کي تيمم روا دی.

واعتبر الشافعي الخ حضرت امام شافعي رَحِمَهُ الله فرمايي چې تيمم په هغه وخت کي روا دی چې کله د اوبو په استعمالولو سره د ځان يا د يو اندام د ضايع کېدلو غالبه ګمان وي، لېکن د امام شافعي رَحِمَهُ الله مذهب د دې آيت وَإِنْ كُنْتُمْ مَرْضَىٰ په ظاهر سره مردود دی، ځکه چې په آيت کي مطلق مرض د تيمم د جائز والي سبب ګرځول سوی دی، نو د ځان يا د يو اندام د ضايع کېدلو قيد لګول پر کتابُ الله زياتوب دی او دا جائز نه دی، لېکن که دا وويل سي چې أحنافو هم د مرض د سختوالي اعتبار کړی دی، حال دا چې په آيت کي دا قيد نسته، نو د دې جواب دا دی چې د آيت سياق پر دې دلالت کوي چې دلته د مرض د سختوالی قيد سته، ځکه چې الله تعالیٰ فرمايلي دي: مَا يُرِيدُ اللهُ لِيَجْعَلَ عَلَيْكُمْ مِنْ حَرَجٍ (سورة المائدة:٦)، (الله تعالیٰ پر تاسو د سختي کولو اراده نه لري)، او ښکاره ده چې تکليف او سختي په هغه وخت کي سته چې کله د مرض زياتېدلو ډېره وي.

## د جنب لپاره د تيمم حکم

وَلَوْخَافَ الْجُنُبُ او که جنب سړی وېرېږي اِنِ اغْتَسَلَ چې که غسل وکړي أَنْ يَّقْتُلَهُ الْبَرْدُ نو يخ به يې مړ کړي أَوْ يُمْرِضُهُ يا به يې (يخ) مريض کړي يَتَيَمَّمُ بِالصَّعِيْدِ نو (په دې وخت کې دې) په پاکه خاوره تيمّم وکړي وَهَذَا اِذَا كَانَ خَارِجَ الْمِصْرِ لِمَا بَيَّنَّا او دا (حکم) هغه وخت دی چې کله دی له ښار څخه دباندې وي لکه (مخکې) چې موږ د دې بيان وکړی وَلَوْكَانَ فِي الْمِصْرِ فَكَذٰلِكَ عِنْدَ أَبِيْ حَنِيْفَةَ رَحِمَهُ اللهُ او که په ښار کې وو نو هم د امام صاحب په نېز دغه حکم دی خِلَافًا لَهُمَا د صاحبينو اختلاف دی هُمَا● يَقُوْلَانِ صاحبين فرمايي إِنَّ تَحَقُّقَ هٰذِهِ الْحَالَةِ نَادِرٌ فِي الْمِصْرِ چې په ښار کې دا ډول حالت پېښېدل نادر (کمياب) دي فَلَا يُعْتَبَرُ نو د دې اعتبار به نه کېږي وَلَهُ او د امام صاحب دليل دا دی أَنَّ الْعَجْزَ ثَابِتٌ حَقِيْقَةً چې (دلته هم) عاجزي په حقيقت کې ثابته ده فَلَابُدَّ مِنْ اعْتِبَارِهِ نو ځکه به هغې اعتبار کول ضروري وي.

**اللغات:** ﴿يُمرِض﴾ د إفعال د باب مضارع معلومه صيغه ده، أَمرَض يُمرِض: په ناروغي کې مبتلا کول، ناروغه کول. ﴿بيّنّا﴾ د تفعيل د باب ماضي صيغه ده، بَيَّن يُبَيِّنُ: بيانول، ښکاره کول. ﴿عجز﴾ د سَمِع د باب مصدر دی: عاجزه کېدل، بې وسه کېدل.

**تشريح:** مسئله: دا ده چې که د جنب انسان دا ېره وه چې د غسل په وجه به مړ سم يا مريض به سم نو د ده لپاره تيمّم کول جائز دي، صاحب د هدايې وايي چې دا حالت که له ښار څخه دباندې راغلی نو د ټولو په اتفاق سره تيمّم جائز دی، دليل يې مخکې ذکر سوی دی چې ښار ته تلل ستونزمن او د تکليف سبب دی، او که جنب انسان په ښار کې وو او دا ېره يې پيدا سوه چې مړ به سم يا مرض به مې زيات سي؛ نو په دې صورت کې د امام صاحب هم دغه حکم دی چې د ده لپاره تيمم جائز دی، او صاحبين وايي چې که په ښار کې يې دا ېره پيدا سوه نو تيمّم جائز نه دی.

**د صاحبينو دليل:** دا دی چې په ښار کې داسې حالت راتلل کمياب او نادر دي، نو په دې وجه به يې اعتبار نه کېږي. يعني په ښار کې د ګرمو اوبو او له يخ څخه د حفاظت امکان سته، نو ځکه به هلاکېدل يا د مرض پېښېدل غير معتبر وي، او که په ښار کې د تيمّم اجازه ورکړل سي نو عوام به په ډېر لږ يخ سره د دې بانه (پلمه) کوي (يعني د لږ غونډي يخ په خاطر به د تيمم لپاره بانې جوړوي).

**د امام صاحب دليل:** دا دی چې ورو ره! مسئله د ښار او صحرا نه ده، مسئله خو پر اوبو د قدرت نه درلودلو ده. او دغه سړی هم د هلاکت د بيرې په وجه پر اوبو قدرت نه لري (چې استعمال يې کړي) نو ځکه به د ده په حق کې تيمّم جائز وي.

**راجح قول:** په پورتنۍ مسئله کې راجح قول د صاحبينو دی ځکه چې اختلاف په هغه صورت کې دی چې کله په ښار کې دننه ګرمي اوبه پيدا نه کړي، يا د حمام پيسې (أجرت) ور سره نه وي، او يا داسې شی نه وي چې اوبه په ګرمي کړي، په فتاوی هنديه کې هم داسې ذکر سوي دي. [القول الراجح ج:۱، ص:۲٦]

---

● القول الراجح: قولهما لأن الخلاف إذا لم يجد الماء المسخن أو أجرة الحمام أو لا ما يدفئه كما في الهندية ج:۱، ص:۲۸. [القول الراجح ج:۱، ص:۲٦]

## د تيمم صحيح طريقه

وَالتَّيَمُّمُ ضَرْبَتَانِ او تيمّم دوه ضربه دی يَمْسَحُ بِإِحْدَاهُمَا وَجْهَهُ چي په دې دوو ضربونو کي به په يوه ضرب خپل مخ مسح کوي وَبِالْأُخْرٰى يَدَيْهِ إِلَى الْمِرْفَقَيْنِ او په دويم ضرب به خپل دواړه لاسونه تر څنګلو پوري مسح کوي لِقَوْلِهِ عَلَيْهِ الصَّلَاةُ وَالسَّلَامُ[1] ځکه نبي ﷺ فرمايلي دي اَلتَّيَمُّمُ ضَرْبَتَانِ (چي) د تيمّم دوه ضربه دي ضَرْبَةٌ لِلْوَجْهِ وَضَرْبَةٌ لِلْيَدَيْنِ يو ضرب د مخ لپاره (دی) او بل ضرب د دواړو لاسو لپاره (دی) وَيَنْفُضُ يَدَيْهِ بِقَدْرِ مَا يَتَنَاثَرُ التُّرَابُ او خپل دواړه لاسونه به دومره څنډي چي خاوري څني ليري سي (يعني چي خاوري په پوره توګه ختمي سي) كَيْ لَا يَصِيْرَ مُثْلَةً د دې لپاره چي مُثله (بدشکلي) نه وګرځيږي وَلَا بُدَّ مِنَ الْاِسْتِيْعَابِ فِيْ ظَاهِرِ الرِّوَايَةِ او د ظاهر روايت مطابق د ټوله محل مسح کول ضروري دي لِقِيَامِهِ مَقَامَ الْوُضُوْءِ ځکه چي تيمّم د اودس قائم مقام (نائب) دی وَلِهٰذَا قَالُوْا : يُخَلِّلُ الْأَصَابِعَ هم په دې وجه فقهاؤ فرمايلي دي: چي په ګوتو کي به خلال (هم) کوي وَيَنْزِعُ الْخَاتَمَ او ګوتمی به (هم) کاږي لِيَتِمَّ الْمَسْحُ چي مسح (په ښه توګه) پوره سي.

**اللغات:** ﴿مِرْفَقٌ﴾ څنګل، ﴿يَنْفُضُ﴾ د نَصَرَ د باب مضارع صيغه ده: څنډل، ﴿يَتَنَاثَرُ﴾ د تفاعل د باب مضارع صيغه ده: لوېدل، ليري کېدل، رژېدل، ﴿يُخَلِّلُ﴾ د تفعيل د باب مضارع صيغه ده: خلالول، ﴿يَنْزِعُ﴾ د ضرب د باب مضارع صيغه ده، د دې ډېري معناوي راځي، خو دلته يې معنیٰ ده: کښل، کاږل.

**تشريح:** د نبي کريم ﷺ د فرمان التيمم ضربتان مطابق د تيمّم طريقه دا ده چي تيمّم کونکي دي د پاکي حاصلولو په نيت خپل دواړه لاسونه دوه واره پر مځکه ووهي. په اول وار دي خپل مخ مسح کړي او په دويم وار دي خپل دواړه لاسونه مسح کړي تر څنګلو پوري، او څنګلي دي هم پکښي راولي، کله چي لاسونه پر مځکه ووهي. نو تر هغه وروسته دي په ښه ډول لاسونه وڅنډي، چي خاوري او ګرز څني ليري سي. دا د دې لپاره چي مُثله (بد شکلي) را نه سي. يعني مخ يې ګرځمن او بدشکله نه سي، ځکه څرنګه چي په مُثله سره بد رنګي راځي، همدارنګه پر مخ باندي د خاورو د تېرولو په وجه هم بدرنګي راځي.

### په تيمّم کي د استيعاب حکم

صاحب د هدايې د ولا بد...الخ څخه فرمايي چي د ظاهر روايت مطابق په تيمم کي استيعاب شرط دی. استيعاب معنیٰ دا چي په مسح کي به ټوله محل راولي، نو که له مسحي څخه يو ځای هم پاته سو نو تيمّم يې نه کيږي لکه په اوداسه کي چي هم دا شرط دي، ځکه چي مسح د اودس بدل او قائم مقام ده. او په اودس کي استيعاب شرط دی، نو کله چي په أصل يعني په اودس کي استيعاب شرط دی نو په فرع يعني په مسح کي خو به په طريقهٔ اولیٰ سره شرط وي. همدا وجه ده چي فقهاؤ د مسحي په باره کي دا ټينګار کړی دی چي تيمّم کونکي به خپلي ګوتي هم خلالوي. او که يې ګوتمی په ګوته وه هغه به هم کاږي، چي په پوره توګه او علیٰ وجه الكمال مسح وسي.

---

[1] تخريج: أخرجه دار قطني في كتاب الطهارة، باب التيمم، حديث رقم: ٦٧٥ - ٦٧٤.

صاحب د هدايې د في ظاهر الرواية په ويلو سره له هغه روايت څخه احتراز کړی دی کوم چې حضرت حسن بن زياد رحمه الله له امام صاحب رحمه الله څخه را نقل کړی دی. په هغه کې ويل سوي دي چې په تيمّم کې استيعاب شرط نه دی، بلکې که پر زياته حصه يې مسح وکړه نو کافي ده. لکه څرنګه چې د موزې او سر په مسح کې أکثر د کُل قائم مقام دی. او په دې دواړو کې استيعاب شرط نه دی. خو ظاهر الروايه هغه دی کوم چې په کتاب کې ذکر سو. او عمل هم پر هغه دی. (عنايه ج:۱، ص:۱۳۰)

## په تيمم کي حدث، جنابت، حيض او نفاس ټوله برابر دي

وَالْحَدَثُ وَالْجَنَابَةُ فِيْهِ سَوَاءٌ او په تيمّم کي حدث او جنابت دواړه برابر دي وَكَذَا الْحَيْضُ وَالنِّفَاسُ او همدا حکم د حيض او نفاس دی لِمَا رُوِيَ ځکه روايت سوی دی أَنَّ قَوْمًا جَاءُوْا إِلَى رَسُوْلِ اللهِ (ص) چي يو قوم نبي ﷺ ته راغلی وَقَالُوْا: إِنَّا قَوْمٌ نَسْكُنُ هٰذِهِ الرِّمَالَ او ويې ويل: موږ داسي قوم يو چي په دې رېګو (رېګستان) کي اوسيږو وَلَا نَجِدُ الْمَاءَ شَهْرًا أَوْ شَهْرَيْنِ او تريوې او دوو مياشتو پوري اوبه په لاس نه راځي وَ فِيْنَا الْجُنُبُ وَ الْحَائِضُ وَ النُّفَسَاءُ حال دا چي په موږ کي جنب، حيض او نفاس والا ښځي هم وي فَقَالَ عليه السلام: عَلَيْكُمْ بِأَرْضِكُمْ نو نبي عليه السلام وفرمايل: پر تاسو خپله ځمکه نيول ضروري دي (يعني د ځمکي په خاوري سره تيمم کوئ).

**اللغات:** ﴿رِمَالٌ﴾ جمع ده. واحد يې رَمْلٌ راځي: رېګ. مجازاً رېګستان او دښت ته ويل کيږي.

**تشريح:** صاحب د عنايې او علامه محمود عيني رحمه الله دلته دا تشريح کړې ده چي د جواز، کيفيت. او آلې يعني په هر اعتبار سره په تيمّم کي د حدث او جنابت دواړو حکم برابر دی. يعني کوم تيمّم چي د حدث اصغر لپاره په کومه طريقه سره کيږي هغه تيمّم به د حدث اکبر ( جنابت، حيض او نفاس ) لپاره هم په هغه طريقه سره کافي وي. او په دې کي د هيڅ ډول زياتوب هيڅ ضرورت نسته.

اصلاً دا عبارت د هغه قول ترديد دی چي په هغه کي د جنب او حائضې لپاره تيمّم مشروع نه دي منل سوی. (يعني جنب او حائضه ښځه به تيمم نه وهي)، دغه قول له حضرت عمر او حضرت ابن عمر او حضرت ابن مسعود رضي الله عنهم څخه را نقل سوی دی. صاحب د بنايې او عنايې دا وضاحت کړی دی چي د دې اختلاف سبب د قرآن کريم هغه آيت دی چي په هغه کي د اوداسه او تيمّم حکم ذکر سوی دی يعني له إذا قمتم څخه تر أو لامستم النساء فلم تجدوا ماء فتيمموا صعيدا طيبا پوري. د اختلاف تفصيل دا دی چي خبره په أو لامستم کي ده. يعني أو لامستم پر مس باليد باندي محمول دی او که پر جماع؟ (د مس باليد معنیٰ ده: په لاس سره مسح کول، لاس ور وړل. يعني آيا له دې أو لامستم څخه ښځي ته لاس ور وړل مراد دي او که د ښځي سره جماع [کوروالی] مراد دی؟) حضرت ابن عمر رضي الله عنهما او نور حضرات دا پر مس باليد باندي محمول کوي. (يعنی دوی وايي چي له دې څخه ښځي ته لاس ور وړل مراد دي) او علت دا بيانوي چي الله تعالیٰ خلاف القياس د محدث (بې اودسه) لپاره تيمّم د اوداسه قائم مقام جوړ کړی دی. نو دا به خپل د قياس پر مقتضا باندي

حمل کيږي، او جنب او نور به تر دې حکم نه لاندې کيږي، ځکه چې د جنب او نورو حدث د محدث(بې اودسه) له حدث څخه زيات دی.

د دې په خلاف حضرت علي، حضرت عائشې، حضرت ابن عباس رَضِیَ اللهُ عَنْهُمْ او جهمور علماء و فقهاء د لامستم څخه مجازاً د جماع مراد اخلي، او د آيت د سياق په قرينه سره د جنب لپاره هم تيمّم مشروع ګرځوي، ځکه چې الله تعالیٰ د اوداسه په آيت کې د محدث او جنب دواړو لپاره حکم بيان کړی دی، لکه څرنګه چې د إذا قمتم څخه تر و أرجلكم إلى الكعبين پورې د حدث اصغر بيان دی، تر دې وروسته په إن كنتم جنبا فاطهروا کې حدث اکبر بيان سوی دی، او د اوبو د نشتوالي په صورت کې د طهارت حکم د خاورو طرف ته منتقل سوی دی، تر دې وروسته بيا له أو جاء أحد منكم من الغائط څخه حدث اصغر بيانيږي، نو په دې وجه لامستم پر جماع باندې حمل کول په دې باره کې زيات مناسب ښکاري چې څرنګه د اودس په آيت کې حدث اکبر او حدث اصغر دواړه داخل دي، همدارنګه دې د تيمّم په آيت کې هم دواړه داخل او شامل سي. (عنايه ج:۱ ص:۱۳۱، بنايه ج:۱، ص:۵۰۳)

او بيا د جنب او حائضې لپاره د تيمّم د مشروعيت دليل هغه حديث هم دی کوم چې په کتاب کې ذکر سو، چې نبي ﷺ د صحراء او ريګستان د اوسېدونکو لپاره د حيض، نفاس او جنابت په حالت کې د اوبو د نشتوالي په صورت کې د تيمّم اجازه ورکړې ده، نو تر غور وروسته دا خبره څرګنديږي چې د أو لامستم څخه جماع مراد ده، او د تيمّم په آيت کې حدث اکبر هم داخل دی، ځکه چې نبوي حديثونه د قرآن مجيد لپاره غوره او ښه تفسير دی، او دا حديثونه له هغه مبارکې ژبې څخه صادر سوي دي چې د هغه په اړه قرآن مجيد دا اعلان کړی دی: وَمَا يَنطِقُ عَنِ الْهَوَىٰ (۳) إِنْ هُوَ إِلَّا وَحْيٌ يُوحَىٰ. (سورة النجم ۳ ۴)

## پر کومو شيانو تيمّم جائز دی (د فقهاؤ قولونه)

وَيَجُوزُ التَّيَمُّمُ عِنْدَ• أَبِي حَنِيفَةَ وَمُحَمَّدٍ رَحِمَهُمَا اللهُ د طرفينو رَحِمَهُمَا الله په نيز تيمّم جائز دی بِكُلِّ مَا كَانَ مِنْ جِنْسِ الْأَرْضِ په هر هغه شي سره چې د ځمکې له جنس څخه وي كَالتُّرَابِ وَالرَّمْلِ لکه خاوره او ريګ وَالْحَجَرِ وَالْجِصِّ ډبره او ګچ وَالنُّورَةِ وَالْكُحْلِ وَالزِّرْنِيخِ چونه(چينه)، رانجه او هړتال(يو ډول زهرجن معدني مرکب دی) وَقَالَ أَبُو يُوسُفَ رَحِمَهُ اللهُ: لَا يَجُوزُ إِلَّا بِالتُّرَابِ وَالرَّمْلِ او امام ابو يوسف رَحِمَهُ الله فرمايي: چې صرف په خاوره او په ريګ باندې تيمّم جائز دی وَقَالَ الشَّافِعِيُّ رَحِمَهُ الله: لَا يَجُوزُ إِلَّا بِالتُّرَابِ الْمُنْبِتِ او امام شافعي فرمايي: چې صرف په راشنه کونکې خاوره باندې تيمّم جائز دی(يعني صرف پر هغه خاوره تيمم جائز دی چې شيان پکښې راشنه کېدلای سي) وَهُوَ رِوَايَةٌ عَنْ أَبِي يُوسُفَ رَحِمَهُ اللهُ او دا يو روايت له امام ابو يوسف رَحِمَهُ الله څخه هم دی لِقَوْلِهِ تَعَالَىٰ ځکه الله تعالیٰ فرمايلي دي فَتَيَمَّمُوا صَعِيدًا طَيِّبًا نو تاسو په پاکه خاوره باندې تيمّم وکړئ أَيْ تُرَابًا مُنْبِتًا يعني په راشنه کونکې خاوره باندې قَالَهُ ابْنُ عَبَّاسٍ رَضِيَ اللهُ عَنْهُ همدارنګه حضرت ابن عباس رَضِیَ اللهُ عَنْهُمَا فرمايلي دي(يعني ابن عباس رض د "صعيد" همدغه تفسير کړی دی) غَيْرَ

---

• القول الراجح: قولهما كماقال العلامة ابن الهمام رَحِمَهُ الله فى فتح القدير ج:۱، ص:۱۱۲. [القول الراجح ج:۱، ص:۲۷]

أَنَّ أَبَا يُوسُفَ زَادَ عَلَيْهِ الرَّمْلَ لېکن امام ابو يوسف رَحِمَهُ الله پر دې باندې ربګ (هم) زيات کړی دی بِالْحَدِيثِ الَّذِیْ رَوَيْنَاهُ د هغه حديث په وجه کوم چې (مخکې) موږ بيان کړی وَلَهُمَا: أَنَّ الصَّعِيدَ إِسْمٌ لِوَجْهِ الْأَرْضِ او د طرفينو دليل دا دی چې صعيد د مځکې د مخ (يعني د روبي زمين) نوم دی سُمِّيَ بِهِ او د مځکې مخ ته ځکه صعيد وويل سوه لِصُعُودِهِ چې د مځکې مخ پورته (او لوړ) دی وَالطَّيِّبُ يَحْتَمِلُ الطَّاهِرَ او (په آيت کې) د طيب لفظ د طاهر (پاک) احتمال هم لري (يعني پاکې خاورې) فَحُمِلَ عَلَيْهِ نو ځکه د طيب لفظ پر طاهر حمل کړی سو لِأَنَّهُ أَلْيَقُ بِمَوْضِعِ الطَّهَارَةِ ځکه چې دا د طهارت د ځای سره زيات مناسب دی أَوْ هُوَ مُرَادٌ بِالْإِجْمَاعِ يا دا چې له طيب څخه د طاهر معنیٰ اخيستل په اجماع سره مراد دي.

**اللغات:** ﴿جص﴾ ګچ (يوه ډول سپينه معدني خاوره ده چې خونو او دېوالونو ته د سپينوالي او مضبوطوالي لپاره ور کول کيږي). ﴿نورة﴾ چونه (چينه، دا هم يوه مشهوره سپينه خاوره ده چې د خونو او دېوالونو د ښکلا او سپينوالي لپاره کارول کيږي). ﴿زرنيخ﴾ يو ډول زهرجن معدني مرکب دی چې د وربښتيانو د کښلو لپاره کارول کيږي، هرتال. ﴿منبتا﴾ د إفعال د باب اسم فاعل صيغه ده، أَنْبَتَ يُنْبِتُ: راشنه کول. ﴿أليق﴾ د لائق اسم تفضيل دی: يعني ډېر لايق او وړ.

**تشريح:** په دې عبارت کې هغه شيان بيانيږي چې پر هغو تيمم جائز وي.

**صورت د مسئلې:** دا دی چې د طرفينو په نيز پر هر هغه شي کوم چې د مځکې له جنس څخه وي تيمّم جائز دی، خو دا به څرنګه پېژندل کيږي چې دا شی د مځکې له جنس څخه دی؟ نو د دې د پېژندلو طريقه دا ده چې کوم شی تر سوځولو وروسته ايره جوړه سي لکه درخته نو هغه د مځکې له جنس څخه دی او کوم شی چې ويلې او نرم سي، لکه اوسپنه نو هغه د مځکې له جنس څخه نه دی، له دې څخه علاوه نور شيان د مځکې له جنس څخه دي لکه: خاورې، ربګ، شګې، ډبرې، ګچ، چونه، رانجه، هرتال، غرنی مالګه، ياقوت، زمرد او داسې نور؛ د امام ابو يوسف رَحِمَهُ الله يو قول دا دی: چې صرف پر خاوره او ربګو تيمّم کول جائز دي، او امام شافعي رَحِمَهُ الله فرمايي چې فقط پر داسې خاوره تيمّم جائز دی چې په هغې کې د إنبات يعني د راشنه کولو صلاحيت وي، له دې څخه ماسوا پر هيڅ شي باندې تيمّم جائز نه دی، د امام ابو يوسف رَحِمَهُ الله دويم مرجوع إليه قول همدغه دی.

**د امام شافعي دليل:** دا الله دا قول صَعِيدًا طَيِّبًا دی، په دې ډول چې د صعيد معنی ده: خاوره، او د طيب معنیٰ ده: مُنْبِت (راشنه کونکی)، دا تفسير د حضرت ابن عباس رَضِيَ اللهُ عَنْهُمَا دی، نو دا تفسير د دې خبرې تقاضا کوي چې تيمّم دې فقط په خاوره جائز وي، لېکن امام ابو يوسف رَحِمَهُ الله پر دې د ربګ هم اضافه کړې دی. د هغه حديث په وجه کوم چې مخکې تېر سو يعني: عليکم بالأرض...الخ.

**د طرفينو دليل:** دا دی چې صعيد د مځکې مخ (روبي زمين) ته ويل کيږي، يعني د مځکې ښکاره او پورتنی حصه. او څرنګه چې پورتنی حصه تر لاندې حصې لوړه ده نو ځکه د دې نوم صعيد کېښېنول سو، حاصل دا چې کوم شی د مځکې له جنس څخه وي په هغه باندې تيمّم کول جائز دي؛ د صعيد دغه معنیٰ له امام خليل نحوي څخه را نقل سوې

ده. همدارنګه زمخشري په کشاف کې له زجاج څخه روایت کوي فرمايي چې صعید د ځمکې مخ ته ویل کیږي. او په معاني القرآن کې زجاج ویلي دي چې زما د علم مطابق په دې معنیٰ کې هیڅ اختلاف نشته. او په صحاح کې هم دغه معنیٰ بیان شوې ده.

والطیب الخ او پاتې شوه دا خبره چې د طیب معنیٰ د منبت ده. نو موږ وایو چې څرنګه طیب د منبت په معنیٰ راځي همدارنګه د نظیف او طاهر په معنیٰ هم راځي، نو کله چې طیب په څو معناګانو کې مشترک دی نو اوس به دې ته کتل کیږي چې دا ځای د کومې معنیٰ تقاضا کوي، او په دې ځای کې له طیب څخه باید کومه معنیٰ واخیستل شي. نو کله چې موږ غور وکړی نو معلومه شوه چې دا د طهارت ځای دی، او د طهارت په ځای کې طیب د طاهر پر معنیٰ حمل کول زیات مناسب دي. نو ځکه موږ دا د پاک پر معنیٰ حمل کوو. یعنې: پاکې خاورې.

دویم دلیل دا دی چې لفظ د طیب د طاهر او منبت په مینځ کې مشترک دی. او د مقام په اعتبار سره بالاجماع د طاهر معنیٰ مراد ده، نو په دې وجه به د منبت معنیٰ مراد نه وي، ځکه چې زموږ په نیز په مشترک کې عموم جائز نه دی. (عنايه، بنايه)

**راجح قول:** په پورتنې مسئله کې راجح قول د طرفینو یعنې د امام صاحب او امام محمد رَحِمَهُمَااللّٰه دی. لکه څرنګه چې علامه ابن الهمام هم د دې تصریح کړې ده، او علامه قاضیخان رَحِمَهُ الله په دې باره کې لیکلي دي: ويجوز التيمم بكل ما كان من اجزاء الارض كالتراب والرمل.... (الخانيه ج:۱، ص:۶۱). [القول الراجح ج:۱، ص:۲۷]

## د تیمم د جائز کېدلو لپاره ګرز (ګرد) ضروري دی، که نه؟

ثُمَّ لَا يُشْتَرَطُ أَنْ يَكُونَ عَلَيْهِ غُبَارٌ عِنْدَ● أَبِي حَنِيفَةَ بیا د امام ابو حنیفه رَحِمَهُ الله په نیز دا شرط نه دی چې پر دې شي دې ګرز (ګرد) وي لِإِطْلَاقِ مَا تَلَوْنَا د هغه آیت د اطلاق په وجه کوم چې موږ تلاوت کړی وَكَذَا يَجُوزُ بِالْغُبَارِ مَعَ الْقُدْرَةِ عَلَى الصَّعِيدِ همدارنګه پر خاورو د قدرت سره سره په ګرز باندې تیمم جائز دی عِنْدَ أَبِي حَنِيفَةَ وَمُحَمَّدٍ رَحِمَهُمَا اللهُ●● د طرفینو رَحِمَهُمَاالله په نیز لِأَنَّهُ تُرَابٌ رَقِيقٌ ځکه چې ګرز نرۍ خاوره ده.

**اللغات:** ﴿غُبار﴾ ګرز (ګرد). ﴿رَقِيق﴾ نرۍ. باریک.

**تشریح:** په دې مختصره عبارت کې دوې مسئلې بیان شوې دي: (۱) اوله مسئله دا ده چې د امام صاحب په نیز پر مځکنې شیانو باندې د ګرز (او غبار) شتون (وجود) ضروري نه دی، (یعنې دا ضروري نه ده چې پر دې شیانو به ګرز وي. کنې تیمم جائز نه دی) ځکه چې الله د صعیدا طیبا په ذریعه له مطلقو خاورو څخه د تیمم حکم کړی دی، او په دې آیت کې د ګرز او نورو هیڅ قید نشته. نو ځکه زموږ لپاره هم د قید زیاتولو هیڅ حق نشته، نو که یو څوک مثلا پر داسې ډبره تیمم وکړي چې پر هغه ګرز نه وي. نو تیمم یې جائز دی، همدارنګه د امام صاحب رَحِمَهُ الله په نیز پر هغه خاوره هم

---

● القول الراجح: قول أبي حنيفة رَحِمَهُ الله كذا في رد المحتار ج:۱، ص:۶۱، والهندية ج:۱، ص:۲۷. [القول الراجح ج:۱، ص:۲۸]

●● القول الراجح: فرضنا أي قول أبي حنيفة و محمد رَحِمَهُمَاالله كذا في رد المحتار ج:۱، ص:۱۷۶. [القول الراجح ج:۱، ص:۲۹]

تيمم جائز دی چې پر هغې ګرزنه وي، په خلاف د صاحبينو رَحِمَهُمَا الله او د امام شافعي رَحِمَهُ الله، ځکه چې د دوی په نيز د ګرز شتون ضروري دی.

**د صاحبينو او امام شافعي دليل:** دا دی چې الله تعالیٰ تر صعيدا طيبا وروسته فامسحوا بوجوهكم و أيدكم منه فرمايلي دي او د منه ضمير د صعيد و طرف ته راجع دی، همدارنګه دلته مِنْ تبعيضيه دی، او د تبعيض مفهوم هغه وخت پوره کېدای سي چې کله په خاوره کي ګرز وي.

**جواب:** د امام صاحب له طرفه د دې جواب دا ورکول سوی دی چې څرنګه د منه په ضمير کي دا احتمال سته چې د صعيد و طرف ته دي راجع وي، همدارنګه دا احتمال هم پکښې سته چې دا ضمير دي د محدث و طرف ته راجع وي، نو کله چې په ضمير کي د دويمي مرجع احتمال هم سته نو په دې سره دليل نيول او ګرز شرط کول صحيح نه دي، ځکه چې إذا جاء الاحتمال بطل الاستدلال، همدارنګه دا هم ممکنه ده چې دلته دي مِن د تبعيض لپاره نه وي، بلکي د ابتداء لپاره دي وي، نو په دې صورت کي به بالکل د دوی استدلال صحيح نه وي.

(۲) دويمه مسئله دا ده چې د طرفينو په نيز که څه هم خاوري موجودي وي خو بيا هم په ګرز باندي تيمّم جائز او صحيح دی، ځکه چې په قرآن کريم کي د صعيد يادونه سوې ده، او ګرز هم د صعيد يو قسم دی، ځکه چې ګرز باريکه او نرۍ خاوره ده.

**راجح قول:** په پورتني عبارت کي دوې مسئلې ذکر سوې:

(۱) اوله مسئله دا ذکر سوه چې پر مذکوره شيانو ګرز شرط دی، که نه؟، نو په دې مسئله کي راجح قول د امام صاحب رَحِمَهُ الله دی، علامه قاضيخان رَحِمَهُ الله ليکلي دي: ويجوز التيمم بكل ما كان من اجزاء الارض إلى أن قال والحجر الذى عليه غبار أو لم يكن بأن كان مغسولا و أملس. (۲) او دويمه مسئله دا ذکر سوه چې پر خاورو د قدرت سره سره په ګرز باندي تيمم جائز دی، که نه؟، په دې مسئله کي راجح قول د طرفينو رَحِمَهُمَا الله دی، لکه څرنګه چې علامه جلال الدين خوارزمي رَحِمَهُ الله ليکلي دي: لأن الغبار تراب إلا أنه رقيق فكما يجوز التيمم بالجنس من التراب على كل حال فكذلك بالرقيق، كذا في المبسوط (الكفايه ج:۱، ص:۱۱۴). [القول الراجح ج:۱، ص:۲۹]

## په تيمّم کي د نيت حکم

| |
|---|
| وَالنِّيَّةُ فَرْضٌ فِي التَّيَمُّمِ او په تيمّم کي نيت فرض دی وَقَالَ* زُفَرُ رَحِمَهُ اللهُ تَعَالَى: لَيْسَتْ بِفَرْضٍ او امام زفر فرمايي: فرض نه دی لِأَنَّهُ خَلَفٌ عَنِ الْوُضُوْءِ ځکه چې تيمّم د اوداسه بدل (خليفه) دی فَلَا يُخَالِفُهُ فِيْ وَصْفِهِ نو ځکه به تيمم په وصف کي د اوداسه خلاف نه وي وَلَنَا: أَنَّهُ يُنْبِئُ عَنِ الْقَصْدِ او زموږ دليل دا دی: چې تيمّم د ارادې خبر ورکوي فَلَا يَتَحَقَّقُ دُوْنَهُ نو بغير له ارادې څخه به نه متحقق کيږي أَوْ جُعِلَ طَهُوْرًا فِيْ حَالَةٍ مَخْصُوْصَةٍ يا دا چې خاوره په يو ځانګړي حالت کي پاکونکې ګرځول سوې ده وَالْمَاءُ طَهُوْرٌ بِنَفْسِهِ او اوبه خو د خپل ذات په اعتبار سره پاکونکي دي |

* القول الراجح: قول الجمهور كذا في فتح القدير ج:۱، ص:۱۱۴. [القول الراجح ج:۱، ص:۳۰]

عَلٰى مَا مَرَّ لکه مخکي چي تېر سوه ثُمَّ إِذَا نَوَى الطَّهَارَةَ أَوِ اسْتِبَاحَةَ الصَّلَاةِ بیا که تیمّم وهونکی د طهارت نیت وکړي او که د لمانځه د روابېنت وکړي أَجْزَأَهُ نو(دواړه) د ده لپاره کافي دي وَلَا يُشْتَرَطُ نِيَّةُ التَّيَمُّمِ لِلْحَدَثِ أَوْ لِلْجَنَابَةِ او د حدث یا جنابت لپاره د تیمم نیت شرط نه دی هُوَ الصَّحِيحُ مِنَ الْمَذْهَبِ همدغه صحیح مذهب دی.

**اللغات**: ﴿خَلَفٌ﴾ نائب، خلیفه، ﴿يُنْبِئُ﴾ د افعال د باب مضارع صیغه ده، أَنْبَأَ يُنْبِئُ: خبر ورکول، دلیل کېدل، ﴿اِسْتِبَاحَةٌ﴾ د استفعال د باب مصدر دی: حلال کېدل، جائز کېدل، ﴿أَجْزَأَهُ﴾ د افعال د باب ماضي صیغه ده، په آخر کي یې "ه" ضمیر دی، أَجْزَأَ يُجْزِئُ: کافي کېدل.

**تشریح**: په دې عبارت کي هم دوې مسئلې بیان سوي دي: (۱) اوله مسئله دا ده چي زموږ په نېز د تیمّم لپاره نیت فرض او شرط دی، او د امام زفر رَحِمَهُ الله په نېز نیت نه فرض دی او نه شرط.

**د امام زفر دلیل**: دا دی چي تیمّم د اودس خلیفه او بدل دی، او په اصل یعني اودس کي نیت فرض نه دی، نو په فرع او بدل کي به څرنګه فرض وي، ځکه چي بدل د صحت (صحیح کېدلو) په صفت کي له اصل څخه مخالف نه وي، اوس که موږ په تیمّم کي نیت فرض وګرځوو، نو د صحت په صفت کي به بدل له اصل څخه مخالف سي، او دا صحیح نه دي.

**زموږ دلیل**: په دې لړ کي زموږ دوه دلیلونه دي: (۱) اول دلیل دا دی چي تیمم په لغت کي د قصد او ارادې په معنیٰ سره استعمال سوی دی، او قصد ته نیت هم ویل کیږي، نو ځکه له نیت څخه بغیر د تیمّم تحقق نه کیږي. (۲) دویم دلیل دا دی چي تیمّم په خاورو سره کیږي، او خاوري په هر حال کي د لمانځه لپاره پاکونکي (مُطَهِّر) نه دي، بلکي د خاورو د مُطَهِّر کېدلو شرط دا دی چي تیمّم به د لمانځه په اراده کیږي، او د دې ارادې نوم نیت هم دی، نو له دې څخه هم معلومه سوه چي په تیمّم کي نیت شرط دی.

د دې په خلاف د اوبو مسئله ده، نو په اوبو کي د نیت هیڅ ضرورت نسته، ځکه چي اوبه په خپل ذات کي پاکونکي (مُطَهِّر) دي، او په هر حال کي پاکونکي دي، نو ځکه د اوبو په استعمال کیٔ د نیت او ارادې د شرط کولو هیڅ لړ تیا نسته.

**راجح قول**: په پورتنۍ مسئله کي راجح قول د جمهورو دی لکه څرنګه چي صاحب د فتح القدیر علامه ابن الهمام رَحِمَهُ الله لیکلي دي: قال المصنف رَحِمَهُ الله فی التجنیس: النیة المشروطة هی نیة التطهیر هو الصحیح. انتهی.

## د طهارت یا إباحة الصلوٰة نیت هم کافي دی

(۲) دویمه مسئله دا ده چي که تیمّم وهونکی صرف د طهارت حاصلولو په نیت سره تیمّم وکړي، یا د لمانځه د روابېنت (مباح والي) په نیت سره تیمم وکړي نو دا نیت کافي دی، بیا ده ته د دې بول نیت هیڅ ضرورت نسته چي زه له بې اودسی (حدث) څخه د پاکېدلو نیت کوم، یا له جنابت څخه د پاکېدلو نیت کوم، همدغه صحیح مذهب دی، ځکه چي د تیمّم مقصد هم د طهارت (پاکي) حاصلول دي، نو د دې مقصد لپاره د حدث د نوعي معلومولو هیڅ ضرورت نسته.

صاحب د هدایې په دې قول الصحیح من المذهب سره د ابو بکر رازي له قول څخه احتراز کړی دی ځکه هغه فرمایي: چي په تیمّم کي به د حدث یا جنابت لپاره جلا جلا نیت کیږي، او دلیل دا ورکوي چي د حدث او جنابت دواړو لپاره یو بول

تيمّم كيږي، نو ځكه به د نيت په ذريعه يو له بل څخه جلا كيږي، لېكن ښكاره ده چي دا قول د مذهب له ظاهر څخه خلاف دی.

## كه عيسايي(نصراني)تيمّم يا اودس وكړي بيا اسلام راوړي نو څه حكم دی؟

فَإِنْ تَيَمَّمَ نَصْرَانِيٌّ يُرِيْدُ بِهِ الْإِسْلَامَ كه نصراني د اسلام راوړلو په اراده تيمّم وكړی ثُمَّ أَسْلَمَ او بيا مسلمان سو لَمْ يَكُنْ مُتَيَمِّمًا عِنْدَ ● أَبِي حَنِيْفَةَ وَمُحَمَّدٍ رَحِمَهُمَا اللهُ نو د طرفينو په نېز هغه تيمّم والا نه پاته كيږي وَقَالَ أَبُوْ يُوْسُفَ: هُوَ مُتَيَمِّمٌ امام ابو يوسف رَحِمَهُ الله فرمايي: چي هغه (اوس هم) تيمّم والا دی لِأَنَّهُ نَوَى قُرْبَةً مَقْصُوْدَةً ځكه چي هغه د قربت مقصوده(ځانګړي عبادت) نيت كړی دی بِخِلَافِ التَّيَمُّمِ لِدُخُوْلِ الْمَسْجِدِ وَمَسِّ الْمُصْحَفِ په خلاف د هغه تيمّم چي مسجد ته د داخلېدلو او د قرآن د مسه كولو په نيت سوی وي لِأَنَّهُ لَيْسَ بِقُرْبَةٍ مَقْصُوْدَةٍ ځكه چي دا قربت مقصوده نه دي وَلَهُمَا أَنَّ التُّرَابَ مَا جُعِلَ طَهُوْرًا إِلَّا فِي حَالِ إِرَادَةِ قُرْبَةٍ مَقْصُوْدَةٍ لَا تَصِحُّ بِدُوْنِ الطَّهَارَةِ او د طرفينو دليل دا دی: چي خاوره صرف د داسي قربت مقصوده د اراده كولو په صورت كي پاكونكې ګرځول سوې ده كوم چي له پاكۍ څخه بغير نه صحيح كيږي وَالْإِسْلَامُ قُرْبَةٌ مَقْصُوْدَةٌ او اسلام (داسي) قربت مقصوده(ځانګړی عبادت) دی تَصِحُّ بِدُوْنِهَا چي بغير له پاكۍ څخه هم صحيح كيږي بِخِلَافِ سَجْدَةِ التِّلَاوَةِ په خلاف د سجدهٔ تلاوت لِأَنَّهَا قُرْبَةٌ مَقْصُوْدَةٌ لَا تَصِحُّ بِدُوْنِ الطَّهَارَةِ ځكه چي هغه داسي قربت مخصوصه دی چي بغير له طهارته نه صحيح كيږي وَإِنْ تَوَضَّأَ لَا يُرِيْدُ بِهِ الْإِسْلَامَ او كه عيسايي د اسلام له ارادې څخه بغير اودس وكړی ثُمَّ أَسْلَمَ بيا مسلمان سو فَهُوَ مُتَوَضِّئٌ نو (اوس هم) هغه په اودسه دی خِلَافًا لِلشَّافِعِيِّ رَحِمَهُ الله بِنَاءً عَلَى اشْتِرَاطِ النِّيَّةِ د امام شافعي رَحِمَهُ الله اختلاف دی د نيت د شرط كېدلو په وجه.

**اللغات:** ﴿المُصحف﴾ د مُصحَف معنىٰ ده: پوښ او وقايې والا كتاب، مراد ځني "قرآن مجيد" دی. ﴿قُرْبَة﴾ نېكي، عبادت، داسي عمل چي په هغه سره د الله ﷻ نژدېكت حاصل سي.

**تشريح:** د عبارت تر حل مخكي په دې خبره پوه سه چي: قربتِ مقصوده يعني ځانګړی عبادت هغه عبادت ته ويل كيږي چي مطلوب جوړ كړی سي او بالذات ادا كړی سي، او د يو بل عبادت په ضمن كي داخل نه وي، لكه: لمونځ. روژه او نور.

اوس مسئله دا ده چي كه نصراني(عيسايي) د اسلام راوړلو په اراده تيمم وكړی، بيا مسلمان سو، نو د طرفينو په نېز دا تيمّم معتبر نه دی، او امام ابو يوسف رَحِمَهُ الله وايي چي معتبر دی.

**د امام ابو يوسف دليل:** دا دی چي نصراني د قربت مقصوده نيت كړی دی، ځكه چي اسلام تر ټولو غټ قربت دی، او مقصود ځكه دی چي د بل عبادت په ضمن كي داخل نه دی، او د قربت ۞ مقصوده په نيت سره چي كوم تيمّم كيږي، هغه شرعاً معتبر وي، نو د اسلام راوړلو په اراده سره چي كوم تيمّم كيږي هغه به معتبر وي، كه تر اسلام راوړلو وروسته

● القول الراجح: قولهما أي أبي حنيفة و محمد رَحِمَهُمَا الله، كذا في رد للمحتار ج:۱، ص:۱۸۰، و فتح القدير ج:۱، ص:۱۱۶. [القول الراجح ج:۱، ص:۳۱]

په دې تيمّم سره لمونځ کول وغواړي نو کولای يې سي، د دې په خلاف که مسلمان په مسجد کې د داخلېدلو په اراده يا د قرآن کريم د مسه کولو په اراده تيمّم وکړی نو دا تيمّم شرعاً معتبر نه دی، که په دې تيمّم سره لمونځ کول وغواړي نو لمونځ نه سي کولای، ځکه چي په مسجد کي داخلېدل يا قرآن کريم مسه کول قربت مقصوده نه دی (ځکه چي د نورو شيانو په ضمن کي راځي، د مثال په توګه که څوک د لمانځه لپاره تيمّم وکړي نو بېکاره خبره ده چي هغه به مسجد ته هم ځي او قرآن به هم وايي، نو د مسجد تګ او د قرآن ويل د لمانځه په ضمن کي راغله، فافهم).

**د طرفينو دليل:** دا دی چي خاوري په خپل ذات کي پاکونکي نه دي بلکي هغه وخت پاکونکي دي چي کله د يو داسي قربت مقصوده اراده وکړی سي کوم چي بغير له طهارت څخه نه صحيح کيږي او اسلام داسي نه دی، ځکه چي هغه بغير له طهارت څخه هم صحيح دی، د دې په خلاف سجدهٔ تلاوت (د تلاوت سجده) ده، ځکه د تلاوت سجده يو داسي قربت مقصوده ده، چي هغه بغير له طهارت څخه نه صحيح کيږي، نو د سجدهٔ تلاوت په اراده که تيمّم وکړی سو نو په هغه سره لمونځ کول جائز دي.

د علامه مرغيناني رَحِمَهُ الله پر دې دليل صاحب د نهايې (نهايه) نقض ذکر کړی دی، د نقض حاصل دا دی چي که کافر د لمانځه ادا کولو لپاره تيمّم وکړی او بيا مسلمان سو نو په دې تيمّم سره لمونځ جائز کېدل پکار دي، ځکه چي لمونځ يو داسي عبادت مقصوده دی کوم چي بغير له طهارت څخه نه صحيح کيږي، حال دا چي په دې تيمّم سره د هغه لپاره لمونځ کول جائز نه دي، نو د طرفينو دا دليل چي خاوري په هغه حال کي پاکونکي دي چي کله د يو داسي عبادت مقصود اراده وکړی سي کوم چي بغير له طهارت څخه نه صحيح کيږي، غلط دی؛ ښه دليل دا دی چي داسي وويل سي چي کافر د نيت اهل نه دی ځکه چي نيت کول عبادت دی او تيمّم بغير له نيت څخه نه صحيح کيږي نو ځکه به د کافر تيمّم صحيح نه وي.

وإن توضأ الخ له دې ځای څخه دا بيانوي چي که نصراني په داسي حال کي اودس وکړی چي اراده يې د اسلام راوړولو نه وه، خو مسلمان سو نو زموږ په نېز دا سړی (اوس هم) په اوداسه دی (لکه تر اسلام راوړلو چي مخکي وو)، او که په دې اوداسه يې لمونځ کول وغوښتل، نو کولای يې سي، ځکه چي زموږ په نېز په اوداسه کي نيت شرط نه دی، (بلکي په تيمم کې نيت شرط او فرض دی)، او د هغه نا أهليت دې ته ضرر نه رسوي، (يعني څرنګه چي هغه د نيت اهل نه دی، نو څه پروا نه لري، ځکه چي نيت شرط نه دی) او د امام شافعي رَحِمَهُ الله په نېز يې اودس معتبر نه دی، ځکه چي د امام شافعي رَحِمَهُ الله په نېز په اوداسه کي نيت شرط دی، او نصراني د نيت أهل او لايق نه دی، نو ځکه به د هغه اودس معتبر نه وي، او تر اسلام راوړلو وروسته که لمونځ کول وغواړي، بل اودس به کوي.

**راجح قول:** په دې مسئله کي راجح قول د طرفينو يعني د امام ابو حنيفه او امام محمد رَحِمَهُمَا الله دی، لکه څرنګه چي علامه قاضيخان رَحِمَهُ الله د دې په تائيد کي ليکلي دي: ز لو تيمم الكافر للاسلام و أسلم لا يجوز له اداء الصلوة بذلك التيمم في قول أبي حنيفة و محمد رَحِمَهُمَا الله وكذا لو تيمم يريد به تعليم الغير لا يجوز له اداء الصلوة بذالك التيمم في ظاهر الرواية (الخانيه ج:۱، ص: ۵۴). [القول الراجح ج:۱، ص:۳۱]

## که مسلمان تیمم وکړي بیا (العیاذ بالله) مرتد سي او بیا مسلمان سي نو څه حکم دی؟

فَإِنْ تَيَمَّمَ مُسْلِمٌ او که مسلمان تیمم وکړی ثُمَّ ارْتَدَّ ثُمَّ أَسْلَمَ او بیا هغه (العیاذ بالله) مرتد سو او بیا مسلمان سو فَهُوَ عَلَى تَيَمُّمِهِ نو هغه پر خپل (مخکني) تیمم پاته دی وَقَالَ زُفَرُ رَحِمَهُ الله: بَطَلَ تَيَمُّمُهُ او امام زفر رَحِمَهُ الله فرمایي: تیمم یې باطل سو لِأَنَّ الْكُفْرَ يُنَافِيهِ ځکه چي کفر له تیمم سره منافي دی فَيَسْتَوِي فِيهِ الِابْتِدَاءُ وَالْبَقَاءُ نو په دې (حکم) به کي اول او آخر دواړه سره برابر وي كَالْمَحْرَمِيَّةِ فِي النِّكَاحِ لکه په نکاح کي چي حرمت دی وَلَنَا: أَنَّ الْبَاقِيَ بَعْدَ التَّيَمُّمِ صِفَةُ كَوْنِهِ طَاهِرًا او زموږ دلیل دا دی: چي تر تیمم وروسته د دې سړي د پاک کېدلو صفت پاته دی (یعني دی پاک دی) فَاعْتِرَاضُ الْكُفْرِ عَلَيْهِ لَا يُنَافِيهِ نو (په دې دوران کي) پر ده د کفر راتلل د تیمم منافي نه دي كَمَا لَوِ اعْتَرَضَ عَلَى الْوُضُوءِ لکه په اوداسه چي کفر راسي وَإِنَّمَا لَا يَصِحُّ مِنَ الْكَافِرِ ابْتِدَاءً او د کافر (تیمم) له شروع څخه صحیح نه دی لِعَدَمِ النِّيَّةِ مِنْهُ ځکه چي د هغه نیت نه صحیح کیږي (یعني هغه د نیت أهل او لائق نه دی).

**اللغات:** ﴿إِرْتَدَّ﴾ د افتعال د باب ماضي صیغه ده: سرکول کوني اوښتل (سر په څنګه اوښتل)، تر اسلام وروسته کافر کېدل، ﴿فَيَسْتَوِي﴾ د افتعال د باب مضارع صیغه: مساوي کېدل، برابرېدل، ﴿إِعْتِرَاض﴾ د افتعال د باب مصدر دی: مخ ته راتلل، جاري کېدل، لګېدل، پېښېدل.

**تشریح: صورت د مسئلې:** دا دی چي که یو سړي د اسلام په حالت کي تیمم وکړي، بیا (العیاذ بالله) مرتد سو، او تر مرتد کېدلو وروسته دویم وار بیا مسلمان سو، نو اوس زموږ په نیز د ده مخکنی تیمم پر خپل حال پاته دی، او ده ته د لمانځه او نورو لپاره دویم وار د تیمم کولو ضرورت نسته، لېکن د امام زفر رَحِمَهُ الله په نیز د ده مخکنی تیمم ختم سو، اوس به د لمانځه او نورو لپاره دوباره تیمم کوي.

**د امام زفر دلیل:** دا دی چي کفر د تیمم منافي دی، او په دې کي شروع او آخر دواړه برابر دي، یعني څرنګه چي په شروع او ابتداء کي د کافر تیمم صحیح نه دی، همدغه رنګه په آخر او بقاء کي هم د کافر تیمم صحیح او معتبر نه دی، او دا مسئله داسي ده لکه په نکاح کي محرمیت یعني که د ښځي او نر په مینځ کي له مخکي څخه حرمت أبدیه وي نو د دوی نکاح بیا صحیح نه ده.

**زموږ دلیل:** دا دی چي کله یو سړي تیمم وکړي، نو د تیمم وجود ختم سي، او فقط د تیمم حکم یعني د تیمم وهونکي پاک کېدل پاته سي، او پر دې حکم د کفر راتګ هیڅ اغېزه نه کوي، ځکه چي کفر د طهارت منافي نه دی، لکه څرنګه چي یو مسلمان سړی په اوداسه وي او مرتد سي او بیا مسلمان سي نو په دې سره د هغه پر اودس هیڅ أثر نه لوېږي، بلکي اودس یې خپل پر حال پاته دی، همدارنګه به دلته هم د مرتدوالي په وجه د طهارت پر صفت هیڅ أثر نه لوېږي، بلکي پر خپل مخکني حال به پاک پاته وي.

وإنما لا يصح الخ فرمایي: چي له شروع څخه د کافر د نیت د نه معتبر کېدلو علت دا دی چي په تیمم کي نیت شرط او فرض دی، او کافر د نیت أهل او لائق نه دی، لېکن کله چي یې یو وار د أهلیت په وخت کي تیمم وکړي، نو بیا د کفر په وجه د هغه نیت نه ختمیږي.

## د تیمم د نواقضو بیان

وَيَنْقُضُ التَّيَمُّمَ كُلُّ شَيْءٍ او هر هغه شی تیمّم ماتوي يَنْقُضُ الْوُضُوْءَ کوم چې اودس ماتوي لِأَنَّهُ خَلَفٌ عَنْهُ ځکه چې تیمّم د اودس خلیفه (بدل) دی فَأَخَذَ حُكْمَهُ نو ځکه تیمّم د اودس حکم واخیستی (یعني د اودس حکم ورکړی سو) وَيَنْقُضُهُ أَيْضًا رُؤْيَةُ الْمَاءِ او د اوبو لیدل (هم) تیمّم ماتوي إِذَا قَدَرَ عَلَى اسْتِعْمَالِهِ خو کله چې هغه د اوبو پر استعمال قدرت ولري لِأَنَّ الْقُدْرَةَ هِيَ الْمُرَادُ بِالْوُجُوْدِ الَّذِيْ هُوَ غَايَةٌ لِطَهُوْرِيَّةِ التُّرَابِ ځکه چې له هغه وجود څخه (خاص) قدرت مراد دی کوم چې د خاورو د طهوریت غایت دی (یعني په آیت کي د اوبو له پیدا کولو (وجود) څخه مراد د اوبو پر استعمال قدرت لرل دي چې هغه د خاورو د پاکولو غایت (انتهاء) ده) وَخَائِفُ السَّبُعِ وَالْعَدُوِّ وَالْعَطَشِ عَاجِزٌ حُكْمًا او له درنده، دښمن او تندي څخه بېرېدونکی حکماً عاجز دی وَالنَّائِمُ عِنْدَ أَبِيْ حَنِيْفَةَ رَحِمَهُ اللهُ● قَادِرٌ تَقْدِيْرًا او بیده سړی د امام ابو حنیفه رَحِمَهُ الله په نیز حکماً قادر دی حَتّٰى لَوْ مَرَّ النَّائِمُ الْمُتَيَمِّمُ عَلَى الْمَاءِ تر دې که بیده سړی د خوب په حالت کي د اوبو سره تېر سو بَطَلَ تَيَمُّمُهُ عِنْدَهُ نو د امام صاحب په نیز د هغه تیمّم باطل سو وَالْمُرَادُ مَاءٌ او له اوبو څخه مراد دومره اندازه اوبه دي يَكْفِيْ لِلْوُضُوْءِ چې د اودسه لپاره کافي وي لِأَنَّهُ لَا مُعْتَبَرَ بِمَا دُوْنَهُ ابْتِدَاءً ځکه چې له دې څخه کمي اوبه له شروع څخه (هم) معتبري نه دي فَكَذَا انْتِهَاءً همدارنګه په آخر کي به هم معتبري نه وي.

**تشریح**: امام قدوري رَحِمَهُ الله فرمایي چې کوم شی اودس ماتوي هغه تیمّم هم ماتوي، دلیل یې دا دی چې تیمّم د اودس خلیفه او بدل دی، او په دې کي هیڅ شک نسته چې اصل اقویٰ (ډېر قوي) وي په نسبت و خلیفه ته، نو کوم شی چې د اقویٰ لپاره ناقض او ماتوونکي وي، نو د أضعف (ډېر ضعیف) لپاره خو به په طریقهٔ اولیٰ سره ناقض او ماتوونکی وي، نو ځکه به هر هغه شی کوم چې ناقض د اودسه وي ناقض د تیمّم به خامخا وي.

وينقضه ايضاً الخ امام قدوري رَحِمَهُ الله فرمایي چې ځیني شیان داسي دي چې په هغو سره اودس نه ماتیږي، خو تیمّم په ماتیږي، هغه دا که تیمّم وهونکي اوبه ولیدلې او د هغه پر استعمال قادر هم وو نو دا اوبه د ده تیمّم ماتوي، او پر استعمال باندي یې د قدرت شرط ځکه ولګوی چې په آیت أو لامستم النساء فلم تجدوا ماء کي او په حدیث التراب طهور المسلم ولو إلى عشر حجج ما لم يجد الماء کي د اوبو له شتون (وجود) او پیدا کولو څخه مراد قدرت پر اوبو دی.

وخائف السبع الخ صاحب د هدایې وایي چې که اوبه وې خو له یو درنده څخه بېره وه، یعني د ده دا بېره وه چې که اوبو ته ولاړ سم درنده به مي مړ کړي یا د دښمن بېره وه چې که اوبو ته ولاړ سم دښمن به مي قتل کړي، او یا دا چې اوبه دومره کمي وې چې په اودس کولو سره به تږی پاته سي، نو په دې ټولو صورتونو کي دا سړی د اوبو له استعمال څخه عاجز بلل کیږي، او د ده لپاره تیمّم جائز دی.

---

● القول الراجح: قول الصاحبين من أنه لا ينتقض الوضوء المتيمم النائم على الوضوء، و أبقيا تيممه لعجزه عن استعمال الماء، رد المحتار ج:۱، ص:۱۸۸ كذا في فتح القدير ج:۱، ص:۱۱۹، و الدر المختار ج:۱، ص:۸۸. [القول الراجح ج:۱، ص:۳۲]

والنائم الخ مصنف د هدايې وايي: چې د امام ابو حنيفه رَحِمَهُ الله په نېز که تيمم والا د خوب په حالت کې د اوبو سره تېر سو نو د هغه تيمّم باطل سو، ځکه چې هغه د اوبو له استعمال څخه ديو داسې عذر په وجه عاجزه دی کوم چې په خپله د هغه له طرفه پيدا سوی دی (يعني په خپله يې دی سبب جوړ سوی دی) چې هغه نو خوب دی، نو دی به معذوره نه ګڼل کېږي.

والمراد مايكفي الخ فرمايي چې کومو اوبو ته په کتلو سره يا د کومو اوبو سره چې د بېله سرې په تېرېدلو اودس ماتېږي، له هغه اوبو څخه دومره انداز اوبه مراد دي چې د اوداسه لپاره کافي وي، ځکه کله چې ابتداءً له دې څخه د کمو اوبو اعتبار نسته، نو انتهاءً به هم له دې څخه د کمې اندازې اوبه معتبرې نه وي، يعني که يو سړی اودس کول وغواړي لېکن دومره اوبه نه وي چې د اوداسه لپاره کافي وي نو د هغه لپاره د تيمّم کولو اجازه سته، همدارنګه که يو تيمّم وهونکی اوبه پيدا کړي لېکن دومره نه وي چې د اوداسه لپاره کافي سي، نو په دې صورت کې به هم د دومره اوبو په پيدا کولو سره د هغه تيمّم نه باطلېږي.

**راجح قول:** په پورتنې عبارت کې خو د امام صاحب قول ذکر سو چې د ده په نېز که تيمّم وهونکی د خوب په حالت کې د اوبو سره تېر سو نو تيمم يې ماتېږي، لېکن د صاحبينو قول ذکر نه سو، هغه دا دی چې نه ماتېږي، او راجح قول هم د صاحبينو دی، ځکه چې هغه د اوبو له استعمال څخه عاجز دی، لکه علامه ابن عابدين رَحِمَهُ الله چې د دې تصريح کړې ده: قال العلامة ابن عابدين رَحِمَهُ الله (قوله و أبقيا تيمّمه) أى أبقى الصاحبان رَحِمَهُ الله تيمّمه لعجزه عن استعمال الماء (رد المحتار ج:۱، ص:۱۸۸). [القول الراجح، ج:۱، ص:۳۲]

## د تيمم لپاره پاکه خاوره ضروري ده

وَلَا يَتَيَمَّمُ إِلَّا بِصَعِيدٍ طَاهِرٍ او تيمّم دې نه وهي مګر پر پاکه خاوره لِأَنَّ الطَّيِّبَ أُرِيدَ بِهِ الطَّاهِرُ ځکه چې (په آيت کې) له طيب څخه مراد پاک دی وَلِأَنَّهُ آلَةُ التَّطْهِيرِ او په دې وجه (هم) چې خاورې د پاکولو آله ده فَلَا بُدَّ مِنْ طَهَارَتِهِ فِي نَفْسِهِ كَالْمَاءِ نو ځکه په خپله د خاورو پاکېدل ضروري دي لکه څرنګه چې د اوبو پاکېدل ضروري دي.

**اللغات:** ﴿أُرِيدَ﴾ د افعال د باب ماضي مجهوله صيغه ده: اراده کول. ﴿فَلَابُدَّ﴾ فاء زائده ده، د لَا بُدَّ معنیٰ ده: چاره نسته، ضروري ده.

**تشريح:** فرمايي چې د تيمّم وهونکي لپاره حکم دا دی چې صرف له پاکې خاورې يا د خاورې له هم جنسه پاکو شيانو څخه به تيمّم کوي، او د دې حکم دوه دليلونه دي: (۱) په دې آيت: فتيمّموا صعيدا طيبا کې له طيب څخه طاهر مراد دی، نو ځکه په کوم شي سره چې تيمّم کېږي د هغه پاک کېدل ضروري دي، (۲) دويم دليل دا دی چې د تيمّم وهونکي لپاره خاورې د پاکولو آله ده، لکه څرنګه چې اوبه د پاکولو آله ده، او اوبه په خپل ذات کې پاکې دي، همدارنګه د خاورو هم په خپل ذات کې پاک کېدل لازمي او ضروري دي.

## که د اوبو پيدا کېدلو اُميد وي نو څه حکم دی؟

وَيُسْتَحَبُّ لِعَادِمِ الْمَاءِ وَهُوَ يَرْجُوهُ او د هغه سړي لپاره مستحب دي چې اوبه نه لري (يعني اوبه ور سره نه وي) لېکن اميد يې لري (چې په آخري وخت کې به يې پيدا کړي) أَنْ يُؤَخِّرَ الصَّلَاةَ إِلَى آخِرِ الْوَقْتِ (دا مستحب دي) چې لمونځ تر آخري وخت

پوري وځنډوي فَإِنْ وَجَدَ الْمَاءَ نو که یې اوبه پیدا کړې تَوَضَّأَ اودس دې وکړي وَإِلَّا تَيَمَّمَ وَصَلَّى او که یې پیدا نه کړې نو تیمّم دې وکړي او لمونځ دې وکړي لِيَقَعَ الْأَدَاءُ بِأَكْمَلِ الطَّهَارَتَيْنِ ددې لپاره چې د لمانځه اداء کېدل په دواړو طهارتونو کې په أکمل طهارت باندې وسي فَصَارَ كَالطَّامِعِ فِي الْجَمَاعَةِ او دا سړی داسې سو لکه د جماعت په طمع انتظار کونکې سړی وَعَنْ أَبِي حَنِيفَةَ وَأَبِي يُوسُفَ رَحِمَهُمَا اللهُ فِي غَيْرِ رِوَايَةِ الْأُصُولِ او د اصولو له روایت څخه ماسوا په بل روایت کې له شیخینو رَحِمَهُمَا الله څخه رانقل سوي دي أَنَّ التَّأْخِيرَ حَتْمٌ چې ځنډول ضروري دي لِأَنَّ غَالِبَ الرَّأْيِ كَالْمُتَحَقِّقِ ځکه چې غالب ګومان د متحقق په ډول دی وَجْهُ الظَّاهِرِ د ظاهر روایت دلیل دا دی أَنَّ الْعَجْزَ ثَابِتٌ حَقِيقَةً چې (دلته) عاجزي په حقیقت کې ثابته ده فَلَا يَزُولُ حُكْمُهُ إِلَّا بِيَقِينٍ مِثْلِهِ نو ځکه به د هغې حکم نه زائلیږي مګر په هغسې یقین سره.

**اللغات**: ﴿عادم﴾ د كَرُمَ د باب اسم فاعل دی: نه پیدا کونکی، نه لرونکی، خالي لاسی سړی، ﴿أكمل﴾ د كَامِل اسم تفضیل دی: یعني ډېر کامل او ډېر پوره، ﴿طامع﴾ د فتح د باب اسم فاعل دی: لالچ او طمع کول، حرص کول، ﴿حتم﴾ لازمي، ضروري.

**تشریح**: **مسئله**: دا ده که د یو سړي سره اوبه نه وي، خو دا اُمید یې وي چې د لمانځه تر آخري وخت پوري به اوبه پیدا کړي، نو په دې صورت کې لمونځ تر خپل آخري وخت پوري ځنډول مستحب دي، او که دا اُمید یې نه وي، نو خامخا دې لمونځ نه ځنډوي، بلکې که اوبه پیدا سوې نو اودس او لمونځ دې وکړي، او که پیدا نه سوې نو په تیمّم سره دې لمونځ وکړي، او د اوبو د پیدا کېدلو دأمید په صورت کې لمونځ ځنډول په دې وجه مستحب دی چې له دواړو طهارتونو څخه په أکمل یعني اوداسه باندې لمونځ اداء کړی سي، او دا سړی د هغه سړي په ډول دی کوم چې په اوداسه وي او لمونځ کول غواړي، لېکن په دې اُمید سره لمونځ ځنډوي، چې یو بل لمانځه والا به هم پیدا سي او په جماعت سره به لمونځ وکړي، نو د هغه لپاره هم دغه حکم دی چې که د بل سړي د پیدا کېدلو امکان وي نو لمونځ ځنډول مستحب کنې نه دې ځنډوي، همدغه رنګه په ذکر سوې مسئله کې هم که د اوبو پیدا کېدلو اُمید وو، نو لمونځ دې وځنډوي، کنې تیمّم دې ووهي او خپل لمونځ دې وکړي.

وعن أبي حنيفة الخ په دې لړ کې د أصولو له روایت څخه علاوه د شیخینو روایت دا دی: چې د اوبو پیدا کېدلو په اُمید لمونځ ځنډول ضروري دي، ځکه چې ظنِّ غالب (غالب اُمید) د متحقق او ثابت أمر په ډول وي، نو څرنګه چې د اوبو د شتون (وجود) په صورت کې تیمّم جائز نه دی، همدغه رنګه که د اوبو پیدا کېدلو غالب ګمان وو، نو هم دې تیمّم نه کوي، بلکې لمونځ دې تر آخري وخت پوري وځنډوي، که په وخت کې دننه اوبه پیدا سوې نو فبها ونعمة، او که پیدا نه سوې نو تیمّم دې وکړي.

وجه الظاهر الخ او د ظاهر الروایة دلیل دا دی چې تر اوسه اوبه پیدا سوي نه دي، او په حقیقت کې عاجزي ثابته ده، نو تر کومه وخته چې په حقیقت کې اوبه پیدا نه سي، او د اوبو پیدا کېدل یقیني نه سي، نو تر هغه وخته لمونځ ځنډول ضروري نه دي.

## په يوه تيمّم سره د ډېرو لمونځونو حکم

وَيُصَلِّيْ بِتَيَمُّمِهٖ مَا شَاءَ او تيمّم کونکي چي په خپل تيمم سره څومره لمونځونه وغواړي هغه دي وکړي مِنَ الْفَرَائِضِ وَالنَّوَافِلِ هغه که فرضي لمځونه وي او که نفلي لمونځونه وي وَعِنْدَ الشَّافِعِيِّ رَحِمَهُ اللهُ: يَتَيَمَّمُ لِكُلِّ فَرْضٍ او دامام شافعي رَحِمَهُ الله په نېز به د هر فرض لمونځ لپاره تيمّم کوي لِأَنَّهُ طَهَارَةٌ ضَرُوْرِيَّةٌ ځکه چي تيمّم ضروري طهارت دی وَلَنَا: أَنَّهُ طَهُوْرٌ حَالَ عَدَمِ الْمَاءِ او زموږ دليل دا دی: چي د اوبو د نشتون په صورت کي تيمّم پاکونکی (مُطهِّر) دی فَيَعْمَلُ عَمَلَهُ مَا بَقِيَ شَرْطُهُ نو تر څو چي د هغه شرط باقي وي د اوبو کار به کوي.

**اللغات:** ﴿فَيَعْمَلُ﴾ د سَمِعَ د باب ماضي صيغه ده، عَمِلَ يَعْمَلُ: کار کول.

**تشريح صورت د مسئلې:** دا دی چي زموږ په نېز تيمّم والا په يوه تيمّم سره هر څومره لمونځونه کولای سي هغه که فرض وي او که نفل، په يوه وخت کي يې کوي، او که په څو وختونو کي، تر څو چي يې تيمّم مات سوی نه وي تر هغه وخته هر څومره او هر ډول لمونځونه کولای سي، او د امام شافعي رَحِمَهُ الله په نېز په يوه تيمّم سره يو فرض لمونځ کولای سي، او د دويم فرض لمانځه لپاره به دويم تيمّم کوي، خو په يوه تيمّم سره نفلونه هر څومره کولای سي.

**د امام شافعي دليل:** دا دی چي تيمّم ضروري طهارت دی، مطلب دا چي د اوبو د نه پيدا کېدلو په صورت کي او له اوبو څخه د عاجزه کېدلو په حالت کي خاوري پاکونکي (مُطهّري) ګرځول سوي دي، او په دې صورت کي د تيمّم کولو او په دې تيمّم باندي د لمونځ کولو اجازه ورکول سوې ده، او کله چي په يوه تيمّم سره يو فرض لمونځ اداء سو نو د تيمم ضرورت ختم سو، نو ځکه به د دويم فرض لمانځه لپاره دوباره تيمّم کوي.

**زموږ دليل:** دا دی چي د اوبو د نشتوالي په صورت کي د خاورو مُطهِّر کېدل له نص څخه ثابت دي، لکه څرنګه چي نبي ﷺ فرمايلي دي: الصعيد الطيب وضوء المسلم وإن لم يجد الماء عشر سنين، او فرمايي: التراب طهور المسلم نو له دې څخه دا معلومه سوه چي د خاورو مُطهِّر کېدل خاص دي د اوبو د نه پيدا کېدلو د شرط سره(يعني که اوبه نه وي نو خاوري به پاکي وي)، نو تر څو چي دا شرط وي تر هغه وخته به خاوري مُطهِّري(پاکونکي) وي، او تر هغه وخته به متيمّم چي په يوه تيمّم سره څومره لمونځونه وغواړي کولای به يې سي، هغه که فرائض وي، که نوافل.

بله دا خبره هم ده چي تيمّم د اوداسه خليفه او بدل دی، نو څرنګه چي په يوه اودس سره هر څومره لمونځونه کېدلای سي، همدارنګه به په يوه تيمّم سره هم هر څومره لمونځونه کېدلای سي، کنې په خليفه والي کي يې به نقص او کمي راسي، او دا صحيح نه دي. (والله اعلم)

## د اختر او د جنازې د لمانځه لپاره د تيمم حکم

وَيَتَيَمَّمُ الصَّحِيْحُ فِي الْمِصْرِ او جوړ (روغ) سړی په ښار کي تيمم کولای سي (يعني د جوړ سړي لپاره په ښار کي هغه وخت تيمم جائز دی) إِذَا حَضَرَتْ جِنَازَةٌ کله چي جنازه حاضره سي وَالْوَلِيُّ غَيْرُهٗ په داسي حال کي چي دا روغ سړی ولي نه وي فَخَافَ او د ده دا ډېره وي إِنِ اشْتَغَلَ بِالطَّهَارَةِ چي که په اوداسه مشغول سو أَنْ تَفُوْتَهُ الصَّلَاةُ نو د جنازې لمونځ به څني پاته سي لِأَنَّهَا لَا تُقْضٰى ځکه چي د جنازې د لمانځه قضاء نه راوړل کيږي فَيَتَحَقَّقُ الْعَجْزُ نو عاجزي ثابته سوه وَكَذَا

مَنْ حَضَرَ الْعِيْدَ او دغه رنګه هغه سړی چې د اختر لمانځه ته راسي فَخَافَ إِنِ اشْتَغَلَ بِالطَّهَارَةِ او دا بېره ور سره وي چي که په اوداسه مشغول سي أَنْ يَفُوتَهُ الْعِيْدُ نو د اختر لمونځ به ځني پاته سي يَتَيَمَّمُ نو دا سړی به (هم) تيمّم کوي لِأَنَّهَا لَا تُعَادُ ځکه چي د اختر د لمانځه قضاء (هم) نه راوړل کېږي وَقَوْلُهُ وَالْوَلِيُّ غَيْرُهُ او د امام قدوري رَحِمَهُ الله په دې قول والولي غيره کي إِشَارَةٌ إِلَى أَنَّهُ لَا يَجُوزُ لِلْوَلِيِّ ودې طرف ته اشاره ده چي د ولي لپاره تيمّم کول جائز نه دي وَهُوَ رِوَايَةُ الْحَسَنِ عَنْ أَبِي حَنِيْفَةَ رَحِمَهُ اللهُ او همدا له امام ابو حنيفه رَحِمَهُ الله څخه د حضرت حسن رَحِمَهُ الله روايت دی هُوَ الصَّحِيْحُ همدا صحيح ده لِأَنَّ لِلْوَلِيِّ حَقَّ الْإِعَادَةِ ځکه چي ولي ته (د جنازې د لمانځه) د راګرځولو حق سته فَلَا فَوَاتَ فِي حَقِّهِ نو د هغه په حق کي پاته کېدل نسته (يعني د هغه په حق کي د جنازې د لمانځه د قضاء کېدلو بېره نسته).

**اللغات:** ﴿تُعَادُ﴾ د افعال له باب څخه د مضارع مجهول صيغه ده، أَعَادَ يُعِيْدُ: را ګرځول. ﴿فَوَات﴾ فوت کېدل، قضاء کېدل.

**تشريح:** د عبارت تر حل مخکي يوه ضابطه په ذهن کي ونيسئ چي عبارت در ته آسانه سي، ضابطه دا ده چي: هر هغه عبادت کوم چي بدل نه لري او تر فوت کېدلو وروسته د هغه قضاء نه راوړل کېږي، نو که د هغه د فوت کېدلو بېره وي نو د اوبو د شتون (وجود) په صورت کي هم د هغه د اداء کولو لپاره د تيمّم اجازه سته، اوس د مسئلې صورت ته ګورئ:

**صورت د مسئلې:** دا دی چي که جنازه بالکل تياره وه او خلک د لمانځه لپاره درېدلي وه، چي په دې حال کي يو سړی را ورسېدی، او دا محسوسه کړه چي که اودس وکړم نو لمونځ به را څخه قضاء سي، نو د ده لپاره تيمّم کول او په لمانځه کي شريک کېدل جائز دي، که څه هم روغ رمټ وي، او پر اوبو قادره وي، او په ښار کي مقيم وي.

صاحب د قدوري رَحِمَهُ الله د صحيح په قيد باندي له مريض څخه احتراز وکړی، ځکه چي د مريض لپاره په هر حال کي تيمّم جائز دی که په ښار کي وي او که په صحراء کي وي، ولي وي او که نه وي، د قضاء کېدلو بېره ور سره وي او که نه وي، او د مصر په قيد باندي يې له صحراء او دښت څخه احتراز وکړی ځکه چي په صحراء کي تيمّم جائز دی، هغه که ولي وي او که بل سړی وي، ځکه چي په صحراء کي په عامه توګه اوبه نه پيدا کېږي (دلته هغه صحراء او دښت مراد دی چي اوبه تر يوه ميل ځني ليري وي).

وقوله والولي الخ فرمايي چي امام قدوري رَحِمَهُ الله د جنازې د لمانځه په باره کي چي کوم د والولي غيره شرط لګولی دی په هغه سره د دې خبري و طرف ته اشاره ده، چي ولي ته د جنازې د لمانځه د لپاره تيمّم کول جائز نه دي، او دغه روايت له امام ابو حنيفه رَحِمَهُ الله څخه حسن بن زياد رَحِمَهُ الله هم را نقل کړی دی، او همدا صحيح دی، ځکه چي ولي ته دا حق سته چي د جنازې د لمانځه قضاء راوړي، نو د ده په حق کي به د فوت کېدلو بېره نه وي، او صاحب د کتاب په الصحيح باندي له ظاهر الرواية څخه احتراز کړی دی ځکه چي په هغه کي دا حکم ذکر دی چي د ولي لپاره هم د لمانځه د فوت کېدلو د بيري په صورت کي تيمّم کول جائز دي، ځکه چي په جنازه کي تأخير (ځنډ) مکروه دی. (عنايه ج۱، ص۱۴۰)

## که امام یا مقتدي د اختر په لمانځه کې بې اودسه سي نو د تیمّم حکم

وَإِنْ أَحْدَثَ الْإِمَامُ أَوِ الْمُقْتَدِي فِي صَلَاةِ الْعِيْدِ او که د اختر په لمانځه کي امام یا مقتدي بې اودسه سو تَيَمَّمَ نو تیمّم دي وکړي وَبَنَى عِنْدَ أَبِي حَنِيْفَةَ* رَحِمَهُ اللهُ او بناء دي وکړي، د امام ابو حنيفه رَحِمَهُ الله په نېز وَقَالَا: لَا يَتَيَمَّمُ او صاحبين فرمايي: چي تیمّم دي نه کوي لِأَنَّ اللَّاحِقَ يُصَلِّي بَعْدَ فَرَاغِ الْإِمَامِ ځکه چي لاحق د امام تر فراغت وروسته لمونځ پوره کولای سي فَلَا يَخَافُ الْفَوْتَ نو د هغه په حق کي د قضاء کېدلو (فوت کېدلو) بېره نسته وَلَهُ: أَنَّ الْخَوْفَ بَاقٍ او د امام صاحب دليل دا دی: چي بېره لا پاته ده لِأَنَّهُ يَوْمُ زَحْمَةٍ ځکه چي دا ورځ د ګڼه ګوڼې (د خلګو د رش) وي فَيَعْتَرِيْهِ عَارِضٌ يُفْسِدُ عَلَيْهِ صَلَاتَهُ نو کېدای سي چي يو داسي عارض ور پېښ سي چي د هغه لمونځ ور فاسد کړي وَالْخِلَافُ فِيْمَا او اختلاف په هغه صورت کي دی إِذَا شَرَعَ بِالْوُضُوْءِ چي لمونځ يې په اودسه شروع کړی وي وَلَوْ شَرَعَ بِالتَّيَمُّمِ او که لمونځ يې په تیمّم شروع کړی وي تَيَمَّمَ نو تیمّم دي وکړي وَبَنَى او پر لمانځه دي بناء وکړي بِالْاِتِّفَاقِ د ټولو په اتفاق سره (يعني دا حکم اتفاقي دی) لِأَنَّا لَوْ أَوْجَبْنَا الْوُضُوْءَ ځکه که موږ (اوس) اودس واجب کړو يَكُوْنُ وَاجِدًا لِلْمَاءِ فِي صَلَاتِهِ نو هغه سړی به په خپل لمانځه کي د اوبو پيدا کونکي سي فَيَفْسُدُ نو لمونځ به يې فاسد سي.

**اللغات:** ﴿أَحْدَثَ﴾ د افعال د باب ماضي صيغه ده: اودس ماتېدل، حدث پېښېدل. ﴿زَحْمَة﴾ د خلګو ګڼه ګوڼه، ازدحام، رش. ﴿يَعْتَرِيْهِ﴾ د افتعال د باب مضارع صيغه ده: پېښېدل، مخ ته راتلل.

**تشريح: صورت د مسئلې:** دا دی چي که د اختر په لمانځه کي امام يا مقتدي بې اودسه سو، حال دا چي ده لمونځ په اودسه شروع کړی وو نو په داسي صورت کي د امام ابو حنيفه رَحِمَهُ الله په نېز د دې سړي لپاره دا حکم دی چي تیمّم دي وکړي او پر خپل لمانځه دي بناء وکړي، او صاحبين فرمايي چي تیمّم دي نه کوي بلکي اودس دي وکړي او پر خپل لمانځه دي بناء وکړي.

**د صاحبينو دليل:** دا دی چي دا سړی لاحق دی او لاحق خپل لمونځ د امام تر فارغ کېدلو وروسته هم پوره کولای سي نو ځکه د ده په حق کي (د تیمّم د جواز علت يعني) د لمانځه د قضاء کېدلو او فوت کېدلو احتمال پاته نه سو، نو ځکه به ده ته د تیمّم اجازه نه وي.

**د امام صاحب دليل:** دا دی چي د لاحق کېدلو سره سره اوس هم د دې سړي په حق کي د فوت کېدلو احتمال پاته دی، ځکه چي د اختر ورځ د ګڼې ګوڼې او رش ورځ ده، نو کېدای سي د لمانځه يو فاسدوونکي عارض مخ ته راسي، د مثال په توګه يو سړی سلام ور واچوي، او دی يې جواب ور کړي، يا يو څوک ده ته مبارکي ورکړي او دی يې قبوله کړي نو د ده لمونځ به فاسد سي، او د اختر د لمانځه قضاء هم نه راګرځي، ځکه چي د اختر لمونځ په جماعت سره شروع سوی دی،

---

● القول الراجح: قول أبي حنيفة رَحِمَهُ الله إن كانت الجبانة(عيدگاه) بعيدة لا يقدر على إدراك الامام بما بقي من الصلوٰة، يعني في هذه الحالة يفتٰى بقوله رَحِمَهُ الله، أي يتيمم ويبني، و إن كانت الجبانة قريبة يقدر على إدراك الامام بعد إتمام الوضوء فيفتٰى بقول الصاحبين رَحِمَهُمَا الله، أي يتوضأ ولا يتيمم، كذا في الهندية ج:۱، ص:۳۱. [القول الراجح ج:۱، ص:۳۳]

لنده دا چې د دې سړي په حق کې د قضاء کېدلو ېره اوس هم سته، نو ځکه د عجز د تحقق په خاطر د ده لپاره د تيمّم اجازه او امکان سته.

والخلاف الخ فرمايي چې د امام صاحب او صاحبينو په مينځ کې دغه اختلاف هغه وخت دی چې کله يې لمونځ په اوداسه شروع کړی وي، او که په تيمّم سره يې شروع کړی وي نو بيا به بالاتفاق تيمم کوي، او خپل لمونځ به پوره کوي، ځکه که موږ په دغه صورت کې پر ده اودس واجب کړو، نو دا سړی به د لمانځه په دوارن کې پر اوبو قادره سي او لمونځ به يې فاسد سي.

**راجح قول:** د پورتنۍ مسئلې د راجح قول په باره کې مفتي غلام قادر نعماني وايي: که عيدګاه ليرې وه، او تر اودس وروسته د پاته لمانځه نيول نامکنه وه، نو په دې صورت کې د امام صاحب رَحِمَهُ الله قول راجح دی، يعني تيمم به کوي او پر لمانځه به بناء کوي، او که عيدګاه نژدې وه، او د پاته لمانځه نيول ممکن وه، نو بيا راجح قول د صاحبينو دی، يعني اودس به کوي او تيمم به نه کوي. [القول الراجح ج:١ ص:٣٣]

## د جمعې لپاره د تيمّم حکم

وَلَا يَتَيَمَّمُ لِلْجُمُعَةِ او د جمعې د لمانځه لپاره به تيمّم نه کوي وَإِنْ خَافَ الْفَوْتَ لَوْ تَوَضَّأَ که څه هم دا ېره يې وي چې که اودس وکړي نو لمونځ به ځنې قضاء سي فَإِنْ أَدْرَكَ الْجُمُعَةَ نو که يې (اودس وکړی او د) جمعې لمونځ ونيوی صَلَّاهَا نو هغه دې وکړي وَإِلَّا صَلَّى الظُّهْرَ أَرْبَعًا کنې د ماپښين څلور رکعته لمونځ دې وکړي لِأَنَّهَا تَفُوتُ إِلَى خَلَفٍ ځکه چې جمعه فوت کېږي د خليفه(نائب) و طرف ته وَهُوَ الظُّهْرُ او خليفه د ماپښين لمونځ دی بِخِلَافِ الْعِيدِ په خلاف د اختر د لمانځه وَكَذَا إِذَا خَافَ فَوْتَ الْوَقْتِ لَوْ تَوَضَّأَ همدارنګه کله چې يې دا ېره وي چې که اودس وکړي نو وخت به تېر سي لَمْ يَتَيَمَّمْ نو (هم) به تيمّم نه کوي وَيَتَوَضَّأُ (بلکې) اودس به کوي وَيَقْضِي مَا فَاتَهُ او د قضاء سوي(فوت سوي) لمانځه قضاء به راوړي لِأَنَّ الْفَوَاتَ إِلَى خَلَفٍ ځکه چې فوت کېدل د خليفه و طرف ته دي وَهُوَ الْقَضَاءُ او هغه قضاء ده(يعني له خليفه څخه مراد قضاء ده).

**اللغات:** ﴿أَدْرَكَ﴾ د افعال د باب ماضي صيغه ده، أَدْرَكَ يُدْرِكُ: نيول، پيدا کول، رسېدل، همدارنګه نوري معناوي هم لري.

**تشريح:** **مسئله:** دا ده که يو سړي ته دا احساس وسو چې که په اوداسه مشغول سم نو د جمعې لمونځ به را څخه قضاء سي نو د هغه لپاره د تيمّم اجازه نسته، بلکې خامخا به اودس کوي، نو اوس که هغه اودس وکړی، او د جمعې لمونځ يې ونيوی خو الحمد لله ډېر ښه وسوه، او که د جمعې لمونځ يې نه ونيوی، نو د ماپښين لمونځ دې اداء کړي، دليل يې دا دی چې جمعه که څه هم قضاء سوه، خو خليفه يې سته چې هغه د ماپښين لمونځ دی، نو ځکه د اوبو د شتون(وجود) په صورت کې فقط د قضاء کېدلو د ېرې په وجه په تيمم سره د جمعې لمونځ اداء کول جائز نه دي.

د دې په خلاف د اختر لمونځ دی، که د اختر د لمانځه د قضاء کېدلو ېره وه نو تيمّم به کوي، ځکه چې د اختر لمونځ لا إلى خلف فوت کېږي (يعني خليفه يې نسته)، همدا وجه ده چې د اختر د لمانځه قضاء نه راوړل کېږي.

وكذا...الخ په دې عبارت کې بله مسئله بيانوي، مسئله دا ده چې که يو چا دا محسوسه کړه چې که په اوداسه مشغول سم نو د لمانځه وخت به ووځي، نو هم دې تيمّم نه کوي بلکې اودس دې وکړي او که لمونځ قضاء سو، نو قضاء دې يې را وګرځوي، ځکه چې د وقتي (وختي) لمونځ فوت کېدل فوت إلى خلف دی، او مخکې تېر سوه چې که د فوت إلى خلف بېره وه نو په تيمّم سره د هغه اداء کول جائز نه دي.

**اعتراض:** ځينې حضراتو دلته په عبارت کې د تکرار اعتراض کړی دی، دوی وايي چې دا حکم د باب په شروع کې هم په دې الفاظو سره بيان سوی دی: والمعتبر المسافة دون خوف الفوت.

**جواب:** دا دی چې د باب په شروع کې د علامه مرغيناني رَحِمَهُ الله قول دی، او دلته د امام قدوري رَحِمَهُ الله قول دی. نو اوس هيڅ تکرار نسته.

## که له مسافر څخه اوبه هيري سي او په تيمم لمونځ وکړي نو څه حکم دی؟

وَالْمُسَافِرُ إِذَا نَسِيَ الْمَاءَ فِي رَحْلِهِ او که له مسافر څخه په خپله کجاوه کې اوبه هيري سي فَتَيَمَّمَ او تيمّم وکړي وَصَلَّى اولمونځ وکړي ثُمَّ ذَكَرَ الْمَاءَ وروسته اوبه په ياد ورسي لَمْ يُعِدْهَا عِنْدَ[●] أَبِي حَنِيفَةَ وَمُحَمَّدٍ رَحِمَهُمَا اللهُ نو د طرفينو په نېز به لمونځ نه راګرځوي وَقَالَ أَبُو يُوسُفَ رَحِمَهُ اللهُ: يُعِيدُهَا او امام ابو يوسف رَحِمَهُ الله فرمايي: چې لمونځ به راګرځوي وَالْخِلَافُ فِيمَا او اختلاف په هغه صورت کې دی إِذَا وَضَعَهُ بِنَفْسِهِ چې اوبه ده په خپله اېښې وي أَوْ وَضَعَهُ غَيْرُهُ بِأَمْرِهِ يا بل چا د ده په حکم اېښې وي وَذِكْرُهُ فِي الْوَقْتِ وَبَعْدَهُ سَوَاءٌ او (د لمانځه) په وخت کې دننه د اوبو يادېدل يا تر وخت وروسته يادېدل (دواړه سره) برابر دي لَهُ: أَنَّهُ وَاجِدٌ لِلْمَاءِ د امام ابو يوسف رَحِمَهُ الله دليل دا دی: چې دا سړی د اوبو پيدا کونکی دی فَصَارَ كَمَا إِذَا كَانَ فِي رَحْلِهِ ثَوْبٌ نو دا (سړی) د هغه سړي په ډول سو چې په کجاوه کې يې کالي (پړاته) وي فَنَسِيَهُ خو هغه له ده څخه هېر سي (او په لڅه لمونځ وکړي) وَلِأَنَّ رَحْلَ الْمُسَافِرِ مَعْدَنٌ لِلْمَاءِ عَادَةً او په دې وجه هم چې د مسافر کجاوه په عامه توګه د اوبو اېښولو ځای وي فَيُفْتَرَضُ الطَّلَبُ نو ځکه به د اوبو طلب کول (لټون کول) (پر ده) فرض وي وَلَهُمَا: أَنَّهُ لَا قُدْرَةَ بِدُونِ الْعِلْمِ او د طرفينو دليل دا دی: چې له علم څخه بغير قدرت نه حاصليږي وَهُوَ الْمُرَادُ بِالْوُجُودِ او (د تيمّم په آيت کې) له وجود څخه مراد (هم) قدرت دی وَمَاءُ الرَّحْلِ مَعْدَنٌ لِلشُّرْبِ او د کجاوې اوبه دڅښلو معدن دی (يعني د څښلو لپاره اېښول کيږي) لَا لِلِاسْتِعْمَالِ نه د استعمال (اودس) لپاره وَمَسْأَلَةُ الثَّوْبِ عَلَى الِاخْتِلَافِ او د کالو (جامو) مسئله هم مختلف فيه ده وَلَوْ كَانَ عَلَى الِاتِّفَاقِ او که متفق عليه ومنل سي فَفَرْضُ السَّتْرِ يَفُوتُ لَا إِلَى خَلَفٍ نو به هم د ستر فرض له خليفه څخه بغير فوت سي وَالطَّهَارَةُ بِالْمَاءِ تَفُوتُ إِلَى خَلَفٍ او طهارت بالماء د خليفه وطرف ته فوتيږي وَهُوَ التَّيَمُّمُ او خليفه تيمّم دی.

---

● القول الراجح: قول الطرفين كذا في الدر المختار ج:١، ص:١٨٣، والخانية على هامش الهندية ج:١، ص:٦٣. [القول الراجح ج:١، ص:٣٢]

**اللغات**: ﴿رَحل﴾ کجاوه، (کټوله)، له لښتو يا نورو څخه جوړه سوې اوږده ټوکرۍ چې پر اوښ يا بل سپرلۍ باندې د کښېښستلو لپاره ايښوول کيږي، او د سفر سامان هم پکښې ايښوول کيږي، ﴿مَعدن﴾ د يو شي د پيدا کېدلو اصلي ځای او سر چشمه، خزانه، بيخ.

**تشريح**: **صورت د مسئلې**: دا دی چې که مسافر په تيمّم سره لمونځ وکړی، حال دا چې د ده په کجاوه کې اوبه وې، نو د دې مسئلې دوه صورتونه دي يا خو به ده ته د اوبو خبر وي، په دې توګه چې ده په خپله اوبه په کجاوه کې ايښې وي او يا بل سړي د ده په حکم سره ايښې وي، يا به ده ته د اوبو خبر نه وي په دې توګه چې بل سړي د ده له حکم څخه بغير ايښې وي، که دويم صورت وو نو په اتفاق سره پر ده د لمانځه راګرځول واجب نه دي، ځکه چې يو انسان د بل انسان د فعل په وجه تر يو حکم نه لاندې کيږي، او که اول صورت وو يعني ده ته د اوبو علم وو، نو په دې صورت کې که ده دا ګومان کړی وو چې زما په کجاوه کې اوبه نسته، او په دغه ګومان کې يې تيمم او لمونځ کړی وو، حال دا چې د ده په کجاوه کې اوبه وې، نو په دې صورت کې بالاجماع تيمّم جائز نه دی، او پر ده د لمانځه راګرځول واجب دي، ځکه چې په دې صورت کې بې پروايي د ده له طرفه راغلې ده، او که د دې سړي په کجاوه کې د اوبو ايښوول هېر وه، او په تيمّم سره يې لمونځ وکړي، تر لمانځه وروسته په ياد ورغله چې په کجاوه کې خو اوبه وې، نو د طرفينو په نېز پر ده د لمانځه راګرځول واجب نه دي، او امام ابو يوسف رَحِمَهُ الله فرمايي چې پر ده يې راګرځول واجب دي، هغه که اوبه په خپل وخت کې په ياد ورغلي وي يا تر وخت وروسته، همدغه قول د امام شافعي رَحِمَهُ الله دی.

**د امام ابو يوسف دليل**: دا دی چې دا مسافر سړی په حقيقت کې د اوبو پيدا کوونکی دی، (ځکه په کجاوه کې خو په حقيقت کې اوبه سته)، او تيمّم مشروع سوی دی د هغه سړي لپاره دی چې د هغه سره اوبه نه وي، حال دا چې د ده سره (په کجاوه کې) اوبه سته، نو ځکه به د ده تيمّم جائز نه وي، او دا مسئله داسې ده لکه په کجاوه کې چې پاکه جامه وي لېکن هغه له ده څخه هېره سي او لمونځ لغړ وکړي، يا يې په ناپاکه جامه کې وکړي، نو د پاکې جامې تر يادېدلو وروسته پر دې سړي د لمانځه راګرځول واجب دي.

**دويم دليل**: دا دی چې د مسافر کجاوه عادةً معدن وي، يعني په عامه توګه په کجاوه کې اوبه ايښوول کيږي، نو ځکه پر ده په کجاوه کې د اوبو لټول واجب وو، نو کله چې يې ده لټون ونه کړی نو معذور به نه شمېرل کيږي، او پر ده به د لمانځه راګرځول واجب وي.

**د طرفينو دليل**: دا دی چې پر اوبو قادره کېدل بغير له علم او خبر څخه نه سي کېدلای او د اوبو له پيدا کولو څخه همدغه مراد دی چې پر اوبو به ده ته قدرت حاصل وي، نو چې کله ده ته اوبه معلومې نه وي، نو د هغو پر استعمال يې قدرت هم نسته، او کله چې يې قدرت نسته، نو د اوبو پيدا کونکی نه سو، او د اوبو د نه پيدا کولو په صورت کې تيمّم جائز او لمونځ صحيح دی.

ومعدن الرحل الخ پاته سوه دا خبره چې د مسافر کجاوه د اوبو معدن او سرچشمه ده، نو د دې جواب دا دی چې په کجاوه کې په عامه توګه د چيښلو اوبه ايښوول کيږي، نه د اوداسه او غسل اوبه.

**جواب**: له ومسئلة الثوب... الخ څخه د امام ابو يوسف رَحِمَهُ الله د قياس جواب ورکوي، د جواب حاصل دا دی چې د جامو په مسئله کې هم اختلاف سته، يعني د طرفينو په نېز چې کله جامې څنې هيرې سوې وي نو لمونځ په لغړه يا په ناپاکه جامو کې کول صحيح دي، او د پاکو جامو د يادېدلو په وخت کې د لمانځه راګرځول واجب نه دي، او که دا ومنو هم چې د جامو په مسئله کې اتفاق دی، بيا هم د اوبو پر مسئله د جامو مسئله قياسول صحيح نه دي، ځکه چې د دې دواړو په

مينځ کي فرق سته، فرق همدغه دی چي د بدن پټول يعني ستر فرض دي، که دا فرض ستر فوت سي نو د هغه هيڅ خليفه او بدل نسته، او که په اوبو سره دطهارت حاصلول فوت سي نو د هغه خليفه او بدل يعني تيمّم سته.

**راجح قول**: په پورتني مسئله کي راجح قول د طرفينو يعني د امام صاحب او امام محمد رَحِمَهُمَا الله دی، لکه څرنګه چي علامه قاضي خان رَحِمَهُ الله په دې اړه ليکلي دي: أو فی رحله ماء ولم يعلم به فتيمّم فصلی جازت الصلاة فی قول أبي حنيفه و محمد رَحِمَهُمَا الله (للخانية علی هامشه الهنديه ج:١، ص:٦٣). [القول الراجح ج:١، ص:٣٤]

## په صحراء(دښت) کي د لمانځه د جائزوالي او د غالب ګومان بيان

وَلَيْسَ عَلَى الْمُتَيَمِّمِ طَلَبُ الْمَاءِ او پر متيمّم (تيمّم وهونکي) باندي د اوبو لټون کول واجب نه دی إِذَا لَمْ يَغْلِبْ عَلَى ظَنِّهِ أَنَّ بِقُرْبِهِ مَاءً تر څو چي د ده دا غالب ګومان نه وي چي ده ته نژدې (يو ځای) اوبه سته لِأَنَّ الْغَالِبَ عَدَمُ الْمَاءِ فِي الْفَلَوَاتِ ځکه چي په دښتونو (او صحراګانو) کي زياتره وخت اوبه نه وي وَلَا دَلِيلَ عَلَى الْوُجُودِ او د اوبو پر شتون (موجود والي) باندي هيڅ دليل (هم) نسته فَلَمْ يَكُنْ وَاجِدًا لِلْمَاءِ نو ځکه به متيمّم د اوبو پيدا کونکي نه وي وَإِنْ غَلَبَ عَلَى ظَنِّهِ أَنَّ هُنَاكَ مَاءً او که د ده غالب ګومان دا وو چي هلته اوبه سته لَمْ يَجُزْ لَهُ أَنْ يَتَيَمَّمَ نو د ده لپاره (تر هغه وخته) تيمّم جائز نه دی حَتَّى يَطْلُبَهُ تر څو چي د هغو لټون ونه کړي لِأَنَّهُ وَاجِدٌ لِلْمَاءِ نَظَرًا إِلَى الدَّلِيلِ ځکه دليل ته په کتني سره دا سړی داوبو پيدا کونکی دی ثُمَّ يَطْلُبُ مِقْدَارَ الْغَلْوَةِ بيا به د يوه غلوة په اندازه د اوبو لټون کوي (يعني يو نيم سل ١٥٠ ګزه به د اوبو طلب کوي، [د اوسني وخت په ګز سره]) وَلَا يَبْلُغُ مِيلًا او تر يوه ميله پوري به نه ځي كَيْ لَا يَنْقَطِعَ عَنْ رُفْقَتِهِ چي له خپل ملګرو (انډيوالانو) څخه جلا نه سي.

**اللغات**: ﴿فَلَوَات﴾ جمع ده، واحد يې فَلَاةٌ دی: بيابان، دښت، بيديا، ځنګل، ناآباده ځای ﴿غَلْوَة﴾ د عبارت په آخر کي به يې تعريف وسي، ﴿رُفْقَتِهِ﴾ جمع ده، واحد يې رَفِيْقٌ دی: دوست، انډيوال، دلته مراد ځني د سفر ملګري دي.

**تشريح**: **صورت د مسئلې**: دا دي چي که يو سړی په دښت او بيابان کي وو، اوبه ور سره نه وې، او د لمانځه وخت راغلی، نو اوس به هغه اودس کوي، که تيمّم، د هغه لپاره شرعًا کوم حکم دی؟ فرمايي چي: دا سي سړی دي د خپل غالب ګومان مطابق فيصله وکړي او پر هغه دي عمل وکړي، که يې غالب ګومان دا وو چي د ده شا وخوا هيڅ ځای اوبه نسته نو د دې سړي لپاره دا حکم دی چي د اوبو په لټون دي شا او خوا نه ګرځي، بلکي تيمّم دي وکړي، ځکه چي په علمه توګه په صحراګانو کي اوبه نه وي، او د اوبو پر شتون باندي يو دليل هم نسته، نو به دا سړی پر اوبو قادره نه شمېرل کيږي او د ده لپاره به تيمّم صحيح وي.

ليکن که غالب ګومان يې دا وو چي دلته به شا وخوا يو ځای اوبه پيدا سي نو پر ده د اوبو لټون کول ضروري دی، او د اوبو تر لټون مخکي د ده لپاره تيمّم جائز نه دی، ځکه چي کله د ده غالب ګومان دا سو چي اوبه پيدا کيږي، نو دا د اوبو د شتون (وجود) دليل سو، نو د دې دليل پر بنياد دا سړی د اوبو پيدا کونکی بلل کيږي، او د اوبو د پيدا کونکي لپاره تيمّم جائز نه دی، نو ځکه به د ده لپاره هم تيمّم جائز نه وي.

بيا د دې سړي لپاره د يوه غلوة تر اندازې پوري لټون کول ضروري دي، او تر يوه ميله پوري به نه ځي، کنې له خپلو ملګرو څخه به ورک سي، او سرګردانه به پاته سي.

## د غلوة اندازه څومره ده؟

د غشي د غورځولو له ځای څخه د غشي د لوېدولو تر ځایه پورې چې کومه فاصله وي، هغه ته غلوة ویل کیږي، په درمختار کې راغلې دي چې غلوة درې سوه لاسه کیږي، عبارت یې دارنګه دی: (قدر غلوة) ثلاث مائة ذراع (رد المحتار: ۱، ص: ۲۳). او یو لاس "نیم" ګز یعني ۱۸ اینچه کیږي، نو په دې حساب سره ۳۰۰ لاسه ۱۵۰ ګزه کیږي، یعني یو غلوة ۱۵۰ ګزه کیږي، او د میټر (متر) په حساب غلوة ۱۳۷,۱۶ میټره کیږي.

## د شرعي او انګریزي میل اندازه

میل پر دوه قسمه دی: ① شرعي ② انګریزي، شرعي میل څلور زره لاسه یعني دوه زره (۲۰۰۰) ګزه کیږي، د کېلو میټر (کېلو متر) په حساب سره ۱,۶ کیلو متره کیږي (یعني یو اعشاریه شپږ کیلو متره کیږي) او (د متر/میټر) په حساب سره) ۶۹. ۱۸۲۸ متره کیږي، او انګریزي میل ۱۷۶۹ ګزه کیږي، نو انګریزي میل تر شرعي میل کوچنی دی، او دلته شرعي میل مراد دی.

## که اوبه خرڅېدلې نو د تیمّم د جواز حکم

وَإِنْ كَانَ مَعَ رَفِيقِهِ مَاءٌ او که د هغه د ملګري سره اوبه وي طَلَبَ مِنْهُ قَبْلَ أَنْ يَتَيَمَّمَ نو تر تیمّم کولو مخکې دې له هغه څخه (اوبه) طلب کړي لِعَدَمِ الْمَنْعِ غَالِبًا ځکه چې په عامه توګه له اوبو (ورکولو) څخه انکار نه کیږي فَإِنْ مَنَعَهُ مِنْهُ لېکن که هغه یې له ورکولو څخه انکار وکړي تَيَمَّمَ نو تیمّم دې وکړي لِتَحَقُّقِ الْعَجْزِ ځکه چې (اوس) عاجزي ثابته سوه وَلَوْ تَيَمَّمَ قَبْلَ الطَّلَبِ او که تر طلب کولو مخکې یې تیمّم وکړی أَجْزَأَهُ عِنْدَ أَبِي حَنِيفَةَ رَحِمَهُ اللهُ نو د امام صاحب رَحِمَهُ الله په نیز جائز دی لِأَنَّهُ لَا يَلْزَمُهُ الطَّلَبُ مِنْ مِلْكِ الْغَيْرِ ځکه چې پر هغه د بل له ملکیت څخه طلب کول (غوښتل) لازم نه دي وَقَالَا: لَا يُجْزِئُهُ او صاحبین فرمایي: چې جائز نه دی لِأَنَّ الْمَاءَ مَبْذُولٌ عَادَةً● ځکه چې په عامه توګه اوبه (بې له قیمته) ورکول کیږي وَلَوْ أَبَى أَنْ يُعْطِيَهُ او که (د سفر ملګري) له اوبو له ورکولو څخه انکار وکړی إِلَّا بِثَمَنِ الْمِثْلِ مګر د ثمنِ مثل (عام نرخ) په عوض وَعِنْدَهُ ثَمَنُهُ او د هغه سره ثمنِ مثل وي لَا يُجْزِئُهُ التَّيَمُّمُ نو (بیا) د هغه لپاره تیمّم کول جائز نه دي لِتَحَقُّقِ الْقُدْرَةِ ځکه چې قدرت ثابت سو وَلَا يَلْزَمُهُ تَحَمُّلُ الْغَبْنِ الْفَاحِشِ لېکن د هغه لپاره د غبنِ فاحش زغمل ضرور نه دي لِأَنَّ الضَّرَرَ مُسْقِطٌ ځکه چې تاوان (ضرر) ساقط سوی دی.

**اللغات:** ﴿أَجْزَأَ﴾ د افعال د باب ماضي صیغه ده: کافي کېدل، پوره کېدل. ﴿مَبْذُولٌ﴾ د نصر د باب اسم مفعول دی، بَذَلَ يَبْذُلُ: په رضا او خوښي ورکول، په خوښي خرڅول. ﴿الْغَبْنِ الْفَاحِشِ﴾ غټ تاوان، ښکاره تاوان.

**تشریح: مسئله:** دا ده که یو سړی په سفر کې وو، او د اودس کولو لپاره د ده سره اوبه نه ولې، خو د ده د ملګري سره ولې، نو اوس د دې سړي لپاره حکم دا دی چې خپل له ملګري څخه دې اوبه وغواړي، که هغه ورکړې نو اودس دې په وکړي،

---

● القول الراجح: هو ظاهر الرواية أي وجوب السؤال من الرفيق، كذا في الدر المختار ج:۱، ص:۱۸۳، و رد المحتار ج:۱، ص:۱۸۳، و فتح القدير ج:۱، ص:۱۳۹. [القول الراجح، ج:۱، ص:۳۶]

که يې نه ورکړي، نو بيا دي تيمّم وکړي، ځکه چي د نه ورکولو په وجه پر اوبو د نه قادره کېدلو عجز په حقيقت کي ثابت سو، نو ځکه اوس د ده لپاره تيمّم کول صحيح او جائز دي، لېکن تر غوښتولو مخکي تيمّم کول مناسب نه دي، ځکه چي په عامه توګه د اوبو له ورکړي څخه انکار نه کيږي.

ولو يتيمم...الخ فرمايي چي د امام صاحب رَحِمَهُ الله په نيز که دا سړی له اوبو غوښتولو څخه بغير تيمّم وکړي او لمونځ وکړي نو هم څه خبره نه ده، ځکه چي اوبه د بل په قبضه کي دي او له بل څخه غوښتنه پر ده لازم نه ده، بيا دا چي په سوال کولو او غوښتولو کي ذلت او سپکاوی هم دی، نو په دې وجه هم غوښتل مناسب نه دي.

صاحبين رَحِمَهُمَا الله فرمايي چي دی به خامخا اوبه ځني غواړي، که بغير له غوښتولو څخه تيمّم او لمونځ وکړي نو دا جائز نه دي، ځکه چي زياتره وختونه موږ ليدلي دي چي خلک د اوبو په ورکولو کي هيڅ ستونزه نه محسوسي او نه يې له ورکولو څخه انکار کوي، نو ځکه د دې سړي لپاره اوبه غوښتل ضروري دي.

ولو أبى...الخ د دې حاصل دا دی چي که د سفر د ملګري سره اوبه ولې خو هغه موتي (بې له پيسو) نه ورکولې، بلکي پيسې يې غوښتې، نو په دې صورت کي حکم دا دی چي که هغه ملګری يې اوبه په ثمنِ مثل (عام ريټ) يا له دې څخه په کم (ريټ) باندي ورکولې، او د دې سړي سره د ثمنِ مثل په اندازه پيسې هم ولې، نو هم د دې سړي لپاره تيمّم جائز نه دی، بلکي د ده لپاره اوبه رانيول او اودس کول ضروري دي، ځکه کله چي د دې سړي سره د اوبو رانيولو لپاره پيسې سته، نو دی اوس هم پر اوبو قادره دی، او د قدرت على الماء په صورت کي تيمّم جائز نه دی، نو ځکه به دلته هم تيمّم جائز نه وي.

لېکن که د ده ملګري له ثمنِ مثل څخه په زيات قيمت اوبه خرڅولې، نو په صورت کي د ده لپاره تيمّم جائز دی، ځکه چي له ثمنِ مثل څخه په زيات قيمت باندي اوبه رانيول ضرر او تاوان دی، حال دا چي د تيمّم مشروعيت د ضرر د مخنيوي لپاره سوی دی.

**راجح قول:** په پورتنی مسئله کي راجح قول ظاهرُ الرواية دی، يعني د سفر له ملګري څخه د اوبو غوښتنه کول واجب دي، قال العلامة اكمل الدين البابرتي رَحِمَهُ الله: و قال في المبسوط و إن كان مع رفيقه ماء فعليه ان يسئله (العنايه ج:١، ص:٢٥).
[القول الراجح ج:١، ص:٣۶]



# بَابُ الْمَسْحِ عَلَى الْخُفَّيْنِ

## (دا) باب پر موزو د مسح کولو (په بیان کې) دی

**تشریح**: تر دې مخکې صاحب د کتاب د تیمّم احکام بیان کړل، اوس د مسح علی الخفین (پر موزو د مسح کولو) احکام بیانوي، په دې مناسبت چې ① په دواړو کې طهارت په مسح کولو سره پوره کیږي، (یعني په تیمم کې پر مخ او لاسو مسح کیږي، او په دې کې پر موزو مسح کیږي) ② یا په دې وجه چې دواړه د غسل (پرېوللو) بدل دي، لکه څرنګه چې مسح علی الخفین د غسل رجلین بدل دی، او تیمّم د اوداسه بدل دی، ③ یا په دې وجه چې تیمّم او مسح علی الخفین دواړه رخصت مؤقته دي، او په دوی سره په عارضي توګه پاکي حاصلیږي. (عنایه ج:۱، ص:۱۴۶، بنایه ج:۱، ص:۱۵۳)

**تیمّم له مسح علی الخفین څخه ولې مخکې کړی سو؟**: پاته سوه دا خبره چې تیمّم له مسح علی الخفین څخه ولې مخکې کړی سو، نو د دې څو وجهې دي:

① صاحب د عنایه رَحِمَهُ الله دا وجه ذکر کړې ده چې مسح علی الخفین صرف د غسل رجلین بدل دی، او تیمّم د ټوله اوداسه بدل دی، نو په کوم یوه کې چې پوره بدلیّت وو هغه یې مخکې بیان کړی، او په کوم یوه کې چې د بعضیت په اعتبار سره بدلیت وو، هغه یې وروسته بیان کړی.

② دویمه وجه دا ده چې تیمّم په کتاب او سنت دواړو سره ثابت دی او مسح صرف په سنّت سره ثابته ده.

③ دریمه وجه دا هم ده چې په تیمّم سره حاصلېدونکی طهارت د مسح علی الخفین په مقابله کې ډېر پراخ (وسیع) او بشپړ دی، په دې معنیٰ چې تیمّم د حدث اکبر او حدث اصغر دواړو لپاره مُطهّر دی، لېکن مسح علی الخفین خو د حدث اکبر لپاره لا څه کوې! د حدث اصغر لپاره هم په بشپړه توګه مُطهّر نه دی، بلکې د حدث اصغر د یو جزء یعني د رجلین (پښو) لپاره صرف مُطهّر دی، نو په دې وجه یې هم د تیمّم بیان مخکې کړی.

**د مسح علی الخفین مشروعیت**: د مسح علی الخفین مشروعیت په مشهوره حدیثونو سره ثابت دی، او د هغو ثبوت دومره قوي دی چې ډېرو صحابه کرامو د هغو روایت کړی دی، لکه څرنګه چې حضرت صدیق اکبر، حضرت عمر فاروق، حضرت علي، حضرت ابن عباس، حضرت ابن مسعود رَضِيَ اللهُ عَنْهُمْ به او نورو ډېرو صحابه کرامو به فقط دا نه چې مسح علی الخفین جائز ګڼله بلکې پر هغه به یې عمل هم کوی.

د مسح د مشروعیت په لړ کې علامه ابو الفضل احمد بن علي عسقلاني رَحِمَهُ الله په الدرایة فی تخریج أحادیث الهدایة کې تقریباً ۲۶ حدیثونه بیان کړي دي، چې له هغو څخه یو څو موږ را نقل کوو:

① عن بلال رضي الله عنه أن النبي صلى الله عليه وسلم توضأ ومسح على الخفين والخمار. (په حواله د مسلم شریف)

② عن عمرو ابن أمية أنه رأى النبي صلى الله عليه وسلم يمسح على الخفين. (بخاري شریف)

③ عن علي رضي الله عنه أن النبي صلى الله عليه وسلم جعل للمقيم يومًا وليلةً وللمسافر ثلاثة أيام ولياليها. (مسلم شریف)

④ عن عائشة رضي الله عنها قالت كان رسول الله صلى الله عليه وسلم يأمرنا أن نمسح على الخفين يومًا وليلةً للمقيم وللمسافر ثلثة. (نسائی، دارقطنی)

دغه او د دې په ټول نور روايتونه د دې خبري ښکاره او بيّن ثبوت دئ چي مسح على الخفين جائزه او ثابته ده، او د مقيم او مسافر لپاره په ترتيب سره تريوې ورځي او شپې او تر درې ورځو او شپو پوري د مسح کولو ګنجايش سته.

صاحب د عنايه رَحِمَهُ الله د حضرت امام اعظم رَحِمَهُ الله دا قول هم را نقل کړی دی چي: ما قلتُ بالمسح حتى جاءني فيه مثل ضوء النهار. **ژباړه:** يعني کله چي ما د مسح على الخفين په باره کي د ورځي د ځلا او رڼا په ډول ځرګنده روايتونه وليدل، نو بيا زه د مسح على الخفين قائل شوم. له حضرت امام اعظم رَحِمَهُ الله څخه دا روايت هم سوی چي يوه سړي له ده څخه د اهل السنة والجماعت د مذهب په باره کي پوښتنه وکړه، نو امام اعظم رَحِمَهُ الله دا جواب ورکړی چي: أَن يُفَضِّلَ الشَّيْخَيْنِ وَ يُحِبَّ الخَتَنَيْنِ وَيَرَى المَسْحَ عَلَى الخُفَّيْنِ. **ژباړه:** کوم چي سړی شيخين يعني حضرت صديق اکبر رضي الله عنه او حضرت عمر فاروق رضي الله عنه له ټولو صحابه وو څخه افضل او غوره وګڼي، او د نبي ﷺ د دواړو زومانو يعني د حضرت عثمان رضي الله عنه او د حضر علي رضي الله عنه سره مينه ولري، همدارنګه مسح على الخفين جائز وګڼي نو هغه له اهل السنة والجماعت څخه دی.

**د مسح لغوي او اصطلاحي معنی:** د مسح لغوي معنیٰ ده: إمرار اليد على شيئ، يعني پر يو شي لاس تېرول.

او د مسح اصطلاحي معنیٰ ده: إصابة اليد العضو، يعني يو اندام په لاس مسه کول (يعني لاس پر تېرول)

نو د مسح على الخفين معنى ده: إِصَابَةُ اليَدِ المُبْتَلَّةِ الخُفَّ المَلْبُوسَ. (پر اغوستل سوو موزو باندي لوند لاس تېرول).

## پر موزو د مسح کولو شرعي حيثيت

| |
|---|
| اَلْمَسْحُ عَلَى الْخُفَّيْنِ جَائِزٌ بِالسُّنَّةِ پر موزو باندي مسح د حديث په روی سره جائز ده وَالْأَخْبَارُ فِيْهِ مُسْتَفِيْضَةٌ او په دې باره کي حديثونه مشهوره دي (يعني په دې باره کي مشهوره حديثونه سته) حَتّٰى قِيْلَ: اِنَّ مَنْ لَمْ يَرَهُ تر دې چي ويل سوي دي: چا چي مسح على الخفين جائز نه وګڼل كَانَ مُبْتَدِعًا (نو) هغه بدعتی دی لٰكِنَّ مَنْ رَآهُ لېکن چا چي جائز وګڼل ثُمَّ لَمْ يَمْسَحْ آخِذًا بِالْعَزِيْمَةِ (او) بيا يې پر عزيمت د عمل کولو په وجه مسح نه وکړه كَانَ مَأْجُوْرًا هغه ته به ثواب (أجر) ورکول کيږي. |

**اللغات:** ﴿مُسْتَفِيْضَةٌ﴾ د استفعال د باب اسم فاعل مؤنث دی. اِسْتَفَاضَ يَسْتَفِيْضُ: نشر کېدل، خورېدل، مشهوره کېدل.

﴿مُبْتَدِعًا﴾ د افتعال د باب اسم فاعل دی. اِبْتَدَعَ يَبْتَدِعُ: بدعتي کېدل.

**تشريح:** امام قدوري رَحِمَهُ الله وايي چي پر موزو د مسح کولو جواز له سنت څخه ثابت دي، او په دې باره کي قولي او فعلي ډېر مشهوره حديثونه سته. نو ځکه شيخ الاسلام خواهر زاده رَحِمَهُ الله تر دې اندازې پوري ويلي دي چي که يو شوک د مسح على الخفين د جواز اعتقاد نه لري او انکار ځني کوي. نو هغه کم بخته بدعتي دی. او له حق دين څخه منحرفه دی. (او صرف شېګان له دې څخه انکار کوي).

لېکن کوم سړی چي مسح على الخفين جائز ګڼي، لېکن مسح نه کوي، پر عزيمت عمل کوي. او د رخصت په ځايونو کي هم پښې پرېولي. نو هغه پر حق دين قائم دی، او د الله له سپېڅلي ذات څخه اُميد دی چي هغه ته به ثواب ورسيږي. ځکه چي د رخصت په مقابله کي په عزيمت باندي عمل کول أفضل او غوره دي.

صاحب د عين الهدايه ليکلي دي چې که يو چا ته د مسح نه کولو په وجه د خارجي يا رافضي شبه (او نسبت) کېږي، نو د هغه لپاره مسح کول أفضله دي.

## د بې اودسه (محدث) لپاره پر موزو مسح کول جائز دي

وَيَجُوزُ مِنْ كُلِّ حَدَثٍ مُوجِبٍ لِلْوُضُوءِ او مسح على الخفين له هر هغه حدث څخه جائز ده چې هغه د اودس واجبونکی وي إِذَا لَبِسَهُمَا عَلَى طَهَارَةٍ كَامِلَةٍ خو په دې شرط چې دواړه (موزې) يې په پوره طهارت اغوستي وي ثُمَّ أَحْدَثَ او بيا بې اودسه سوی وي خَصَّهُ بِحَدَثٍ مُوجِبٍ لِلْوُضُوءِ امام قدوري رَحِمَهُ الله مسح على الخفين (په دې وجه) د داسې حدث سره خاص کړې ده چې هغه د اودس واجبونکي وي لِأَنَّهُ لَا مَسْحَ مِنَ الْجَنَابَةِ ځکه چې له جنابت څخه مسح کول جائز نه دي عَلَى مَا نُبَيِّنُ إِنْ شَاءَ اللهُ تَعَالَى لکه څرنګه چې به موږ (وروسته) د دې بيان انشاء الله وکړو وَبِحَدَثٍ مُتَأَخِّرٍ او (همدارنګه يې په دې وجه) د داسې حدث سره خاص کړې ده چې وروسته واقع سوی وي لِأَنَّ الْخُفَّ عُهِدَ مَانِعًا ځکه چې موزه مانع پېژندل سوې ده وَلَوْ جَوَّزْنَاهُ بِحَدَثٍ سَابِقٍ او که موږ مسح له مخکني حدث څخه جائز وګرځوو كَالْمُسْتَحَاضَةِ إِذَا لَبِسَتْ لکه مستحاضه ښځه چې موزه په پښو کړي ثُمَّ خَرَجَ الْوَقْتُ او بيا وخت ووځي وَالْمُتَيَمِّمِ إِذَا لَبِسَ او متيمّم (تيمّم وهونکي) چې کله موزه په پښو کړي ثُمَّ رَأَى الْمَاءَ او بيا اوبه ووني كَانَ رَافِعًا نو موزه به پوره ته کونکې (د حدث) وي وَقَوْلُهُ إِذَا لَبِسَهُمَا عَلَى طَهَارَةٍ كَامِلَةٍ او د امام قدوري رَحِمَهُ الله دا قول چې: إذا لبسهما على طهارة كاملة (يعني په دې شرط چې دواړه موزې به يې په پوره طهارت په پښو کړې وي) لَا يُفِيدُ اشْتِرَاطَ الْكَمَالِ وَقْتَ اللُّبْسِ نو (دا قول) د موزو د په پښو کولو په وخت کې د کمال طهارت (يعني د پوره پاکوالي) د شرطيت فايده نه ورکوي بَلْ وَقْتَ الْحَدَثِ بلکې د حدث په وخت کې (د کمال طهارت فايده ورکوي) وَهُوَ الْمَذْهَبُ عِنْدَنَا او دا زموږ مذهب هم دی حَتَّى لَوْ غَسَلَ رِجْلَيْهِ تر دې که يو څوک (مخکې) دواړه پښې پرېولي وَلَبِسَ خُفَّيْهِ او دواړې موزې په پښو کړي ثُمَّ أَكْمَلَ الطَّهَارَةَ او بيا پاته اودس پوره کړي ثُمَّ أَحْدَثَ (او) بيا بې اودسه سي يُجْزِئُهُ الْمَسْحُ نو د هغه لپاره پر موزو مسح کول جائز دي وَهَذَا لِأَنَّ الْخُفَّ مَانِعٌ حُلُولَ الْحَدَثِ بِالْقَدَمِ او دا حکم په دې وجه دی چې موزه پښو ته د حدث له ورننوتلو (حلول) څخه مانع ده فَيُرَاعَى كَمَالُ الطَّهَارَةِ وَقْتَ الْمَنْعِ نو د منع په وخت کې به د پوره طهارت (کمال طهارت) خيال ساتل کېږي حَتَّى لَوْ كَانَتْ نَاقِصَةً عِنْدَ ذَلِكَ تر دې که د حدث د حلول په وخت کې طهارت ناقص وو كَانَ الْخُفُّ رَافِعًا نو موزه به پوره ته کونکې (د حدث) وي.

**اللغات**: ﴿لَبِسَ﴾ د سمع د باب ماضي ده: اغوستل، ﴿الْمُسْتَحَاضَة﴾ داسې ښځه چې د متيازو تر لارې يې د حيض له وينو څخه علاوه نورې وينې (هم) راځي، ﴿الحُلُول﴾ د نصر د باب مصدر دی، حَلَّ يَحُلُّ: پراو کول، حل کېدل، ننوتل، شوه کېدل.

**تشریح: صورت د مسئلې:** دا دی چې د بې اوداسه لپاره پر موزو مسح کول جائز دی، هغه که نارینه بې اودسه وي او که ښځه بې اودسه وي، خو په هغه صورت کي چي دواړي موزې په اوداسه په پښو کړي وي، او پر کوم سړي چې غسل واجب وي، د هغه لپاره پر موزو مسح کول جائز نه دي، امام قدوري رَحِمَهُ الله د مسح علی الخفين جواز د دوو خبر سره خاص کړی دی، یوه دا چې مسح علی الخفين له هغه حدث څخه جائز ده چې په هغه سره اودس واجبیږي، یعني حدث اصغر، او دویمه خبره دا ده چې دا حدث به تر اودس کولو او تر موزې په پښو کولو وروسته راغلی وي، ځکه چې موزه خو حدث له سرايت کولو څخه منع کوي، لېکن حدث نه لیري کوي، حدث خو اوبه او داسي نور مُطهِر شیان لیري کوي، او مسح د تطهیر (پاکولو) له صفت څخه خالي ده.

لأن الخف عهد الخ فرمايي چي مسح على الخفين حدث منع كوي او ليري كوي يې نه (يعني مسح على الخفين مانع د حدث ده، رافع د حدث نه ده)، نو كه پر سابق (مخكني) حدث باندي د مسح كولو اجازه وركول سي نو دا مسح به مانع نه سي، بلكي رافع به سي، او په مسح كي خو د منع صلاحيت سته، لېكن د رفع صلاحيت نسته. د مثال په توګه حائضې ښځي موزې په پښو کړې، او وروسته تر دې يې اودس وکړی او بیا وخت ووتی، یا متيمّم موزې په پښو کړې او وروسته تر هغه پر اوبو قادره سو، نو اوس د دې دواړو لپاره د مسح على الخفين اجازه نسته، ځکه چي د مستحاضې په حق کي د وخت په وتولو سره او د متيمّم په حق کي د اوبو په ليدلو سره دا خبره ښکاره سوه چي مخکنی حدث راغلی، او کله چي مخکني حدث راغلی، نو ښکاره ده چي اوس مسح على الخفين هيڅ فايده نه کوي، ځکه چي موږ مخکي هم ذکر کړه چي مسح على الخفين رافع د حدث نه ده، نو اوس به مستحاضه ښځه او متيمم دواړه دوباره پښې پرېولي، او مسح به نه کوي.

او د امام قدوري رَحِمَهُ الله دا قول إذا لبسهما على طهارة كاملة د دې خبري فايده نه ورکوي چي د موزې د په پښو کولو په وخت کي طهارتِ کامله شرط دی، بلکي د دې خبري فایده ورکوي چي د حدث په وخت کي طهارت کامله ضروري دی، او همدغه زموږ مذهب دی، نو که يو سړي مخکي خپلي پښې پرېولې، او موزې يې په پښو کړې. بیا یې پاته اودس پوره کړی، خو تر اودس پوره کولو وروسته يې اودس مات سو، نو د هغه لپاره پر موزو مسح کول جائز دي. ځکه په دې صورت کي د موزو د په پښو کولو په وخت کي که څه هم طهارت کامله نه وو، خو د حدث (بې اودسی) په وخت کي طهارت کامله سته، دليل يې دا دی چي موزه حدث منع کوي له دې څخه چي په پښو کي حلول وکړي. نو ځکه به د منع په وخت کي د طهارت کامله خيال ساتل کيږي، او که په دې وخت کي طهارت کامله نه وو. بلکي ناقصه وو. نو مسح على الخفين به هم جائز نه وي، ځکه که په دې صورت کي مسح جائز سي نو د طهارت کامله د نشتوالي په وجه به موزه رافع د حدث سي، حال دا چي موزه رافع د حدث نه ده، بلکي مانع د حدث ده.

## د مقيم او مسافر لپاره د مسحي موده

**وَيَجُوزُ لِلْمُقِيمِ يَوْمًا وَلَيْلَةً** او د مقيم لپاره يوه ورځ او يوه شپه مسح كول جائز دي **وَلِلْمُسَافِرِ ثَلَاثَةَ أَيَّامٍ وَلَيَالِيهَا** او د مسافر لپاره درې ورځي او درې شپې (مسح كول جائز دي) لِقَوْلِهِ عَلَيْهِ الصَّلَاةُ وَالسَّلَامُ• ځکه نبي ﷺ فرمايلي دي يَمْسَحُ الْمُقِيمُ يَوْمًا وَلَيْلَةً وَالْمُسَافِرُ ثَلَاثَةَ أَيَّامٍ وَلَيَالِيهَا (چي) مقيم به يوه ورځ او يوه شپه او مسافر به درې ورځي او درې شپې مسح کوي.

• تخريج: أخرجه مسلم في كتاب الطهارة، باب التوقيت في المسح على الخفين، حديث رقم: ٦٣٩، و ابو داؤد في كتاب الطهارة، باب التوقيت في المسح حديث رقم: ١٥٧.

**اللغات**: ﴿أيام﴾ جمع د يَوْمٌ ده: ورځ، ﴿لياليها﴾ لَيَالِيْ جمع د لَيْلَةٌ ده: شپه.

**تشريح**: امام قدوري رَحِمَهُ الله د حديث په الفاظو سره د مقيم او مسافر لپاره د مسحي موده بيان کړې ده، چې هغه بالکل ښکاره ده، لېکن په دې ځای کې عربي شارحينو د امام مالک رَحِمَهُ الله له مسلک څخه هم بحث کړی دی چې خلاصه يې دا ده:

**د امام مالک مسلک**: امام مالک رَحِمَهُ الله د مقيم لپاره د نه ضرورت(عدم ضرورت) په وجه د مسح اجازه نه ورکوي، او د مسافر لپاره د حضرت عمار بن ياسر رضي الله عنه د يو حديث په وجه تر غير مؤقت وخت پورې د مسح اجازه ورکوي، د عمار بن ياسر رضي الله عنه حديث دا دی: قال: قلتُ يا رسول الله أأمسح على الخفين يومًا. قال: نعم. فقلت يومين. فقال: نعم. حتى انتهيت إلى سبعة أيام فقال ﷺ: إذا كنت في سفر فامسح ما بدا لك. (حضرت عمار رضي الله عنه فرمايي چې: ما وويل اې د الله رسوله(ﷺ)! آيا زه يوه ورځ پر موزو مسح کوم، نبي ﷺ وفرمايل: هو!، بيا ما وويل دوې ورځې، نبي ﷺ وفرمايل: هو!، تر دې چې(ما ورځې زياتولې) تر اوو(۷) ورځو پورې را ورسېدم، نو نبي ﷺ وفرمايل: کله چې ته په سفر کې يې، نو تر څو چې وغواړې مسح کوه)، له دې حديث څخه معلومه سوه چې د مسافر په حق کې د مسحي لپاره هيڅ موده ټاکل سوې نه ده.

**اول جواب**: موږ خپل له طرفه امام مالک رَحِمَهُ الله ته اول جواب دا ورکوو چې د مقيم او مسافر په باره کې ستا بيان سوی مسلک زموږ په ذکر سوي حديث سره باطل دی، ځکه چې زموږ په حديث کې په ښکاره توګه د مقيم او مسافر دواړو لپاره مسح جائز ګرځول سوې ده، او د هر يوه لپاره جلا موده ټاکل سوې ده.

**دويم جواب**: دا دی چې د دې حديث په باره کې امام بخاري رَحِمَهُ الله فرمايي چې دا حديث مجهول دی، امام احمد بن حنبل رَحِمَهُ الله فرمايي: چې د دې رجال غير معروف يعني مشهور نه دي، د امام ابو داؤد رَحِمَهُ الله تبصره دا ده چې د دې په سند کې اختلاف دی، وقال الدار قطني إسناده لايثبت. وقال يحيى بن معين إسناده مضطرب.(عنايه ج:۱، ص:۱۵۰، بنايه ج:۱، ص:۵۶۶)

لهذا کله چې د دې حديث په باره کې دومره اختلاف دی، نو په دې سره د دليل نيولو څه ضرورت سته. همدارنګه د دې مختلف فيه او شاذ حديث په وجه مشهوره حديثونه نه سي پرېښوول کېدلای.

## مسح به له کوم وخت څخه شروع کيږي؟

قَالَ: وَابْتِدَاؤُهَا عَقِيْبَ الْحَدَثِ فرمايي: چې د مسحي د مودې شروع به تر حدث وروسته وي لِأَنَّ الْخُفَّ مَانِعٌ سِرَايَةَ الْحَدَثِ ځکه چې موزه د حدث له سرايت کولو څخه منع کونکې ده فَتُعْتَبَرُ الْمُدَّةُ مِنْ وَقْتِ الْمَنْعِ نو ځکه به د دې مودې د منع له وخت څخه معتبره وي.

**اللغات**: ﴿عقيب﴾ وروسته. ﴿سراية﴾ د ضرب مصدر دی: ننوتل. داخلېدل.

**تشريح**: د مسحي موده له کوم وخت څخه شروع کيږي. په دې باره کې د علماؤ اختلاف دی:

د عامو علماؤ مذهب دا دی چې د مسحي موده د حدث له وخت څخه شروع کيږي، او د حسن بصري رَحِمَهُ الله په نيز د موزو د په پښو کولو له وخت څخه شروع کيږي. او د امام اوزاعي. ابو ثور او امام احمد رَحِمَهُمُ الله په نيز پر موزو د مسح کولو له وخت څخه د مسحي موده شروع کيږي.

**ثمره د اختلاف:** ثمره د اختلاف په دې مثال کي ښکاره کيږي چي که يوه سړي د سهار (طلوع فجر) په وخت کي اودس وکړی او موزې يې په پښو کړې، بيا يې د لمر راختلو (طلوعِ شمس) په وخت کي اودس مات سو، بيا يې تر زوال وروسته اودس وکړی او پر موزو يې مسح وکړه، نو د عامو علماؤ مذهب دا دی چي د سبا ورځي تر طلوعِ شمس پوري دي مسح کوي، او د حسن بصري مذهب دا دی چي د سبا ورځي تر طلوعِ فجر پوري دي مسح کوي. او د امام اوزاعي او نورو مذهب دا دی چي د سبا ورځي تر زوال وروسته پوري دي مسح کوي.

**دلائل:** د حسن بصري رَحِمَهُ الله دليل دا دی چي د مسحي جواز د موزې اغوستلو په وجه دی. نو ځکه به د مسح ابتداء هم د موزې د اغوستلو له وخت څخه کيږي، د امام اوزاعي رَحِمَهُ الله او نورو دليل دا دی چي د مسحي د مودې مقدار د مسحي په وجه دی، نو ځکه به د مسحي د مودې شروع د مسح کولو له وخت څخه معتبره وي. او د عامو علماؤ دليل دا دی چي موزه د حدث له سرايت کولو څخه منع کونکې ده (يعني حدث نه پرېږدي چي پښو ته سرايت وکړي او ور ننه سي). نو د مودې اعتبار به له هغه وخته څخه کيږي، له کومه وخته چي موزې حدث له سرايت کولو څخه منع کړی دی. او دا وخت له حدث څخه وروسته شروع کيږي ځکه چي تر دې مخکي طهارت وو. نو ځکه به د مسحي د مودې شروع له حدث څخه وروسته معتبره وي.

## د مسحي سُنّت طريقه

وَالْمَسْحُ عَلٰى ظَاهِرِهِمَا او مسح به د دواړو موزو پر ښکاره حصه وي خُطُوْطًا بِالْأَصَابِعِ په داسي حال کي چي په ګوتو سره ليکي (کرښي) جوړي سي يَبْدَأُ مِنْ قِبَلِ الْأَصَابِعِ إِلَى السَّاقِ او (مسح کونکي به) د (پښو) له ګوتو څخه (مسح) شروع کوي د پنډۍ و طرف ته (يعني: مسح کوونکي دي د پښو پر ظاهري حصه ګوتي را کش کړي. او مسح دي د پښو له ګوتو څخه شروع کړي تر پنډۍ پوري) لِحَدِيْثِ مُغِيْرَةَ رَضِيَ اللهُ عَنْهُ د مغيره بن شعبه رضي الله عنه د حديث په وجه أَنَّ النَّبِيَّ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ● وَضَعَ يَدَيْهِ عَلٰى خُفَّيْهِ چي نبي ﷺ خپل دواړه لاسونه په خپلو دواړو موزو باندي کېښېښول وَمَدَّهُمَا مِنَ الْأَصَابِعِ إِلٰى أَعْلَاهُمَا او د ګوتو له سرونو څخه يې و لوړ طرف ته کش کړل مَسْحَةً وَاحِدَةً او (دغه ټول يې) يو وار مسح وکړه وَكَأَنِّيْ أَنْظُرُ إِلٰى أَثَرِ الْمَسْحِ عَلٰى خُفِّ رَسُوْلِ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ او ګواکي زه د مسحي اثر د نبي ﷺ پر موزو باندي (اوس هم) وينم خُطُوْطًا بِالْأَصَابِعِ په داسي حال کي چي پر هغو د ګوتو کرښي جوړي سوي دي ثُمَّ الْمَسْحُ عَلَى الظَّاهِرِ حَتْمٌ (او) بيا پر ښکاره د موزو باندي مسح کول ضروري دي حَتّٰى لَا يَجُوْزُ عَلٰى بَاطِنِ الْخُفِّ وَعَقِبِهِ وَسَاقِهِ تر دې چي د موزو پر باطن او پر پونده او پر پنډۍ باندي مسح کول جائز نه دي لِأَنَّهُ مَعْدُوْلٌ بِهِ عَنِ الْقِيَاسِ ځکه چي دا (طريقه) له قياس څخه خلاف ده فَيُرَاعٰى فِيْهِ جَمِيْعُ مَا وَرَدَ بِهِ الشَّرْعُ نو په مسح کي چي د کومو طريقو په باره کي شريعت وارد سوی وي د هغو ټولو خيال به ساتل کيږي وَالْبِدَايَةُ مِنَ الْأَصَابِعِ اسْتِحْبَابٌ اعْتِبَارًا بِالْأَصْلِ او پر اصل باندي د قياسولو په وجه د ګوتو (له سرونو) څخه شروع کول مستحب دي. وَهُوَ الْغَسْلُ او دا أصل نو غسل (يعني

● تخريج: أخرجه البيهقي في السنن الكبرى في كتاب الطهارات، باب الإختصار بالمسح على ظاهر الخفين، حديث رقم:١٣٨٥. وابن ماجه في السنن بمعناه، حديث رقم:٥٥١.

پربولل) دي وَفَرْضُ ذٰلِكَ مِقْدَارُ ثَلَاثِ أَصَابِعَ مِنْ أَصَابِعِ الْيَدِ او د مسحې فرض اندازه د لاس له ګوتو څخه د درې ګوتو اندازه ده وَقَالَ الْكَرْخِيُّ رَحِمَهُ اللهُ تَعَالَى: مِنْ أَصَابِعِ الرِّجْلِ او امام کرخي رحمه الله فرمايي: چې د پښو له ګوتو څخه (د درې ګوتو اندازه ده) وَالْأَوَّلُ أَصَحُّ اِعْتِبَارًا لِآلَةِ الْمَسْحِ او لومړی قول ډېر صحيح دی د مسح د آلې د اعتبار کولو په وجه.

**اللغات:** ﴿الخطوط﴾ جمع ده، واحد يې خطٌ دی: کرښه، ليکه، او دلته د خطوطا معنی ده: د کرښې په ډول راکښول. ﴿ساق﴾ پنډۍ، ﴿أصابع﴾ جمع ده، واحد يې إصبعٌ دی: ګوته، ﴿عقل﴾ ضروري، لازمي، ﴿عقب﴾ پونده، شاتنی حصه، ﴿رجل﴾ پښه.

**تشريح:** په دې عبارت کې د مسحې ځای او د مسحې طريقه دواړه بيان سوي دي، نو د مسحې د ځای په باره کې فرمايي چې مسح به د موزو پر ښکاره برخه وي، همدغه ځای شرعاً معتبر دی.

**د مسحې طريقه:** د مسحې طريقه دا ده چې د لاس ګوتې دې د پښو د ګوتو پر سرونو کښېږدي، او لوړ يعني د پنډۍ و طرف ته دې ګوتې را کش کړي، او په داسې توګه دې يې راکش کړي چې پر موزو باندې د ګوتو کرښې (نښانونه) جوړې سي، د مسح على الخفين همدغه طريقه سنت ده، او د حضرت مغيره بن شعبه رضي الله عنه په حديث کې (کوم چې په کتاب کې ذکر سو) همدغه طريقه بيان سوې ده، لکه څرنګه چې د حضرت مغيره رضي الله عنه د سترګو ليدلی بيان دا دی چې ما نبي ﷺ وليدی چې پر خپلو موزو يې لاسونه کښېښول او د ګوتو د سرونو له طرف څخه يې لوړ کش کړل، او ما دا وليدله چې د دوی ﷺ پر موزو باندې د کرښو په ډول نښې جوړې سوې.

ثم المسح الخ فرمايي چې د موزو پر ښکاره باندې مسح کول واجب او ضروري دي، او دغه مسح شرعاً معتبره هم ده. همدغه وجه ده که يو سړی د موزو پر لاندې حصه (تلي) باندې مسح وکړي، يا د موزو پر پونده يا پنډۍ باندې مسح وکړي نو د هغه دا مسح جائز نه ده، ځکه د موزو د مسحې چې کومه طريقه را نقل سوې ده، هغه له قياس څخه خلاف ده. ځکه د قياس تقاضا خو دا وه چې انسان د موزو پر لاندې حصه (يعني پر تلي) باندې مسح کولای، ځکه چې د موزو پر لاندې حصه باندې ګرد، خيرې اوداسې نور مبتلي، نو په دې حواله سره خو عقلاً او قياساً د لاندې حصې مسح کول پکار وو، لکه څرنګه چې د حضرت علي رضي الله عنه فرمان هم د دې تائيد کوي چې: لو كان الدين بالرأي لكان باطن الخف أولى بالمسح من ظاهره، ولكني رأيت رسول الله ﷺ يمسح على ظاهر الخفين دون باطنهما. (که دين په عقل او رايه باندې موقوف وای نو د موزې پر تلي (لاندې حصه) به مسح کول اولیٰ او غوره وای په نسبت د موزې و ښکاره ته، لېکن ما رسول الله ﷺ د موزو پر ښکاره باندې مسح کونکی ليدلی دی نه پر تلي).

نو له دې څخه هم معلومه سوه چې د موزې پر ښکاره مسح کول له قياس څخه خلاف دي، لنډه دا چې کله د موزو پر ښکاره باندې مسح کول له قياس څخه خلاف د شريعت له طرفه دي، نو د کوم حکم او طريقې مطابق چې شريعت راغلی دی د هغه به پوره خيال ساتل کيږي، او څرنګه چې شريعت د موزې پر ښکاره باندې د مسحې طريقه بيان کړې ده، نو ځکه به د موزې پر ښکاره باندې مسح کول جائز او معتبر وي.

والبداية الخ فرمايي چې څرنګه په أصل يعني په غسل او پرېولولو کې د ګوتو له سرونو څخه شروع کيږي، نو په فرع يعني په مسح کولو کې به هم د ګوتو له سرونو څخه شروع کول مستحب وي، د دې لپاره چې په أصل او بدل کې د عملي طريقې په حواله سره هم برابري او مساوات راسي.

**په مسح کې معتبر مقدار:** فرمايي چې په مسح کې د لاس د دريو ګوتو په اندازه کښول فرض دي، يعني فرض دا دي چې د لاس د دريو ګوتو په اندازه مسح وکړي، همدغه د عامو فقهاؤ رايه ده، لېکن د امام کرخي رَحِمَهُ الله مسلک دا دی چې په دې باره کې د پښې ګوتې معتبرې دي، ځکه چې مسح هم پر پښو کيږي.

صاحب د هدايې وايي چې د امام کرخي رَحِمَهُ الله په مقابله کې د عامو فقهاؤ قول زيات صحيح دی، ځکه چې مسح په لاس سره کيږي، او د مسحې آله لاس دی، نو د فرض اندازې په باره کې به هم د لاس د ګوتو اعتبار کيږي.

## د موزې د څيرې والې په صورت کې د مسحې حکم

وَلَا يَجُوزُ الْمَسْحُ عَلَى خُفٍّ فِيهِ خَرْقٌ كَثِيرٌ او پر داسې موزې مسح کول جائز نه دي چې په هغې کې زيات څيرې والی (چاک) وي يَتَبَيَّنُ مِنْهُ قَدْرُ ثَلَاثِ أَصَابِعَ مِنْ أَصَابِعِ الرِّجْلِ (او) چې له هغه چاک څخه د پښو په ګوتو کې د درې ګوتو په اندازه (حصه) ښکاره کيږي فَإِنْ كَانَ أَقَلَّ مِنْ ذَلِكَ او که له دې څخه کم (څيرې والی) وو جَازَ نو مسح کول جائز دي وَقَالَ زُفَرُ وَالشَّافِعِيُّ رَحِمَهُمَا اللهُ: لَا يَجُوزُ وَإِنْ قَلَّ امام زفر او امام شافعي فرمايي: چې مسح جائز نه ده که څه هم کم وي لِأَنَّهُ لَمَّا وَجَبَ غَسْلُ الْبَادِي ځکه هر کله چې د ظاهر پرېوللو واجب سو يَجِبُ غَسْلُ الْبَاقِي نو د پاته پرېوول به هم واجب وي وَلَنَا: أَنَّ الْخِفَافَ لَا تَخْلُو عَنْ قَلِيلِ خَرْقٍ عَادَةً او زموږ دليل دا دی: چې موزې په عامه توګه له معمولي غوندې څيرو والي څخه خالي نه وي فَيَلْحَقُهُمُ الْحَرَجُ فِي النَّزْعِ نو به خلګو ته په (وار ولر) کښلو کې تکليف وي وَتَخْلُو عَنِ الْكَثِيرِ خو له زيات څيرې والي څخه خالي وي فَلَا حَرَجَ نو په دې کې څه تکليف نسته وَالْكَثِيرُ: أَنْ يَنْكَشِفَ قَدْرُ ثَلَاثَةِ أَصَابِعِ الرِّجْلِ أَصْغَرُهَا او د زيات مقدار اندازه دا ده: چې د پښې په کوچنيو ګوتو کې د دريو ګوتو په اندازه ښکاره سي هُوَ الصَّحِيحُ همدا صحيح ده لِأَنَّ الْأَصْلَ فِي الْقَدَمِ هُوَ الْأَصَابِعُ ځکه چې د پښو په باره کې ګوتې أصل دي وَالثَّلَاثُ أَكْثَرُهَا او د درو (۳) شمېر د ګوتو زياتره حصه ده فَيُقَامُ مَقَامَ الْكُلِّ نو ځکه به (درې) د کُل قائم مقام وي وَاعْتِبَارُ الْأَصْغَرِ لِلِاحْتِيَاطِ او د کوچنيو ګوتو اعتبار د احتياط په وجه دی وَلَا مُعْتَبَرَ بِدُخُولِ الْأَنَامِلِ او د ګوتو د سرونو د داخلېدلو هيڅ اعتبار نسته إِذَا كَانَ لَا يَنْفَرِجُ عِنْدَ الْمَشْيِ خو په دې شرط چې د تګ په وخت کې نه ښکاره کيږي وَيُعْتَبَرُ هَذَا الْمِقْدَارُ فِي كُلِّ خُفٍّ عَلَى حِدَةٍ او د دې مقدار اعتبار به په هره موزه کې جلا جلا کيږي فَيُجْمَعُ الْخَرْقُ فِي خُفٍّ وَاحِدٍ نو (ځکه به) د يوې موزې څيرې والی جمع کيږي وَلَا يُجْمَعُ فِي خُفَّيْنِ او د دواړو موزو څيرې والی به نه جمع کيږي لِأَنَّ الْخَرْقَ فِي أَحَدِهِمَا لَا يَمْنَعُ قَطْعَ السَّفَرِ بِالْآخَرِ ځکه چې د يوې موزې څيرو والی په بله موزه کې له سفر کولو څخه مانع نه دی بِخِلَافِ النَّجَاسَةِ الْمُتَفَرِّقَةِ په خلاف د متفرق (جلا جلا) نجاست لِأَنَّهُ حَامِلٌ لِلْكُلِّ ځکه چې دا سړی (پر کوم چې جلا جلا نجاست لګېدلی دی) د ټوله نجاست پورته کونکی دی وَانْكِشَافُ الْعَوْرَةِ نَظِيرُ النَّجَاسَةِ او د عورت ښکاره کېدل د نجاست په شان دي (يعني څومره ځايونه چې عورت ښکاره وي هغه به هم ټوله سره يو ځای کيږي، او بيا به د هغه په باره کې حکم کيږي لکه په نجاست کې).

**اللغات**: ﴿بَادِئٍ﴾ د نصر د باب اسم فاعل دی، بَدا يَبْدُو: ښکاره کېدل. ﴿خِفَاف﴾ جمع ده، واحد يې خُفٌّ دی: موزه، ﴿أَنَامِل﴾ جمع ده، واحد يې أُنْمِلَةٌ، بتثليث الهمزة والميم: د ګوتې سر، د ګوتې بند.

**تشريح**: که موزه څیرې سوه او چاک پکښې پیدا سو، نو پر دې مسح جائز ده، که نه؟. په دې باره کې څلور مذهبونه دي: (۱) زموږ په نېز د چاک په لږ او ډېره اندازه (قلیل او کثیر) کې فرق سته، یعني که موزه لږ څیرې سوې وه نو پر دې مسح کول جائز دي او که ډېره څیرې سوې وه نو پر دې مسح کول جائز نه دي. (۲) د امام شافعي رَحِمَهُ الله او د امام زفر رَحِمَهُ الله په نېز قلیل او کثیر دواړه بسره برابر دي. یعني که موزه لږ څیرې سوې وه یا ډېره په دواړو صورتو کې مسح کول جائز نه دي.

**د امام شافعي او امام زفر دليل**: دا دی چې د موزې اغوستلو په وجه د پښو وظیفه له غَسل (پرېوللو) څخه د مسحې و طرف ته نقل سوې ده، لېکن په موزه کې به د چاک (څیرې والي) په وجه غَسل او مسح دواړه جمع سي، ځکه کومه حصه چې ښکاره وي، هلته به غَسل وي او کومه حصه چې په موزه کې دننه وي پر هغه به مسح وي، او غَسل او مسح دواړه سره جمع کول جائز نه دي، نو ځکه په دې صورت کې مسح جائز نه ده.

(۳) سفیان ثوري رَحِمَهُ الله فرمایي چې په دواړو صورتونو کې مسح جائز ده.

(۴) امام اوزاعي رَحِمَهُ الله فرمایي چې له چاک او سوري څخه چې د پښې کومه حصه ښکاره کېږي هغه دي پرېولي، او کومه حصه چې نه ښکاره کېږي پر هغه دي مسح وکړي.

**د امام اوزاعي دليل**: دا دی چې د امام اوزاعي په نېز په یوه اندام کې د غَسل او مسح دواړو جمع کول جائز دي، نو ځکه هغه وویل چې کومه حصه ښکاره وي د هغه پرېولل واجب دي او چې کومه حصه ښکاره نه وي پر هغه مسح کول واجب دي.

**د سفيان ثوري دليل**: دا دی چې موزه په قدم (پښه) کې حدث له سرایت کولو څخه منع کوي. نو تر څو چې پر دې د موزې اطلاق صحیح وي، تر هغه وخته پر دې مسح کول جائز دي، بیا برابره خبره ده په دې کې چاک لږ وي، که ډېر.

صاحب د عنایه فرمایي چې د دې دواړو حضراتو یعني د امام شافعي او امام زفر رَحِمَهُمَا الله دلیل قیاس دی. یعني کله چې خرق کثیر مانع د مسحې دی، نو خرق قلیل به هم مانع د مسح وي، لکه څرنګه چې حدث مطلقاً ناقض د مسحې دی، هغه که قلیل وي او که کثیر.

**زموږ دليل**: دا دی چې په عامه توګه موزې له معمولي غوندي چاک او څیرې والي څخه خالي نه وي. نو که د معمولي غوندي چاک په وجه د موزې د کښولو حکم وسي، نو خلک به په تکلیف کې مبتلا سي. نو په دې وجه به په موزه کې معمولي غوندي څیرې والی او چاک معاف وي، او څرنګه چې له خرق کثیر (غټ چاک) څخه موزې عموماً خالي وي. نو د خرق کثیر په صورت کې د موزې په کښلو کې هیڅ تکلیف نسته، نو ځکه به هغه معاف نه وي.

## د خرق قليل او كثير اندازه

د خرق قلیل او کثیر په باره کې صاحب د هدایه فرمایي چې: که د پښو د کوچنې دریو ګوتو په اندازه پښې ښکاره کېدلې یا له دې څخه زیاتې ښکاره کېدلې نو دا خرق کثیر دی. او که له دې څخه په کمه اندازه ښکاره کېدلې نو دا خرق قلیل دی، او همدغه قول زیات صحیح دی؛ حسن بن زیاد رَحِمَهُ الله له امام ابو حنیفه رَحِمَهُ الله روایت کوي فرمایي چې د لاس ګوتې معتبرې دي، او شمس الائمه حلواني رَحِمَهُ الله وایي چې که چاک د پښو د غټو ګوتو پر برابر وو. (یعني د پښو

د غټو ګوتو پر طرف موزه څيري سوې وه) نو غټې ګوتې به معتبرې وي، او که د کوچنيو ګوتو پر برابر وو. نو کوچنی ګوتې به معتبرې وي.

**دليل:** د زيات صحيح قول دليل دا دی چې په قدم کې أصل ګوتې دي، همدا وجه ده که يو څا د بل سړي د پښو ګوتې پرېکړې نو پر هغه به د پښو پوره ديت واجب وي، مطلب دا چې په پښو کې ګوتې أصل دي. او درې ګوتې د پنځو ګوتو اکثر دي، او د شی اکثر په منزله د کُل وي، نو ځکه درې ګوتې به د کل قائم مقام وي. نو ګواکې د درو ګوتو په ښکاره کېدلو سره ټوله پښه ښکاره سوه، نو ځکه به په دې صورت کې د پښې پرېولل واجب وي. او د کوچنيو ګوتو اعتبار په احتياط باندې مبني دی.

او که په موزه کې داسې چاک وو چې درې ګوتې په ننوتلې، خو د تګ په وخت کې له هغه څخه پښه نه ښکاره کېدل. نو د دې اعتبار نه کيږي، يعني پر داسې موزې باندې مسح کول جائز دي.

ويعتبر الخ مصنف د هدايې فرمايي چې مقدار به په هره موزه کې جلا جلا معتبر وي، نو که په يوه موزه کې يو څو چاکونه ول، هغه به جمع کيږي، نو که ټوله سر يوځای سول او د دريو ګوتو اندازې ته ورسېدل. نو پر دې به مسح کول جائز نه وي، او که په دواړو موزو کې کوچني کوچني چاکونه ول. نو هغه به نه جمع کيږي. يعني که د دواړو موزو چاکونه سره يو ځای سول او دغه مقدار ته ورسېدل نو هم به مسح کول پر جائز وي، ځکه چې د يوې موزې چاک او څيروالی په بله موزه کې له سفر کولو څخه مانع نه دی.

بخلاف النجاسة المتفرقة الخ د دې په خلاف متفرق نجاست دی. يعني که د يو سړي پر دواړو موزو لږ لږ نجاست لګېدلی وو، په داسې حال کې چې په دواړو کې د هري يوې نجاست له يوه درهم څخه کم وو، خو د دواړو په يوځای کولو سره له يوه درهم څخه زياتېدی، نو په دې صورت کې لمونځ جائز نه دی. ځکه چې دې سړي ټوله نجاست را اخيستی دی. او کوم سړي چې له يوه درهم څخه زيات نجاست را اخيستی وي هغه که جلا جلا وي او که يو ځای وي. نو پر هغه طهارت واجب دی، بغير له طهارت څخه يې لمونځ نه صحيح کيږي.

وانکشاف العورة الخ فرمايي چې د عورت ښکاره کېدل هم د نجاست په ډول دی. يعني څرنګه چې پر دوو موزو يا د بدن پر جلا جلا حصو باندې لګېدلی متفرق نجاست سره جمع کيږي. همدغه رنګه که د يوې ښځې له شرمګاه (شرم ځای) څخه لږ حصه ښکاره وي، لږ حصه يې له پنډۍ څخه ښکاره وي. لږ حصه يې له نس څخه ښکاره وي. لږ حصه يې له ورېښتيانو څخه ښکاره وي. نو دا ټوله به سره يوځای کيږي. تر يو ځای کولو وروسته که دا ټوله د اندام د څلورمې حصې سره برابر سوه، نو بيا به د دې ښځې لمونځ جائز نه وي.

## د جنب لپاره مسح جائز نه ده

**وَلَا يَجُوْزُ الْمَسْحُ لِمَنْ وَجَبَ عَلَيْهِ الْغُسْلُ** او د هغه سړي لپاره مسح (علی الخفين) جائز نه ده چې پر هغه غسل واجب وي **لِحَدِيْثِ صَفْوَانَ بْنِ عَسَّالٍ رَضِيَ اللّٰهُ عَنْهُ** د صفوان بن عسال ﷛ د حديث په وجه **أَنَّهُ قَالَ: كَانَ رَسُوْلُ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ** ● **يَأْمُرُنَا إِذَا كُنَّا سَفْرًا أَنْ لَا نَنْزِعَ خِفَافَنَا ثَلَاثَةَ أَيَّامٍ وَلَيَالِيَهُنَّ** چې عسال ﷛ وفرمايل: کله چې به موږ په سفر

---

● تخريج: أخرجه الترمذي في كتاب الطهارة، باب المسح على الخفين للمسافر والمقيم، حديث رقم: ۹۲. والنسائي في كتاب الطهارة، باب مسح على الخفين في السفر، حديث رقم: ۱۲۵.

کې وو، نو نبي ﷺ به موږ ته دا حکم کوی چې موږ به تر دریو ورځو او دریو شپو پورې خپلې موزې نه کاږو إِلَّا عَنْ جَنَابَةٍ مگر له جنابت څخه (به یې کاږو) وَلَكِنْ مِنْ بَوْلٍ أَوْ غَائِطٍ أَوْ نَوْمٍ خو له متیازو یا له غایطه موادو یا له خوب څخه (به یې نه کاږو) وِلِأَنَّ الْجَنَابَةَ لَا تَتَكَرَّرُ عَادَةً (او په دې وجه هم) چې جنابت عموماً نه مکرر کیږي فَلَا حَرَجَ فِي النَّزْعِ نو په کښلو کې څه حرج نسته بِخِلَافِ الْحَدَثِ لِأَنَّهُ يَتَكَرَّرُ په خلاف د حدث څکه چې هغه مکرر کیږي.

**اللغات:** ﴿غائط﴾ پرده، مجازاً غایطه موادو (یعني د انسان فضلې) ته ویل کیږي، ﴿نزع﴾ د فتح د باب مصدر دی: راکښل، رااېستل، همدا راز نورې معناګانې هم لري.

**تشریح: مسئله:** دا ده چې پر کوم سړي غسل واجب وي د هغه لپاره پر موزو مسح کول جائز نه دي، د مثال په توګه یو سړي اودس وکړی موزې یې په پښو کړې، بیا جنب سو، او بیا یې دومره اوبه ور سره وې، چې د اوداسه لپاره خو کافي وې، لیکن د غسل لپاره کافي نه وې، نو دا سړی دې د جنابت لپاره تیمم وکړي او په هغه اوبو سره دې اودس وکړي، او پښې دې پرېولي، مسح کول جائز نه دي.

**دلیل:** د حضرت صفوان بن عسال ﷺ حدیث دی، چې په هغه کې ذکر سوي دي چې د جنابت په حالت کې دواړې موزې کښل او پښې پرېولل ضروري دي، لیکن که د متیازو یا غایطه موادو یا خوب په وجه اودس مات سو، نو د موزې د کښلو هیڅ ضرورت نسته.

**دویم دلیل:** دا دی چې جنابت عموماً مکرر او پر لپسې نه وي، او حدث اصغر مکرر وي، نو د جنابت په صورت کې حرج او تکلیف نسته، او د حدث اصغر په صورت کې د هر وار موزې په کښولو سره تکلیف او حرج سته، او دا خبره منل سوې ده چې مسح علی الخفین د تکلیف او حرج لیرې کولو لپاره مشروع سوې ده، نو چیري چې د موزې په کښولو کې تکلیف وي، هلته مسح علی الخفین جائز ده، او چیري چې تکلیف نه وي، هلته د موزو کښل او د پښو پرېولل فرض دي، مسح جائز نه ده.

## د مسحې نواقض (یعني هغه شیان چې مسح په ماتیږي)

وَيَنْقُضُ الْمَسْحَ كُلُّ شَيْءٍ يَنْقُضُ الْوُضُوءَ او مسح هر هغه شی ماتوي کوم چې اودس ماتوي لِأَنَّهُ بَعْضُ الْوُضُوءِ څکه چې مسح علی الخف د اوداسه جزء دی وَيَنْقُضُهُ أَيْضًا نَزْعُ الْخُفِّ همدارنګه د موزې کښل هم مسح ماتوي لِسِرَايَةِ الْحَدَثِ إِلَى الْقَدَمِ پښې ته د حدث د سرایت په وجه حَيْثُ زَالَ الْمَانِعُ څکه چې مانع زائل سو وَكَذَا نَزْعُ أَحَدِهِمَا همدارنګه په دې دواړو کې د یوې کښل (هم مسح ماتوي) لِتَعَذُّرِ الْجَمْعِ بَيْنَ الْغَسْلِ وَالْمَسْحِ فِي وَظِيفَةٍ وَاحِدَةٍ څکه چې په یوه وظیفه کې غسل او مسح جمع کول ستونزمن دي وَكَذَا مُضِيُّ الْمُدَّةِ او دغه رنګ د مسحې د مودې تېرېدل (هم مسح ماتوي) لِمَا رَوَيْنَا د هغه حدیث په وجه کوم چې موږ روایت کړی دی وَإِذَا تَمَّتِ الْمُدَّةُ نَزَعَ خُفَّيْهِ او کله چې موده پوره سوه نو دواړې موزې به وکاږي وَغَسَلَ رِجْلَيْهِ او دواړې پښې به پرېولي وَصَلَّى او لمونځ به وکړي وَلَيْسَ عَلَيْهِ إِعَادَةُ بَقِيَّةِ الْوُضُوءِ او پر هغه د پاته اودس راګرځول ضروري نه دي وَكَذَا إِذَا نَزَعَ قَبْلَ الْمُدَّةِ او همدارنګه چې کله موزې د مودې تر پوره کېدلو مخکې وکاږي (نو به هم دواړې پښې پرېولي...) لِأَنَّ عِنْدَ النَّزْعِ يَسْرِي الْحَدَثُ السَّابِقُ إِلَى الْقَدَمَيْنِ

ځکه چې (د موزو د کنبولو) په وخت کې مخکنی حدث دواړو پښو ته سرایت کوي كَأَنَّهُ لَمْ يَغْسِلْهُمَا (او داسې کیږي) ګواکې چې ده پښې پرېولې هم نه دي وَحُكْمُ النَّزْعِ يَثْبُتُ بِخُرُوجِ الْقَدَمِ إِلَى السَّاقِ او د موزې د کنبولو حکم ثابتیږي د موزې تر پنډۍ پورې د پښې په راوتولو سره لِأَنَّهُ لَا مُعْتَبَرَ بِهِ فِي حَقِّ الْمَسْحِ ځکه چې د مسحې په حق کې د موزې د پنډۍ هيڅ اعتبار نسته وَكَذَا بِأَكْثَرِ الْقَدَمِ همدارنګه د اکثري پښې په وتولو باندې هم(د نزع حکم ثابتیږي) هُوَ الصَّحِيحُ همدغه قول صحيح دی.

**اللغات:** ﴿يَغْسِلْ﴾ د نصر د باب مضارع صیغه ده: ماتول، د ناقض معنیٰ ده: ماتوونکی، ﴿تَعَذَّرَ﴾ د تفعّل د باب مصدر دی: مشکل کېدل، سختېدل، ﴿مُضِيّ﴾ د ضرب د باب مصدر دی: تېرېدل، جاري کېدل.

**تشريح:** له دې ځایه د مسحې نواقض بیانیږي، او په دې باره کې تر ټولو مخکې امام قدوري رَحِمَهُ الله فرمايي چې هر هغه شی کوم چې اودس ماتوي هغه مسح هم ماتوي، لکه متيازې(شاشې)، غايطه مواد خوب او داسې نور. دا شيان د اودسه لپاره ناقض دي، نو د مسحې لپاره هم ناقض دي، ځکه چې مسح د اودسه يو جزء دی. نو کوم شی چې د کُل او أصل لپاره ناقض(ماتوونکی) وي، هغه به د بعض او بدل لپاره په طريقهٔ اولیٰ سره ناقض وي.

فرمايي چې که يو څوک موزې وکاږي نو هم يې مسح ماتيږي، ځکه چې موزې حدث منع کوي له دې څخه چې پښو ته سرايت وکړي، همدارنګه که يو چا له دواړو موزو څخه يوه موزه وکښل، نو هم يې مسح ماتيږي، ځکه چې د موزو د په پښو کولو په صورت کې د پښو وظيفه له غَسل (پرېولو) څخه د مسحې و طرف ته منتقله سوه. خو د يوې موزې د کښلو په وجه د يوې پښې غَسل ضروري سو، او د يوې پښې مسح پاته سوه، حال دا چې د غَسل او مسحې دواړو جمع کول متعذره دي، نو ځکه به په دې صورت کې مسح باطله وي، لهذا دې سړي ته پکار دي چې دويمه موزه هم وکاږي او په ښه ډول پښې پرېولي.

وكذا مضى المدة الخ فرمايي چې د مسحې د مودې تېرېدل هم مسح ماتوي. ځکه په حديث کې په ښکاره توګه د مقيم او مسافر لپاره په ترتيب سره يوه ورځ، يوه شپه او درې ورځې او درې شپې ټاکل سوي دي. نو دا ښکاره ده ده چې کله دا ټاکل سوې موده تېره سي، نو مسح باطليږي.

وإذا تمت المدة الخ د مسح د مودې د پوره کېدلو په صورت کې حکم دا دی چې موزه اغوستونکی دې خپلې موزې وکاږي، پښې دي پرېولي، او که په اودسه وي، نو صرف د پښو په پرېولو دي اکتفاء وکړي. پوره اودس دې نه کوي. او بيا دي لمونځ وکړي، او زموږ په نېز پر ده د پاته اودس راګرځول واجب نه دي.

لېکن امام شافعي رَحِمَهُ الله فرمايي چې د دې سړي لپاره پوره اودس کول ضروري دي، ځکه چې د مسحې د مودې په تېرېدلو سره د پښو طهارت ختم او مات سو، او د طهارت ختمېدل(يعني حدث) نه متجزي کيږي. (يعني د طهارت ماتېدل ټوټې ټوټې نه کيږي، نو که د پښو طهارت ختم سو نو د نورو اندامو طهارت هم ختميږي، ځکه چې په طهارت کې تجزي نسته)، او څرنګه چې يو څوک بې اودسه سي نو هغه به پوره اودس کوي او په هغه کې هيڅ تجزي نسته. همدارنګه به دلته هم پوره اودس واجب وي، او تجزي به پکښې نه وي.

صاحب د عنايې زموږ له طرفه امام شافعي ته دا جواب ورکوي چې د مسحې د مودې مسئله د حدث پر مسئلې قياسول صحيح نه دي بلکې قياس مع الفارق دی، ځکه چې په حدث کې خروج د نجلست راځي. او د مودې په

تېرېدلو (مضی) کې د هيڅ شي خروج نسته. او زموږ د مذهب تائيد د ابن عمر ﷺ له فعل څخه هم کيږي چې په يوه غزا کې هغه ته دغسې مسئله ور پېښه سوه، نو هغه صرف موزې وکښلې. او صرف يې د پښو په پرېولو اکتفاء وکړه. نور اودس يې نه را وګرځوی، نو له دې څخه هم معلومه سوه چې د اودسه راګرځول واجب نه دي. (عنايه ج ۱، ص ۱۵۵)

وكذا إذا نزع الخ فرمايي چې د اودس د نه راګرځولو حکم په هغه صورت کې هم دی چې کله يو سړی د مودې تر تېرېدلو مخکې په خپله موزې وکاږي، نو په دې صورت کې دې هم صرف پښې پرېولې. او لمونځ دې وکړي. ځکه چې د موزو په کښلو سره، حدث فقط د ده و پښو ته سرايت وکړی. نه دا چې و ټولو اندامونو ته. او دا به داسې وي لکه دې سړي چې د اودس په وخت کې پښې نه وي پرېولې، نو اوس به صرف د پښو پرېولل واجب وي.

ويثبت الخ فرمايي چې د موزې د ختلو او د پښې د را وتلو حکم هغه وخت ثابتيږي چې کله پښه د موزې تر پنډۍ پوري را ووځي. (د موزې له پنډۍ څخه مراد، د موزې هغه اوږده جوړي سوې شوکه ده چې په هغې کې پنډۍ هم پټيږي. نو که پښه تر دې شوکې پوري راووځي. نو دا حکم به کيږي چې موزه وختله). ځکه چې د مسحې په باره کې د موزې د پنډۍ هيڅ اعتبار نسته. او د موزې پر پنډۍ باندې مسح کول هم جائز نه دي، ځکه چې دا ځای د مسحې له موضع څخه جلا او ماسوا دی. او د مسحې له موضع څخه تر ماسوا پورې د پښې په راوتولو سره مسح ماتيږي، نو دلته به هم تر پنډۍ پورې د پښو په را وتولو سره مسح ماتيږي.

فرمايي چې د صحيح قول مطابق که د موزې تر پنډۍ پورې ټوله پښه را نه سي، لېکن د پښې زياتره حصه د موزې تر پنډۍ پورې راسي. نو په دې صورت کې هم مسح باطليږي، ځکه چې د للأكثر حكم الكل قاعده ډېره مشهوره ده.

## که مقيم مسافر سو يا مسافر مقيم سو نو د مسحې د مودې حکم

| |
|---|
| وَمَنِ ابْتَدَأَ الْمَسْحَ وَهُوَ مُقِيمٌ او چا چې د اقامت په حالت کې مسح شروع کړه. فَسَافَرَ قَبْلَ تَمَامِ يَوْمٍ وَلَيْلَةٍ (او) بيا د يوې ورځې او يوې شپې تر پوره کېدلو مخکې مسافر سو مَسَحَ ثَلَاثَةَ أَيَّامٍ وَلَيَالِيَهَا نو (اوس) به هغه تر درې ورځو او درې شپو پورې مسح کوي عَمَلًا بِإِطْلَاقِ الْحَدِيثِ د حديث په إطلاق باندې د عمل کولو په وجه وَلِأَنَّهُ حُكْمٌ مُتَعَلِّقٌ بِالْوَقْتِ او په دې وجه (هم) چې دا داسې حکم دی چې د وخت سره متعلق (اړوند) دی فَيُعْتَبَرُ فِيهِ آخِرُهُ نو به په دې کې د آخري وخت اعتبار کيږي بِخِلَافِ مَا په خلاف د هغه صورت إِذَا اسْتَكْمَلَ الْمُدَّةَ لِلْإِقَامَةِ ثُمَّ سَافَرَ چې کله د إقامت د مودې تر پوره کېدلو وروسته مسافر سي لِأَنَّ الْحَدَثَ قَدْ سَرَى إِلَى الْقَدَمِ ځکه چې حدث تر پښې (قدم) پورې سرايت وکړی وَالْخُفُّ لَيْسَ بِرَافِعٍ او موزه رافع (پورته کونکې) د حدث نه ده. |

**اللغات**: ﴿إِسْتَكْمَلَ﴾ د استفعال د باب ماضي صيغه ده: پوره کول. بشپړ تيا ته رسول.

**تشريح**: صورت د مسئلې: دا دی چې که يو سړي د اقامت په حالت کې پر موزو مسح شروع کړه. نو بنکاره خبره ده چې د هغه د مسحې موده يوه ورځ او يوه شپه ده. اوس که دا سړی د اقامت د مودې تر پوره کولو مخکې مسافر سو. نو د ده دا موده د سفر د مودې و طرف ته نقل کيږي، او د ده لپاره تر درې ورځو او درې شپو پورې د مسح کولو اجازه ورکول کيږي. ځکه چې په دې حديث يمسح المسافر ثلاثة أيام ولياليها کې د مسافر لپاره چې کومه موده بيان سوې ده. هغه مطلق د مسافر موده ده. بيا برابره خبره ده که د سفر په وخت کې يې موزې اغوستې وي يا له سفر څخه يې مخکې اغوستې وي لو

سفر يې شروع کړی وي، لهذه دا که د اقامت د مودې تر پوره کېدلو مخکې مسافر سو، نو پر ده د مسافر احکام جاري کېږي.

د دې حکم دوېم دليل دا دی چې د (مسح على الخفين) حکم د وخت سره تعلق لري، او هر هغه شی چې د هغه حکم د وخت سره متعلق وي، په هغه کې به د آخري وخت اعتبار کېږي، د مثال په توګه حائضه ښځه ده، که دا د لمانځه په آخري وخت کې پاکه سوه، نو پر دې به د دغه وخت لمونځ واجب وي، ځکه چې د لمانځه حکم هم د وخت سره تعلق لري، لهذه دا چې په مسح کې به هم د آخري وخت اعتبار کېږي. او څرنګه چې په ذکر سوې مسئله کې دا سړی په آخري وخت کې مسافر سوی دی، نو ځکه به اوس دی تر دريو ورځو او دريو شپو پوري مسح کوي.

بخلاف ما الخ هو! که دا سړی د اقامت د مودې تر پوره کولو وروسته مسافر سو، نو اوس به د ده لپاره تر دريو ورځو او دريو شپو پوري د مسح کولو اجازه نه وي، ځکه چې د اقامت د مودې په تېرېدلو سره حدث د ده په پښو کې سرايت وکړی، نو د پښو پرېولل به واجب وي، ځکه چې مخکې هم دا خبره ذکر سوې ده چې موزه رافع د حدث نه ده.

## مسافر که مقيم سو نو څه حکم دی؟

وَلَوْ أَقَامَ او که يو سړی مقيم سو وَهُوَ مُسَافِرٌ حال دا چې هغه مسافر وو إِنِ اسْتَكْمَلَ مُدَّةَ الْإِقَامَةِ نو (اوس) که هغه د إقامت موده پوره کړې وه نَزَعَ نو موزې به وکاږي لِأَنَّ رُخْصَةَ السَّفَرِ لَا تَبْقَى بِدُونِهِ ځکه چې د سفر رُخصت بغير له سفر څخه نه پاته کېږي وَإِنْ لَمْ يَسْتَكْمِلْ او که د إقامت موده يې پوره کړې نه وه أَتَمَّهَا نو هغه دې پوره کړي لِأَنَّ هٰذِهِ مُدَّةُ الْإِقَامَةِ ځکه چې همدغه د إقامت موده ده وَهُوَ مُقِيمٌ او دا سړی مقيم دی.

**اللغات:** ﴿الرخصة﴾ اجازه، تعطيل، رخصت.

**تشريح:** دليل او صورت د مسئلې ښکاره دی.

## پر جرموقينو د مسحې حکم

قَالَ: وَمَنْ لَبِسَ الْجُرْمُوقَ فَوْقَ الْخُفِّ (امام قدوري رَحِمَهُ الله) فرمايي: او چا چې پر موزه جرموق واغوستی (په پښو کړی) مَسَحَ عَلَيْهِ نو پر هغه دې مسح کوي خِلَافًا لِلشَّافِعِيِّ رَحِمَهُ اللهُ د امام شافعي رَحِمَهُ الله اختلاف دی فَإِنَّهُ يَقُولُ: الْبَدَلُ لَا يَكُونُ لَهُ بَدَلٌ امام شافعي فرمايي: چې د بدل لپاره بدل نه وي وَلَنَا: أَنَّ النَّبِيَّ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ مَسَحَ عَلَى الْجُرْمُوقَيْنِ او زموږ دليل دا دی: چې نبي ﷺ پر جرموقينو مسح کړې ده وَلِأَنَّهُ تَبَعٌ لِلْخُفِّ او په دې وجه هم چې جرموق د موزې تابع دی اسْتِعْمَالًا وَغَرَضًا د استعمال او غرض دواړو په اعتبار سره فَصَارَ نو (جرموق پر موزه) داسې سو كَخُفٍّ ذِي طَاقَيْنِ لکه دوغبرګې موزه وَهُوَ بَدَلٌ عَنِ الرِّجْلِ لَا عَنِ الْخُفِّ او جرموق د پښې بدل دی. نه د موزې بِخِلَافِ مَا إِذَا لَبِسَ الْجُرْمُوقَ بَعْدَمَا أَحْدَثَ په خلاف د هغه صورت چې کله يو سړی جرموق تر حدث وروسته واغوندي لِأَنَّ الْحَدَثَ حَلَّ بِالْخُفِّ ځکه چې حدث په موزه کې سرايت وکړی فَلَا يَتَحَوَّلُ إِلَى غَيْرِهِ نو ځکه به د بل

وطرف ته (يعني د جرموقينو و طرف ته) نه منتقل کيږي وَلَوْكَانَ الْجُرْمُوْقُ مِنْ كِرْبَاسٍ او که جرموق د وړيو له کپړې څخه (جوړ سوی) وو لَايَجُوْزُ الْمَسْحُ عَلَيْهِ نو پر هغه مسح کول جائز نه دي لِأَنَّهُ لَا يَصْلُحُ بَدَلًا عَنِ الرِّجْلِ ځکه چي هغه د پښو لپاره د بدل جوړېدلو صلاحيت نه لري إِلَّا أَنْ تَنْفُذَ الْبَلَّةُ إِلَى الْخُفِّ خو دا چي لوندوالی موزې ته سرايت وکړي (نو بيا به مسح جائز وي).

**اللغات:** ﴿جرموق﴾ ساق پوش، جرموق د دې لپاره وي چي موزه له خټو او مردارېنو څخه وساتل سي، ﴿تنفذ﴾ د نصر د باب مضارع صيغه ده، نَفَذَ يَنْفُذُ: رسېدل، جاري کېدل، سرايت کول، ﴿بلة﴾ لوندوالی، ﴿كرباس﴾ پمبيزه جامه، وړين ټوکر، کشميره، کراسته، هغه سپينسين ټوکر چي ډول ډول رنګونه لري.

**تشريح: د جرموقين تعريف:** صاحب د عنايې د جرموق تعريف په دې الفاظو سره کړی دی: الجرموق ما يلبس فوق الخف وساقه أقصر من الخف (عنايه، بنايه). (يعني جرموق هغه (کوچنی) موزې ته ويل کيږي چي پر خفينو سربېره په پښو کيږي او د جرموق ساق (پنډۍ) د موزې له ساق څخه کوچنی وي). زموږ په نېز پر جرموقينو مسح کول جائز دي، او امام شافعي رَحِمَهُ الله وايي چي پر جرموقينو مسح جائز نه ده.

**د امام شافعي دليل:** دا دی چي موزه د پښو بدل ده، او د بدل لپاره بدل نه وي، ځکه چي د مسح علی الخفين په باره کي شريعت راغلی دی او مسح علی الخفين د پښو بدل جوړه سوې ده؛ نو پر جرموقينو مسح کول به د موزې بدل وي، حال دا چي دا صحيح نه ده، نو په دې وجه پر جرموقينو مسح کول ناجائز ګرځول سوي دي.

**زموږ نقلي دليل:** د حضرت عمر رضي الله عنه دا حديث دی: قال رأيت رسول الله صلى الله عليه وسلم مسح علی الجرموقين. (حضرت عمر وويل: چي ما نبي صلى الله عليه وسلم پر جرموقينو مسح کونکی وليدی).

**عقلي دليل:** دا دی چي جرموق په استعمال او غرض کي د موزې تابع وي، په استعمال کي خو ځکه چي جرموق د موزې سره يوځای وي، او په غرض کي ځکه چي جرموق د موزې د حفاظت لپاره وي، لکه موزه چي د پښو د حفاظت لپاره ده، نو موزه پر جرموق داسي ده لکه دوه غبرګې موزه، او د دوه غبرګي موزې پر پورتني غبرګ بالاتفاق مسح کول جائز ده، نو ځکه به پر جرموقينو هم کوم چي سربېره پر موزو دي مسح کول جائز وي. پاته سوه دا خبره چي جرموق د بدل، بدل دی، نو دا صحيح نه ده، ځکه چي جرموق د موزې بدل نه دی بلکي د پښو بدل دی.

بخلاف الخ د دې په خلاف که يې تر حدث او بې اودسی وروسته جرموق واغوستی نو پر دې به مسح جائز نه وي، ځکه چي حدث په موزې کي سرايت وکړی، يعني ور ننه سو، او حدث د جرموقينو و طرف ته نه را منتقل کيږي، يعني که يو سړي اودس وکړی بيا يې موزې په پښو کړې، وروسته بې اودسه سو، او د بې اودسی په وخت کي يې پر موزو باندي جرموقين واغوستل، نو پر دې جرموقينو مسح نه سي کولای، وجه يې دا ده چي حدث په موزو کي داخل سو، او داسي نه سي کېدلای چي حدث دي له موزو څخه ليري سي او پر جرموقينو دي راسي، نو په دې وجه اوس پر جرموقينو مسح نه سي کولای، لېکن که يې له حدث څخه مخکي جرموقين واغوستل، نو بيا مسح پر کولای سي.

ولو كان الجرموق الخ همدارنګه که څوک د وړيو د کپړې (ټوکر) جرموقين واغوندي، نو پر هغه هم مسح کول جائز نه دي، ځکه چي د وړيو د کپړې جرموقين پنډي وي، او د هغه په اغوستلو سره په تګ کي سختي راځي، نو ځکه دا کما حقه د پښو بدل نه سي جوړېدلای، نو ځکه به پر دوی هم مسح جائز نه وي. هو! که جرموق له نرۍ کپړې څخه وي، او د

مسح لوندوالی تر خفینو رسیدای سو، نو په دې صورت کې پر هغه مسح کول جائز دي، لیکن په دې وجه نه چې دا مسح پر جرموق وسوه، بلکې په دې وجه چې دا مسح پر موزه وسوه، او باریک جرموق د نړوالي په وجه تر موزې پورې د لوندوالي له رسیدلو څخه مانع نه دی.

## پر جراپو او ماسي د مسح کولو شرعي اعتبار

وَلَا يَجُوزُ الْمَسْحُ عَلَى الْجَوْرَبَيْنِ او جائز نه ده مسح پر جراپو عِنْدَ أَبِي حَنِيفَةَ رَحِمَهُ اللهُ د امام ابو حنیفه رَحِمَهُ الله په نېز إِلَّا أَنْ يَكُونَا● مُجَلَّدَيْنِ أَوْ مُنَعَّلَيْنِ خو دا چې دا جراپې مجلدي یا منعلي وي(یعني څرمني جراپې وي، چې په عامه اصطلاح کې ماسي ورته ویل کیږي) وَقَالَا: يَجُوزُ او صاحبین فرمایي: جائز ده إِذَا كَانَا ثَخِينَيْنِ خو په دې شرط چې پنډې وي لَا يَشِفَّانِ (دومره) باریکي (نرۍ) نه وي (چې له بل طرفه یې پوښ ښکاره سي، یا لاندنۍ معنی دا چې، څټل نه کوي) لِمَا رُوِيَ څکه روایت سوی دی أَنَّ النَّبِيَّ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ مَسَحَ● عَلَى جَوْرَبَيْهِ چې نبي ﷺ پر خپلو جراپو مسح وکړه وَلِأَنَّهُ يُمْكِنُهُ الْمَشْيُ فِيهِ او په دې وجه (هم) چې په داسي جراپه کې تګ کول ممکن دی إِذَا كَانَ ثَخِينًا چې کله هغه سخته وي وَهُوَ أَنْ يَتَمَسَّكَ عَلَى السَّاقِ مِنْ غَيْرِ أَنْ يُرْبَطَ بِشَيْءٍ او ثخین کېدل دا دي چې په یو شي باندي له ترلو څخه بغیر پر پنډۍ باندي ونیول سي (یعني دومره سختي وي چې په خپله پر پنډۍ باندي مضبوطه پاته سي) فَأَشْبَهَ الْخُفَّ نو دا د موزې سره مشابه سوه وَلَهُ: أَنَّهُ لَيْسَ فِي مَعْنَى الْخُفِّ او د امام صاحب دلیل دا دی: چې جراپه د موزې په معنیٰ سره نه ده لِأَنَّهُ لَا يُمْكِنُ مُوَاظَبَةُ الْمَشْيِ فِيهِ څکه چې په دې کې مسلسل (پرله پسې) تګ کول ممکن نه دی إِلَّا إِذَا كَانَ مُنَعَّلًا خو په هغه صورت کې چې کله هغه منعّله وي وَهُوَ مَحْمَلُ الْحَدِيثِ او همدغه معنیٰ د حدیث محمل ده وَعَنْهُ او له امام صاحب څخه روایت دی أَنَّهُ رَجَعَ إِلَى قَوْلِهِمَا وَعَلَيْهِ الْفَتْوَى چې امام صاحب رَحِمَهُ الله د صاحبینو د قول و طرف ته رجوع وکړه او پر همدغه فتویٰ ده.

**اللغات:** ﴿جَوْرَب﴾ جراپه، ﴿مُجَلَّد﴾ هغه شی چې له هري خوا په څرمه کې پوښل سوی وي، ﴿مُنَعَّل﴾ داسي جراپه چې تلی (لاندېنۍ حصه) یې د څرمې وي (یا څرمه پر لګېدلې وي)، ﴿ثَخِينَيْن﴾ پنډې، ډبلې، سختې. ﴿لَا يَشِفَّانِ﴾ د ضرب له باب څخه د تثنیې ماضي معلوم نفي صیغه ده. شَفَّ يَشِفُّ: د جامې یا داسي نورو دومره نرۍ کېدل چې له دویم طرف څخه یې شیان ښکاره کیږي، یا دومره نرۍ کېدل چې اوبه چڼي.

**تشریح:** جورب هغه جراپې ته ویل کیږي چې له وړۍ یا نرۍ څرمې څخه جوړه وي، او په سخت یخ کې استعمالیږي (بنایه ج:۱، ص: ۵۹۷)، مجلد هغه جراپې ته ویل کیږي چې لاندې او لوړ طرف یې په څرمه کې پټ وي (یعني

---

● القول الراجح: قول الصاحبين، و قال العلامة ابن الهمام رَحِمَهُ الله: والدلالة عن مقتضاه بغير سبب، فلذا رجع الامام إلى قولهما، وعليه الفتوى. فتح القدير ج:۱، ص:۱۳۹. [القول الراجح، ج:۱، ص:۳۶]

● أخرجه أبو داؤد في كتاب الطهارة، باب المسح على الجوربين، حديث رقم:۱۵۹، والترمذي في كتاب الطهارة، باب المسح على الجوربين والنعلين. حديث رقم:۹۹

پر دواړو حصو یې چمړهٔ لګېدلې وي)، او منعل هغه جراپې ته ویل کیږي چې پر تلي یې چمړه لګېدلې وي، د مسح على الجوربين درې صورتونه دي:

① یو دا چې جوربین له پنډي او ډبلي کپړې څخه جوړي وي، او منعلي یا مجلدي وي، چې زموږ په اصطلاح کې ماسی ورته ویل کیږي، نو په دې صورت کې بالاتفاق پر دې جوربینو مسح جائز ده

② دویم دا چې نه له پنډي کپړې څخه وي، او نه منعلي وي، په دې صورت کې بالاتفاق جائز نه ده.

③ دریم دا چې له پنډي کپړې څخه خو وي، لیکن منعلي نه وي، نو په دې صورت کې د امام ابو حنیفه رَحِمَهُ الله په نیز مسح جائز نه ده، او د صاحبینو په نیز جائز ده.

**د صاحبینو دلیل:** د ابوموسی اشعري رضي الله عنه حدیث دی: أن النبي ﷺ مسح على الجوربين. څرنګه چې دا حدیث مطلق دی، نو ځکه به پر مطلقو جوربینو مسح جائز وي، هغه که منعلي وي، که نه وي.

**عقلي دلیل:** دا دی که جوربین له پنډ او داسي توکر څخه وي چې بغیر له تړلو څخه پر پنډۍ ونیول سي (او اوبه نه چښي) نو په داسي جوربینو کې تګ او سفر کول ممکن دي، لهذا دا جوربین د موزو سره مشابه سوې، نو څرنګه چې پر موزو مسح جائز ده، پر جوربینو به هم جائز وي.

**د امام ابو حنیفه دلیل:** دا دی چې جورب د موزې سره لاحق کول هغه وخت صحیح کیږي چې کله جوربین من كل الوجوه (په هر ډول) د موزې په معنیٰ وي، حال دا چې جوربین د موزې په معنیٰ نه دي، ځکه چې په موزه کې مسلسل او همېشه تګ کول ممکن دي، او په غیر منعل جورب کې مسلسل تګ کول ممکن نه دي، هو! که جوربین منعل وي، نو معلومه ده چې په دې کې مسلسل او دائم تګ ممکن دی، نو ځکه به پر دې مسح کول جائز وي. او د ابو موسی اشعري رضي الله عنه د حدیث محمل هم دغه منعل جوربین دي.

**راجح قول:** په پورتنۍ مسئله کې راجح قول د صاحبینو دی. ځکه چې د امام صاحب په باره کې هم دا روایت سوی دی: وقال أكمل الدين البابرتي رَحِمَهُ الله: وعن أبي حنيفة رَحِمَهُ الله أنه مسح على جوربيه في مرضه ثم قال لعواده. فعلت ما كنت أمنع الناس عنه. فاستدلوا به على رجوعه إلى قولهما. (العناية ج:۱، ص:۱۳۹) (یعني امام ابو حنیفه رَحِمَهُ الله د وفات په مرض کې (تر مرګ اووه ورځې یا درې ورځې مخکې) پر (غیر منعلو) جراپو مسح وکړه، او بیا یې هغه خلکو ته وویل کوم چې د ده د پوښتنې لپاره راغلي وه: "ما (نن) هغه کار وکړی چې خلګ به مې له هغه څخه منع کول"، نو په دې قول سره علماء د امام صاحب پر رجوع دلیل نیسي). [القول الراجح ج:۱، ص:۳۶]

## پر لنګوټه، خولۍ، چادرۍ (بوغره) او دسکلو مسح جائز نه ده

| وَلَا يَجُوزُ الْمَسْحُ او مسح جائز نه ده عَلَى الْعِمَامَةِ پر لنګوټې وَالْقَلَنْسُوَةِ او پر خولۍ (ټوپۍ) وَالْبُرْقُعِ او پر بوغره وَالْقُفَّازَيْنِ او پر دسکلو (دستانو) لِأَنَّهُ لَا حَرَجَ فِي نَزْعِ هٰذِهِ الْأَشْيَاءِ ځکه چې د دې شیانو په کاړلو کې هیڅ تکلیف نسته وَالرُّخْصَةُ لِدَفْعِ الْحَرَجِ او د مسحې رخصت د تکلیف لیرې کولو لپاره دی. |
|---|

**اللغات:** ﴿عِمَامَه﴾ دا لفظ په اصل کې د عین په کسره سره دی: لنګوټه، ﴿قَلَنْسُوَة﴾ خولۍ، ﴿قُفَّاز﴾ دسکله (دست کش، دستانه).

**تشريح:** د احنافو په نېز پر لنګوټه، خولۍ، چادرې او دسکلو باندې مسح جائز نه ده، لېکن د امام اوزاعي او امام احمد بن حنبل رَحِمَهُ الله په نېز جائز ده، دليل يې دا دی چې پر موزو مسح کول له نبي ﷺ څخه ثابت دي، نو پر دې شيانو به هم مسح جائز وي.

زموږ دليل دا دی چې پر موزو د مسح کولو رخصت او اجازه په دې وجه ورکول سوې ده، چې حرج او تکليف ليرې سي، او د دې شيانو په کښلو کې هيڅ حرج او تکليف نسته، نو ځکه پر دې شيانو به مسح کول جائز نه وي.

## پر پټۍ (پلستر) د مسحې حکم

وَيَجُوزُ الْمَسْحُ عَلَى الْجَبَائِرِ او مسح جائز ده پر پټيو (پټيانو) باندې وَإِنْ شَدَّهَا عَلَى غَيْرِ وُضُوءٍ که څه هم هغه يې بغير له اودسه تړلې وي لِأَنَّهُ عَلَيْهِ السَّلَامُ [1] فَعَلَ ذٰلِكَ ځکه نبي ﷺ داسې وکړه وَأَمَرَ عَلِيًّا بِهِ او علي ﷺ ته يې د دې حکم وکړی وَلِأَنَّ الْحَرَجَ فِيهِ او په دې وجه (هم) چې د پټۍ په ليرې کولو کې چې کوم تکليف دی فَوْقَ الْحَرَجِ فِي نَزْعِ الْخُفِّ دا له هغه تکليف څخه زيات دی کوم چې د موزې په کښلو کې دی فَكَانَ أَوْلَى بِشَرْعِ الْمَسْحِ نو ځکه به پټۍ د مسحې د مشروعيت زياته حقداره وي وَيَكْتَفِي بِالْمَسْحِ عَلَى أَكْثَرِهَا او په مسح کې به د پټۍ پر اکثره حصه اکتفاء کوي ذَكَرَهُ الْحَسَنُ رَضِيَ اللهُ عَنْهُ دا حضرت حسن رَحِمَهُ الله ذکر کړي دي وَلَا يَتَوَقَّتُ او پر پټيو باندې مسح ديو وخت سره متعينه نه ده (يعني ديو وخت سره خاص نه ده) لِعَدَمِ التَّوْقِيفِ بِالتَّوْقِيتِ ځکه چې د وقت د تعيين په باره کې (د شريعت له طرفه) خبر تيا نسته (يعني په شريعت کې موږ ته د پټۍ د مسحې د موده هيڅ خبر را کول سوی نه دی) وَإِنْ سَقَطَتِ الْجَبِيرَةُ عَنْ غَيْرِ بُرْءٍ او که پټۍ بغير د زخم له ښه کېدلو څخه ولوېدله لَا يَبْطُلُ الْمَسْحُ نو مسح نه باطليږي لِأَنَّ الْعُذْرَ قَائِمٌ ځکه چې (اوس هم) عذر پاته دی وَالْمَسْحُ عَلَيْهَا كَالْغَسْلِ لِمَا تَحْتَهَا مَا دَامَ الْعُذْرُ بَاقِيًا او چې تر څو عذر پاته وي تر هغه وخته پر پټۍ مسح کول داسې دي لکه د هغې لاندې حصه پرېولل وَإِنْ سَقَطَتْ عَنْ بُرْءٍ بَطَلَ او که د زخم د ښه کېدلو په وجه پټۍ ولوېدله نو مسح باطليږي لِزَوَالِ الْعُذْرِ ځکه چې عذر ختم سو وَإِنْ كَانَ فِي الصَّلَاةِ او که دا سړی په لمانځه کې وو (يعني که په لمانځه کې له يو سړي څخه پټۍ د زخم ښه کېدلو په وجه ولوېدله) اِسْتَقْبَلَ نو لمونځ به له سره شروع کوي (يعني لمونځ به له سره راګرځوي) لِأَنَّهُ قَدَرَ عَلَى الْأَصْلِ قَبْلَ حُصُولِ الْمَقْصُودِ بِالْبَدَلِ ځکه چې هغه د مقصود تر حاصلولو مخکې د بدل په ذريعه پر اصل قدرت پيدا کړی.

**اللغات:** ﴿جَبَائِر﴾ جمع ده. واحد يې جبيره ده: پټۍ. هغه پلستر چې په پرهار (زخم) او داسې نورو باندې ايښوول کيږي، ﴿بُرْء﴾ د زخم يا چوټ جوړېدل. د تکليف او درد ختمېدل.

**تشريح:** د عبارت تر حل مخکې دا خبره په ياد لرئ چې جبائر د جبيرة جمع ده، او جبيره په اصل کې هغه لرګي ته ويل کيږي چې پر مات سوي هډوکي يا داسې بل شي باندې تړل کيږي، قاضي خان فرمايي چې پر جبيره به د مسحې کولو

---

[1] تخريج: أخرجه دار قطني في كتاب الحيض باب جواز المسح على الجبائر، حديث رقم: ۸۶۷.

اجازه په هغه وخت کې وي چې پر زخم باندې په مسح کولو کې تکليف وي که څه هم هغه بغير له اودس څخه تړل سوې وي.

**دليل**: دا دی چې جبيره د ضرورت په وخت کې تړل کيږي، نو د ضرورت په وخت کې د اودس شرطول مفضي إلى الحرج دي (يعني د تکليف سبب دی)، نو ځکه به د اودس شرط نه لګيږي، او په دې باره کې اصل دا دی چې نبي ﷺ په خپله هم پر جبيره مسح کړې ده، همدارنګه د اُحد په ورځ چې کله د حضرت علي ﷺ مروند مات سو، نو نبي ﷺ حضرت علي ﷺ ته پر پټۍ باندې د مسحې کولو حکم وکړی، صاحب د عنايې پوره قصه داسې ليکلې ده چې: د اُحد په ورځ حضرت علي ﷺ د نبي ﷺ بيرغ په لاس کې نيولی وو، کله چې د حضرت علي ﷺ لاس مات سو، او بيرغ ولوېدی، نو نبي ﷺ وفرمايل: بيرغ په چپه لاس ونيسه! ، ځکه چې علي (ﷺ) به په دنيا او آخرت کې زما د بيرغ مالک وي، حضرت علي ﷺ وويل: ما أصنع بالجبائر (يعني په پټۍ څه وکړم؟)، نبي ﷺ ورته وفرمايل: إمسح عليها (پر پټۍ مسح کوه)، په دې حديث کې د دې هيڅ تفصيل نسته چې پټۍ به يې په اودسه تړلې وي او که بغير له اودسه، نو معلومه سوه چې پر مطلق جبيره باندې مسح کول جائز دي.

**عقلي دليل**: دا دی چې د موزې په کښولو کې چې څومره حرج او تکليف سته، د پټۍ په ليرې کولو کې له هغه څخه زيات تکليف سته، نو کله چې د تکليف ليرې کولو په وجه پر موزو باندې مسح جائز سوه، نو پر جبائرو باندې خو به په طريقه اولیٰ سره جائز وي.

ويكتفي الخ پاته سوه دا مسئله چې پر ټوله پټۍ به مسح کوي او که پر بعضي پټۍ، نو په دې لړ کې افضله دا ده چې پر ټوله پټۍ باندې مسح وکړی سي، خو بيا هم له حضرت حسن بن زياد رَحِمَهُ الله څخه را نقل سوې دي چې که يو څا د پټۍ پر زياتره (اکثره) حصه باندې مسح وکړه، نو هم مسح جائز ده، ځکه چې اکثر د کُل قائم مقام دی، او قاعده دا ده چې: للأكثر حكم الكل.

ولا يتوقت الخ فرمايي چې پر پټۍ د مسحې کولو لپاره څه موده ټاکل سوې نه ده، بلکې د زخم تر ښه کېدلو پورې به پر دې مسح کوي، ځکه چې د مسح على الجبيره د تحديد (او تعيين) په اړه يو حديث هم نه دی راغلی.

وان سقطت..الخ له دې ځايه د مسح على الخفين او د مسح على الجبيره په مينځ کې دويم فرق بيانوي، حاصل يې دا دی چې که د زخم تر ښه کېدلو مخکې پټۍ ولوېدله نو هم مسح على الجبيره نه باطليږي، ځکه چې د دې مشروعيت د عذر په وجه دی، او د زخم نه ښه کېدل د دې خبرې ښکاره علامه ده چې عذر اوس هم پاته دی، نو تر څو چې عذر پاته وي تر هغه وخته پورې به د مسح على الجبيره اجازه وي، او دا مسح به داسې وي لکه پرېولل، يعني ګواکې اندام پرېول سوی دی، د دې په خلاف که له پښو څخه موزې ووځي نو مسح په هر حال کې باطله ده، هغه که په هر ډول ووځي، لېکن که د زخم تر ښه کېدلو وروسته جبيره ولوېدله نو په دې صورت کې مسح باطليږي، ځکه چې اوس عذر ختم سو، او قاعده دا ده چې ما جاء لعذر بطل بزواله يعني کوم شی چې د عذر په وجه ثابتيږي نو هغه د عذر په ختمېدلو سره باطليږي.

وان كان في الصلاة الخ او که جبيره د لمانځه په دوران کې ولوېدله، خو په هغه وخت کې چې زخم ښه سوی وو، نو بيرته دې د سره لمونځ شروع کړي، ځکه چې دا سړی د بدل (مسح على الجبيره) په ذريعه د مقصود تر حاصلولو (لمونځ کولو) مخکې پر اصل (اوبو او غسل) باندې قادر سو، او قاعده دا ده چې که د بدل په ذريعه د مقصود تر حاصلولو مخکې پر اصل باندې قدرت پيدا سي نو کوم شی چې يې په بدل سره شروع کړی وي د هغه راګرځول به ضروري، د قاعدې الفاظ دا دي: الأصل عندنا أن القدرة على الأصل أي على المبدل قبل استيفاء المقصود بالبدل ينتقل الحكم إلى المبدل.



# بَابُ الْحَيْضِ وَالْإِسْتِحَاضَةِ

## دا باب د حيض او استحاضې (د احکامو په بيان کې) دی

**تشريح:** تر دې مخکې صاحب د کتاب هغه أحداث بيان کړل کوم چې زيات پيښيږي(يعني کثير الوقوع أحداث)، اوس له دې ځايه څخه هغه أحداث بيانوي کوم چې لږ پيښيږي (يعني قليل الوقوع)، او صاحب د عنايه وايي چې: حيض او نفاس له أحداثو څخه شمارل زيات مناسب دي، او پر دې قرينه دا ده چې تر دې وروسته باب الأنجاس ذکر کيږي، اوس که موږ حيض او نور له انجاسو څخه و شمارو، لکه د ځينې حضراتو چې همدغه رايه ده نو په دې صورت کې به بيا باب الأنجاس مکرر سي، او تکرار له ترتيب او تصنيف دواړو څخه خلاف دی، خصوصاً بيا هغه تکرار چې فايده نه لري.

او څرنګه چې نفاس او حيض دواړه په يوه معنیٰ دي يا دا چې نفاس د حيض په مقابله کې قليل الوقوع دی، نو ځکه په عنوان کې خو د حيض تذکره وسوه، لېکن د نفاس له تذکرې څخه خاموشي اختيار سوه.

**د حيض لغوي او اصطلاحي معنی:** د حيض لغوي معنیٰ ده: الدم الخارج: را وتونکې وينه، او د حيض اصطلاحي معنیٰ ده: هو دم ينفضه رحم المرأة السليمة عن الداء والصغر. **ژباړه:** يعني کومه ښځه چې له نا روغې او کوچنيوالي څخه پاکه وي د هغې له رحم څخه را وتونکې وينې ته حيض وايي.

**د حيض شرط:** تقدم نصاب الطهر حقيقة أو حكما و فراغ الرحم عن الحبل. **ژباړه:** يعني په حقيقي يا حکمي توګه سره د طهر نصاب تر حيض مخکې کېدل همدارنګه د ښځې رحم له حمل او نورو څخه خالي کېدل د حيض لپاره شرط دي. (عنايه ج:۱/ ۱۶۳)

### د حيض کمه موده او زياته موده (او په دې باره کې د فقهاؤ قولونه)

أَقَلُّ الْحَيْضِ ثَلَاثَةُ أَيَّامٍ وَلَيَالِيهَا د حيض کمه موده درې ورځې او درې شپې ده وَمَا نَقَصَ مِنْ ذٰلِكَ فَهُوَ اسْتِحَاضَةٌ. او کومه موده چې له دې (مقدار) څخه کمه سوه هغه استحاضه ده لِقَوْلِهِ عَلَيْهِ السَّلَامُ ● ځکه نبي ﷺ فرمايلي دي أَقَلُّ الْحَيْضِ لِلْجَارِيَةِ الْبِكْرِ وَالثَّيِّبِ ثَلَاثَةُ أَيَّامٍ وَلَيَالِيهَا د باکرې او ثيبې ښځې لپاره د حيض کمه موده درې ورځې او درې شپې ده وَأَكْثَرُهُ عَشَرَةُ أَيَّامٍ او له دې څخه زياته موده لس ورځې ده وَهُوَ حُجَّةٌ عَلَى الشَّافِعِيِّ رَحِمَهُ اللهُ فِي التَّقْدِيرِ بِيَوْمٍ وَلَيْلَةٍ او دا حديث د يوې ورځې او يوې شپې په اندازه کولو کې د امام شافعي رَحِمَهُ الله په خلاف حجت دی وَعَنْ أَبِي يُوسُفَ رَحِمَهُ اللهُ: ● أَنَّهُ يَوْمَانِ وَالْأَكْثَرُ مِنَ الْيَوْمِ الثَّالِثِ او له امام ابو يوسف رَحِمَهُ الله څخه روايت دی: (چې د حيض کمه موده)

---

● تخريج: أخرجه دار قطني في كتاب الحيض باب الحيض، حديث رقم: ۸۳۶ بمعناه ۸۳۴.

● القول الراجح: هو ظاهر الرواية كذا في تبيين الحقائق ج:۱، ص:۵۵، و الهندية ج:۱، ص:۳۶. [القول الراجح ج:۱، ص:۳۷]

دوې ورځې او د دریمې ورځې اکثره حصه ده إِقَامَةً لِلْأَكْثَرِ مَقَامَ الْكُلِّ ځکه چې اکثر قائم مقام د کل دی قُلْنَا: هٰذَا نَقْصٌ عَنْ تَقْدِيْرِ الشَّرْعِ موږ وایو: چې دا د شریعت له اندازې څخه کمې کول دي(نو ځکه به دا صحیح نه وي، بلکې اول به صحیح وي).

**اللغات:** ﴿أَقَلّ﴾ اسم تفضیل دی، معنیٰ یې ده: ډېر کم. ډېر لږ. ﴿أَكْثَر﴾ دا هم اسم تفضیل دی معنیٰ یې ده: ډېر زیات. ﴿جاريه﴾ نجلۍ، ﴿بِكْر﴾ پېغله، ﴿ثيب﴾ واده سوې ښځه.

**تشریح:** زموږ په نېز د حیض کمه موده درې ورځې او درې شپې دي. او کومه وینه چې له دې مودې څخه کمه وي. هغه استحاضه ده. امام شافعي رَحِمَهُ الله فرمایي چې د حیض کمه موده یوه ورځ او یوه شپه ده. امام ابو یوسف رَحِمَهُ الله فرمایي چې د حیض کمه موده دوې ورځې پوره او د دریمې ورځې زیاتره حصه ده. امام مالک رَحِمَهُ الله فرمایي چې مطلقې وینې حیض دي، که څه هم هغه یو ساعت وي.

**زموږ دلیل:** هغه حدیث دی کوم چې ابو امامه باهلي رَحِمَهُ الله، او عایشې رَضِيَ اللهُ عَنْهَا، او عاتکې رَضِيَ اللهُ عَنْهَا. او انس او ابن عمر رَضِيَ اللهُ عَنْهُمْ روایت کړی دی: انه قال أقل الحيض للجارية البكر والثيب ثلاثة أيام ولياليها وأكثره عشرة أيام، همدا موده له حضرت عمر، علي. ابن مسعود، ابن عباس، عثمان. ابن ابی العاص او انس بن مالک رَضِيَ اللهُ عَنْهُمْ څخه هم را نقل سوې ده. او له دې حضراتو څخه هم دا رنګه روایت سوی دی لکه څرنګه چې له نبي ﷺ څخه سوی دی. او د حضرت معاذ بن جبل ﷺ د حدیث الفاظ دا دي: لا حيض دون ثلاثة أيام ولا فوق عشرة أيام.

**د امام شافعي دلیل:** امام شافعي رَحِمَهُ الله فرمایي: چې کله سیلان دم(د وینو بهېدلو) د شپې او ورځې ټوله وختونه ونیول، نو معلومه سوه چې دوا ینه له رحم څخه ده، نو د حیض د وینې د معلومولو لپاره د نور وخت ضرورت نسته.

**د امام یوسف دلیل:** امام ابو یوسف رَحِمَهُ الله د للأكثر حكم الكل په قاعده سره دلیل نیسي.

**د امام مالک دلیل:** امام مالک رَحِمَهُ الله وایي چې حیض یو حدث دی، نو ځکه به دا هم د نورو أحداثو په څېر په یو شي سره نه اندازه کیږي.

**جواب:** د امام ابو حنیفه رَحِمَهُ الله له طرفه د دې ټولو دلائلو جواب دا دی چې شریعت د حیض کمه موده درې ورځې ټاکلې ده، لېکن که له دې څخه په کمه موده باندې اکتفاء وکړی سي، نو بیا کمه موده درې ورځې نه پاتیږي. او دا ښکاره خبره ده چې دا د شریعت په تقدیر او اندازه کې کمې کول دي، حال دا چې له شرعي تقدیر څخه کمې کول جائز نه دي.

**راجح قول:** په پورتنۍ مسئله کې راجح قول ظاهر د روایت دی. یعنې د حیض کمه موده درې ورځې او درې شپې دي،

قال العلامة علاء الدين الكاساني رَحِمَهُ الله: واما الثاني فذكر في ظاهر الرواية ان أقل الحيض ثلاثة ايام ولياليها الى ان قال وحكى عن ابي يوسف رَحِمَهُ الله في النوادر يومان واكثر اليوم الثالث. (بدائع الصنائع ج: ۱، ص: ۴۰) [القول الراجح ج: ۱، ص: ۳۷]

## د حیض اکثره موده

وَأَكْثَرُهُ عَشَرَةُ أَيَّامٍ وَلَيَالِيْهَا او د حیض اکثره موده لس ورځې او لس شپې ده وَالزَّائِدُ اسْتِحَاضَةٌ او له دې څخه زیاته استحاضه ده لِمَا رَوَيْنَا د هغه حدیث په وجه کوم چې موږ روایت کړی وَهُوَ حُجَّةٌ عَلَى الشَّافِعِيِّ رَحِمَهُ اللهُ فِي التَّقْدِيْرِ بِخَمْسَةَ عَشَرَ يَوْمًا او دا حدیث د امام شافعي رَحِمَهُ الله په خلاف حجت دی د پنځلسو ورځو په اندازه لګولو کې ثُمَّ

الزَّائِدُ وَالنَّاقِصُ اِسْتِحَاضَةٌ یا زیاتي او کمي دواړي (ويني) استحاضه دي لِأَنَّ تَقْدِيرَ الشَّرْعِ يَمْنَعُ اِلْحَاقَ غَيْرِهِ بِهٖ ځکه چي د شريعت اندازه بل شی منع کوي (له دې شخه) چي د هغه د اندازې سره لاحق سي.

**تشريح**: زموږ په نېز د حيض اکثره موده لس ورځي دي، او د امام شافعي رَحِمَهُ الله په نېز پنځلس ورځي دي، د امام صاحب رَحِمَهُ الله اول قول هم دا دی.

**د امام شافعي دليل**: د نبي كريم ﷺ دا قول دی: تقعد احداهن شطر عمرها لا تصوم ولا تصلي كوم چي نبي كريم ﷺ د ښځو د دين د نقصان په باره کي فرمايلی وو. (يعني ښځه خپل نيم عمر هسي ناسته وي. نه لمونځ کوي او نه روژه نيسي)، په حديث کي شطر په معنیٰ سره د نصف دی. او له دې شخه مراد د حيض زمانه ده. او دليل په دې توګه ځني نيسي چي د عمر اندازه په کلونو سره لګول کيږي. او د کلونو اندازه په مياشتو سره لګول کيږي. او د يوې مياشتي نيمی حصه پنځلس ورځي دي، نو معلومه سوه چي ښځه به پنځلس ورځي نه لمونځ کوي او نه روژه نيسي.

**زموږ دليل**: هغه حديث دی کوم چي په مخکني مسئله کي تېر سو يعني أكثره عشرة ايام، ښکاره دي وي چي تر دريو ورځو کمي ويني او تر لسو ورځو چي زياتي کومي ويني راځي هغه ته د استحاضې او ناروغی ويني وايي، ځکه چي شريعت د حيض کمه او اکثره موده دواړه معلومي کړي دي، نو د شريعت له معلومي سوي مودې او اندازې شخه چي کوم شی هم زيات يا کم وي هغه به له ما تعين به الشرع شخه خارج وي. او که په ذکر سوي صورت کي ويني له معلومي سوي مودې شخه کمي يا زياتي راسي، نو هغه به هم د حيض ويني نه وي، بلکي د استحاضې ويني به وي.

## د حيض د بېلا بېلو رنګونو بيان

وَمَا تَرَاهُ الْمَرْأَةُ او کوم شه چي ښځه ويني مِنَ الْحُمْرَةِ وَالصُّفْرَةِ وَالْكُدْرَةِ يعني سُروالی او ژړوالی او خړوالی حَيْضٌ هغه حيض دی حَتّٰى تَرَى الْبَيَاضَ خَالِصًا تر دې چي خالص سپين والي ووينی وَقَالَ أَبُوْيُوْسُفَ رَحِمَهُ اللهُ: لَا تَكُوْنُ الْكُدْرَةُ حَيْضًا او امام ابو يوسف رَحِمَهُ الله فرمايي: چي خړوالی (يعني خړي ويني) حيض نه دی إِلَّا بَعْدَ الدَّمِ خو که تر وينو وروسته راسي (نو بيا حيض دی) لِأَنَّهُ لَوْ كَانَ مِنَ الرَّحِمِ ځکه که دا (خړه وينه) له رحم شخه وای لَتَأَخَّرَ خُرُوْجُ الْكَدِرِ عَنِ الصَّافِيْ نو له صفا (وينو) شخه به وروسته را وتلای وَلَهُمَا: ● مَا رُوِيَ أَنَّ عَائِشَةَ رَضِيَ اللهُ عَنْهَا جَعَلَتْ مَا سِوَى الْبَيَاضِ الْخَالِصِ حَيْضًا او د طرفينو دليل دا دی: چي عايشې رَضِيَ اللهُ عَنْهَا له خالص سپينوالي شخه بغير (ټولو) ته حيض ويلي دي وَهٰذَا لَا يُعْرَفُ إِلَّا سَمَاعًا او دا خبره صرف په اورېدولو سره معلومېدای سي وَفَمُ الرَّحِمِ مَنْكُوْسٌ او د رحم خوله چپه وي فَيَخْرُجُ الْكَدَرُ أَوَّلًا نو خړه وينه اول را وځي كَالْجَرَّةِ إِذَا ثُقِبَ أَسْفَلُهَا لکه منګی چي له لاندي خوا شخه سوری سي وَأَمَّا الْخُضْرَةُ فَالصَّحِيْحُ او پا ته سو شين رنګ نو صحيح دا ده أَنَّ الْمَرْأَةَ إِذَا كَانَتْ مِنْ ذَوَاتِ الْأَقْرَاءِ چي که ښځه له ذوات الحيض شخه وه تَكُوْنُ حَيْضًا نو هغه به حيض وي وَيُحْمَلُ عَلَى فَسَادِ الْغِذَاءِ او د غذا (خوراک) پر خرابی به

● القول الراجح: قول ابي حنيفة و محمد رَحِمَهُمَا الله كذا في رد المحتار ج:۱، ص:۲۱۱. [القول الراجح ج:۱، ص:۳۸]

حمل کيږي وَإِنْ كَانَتْ كَبِيْرَةً لَا تَرَى غَيْرَ الْخُضْرَةِ او که ښځه د ډېر وخت (يعني سپين سرې) وه او له شنه رنګ څخه ماسوا يې (بل ډول وينه) نه ليدله تُحْمَلُ عَلَى فَسَادِ الْمَنْبِتِ نو د رحم پر فساد به حمل کيږي فَلَا تَكُونُ حَيْضًا نو دا به حيض نه وي.

**اللغات:** ﴿حُمْرَة﴾ سور رنګ، سورخي، ﴿صُفْرَة﴾ ژړ رنګ، ژړوالی، ﴿كُدْرَة﴾ خړ رنګ، خړوالی، خاورين، ﴿مَنْكُوس﴾ چپه، سرکوږ کوني، ﴿جَارِيَة﴾ منګې، ﴿تُقِيْب﴾ د فتح او سمع له باب څخه د ماضي مجهول صيغه ده: سورې کول، ﴿أقرَاء﴾ جمع ده، واحد يې قُرْء دی: په حيض او طهر دواړو کې مشترک دی، (او دلته) حيض ځني مراد دی.

**تشريح:** د حيض رنګونه شپږ دي: (۱) تور (۲) سور (۳) ژړ (۴) خړ (۵) شين (۶) خاورين، مصنف رَحِمَهُ الله د تور رنګ ذکر ځکه نه و کړی چې په هغه کې هيڅ اشکال نشته، ځکه چې د نبي ﷺ فرمان دی: دم الحيض أسود غبيط محتدم، يعني د حيض وينه توره تازه او تکه سره وي، په حديث کې د غبيط معنیٰ د تازه ده، او د محتدم معنیٰ د تک سره ده، رنګ چې کله ډېر سور سي نو هغه تورالي ته مائل سي، او د خاکي رنګ (يعني د خاورين رنګ) ذکر يې ځکه ونه کړی چې دا خړ رنګ ته نژدې رنګ دی، نو د خړ رنګ په ترڅ کې د خاکي رنګ ذکر هم وسو، حاصل دا چې تور او سور رنګ په اجماع سره د حيض وينه ده، او تک شين رنګ په اصح قول سره حيض دی.

**د خړ رنګ حکم:** د خړ رنګ وينه د طرفينو په نېز حيض دی، هغه که د حيض په اولو ورځو کې وي او که په آخرو ورځو کې وي، امام ابويوسف رَحِمَهُ الله فرمايي چې خړه وينه حيض نه دی، خو دا چې کله خړه وينه تر سرې او صفا وينې وروسته را ووځي (نو بيا خړه وينه حيض دی).

**د امام ابو يوسف دليل:-** دا دی چې د حيض په وينه کې قانون دا دی چې اول صفا سره وينه راوځي، او بيا وروسته خړه وينه راوځي، خو کله چې خړه وينه مخکې را ووتل نو معلومه سوه چې دا د حيض وينه نه ده، بلکې د رګ يا د يو بل شي وينه ده، او کومه وينه چې له رحم څخه ماسوا د بل ځای وي، نو هغه وينې ته د حيض وينه نه سي ويل کېدلای، نو ځکه به د خړ رنګ وينه د حيض وينه نه وي.

صاحب د عنايې د امام ابو يوسف رَحِمَهُ الله دليل داسې بيان کړی دی چې د هر شي خړ رنګ د هغه رنګ د صفا رنګ تابع وي، نو که خړه وينه حيض وګرځول سي، په داسې حال کې چې مخکې صفا وينه نه وي راغلې، نو خړ رنګ به مقصود سي، تابع به نه سي، حال دا چې د هر شي خړوالی د هغه د صفوالي تابع وي.

**د طرفينو دليل:** دا دی چې حضرت عايشې رَضِيَ اللهُ عَنْهَا له خالص سپينوالي څخه ماسوا نور ټول رنګونه حيض ګرځولي دي، امام مالک رَحِمَهُ الله په خپل موطأ کې دا حديث بيان کړی دی: عن علقمة بن أبي علقمه عن أمه مولاة عائشة أم المؤمنين أنها قالت كان النساء يبعثن إلى عائشة بالدرجة فيها الكرسف فيه الصفرة من دم الحيض يسألنها عن الصلاة فتقول لهن لا تعجلن حتى ترين القصة البيضاء، (حضرت علقمه بن ابی علقمه له خپلې مور څخه چې هغه د ام المؤمنين حضرت عايشې رَضِيَ اللهُ عَنْهَا آزاده سوې مينځه وه، روايت کوي چې ښځو به حضرت عايشې رَضِيَ اللهُ عَنْهَا ته کوچنۍ صندوخچې را استولې چې په هغه کې به د حيض په ژړو وينو رنګ سوې کېړې وې، دغه ښځو به د لمانځه په باره کې پوښتنه کوله، نو حضرت عايشې رَضِيَ اللهُ عَنْهَا به ورته فرمايل: تاسو تلوار مه کوئ، تر څو چې خالص سپينوالی مو ليدلی نه وي)، له دې حديث څخه هم ثابته سوه چې له سپين رنګ څخه ماسوا نور ټول رنګونه د حيض دي، او ښکاره خبره ده چې حضرت عايشې رَضِيَ اللهُ عَنْهَا چې به څه کوله يا څه به يې فرمايله هغه به يې له رسول الله ﷺ څخه اورېدلې وه.

**سوال:** خو که دا اعتراض وسي چي دا حديث: دم الحيض أسود غبيط محتدم پر دې دلالت کوي چي له تور رنګه څخه ماسوا هيڅ يو رنګ د حيض رنګ نه دی.

**جواب:** جواب دا دی چي دا حديث د تخصيص الشي بالذکر له قبيلې څخه دی او تخصيص الشي بالذکر د ما عدا نفي نه کوي.

**جواب:** له وفم الرحم منکوس څخه د امام ابو يوسف رَحِمَهُ الله د دليل جواب دی، خلاصه د جواب دا ده چي ستاسو دا وينا چي خړ رنګ له صفا رنګ څخه وروسته راځي مونږ منو خو په هغه وخت کي چي د لوښي په بيخ او تَلْ کي سوری نه وي، او که د لوښي په بيخ کي سوری وو نو اول به خړ رنګ راوځي، او بيا به صفا رنګ ښکاره کيږي، نو دلته هم دا صورت دی ځکه چي د رحم خوله چپه او سر کول کوني وي، او خوله يې کښته (لاندي خوا ته) وي، او د حيض له ورځو څخه ماسوا د رحم خوله بنده وي، نو کله چي د حيض په ورځو کي د رحم خوله خلاصه سي، نو تر ټولو مخکي خړه وينه را وځي، نو ځکه به د خړ رنګ وينه له رحم څخه نه شمارل صحيح نه وي.

**د شنه رنګ حکم:** د شنه رنګ وينو په باره کي صحيح قول دا دی چي که ښځه له ذوات الحيض څخه وي، يعني د داسي عمر وي چي حيض ورته راځي، نو دا د شنه رنګ وينه به د حيض وي، او دا شين رنګ به پر دې خبره حمل کيږي چي د دې په هضميت کي يو څه خرابي ده چي د هغه په وجه له دې څخه د شنه رنګ وينه راغله، او که ښځه سپين سرې (بوډۍ) وه، نو دا د حيض وينه نه ده، بلکي ويل کيږي به، چي دا وينه د رحم د خرابۍ له وجهي څخه راځي، ځکه چي په اصل کي د وينې رنګ شين نه وي.

**فايده:** د مختار قول مطابق د پنځه پنځوس (۵۵) کالو په عمر کي ښځه آيسه کيږي، او د بعضو په نيز د پنځوس (۵۰) کالو په عمر کي او د بعضو په نيز د اويا (۷۰) کالو په عمر کي.

**راجح قول:** په پورتنۍ مسئله کي راجح قول د طرفينو دی، قال العلامة ابن عابدين رَحِمَهُ الله انما حيض اى الکدرة من ذوات الاقراء دون الآيسة (رد المحتار ج: ، ص: ۲۱۱). [القول الراجح ج: ۱، ص: ۳۸]

## د حيض په حالت کي د لمانځه او روژې حکم

وَالْحَيْضُ يُسْقِطُ عَنِ الْحَائِضِ الصَّلَاةَ او حيض له حائضې ښځي څخه لمونځ ساقطوي وَيُحَرِّمُ عَلَيْهَا الصَّوْمَ او پر هغې روژه حراموي وَتَقْضِي الصَّوْمَ او حائضه ښځه به د روژې قضاء راوړي وَلَا تَقْضِي الصَّلَوَاتِ او د لمونځونو قضاء به نه راوړي لِقَوْلِ عَائِشَةَ رَضِيَ اللهُ عَنْهَا ځکه حضرت عايشې رَضِيَ اللهُ عَنْهَا فرمايلي دي كَانَتْ إِحْدَانَا عَلَى عَهْدِ● رَسُولِ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ إِذَا طَهُرَتْ مِنْ حَيْضِهَا چي په موږ کي به کله يوه ښځه د نبي ﷺ په زمانه کي حائضه سوه تَقْضِي الصِّيَامَ نو هغې به د روژو قضاء راوړل وَلَا تَقْضِي الصَّلَوَاتِ او د لمونځونو قضاء به يې نه راوړل وَلِأَنَّ فِي قَضَاءِ الصَّلَاةِ حَرَجًا لِتَضَاعُفِهَا او په دې وجه هم چي د لمونځونو د دوچنده کېدلو په وجه د هغو په قضاء راوړلو کي تکليف دی وَلَا حَرَجَ فِي قَضَاءِ الصَّوْمِ او د روژو په قضاء راوړلو کي څه تکليف نسته.

---

● تخريج: أخرجه الائمة الستة فى كتبهم والبخارى فى كتاب الحيض باب لا تقضى الحائض الصلاة، حديث رقم: ۳۲۱، و ابو داؤد فى كتاب الطهارة

**اللغات**: ﴿تَضَاعُف﴾ د تفاعل د باب مصدر دی: دو چنده کېدل، دوغبرګه کېدل.

**تشریح**: له دې ځايه د حيض احکام بيانيږي. په نهايه کې راغلي دي: چې د حيض دولس احکام دي، اته(۸) داسې دي چې په هغه کې حيض او نفاس مشترک دي، او څلور(۴) داسې دي چې د حيض سره خاص دي، له دغه اتو(۸) څخه يو لمونځ پريښوول او قضاء يې نه راوړل دي، بل د روژې پريښوول او قضاء يې راوړل دي، يعني له حائضې ښځې څخه لمونځ ساقطيږي او قضاء يې پر هغې نسته، او روژه ځنې ساقطيږي خو د روژې قضاء پر سته.

**نقلي دليل**: په دې باره کې نقلي دليل دا دی چې حضرت عائشه رَضِيَ اللهُ عَنْهَا فرمايي: کله چې به د نبي ﷺ په زمانه کې زموږ له أزواجِ مطهراتو څخه يوه له خپل حيض څخه پاکه سوه نو د لمونځونو قضاء به يې نه راوړله او د روژو قضاء به يې راوړله.

**عقلي دليل**: دا دی چې د لمونځونو په قضاء کې حرج سته، ځکه چې هغه دوچنده کيږي، او د روژو په قضاء کې هيڅ حرج نسته، د مثال په توګه که په ټوله کال کې له يوې ښځې څخه د حيض په وجه لس روژې پاته سي، نو په پاته يوولسو مياشتو کې به د هغو قضاء راوړي، او لمونځ داسې نه دی، ځکه چې روزانه پنځه لمونځونه فرض دي، نو که تر پاکوالي وروسته دا هره ورځ د پنځو لمونځونو قضاء راوړي، نو روزانه لس لمونځونه سوه. پنځه د قضاء او پنځه د اداء، نو دا ټول د دې لمونځونه دوچنده سوه، او دا مسئله (يعني حيض) په هره مياشت کې راځي، نو ښکاره خبره ده چې په دې کې سخت حرج او تکليف سته، او الله تعالىٰ له خپلو بندګانو څخه تکليف ليري کړی دی. فرمايي: وَمَا جَعَلَ عَلَيْكُمْ فِي الدِّينِ مِنْ حَرَجٍ (سورة الحج:۷۸)، نو ځکه به پر حائضه ښځې د لمونځونو قضاء نه وي.

## د جُنب او حائضې ښځې لپاره مسجد ته د داخلېدل جائز نه دي

**وَلَا تَدْخُلُ الْمَسْجِدَ** او حائضه ښځه به مسجد ته نه داخليږي وَكَذَا الْجُنُبُ او دغه ډول به جنب هم (مسجد ته نه داخليږي) لِقَوْلِهِ ● عَلَيْهِ الصَّلَاةُ وَالسَّلَامُ ځکه نبي ﷺ فرمايلي دي فَإِنِّي لَا أُحِلُّ الْمَسْجِدَ لِحَائِضٍ وَلَا جُنُبٍ زه د حائضې او جنب لپاره مسجد نه حلالوم وَهُوَ بِإِطْلَاقِهِ حُجَّةٌ عَلَى الشَّافِعِيِّ رَحِمَهُ اللهُ او دا حديث د خپل اطلاق په وجه د امام شافعي رَحِمَهُ الله په خلاف حجت دی فِي إِبَاحَةِ الدُّخُولِ عَلَى وَجْهِ الْعُبُورِ وَالْمُرُورِ د تګ او راتګ په توګه د داخلېدلو په روا کرځولو کې وَلَا تَطُوفُ بِالْبَيْتِ او حائضه ښځه به د کعبې طواف (هم) نه کوي لِأَنَّ الطَّوَافَ فِي الْمَسْجِدِ ځکه چې طواف(هم) په مسجد حرام کې کيږي وَلَا يَأْتِيهَا زَوْجُهَا او حائضې ښځې ته به خپل خاوند (هم) نه راځي لِقَوْلِهِ تَعَالَى: وَلَا تَقْرَبُوهُنَّ حَتَّى يَطْهُرْنَ [البقرة: ۲۲۲] ځکه الله جل جلاله فرمايلي دي: تاسو مه نږدې کېږئ حائضو ته تر دې چې هغوی پاکې سي.

**اللغات**: ﴿عُبُوْر﴾ د نصر د باب مصدر دی: پوري وتل، تجاوز کول. ﴿مُرُوْر﴾ د نصر د باب مصدر دی: تېرېدل. له عبور او مرور څخه دلته مراد په مسجد کې تېرېدل را تېرېدل او تګ و راتګ دی.

**تشریح**: په دې عبارت کې د حائضې ښځې په باره کې درې احکام بيان سوي دي:

---

● تخريج: أخرجه ابو داؤد في كتاب الطهارة باب في الجنب يدخل المسجد، حديث رقم: ۲۳۲.

(۱) **اول حکم** دا دی چې د حائضې ښځې لپاره مسجد ته داخلېدل جائز نه دي، او څرنګه چې د نه طهارت په حواله سره جنب هم د حائضې په معنیٰ دی، نو ځکه د ده لپاره هم مسجد ته داخلېدل جائز نه دي، او پر دې باندې دليل د نبي ﷺ دا فرمان دی: چې زه د حائضې او جنب لپاره مسجد نه حلالوم. نو د نبي ﷺ دا فرمان په دې سلسله کې واضح او ښکاره دليل دی چې د حائضې او جنب لپاره مسجد ته داخلېدل منع دي.

**د امام شافعي مسلک:** دا دی چې که څه هم د حائضې او جنب لپاره مسجد ته داخلېدل جائز نه دي خو بيا هم د تېرېدلو لپاره په مسجد کې د دوی داخلېدل جائز دي.

**د امام شافعي دليل:** د قرآن کريم دا يت دی: لَا تَقْرَبُوا الصَّلٰوةَ وَأَنْتُمْ سُكٰرٰى حَتّٰى تَعْلَمُوْا مَا تَقُوْلُوْنَ وَلَا جُنُبًا إِلَّا عَابِرِيْ سَبِيْلٍ حَتّٰى تَغْتَسِلُوْا (سورة النساء: ۴۳). (تاسو لمانځه ته د نشې په حالت کې مه نژدې کېږئ تر دې چې تاسو په هغه شي پوه سئ چې تاسو (يې) واياست او د جنابت په حالت کې هم، خو له مسافرانو څخه ماسوا، تر دې چې تاسو غسل وکړئ).

په دې يت آيت سره امام شافعي په دې توګه دليل نيسي چې په آيت کې له صلوٰة څخه مراد مکان صلوٰة (د لمانځه ځای) يعني مسجد دی، او د عابري سبيل معنیٰ د تېرېدلو ده، نو اس د آيت مطلب دا سو چې مسجد ته د جنب ور نژدې کېدل صحيح نه دي، خو که په مسجد کې تېر سو او نه ودرېدی نو په دې کې هيڅ حرج نسته. (او همدا حکم د حائضې ښځې دی، د شوافعو په نيز).

**جواب:** زموږ له طرفه د امام شافعي رَحِمَهُ الله د دليل جواب دا دی چې د مفسرينو په نيز دلته إلا په معنیٰ د ولا دی يعني جنب دي نه مسجد ته ور نژدې کيږي او نه دي د تېرېدلو په توګه مسجد ته داخليږي، دويم جواب دا دی چې له صلوة څخه مراد حقيقت د صلوة دی، او له عابري سبيل څخه مراد مسافران دي، نو اوس د آيت مطلب دا سو چې: "لمونځ نه د نشې په حالت کې کوئ او نه د جنابت په حالت کې" لېکن که جنب مسافر وو نو هغه تر غسل کولو مخکې په تيمم وهلو سره لمونځ کولای سي".

(۲) **دويم حکم:** په عبارت کې دويمه مسئله دا ده چې حائضه ښځه دې د کعبې شريفې طواف هم نه کوي، ځکه چې د بيت الله طواف هم په مسجد يعني په مسجد حرام کې کې کيږي، او د حائضې ښځې لپاره مسجد ته داخلېدل منع دي. نو طواف به هم منع وي، صاحب د عنايه ليکلي دي چې د حائضې ښځې لپاره مطلقاً طواف کول منع دي. هغه که په مسجد کې دننه وي، که دباندې وي، او د پاکي ښځې لپاره دننه او دباندې په دواړو ځايو کې طواف کول جائز دي، ځکه په حديث کې راځي چې: الطواف بالبيت صلاة (د کعبې طواف د لمانځه په څير دی). نو د حائضې لپاره نه په مسجد کې دننه لمونځ صحيح دی، او نه دباندې.

(۳) **دريم حکم:** په دې عبارت کې دريمه مسئله دا ده چې د حائضې ښځې سره دې کوروالی نه کوي، ځکه په آيت کې راځي: وَلَا تَقْرَبُوْهُنَّ حَتّٰى يَطْهُرْنَ. (يعني د حيض په حالت کې ښځو ته مه نژدې کيږئ تر دې چې هغوی پاکي سي). همدارنګه په حديث کې راغلي دي چې نبي ﷺ وفرمايل: اصنعوا کل شيئ إلا النکاح. (يعني د حيض په حالت کې پرته له جماع څخه هر کار کوئ)، په دې حديث کې له النکاح څخه جماع مراد ده.

## د حائضې او جنب لپاره د قرآن شريف د تلاوت حکم (او د يوه آيت د تلاوت کولو د جواز مسئله)

وَلَيْسَ لِلْحَائِضِ وَالْجُنُبِ وَالنُّفَسَاءِ قِرَاءَةُ الْقُرْآنِ او د حائضې، جنب او نفاسې لپاره د قرآن لوستل (هم) جائز نه دي لِقَوْلِهِ عَلَيْهِ الصَّلَاةُ وَالسَّلَامُ ځکه نبي ﷺ فرمايلي دي لَا تَقْرَأُ● الْحَائِضُ وَلَا الْجُنُبُ شَيْئًا مِنَ الْقُرْآنِ چې حائضه او جنب به له قرآن څخه هيڅ هم نه وايي وَهُوَ حُجَّةٌ عَلَى مَالِكٍ رَحِمَهُ اللهُ فِي الْحَائِضِ او دا حديث د حائضې ښځې په باره کې د امام مالک رَحِمَهُ الله په خلاف حجت دی وَهُوَ بِإِطْلَاقِهِ يَتَنَاوَلُ مَا دُونَ الْآيَةِ او دا حديث د خپل اطلاق په وجه له يوه آيت څخه کم ته هم شامل دی فَيَكُونُ حُجَّةً عَلَى الطَّحَاوِيِّ رَحِمَهُ اللهُ فِي إِبَاحَتِهِ نو ځکه به دا حديث د ما دون الآية په مباح کرځولو کې د امام طحاوي رَحِمَهُ الله په خلاف (هم) حجت وي.

**اللغات**: ﴿نُفَسَاء﴾ هغه ښځه چې د نفاس وينې ورته راځي، ﴿يَتَنَاوَلُ﴾ د تفاعل له باب څخه د مضارع صيغه ده: شاملېدل، ګډېدل.

**تشريح**: د حائضې، نفاسې او جنب لپاره د قرآن پاک لوستل جائز نه دي، نه د يو آيت لوستل جائز دي او نه له دې څخه کم، امام مالک رَحِمَهُ الله فرمايي چې د حائضې لپاره د قرآن لوستل جائز دي، او امام طحاوي رَحِمَهُ الله فرمايي چې له يوه آيت څخه د کم لوستل مباح دي.

**د امام طحاوي دليل**: دا دی چې د قرآن سره دوه حکمونه تعلق لري: يو قرائت د قرآن، يعني په قرائت بلندي د لمانځه جواز، دويم د حائضې او نورو لپاره د قرآن د لوستلو حرمت، بيا په اول حکم کې کوم چې د لمانځه د جواز سره متعلق دی، په هغه کې په يوه آيت او له آيت څخه په کم کې فصل او فرق سته، د يوه آيت په اندازه سره لمونځ جائز کيږي، او د يوه آيت له اندازې څخه په کم بلندي نه جائز کيږي، نو دغه رنګه په دويم حکم کې هم فصل او فرق کول پکار دي چې: د حائضې ښځې لپاره به د يوه آيت لوستل ناجائز وي، او له يوه آيت څخه د کم لوستل به جائز وي.

**د امام مالک دليل**: دا دی چې حائضه ښځه معذوره ده، او د قرآن پاک د تلاوت محتاجه ده، او د طهارت پر حاصلولو هم قدرت نه لري، نو د ضرورت په وجه د حائضې لپاره د قرآن تلاوت جائز دی، د دې په خلاف جنب دی، ځرنګه چې هغه د غسل يا تيمّم په ذريعه پاکي حاصلولای سي، نو د هغه لپاره به د قرآن تلاوت جائز نه وي، او ځرنګه چې نفاس کم واقع کيږي، نو ځکه به د نفاسې په حق کې هم د دغه ضرورت اعتبار نه کيږي.

**زموږ دليل**: دا حديث دی: لا تقرأ الحائض ولا الجنب شيئا من القرآن، او دا حديث د امام مالک رَحِمَهُ الله په خلاف هم حجت دی، ځکه چې دا حديث ښکاره حائضه ښځه د قرآن له تلاوت څخه منع کوي، نو د امام مالک رَحِمَهُ الله عقلي دليل د دې مقابله نه سي کولای، او ځرنګه چې حديث مطلق دی، نو يوه آيت او له آيت څخه کم دواړو ته شامل دی، لهذا د امام طحاوي رَحِمَهُ الله دا خبره چې يو آيت ناجائز او له يو آيت څخه کم جائز دی، صحيح نه ده. بلکې د حائضې لپاره به مطلقاً د قرآن تلاوت جائز نه وي.

● تخريج: أخرجه الترمذي في كتاب الطهارة، باب ما جاء في الجنب والحائض انهما لايقرآن القرآن، حديث رقم: ۱۳۱، و ابن ماجه في كتاب الطهارة باب ما جاء في قراءة القرآن على غير طهارة، حديث رقم: ۵۹۵.

## د ناپاک انسان لپاره د قرآن د مسه کولو حکم

وَلَيْسَ لَهُمْ مَسُّ الْمُصْحَفِ او د دوی لپاره د قرآن پاک مسه کول جائز نه دي (يعني د بې اودسه، جنب، حائضې او نفاسې لپاره) إِلَّا بِغِلَافِهِ مگر د خپل پوښ سره وَلَا أَخْذُ دِرْهَمٍ فِيهِ سُورَةٌ مِنَ الْقُرْآنِ او نه د داسې روپۍ اخيستل (جائز دي) چې په هغې کې د قرآن يو سورت وي إِلَّا بِصُرَّتِهِ مگر د خپلې تېلۍ (بټوې) سره وَكَذَا الْمُحْدِثُ لَا يَمَسُّ الْمُصْحَفَ إِلَّا بِغِلَافِهِ همدارنګه به بې اودسه هم له پوښ څخه بغير قرآن نه مسه کوي لِقَوْلِهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ ځکه نبي ﷺ فرمايلي دي لَا يَمَسُّ● الْقُرْآنَ إِلَّا طَاهِرٌ قرآن به صرف پاک انسان مسه کوي ثُمَّ الْحَدَثُ وَالْجَنَابَةُ حَلَّا الْيَدَ بيا حدث او جنابت دواړو په لاس کې حلول کړی دی فَيَسْتَوِيَانِ فِي حُكْمِ الْمَسِّ نو د مسه کولو په حکم کې به دواړه برابر وي وَالْجَنَابَةُ حَلَّتِ الْفَمَ او جنابت خولې ته حلول کړی دی دُونَ الْحَدَثِ نه حدث (يعني حدث خولې ته حلول کړی نه دی) فَيَفْتَرِقَانِ فِي حُكْمِ الْقِرَاءَةِ نو د قرآن د لوستلو په حکم کې به دواړه جلا وي وَغِلَافُهُ: مَا يَكُونُ مُتَجَافِيًا عَنْهُ او د قرآن پوښ هغه دی چې هغه له قرآن څخه جلا وي دُونَ مَا هُوَ مُتَّصِلٌ بِهِ نه هغه چې د قرآن سره موښتی وي كَالْجِلْدِ الْمُشَرَّزِ لکه هغه چرم (يا توکر) چې پر قرآن موښتې وي هُوَ الصَّحِيحُ همدا صحيح ده وَيُكْرَهُ مَسُّهُ بِالْكُمِّ او په لستوڼي سره د قرآن مسه کول مکروه دي هُوَ الصَّحِيحُ همدا صحيح ده لِأَنَّهُ تَابِعٌ لَهُ ځکه چې لستوڼی د مسه کوونکي تابع دی بِخِلَافِ كُتُبِ الشَّرْعِيَّةِ په خلاف د شرعي کتابونو لِأَهْلِهَا د شريعت والا وو لپاره حَيْثُ يُرَخَّصُ فِي مَسِّهَا بِالْكُمِّ نو په لستوڼو سره د هغو مسه کول جائز دي لِأَنَّ فِيهِ ضَرُورَةً ځکه چې په دې کې ضرورت دی وَلَا بَأْسَ بِدَفْعِ الْمُصْحَفِ إِلَى الصِّبْيَانِ او ماشومانو ته د قرآن په ور کولو کې څه پروا نشته لِأَنَّ فِي الْمَنْعِ تَضْيِيعَ حِفْظِ الْقُرْآنِ ځکه چې په منع کولو کې د قرآن د حفظ (يادولو) ضايع کول دي وَفِي الْأَمْرِ بِالتَّطْهِيرِ حَرَجًا بِهِمْ او (ماشومانو ته په هر وخت کې) د اودس حکم کول د دوی په حق کې تکليف دی وَهَذَا هُوَ الصَّحِيحُ صحيح قول هم دا دی.

**اللغات:** ﴿غلاف﴾ پوښ، هغه شی چې بل شی په پټ سي، سرپوښ، لفافه او داسې نور، ﴿صُرَّة﴾ تېلۍ، بټوه، هميانۍ، خلته، ﴿المتجافي﴾ جلا، ﴿المشرز﴾ په سرېښو سره موښتی، ترل سوی، ﴿كُمّ﴾ لستوڼی، دواړو لستوڼو ته کُمّین وايي.

**تشريح:** صاحب د کتاب د قرآن د تلاوت د حکم تر بيانولو وروسته دلته د قرآن د مسه کولو حکم بيانوي، چې تفصيل يې دا دی چې د حائضې، جنب، نفاسې او د بې اودسه انسان لپاره قرآن له خپل پوښ څخه بغير مسه کول او نيول صحيح نه دي، همدارنګه هر داسې شی له پوښ او کَوَر (COVER) څخه بغير نيول جائز نه دي چې په هغه کې د قرآن کريم يو

● تخريج: أخرجه الطبراني في المعجم الكبير، حديث رقم: ۱۳۲۵۱، ج:۱۲، ص:۳۱۲.

آیت یا سورت لیکل سوی وي. هغه که درهم وي یا یو بل شی وي، او پر دې باندې دلیل هغه حدیث دی کوم چې په کتاب کې ذکر سو، یعني: لایمس القرآن إلا طاهر.

ثم الحدث الخ صاحب د کتاب فرمایي: چې حدث او جنابت دواړه د قرآن د مسه کولو په حکم کې برابر دي، خو د قرآن د تلاوت په حکم کې دواړه جلا دي، ځکه چې د بې اودسه لپاره د قرآن تلاوت جائز دی، او د جنب لپاره جائز نه دی. وجه دا ده چې: حدث او جنابت دواړه په لاس کې سرایت کوي نو په دې وجه قرآن ته لاس وروړل جائز نه دي. خو حدث په خوله کې دننه سرایت نه کوي، همدا وجه ده چې په اودسه کې خوله پرېولل فرض نه دي. او جنابت په خوله کې سرایت کوي (نو ځکه په غسل کې د خولې پرېولل فرض دي) نو ځکه د بې اودسه لپاره تلاوت جائز او د جنب لپاره ناجائز دی.

وغلافه الخ صاحب د هدایې فرمایي: چې پوښ هغه دی چې له قرآن څخه جلا وي یعني د ماس (مسه کونکي) او ممسوس (مسه کړی سوي) په مینځ کې واسطه وي. او د قرآن سره متصل او موښتی نه وي لکه مشرز (یعني لکه هغه چمړه، یا پوست یا ټوکر چې په سرینبو د کتاب سره موښتی وي). حاصل دا چې له غلاف څخه مراد د قرآن پاک پوښ دی (یعني هغه بستره چې خلک قرآن پکښې پیچي او پټوي یې).

صاحب د نقایې فرمایي: چې د پوښ په مصداق کې د عالمانو اختلاف دی: بعضو فرمایلي دي چې پوښ هغه دی چې د قرآن سره متصل یعني په سرینبو موښتی وي. او بعضو فرمایلي دي چې لستوڼی مراد دی. او بعضو فرمایلي دي چې له پوښ څخه مراد هغه بستره او تیلۍ (پوښ) دی چې قرآن پکښې ایښول کیږي، دا قول زیات صحیح دی، ځکه چې سرینبو سوی پوښ خو د قرآن تابع دی، او لستوڼی د مسه کونکي تابع دی، او پوښ په دې دواړو کې د یوه هم تابع نه دی.

بخلاف کتب الشریعة الخ لیکن د علماؤ، او د هغو خلکو لپاره چې د دیني احکامو او مسائلو سره تعلق لري په لستوڼي سره شرعي او دیني کتابونه مسح کول او را پورته کول جائز دي، ځکه که څه هم په دې کتابو کې د قرآن پاک آیاتونه لیکل سوي دي، خو د ډېر مصروفیت په وجه دې حضراتو ته بار بار اودس کول تکلیف او حرج دی. نو د دفع حرج لپاره دوی ته په لستوڼي یا داسې بل ټوکر سره د دیني کتابونو مسح کول جائز او روا دي.

ولا بأس الخ بې اودسه کوچنیانو ته د قرآن په ورکولو کې څه پروا نسته، ځکه که کوچنیانو ته د دې اجازه ور نه کړل سي. نو دوه صورتونه به وي: یا خو به دوی ګرد سره د قرآن پاک له حفظ او لوستلو څخه منع کیږي، او یا به ورته د اودس کولو حکم کیږي. په اول کې د قرآن پاک ضایع کېدل راځي، او په دویم صورت کې کوچنیان په مشقت او حرج کې مبتلا کیږي، حال دا چې په شریعت کې له بالغه او غټو خلکو څخه حرج لیرې سوی دی. نو له کوچنیانو څخه خو به په طریقه اولیٰ لیرې وي.

## که تر لسو ورځو مخکې حیض ختم سو نو تر غسل مخکې د جماع حکم

وَإِذَا انْقَطَعَ دَمُ الْحَيْضِ لِأَقَلَّ مِنْ عَشَرَةِ أَيَّامٍ او کله چې د حیض وینه د لسو ورځو څخه په کمه موده کې بنده سي لَمْ تَحِلَّ وَطْؤُهَا حَتَّى تَغْتَسِلَ نو تر غسل کولو مخکې د ښځې سره جماع کول حلال نه دي لِأَنَّ الدَّمَ يَدِرُّ تَارَةً ځکه چې وینه کله جاري کیږي وَيَنْقَطِعُ أُخْرَى او کله بندیږي فَلَا بُدَّ مِنَ الْاِغْتِسَالِ نو غسل کول ضروري دي لِيَتَرَجَّحَ جَانِبُ الْاِنْقِطَاعِ چې د بندېدلو اړخ راجح سي وَلَوْ لَمْ تَغْتَسِلْ وَمَضَى عَلَيْهَا أَدْنَى وَقْتِ الصَّلَاةِ او که ښځې غسل ونه کړی او پر

دي د لمانځه لږ وخت تېر سو بِقَدْرِ أَنْ تَقْدِرَ عَلَى الْإِغْتِسَالِ وَالتَّحْرِيْمَةِ په دې اندازه چي هغې پر غسل کولو او د تکبير تحريمه پر ترلو قدرت پيدا کړی حَلَّ وَطْؤُهَا نو د هغې سره جماع کول جائز سو لِأَنَّ الصَّلَاةَ صَارَتْ دَيْنًا فِي ذِمَّتِهَا ځکه چي لمونځ د هغې پر ذمه پور (او فرض) سو فَطَهُرَتْ حُكْمًا نو ګواکي دا حکما پاکه سوه.

**اللغات:** ﴿يقدر﴾ د نصر د باب مضارع صيغه ده: بهيدل. ﴿دَيْن﴾ پور. قرض.

**تشريح:** که د عادت مطابق د لسو ورځو څخه په کمه موده کي وينه ودرېدله. نو وطي کول جائز نه دي. تر دې چي دغه ښځه غسل وکړي.

**دليل:** دا دی چي د اکثره مودې تر تېرېدلو مخکي چي کومه وينه بنديږي هغه کله کله جاري کيږي هم. نو د بندېدلو اړخ ته په ترجيح ورکولو سره غسل کول ضروري دي.

ولولم تغتسل الخ او که دې ښځي تر ويني بندېدلو وروسته غسل ونه کړی، او دومره لږ وخت تېر سو چي په هغه وخت کي دې غسل کولای سو او تکبير تحريمه يې ترلی سوه، نو اوس وطي ور سره کول حلال دي، ځکه چي دا لمونځ د دې په حق کي قضا سو، نو ګواکي دا لمونځ د دې پر غاړه پور سو. ځکه چي شريعت دا حکماً پاکه وګرځوله. نو په دې وجه لمونځ د دې پر غاړه پور سو، او زموږ شريعت داسي نه سي کولای چي خپل حق دي ثابت کړي (چي هغه لمونځ دی). او د بندګانو حق دي ختم کړي (چي هغه جماع ده). لهذا دا ښځه حکماً پاکه ده. نو کله چي پاکه نو جماع هم ور سره جائز ده.

## که تر عادت مخکي يا وروسته حيض ختم سو نو د جماع حکم

وَلَوْكَانَ انْقَطَعَ الدَّمُ دُوْنَ عَادَتِهَا فَوْقَ الثَّلَاثِ او که وينه د ښځي د عادت (له ورځو) څخه په کمه موده کي او له درېو ورځو څخه په زياته موده کي بنده سوه لَمْ يَقْرَبْهَا حَتّٰى تَمْضِيَ عَادَتُهَا نو خاوند به د ښځي سره جماع نه کوي تر دې چي د عادت (ورځي) يې پوره سي وَإِنِ اغْتَسَلَتْ که څه هم دا غسل وکړي لِأَنَّ الْعَوْدَ فِي الْعَادَةِ غَالِبٌ ځکه چي د عادت په دوارن کي دويني راګرځېدل غالب دي فَكَانَ الْاِحْتِيَاطُ فِي الْاِجْتِنَابِ نو احتياط په ځان ژغورلو کي دی وَإِنِ انْقَطَعَ الدَّمُ لِعَشَرَةِ أَيَّامٍ او که په لسمه ورځ وينه بنده سوه، حَلَّ وَطْؤُهَا قَبْلَ الْغُسْلِ نو تر غسل مخکي (هم) وطي ور سره کول حلال دي لِأَنَّ الْحَيْضَ لَا مَزِيْدَ لَهُ عَلَى الْعَشَرَةِ ځکه چي حيض تر لسو ورځو نه زياتيږي إِلَّا أَنَّهُ لَا يُسْتَحَبُّ قَبْلَ الْاِغْتِسَالِ لېکن تر غسل مخکي وطي کول مستحب (ښه) نه دي لِلنَّهْيِ فِي الْقِرَاءَةِ بِالتَّشْدِيْدِ د هغه نهي (منعي) په وجه کوم چي په قرائت بالتشديد (يطّهّرن) کي راغلي دي.

**تشريح:** صورت د مسئلي: دا دی چي که وينه تر درې ورځو وروسته او له عادت څخه مخکي ودرېدله. د مثال په توګه عادت يې اووه ورځي وو او وينه په پنځمه ورځ ودرېدله، نو په داسي صورت کي د داسي ښځي سره وطي کول جائز نه دي، تر دې چي عادت يې پوره سي، که څه هم دا غسل وکړي، ځکه چي د عادت په ورځو کي زياتره وخت وينه بېرته راځي، نو احتياط هم په دې کي دی چي له وطي څخه ځان وساتي.

او که لس ورځې پوره سوې او بيا وينه ودرېدله، نو په دې صورت کې له غسل څخه بغير هم وطي کول جائز دي، ځکه چې لس ورځې د حيض زياته موده ده، او دا خبره تسليم سوې ده چې اول خو به وينه نه راځي، او که راسي هم نو هغه وينه به د استحاضې (يعني د مرض) وي، او په دواړو صورتونو کې د وطي مانع نسته، نو ځکه اوس وطي کول روا دي، لېکن بيا هم د پاکوالي او سپېڅلتيا تقاضا دا ده چې په دې صورت کې دي هم تر غسل کولو وروسته وطي ورسره وسي، ځکه په دې باره کې چې کوم آيت راغلی دی يعني: وَلَا تَقْرَبُوهُنَّ حَتّٰى يَطْهُرْنَ [سورة البقرة:۲۲۲] (د ښځو سره د حيض په ورځو کې جماع مه کوئ تر څو چې هغوی پاکې سي) په دې آيت کې يَطْهُرْنَ د يوه قرائت مطابق په تشديد سره ويل سوی دی، او د مشدد ويلو په صورت کې به يې مطلب دا وي چې تر کومه وخته ښځې په ښه توګه سره پاکې نه سي، تلسو د هغو سره جماع مه کوئ، او د ښه پاکېدلو مطلب همدغه دی چې تر وينو درېدلو وروسته ښځه غسل وکړي او ځان پاک کړي.

## د طُهرِ مُتخلل حکم

وَالطُّهْرُ إِذَا تَخَلَّلَ بَيْنَ الدَّمَيْنِ او هغه طهر کوم چې د دوو وينو په مينځ کې واقع سي فِي مُدَّةِ الْحَيْضِ د حيض په موده کې فَهُوَ كَالدَّمِ الْمُتَوَالِي نو هغه (هم) د پرلپسې (مسلسله) وينو په ډول دی قَالَ رض: هٰذِهِ إِحْدَى الرِّوَايَاتِ عَنْ أَبِي حَنِيفَةَ رَحِمَهُ اللهُ مصنف رَحِمَهُ الله فرمايي: چې دا د امام ابو حنيفه رَحِمَهُ الله له روايتونو څخه يو روايت دی وَوَجْهُهُ أَنَّ اسْتِيعَابَ الدَّمِ مُدَّةَ الْحَيْضِ لَيْسَ بِشَرْطٍ بِالْإِجْمَاعِ او د دې وجه (او دليل) دا دی چې دا شرط نه ده چې وينه دې د حيض ټوله موده ونيسي فَيُعْتَبَرُ أَوَّلُهُ وَآخِرُهُ نو د دې اول او آخر به معتبر وي كَالنِّصَابِ فِي بَابِ الزَّكَاةِ لکه نصاب د زکوة په باب کې وَعَنْ أَبِي يُوسُفَ رَحِمَهُ اللهُ وَهُوَ رِوَايَةٌ عَنْ أَبِي حَنِيفَةَ رَحِمَهُ اللهُ وَقِيلَ: ●هُوَ آخِرُ أَقْوَالِهِ او له امام ابو يوسف رَحِمَهُ الله څخه روايت دی او دا د امام ابو حنيفه رَحِمَهُ الله يو روايت هم دی او ويل سوي دي: چې دا د امام ابو حنيفه رَحِمَهُ الله آخر قول دی أَنَّ الطُّهْرَ إِذَا كَانَ أَقَلَّ مِنْ خَمْسَةَ عَشَرَ يَوْمًا چې که د طهر موده تر پنځلس ورځو کمه وي لَا يَفْصِلُ نو هغه به فاصل نه وي وَهُوَ كُلُّهُ كَالدَّمِ الْمُتَوَالِي او د طهر دا ټوله موده به د پرلپسې راتلونکي وينې په ډول وي لِأَنَّهُ طُهْرٌ فَاسِدٌ ځکه چې هغه طهر فاسد دی فَيَكُونُ بِمَنْزِلَةِ الدَّمِ نو د وينې په حکم کې به وي وَالْأَخْذُ بِهٰذَا الْقَوْلِ أَيْسَرُ او په دې قول عمل کول ډېر آسانه دی وَتَمَامُهُ يُعْرَفُ فِي كِتَابِ الْحَيْضِ او د دې پوره تفصيل به (د امام محمد رَحِمَهُ الله د مبسوط) په کتاب الحيض کې (تاته) معلوم سي (يعني که نور تفصيل غواړې نو "مبسوط" وګوره).

**اللغات:** ﴿مُتخلِّل﴾ د دوو شيانو تر مينځ جلا کونکي او بېلوونکې شی، ﴿طُهرِ مُتخلِّل﴾ د حيض د دوو وينو په مينځ کې چې کله وينه بنده سي نو دې ته طهر متخلل وايي، ﴿مُتَوالي﴾ پرله پسې، مسلسل.

**تشريح:** د عبارت تر حل مخکې په دې خبره پوه سئ چې طُهر بظم الطاء هغه مودې ته ويل کيږي چې د دوو (۲) وينو په مينځ کې فاصل (جلاکونکې) وي، او بيا دلته له طهر څخه مراد طهر کامل دی، چې د هغه کمه (اقله) موده پنځلس

---

● القول الراجح: هو رواية ابی یوسف رَحِمَهُ الله كذا فی رد المحتار ج:۱، ص:۲۱۲، وفتح القدير ج:۱، ص:۱۵۳. [القول الراجح، ج:۱، ص:۳۹]

ورځي ده، د دې په مقابله کي هغه طهر کوم چي له پنځلسو ورځو څخه د کمي مودې لپاره فاصل وي هغه ته طهر فاسد او طهر ناقص وايي.

د عبارت مطلب دا دی چي که طهر له پنځلسو ورځو څخه د کمي مودې لپاره د دوو حيضونو په مينځ کي فاصل جوړ سو نو دا طهر، فاصل طهر نه دی، بلکي د مخکي او شا والا ټوله موده به د حيض وي، د مثال په توګه که يوه ښځه مبتدأة وي (يعني هغه نجلۍ چي اول واريې د حيضويني راغلي وي، نو که ) هغې يوه ورځويني وليدلې، بيا اته ورځي ويني بندي وې، تر دې وروسته په لسمه ورځ بيا ويني ښکاره سوې نو اوس د دې په حق کي ټوله لس ورځي د حيض ورځي شمارل کيږي، ځکه چي دلته ويني د حيض د شروع په موده او په آخره موده کي سته، او د يوه امام په نيز هم د حيض په موده کي د پرله پسې وينو راتلل شرط نه دي، نو څرنګه چي د زکاة د وجوب لپاره ټوله کال د نصاب مالک کېدل شرط نه دي، (بلکي که يو سړی د کال په شروع او آخر کي د نصاب مالک وو نو پر هغه زکاة فرض دی) همدارنګه په دې مسئله کي هم د حيض په اوله او آخره موده کي د وينو وجود کافي دی، او د حيض په ټوله موده کي د وينو راتلل او وجود ضروري نه دي.

**د امام ابو يوسف روايت** : وعن أبي يوسف ...الخ په دې لړ کي له اما ابو يوسف رَحِمَهُ الله څخه يو روايت دا دی چي له پنځلس ورځو څخه د کمي مودې والا طهر، فاصل طهر نه دی، بلکي دې ته به فاسد او ناقص طهر ويل کيږي، د دې مثال صاحب د عنايه دا بيان کړی دی چي يوه ښځه داسي وي چي هغې ته د عادت مطابق د هري مياشيت په اولو پنځو ورځو کي حيض راځي، لېکن يو وار د مياشتي له اولي ورځي څخه يوه ورځ مخکي دې ته حيض راسي او تر دې وروسته د مياشتي له اولي ورځي څخه تر پنځمي ورځي پوري دا پاکه وي، او شپږمه ورځ بيا ويني راسي، او دا ويني تر لسو ورځو واوړي نو په دې صورت کي پنځه ورځي کومي چي د طهر متخلل دي هغه ټوله حيض شمارل کيږي، ځکه چي دا طهرِ ناقص او فاسد طهر دی، ځکه چي دا تر پنځلس ورځو کم دی.

صاحب د هدايې فرمايي چي دا له امام صاحب څخه دويم روايت هم دی او يو قول دا دی: چي دا د امام صاحب رَحِمَهُ الله آخري روايت دی، او د مفتي او مستفتي د آسانتيا په خاطر پر دغه قول فتویٰ هم ده، که څه هم په دې لړ کي له امام صاحب رَحِمَهُ الله څخه نور قولونه هم روايت سوي دي، خو له ټولو څخه غوره او آسانه قول همدغه دی، نو ځکه دا په ښه توګه سره په ذهن کي ونيسئ، او په نورو قولونو کي د ځان بوختولو کوښښ مه کوئ، خو که تاسو نور تفصيل غواړئ نو په دې لړ کي د امام محمد رَحِمَهُ الله په مبسوط کي کتاب الحيض مطالعه کړئ!.

**راجح قول:** په پورتنۍ مسئله کي راجح قول د امام ابو يوسف رَحِمَهُ الله روايت دی، ځکه چي په دې کي آساني ده لکه اوس چي ذکر سوه، قال العلامه ابن الهمام رَحِمَهُ الله: و روی ابو يوسف رَحِمَهُ الله عنه وبه أخذ ان الطهر اذا كان اقل من خمسة عشر يوما لايفصل. وقيل هو آخر قول ابي حنيفة رَحِمَهُ الله وعليه الفتوى. (فتح القدير ج:۱. ص:۱۵۳) [القول الراجح ج:۱. ص:۳۹]

## د طهر کمه موده

**وَأَقَلُّ الطُّهْرِ خَمْسَةَ عَشَرَ يَوْمًا** او د طهر کمه موده پنځلس ورځي ده **هَكَذَا نُقِلَ عَنْ إِبْرَاهِيمَ النَّخَعِيِّ رَحِمَهُ اللهُ** همدارنګه له ابراهيم نخعي رَحِمَهُ الله څخه را نقل سوي دي **وَأَنَّهُ لَا يُعْرَفُ إِلَّا تَوْقِيفًا** او دا موده له توقيف څخه پرته نه سي معلومېدلای (يعني صرف د شريعت له طرفه معلومېدلای سي، نه د خپل ځان له طرفه) **وَلَا غَايَةَ لِأَكْثَرِهِ** او د اکثري مودې هيڅ

غايت(اندازه) نشته لِأَنَّهُ يَمْتَدُّ إِلَى سَنَةٍ وَسَنَتَيْنِ ځکه چي (کله نا کله) طهر تر يوه او دوو کالو پوري (هم) اوږديږي فَلَا يَتَقَدَّرُ بِتَقْدِيرٍ إِلَّا إِذَا اسْتَمَرَّ بِهَا الدَّمُ نو په يو(معلوم) مقدار سره به نه اندازه کيږي تر څو چي جاري وينې را نه سي(يعني تر څو چي جاري ويني را نه سي تر هغه وخته دې په باره کي يوه معلومه خبره نه سي کېدلای) يُعْرَفُ ذٰلِكَ فِي كِتَابِ الْحَيْضِ دا مسئله به (د امام محمد رَحِمَهُ الله) له کتاب الحيض څخه (تاته) معلومه سي.

**اللغات:** ﴿تَوْقِيف﴾ علم ورکول، خبرول، سماعي کېدل، د رسول ﷺ اطلاع، د شريعت اطلاع، ﴿يَمْتَدُّ﴾ د افتعال د باب مضارع صيغه ده: اوږدېدل، غوړېدل، زياتېدل.

**تشريح: صورت د مسئلې:** دا دی چي د طهر کمه موده پنځلس ورځي ده، له مشهوره تابعي حضرت ابراهيم نخعي رَحِمَهُ الله څخه همدغه موده را نقل سوې ده، او څرنګه چي دا مسئله د مقدار او اندازې سره تعلق لري، نو ځکه به د نورو مقاديرو په ډول پر سماع موقوف وي، او له سماع څخه به د هغه تعيين کيږي، نو د دې تعيين هم په سماع سره سوی دی، ځکه چي ابراهيم نخعي رَحِمَهُ الله يو تابعي دی، هغه به دا مقدار له يو صحابي څخه اورېدلی وي، او صحابي به له نبي کريم ﷺ څخه اورېدلی وي، ځکه چي د مقاديرو په لړ کي عقل او قياس لره هيڅ دخل نشته.

ولا غاية لأكثره الخ فرمايي چي د طهر اکثره مودې لره هيڅ غايت او انتها نشته، ځکه چي کله نا کله د طهر زمانه تر يوه يا دوو کالو پوري هم رسيږي، نو په دې صورت کي د طهر د اکثره مودې تعيين کول ستونزمن دي، نو د داسي ښځو لپاره حکم دا دی چي تر کومه وخته پاکي وي لمونځونه او نور عبادتونه دي کوي، او بيا چي کله په استمرار او تسلسل (پرله پسې توب) سره ويني شروع سي، نو له يو عالم څخه دي پوښتنه وکړي، ځکه چي د وينو د استمرار په صورت کي د طهر يوه اندازه معلومول ضروري دي.

په دې ځای کي صاحب د عنايه يو مثال دا بيان کړی دی چي که يو ښځي ته اول وار د حيض ويني راغلې، او تر لسو ورځو پوري راتلې، تر دې وروسته يو يا دوه کاله بندي سوې، بيا ويني شروع سوې، نو په دې صورت کي د دې ښځي لپاره حکم دا دی چي اولي کومي لس ورځي ويني راغلي وې، هغه به د حيض زمانه وي، او تر دې وروسته چي کوم يو کال يا دوه کاله وينه بنده سوه هغه به د طهر زمانه وي، او بيا چي دوباره کله ويني شروع سوې نو د هري مياشتي له شروع څخه به لس ورځي، يا چي کله هم ويني راسي تر هغه وروسته به لس ورځي د حيض وي او پاته شل ورځي به د طهر وي.

صاحب د هدايې رَحِمَهُ الله فرمايي چي په دې مسئله کي نور هم ډېر قولونه سته چي هغه د امام محمد رَحِمَهُ الله په کتاب الحيض کي په پوره توګه ذکر سوي دي.

## د استحاضې د وينو حکم

وَدَمُ الإِسْتِحَاضَةِ كَالرُّعَافِ او د استحاضې وينه د پزي د وينې په ډول ده لَا يَمْنَعُ الصَّوْمَ وَلَا الصَّلَاةَ وَلَا الْوَطْءَ نه روژه منع کوي او نه لمونځ او نه وطي لِقَوْلِهِ عَلَيْهِ الصَّلَاةُ وَالسَّلَامُ• ځکه نبي ﷺ فرمايلي دي تَوَضَّئِيْ وَصَلِّيْ اودس کوه او لمونځ

• تخريج: أخرجه ابن ماجه في كتاب الطهارة، باب ما جاء في المستحاضة، حديث رقم: ۶۲۴.

کوه **وَإِنْ قَطَرَ الدَّمُ عَلَى الْحَصِيرِ** که څه هم وینه پر سترنجي باندې را وڅڅيږي **وَلَمَّا عُرِفَ حُكْمُ الصَّلَاةِ** او کله چې د لمانځه حکم معلوم سو **ثَبَتَ حُكْمُ الصَّوْمِ وَالْوَطْءِ بِنَتِيجَةِ الْإِجْمَاعِ** نو د روژې او وطي حکم په نتيجه د اجماع سره ثابت سو.

**اللغات:** ﴿رُعاف﴾ پزه وینې کېدل، هغه وینه چې له پزي څخه د ناروغی په وجه رالوځي، ﴿حصير﴾ چټايي، سترنجي.

**تشريح:** د استحاضې وینه د پزې د وینې په څیر ده، یعني څرنګه چې د پزې وینې له رګ څخه راځي، همدغه رنګه د استحاضې وینې هم له رګ څخه راځي، نو د پزې د وینې په بول د استحاضې وینه هم د لمانځه. روژې او وطي لپاره مانع نه ده.

**دليل:** هغه حديث دی کوم چې ابن ماجه له أم المؤمنين رضي الله عنها څخه را نقل کړی دی، پوره حديث دا دی: عن عائشه قالت جاءت فاطمة بن أبي حبيش إلى النبي ﷺ فقالت إني إمرأة استحيض فلا أطهر أفأدع الصلاة فقال ﷺ لا إجتنبي الصلاة أيام محيضك ثم اغتسلي و توضئي لكل صلاة ثم صلي وإن قطر الدم على الحصير. (أم المؤمنين حضرت عائشه رضي الله عنها فرمايي چې فاطمه بن ابی حبيش نبي ﷺ ته راغله او ويې ويل: زه استحاضه ښځه يم، د همېشه لپاره وينې را څخه رواني وي، آيا زه لمونځ پرېږدم؟ نبي ﷺ ورته وفرمايل نه! بلکي د حيض په ورځو کي لمونځ پرېږده، او بيا غسل کوه، او د هر لمانځه لپاره اودس کوه. او بيا لمونځ کوه، که څه هم وينه پر چټايي باندې را وڅڅيږي).

ولما عرف الخ صاحب د هدايې فرمايي کله چې له دې حديث څخه د لمانځه حکم ثابت سو نو د روژې او وطي حکم په نتيجه د اجماع سره ثابت سو، يعني د وينې راتلل د لمانځه منافي دي نو برسېره پر دې د استحاضې وينې له لمانځه څخه مانع نه دي، او کله چې د استحاضې وينې له لمانځه څخه مانع نه دي نو له روژې او وطي څخه خو به په طريقه اولى مانع نه وي.

## له لسو ورځو څخه د زيات حيض راتللو حکم

**وَلَوْ زَادَ الدَّمُ عَلَى عَشَرَةِ أَيَّامٍ** او که (د يوې ښځې) وينه تر لسو ورځو زياته سي **وَلَهَا عَادَةٌ مَعْرُوفَةٌ دُونَهَا** حال دا چې د هغې ښځې عادت مشهوره (او) تر لسو ورځو کم وي **رُدَّتْ إِلَى أَيَّامِ عَادَتِهَا** نو دا به د خپل عادت ورځو ته ګرځول کيږي **وَالَّذِي زَادَ اسْتِحَاضَةٌ** او کومې ورځې چې د دې تر عادت زياتي سي هغه به استحاضه وي **لِقَوْلِهِ عَلَيْهِ الصَّلَاةُ وَالسَّلَامُ**● ځکه نبي ﷺ فرمايلي دي **الْمُسْتَحَاضَةُ تَدَعُ الصَّلَاةَ أَيَّامَ أَقْرَائِهَا** مستحاضه به د عادت په ورځو کي لمونځ پرېږدي **وَلِأَنَّ الزَّائِدَ عَلَى الْعَادَةِ يُجَانِسُ مَا زَادَ عَلَى الْعَشَرَةِ** او په دې وجه (هم) چې پر عادت زياتې سوې وينې د هغو وينو سره مناسب دي چې هغه تر لسو ورځو زياتي سي **فَيُلْحَقُ بِهِ** نو ځکه به د هغو سره ملحق کيږي **وَإِنِ ابْتَدَأَتْ مَعَ الْبُلُوغِ مُسْتَحَاضَةً** او که (يوه ښځه) تر بلوغت وروسته له شروع څخه مستحاضه سوه **فَحَيْضُهَا عَشَرَةُ أَيَّامٍ مِنْ كُلِّ شَهْرٍ** نو د هغې حيض به په هره مياشت کي لس ورځي وي **وَالْبَاقِي اسْتِحَاضَةٌ** او پاته به استحاضه وي **لِأَنَّا عَرَفْنَاهُ**

---

● تخريج: أخرجه ابو داؤد في كتاب الطهارة، باب من قال تغتسل من طهر الى طهر، حديث رقم: ۲۹۷، والترمذي في كتاب الطهارة، باب ما جاء في المستحاضة تتوضأ لكل صلاة، حديث رقم:۱۲۶.

حَيْضًا ځکه چې تر لسو ورځو پورې راتلونکې وينه مو ږ د حيض په توګه پېژندلې ده فَلَا يَخْرُجُ عَنْهُ بِالشَّكِّ نو د شک په وجه به له دې لسو ورځو څخه نه ايستل کيږي وَاللهُ أَعْلَمُ او الله ښه خبر دی.

**اللغات:** ﴿تَلْزَمُ﴾ د فتح له باب څخه د واحد مؤنث غائب مضارع صيغه ده: پرېښول. ﴿يُجَاوِزُ﴾ د مفاعلې له باب څخه د واحد مذکر غائب مضارع صيغه ده: له يوه جنسه کېدل، مجازاً: يو ډول کېدل، مناسب کېدل.

**تشريح:** **صورت د مسئلې:** دا دی که د يوې ښځې په مياشت کې تر اوو(۷) ورځو پورې د وينو راتللو عادت وو، لېکن په يوه مياشت کې يې عادت بدل سو، او له اوو ورځو څخه زياتې وينې راغلې، او تر لسو ورځو وروسته هم را روانې وې، نو په دې صورت کې چې د دې کوم د اوو(۷) ورځو عادت وو هغه به حيض منل کيږي، او ما بقي (پاته وخت) به استحاضه شمېرل کيږي.

**نقلي دليل:** هغه حديث دی کوم چې په کتاب کې ذکر سو يعني: المستحاضة تدع الصلاة أيام أقرانها، او په دې حديث سره دليل په دې توګه نيول کيږي چې په حديث کې له أيام أقراء څخه مراد د عادت ورځې دي، او څرنګه چې په دې ورځو کې د دې لپاره د لمانځه نه کولو حکم راغلی دی، نو له دې څخه دا معلوميږي چې په دې مسئله کې د مستحاضې ښځې د عادت ورځې د حيض ورځې دي، ځکه چې د حيض په ورځو کې لمونځ نه کيږي.

**عقلي دليل:** دا دی چې د عادت له ورځو څخه زياتې وينې د هغو وينو سره مناسب او هم جنسه دي کومي چې تر لسو ورځو زياتې راسي، او تر لسو ورځو زياتې راتلونکې وينې په اتفاق سره د استحاضې وينې دي، نو ځکه د عادت تر ورځو زياتې وينې به هم د استحاضې وينې وي، او د حيض وينې به هغه وي کومي چې د عادت په ورځو کې راغلي وي.

وإن ابتدأت الخ د دې حاصل دا دی چې که ښځه داسي وه چې مخکي يې حيض نه وو راغلی، بلکي په اول وار حائضه سوه، او هم له دې حيض څخه مستحاضه سوه، نو په هره مياشت کې به د دې لس ورځې د حيض وي، او پاته به استحاضه وي، ځکه که پر لسو ورځو د دې وينه درېدلای نو دا ټوله لس ورځې به يقيناً د حيض وای، خو هر کله چې تر لسو ورځو زياته سوه، نو په دې کې شک راغلی، چې تر دريو ورځو به زيات حيض وي که استحاضه، نو يقيني شی د شک په وجه سره نه زائليږي، ځکه چې د فقهې مشهوره قاعده ده: اليقين لا يزول بالشك، نو ښځې ته به دا ويل کيږي چې لس ورځې د دې په حق کې د حيض دي او پاته ورځې د استحاضې دي. والله أعلم



# فَصْلٌ أَيْ هٰذَا فَصْلٌ فِيْ بَيَانِ أَحْكَامِ الْإِسْتِحَاضَةِ

## (دا) فصل د استحاضې د احکامو په بیان کې دی

**تشریح:** څرنګه چې حيض د استحاضې او نفاس په مقابله کې زيات پيښيږي، نو ځکه يې هغه مخکې بيان کړی. اوس د استحاضې احکام بيانوي، او استحاضه يې په دې وجه تر نفاس مخکې کړل، ځکه د نفاس په نسبت د اسبابو د ډېرښت په اعتبار سره استحاضه زياته واقع کيږي، ځکه چې ښځه کله په دې وجه مستحاضه وي، چې په حالت د حمل کې يې ويني ليدلې وي، او کله په دې وجه چې تر عادت يا تر لسو ورځو ويني زياتې سوې وي، او کله په دې وجه چې ويني تر درې ورځو کمې راغلې وي، او داسې نور، د دې په خلاف د نفاس صرف يو سبب دی. يعنې د کوچني زېږېدنه.

### مستحاضه ښځه، سلسل بول والا، هغه چې پزه يې همېشه وينې کوي او د داسې نورو لپاره د اودس حکم

وَالْمُسْتَحَاضَةُ وَمَنْ بِهِ سَلَسُ الْبَوْلِ مستحاضه ښځه او کوم سړی چې د سلسل بول په مرض مبتلا وي وَالرُّعَافُ الدَّائِمُ وَالْجُرْحُ الَّذِيْ لَا يَرْقَأُ او د چا چې پزه هر وخت وينه کوي او هغه زخم چې جوړيږي نه يَتَوَضَّئُوْنَ لِوَقْتِ كُلِّ صَلَاةٍ نو دا خلک به د هر لمانځه د وخت لپاره اودس کوي فَيُصَلُّوْنَ بِذٰلِكَ الْوُضُوْءِ فِي الْوَقْتِ مَا شَاءُوْا مِنَ الْفَرَائِضِ وَالنَّوَافِلِ او په دغه اوداسه چې په وخت کې دننه څومره وغواړي فرضې او نفلې لمونځونه دې کوي وَقَالَ الشَّافِعِيُّ رَحِمَهُ اللّٰهُ: تَتَوَضَّأُ الْمُسْتَحَاضَةُ لِكُلِّ مَكْتُوْبَةٍ او امام شافعي رَحِمَهُ الله فرمايي: چې مستحاضه به د هر لمانځه لپاره اودس کوي لِقَوْلِهِ ﷺ: الْمُسْتَحَاضَةُ تَتَوَضَّأُ لِكُلِّ صَلَاةٍ ځکه نبي ﷺ فرمايلي دي: چې مستحاضه به د هر لمانځه لپاره اودس کوي وَلِأَنَّ اعْتِبَارَ طَهَارَتِهَا ضَرُوْرَةُ أَدَاءِ الْمَكْتُوْبَةِ او بل په دې وجه چې د مستحاضې د طهارت اعتبار د فرضو د اداء کولو د ضرورت لپاره دی فَلَا تَبْقٰى بَعْدَ الْفَرَاغِ مِنْهَا نو د فرضو تر اداء کولو وروسته دا ضرورت نه پاتې کيږي وَلَنَا قَوْلُهُ ﷺ: الْمُسْتَحَاضَةُ[●] تَتَوَضَّأُ لِوَقْتِ كُلِّ صَلَاةٍ او زموږ دليل د نبي ﷺ دا قول دی: چې مستحاضه به د هر لمانځه د وخت لپاره اودس کوي وَهُوَ الْمُرَادُ بِالْأَوَّلِ او له اول حديث څخه هم دغه مراد دی لِأَنَّ اللَّامَ تُسْتَعَارُ لِلْوَقْتِ ځکه چې لام د وخت لپاره مستعار اخيستل کيږي يُقَالُ آتِيْكَ لِصَلَاةِ الظُّهْرِ (او) ويل کيږي (آتيك لصلوة الظهر زه به تا ته د ماپښين د لمانځه لپاره راځم أَيْ وَقْتِهَا يعنې د ماپښين د لمانځه په وخت کې (به راځم) وَلِأَنَّ الْوَقْتَ أُقِيْمَ مَقَامَ الْأَدَاءِ تَيْسِيْرًا او په دې وجه (هم) چې د آسانتيا لپاره وخت د اداء قائم مقام سوی دی فَيُدَارُ الْحُكْمُ عَلَيْهِ نو ځکه به پر هغه د حکم مدار وي.

● تخريج: أخرجه ابن ماجه في كتاب الطهارة، باب ما جاء في المستحاضة، حديث رقم:۶۲۵؛ و ابو داؤد في كتاب الطهارة، باب رقم: ۱۱۲، حديث:۲۹۷.

**اللغات**: ﴿سلس البول﴾ مشهور مرض دی چي په دې باندې مبتلا سړی د خپلو متیازو(بولو) مخه نه سي نیوی.
﴿رُعاف﴾ د پزې وینې کېدل، هغه وینه چي له پزې څخه د ناروغۍ په وجه راوځي. ﴿يُدار﴾ د نصر د باب مضارع مجهول ده: دار به جوړېږي، گرځول کېږي به.
**تشريح**: **صورت د مسئلې**: دا دی چي مستحاضه ښځه، همدارنګه هغه سړی چي د سلسل بول په مرض اخته وي او هر وخت یې په وقفه وقفه سره متیازې رواني وي، یا هغه سړی چي پزه یې همېشه وینې کوي، یا په بدن کي یې یو داسي زخم وي چي نه جوړېږي او هر وخت وینې ځنې رواني وي نو دا ټوله معذوره دي، د دوی په باره کي زموږ حکم دا دی چي دوی دي د هر لمانځه لپاره اودس کوي او په دې اوداسه سره د لمانځه په وخت کي دننه، دننه چي څومره لمونځونه وغواړي کوي دې، هغه لمونځونه فرض وي، که نفل، واجب وي او که نذر.
**د امام شافعي مسلک**: د امام شافعي رَحِمَهُ الله په نېز به د هر فرضي لمانځه لپاره اودس کوي یعني معذوره انسان په یوه اودسه سره یو فرض اداء کولای سي، دوېم فرض نه سي په اداء کولای.
**د امام شافعي دليل**: دا حديث: المستحاضة تتوضأ لكل صلوة دی، یعني مستحاضه به د هر لمانځه لپاره اودس کوي. پر امام شافعي رَحِمَهُ الله اعتراض کېږي چي په حدیث کي لفظ د صلوة عام دی هغه که فرض وي که غیر فرض، نو په فرضي لمانځه سره مقید کول به څرنګه صحیح وي؟
جواب: په لكل صلوة کي لفظ د صلوة مطلق دی او قاعده دا ده چي المطلق ينصرف الى الفرد الكامل. او د لمانځه فرد کامل فرض دي، نه دا چي غیر فرض، نو ځکه به له صلوة څخه فرض لمونځ مراد وي، نه مطلق لمونځ.
**دويم دليل**: د امام شافعي رَحِمَهُ الله دوېم دلیل دا دی چي د معذور د طهارت اعتبار د فرضو د اداء کولو په وجه دی نو ځکه به له فرضو څخه تر فراغت وروسته طهارت نه وي پاته.
**زموږ دليل**: د نبي ﷺ دا قول: المستحاضة تتوضأ لوقت كل صلاة دی، او له حضرت عائشې رَضِيَ اللهُ عَنْهَا څخه روایت دی چي: أن النبي ﷺ قال لفاطمة بنت ابي حبيش وتوضئي لوقت كل صلاة، د دې دواړو حدیثونو مطلب دا دی چي مستحاضه به د هر لمانځه د وخت لپاره اودس کوي.
**جواب**: د امام شافعي د دلیل جواب دا دی چي په لكل صلوة کي لام د وخت په معنیٰ دی لکه په : أَقِمِ الصَّلٰوةَ لِدُلُوكِ الشَّمْسِ کي چي لام د وخت لپاره دی، او لکه د نبي ﷺ په دې قول إن للصلاة اولاً وآخراً کي لام د وخت لپاره دی(یعني د لمانځه د وخت اول هم سته او آخر هم) او لکه څرنګه چي ویل کېږي: آتيك لصلوة الظهر(زه تا ته (د) ماپښين د لمانځه (په وخت کي) راځم).
حاصل د جواب دا دی چي د امام شافعي رَحِمَهُ الله ذکر سوی حدیث د نص له قبیلې څخه دی او موږ چي کوم حدیث ذکر کړی دی هغه مفسر دی، او د نص او مفسر د تعارض په صورت کي مفسر ته ترجیح ورکول کېږي.
**عقلي دليل**: زموږ له طرفه عقلي دلیل دا دی چي د آسانۍ لپاره وخت د اداء کولو قائم مقام (نائب) کړی سوی دی، نو ځکه به د حکم مدار پر وخت وي نه پر اداء، ځکه کله چي یو شی د بل شي قائم مقام وي نو مقصود به (هم) هغه وي.

## د مستحاضې ښځې، سلسل بول والا او د داسې نورو اودس د وخت په وتولو سره باطليږي که نه؟

وَإِذَا خَرَجَ الْوَقْتُ بَطَلَ وُضُوْؤُهُمْ او کله چې وخت ووځي نو د دې معذوره خلکو اودس باطليږي وَاسْتَأْنَفُوْا الْوُضُوْءَ لِصَلَاةٍ أُخْرٰى او س به دا خلک د بل لمانځه لپاره اودس له سره کوي(يعني نوی اودس به کوي) وهٰذَا عِنْدَ عُلَمَائِنَا الثَّلَاثَةِ او دا حکم زموږ د دريو امامانو په نيز دی وَقَالَ زُفَرُ رَحِمَهُ اللهُ: اِسْتَأْنَفُوا إِذَا دَخَلَ الْوَقْتُ او امام زفر رَحِمَهُ الله فرمايي: چې کله وخت داخل شي، نو نوی اودس به کوي فَإِنْ تَوَضَّئُوا حِيْنَ تَطْلُعُ الشَّمْسُ نو که دې معذورينو د لمر د راختلو په وخت کې اودس وکړی أَجْزَأَهُمْ عَنْ فَرْضِ الْوَقْتِ حَتّٰى يَذْهَبَ وَقْتُ الظُّهْرِ نو د ماپښين تر وخت ختمېدلو پورې به دا اودس د دوی لپاره کافي وي وَهٰذَا عِنْدَ أَبِيْ حَنِيْفَةَ وَمُحَمَّدٍ● رَحِمَهُمَا اللهُ او دا حکم د طرفينو رَحِمَهُمَا الله په نيز دی وَقَالَ أَبُوْيُوْسُفَ وَزُفَرُ رَحِمَهُمَا الله: أَجْزَأَهُمْ حَتّٰى يَدْخُلَ وَقْتُ الظُّهْرِ امام ابو يوسف او امام زفر رَحِمَهُمَا الله فرمايي: چې دا اودس به د دوی لپاره د ماپښين د وخت تر داخلېدلو پورې کافي وي وَحَاصِلُهُ: أَنَّ طَهَارَةَ الْمَعْذُوْرِ تَنْتَقِضُ بِخُرُوْجِ الْوَقْتِ بِالْحَدَثِ السَّابِقِ عِنْدَ أَبِيْ حَنِيْفَةَ وَمُحَمَّدٍ رَحِمَهُمَا الله او د دې خلاصه دا ده: چې د طرفينو په نيز د معذور طهارت (اودس) د مخکني حدث په وجه د وخت په وتلو سره ماتيږي وَبِدُخُوْلِ الْوَقْتِ عِنْدَ زُفَرَ رَحِمَهُ اللهُ او د امام زفر رَحِمَهُ الله په نيز د وخت په داخلېدلو سره وَبِأَيِّهِمَا كَانَ عِنْدَ أَبِيْ يُوْسُفَ رَحِمَهُ اللهُ او د امام ابو يوسف رَحِمَهُ الله په نيز په وتلو او داخلېدلو دواړو کې په هر يوه سره (اودس ماتيږي) وَفَائِدَةُ الِاخْتِلَافِ لَا تَظْهَرُ إِلَّا فِيْمَنْ تَوَضَّأَ قَبْلَ الزَّوَالِ او ثمره د اختلاف صرف د هغه معذور په حق کې ښکاره کيږي چې هغه تر زوال مخکې اودس کړی وي كَمَا ذَكَرْنَا لکه څرنګه چې موږ ذکر کړه أَوْ قَبْلَ طُلُوْعِ الشَّمْسِ يا (د هغه معذور په حق کې چې هغه) تر لمر راختلو مخکې (اودس کړی وي) لِزُفَرَ رَحِمَهُ اللهُ أَنَّ اعْتِبَارَ الطَّهَارَةِ مَعَ الْمُنَافِيْ لِلْحَاجَةِ إِلَى الْأَدَاءِ د امام زفر رَحِمَهُ الله دليل دا دی چې د طهارت د منافي سره سره د طهارت اعتبار د فرضو د ادا کولو د حاجت په وجه دی وَلَا حَاجَةَ قَبْلَ الْوَقْتِ او تر وخت مخکې هيڅ حاجت نشته فَلَا تُعْتَبَرُ نو (ځکه به تر وخت مخکې) طهارت معتبر نه وي لِأَبِيْ يُوْسُفَ أَنَّ الْحَاجَةَ مَقْصُوْرَةٌ عَلَى الْوَقْتِ د امام ابو يوسف رَحِمَهُ الله دليل دا دی چې حاجت د طهارت پر وخت منحصر دی فَلَا تُعْتَبَرُ قَبْلَهُ وَلَا بَعْدَهُ نو ځکه به نه تر وخت مخکې طهارت معتبر وي او نه تر وخت وروسته وَلَهُمَا أَنَّهُ لَا بُدَّ مِنْ تَقْدِيْمِ الطَّهَارَةِ عَلَى الْوَقْتِ او د طرفينو دليل دا دی چې طهارت پر وخت باندې مخکې کول ضروري دی لِيَتَمَكَّنَ مِنَ الْأَدَاءِ كَمَا دَخَلَ الْوَقْتُ د دې لپاره چې معذوره سړی د وخت په داخلېدلو سره پر اداء کولو باندې قادره سي وَخُرُوْجُ الْوَقْتِ دَلِيْلُ زَوَالِ الْحَاجَةِ او د وخت وتل د حاجت د ختمېدلو دليل دی فَظَهَرَ اعْتِبَارُ الْحَدَثِ عِنْدَهُ نو په دغه وخت کې د حدث اعتبار ښکاره سو.

---

● القول الراجح: قول أبي حنيفة و محمد رَحِمَهُمَاالله كذا في الدر المختار ج:۱، ص:۲۲۴، والهنديه ج:۱، ص:۴۱. [القول الراجح، ج:۱، ص:۴۱]

**اللغات**: ﴿إِسْتَأْنَفُوا﴾ د استفعال د باب جمع مذكر ماضي صيغه ده: له نوي سره د يو كار كول، له نوي سره شروع كول.

**تشريح**: د عبارت تر حل مخكي په دې خبره پوه سئ چي د طرفينو په نيز د وخت وتل د معذورينو د اوداسه لپاره ناقض(ماتوونكی) دي، او د امام زفر رَحِمَهُ الله په نيز د وخت داخلېدل ناقض دي، او د امام ابو يوسف رَحِمَهُ الله په نيز د وخت وتل هم ناقض دي، او د وخت داخلېدل هم ناقض دي.

**صورت د مسئلې**: دا دی چي كله د فرضي لمانځه وخت ووځي نو د دې معذورينو اودس باطل سو، اوس كه دوی دويم فرض لمونځ كول غواړي نو د هغه لپاره به نوی اودس كوي، دا حكم زموږ د دريو علماؤ په نيز دی، او امام زفر رَحِمَهُ الله فرمايي چي كله د دويم لمانځه وخت داخل سو نو نوي اودس به كوي، ګواكي د امام زفر رَحِمَهُ الله په نيز د دويم وخت داخلېدل ناقض (د اودس ماتوونكی) دي، نه دا چي د مخكي وخت وتل، نو كه يو معذوره سړی د لمر د راختلو په وخت كي اودس وكړي نو د طرفينو په نيز د ده لپاره دا اودس تر هغه وخته كافي دی چي د ماپښين وخت ووځي يعني په دې لمانځه سره د ماپښين لمونځ كولای سي ځكه چي په دې صورت كي د ماپښين د وخت داخلېدل خو راغله، لېكن د يو وخت وتل خو نه راغله، حال دا چي د طرفينو په نيز د وخت وتل ناقض دي، نه د وخت داخلېدل.

امام ابو يوسف رَحِمَهُ الله او امام زفر رَحِمَهُ الله وايي چي دا اودس د ماپښين د وخت تر داخلېدلو پوري كافي دی يعني د ماپښين د وخت تر داخلېدلو مخكي مخكي به دا اودس پاته وي، لېكن كه د ماپښين وخت داخل سو، او ده لمونځ كول وغوښتل، نو نوی اودس به خامخا كوي.

ښكاره دې وي، چي په حقيقت كي نه د وخت داخلېدل ناقض دي او نه د وخت وتل، بلكي حدثِ سابق(مخكنی حدث) ناقض دی، لېكن څرنګه چي د معذورينو په حق كي وخت مانع وو، لهذا كله چي وخت زائل سو، د حدث اثر ښكاره سو، نو ځكه د اودس ماتېدلو نسبت مجازاً د وخت د داخلېدلو او وتولو طرف ته وكړای سو.

وفائدة الإختلاف الخ صاحب د هدايې فرمايي چي د اختلاف ثمره په دوو صورتونو كي ښكاره كيږي:

(۱) اول دا كه يوه معذور سړي د لمر تر زوال مخكي اودس وكړی او د ماپښين وخت داخل سو، نو د امام ابو يوسف او امام زفر رَحِمَهُمَا الله په نيز د ماپښين د وخت په داخلېدلو سره اودس ماتيږي او د طرفينو رَحِمَهُمَا الله په نيز نه ماتيږي ځكه چي د يو فرضي لمانځه وخت نه دي وتلی.

(۲) دويم دا كه معذوره سړي د لمر تر راختلو مخكي اودس وكړي نو څرنګه چي د لمر تر راختلو وروسته خروج د وخت راغلی، نو ځكه د طرفينو په نيز اودس ماتيږي او د امام ابو يوسف رَحِمَهُ الله په نيز هم ماتيږي،خو څرنګه چي دامام زفر رَحِمَهُ الله د قول پر بنياد د يو فرضي لمانځه وخت نه دی داخل سوی، نو ځكه د هغه په نيز اودس نه ماتيږي.

**د امام زفر دليل**: دا دی چي د يو داسي شي سره سره د طهارت معتبره كېدل كوم چي د طهارت منافي وي صرف د فرضي لمانځه د اداء كولو د حاجت په وجه سره دي، او څرنګه چي د فرضي لمانځه د اداء كولو تر وخت مخكي هيڅ حاجت نسته نو ځكه به تر وخت مخكي طهارت معتبر نه وي، نو معلومه سوه چي د وخت تر داخلېدلو مخكي اودس ماتيږي.

**د امام ابو يوسف دليل**: دا دی چي د طهارت حاجت پر وخت باندي منحصر دی. ځكه چي د فرضي لمانځه وخت د اداء قائم مقام(نائب) دی، نو ځكه به طهارت نه تر وخت مخكي معتبر وي او نه تر وخت وروسته، نو معلومه سوه چي د معذور د طهارت لپاره د وخت وتل هم ناقض دي، او د وخت داخلېدل هم.

**د طرفینو دلیل:** دا دی چې د طهارت مخکې کول پر وخت باندې ضروري دي، د دې لپاره چې محض د وخت په داخلېدلو سره معذوره سرې د لمانځه پر اداء کولو قدرت ولري، او دا مخکې کول په دې وجه هم ضروري دی چې وخت د اداء قائم مقام (نائب) دی او طهارت د لمانځه پر اداء کولو مخکې کول واجب او ضروري دي، نو ګواکې پر طهارت هم د وخت مخکې کول ضروري دي، او کله چې پر طهارت د وخت مخکې کول ضروري دي نو د وخت داخلېدل ناقض د طهارت نه سې کېدلای، نو ځکه به خامخا وتل د وخت (خروج وقت) ناقض ګرځول کېږي، او د خروج وقت د ناقض ګرځولو دویم علت دا دی چې د وخت خروج د حاجت زائلېدلو دلیل دی، نو په دې وخت کې د مخکني حدث (حدث سابق) معتبره کېدل معلوم سوه، نو ځکه به د وخت په وتولو سره اودس ماتېږي.

**راجح قول:** په پورتنۍ مسئله کې راجح قول د طرفینو دی. قال العلامة ابن عابدين رحمه الله (قوله فاذا خرج الوقت بطل) أفاد ان الوضوء انما يبطل بخروج الوقت فقط لا بدخوله خلافا لزفر رحمه الله و لا بكل منهما خلافا للثانى أى لابى يوسف رحمه الله (رد المحتار ج:۱، ص:۲۲۴). [القول الراجح ج:۱، ۴۰، ص:۴۰]

## د معذوره سړي د یو څو نورو مسئلو وضاحت

وَالْمُرَادُ بِالْوَقْتِ وَقْتُ الْمَفْرُوضَةِ او (په مخکې عبارت کې) له وخت څخه مراد د فرضي لمانځه وخت دی حَتّٰى لَوْ تَوَضَّأَ الْمَعْذُورُ لِصَلَاةِ الْعِيْدِ تر دې که معذوره سړي د اختر د لمانځه لپاره اودس وکړی لَهُ أَنْ يُصَلِّيَ الظُّهْرَ بِهِ عِنْدَهُمَا● نو د صاحبینو په نېز ده ته دا اختیار سته چې په دې اودسه د ماپښین لمونځ وکړي وَهُوَ الصَّحِيْحُ او همدا قول صحیح دی لِأَنَّهَا بِمَنْزِلَةِ صَلَاةِ الضُّحٰى ځکه چې د اختر لمونځ د څاښت د لمانځه په دول دی وَلَوْ تَوَضَّأَ مَرَّةً لِلظُّهْرِ فِيْ وَقْتِهِ وَأُخْرٰى فِيْهِ لِلْعَصْرِ او که معذوره سړی د ماپښین په وخت کې یو وار د ماپښین د لمانځه لپاره اودس وکړی او بیا یې د ماپښین په وخت کې د مازیګر د لمانځه لپاره اودس وکړی فَعِنْدَهُمَا لَيْسَ لَهُ أَنْ يُصَلِّيَ الْعَصْرَ بِهِ نو د طرفینو په نېز ده ته دا اختیار نسته چې په دغه اودسه د مازیګر لمونځ وکړي لِانْتِقَاضِهِ بِخُرُوْجِ وَقْتِ الْمَفْرُوْضَةِ ځکه چې د فرضي لمانځه د وخت په تېرېدلو سره اودس مات سو وَالْمُسْتَحَاضَةُ هِيَ او (له) مستحاضه (څخه مراد) هغه ښځه ده الَّتِيْ لَا يَمْضِيْ عَلَيْهَا وَقْتُ صَلَاةٍ چې پر هغې د یوه لمانځه وخت نه تېرېږي إِلَّا وَالْحَدَثُ الَّذِيْ أُبْتُلِيَتْ بِهِ يُوْجَدُ فِيْهِ مګر په داسې حال کې (تېرېږي) چې هغه حدث په کوم چې دا مبتلا ده په دې وخت کې وي وَكَذَا كُلُّ مَنْ هُوَ فِيْ مَعْنَاهَا او همدا حکم د هر هغه معذور دی چې هغه د مستحاضې په معنیٰ وي وَهُوَ مَنْ ذَكَرْنَاهُ او د مستحاضې په معنیٰ هغه معذورین دي کوم چې موږ ذکر کړل وَمَنْ بِهِ اسْتِطْلَاقُ بَطْنٍ أَوِ انْفِلَاتُ رِيْحٍ او (همدارنګه هغه سړی هم د مستحاضې په معنیٰ دی) چې د نس بهېدلو (اسهال) ناروغي یې وي او یایې د (بې له اختیاره) باد وتولو ناروغي وي لِأَنَّ الضَّرُوْرَةَ بِهٰذَا يَتَحَقَّقُ ځکه چې ضرورت په دې عذر سره هم ثابتېږي وَهِيَ تَعُمُّ الْكُلَّ او ضرورت ټولو ته عام دی.

---

● القول الراجح: قول ابى حيفة ومحمد رحمهما الله، قال العلامة ابن عابدين رحمه الله أفاد ان الوضوء انما يبطل بخروج الوقت فقط. رد المحتار ج:۱، ص:۲۲۴. [القول الراجح، ج:۱، ص:۴۱]

**تشريح**: صاحب د هدايه رَحِمَهُ الله فرمايي: مخکې چې د کوم وخت وتلو او داخلېدلو اعتبار ذکر سو، له هغه وخت څخه مراد د فرضي لمانځه وخت دی، نه د نفلي او واجب لمانځه وخت، تر دې که معذوره سړي د اختر د لمانځه لپاره اودس وکړی، نو د طرفينو په نېز په دې اودسه باندي د ماپښين د لمانځه کولو اجازه سته، او هم دا صحيح قول دی، ځکه چې د اختر لمونځ د څاښت د لمانځه په ډول دی، يعني فرض نه دی، نو دا او د څاښت لمونځ دواړه په يوه مرتبه کې دي، که څه هم د اختر لمونځ واجب دی، نو د فرضي لمانځه د وخت د نه وتلو په وجه د ده اودس نه ماتيږي، نو په دغه اودسه باندي د ماپښين لمونځ ورته جائز دی.

**د بعضي فقهاؤ رايه**: دا ده چې په دغه اودسه باندي ده ته د ماپښين د لمانځه اختيار نسته، ځکه چې د واجب لمانځه وخت ووتی، يعني د اختر د لمانځه وخت ووتی، او واجب په منزله د فرض وي.

ولوتوضأ الخ او که يو معذوره سړي يو وار د ماپښين په وخت کې د ماپښين د لمانځه لپاره اودس وکړی، او بيا يې دوباره د ماپښين په وخت کې د مازيگر د لمانځه لپاره اودس وکړی، نو د طرفينو په نېز ده ته دا اختيار نسته چې په دغه اودسه باندي د مازيگر لمونځ وکړي ځکه چې د ماپښين د وخت په وتلو سره د ده اودس مات سو، دا حکم د ټولو امامانو په نېز دی، ځکه چې په دې صورت کې د ماپښين د وخت د وتلو سره سره د مازيگر وخت هم داخل سو، او د دې وجه دا ده چې د ماپښين او د مازيگر په مينځ کې مهمل (فضول) وخت نسته، بلکي څرنگه چې د ماپښين وخت ووځي، نو سمدلاسه د مازيگر وخت داخليږي.

**د مستحاضې تعريف**: والمستحاضة هي التي ...الخ له دې ځای د مستحاضې تعريف کوي فرمايي: چې مستحاضه هغه ښځه ده چې پر هغې ديو فرضي لمانځه وخت نه تيرېږي مگر په داسي حال کي چې هغه په کوم مرض مبتلاء ده، هغه په دې وخت کي وي، او دا حکم د هغه چا هم دی چې هغه د مستحاضې په ډول وي، لکه هغه څوک چې متيازي يې نه درېږي، او لکه هغه چې د پزې وينه يې نه بنديږي، يا يې زخم نه جوړيږي.

ومن به استطلاق بطن الخ او هغه کس هم معذوره دی چې د اسهال په ناروغي اخته وي، او په نس ايله وي، يا يې د بې اختياره باد وتلو ناروغي وي، ځکه چې په دې مرضونو کې هم ضرورت سته، نو ځکه به دوی ته هم د شريعت له طرفه اجازه ورکول کيږي، ځکه چې د معذورينو د طهارت اعتبار د ضرورت په وجه دی، او په ضرورت کي هر ډول معذوره خلک برابر دي.



# فَصْلٌ فِي النِّفَاسِ

## (دا) فصل د نفاس (د احکامو په بیان کې) دی

**تشریح**: دا خبره مخکې ذکر سوه چې څرنګه د حیض او استحاضې په مقابله کې نفاس قلیل الوقوع (لږ پېښېدونکی) دی، نو ځکه یې دا تر ټولو آخر بیان کړی، نِفاس د سمع د باب مصدر دی، لغوي معنیٰ یې ده: د لنګوالي حالت. او په اصطلاح کې د نفاس تعریف دا دی: الدم الخارج عقیب الولادة. "یعني د کوچني تر پیدا کېدلو وروسته را وتونکې وینې ته نفاس ویل کیږي".

### د نفاس تعریف

| |
|---|
| وَالنِّفَاسُ هُوَ الدَّمُ او نفاس هغه وینه ده الْخَارِجُ عَقِيبَ الْوِلَادَةِ چې د بچي تر زېږېدلو وروسته را ووځي لِأَنَّهُ مَأْخُوذٌ مِنْ تَنَفُّسِ الرَّحِمِ بِالدَّمِ ځکه چې نفاس له (تنفس الرحم بالدم) څخه را خیستل سوی دی أَوْ مِنْ خُرُوجِ النَّفْسِ او یا نفاس له خروج نفس (څخه را اخیستل سوی دی) بِمَعْنَى الْوَلَدِ أَوْ بِمَعْنَى الدَّمِ چې د دې د خروج نفس معنیٰ ده: د بچي را وتل یا د وینې را وتل. |

**اللغات**: ﴿عقیب﴾ وروسته، شاته. ﴿رَحم﴾ رَحْم او رَحِم یعني د حاء په سکون او کسره دواړو سره راځي: د ښځې په نس کې هغه ځای ته ویل کیږي چې اولاد پکښې وي (بچه داني).

**تشریح**: د عبارت مطلب بالکل څرګنده دی چې تر ولادت او زېږېدنې وروسته چې کومه وینه را وځي هغه ته نفاس ویل کیږي، او دې ته د نفاس ویلو وجه دا ده چې دا له تَنَفُّسَ الرَّحْمُ بِالدَّمِ څخه مأخوذ دی چې معنیٰ یې ده: رحم وینه را وستله، او ښکاره ده چې رحم وینه تر ولادت وروسته را باسي، یا نفاس ته د نفاس ویلو وجه دا ده چې دا له خُرُوْجُ النَّفَس څخه مأخوذ دی، چې معنیٰ یې ده: د بچي را وتل، نو د دې معنیٰ په اعتبار سره هم نفاس ته نفاس ویل صحیح دي. ځکه چې د بچي تر پیدایښت وروسته د نفاس وینه راځي.

### له ولادت (پیدایښت) څخه مخکې را وتونکې وینه استحاضه ده

| |
|---|
| وَالدَّمُ الَّذِي تَرَاهُ الْحَامِلُ ابْتِدَاءً أَوْ حَالَ وِلَادَتِهَا قَبْلَ خُرُوجِ الْوَلَدِ او هغه وینه چې حامله ښځه یې په شروع کې یا د ولادت (زېږېدنې) په وخت کې د بچي تر راوتلو مخکې وویني اسْتِحَاضَةٌ هغه وینه د استحاضې ده وَإِنْ كَانَ مُمْتَدًّا که څه هم د هغې خروج (راتګ) اوږد وي (یعني که څه هم موده یې ډېره وي) وَقَالَ الشَّافِعِيُّ رَحِمَهُ اللهُ: حَيْضٌ او امام شافعي رَحِمَهُ الله فرمايي: چې دا حيض دی اعْتِبَارًا بِالنِّفَاسِ پر نفاس بلندي په قياسولو سره (یعني امام شافعي دا وينه پر نفاس قیاسوي) إِذْ هُمَا جَمِيعًا مِنَ الرَّحِمِ ځکه چې دا دواړه وينې له رحم څخه را وځي وَلَنَا: أَنَّ بِالْحَبَلِ يَنْسَدُّ فَمُ الرَّحِمِ او زمونږ |

دليل دا دی: چي د حمل په وجه د رحم خوله بنديږي كَذَا الْعَادَةُ عادت همدغسي دی وَالنِّفَاسُ بَعْدَ انْفِتَاحِهِ بِخُرُوجِ الْوَلَدِ او د كوچني په راوتلو سره د رحم د خولې تر خلاصېدلو وروسته د نفاس وينه را وځي وَلِهَذَا كَانَ نِفَاسًا بَعْدَ خُرُوجِ بَعْضِ الْوَلَدِ نو په دې وجه به د كوچني د بعضي حصې تر را وتلو وروسته راوتونكې وينه د نفاس وي فِيمَا• رُوِيَ عَنْ أَبِي حَنِيفَةَ وَمُحَمَّدٍ رَحِمَهُمَا اللَّهُ د هغه روايت مطابق كوم چي له طرفينو څخه را نقل سوی دی لِأَنَّهُ يَنْفَتِحُ ځكه چي د رحم خوله خلاصيږي فَيَتَنَفَّسُ بِهِ نو د هغه په وجه د نفاس وينه را وځي.

**اللغات:** ﴿حَبَل﴾ حمل، بلاربه كېدل، ﴿يَنْسَدُّ﴾ د انفعال د باب مضارع صيغه ده؛ بندېدل، ﴿يَتَنَفَّسُ﴾ د تفعّل د باب مضارع صيغه ده: دباندي را ايستل.

**تشريح: صورت د مسئلې:** دا دی چي هغه وينه كوم چي له رحم څخه د حمل په حالت كي را وځي يا د كوچني تر ولادت مخكي را وځي هغه زموږ په نيز د استحاضې وينه ده، د امام شافعي په نيز د حيض وينه ده.

**د امام شافعي دليل:** قياس دی، يعني كه ديوې ښځي له يوه نس څخه دوه كوچنيان پيدا سول، بيا هغې ښځي د دوېم كوچني تر پيدا كېدلو مخكي وينه وليدله، نو دا ښځه د دوېم كوچني په حق كي حامله ده، او د حمل په حالت كي را وتونكې وينه به د حيض وي، نو دا وينه به هم د حيض وي.

**زموږ دليل:** دا دی چي د حيض وينه د رحم وينه وي، او د رحم د ويني راتګ له حاملې څخه ممكن نه دی، ځكه چي د الله تعالیٰ فطرت پر دې جاري دی چي د حمل په وجه د رحم خوله بنديږي، د دې لپاره چي له رحم څخه كوچني نه را ووځي، نو كله چي د حمل په وجه د حاملې د رحم خوله بنديږي نو د حمل په حالت كي چي كومه وينه را وځي هغه به له رحم څخه ماسوا د بل ځای وي، او له رحم څخه ماسوا چي كومه وينه راځي هغه د استحاضې وينه وي، نو ځكه به دا وينه هم د استحاضې وي.

**جواب:** د امام شافعي د قياس جواب دا دی چي دا وينه پر نفاس قياسول صحيح نه دي، ځكه چي د كوچني د پيدا كېدلو په وجه د رحم خوله خلاصه سي او د رحم د خولې تر خلاصېدلو وروسته چي كومه وينه راځي هغه بېشكه د نفاس وينه وي. نو د اول كوچني تر پيدا كېدلو وروسته او د دوېم كوچني تر پيدا كېدلو مخكي چي كومه وينه ليدل كيږي هغه به د نفاس وي ځكه چي زياتره داسي وي چي د كوچني تر پيدا كېدلو وروسته د رحم خوله خلاصه سي، او د نفاس وينه را شروع سي.

**راجح قول:** په پورتنۍ مسئله كي راجح قول د امام ابو يوسف رَحِمَهُ الله دی، وقال في الهندية: ولو خرج اكثر الولد تكون نفاساً والا فلا (الهندية ج:۱، ص:۳۷). [القول الراجح ج:۱، ص:۴۲]

## د نابشپړ (نامكمل) بچي د زېږېدلو حكم

وَالسِّقْطُ الَّذِي اسْتَبَانَ بَعْضُ خَلْقِهِ او هغه نا بشپړه كوچنی (يعني ناقص كوچنی) چي ځيني اندامونه يې جوړ سوي وي وَلَدٌ هغه (هم) پوره كوچنی دی حَتَّى تَصِيرَ الْمَرْأَةُ بِهِ نُفَسَاءَ تر دې چي د هغه په وجه ښځه نفاس والا ګرځي وَتَصِيرُ الْأَمَةُ أُمَّ وَلَدٍ بِهِ (او د هغه په وجه) مينځه اُمِ ولد ګرځي وَكَذَا الْعِدَّةُ تَنْقَضِي بِهِ همدارنګه په هغه سره د حاملې ښځي عدت پوره كيږي.

**اللغات:** ﴿سِقْط﴾ ناقص كوچنی، هغه كوچنی چي د حمل د مودې تر پوره كېدلو مخكي د مور له نسه ولوېږي.

---

• القول الراجح: قول ابی یوسف رَحِمَهُ الله، كذا في الدر المختار ج:۱، ص:۱۹۰. [القول الراجح، ج:۱، ص:۴۲].

**تشريح**: فرمايي که يو کوچني په ناقص حال کې پيدا سو يعني ټوله خلقت يې ښکاره نه وو بلکې بعضې خلقت يې ښکاره وو لکه ګوته، نوک يا وريښتيان، نو هغه هم د کامل او بشپړ کوچني په حکم کې دی او پر هغه د کوچني اطلاق کيږي، او د دومره خلقت په وجه هم ښځې ته نفساء ويل کيږي، او که هغه ښځه مينځه وي نو په دومره خلقت سره هم أم ولد ګرځي، همدارنګه که هغه ښځه طلاق سوې وي، يا يې خاوند مړ سوی وي، نو په دې خلقت سره د هغې عدت پوره کيږي.

## د نفاس کمه موده

**وَأَقَلُّ النِّفَاسِ لَا حَدَّ لَهُ** او د نفاس د کمي مودې لپاره هيڅ اندازه نسته لِأَنَّ تَقَدُّمَ الْوَلَدِ عَلَمُ الْخُرُوجِ مِنَ الرَّحِمِ ځکه چې د کوچني مخکې راوتل له رحم څخه د راوتلو نښه ده فَأَغْنَى عَنْ امْتِدَادٍ جُعِلَ عَلَمًا عَلَيْهِ نو دا مخکې راوتلو له يو داسې امتداد څخه بې پروايي راوړسته چې هغه له رحم څخه د وينو پر راوتلو باندي نښه وګرځول سي بِخِلَافِ الْحَيْضِ په خلاف د حيض **وَأَكْثَرُهُ أَرْبَعُونَ يَوْمًا** او د نفاس زياته موده څلوېښت ورځې ده **وَالزَّائِدُ عَلَيْهِ اسْتِحَاضَةٌ** او کومه وينه چې تر دې زياته سي هغه استحاضه ده لِحَدِيثِ أُمِّ سَلَمَةَ رَضِيَ اللهُ عَنْهَا د حضرت ام سلمه رض د حديث په وجه أَنَّ النَّبِيَّ[1] عَلَيْهِ الصَّلَاةُ وَالسَّلَامُ وَقَّتَ لِلنُّفَسَاءِ أَرْبَعِينَ يَوْمًا چې نبي ﷺ د نفاسې ښځې لپاره څلوېښت ورځې وټاکلې وَهُوَ حُجَّةٌ عَلَى الشَّافِعِيِّ رَحِمَهُ اللهُ فِي اعْتِبَارِ السِّتِّينَ او دا حديث د امام شافعي رَحِمَهُ الله په خلاف حجت دی د شپېتو ورځو په اعتبار کولو کې.

**اللغات**: ﴿علَمٌ﴾ نښه، علامه، بيرغ، ﴿أغنى﴾ د افعال د باب ماضي صيغه ده: د يو کار ضرورت ختمول، بې پروا کول، ﴿وقّت﴾ د تفعيل د باب ماضي صيغه ده: موده ټاکل، د وخت اندازه معلومول.

**تشريح**: فرمايي: چې د نفاس د کمي مودې هيڅ اندازه او انتها نسته، نو تر پيدايښت وروسته چې کله هم وينې بندې سي، ښځې ته پکار دي چې ځان پاک کړي، لمونځونه او روژې شروع کړي، د دې مسئلې دليل دا دی چې له وينو څخه مخکې د بچي پيدا کېدل د دې خبري ښکاره علامه ده چې د رحم خوله خلاصه سوې ده، او اوس چې کومه وينه راځي هغه به له رحم څخه راځي او د ولادت (پيدايښت) په وخت کې له رحم څخه را تلونکي وينې ته نفاس ويل کيږي، نو ځکه به دغه وينه د نفاس وينه وي، او د دې پر نفاس کېدلو او له رحم څخه پر را تللو باندي د بل هيڅ دليل ضرورت نسته چې د دريو يا پنځو ورځو د راتللو شرط ولګول سي.

بخلاف الحيض الخ فرمايي په خلاف د حيض، يعني په حيض کې خو دا شرط دی چې لږ تر لږه تر درې ورځو پوري د وينو راتګ ضروري دی، د دې لپاره چې معلومه سي چې دا وينه صرف له رحم څخه راغلې ده، لېکن په نفاس کې دا شرط نسته.

وأكثره الخ د دې خلاصه دا ده چې زموږ په نېز د نفاس اکثره موده څلوېښت ورځې ده، د هدايې د ۷۰ صفحې په ۸ حاشيه کې د امام شافعي رَحِمَهُ الله دا قول را نقل سوی دی چې د ده په نېز د نفاس اکثره موده شپېته (۶۰) ورځې ده.

---

[1] تخريج: أخرجه ابو داؤد في كتاب الطهارة، باب ما جاء في وقت النفساء، حديث رقم: ۳۱۱، والترمذي في كتاب الطهارة باب ما جاء في كم تمكث النفساء، حديث رقم: ۱۳۹.

**د امام شافعي دليل:** امام شافعي رَحِمَهُ الله د امام اوزاعي رَحِمَهُ الله په دې قول سره دليل نيسي چې هغه فرمايي: زموږ په زمانه کې به ښځو تر شپېتو ورځو پورې د نفاس وينه ليدله.

**زموږ دليل:** د حضرت ام سلمه رَضِيَ اللهُ عَنْهَا هغه حديث کوم چې په کتاب کې ذکر سو، مفهوم يې دا دی: چې نبي ﷺ د نفاس والا ښځې لپاره څلوېښت ورځې موده ټاکلې ده، نو کله چې د شريعت له طرفه په څرګنده توګه د څلوېښت ورځو تعيين سوی دی نو اوس د دې په خلاف د يو بل چا قول بنياد جوړول او مسئله وضع کول صحيح نه دي، او بيا دا خبره فيصله سوې ده چې د نفاس اکثره موده د حيض له اکثره مودې څخه څلور چنده زياته ده، او څرنګه چې زموږ په نېز د حيض اکثره موده لس ورځې ده، نو ځکه د نفاس اکثره موده به څلوېښت ورځې وي، ځکه چې لسو ته په څلورو کې په ضرب ورکولو سره څلوېښت راوځي. (عنايه ج:۱، ص:۱۹۱)

## په نفاس کې تر څلوېښتو ورځو زياته وينه راتلل

وَلَوْجَاوَزَ الدَّمُ الْأَرْبَعِينَ او که وينو تر څلوېښتو ورځو تجاوز وکړی وَكَانَتْ وَلَدَتْ قَبْلَ ذٰلِكَ او د دې ښځې مخکې هم کوچنی پيدا سوی وو وَلَهَا عَادَةٌ فِي النِّفَاسِ او په نفاس کې د دې عادت معلوم وو رُدَّتْ إِلٰى أَيَّامِ عَادَتِهَا نو دا به د خپل د عادت د ورځو وطرف ته ګرځول کېږي لِمَا بَيَّنَّا فِي الْحَيْضِ د هغه دليل په وجه کوم چې موږ په حيض کې بيان کړی وَإِنْ لَمْ تَكُنْ لَهَا عَادَةٌ او که د دې ښځې څه عادت معلوم نه وو فَابْتِدَاءُ نِفَاسِهَا أَرْبَعُونَ يَوْمًا نو د نفاس شروع به يې څلوېښت ورځې وي (يعني د دې د نفاس موده به څلوېښت ورځې وي) لِأَنَّهُ أَمْكَنَ جَعْلُهُ نِفَاسًا ځکه چې څلوېښت ورځې نفاس ګرځول ممکن دي.

**تشريح: صورت د مسئلې:** دا دی چې د يوې ښځې تر ولادت وروسته تر څلوېښتو ورځو زياته وينه راغله، نو اوس به کتل کېږي چې د دې ښځې په نفاس کې مخکې يو عادت وو، او که نه وو، که عادت يې وو، نو د عادت ورځې به نفاس شمارل کېږي، او پاته ورځې به استحاضه بلل کېږي، دليل يې په باب الحيض کې تېر سو.

وإن لم تكن الخ او که د دې ښځې يو معلوم عادت نه وو، نو په دې صورت کې به څلوېښت ورځې د نفاس وي، او پاته ورځې به د استحاضې وي، ځکه چې د نفاس لپاره څلوېښت ورځې موده ټاکل ممکن دي، او له دې څخه په لړو کې شک دی، نو ځکه به د نفاس موده څلوېښت ورځې وي.

## د غبرګوليانو حکم (د فقهاؤ قولونه)

فَإِنْ وَلَدَتْ وَلَدَيْنِ فِي بَطْنٍ وَاحِدٍ بيا که يوې ښځې له يوه نس څخه دوه کوچنيان وزېږول فَنِفَاسُهَا مِنَ الْوَلَدِ الْأَوَّلِ عِنْدَ أَبِي حَنِيفَةَ وَأَبِي يُوسُفَ رَحِمَهُمَا اللهُ نو د هغې نفاس د شيخينو په نېز له اول کوچني څخه شروع کېږي وَإِنْ كَانَ بَيْنَ الْوَلَدَيْنِ أَرْبَعُونَ يَوْمًا که څه هم د دواړو کوچنيانو په مينځ کې د څلوېښت ورځو فاصله وي وَقَالَ مُحَمَّدٌ رَحِمَهُ اللهُ: مِنَ الْوَلَدِ الْأَخِيرِ او امام محمد رَحِمَهُ الله فرمايي: چې له دويم کوچني څخه نفاس شروع کېږي وَهُوَ قَوْلُ زُفَرَ رَحِمَهُ اللهُ او دا قول د امام زفر رَحِمَهُ الله هم دی لِأَنَّهَا حَامِلٌ بَعْدَ وَضْعِ الْأَوَّلِ ځکه چې (اوس) دا د اول کوچني تر زېږولو وروسته (هم) حامله ده فَلَا تَـ... ...اءَ نو نفاس والا به نه ګرځي كَمَا أَنَّهَا لَا تَحِيضُ لکه څرنګه چې حائضه نه ګرځي وَلِهٰذَا

تَنْقَضِي الْعِدَّةُ بِالْوَلَدِ الْأَخِيْرِ بِالْإِجْمَاعِ همدا وجه ده چې په اجماع سره عدت په دویم کوچني باندې پوره کيږي وَلَهُمَا: أَنَّ الْحَامِلَ إِنَّمَا لَا تَحِيْضُ لِانْسِدَادِ فَمِ الرَّحِمِ د شيخينو دليل دا دی چې حاملې ښځې ته د رحم د خولې د بندوالي په وجه حيض نه راځي عَلَىٰ مَا ذَكَرْنَا لکه څنګه چې موږ مخکې ذکر کړه وَقَدِ انْفَتَحَ بِخُرُوْجِ الْأَوَّلِ او دلته د اول کوچني تر زيږيدلو وروسته د رحم خوله خلاصه سوه وَتَنَفَّسَ بِالدَّمِ او رحم ويني راوستلې فَكَانَ نِفَاسًا نو ځکه به دا ويني د نفاس وي وَالْعِدَّةُ تَعَلَّقَتْ بِوَضْعِ حَمْلٍ مُضَافٍ إِلَيْهَا او عدت د داسې حمل زيږيدلو سره متعلق سو چې نسبت يې د ښځې و طرف ته کيږي فَيَتَنَاوَلُ الْجَمِيْعَ نو ځکه به دا ټوله حمل ته شامل وي.

**اللغات:** ﴿فِيْ بَطْنٍ وَاحِدٍ﴾ په يوه نس کي، ديوه نس معنیٰ دا: چې د دواړو کوچنيانو د پيدايښت په مينځ کي له شپږو مياشتو څخه کمه فاصله وي

**تشريح:** صورت د مسئلې: دا دی چې که د يوې ښځې په نس کي دوه کوچنيان وي، لېکن دواړه يو ځای پيدا نه سي، بلکي د دوی په پيدايښت کي د يو څو ورځو فاصله وي نو په دې صورت کي د شيخينو رَحِمَهُمَا الله په نېز چې کله اول کوچنی پيدا سي نو له هغه وخته به د ښځې د نفاس موده شروع کيږي، که څه هم د دواړو کوچنيانو د پيدايښت په مينځ کي د شلو ښتو ورځو فاصله وي، لېکن د امام محمد او امام زفر رَحِمَهُمَا الله مسلک دا دی چې کله دويم کوچنی پيدا سي له هغه وخته به د نفاس موده شروع کيږي.

**د امام محمد او امام زفر دليل:** دا دی چې کله د دې ښځې په نس کي دوه کوچنيان دي نو د اول کوچني تر زيږيدني وروسته به هم دا ښځه حامله وي، او حاملې ښځې ته چې څرنګه د حيض ويني نه راځي. همدارنګه د نفاس ويني هم نه ورته راځي، نو ځکه به تر اول کوچني وروسته راتلونکي ويني د نفاس نه وي. بلکي د استحاضې به وي. همدغه وجه ده چې که دغه ښځه مطلقه وه، نو عدت به يې د دويم کوچني پر پيدايښت باندې ختميږي، له دې څخه هم معلومه سوه چې په نفاس کي هم د دويم کوچني د پيدايښت اعتبار دی، نه د اول.

**د شيخينو دليل:** دا دی چې د حاملې ښځې وينه په دا وجه نه راځي چې د حمل په حالت کي د دې د رحم خوله بنده وي. لېکن کله چې د اول کوچني په زيږيدلو سره د رحم خوله خلاصه سي او رحم ويني را وغورځوي. نو دا به يقيناً د نفاس ويني وي، ځکه چې نفاس هم هغه ويني ته وايي چې تر زيږيدلو وروسته له رحم څخه را ووځي.

**جواب:** د امام محمد د دليل جواب دا دی چې د عدت پوره کېدل د داسې حمل سره تعلق لري چې هغه د ښځې و طرف ته منسوب وي، الله تعالیٰ فرمايي: وَأُولَاتُ الْأَحْمَالِ أَجَلُهُنَّ أَنْ يَضَعْنَ حَمْلَهُنَّ (سورة الطلاق: ۴) او حمل وايي: كل ما في البطن ته (يعني کوم څه چې په نس کي وي)، نو د اول کوچني تر زيږيدلو وروسته پوره حمل وضع نه سو بلکي بعضې حمل وضع سو، او د حاملې ښځې عدت په پوره حمل وضع کېدلو سره پوره کيږي. نو ځکه به د دې علت د دويم کوچني په زيږيدلو سره پوره کيږي، نه د اول کوچني په زيږيدلو سره، والله اعلم.



# بَابُ الْأَنْجَاسِ وَتَطْهِيرِهَا

(دا) باب د پليتيو او د هغوی د پاکولو
(د احکامو په بيان کي) دی

**تشريح**: أنجاس جمع د نجس ده، نجس د جيم په فتحه سره د نجاست ذات او عين ته ويل کيږي، او په کسره د جيم سره هغه شي ته ويل کيږي چي پليت (او ګنده) وي، مخکي مصنف رَحِمَهُ الله د حکمي مرداري او د هغې د پاکولو بيان وکړی، اوس له دې ځايه د حقيقي مرداري او د هغې د پاکولو بيان شروع کوي.
ځرنګه چي حکمي نجاست قوی دی په نسبت سره د حقيقي نجاست ته، نو ځکه يې د حکمي مرداري احکام مخکي ذکر کړل، پاته سوه دا خبره چي حکمي نجاست ولې قوی دی، نو د دې وجه دا ده چي حکمي نجاست که لږ هم وي خو بيا هم د لمانځه له جواز څخه مانع دی، او د دې برعکس حقيقي نجاست دی هغه که لږ وي، نو د لمانځه له جواز څخه نه مانع کيږي.

## د بدن، جامو او لمونځ کوونکي د پاکوالي حکم

| |
|---|
| تَطْهِيرُ النَّجَاسَةِ وَاجِبٌ د نجاست پاکول واجب دي مِنْ بَدَنِ الْمُصَلِّي وَثَوْبِهِ د لمونځ کوونکي له بدن څخه او د هغه له جامو (کالو) څخه وَالْمَكَانِ الَّذِي يُصَلِّي عَلَيْهِ او له هغه ځای څخه چي پر هغه لمونځ کوي لِقَوْلِهِ تَعَالَى: وَثِيَابَكَ فَطَهِّرْ [المدثر: ۴] ځکه الله تعالیٰ فرمايلي دي: خپلي جامې پاکي کړه وَقَالَ عَلَيْهِ الصَّلَاةُ وَالسَّلَامُ [1] او نبي ﷺ فرمايلي دي حُتِّيهِ ثُمَّ اقْرُصِيهِ (خپلي کپړې) ومږه او بيا يې وګروه (او د حُتِّيهِ بله معنیٰ په ښځلو سره هم سوې دي) ثُمَّ اغْسِلِيهِ بِالْمَاءِ او بيا يې په اوبو پريولهٔ وَلَا يَضُرُّكِ أَثَرُهُ او د داغ (اثر پاته کېدل) تا ته هيڅ ضرر نه رسوي وَإِذَا وَجَبَ التَّطْهِيرُ فِي الثَّوْبِ وَجَبَ فِي الْبَدَنِ وَالْمَكَانِ او کله چي د جامې پاکول واجب سو نو د بدن او مکان پاکول به هم واجب وي فَإِنَّ الِاسْتِعْمَالَ فِي حَالَةِ الصَّلَاةِ يَشْمَلُ الْكُلَّ ځکه چي د لمانځه په حالت کي استعمالول دې ټولو ته شامل دي. |

**اللغات**: ﴿حُتِّيْ﴾ د نصر له باب څخه د امر واحده مؤنثه صيغه ده، حَتَّ يَحُتُّ: مږل، ﴿اُقْرُصِيْ﴾ دا هم د نصر له باب څخه مخکني صيغه ده: ګروَل، په نوکانو ديو شي را جلا کول.

**تشريح**: صورت د مسئلې: دا دی چي لمونځ کونکي لره د خپل بدن پاک اوصفا ساتل فرض دي، همدلرنګه د خپلو جامو او د لمانځه د ځای پاک ساتل فرض دي، د جامو د پاکولو دليل خو دا آيت دی: وثيابك فطهر او له دې آيت څخه دليل په دې توګه نيول کيږي چي کله قرآن کريم د جامو پاکول فرض ګرځولي دي نو د بدن او ځای (مکان) پاکول به هم فرض وي، ځکه ځرنګه چي په لمانځه کي جامې استعماليږي، همدلرنګه بلکي له دې څخه زيات بدن او مکان

[1] تخريج: أخرجه الائمة الستة في كتبهم والبخاري في الوضوء، باب غسل الدم، حديث رقم:۲۲۷، ومسلم في الطهارة باب نجاسة الدم و كيفية غسله، حديث رقم: ۶۷۵.

استعماليږي، لهذا د جامو د پاکولو حکم به په عبارت النص سره ثابت وي، او د بدن او مکان د پاکولو حکم به د دلالة النص سره ثابت وي.

په دې لړ کې دویم دلیل هغه حدیث دی چې د هغه یو څه برخه په کتاب کې ذکر سوه، پوره حدیث په فتح القدیر او بنایه کې داسې ذکر سوی دی: عَنْ أَسْمَاءَ بِنْتِ أَبِي بَكْرٍ الصِّدِّيقِ رضِيَ اللهُ عَنْهُمَا قَالَتْ جَاءَتْ امْرَأَةٌ إِلَى النَّبِيِّ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ فَقَالَتْ: إِحْدَانَا يُصِيبُ ثَوْبَهَا مِنْ دَمِ الْحَيْضِ كَيْفَ تَصْنَعُ بِهِ قَالَ: تَحُتُّهُ ثُمَّ تَقْرُصُهُ بِالْمَاءِ ثُمَّ تَنْضَحُهُ ثُمَّ تُصَلِّيْ فِيْهِ، مُتَّفَقٌ عَلَيْهِ. (حضرت اسماء بنت ابی بکر رَضِیَ اللهُ عَنْهَا فرمایي: چې یوه ښځه رسول الله ته راغله او ویې ویل: چې (که) په موږ کې د یوې ښځې پر جامو د حیض وینه ولګیږي، نو هغه څه وکړي، نبي ﷺ وفرمایل: هغه دې یې په یو شي سره وګروي بیا دې اوبه پر واچوي او ودې یې مږي او بیا دې اوبه پر وبیوي او بیا دې لمونځ پکښې وکړي) تر دې وروسته که بیا هم د نجاست څه نښه او داغ پاته سي نو په هغه دې نه پریشانه کیږي، ځکه چې دا ضرر نه ور رسوي، لمونځ یې صحیح کیږي؛ نو له دې حدیث څخه هم د جامو د پاکولو حکم ښکاره سو.

## نجاست په کومو شیانو سره لیري کول صحیح دي؟

وَيَجُوزُ تَطْهِيرُهَا بِالْمَاءِ او د اوبو په ذریعه د نجاستونو(مرداریو) پاکول جائز دي وَبِكُلِّ او په هر هغه شي سره د نجاستونو پاکول جائز دي مَائِعٍ طَاهِرٍ يُمْكِنُ إِزَالَتُهَا بِهِ چې هغه بهېدونکي او پاک وي او د نجاستونو لیري کول په هغه ممکن وي كَالْخَلِّ وَمَاءِ الْوَرْدِ لکه سرکه او د ګلاب اوبه وَنَحْوِ ذٰلِكَ مِمَّا إِذَا عُصِرَ انْعَصَرَ او دا ډول نور هغه شیان چې په نخوړولو سره نځوړل کیږي (یعني چې کله کښېکارل سي نو اوبه راباسي) وَهٰذَا • عِنْدَ أَبِي حَنِيْفَةَ وَأَبِي يُوسُفَ رَحِمَهُمَا اللهُ او دا حکم د شیخینو په نیز دی وَقَالَ مُحَمَّدٌ وَزُفَرُ وَالشَّافِعِيُّ رَحِمَهُمُ اللهُ: لَا يَجُوزُ إِلَّا بِالْمَاءِ امام محمد، امام زفر او امام شافعي رَحِمَهُمُ الله فرمایي: چې (دنجاستونو پاکول) صرف په اوبو سره جائز دي لِأَنَّهُ يَتَنَجَّسُ بِأَوَّلِ الْمُلَاقَاةِ ځکه چې پاکونکی (مُطهّر) شی په اول ملاقات سره مرداریږي (نجس کیږي) وَالنَّجِسُ لَا يُفِيدُ الطَّهَارَةَ او مردار شی د پاکولو فایده نه ور کوي (یعني پاکول نه سي کولای) إِلَّا أَنَّ هٰذَا الْقِيَاسَ تُرِكَ فِي الْمَاءِ لِلضَّرُورَةِ لیکن په اوبو کې د ضرورت په وجه دا قیاس پرېښوول سوی دی وَلَهُمَا: أَنَّ الْمَائِعَ قَالِعٌ د شیخینو دلیل دا دی: چې بهېدونکی شی نجاست له بېخه کاږي وَالطَّهُورِيَّةَ بِعِلَّةِ الْقَلْعِ وَالْإِزَالَةِ او د پاکولو صفت خو د بېخه کښلو او زائله کولو په وجه دی وَالنَّجَاسَةُ لِلْمُجَاوَرَةِ او نجس کېدل د مجاورت(او اتّصال) په وجه دی فَإِذَا انْتَهَتْ أَجْزَاءُ النَّجَاسَةِ نو هر کله چې د نجاست اجزاء ختم سوه يَبْقَى طَاهِرًا نو هغه شی پاک سو وَجَوَابُ الْكِتَابِ لَا يُفَرِّقُ بَيْنَ الثَّوْبِ وَالْبَدَنِ او په قدوري کې چې کوم حکم ذکر دی هغه په جامو او بدن کې هیڅ توپیر نه کوي وَهٰذَا قَوْلُ أَبِي حَنِيْفَةَ رَحِمَهُ اللهُ او همدا قول د امام صاحب رَحِمَهُ الله دی وَإِحْدَى الرِّوَايَتَيْنِ عَنْ أَبِي يُوسُفَ رَحِمَهُ اللهُ • او د امام ابو یوسف رَحِمَهُ الله یو روایت هم(داسي) دی وَعَنْهُ أَنَّهُ فَرَّقَ بَيْنَهُمَا

---

• القول الراجح: قول الشيخين، كذا في رد المحتار ج:۱، ص:۲۲۶ [القول الراجح، ج:۱، ص:۳۳]

• القول الراجح: قول ابی حنيفة رَحِمَهُ الله، كذا فی فتح القدير ج:۱، ص:۱۷ [القول الراجح، ج:۱، ص:۳۵]

او د امام ابو يوسف رَحِمَهُ الله دويم روايت دا دی چي هغه په بدن او جامو کي فرق کړی دی فَلَمْ يُجَوِّزْ فِي الْبَدَنِ بِغَيْرِ الْمَاءِ نو د بدن په حق کي يې له اوبو څخه ماسوا په بل شي پاکول ناجائز ګرځولي دي.

**اللغات:** ﴿الخل﴾ سرکه، ﴿مَاءُ الْوَرْدِ﴾ د ګل ګلاب اوبه، ﴿يُعْصَرُ﴾ د مجهول صيغه ده: نڅوړل، له يو شي څخه په فشار اوبه را ايستل، ﴿قَالِعٌ﴾ د فتح د باب اسم فاعل دی: له بېخه کښونونکی، ليري کونکی.

**تشريح:** په دې باره کي اختلاف دی چي په کومو شيانو سره نجاست ليري کيږي او په کومو شيانو سره نه ليري کيږي، د امام ابو يوسف او امام ابو حنيفه رَحِمَهُمَا الله په نيز په هر بهېدونکي پاک شي سره نجاست ليري کيږي، خو په دې شرط چي په هغه سره د نجاست ليري کول ممکن وي، لکه سرکه او د ګلاب اوبه او داسي نور شيان چي په نڅوړولو سره نڅوړل کېدای سي، نو د مأکول اللحم ځارويانو په متيازو باندي نجاست نه پاکيږي، ځکه چي متيازي مرداري دي. او په تېلو باندي هم نجاست نه پاکيږي، که څه هم تېل پاک دي لېکن په نڅوړولو سره نه نڅوړل کيږي، بلکي په جامو کي جذب کيږي.

د امام محمد، امام زفر، امام شافعي، امام مالک او علمو فقهاوو رَحِمَهُمُ الله په نيز له اوبو څخه ماسوا په بل شي سره نجاست نه پاکيږي.

**دليل:** د دې حضراتو دليل دا دی چي پاکونکی شی چي کله په اول وار د نجاست سره يو ځای او ټکر سي، نو هغه په خپله هم نجس سي، يعني اوبه يا بل پاکونکی شی چي کله پر نجاست واچول سي او د نجاست يو څه اجزاء په دې کي راسي نو دا خپله ناپاکه سي، او ښکاره ده چي کوم شی په خپله ناپاکه وي هغه به نور شيان څرنګه پاک کړي! نو د عقل او قياس تقاضا خو دا وه چي په اوبو سره هم د نجاستونو پاکول ممکن نه وای، خو څرنګه چي له اوبو څخه ماسوا هيڅ چاره نسته، نو ځکه له قياس څخه خلاف اوبه مطهِّر (پاکونکي) او ليري کونکي ومنل سوې، لېکن په نورو شيانو کي به د قياس خلاف عمل نه کيږي، او له اوبو څخه ماسوا به نور شيان مطهِّر نه منل کيږي.

**د شيخينو دليل:** دا دی چي له اوبو څخه ماسوا نور بهېدونکي (مائع) شيان ځکه پاکونکي دي چي په هغو سره نجاست ليري کېدای سي او اوبه ځکه پاکونکي دي چي په دې کي د نجاست ليري کولو معنیٰ پرته ده، نو که دغه معنیٰ "د نجاست ليري کولو" په نورو شيانو کي راسي نو بايد چي هغه هم پاکونکي سي، بلکي اوبه بعضي نجس رنګونه نه سي ليري کولای، خو سرکه يې ليري کولای سي.

والنجاسة الخ پاته سوه د دې حضراتو دا خبره چي د نجاست سره په اول وار يو ځای کېدلو باندي اوبه مرداريږي، نو د دې جواب دا دی چي د اوبو مرداريدل د نجاست د اجزاوو سره د مجاورت (همسايتوب) په وجه دي، خو کله چي د نجاست اجزاء وبهيږي او ختم سي نو محل يعني جامه هم پاکه سي. (يعني کله چي اوبه پر نجاست ولوېږي، نو نجاست له خپل ځان سره وبيوي، او نجاست ليري سي، او څرنګه چي نجاست ليري سي، نو جامه او داسي نور هم پاک سي)

دجواب الكتاب الخ صاحب د هدايه فرمايي: په قدوري کي چي کوم حکم ذکر سوی دی په هغه کي د جامې او بدن په مېنځ کي هيڅ فرق نسته، يعني لکه څرنګه چي په اوبو او بهېدونکي شي باندي جامې پاکيږي، دغه رنګه بدن هم په دواړو باندي پاکيږي، او د امام ابو حنيفه رَحِمَهُ الله قول هم دا دی، او د امام ابو يوسف رَحِمَهُ الله په دوو روايتونو کي يو روايت هم دغه ډول دی.

وعنه الخ له امام ابو یوسف رَحِمَهُ الله څخه دویم روایت دا دی چي هغه په جامو او بدن کي فرق کړی دی، چي بدن صرف په اوبو باندي پاکیږي، او جامه په دواړو یعني په اوبو او بهېدونکي شي باندي پاکیږي.

**راجح قول:** په پورتني مسئله کي دوه اختلافه ذکر سوي دي: ① اول اختلاف په تطهير الأنجاس بالمائعات کي دی، په دې مسئله کي راجح قول د شیخینو رَحِمَهُمَا الله دی، وقال فی الهندية: يجوز تطهير النجاسة بالماء وبكل مائع طاهر يمكن ازالتها به كالخل وماء الورد ونحوهما مما اذا عصر انعصر (الهندية ج:۱، ص:۴۱). ② دويم اختلاف په تطهير البدن من النجاسة بما سوى الماء کي دی، په دې کي راجح قول د امام ابو حنیفه رَحِمَهُ الله دی. [القول الراجح ج:۱، ص:۴۵]

## په موزو سره د نجاست د لیري کولو تفصیل

وَإِذَا أَصَابَ الْخُفَّ نَجَاسَةٌ لَهَا جِرْمٌ او کله چي پر موزه جسم لرونکی نجاست ولګیږي كَالرَّوْثِ وَالْعَذِرَةِ لکه خوشایي او د انسان غایطه مواد وَالدَّمِ وَالْمَنِيِّ او لکه وینه او مني فَجَفَّتْ او بیا دا نجاست وچ سي فَدَلَكَهُ بِالْأَرْضِ او بیا یې پر مځکه ومږي جَازَ نو دا جائز دي (یعني په دې موزه کي لمونځ جائز دی) وَهَذَا اسْتِحْسَانٌ او دا استحسان دی وَقَالَ مُحَمَّدٌ رَحِمَهُ اللهُ: لَا يَجُوزُ او امام محمد رَحِمَهُ الله فرمايي: چي جائز نه دی وَهُوَ الْقِيَاسُ او دا قیاس دی إِلَّا فِي الْمَنِيِّ خَاصَّةً مګر فقط په مني وو کي لِأَنَّ الْمُتَدَاخِلَ فِي الْخُفِّ لَا يُزِيلُهُ الْجَفَافُ وَالدَّلْكُ ځکه کوم شی چي په موزه کي داخل سي هغه په وچېدلو او په مږلو سره نه لیري کیږي بِخِلَافِ الْمَنِيِّ عَلَى مَا نَذْكُرُهُ په خلاف د مني وو چي وجه به یې مونږ ذکر کړو وَلَهُمَا●: قَوْلُهُ عَلَيْهِ الصَّلَاةُ وَالسَّلَامُ او د شیخینو دلیل د نبي ﷺ دا قول دی فَإِنْ كَانَ بِهِمَا أَذًى فَلْيَمْسَحْهُمَا بِالْأَرْضِ که په دې دواړو (موزو) کي نجاست وو نو پر مځکه دي یې ومږي فَإِنَّ الْأَرْضَ لَهُمَا طَهُورٌ ځکه چي مځکه د دوی لپاره پاکونکې ده وَلِأَنَّ الْجِلْدَ لِصَلَابَتِهِ لَا تَتَدَاخَلُهُ أَجْزَاءُ النَّجَاسَةِ او په دې وجه چي په چمړه (څرمن) کي د سخت والي په وجه د نجاست اجزاء نه داخلیږي إِلَّا قَلِيلًا خو ډېر لږ. ثُمَّ يَجْتَذِبُهُ الْجِرْمُ إِذَا جَفَّ او بیا چي کله وچ سي نو د نجاست جسم (په خپله) هغه اجزاء جذبوي فَإِذَا زَالَ زَالَ مَا قَامَ بِهِ نو بیا چي کله هغه جسم زائل سي نو کوم اجزاء چي په هغه سره قائم وي هغه هم زائل سي.

**تشریح:** ﴿عَذِرَة﴾ د انسان غایطه مواد، فضله. ﴿دَلْك﴾ د نصر د باب مصدر دی: مږل. ﴿صَلَابَة﴾ سختېدل.

**تشریح:** صورت د مسئلې: دا دی چي که دیو سړي موزه په داسي نجاست ککړه سوه چي هغه جسم داره وو (یعني لیدل کېدی) لکه خوشایي، غایطه مواد، بهېدونکې وینه، مني او داسي نور، او بیا هغه نجاست وچ سو، او دې سړي موزه پر مځکه ومږل، او نجاست یې صفا یې کړی، نو (د شیخینو په نیز) هغه موزه پاکه سوه، او په هغې کي لمونځ کول جائز دي، دا حکم استحساني دی، یعني د قیاس په مقابله کي دی، او امام محمد رَحِمَهُ الله فرمايي چي جائز نه دی، یعني په

---

● القول الراجح: قولهما كذا فی الخانية ج:۱، ص:۱۳، و البحر الرائق ج:۱، ص:۳۸۷ [القول الراجح، ج:۱، ص:۴۶]

● تخريج: أخرجه ابو داؤد فی كتاب الطهارة، باب الأذى يصيب النعل، حديث رقم: ۳۸۵ - ۳۸۶.

داسي کولو سره موزه نه پاکيږي، بلکي د دې پرېولل ضروري دي خو ما سوا له مني وو څخه، او د مني وو په باره کي به وروسته بيان وکړو. د امام محمد رَحِمَهُ الله قول د قياس مطابق دی.

**د امام محمد دليل:** دا دی چي کله د نجاست اجزاء موزې ته ورسيږي نو هغه د موزې سره ومښلي، بيا په وچېدلو او ګرولو سره هغه نه زائله کيږي، بلکي له وچېدلو وروسته هم نجاست پاته وي.

**د شيخينو دليل:** د حضرت ابو سعيد خدري ﷺ حديث دی: أن النبي ﷺ كان يصلى فخلع نعليه فخلع القوم نعالهم فقال ﷺ لهم بعد الصلاة لما خلعتم نعالكم؟ قالوا رأيناك خلعت نعليك فخلعنا فقال ﷺ أخبرني جبريل إن فيهما قذر إذا أتى أحدكم باب المسجد فليقلب نعليه فإن رأى فيها قذرا فليمسحهما بالأرض، (يعني نبي ﷺ لمونځ کوی، او خپلي مچني يې وکښلي، نو صحابه وو هم خپلي مچني وکښلې، کله چي نبي ﷺ له لمانځه څخه فارغ سو، نو صحابه وو ته يې وفرمايل: تاسو ولي مچني وکښلې؟ هغوی ووېل اې د الله رسوله !(ﷺ) موږ وليدل چي تاسو خپلي مچني وکښلې. نو موږ هم وکښلې، نبي ﷺ وفرمايل ما خو ځکه وکښلې چي حضرت جبريل ﷺ خبر راکړی چي ستا په مچنو کي نجاست دی، کله چي په تاسو کي څوک د مسجد دروازې ته راسي، نو مچني دي واړوي را وړوي او دي وګوري! که څه نجاست په نظر ورغلی نو پر مځکه دي يې ومږي)، او په بل روايت کي داسي هم ذکر سوي دي: فإن الأرض لهما طهور، (ځکه چي مځکه د دې موزو لپاره پاکونکې ده)، له دې حديث څخه معلومه سوه چي که موزه په نجاست لړلې وه، نو هغه دي پر مځکه ومږي، د پرېوللو يې هيڅ ضرورت نسته.

**عقلي دليل:** دا دی چي موزه له څرمنې (چمړې) څخه جوړه سوې ده، نو په دې کي د نجاست اجزاء نه سي جذب کېدلای، خو دېر لږ، بيا چي کله دا لړ هم وچ سي، نو هغه اجزاء د دې نجاست جسم په خپله جذب کړي، او چي کله د نجاست جسم زائله سي، نو کوم اجزاء چي په دې جسم کي جذب سوي وي، هغه هم زائله سي.

**راجح قول:** پورتنی مسئله کي راجح قول د شيخينو دی، قال العلامة قاضيخان رَحِمَهُ الله (الخف) اذا اصابته النجاسة ان كانت النجاسة متجسدة كالعذرة والروث والمنى يطهر بالحك اذا يبست الى ان قال اذا مسحها على وجه المبالغه بحيث لايبقى لها اثر يطهر وعليه الفتوى لعموم البلوى (الخانيه ج:۱، ص:۱۳۱). [القول الراجح. ج:۱، ص:۴۶]

## لوند نجاست به څرنګه پاکيږي؟

وَفِي الرَّطْبِ لَا يَجُوزُ او په لانده نجاست کي (پر ځمکه مږل) جائز نه دي حَتَّى يَغْسِلَهُ تر دې چي هغه پرېولي لِأَنَّ الْمَسْحَ بِالْأَرْضِ يُكَثِّرُهُ ځکه چي پر مځکه مږل نجاست نور زياتوي وَلَا يُطَهِّرُهُ او پاکوي يې نه وَعَنْ أَبِي يُوسُفَ رَحِمَهُ اللهُ:● أَنَّهُ إِذَا مَسَحَهُ بِالْأَرْضِ حَتَّى لَمْ يَبْقَ أَثَرُ النَّجَاسَةِ يَطْهُرُ او نه امام ابو يوسف رَحِمَهُ الله څخه را نقل سوي دي: چي کله لوند نجاست پر مځکه په داسي طريقه سره ومږي چي د نجاست هيڅ اثر پاته نه سي نو پاکيږي لِعُمُومِ الْبَلْوَى وَإِطْلَاقِ مَا يُرْوَى د عموم بلوی په وجه او د حديث د اطلاق په وجه وَعَلَيْهِ مَشَايِخُنَا او زموږ مشائخ رَحِمَهُمُ الله (هم) پر دغه قول دي.

● القول الراجح: قول أبی یوسف رَحِمَهُ الله، كذا في فتح القدير ج:۱، ص:۱۷۲. [القول الراجح ج:۱، ص:۴۷]

**اللغات**: ﴿لَمْ يَبْقَ﴾ په اصل کې لَمْ يَبْقَیٰ وو د لَمْ جازمه په وجه يې آخري "ی" حذف سوه. بَقِيَ يَبْقَیٰ: پاته کېدل.

﴿عُمُوْمُ الْبَلْوٰی﴾ د ابتلاء عامېدل، په يو شي باندې د هر يوه مبتلا کېدل.

**تشريح**: **مسئله**: دا ده چې که موزه په لانده نجاست سره ولړل سوه لکه خوشايي، غايطه مواد، وينې او داسې نور او دا لوند نجاست تر اوسه پورې وچ سوی هم نه وو، نو پر مځکه باندې په مږلو سره نه پاکيږي، بلکې پرېولل يې ضروري دي. ځکه که لوند نجاست پر مځکه ومږل سي نو هغه نور هم خوريږي، او ښکاره ده چې په دې سره موزه نوره هم مرداريږي، پاکيږي نه.

وعن أبي يوسف الخ له امام ابو يوسف رَحِمَهُ الله څخه روايت سوی دی چې کله د لانده نجاست په صورت کې موزه په داسې طريقه سره پر مځکه ومږل سي، چې د نجاست اثر ولاړ سي نو پاکيږي، بيا يې د پرېوللو ضرورت نسته، ځکه چې په دې کې عموم بلوىٰ ده، يعنې په عامه توګه په دې خلګ مبتلا دي. او که پرېولل ضروري وګرځول سي نو دېر غټ تکليف به مينځ ته راسي، دويمه خبره دا ده چې حديث فليمسحهما بالأرض مطلق دی، په دې کې د لاندہ او وچ نجاست په مينځ کې هيڅ فرق نه دی ذکر سوی، زموږ د مشايخو قول همدغه دی. او هم پر دې فتوىٰ ده.

**راجح قول**: په پورتنۍ مسئله کې راجح قول د امام ابو يوسف رَحِمَهُ الله دی، قال العلامة ابن الهمام رَحِمَهُ الله ان ابا يوسف رَحِمَهُ الله لم يقيده بالجفاف وعلى قول ابي يوسف رَحِمَهُ الله اكثر المشائخ وهو المختار لعموم البلوى (فتح القدير ج:١، ص:١٧٢). (القول الراجح ج:١، ص:٣٧)

## که موزه په متيازو ولړل سي نو څرنګه به پاکيږي؟

فَإِنْ أَصَابَهُ بَوْلٌ فَيَبِسَ بيا که پر موزه متيازې ولګيږي او وچې سي لَمْ يَجُزْ حَتّٰى يَغْسِلَهُ نو له پرېوللو څخه بغير (په هغو کې لمونځ کول) جائز نه دي وَكَذَا كُلُّ مَا لَا جِرْمَ لَهُ او دا حکم د هر هغه نجاست دی چې هغه لره جسم نه وي كَالْخَمْرِ لکه شراب لِأَنَّ الْأَجْزَاءَ تَتَشَرَّبُ فِيهِ ځکه چې د نجاست اجزاء په دې کې چيښل کيږي (يعنې دا نجاست چې پر کوم شي ولګيږي. په هغه کې د نجاست اجزاء جذب کيږي) وَلَا جَاذِبَ يَجْذِبُهُ او (بل) داسې جذب کونکی شی هم نسته چې دغه اجزاء جذب کړي وَقِيلَ: مَا يَتَّصِلُ بِهِ مِنَ الرَّمْلِ او ويل سوي دي: کوم رېګ چې د نجاست سره متصل سي (يعنې ومښلي) جِرْمٌ لَهُ هغه د نجاست لپاره جسم دی.

**اللغات**: ﴿جَاذِبٌ﴾ د ضرب د باب اسم فاعل دی: جذب کونکی، چيښونکی.

**تشريح**: فرمايي: که موزه په متيازو يا يو بل داسې نجاست سره ککړه سوه چې هغه جسم داره نه وو، لکه متيازې، شراب او داسې نور، نو په دې صورت کې له پرېوللو څخه بغير موزه نه پاکيږي، او فقط تر مږلو وروسته اغوستل او لمونځ پکښې کول جائز نه دي، ځکه چې د جسم نه درلودلو په وجه د نجاست اجزاء د موزې سره موښلي. او د دې اجزاؤ د جذبېدلو لپاره يو شی هم نسته، نو خامخا به پرېولل کيږي، بل ډول نه پاکيږي.

وقيل الخ په دې لړ کې له امام ابو يوسف رَحِمَهُ الله څخه يو قول دا را نقل سوی دی چې که موزه په متيازو او داسې نورو شيانو ککړه سي او بيا رېګ يا يو بل داسې جسم لرونکی شی پر واچول سي، (يعنې بيا په رېګ يا يو بل جسم داره شي

کي ومړل سي) نو دغه رنګ یا جسم داره شی د متیازو او نورو لپاره جسم جوړیږي. او د متیازو او نورو اجزاء په دې جسم داره شي کي جذبیږي، نو بیا که موزه ومړل سي، نو په مړلو سره پاکیږي.

## مرداره جامه (کپړه) به څرنګه پاکیږي؟

وَالثَّوْبُ لَا يُجْزِئُ فِيْهِ إِلَّا الْغَسْلُ او په کپړو (جامو) کي له پرېولو څخه ماسوا بل څه جائز نه دي وَإِنْ يَبِسَ که څه هم هغه جامې وچي سي لِأَنَّ الثَّوْبَ لِتَخَلْخُلِهِ ځکه په جامو کي د خپل نرموالي (پوستوالي) په وجه يَتَدَاخَلُهُ كَثِيْرٌ مِنْ أَجْزَاءِ النَّجَاسَةِ د نجاست ډېر اجزاء داخليږي فَلَا يُخْرِجُهَا إِلَّا الْغَسْلُ چي هغه اجزاء صرف پرېولل ايستلای سي.

**اللغات:** ﴿تخلخل﴾ د تَفَعْلَلَ د باب مصدر دی: خلا والا کېدل (يعني د يو شي نرم کېدل او نه کلک کېدل).

**تشريح:** فرمايي چي که پر جامه او کپړه باندي نجاست ولګيږي، نو په دې صورت کي د دې د پاکولو صرف يوه لار سته، چي هغه غسل (يعني پرېولل) دي، ځکه چي کپړه نرمه او پسته وي، او په ډېره اندازه د نجاست اجزاء په ننوزي، چي هغه په وچېدلو سره هم نه وځي، نو ځکه د هغوی د ايستلو او د له منځه وړلو لپاره صرف او صرف اوبه ضروري دي.

## د مني وو د پاکولو کولو طريقه

وَالْمَنِيُّ نَجِسٌ او مني ناپاک دي يَجِبُ غَسْلُهُ پرېولل يې ضروري دي إِنْ كَانَ رَطْبًا که لانده وه فَإِذَا جَفَّ عَلَى الثَّوْبِ او که پر کالو وچ سوه أَجْزَأَ فِيْهِ الْفَرْكُ نو ګرول يې کافي دي لِقَوْلِهِ عَلَيْهِ الصَّلَاةُ وَالسَّلَامُ ● لِعَائِشَةَ رَضِيَ اللهُ عَنْهَا ځکه نبي ﷺ حضرت عائشې رَضِيَ اللهُ عَنْهَا ته فرمايلي وو فَاغْسِلِيْهِ إِنْ كَانَ رَطْبًا چي مني پرېوله که لانده وه وَافْرُكِيْهِ إِنْ كَانَ يَابِسًا او ګروه يې که وچ وه وَقَالَ الشَّافِعِيُّ رَحِمَهُ اللهُ: اَلْمَنِيُّ طَاهِرٌ او امام شافعي رَحِمَهُ الله فرمايلي دي: چي مني پاک دي وَالْحُجَّةُ عَلَيْهِ مَا رَوَيْنَاهُ (لېکن) د ده په خلاف زموږ بيان سوی روايت حجت دی وَقَالَ عليه السلام ● او نبي ﷺ فرمايلي دي إِنَّمَا يُغْسَلُ الثَّوْبُ مِنْ خَمْسٍ چي کالي به له پنځو شيانو څخه پرېولل کيږي وَذَكَرَ مِنْهَا الْمَنِيَّ او له هغو څخه يې مني هم ذکر کړه وَلَوْ أَصَابَ الْبَدَنَ او که مني پر بدن ولګېدل قَالَ مَشَايِخُنَا رَحِمَهُمُ اللهُ: يَطْهُرُ بِالْفَرْكِ نو زموږ د مشائخو په نېز هغه هم په ګرولو سره پاکيږي لِأَنَّ الْبَلْوَى فِيْهِ أَشَدُّ ځکه چي په دې کي مبتلاوالی زيات دی وَعَنْ أَبِيْ حَنِيْفَةَ رَحِمَهُ اللهُ ● أَنَّهُ لَا يَطْهُرُ إِلَّا بِالْغَسْلِ او له امام ابو حنيفه رَحِمَهُ الله څخه روايت دی چي: له پرېوللو څخه بغير نه پاکيږي لِأَنَّ حَرَارَةَ الْبَدَنِ جَاذِبَةٌ ځکه چي د بدن ګرموالی (د مني وو) جذبوونکی دی فَلَا يَعُوْدُ إِلَى الْجِرْمِ نو مني د جسم و طرف ته نه راګرځي وَالْبَدَنُ لَا يُمْكِنُ فَرْكُهُ او د بدن ګرول (هم) ممکن نه دي.

---

● تخريج: أخرجه دار قطنی فی کتاب الطهارة، باب ما ورد فی طهارة المنی و حکمه، حديث رقم: ۴۴۳.

● تخريج: أخرجه دار قطنی فی کتاب الطهارة، باب نجاسة البول، حديث رقم: ۴۵۲.

● القول الراجح: قول الجمهور كذا فی الدر المختار ج:۱، ص:۲۹. [القول الراجح، ج:۱، ص:۴۹]

**اللغات:** ﴿رَطْبٌ﴾ لوند. ﴿يَابِسٌ﴾ وچ. ﴿افْرُكِيْ﴾ د نصر د باب واحد امرِ مؤنث صيغه ده: مږل. (ګرول). ﴿جِرْمٌ﴾ جسم، بدنه، (جسامت).

**تشريح: صورت د مسئلې:** دا دی چې زموږ په نېز د انسانانو منې ناپاک (نجس) دي او که پر کپړو او کالو باندې ولګيږي، نو د لوندالي په صورت کې د هغو پرېولل واجب دي، لېکن د امام شافعي رَحِمَهُ الله په نېز د انسانانو منې پاک دي، او که پر کپړو باندې ولګيږي نو پرېولل يې ضروري نه دي، بلکې صرف په مږلو او په ګرولو سره پاکيږي.

**د امام شافعي دليل:** د حضرت ابن عباس رَضِيَ اللهُ عَنْهُمَا حديث دی چې په فتح القدير او بنايه کې داسې ذکر سوی دی: عَنِ ابْنِ عَبَّاسٍ عَنِ النَّبِيِّ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ أَنَّهُ سُئِلَ عَنِ الْمَنِيِّ يُصِيبُ الثَّوْبَ فَقَالَ: إِنَّمَا هُوَ بِمَنْزِلَةِ الْمُخَاطِ أَوِ الْبُزَاقِ. وَقَالَ: إِنَّمَا يَكْفِيكَ أَنْ تَمْسَحَهُ بِخِرْقَةٍ أَوْ إِذْخِرَةٍ. (له حضرت ابن عباس څخه روايت دی چې له نبي ﷺ څخه د منې وو په باره کې پوښتنه وسوه (چې دا پاک دي، که ناپاک؟) نو نبي ﷺ وفرمايل: دا د ګرنګو يا لاړو په ډول دي، او وېې فرمايل: ستا لپاره دومره کافي ده چې دا صرف په يوه ټوټه يا اذخر وښو باندې وچ کړې) په دې حديث سره امام شافعي رَحِمَهُ الله دليل په دې توګه نيسي چې نبي ﷺ منې د ګرنګو او لاړو په درجه کې ګرځولي دي، ګرنګ او لاړې پاکې دي، نو ځکه به منې هم پاک وي.

**د امام شافعي عقلي دليل:** دا دی چې له منې وو څخه انسان پيدا کيږي، او انبياء کرام هم انسانان دي، اوس که موږ منې ناپاک وګرځوو، نو د انبياؤ پيدا کېدل به له يو ناپاک شي څخه لازم سي، او دا د هغوی له عظمت او مرتبې څخه خلاف دي.

**زموږ دليل:** هغه حديث دی کوم چې په کتاب کې ذکر سو چې نبي ﷺ حضرت عائشې رَضِيَ اللهُ عَنْهَا ته وفرمايل چې که منې لانده وه نو پرېوله يې او که وچ وه نو مږه يې، په دې حديث سره موږ دليل په دې توګه نيسو چې نبي ﷺ حضرت عائشې رَضِيَ اللهُ عَنْهَا ته د امر په صيغه سره د منې وو د لوندوالي په صورت کې د پرېوللو حکم ورکړی دی او امر د وجوب لپاره راځي، نو که منې ناپاک نه وای نو نبي ﷺ به د امر په صيغه سره د پرېوللو حکم نه کولای.

**دويم دليل:** هغه حديث چې نبي ﷺ فرمايي: له پنځو شيانو څخه جامې پرېولئ: (۱) متيازي (۲) غايطه مواد (۳) وينه (۴) قی (۵) منې، له دې څخه هم معلوميږي چې منې ناپاک دي، کنې له دې څخه به د جامو د پرېوللو حکم نه کېدلای؛ دا دواړه حديثونه د امام شافعي رَحِمَهُ الله په خلاف حجت دي.

**جواب:** پاته سو هغه حديث چې په هغه سره امام شافعي رَحِمَهُ الله دليل نيسي، نو د هغه جواب دا دی چې دا حديث مرفوع نه دی، بلکې پر ابن عباس رَضِيَ اللهُ عَنْهُمَا موقوف دی، او زموږ بيان سوي دواړه حديثونه مرفوع دي، او ښکاره ده چې د مرفوع حديث په مقابله کې موقوف حديث حجت نه سي جوړېدای، د ابن عباس رضي الله عنه د حديث متعلق علامه ابن الهمام د دار القطني په حواله سره ليکلي دي چې: لم يرفعه غير اسحاق الأزرق عن شريك القاضي. و رواه البيهقي من طريق الشافعي موقوفا على ابن عباس وقال هذا هو الصحيح (فتح القدير ج:۱، ص:۱۹۹)، صاحب د عنايه د دې جواب دا ورکړی دی چې د ابن عباس په حديث کې چې د المخاط والبزاق په ذريعه کومه تشبيه ورکول سوې ده، له دې تشبيه څخه دا نه لازميږي چې منې دي په طهارت کې د مخاط او بزاق په څېر وي، بلکې دا هم احتمال سته چې دا تشبيه په سرېښتوب او قلتِ تداخل کې وي، يعنې څرنګه چې ګرنګ او لاړې سرېښناکه غوندي دي، او په جامې او نورو کې سرايت نه کوي، او په ګرولو سره صفا

کيږي، دغه رنګه مني هم سربېناکه غونډي دي او په جامه او نورو کي ډېر لږ سرايت کوي، او دا هم په ګرولو سره پاکيږي، نو د دې احتمال په وجه د ابن عباس له حديث څخه د مني وو پر طهارت دليل نيول صحيح نه دی. (عنايه ج:۱، ص:۱۹۹)

**د امام شافعي د عقلي دليل جواب:** دا دی چي مونږ دا منو چي د انسان د پيدايښت اولني شروع له مني وو څخه کيږي. لېکن اول په خپله انسان له مني وو څخه نه جوړيږي، بلکي له مني وو څخه وينه جوړيږي، له وينو څخه ټوټه(علقه) جوړيږي، بيا مضغه جوړيږي او تر دې وروسته يو وخت په دې کي روح پوکل کيږي. نو په دې حواله سره هم د مني وو پر پاکوالي دليل نيول صحيح نه دی.

ولو أصاب البدن...الخ فرمايي چي که پر بدن مني ولګيږي نو په دې سلسله کي د ماوراء النهر د علماوو رايه دا ده چي په ګرولو سره بدن پاکيږي، ځکه چي په عامه توګه مني پر بدن لګيږي، او د هر چا لپاره فوراً مني پرېولل ستونزمن دي. نو د عموم بلوىٰ په وجه د مږلو او ګرولو په ذريعه سره هم بدن پاکېدای سي.

په دې لړ کي له امام ابو حنيفه رَحِمَهُ الله څخه يو روايت دا رنقل سوی دی چي که مني پر بدن ولګيږي نو صرف په پرېوللو سره بدن پاکيږي، په ګرولو سره نه پاکيږي. ځکه چي د بدن حرارات(ګرموالی) مني جذبوي. نو جذب سوي اجزاء دوباره د جسم(جرم) و طرف ته نه راګرځي. نو ځکه د دې اجزاؤ د ليري کولو لپاره د بدن پرېولل ضروري دي. همدارنګه د بدن ګرول هم ممکن نه دي.

**راجح قول:** په پورتني مسئله کي راجح قول د جمهورو دی، يعني مني که وچ وه نو په مږلو سره پاکيږي. هغه که پر جامه وي، که پر بدن. قال العلامة الطحطاوى رَحِمَهُ الله: ويطهر المنى الجاف ولو منى امرأة على الصحيح بفركه عن الثوب و عن البدن بفركه فى ظاهر الرواية (طحطاوى ج:۱، ص:۸۹). [القول الراجح ج:۱، ص:۲۹]

## له هينداري يا توري څخه د نجاست ليري کولو طريقه

وَالنَّجَاسَةُ إِذَا أَصَابَتْ او نجاست چي کله ولګيږي الْمِرْآةَ أَوِ السَّيْفَ پر هينداره يا توره اِكْتَفٰى بِمَسْحِهِمَا نو (فقط) د هغه پر ليري کولو دي اکتفا وکړي(يعني فقط په کپړه يا بل شي دي نجاست څني وچ کړي) لِأَنَّهُ لَا تَتَدَاخَلُهُمَا النَّجَاسَةُ ځکه چي په دې شيانو کي نجاست نه سي داخلېدلای وَمَا عَلٰى ظَاهِرِهٖ يَزُوْلُ بِالْمَسْحِ او کوم نجاست چي پر دوی سرپېره دی هغه په ليري کولو (او وچولو) سره زائليږي.

**اللغات:** ﴿مِرْآة﴾ هينداره.

**تشريح:** صورت د مسئلې خو بالکل ښکاره دی، چي په هينداره او توره کي نجاست نه سي جذبېدلای. بلکي ټوله نجاست پر پورتني حصه باندي لګيږي، نو ځکه صرف پر مځکه په مږلو (يا په کپړه يا بل شي باندي په وچولو او صفا کولو سره) هم دا شيان پاکيږي، او پرېولل يې ضروري نه دي.

## مځکه به څرنګه له نجاست څخه پاکيږي؟

وَإِنْ أَصَابَتِ الْأَرْضَ نَجَاسَةٌ او که نجاست پر مځکه ولګېدی فَجَفَّتْ بِالشَّمْسِ وَذَهَبَ أَثَرُهَا او بيا په لمر سره وچ سو او اثر يې هم ختم سو جَازَتِ الصَّلَاةُ عَلٰى مَكَانِهَا نو د دغه نجاست پر ځای لمونځ کول جائز دي وَقَالَ زُفَرُ وَالشَّافِعِيُّ

رَحِمَهُمَا اللهُ: لَا تَجُوْزُ امام زفر او امام شافعي رَحِمَهُمَا الله فرمايي: چې جائز نه دي لِأَنَّهُ لَمْ يُوجَدِ الْمُزِيْلُ ځکه چې يو ليرې کونکی شي نسته وَلِهٰذَا لَا يَجُوْزُ التَّيَمُّمُ بِهِ همدا وجه ده چې په دې سره تيمّم کول جائز نه دي وَلَنَا: قَوْلُه عَلَيْهِ الصَّلَاةُ وَالسَّلَامُ او زموږ دليل: د نبي ﷺ دا قول دی زَكَاةُ الْأَرْضِ يُبْسُهَا د مځکې پاکوالی د هغې وچېدل دي وَإِنَّمَا لَا يَجُوْزُ التيمم او تيمّم په دې وجه جائز نه دی لِأَنَّ طَهَارَةَ الصَّعِيْدِ ثَبَتَتْ شَرْطًا بِنَصِّ الْكِتَابِ ځکه چې د خاورې پاکېدل په قرآني آيت سره ثابت سوي دي فَلَا تَتَأَدّٰى بِمَا ثَبَتَ بِالْحَدِيْثِ نو دغه به په هغه شي سره نه اداء کيږي کوم چې په حديث سره ثابت وي. (مطلب دا چې د حديث په وجه قرآني آيت نه سي پرېښول کېدای)

**اللغات:** ﴿يُبْس﴾ د ضرب د باب مصدر دي: وچېدل. ﴿صعيد﴾ د مځکې مخ، د کروندې مځکه. مراد خاورې دي.

**تشريح:** که پر مځکه باندې نجاست ولګيږي، او بيا په لمر يا په اُور يا په هوا يا بل شي باندې وچ سي، او د نجاست اثر رنګ بوی او نور هم ختم سي، نو پر دغه ځای لمونځ کول جائز دي، لېکن تيمّم پر دغه ځای تيمم کول جائز نه دي، امام زفر او امام شافعي رَحِمَهُمَا الله فرمايي: چې پر دې مځکه لمونځ کول هم جائز نه دي.

**د امام زفر او امام شافعي دليل:** دا دی چې دا مځکه په يقيني توګه مرداره سوې ده، او د نجاست (مرداری) ليرې کونکی شی هم نسته، نو ځکه به دا مځکه مرداره وي، او پر دې به لمونځ جائز نه وي، همدا وجه ده چې پر دې باندې تيمّم په اتفاق سره جائز نه دی.

**زموږ دليل:** د رسول الله ﷺ دا قول دی: زکاة الأرض يبسها. يعني د مځکې پاکوالی د دې وچوالی دی، او د دې په معنیٰ بل حديث دا هم سته چې: أيما الأرض جفت فقد طهرت. يعني کومه مځکه چې وچه سوه، نو هغه پاکه سوه.

**جواب:** د امام زفر او امام شافعي د دليل جواب دا دی چې دا خبره غلطه ده چې د نجاست ليرې کونکی شی نسته، بلکې د نجاست ليرې کونکی شی سته، يعني حرارت او ګرموالی، ځکه څرنګه چې په اُور باندې پاکوالي راځي. دغه رنګه په حرارت باندې هم راځي، هغه که حرارت کم وي او که زيات.

وإنما لايجوز... الخ له دې ځايه د امام زفر رَحِمَهُ الله د قياس جواب ورکوي، خلاصه د جواب دا ده چې د تيمّم لپاره د خاورې پاکوالی د قرآن پاک په نص سره ثابت دی: فتيمموا صعيد طيبا، او کوم شی چې په نص سره ثابت وي، هغه قطعي الثبوت وي، نو دا ضروري ده چې د تيمّم لپاره به پاکه خاوره کارول کيږي، او دلته د مځکې طهارت په خبر واحد سره ثابت دی چې زکاة الأرض يبسها. او کوم حکم چې په خبر واحد ثابت وي، هغه غير قطعي او ظني وي. نو تيمّم چې د هغې لپاره د خاورې پاکېدل قطعي الثبوت دی، نو دا په هغه خاوره نه صحيح کيږي چې د هغې پاکېدل ظني الثبوت وي.

## نجاست غليظه او نجاست خفيفه (او په نجاست غليظه کې معاف مقدار)

وَقَدْرُ الدِّرْهَمِ وَمَا دُوْنَهُ مِنَ النَّجِسِ الْمُغَلَّظِ او له نجاست غليظه څخه د يوه درهم په اندازه يا له دې څخه کم (معاف دي) كَالدَّمِ وَالْبَوْلِ وَالْخَمْرِ وَخُرْءِ الدَّجَاجِ وَبَوْلِ الْحِمَارِ لکه وينه، متيازې، شراب، د چرګې ګندګي او د خره متيازې

---

● تخريج: أخرجه ابن ابی شيبه فی کتاب الطهارة، باب فی الرجل يطأ الموضع القذر، حديث رقم:۶۲۳.

جَازَتِ الصَّلَاةُ مَعَهُ او د دې سره لمونځ جائز دی وَإِنْ زَادَ لَمْ تَجُزْ او که تر يوه درهم زيات سو نو لمونځ ور سره جائز نه دی وَقَالَ زُفَرُ وَالشَّافِعِيُّ رَحِمَهُمَا اللهُ : قَلِيلُ النَّجَاسَةِ وَكَثِيرُهَا سَوَاءٌ امام زفر او امام شافعي رَحِمَهُمَا الله فرمايي: چې د نجاست لږ اندازه او زياته اندازه دواړه برابر دي لِأَنَّ النَّصَّ الْمُوجِبَ لِلتَّطْهِيرِ لَمْ يُفَصِّلْ ځکه چې د طهارت واجبوونکي نص (د قليل او د کثير) هيڅ فرق نه کړی دي وَلَنَا : أَنَّ الْقَلِيلَ لَا يُمْكِنُ التَّحَرُّزُ عَنْهُ او زموږ دليل دا دی: چې د لږ نجاست څخه ځان ژغورل ګران دي فَيُجْعَلُ عَفْوًا نو ځکه به دا معافيږي وَقَدَّرْنَاهُ بِقَدْرِ الدِّرْهَمِ او موږ په يوه درهم سره د دې اندازه کړې ده أَخْذًا عَنْ مَوْضِعِ الِاسْتِنْجَاءِ اخيستنه مو کړې ده د استنجا له ځای څخه (يعني د يوه درهم حکم موږ د استنجاء د ځای يعني د غائطو د راوتلو له ځای څخه را اخيستی دی، ځکه چې د غائطو د راوتلو ځای هم تقريبًا يو درهم دی) ثُمَّ يُرْوَى اعْتِبَارُ الدِّرْهَمِ مِنْ حَيْثُ الْمَسَاحَةِ او بيا د درهم مقدار د مساحت (پيمايښت) په اعتبار سره (هم) را نقل سوی دی وَهُوَ قَدْرُ عَرْضِ الْكَفِّ فِي الصَّحِيحِ او هغه د صحيح قول مطابق د ورغوي د پلنوالي په اندازه دی وَيُرْوَى مِنْ حَيْثُ الْوَزْنِ او د وزن په اعتبار سره هم د درهم (اندازه) را نقل سوې ده وَهُوَ الدِّرْهَمُ الْكَبِيرُ الْمِثْقَالُ او هغه د غټ مثقال والا درهم دی وَهُوَ مَا يَبْلُغُ وَزْنُهُ مِثْقَالًا او د هغه وزن يو مثقال ته رسيږي وَقِيلَ فِي التَّوْفِيقِ بَيْنَهُمَا او د دواړو روايتونو د تطبيق په باره کې ويل سوي دي أَنَّ الْأُولَى فِي الرَّقِيقِ وَالثَّانِيَةَ فِي الْكَثِيفِ چې اول روايت د نري نجاست په باره کې دی او دويم روايت د غليظ (سخت او ګاټه) نجاست په باره کې دی وَإِنَّمَا كَانَتْ نَجَاسَةُ هَذِهِ الْأَشْيَاءِ مُغَلَّظَةً او د دې شيانو نجاست غليظه کېدل په دې وجه سره دي لِأَنَّهَا ثَبَتَتْ بِدَلِيلٍ مَقْطُوعٍ بِهِ ځکه چې د دوی نجاست په قطعي دليل سره ثابت دی.

**اللغات:** ﴿تحرز﴾ د څه کې فضله (ګندګي)، ﴿مساحة﴾ پيمايښت، (پيمانه).

**تشريح:** نجاست پر دوه قسمه دی: (۱) نجاستِ غليظه (۲) او نجاستِ خفيفه، د دې دواړو په تعريف کې د امام ابو حنيفه رَحِمَهُ الله او صاحبينو رَحِمَهُمَا الله اختلاف دی: د امام ابو حنيفه رَحِمَهُ الله په نيز نجاست غليظه هغه دی چې په داسي قطعي نص سره ثابت وي، چې د هغه معارض بل د طهارت ثابتوونکی نص نه وي، او که دوه نصونه په خپل مينځ کي سره متعارض سوه، او له يوه څخه طهارت ثابتېدی او له بل څخه نجاست، نو دې ته نجاست خفيفه ويل کيږي؛ او د صاحبينو په نيز نجاست غليظه هغه دی چې د هغه پر نجسوالي اجماع واقع سوې وي، او نجاست خفيفه هغه دی چې په هغه کي عالمانو اختلاف کړی وي.

**ثمره د اختلاف:** په خوشايوو (ګوبرو) کي ښکاره کيږي، خوشايي د امام ابو حنيفه رَحِمَهُ الله په نيز نجاست غليظه دي، ځکه چې له حضرت عبد الله ابن مسعود ﷺ څخه روايت دی چې په ليلة الجن کي دوی نبي ﷺ ته د استنجاء لپاره دوې ډبري او څه خوشايي راوړل نو نبي ﷺ ډبري واخيستلې او خوشايي وغورځول او ويې فرمايل: چې دا رجس يعني نجس دي، او د دې حديث سره بل داسي معارض حديث نسته چې په هغه سره د خوشايوو طهارت ثابت سي، او د صاحبينو په نيز خوشايي نجاست خفيفه دي، ځکه چې د امام مالک رَحِمَهُ الله په نيز خوشايي پاک دي.

**په نجاست کې معاف مقدار** : له دې تمهيد څخه وروسته د متن وضاحت ته راسئ! د مصنف رَحِمَهُ الله له ذکر سوي عبارت څخه مقصد دا دی چي د نجاست څومره اندازه معاف ده، او څومره معاف نه ده، نو فرمايي چي په نجاست غليظه (لکه بهېدونکې وينه، متيازي، شراب، د چرګي ګندګي او د خره په متيازو) کي د يوه درهم په اندازه معاف دي. يا له دې څخه کم، که د دومره اندازه نجاست سره څوک لمونځ وکړي، نو لمونځ يې جائز دی، او بيا برابره خبره ده که دا دومره اندازه نجاست پر جامو (کالو) لګېدلی وي، او که پر بدن، خو که له يو درهم څخه زيات وي، نو هغه معاف نه دی او د هغه سره لمونځ جائز نه دی. د امام زفر او امام شافعي رَحِمَهُمَا الله په نېز په قليل او کثير کي هيڅ فرق نسته، دواړه سره برابر دي، که لږ وي او که ډېر، لمونځ ورسره جائز نه دی، ځکه چي په نص کي د دې هيڅ تفصيل نسته.

زموږ دليل دا دی چي لږ نجاست داسي شی دي چي له هغه څخه ځان ساتل ممکن نه دی، ځکه چي زياتره وخت مچيان پر نجاست (مرداري) باندي کښېني او بيا د انسان پر جامو کښېني، همدارنګه د غوماشو له وينې څخه ځان ساتل هم ستونزمن دي، نو هر کله چي له لږ اندازې څخه ځان ساتل ممکن نه دي، نو دا معاف سو، ځکه چي دا ضرورت دی. او د شريعت په دلائلو کي د ضرورت ځايونه مستثنیٰ دي.

وقدرناه الخ پاته سوه دا خبره چي د کمي او زياتي اندازې معيار څه شی دی؟، نو زموږ د عالمانو په نېز د يوه درهم په اندازه نجاست کم دی او چي تر يوه درهم ډېر سي، هغه زيات دی، او دا اندازه موږ د استنجاء پر ځای (يعني پر مخرج) قياس کړې ده، ځکه چي د استنجاء ځای هم تقريباً د يوه درهم په اندازه دی، او د استنجاء ځای په اتفاق سره معاف دی. نو کوم چي د دې په اندازه وي هغه به هم معاف وي.

ثم يروی الخ فرمايي چي د درهم د تقدير په سلسله کي له امام محمد رَحِمَهُ الله څخه دوه روايتونه دي: يو روايت د مساحت دی، يعني د لاس د ورغوي د پلنوالي په اندازه، مفتي رشيد احمد صاحب رَحِمَهُ الله په احسن الفتاوی کي ليکلي دي چي فقهاؤ د ورغوي د پلنوالي د معلومولو لپاره دا طريقه ليکلې ده، چي په ورغوري کي دي اوبه را واخيستل سي. او ورغوی دي وغوړول سي نو په څومره ځای کي چي اوبه ودرېږي، هغومره پلنوالی مراد دی او د هغه په اندازه نجاست معاف دی. او د پيمايښت په اندازه سره د درهم اندازه ۱. ۱ اينچ (يعني تر يوه اينچ لږ غوندي زيات) يا ۷۵. ۲ سينټي ميټر ده (احسن الفتاوی ج: ۲، ص: ۸۹)، دويم روايت دا دی چي له يوه درهم څخه مراد د يوه درهم وزن دی، او د يوه درهم وزن يو مثقال دی.

وقيل فی التوفيق الخ صاحب د عنايه رَحِمَهُ الله ليکلي دي چي فقيه ابو جعفر رَحِمَهُ الله د دې دواړو روايتونو په مينځ کي ډېر ښه تطبيق ورکړی دی، هغه فرمايي چي اول روايت يعني د ورغوي د پلنوالي صورت د نجاست پر نرموالي او نري والي حمل کيږي، او دويم صورت يعني د مثقال د وزن صورت د نجاست پر سختوالي حمل کيږي. يعني په متيازو يا داسي نورو نجاستونو کي به د ورغوي د پلنوالي اعتبار کيږي، او په غايطه موادو او په داسي نورو جسم داره نجاستونو کي به د مثقال د وزن اعتبار کيږي.

وإنما کانت الخ فرمايي چي په عبارت کي وينو، متيازو، غايطه موادو او نورو ته نجاستِ غليظه په دې وجه ويل سوي دي. چي هغه په قطعي دليل سره ثابت سوي دي.

### د درهم قسمونه

① يو غټ درهم دی چي د هغه وزن يو مثقال کيږي، يا ۲۰ قيراطه، يا ۳۷۵. ۰ تولې، يا ۳۷۵. ٤ ګرامه کيږي، او په پورتنی مسئله کي له درهم څخه مراد همدغه درهم دی. ② دويم درهم تر دې کوچنی وي، چي د هغه وزن ۷. ۰ مثقاله

یا ۱۴ قیراطه. یا ۰.٦١۳ ګرامه کیږي. اوس په دغه درهم سره د زکات حساب کیږي. ③درېم درهم تر دې هم کوچنی وي چې د هغه وزن ۰.۵ مثقاله کیږي. یا ۱۰ قیراطه. یا ۱۸۷۵. ۲ ګرامه کیږي.

## د نجاست خفيفه معاف مقدار

وَإِنْ كَانَتْ مُخَفَّفَةً او که نجاست خفیفه (سپک) وو كَبَوْلِ مَا يُؤْكَلُ لَحْمُهُ لکه د هغه ښاروپانو متیازي چې غوښې یې خوړل کیږي جَازَتِ الصَّلَاةُ مَعَهُ نو د هغه سره لمونځ جائز دی حَتَّى يَبْلُغَ رُبْعَ الثَّوْبِ تر دې چې د کالو (جامو) څلورمې حصې ته ورسیږي يُرْوَى ذٰلِكَ عَنْ أَبِي حَنِيفَةَ رَحِمَهُ اللهُ دا له امام صاحب رَحِمَهُ الله څخه روایت سوي دی لِأَنَّ التَّقْدِيرَ فِيهِ بِالْكَثِيرِ الْفَاحِشِ ځکه چې د نجاست خفیفه په باره کي به اندازه په کثیر فاحش سره کیږي وَالرُّبْعُ مُلْحَقٌ بِالْكُلِّ فِي حَقِّ بَعْضِ الْأَحْكَامِ او په بعضي احکامو کي څلورمه حصه د کُل سره یو ځای سوې ده وَعَنْهُ: رُبْعُ أَدْنَى ثَوْبٍ تَجُوزُ فِيهِ الصَّلَاةُ او له امام صاحب رَحِمَهُ الله څخه دا روایت هم سوی دی چې د ادنیٰ درجې کپړه (ټوکر) چې په هغه کي لمونځ جائز وي (د هغه څلورمه حصه مراد ده) كَالْمِئْزَرِ لکه لنګ وَقِيلَ: رُبْعُ الْمَوْضِعِ الَّذِي أَصَابَهُ● او ویل سوي دي: چې د هغه ځای څلورمه حصه مراد ده چې نجاست پر لګېدلی وي كَالذَّيْلِ وَالدِّخْرِيصِ لکه لمن او ترخزي وَعَنْ أَبِي يُوسُفَ رَحِمَهُ اللهُ: شِبْرٌ فِي شِبْرٍ او له امام ابو یوسف رَحِمَهُ الله څخه روایت دی: چې لوېښت په لوېښت کي (یعني که نجاست یو لوېښت اوږد او یو لوېښت پلن وو نو دا ډېره اندازه ده) وَإِنَّمَا كَانَتْ مُخَفَّفَةً عِنْدَ أَبِي حَنِيفَةَ وَأَبِي يُوسُفَ رَحِمَهُمَا اللهُ او د مأکول اللحم ښاروپانو متیازي د شیخنو په نېز ځکه نجاست خفیفه دي لِمَكَانِ الِاخْتِلَافِ فِي نَجَاسَتِهِ چې د دې په نجاست کي اختلاف دی أَوْ لِتَعَارُضِ النَّصَّيْنِ عَلَى اخْتِلَافِ الْأَصْلَيْنِ یا د دوو نصونو د تعارض په وجه د دواړو حضراتو د اُصولو د اختلاف پر بناء (د مأکول اللحم متیازي نجاست خفیفه دي).

**اللغات:** ﴿مِئْزَر﴾ لنګ، ازار. ﴿ذَيْل﴾ د کالو را ځړېدلې حصه. لمن. ﴿دِخْرِيص﴾ غالبًا له دې څخه د کالو هره جلا او مستقله حصه مراد ده لکه ترخزي. لستوڼي. کالر او نور. او د بعضو په نېز له دې څخه خاص ترخزي مراد دي.

**تشريح:** په دې عبارت کي د نجاست خفیفه د معاف سوي مقدار بیان کوي. فرمایي چې نجاست خفیفه د جامو (کالو) له څلورمې حصې څخه تر کمې حصې پوري معاف دی. لکه د مأکول اللحم ښاروپانو متیازي. او د څلورمې حصې په اندازه معاف نه دی. یعني که پر کالو نجاست خفیفه د کالو له څلورمې حصې څخه کم لګېدلی وي. نو په هغو کالو کي لمونځ جائز دی. او که د څلورمې حصې په اندازه یا تر هغې زیات لګېدلی وي. نو په هغو کي لمونځ جائز نه دی. او همدا له امام ابو حنیفه رَحِمَهُ الله څخه یو روایت دی.

**دليل:** دا دی چې د نجاست خفیفه په باره کي کثیر (یعني ډېر مقدار) په فاحش سره اندازه کړی سوی دی. یعني که نجاست خفیفه زیات ولګیږي. نو لمونځ ور سره جائز نه دی. او په ډېر احکامو کي څلورمه حصه د کُل برابر ده. لکه د سر د څلورمې حصې مسح کول د ټوله سر د مسحې سره برابره ده. او که د عورت څلورمه حصه ښکاره سوه نو د ټوله عورت د

● القول الراجح: هو رواية ربع العضو المصاب ان كان بدنا و ربع الطرف المصاب ان كان ثوبا كذا في الدر المختار ج.١، ص:٢٣٥. [القول الراجح، ج:١، ص:٥٠]

ښکاره کېدلو سره برابر دي. همدارنګه داحرام په حالت کې د څلورمې حصې سر خرېل د ټول سره د خرېلو برابر ګرځول سوي دي. خلاصه دا چې څلورمه برخه د کُل قائم مقام ده، او له کُل څخه د نجاست خفيفه فاحش کثير کېدل حاصلېږي. (يعني که د يو شي ټوله حصه نجسه وي نو هغه شی به ټوله نجس وي). نو کوم چې د دې قائم مقام دی يعني څلورمه حصه، نو په دې سره به هم فاحش کثير کېدل حاصلېږي. او څرنګه چې فاحش کثير په نجاست خفيفه کې معاف نه دی، نو ځکه موږ وويل چې که د کالو پر څلورمه حصه نجاست ولګېږي، نو په هغه کې به هم لمونځ جائز نه وي.

والربع ملحق الخ پاته سوه دا خبره چې د کوم شي څلورمه حصه مراد ده؟ نو په دې باره کې د فقهاوو اختلاف دی: له امام ابو حنيفه رَحِمَهُ الله څخه يو روايت دا را نقل سوی دی چې د ټوله بدن څلورمه حصه او د کالو څلورمه حصه مراد ده. که څه هم کالي غټ وي، امام ابن الهمام رَحِمَهُ الله فرمايلي دي چې همدا قول أحسن (غوره) دی. او له اما ابو حنيفه رَحِمَهُ الله څخه دا هم را نقل سوي دي چې د ادنیٰ ما يجوز به الصلاة څلورمه حصه مراد ده. يعني چې لږ تر لږه دومره کالي او کپړې وي چې په هغه کې لمونځ جائز کيږي، د هغه څلورمه حصه مراد ده، لکه لنګ. او ځينې عالمان فرمايي چې د کالو پر کوم ځای چې نجاست لګېدلی وي، د هغه ځای څلورمه حصه مراد ده. لکه لمن يا سدری. نو که د لمن پر څلورمې حصې باندې نجاست ولګېږي، نو په دې کالو کې به لمونځ جائز نه وي، د امام ابو يوسف رَحِمَهُ الله روايت دا دی چې که نجاست يوه لوېشت اوږد او يوه لوېشت پلن وو، نو دا کثير فاحش دی، په دومره اندازه کې لمونځ جائز نه دی. او که له دې څخه کم وو، نو جائز دی. او دا اندازه معاف ده.

وإنما كانت مخففة الخ صاحب د هدايې رَحِمَهُ الله فرمايي چې د مأكول اللحم څارويانو متيازي د شيخينو رَحِمَهُمَا الله په نېز نجاست خفيفه دي. د امام صاحب په نېز خو په دې وجه نجاست خفيفه دي، چې د مأكول اللحم د متيازو په حکم کې نصوص سره متعارض دي، حديث د عرنيينو د دې پر پاکوالي دلالت کوي. او حديث د استنزهوا من البول فإن عامة عذاب القبر منه پر دې دلالت کوي چې مطلقاً متيازي نجسي (اوپليتي) دي (هغه که د مأكول اللحم څارويانو وي او که د غير مأكول اللحم).

د امام ابو يوسف رَحِمَهُ الله په نېز ځکه نجاست خفيفه دي چې د مأكول اللحم د متيازو په پاکوالي او ناپاکولي کې د مجتهدينو اختلاف دی. يعني د امام محمد رَحِمَهُ الله په نېز پاکي دي، او د نورو حضراتو په نېز نجسي دي، نو ځکه به د هغو متيازي نجاست خفيفه وي.

**راجح قول:** په پورتنی مسئله کې راجح قول د ځينو عالمانو دی يعني: که د کالو پر کوم ځای نجاست لګېدلی وي. د هغه ځای څلورمه حصه مراد ده، لکه لمن يا لستونی يا سُرونده. (يا د بدن پر کوم اندام چې نجاست لګېدلی وي. د هغه اندام څلورمه حصه مراد ده) نو که د لمن پر څلورمې حصې باندې نجاست ولګېدی. نو په هغه کالو کې لمونځ جائز نه دی، په درمختار کې راغلي دي: وعليه الفتوىٰ (الدر المختار ج:۱، ص:۲۳۵). [القول الراجح ج:۱. ص:۵۰]

## که پر کالو خوشايي يا خرشينه ولګيږي نو په هغه کالو کې د لمانځه حکم

**وَإِذَا أَصَابَ الثَّوْبَ مِنَ الرَّوْثِ أَوْ مِنْ أَخْثَاءِ الْبَقَرِ أَكْثَرُ مِنْ قَدْرِ الدِّرْهَمِ** او که پر کالو (جامو) خرشينه يا د غوا خوشايي تر يوه درهم زيات ولګيږي **لَمْ تَجُزِ الصَّلَاةُ فِيهِ عِنْدَ أَبِي حَنِيفَةَ رَحِمَهُ الله** نو د امام ابو حنيفه رَحِمَهُ الله په نېز په هغه کالو کې

لمونځ جائز نه دی لِأَنَّ النَّصَّ الْوَارِدَ فِي نَجَاسَتِهِ ځکه چې د خوشايو په نجاست کې نص راغلی دی وَهُوَ مَا رُوِيَ او هغه نص دا روايت دی أَنَّهُ عَلَيْهِ الصَّلَاةُ وَالسَّلَامُ رَمَى بِالرَّوْثَةِ وَقَالَ: هَذَا رِجْسٌ أَوْ رِكْسٌ چې نبي ﷺ خوشايې وغورځوله او ويې فرمايل: دا رجس يا مردار دي لَمْ يُعَارِضْهُ غَيْرُهُ او د دې نص سره يو بل معارض نص (هم) نشته وَبِهَذَا يَثْبُتُ التَّغْلِيظُ عِنْدَهُ او په دې سره د امام ابو حنيفه رَحِمَهُ الله په نېز تغليظ ثابتيږي وَالتَّخْفِيفُ بِالتَّعَارُضِ او تخفيف په تعارض سره ثابتيږي وَقَالَا: ● يُجْزِئُهُ حَتَّى يَفْحُشَ او صاحبين فرمايي: چې (لمونځ) جائز دی تر دې چې هغه فاحش سي لِأَنَّ لِلِاجْتِهَادِ فِيهِ مَسَاغًا ځکه چې په دې کې د اجتهاد ګنجايش سته وَلِهَذَا يَثْبُتُ التَّخْفِيفُ عِنْدَهُمَا نو په دې وجه د صاحبينو په نېز تخفيف ثابتيږي وَلِأَنَّ فِيهِ ضَرُورَةً لِامْتِلَاءِ الطُّرُقِ بِهَا او په دې وجه هم چې په خوشايو (او خرشينو) سره د لارو ډکېدلو په سبب په هغو کې ضرورت دی وَهِيَ مُؤَثِّرَةٌ فِي التَّخْفِيفِ او ضرورت په تخفيف کې مؤثر دی بِخِلَافِ بَوْلِ الْحِمَارِ په خلاف د خره د متيازو لِأَنَّ الْأَرْضَ تَنْشِفُهُ ځکه چې مځکه هغه جذبوي قُلْنَا: الضَّرُورَةُ فِي النِّعَالِ موږ وايو: چې ضرورت صرف په څپليو کې ثابت دی وَقَدْ أَثَّرَتْ فِي التَّخْفِيفِ مَرَّةً او ضرورت يو وار په تخفيف کې مؤثر دی حَتَّى تَطْهُرَ بِالْمَسْحِ تر دې چې څپلۍ په صفا کولو سره پاکيږي (يعني په مځکه باندې په مږلو سره پاکيږي) فَتُكْتَفَى مُؤْنَتُهَا نو د ضرورت په صورت کې به کفايت کوي (بله معنیٰ يې دا ده چې: بس همدومره تخفيف کافي دی) وَلَا فَرْقَ بَيْنَ مَأْكُولِ اللَّحْمِ وَغَيْرِ مَأْكُولِ اللَّحْمِ د مأكولُ اللحم او غير مأكولُ اللحم حيواناتو په متيازو کې هيڅ فرق نشته وَزُفَرُ رَحِمَهُ اللهُ فَرَّقَ بَيْنَهُمَا او امام زفر رَحِمَهُ الله په دواړو کې فرق کړی دی فَوَافَقَ أَبَا حَنِيفَةَ رَحِمَهُ اللهُ فِي غَيْرِ مَأْكُولِ اللَّحْمِ نو په غير مأكول اللحم کې يې د امام ابو حنيفه رَحِمَهُ الله سره موافقت کړی دی وَوَافَقَهُمَا فِي الْمَأْكُولِ او په مأكول اللحم کې يې د صاحبينو سره موافقت کړی دی وَعَنْ مُحَمَّدٍ رَحِمَهُ اللهُ أَنَّهُ لَمَّا دَخَلَ الرَّيَّ او له امام محمد څخه روايت دی چې کله هغه د "ري" ښار ته ورغلی وَرَأَى الْبَلْوَى او په دې مسئله کې يې عموم بلویٰ وليدل (يعني په عامه توګه يې خلک په دې کې مبتلا وليدل) أَفْتَى بِأَنَّ الْكَثِيرَ الْفَاحِشَ لَا يَمْنَعُ أَيْضًا نو دا فتویٰ يې ورکړه چې کثير فاحش هم لمونځ نه منع کوي وَقَاسُوا عَلَيْهِ طِينَ بُخَارَى او مشائخو پر دې د بخارا ختې قياس کړې دي وَعِنْدَ ذَلِكَ رُجُوعُهُ فِي الْخُفِّ يُرْوَى او هم په دغه وخت کې د موزو په مسئله کې د امام محمد رَحِمَهُ الله رجوع رانقل سوې ده.

**اللغات:** ﴿روث﴾ وچ خوشايې، ﴿أخثاء﴾ جمع د خِثْي او خُثْي ده: خرشينه (په عامه توګه رَوث د غوا فضله يعني خوشايې ته ويل کيږي او خِثْي د خره او آس فضله يعني خرشينو ته ويل کيږي، او کله نا کله د يو بل پر ځای هم استعماليږي، لکه دلته چې د عبارت په اوله جمله کې استعمال سوي دي)، ﴿ركس﴾ ناپاک، مردار ﴿مساغ﴾ ګنجايش، ځايدنه، ﴿تنشف﴾ جذبول، ځبېښل.

---

● القول الراجح: قول أبي يوسف ومحمد رَحِمَهُمَا الله، كذا في الدر المختار ج:۱، ص:۲۳۲. [القول الراجح ج:۱، ص:۵۱]

**تشريح: مسئله:** دا ده که په کالو (جامو) باندي خرشينه يا خوشايي له يوه درهم څخه زيات ولګيږي، نو د امام ابو حنيفه رَحِمَهُ الله په نيز په دغه کالو لمونځ جائز نه دی. او د صاحبينو رَحِمَهُمَا الله په نيز جائز دی.

**د امام ابو حنيفه دليل:** دا دی چي خرشينه او خوشايي نجاست غليظه دي، ځکه چي د دوی د نجاست په باره کي حديث راغلی دی، لکه څرنګه چي له عبد الله بن مسعود ﷺ څخه روايت دی: (نبي ﷺ را ته وفرمايل چي دري ډبري راوړه! لېکن ما تر لټون وروسته دوې ډبري پيدا کړې او دريمه مي د خوشايو يوه ټوکړه پيدا کړه. نبي ﷺ ته مي راوړه. نو نبي ﷺ دوې ډبري واخيستلې او خوشايي يې وغورځول. او يې وفرمايل: چي دا مردار دي)؛ نو له دې حديث څخه د خوشايو نجاست ثابت سو، او يو بل داسي نص هم نسته چي په هغه سره د خوشايو پاکوالی ثابت سي، نو ځکه به دا نجاست غليظه وي، ځکه چي د امام ابو حنيفه رَحِمَهُ الله په نيز که د نجاست په باره کي دوه متعارض نصونه نه وي، نو هغه نجاست غليظه دي(لکه څرنګه چي مخکي ذکر سوه). نو په دې وجه خوشايي او خرشينه د امام ابو حنيفه رَحِمَهُ الله په نيز نجاستِ غليظه دي، او په نجاست غليظه کي له يوه درهم څخه زياته اندازه معاف نه ده، نو ځکه به لمونځ ور سره جائز نه وي.

**د صاحبينو دليل:** دا دی چي پچي، خرشينه او خوشايي دا شيان نجاست خفيفه دي، ځکه چي د دې شيانو په طهارت او نجاست کي د عالمانو اختلاف دی، امام مالک رَحِمَهُ الله فرمايي چي دا شيان پاک دي. او د نورو عالمانو په نيز مردار دي، او مخکي ذکر سوه چي د صاحبينو په نيز په يو شي کي د مجتهدينو اختلاف د خفت سبب دی، يعني چي مجتهدين د يو شي په نجاست او طهارت کي اختلاف وکړي، نو هغه د دې شيِ د نجاست خفيفه کېدلو دليل دی. او نجاست خفيفه چي د کالو له څلورمي حصې څخه کم وي او له يوه درهم څخه زيات وي نو په هغه کالو کي لمونځ جائز دی.

**د صاحبينو دويم دليل:** دا دی چي په خرشينو کي او خوشايو کي ضرورت متحقق دی، او په دې کي عموم بلویٰ ده. ځکه چي په عامه توګه په لارو او کوڅو کي پراته وي، ځان ځني ساتل ګران دي. او ضرورت د تخفيف سبب دی. نو په خرشينو او خوشايو کي د عموم بلویٰ په وجه هم تخفيف پيدا سو.

بخلاف بول الحمار الخ فرمايي: په خلاف د خره له متيازو څخه. له دې ځای څخه د يو سوال جواب ورکوي.

**سوال:** دا دی چي څرنګه په خوشايو او خرشينو کي ضرورت سته، نو دغه رنګه د خره په متيازو کي هم ضرورت او عموم بلویٰ سته، نو بايد د خره متيازو ته هم نجاست خفيفه وويل سي، حال دا چي تاسو د خره متيازو ته نجاست غليظه واياست.

**جواب:** دا دی چي د خره په متيازو کي ضرورت او عموم بلویٰ نسته. ځکه چي متيازي مځکه جذبوي. لو پر مځکه باندي متيازي نه ښکاره کيږي، او د لاروېانو پر کالو او نورو نه لګيږي، بلکي ژر وچيږي. په خلاف د خرشينو ځکه چي دا مځکه نه سي جذبولای. او د لاروېانو پر کالو باندي د لګېدلو ډېره پکښې سته.

**د صاحبينو پر دليل اعتراض:** د صاحبينو پر ذکرسوي دليل دا اعتراض کېدی سي چي د ضرورت او عموم بلویٰ په وجه خو نجاست ساقط کيږي. په هغه کي تخفيف نه راځي، لکه د پيشي پسخورده چي مرداره نه ده. بلکي پکار دا وه چي مرداره وای، ځکه چي د پيشي غوښه حرامه او مرداره ده. خو د ضرورت او عموم بلویٰ په وجه نجاست ځني ساقط سو.

**جواب:** دا دی چې په خرشینو او خوشایوو کې ضرورت او عموم بلوی لړسته، په نسبت سره د پیشي و پسخوردې ته، نو په دې وجه د پیشي له پسخوردې څخه نجاست ساقط سو، او د خرشینو او خوشایوو په نجاست کې تخفیف پیدا سو.

**د صاحبینو د دلیل جواب:** صاحب د هدایې رَحِمَهُ الله د امام ابو حنیفه رَحِمَهُ الله له طرفه د صاحبینو د دلیل دا جواب ورکړی دی چې موږ دا منو چې په خرشینو او خوشایوو کې ضرورت سته، لېکن دا ضرورت صرف د څپلیو(او موزو) په حق کې مؤثر دی، له دې څخه ماسوا د نورو په حق کې مؤثر نه دی، نو ځکه به د نورو و طرف ته نه متعدي کیږي، او په څپلیو کې د ضرورت اثر یو وار ښکاره سوی دی یعني که پر موزو خرشینه ولګیږي، نو یو وار په مځکه باندي په مړلو سره هغه پاکیږي، یعني د ضرورت په وجه به صرف په یوه وار اکتفاء کوي، او دویم وار به د دې په نجاست کې تخفیف نه راځي، ځکه چې په یوه ضرورت سره یو وار تخفیف راځي، بار بار نه راځي، لکه څرنګه چې مشهوره قاعده ده: الضرورة تتقدر بقدرها.

ولا فرق الخ صاحب د هدایې فرمایي چې زموږ د دریو سره امامانو په نېز د مأکول اللحم او غیر مأکول اللحم د خرشینو او خوشایوو په مینځ کې هیڅ فرق نسته، بلکه لکه څرنګه چې د غیر مأکول اللحم څارویانو خرشینه او خوشایي مردار دي، همدغه رنګه د مأکول اللحم خرشینه هم مردار دي، لېکن فرق صرف په نجاست خفیفه او غلیظه کې دی، لکه مخکي چې دا تفصیل تېر سو.

لېکن د امام زفر رَحِمَهُ الله په نېز د مأکول الحم او د غیر مأکول اللحم په خرشینو او خوشایوو کې فرق سته، د غیر مأکول اللحم حیوانانو په خرشینو او خوشایوو کې هغه د امام ابو حنیفه رَحِمَهُ الله سره دی، او د مأکول اللحم څارویانو په خرشینو او خوشایوو کې د صاحبینو رَحِمَهُمَا الله سره دی، یعني دا فرمایي چې د غیر مأکول اللحم حیوانانو خرشینه او خوشایي نجاست غلیظه دي، او د مأکول اللحم څارویانو خرشینه او خوشایي نجاست خفیفه دي.

وعن محمد رَحِمَهُ اللهُ الخ او له حضرت امام محمد رَحِمَهُ الله څخه روایت دی چې کله هغه د "ري" ښار ته ورغلی، نو وې لیدل چې په لارو او کوڅو کې خرشینه پراته دي، او له هغو څخه ځان ساتل ګران دي، نو دا فتوی یې ورکړه، چې که دا پر کالو(جامو) باندي له څلورمي حصې څخه زیات هم ولګیږي، نو لمونځ ور سره جائز دی، ځکه چې عموم بلوی یې پکښې ولیدله، او پر دې قول باندي د بخارا مشائخو رَحِمَهُمُ الله د بخارا خټې هم قیاس کړي دي، یعني هغه خټې چې په لارو کې د خوشایو او خاورو په ګډون سره جوړي سوي وي، نو د بخارا مشایخ فرمایي: چې هغه که هر څومره پر کالو ولګیږي، مانع له لمانځه څخه نه دي، او د همدې قصې په وخت کې د موزو د مسئلې په باره کې د امام محمد رَحِمَهُ الله د رجوع روایت کیږي، یعني امام محمد رَحِمَهُ الله به مخکي فرمایل چې موزه په مځکه باندي په مړلو سره نه پاکیږي، لېکن د دې قصې په وخت کې یې له خپل قول سره څخه رجوع وکړه، او د شیخینو د قول موافقت یې وکړی. (والله اعلم بالصواب)

**راجح قول:** په پورتنۍ مسئله کې راجح قول د صاحبینو دی، وفي الشرنبلالية قولهما أظهر و طهرهما محمد رَحِمَهُ الله آخراً للبلوی (الدر المختار ج:۱، ص:۲۳۲). [القول الراجح ج:۱، ص:۵۱]

## د آس او د (مأكول اللحم يعني د) هغو حيوانانو د متيازو حكم چي غوښې يې خوړل كيږي

وَإِنْ أَصَابَهُ بَوْلُ الْفَرَسِ او كه پر كالو (جامو) د آس متيازي ولګيږي لَمْ يُفْسِدْهُ نو كالي نه مرداروي حَتَّى يَفْحُشَ تر دې چي هغه ډېري زياتي نه سي عِنْدَ أَبِي حَنِيفَةَ وَأَبِي يُوسُفَ رَحِمَهُمَا اللهُ (دا حكم) د شيخينو رَحِمَهُمَا الله په نيز دى وَعِنْدَ مُحَمَّدٍ رَحِمَهُ اللهُ لَا يَمْنَعُ وَإِنْ فَحُشَ او د امام محمد رَحِمَهُ الله په نيز كه څه هم زياتي سي خو له لمانځه څخه مانع نه دي (يعني كه څه هم زياتي سي كالي نه مرداروي) لِأَنَّ بَوْلَ مَا يُؤْكَلُ لَحْمُهُ طَاهِرٌ عِنْدَهُ ځكه چي د امام محمد رَحِمَهُ الله په نيز د مأكول اللحم ځاروي متيازي پاكي دي مُخَفَّفٌ نَجَاسَتُهُ عِنْدَ أَبِي يُوسُفَ رَحِمَهُ اللهُ او د امام ابو يوسف رَحِمَهُ الله په نيز د هغو نجاست، نجاستِ خفيفه دى وَلَحْمُهُ مَأْكُولٌ عِنْدَهُمَا او د صاحبينو په نيز د آس غوښه خوړل كيږي وَأَمَّا عِنْدَ أَبِي حَنِيفَةَ رحِمَهُ الله فَالتَّخْفِيفُ لِتَعَارُضِ الْآثَارِ او د امام ابو حنيفه رَحِمَهُ الله په نيز د آثارو د تعارض په وجه د هغو په نجاست كي تخفيف دى.

**اللغات**: ﴿فَحُشَ﴾ دومره زيات ښكاره كېدل چي خلګ يې زيات وبولي، يا د جامو څلورمي حصې ته فاحش ويل كيږي، يا دومره ډېر چي بد معلوميږي.

**تشريح**: د آس او د مأكول اللحم ځارويانو په متيازو كي د احنافو علماؤ اختلاف دى: شيخين فرمايي چي د آس او د مأكول اللحم ځارويانو متيازي نجاست خفيفه دي، او كه د كالو پر څلورمه حصه ولګيږي، (يعني فاحشِ كثير ته ورسيږي)، نو هغه به مردار وي او له لمانځه به څخه مانع وي. لېكن د امام محمد رَحِمَهُ الله په نيز د آس او مأكول اللحم متيازي مطلقاً مانع له لمانځه څخه نه دي، كه فاحشِ كثير وي او كه له دې څخه كمي وي.

**د امام محمد دليل**: دا دى چي د ده په نيز د مأكول الحم ځارويانو متيازي پاكي دي، او پاك شى كه څومره هم ډېر وي، د هغه سره لمونځ صحيح كيږي.

**د شيخينو دليل**: دا دى چي د مأكول اللحم ځارويانو متيازي نجاست خفيفه ده، او مخكي ذكر سوه چي نجاست خفيفه كه له كثيرِ فاحش يعني د جامو له څلورمي حصې څخه كم وي نو معاف دى، او له لمانځه څخه مانع نه دى، او كه كثيرِ فاحش وي، نو له لمانځه څخه مانع دى، لېكن وجه د تخفيف جلا جلا ده، د امام ابو يوسف رَحِمَهُ الله په نيز د مأكول اللحم متيازي ځكه نجاست خفيفه دى چي د دې په طهارت او نجاست كي د مجتهدينو اختلاف دى، او د امام ابو حنيفه رَحِمَهُ الله په نيز د وجه د تخيفيف تعارض د دلائلو دى، ځكه چي د عرنيينو له حديث څخه د دې طهارت ثابتيږي او له دغه حديث استنزهوا من البول فإن عامة عذاب القبر منه څخه د دې نجاست ثابتيږي.

---

• القول الراجح: قول الشيخين، كذا في الدر المختار ج:١، ص:٢٣٥. [القول الراجح، ج:١، ص:٥٢]

## د آس غوښه حلاله ده که مرداره؟

صاحب د هدايې فرمايي چي د صاحبينو رَحِمَهُمَا الله په نيز د آس غوښه حلاله ده (او د دوی په نيز د آس غوښه خوړل کيدای سي) ليکن د امام ابو حنيفه رَحِمَهُ الله په نيز حرامه ده، خو وجه د حرمت يې د امام صاحب په نيز نجاست نه دی، بلکي ځکه چي آس د جهاد آله ده، (نو که د آس د حلال والي حکم وسي، نو د نورو څارويانو په ډول به د هغه غوښه هم ډېره خوړل کيږي، چي په دې توګه به د جهاد دغه آله ختمه سي)

**راجح قول:** په پورتنی مسئله کي راجح قول د شيخينو دی، قال العلامة الشيخ احمد الطحطاوی رحمه الله و أما الثانی وهي النجاسة الخفيفة فکبول الفرس على المفتي به لأنه مأکول (حاشية الطحطاوی ج:۱، ص:۸۳). [القول الراجح ج:۱، ص:۵۲]

## د مأکول اللحم مرغانو د ګندګی (فضلې) حکم

وَإِنْ أَصَابَهُ خُرْءُ مَا لَا يُؤْكَلُ لَحْمُهُ مِنَ الطُّيُورِ أَكْثَرُ مِنْ قَدْرِ الدِّرْهَمِ او که پر کالو (جامو) د غير مأکول اللحم مرغيو ګندګي له يوه درهم څخه زياته ولګيږي أَجْزَأَتِ الصَّلَاةُ فِيهِ عِنْدَ أَبِي حَنِيفَةَ وَأَبِي يُوسُفَ رَحِمَهُمَا اللهُ نو د شيخينو په نيز په دې کالو کي لمونځ جائز دی وَقَالَ مُحَمَّدٌ رَحِمَهُ اللهُ●: لَا يَجُوزُ او امام محمد رَحِمَهُ الله فرمايي: چي جائز نه دی فَقَدْ قِيلَ إِنَّ الِاخْتِلَافَ فِي النَّجَاسَةِ بيا يو قول دا دی چي دا اختلاف د نجاست په باره کي دی وَقَدْ قِيلَ فِي الْمِقْدَارِ او يو قول دا دی چي د مقدار په باره کي دی وَهُوَ الْأَصَحُّ همدا قول زيات صحيح دی هُوَ يَقُولُ: إِنَّ التَّخْفِيفَ لِلضَّرُورَةِ امام محمد رَحِمَهُ الله فرمايي: چي تخفيف د ضرورت په وجه دی وَلَا ضَرُورَةَ لِعَدَمِ الْمُخَالَطَةِ او د مخالطت (ګډون) د نشتون په وجه (دلته) هيڅ ضرورت نسته فَلَا يُخَفَّفُ نو ځکه به تخفيف (هم) نه کيږي وَلَهُمَا: أَنَّهَا تَذْرِقُ مِنَ الْهَوَاءِ او د شيخينو دليل دا دی چي مرغان په هوا کي ګندګي کوي وَالتَّحَامِي عَنْهُ مُتَعَذِّرٌ او له هغه څخه ځان ژغورل ستونزمن دي فَتَحَقَّقَتِ الضَّرُورَةُ نو ضرورت ثابت سو وَلَوْ وَقَعَ فِي الْإِنَاءِ قِيلَ: يُفْسِدُهُ او که دا (د مرغانو ګندګي) په لوښي کي ولوېږي نو يو قول دا دی : چي لوښی مرداروي وَقِيلَ: لَا يُفْسِدُهُ او دويم قول دا دی چي نه يې مرداروي لِتَعَذُّرِ صَوْنِ الْأَوَانِي عَنْهُ ځکه چي د لوښو خوندي کول له هغه څخه ستونزمن دي.

**اللغات:** ﴿تَذْرِقُ﴾ د ضرب له باب څخه واحده مؤنثه غائبه مضارع صيغه ده، ﴿التَّحَامِي﴾ د تفاعل د باب مصدر دی: ځان ژغورل، ځان خوندي کول، ﴿صَوْن﴾ د نصر د باب مصدر دی: خوندي کول، ساتنه، ﴿أَوَانِي﴾ جمع ده، واحد يې إِنَاء دی: لوښی.

**تشريح:** صورت د مسئلې: دا دی که د مرغانو ګندګي په کالو (جامو) باندي ولګيږي او له يوه درهم څخه زياته وي، نو هم د شيخينو په نيز په دې کالو کي لمونځ صحيح او جائز دی، ليکن امام محمد رَحِمَهُ الله فرمايي چي که له يوه درهم څخه زياته وي نو په دې کالو کي لمونځ جائز نه دی.

---

● القول الراجح: قول الشيخين كذا في رد المحتار ج:۱، ص:۲۳۴. [القول الراجح، ج:۱، ص:۵۲]

د امام محمد او شيخينو رَحِمَهُمُ الله په مينځ کي چي کوم اختلاف دی، په دې سلسله کي د امام کرخي رَحِمَهُ الله رايه دا ده چي دا اختلاف د نجاست او د طهارت سره متعلق دی، يعني د امام محمد رَحِمَهُ الله په نيز د مرغانو ګندګي مرداره(ناپاکه) ده، او د شيخينو په نيز پاکه ده، خو دا قول صحيح نه دی، صحيح قول هغه دی کوم چي له فقيه ابو جعفر رَحِمَهُ الله څخه را نقل سوی دی چي د احنافو علماء د مرغانو د ګندګۍ پر نجس والي متفق دي، او دا اختلاف د مقدار په سلسله کي دی چي د هغه په باره کي د امام محمد رَحِمَهُ الله دليل دا دی چي په نجاست کي د ضرورت په وجه تخفيف راځي او مرغان په هوا کي ګرځي چي د هغو سره د انسانانو مخالطت او ګډون نه راځي، نو ځکه به دلته هم تخفيف نه راځي، او د مرغانو ګندګي به د نجاست غليظه له قبيلې څخه وي، او دا معلومه ده چي که نجاست غليظه له يوه درهم څخه زيات وي نو معاف نه دی، هم په دې وجه په پورتني صورت کي په دغه کالو کي لمونځ جائز نه دی، ځکه چي پر دې بلندي له يو درهم څخه زياته ګندګي لګېدلې ده.

**د شيخينو دليل:** دا دی چي مرغان په هوا کي ګندګي کوي، او له هغه څخه ځان ساتل ګران دي، نو ضرورت ثابت سو.

سوال: ولانا عبد الحي رَحِمَهُ الله فرمايي چي د امام اعظم رَحِمَهُ الله په نيز د تخفيف مدار د نصينو پر تعارض دی، او هغه دلته نسته، نو د ضرورت وجود دلته څرنګه دليل کېدای سي؟ د دې جواب دا کېدای سي چي دا د تخفيف د وجود دليل نه دی، بلکي د امام محمد رَحِمَهُ الله د دليل جواب دی.

ولو وقع الخ او که د مرغانو ګندګي په لوښي کي ولوېږي، نو په دې کي دوه قولونه دي: (۱) اول قول دا چي لوښی مردارېږي، دا روايت امام ابو بکر اعمش رَحِمَهُ الله اختيار کړی دی (۲) دويم دا چي لوښی نه مردارېږي، دا قوام امام کرخي رَحِمَهُ الله اختيار کړی دی.

**د امام اعمش دليل:** دا دی چي له دې څخه د لوښو ساتل ستونزمن او مشکل نه دي، نو ضرورت پيدا نه سو، نو ځکه به لوښی مردارېږي.

**د امام کرخي دليل:** دا دی چي له دې څخه د لوښو ساتل ستونزمن دي، نو د لوښو په حق کي هم ضرورت ثابت سو.

**راجح قول:** په پورتنۍ مسئله کي راجح قول د امام ابو حنيفه او امام ابو يوسف رَحِمَهُمَا الله دی، چي هغوی فرمايي: که د مرغانو ګندګي له يوه درهم څخه زياته پر کالو ولګېږي، نو په هغو کي لمونځ جائز دی، قال العلامة ابن الهمام رَحِمَهُ الله و جعل المصنف رَحِمَهُ الله الأصح التخفيف بناء على ان الضرورة فيه لا تؤثر اكثر من ذلك فانه قلما يصل الى ان يفحش فيكفي تخفيفه .(فتح القدير ج:۱، ص:۱۸۲). [القول الراجح ج:۱، ص:۵۴]

## د ماهي د وينو او د خره او غاټري د لاړو حکم

وَإِنْ أَصَابَهُ مِنْ دَمِ السَّمَكِ او که پر کالو د ماهي وينه ولګيږي أَوْ لُعَابِ الْبَغْلِ أَوِ الْحِمَارِ يا د غاټري يا د خره لاړي (پر ولګيږي) أَكْثَرُ مِنْ قَدْرِ الدِّرْهَمِ له يوه درهم څخه زيات أَجْزَأَتْ الصَّلَاةُ فِيهِ نو په دې کي لمونځ جائز دی أَمَّا دَمُ

السَّمَكِ فَلِأَنَّهُ لَيْسَ بِدَمٍ عَلَى التَّحْقِيقِ كوم چي د ماهي وينه ده نو د تحقيق (څېړني) مطابق هغه وينه نه ده فَلَا يَكُونُ نَجِسًا نو مرداره به هم نه وي وَعَنْ أَبِي يُوسُفَ رَحِمَهُ اللهُ● أَنَّهُ اعْتَبَرَ فِيهِ الْكَثِيرَ الْفَاحِشَ او له امام ابو يوسف رَحِمَهُ الله څخه روايت دی چي هغه د ماهي په وينه کي د کثيرِ فاحش اعتبار کړی دی فَاعْتَبَرَهُ نَجِسًا نو امام ابو يوسف رَحِمَهُ الله دا ناپاکه ګرځولې ده وَأَمَّا لُعَابُ الْبَغْلِ وَالْحِمَارِ اوکوم چي د غاتري او خره لاني دي (نو د يوه درهم په صورت کي څکه لمونځ ور سره جائز دی) فَلِأَنَّهُ مَشْكُوكٌ فِيهِ چي په لانو کي يې شک دی فَلَا يَتَنَجَّسُ بِهِ الطَّاهِرُ نو پاک شی به د هغه په وجه نه مردار يږي.

**اللغات:** ﴿لُعاب﴾ لاني (لاړي)، ﴿بَغْل﴾ غاتره (خچره).

**تشريح:** **مسئله:** دا ده که پر کالو د ماهي وينه يا د خره يا د غاتري لاني د يوه درهم په اندازه ولګيږي، نو په هغو کي لمونځ جائز دی، د ماهي وينه د لمانځه له جواز څخه ځکه مانع نه ده چي دا په حقيقت کي وينه نه ده، ځکه چي دا په لمر کي سپينيږي، حال دا چي اصلي وينه په لمر کي توريږي، نو ځکه دا وينه نه سوه، نو مرداره به هم نه وي، او چي مرداره نه سوه، نو د لمانځه له جواز څخه به مانع هم نه وي.

لېکن له امام ابو يوسف رَحِمَهُ الله څخه يو روايت دا دی چي د ماهي وينه نجسه ده په نجاست خفيفه سره، نو که پر کالو باندي د فاحش کثير په اندازه ولګېدله، نو لمونځ به پکښي جائز نه وي.

وأما لعاب البغل الخ پاته سوه دا خبره چي د خره او غاتري د لانو سره لمونځ په څه وجه صحيح دی؟، نو هغه په دې وجه چي د دوی په لانو کي شک دی، او په يقيني توګه سره معلومه نه ده چي پاکي دي، که مرداري؟ لېکن د کالو پاکوالی يقيني دی، نو د شکمن شي په وجه سره يقيني معلوم سوی شی نه سيْ ناپاکه کېدلای، لأن اليقين لا يزول بالشك.

**راجح قول:** په پورتنۍ مسئله کي راجح قول د امام ابو حنيفه او امام محمد رَحِمَهُمَا الله دی، قال العلامة ابن عابدين رَحِمَهُ الله: والمذهب ان دم السمك طاهر لانه دم صورة لا حقيقة وان سؤر هذين أى البغل والحمار طاهر قطعاً والشك فى طهوريته فيكون لعابهما طاهرا، (رد المحتار ج:۱، ص:۲۳۶). [القول الراجح ج:۱، ص:۵۵]

## پر جامو د متيازو د څاڅکو د لګېدلو حکم

فَإِنِ انْتَضَحَ عَلَيْهِ الْبَوْلُ مِثْلَ رُءُوسِ الْإِبَرِ او که پر کالو (جامو) د ستني د سر په اندازه د متيازو څاڅکي ولګيږي فَذَلِكَ لَيْسَ بِشَيْءٍ نو دا هيڅ شی هم نه دي لِأَنَّهُ لَا يُسْتَطَاعُ الِامْتِنَاعُ عَنْهُ ځکه چي له دې څخه ځان ژغول ممکن نه دي.

**اللغات:** ﴿رؤس الإبر﴾ إبر ستن ته ويل کيږي رُؤس جمع د رَأس ده يعني "سر"، نو د رؤس الابر معنیٰ سوه: د ستني سرونه.

**تشريح:** **صورت د مسئلې:** دا دی که د يو چا پر کالو د ستني د سر په اندازه د متيازو کوچني څاڅکي ولوېږي، نو په دې کي هيڅ حرج نسته، او د هغو له پرېوللو څخه بغير هم لمونځ صحيح دی، ځکه چي دا په دومره اندازه نرۍ دي چي په

● القول الراجح: قول الطرفين كذا فى الدر المختار ج:۱، ص:۲۳۶. [القول الراجح، ج:۱، ص:۵۵]

سترګو نه ليدل کيږي، بيا داسې په پټه پر کالو لګيږي چې انسان ته يې احساس هم نه کيږي، لهذا له دې څخه ځان ساتل د انسان په وس او طاقت کې نه سو، نو ځکه به دا معاف وي.

## د مرئي نجاست او غير مرئي نجاست د طهارت حکم او طريقه

وَالنَّجَاسَةُ ضَرْبَانِ: مَرْئِيَّةٌ وَغَيْرُ مَرْئِيَّةٍ او نجاست پر دوه قسمه دی: په نظر راتلونکی او په نظر نه راتلونکی فَمَا كَانَ مِنْهَا مَرْئِيًّا فَطَهَارَتُهُ بِزَوَالِ عَيْنِهَا نو کوم چې په نظر راځي نو د هغه طهارت د هغه د ذات په زائلولو سره راځي لِأَنَّ النَّجَاسَةَ حَلَّتِ الْمَحَلَّ بِاعْتِبَارِ الْعَيْنِ ځکه چې نجاست په محل کي د خپل ذات په اعتبار سره حلول کړی دی فَتَزُولُ بِزَوَالِهَا نو د ذات په لرې کېدلو سره به نجاست زائليږي إِلَّا أَنْ يَبْقَى مِنْ أَثَرِهَا مَا يَشُقُّ إِزَالَتُهُ خو دا چې د نجاست له اثر څخه يو څه اثر (داسي) پاته وي چې د هغه ليرې کول ګران وي لِأَنَّ الْحَرَجَ مَدْفُوعٌ ځکه چې (په شريعت کې) تکليف ليرې کړی سوی دی وَهَذَا يُشِيرُ إِلَى أَنَّهُ لَا يُشْتَرَطُ الْغَسْلُ بَعْدَ زَوَالِ الْعَيْنِ او دا اشاره کوي و دې طرف ته چې د نجاست د ذات تر زائلېدلو وروسته پرېولل شرط نه دي وَإِنْ زَالَ بِالْغَسْلِ مَرَّةً وَاحِدَةً که څه هم په يوه وار پرېوللو سره ذات زائل سي وَفِيهِ كَلَامٌ او په دې باره کي کلام دی. (د مشائخو په مينځ کي).

**تشريح**: په دې عبارت کي د مرئي او غير مرئي په اعتبار سره د نجاست دوه قسمونه بيان سوي دي:

**نجاستِ مرئي**: هغه نجاست ته ويل کيږي چې جسم داره يعني جسم لرونکی وي، او په سترګو ليدل کيږي، لکه: وينه، غايطه مواد(انساني فضله) او داسې نور.

**نجاست غير مرئي**: هغه دی چې جسم داره نه وي او په سترګو نه ليدل کيږي، لکه متيازي او داسې نور.

د نجاست مرئي د پرېوللو او پاکولو طريقه دا ده چې تر هغه وخته به پرېولل کيږي چې تر څو يې ذات(او عين) ليري سوی نه وي، هغه که په يوه وار پرېوللو سره ليري سي، او که په دوه يا دريو وارو يا له دې څخه په زياتو وارو ليري سي، بس اصل د ذات ليري کول ضروري دي، ځکه چې نجاست مرئي په خپل ذات او عين سره په محل کي سرايت کوي، نو تر کومه وخته چې يې ذات ليري نه کړای سي، محل نه پاکيږي، هو! که چيري د نجاست د ذات تر ليري کولو وروسته د نجاست اثر باقي پاته سي، او د هغه پرېولل ګران وي نو په دې صورت کي د اثر په پاته کېدلو کي هيڅ پروا نسته، ځکه چې شريعت له اُمت څخه حرج ليري کړی دی.

صاحب د بنايې ليکلي دي چې په دې باره کي د خوله بنت قتاده رَضِيَ اللهُ عَنْهَا له هغه حديث څخه هم استدلال کېدای سي چې نبي ﷺ هغې ته فرمايلي وو: "هغه جامې پرېوله چې د حيض وينې پر لګېدلي وي، ولا يضرك أثره. او تر پرېوللو وروسته که د وينو اثر پاته سو نو هغه تاته هيڅ ضرر نه رسوي". (بنايه ج:۱، ص:۷۵۱)

وهٰذا يشير الخ صاحب د هدايې فرمايي چې د امام قدوري رَحِمَهُ الله بيان سوې مسئله و دې طرف ته اشاره کوي چې که په يوه وار پرېوللو سره د نجاست ذات ليري سي نو نور پرېولل يې شرط نه دي، او که په يوه وار سره ليري نه سي نو تر ليري کولو پوري يې پرېولل ضروري دي، هغه که په دوو وارو سره زائل سي، يا په دريو يا څلورو وارو سره، همدا صحيح قول دی، که څه هم په دې سلسله کي بعضو حضراتو د ذات تر زائلېدلو وروسته نور پرېولل هم شرط کړي دي.

وفيه كلام الخ له دې ځايه همدغه خبره ښيي چې له مشائخو څخه د امام ابو جعفر رَحِمَهُ الله په نيز که په يوه وار د نجاست ذات ليرې سو تر هغه وروسته دوه واره نور پرېولل هم شرط دي، او امام طحاوي رَحِمَهُ الله هم دا خبره کوي، خو صحيح خبره هغه ده کوم چې مصنف رَحِمَهُ الله ذکر کړه.

## د غير مرئي نجاست د طهارت حکم او طريقه

وَمَا لَيْسَ بِمَرْئِيٍّ فَطَهَارَتُهُ او کوم نجاست چې نه ليدل کيږي نو د هغه طهارت دا دی أَنْ يُغْسَلَ حَتَّى يَغْلِبَ عَلَى ظَنِّ الْغَاسِلِ أَنَّهُ قَدْ طَهُرَ چې دومره اندازه په پرېولل کيږي چې د پرېولونکي غالب ګومان دا سي چې هغه پاک سو لِأَنَّ التَّكْرَارَ لَا بُدَّ مِنْهُ لِلِاسْتِخْرَاجِ ځکه چې د نجاست د ايستلو لپاره تکرار ضروري دی وَلَا يُقْطَعُ بِزَوَالِهِ او د نجاست د ليرې کېدلو يقين نه سي کېدلی فَاعْتُبِرَ غَالِبُ الظَّنِّ نو د غالب ګومان اعتبار وسو كَمَا فِي أَمْرِ الْقِبْلَةِ لکه د قبلې په مسئله کي (چي د غالب ګومان اعتبار سوی دی) وَإِنَّمَا قَدَّرُوا بِالثَّلَاثِ او فقهاؤ د غالب ګومان اندازه په درېو وارو سره کړې ده لِأَنَّ غَالِبَ الظَّنِّ يَحْصُلُ عِنْدَهُ ځکه چې غالب ګومان هم په دې اندازه سره حاصليږي فَأُقِيمَ السَّبَبُ الظَّاهِرُ مَقَامَهُ تَيْسِيرًا نو د آسانتيا په خاطر ظاهري سبب د غالب ګومان قائم مقام کړی سو وَيَتَأَيَّدُ ذَلِكَ بِحَدِيثِ الْمُسْتَيْقِظِ مِنْ مَنَامِهِ او د دې تائيد د مستيقظ من منامه په حديث سره هم کيږي ثُمَّ لَا بُدَّ مِنَ الْعَصْرِ فِي كُلِّ مَرَّةٍ فِي ظَاهِرِ الرِّوَايَةِ بيا د ظاهر روايت مطابق په هر وار کي نڅوړل (نښتېړل) ضروري دي لِأَنَّهُ هُوَ الْمُسْتَخْرِجُ ځکه چې (فقط) نښتېړل نجاست ايستلای سي (او له منځه يې وړي).

**تشريح**: په دې عبارت کي د نجاست د دويم قسم يعني د غير مرئي نجاست بيان سوی دی، لکه متيازې. شراب او داسي نور، د دې حکم دا دی چې جامې دي دومره اندازه پرېولل سي چې د پرېولونکي سړي دا غالب ګومان سي چې هغه پاکي سوې.

**دليل**: دا دی چې له کالو څخه د نجاست د ايستلو لپاره په پرېوللو کي تکرار ضروري دی، او څرنګه چې د دې نجاست د ليري کېدلو يقيني خبر او علم امکان نه لري (يعني انسان د کالو تر پرېوللو وروسته په يقيني توګه دا نه سي ويلای چې نجاست ځني ووتی) نو ځکه به د غالب ګومان اعتبار کيږي، لکه څرنګه چې د قبلې د جهت په مسئله کي هم د غالب ګومان اعتبار کيږي، يعني که پر يوه سړي باندي قبله شکمنه سوه چې قبله کومي خوا ته ده، او دويم انسان هم نه وو چې قبله ور وښيي، نو په داسي صورت کي هغه ته پکار ده چې په قبله کي غور او فکر وکړي، تر فکر کولو وروسته يې چې پر کوم طرف غالب ګومان سي هغه طرف ته دي لمونځ وکړي، او که تر لمونځ کولو وروسته معلومه سي چې قبله بل طرف ته وه، نو د لمانځه راګرځول پر واجب نه دي.

وإنما قدروا ... الخ صاحب د هدايې فرمايي چې فقهاؤ د غالب ګومان اندازه په درېو واره پرېوللو سره کړې ده، ځکه چې په دې شمېر سره غالب ګومان حاصليږي، نو د آسانۍ لپاره ظاهري سبب يعني د درېو شمېر د غالب ګومان قائم مقام کړی سو، يعني په درېو وار پرېوللو سره به د پاکۍ حکم کيږي، او د دې تائيد په دې حديث سره هم کيږي: إذا استيقظ احدكم من منامه فلايغمسن يده في الإناء حتى يغسلها ثلاثا فانه لايدرى اين باتت يده، په دې حديث کي د موهوم (لو

شکمن) نجاست په وجه د درې واره پرېوللو حکم سوی دی، نو د متحقق (او ثابت) نجاست په وجه خو به په طريقه اولیٰ دا حکم کيږي، همدارنګه د ظاهر الرواية مطابق هر وار د جامو نستيړل (هم) ضروري دي، ځکه چې همدغه نستيړل غير مرئي نجاست ايستلای سي؛ او په غير ظاهر الرواية کي له امام محمد رَحِمَهُ الله څخه را نقل سوي دي چې صرف په دريم وار د کپړې نستيړل کافي دي، هر واري نستيړل ضروري نه دي.



## فَصْلٌ فِي الْاِسْتِنْجَاءِ

### (دا) فصل د استنجاء (په بيان کي) دی

**تشريح**: څرنګه چې له سبيلين (دوو لارو) څخه د نجاست ليري کولو ته استنجاء ويل کيږي، نو په دې وجه صاحب د کتاب هم د استنجاء فصل په باب الأنجاس وتطهيرها کي ذکر کړی.

په اصل کي د استنجاء لفظ له نجو څخه را اخيستل سوی دی، او د نجو معنیٰ ده: له نس څخه را وتونکی شی؛ لوړ او جګ ځای ته هم نجو ويل کيږي، ځکه کله چې انسان صحرا ته د استنجاء لپاره ځي، نو په يو لوړ ځای سره ځان پټوي، او د فقهاؤ په اصطلاح کي إزالة النجاسة العينية عن السبيلين، "يعني له سبيلينو څخه د حقيقي نجاست ليري کولو ته استنجاء ويل کيږي".

### د استنجاء احکام، د استنجاء شرعي حيثيت او طريقه

اَلْاِسْتِنْجَاءُ سُنَّةٌ استنجاء سنت ده لِأَنَّ النَّبِيَّ (ص) وَاظَبَ● عَلَيْهِ ځکه چې نبي ﷺ پر استنجاء همېشتوب کړی دی وَيَجُوْزُ فِيهِ الْحَجَرُ وَمَا قَامَ مَقَامَهُ او په استنجاء کي ډبره او د دې قائم مقام شيان هم جائز دي يَمْسَحُهُ حَتّٰى يُنَقِّيَهُ په دې سره به مسح کوي تر دې چې د استنجاء ځای پاک کړي لِأَنَّ الْمَقْصُوْدَ هُوَ الْإِنْقَاءُ ځکه چې مقصود پاکوالی دی فَيُعْتَبَرُ مَا هُوَ الْمَقْصُوْدُ نو څه چې مقصود دي هغه به معتبر وي وَلَيْسَ فِيهِ عَدَدٌ مَسْنُوْنٌ او په دې کي يو مسنون شمېر نسته وَقَالَ الشَّافِعِيُّ رَحِمَهُ اللهُ: لَا بُدَّ مِنَ الثَّلَاثِ او امام شافعي فرمايي: چې د درېو شمېر ضروري دی لِقَوْلِهِ عَلَيْهِ الصَّلَاةُ وَالسَّلَامُ● وَلْيَسْتَنْجِ مِنْكُمْ بِثَلَاثَةِ أَحْجَارٍ ځکه نبي ﷺ فرمايلي دي: "په تاسو کي دي (هر سړی) په درې ډبرو سره استنجاء کوي" وَلَنَا قَوْلُهُ عَلَيْهِ الصَّلَاةُ وَالسَّلَامُ● مَنِ اسْتَجْمَرَ فَلْيُوتِرْ او زموږ دليل دا دی چې نبي ﷺ فرمايلي دي:

---

● تخريج: أخرجه البخاري في كتاب الوضوء، باب حمل العنـزة مع الماء في الاستنجاء، حديث رقم:١٥٢.
● تخريج: أخرجه ابو داؤد في كتاب الطهارة باب كراهية استقبال القبلة، حديث رقم:٨.
● تخريج: أخرجه ابو داؤد في كتاب الطهارة باب الاستتار في الخلاء، حديث رقم:٣٥.

"څوک چي په لوټو استنجاء کوي هغه دې په طاق شمېر سره لوټي استعمالوي فَمَنْ فَعَلَ فَحَسَنٌ وَمَنْ لَا فَلَا حَرَجَ نو چا چي دغسي وکړه ښه يې وکړه او چا چي دغسي نه وکړه نو هيڅ پروا نه لري" وَمَا رَوَاهُ مَتْرُوكُ الظَّاهِرِ او امام شافعي رَحِمَهُ اللهُ چي کوم روايت کړی دی هغه متروکُ الظاهر دی فَإِنَّهُ لَوِ اسْتَنْجَىٰ بِحَجَرٍ لَهُ ثَلَاثَةُ أَحْرُفٍ ځکه که يو سړی په داسي ډبره سره استنجاء وکړي چي د هغې درې طرفونه (اړخونه) وي جَازَ بِالْإِجْمَاعِ نو په اتفاق سره دغه استنجاء جائز ده وَغَسْلُهُ بِالْمَاءِ أَفْضَلُ خو (د استنجاء ځای) په اوبو سره پرېولل افضله دي لِقَوْلِهِ تَعَالَىٰ: فِيهِ رِجَالٌ يُحِبُّونَ أَنْ يَتَطَهَّرُوا ځکه الله تعالیٰ فرمايلي دي: چي په صحابه وو کي څه خلک داسي دي چي په ښه توګه سره ځان پاکول خوښوي نَزَلَتْ فِي أَقْوَامٍ كَانُوا يَتْبَعُونَ الْحِجَارَةَ الْمَاءَ دا آيت د هغو حضراتو په باره کي را نازل سو چي هغوی به تر ډبرو وروسته اوبه هم کارولې ثُمَّ هُوَ أَدَبٌ او بيا په اوبو سره استنجاء کول ادب (مستحب) دي وَقِيلَ هُوَ سُنَّةٌ فِي زَمَانِنَا او يو قول دا دی چي زموږ په زمانه کي سنت دي وَيَسْتَعْمِلُ الْمَاءَ إِلَىٰ أَنْ يَقَعَ فِي غَالِبِ ظَنِّهِ أَنَّهُ قَدْ طَهُرَ او اوبه به (په دومره اندازه) کاروي تر دې چي د هغه غالب ګومان داسي چي د نجاست ځای پاک سو وَلَا يُقَدَّرُ بِالْمَرَّاتِ او په وارونو سره به اندازه نه کېږي إِلَّا إِذَا كَانَ مُوَسْوِسًا فَيُقَدَّرُ بِالثَّلَاثِ فِي حَقِّهِ خو که يو سړی وسواسي وو نو د هغه په حق کي به په درې وارو سره اندازه کېږي وَقِيلَ: بِالسَّبْعِ او يو قول دا دی چي: په اوو (۷) وارو سره به اندازه کېږي.

**اللغات:** ﴿إِسْتَجْمَرَ﴾ د استفعال د باب ماضي صيغه ده: د استنجاء لپاره لوټي لټول. ﴿مُوَسْوِس﴾ د فعللې د باب اسم فاعل دی: وسواسي، هغه انسان چي په اودانسه او داسي نورو عبادتونو کي په وسوسو او انديښنو مبتلا وي.

**تشريح:** **صورت د مسئلې:** دا دی چي زموږ په نېز استنجاء کول سنت مؤکده دي، او د امام شافعي رَحِمَهُ اللهُ په نېز فرض دي، او د ستنوالي دليل يې دا دی چي پر دې نبي ﷺ همېشتوب کړی دی، لکه څرنګه چي د رسول الله ﷺ خادم حضرت انس رضي الله عنه فرمايي: كَانَ رَسُولُ اللهِ ﷺ يَدْخُلُ الْخَلَاءَ فَأَحْمِلُ أَنَا وَغُلَامٌ نَحْوِي إِدَاوَةً مِنْ مَاءٍ وَعَنَزَةً فَيَسْتَنْجِي بِالْمَاءِ. (يعني نبي ﷺ چي به کله د قضاء حاجت لپاره تلی، نو زه او زما هم عمره (همزولی) يو کوچنی به د اوبو لوښی او عنزه را اخيستله او نبي ﷺ به په اوبو سره استنجاء کوله).

او په ابن ماجه کي له حضرت عائشې رَضِيَ اللهُ عَنْهَا څخه روايت دی قالت ما رأيت رسول الله ﷺ خرج من غائط قط إلا مس ماء، (حضرت عائشه رَضِيَ اللهُ عَنْهَا فرمايي چي ما نبي ﷺ هيڅکله ليدلی نه دی چي له غايطو څخه دي راوتلی وي او اوبه دي يې مسه کړي نه وي)

له دې دواړو حديثونو څخه ثابتيږي چي نبي ﷺ په استنجاء باندي همېشتوب کړی دی. په استنجاء کي ډبره او کوم شی چي د دې قائم مقام وي استعمالول جائز دي، او د استنجاء طريقه دا ده چي د استنجاء ځای دي دومره اندازه مسح کړي چي هغه پاک سي، ځکه چي پاکول يې مقصود دي، نو کوم څه چي مقصود وي هغه به معتبر دي.

صاحب د هدايې وايي چې په ډېرو کې هيڅ شمېر سنت نه دی، بلکې په څومره اندازه چې پاکي حاصليږي هغومره ډېري دې استعمال کړي، هغه که درې وي يا له درې څخه کمې يا له درې څخه زياتې، امام شافعي رَحِمَهُ الله فرمايي چې درې ډېري ضروري دي.

**د امام شافعي دليل:** د حضرت ابو هريره ﷺ حديث دی : أن رسول الله ﷺ قال انما أنا لكم مثل الوالد إذا ذهب احدكم الى الغائط فلا يستقبل القبلة ولا يستدبرها بغائط ولا بول وليستنج بثلاثة احجار. (يعني نبي ﷺ وفرمايل چې زه ستاسو لپاره د پلار په مثال يم، چې کله په تاسو کې يو سړی غايطو ته ولاړسي نو په غايطه مواد او متيازو کې دې مخامخ پر قبله نه کښيني او نه دې شا ور کړځوي، او په دريو ډېرو دې استنجاء کوي) په دې حديث کې د امر صيغه راغلې ده، او امر د وجوب لپاره وي، نو له دې حديث څخه د استنجاء واجب کېدل او په ډېرو کې د دريو شمېر ثابت سو.

**زموږ دليل:** دا حديث دی: عَنْ أَبِي هُرَيْرَةَ رَضِيَ اللهُ عَنْهُ عَنِ النَّبِيِّ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ قَالَ مَنِ اكْتَحَلَ فَلْيُوتِرْ. مَنْ فَعَلَ فَقَدْ أَحْسَنَ وَمَنْ لَا فَلَا حَرَجَ. وَمَنِ اسْتَجْمَرَ فَلْيُوتِرْ. وَمَنْ فَعَلَ فَقَدْ أَحْسَنَ وَمَنْ لَا فَلَا حَرَجَ. وَمَنْ أَكَلَ فَمَا تَخَلَّلَ فَلْيَلْفِظْ وَمَا لَاكَ بِلِسَانِهِ فَلْيَبْتَلِعْ. وَمَنْ فَعَلَ فَقَدْ أَحْسَنَ وَمَنْ لَا فَلَا حَرَجَ. وَمَنْ أَتَى الْغَائِطَ فَلْيَسْتَتِرْ. فَإِنْ لَمْ يَجِدْ إِلَّا أَنْ يَجْمَعَ كَثِيبًا مِنْ رَمْلٍ فَلْيَسْتَدْبِرْهُ، فَإِنَّ الشَّيْطَانَ يَلْعَبُ بِمَقَاعِدِ بَنِي آدَمَ. مَنْ فَعَلَ فَقَدْ أَحْسَنَ وَمَنْ لَا فَلَا حَرَجَ حَدِيثٌ حَسَنٌ. رَوَاهُ أَبُو دَاوُد

په دې حديث سره زموږ استدلال په دې توګه دی چې نبي ﷺ په دې حديث کې تر من استجمر فليوتر وروسته فرمايلي دي: من فعل فقد فحسن ومن لا فلاحرج؛ د من استجمر...الخ معنیٰ ده: څوک چې په لوټو يا ډېرو سره استنجاء کوي، نو په طاق شمېر دې يې وکړي... يعني چا چې طاق عدد استعمال کړی، هغه ډېر ښه وکړه، او که چا داسې نه وکړه نو هيڅ خبره نه ده؛ نو که د دريو شمېر واجب او ضروري وای نو نبي ﷺ به دا ضروري ګرځولای او د نه کونکي په باره کې به يې د فلاحرج پر ځای فقد أساء وظلم فرمايلي وای. نو معلومه سوه چې په ډېرو کې هيڅ شمېر ضروري نه دی.

**جواب:** و ما رواه...الخ پاته سو هغه حديث کوم چې امام شافعي رَحِمَهُ الله په دليل کې ذکر کړی دی. د هغه جواب دا دی چې دا حديث متروکُ الظاهر دی، يعني ظاهري مفهوم يې پرېښوول سوی دی، ځکه چې دا مسئله متفق عليه ده چې که يو سړی په يو داسې ډېره سره استنجاء وکړي چې هغه درې اړخونه لري، نو په اتفاق سره په دې يوه ډېره استنجاء صحيح ده، او له دې څخه ماسوا د نورو ډېرو ضرورت نسته، له دې څخه هم معلومه سوه چې درې ډېري ضروري نه دي.

**دويم جواب:** دا دی چې دلته د امر صيغه پر استحباب حمل سوې ده.

**دريم جواب:** دا دی چې کله نبي ﷺ له عبد الله بن مسعود ﷺ څخه د استنجاء لپاره ډېري طلب کړې، او عبد الله بن مسعود ﷺ دوې ډېري راوړې او دريمه ډېره يې پيدا نه کړه او د هغه پر ځای يې خوشايي راوړل، نو نبي ﷺ دوې ډېري واخيستلې او خوشايي يې وغورځول، او ويې فرمايل چې دا مردار (نجس) دي، نو که د دريو شمېر واجب وای نو نبي ﷺ به د دريمې ډېري طلب خامخا کولای، حال دا چې نبي ﷺ دريمه ډېره طلب نه کړه، لکه څرنګه چې په بخاري کې هم ذکر سوي دي، له دې قصې څخه ثابتيږي چې د دريو شمير شرط نه دی.

## تر لوټو (او ډېرو) وروسته د اوبو استعمال مستحب دی، که سنت؟

صاحب د هدايې فرمايلي دي تر ډېرو او لوټو وروسته په اوبو باندې پرېوللل غوره دي ځکه چې الله تعالیٰ فرمايلي دي: فِيهِ رِجَالٌ يُحِبُّونَ أَنْ يَتَطَهَّرُوا (سورة التوبة ۱۰۸)، دا آيت د اهلِ قُبا په باره کې را نازل سوی دی، او د اهل قبا عادت وو

چي هغوی به تر ډبرو وروسته په اوبو استنجاء کوله. ښکاره دي وي چي د ډبرو تر استنجاء وروسته په اوبو استنجاء کول مستحب دي، ځکه چي نبي ﷺ به کله په اوبو استنجاء کوله، او کله به يې پرېښووله، او ښکاره خبره ده چي دا د استحباب دليل دی.

وقيل الخ او ځيني حضراتو فرمايلي دي چي زموږ په زمانه کي په اوبو استنجاء کول سنت دي، دا قول له حسن بصري رَحِمَهُ الله څخه را نقل سوی دی، دليل يې د حضرت علي ﷺ اثر دی: قال إن من كان قبلكم كانوا يبعرون بعرا وأنتم تثلطون ثلطا فاتبعوا الحجارة الماء. (حضرت علي ﷺ فرمايي چي مخکني خلکو به پچي کولې او تاسو نری پاخانه (غايطه مواد) کوی نو تر ډبرو وروسته د اوبو استعمال کوئ). (بيهقي)

ويستعمل الماء الخ فرمايي چي استنجاء کونکي ته پکار دي چي د استنجاء ځای دي تر هغه وخته پرېولي تر څو چي يې غالب ګومان سي چي هغه ځای پاک سو، او په دې سلسله کي د درو يا پنځو وارو هيڅ قيد نسته، لېکن که يو سړی د شک او وسوسو مريض وو، نو د هغه لپاره حکم دا دی چي هغه دي يې درې يا پنځه يا اووه واره پرېولي، چي پاکي هم راسي، او د ده شک هم ليري سي.

## څه وخت اوبه استعمالول ضروري دي؟

وَلَوْجَاوَزَتِ النَّجَاسَةُ مَخْرَجَهَا او که نجاست له خپل مخرج څخه تجاوز وکړی لَمْ يَجُزْفِيْهِ إِلَّا الْمَاءُ نو د هغه په ليري کولو کي له اوبو څخه ماسوا بل شی جائز نه دی وَفِيْ بَعْضِ النُّسَخِ: إِلَّا الْمَائِعُ او په بعضي نسخو کي إلّا المائع دي (يعني له بهېدونکي شي څخه ماسوا بل شی جائز نه دی) وَهَذَا يُحَقِّقُ اِخْتِلَافَ الرِّوَايَتَيْنِ فِيْ تَطْهِيْرِ الْعُضْوِ بِغَيْرِ الْمَاءِ او دا له اوبو څخه ماسوا په بل شي سره د اندام په پاکولو کي د دوو روايتونو اختلاف ثابتوي عَلٰى مَا بَيَّنَّا لکه (مخکي) چي موږ (د دې) بيان وکړی وَهٰذَا لِأَنَّ الْمَسْحَ غَيْرُ مُزِيْلٍ او دا په دې وجه چي مسح (د نجاست) ليري کونکې نه ده إِلَّا أَنَّهُ اكْتُفِيَ بِهِ فِيْ مَوْضِعِ الْاِسْتِنْجَاءِ لېکن د استنجاء په ځای کي پر دې اکتفا سوې ده فَلَا يَتَعَدَّاهُ نو هغه به نه متعدي کيږي ثُمَّ يُعْتَبَرُ الْمِقْدَارُ الْمَانِعُ وَرَاءَ مَوْضِعِ الْاِسْتِنْجَاءِ عِنْدَ أَبِيْ حَنِيْفَةَ وَأَبِيْ يُوْسُفَ رَحِمَهُمَا اللهُ بيا هغه مقدار کوم چي له لمانځه څخه مانع دی د شيخينو په نېز د استنجاء له ځای څخه علاوه دی (يعني که نجاست د استنجاء له ځای څخه ماسوا يوه درهم ته ورسېږي، نو لمونځ به نه ورسره صحيح کيږي) لِسُقُوْطِ اعْتِبَارِ ذٰلِكَ الْمَوْضِعِ ځکه چي د دې ځای اعتبار ساقط سوی دی وَعِنْدَ مُحَمَّدٍ رَحِمَهُ اللهُ مَعَ مَوْضِعِ الْاِسْتِنْجَاءِ او د امام محمد رَحِمَهُ الله په نېز هغه مقدار د استنجاء د ځای سره معتبر دی (يعني د امام محمد په نېز که د استنجاء د ځای سره سره نجاست تر يوه درهم زيات سي نو د لمانځه له جواز څخه به مانع وي) اعْتِبَارًا بِسَائِرِ الْمَوَاضِعِ پر ټولو ځايونو باندي په قياس کولو سره (يعني امام محمد رَحِمَهُ الله دا مسئله په پر نورو ځايونو قياسوي).

**تشريح:** مسئله: دا ده که نجاست د استنجاء له ځای څخه تجاوز وکړي، نو هغه صرف په اوبو سره پاکيږي، او د هدايې په بعضو نسخو کي د إلا الماء پر ځای د إلا المائع لفظ راغلی دي، يعني چي کله نجاست د استنجاء له محل څخه تجاوز وکړي نو هغه صرف په بهېدونکي شي سره پاکيږي، که دغه بهېدونکی شی اوبه وي او که له اوبو څخه ماسوا بل شی وي

لکه سرکه او داسي نور، او د دې إلا الماء او المائع د اختلاف څخه دا خبره هم ثابتيږي چي له اوبو څخه ماسوا په نورو پاکونکو شيانو سره د اندام په پاکولو او نه پاکولو کي دوه مختلف روايتونه دي، يعني د إلا الماء د نسخې څخه دا معلوميږي چي حقيقي مرداري له اوبو څخه ماسوا په بل شي نه پاکيږي، او د إلا المائع له نسخې څخه دا معلوميږي چي په کوم شي سره چي حقيقي مرداري زائلېداى، په هغه سره يې ليري کول جائز دي، هغه که اوبه وي او که له اوبو څخه ماسوا بل څه وي.

**دليل:** او د دې خبري دليل چي کله نجاست له خپل مخرج څخه تجاوز وکړي نو د هغه پريولل فرض دي، دا دی: چي په دبرو او نورو سره نجاست نه ليري کيږي، بلکي نور هم خوريږي، ليکن د ضرورت په وجه د استنجاء په ځای کي خلاف القياس په دبرو او نورو سره د دې پاکول طهارت شمار وګرځول سو، او دا قاعده ده چي کله يو شی د يو ضرورت په وجه خلاف القياس ثابت وي، نو هغه به خاص وي د ضرورت تر شي پوري، بل شي ته به دغه حکم تجاوز نه کوي، نو له دې څخه ثابته سوه چي که نجاست تجاوز وکړی نو له اوبو څخه ماسوا په بل شي سره پاکي نه سي راتلای.

ثم يعتبر المقدار الخ دا خبره په يادلرئ! چي هغه مقدار کوم چي د لمانځه له جواز څخه مانع دی، هغه د شيخينو په نيز که د استنجاء د ځای له نجاست څخه ماسوا له يوه درهم څخه زيات سو نو هغه اندازه معتبره ده، (يعني که له موضع استنجاء څخه ماسوا تر يوه درهم نجاست زيات سو، نو د هغه سره لمونځ جائز نه دی، ځکه چي د شيخينو په نيز موضع استنجاء نه شمارل کيږي، له موضع استنجاء څخه مراد د غايطو راوتلو ځای دی) ځکه چي د استنجاء د ځای (موضع استنجاء) اعتبار خو ساقط دی، نو که له دې څخه ماسوا له يوه درهم څخه نجاست زيات سو نو د هغه پريولل به فرض وي.

او د امام محمد رَحِمَهُ الله په نيز که د استنجاء د ځای سره نجاست له يوه درهم څخه زيات سو نو مانع د لمانځه به وي، امام محمد رَحِمَهُ الله پر نورو ځايونو قياس کوي، يعني څرنګه چي په نورو ځايونو کي د يوه درهم مقدار معاف دی او له هغه څخه زيات معاف نه دی، همدارنګه د استنجاء په ځای کي به هم د يوه درهم مقدار معاف وي، او له دې څخه به زيات معاف نه وي.

## په هډوکو او خوشايوو سره د استنجاء حکم

وَلَا يَسْتَنْجِي بِعَظْمٍ وَلَا بِرَوْثٍ او استنجاء به نه کوي په خوشايوو او هډوکو سره لِأَنَّ النَّبِي صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّم ● نَهَى عَنْ ذٰلِكَ ځکه نبي په دې شيانو باندي له استنجاء کولو څخه منع کړې ده وَلَوْ فَعَلَ خو که يو چا په دې شيانو استنجاء وکړه يُجْزِئِهِ لِحُصُوْلِ الْمَقْصُوْدِ نو د هغه لپاره دا استنجاء کافي ده ځکه چي مقصود حاصل سو وَمَعْنَى النَّهْيِ فِي الرَّوْثِ لِلنَّجَاسَةِ او په خوشايوو کي د نهي وجه نجاست دی وَفِي الْعَظْمِ كَوْنُهُ زَادَ الْجِنِّ او په هډوکو کي د نهي وجه د پېريانو خوراک کېدل دی وَلَا بِطَعَامٍ او نه دي د خوراک په شي سره استنجا کوي لِأَنَّهُ إِضَاعَةٌ وَإِسْرَافٌ ځکه چي دا ضائع کول او اسراف کول دي وَلَا بِيَمِيْنِهِ او نه دي په راسته لاس سره استنجاء کوي لِأَنَّ النَّبِي صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّم ● نَهَى عَنِ الِاسْتِنْجَاءِ بِالْيَمِيْنِ ځکه نبي ﷺ په راسته لاس له استنجاء کولو څخه منع کړې ده.

---

● تخريج: أخرجه البخاري في كتاب الوضوء، باب الاستنجاء بالاحجار، حديث رقم:١١٥٥ و ابو داؤد في كتابا لطهارة، باب كراهية استقبال القبلة، حديث رقم:٧.

● تخريج: أخرجه البخاري في كتاب الوضوء باب النهي عن الاستنجاء باليمين، حديث رقم:١٥٣.

**اللغات**: ﴿زَادُ الجِنِّ﴾ د پیریانو توښه (یعني د پیریانو خوراک)، ﴿إِضَاعَةٌ﴾ د افعال د باب مصدر دی: ضایع کول، هلاکول، ﴿إِسْرَافٌ﴾ د افعال د باب مصدر دی: بې ځایه خرڅول، بدخرڅي، اسراف کول.

**تشریح**: **مسئله**: دا ده چي په هډوکو او خوشایو سره استنجاء کول شرعاً منع دي، ځکه په بخاري شریف کي د ابو هریره رضي الله عنه حدیث دی: قال له النبي ﷺ إبغني أحجارا أستنفض بها ولا تأتني بعظم ولا بروثة. قلت ما بال العظام والروثة. فقال من طعام الجن، (نبي کریم ﷺ ابو هریره رضي الله عنه ته وویل چي زما لپاره ډبري ولټوه چي په هغو سره پاکي حاصله کړم، هډوکي او خوشایي مه راوړه، ما ورته وویل چي د هډوکو او خوشایوو څه وجه ده؟، نبي ﷺ وفرمایل چي دا دواړه د پیریانو خوراک دی، همدارنګه ترمذي روایت کړی دی: لا تستنجوا بالروث ولا بالعظام فانه زاد اخوانكم من الجن، (تاسي په خوشایوو او هډوکو استنجاء مه کوئ ځکه چي هغه ستاسي د ورونو پیریانو توښه ده).

خو که چا دې نهي (او ممانعت) سره په دې شیانو استنجاء وکړه نو استنجاء یې صحیح ده، ځکه چي مقصود حاصل سو چي هغه پاکي ده، خو سنت نه اداء کیږي. او په خوشایوو کي د نهي او ممانعت وجه د هغو نجس کېدل دي، او په هډوکو کي د ممانعت وجه د پیریانو خوراک کېدل دي، خو مخکي چي کوم دوه حدیثونه ذکر سول له هغو څخه د خوشایوو پر پاکوالي استدلال کېدای سي، لکه څرنګه چي د امام مالک رَحِمَهُ الله قول دی، ځکه که خوشایي ناپاک وای نو د پیریانو لپاره به د هغو خوړل حلال نه وای، ځکه چي عام شریعت د دواړو نوعو مکلفینو په حق کي مختلف نه دی، مګر دا چي یو دلیل پیدا سي، لېکن علامه ابن الهمام رَحِمَهُ الله فرمایي چي د خوشایوو د مردار والي په باره کي دلیل سته یعني نبي ﷺ عبد الله بن مسعود رضي الله عنه د خوشایوو په باره کي فرمایلي وه: هٰذَا رِكْسٌ، یعني خوشایي ناپاک او مردار دي.

ولا طعام الخ او د خوراک په شیانو سره دي هم استنجاء نه کوي، ځکه چي دا اسراف دی، او عبث د شیانو بربادول دي، او دا دواړه خبري حرامي دي، او په راسته لاس دي هم استنجاء نه کوي ځکه چي نبي ﷺ په راسته لاس له استنجاء کولو څخه منع کړې ده، لکه څرنګه چي د ابو قتاده رضي الله عنه روایت دی: قال اذا بال احدكم فلا يأخذن ذكره بيمينه ولا يستنجي بيمينه ولا يتنفس في الاناء. (بخاري و مسلم). (کله چي په تاسو کي یو څوک متیازي کوي نو خپل ذکر (د تناسل آله) دي په راسته لاس سره نه نیسي او نه دي په راسته لاس سره استنجاء کوي او نه دي په لوښي کي سا کاږي، په دې حدیث کي په څرګنده توګه په راسته لاس له استنجاء کولو څخه منع سوې ده). والله اعلم بالصواب



# كِتَابُ الصَّلاةِ

## (دا) كتاب د لمانځه (د احكامو په بيان كې) دی

**تشريح**: څرنګه چې لمونځ د ټولو عبادتونو بنياد او د ټولو طاعتونو اصل دی نو ځکه كِتَابُ الصَّلاةِ پر ټولو مشروعاتو مخکې کړی سو، او څرنګه چې طهارت د لمانځه لپاره شرط دی او شرط د يو شي پر شي مخکې وي، نو ځکه كتاب الطهارات پر كتاب الصلاة مخکې کړی سو.

**د صلاة لغوي معنی**: صلاة په لغت کې دعاء ته ويل کيږي، لکه څرنګه چې په قرآن کې ذکر سوي دي: وَصَلِّ عَلَيْهِمْ إِنَّ صَلَاتَكَ سَكَنٌ لَّهُمْ [سورة التوبة :۱۰۳]، (اې نبي! (ﷺ) ته د دې خلکو لپاره دعا کوه! يقيناً ستا دعاء د دوی لپاره د اطمينان او سکون لامل دی)، همدارنګه نبي ﷺ تر روژې خوړلو يا تر روژه ماتي وروسته دا دعا کړې وه: أكل طعامكم الابرار وصلت عليكم الملائكة...الخ (يعني نېکو خلکو ستاسو ډوډۍ وخوړه او ملائکو ستاسو لپاره دعا وکړه)، له دې څخه هم معلوميږي چې د صلاة لغوي معنی "دعاء" ده.

**د صلاة اصطلاحي معنی**: عبارة عن أركان مخصوصة و أذكار معلومة بشرائط محصورة بصفات معينة، (يعني پر معلومو کيفيتونو د شرطونو د رعايت سره د متعينو اذکارو او ځانګړو ارکانو پر ځای کولو ته لمونځ ويل کيږي).

**د لمانځه د وجوب سبب**: د لمانځه د واجب کېدلو سبب د لمانځه خپل وختونه دي، او د لمانځه د اداء کولو سبب د خدای پاک حکم دی.

**د لمانځه اركان**: د لمانځه رکنونه دا دي: قيام (ولاړه)، قراءت، رکوع، سجده او آخره ناسته د تشهد ويلو په اندازه.

**د لمانځه احكام**: وحكمها سقوط الواجب عنه أي الاداء في الدنيا و نيل الثواب الموعود في الآخرة، (يعني د لمانځه حکم دا دی چې په دنيا کې د لمونځ کونکي له غاړې څخه واجب ساقط سي او په آخرت کې هغه ثواب حاصل کړي چې وعده يې سوې ده).

**د لمانځه فرضيت**: لمونځ په کتابُ الله، د رسولُ الله په سنت او اجماع ټولو سره ثابت دی، لکه څرنګه چې په قرآن کريم کې راځي: وَأَقِيمُوا الصَّلَاةَ (سورة البقرة: ٤٣)، او په بل ځای کې راځي: حَافِظُوا عَلَى الصَّلَوَاتِ وَالصَّلَاةِ الْوُسْطَىٰ وَقُومُوا لِلَّهِ قَانِتِينَ (سورة البقرة:۲۳۸)، او له دې څخه علاوه نور هم په ډېرو ځايونو کې د لمانځه فرضيت او ارزښت څرګند سوی دی، په حديث شريف کې هم په ډېر ټينګار سره د لمونځ کولو او د لمونځ د فرضيت حکم سوی دی، لکه څرنګه چې حديث دی: إن الله تعالى فرض على كل مسلم ومسلمة في كل يوم وليلة خمس صلوات؛ او د لمانځه د ارزښت په اړه د نبي ﷺ دا فرمان د يادوني وړ دی: الصلاة عماد الدين فمن أقامها أقام الدين ومن هدمها هدم الدين.

او په اجماع سره د لمانځه ثبوت په دې توګه دی چې د نبي ﷺ له زمانې څخه واخله تر ننه پورې ټوله اُمت د لمانځه پر فرضيت او د هغه پر مشروعيت باندې متفق دي، او کوم ناپوه چې د لمانځه د مشروعيت په لړ کې د نهې خبره کړې ده، دې امت هغه د خپل لړليک او ډلې څخه ايستلی دی. (ذکر سوي تفصيلات زياتره له عنايه شرح هدايه څخه اخيستل سوي دي. وګورئ! عنايه [ج:۱، ص:۲۱۸ - ۲۱۹])



# بَابُ الْمَوَاقِيْتِ

## (دا) باب (د لمانځه) د وختونو (په بيان کې) دی

**تشريح:** څرنګه چې د لمانځه وختونه د لمانځه د وجوب اسباب دي، او سبب تر مسبب مخکي وي، نو ځکه يې د لمانځه د وختونو بيان مخکی کړي، مواقيت جمع د ميقات ده، او د ميقات معنیٰ ده: ما وقّت به، يعني په کوم شي سره چې د يو وخت او يو حد اندازه و ټاکل سي هغه ته ميقات ويل کيږي، يا ميقات هغه زمانې يا مکان ته ويل کيږي، چې له هغه زمانې يا مکان څخه حد و ټاکل سي، لکه مواقيتِ صلوٰة او مواقيتِ احرام.

### د پنځو لمونځونو وختونه ..... د سهار د لمانځه لومړی او آخري وخت

**أَوَّلُ وَقْتِ الْفَجْرِ** د سهار اول وخت هغه دی **إِذَا طَلَعَ الْفَجْرُ الثَّانِيْ** چې کله صبح صادق را وخيږي (يعني د سهار سپينې وچاودي) **وَهُوَ الْمُعْتَرِضُ فِي الْأُفُقِ** او دا صبح صادق هغه (سپينوالی) دی کوم چې د آسمان په څنډو (افق) کې په پلنوالي سره غوړيدلی وي **وَآخِرُ وَقْتِهَا مَا لَمْ تَطْلُعِ الشَّمْسُ** او د سهار آخري وخت تر هغه وخته دی تر څو چې لمر نه وي راختلی **لِحَدِيْثِ إِمَامَةِ جِبْرِيْلَ عَلَيْهِ السَّلَامُ**● د جبرئيل ؑ د امامت والا حديث په وجه سره **فَإِنَّهُ أَمَّ رَسُوْلَ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ فِيْهَا فِي الْيَوْمِ الْأَوَّلِ حِيْنَ طَلَعَ الْفَجْرُ** ځکه چې جبرئيل ؑ په اوله ورځ د سهار راختلو په وخت کې نبي ﷺ ته د سهار لمونځ (په جماعت) ورکړی **وَفِي الْيَوْمِ الثَّانِيْ حِيْنَ أَسْفَرَ جِدًّا وَكَادَتِ الشَّمْسُ تَطْلُعُ** او په دويمه ورځ چې کله ښه رڼا سوه او لمر راختلو ته نژدې سو (نو د سهار لمونځ يې ورکړی) **ثُمَّ قَالَ فِيْ آخِرِ الْحَدِيْثِ: مَا بَيْنَ هٰذَيْنِ الْوَقْتَيْنِ وَقْتٌ لَكَ وَلِأُمَّتِكَ** بيا يې د حديث په آخر کې وويل: د دې دواړو وختونو په مينځ کې چې کوم وخت دی هغه ستا او ستا د امت لپاره (د سهار وخت) دی **وَلَا مُعْتَبَرَ بِالْفَجْرِ الْكَاذِبِ** او د کاذب سهار هيڅ اعتبار نسته **وَهُوَ الْبَيَاضُ الَّذِيْ يَبْدُوْ**

● تخريج: أخرجه أبو داؤد في كتاب الصلوٰة باب المواقيت، حديث رقم:۳۹۳ و ترمذي في كتاب الصلوٰة، باب ما جاء في مواقيت الصلوٰة، حديث رقم:۱۴۹.

طُولًا ثُمَّ يَعْقُبُهُ الظَّلَامُ او دا کاذب سهار هغه سپینوالی دی چې په اوږدوالي ښکاره کیږي بیا تر هغه وروسته تیاره (تاریکي) راځي لِقَوْلِهِ عَلَيْهِ الصَّلَاةُ وَالسَّلَامُ ● لَا يَغُرَّنَّكُمْ أَذَانُ بِلَالٍ ځکه نبي ﷺ فرمایلي دي: د بلال آذان دې تاسو دوکه نه کړي وَلَا الْفَجْرُ الْمُسْتَطِيلُ او نه (دې) فجر مستطیل (اوږد سپینوالی تاسو دوکه کړي) وَإِنَّمَا الْفَجْرُ الْمُسْتَطِيرُ فِي الْأُفُقِ او سهار خو هغه (سپینوالی) دی چې د آسمان په څنډو کې غوړېدلی وي أَيْ الْمُنْتَشِرُ فِيهَا یعنې چې د اسمان په څنډو کې نشر سوی (او خورېدلی) وي.

**اللغات:** ﴿جِدًّا﴾ د تأکید کلمه ده: ډېر زیات، زیاته اندازه. ﴿بَيَاض﴾ سپینوالی. (مجازاً رڼا ته ویل کیږي). ﴿ظَلَام﴾ تیاره، تاریکي (تورتم). ﴿يَغُرّ﴾ د نصر د باب مضارع صیغه ده: په دوکه کې اچول، دوکه کول.

**تشریح:** که څه هم په حدیث کې د ماپښین وخت مخکې ذکر سوی دی، خو دلته د یو څو وجهو پر بنیاد د سهار وخت مخکې کړی سو: (۱) اوله وجه دا چې د سهار لومړی او آخري وخت اتفاقي دي، نو ځکه دا مخکې کړی سو، د دې په خلاف د نورو لمونځونو په وختونو کې لږ څه اختلاف سته (۲) دویمه وجه دا چې تر ټولو مخکې حضرت آدم ؑ د سهار لمونځ کړی وو، نو څرنګه چې د سهار لمونځ تر ټولو مخکنی لمونځ سو، نو په دې وجه په ذکر کې هم تر ټولو مخکې کړی سو (۳) دریمه وجه دا چې د سهار لمونځ د ورځې اول لمونځ دی (۴) څلورمه وجه دا چې بیده سړی کوم چې د میّت (مړه سړي) په حکم دی، پر هغه چې تر خوب وروسته اول کوم عمل واجبیږي هغه د سهار لمونځ دی، نو ځکه د سهار د لمانځه وخت تر ټولو مخکې ذکر کړی سو. (حاشیه ملا عبد الغفور، عنایه)

**فجر صادق او فجر کاذب:** د سهار د لمانځه وخت له فجر صادق (روڼ ګهیځ) څخه شروع کیږي، او د لمر په راختلو سره ختمیږي، فجر صادق هغه سپینوالی دی چې په پلنوالي سره د آسمانو په څنډو کې غوړېدلی وي، او فجر کاذب (سپېره ګهیځ) هغه سپینوالی دی چې په اوږدوالي سره د آسمان په څنډو کې ښکاره کیږي، او بیا تر هغه وروسته تاریکي راځي، عرب و فجر کاذب ته ذنب السرحان (د ښرمښ لکۍ) وایي.

**دلیل:** د سهار د اول وخت او آخري وخت دلیل د حضرت جبرئیل ؑ حدیث دی، صاحب د عنایې پوره حدیث داسې ذکر کړی دی:

عَنِ ابْنِ عَبَّاسٍ رَضِيَ اللهُ عَنْهُمَا أَنَّ رَسُولَ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ قَالَ أَمَّنِي جِبْرِيلُ عَلَيْهِ السَّلَامُ عِنْدَ الْبَيْتِ مَرَّتَيْنِ وَصَلَّى بِي الظُّهْرَ فِي الْيَوْمِ الْأَوَّلِ حِينَ زَالَتِ الشَّمْسُ وَصَارَ الْفَيْءُ مِثْلَ الشِّرَاكِ. وَصَلَّى بِي الْعَصْرَ حِينَ صَارَ ظِلُّ كُلِّ شَيْءٍ مِثْلَهُ وَصَلَّى بِي الْمَغْرِبَ حِينَ زَالَتِ الشَّمْسُ وَصَلَّى بِي الْعِشَاءَ حِينَ غَابَ الشَّفَقُ. وَصَلَّى بِي الْفَجْرَ حِينَ طَلَعَ الْفَجْرُ. وَصَلَّى بِي الظُّهْرَ فِي الْيَوْمِ الثَّانِي حِينَ زَالَتِ الشَّمْسُ وَصَارَ ظِلُّ كُلِّ شَيْءٍ مِثْلَهُ. وَصَلَّى بِي الْعَصْرَ حِينَ صَارَ ظِلُّ كُلِّ شَيْءٍ مِثْلَيْهِ. وَصَلَّى بِي الْمَغْرِبَ حِينَ غَرَبَتِ الشَّمْسُ لِوَقْتِهِ بِالْأَمْسِ. وَصَلَّى بِي الْعِشَاءَ حِينَ مَضَى ثُلُثُ اللَّيْلِ أَوْ قَالَ نِصْفُ اللَّيْلِ. وَصَلَّى بِي الْفَجْرَ حِينَ طَلَعَ الْفَجْرُ وَأَسْفَرَ وَكَادَتِ الشَّمْسُ أَنْ تَطْلُعَ. ثُمَّ قَالَ: يَا مُحَمَّدُ هَذَا وَقْتُكَ وَوَقْتُ الْأَنْبِيَاءِ مِنْ قَبْلِكَ.

---

● تخریج: أخرجه الترمذي فی کتاب الصوم، باب ماجاء فی بیان الفجر، حدیث رقم: ۷۰۶؛ و مسلم فی کتاب الصیام باب بیان أن الدخول الصوم یحصل بطلوع الفجر، حدیث رقم: ۲۵۴۶.

(له حضرت ابن عباس رضی الله عنهما څخه روايت دی چي رسول الله ﷺ وفرمايل: حضرت جبرئيل ؑ په کعبه شريفه کي دوه واره زما امامت وکړی (يعني دوه واره يې لمونځ راکړی)، په اوله ورځ يې د ماپښين لمونځ هغه وخت راکړی، چي کله لمر تر سر واوښتی (يعني زائل سو) او سايه د (څپلی) د تسمې په يول سوه، او د مازيگر لمونځ يې هغه وخت راکړی چي کله د هر شي سايه يوچند سوه، او د ماښام لمونځ يې هغه وخت راکړی چي لمر پټ سو، او د ماخوستن لمونځ يې هغه وخت راکړی چي کله شفق (د آسمان سرخي) ورکه سوه، او د سهار لمونځ يې د سهار راختلو په وخت کي راکړی، او دويمه ورځ يې د ماپښين لمونځ هغه وخت راکړی چي د هر شي سايه يو چند سوه، او د مازيگر لمونځ يې هغه وخت راکړی چي د هر شي سايه دوچنده سوه، او د ماښام لمونځ يې لکه په اوله ورځ د لمر لوېدلو په وخت کي راکړی، او د ماخوستن لمونځ يې هغه وخت راکړی چي د شپې دريمه حصه يا نيمه حصه تېره سوه، او د سهار لمونځ يې هغه وخت راکړی چي کله ښه سهار سو، او لمر راختو ته نژدې سو، بيا حضرت جبرئيل ؑ وويل: اې محمده! دا ستا وخت دی او ستا څخه له مخکني پيغمبرانو عليهم السلام وخت وو)

ولا معتبر بالفجر الكاذب الخ صاحب د هدايې فرمايي چي د سهار په لمانځه کي صادق سهار معتبر دی، کاذب سهار معتبر نه دی، دليل د صحيح مسلم او ترمذي حديث دی، تفصيل يې داسي دی چي حضرت بلال ؓ به تر صادق سهار (روڼ ګهيځ) راختلو مخکي د تهجد يا پېشلمي لپاره اذان کوی، او عبد الله بن ام مکتوم ؓ به تر صادق سهار راختلو وروسته اذان کوی نو نبي کريم ﷺ وفرمايل: لا يغرنكم أذان بلال ولا الفجر المستطيل، (د بلال اذان دي تاسو دوکه نه کړي)، يعني د بلال پر اذان دا گومان مه کوئ! چي د سهار د لمانځه وخت را داخل سو، ځکه چي دا د سهار لپاره نه دی، بلکي د تهجدو يا پېشلمي لپاره دی، او نه دي تاسو فجر مستطيل دوکه کړي، له فجر مستطيل څخه مراد کاذب سهار يعني هغه رڼا ده چي په اوږدول سره په اسمان کي ښکاره سي.

## د ماپښين د لمانځه لومړی او آخري وخت

وَأَوَّلُ وَقْتِ الظُّهْرِ إِذَا زَالَتِ الشَّمْسُ او د ماپښين اول وخت هغه دی چي کله لمر زائل سي (يعني تر سر واوړي) لِإِمَامَةِ جِبْرِيلَ عَلَيْهِ السَّلَامُ ● فِي الْيَوْمِ الْأَوَّلِ حِينَ زَالَتِ الشَّمْسُ ځکه جبرائيل ؑ په اوله ورځ د لمر د زوال په وخت کي امامت وزکړی وو وَآخِرُ وَقْتِهَا عِنْدَ أَبِي حَنِيفَةَ رَحِمَهُ اللهُ ● إِذَا صَارَ ظِلُّ كُلِّ شَيْءٍ مِثْلَيْهِ سِوَى فَيْءِ الزَّوَالِ او د امام صاحب رَحِمَهُ الله په نېز د ماپښين د لمانځه آخري وخت هغه دی چي کله د هر شي سايه له اصلي سايې (سيوري) څخه ملسوا دوچنده سي وَقَالَا: إِذَا صَارَ الظِّلُّ مِثْلَهُ او صاحبين رَحِمَهُمَا الله فرمايي چي کله د هر شي سايه د هغه شي سره برابره سي (يعني يو چند سي) وَهُوَ رِوَايَةٌ عَنْ أَبِي حَنِيفَةَ رَحِمَهُ اللهُ او د امام صاحب يو روايت همدغه رنگه دی وَفَيْءُ الزَّوَالِ هُوَ الْفَيْءُ الَّذِي يَكُونُ لِلْأَشْيَاءِ وَقْتَ الزَّوَالِ او اصلي سايه هغه سايې ته ويل کيږي کوم چي د زوال په وخت کي د شيانو وي (يعني د لمر تر سر لوښتولو په وخت کي چي د شيانو کومه سايه وي هغه ته فيئ الزوال يعني اصلي سايه ويل کيږي) لَهُمَا: إِمَامَةُ جِبْرِيلَ عَلَيْهِ

---

● تخريج: أخرجه مسلم في كتاب المساجد باب أوقات الصلوات الخمسه، حديث رقم: ۱۳۸۱ - ۱۷۶.

● القول الراجح: هو هذا قول الامام أبي حنيفة رَحِمَهُ الله كذا في رد المحتار ج:۱، ص:۲۶۴. [القول الراجح، ج:۱، ص:۵۸]

السَّلَامُ فِي الْيَوْمِ الْأَوَّلِ لِلْعَصْرِ فِي هٰذَا الْوَقْتِ د صاحبينو دليل: په اوله ورځ د جبرئيل ﷺ په دې وخت کي امامت ورکول دي وَلِأَبِي حَنِيْفَةَ رحِمَهُ اللهُ قَوْلُهُ عَلَيْهِ الصَّلَاةُ وَالسَّلَامُ● او د امام ابو حنيفه رَحِمَهُ الله دليل د نبي ﷺ دا قول دی أَبْرِدُوْا بِالظُّهْرِ فَإِنَّ شِدَّةَ الْحَرِّ مِنْ فَيْحِ جَهَنَّمَ د ماپښين لمونځ په يخ کي کوئ ځکه چي سخته ګرمي د دوږخ له ګرمۍ څخه ده وَأَشَدُّ الْحَرِّ فِي دِيَارِهِمْ فِي هٰذَا الْوَقْتِ او د عربو په سيمو کي به سخته ګرمي هم په دغه وخت کي وه وَإِذَا تَعَارَضَتِ الْآثَارُ او کله چي په آثارو کي تعارض راغلی لَا يَنْقَضِي الْوَقْتُ بِالشَّكِّ نو د شک په وجه به وخت نه ختميږي.

**اللغات:** ﴿فَيْءٌ﴾ سايه، ﴿فَيْحٌ﴾ د ګرمۍ سختېدل، تندوالی.

**تشريح:** په دې عبارت کي د ماپښين د اول او آخري وخت په هکله بحث سوی دی، د ماپښين په اول وخت کي خو د ائمه وو اتفاق دی، لکه څنګه چي زموږ د دريو علماؤ په نيز د ماپښين اول وخت بالاتفاق تر زوال وروسته شروع کيږي، ځکه چي حضرت جبرئيل ﷺ اول هم په دغه وخت کي نبي ﷺ ته د ماپښين لمونځ په جماعت ورکړی وو.

لېکن د ماپښين د آخري وخت په باره کي د احنافو علماؤ په مينځ کي اختلاف دی، له امام صاحب رَحِمَهُ الله څخه په ټولو رواياتونو کي معتبر او مسند روايت دا دی چي کله له اصلي سايې (سيوري) څخه علاوه د هر شي سايه دوچنده سي نو په دغه وخت کي د ماپښين وخت ختميږي، او د مازيګر وخت شروع کيږي، د صاحبينو رَحِمَهُمَا الله په نيز چي کله له اصلي سايې څخه علاوه د هر شي سايه يو چند سي، نو بيا د ماپښين وخت ختميږي او د مازيګر وخت شروع کيږي.

**د صاحبينو دليل:** دا دی چي حضرت جبرئيل ﷺ په اوله ورځ نبي ﷺ ته د مازيګر لمونځ په دغه وخت کي ورکړی وو، يعني چي کله د هر شي سايه يو چند وه، نو معلومه سوه چي له دغه وخت څخه د مازيګر وخت شروع کيږي، کنې د جبرئيل ﷺ امامت به له خپل وخت څخه دباندي سي، کوم چي صحيح نه دي.

**د امام صاحب دليل:** د ابو سعيد خدري رَحِمَهُ الله حديث دی يعني ابردوا بالظهر فان شدة الحر من فيح جهنم په دې حديث سره په دې توګه دليل نيسي، چي رسول الله ﷺ په يخني کي د ماپښين د لمانځه حکم کړی دی، او د عربو په علاقو کي به ګرمي هغه وخت ډېر سخته وه چي کله به د هر شي سايه يو چند وه، نو دا خبره منل سوې ده چي د ابردوا مصداق هغه وخت دی کوم چي تر اول مثل (چند) وروسته راسي، نو کله چي تر مثلِ اول وروسته د لمانځه حکم سوی دی، نو بيا په دې کي د مازيګر وخت له کومه راتلی سي؟

وإذا تعارضت الخ له دې ځايه صاحب د هدايې د صاحبينو د دليل جواب ورکوي، جواب دا دی چي کله پر مثلِ اول (اول چند) باندي د ماپښين د وخت په پاته کېدلو او ختمېدلو کي په نصوصو کي تعارض راغلی، يعني د جبرئيل ﷺ له حديث څخه پر مثلِ اول باندي د ماپښين وخت ختمېدل ثابتيږي، او د امام صاحب له حديث څخه پر مثلِ اول باندي د ماپښين وخت پاته کېدل ثابتيږي، نو اوس به د إذا تعارضا تساقطا په وجه دواړه حديثونه يوه طرف ته کيږي، او په خپله به په دې وخت کي غور کيږي، نو تر غور کولو وروسته معلومه سوه چي تر مثلِ اول مخکي د ماپښين وخت په يقيني توګه سره پاته دی، او پر مثلِ اول باندي د دې په پاته کېدلو او نه پاته کېدلو کي نصوص سره متعارض دي، او تر مثلِ اول وروسته د دې په پاته کېدلو او ختمېدلو کي شک دی، حال دا چي تر مثلِ اول مخکي د دې بقاء (پاته کېدل) يقيني

● تخريج: أخرجه مسلم في كتاب المساجد، باب استحباب الابراد بالظهر، حديث رقم: ١٣٩٥.

دي، نو د بقاء يقين د خروج د شک په وجه نه سي ختمېدلای، نو تر مثلِ اول وروسته به هم هغه (د ماپښين وخت) پاته وي، ځکه چي دا د فقهي قاعده ده: اليقين لايزول بالشك.

## د فيئ الزوال يعني د اصلي سايې د پېژندګلوۍ طريقه

صاحب د هدايې له وفيئ الزوال ...الخ څخه د اصلي سايې تعريف بيان کړی دی، حاصل يې دا دی چي د زوال په وخت کي يعني کله چي د غرمې په وخت کي لمر پر سر باندي راسي، په دغه وخت کي چي د شيانو کومه سايه وي، و دغه سايې ته فيئ الزوال يعني اصلي سايه ويل کيږي، صاحب د عنايې رَحِمَهُ الله د دې د پېژندګولی په باره کي د محمد بن شجاع رَحِمَهُ الله دا قول بيان کړی دی چي: بالکل په يوه هواره او برابره ځکه کي دي يو لرګی جګ کړی سي، او تر کومه ځايه چي د دې لرګي سايه ورسيږي، پر هغه ځای دي نښه ولګول سي، نو تر څو چي د لرګي سايه کميږي نو دغه له زوال څخه مخکي وخت دی، لېکن څرنګه چي سايه ودريږي او په دې کي هيڅ کمي او اضافه نه راځي، نو بس دغه سايه فيئ الزوال يعني اصلي سايه ده، عربي عبارت يې داسي دی: أَصَحُّ مَا قِيلَ فِي مَعْرِفَةِ الزَّوَالِ قَوْلُ مُحَمَّدِ بْنِ شُجَاعٍ أَنَّهُ يُغْرَزُ خَشَبَةٌ فِي مَكَانٍ مُسْتَوٍ وَيُجْعَلُ عَلَى مَبْلَغِ الظِّلِّ مِنْهُ عَلَامَةٌ فَمَا دَامَ الظِّلُّ يَنْقُصُ مِنَ الْخَطِّ فَهُوَ قَبْلَ الزَّوَالِ. فَإِذَا وَقَفَ لَا يَزِيدُ وَلَا يَنْقُصُ فَهُوَ سَاعَةُ الزَّوَالِ الَّتِي هِيَ عِبَارَةٌ عَنْ فَيْءِ الزَّوَالِ. (عنايه ج:۱، ص:۲۲۱)

**راجح قول:** په پورتنۍ مسئله کي راجح قول د امام صاحب رَحِمَهُ الله دی چي هغه فرمايي: د ماپښين آخري وخت پر مثلِ ثاني ختميږي، يعني کله چي د هر شي سايه دوچنده سي، قال العلامة ابن نجيم والاولى قول ابي حنيفة رَحِمَهُ الله. وفى غاية البيان وبها اخذا ابو حنيفة رَحِمَهُ الله وهو المشهور عنه. (البحر الرائق ج:۱، ص:۴۲۵). [القول الراجح ج:۱، ص:۵۸]

## د مازيګر د لمانځه لومړی او آخري وخت

| |
|---|
| وَأَوَّلُ وَقْتِ الْعَصْرِ إِذَا خَرَجَ وَقْتُ الظُّهْرِ او د مازيګر اول وخت هغه دی چي کله د ماپښين وخت ووځي عَلَى الْقَوْلَيْنِ پر دواړو قولونو وَآخِرُ وَقْتِهَا مَا لَمْ تَغْرُبِ الشَّمْسُ او آخري وخت يې هغه دی تر څو چي لمر لوېدلی نه وي لِقَوْلِهِ عَلَيْهِ الصَّلَاةُ وَالسَّلَامُ ● ځکه نبي ﷺ فرمايلي دي مَنْ أَدْرَكَ رَكْعَةً مِنَ الْعَصْرِ قَبْلَ أَنْ تَغْرُبَ الشَّمْسُ چا چي تر لمر لوېدلو مخکي د مازيګر يو رکعت ونيوی فَقَدْ أَدْرَكَهَا نو هغه (ټوله) د مازيګر لمونځ ونيوی. |

**اللغات:** ﴿أَدْرَكَ﴾ پيدا کول، موندل (نيول).

**تشريح:** د مازيګر وخت د ماپښين د وخت تر ختمېدلو وروسته شروع کيږي، هغه که د ماپښين وخت پر دوچندۍ ختم سي، لکه د امام ابو حنيفة رَحِمَهُ الله په نيز، او که پر يوچندۍ ختم سي لکه د صاحبينو رَحِمَهُمَا الله په نيز. او د مازيګر وخت د لمر تر لوېدلو پوري دی.

**دليل:** د حضرت ابو هريره ﷺ حديث دی: قال قال رسول الله ﷺ من أدرك من الصبح ركعة قبل أن تطلع الشمس فقد أدرك الصبح ومن أدرك ركعة من العصر قبل أن تغرب الشمس فقد أدرك العصر(صحيحين)، (حضرت ابو هريره ﷺ فرمايي

---

● تخريج: أخرجه الائمة الستة فى كتبهم، مسلم فى كتاب المساجد، باب من ادرك ركعة من الصلوٰة، حديث رقم: ۱۳۷۴ - ۱۶۳.

نبي ﷺ وفرمايل: چا چي تر لمر راختلو مخکي د سهار يو رکعت ونيوی نو هغه سهار ونيوی، او چا چي تر لمر لوېدلو مخکي د ماز يګر يو رکعت ونيوی نو هغه ماز يګر ونيوی). له دې حديث څخه معلومه سوه چي د ماز يګر وخت د لمر تر لوېدلو پوري دی.

**ثمره د اختلاف:** که يو چا د سهار لمونځ کوی، او تر يو رکعت کولو وروسته لمر راوختي نو د امام ابو حنيفه رَحِمَهُ الله په نېز لمونځ باطل سو، يعني چي لمر راوخيږي نو قضاء به يې راوړي، او د امام مالک او امام شافعي او امام احمد بن حنبل رَحِمَهُمُ الله په نېز نه باطليږي، بلکي هغه به پوره کوي، د دې حضراتو دليل هم دغه د ابو هريره ﷺ حديث دی.

زموږ له طرفه د دې حديث جواب شيخ الادب رَحِمَهُ الله دا ليکلی دی چي د فقد أدرك معنی ده: فقد أدرك وقت الصبح، يعني که يو څوک د لمانځه اهل نه وي، او بيا په داسي وخت کي د لمانځه اهل سي چي د يو رکعت په اندازه وخت پاته وي، نو پر هغه د دې وخت لمونځ واجبيږي، مثلاً کافر مسلمان سي، يا کوچنی بالغ سي، يا حائضه ښځه پاکه سي، دا خبره ياد ساتل پکار دي چي د يوه رکعت اندازه صرف د پوهولو او فهم لپاره ده، ځکه که د يو رکعت وخت ونيسي يا له دې څخه کم، په دواړو صورتونو کي پر هغه لمونځ لازميږي.

## د ماښام د لمانځه لومړی او آخري وخت

وَأَوَّلُ وَقْتِ الْمَغْرِبِ إِذَا غَرَبَتِ الشَّمْسُ او د ماښام اول وخت هغه دی چي کله لمر ولوېږي وَآخِرُ وَقْتِهَا مَا لَمْ يَغِبِ الشَّفَقُ او آخري وخت يې هغه دی، تر څو چي شفق غائب سوی (ورک سوی) نه وي وَقَالَ الشَّافِعِيُّ رَحِمَهُ اللهُ: مِقْدَارُ مَا يُصَلِّيْ فِيْهِ ثَلَاثَ رَكَعَاتٍ او امام شافعي فرمايي: دومره اندازه دی چي په هغه کي لمونځ کونکی درې رکعته وکړي لِأَنَّ جِبْرِيْلَ عَلَيْهِ السَّلَامُ ● أَمَّ فِي الْيَوْمَيْنِ فِيْ وَقْتٍ وَاحِدٍ ځکه جبرئيل ﷺ په دواړو ورځو کي په يوه وخت کي د ماښام لمونځ (په جماعت) ورکړی وَلَنَا قَوْلُهُ عَلَيْهِ الصَّلَاةُ وَالسَّلَامُ ● او زموږ دليل د نبي ﷺ دا قول دی أَوَّلُ وَقْتِ الْمَغْرِبِ حِيْنَ تَغْرُبُ الشَّمْسُ د ماښام اول وخت هغه دی کله چي لمر لوېږي وَآخِرُ وَقْتِهَا حِيْنَ يَغِيْبُ الشَّفَقُ او آخري وخت يې هغه دی کله چي شفق غائبيږي (ورکيږي) وَمَا رَوَاهُ كَانَ لِلتَّحَرُّزِ عَنِ الْكَرَاهَةِ او کوم حديث چي امام شافعي رَحِمَهُ الله روايت کړی دی هغه له کراهت څخه د ځان ساتلو لپاره وو ثُمَّ الشَّفَقُ هُوَ الْبَيَاضُ الَّذِيْ فِي الْأُفُقِ بَعْدَ الْحُمْرَةِ عِنْدَ أَبِيْ حَنِيْفَةَ رَحِمَهُ اللهُ بيا شفق د امام ابو حنيفه رَحِمَهُ الله په نېز هغه سپينوالی دی کوم چي له سوروالي (سُرخي) څخه وروسته د آسمان په څنډو (افق) کي ښکاره کيږي وَعِنْدَهُمَا هُوَ الْحُمْرَةُ ● او د صاحبينو رَحِمَهُمَا الله په نېز همدغه سوروالی شفق دی وَهُوَ رِوَايَةٌ عَنْ أَبِيْ حَنِيْفَةَ رَحِمَهُ اللهُ او له امام صاحب رَحِمَهُ الله څخه يو روايت هم دغسي دی وَهُوَ قَوْلُ الشَّافِعِيِّ رَحِمَهُ اللهُ او دا د امام شافعي رَحِمَهُ الله قول هم دی لِقَوْلِهِ عَلَيْهِ الصَّلَاةُ وَالسَّلَامُ ● الشَّفَقُ الْحُمْرَةُ ځکه نبي ﷺ

---

● تخريج: أخرجه مسلم فی كتاب المساجد، باب اوقات الصلوات الخمس، حديث رقم: ۱۳۹۲ - ۱۳۹۳.

● تخريج: أخرجه مسلم فی كتاب المساجد، باب اوقات الصلوات الخمس، حديث رقم: ۱۳۹۱ - ۱۸۶.

● القول الراجح: قول الامام ابی حنيفة رَحِمَهُ الله، لكن الفتویٰ علی قولهما، كذا فی رد المحتار ج: ۱، ص: ۲۶۲. [القول الراجح، ج: ۱، ص: ۶۰]

● تخريج: أخرجه دار قطنی فی كتاب الصلوٰة، باب ما روی فی صفة المغرب والصبح، حديث رقم: ۱۰۲۳.

فرمايلي دي: شفق سوروالى دى. وَلِأَبِي حَنِيْفَةَ رَحِمَهُ اللهُ قَوْلُهُ عَلَيْهِ الصَّلَاةُ وَالسَّلَامُ ● او د امام ابو حنيفه رَحِمَهُ الله دليل د نبي ﷺ دا قول دى وَ آخِرُ وَقْتِ الْمَغْرِبِ إِذَا اسْوَدَّ الْأُفُقُ او د ماښام آخري وخت هغه دى چي کله د آسمان څنډي توري سي وَمَا رَوَاهُ مَوْقُوفٌ عَلَى ابْنِ عُمَرَ رَضِيَ اللهُ عَنْهُمَا امام شافعي رَحِمَهُ الله (او نورو) چي کوم روايت کړى دى هغه پر حضرت ابن عمر رَضِيَ اللهُ عَنْهُمَا موقوف دى ذَكَرَهُ مَالِكٌ رَحِمَهُ اللهُ فِي الْمُوَطَّأِ امام مالک رَحِمَهُ الله په خپل (کتاب) موطأ کي دا ذکر کړي دي وَفِيْهِ اِخْتِلَافُ الصَّحَابَةِ او په دې کي د صحابه وو اختلاف (هم) دى.

**اللغات:** ﴿التَّحرُّز﴾ د تفعّل د باب مصدر دى: ځان ساتنه، خوندي کېدنه. ﴿إِسْوَدَّ﴾ د إِفْعَلّ د باب ماضي صيغه ده: تور بدل.

**تشريح:** د ماښام اول وخت تر لمر لوېدلو وروسته شروع کيږي، او د شفق تر ختمېدلو پوري پاته کيږي، امام شافعي رَحِمَهُ الله فرمايي چي د ماښام وخت صرف دومره اندازه دى چي په هغه کي درې رکعته اداى کړى سي او دا د امام شافعي رَحِمَهُ الله له دوو قولونو څخه يو قول دى، امام غزالي رَحِمَهُ الله فرمايي چي له امام شافعي رَحِمَهُ الله څخه د ماښام د وخت په باره کي دوه قولونه را نقل سوي دي: (۱) دا چي د ماښام وخت د شفق تر ختمېدلو پوري دى. همدا قول د امام ابن حنبل رَحِمَهُ الله دى، (۲) دويم قول دا دى چي که تر لمر لوېدلو وروسته د اودس، اذان، اقامت او د پنځو رکعتونو وخت تېر سو، نو داسي وګڼه چي د ماښام وخت ختم سو، او په حليه کي ويل سوي دي چي صرف دومره دى چي درې رکعته پکښې وکړئ سي، مصنف د هدايې رَحِمَهُ الله دغه قول ذکر کړى دى.

**د امام شافعي دليل:** د جبرئيل ﷺ د امامت والا حديث دى، يعني جبرئيل ﷺ د ماښام لمونځ په دواړو ورځو کي په يوه وخت کي ورکړى، نو که د ماښام د لمانځه وخت اوږدېدلاى، نو حضرت جبرئيل ﷺ به په دواړو ورځو کي په يوه وخت کي لمونځ نه ورکولاى.

**زموږ دليل:** د حضرت ابو هريره ﷺ حديث دى: أول وقت المغرب حين تغرب الشمس و آخره حين يغيب الشفق.

**جواب:** د امام شافعي د دليل جواب دا دى چي په دواړو ورځو کي د جبرئيل ﷺ په يوه وخت کي لمونځ ورکول خو له کراهت څخه د خوندي کېدلو لپاره وو، ځکه چي د ماښام لمونځ تر آخري وخته ځنډول مکروه دي.

## د شفق ابيض او شفق احمر تفصيل

د لمر تر لوېدلو وروسته اول د اسمان په څنډو (افق) کي سوروالى راځي، تر هغه وروسته سپينه رڼا غوړيږي، بيا دغه سپينه رڼا اوږده غوندي سي چي هغه ته بياض مستطير او بياض مستطيل ويل کيږي. تر دې وروسته د اسمان په څنډو کي په پوره توګه تياره وغوړيږي، نو د امام ابو حنيفه رَحِمَهُ الله په نېز چي تر سوروالي وروسته کومه سپينه رڼا يعني بياض مستطير راسي تر هغه وخته پوري د ماښام وخت دى، تر هغه وروسته د ماخوستن وخت شروع کيږي، لېکن د صاحبينو او جمهورو علماؤ په نېز چي تر بياض مستطير مخکي کوم سوروالى دى تر هغه وخته پوري د ماښام وخت دى.

**د صاحبينو دليل:** د نبي ﷺ دا حديث دى: الشفق الحمرة.

---

● تخريج: أخرجه ابو داؤد في كتاب الصلوة، باب في المواقيت، حديث رقم: ۳۹۴.

**د امام ابو حنيفه دليل:** د ابو هريره ؓ حديث دی: أن النبي ﷺ قال: وآخر وقت المغرب إذا اسود الأفق. (چي نبي ﷺ فرمايلي دي: د ماښام آخري وخت هغه دی چي کله افق تور سي)، او معلومه ده چي پر افق باندي توروالی تر سپينوالي وروسته غوړيږي، نو معلومه سوه چي تر سپينوالي پوري وخت پاته وي، نو په حديث کي له شفق څخه مراد سپين والی سو.

**جواب:** د صاحبينو رَحِمَهُمَا الله حديث الشفق الحمرة پر حضرت عبد الله بن عمر رضی الله عنهما باندي موقوف دی، او دغه امام مالک رَحِمَهُ الله په موطأ کي هم ذکر کړی دی، او موقوف حديث د حجت او استدلال لايق نه دی.

او که دا ومنل سي چي دا حديث مرفوع دی نو موږ جواب ورکوو چي د دې حديث په مراد کي د صحابه وو اختلاف دی، لکه څرنګه چي بعضو ويلي دي: له شفق څخه مراد سپينوالی دی. او بعضو ويلي دي: چي سوروالی دی. او په مرفوع حديث کي که د صحابه وو اختلاف وي، نو هغه هم د استدلال لايق نه سي کېدلای.

**راجح قول:** په پورتنی مسئله کي راجح قول د امام صاحب دی خو فتویٰ د صاحبينو پر قول ده. قال العلامة جلال الدين الخوارزمي رَحِمَهُ الله بعد تفصيل المسئلة فقول ابي حنيفة رَحِمَهُ الله واثق لان الاصل في باب الصلوة ان لايثبت منها ركن ولا شرط الا بما فيه يقين وقولهما اوسع للناس. كذا ذكره في الاسرار. (الكفاية ج:۱، ص:۱۹۶). [القول الراجح ج:۱، ص:۴۰]

## د ماخوستن د لمانځه لومړی او آخري وخت

وَأَوَّلُ وَقْتِ الْعِشَاءِ إِذَا غَابَ الشَّفَقُ او د ماخوستن اول وخت هغه دی چي کله شفق غائب (ورک) سي وَآخِرُ وَقْتِهَا مَا لَمْ يَطْلُعِ الْفَجْرُ او آخري وخت يې هغه دی تر څو چي سهار راختلی نه وي (يعني تر څو چي سهار سوی نه وي) لِقَوْلِه عَلَيْهِ الصَّلَاةُ وَالسَّلَامُ • ځکه نبي ﷺ فرمايلي دي وَآخِرُ وَقْتِ الْعِشَاءِ حِيْنَ لَمْ يَطْلُعِ الْفَجْرُ او د ماخوستن آخري وخت هغه دی تر څو چي سهار راختلی نه وي وَهُوَ حُجَّةٌ عَلَى الشَّافِعِيِّ رَحِمَهُ اللهُ فِيْ تَقْدِيْرِهِ بِذَهَابِ ثُلُثِ اللَّيْلِ او دا حديث د امام شافعي رَحِمَهُ الله په خلاف حجت دی چي هغه د شپې تر دريمي حصې پوري د ماخوستن وخت متعين کړی دی.

**اللغات:** ﴿شفق﴾ هغه سور والی چي تر لمر لوېدلو وروسته پر آسمان ښکاره کيږي، ﴿ذهاب﴾ د فتح د باب مصدر دی: تلل، تېرېدل.

**تشريح:** د ماخوستن وخت تر شفق ختمېدلو وروسته شروع کيږي، او آخري وخت يې تر صبح صادق راختلو مخکي دی، امام شافعي رَحِمَهُ الله فرمايي چي د ماخوستن وخت د شپې تر د دريمي حصې وروسته ختميږي، يعني د شپې تر دريمي حصې پوري د ماخوستن وخت پاته وي، او تر هغه وروسته ختميږي.

**زموږ دليل:** د حضرت ابو هريره ؓ حديث دی: أنه قال ﷺ وآخر وقت العشاء حين يطلع الفجر دا حديث پر دې خبره دلالت کوي چي د ماخوستن وخت تر صبح صادق پوري دی.

**د امام شافعي دليل:** د حضرت جبرئيل ؑ حديث دی، ځکه چي هغه حديث پر دې دلالت کوي چي د ماخوستن آخري وخت د شپې تر دريمي حصې پوري دی، لېکن زموږ له طرفه جواب مخکي تېر سو (د ماپښين د لمانځه په وخت کي، هلته يې وګورئ!).

---

• تخريج: أخرجه الطحاوي في شرح معاني الآثار، باب مواقيت الصلوٰة، حديث رقم: ۹۱۲ و ۱۲۰.

## د وترو لومړی او آخري وخت

وَأَوَّلُ وَقْتِ الْوِتْرِ بَعْدَ الْعِشَاءِ او د وترو اول وخت د ماخوستن تر لمانځه وروسته دی وَآخِرُهُ مَا لَمْ يَطْلُعِ الْفَجْرُ او آخري وخت يې هغه دی تر څو چې سهار سوی نه وي لِقَوْلِهِ عَلَيْهِ الصَّلَاةُ وَالسَّلَامُ ● فِي الْوِتْرِ ځکه نبي ﷺ د وترو په باره کې فرمايلي دي فَصَلُّوهَا مَا بَيْنَ الْعِشَاءِ إِلَى طُلُوعِ الْفَجْرِ وتر د ماخوستن او سهار په مينځ کې کوئ. قَالَ رَضِيَ اللهُ عَنْهُ: هٰذَا عِنْدَهُمَا صاحب د هدايې رَحِمَهُ الله فرمايي: چې دا حکم د صاحبينو رَحِمَهُمَا الله په نيز دی وَعِنْدَ أَبِي حَنِيفَةَ رَحِمَهُ الله ● وَقْتُهُ وَقْتُ الْعِشَاءِ او د امام ابو حنيفه رَحِمَهُ الله په نيز د وترو وخت د ماخوستن د لمانځه وخت دی إِلَّا أَنَّهُ لَا يُقَدَّمُ عَلَيْهِ عِنْدَ التَّذَكُّرِ ليکن د يادښتلو په وخت کې به وتر د ماخوستن تر لمانځه نه مخکې کيږي لِلتَّرْتِيبِ د ترتيب په وجه (ځکه چې ترتيب واجب دی).

**اللغات:** ﴿التَّذَكُّر﴾ د تفعّل د باب مصدر دی: يادول.

**تشريح:** د وترو په اول وخت کې اختلاف دی، د صاحبينو رَحِمَهُمَا الله په نيز د ماخوستن تر لمانځه وروسته د وترو وخت شروع کيږي او تر سهار راختلو پورې پاتې وي، او د امام صاحب په نيز د ماخوستن وخت د وترو وخت دی، يعنې کوم وخت چې د ماخوستن د لمانځه دی، هغه د وترو هم دی.

**د صاحبينو دليل:** د حضرت خارجه بن حذافه ﷺ حديث دی: قال خرج علينا رسول الله ﷺ فقال إن الله زادكم بصلاة هي خير لكم من حمر النعم وهي الوتر فجعلها لكم فيما بين العشاء إلى طلوع الفجر (حضرت خارجه بن حذيفه ﷺ فرمايي چې رسول الله ﷺ موږ ته راغلی او يې وفرمايل: الله تعالیٰ ستاسو لپاره يو لمونځ زيات کړی دی چې هغه ستاسو لپاره له سرو اوښانو څخه هم غوره دی، او هغه د وترو لمونځ دی، نو هغه يې ستاسو لپاره د ماخوستن او سهار (صبح صادق) په مينځ کې وګرځوی، فتح القدير) صاحب د هدايې فرمايي چې رسول الله ﷺ فرمايلي دي: فصلوها بين العشاء إلى طلوع الفجر دا وتر د ماخوستن او صبح صادق په مينځ کې کوئ!.

**د امام صاحب دليل:** دا دی چې وتر عملاً فرض دي، (يعنې لکه څرنګه چې فرض په پابندۍ سره اداء کيږي دغه رنګه وتر هم) او قاعده دا ده چې که په يوه وخت کې دوه واجب لمونځونه سره جمع سي، نو د دې دواړو لمونځونو به يو وخت وي، هيڅ تقديم او تأخير به پکښې نه وي، لکه فائته او وقتيه. دلته پر امام صاحب يو اعتراض کيږي.

**سوال:** پر امام صاحب دا اعترض کيږي چې که د دواړو يو وخت وي نو بيا پکار دا وه چې د ماخوستن پر لمانځه د وترو مخکې کول جائز وای، حال دا چې دا صحيح نه ده.

**جواب:** دا دی چې د يادښتلو په حالت کې مخکې کول ځکه جائز نه دي (يعنې کله چې د انسان د ماخوستن لمونځ په ياد وي نو په دې حالت کې د وترو مخکې کول ځکه جائز نه دي) چې په وترو او عشاء کې ترتيب واجب دی، نو که يې وتر قصداً او عمداً د ماخوستن تر لمانځه مخکې کړه، نو بالاتفاق د وترو راګرځول ضروري دي، او که يې د ماخوستن لمونځ هېر سو (په ياد يې نه وو) او د وترو لمونځ يې وکړی، نو د امام صاحب په نيز به يې نه راګرځوي، ځکه چې هېره ترتيب ساقطوي، او د صاحبينو په نيز به يې راګرځوي، ځکه چې د صاحبينو په نيز وتر د ماخوستن سنت دي نو لکه

---

● تخريج: أخرجه ابو داؤد في كتاب الوتر، باب استحباب الوتر، حديث رقم:۱۴۱۸ و ترمذي في كتاب الوتر، باب ما جاء في فضل الوتر، حديث رقم:۴۵۲.

● القول الراجح: قولي أبي حنيفه رَحِمَهُ الله، كذا في الدر المختار ج:۱، ص:۲۶۶. [القول الراجح، ج:۱، ص:۶۲]

ځرنګه چې د ماخوستن دوه رکعت سنت د ماخوستن پر لمانځه مخکي کول جائز نه دي، هغه که عمداً وي او که په هېره سره وي، همدارنګه وتر هم د ماخوستن پر لمانځه مخکي کول جائز نه دي، نه عمداً او نه نسياناً.

**راجح قول:** په پورتنی مسئله کي راجح قول د امام ابو حنيفه رَحِمَهُ الله دی، قال العلامة اكمل الدين البابرتي رَحِمَهُ الله: وعند ابي حنيفة رَحِمَهُ الله وقته وقت العشاء لان الوتر عنده فرض عملاً والوقت اذا جمع بين الصلاتين واجبتين كان وقتا لهما جميعاً. (العناية ج:۱، ص:۱۹۷). [القول الراجح ج:۱، ص:۶۲]

## مستحب وختونه ..... د سهار، ماپښين او مازيګر مستحب وختونه

**فَصْلٌ** (دا) فصل (د مستحب وختونو په بيان کي) دی وَيُسْتَحَبُّ الْإِسْفَارُ بِالْفَجْرِ او د سهار لمونځ په رڼا کي کول مستحب دي لِقَوْلِهِ عَلَيْهِ الصَّلَاةُ وَالسَّلَامُ ● ځکه نبي ﷺ فرمايلي دي أَسْفِرُوا بِالْفَجْرِ فَإِنَّهُ أَعْظَمُ لِلْأَجْرِ د سهار لمونځ په رڼا کي کوئ ځکه په دې کي ثواب زيات دی وَقَالَ الشَّافِعِيُّ رَحِمَهُ الله: يُسْتَحَبُّ التَّعْجِيلُ فِي كُلِّ صَلَاةٍ او امام شافعي فرمايي: چي په هر لمانځه کي تېزي (تلوار) کول مستحب دی وَالْحُجَّةُ عَلَيْهِ مَا رَوَيْنَا لېکن د هغه په خلاف هغه روايت حجت دی کوم چي موږ بيان کړی وَمَا نَرْوِيهِ او هغه روايت (هم حجت دی) چي په آينده کي به يې موږ بيان کړو وَالْإِبْرَادُ بِالظُّهْرِ فِي الصَّيْفِ او د ګرمی په موسم کي د ماپښين لمونځ په يخني کي کول (مستحب دی) وَتَقْدِيمُهُ فِي الشِّتَاءِ او د ژمي په موسم کي مخکي کول (مستحب دي) لِمَا رَوَيْنَا د هغه حديث په وجه کوم چي موږ بيان کړی وَلِرِوَايَةِ أَنَسٍ رَضِيَ اللهُ عَنْهُ ● قَالَ او د حضرت انس رضی الله عنه د حديث په وجه چي هغه فرمايي كَانَ النَّبِيُّ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ إِذَا كَانَ فِي الشِّتَاءِ بَكَّرَ بِالظُّهْرِ کله چي به د ژمي موسم وو نو نبي ﷺ به د ماپښين په لمانځه کي تلوار کوی وَإِذَا كَانَ فِي الصَّيْفِ أَبْرَدَ بِهَا او کله چي به ګرمي وه نو د ماپښين لمونځ به يې په يخني کي کوی (يعني چي کله به هوا شه يخه سوه) وَتَأْخِيرُ الْعَصْرِ او د مازيګر لمونځ وروسته کول (مستحب دي) مَا لَمْ تَتَغَيَّرِ الشَّمْسُ فِي الشِّتَاءِ وَالصَّيْفِ تر څو چي لمر بدل سوی نه وي په ګرمی او ژمي کي لِمَا فِيهِ مِنْ تَكْثِيرِ النَّوَافِلِ ځکه په داسي کولو سره په نفلونو کي زياتوب رازي لِكَرَاهَتِهَا بَعْدَهُ ځکه چي د مازيګر تر لمانځه وروسته نفلونه مکروه دي وَالْمُعْتَبَرُ تَغَيُّرُ الْقُرْصِ او (د لمر په بدلېدلو) د لمر د ټکی بدلېدل معتبره دي وَهُوَ أَنْ يَصِيرَ بِحَالٍ او د لمر د ټکی بدلېدل د لمر په داسي حال کېدل دي لَا تَحَارُ فِيهِ الْأَعْيُنُ چي په لمر کي سترګي نه بريښي هُوَ الصَّحِيحُ همدا صحيح قول دی وَالتَّأْخِيرُ إِلَيْهِ مَكْرُوهٌ او تر دې وخته د مازيګر لمونځ ځنډول مکروه دي.

---

● تخريج: أخرجه ابو داؤد في كتاب الصلوٰة، باب وقت الصبح حديث رقم:۴۲۴.

● تخريج: أخرجه البخاري في كتاب الجمعة، باب اذا اشتد الحرّ يوم الجمعة، حديث رقم: ۹۰۶.

**اللغات**: ﴿إِسْفَار﴾ د افعال د باب مصدر دی: روښانه کول. ﴿تَعْجِيل﴾ د تفعيل د باب مصدر دی: تلوار کول، چابکي کول، ژر والی. ﴿إِبْرَاد﴾ د افعال د باب مصدر دی: يخول. ﴿صَيف﴾ گرمي، (اوړی) ﴿شِتَاء﴾ يخ. (ژمی). ﴿تَبْكِير﴾ د تفعيل د باب مصدر دی: يو کار وختي کول. يو کار په اول وخت کي کول. ﴿قُرْص﴾ ټکی، گولی. ﴿يُحَار﴾ د افعال د باب مضارع مجهوله صيغه ده. أحارَ يُحِيْرُ: حيرانول. برېښول.

**تشريح**: **صورت د مسئلې**: دا دی چي زموږ په نېز د سهار لمونځ په رڼا کي کول مستحب دي. دليل د نبي ﷺ دا قول دی: أسفروا بالفجر فإنه أعظم للأجر او له دې حديث څخه زموږ دليل په دې توگه دی چي نبي ﷺ د امر په صيغه سره په رڼا کي د لمونځ کولو حکم کړی دی او د امر کمه درجه استحباب دی، نو ځکه به د نبي ﷺ دا فرمان پر استحباب حمل کيږي، او په دغه وخت کي به د سهار لمونځ مستحب گرځول کيږي.

**د اسفار مطلب**: صاحب د عنايه رَحِمَهُ الله ليکلي دي چي په رڼا کي د لمونځ کولو مطلب د ادی چي تر لمر راختلو دومره مخکي لمونځ وکړی سي چي که بيا د لمونځ کولو نوبت راسي نو چي دومره وخت لا پاته وي چي بيا اودس هم وکړی سي او لمونځ د سنت قرائت مطابق هم اداء کړی سي. (عنايه ج:۱، ص:۲۲۷)

د دې په خلاف امام شافعي رَحِمَهُ الله فرمايي چي ټوله لمونځونه ژر او په تلوار کول مستحب دي. او د ژر مطلب دا دی چي د وخت په اوله نيمه حصه کي لمونځ وکړی سي، نو کله چي په ټولو لمونځونو کي تعجيل (تلوار) مستحب دی، نو ښکاره ده چي د سهار په لمانځه کي هم تلوار مستحب دی.

**د امام شافعي دليل**: هغه حديث دی کوم چي په بخاري او نورو کي له حضرت عائشې رَضِيَ اللهُ عَنْهَا څخه په دې الفاظو رانقل سوی دی: كان رسول الله ﷺ يصلي الصبح فينصرف النساء متلففات بمروطهن ما يعرفن من الغلس. (يعني نبي ﷺ به د سهار لمونځ کوی (او کله چي به له لمانځه څخه فارغ سو) نو ښځي به په خپلو پوړيناتو کي پيچل سوي (خپلو کورو) ته واپس تلې چي د تيارې په وجه به نه پېژندل کېدلې)، نو دا حديث پر دې شاهد دی چي نبي ﷺ به په غلس (تياره) کي لمونځ کوی او له لمانځه څخه به په غلس کي فارغه کېدی.

**د دليل جواب**: زموږ د له طرفه د دې حديث اول جواب دا دی چي دا حديث فعلي دی او زموږ بيان سوی حديث قولي دی، او قاعده دا ده چي کله د فعلي او قولي حديث په مينځ کي تعارض راسي، نو قولي حديث ته ترجيح ورکول کيږي.

**دويم جواب**: دا دی چي په حديث کي د من الغلس جمله له حضرت عائشې رَضِيَ اللهُ عَنْهَا څخه نه ده، بلکي له يو راوي څخه ده، او د ښځو د نه پېژندگلوۍ سبب راوي من الغلس گڼلی دی، او پر حديث باندي يې اضافه کړې دی، ځکه چي همدغه روايت په ابن ماجه شريف صفحه: ۴۹ کي هم راغلی دی خو په هغه کي د من الغلس جمله نسته.

**د ماپښين لمونځ**: د ماپښين د لمانځه حکم دا دی چي د گرمۍ په موسم کي په يخه هوا کي کول مستحب دي، او د ژمي په موسم کي ژر کول (يعني تعجيل کول) مستحب دي، د دې اول دليل هغه روايت دی کوم چي مخکي بيان سو يعني: أبردوا بالظهر فإن شدة الحر من فيح جهنم او دويم دليل د حضرت انس رضي الله عنه دغه حديث دی: كان رسول الله ﷺ إذا كان في الشتا بكر بالظهر وإذا كان في الصيف أبرد بها. (يعني نبي ﷺ به په يخ کي لمونځ ژر کوی، او په گرمي به يې په يخ وخت کي کوی)، د دې مسئلې په اړه دا حديث ډېر ښکاره دی، او د يخ او گرمۍ دواړو موسمونو په باره کي د حنفي مسلک پوره تائيد کوي.

**د مازيګر لمونځ**: د مازيګر لمونځ په ژمي او ګرمي دواړو کي ځنډول افضل او مستحب دي، او د استحباب وجه يې دا ده چي د مازيګر تر لمانځه وروسته نفل کول مکروه دي، نو څومره چي د مازيګر لمونځ ځنډول کيږي هغومره د زياتو نفلونو موقع انسان ته په لاس ورځي ځکه چي د مازيګر تر لمانځه مخکي نفل روا دي، لېکن وروسته مکروه دي، لېکن په ځنډولو کي دا خبره هم ياد ساتل پکار ده چي دومره دي نه ځنډول کيږي چي په مکروه وخت کي لمونځ اداء کړی سي، صاحب د هدايې د دې ځنډولو غايت د لمر تغيّر ګرځولی دی، يعني دلمر په ټکي کي تر تغيرّ او تبديلي راتللو مخکي د مازيګر لمونځ کول مستحب دی، او بالکل په هغه وخت کي چي سترګي پر لمر نه بريښي يعني سترګي ورته نيول کېدی سي د مازيګر لمونځ مکروه دي.

## د ماښام مستحب وخت

وَيُسْتَحَبُّ تَعْجِيْلُ الْمَغْرِبِ او د ماښام په لمانځه کي تلوار کول مستحب دي لِأَنَّ تَأْخِيْرَهَا مَكْرُوهٌ ځکه چي د ماښام لمونځ ځنډول مکروه دي لِمَا فِيْهِ مِنَ التَّشَبُّهِ بِالْيَهُوْدِ ځکه چي په دې کي د يهودو سره مشابهت دی وَقَالَ عَلَيْهِ الصَّلَاةُ وَالسَّلَامُ[1] او نبي ﷺ فرمايلي دي لَا تَزَالُ أُمَّتِيْ بِخَيْرٍ زما امت به تر هغه وخته پر خير وي مَا عَجَّلُوا الْمَغْرِبَ وَأَخَّرُوا الْعِشَاءَ تر څو چي د ماښام په لمانځه کي تلوار کوي او د ماخوستن په لمانځه کي تأخير کوي.

**اللغات**: ﴿تَشَبُّه﴾ د تفعّل مصدر دی: مشابهت او يورنګوالی اختيارول.

**تشريح**: د ماښام په لمانځه کي تلوار کول مستحب دي، يعني د اذان او اقامت په مېنځ کي دي فاصله نه کوي، پر ته له لږغونډي ناستي يا چپتيا څخه، د دې اول دليل دا دی چي د ماښام لمونځ ځنډول مکروه دي، هغه په دې وجه چي په دې کي د يهودو سره ورته والی راځي، ځکه چي يهودو به د ماښام لمونځ په ځنډ سره کوی، دويم دليل د نبي ﷺ دا قول دی:

لايزال أمتي بخير ما عجّلوا المغرب و أخروا العشاء.

## د ماخوستن مستحب وخت

وَتَأْخِيْرُ الْعِشَاءِ إِلَى مَا قَبْلَ ثُلُثِ اللَّيْلِ او د شپې د دريمي حصې تر مخکي پوري د ماخوستن لمونځ ځنډول مستحب دي لِقَوْلِهِ عَلَيْهِ الصَّلَاةُ وَالسَّلَامُ[2] ځکه نبي ﷺ فرمايلي دي لَوْلَا أَنْ أَشُقَّ عَلَى أُمَّتِيْ که ما ته زما پر امت د تکليف (او بوج) انديښنه نه وای لَأَخَّرْتُ الْعِشَاءَ إِلَى ثُلُثِ اللَّيْلِ نو ما به د ماخوستن لمونځ د شپې تر دريمي حصې پوري ځنډولی وای وَلِأَنَّ فِيْهِ قَطْعَ السَّمَرِ الْمَنْهِيِّ عَنْهُ[3] بَعْدَهُ او په دې وجه (هم) چي په دې کي د ګپ شپ (قصه خوانی) ختمول دي چي د ماخوستن تر لمانځه وروسته له هغه څخه منع سوې ده وَقِيْلَ فِي الصَّيْفِ تُعَجَّلُ كَيْ لَا تَتَقَلَّلَ الْجَمَاعَةُ او ويل سوي دي چي په ګرمي کي دي (د ماخوستن لمونځ) ژر کيږي چي جماعت کم نه سي وَالتَّأْخِيْرُ إِلَى نِصْفِ اللَّيْلِ مُبَاحٌ او تر نيمي شپې پوري ځنډول روا دي لِأَنَّ دَلِيْلَ الْكَرَاهَةِ وَهُوَ تَقْلِيْلُ الْجَمَاعَةِ عَارَضَهُ دَلِيْلُ النَّدْبِ وَهُوَ قَطْعُ

---

[1] تخريج: أخرجه ابو داؤد في كتاب الصلوٰة، باب في وقت المغرب، حديث ۴۱۸.

[2] تخريج: أخرجه الترمذي في كتاب الصلوٰة، باب ما جاء في تأخير صلوٰة العشاء، حديث رقم:۱۶۷.

[3] تخريج: أخرجه البخاري في كتاب مواقيت الصلوٰة، باب وقت العصر، حديث رقم: ۵۴۷.

السَّمَرِ بِوَاحِدٍ ځکه چې د کراهت د دليل سره چې هغه کمښت د جماعت دی دليل د استحباب چې هغه ديو چا سره د ګپ شپ ختمول دي معارض سو (په لنډه توګه دا چې د کراهت د دليل سره د استحباب دليل معارض سو) فَتَثْبُتُ الْإِبَاحَةُ نو روايښت به ثابتيږي وَإِلَى النِّصْفِ الْأَخِيرِ مَكْرُوهٌ او (د شپې) تر آخري نيمې حصې پورې ځنډول مکروه دي لِمَا فِيهِ مِنْ تَقْلِيلِ الْجَمَاعَةِ ځکه چې په دې کې د جماعت کمښت دی وَقَدِ انْقَطَعَ السَّمَرُ قَبْلَهُ او ګپ شپ خو تر دې مخکې (لا) ختم سوی دی.

**اللغات:** ﴿أَشُقُّ﴾ شَقَّ يَشُقُّ، د نصر د باب واحد متکلم مضارع صيغه ده: سختول؛ درنول. ﴿سمر﴾ د شپې يعني تر لمانځه وروسته تر ډېره خبرې کول، ګپه شپه او قصې کول.

**تشريح:** د ماخوستن لمونځ د شپې د دريمې حصې تر مخکې پورې ځنډول مستحب دي، او په شرح نقايه کې راغلي دي چې د شپې تر دريمې حصې پورې ځنډول مستحب دي، د دې اول دليل د نبي ﷺ ارشاد دی: لو لا أن أشق على أمتي لأخرت العشاء إلى ثلث الليل، دويم دليل دا دی چې د ماخوستن تر لمانځه وروسته ګپه شپه او قصې شرعاً ممنوع دي، نبي ﷺ فرمايي: لا سمر بعد العشاء. (يعني د ماخوستن تر لمانځه وروسته ګپه او قصې کول نسته)؛ بعضي فقهاؤ ليکلي دي چې د ګرمۍ په موسم کې د ماخوستن لمونځ په تلوار سره کول پکار دي ځکه چې د ګرمۍ په موسم کې شپې ډېرې کوچنۍ وي نو که لمونځ وځنډول سي نو په جماعت کې به کمښت راسي.

والتأخير الخ صاحب د هدايې فرمايي چې د ماخوستن لمونځ تر نيمې شپې پورې ځنډول مباح دي، دليل يې دا دی چې په ځنډولو کې يې په دې اعتبار سره کراهت دی چې په جماعت کې به کمښت راسي، او په دې اعتبار سره مستحب دي چې قصې او ګپه به بالکل ختمه سي (ځکه چې هر سړی به ژر بيديږي چې بيا ژر (د ماخوستن) لمانځه ته راپورته سي) نو هر کله چې په دليل د استحباب او دليل د کراهت کې تعارض راغلی نو دواړه دلائل ساقط سول، او اباحت پاته سو.

والى النصف الاخير الخ او تر نصف اخير پورې ځنډول مکروه دي، ځکه چې د کراهت او د جماعت د کمښت دواړه دليلونه موجود دي، او دليل د استحباب ورسره معارض نه دی، ځکه چې قصې او ګپه کول خو تر دې مخکې ختم سوي وي، نو دليل د استحباب پاته نه سو، نو چې دليل د استحباب پاته نه سو نو اباحت هم نه پاتيږي، لکه څرنګه چې په مخکې صورت کې اباحت وو.

## د اثمار الهدايه تحقيق

صاحب د اثمار الهدايې د "ثلث الليل" او "النصف الاخير" په باره کې وايي، چې ثلث الليل يعني د شپې دريمه حصه د ماخوستن له لسو(۱۰) بجو څخه شروع کيږي، يعني د ماخوستن پر لس بجې د شپې دريمه حصه ده، ځکه که ټوله شپه دوولس ساعته (ګينټې) ومنل سي، نو د شپې دريمه حصه د ماښام تر لمانځه څلور ساعته وروسته راځي، چې هغه تقريباً لس بجې کيږي، او نصف الاخير يعني د شپې آخري نيمه حصه له دوولسو(۱۲) بجو څخه شروع کيږي، يعني تر دوولس بجو وروسته د ماخوستن لمونځ کول مکروه دي، خو که وسي، نو اداء کيږي. [اثمار الهدايه ج:۱، ص:۳۴۲]

## د وترو مستحب وخت

وَيُسْتَحَبُّ فِي الْوِتْرِ لِمَنْ يَأْلَفُ صَلَاةَ اللَّيْلِ آخِرَ اللَّيْلِ او د هغه سړي لپاره په وترو کې چې د تهجدو سره محبت لري د شپې آخري وخت مستحب دی فَإِنْ لَمْ يَثِقْ بِالْانْتِبَاهِ أَوْتَرَ قَبْلَ النَّوْمِ او که پر ویښېدلو یې باور نه وو نو تر خوب مخکې دې وتر وکړي لِقَوْلِهِ عَلَيْهِ الصَّلَاةُ وَالسَّلَامُ ●: مَنْ خَافَ أَنْ لَا يَقُومَ آخِرَ اللَّيْلِ فَلْيُوتِرْ أَوَّلَ اللَّيْلِ ځکه نبي ﷺ فرمایلي دي: د چا سره چې دا ېره وي چې په آخر د شپې کې به را ویښ نه سي نو په اول د شپې کې دې وتر وکړي وَمَنْ طَمِعَ أَنْ يَقُومَ آخِرَ اللَّيْلِ فَلْيُوتِرْ آخِرَ اللَّيْلِ او که د چا دا امید وي چې د شپې په آخر کې به را ویښ سي نو په آخر د شپې کې دې وتر وکړي.

**اللغات**: ﴿يألف﴾ د سمع د باب مضارع صیغه ده: محبت کول، ﴿يثق﴾ د ضرب د باب مضارع صیغه ده: یقین کېدل، باور کېدل، ﴿الانتباه﴾ د افتعال د باب مصدر دی: ویښېدل، بیداره کېدل، په هوښ کې را تلل.

**تشریح**: صاحب د هدایې د وترو د مستحب وخت په باره کې فرمایي چې د چا د تهجدو لمونځ خوښ وي او د تهجدو عادت یې وي، نو د هغه لپاره د شپې په آخر کې (تر تهجدو وروسته) وتر کول مستحب دي، خو که د یو چا د شپې په آخر کې پر ځان د راپورته کېدلو باور نه وي نو هغه دې وتر تر خوب مخکې کوي، او په حدیث شریف کې د دې دواړو صورتونو ذکر سوی دی، حدیث په کتاب کې ذکر سو، یعني: من خاف أن لا يقوم ...الخ.

## د وریځې په ورځ د پنځو لمونځونو مستحب وختونه

وَإِذَا كَانَ يَوْمُ غَيْمٍ او کله چې ورځ د وریځې وي فَالْمُسْتَحَبُّ فِي الْفَجْرِ وَالظُّهْرِ وَالْمَغْرِبِ تَأْخِيرُهَا نو په سهار، ماپښین او ماښام کې د لمانځه ځنډول مستحب دي وَفِي الْعَصْرِ وَالْعِشَاءِ تَعْجِيلُهُمَا او په مازیګر او ماخوستن کې د لمانځه ژر کول مستحب دي لِأَنَّ فِي تَأْخِيرِ الْعِشَاءِ تَقْلِيلَ الْجَمَاعَةِ عَلَى اعْتِبَارِ الْمَطَرِ ځکه چې د ماخوستن په ځنډولو کې د باران په وجه په جماعت کې کمښت راځي وَفِي تَأْخِيرِ الْعَصْرِ تَوَهُّمَ الْوُقُوعِ فِي الْوَقْتِ الْمَكْرُوهِ او د مازیګر په ځنډولو کې په مکروه وخت کې د داخلېدلو وهم سته وَلَا تَوَهُّمَ فِي الْفَجْرِ او په سهار کې (څه) وهم نسته لِأَنَّ تِلْكَ الْمُدَّةَ مَدِيدَةٌ ځکه چې د سهار وخت اوږد وي وَعَنْ أَبِي حَنِيفَةَ التَّأْخِيرُ فِي الْكُلِّ لِلْاحْتِيَاطِ او له امام ابو حنیفه رَحِمَهُ الله څخه (یو) روایت (دا) دی چې د احتیاط په وجه ټوله لمونځونه ځنډول مستحب دي أَلَا تَرَى أَنَّهُ يَجُوزُ الْأَدَاءُ بَعْدَ الْوَقْتِ لَا قَبْلَهُ آیا ته نه ګورې چې تر وخت وروسته اداء جائز ده، نه تر وخت مخکې.

**اللغات**: ﴿غيم﴾ وریځ.

**تشریح**: مخکې د هغو پنځو مستحب وختونو بیان وو چې موسم برابر وي او آسمان شین وي، خو که موسم خراب وو او آسمان شین نه وو بلکې وریځ وه، نو په دې صورت کې صاحب د عنایې رَحِمَهُ الله دا ضابطه بیان کړې ده چې العین مع

● تخریج: أخرجه الترمذي في كتاب الوتر باب ما جاء في كراهية النوم قبل الوتر، حديث رقم: ۴۵۵.

العين يعني هغه لمونځ چې په هغه کې عين وي لکه عشاء او عصر يعني د ماخوستن او مازيګر لمونځ نو په هغه کې به عجلت يعني تلوار او چابکي کيږي او له دې دواړو څخه به علاوه په نورو لمونځونو کې تأخير کيږي. د وريځې په ورځ د ماخوستن په لمانځه کې د تلوار وجه دا ده چې که په داسې حالت کې د ماخوستن جماعت وروسته کړی سي نو په جماعت کې به کمښت راسي، او خلک به د باران په وجه سستي وکړي، او په رخصت باندې به عمل وکړي، ځکه چې کله به د باران ورځ وه نو نبي ﷺ به تر اذان وروسته دا اعلان کوی: ألا صلوا في رحالكم (خبردار! په خپلو کورونو کې لمونځونه وکړئ!)، او د مازيګر په لمانځه کې د تلوار وجه دا ده چې د وريځ په ورځ دا احتمال کېدای سي چې داسې نه د مازيګر لمونځ په مکروه وخت کې راسي، نو ځکه به د مازيګر په لمانځه کې تلوار مستحب وي.

ولا توهم في الفجر الخ دا دې په خلاف د سهار په لمانځه کې دا ګومان نه سي کېدلای، ځکه چې د سهار د لمانځه وخت اوږد وي (يعني له طلوع فجر څخه واخله تر طلوع شمس پوري)، نو که څه هم د سهار لمونځ وروسته کړی سي. نو په هغه کې د لمر راختلو په وخت کې د لمانځه واقع کېدلو بيره نسته، نو ځکه د وريځې په ورځ د سهار په لمانځه کې تأخير مستحب دی.

او په ماپښين او ماښام کې تأخير ځکه مستحب دی چې که د وريځې په ورځ دا لمونځونه مخکې وکړی سي نو تر وخت مخکې د اداء کېدلو احتمال پکښې سته، او له وخت څخه مخکې لمونځ کول جائز نه دي، نو ځکه په دې کې تأخير مستحب دی.

وعن أبي حنيفة الخ حسن بن زياد له امام ابو حنيفه رَحِمَهُ الله څخه يو روايت دا هم را نقل کړی دی چې د احتياط په وجه د وريځې په ورځ په ټولو لمونځونو کې تأخير کول غوره دي، ځکه چې په تعجيل کې تر وخت مخکې د اداء کولو احتمال سته او په تأخير کې تر وخت وروسته د اداء احتمال سته، او دا خبره منل سوې ده چې لمونځ که تر وخت وروسته وسي نو بيا هم معتبر دی، که اداء نه سي، قضاء خو به يې خامخا را وګرځول سي، لېکن تر وخت مخکې نه د اداء اعتبار سته او نه د قضاء، نو ځکه به احتياطاً په ټولو لمونځونو کې تعجيل مستحب وي.



# فَصْلٌ فِي الْأَوْقَاتِ الَّتِي تُكْرَهُ فِيهَا الصَّلَاةُ

## (دا) فصل د لمانځه د مکروه وختونو (په بيان کي) دی

**تشريح**: په مخکني فصل کي د لمانځه مستحب وختونه بيان سول، اوس په دې فصل کي د لمانځه مکروه وختونه بيانيږي؛ مکروه: هغه کار ته ويل کيږي چي نه کول يې تر کولو غوره وي.

### مکروه وختونه(په کومو وختونو کي لمونځ جائز نه دی)

لَاتَجُوزُ الصَّلَاةُ عِنْدَ طُلُوعِ الشَّمْسِ لمونځ جائز نه دی د لمر د راختلو پر وخت وَلَا عِنْدَ قِيَامِهَا فِي الظَّهِيرَةِ او نه په غرمه کي د لمر د ږدېدلو پر وخت وَلَا عِنْدَ غُرُوبِهَا او نه د لمر د لوېدلو پر وخت لِحَدِيثِ عُقْبَةَ بْنِ عَامِرٍ رَضِيَ اللهُ عَنْهُ● د عقبه بن عامر رضي الله عنه د حديث په وجه قَالَ عقبه بن عامر رضي الله عنه فرمايي ثَلَاثَةُ أَوْقَاتٍ نَهَانَا رَسُولُ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ أَنْ نُصَلِّيَ فِيهَا وَأَنْ نَقْبُرَ فِيهَا مَوْتَانَا درې وختونه دي چي په هغو کي موږ نبي ﷺ له لمونځ کولو او مړي ښخولو څخه منع کړي يو عِنْدَ طُلُوعِ الشَّمْسِ حَتَّى تَرْتَفِعَ د لمر راختلو په وخت کي تر دې چي را پورته سي وَعِنْدَ زَوَالِهَا حَتَّى تَزُولَ او د لمر د زوال په وخت کي تر دې چي زائله سي وَحِينَ تَضِيفُ لِلْغُرُوبِ حَتَّى تَغْرُبَ او چي کله لمر لوېدلو ته مائله سي تر دې چي ولوېږي وَالْمُرَادُ بِقَوْلِهِ وَأَنْ نَقْبُرَ: صَلَاةُ الْجِنَازَةِ او د مصنف رحمه الله له دې قول أن نقبر څخه مراد: د جنازې لمونځ دی لِأَنَّ الدَّفْنَ غَيْرُ مَكْرُوهٍ ځکه چي ښخول مکروه نه دي وَالْحَدِيثُ بِإِطْلَاقِهِ حُجَّةٌ عَلَى الشَّافِعِيِّ رَحِمَهُ اللهُ او حديث د خپل اطلاق په وجه پر امام شافعي رحمه الله حجت دی فِي تَخْصِيصِ الْفَرَائِضِ بِمَكَّةَ د مکې مکرمې سره د فرضو په خاصولو کي وَحُجَّةٌ عَلَى أَبِي يُوسُفَ رَحِمَهُ اللهُ او پر امام ابو يوسف رحمه الله حجت دی فِي إِبَاحَةِ النَّفْلِ يَوْمَ الْجُمُعَةِ وَقْتَ الزَّوَالِ د جمعې په ورځ د زوال په وخت کي د نفلو په روا ګرځولو سره.

**اللغات**: ﴿الظَّهِيرَةِ﴾ غرمه.

**تشريح**: **مسئله**: دا ده چي زموږ په نيز د لمر راختلو په وخت کي او د غرمې په وخت (يعني په نصف النهار) کي او د لمر لوېدلو په وخت کي نه فرض لمونځ جائز دی او نه نفل.

**زموږ دليل**: د حضرت عقبه بن عامر رضي الله عنه حديث دی: قال نهانا رسول الله ﷺ أن نصلي وأن نقبر فيها موتانا عند طلوع الشمس حتى ترتفع وعند زوالها حتى تزول وحين تضيف للغروب حتى تغرب. په دې حديث کي صلاة عام دی که فرض وي، که نفل.

---

● تخريج: أخرجه ابو داؤد في كتاب الجنائز، باب الدفن عند طلوع الشمس، حديث رقم:٣١٩٢، وابن ماجه في كتاب الجنائز، باب ما جاء في الأوقات التي لايصلى فيها، حديث رقم:١٥١٩.

والمراد بقوله أن نقبر الخ او له أن نقبر څخه مراد د جنازې لمونځ دی، ځکه چې په دې وختونو کې د مړي ښخول مکروه نه دي، نو اوس مطلب دا سو چې نبي ﷺ په دې وختونو کې له مطلق لمونځ کولو څخه منع کړې ده، هغه که فرض وي، که نفل وي او که د جنازې لمونځ وي، نو دا حديث د خپل اطلاق په وجه د امام شافعي رَحِمَهُ الله او د امام ابو يوسف رَحِمَهُ الله په خلاف حجت دی، ځکه امام شافعي رَحِمَهُ الله فرمايي: چې په دې وختونو کې په ټولو ښارونو او ځايونو کې فرضي لمونځ جائز دی لیکن په مکه مکرمه کې د فرضي لمانځه سره سره نفل هم جائز دي،لکه څرنګه چې صاحب د فتح القدير فرمايي چې: په دې وختونو کې د امام شافعي رَحِمَهُ الله په نيز په مکه مکرمه کې مطلقاً لمونځ جائز دی، هغه که فرض وي، که نفل.

**د امام شافعي دليل:** د نبي دا قول دی: من نام عن صلاة أو نسيها فليصلها إذا ذكرها فإن ذلك وقتها، (يعني کوم سړی چې له لمانځه څخه بیده سي يا څخه هېر سي نو کله چې په ياد ورسي نو (په هغه خت کې) دې يې وکړي ځکه چې هغه د دغه لمانځه وخت دی).

**جواب:** امام شافعي رَحِمَهُ الله چې کوم حديث ذکر کړی دی د هغه جواب دا دی چې له دې حديث څخه په اوقات ثلاثه وو کې د لمونځ کولو اباحت ثابتیږي، او د عقبه بن عامر رضي الله عنه له حديث څخه حرمت ثابتیږي، او د اصول فقه په کتابونو کې راغلي دي چې که د حرمت او اباحت په مينځ کې تعارض راسي نو ترجيح به حرمت ورکول کيږي، نو په دې وجه به دلته د عقبه رضي الله عنه حديث راجح وي.

**د امام شافعي دويم دليل:** دا حديث دی چې نبي ﷺ وفرمايل: يابني عبد مناف لاتمنعوا احدا طاف بهذا البيت وصلى فى أية ساعة شاء من ليل او نهار، (اې بنو عبد مناف! تاسو څوک مه منع کوئ چې د دې کعبې طواف کوي يا لمونځ کوي په کوم وخت کې چې يې خوښه وي که د شپې وي او که د ورځې)، له دې روايت څخه هم معلومه سوه چې په مکه مکرمه هر وخت لمونځ جائز دی.

**جواب:** د دې حديث جواب دا دی چې د ألا بمكة معنىٰ ده ولا بمكة، لکه په دې آيت وما كان لمؤمن أن يقتل مؤمنا إلا خطأ کې چې إلا خطأ په معنیٰ د ولا خطأ دی، نو په دې صورت کې دا حديث د امام شافعي رَحِمَهُ الله مستدل نه سي جوړېدلای، والله اعلم بالصواب.

**د امام ابو يوسف دليل:** هغه حديث دی کوم چې حضرت ابو هريره رضي الله عنه او ابو سعيد رضي الله عنه روايت کړی دی: أن رسول الله ﷺ نهى عن الصلاة نصف النهار حتى تزول الشمس إلا يوم الجمعة، (يعني نبي ﷺ په نصف النهار کې له لمونځ کولو څخه منع کړې ده، تر دې چې لمر زائله سي، مګر د جمعې په ورځ).

زموږ دليل د امام ابو يوسف رَحِمَهُ الله په خلاف حجت دی، ځکه چې د هغوی په نيز د جمعې په ورځ د زوال په وخت کې نفل جائز دی.

**جواب:** د امام ابو يوسف د دليل جواب دا دی چې په إلا يوم الجمعة کې استثنا منقطع ده، دويم جواب د دی چې د إلا يوم الجمعة معنیٰ ده: ولا يوم الجمعة، نو اوس معنیٰ دا سوه چې نبي ﷺ په نصف النهار کې له لمونځ کولو څخه منع کړې ده او د جمعې په ورځ کې يې هم په دې وخت کې له لمونځ کولو څخه منع کړې ده.

## په مکروه وختونو کې د جنازې د لمانځه او د دغه ورځې د مازيګر د لمانځه حکم

وَلَا صَلَاةُ جِنَازَةٍ او (په دې وختونو کې) د جنازې لمونځ (هم) جائز نه دی لِمَا رَوَيْنَا د هغه حديث په وجه کوم چې موږ روايت کړی وَلَا سَجْدَةُ التِّلَاوَةِ او د تلاوت سجده (هم) جائز نه ده لِأَنَّهَا فِيْ مَعْنَى الصَّلَاةِ ځکه چې د تلاوت سجده (هم) د لمانځه په شير ده إِلَّا عَصْرَ يَوْمِهِ عِنْدَ الْغُرُوْبِ ماسوا د دغه ورځې د مازيګر له لمانځه څخه د لمر لوېدلو په وخت کې لِأَنَّ السَّبَبَ هُوَ الْجُزْءُ الْقَائِمُ مِنَ الْوَقْتِ ځکه (د لمانځه د وجوب) سبب د وخت هغه جزء دی کوم چې (اوس) موجود دی لِأَنَّهُ لَوْ تَعَلَّقَ بِالْكُلِّ ځکه که سبب د ټوله وخت سره متعلق سی لَوَجَبَ الْأَدَاءُ بَعْدَهُ نو تر وخت وروسته به (د لمانځه) اداء کول واجب سي وَلَوْ تَعَلَّقَ بِالْجُزْءِ الْمَاضِيْ او که سبب د تېر سوي وخت سره متعلق سي فَالْمُؤَدِّيْ فِيْ آخِرِ الْوَقْتِ قَاضٍ نو (د لمانځه) اداء کونکی به په آخري وخت کې (د لمانځه) قضاء راوړونکی سي وَإِذَا كَانَ كَذٰلِكَ فَقَدْ أَدَّاهَا كَمَا وَجَبَتْ او هر کله چې داسې ده نو (د لمر لوېدلو په وخت کې) لمونځ کونکي (د مازيګر لمونځ) هغسې اداء کړی څرنګه چې واجب سوی وو بِخِلَافِ غَيْرِهَا مِنَ الصَّلَوَاتِ په خلاف د نورو لمونځونو لِأَنَّهَا وَجَبَتْ كَامِلَةً فَلَا تَتَأَدّٰى بِالنَّاقِصِ ځکه چې هغه کامل واجب سوي دي نو په ناقص وخت کې به نه اداء کيږي قَالَ رَضِيَ اللهُ عَنْهُ: وَالْمُرَادُ بِالنَّفْيِ الْمَذْكُوْرِ فِيْ صَلَاةِ الْجِنَازَةِ وَسَجْدَةِ التِّلَاوَةِ الْكَرَاهَةُ صاحب د هدايې فرمايي چې: د جنازې په لمانځه کې او د تلاوت په سجده کې له ذکر سوي نفي څخه مراد کراهت دی حَتّٰى لَوْ صَلَّاهَا فِيْهِ نو که يې په دې مکروه وخت کې د جنازې لمونځ وکړی أَوْ تَلَا سَجْدَةً فِيْهِ يا يې په دې کې د سجدې آيت تلاوت کړی فَسَجَدَهَا او سجده يې وکړه جَازَ نو جائز دي لِأَنَّهَا أُدِّيَتْ نَاقِصَةً ځکه چې د جنازې لمونځ او د تلاوت سجده هغسې ناقص اداء سو كَمَا وَجَبَتْ لکه څرنګه چې واجب سوي وو إِذِ الْوُجُوْبُ بِحُضُوْرِ الْجِنَازَةِ وَالتِّلَاوَةِ ځکه چې وجوب خو د جنازې په حاضرېدلو او د تلاوت په کولو سره ثابت سو.

**تشريح:** صورت د مسئلې: دا دی چې څرنګه په اوقات ثلاثه (درې مکروه وختونو) کې د سجدې او رکوع والا لمونځونه منع دي، همدارنګه د جنازې لمونځ او سجدهٔ تلاوت (د تلاوت سجده) هم جائز نه دي، د جنازې د لمانځه منع والی خو د حضرت عقبه بن عامر ﷺ له حديث څخه ثابت دی، او بيا صاحب د هدايې هم دا وضاحت کړی دی چې له اَن نقبر څخه د جنازې لمونځ مراد دی.

او د سجدهٔ تلاوت د منع والي دليل دا دی چې د شرائطو او اوصافو په حواله سره د تلاوت سجده د لمانځه په معنیٰ ده، او کله چې سجدهٔ تلاوت د لمانځه په معنیٰ ده نو د لمانځه په منع والي کې داخليږي، او څرنګه چې په اوقات ثلاثه وو کې لمونځ منع دی، نو ځکه په دې وختونو کې سجدهٔ تلاوت هم منع ده.

إلا عصر يومه الخ دا عبارت د ولا عند غروبها څخه مستثنی دی، او مطلب يې دا دی چې د لمر لوېدلو په وخت کې لمونځ کول او سجدهٔ تلاوت کول منع دي، خو د دغه ورځې د مازيګر لمونځ له دې حکم څخه خارج او مستثنیٰ دی، او که چا د

مازيګر لمونځ نه وکړی، تر دې چې لمر لوېدلو ته نژدې سو، نو د ده لپاره د لمرېدلو په وخت کي د دغه ورځي د مازيګر لمونځ صحيح دی، لېکن بل هيڅ لمونځ هغه که قضاء او که اداء جائز نه دی.

**دليل:** د لمر لوېدلو په حالت کي چي د دغه ورځي د مازيګر د لمانځه کومه اجازه ورکول سوې ده، د هغه دليل دا دی چي د لمانځه د وجوب سبب خو يا ټوله وخت دی، يا د وخت هغه جزء دی کوم چي تېر سو، يا د وخت هغه جزء دی چي د وخت تر تېرېدلو وروسته پاته وي، اوس دلته مسئله دا ده چي موږ خو نه ټوله وخت سبب ګرځولی سو او نه تېر سوی وخت سبب ګرځولی سو، ځکه که ټوله وخت سبب وګرځول سي نو د لمانځه اداء کېدل به تر وخت وروسته راسي، هغه په دې توګه چي کله ټوله وخت د لمانځه سبب سو نو دا خو معلومه ده چي سبب تر مسبب مخکي وي، او کله چي داسي ده نو د لمانځه اداء کېدل به تر وخت وروسته راسي او دا صحيح نه ده.

همدارنګه د وخت تېر سوی جزء هم سبب نه سي ګرځېدلای، ځکه که يو سړی د وخت په آخر کي لمونځ اداء کوي، نو هغه به د تېر سوي جزء د سبب ګرځولو په صورت کي د لمانځه اداء کونکی نه بلکي د لمانځه قضاء راوړونکی شمارل کيږي، حال دا چي هغه اداء کونکی دی، نو په دې وجه دا خبره متل سوې ده چي نه به ټوله وخت د لمانځه سبب ګرځول کيږي او نه د وخت تېر سوی جزء، نو ځکه به د لمانځه سبب د وخت هغه جزء وي کوم چي د اداء سره متصل (جوخت) دی، او څرنګه چي په ذکر سوي صورت کي د اداء سره متصل جزء ناقص دی (يعني لږ وخت پاته دی)، نو ځکه به لمونځ هم ناقص اداء کيږي، ځکه قاعده دا ده: چي څرنګه سبب وي هغه رنګه به مسبب وي، او دلته سبب (چي وخت دی) ناقص دی نو مسبب به هم (چي لمونځ دی) ناقص وي، او د دې په خلاف نور هغه لمونځونه کوم چي د دې ورځي د مازيګر له لمانځه څخه ماسوا دي (لکه د سهار او ماپښين) هغه د لمر لوېدلو په وخت نه سي کېدلای ځکه چي هغه لمونځونه په پوره صفت او سبب سره واجب سوي دي نو ځکه به په ناقص وخت کي د دوی اداء کېدل صحيح نه وي.

قال والمراد بالنفي الخ صاحب د هدايې فرمايي چي د جنازې د لمانځه او د سجدهٔ تلاوت په باره کي چي کومي نفي راغلي دي، له هغه څخه مراد کراهت دی، يعني په دې وختونو کي د جنازې د لمانځه او سجدهٔ تلاوت اداء کول خلافُ الاولیٰ او مکروه دي، بيا هم که چا وکړل جائز دي، دليل يې دا دی چي د جنازې د لمانځهٔ د واجب کېدلو سبب د جنازې حاضرېدل دي، او د سجدهٔ تلاوت د واجب کېدلو سبب د سجدې د آيت تلاوت کول دي، او څرنګه چي دا دواړه سببونه په ناقص وخت (مکروه وخت) کي راغلل نو د جنازې لمونځ او سجدهٔ تلاوت هم دغسي ناقص واجب سوه، نو دا دواړه چي څرنګه (ناقص) واجب سوه هغه رنګه (ناقص) اداء کړی سوه، نو ځکه به يې اداء کول جائز وي.

## د سهار او مازيګر تر لمونځونو وروسته د نفلو حکم

| |
|---|
| وَيُكْرَهُ أَنْ يَتَنَفَّلَ بَعْدَ الْفَجْرِ او د سهار تر لمانځه وروسته نفل کول مکروه دي حَتّٰى تَطْلُعَ الشَّمْسُ تر دې چي لمر راوخېژي وَبَعْدَ الْعَصْرِ حَتّٰى تَغْرُبَ او د مازيګر تر لمانځه وروسته (هم) تر دې چي لمر ولوېږي لِمَا رُوِيَ● أَنَّهُ عَلَيْهِ الصَّلَاةُ وَالسَّلَامُ نَهٰى عَنْ ذٰلِكَ ځکه روايت سوی دی چي نبي ﷺ له دې څخه منع کړې ده وَلَا بَأْسَ بِأَنْ يُصَلِّيَ فِيْ هٰذَيْنِ الْوَقْتَيْنِ الْفَوَائِتَ او هيڅ حرج نسته چي يو سړی په دې دواړو وختونو کي قضائي لمونځونه وکړي وَيَسْجُدَ لِلتِّلَاوَةِ |

---

● تخريج: أخرجه البخاري في كتاب مواقيت الصلاة، باب الصلاة بعد الفجر، حديث رقم:٥٨١، و ابو داؤد في كتاب التطوع، باب من رخص فيهما اذا كانت الشمس مرتفعة، حديث رقم:١٢٧٣ - ١٢٧٥.

او د تلاوت سجده وکړي وَيُصَلِّيْ عَلَى الْجِنَازَةِ او د جنازې لمونځ وکړي لِأَنَّ الْكَرَاهَةَ كَانَتْ لِحَقِّ الْفَرْضِ لِيَصِيْرَ الْوَقْتُ كَالْمَشْغُوْلِ بِهٖ ځکه چې کراهت د فرضو د حق لپاره وو د دې لپاره چې وخت په فرضو سره د مشغول په شان سي لَا لِمَعْنًى فِي الْوَقْتِ نه د يو داسي معنیٰ په وجه کوم چې په وخت کي وه (يعني په وخت کي د کراهت د معنی په وجه سره نه) فَلَمْ تَظْهَرْ فِيْ حَقِّ الْفَرَائِضِ نو ځکه به د فرضو په حق کي دا کراهت نه ښکاره کيږي وَفِيْمَا وَجَبَ لِعَيْنِهٖ او نه به د هغه شيانو په حق کي ښکاره کيږي کوم چې بالذات مقصود (واجب) دي كَسَجْدَةِ التِّلَاوَةِ لکه د تلاوت سجده وَظَهَرَتْ فِيْ حَقِّ الْمَنْذُوْرِ او دا کراهت به ښکاره کيږي په حق د نذر کړی سوي لمانځه کي لِأَنَّهٗ تَعَلَّقَ وُجُوْبُهٗ بِسَبَبٍ مِنْ جِهَتِهٖ ځکه چې د دې وجوب د يو داسي سبب سره تعلق لري کوم چې د نذر منونکي له طرفه دی وَفِيْ حَقِّ رَكْعَتَيِ الطَّوَافِ او د طواف د دوو رکعتونو په حق کي به (هم کراهت ښکاره کيږي) وَفِي الَّذِيْ شَرَعَ فِيْهِ ثُمَّ أَفْسَدَهٗ او د هر هغه لمانځه په حق کي به (ښکاره کيږي) چي هغه لمونځ کونکي شروع کړی وي بيا يې فاسد کړی وي لِأَنَّ الْوُجُوْبَ لِغَيْرِهٖ وَهُوَ خَتْمُ الطَّوَافِ ځکه چې په دې کي وجوب لغيره دی او هغه د طواف ختمول دي وَصِيَانَةُ الْمُؤَدّٰى عَنِ الْبُطْلَانِ او د اداء کړی سوي لمانځه ساتل دي له باطلولي څخه.

**اللغات:** ﴿مَنْذُوْر﴾ نذر کړی سوی، منت منل سوی. ﴿صِيَانَة﴾ ساتنه، ژغورل.

**تشريح:** **صورت د مسئلې:** دا دی چي د سهار تر لمانځه وروسته او تر لمر راختلو مخکي او د مازيګر تر لمانځه وروسته او تر لمر لوېدلو مخکي يو نفلي لمونځ کول مکروه دي، ځکه نبي ﷺ په دې دواړو وختونو کي له نفلونو څخه منع کړې ده، لکه په بخاري شريف کي چي د حضرت عمرفاروق رضي الله عنه په حواله سره حضرت عبد الله بن عباس رضي الله عنهما دا حديث را نقل کړی دی: أن رسول الله ﷺ نهى عن الصلاة بعد الصبح حتى تشرق الشمس وبعد العصر حتى تغرب، په دې حديث کي په ښکاره توګه د سهار تر لمانځه وروسته تر لمر راختلو پوري او د مازيګر تر لمانځه وروسته تر لمر لوېدلو پوري له لمونځ کولو څخه منع سوې ده.

ولا بأس الخ فرمايي چي د سهار او مازيګر تر لمونځونو وروسته خو نفل منع دي، لېکن که يو سړی په دې وختونو کي قضائي لمونځونه را وګرځوي، يا د تلاوت سجده وکړي يا د جنازې لمونځ وکړي نو هيڅ حرج نسته، دا درې سره شيان د ده لپاره جائز او صحيح دي، ځکه چي په دې وختونو کي نفلونه په دې وجه منع دي چي دا وختونه د فرضو حق دی، او دا وخت بايد په فرضو کي مشغول سي، نو ځکه به دا کراهت د فرضو په حق کي نه ښکاره کيږي، او د هغه شيانو په حق کي به هم نه ښکاره کيږي کوم چي بالذات او بالعين واجب وي، او چي د هغو په وجوب کي د بنده دخل نه وي، لکه د تلاوت سجده، ځکه چي د تلاوت د سجدې وجوب د بنده پر فعل موقوف نه دی، ځکه ښرنګه چي په تلاوت کولو سره د تلاوت سجده واجبيږي، همدارنګه د سجدې د آيت په اورېدلو سره هم واجبيږي، که څه هم انسان يې د اورېدلو قصد نه کړی وي، او لکه د جنازې لمونځ، ځکه چي د دې وجوب هم د بنده پر فعل موقوف نه دی، بلکي هغه هم واجب لذاته دی.

لېکن هغه شيان چې د هغو وجوب لغيره وي او د هغو تعلق د بنده د فعل سره وي، نو په هغو ټولو شيانو کې دا کراهت ښکاره کېږي لکه نذر کړی سوی لمونځ، تر طواف وروسته دوه رکعته، او هغه لمونځ چې تر شروع کولو وروسته باطل سوی وي، نو څرنګه چې دا ټوله شيان د بنده پر فعل موقوف دي او د دې د وجوب سبب هم د بنده له طرف ثابتېږي، نو ځکه به دا شيان واجب لغيره وي، او هم د دې شيانو په حق کې به کراهت ښکاره کېږي، لهذا د مازيګر او د سهار تر لمونځونو وروسته نذر کړی سوی لمونځ په دې وجه صحيح نه دي، ځکه چې نذر مثل د بنده فعل دی، نو دا واجب لغيره سو، او تر طواف وروسته د دوو رکعتونو کول په دې وجه صحيح نه دي، ځکه چې دا هم د بنده پر فعل يعني پر طواف موقوف دي، همدارنګه د هغه نفلي لمانځه قضاء را ورل چې تر شروع کولو وروسته فاسد کړی سوی وي په دې وختونو کې په دې وجه صحيح نه دی، چې دا هم د بنده د خپل فعل په سبب واجب سوی دی.

## تر صبح صادق (رڼا ګهيځ) وروسته تر دوو رکعتونو زيات نفل کول

وَيُكْرَهُ أَنْ يَتَنَفَّلَ بَعْدَ طُلُوْعِ الْفَجْرِ بِأَكْثَرَ مِنْ رَكْعَتَيِ الْفَجْرِ او تر سهار را ختلو وروسته د سهار له دوو رکعتو سنتو څخه زيات نفل کول مکروه دي (يعني تر صبح صادق وروسته د سهار له دوو رکعتو سنتو څخه ماسوا نور نفل کول مکروه دي) لِأَنَّهُ[●] عَلَيْهِ السَّلَامُ لَمْ يَزِدْ عَلَيْهِمَا مَعَ حِرْصِهِ عَلَى الصَّلَاةِ ځکه چې د لمانځه د زيات شوق باوجود نبي ﷺ هيڅکله پر دې دوو رکعتو سنتو زياتوب کړی نه دی.

**اللغات:** ﴿حرص﴾ زيات شوق.

**تشريح:** صورت د مسئلې او دليل بالکل ښکاره دي.

## د ماښام تر فرضو مخکې د نفلو حکم

وَلَا يَتَنَفَّلُ بَعْدَ الْغُرُوْبِ قَبْلَ الْفَرْضِ او تر لمر لوېدلو وروسته به له فرضو څخه مخکې هيڅ نفلي لمونځ نه کوي لِمَا فِيْهِ مِنْ تَأْخِيْرِ الْمَغْرِبِ ځکه چې په دې کې د فرضو (يعني د ماښام د لمانځه) تأخير راځي وَلَا إِذَا خَرَجَ الْإِمَامُ لِلْخُطْبَةِ يَوْمَ الْجُمُعَةِ او د جمعې په ورځ چې کله امام د خطبې لپاره راووځي نو هم به نفل نه کوي إِلَى أَنْ يَفْرُغَ مِنْ خُطْبَتِهِ تر دې چې امام له خطبې څخه فارغه سي لِمَا فِيْهِ مِنَ الْإِشْتِغَالِ عَنِ اسْتِمَاعِ الْخُطْبَةِ ځکه چې په نفلو بلتدي په مشغولتيا سره (بيا) خطبه نه سي اورېدل کېدلای (يعني د خطبې له اورېدلو څخه اعراض راځي).

**تشريح:** **مسئله:** دا ده چې تر لمر لوېدلو وروسته او د ماښام د لمانځه تر اداء کولو مخکې نفلي لمونځ مکروه دی، دليل يې دا دی چې په داسې کولو سره د ماښام لمونځ ځنډيږي، حال دا چې د ماښام په لمانځه کې تعجيل (تلوار) مستحب دی. همدارنګه په هغه وخت کې نفلي لمونځ مکروه دی چې امام د خطبې لپاره راووځي تر دې چې له خطبې څخه فارغه سي، دليل يې دا دی چې خطبه اورېدل واجب دي. او ښکاره ده چې په نفل کولو سره اورېدل پاتېږي، نو د نفل په وجه د واجبو پرېښوول صحيح نه دي.



● تخريج: أخرجه دار قطني في كتاب الصلاة، باب لا صلوٰة بعد الفجر الاسجدتين، حديث ١٥٣٥.

# بَابُ الْأَذَانِ

## (دا) باب د اذان د احکامو (په بیان کې) دی

**تشریح:** تر دې مخکې صاحب د کتاب د لمانځه وختونه (مواقیت) بیان کړل، اوس له دې ځایه د اذان احکام بیانوي، او اذان یې په دې وجه د لمانځه تر وختونو وروسته بیان کړی ځکه چې اذان د لمانځه د سبب د داخلېدلو اعلان دی (یعني اذان دا خبر تیا ورکوي چې د لمانځه وخت داخل سو او وخت د لمانځه سبب دی لکه مخکې چې پر دې تفصیلي بحث وسو)، نو ځکه یې اول وختونه بیان کړل او اوس اعلان بیانوي.

**د اذان لغوي معنی:** اذان په لغت کې اعلان او إعلام (خبر ورکولو) ته ویل کیږي.

**د اذان اصطلاحي معنی:** الإعلام بوقت الصلاة بألفاظ مخصوصة على صفة مخصوصة، (یعني په ځانګړي طریقه سره د ځانګړو الفاظو په ذریعه د لمانځه د اعلان کولو نوم اذان دی).

**اذان کله شروع سو:** جمهوره محدثین او تاریخپوهان پر دې خبره متفق دي چې د اذان مشروعیت تر هجرت وروسته په مدینه منوره کې سوی دی، لېکن په دې خبره کې اختلاف دی چې د هجرت په کوم کال کې اذان مشروع سو، په دې لړ کې د حافظ ابن حجر عسقلاني رَحِمَهُ الله رایه دا ده چې د اذان د تعلیم واقعه په ۲ هـ کې مخ ته راغله، لېکن د علامه عیني رَحِمَهُ الله خیال دا دی چې دا واقعه په ۱ هـ کې مخ ته راغله.

**د اذان د مشروعیت واقعه:** د اذان د مشروعیت قصه دا ده چې کله نبي ﷺ او صحابه وو له مکې شریفې څخه هجرت وکړی مدینې شریفې ته ولاړل، نو په بېلا بېلو ځایو کې یې استوګنه پېل کړه، او په یوه وخت کې د ټولو خبرېدل او د مسجد ته د ټولو حاضرېدل ستونزمن وه، نو په دې باره کې نبي کریم ﷺ د مشورې لپاره د صحابه وو یوه غونډه جوړه کړه، بعضې صحابه وو دا رایه ورکړه چې د لمانځه په وخت کې دې یو بیرغ دروول کیږي چې هغه ته به په کتلو سره ټوله خلک په مسجد کې جمع کیږي، لېکن دا رایه خوښه نه کړی سوه، او وجه یې دا بیان سوه چې په دې سره به صرف هغه خلک مسجد ته حاضریږي کوم چې بیرغ ویني، او د نه لیدونکو لپاره به ستونزه پر خپل ځای پاته وي.

ځینو صحابه وو دا رایه ورکړه چې د لمانځه په وخت کې دې اُور بلیږي چې هغه ته به په کتلو سره خلک مسجد ته راځي، لېکن نبي ﷺ دا مشوره د مجوسیانو سره د مشابهت له کبله هم رد کړه. یو صحابي وویل چې: شپېلۍ دي پوکل کیږي، د هغه په آواز اورېدلو سره به خلک په مسجد کې جمع کیږي، لېکن دا مشوره هم د یهودو سره د مشابهت له کبله رد سوه، په آخر کې یوه مشوره دا وسوه چې ټلی (ناقوس) دي غږول کیږي (یعني یو غټ لرګی دي پر بل شي وهل کیږي) لېکن دا رایه هم د عیسایانو سره د مشابهت له کبله رد سوه.

لنډه دا چې په دې غونډه کې مسجد ته د خلکو راجمع کولو لپاره یوه پرېکړېزه رایه منظوره نه سوه، او ټوله خلک واپس خپلو کورونو ته ولاړل، هر یو په دې باره کې حیران او سرګردانه وو، او په دې کوښښ کې وو چې ژر تر ژره د دې مسئلې یو حل پیدا سي.

حضرت عبد الله بن زید رَضِيَ اللهُ عَنْهُمَا هم په دې مجلس کې ناست وو، او په دې باره کې هغه د نورو په نسبت څه زیات فکرمن وو، څرنګه چې هغه خپل کور ته ولاړی نو بنځې یې د ماښام ډوډۍ ور ته راوړه، لېکن عبد الله بن زید وویل چې د

نبي ﷺ صحابه د لمانځه په اړه په يوه لانجه کي سرګردانه دي، نو ځکه زه بوږنى نه خورم، دي وايي چي په دغه کړي ما ته خوب راغلی، په خوب کي مي وليدل چي له آسمان څخه يو سړی را ښوه سو، چي د هغه پر بدن دوه زرغونه پټوان(څادران) وه، او په لاس کي يې يو ناقوس وو، ما له هغه څخه پوښتنه وکړه چي اې د الله بنده! آيا ته دا ناقوس خرڅوې؟ هغه وويل چي ته به په دې څه وکړې؟ ما وويل: زه به يې رسول الله(ﷺ) ته ور وړم، او د دې په ذريعه به د لمانځه دوخت خبرتيا ورکول کيږي، دې سړي وويل: آيا زه تا ته د دې لپاره يوه غوره طريقه نه در وښيم؟ ما ور ته وويل: هو! ضرور يې را وښيه، نو هغه سړي د دېوال بغل ته ودرېدی او د قبلې طرف ته يې مخ کړی، او د اذان ټوله کليمې يې ذکر کړې، عبد الله بن زيد ﷺ فرمايي چي: سهار ما نبي ﷺ ته دا خوب ووايی، نو نبي ﷺ وفرمايل: إنه لرؤيا حق، فألقها إلى بلال فإنه أندى و أمد صوتا منك ومره ينادي به. (يعني دا يو رښتيا خوب دی، ته حضرت بلال ﷺ ته دا کليمې ور ښيه، او ده ته ووايه چي دا کليمې ته ووايه، ځکه چي ستا تر آواز د هغه آواز غټ دی). کله چي د حضرت عمر ﷺ په غوږ کي د حضرت بلال ﷺ دغه آواز ورسېدی نو هغه د نبي ﷺ په خدمت کي حاضر سو، او ويې ويل: اې د الله نبي! په هغه ذات دي مي قسم وې چي ته يې رښتوني نبي را استولی يې، د شپې دغه رنګه قصه زما سره هم وسوه، لېکن عبد الله بن زيد ﷺ په دې باره کي زما څخه مخکي سو، نو پر دې نبي ﷺ د خپل پروردګار شکر ادا کړی، او په دې ډول سره د لمانځه د خبرتيا ستونزه حل سوه. (په حواله د بدائع الصنائع ج:١، ص:٣٦٥)

## د اذان شرعي حيثيت او طريقه

الْأَذَانُ سُنَّةٌ لِلصَّلَوَاتِ الْخَمْسِ وَالْجُمُعَةِ د پنځو لمونځونو او جمعې لپاره اذان سنت(مؤکده) دی لَا سِوَاهَا نه د نورو لپاره لِلنَّقْلِ الْمُتَوَاتِرِ د نقلِ متواتر په وجه سره وَصِفَةُ الْأَذَانِ مَعْرُوفَةٌ او د اذان طريقه مشهوره ده وَهُوَ كَمَا أَذَّنَ الْمَلَكُ النَّازِلُ مِنَ السَّمَاءِ او هغه داسي ده څرنګه چي له آسمان څخه را ښوه سوي فرشتې اذان کړی وو.

**اللغات:** ﴿الملك﴾ فرشته (ملائکه).

**تشريح:** **صورت د مسئلې:** دا دی چي د راجح قول مطابق اذان سنت مؤکده(ټينګ سنت) دی، او د پنځو لمونځونو همدارنګه د جمعې لپاره اذان مشروع دی، له دې څخه ماسوا د نورو لمونځونو لپاره مثلاً د اخترونو، جنازې، کسوف او خسوف لپاره اذان مشروع نه دی، د اذان دغه مشروعيت د نقل متواتر په وجه دی، يعني د پنځو لمونځونو او جمعې لپاره د اذان مشروعيت د دومره ډېرو معتمدو راويانو په روايت سره ثابت دی چي د تواتر حد ته رسېدلی دی، لوس په دې کي دهيڅ لپاره د څه خبري ګنجايش نسته، او د اذان طريقه هم هغه مشهوره طريقه ده چي پر هغه طريقه فرشتې اذان کړی وو.

**فايده:** دلته دوې خبري د يادوني او پاملرني وړ دي: (١) اوله خبره دا چي اذان سنت مؤکده دی، او همدا صحيح ده، په دې سلسله کي د بعضي مشائخو قول دا دی چي اذان واجب دی، لېکن دا قول صحيح نه دی، په اصل کي دغه مشائخ د حضرات امام محمد رَحِمَهُ الله په هغه روايت دوکه سوي دي چي په هغه کي امام محمد رَحِمَهُ الله دا صراحت کړی دی چي که د ښار ټوله خلګ اذان پرېږدي نو د هغو سره دي جنګ او قتال وکړی سي، او جنګ په عامه توګه د واجب د پرېښولو په وجه کيږي، نو ځکه اذان هم واجب کېدل پکار دي، صاحب د عنايه رَحِمَهُ الله دا نظريه رد کړې ده او فرمايلي يې دي:

● تخريج: أخرجه الترمذي في كتاب الصلاة، باب ماجاء في بدء الأذان، حديث رقم:١٨٩.

امام محمد رَحِمَهُ الله چي د اذان پر پرېښولو کومه د جنګ خبره کړې ده، هغه د اذان د واجب والي په وجه سره نه ده بلکې د هغه وجه دا ده چي د اذان په پرېښوولو کي د دين ذلالت او سپکاوی دی، او د هغو خلکو سره جنګ ضروري دی چي د دين تذليل او سپکاوی کوي. (عنايه ج:۱، ص:۲۴۲)

(۲) دويمه خبره دا چي دلته صاحب د کتاب په خصوصي توګه سره د جمعې يادونه ځکه کړې ده چي دا ګومان ليري سي چي څرنګه د جمعې لپاره د عام اجازت، امام، ښار او نور شرطونه ضروري دي او د جمعې لپاره اذان مشروع دی، همدارنګه د اخترونو لپاره هم د جمعې دغه شرطونه ثابت دي، نو ځکه به د اخترونو لپاره هم اذان کول پکار وي، نو په اصل کي خبره دا ده چي د جمعې لپاره د نبي ﷺ له زمانې څخه اذان مشروع دی، او د اخترونو او نورو لپاره له هغه زمانې څخه اذان ثابت نه دی، لکه څرنګه چي جابر بن سمره ﷺ فرمايي: صليت مع رسول الله ﷺ العيد غير مرة ولا مرتين بغير أذان ولا إقامة. (يعني ما څو واره د نبي ﷺ سره د اختر لمونځ له اذان او اقامت څخه بغير کړی دی). (فتحالقدير ج:۱، ص:۲۴۳)

## په اذان کي د ترجيع بيان

وَلَا تَرْجِيْعَ فِيهِ او په اذان کي ترجيع نسته وَهُوَ او ترجيع دا ده أَنْ يُرَجِّعَ فَيَرْفَعَ صَوْتَهُ بِالشَّهَادَتَيْنِ بَعْدَ مَا خَفَضَ بِهِمَا چي مؤذن (د اذان کلمې) را وګرځوي نو شهادتين له کرار آواز څخه وروسته (دويم وار) په لوړ اواز سره ووايي (يعني ترجيع دا ده چي يو وار شهادتين په کرار آواز سره ووايي او بل وار يې په لوړ آواز سره ووايي) وَقَالَ الشَّافِعِيُّ رَحِمَهُ اللهُ: فِيهِ ذٰلِكَ او امام شافعي رَحِمَهُ الله فرمايي: چي: په اذان کي ترجيع سته لِحَدِيْثِ أَبِي مَحْذُوْرَةَ رَضِيَ اللهُ عَنْهُ د ابومحذوره ﷺ د حديث په وجه أَنَّ النَّبِيَّ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ● أَمَرَهُ بِالتَّرْجِيْعِ چي نبي ﷺ ابو محذوره ته د ترجيع حکم کړی وو وَلَنَا أَنَّهُ لَا تَرْجِيْعَ فِي الْمَشَاهِيْرِ او زموږ دليل دا دی چي په مشهوره روايتونو کي ترجيع نسته وَكَانَ مَا رَوَاهُ تَعْلِيْمًا او هغه حديث کوم چي ابو محذوره ﷺ روايت کړی وو هغه د تعليم (ښوولو) په توګه وو فَظَنَّهُ تَرْجِيْعًا چي پر هغه ابو محذوره ﷺ د ترجيع خيال وکړی.

**تشريح: صورت د مسئلې:** دا دی چي زموږ په نيز په اذان کي ترجيع نسته، د ترجيع مطلب دا دی چي اذان کوونکی شهادتين يعني أشهد أن لا إله إلا الله او أشهد أن محمدا رسول الله مخکي دوه واره په کرار آواز سره ووايي او بيا يې وروسته دوه واره په لوړ اواز سره ووايي، امام شافعي رَحِمَهُ الله فرمايي چي په اذان کي ترجيع سته، امام شافعي د حضرت ابومحذوره ﷺ په حديث سره دليل نيسي چي نبي کريم ﷺ چي ابو محذوره ته د اذان کوم تعليم ورکړی وو په هغه کي څلور واره د شهادتينو ذکر سته، او دې ته ترجيع وايي، نو ځکه ترجيع ثابته سوه.

**زموږ دليل:** دا دی چي د اذان د ثبوت په باره کي چي څومره مشهوره حديثونه راغلي دي، له هغو څخه په يوه کي هم د ترجيع يادونه نسته، صاحب د فتح القدير د امام ابو داؤد په حواله سره د حضرت ابن عمر رَضِيَ اللهُ عَنْهُمَا دا حديث را نقل کړی دی: إنما كان الأذان على عهد رسول الله ﷺ مرتين مرتين والإقامة مرة مرة. (يعني د نبي ﷺ په زمانه کي به په

---

● تخريج: أخرجه ابو داؤد في كتاب الصلاة، باب كيف الاذان، حديث رقم: ٤٩٩.

اذان کي دوه دوه واره کلمې ویل کېدې او په اقامت کي به یو یو وار)، له دې حدیث څخه هم ثابتیږي چي په اذان کي ترجیع نسته، ځکه چي د ترجیع لپاره د شهادتینو څلور واره ویل ضروري دي.

**جواب:** د امام شافعي د دلیل جواب دا دی چي په ابو محذوره ﷺ بار بار د شهادتینو ویل د تعلیم په توګه وو، چي پر هغه ابو محذوره د ترجیع خیال وکړی.

**دویم جواب:** دا دی چي د ابو محذوره ﷺ دا حدیث معارض دی د ده د هغه حدیث سره، کوم چي په صحیح سند سره ابو داؤد شریف رانقل کړی دی، او په هغه کي صرف دوه وار د شهادتینو یادونه سوې ده، نو د ابو محذورة ﷺ په دواړو حدیثونو کي تعارض راغلی، او قاعده دا ده چي إذا تعارضا تساقطا، نو ځکه به په دې حدیث سره دلیل نیول صحیح نه وي.

**دریم جواب:** دا دی چي که بیا هم موږ د امام شافعي رَحِمَهُ الله ذکر سوی حدیث صحیح ومنو نو هم له دې څخه د ترجیع ثبوت نه سي کېدلای، ځکه په دغه حدیث چي کوم د څلور واره شهادتینو ذکر سوی دی هغه د یوې ځانګړي قصې سره تعلق لري، قصه دا وه چي تر اسلام راوړلو مخکي ابو محذوره د نبي ﷺ سره ډېر عناد او بغض درلودی، بیا چي کله هغه په اسلام سره مشرف سو، نو نبي ﷺ هغه ته د اذان کولو حکم وکړی، هغه اذان شروع کړی، کله چي شهادتینو ته ورسېدی، نو له خپل قوم څخه یې د شرم او پیغور د احساس په وجه شهادتین بالکل په کښته اواز سره وویله، په دې باندې نبي ﷺ هغه را وغوښتی او تر تنبیه ورکولو وروسته یې حکم وکړی چي: ارجع وامدد بها صوتك. (یعني واپس سه! او شهادتین په لوړ اواز سرهووایه!)، نو د شهادتینو په راګرځولو سره نبي ﷺ هغه ته دا احساس ورکړی چي کله ته د اسلام لمن ته راغلې، نو اوس د حق په څرګندولو او د دین په ښکاره کولو کي هیڅ شرم او حیا مه کوه!، بلکي د ادخلوا في السلم کافة ځلانده نمونه جوړه سه!، یا په دې راګرځولو سره یې مقصد دا وو چي کوم څه تېر سوه هغه هېر کړه!، او د الله ﷻ د رسول په مینه کي غرق سه!. (عنایه ج:۱، ص:۲۴۵)

## د سهار په لمانځه کي د "الصَّلٰوةُ خَيْرٌ مِّنَ النَّوْمِ" د زیاتولو حکم

| |
|---|
| وَيَزِيدُ فِي أَذَانِ الْفَجْرِ بَعْدَ الْفَلَاحِ: الصَّلَاةُ خَيْرٌ مِنَ النَّوْمِ مَرَّتَيْنِ او مؤذن به د سهار په لمانځه کي تر حي علی الفلاح وروسته دوه واره الصلاة خیر من النوم زیاتوي لِأَنَّ بِلَالًا رَضِيَ اللهُ عَنْهُ قَالَ: الصَّلَاةُ خَيْرٌ مِنَ النَّوْمِ[1] مَرَّتَيْنِ حِينَ وَجَدَ النَّبِيَّ عَلَيْهِ الصَّلَاةُ وَالسَّلَامُ رَاقِدًا ځکه حضرت بلال ﷺ چي کله نبي ﷺ د خوب په حالت کي ولیدی نو دوه واره یې الصلاة خیر من النوم ووایې فَقَالَ عَلَيْهِ الصَّلَاةُ وَالسَّلَامُ: مَا أَحْسَنَ هَذَا يَا بِلَالُ اِجْعَلْهُ فِي أَذَانِكَ نو نبي ﷺ وفرمایل: اې بلاله! دا ډېره ښه جمله ده خپل په اذان کي یې داخله کړه وَخُصَّ الْفَجْرُ بِهِ لِأَنَّهُ وَقْتُ نَوْمٍ وَغَفْلَةٍ او د سهار اذان ځکه په دې سره خاص کړی سو چي دا وخت د خوب او غفلت دی. |

**اللغات:** ﴿رَاقِدٌ﴾ بیده (نائم).

**تشریح:** فرمایي چي اذان کونکی به د سهار په اذان کي تر حی علی الفلاح وروسته دوه واره الصلوٰة خیر من النوم زیاتوي، او دا زیاتونه مستحب ده؛ دلیل یې دا دی چي یوه ورځ حضرت بلال ﷺ د سهار د لمانځه لپاره اذان وکړی، بیا د حضرت

---

[1] تخریج: أخرجه طبراني في معجم الكبير، حديث رقم: ۸۱؛ ۱۱ و ايضاً ابن ماجه في كتاب الاذان، باب السنة في الاذان، حديث رقم: ۸۱۶.

عائشې رَضِيَ اللهُ عَنْهَا د حجرې دروازې ته ورغلی ورته وويل: الصلوٰة يا رسول الله (ﷺ). حضرت عائشې رَضِيَ اللهُ عَنْهَا
وفرمايل چې: الرسول نائم (رسول الله ﷺ بيده دی)، نو بلال ﷺ وويل: الصلوٰة خير من النوم. کله چې نبي ﷺ راويښ
سو، نو حضرت عائشې رَضِيَ اللهُ عَنْهَا نبي ﷺ ته دا قصه وکړه، نبي ﷺ دا کلمه خوښه کړه او ويې فرمايل: اې بلاله! دا
کلمه په خپل اذان کې داخله کړه، پاته سوه دا خبره چې دا زياتونه د سهار د اذان سره ولې خاص ده، نو د دې جواب دا دی
چې دا وخت د خوب او غفلت دی، نو ځکه دا زياتونه د سهار د اذان سره خاص سوه.

## د اقامت بيان

وَالْإِقَامَةُ مِثْلُ الْأَذَانِ او اقامت د اذان په شان دی إِلَّا أَنَّهُ يَزِيدُ فِيهَا بَعْدَ الْفَلَاحِ قَدْ قَامَتِ الصَّلَاةُ مَرَّتَيْنِ خو په اقامت کې
به تر حی الفلاح وروسته دوه واره قد قامت الصلاة زياتوي هٰكَذَا • فَعَلَ الْمَلَكُ النَّازِلُ مِنَ السَّمَاءِ همداشان له آسمانه را
ښکته سوي فرښتې کړي وه وَهُوَ الْمَشْهُورُ او همدا مشهوره ده ثُمَّ هُوَ حُجَّةٌ عَلَى الشَّافِعِيِّ رَحِمَهُ اللهُ فِي قَوْلِهِ إِنَّهَا فُرَادَى فُرَادَى
بيا دا د امام شافعي رَحِمَهُ الله په خلاف حجت دی په دې باره کې چې اقامت يو وار يو وار دی إِلَّا قَوْلَهُ قَدْ قَامَتِ الصَّلَاةُ
ماسوا له قد قامت الصلوٰة څخه.

**اللغات:** ﴿فُرَادَى﴾ يوازې يوازې، تنها تنها، يو يو وار.

**تشريح:** امام قدوري رَحِمَهُ الله فرمايي چې اقامت هم د اذان په شان دی لېکن فرق صرف دومره دی چې په اقامت کې به تر
حی علی الفلاح وروسته دوه واره قد قامت الصلوٰة زياتوي، امام شافعي رَحِمَهُ الله فرمايي چې له قد قامت الصلوٰة څخه به ماسوا
نوري ټولې کلمې يو يو وار وايي، او قد قامت الصلوٰة به دوه واره وايي.

**د امام شافعي دليل:** دا دی چې د حضرت انس ﷺ په حديث کې راغلي دي چې نبي ﷺ حضرت بلال ﷺ ته حکم
وکړی چې اذان جوت (جفت) کوه او اقامت طاق کوه ماسوا له قدقامت الصلوٰة څخه.

**زموږ دليل:** دا دی چې کومه فرښته له اسمان څخه را ښکته سوې وه، هغې د اذان په څېر اقامت هم دوه. دوه واره کړی وو،
له کرنگه چې ابن ابي شيبه له عثمان بن ابی ليلیٰ څخه روايت کړی دی چې ما ته د نبي ﷺ صحابه وُ وويل چې عثمان
بن زيد انصاري ﷺ راغلی او نبي ﷺ ته يې عرض وکړی چې ما ته (په خوب کې) يو سړی راغلی ګواکې پر هغه دوه
شنه کالي وه، اذان او اقامت يې دوه دوه واره وکړی، (يعني د اقامت کلمې يې هم د اذان په څېر دوه دوه واره وويلې) او د
حضرت انس ﷺ د حديث معنیٰ دا ده چې په اذان کې دې دوې کلمې په دوو جلا جلا آوازونو سره وويل سي او په
اقامت کې دوې کلمې په يوه آواز سره وويل سي.

• تخريج: أخرجه ابو داؤد في كتاب الصلوٰة، باب كيف الاذان، حديث رقم: ۴۹۹.

## په اذان کې د ترسيل او په اقامت کې د حدر حکم

وَيَتَرَسَّلُ فِي الْأَذَانِ او مؤذن به په اذان کې ترسّل کوي (يعني په وقفه وقفه به اذان کوي) وَيَحْدُرُ فِي الْإِقَامَةِ او په اقامت کې به حدر کوي (يعني په تېزۍ سره به اقامت کوي) لِقَوْلِهِ ● ځکه نبي ﷺ فرمايلي دي إِذَا أَذَّنْتَ فَتَرَسَّلْ کله چې ته اذان کوې نو ترسّل کوه وَإِذَا أَقَمْتَ فَاحْدُرْ او کله چې اقامت کوې نو حدر کوه وَهٰذَا بَيَانُ الْإِسْتِحْبَابِ او دا د استحباب بيان دی.

**اللغات:** ﴿يَتَرَسَّلُ﴾ د تفعّل د باب مضارع صيغه ده: په زيار او کوښښ سره په اوږده اواز الفاظ اداء کول، په دمه دمه (وقفه وقفه) ويل، ﴿يَحْدُرُ﴾ د نصر د باب مضارع صيغه ده: تېز تېز او ژر ژر ويل.

**تشريح:** ترسيل دا دی: چې اذان کونکی د دوو کلمو په مېنځ کې په سکته (وقفه) سره فصل وکړي، او حدر دا دی: چې فصل نه وکړي، فرمايي چې په اذان کې ترسيل مستحب دی او په اقامت کې حدر مستحب دی.

**دليل:** دا دی چې نبي ﷺ حضرت بلال رضي الله عنه ته د دې حکم کړی وو، لېکن صحيح خبره دا ده چې دا شيان سنت دي، ځکه چې په اذان کې ترسيل او په اقامت کې حدر په تواتر سره ثابت دی.

## په اذان او اقامت کې و قبلې ته د مخامخ والي حکم

وَيَسْتَقْبِلُ بِهِمَا الْقِبْلَةَ او په اذان او اقامت کې به قبلې ته مخ کوي لِأَنَّ الْمَلَكَ النَّازِلَ ● مِنَ السَّمَاءِ أَذَّنَ مُسْتَقْبِلَ الْقِبْلَةِ ځکه چې له آسمانه را شوه سوي فرښتې مخ پر قبله اذان کړی وو وَلَوْ تَرَكَ الْاِسْتِقْبَالَ او که يې استقبال پرېښوو (يعني قبلې ته يې مخ نه کړی) جَازَ لِحُصُولِ الْمَقْصُوْدِ نو (هم) جائز دی ځکه چې مقصود حاصل سو وَيُكْرَهُ لِمُخَالَفَتِهِ السُّنَّةَ لېکن د سنت د مخالفت په وجه مکروه دي وَيُحَوِّلُ وَجْهَهُ بِالصَّلَاةِ وَالْفَلَاحِ يَمْنَةً وَيُسْرَةً او د حی علی الصلاة او حی علی الفلاح په وخت کې به خپل مخ راسته او چپه طرف ته کرځوي لِأَنَّهُ خِطَابٌ لِلْقَوْمِ ځکه چې دا قوم ته خطاب دی فَيُوَاجِهُهُمْ به نو په دې سره به هغوی ته مخ کوي وَإِنِ اسْتَدَارَ فِي صَوْمَعَتِهِ فَحَسَنٌ او که مؤذن په خپله صومعه کې وګرځيږي نو ښه خبره ده مُرَادُهُ إِذَا لَمْ يَسْتَطِعْ تَحْوِيلَ الْوَجْهِ يَمِيْنًا وَشِمَالًا مَعَ ثَبَاتِ قَدَمَيْهِ مَكَانَهُمَا كَمَا هُوَ السُّنَّةُ د ګرځېدلو مطلب دا دی چې کله مؤذن د سنت مطابق پر خپل ځای د دواړو پښو د اېښوولو سره سره راسته او چپه طرف ته مخ نه سي ګرځولای (نو په صومعه کې دي وګرځيږي) [بعضو شارحينو د مراده ضمير د امام محمد رَحِمَهُ الله و طرف ته راجع کړی يعني: د امام محمد رَحِمَهُ الله مطلب دا دی] بِأَنْ كَانَتِ الصَّوْمَعَةُ مُتَّسِعَةً په دې توګه چې صومعه پراخه وي فَأَمَّا مِنْ غَيْرِ حَاجَةٍ فَلَا لېکن بغير له ضرورت ته داسې کول ښه نه دي.

**اللغات:** ﴿يَسْتَقْبِلُ﴾ د استفعال د باب مضارع صيغه ده: مخامخ کېدل، ﴿يُحَوِّلُ﴾ د تفعيل د باب مضارع صيغه ده: ګرځول، ﴿إِسْتَدَارَ﴾ د استفعال د باب ماضي صيغه ده: ګرځېدل، ﴿صَوْمَعَةٌ﴾ کوچنی حجره (خونه)، ﴿مِئْذَنَة﴾ د اذان کولو برج.

---

● أخرجه الترمذي في كتاب الصلاة، باب ما جاء في الترسل في الاذان، حديث رقم: ۱۹۵.

● تخريج: أخرجه ابو داود كتاب الصلوة، باب كيف الاذان، حديث رقم:۵۰۷.

**تشریح**: صاحب د عنایه فرمايي چې اذان کوونکی به په اذان او اقامت کې مخامخ پر قبله وي ماسوا له حی علی الصلوٰة او حی علی الفلاح څخه، دلیل یې دا دی چې کومه فرښته له اسمانه را ښوه سوې وه هغې مخامخ پر قبله اذان کړی وو، خو که په اذان کې مخامخ پر قبله نه ودریږي نو جائز دي، لیکن له سنت څخه د مخالفت په وجه مکروه تنزیهي دي، او د حی علی الصلوٰة او حی علی الفلاح په وخت کې به خپل مخ راسته او چپه طرف ته کرځوي، ځکه چې په دې دواړو کلیمو سره قوم ته خطاب سوی دی، نو ځکه به دا خطاب د دوی و طرف ته وي چې: اې خلکو! د لمانځه و طرف ته راسئ او د کامیابی و طرف ته راسئ، دلته یو اعتراض کیږي، هغه اعتراض:

**سوال**: دا چې څرنګه قوم راسته او چپه طرف ته سته، همداسې د شا طرف ته هم سته، نو څرنګه چې راسته او چپه طرف د مخ کرځولو حکم سوی دی نو د شا و طرف ته هم د مخ کرځولو حکم پکار دی.

**جواب**: په دې صورت کې استدبار قبله راځي یعنې په داسې کولو سره قبلې ته شا کیږي، حال دا چې مؤذن په خپله خلکو ته دعوت ورکوي چې قبلې ته متوجه سئ، نو په دې وجه صرف راسته او چپه طرف ته پر مخ کرځولو اکتفاء وسوه، ځکه چې په دې سره د آواز رسولو مقصود هم حاصلیږي.

**صومعه**: په بحرالرائق کې راغلي دي چې صومعه "منارې" ته ویل کیږي، او علامه بدر الدين عيني رَحِمَهُ الله په فتح القدير کې لیکلي دي چې صومعه هغه جګ (لوړ) ځای ته ویل کیږي چې مؤذن اذان پکښې کوي، حاصل دا دی: که مؤذن په صومعه کې وګرځیږي نو ښه دي، خو په دې شرط چې صومعه پراخه وي، او د ګرځېدلو په وخت کې دې اول له راسته دریڅې څخه سر را باسي دوه واره دې حی علی الصلوٰة وایي او دویم وار دې له چپه دریڅې څخه سر را باسي دوه واره دې حی علی الفلاح وایي. (دریڅه یعنې هغه کړکۍ چې په صومعه کې نصب وي)

ومراده الخ صاحب د هدايې رَحِمَهُ الله فرمايي چې د امام محمد رَحِمَهُ الله د کلام (کوم چې په متن کې ذکر سو) مطلب دا دی چې مؤذن دې په صومعه کې هغه وخت ګرځي چې د ده لپاره د دواړو پښو د اینښوولو سره سره مخ راسته او چپه طرف ته ګرځول کوم چې سنت طریقه ده ممکن نه وي (مطلب دا چې په سنت طريقه سره آواز تر خلکو پوري رسول ممکن نه وي، په دې توګه چې صومعه پراخه وي، ځکه چې کله صومعه پراخه وي نو معلومه خبره ده چې دریڅې او کړکیانې به یې لیرې وي، او پر خپل ځای د درېدلو سره سره به تر هغو سر ایستل ناممکنه وي، نو په دې صورت کې مؤذن لره پکار دي چې په صومعه کې وګرځیږي، او تر دریڅو دې سر وباسي، چې تر خلکو آذان ورسیږي)، لنډه دا چې که پر خپل ځای د درېدلو سره سره اذان په خلکو نه اوروال کېدی، نو د دې ضرورت پیدا سو چې په صومعه کې وګرځیږي، خو که ضرورت نه وو نو له خپل ځای څخه قدم لیرې کول ښه نه دي.

## په غوږ کې د ګوتو نیولو حکم

وَالْأَفْضَلُ لِلْمُؤَذِّنِ او د مؤذن لپاره غوره دا ده أَنْ يَجْعَلَ إِصْبَعَيْهِ فِي أُذُنَيْهِ چې خپلې ګوتې په غوږو کې ونیسي بِذَلِكَ أَمَرَ● النَّبِيُّ (ص) بِلَالًا رَضِيَ اللهُ عَنْهُ (ځکه) نبي ﷺ حضرت بلال رضي الله عنه ته د دې حکم کړی وو وَلِأَنَّهُ أَبْلَغُ فِي الْإِعْلَامِ او ځکه چې دا طريقه اعلان زیات رسوي (یعنې په دې سره اذان نور په زوره کیږي) وَإِنْ لَمْ يَفْعَلْ فَحَسَنٌ او که مؤذن داسې نه وکړه نو هم صحیح ده لِأَنَّهَا لَيْسَتْ بِسُنَّةٍ أَصْلِيَّةٍ ځکه چې دا اصلي سنت نه دی (یعنې په بعضې حدیثونو کې یې تذکره نسته).

● تخريج: أخرجه ابن ماجه، كتاب الاذان، باب السنة في الاذان، حديث رقم: ٧١٠.

**اللغات:** ﴿إعلام﴾ اطلاع ورکول، اعلان کول.
**تشريح: مسئله:** دا ده چې د مؤذن لپاره د اذان کولو په وخت کې خپل سبابې (يعني د شهادت) ګوتې په دواړو غوږونو کې نيول افضل او غوره دي.

**نقلي دليل:** دا دی چې نبي ﷺ حضرت بلال رضي الله عنه ته ددې حکم کړی وو لکه څرنګه چې روايت دی: أن النبي ﷺ أمر بلالا أن يدخل إصبعيه في أذنيه وقال إنه أرفع لصوتك. (يعني نبي ﷺ حضرت بلال رضي الله عنه ته په غوږ کې د ګوتو نيولو حکم وکړی او ويې فرمايل چې دا کار ستا اواز هم غټوي).
**عقلي دليل:** دا دی چې د اذان مقصد اعلام دی يعني خلکو ته د لمانځه اطلاع ورکول دي، او په غوږ کې په ګوتو نيولو سره په پوره توګه اعلام حاصليږي، نو ځکه به دا عمل ښه وي.

وإن لم يفعل الخ فرمايي چې که مؤذن دا عمل نه وکړی او په غوږو کې يې له ګوتو نيولو څخه بغير اذان وکړی نو فحسن، د فحسن ښکاره مفهوم دا دی چې دا عمل ښه دی، ځکه چې په غوږونو کې ګوتې نيول اصلي سنت نه دي، لېکن صاحب د عنايې او نورو ليکلي دي چې د فحسن فاعل ترك ادخال نه دی (يعني فاعل يې د ګوتو پرېښول نه دي) او نه يې فاعل تارک دی، بلکې د دې فاعل اذان دی، نو اوس يې مطلب دا سو چې په غوږ کې د ګوتو د نيولو سره سره اذان کول أحسن يعني ډېر ښه دي او بغير له ګوتو نيولو څخه اذان حسن يعني ښه دي.
او د دې فاعل ترک او نور ځکه نه سي کېدلای چې که څه هم د حضرت عبد الله بن زيد په حديث کې د ګوتو نيولو ذکر نسته، خو څرنګه چې نبي ﷺ حضرت بلال رضي الله عنه ته د دې حکم کړی وو، نو ځکه به دا عمل په سر او سترګو منل کيږي، او په هيڅ حال کې به نه پرېښوول کيږي. (عنايه ج:١، ص:٢٤٨)

## د تثويب تعريف او حکم

وَالتَّثْوِيبُ فِي الْفَجْرِ حَيَّ عَلَى الصَّلَاةِ حَيَّ عَلَى الْفَلَاحِ مَرَّتَيْنِ بَيْنَ الْأَذَانِ وَالْإِقَامَةِ حَسَنٌ او په سهار کې تثويب کول يعني د اذان او اقامت په مينځ کې دوه واره حی علی الصلاة او حی علی الفلاح ويل غوره دي لِأَنَّهُ وَقْتُ نَوْمٍ وَغَفْلَةٍ ځکه چې دا د خوب او غفلت وخت دی وَكُرِهَ فِي سَائِرِ الصَّلَوَاتِ او په نورو ټولو لمونځونو کې تثويب مکروه دی وَمَعْنَاهُ: الْعَوْدُ إِلَى الْإِعْلَامِ او د تثويب معنیٰ ده: دوباره اطلاع (خبر) ورکول وَهُوَ عَلَى حَسَبِ مَا تَعَارَفُوهُ او تثويب به د خلکو د عرف مطابق وي (يعني څرنګه چې د خلکو عرف وي د هغه مطابق به تثويب کوي) وَهَذَا التَّثْوِيبُ أَحْدَثَهُ عُلَمَاءُ الْكُوفَةِ بَعْدَ عَهْدِ الصَّحَابَةِ رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُمْ لِتَغَيُّرِ أَحْوَالِ النَّاسِ او دا تثويب د صحابه وو رضي الله عنهم تر زمانې وروسته د خلکو د حالاتو بدلېدلو په وجه د کوفې عالمانو ايجاد کړی وَخَصُّوا الْفَجْرَ بِهِ لِمَا ذَكَرْنَاهُ او د کوفې علماؤ دا تثويب د سهار د لمانځه سره په دې وجه خاص کړی کوم چې موږ بيان کړه وَالْمُتَأَخِّرُونَ اسْتَحْسَنُوهُ فِي الصَّلَوَاتِ كُلِّهَا او متأخرينو علماؤ رحمهم الله په ټولو لمونځونو کې تثويب ښه ګڼلی دی لِظُهُورِ التَّوَانِي فِي الْأُمُورِ الدِّينِيَّةِ په ديني امورو کې د سستی (ناراستی) ښکاره کېدلو په وجه وَقَالَ أَبُو يُوسُفَ رَحِمَهُ اللَّهُ لَا أَرَى بَأْسًا أَنْ يَقُولَ الْمُؤَذِّنُ لِلْأَمِيرِ فِي الصَّلَوَاتِ كُلِّهَا او امام ابو يوسف رحمه الله

فرمايي: چي زه په دې خبره کي څه حرج نه وينم چي اذان کونکی په ټولو لمونځونو کي امير(واکمن) ته داسي ووايي السَّلَامُ عَلَيْكَ أَيُّهَا الْأَمِيرُ وَرَحْمَةُ اللهِ وَبَرَكَاتُهُ السلام عليك أيها الأمير ورحمة الله وبركاته (يعني اې واکمنه پر تا دې د خدای له طرفه سلامتيا وي) حَيَّ عَلَى الصَّلَاةِ حَيَّ عَلَى الْفَلَاحِ حي على الصلاة حي على الفلاح (راسه! د لمانځه و طرف ته (او) راسه! د کاميابۍ و طرف ته) الصَّلَاةَ يَرْحَمُكَ اللهُ الصلاة يرحمک الله (لمونځ درېږي الله دې پر تا رحم وکړي) وَاسْتَبْعَدَ مُحَمَّدٌ رَحِمَهُ اللهُ لېکن امام محمد رَحِمَهُ الله دا خبره (د شريعت له اصولو څخه) لېري ګڼلې ده لِأَنَّ النَّاسَ سَوَاسِيَةٌ فِي أَمْرِ الْجَمَاعَةِ● ځکه چي د جماعت په سلسله کي ټوله خلک برابر دي وَأَبُو يُوسُفَ رَحِمَهُ اللهُ خَصَّهُمْ بِذَلِكَ لِزِيَادَةِ إِشْتِغَالِهِمْ بِأُمُورِ الْمُسْلِمِينَ او امام ابو يوسف رَحِمَهُ الله واکمنان په تثويب سره ځکه خاص کړي دي چي د مسلمانانو په کارونو کي د هغوی مشغوليت زيات وي(نو ځکه به د هغوی په حق کي تثويب غوره وي) كَيْ لَا تَفُوتَهُمُ الْجَمَاعَةُ چي له هغوی څخه جماعت پاته نه سي وَعَلَى هَذَا الْقَاضِيُ وَالْمُفْتِيُ او دا حکم د قاضي او مفتي (هم) دی.

**اللغات**: ﴿تَثْوِيب﴾ د تفعيل د باب مصدر دی: راګرځول، دويم ځل کول. ﴿أَحْدَثَ﴾ د افعال د باب ماضي صيغه ده: له ځانه جوړول، پيدا کول. ﴿إِسْتَحْسَنُوا﴾ د استفعال د باب ماضي صيغه ده: ښه ګڼل. ﴿إِسْتَبْعَدَهُ﴾ دا هم د استفعال د باب ماضي صيغه ده: لېري ګڼل. ﴿سَوَاسِيَةٌ﴾ جمع ده، واحد يې سَوَاءٌ دی: برابر. ﴿تَوَانِي﴾ د تفاعل د باب مصدر دی: سستي کول، ناراسته کېدل، لږ کوښښ کول.

**تشريح**: صاحب د عنايه رَحِمَهُ الله ليکلي دي چي د تثويب لغوي معنیٰ ده: رجوع کول، واپس کېدل، يو کار دوه واره کول. او د تثويب: اصطلاحي معنیٰ ده: العود الى الاعلام بعد الاعلام (تر يو ځل اطلاع ورکولو وروسته دويم ځل اطلاع ورکول). بيا دا خبره هم په ذهن کي ساتل پکار دي، چي تثويب هغه دی کوم چي د سهار په اذان کي تر حيّ على الفلاح وروسته د الصلاة خير من النوم په الفاظو سره اداء کيږي، او دکوم تثويب په باره کي چي نبي ﷺ حضرت بلال ﷺ ته فرمايلي وو چي: اجعله فى أذانك. هغه تثويب د نبي ﷺ له زمانې څخه د صحابه وو د زمانې تر آخره پوري جاري وو، او صرف به د سهار په لمانځه کي د دې خيال ساتل کېدی، ځکه چي هغه د خير القرون زمانه وه، خلک به د لمونځونو حريص او شوقيان وه. او د وينبوالي په حالت کي به په لمانځه کي د بې پروايي تصور هم له هغه څخه ممکن نه وو.
لېکن څرنګه چي له خير القرون څخه وخت لېري کېدی، نو په خلکو کي ديني رغبت کمېدی، او د دې کمښت احساس له ټولو څخه مخکي د کوفې عالمانو ته وسو، نو هغوی د خلکو د متوجه کولو لپاره د اذان او اقامت په دوران کي دوه دوه واره د حى على الصلاة او حيّ على الفلاح په کلمو سره د اعلام بعد الاعلام يوه نوې طريقه ايجاد کړه او دا تثويب مينځ ته راغلی، نو همدارنګه د نورو هيوادونو عالمانو هم د کوفې د فقهاوو د دې بدعتِ حسنه تعريف وکړی، او د ما رآه المسلمون حسنا فهو عند الله حسن په رڼا کي دې تثويب ته هر ډول تائيد او توثيق حاصل سو.

---

● القول الراجح: القول الراجح قول محمد رَحِمَهُ الله، كذا فى رد المحتار ج:١، ص:٢٨۶. [القول الراجح ج:١، ص:۶٣]

بیا د کوفې عالمانو دا تثویب صرف د سهار په لمانځه کې د غفلت او خوب په وجه د سهار د لمانځه سره خاص کړی، لو تر ډېره وخته صرف په سهار کې تثویب کېدی، لېکن تر دې وروسته بیا نور په حالاتو کې تغیر پیدا سو، او معاشره(ټولنه) په دومره اندازه خرابه سوه چې خلګو د وینبوالي په حالت کې هم په لمونځونو کې سستي او ناراستي شروع کړه، چې د هغه په وجه وروستني(متأخرینو) عالمانو په ټولو لمونځونو کې تثویب ښه وګڼئ، او د خلګو د اسانتیا لپاره یې دا حکم جاري کړی چې د تثویب لپاره څه خاص الفاظ نسته بلکې د هرې سیمې والا دې پر خپل عرف عمل کوي، او له کوم لفظ څخه چې د تثویب معنیٰ حاصلیږي هغه لفظ دې اختیاروي، او له هغه څخه دې د تثویب کار اخلي.

کله چې متأخرینو تثویب په دومره اندازه عام کړی نو له دې متأخرینو څخه د دویمې هجري پیړۍ نامتو فقیه، د امام اعظم رَحِمَهُ الله ځانګړی شاګرد قاضي حضرت امام ابو یوسف رَحِمَهُ الله د واکمنانو، قاضیانو او مفتیانو لپاره هم د تثویب درواه خلاصه کړه، او دا حکم یې جاري کړی چې که مؤذن په هر لمانځه کې د دې حضراتو و مخ ته ورسي او د السلام علیك ورحمة الله وبركاته...الخ کلمې ووایي نو زما په نېز په دې کې هیڅ حرج نسته، ځکه چې دا حضرات د مسلمانانو په کارو او مسئلو کې په دومره اندازه بوخت وي چې کېدای سي د ډېرې بوختیا په وجه له دوی څخه جماعت فوت سي، نو په دې وجه د دوی په حق کې هم تثویب ضروري دی، نو ځکه زما په نېز د دوی لپاره په تثویب کې هیڅ خبره نسته.

**د امام محمد مسلک:** لېکن امام محمد رَحِمَهُ الله دا کار د شریعت له اصولو څخه لیرې ګڼلی دی، فرمایي چې جماعت او لمونځ د دین کار دی، او په دې کار کې ټوله خلک برابر دي، نو ځکه د واکمنانو او قاضیانو لپاره جلا او ځانګړي تثویب ضروري نه دی.

**فایده:** صاحب د فتح القدیر علامه ابن الهمام رَحِمَهُ الله لیکلي دي چې مؤذن دې تر اذان وروسته د شلو آیتونو په اندازه وقفه کوي او وروسته دې تثویب کوي، او تر هغه وروسته دې بیا د شلو آیتونو په اندازه وقفه کوي او بیا دې اقامت کوي. (فتح القدير ج:۱، ص:۲۵۰)

**راجح قول:** په پورتنۍ مسئله راجح قول د امام محمد رَحِمَهُ الله دی چې هغه فرمایي: هیڅ واکمن او قاضي به په اذان کې په یوه ځانګړې کلمه سره نه ستایل کیږي. (الكفاية ج:۱، ص:۲۱۱۵)[القول الراجح ج:۱، ص:۶۳]

## د اذان او اقامت په مینځ کې د کښېنستلو حکم (او په دې باره کې د فقهاؤ قولونه)

وَيَجْلِسُ بَيْنَ الْأَذَانِ وَالْإِقَامَةِ او د اذان او اقامت په مینځ کې به ناسته کوي إِلَّا فِي الْمَغْرِبِ ما سوا د ماښام له لمانځه څخه وَهٰذَا عِنْدَ أَبِي حَنِيْفَةَ رَحِمَهُ اللهُ او دا (حکم) د امام ابو حنیفه رَحِمَهُ الله په نېز دی وَقَالَا: ●يَجْلِسُ فِي الْمَغْرِبِ أَيْضًا جَلْسَةً خَفِيْفَةً او صاحبین فرمایي: چې په ماښام کې به هم لږ غوندي ناسته کوي لِأَنَّهُ لَا بُدَّ مِنَ الْفَصْلِ په دې وجه چې فصل ضروري دی إِذِ الْوَصْلُ مَكْرُوْهٌ ځکه چې وصل مکروه دی وَلَا يَقَعُ الْفَصْلُ بِالسَّكْتَةِ او په سکته (وقفه) کولو سره فصل نه راځي لِوُجُوْدِهَا بَيْنَ كَلِمَاتِ الْأَذَانِ ځکه چې سکته خو د اذان د کلمو په مینځ کې هم سته فَيَفْصِلُ بِالْجَلْسَةِ

---

● القول الراجح: الاختلاف في الافضلية قول ابى حنيفة رَحِمَهُ الله كذا في الدر المختار ج:۱، ص:۲۸۷. [القول الراجح ج:۱، ص:۲۸۷]

نو په ناستې سره به فصل کوي كَمَا بَيْنَ الْخُطْبَتَيْنِ لکه څرنګه چې د دوو خطبو په مينځ کې (په ناستې سره فصل کیږي) وَلِأَنَّ حَنِيفَةَ رَحِمَهُ اللهُ: أَنَّ التَّأْخِيرَ مَكْرُوهٌ او د امام ابو حنيفه رَحِمَهُ الله دليل دا دی: چې (د ماښام په لمانځه کې) تأخير مکروه دی فَيَكْتَفِي بِأَدْنَى الْفَصْلِ اِحْتِرَازًا عَنْهُ نو له تأخير څخه د ځان ساتلو لپاره به په معمولي غونډي فصل اکتفاء کوي وَالْمَكَانُ فِي مَسْأَلَتِنَا مُخْتَلِفٌ او زموږ په مسئله کې مکان مختلف دی وَكَذَا النَّغْمَةُ همدارنګه آواز (هم) مختلف دی فَيَقَعُ الْفَصْلُ بِالسَّكْتَةِ نو په سکته سره به فصل واقع کیږي وَلَا كَذٰلِكَ الْخُطْبَةُ او خطبه داسې نه ده وَقَالَ الشَّافِعِيُّ رَحِمَهُ اللهُ: يَفْصِلُ بِرَكْعَتَيْنِ او امام شافعي فرمايلي دي: چې په دوو رکعتو به فصل کوي اِعْتِبَارًا بِسَائِرِ الصَّلَوَاتِ په نورو لمونځونو باندې په قياسولو سره وَالْفَرْقُ قَدْ ذَكَرْنَاهُ او فرق موږ ذکر کړی دی قَالَ يَعْقُوبُ رَحِمَهُ اللهُ: رَأَيْتُ أَبَا حَنِيفَةَ يُؤَذِّنُ وَيُقِيمُ فِي الْمَغْرِبِ يعقوب (يعني امام ابو يوسف) رَحِمَهُ الله فرمايي: چې ما به ابو حنيفه رَحِمَهُ الله ليدی چې د ماښام اذان او اقامت به يې کوی وَلَا يَجْلِسُ بَيْنَ الْأَذَانِ وَالْإِقَامَةِ او د اذان او اقامت په مينځ کې به نه کښېنستی وَهٰذَا يُفِيدُ مَا قُلْنَا او دا خبره زموږ قول فايده کوي (يعني تائيديې کوي) وَأَنَّ الْمُسْتَحَبَّ كَوْنُ الْمُؤَذِّنِ عَالِمًا بِالسُّنَّةِ او (دا خبره هم فايده کوي) چې مستحب دا ده چې مؤذن به په سنتو عالم (او خبر) وي لِقَوْلِهِ عَلَيْهِ السَّلَامُ:● وَيُؤَذِّنُ لَكُمْ خِيَارُكُمْ ځکه نبي ﷺ فرمايلي دي: په تاسو کې دې ستاسو غوره (او په علم پوه) سړی اذان کوي.

**اللغات:** ﴿خفيفة﴾ سپک، لږ. ﴿لابد﴾ ضروري دي، چاره نشته. ﴿وصل﴾ جوختول. ﴿نغمة﴾ آواز. ﴿خيار﴾ د خير جمع ده: غوره، نېک.

**تشريح:** **صورت د مسئلې:** دا دی چې د امام صاحب رَحِمَهُ الله په نيز د ماښام له لمانځه څخه ماسوا نور په ټولو لمونځونو کې د اذان او قامت په مينځ کې وقفه (دمه) او فصل کول سنت دي، او دا فصل به د لمونځونو په ذريعه غور وي، ځکه د نبي ﷺ فرمان دی چې: بين كل أذانين صلاة. (يعني د هر اذان او اقامت په مينځ کې لمونځ سته)، او له دې لمانځه څخه سنت او نفلي لمونځ مراد دي، نو اوس که تر فرضو مخکې سنت لمونځ وو، نو په هغه سنتو سره فصل کول غوره دي، لکه په سهار، ماپښين، مازيګر او ماخوستن کې، او څرنګه چې د ماښام تر لمانځه مخکې سنت نه کیږي، او د ماښام په لمانځه کې تأخير کول هم مکروه دي، نو ځکه د امام صاحب رَحِمَهُ الله په نيز به په دې کې ډېر لږ فصل کیږي، لېکن د صاحبينو رَحِمَهُمَا الله مسلک دا دی چې د نورو لمونځونو په ډول به د ماښام په لمانځه کې هم فصل کیږي، خو دا فصل به د نورو لمونځونو په نسبت معمولي وي او فصل بالجلسة به وي (يعني دا وقفه به هم په ناستې سره وي)، لکه څرنګه چې د دوو خطبو په مينځ کې فصل بالجلسة کیږي، ځکه چې د اذان او قامت په مينځ کې وصل کول مکروه دي، او په سکوت (چوپتيا) سره به فصل نه کوي ځکه چې سکوت د اذان د کلمو په مينځ کې هم سته، نو ځکه به په ناستې سره فصل کوي.

● تخريج: أخرجه أبو داؤد في كتاب الصلوٰة، باب من أحق بالامامة، حديث رقم: ۵۹.

**د امام صاحب دليل:** دا دی چې د ماښام په لمانځه کې تأخير کول مکروه دي، او دا خبره تسليم سوې ده چې په جلسه کولو سره تأخير راځي، نو ځکه له تأخير څخه به د ځان ساتلو لپاره معمولي غونډي فصل کوي، او دا معمولي غونډي فصل په سکتې (سکوت) سره هم حاصليږي، نو ځکه پر همدغه سکتې به اکتفا کيږي.

**جواب:** صاحبينو دلته د فصل مسئله د خطبې پر فصل قياس کړې ده، نو جواب يې دا دی چې د اذان او اقامت والا فصل د خطبې پر فصل قياسول صحيح نه دي، ځکه چې په اذان او اقامت کې د مؤذن ځای هم جلا وي، آواز يې هم جلا وي، او د اذان کولو طريقه يې هم جلا وي، د دې په خلاف په خطبه کې د دواړو خطبو ځای هم يو وي، د خطيب طريقه هم يوه وي، او تقريباً د خطيب آواز هم يو ډول وي، نو کله چې د دوی په مينځ کې دومره ښکاره فرق سته نو يو پر بل به قياسول څرنګه صحيح وي؟ آيا تاسو ته معلومه نه ده چې د قياس د صحت لپاره د مقيس او مقيس عليه په مينځ کې مطابقت ضروري دی.

وقال الشافعي رَحِمَهُ اللهُ الخ امام شافعي فرمايي: څرنګه چې په نورو لمونځونو کې د اذان او اقامت په مينځ کې په لمانځه سره فصل کيږي، همدارنګه به د ماښام په لمانځه کې هم په دوو رکعتونو سره فصل کيږي، ليکن زموږ له طرفه جواب دا دی چې د ماښام لمونځ پر نورو لمونځونو قياسول صحيح نه دي، ځکه چې د نورو لمونځونو په ځنډولو سره هيڅ فرق نه راځي او د ماښام د لمانځه په ځنډولو سره کراهت پيدا کيږي، چې هغه صحيح نه دی، صاحب د هدايې په والفرق ما ذکرناه سره هم د دغه خبرې وطرف ته اشاره کړې ده.

قال يعقوب الخ يعقوب د امام ابو يوسف رَحِمَهُ الله نوم دی، امام ابو يوسف فرمايي چې: ما امام صاحب رَحِمَهُ الله د ماښام پر اذان کولو ليدلی دی، او دا مي هم ليدلي دي چې امام صاحب رَحِمَهُ الله به تر اذان وروسته سمدلاسه (فوراً) په اقامت مصروفه کېدی، او فصل بالجلسة به يې نه کوی، د امام ابو يوسف رَحِمَهُ الله په دې بيان سره يو طرف ته د امام صاحب رَحِمَهُ الله د مسلک تائيد کيږي، بل طرف ته له دې څخه دا خبره هم فهمول کيږي چې اذان کونکی به د شريعت پابنده وي او د قرآن او حديثو په مسئلو به په ښه توګه خبر وي؛ لکه څرنګه چې د دې خبري تائيد د نبي ﷺ له دې فرمان څخه هم کيږي: ويؤذن لكم خياركم.

**راجح قول:** په پورتنی مسئله کې راجح قول د امام صاحب دی، وقال العلامة الحصكفي رَحِمَهُ الله الا في المغرب فيسكت قائما قدر ثلاث آيات قصار ويكره الوصل اجماعا. (الدر المختار ج:۱، ص:۲۸۷)، [القول الراجح ج:۱، ص:۶۵]

## د قضا سوو لمونځونو لپاره د اذان او اقامت حکم

وَيُؤَذِّنُ لِلْفَائِتَةِ وَيُقِيمُ او د قضاء سوو لمونځونو لپاره دي اذان (هم) کوي او اقامت دي (هم) کوي لِأَنَّهُ الطَّيْلا ● قَضَى الْفَجْرَ غَدَاةَ لَيْلَةِ التَّعْرِيسِ بِأَذَانٍ وَإِقَامَةٍ ځکه چې نبي ﷺ د تعريس په شپه تر لمر راختلو وروسته د سهار لمونځ په اذان او اقامت سره را وګرځوی وَهُوَ حُجَّةٌ عَلَى الشَّافِعِيِّ رَحِمَهُ اللهُ او دا حديث پر امام شافعي رَحِمَهُ الله حجت دی فِي اِكْتِفَائِهِ بِالْإِقَامَةِ (په دې باره کې) چې هغه صرف په اقامت اکتفا کوي.

● تخريج: أخرجه ابو داؤد في كتاب الصلوٰة، باب من نام عن صلوٰة، حديث رقم: ۴۳۶.

**اللغات:** ﴿تعریس﴾ د تفعیل د باب مصدر دی: د شپې په آخره حصه کي پړاو کول(یعني یوځای ایسارېدل)، ډېره اچول.

**تشریح: مسئله:** دا ده چي که یو څوک دیو لمانځه قضاء راوړي نو د هغه لپاره به اذان او اقامت دواړه کوي، بیا برابره خبره ده که یوازي یې قضاء راوړي، که په جماعت سره.

**زموږ دلیل:** د لیلة التعریس واقعه ده، د تعریس معنیٰ ده: د شپې په آخر کي په یو ځای کي د آرام کولو لپاره ډېره اچول، دا واقعه د حدیثو په کتابونو کي په مختلفه الفاظو سره را نقل سوې ده، علامه ابن همام رَحِمَهُ الله د ابو داود په حواله سره داسي رانقل کړې ده: أنه أمر بلالا! بالأذان والإقامة حين ناموا عن الصبح و صلوها بعد إرتفاع الشمس. (یعني نبي ﷺ حضرت بلال ﷺ ته د اذان او اقامت کولو حکم وکړی، څه وخت چي صحابه د سهاره له لمانځه څخه بیده(ویده) پاته سي وه، او تر لمر راختلو وروسته یې لمونځ کوی).

شیخینو دا واقعه داسي را نقل کړې ده: عَبْدِ اللهِ بْنِ أَبِي قَتَادَةَ عَنْ أَبِيهِ قَالَ سِرْنَا مَعَ رَسُولِ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ لَيْلَةً فَقَالَ بَعْضُ الْقَوْمِ: لَوْ عَرَّسْتَ بِنَا يَا رَسُولَ اللهِ، قَالَ: أَخَافُ أَنْ تَنَامُوا عَنِ الصَّلَاةِ. قَالَ بِلَالٌ: أَنَا أُوقِظُكُمْ. فَاضْطَجَعُوا وَأَسْنَدَ بِلَالٌ ظَهْرَهُ إِلَى رَاحِلَتِهِ فَغَلَبَتْهُ عَيْنَاهُ فَنَامَ. فَاسْتَيْقَظَ النَّبِيُّ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ وَقَدْ طَلَعَ حَاجِبُ الشَّمْسِ فَقَالَ: يَا بِلَالُ أَيْنَ مَا قُلْتَ؟ قَالَ: مَا أُلْقِيَتْ عَلَيَّ نَوْمَةٌ مِثْلُهَا قَطُّ. قَالَ عَلَيْهِ الصَّلَاةُ وَالسَّلَامُ: إِنَّ اللهَ تَعَالَى قَبَضَ أَرْوَاحَكُمْ حِينَ شَاءَ وَرَدَّهَا عَلَيْكُمْ حِينَ شَاءَ. يَا بِلَالُ قُمْ فَأَذِّنْ النَّاسَ بِالصَّلَاةِ فَتَوَضَّأَ. فَلَمَّا ارْتَفَعَتِ الشَّمْسُ وَابْيَضَّتْ قَامَ فَصَلَّى بِالنَّاسِ جَمَاعَةً.

له دواړو روایتونو څخه معلومېږي چي نبي ﷺ په لیلة التعریس کي تر لمر راختلو وروسته د اذان او اقامت سره د سهار لمونځ وکړی.

وهوحجة على الشافعي... علامه مرغیناني رَحِمَهُ الله فرمایي چي زموږ دلیل د امام شافعي رَحِمَهُ الله په خلاف حجت دی ځکه چي هغه فرمایي: صرف په اقامت کول کافي دي، د اذان ضرورت نسته.

**د امام شافعي دلیل:** امام شافعي رَحِمَهُ الله د مسلم شریف په هغه روایت دلیل نیسي کوم چي له حضرت ابو هریره ﷺ څخه روایت سوی دی، یعني: أمر بلالا فأقام الصلاة فصلى بهم الصبح. (یعني نبي ﷺ بلال ﷺ ته حکم وکړی، نو نبي ﷺ د اقامت سره صحابه وو ته لمونځ ورکړی)، په دې حدیث کي د اذان ذکر نسته، نو معلومه سوه چي په قضائي لمونځ کي صرف پر اقامت اکتفا کول کافي دي.

**جواب:** دا دی چي په نورو صحیحو روایتونو کي د اذان ذکر سته، نو پر زیاتوب عمل کول غوره دي. زموږ د مسلک تائید له هغه روایت څخه هم کېږي چي کله د غزوه خندق پر موقع له نبي ﷺ څخه څلور لمونځونو قضاء سوه، نو نبي ﷺ د اذان او اقامت سره د هغو قضاء راوړه، نو د دومره صحیحو حدیثونو سره سره د امام شافعي رَحِمَهُ الله اختلاف مناسب نه معلومېږي.

## د زیاتو قضاء سوو لمونځونو لپاره د اذان او اقامت حکم او طریقه

فَإِنْ فَاتَتْهُ صَلَوَاتٌ أَذَّنَ لِلْأُولَى وَأَقَامَ بیا که له هغه څخه ډېر لمونځونه قضاسوي وه نو د اولني لمونځ لپاره دي اذان او اقامت دواړه وکړي لِمَا رَوَيْنَا د هغه حدیث په وجه کوم چي موږ روایت کړی وَكَانَ مُخَيَّرًا فِي الْبَاقِي إِنْ شَاءَ أَذَّنَ وَأَقَامَ او د نورو لمونځونو په حق کي ورته اختیار دی که غواړي نو اذان او اقامت دي (دواړه) وکړي لِيَكُونَ الْقَضَاءُ عَلَى حَسَبِ

الْأَدَاءِ د دې لپاره چې قضاء د اداء موافق سي وَإِنْ شَاءَ اقْتَصَرَ عَلَى الْإِقَامَةِ اوكه غواړي نو صرف پر اقامت دې اكتفا وكړي لِأَنَّ الْأَذَانَ لِلِاسْتِحْضَارِ وَهُمْ حُضُورٌ ځكه چې اذان خو د (خلكو د) حاضرولو لپاره كيږي او دوی (ټوله) حاضر دي قَالَ رَضِيَ اللهُ عَنْهُ : وَعَنْ مُحَمَّدٍ رَحِمَهُ اللهُ أَنَّهُ يُقَامُ لِمَا بَعْدَهَا صاحب د هدايې رَحِمَهُ الله فرمايي: له امام محمد رَحِمَهُ الله څخه روايت دی چې تر اول لمانځه وروسته دې د نورو لمونځونو لپاره (صرف) اقامت كيږي قَالُوا: يَجُوزُ أَنْ يَكُونَ هَذَا قَوْلُهُمْ جَمِيعًا مشائخ فرمايي: كېدای سي چې دا د ټولو قول وي.

**اللغات:** ﴿مُخَيَّرٌ﴾ د تفعيل د باب اسم مفعول دی: اختيار وركړل سوی، مختار. ﴿اِسْتِحْضَار﴾ د استفعال د باب مصدر دی: مخ ته راوړل، جمع كول، حاضرول.

**تشريح:** مسئله: دا ده كه له يو سړي څخه ډېر لمونځونه قضاء سي نو د اول لمانځه لپاره دې اذان هم وكړي او اقامت دې هم وكړي، دليل د ليلة التعريس حديث دی كوم چې مخكي ذكر سو. او د پاته لمونځونو په حق كي اختيارمن دی كه غواړي نو د هر لمانځه لپاره دې اذان هم كوي او اقامت هم چې قضاء د اداء په ډول سي. خو كه غواړي چې صرف اقامت وكړي، نو پر اقامت دې اكتفاء وكړي، ځكه چې اذان د خلكو د حاضرولو لپاره كيږي او دلته ټوله خلګ حاضر دي، نو د اذان هيڅ ضرورت نسته.

**دليل:** د اقامت او اذان دواړو كولو تائيد له هغه روايت څخه هم كيږي كوم چې علامه ابن الهمام رَحِمَهُ الله د امام ابو يوسف رَحِمَهُ الله په واسطه بيان كړی دی: أنه حين شغلهم الكفار يوم الأحزاب عن أربع صلوات عن الظهر والعصر والمغرب والعشاء قضاهن على الولاء و أمر بلالا أن يؤذن ويقيم لكل واحدة منهن. (د غزوه احزاب په وخت كي چې كله كافرانو نبي ﷺ له څلورو لمونځونو څخه مشغوله كړی، يعني له ماپښين، مازيګر، ماښام او ماخوستن څخه، نو نبي ﷺ په ترتيب سره د هغو قضاء راوړه، او بلال ﷺ ته يې حكم وكړی چې دهر لمانځه لپاره دې اذان او اقامت (دواړه) وكړي.

او د غير اصولو په روايت كي له امام محمد رَحِمَهُ الله څخه را نقل سوي دي چې كه څو لمونځونه قضاء سي نو د اولني لمونځ قضاء دې په اذان او اقامت دواړو سره راوړي، او د پاته لمونځونو قضاء دې صرف په اقامت سره راوړي، مشائخو فرمايلي دي: كېدای سي چې دا قول د امام محمد، امام ابو يوسف او امام ابو حنيفه رَحِمَهُمُ الله ټولو وي.

## د اذان او اقامت لپاره د اودس حكم

وَيَنْبَغِي أَنْ يُؤَذِّنَ وَيُقِيمَ عَلَى طُهْرٍ او پكار ده چې اذان او اقامت په اوداسه وكړي فَإِنْ أَذَّنَ عَلَى غَيْرِ وُضُوءٍ خو كه بې اودسه اذان وكړي جَازَ نو جائز دي لِأَنَّهُ ذِكْرٌ وَلَيْسَ بِصَلَاةٍ ځكه چې اذان ذكر دی لمونځ نه دی فَكَانَ الْوُضُوءُ فِيهِ اِسْتِحْبَابًا كَمَا فِي الْقِرَاءَةِ نو د قرآن لوستلو په ډول په دې كي هم اودس مستحب دی.

**اللغات:** ﴿يَنْبَغِي﴾ پكار ده، مناسب ده.

**تشريح:** صورت د مسئلې خو ښكاره دی چې اذان او اقامت دواړه په اوداسه كول مستحب او غوره دي، لېكن كه يو سړی بې له اودسه اذان وكړي نو جائز دي، ځكه چې اذان ذكر دی او د ذكر لپاره اودس ضروري نه دی، اودس خو د لمانځه لپاره

ضروري دي، نو ځکه به په اذان کي اودس ضروري نه وي، لېکن څرنګه چي د قرآن لپاره اودس مستحب دی، همدارنګه د اذان کولو لپاره هم اودس مستحب دی.

## بغير له اوداسه اقامت مکروه دی

وَيُكْرَهُ أَنْ يُقِيمَ عَلَى غَيْرِ وُضُوءٍ او بې له اوداسه اقامت کول مکروه دي لِمَا فِيهِ مِنَ الْفَصْلِ بَيْنَ الْإِقَامَةِ وَالصَّلَاةِ ځکه چي په دې سره د لمانځه او اقامت په مینځ کي فصل راځي وَيُرْوَى: أَنَّهُ لَا تُكْرَهُ الْإِقَامَةُ أَيْضًا او یو روایت دا دی: چي اقامت هم (بې له اودسه) مکروه نه دی لِأَنَّهَا أَحَدُ الْأَذَانَيْنِ ځکه چي دا هم له دوو اذانو څخه یو اذان دی وَيُرْوَى: أَنَّهُ يُكْرَهُ الْأَذَانُ أَيْضًا او یو روایت دا دی چي: اذان هم (بې له اودسه) مکروه دی لِأَنَّهُ يَصِيرُ دَاعِيًا إِلَى مَا لَا يُجِيبُ بِنَفْسِهِ ځکه چي اذان کونکي به د داسي شي وطرف دعوت ورکونکی سي چي په خپله هغه نه عملي کوي (یعني یو طرف ته خو د اذان په ذريعه خلکو ته د لمانځه دعوت ورکوي، او بل طرف ته خپله ور ته چمتو نه دی).

**اللغات:** ﴿يُجِيبُ بِنَفْسِهِ﴾ په خپله قبلول، په خپله کول.

**تشريح:** مسئله: ذا ده چي بغير له اودسه اقامت کول مکروه دي، ځکه چي په دې صورت کي د اقامت او لمانځه په مینځ کي فصل راځي، حال دا چي اقامت د لمانځه سره متصل مشروع سوی دی.

ويروی...الخ د امام کرخي رَحِمَهُ الله روایت دی چي اقامت هم بې اودسه مکروه نه دی، ځکه چي اقامت له دوو اذانونو څخه یو اذان دی، او اذان بې اودسه مکروه نه دی، نو اقامت به هم بې اودسه مکروه نه وي.

ويروی...الخ د امام کرخي رَحِمَهُ الله دویم روایت دا هم دی چي بې اودسه اقامت له څه کوې بې اودسه اذان هم مکروه دی، ځکه چي مؤذن د اذان په ذريعه خلکو ته د لمانځه لپاره د ځان تیارولو حکم کوي، او په خپله ورته تیار نه دی، نو دی به د الله تعالیٰ تر دې قول لاندي راسي: أَتَأْمُرُونَ النَّاسَ بِالْبِرِّ وَتَنْسَوْنَ أَنْفُسَكُمْ (سورة البقرة:۴۴)، نو ځکه بې اودسه اذان هم مکروه دی.

## د جنابت په حالت کي د اذان او اقامت حکم

وَيُكْرَهُ أَنْ يُؤَذِّنَ وَهُوَ جُنُبٌ اومکروه دي چي یو سړی د جنابت په حالت کي اذان وکړي رِوَايَةً وَاحِدَةً په یوه روایت کي وَوَجْهُ الْفَرْقِ عَلَى إِحْدَى الرِّوَايَتَيْنِ أَنَّ لِلْأَذَانِ شَبَهًا بِالصَّلَاةِ په دواړو روایتونو کي د یوه روایت مطابق د فرق وجه دا ده چي اذان د لمانځه سره مشابهت لري فَيُشْتَرَطُ الطَّهَارَةُ عَنْ أَغْلَظِ الْحَدَثَيْنِ دُونَ أَخَفِّهِمَا نو په دواړو حدثونو کي به له سخت حدث څخه د ځان پاکول شرط کیږي نه له سپک څخه عَمَلًا بِالشَّبَهَيْنِ پر دواړو مشابهتونو باندي په عمل کولو سره وَفِي الْجَامِعِ الصَّغِيرِ: إِذَا أَذَّنَ وَأَقَامَ عَلَى غَيْرِ وُضُوءٍ لَا يُعِيدُ او په جامع صغير کي دي چي که یو سړي بې لودسه اذان او اقامت وکړي نو نه به یې راګرځوي وَالْجُنُبُ أَحَبُّ إِلَيَّ أَنْ يُعِيدَ خو که اذان کونکی جنب وو نو زما خوښه دا ده چي راویې ګرځوي وَلَوْ لَمْ يُعِدْ أَجْزَأَهُ او که نه یې را وګرځوي نو هم لمونځ جائز دی أَمَّا الْأَوَّلُ فَلِخِفَّةِ الْحَدَثِ هر چي اول دی نو هغه د حدث د خفت (سپکوالي) په وجه دی وَأَمَّا الثَّانِي فَفِي الْإِعَادَةِ بِسَبَبِ الْجَنَابَةِ رِوَايَتَانِ او کوم چي دویم

دی نو د جنابت په وجه د اذان په راګرځولو کي دوه روایتونه دی وَالْأَشْبَهُ أَنْ يُعَادَ الْأَذَانُ او د فقهي سره نژدې خبره دا ده چي اذان دي را وګرځول سي دُوْنَ الْإِقَامَةِ (او) اقامت دي نه راګرځول کيږي لِأَنَّ تَكْرَارَ الْأَذَانِ مَشْرُوعٌ دُوْنَ الْإِقَامَةِ ځکه چي په اذان کي خو تکرار مشروع دی لېکن په اقامت کي نه دی وَقَوْلُهُ وَلَوْ لَمْ يُعِدْ أَجْزَأَهُ: يَعْنِي الصَّلَاةَ او د امام محمد رَحِمَهُ الله له دې قول إن لم يعد أجزأه څخه لمونځ مراد دی لِأَنَّهَا جَائِزَةٌ بِدُوْنِ الْأَذَانِ وَالْإِقَامَةِ ځکه چي لمونځ له اذان او اقامت څخه بغير هم جائز دی.

**اللغات**: ﴿أغلظ﴾ زيات سخت، زيات درونډ، ﴿شِبه﴾ مشابه، مثل؛ او شُبه په ضمه د شين سره مشابهت ته ويل کيږي.

**تشريح**: **مسئله**: داده چي په حالت د جنابت کي اذان کول مکروه دي، او په دې کي صرف يو روايت سته يعني د کراهت روايت يې سته، او د عدم کراهت روايت يې نسته، او مخکي تېر سو چي د بې لودسه په اذان کي د کراهت او عدم کراهت دواړه روايتونه سته.

ـ وجه الفرق...الخ نو د جنب د اذان په کراهت او د محدث د اذان په عدم کراهت فرق دا دی چي اذان د لمانځه سره مشابه(ورته) دی، هغه داسي چي دواړه په تکبير تحريمه سره شروع کيږي، دواړه مخ پر قبله اداء کيږي، او د اذان کلمې داسي ترتيب سوي دي لکه څرنګه چي د لمانځه ارکان په ترتيب دي، دواړه د وخت سره خاص دي يعني د هر يوه لپاره يو ځانګړی وخت سته، او په دواړو کي خبري جائز نه دي، لنډه دا چي دا اذا من وجه د لمونځ سره مشابه دی او من وجه ور سره مشابه نه دی، نو که د مشابهت اعتبار وکړی سي، نو بايد چي اذان بې اودسه او په جنابت سره ناجائز سي، او که د عدم مشابهت اعتبار وکړی سي، نو بايد په دواړو صورتونو کي اذان بغير له کراهته جائز سي، موږ په دواړو مشابهتينو باندي عمل وکړی، نو د جنابت په صورت کي مو د لمانځه سره د مشابهت اعتبار وکړی، او دا حکم مو وکړی چي د اذان لپاره طهارت شرط دی، او د بې اودسی په صورت کي مو د عدم مشابهت اعتبار وکړی، او دا حکم مو وکړی چي د اذان لپاره طهارت شرط نه دی، نو د بې اودسی په حالت کي اذان کول مکروه نه دی.

وفي الجامع الخ امام محمد رَحِمَهُ الله په جامع الصغير کي فرمايلي دي چي: که بغير له اودسه يې اذان يا اقامت وکړل، نو اذان او اقامت دي نه راګرځوي، او که په جنابت يې اذان يا اقامت وکړی نو زما په نېز يې راګرځول مستحب دي.
په شرح طحاوي کي راغلي دي چي د څلورو انسانانو اذان راګرځول مستحب دي: (۱) د جنب (۲) د ښځي (۳) د نشه سړي (يعني چي په نشه کي مست وي) (۴) د لېوني.

ولولم يعد أجزأه الخ خو که د جنب اذان او اقامت نه راوګرځول سي، نو بيا هم کافي دی، په هر حال د بې اودسه د اذان او اقامت نه راګرځول په دې وجه دي چي بې اودسي سپک نجاست دی، او پاته سو دويم يعني د جنب اذان او اقامت نو په دې کي دوه روايتونه دي: يو دا چي را ودي ګرځول سي، او دويم دا چي نه دي راګرځول کيږي، خو د فقهه سره زيات نژدې دا ده چي د جنب اذان دي راوګرځول سي، او اقامت دي يې نه راګرځول کيږي، ځکه چي په اذان کي في الجمله تکرار (يعني مکرروالی) مشروع دی، لکه څرنګه چي په جمعه کي اذان دوه واره کيږي، لېکن په اقامت کي تکرار مشروع نه دی (نو په دې وجه دي اقامت نه را ګرځول کيږي).

وقوله الخ فرمايي چي د امام محمد رَحِمَهُ الله په دې قول إن لم يعد أجزأه کي له أجزأه څخه مراد لمونځ دی، ځکه کله چي ګردسره بغير له اذان او اقامت څخه لمونځ جائز دی، نو بغير له اعادې (راګرځولو) څخه به په طريقه اولیٰ جائز او صحيح وي.

## د ښځي د اذان حکم

قَالَ: وَ كَذٰلِكَ الْمَرْأَةُ تُؤَذِّنُ مصنف رَحِمَهُ الله فرمايي: همدا حکم هغه وخت دی چي کله ښځه اذان وکړي مَعْنَاهُ: يُسْتَحَبُّ أَنْ يُّعَادَ دې مطلب دا دی: چي د ښځي اذان راګرځول هم مستحب دي لِيَقَعَ عَلٰى وَجْهِ السُّنَّةِ د دې لپاره چي اذان پر سنت طريقه اداء سي.

**تشريح: مسئله:** دا ده چي څرنګه د جنب اذان راګرځول مستحب دي، همدا رنګه د ښځي اذان راګرځول مستحب دي، د دې لپاره چي پر سنت طريقه اذان اداء سي، او سنت طريقه دا ده چي اذان به نارينه کوي، او د ښځي اذان سنت نه بلکي بدعت دی.

**دليل:** دا دی چي که ښځي په لوړ آواز سره اذان وکړی نو دې ديو حرام کار ارتکاب وکړی، ځکه چي د ښځي آواز عورت دی، او څرنګه چي پر ښځي ستر کول واجب دي دغه رنګه د دې لپاره خپل آواز پټول هم واجب دي، او که په لوړ آواز سره يې اذان نه وکړی، نو بيا خو د اذان مقصود پاته سو (چي هغه خلکو ته خبر ورکول دي)، نو ځکه مستحب دا ده چي اذان را وګرځول سي.

دويمه خبره دا ده چي پر ښځو نه اذان سته او نه اقامت ځکه چي دا دواړه د جماعت سنت دي، او د ښځو جماعت منسوخ سوی دی، ليکن که هغوی په جماعت سره لمونځ کول غواړي نو بغير له اذان او اقامت څخه دې يې کوي.

**دليل:** د حضرت عائشې رَضِيَ اللهُ عَنْهَا امامت دی، چي روايت يې حضرت رائطه رَضِيَ اللهُ عَنْهَا کړی دی: كنا جماعة فأمتنا عائشة رضي الله عنها بلا أذان ولا إقامة. (ج:۱، ص:۲۶۰)

## تر وخت مخکي د اذان حکم (او په دې باره کي د فقهاؤ قولونه)

وَلَا يُؤَذَّنُ لِصَلَاةٍ قَبْلَ دُخُوْلِ وَقْتِهَا او د يوه لمانځه لپاره به هم تر خپل وخت داخليدلو مخکي اذان نه کوي وَيُعَادُ فِي الْوَقْتِ او (که يې وکړی نو) په وخت کي به دننه راګرځول کيږي لِأَنَّ الْأَذَانَ لِلْإِعْلَامِ ځکه چي اذان خو (د وخت د داخليدلو) د خبر ورکولو لپاره دی وَقَبْلَ الْوَقْتِ تَجْهِيْلٌ● او تر وخت مخکي خو خلک په جهالت کي اچول دي وَقَالَ أَبُوْ يُوْسُفَ رَحِمَهُ اللهُ وَهُوَ قَوْلُ الشَّافِعِيِّ رَحِمَهُ اللهُ امام ابو يوسف فرمايلي دي او دا قول د امام شافعي هم دی يَجُوْزُ لِلْفَجْرِ فِي النِّصْفِ الْأَخِيْرِ مِنَ اللَّيْلِ چي د سهار لپاره د شپې په نصف اخير (آخري نيمه حصه) کي اذان کول جائز دي لِتَوَارُثِ أَهْلِ الْحَرَمَيْنِ ځکه دا د مکې او مدينې له خلکو څخه د توارث په توګه را نقل سوي دي وَالْحُجَّةُ عَلَى الْكُلِّ قَوْلُهُ عَلَيْهِ الصَّلَاةُ وَالسَّلَامُ لِبِلَالٍ رَضِيَ اللهُ عَنْهُ● او د ټولو په خلاف حضرت بلال رضي الله عنه ته د نبي ﷺ دا قول حجت دی لَا تُؤَذِّنْ حَتّٰى يَسْتَبِيْنَ لَكَ الْفَجْرُ هٰكَذَا چي اذان مه کوه! تر دې چي سهار تا ته داسې څرګند سي وَمَدَّ يَدَيْهِ عَرْضًا او نبي ﷺ خپل دواړه لاسونه په بره (پلنوالي) سره وغوړل.

**اللغات:** ﴿عرضا﴾ پلنوالی، بر، پسور، ﴿مد﴾ د نصر د باب ماضي صيغه ده: غوړول.

● القول الراجح: قول الطرفين، كذا في فتح القدير ج:۱، ص:۲۲. [القول الراجح ج:۱، ص۶۵]

● تخريج: أخرجه ابو داؤد في كتاب الصلوٰة، باب في الاذان قبل دخول الوقت، حديث رقم:۵۳۲.

**تشریح: مسئله:** دا ده چې تر وخت داخلېدلو مخکې اذان کول معتبر نه دی، خو که چا تر وخت مخکې وکړی، نو په هغه وخت کې به یې راګرځوي.

**اول دلیل:** د جمهورو احنافو اول دلیل دا دی چې د اذان مقصود خلکو ته د وخت د داخلېدلو خبر ورکول دي، او تر وخت مخکې اذان کول خلک په ناپوهې کې اچول دي، نو ځکه به تر وخت مخکې اذان کول په شریعت کې معتبر نه وي.

امام ابو یوسف او امام شافعي فرمایي: چې د سهار لپاره د شپې په آخري نیمه برخه کې اذان کول جائز دي، له امام شافعي څخه بل روایت دا دی چې په ټوله شپه کې هر وخت د سهار لپاره اذان صحیح دی.

**د امام ابو یوسف او امام شافعي دلیل:** دا دی چې د مکې مکرمې او مدینې منورې په خلکو کې دا خبره په توارث سره را روانه ده چې د سهار لپاره اذان د شپې په آخري نیمه حصه کې کوي، همدارنګه نبي ﷺ فرمایلي دي: إن بلالاً یؤذن بلیل فکلوا واشربوا حتی تسمعوا أذان ابن أم مکتوم. (یعني بلال رضی الله عنه د شپې اذان کوي، نو تاسو خپل خوراک څښاک کوئ، تر دې چې د ابن ام مکتوم رَحِمَهُ الله اذان واورئ). له دې حدیث څخه معلومېږي چې بلال رضی الله عنه به د شپې یعني تر سهار مخکې اذان کولو.

**د دوی د حدیث جواب:** تر لږ غور وروسته معلومېږي چې دا حدیث زموږ لپاره حجت دی، د امام ابو یوسف او امام شافعي لپاره حجت نه دی، ځکه چې د بلال رضی الله عنه دغه اذان به د تهجد او پېشلمي لپاره وو، د سهار د لمانځه لپاره به نه وو، بلکې د سهار د لمانځه لپاره به ابن ام مکتوم اذان کوی، چې هغه به د سهار تر راختلو وروسته وو، کنې د حتی تسمعوا أذان ابن أم مکتوم به څه مطلب وي!؟.

**دویم دلیل:** د جمهورو احنافو دویم دلیل هغه حدیث دی چې بلال رضی الله عنه ته نبي ﷺ فرمایلي وه: ته اذان مه کوه! تر دې چې سهار ښکاره سي، روایت کوونکی فرمایي چې: نبي ﷺ خپل دواړه لاسونه په پسور(بر) باندې وغوړول، له دې څخه د صبح صادق(رښتوني سهار) و طرف ته اشاره ده.(یعني هر کله چې صبح صادق په پوره توګه ښکاره سوی نه وي اذان مه کوه!).

**دریم دلیل:** د جمهورو احنافو دا دی چې ابن عبد البر رَحِمَهُ الله له ابراهیم رَحِمَهُ الله څخه روایت کړی دی: قال کانوا إذا أذن المؤذن بلیل قالوا له إتق الله و أعد أذانك، (ابراهیم تابعي رَحِمَهُ الله فرمایي چې د صحابه وو حالت به دا وو چې کله به یو مؤذن د شپې اذان وکړی، نو هغه ته به یې ویل: له الله څخه وېرېږه، او خپل اذان را وګرځوه)، خو که دلته دا اعتراض وسي چې په حدیث کې راغلي دي لا یغرنکم أذان بلال، (د بلال اذان دې تاسو دوکه نه کړي)، له دې څخه معلومېږي چې بلال رَحِمَهُ الله به تر وخت مخکې اذان کوی، جواب دا دی چې دا هم زموږ لپاره حجت دی، ځکه چې نبي ﷺ د بلال رضی الله عنه د اذان اعتبار نه وکړی، بلکې سمه ته یې له اعتبار ورکولو څخه منع وکړه.

**راجح قول:** په پورتنۍ مسئله کې راجح قول دا طرفینو دی چې هغوی وایي: که تر وخت مخکې اذان وسو نو هغه به راګرځول کېږي، قال العلامة ابن الهمام رَحِمَهُ الله ویکره ذالك ویعاد (فتح القدیر ج۱، ص:۲۲). [القول الراجح ج۱، ص:۶۵]

## د مسافر لپاره د اذان او اقامت حکم

وَالْمُسَافِرُ يُؤَذِّنُ وَيُقِيمُ او مسافر دي اذان او اقامت دواړه کوي لِقَوْلِهِ عَلَيْهِ الصَّلَاةُ وَالسَّلَامُ لِابْنَيْ أَبِي مُلَيْكَةَ رَضِيَ اللهُ عَنْهُمَا ځکه نبي ﷺ دابو مليکه دوو زامنو ته فرمايلي وو إِذَا سَافَرْتُمَا فَأَذِّنَا وَأَقِيمَا کله چي تاسو سفر کوئ نو اذان هم کوئ او اقامت هم فَإِنْ تَرَكَهُمَا جَمِيعًا خو که يو چا دواړه پرېښوول يُكْرَهُ نو دا مکروه دي وَلَوِ اكْتَفَى بِالْإِقَامَةِ جَازَ او که په اقامت يې اکتفاء وکړه نو جائز دي لِأَنَّ الْأَذَانَ لِاسْتِحْضَارِ الْغَائِبِينَ ځکه چي اذان د غائبو خلکو د حاضرولو لپاره کيږي وَالرُّفْقَةُ حَاضِرُونَ او د سفر ملګري خو ټوله حاضر وي وَالْإِقَامَةُ لِإِعْلَامِ الِافْتِتَاحِ او اقامت د لمانځه د شروع د اطلاع ورکولو لپاره کيږي وَهُمْ إِلَيْهِ مُحْتَاجُونَ او هغوی (ټوله) د دې محتاجه دي (يعني ټوله دې ته حاجت لري چي د لمانځه د شروع کېدلو په باره کي خبر ورکول سي) فَإِنْ صَلَّى فِي بَيْتِهِ فِي الْمِصْرِ خو که يو سړي په ښار کي دننه په خپل کور کي لمونځ وکړي يُصَلِّي بِأَذَانٍ وَإِقَامَةٍ نو هم به په اذان او قامت سره لمونځ کوي لِيَكُونَ الْأَدَاءُ عَلَى هَيْئَةِ الْجَمَاعَةِ چي اداء د جماعت په ډول سي وَإِنْ تَرَكَهُمَا جَازَ خو که اذان او قامت يې پرېښوول نو هم جائز دي لِقَوْلِ ابْنِ مَسْعُودٍ رَضِيَ اللهُ عَنْهُ

*: أَذَانُ الْحَيِّ يَكْفِينَا د حضرت ابن مسعود رضي الله عنه د قول په وجه: چي زموږ لپاره د محلې (کلي) اذان کافي دی.

**اللغات**: ﴿رُفْقَةٌ﴾ د سفر ملګري، قافلې والا، ﴿اِفْتِتَاح﴾ د افتعال د باب مصدر دی: شروع کول، ﴿هَيْئَةٌ﴾ شکل، صورت، توګه.

**تشريح**: صورت د مسئلې: دا دی چي په دوران د سفر کي چي کله مسافر خلک لمونځ کوي نو هغوی ته پکار دي چي اذان او اقامت دواړه وکړي، ځکه چي نبي ﷺ دابو مليکه دوو زامنو ته د نصيحت کولو په وخت کي فرمايلي وو: "کله چي تاسو په سفر کي ياست نو په اذان او اقامت سره لمونځ کوئ". له دې حديث څخه بالکل دا خبره څرګنديږي چي د سفر په حالت کي هم په اذان او اقامت سره لمونځ کول پکار دي، ځکه چي د اذان مقصد فقط اعلام (د خلکو خبرول) نه دي، بلکي د علامه ابن همام رَحِمَهُ الله د تصريح مطابق که مسافر په صحرا او بيابان کي لمونځ په اذان او اقامت سره وکړي، نو په هغه سره به د الله ﷻ په ځکه کي د الله ﷻ نوم او د الله ﷻ د دين وينا پورته سي، او مؤذن به هغه مخلوق ته الله ﷻ ور په ياد کړي کوم چي د مؤذن له سترګو څخه پټ دي، مثلاً! پېريان او داسي نور مخلوقات. نو په دې وجه هم د سفر په حالت کي د اذان او اقامت پابندي ضروري ده. (فتح القدير ج:۱، ص:۲۶۱)

فإن تركهما الخ اذان او اقامت دواړه پرېښوول مکروه دي، ځکه چي دا له پورتني حديث څخه خلاف کار دی. خو که يو سړي صرف اقامت وکړي او اذان يې نه وکړي، نو دا جائز دي، ځکه چي اذان د غائبو خلکو د راغوښتلو او جمع کولو لپاره کيږي، او ښکاره ده چي د سفر په حالت کي د سفر ملګري ټوله يو ځای وي، نو د راغوښتلو او جمع کولو لپاره د اطلاع ورکولو څه ضرورت نسته، لېکن څرنګه چي اقامت د لمانځه د شروع کېدلو د اطلاع لپاره کيږي، نو ځکه د حاضرو

---

● تخريج: أخرجه البخاري في كتاب الاذان، باب الاذان للمسافرين، حديث رقم: ۶۳۰.

● مصنف ابن ابي شيبة ج:۱، ص: ۲۰۰، حديث رقم: ۲۲۹۱

خلګو په حق کې هم د دې ضرورت سته، نو ځکه به د دوی په حق کې د اذان ضرورت خو نه وي، لېکن د اقامت ضرورت به وي، لهذا که یو سړی صرف پر اقامت اکتفاء وکړي نو هم جائز دي.

فإن صلّى في بيته الخ د دې حاصل دا دی چې که د ښار او سېډونکی سړی په خپل کور کې لمونځ کول وغواړي نو هغه ته پکار دي چې اذان او اقامت دواړه وکړي، هغه که نور خلک ور سره وي، که نه وي، د دې لپاره چې د ده دا لمونځ د جماعت د لمانځه په شول سي، (ځکه چې د جماعت لمونځ په اذان او اقامت دواړو سره کیږي)، لېکن که یو سړی اذان او اقامت دواړه پرېږدي، نو هیڅ پروا نه لري، ځکه چې حضرت عبد الله بن مسعود ﷺ یو وار حضرت علقمه او حضرت اسود رَضِيَ اللهُ عَنْهُمَا ته بغير له اذان او اقامت څخه لمونځ ورکړی، کله چې له هغه څخه د دې په باره کې پوښتنه وسوه: ألا تؤذن و تقيم (چې تا اذان او اقامت ولي نه وکړی؟)، نو په جواب کې هغه وویل: أذان الحيّ يكفينا، (چې د محلې (کلي) اذان زموږ لپاره کافي دی).

**عقلي دليل:** صاحب د عنايه رَحِمَهُ الله د دې عقلي دليل دا ليکلی دی چې د مسجد مؤذن په اذان او اقامت کې د محلې والا نائب وي، نو ځکه به په محله کې بغير له اذان او اقامته لمونځ کونکی سړی د هغه سړي په حکم کې وي چې په اذان او اقامت سره يې لمونځ کوي. (عنايه ج۱، ص: ۲۶۲)



# بَابُ شُرُوطِ الصَّلَاةِ الَّتِيْ تَتَقَدَّمُهَا

(دا) باب دلمانځه دهغه شرطونو (په بيان کې) دی
کوم چې تر لمانځه مخکې وي

**تشريح:** تر دې مخکې صاحب د کتاب د لمانځه وختونه بيان کړل، او بيا يې د وختونو نښې (علامې) يعني اذان او اقامت بيان کړل، اوس له دې ځايه د لمانځه شرطونه بيانوي، ښکاره دې وي چې شروط جمع د شرط ده، لغوي معنی يې ده: نښه، علامه، او د شرعي په اصطلاح کې: مايتوقف عليه وجود الشئ ولم يکن داخلا فيه. (يعني شرط هغه شي ته ويل کيږي چې پر هغه د بل شي وجود موقوفه (ولاړ) وي، او دا شی په هغه کې داخل نه وي). [په اصل کې له شرائطو ځخه مراد هغه فرائض دي کوم چې تر لمانځه مخکې اداء کيږي، او کوم فرائض چې په لمانځه کې دننه کيږي هغه ته ارکان ويل کيږي].

## د لمونځ کونکي لپاره د نجاستونو پاکولو حکم

يَجِبُ عَلَى الْمُصَلِّيْ پر لمونځ گزاره واجب دي أَنْ يُّقَدِّمَ الطَّهَارَةَ مِنَ الْأَحْدَاثِ وَالْأَنْجَاسِ چې مخکې پاکي حاصله کړي له بې اودسيو او چټلتياوو ځخه عَلىٰ مَا قَدَّمْنَاهُ لکه څرنګه چې مخکې موږ (د دې) بيان وکړی قَالَ اللهُ تَعَالىٰ: وَثِيَابَكَ فَطَهِّرْ [المدثر: ۴] الله تعالىٰ فرمايلي دي: خپلې جامې پاکې ساتئ! وَقَالَ تَعَالىٰ: وَإِنْ كُنْتُمْ جُنُبًا فَاطَّهَّرُوا [المائدة: ۶] او الله تعالىٰ (په بل ځای کې) فرمايلي دي: که تاسو جنب سی نو ښه پاکي کوئ! وَيَسْتُرُ عَوْرَتَهُ او (پر لمونځ گذاره واجب دي چې) خپل عورت به پټوي لِقَوْلِهِ تَعَالىٰ: خُذُوْا زِيْنَتَكُمْ عِنْدَ كُلِّ مَسْجِدٍ [الأعراف: ۳۱] ځکه الله تعالىٰ فرمايلي دي: د هر لمانځه په وخت کې زينت (ښکلا) اختياروئ! أَيْ مَا يُوَارِيْ عَوْرَتَكُمْ عِنْدَ كُلِّ صَلَاةٍ يعني (د لمانځه په وخت کې دومره اندازه جامې [کالي] اغوندئ) چې ستاسو عورت پټ کړي وَقَالَ عَلَيْهِ الصَّلَاةُ وَالسَّلَامُ● لَا صَلَاةَ لِحَائِضٍ إِلَّا بِخِمَارٍ او نبي ﷺ فرمايلي دي: له پوړني ځخه بغير د حائضې ښځې لپاره لمونځ نه صحيح کيږي أَيْ لِبَالِغَةٍ يعني د هغه ښځې لپاره چې بلوغ ته رسيدلې وي.

**اللغات:** ﴿أَحْدَاث﴾ جمع ده، واحد يې حدث دی: بې اودسه يا بې غسله کېدل، يعني بې اودسيا او جنابت. ﴿أَنْجَاس﴾ جمع ده، واحد يې نجس دی: ناپاکياني، چټلتياوي. ﴿عَوْرَة﴾ پټ ځای، شرم ځای، د پټولو ځای. ﴿يُوَارِيْ﴾ د مفاعلې د باب مضارع صيغه ده: پټول. ﴿خِمَار﴾ پوړنۍ (ښځينه څادر).

**تشريح:** صورت د مسئلې: دا دی چې پر لمونځ کونکي واجب دي چې تر لمانځه مخکې له هر قسم نجاستونو او حدثونو ځخه پاکي حاصله کړي، چې د لمانځه لپاره په هره توګه سره پاک وي، دليل يې د قرآن شريف دا آيتونه دي:

---

● تخريج: أخرجه ابو داؤد في كتاب الصلوٰة، باب المرأة تصلي بلا خمار، حديث رقم: ۶۴۱.

وثيابك فطهر - وإن كنتم جنبا فاطهروا، همدارنګه په نورو آيتونو کي هم د طهارت (پاکوالی) حکم سوی دی، چي پر هغه عمل کول د هر لمونځ ګزاره لپاره فرض او ضروري دي، صاحب د عنايه ليکلي دي چي که څه هم تر دې مخکي دا بحث تېر سوی دی، خو څرنګه چي دلته د شرطونو بيان کيږي، او تر لمانځه د طهارت مخکي کول هم شرط دي، بلکي د لمانځه له شرطونو څخه يو مهم شرط دی، نو ځکه دلته ذ دويم ځل لپاره بيا بيانيږي، چي د شرطونو په قطار کي طهارت هم وشمارل سي.

ويسترعورته: دا جمله پر أن يقدم الطهارة باندي عطف ده، او د لمونځ کونکي لپاره دويم شرط دی، يعني پر لمونځ کونکي د خپل عورت پټول هم ضروري دي، له عورت څخه مراد د بدن هغه برخي او حصې دي چي د هغو پټول فرض او ضروري وي، او چي د هغو لڅول يا لڅېدل د شرم سبب وي، په حديث شريف کي له نامه(ناف) څخه ونيسې تر زنګنو پوري عورت ګرځول سوی دی.

دليل: د عورت پر پټولو د قرآن کريم دا آيت دليل دی: خذوا زينتكم عند كل مسجد، او له دې آيت څخه دليل په دې توګه نيول کيږي چي په آيت کي له زينت څخه مراد ما يواری عورتكم دی، يعني هغه شی چي ستاسي عورت پټوي، ځکه چي د عورت ښکاره کېدل د شرم او عار خبره ده، نو ښکاره ده چي د دې پټول يقيناً هم د زينت او ښکلا لامل دی، او له عندكل مسجد څخه مراد عند كل صلاة دی، او دلته محل ذکر سوی دی مراد ځني حال دی، او د آيت شريف ښکاره مفهوم دا دی چي د هر لمانځه په وخت کي عورت پټوئ!.

دويم دليل: د نبي ﷺ دا فرمان دی: لا صلاة لحائض إلا بخمار، په دې حديث کي له حائضې څخه مراد بالغه ښځه ده، ځکه چي تر بلوغت وروسته ښځي ته حيض راځي، او د حديث مفهوم دا دی چي الله تعالی د بالغې ښځي لمونځ بغير له پوړني څخه نه قبلوي، او د بالغې ښځي په حق کي سَرْ عورت دی، او د هغه پټول شرط او ضروري دي، نو کوم شی چي د نارينه په حق کي عورت وي، د هغه پټول به هم شرط او ضروري وي:

## د نارينه عورت، زنګون په عورت کي داخل دی که نه؟ (د فقهاؤ قولونه)

وَعَوْرَةُ الرَّجُلِ مَا تَحْتَ السُّرَّةِ إِلَى الرُّكْبَةِ او د نارينه عورت له نامه څخه تر زنګنو پور دی لِقَوْلِهِ عَلَيْهِ الصَّلَاةُ وَالسَّلَامُ●: عَوْرَةُ الرَّجُلِ مَا بَيْنَ سُرَّتِهِ إِلَى رُكْبَتِهِ ځکه نبي ﷺ فرمايلي دي: د نارينه عورت د هغه د نامه او زنګنو په مينځ کي دی وَيُرْوَى: مَا دُونَ سُرَّتِهِ حَتَّى تَجَاوَزَ رُكْبَتَهُ او په بل روايت کي راغلي دي: چي له نامه څخه ملسوا تر دې چي له دواړو زنګنو څخه تېر سي وَبِهٰذَا تَبَيَّنَ أَنَّ السُّرَّةَ لَيْسَتْ مِنَ الْعَوْرَةِ او په دې سره ښکاره سوه چي نوم په عورت کي داخل نه دی خِلَافًا لِمَا يَقُولُهُ الشَّافِعِيُّ رَحِمَهُ اللهُ په خلاف د هغه کوم چي امام شافعي رَحِمَهُ الله فرمايي (يعني د هغه په نېز نوم په عورت کي داخل دی) وَالرُّكْبَةُ مِنَ الْعَوْرَةِ او زنګون له عورت څخه دی خِلَافًا لَهُ أَيْضًا په خلاف د امام

● تخريج: أخرجه دار قطنى فى كتاب الصلوٰة، باب الامر بتعليم الصلوات، حديث رقم: ۸۷۶.

شافعي هم (يعني دهغه په نيز زنګون په عورت کي داخل نه دی) وَكَلِمَةُ إِلَى نَحْمِلُهَا عَلَى كَلِمَةِ مَعَ او کلمه د "إلى" موږ حمل کوو پر معنیٰ د "مع" عَمَلًا بِكَلِمَةِ حَتّٰى په حتی د عمل کولو لپاره وَعَمَلًا بِقَوْلِهِ عَلَيْهِ الصَّلَاةُ وَالسَّلَامُ الرُّكْبَةُ مِنَ الْعَوْرَةِ● او دنبي ﷺ په دې قول دعمل کولو لپاره چي: الركبة من العورة (يعني زنګون له عورت څخه دی).

**اللغات:** ﴿سُرَّة﴾ نوم، (ناف)، ﴿رُكْبَة﴾ زنګون، ﴿كَفّ﴾ ورغوی، ﴿مَسْتُورَة﴾ د نصر د باب اسم مفعول دی: پټ کړی سوی، ناڅرګند، ﴿اِبْتِلاء﴾ د افعال د باب مصدر دی: په ازمایښت کېدل، مبتلا کېدل، ﴿اِبْدَاء﴾ د افعال د باب مصدر دی: ښکاره کول.

**تشریح:** په دې عبارت کي د نارينه د بدن د هغو حصو اندازه بيانيږي چي د هغو پټول واجب دي، نو زموږ د درې سره امامانو په نيز د سړي عورت له نامه څخه تر زنګونو پوري دی، يعني نوم عورت نه دی او زنګون عورت دی.

**زموږ دليل:** د نبي ﷺ دا قول دی: عورة الراجل ما بين سرته إلى ركبتيه. (يعني د نارينه عورت د نامه او زنګنو په مينځ کي مينځني حصه ده) او په بل روايت کي دي: ما دون سرة حتى تجاوز ركبة.، (چي له نامه څخه لاندي تر دې چي تر زنګنو تېر سي). له دې دواړو حديثو څخه معلوميږي چي نوم په عورت کي داخل نه دی خو زنګونان پکښي داخل دي.

وكلمة إلى الخ دا عبارت د يو اعتراض جواب دی: اعتراض دا دی چي په اولني روايت کي کلمه د إلى د غايت (غايې) لپاره ده، او غايه په مغيا کي داخله نه وي، نو له دې څخه معلوميږي چي زنګونان د نارينه په عورت کي داخل نه دي. جواب دا دی چي موږ کلمه د إلى په معنیٰ د مع حمل کوو، لکه څرنګه چي د الله ﷻ په دې قول: وَلَا تَأْكُلُوا أَمْوَالَهُمْ إِلَى أَمْوَالِكُمْ (سورة النساء: ۲) کي إلى د مع په معنیٰ راغلی دی، او پر دې باندي قرينه يو هغه حديث دی چي په هغه کي حتى تجاوز ركبته ذکر سوي دي، او بل د نبي دا قول دی چي: الركبة من العورة، لنډه دا چي په دې درېو سره روايتونو کي تطبيق هله کېدای سي چي کله کلمه د إلى پر مع حمل کړی سي.

## د آزادي ښځي عورت

وَبَدَنُ الْحُرَّةِ كُلُّهَا عَوْرَةٌ او د آزادي ښځي ټوله بدن عورت دی إِلَّا وَجْهَهَا وَكَفَّيْهَا ما سوا د هغې له مخ او دواړو ورغوو څخه لِقَوْلِهِ● عَلَيْهِ السَّلَامُ: الْمَرْأَةُ عَوْرَةٌ مَسْتُورَةٌ ځکه رسول الله ﷺ فرمايلي دي: ښځه پټ کړی سوی عورت دی وَاسْتِثْنَاءُ الْعُضْوَيْنِ لِلْابْتِلَاءِ بِإِبْدَائِهِمَا او د دواړو اندامونو (يعني د مخ او ورغوي) استثناء د دوی د ښکاره کېدلو د ابتلاء په وجه ده قَالَ رَضِيَ اللّٰهُ عَنْهُ: وَهٰذَا تَنْصِيصٌ عَلَى أَنَّ الْقَدَمَ عَوْرَةٌ صاحب د هدايې رَحِمَهُ الله فرمايي: چي دا حديث پر دې خبره نص دی چي د ښځي پښه هم عورت ده وَيُرْوَى أَنَّهَا لَيْسَتْ بِعَوْرَةٍ او يو روايت دا دی چي پښه عورت نه ده وَهُوَ الْأَصَحُّ او همدا روايت زيات صحيح دی.

● تخريج: أخرجه دار قطني في كتاب الصلوٰة، باب الامر بتعليم الصلوات، حديث رقم: ۸۷۸.

● تخريج: أخرجه الترمذي في كتاب الرضاع، باب استشراف الشيطان المرأة إذا خرجت، حديث رقم: ۱۱۷۳.

**اللغات:** ﴿مَسْتُورَة﴾ پټ کړی سوی، ناخرګند. ﴿اِبْتِلَاء﴾ د افعال د باب مصدر دی: مبتلا کېدل. ﴿اِبْدَاء﴾ د افعال د باب مصدر دی: ښکاره کول.

**تشريح:** فرمايي چي د آزادي ښځي له مخ او دواړو ورغوو څخه ماسوا نور ټول بدن عورت دی او له دې دوو اندامونو څخه ماسوا د هغې لپاره نور بدن پټول ضروري دي، دليل د نبي ﷺ دا فرمان دی: المرأة عورة مستورة. دې حديث ته په کتني سره د ښځي د بدن هر هر جزء واجبُ الستر کېدل ښکار دي (يعني له حديث څخه خو دا ښکاره کيږي چي پر ښځي د بدن هر جزء پټول ضروري دي که څه هم ورغوي او مخ وي). خو د مخ او ورغوو د ښکاره کېدلو دومره زيات ضرورت پيښيږي چي په دې کي ابتلاء راغلې ده، ځکه چي د کارونو، مناسبتونو، تعلق، پېژندني او د داسي نورو شيانو لپاره د هغو ښکاره کول ډېر ضروري دي، نو ځکه د ابتلاء او عمومِ بلوىٰ په وجه دا دواړه اندامونه استثناء کړی سوي دي، لېکن پاته اندامونه د المرأة عورة مستورة د اطلاق په وجه واجبُ الستر دي.

وهذا تنصيص الخ صاحب د هدايې فرمايي چي په متن کي د وجه او کفين له استثناء څخه معلوميږي چي د ښځي قدم يعني پښه هم عورت ده، حال دا چي صحيح قول دا دی چي د ښځي پښې عورت نه دي، او پټول يې هم ضروري نه دي، ځکه چي هميشه ښځه په موزو او څپليو کي نه سي اوسېدلای، او د دې په حق کي هم د تللو او د ښاندي وتلو ضرورت سته، نو ځکه به د مخ او لاسو په ډول د ابتلاء او عموم بلوىٰ په وجه پښې هم له عورت څخه استثناء کيږي.

**عقلي دليل:** او د پښو عورت نه کېدل په عقلي توګه هم ثابت دي، هغه داسي چي د ښځي د زياتره اندامونو د عورت ګرځولو وجه دا ده چي هغو ته په کتلو سره د سړي شهوت را پورته کيږي، او له هغو څخه دا خطره وي چي داسي نه يو څوک بې لاري سي، او دا خطره په "مخ" کي زياته ده، خو د ابتلاء په وجه مخ له عورت څخه وېستل سو، نو چي کله چي د زياتې خطرې باوجود مخ له عورت څخه وېستل سو، نو پښې خو به په طريقه اولىٰ ايستل کيږي، ځکه چي د مخ په پرتله کي پښې هيڅ شی نه دي. (يعني مخ ته په کتلو سره چي څومره شهوت پيدا کيږي په پښو کي د هغه لږ حصه هم نه پيدا کيږي).

## په لمانځه کي د ښځي د عورت ښکاره کېدلو حکم

فَإِنْ صَلَّتْ وَرُبْعُ سَاقِهَا أَوْ ثُلُثُهَا مَكْشُوفٌ نو که آزادي ښځي لمونځ وکړی په داسي حال کي چي د پنډۍ څلورمه يا دريمه حصه يې ښکاره وه تُعِيدُ الصَّلَاةَ نو لمونځ به راګرځوي عِنْدَ• أَبِي حَنِيفَةَ وَمُحَمَّدٍ رَحِمَهُمَا اللهُ د امام ابو حنيفه او امام محمد رَحِمَهُمَا الله په نيز وَإِنْ كَانَ أَقَلَّ مِنَ الرُّبْعِ لَا تُعِيدُ او که له څلورمي حصې څخه يې کمه حصه (ښکاره) وه نو نه به يې راګرځوي وَقَالَ أَبُو يُوسُفَ رَحِمَهُ اللهُ: لَا تُعِيدُ إِنْ كَانَ أَقَلَّ مِنَ النِّصْفِ او امام ابو يوسف فرمايي: که له نيمي حصې څخه يې کمه حصه ښکاره وه نو نه به يې راګرځوي لِأَنَّ الشَّيْءَ إِنَّمَا يُوصَفُ بِالْكَثْرَةِ ځکه په کثرت سره يو شی هغه وخت موصوف کېدی سي إِذَا كَانَ مَا يُقَابِلُهُ أَقَلَّ مِنْهُ چي کله د هغه مقابل له هغه څخه کم وي إِذْ هُمَا مِنْ أَسْمَاءِ الْمُقَابَلَةِ ځکه چي دا دواړه له اسماء مقابله وو څخه دي وَفِي النِّصْفِ عَنْهُ رِوَايَتَانِ او د نيمي حصې په ښکاره کېدلو

• القول الراجح: قول أبي حنيفة ومحمد رحمهما الله كذا في الدر المختار ج:١، ص:٣٠٠. [القول الراجح، ج:١، ص:٦٦]

کي له امام ابو یوسف رَحِمَهُ الله څخه دوه روایتونه دي فَاعْتَبَرَ الْخُرُوجَ عَنْ حَدِّ الْقِلَّةِ (یو روایت دا دی چي) هغه د قلت له حد څخه د وتلو اعتبار کړی دی (یعني چي کله نیمه حصه ښکاره سوه نو دا حصه د قلت له حد څخه ووتله او د کثرت په حد کي داخله سوه، نو ځکه به لمونځ راګرځوي) أَوْ عَدَمَ الدُّخُولِ فِي ضِدِّهِ (دوهم روایت دا دی چي) یا یې د قلت په ضد کي د نه داخلېدلو اعتبار کړی دی (یعني چي کله نیمه حصه ښکاره سوه نو د قلت له حد څخه خو ووتله لېکن د قلت د ضد یعني د کثرت په حد کي داخله نه سوه بلکي دواړې حصې برابري سوي نو ځکه به لمونځ نه راګرځوي) وَلَهُمَا أَنَّ الرُّبُعَ يَحْكِي حِكَايَةَ الْكَمَالِ او د طرفینو دلیل دا دی چي څلورمه حصه د ټولي حصې حکایت کوي كَمَا فِي مَسْحِ الرَّأْسِ وَالْحَلْقِ فِي الْإِحْرَامِ لکه د سر په مسح کي او د احرام پر موقع د سر په خریلو کي وَمَنْ رَأَى وَجْهَ غَيْرِهِ يُخْبِرُ عَنْ رُؤْيَتِهِ او کوم سړی چي د بل چامخ وویني نو دا سړی د هغه د لیدلو خبر ورکوي وَإِنْ لَمْ يَرَ إِلَّا أَحَدَ جَوَانِبِهِ الْأَرْبَعَةِ که څه هم دغه سړي د هغه (د مخ) د څلورو طرفونو څخه صرف یو طرف لیدلی وي (یعني که یو څوک د بل سړي د مخ صرف یو طرف ووینی نو وایي چي ما هغه ټوله سړی ولیدی. داسي نه وایي چي ما یې صرف یو طرف ولیدی).

**اللغات:** ﴿ربُع﴾ څلورمه حصه، ﴿ساق﴾ پنډۍ، ﴿ثُلُث﴾ دریمه حصه، ﴿حلق﴾ د ضرب د باب مصدر دی: خریل.

**صورت د مسئلې:** دا دی که یوې ښځي په داسي حال کي لمونځ وکړی چي د پنډۍ څلورمه حصه یې ښکاره (لڅه) وه، نو د طرفینو رَحِمَهُمَا الله په نېز پر هغې د لمانځه راګرځول واجب دي او که له څلورمي حصې څخه یې کمه حصه ښکاره وه نو په دې صورت کي د لمانځه راګرځول واجب نه دي، بلکي لمونځ یې صحیح دی، امام ابو یوسف رَحِمَهُ الله فرمایي چي که له نیمي پنډۍ څخه یې کمه حصه ښکاره وه نو لمونځ جائز دی او د راګرځولو ضرورت یې نسته، لېکن که نیمه حصه یې ښکاره وه نو په دې صورت کي له امام ابو یوسف رَحِمَهُ الله څخه دوه روایتونه رانقل سوي دي: (۱) اول روایت دا چي د نیمي حصې د ښکاره کېدلو په وخت کي هم د لمانځه راګرځول ضروري نه دي، (۲) دوهم روایت د لمانځه راګرځول ضروري دي.

**د امام ابو یوسف دلیل:** له نصف څخه د کم ښکاره کېدلو په صورت کي د لمانځه د نه راګرځولو په باره کي د امام ابو یوسف رَحِمَهُ الله دلیل دا دی چي په دې مسئله کي د قلت (کمښت) او کثرت (زیاتوب) مدار دی، او قلت او کثرت دواړه له اسماء مقابله څخه دي، او په اسماء مقابله کي قاعده دا ده چي یو شي ته به هغه وخت کثیر ویل کیږي چي کله د هغه مقابل شی له هغه څخه کم وي، او نصف یا له نصف څخه کم د خپل مقابل په پرتله کي کثیر نه دی، نو ځکه به له نصف څخه د کم په صورت کي او د یوه روایت مطابق د نصف په صورت کي د لمانځه راګرځول واجب نه وي، ځکه یا خو د پوره پنډۍ په ښکاره کېدلو او لڅېدلو سره د لمانځه راګرځول واجبیږي یا یې د اکثره حصې په ښکاره کېدلو سره، او نصف یا له نصف څخه کم اکثر نه دي، نو ځکه به په دې اندازه لڅېدلو سره لمونځ نه راګرځول کیږي.

**د دوهم روایت دلیل:** او د دوهم روایت مطابق د نصف حصې په لڅېدلو سره د لمانځه د راګرځولو دلیل دا دی چي کله نصف حصه ښکاره (لڅه) سي، نو اوس هغه حصه قلیل نه سوه پاته، بلکي د قلت له حد څخه خارج سو، ځکه چي کله نصف ښکاره سي نو ښکاره ده چي اوس د هغه مقابل له هغه څخه زیات نه دی، بلکي د هغه سره مساوي (برابر) دی، نو مطلب دا چي لڅ سوی نصف د قلت له حد څخه ووتی په کثرت کي داخل سو او د اکثره حصې په ښکاره کېدلو سره د لمانځه راګرځول واجب دي، نو ځکه به په دې صورت کي هم د لمانځه راګرځول واجب وي.

د طرفينو دليل: دا دی چي په ډېرو احکامو اومحاوراتو (خبرو اترو) کي څلورمه حصه د کل قائم مقامه وي، د مثال په توګه د سر په مسح کي څلورمه حصه د ټوله سره قائم مقامه ده، همدارنګه که سړی په حالت د احرام کي ټوله سر وخربي، نو قرباني پر واجب ده، او که د سره څلورمه حصه وخربي، بيا هم قرباني پر واجب ده، نو معلومه سوه چي څلورمه برخه د ټوله سره قائم مقامه ده؛ او په خبراترو کي هم دا حال دی، مثلاً که يو سړی د بل سړي د مخ له څلورو طرفونو څخه صرف يو طرف ووېني او ووايي چي ما هغه سړی وليدی، نو خبره يې صحيح ده، نو کله چي څلورمي حصې ته د کل حکم حاصل دی، نو د پنډۍ د څلورمي حصې د لڅېدلو په وخت کي به ويل کيږي چي ټوله پنډۍ لڅه سوه، او د ټولي پنډۍ په لڅېدلو سره لمونځ راګرځول واجب دي، نو د څلورمي حصې په لڅېدلو سره به هم لمونځ راګرځول واجب وي.

**راجح قول:** په پورتنۍ مسئله کي راجح قول د طرفينو دی: قال العلامة علاء الدين الحصكفي رَحِمَهُ الله (ويمنع) حتى انعقادها كشف ربع عضو قدر اداءِ ركن بلاصنعه من عورة غليظه او خفيفة على المعتمد. (الدر المختار ج:۱، ص: ۳۰۰). [القول الراجح ج:۱، ص:۶۶]

## د وربېښتيانو، ورون او پنډۍ د څلورمي يا دريمي حصې د ښکاره کېدلو حکم

وَالشَّعْرُ وَالْبَطْنُ وَالْفَخِذُ كَذٰلِكَ د وربېښتيانو، نس او ورون هم دغه حکم دی يَعْنِيْ عَلٰى هٰذَا الْإِخْتِلَافِ يعني په دې کي (هم) دغه اختلاف دی لِأَنَّ كُلَّ وَاحِدٍ عُضْوٌ عَلٰى حِدَةٍ ځکه چي هريو جلااندام دی وَالْمُرَادُ بِهِ النَّازِلُ مِنَ الرَّأْسِ او له وربېښتيانو څخه مراد هغه دي چي له سر څخه کښته را ځړېدلي وي هُوَ الصَّحِيْحُ همدا صحيح ده وَإِنَّمَا وُضِعَ غَسْلُهُ فِي الْجَنَابَةِ لِمَكَانِ الْحَرَجِ او د جنابت په غسل کي د هغو پرېولل د حرج په وجه ساقط سوي دي وَالْعَوْرَةُ الْغَلِيْظَةُ عَلٰى هٰذَا الْإِخْتِلَافِ او په عورتِ غليظه کي (هم) دغه اختلاف دی وَالذَّكَرُ يُعْتَبَرُ بِانْفِرَادِهِ او ذکر (د تناسل آله) به جلا اندام شمارل کيږي وَكَذَا الْأُنْثَيَانِ او همدارنګه خصيتين (خوټي به هم جلا اندام شمارل کيږي) وَهٰذَا هُوَ الصَّحِيْحُ او همدا صحيح ده دُوْنَ الضَّمِّ نه (د دوی) يو ځای کېدل (يعني دواړه يو ځای کول او يو اندام شمارل صحيح نه دي).

**اللغات:** ﴿بَطْن﴾ نس، د هر شي دننه برخه، ﴿فَخِذ﴾ ورون (پتون)، ﴿أُنْثَيَان﴾ خوټي، واحد يې أُنثى دی، خو هر وخت تثنيه ذکر کيږي.

**تشريح:** **مسئله**: دا ده چي په وربېښتيانو، نس او ورون کي هم هغه اختلاف دی کوم چي مخکي تېر سو، يعني د امام محمد او امام ابو يوسف رَحِمَهُ الله په نېز له دوې څخه څلورمه حصه ښکاره کېدل د لمانځه له جواز څخه مانع دي (يعني د څلورمي حصې ښکاره کېدلو په وخت کي يې لمونځ نه صحيح کيږي)، او د امام ابو يوسف رَحِمَهُ الله په نېز د يوه روايت مطابق د نصف ښکاره کېدل د لمانځه له جواز څخه مانع دي او په بل روايت کي د نصف څخه د زيات ښکاره کېدل مانع دي (پوره تفصيل په مخکنۍ مسئله کي وګورئ)

**د امام ابو يوسف دليل**: دا دی چي په دې کي هريو جلاجلا اندام دی، نو د پنډۍ په ډول به په دې کي هم اختلاف وي.

او دلته له وربېښتيانو څخه مراد هغه دي چي لاندي را ځړېږي هم دا صحيح قول دی، هغه مراد نه دي کوم چي د سر سره موښتي (ملصق) وي او راځړېږي نه، ځکه چي په اتفاق سره عورت دي.

وَاِنَّمَا وضع الخ په دې عبارت سره د يو مقدر سوال جواب ورکوي، هغه سوال دا چې که د سر راځړيدلي وربښته عورت وي، نو دا به په دې وجه عورت وي چې دا د بدن حصه ده، حال دا چې داسي نه ده، ځکه چې د جنابت په غسل کي د دې پرېولل ضروري نه دي، او د بدن يوه ښکارنې (ظاهري) حصه هم داسي نه ده چې د جنابت په غسل کي دې د هغې پرېولل ضروري نه وي، نو له دې څخه معلومه سوه چې د سر را ځړيدلي وربښته د ښځي له بدن څخه نه دي، او چې له بدن څخه نه سوه، نو عورت هم نه سوه.

**جواب:** دا دی چې د جنابت په غسل کي د وربښتيانو د نه پرېوللو اجازه په دې وجه نه ده چې وربښته د ښځي له بدن څخه نه دي، بلکي د هغو پرېولل د حرج (او تکليف) په وجه ساقط سوي دي، ځکه چې ټوله وربښتيان د خلقت په وجه د هغې د بدن جزء دي (يعني ټوله وربښتيان د ښځي له بدن څخه پيدا سوي دي).

والعورة الغليظة الخ او په عورتِ غليظه يعني قُبُل او دُبُر (مخ او شا) کي هم دغه اختلاف دی، نو که له دې څخه څلورمه حصه ښکاره سوه، نو د طرفينو په نېز به لمونځ را ګرځوي، او د امام ابو يوسف رَحِمَهُ الله په نېز به يې نه راګرځوي.

والذکر يعتبر الخ صاحب د هدايې رَحِمَهُ الله فرمايي چې ذکر (د نارينه تناسلي اندام) جلا اندام دی، او دواړه خصيتن (خوټي) جلا او ځان ته اندام دی، نو که په دې کي له هر يوه څخه څلورمه حصه ښکاره سي نو لمونځ به راګرځوي، او داسي نه ده چې دواړه يو اندام دی، (يعني د دواړو مجموعه يو اندام نه دی بلکي هر يو جلا جلا اندام دی). لېکن بعضو ويلي دي چې د دواړو مجموعه يو اندام دی، ځکه چې خصيتين د ذکر تابع دي، نو که د دواړو څلورمه حصه ښکاره سوه نو مانع د لمانځه به وي.

**فايده:** دا تفصيل د احنافو په نېز دی، کنې د امام شافعي رَحِمَهُ الله په نېز د لمانځه د جواز لپاره چې کوم لڅوالی مانع ګرځي په هغه کي د قليل او کثير (لږ او ډېر) هيڅ فرق نسته، بلکي د هغه په نېز ټوله مانع دي (يعني که لږ حصه لڅه سي او که ډېره، په هر صورت کي لمونځ نه صحيح کيږي).

## د مينځي عورت

وَمَا كَانَ عَوْرَةً مِنَ الرَّجُلِ فَهُوَ عَوْرَةٌ مِنَ الْأَمَةِ او د نارينه چې کوم اندامونه عورت دي هغه د مينځي هم عورت دي وَبَطْنُهَا وَظَهْرُهَا عَوْرَةٌ همدارنګه د هغې نس او ملا هم عورت دي وَمَا سِوَى ذٰلِكَ مِنْ بَدَنِهَا لَيْسَ بِعَوْرَةٍ او له دې څخه ماسوا د هغې د بدن نوره حصه عورت نه ده لِقَوْلِ عُمَرَ رَضِيَ اللهُ عَنْهُ: أَلْقِيْ عَنْكِ الْخِمَارَ يَا دَفَارُ ځکه چې حضرت عمر ﷺ (يوې مينځي ته) وويل: اې چټلي! (کم اصلي!) أَتَتَشَبَّهِيْنَ بِالْحَرَائِرِ* آيا ته ځان د آزادو ښځو سره برابروې وَلِأَنَّهَا تَخْرُجُ لِحَاجَةِ مَوْلَاهَا فِيْ ثِيَابِ مِهْنَتِهَا عَادَةً او په دې وجه (هم) چې په عامه توګه وينځه خپل د کار په کالو کي د مالک د ضرورت لپاره راوځي فَاعْتُبِرَ حَالُهَا بِذَوَاتِ الْمَحَارِمِ فِيْ حَقِّ جَمِيْعِ الرِّجَالِ نو د ټولو خلکو په حق کي د مينځي حالت پر ذوات المحارمو قياس کړی سو دَفْعًا لِلْحَرَجِ د تکليف ليري کولو لپاره.

* اثر: پوره اثر داسي دی: ان عمر ضرب أمة لآل انس رآها متقنعة، قال: اكشفي رأسك لا تتشبهين بالحرائر، مصنف عبد الرزاق، باب الخمار، ج:۳، ص:۱۳۶، رقم:۵۰۶۲

**اللغات:** ﴿اذفار﴾ کمینه، کم اصله، کم ظرفه، خواره. ﴿حرائر﴾ جمع ده واحد یې حرة دی: آزاده ښځه. ﴿مهنة﴾ کار او کسب، محنت او مزدوري، ثیاب مهنة: هغه کالي چې په هغه کي خدمتگاره خپل کار او مزدوري کوي.

**تشریح:** په دې عبارت کي د مینځي عورت بیان سوی دی، فرمایي چې د نارینه په بدن کي چې څومره حصه عورت ده، یعني له نامه څخه لاندي تر پنډیو پوري، نو همدغه حصه د مینځي په بدن کي هم عورت ده، له دې سره د مینځي نس او شا هم عورت دي، ځکه چې دا دواړه د شهوت ځایونه دي، نو د دې پټول هم فرض دي، خو له دې څخه ماسوا یې نور بدن عورت نه دی.

**نقلي دلیل:** دا دی چې یو وار حضرت عمر ﷺ یوه مینځه ولیدله چې پوړنۍ یې پر سرې کړی وو، نو حضرت عمر ﷺ ورته وفرمایل: اې چټلې!، ته ځان د آزادو ښځو سره برابروې، او په بل روایت کي داسي الفاظ راغلي دي: اكشفي عن رأسك ولا تتشبهي بالحرائر خپل سر لڅ کړه او د آزادو ښځو سره مشابهت مه کوه!.

**عقلي دلیل:** دا دی چې مینځه د خپل مالك د حاجت لپاره د کار او خدمت په کالو کي له خپل کوره زا وځي، نو د ټولو خلکو په حق کي به مینځه پر ذوات المحارم قیاسیږي، چې حرج او تکلیف لیري سي، یعني مینځه به د ستر او پر دې په حکم کي د ټولو خلکو لپاره د ذوات المحارمو په ډول ګڼل کیږي، یعني لکه څومره اندازه پرده چې پر مور له خپل ځوی څخه او پر خور له خپل ورور څخه واجب ده، هغومره اندازه پرده به پر مینځي له هر سړي څخه واجب ده.

## که د نجاست لیري کولو لپاره شی نه وو نو څه حکم دی؟

قَالَ: وَمَنْ لَمْ يَجِدْ مَا يُزِيلُ بِهِ النَّجَاسَةَ فرمایي: که لمونځ کونکي یو داسي شی پیدا نه کړی چې په هغه سره نجاست لیري کړي صَلَّى مَعَهَا وَلَمْ يُعِدْ نو د هغه نجاست سره دې لمونځ وکړي او لمونځ دې نه راګرځوي وَهَذَا عَلَى وَجْهَيْنِ او د دې مسئلې دوه صورتونه دي إِنْ كَانَ رُبْعُ الثَّوْبِ أَوْ أَكْثَرُ مِنْهُ طَاهِرًا يُصَلِّي فِيهِ [۱] که څلورمه حصه د جامې یا له دې څخه زیاته پاکه وه نو په دغه جامه کي به لمونځ کوي وَلَوْ صَلَّى عُرْيَانًا لَا يُجْزِئُهُ او که په لڅه یې لمونځ وکړی نو جائز نه دي لِأَنَّ رُبْعَ الشَّيْءِ يَقُومُ مَقَامَ كُلِّهِ ځکه چې د شي څلورمه حصه د کُل قائم ده وَإِنْ كَانَ الطَّاهِرُ أَقَلَّ مِنَ الرُّبْعِ فَكَذَلِكَ عِنْدَ مُحَمَّدٍ رَحِمَهُ اللهُ [۲] او که (د جامې) پاکه حصه له څلورمه حصې څخه کمه وه نو هم د امام محمد رَحِمَهُ الله په نیز دغه حکم دی وَهُوَ أَحَدُ قَوْلَيِ الشَّافِعِيِّ رَحِمَهُ اللهُ او همدا د امام شافعي رَحِمَهُ الله له دوو قولونو څخه یو قول دی لِأَنَّ فِي الصَّلَاةِ فِيهِ تَرْكُ فَرْضٍ وَاحِدٍ ځکه چې په دې ګنده جامو کي په لمونځ کولو سره یو فرض پرېښوول کیږي وَفِي الصَّلَاةِ عُرْيَانًا تَرْكُ الْفُرُوضِ او په لڅه لمونځ کولو سره ډېر فرضونه پرېښوول کیږي وَعِنْدَ أَبِي حَنِيفَةَ وَأَبِي يُوسُفَ رَحِمَهُمَا اللهُ يَتَخَيَّرُ بَيْنَ أَنْ يُصَلِّيَ عُرْيَانًا او د شیخینو رَحِمَهُمَا الله په نیز هغه ته اختیار دی که غواړي نو په لڅه دې لمونځ وکړي وَبَيْنَ أَنْ يُصَلِّيَ فِيهِ او که غواړي نو په دې ګنده کالو کي دې لمونځ وکړي وَهُوَ الْأَفْضَلُ● او همدا افضله ده لِأَنَّ كُلَّ وَاحِدٍ مِنْهُمَا مَانِعٌ جَوَازَ الصَّلَاةِ حَالَةَ الِاخْتِيَارِ ځکه چې په دې دواړو کي هر یو د اختیار په حالت کي د لمانځه د جواز

● القول الراجح: قول أبي حنيفة و ابي يوسف رَحِمَهُمَاالله، كذا في الدر المختار ج:۱، ص:۳۰۳. [القول الراجح، ج:۱، ص:۶۸]

لپاره مانع دی وَيَسْتَوِيَانِ فِيْ حَقِّ الْمِقْدَارِ او د مقدار په حق کي دواړه برابر دي فَيَسْتَوِيَانِ فِيْ حُكْمِ الصَّلَاةِ نو د لمانځه په حق کي به (هم) دواړه برابر وي وَتَرْكُ الشَّيْءِ إِلَى خَلَفٍ لَا يَكُوْنُ تَرْكًا او د يوشي پرېښوول (په داسي توګه) چي د هغه شي بل خليفه (نائب) پاته سي (نو) هغه ته پرېښوول نه ويل کيږي وَالْأَفْضَلِيَّةُ لِعَدَمِ اخْتِصَاصِ السَّتْرِ بِالصَّلَاةِ او افضيلت په دې وجه دی چي عورت پټول د لمانځه سره خاص نه دی وَاخْتِصَاصِ الطَّهَارَةِ بِهَا او طهارت د لمانځه سره خاص دی.

**اللغات:** ﴿عُرْيَانٌ﴾ لغ (برېند).

**تشريح: مسئله:** دا ده که د يو چا سره فقط نجس او ګنده کالي وي، پاک کالي ور سره نه وي، او داسي شی هم ور سره نه وي چي ګندګي په ليري کړي، نو هغه دي په دې ګنده کالو کي لمونځ وکړي، او بيا دي يې نه راګرځوي.

د دې مسئلې دوه صورتونه دي: (۱) يو دا که څلورمه يا له دې څخه زياته حصه پاکه وي، نو حتماً (خامخا) به په دې کالو کي لمونځ کوي، او که په لڅه يې وکړي، نو جائز نه دی، ځکه چي څلورمه برخه د کُل په څير ده، نو د کالو د څلورمي حصې پاکېدل داسي سوه لکه ټولو کالو پاکېدل، او پاک کالي پرېښوول او لڅ لمونځ کول جائز نه دي، نو ځکه به په دغه جامو کي لمونځ کوي. (۲) دويم صورت دا دی چي که د کالو له څلورمي حصې څخه کمه حصه پاکه وي، نو په دې کي اختلاف دی، د امام محمد رَحِمَهُ الله په نېز هم په دغه ګنده کالو کي لمونځ کول واجب دي، او په لڅه لمونځ جائز نه دی، او همدا د امام مالک رَحِمَهُ الله قول دی، او د امام شافعي رَحِمَهُ الله له دوو قولونو څخه يو قول هم دا دی، او د امام شافعي رَحِمَهُ الله دويم قول دا دی چي په لڅه دي يې وکړي.

**د امام محمد دليل:** دا دی چي په ګنده کالو کي په لمونځ کولو سره صرف يو فرض پاتيږي، يعني د کالو طهارت (پاکوالی) پاتيږي، خو که په لڅه لمونځ وکړي نو ډېر فرضونه پاتيږي، د مثال په توګه د عورت پټوالي، قيام، رکوع او سجود، ځکه چي لڅ سړی په ناستي په اشاره سره لمونځ کوي، نو د عورت سره سره به قيام، رکوع او سجود هم پاته سي، او دا خبره ښکاره ده چي يو فرض پرېښوول بهتر دي په نسبت سره د ډېرو فرضونو پرېښوولو ته، نو په دې وجه به په دغه ګنده کالو کي لمونځ کول واجب وي.

او د شيخينو رَحِمَهُمَا الله په نېز هغه ته اختيار دی که په لڅه لمونځ کوي او که په دغه ګنده کالو کي لمونځ کوي، خو په دغه ګنده کالو کي لمونځ کول غوره (افضله) دي.

**د شيخينو رَحِمَهُمَا الله دليل:** دا دی چي دلته واقعي دوې خرابيانې جمع سوي دي، او دا دواړه خرابيانې د لمانځه په منع کېدلو او مقدار (اندازه) کي سره برابري دي، د لمانځه په منع کېدلو کي د برابرېدلو مطلب دا دی چي که د انسان سره نور کالي وي يا د ګندګي ليري کول ممکن وي نو په دې صورت کي نه په لڅه لمونځ کول جائز دي او نه په دې ګنده کالو کي، او په مقدار کي د برابرېدلو مطلب دی چي څرنګه د عورت په لڅېدلو کي لږ اندازه لڅېدل معاف دي، همدارنګه په نجاست کي هم لږ اندازه معاف ده، او د دواړو ډېره اندازه معاف نه ده، نو ګواکي دواړه خرابيانې په مقدار (اندازه) کي هم سره برابري سوې، نو کله چي دواړه خرابيانې په منع او مقدار کي برابري دي، نو د لمانځه په حکم کي به هم دواړه برابري وي، او دا سړی ته به اختيار وي که په لڅه لمونځ کوي يا يې په دغه ګنده کالو کي کوي، په هر صورت کي به د هغه لمونځ صحيح وي.

**د امام محمد د دليل جواب:** امام محمد چي کوم دا خبره کوي چي په لڅه لمونځ کولو سره ډېر فرائض پاتيږي، د دې جواب دا دی چي د يو شي په داسي طريقه سره پرېښوول چي د هغه خليفه (نائب) او بدل موجود وي، نو هغه ته

پربنوول نه وړل کیږي، او په دې مسئله کې هم د پربنوولو و نائب سته، یعني که په لځه باندي لمونځ کونکی قیامه (ولاړه) او نور پرېږدي نو هغه د قیامي پر نائب یعني پر ایماء او اشاره عمل کوي، نو ځکه دلته هم صرف د یو فرض پربنوول دي نه د ډېرو فرضونو. او که ووېل سي چي په لځه د لمونځ کولو په مقابله کې په دغه کالو کې لمونځ کول ولي افضل دي؟، نو جواب دا دی چي ستر یعني عورت پټول د لمانځه سره خاص نه دي، بلکي د لمانځه او له لمانځه څخه ماسوا په نورو حالتونو کي هم واجب دي، او طهارت تر لمانځه پوري خاص دی، لنهه دا چي د عورت د پټولو فرض زیات قوي دی په نسبت سره د طهارت و فرضیت ته، نو ځکه موږ ووېل چي په لځه له لمونځ کولو څخه په دغه ګنده کالو کي لمونځ کول غوره او افضله دي.

**راجح قول:** په پورتنۍ مسئله کي راجح قول د شیخینو دی، وقال العلامة علاء الدین الحصكفي رَحِمَهُ الله (او أقل من ربعه طاهر ندب صلوته فيه) وجاز الايماء كما مر وحتم محمد رَحِمَهُ الله لبسه واستحسنه في الاسرار وبه قالت الثلاثة. (الدر المختار ج۱، ص:۳۰۳). [القول الراجح، ج:۱، ص:۶۸]

## د لڅوالي په حالت کي د لمونځ کولو حکم

وَمَنْ لَمْ يَجِدْ ثَوْبًا او څوک چي کالي پیدا نه کړي صَلَّى عُرْيَانًا قَاعِدًا (نو) هغه دې په لځه لمونځ وکړي په ناستي سره يُوْمِئُ بِالرُّكُوْعِ وَالسُّجُوْدِ (او) په اشاره سره دي رکوع او سجده کوي هَكَذَا فَعَلَهُ أَصْحَابُ رَسُوْلِ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ* ځکه د رسول الله صحابه وو هم داسي کړي دي فَإِنْ صَلَّى قَائِمًا أَجْزَأَهُ لیکن که په ولاړي یې لمونځ وکړی نو دا هم جائز دي لِأَنَّ فِي الْقُعُوْدِ سَتْرُ الْعَوْرَةِ الْغَلِيْظَةِ ځکه په ناسته کي د عورت غلیظه پرده ده وَفِي الْقِيَامِ أَدَاءُ هٰذِهِ الْأَرْكَانِ او په ولاړه کي د لمانځه د ارکانو اداء کول دي فَيَمِيْلُ إِلٰى أَيِّهِمَا شَاءَ نو په دواړو طرفونو کي چي یې کوم طرف خوښن وي هغه دي اختیار کړي إِلَّا أَنَّ الْأَوَّلَ أَفْضَلُ خو دا چي لومړی صورت غوره دی لِأَنَّ السَّتْرَ وَجَبَ لِحَقِّ الصَّلَاةِ وَحَقِّ النَّاسِ ځکه چي پټول د عورت د لمانځه او خلکو دواړو په حق کي واجب دي وَلِأَنَّهُ لَا خَلَفَ لَهُ او په دې وجه (هم) چي د عورت پټولو هیڅ خلیفه (بدل) نسته وَالْإِيْمَاءُ خَلَفٌ عَنِ الْأَرْكَانِ او اشاره د ارکانو خلیفه دی.

**اللغات:** ﴿يُوْمِئُ﴾ د افعال له باب څخه د مضارع صیغه ده: اشاره کول. ﴿يَمِيْلُ﴾ اختیارول، مائل کېدل، راغب کېدل.

**تشریح:** صورت د مسئلې: دا دی که د یو سړي سره بالکل کالي نه وه، یعني نه پاک کالي ور سره وه، او نه ناپاک، نو په دې صورت کي د ده لپاره حکم دا دی چي په ناسته دي لمونځ وکړي، او په اشاره سره دي رکوع او سجده کوي، ځکه صحابه وو رَضِيَ اللهُ عَنْهُمْ به په دې وخت کي همداسي کوله. صاحب د عنایه رَحِمَهُ الله د حضرت انس ابن مالک رضي الله عنه په حواله سره لیکلي دي: إن أصحاب رسول الله صلى الله عليه وسلم ركبوا في سفينة فانكسرت بهم السفينة فخرجوا من البحر عراة فصلوا قعودا، (یعني یو وار صحابه وو (رَضِيَ اللهُ عَنْهُمْ) په کښتۍ کي سفر کوی، لیکن کښتۍ ماته سوه، صحابه (رَضِيَ اللهُ عَنْهُمْ) له سمندر څخه د لڅوالي په حالت کي را ووتل او په دغه حالت کي یې په ناسته لمونځ وکړی)، له دې څخه معلومیږي

* اثر: دي ته نژدې اثر دا دی: عن قتادة، قال إذا خرج الناس من البحر عراة فأمهم أحدهم صلوا قعودا، وكان امامهم معهم في الصف ويومئون ايماء، مصنف عبد الرزاق، باب صلوة العريان، ج:۲، ص:۵۸۴، رقم:۴۵۶۵ .

چې په داسې وخت کې په لڅه لمونځ کول صحيح دي، ځکه چې دا قول له حضرت انس بن مالک رضي الله عنه څخه روايت سوی دی، او بل چا دې خلاف نه دې کړی، نو ځکه به دا قول د اجماع په درجه کې وي، او اجماع د شريعت له اصولو څخه يو اصل دی، او پر اجماع عمل کول واجب دي. (منايه ج:۱، ص:۲۷۱)

فإن صلى قائما الخ د دې حاصل دا دی چې که د لڅوالي په حالت کې يې د ناستې پر ځای په ولاړه لمونځ وکړی، نو دا هم جائز او صحيح دي، ځکه څرنګه چې د ناستې په لمونځ کولو کې د عورت غليظه يعني د شرمګاه (شرم ځای) پټېدل سته، نو په ولاړه لمونځ کولو کې د لمانځه د ارکانو يعني د رکوع او سجدو اداء کول سته. لهذا کله چې په ناسته لمونځ جائز دی، نو په ولاړه به هم لمونځ جائز وي، لېکن په ناستې سره لمونځ کول د ولاړې په نسبت زيات فضيلت لري، ځکه چې پرده (ستر) کول د لمانځه حق هم دی او د خلکو حق هم دی، لېکن پاکي حاصلول صرف د لمانځه حق دی، او بيا د پردې پرېښوولو هيڅ خليفه نسته، لېکن د ارکانو پرېښوولو خليفه او بدل سته چې هغه ايماء (يعني اشاره کول) دي، نو ځکه د پردې پرېښوولو په مقابله کې د ارکانو پرېښوول زيات قوي دي، ځکه چې قاعده ده: "ترك إلى خلف" د "ترك لا إلى خلف" په مقابله کې غوره دی، نو ځکه به د ناستې په حالت کې لمونځ کول د ولاړې په حالت کې تر لمونځ کولو زيات غوره او افضله وي.

## په لمانځه کې د نيت حيثيت او د نيت ځای او طريقه

قَالَ: وَيَنْوِي الصَّلَاةَ الَّتِي يَدْخُلُ فِيهَا بِنِيَّةٍ فرمايي: او په کوم لمانځه کې چې لمونځ کونکی داخلېږي د هغه لپاره به نيت داسې کوي لَا يَفْصِلُ بَيْنَهَا وَبَيْنَ التَّحْرِيمَةِ بِعَمَلٍ چې د تکبير تحريمه او لمانځه په مينځ کې په بل عمل سره فصل (بېلتون) نه وکړي وَالْأَصْلُ فِيهِ قَوْلُهُ عَلَيْهِ الصَّلَاةُ وَالسَّلَامُ ● :إِنَّمَا الْأَعْمَالُ بِالنِّيَّاتِ او په دې لړه د نبي ﷺ دا قول اصل دی: "چې دارومدار (او انحصار) د عملونو پر نيت باندې دی" وَلِأَنَّ ابْتِدَاءَ الصَّلَاةِ بِالْقِيَامِ او په دې وجه هم چې د لمانځه شروع په ولاړې کېږي وَهُوَ مُتَرَدِّدٌ بَيْنَ الْعَادَةِ وَالْعِبَادَةِ او ولاړه د عادت او عبادت په مينځ کې واقعه ده وَلَا يَقَعُ التَّمْيِيزُ إِلَّا بِالنِّيَّةِ نو فرق نه راځي مګر په نيت سره وَالْمُتَقَدِّمُ عَلَى التَّكْبِيرِ كَالْقَائِمِ عِنْدَهُ او هغه نيت کوم چې تر تکبير تحريمه مخکې وي د هغه نيت په شان دی کوم چې د تکبير تحريمه په وخت کې وي إِذَا لَمْ يُوجَدْ مَا يَقْطَعُهُ په دې شرط چې (په مينځ کې) يو داسې عمل پيدا نه سي چې نيت قطع کړي (پرېکړي) وَهُوَ عَمَلٌ لَا يَلِيقُ بِالصَّلَاةِ او هغه داسې عمل دی چې د لمانځه سره مناسب نه وي وَلَا مُعْتَبَرَ بِالْمُتَأَخِّرَةِ مِنْهَا عَنْهُ او د هغه نيت اعتبار نسته کوم چې تر تکبير تحريمه وروسته وي لِأَنَّ مَا مَضَى لَا يَقَعُ عِبَادَةً لِعَدَمِ النِّيَّةِ ځکه کوم عمل چې تر نيت مخکې تېر وي هغه د نيت د نشتوالي په وجه عبادت نه سي کېدلای وَفِي الصَّوْمِ جُوِّزَتْ لِلضَّرُورَةِ او په روژه کې د ضرورت په وجه جائز سوی دی وَالنِّيَّةُ هِيَ الْإِرَادَةُ او نيت ارادې ته ويل کېږي وَالشَّرْطُ أَنْ يَعْلَمَ بِقَلْبِهِ أَيَّ صَلَاةٍ يُصَلِّي او د نيت شرط دا دی چې انسان به په خپل زړه سره (دا) پېژني چې هغه کوم لمونځ کوي أَمَّا الذِّكْرُ بِاللِّسَانِ فَلَا مُعْتَبَرَ بِهِ هر چې په ژبه

● تخريج: أخرجه ائمة الستة، بخاري في كتاب كيف كان بدء الوحي، حديث رقم:۱.

نيت كول دي نو د هغه يو (خاص) اعتبار نسته وَيَحْسُنُ ذٰلِكَ لِاجْتِمَاعِ عَزِيْمَتِهِ او په خوله باندې نيت كول ښه دي د هغه د عزم (ارادې) د جمع كېدلو په وجه (يعني كه د زړه سره سره په خوله هم نيت وكړي نو دا ښه دي ځكه چې په دې سره د زړه اراده او د ژبې وينا دواړه سره جمع سي او خبره نوره پخه سي) ثُمَّ إِنْ كَانَتِ الصَّلَاةُ نَفْلًا يَكْفِيْهِ مُطْلَقُ النِّيَّةِ (او) بيا كه دا نفلي لمونځ وو نو مطلق نيت كول كافي دي وَكَذَا إِذَا كَانَتْ سُنَّةً فِي الصَّحِيْحِ او كه سنت لمونځ وو نو د صحيح قول مطابق هم دغه حكم دى وَإِنْ كَانَتْ فَرْضًا فَلَا بُدَّ مِنْ تَعْيِيْنِ الْفَرْضِ او كه فرضي لمونځ وو نو د فرضو معلومول ضروري (يعني وخت به يې معلوموي) كَالظُّهْرِ مَثَلًا د مثال په توګه لكه د ماپښين لمونځ لِاخْتِلَافِ الْفُرُوْضِ ځكه چې فرضونه مختلف دي وَإِنْ كَانَ مُقْتَدِيًا بِغَيْرِهِ او كه لمونځ كونكى په امام پسې اقتداء كونكى وو يَنْوِي الصَّلَاةَ وَمُتَابَعَتَهُ نو هغه به د لمانځه نيت هم كوي او د امام د تابعدارۍ نيت به هم كوي لِأَنَّهُ يَلْزَمُهُ فَسَادُ الصَّلَاةِ مِنْ جِهَتِهِ ځكه چې پر مقتدي د امام له طرفه د لمانځه فساد راځي (يعني كه د امام لمونځ فاسد سو نو د مقتدي لمونځ به هم فاسديږي) فَلَا بُدَّ مِنَ الْتِزَامِهِ نو د امام متابعت پر ځان لازمول ضروري دي.

**اللغات:** ﴿يَتَرَدَّدُ﴾ واقع، دائر، غيريقينيږ، ﴿يَلِيْقُ﴾ د ضرب د باب مضارع صيغه ده: مطابق كېدل، لائق كېدل، ﴿عَزِيْمَة﴾ عزم، پخه اراده.

**تشريح:** كله چې صاحب د كتاب رَحِمَهُ الله د لمانځه له شرطونو او نورو تفصيلاتو څخه فارغ سو، نو اوس په نيت او د نيت په متعلقاتو شروع كوي، فرمايي: لمونځ ګذاره چې په كوم لمانځه كي داخليږي نو هغه ته پكار دي چې د دغه لمانځه نيت وكړي، او نيت دي په داسي طريقه وكړي چې د تكبيرِ تحريمه سره متصل (جوخت) وي، او چې د نيت او تكبيرِ تحريمه په مينځ كي په هيڅ شي سر فصل رانه سي.

**نقلي دليل:** د نيت د شرط او ضروري كېدلو لپاره نقلي دليل د نبي ﷺ دا فرمان دى: إنما الأعمال بالنيات. (يعني د عملونو دارو مدار (او انحصار) پر نيت دى)، او څرنګه چې لمونځ هم يو عمل دى (بلكي د اعمالو اصل دى) نو ځكه به د دې مدار هم پر نيت وي، كه نيت سوى وو نو دا عمل به معتبره وي، كنې نه به وي.

**عقلي دليل:** د نيت د شرط كېدلو عقلي دليل دا دى چې د لمانځه شروع له قيامي (ولاړې) څخه كيږي او قيامه د عادت او عبادت په مينځ كي واقع ده، يعني انسان د عادت په توګه هم دريږي او د عبادت لپاره هم دريږي، نو د عادت او د عبادت د ولاړي په مينځ كي فرق ضروري دى، او دا فرق صرف په نيت سره حاصلېداى سي، نو په دې وجه به هم د لمانځه لپاره نيت شرط او ضروري وي.

والمتقدم على التكبير الخ له دې ځايه دا رابښيي چې په نيت كي اصل دا دى چې د تكبير تحريمه سره جوخت (متصل) وي، يعني تر نيت كولو وروسته دي فوراً الله اكبر ووېل سي او لمونځ دي شروع كړى سي، لېكن كه يو سړي تر تكبير تحريمه مخكي نيت وكړى او له يو څه ځنډ (وقفې) څخه وروسته يې تكبير تحريمه وتړل، نو اوس به دا كتل كيږي چې د تكبير تحريمه او نيت په مينځ كي د لمانځه يو منافي (مخالف) عمل راغلى دى، كه نه؟ نو كه د نيت او تكبير تحريمه په مينځ كي د لمانځه يو مخالف عمل د مثال په توګه خوراك څښاك، خبري اتري او داسي نور راغلي نه وي، نو د دې نيت اعتبار به كيږي او دويم وار نيت كولو ضرورت نسته، لېكن كه د دواړو په مينځ كي د لمانځه يو منافي عمل

واقع سوی وي نو بیا به اول نیت داسي وي لکه ګردسره چي سوی نه وي، لهذا د تکبیر تحریمه په وخت کي به بل نوی نیت کوي.
او که یو سړی تر تکبیر تحریمه وروسته نیت وکړي نو بیا مطلقاً د هغه د نیت اعتبار نسته، او کله چي یې د نیت اعتبار نسته، نو د لمانځه به خاوري اعتبار وسي، ځکه کله چي چا تر تکبیر تحریمه وروسته نیت وکړی نو ښکاره ده چي تر نیت مخکي چي کوم عمل وسو، هغه به د نیت د نشتوالي په وجه سره عبادت نه وي او څرنګه چي په عبادت کي وروستني اعمال پر مخکني اعمالو باندي مبني دي، نو کله چي مخکني اعمال عبادت نه سوه، نو وروستني اعمال به هم عبادت نه وي، او په دې توګه به پوره لمونځ بېکاره سي.
د دې په خلاف روژه ده، نو که یو سړی په روژه کي د پېشلمي په وخت کي نیت نه وکړي بلکي سهار نیت وکړي نو د هغه د نیت اعتبار به کیږي او روژه به یې صحیح وي، ځکه چي د پېشلمي وخت د خوب او د غفلت وخت دی، نو که په دغه وخت کي نیت شرط او لازمي وګرځول سي نو خلک به په حرج او تکلیف کي مبتلا سي، نو د ضرورت پر بنیادت او د حرج لیري کولو لپاره په روژه کي له شروع څخه نیت ضروري نه وګرځول سو، او د دې په مقابله کي د لمانځه مسئله ده نو لمونځ خو د بیداری او تیاری په حالت کي اداء کیږي (یعني له مخکي څخه لا انسان ور ته چمتو وي)، نو په لمانځه کي له اول وخت او شروع څخه په نیت ضروري ګرځولو کي هیڅ حرج او ستونزه نسته، او بیا لمونځ په لږ غوندي وخت کي اداء کیږي، او په لمانځه کي د عادتاً ولاړي سره د مشابهت احتمال هم سته، نو په دې وجه هم د لمانځه له شروع څخه نیت شرط او ضروري دی.

والنية هي الخ فرمایي چي د قصد او ارادې دویم نوم نیت دی، او د نیت شرط دا دی چي لمونځ کونکی به خپل زړه سره دا پېژني چي هغه کوم لمونځ کوي، او که یو شوک له ده څخه پوښتنه وکړي چي تا کوم لمونځ وکړی، نو پر ته له څه ځنډ او تردده به د ده لپاره په اسانۍ سره جواب ورکول ممکن وي.

الذکر باللسان یاته سو په ژبه باندي د نیت کولو څه خاص ضرورت نسته، لېکن که په ژبه سره نیت وسي نو ښه دی، ځکه چي په دې توګه د زړه عزم او د ژبي وینا دواړه سره جمع کیږي او په نیت کي نور قوت پیدا سي.

ثم إن کانت الصلاة الخ له دې ځایه د نیت د کیفیت بیان کوي، لنډیز یې دا دی: لمونځ ګزاره چي په کوم لمانځه شروع کوي هغه به یا فرض وي یا به غیر فرض، که غیر فرض وو نو په هغه کي مطلق نیت کول کافي دي، هغه که نفل وي او که سنت، صحیح قول هم دا دی، ځکه نیت په عادت او عبادت کي د فرق لپاره وي، او دا مقصد په مطلق نیت سره حاصلیږي، نو مطلق نیت به کافي وي، او د بعضو رایه دا ده چي که سنت کوي نو د رسول الله ﷺ د سنتو نیت کول ضروري دي، مګر مخکنی قول صحیح دی، ځکه چي کله صرف مطلق سنت وویل سي نو له هغه څخه د نبي کریم ﷺ سنت مراد دي، او بل دا چي که هغه لمونځ فرض وو نو په دې کي هم دوه صورتونه دي: یو دا چي یوازي (انفراداً) به یې کوي، یا به یې په امام پسې کوي، نو که سړی یوازي وو نو د لمانځه معلومول ضروري دي د مثال په توګه که د ماپښین لمونځ شروع کوي نو د ماپښین معلومول ضروري دي، صرف دومره ویل کافي نه دي: چي ما د فرضو نیت وکړی، ځکه چي فرضونه ډېر او مختلف دي، نو په دې کي فرق کول پکار دي، او که فرض لمونځ په امام پسي کوي نو د پورتني نیت سره سره به د امام د تابعداری او اقتداء نیت هم کوي ځکه چي د اقتداء کولو په صورت کي د مقتدي پوره لمونځ د امام د لمانځه تابع کیږي، همدا وجه ده که د امام لمونځ فاسد سي نو د مقتدي لمونځ هم فاسدیږي، نو په دې وجه د امام د تابعداری او د اقتداء نیت کول د مقتدي لپاره شرط او ضروري دی.

## په لمانځه کې مخ پر قبله دربدل

قَالَ: وَيَسْتَقْبِلُ الْقِبْلَةَ او لمونځ گزاره به مخ (هم) د قبلې و طرف ته کوي لِقَوْلِهِ تَعَالَىٰ ځکه الله تعالیٰ فرمايلي دي فَوَلُّوا وُجُوهَكُمْ شَطْرَهُ [سورة البقرة:۱۴۴] تاسو خپل مخونه د مسجدِ حرام وطرف ته واړوئ! ثُمَّ مَنْ كَانَ بِمَكَّةَ بيا که يو څوک په مکه کې وو فَفَرْضُهُ إِصَابَةُ عَيْنِهَا نو د هغه لپاره فرض دا دي چې خاص کعبې ته مخ کړي وَمَنْ كَانَ غَائِبًا او که څوک له کعبې څخه ليرې (يا دباندې) وو فَفَرْضُهُ إِصَابَةُ جِهَتِهَا نو د هغه لپاره فرض دا دي چې د کعبې و طرف (جهت) ته مخ کړي هُوَ الصَّحِيحُ همدا قول صحيح دی لِأَنَّ التَّكْلِيفَ بِحَسْبِ الْوُسْعِ ځکه چې مکلف کېدل دوس مطابق دي.

**اللغات:** ﴿فَوَلُّوا﴾ د تفعيل د باب جمع مذکر امر حاضر صيغه ده: مخ کرځول، مخ اړول. ﴿وُسْع﴾ وس، طاقت.

**تشريح:** د لمانځه له شرطونو څخه يو شرط دا هم دی چې لمونځ کونکې به مخ د قبلې و طرف ته کوي، دليل د الله تعالیٰ دا قول دی: فَوَلُّوا وُجُوهَكُمْ شَطْرَهُ، أي شطر المسجد الحرام ، په دې آيت سره دليل په دې توګه نيول کيږي چې مخکې الله فرمايلي وو: فَلَنُوَلِّيَنَّكَ قِبْلَةً تَرْضَاهَا، (مونږ به تاسو هرومرو (خامخا) هغې قبلې ته وګرځوو چې تاسو يې خوښوئ)، تر دې وروسته د مسجدِ حرام و طرف ته د مخ اړولو حکم وسو، بيا د لمانځه دوه صورتونه دي يا به انسان په مکه مکرمه کې لمونځ اداء کوي يا به يې له مکې مکرمې څخه دباندې بل ځای اداء کوي، نو په اول صورت کې خاص د کعبې و طرف ته مخ کول فرض دي، ځکه کله چې به نبي ﷺ په مسجد حرام کې لمونځ کوی، نو خاص د کعبې و طرف ته به متوجه کېدی، همدغه معمول د صحابه وُ او تابعينو وو، ګواکې پر دې اجماع ده، او په دويم صورت کې د کعبې و جهت ته، يعنې د مسجدِ حرام و طرف ته مخ کول فرض دي، دليل دا دی چې څه وخت نبي ﷺ او مسلمانان په مدينه کې وه نو الله تعالیٰ دوی ته د مسجدِ حرام و طرف ته د مخ کولو حکم وکړی، نه د کعبې و طرف ته، نو له دې څخه ښکاره سوه چې کوم خلک له مکې څخه دباندې او ليرې وي، د هغو لپاره خاص کعبه قبله جوړول لازم نه دي، ځکه چې الله تعالیٰ خپل بندګان د خپل طاقت مطابق مکلف کرځولي دي، فرمايي: لَا يُكَلِّفُ اللَّهُ نَفْسًا إِلَّا وُسْعَهَا (سورة البقرة: ۲۸۶).

## د بيرې په حالت کې مخ پر قبله دربدل

وَمَنْ كَانَ خَائِفًا او کوم سړی چې په بيره کې وو يُصَلِّي إِلَىٰ أَيِّ جِهَةٍ قَدَرَ هغه چې پر کوم طرف هم قدرت پيدا کړي (پر هغه طرف دي) لمونځ کوي لِتَحَقُّقِ الْعُذْرِ ځکه چې عذر ثابت سو فَأَشْبَهَ حَالَةَ الْإِشْتِبَاهِ نو دا د اشتباه (او شک) د حالت سره مشابه سو.

**اللغات:** ﴿خَائِف﴾ د فتح اسم فاعل دی: بېرېدونکی.

**تشريح:** صورت د مسئلې: دا دی چې په لمانځه کې مخ پر قبله دربدل ضروري دي، لېکن څرنګه چې د عذر په وجه د پر شرطونه ساقطيږي، همدارنګه د عذر په وجه د مخ پر قبله دربدلو شرط هم ساقطيږي، نو که يو څوک له يو دښمن يا درنده څخه د ځاني يا مالي تلفاتو په هکله بېرېدی، نو په دې صورت کې د هغه لپاره مخ د قبلې و طرف ته کول ضروري نه دی، بلکې حکم دا دی چې پر کوم طرف هم د لمانځه پر کولو قدرت لري هغه طرف ته دې مخ کړي لمونځ دې وکړي، ځکه چې د بيرې په وجه دده په حق کې هم عذر ثابت سو، نو د عذر په وجه دا شرط ساقط سو.

او دا صورت د اشتباه او شک د حالت سره مشابه دی، يعني چې څرنګه قبله مشتبه سي او سړی په شک کي وي چې قبله په کوم طرف ته وي نو په دې وخت کي سړي ته پکار دي چې غور او فکر وکړي او تر فکر وروسته چې يې پر کوم طرف غالب ګومان سي پر هغه طرف دي لمونځ وکړي، نو هغه د ده په حق کي قبله شمارل کيږي، همدارنګه په پورتني صورت کي چې لمونځ کونکی پر هر طرف قدرت پيدا کړي، هغه د ده په حق کي قبله شمارل کيږي.

## چي کله قبله شکمنه سي نو د اجتهاد حکم

فَإِنِ اشْتَبَهَتْ عَلَيْهِ الْقِبْلَةُ نو که پر لمونځ کونکي قبله مشتبه سوه وَلَيْسَ بِحَضْرَتِهِ مَنْ يَسْأَلُهُ عَنْهَا او حال دا چې ده ته نژدې داسي څوک هم نه وو چې له هغه څخه د قبلې په باره کي پوښتنه وکړي اِجْتَهَدَ نو لمونځ کونکي دې اجتهاد وکړي لِأَنَّ الصَّحَابَةَ رَضِيَ اللهُ عَنْهُم • تَحَرَّوْا وَصَلَّوْا ځکه چې صحابه وو تحری (غور او فکر) وکړی او لمونځ يې وکړی وَلَمْ يُنْكِرْ عَلَيْهِمْ رَسُولُ اللهِ عَلَيْهِ الصَّلَاةُ وَالسَّلَامُ او نبي ﷺ پر دوی هيڅ انکار نه وکړی وَلِأَنَّ الْعَمَلَ بِالدَّلِيلِ الظَّاهِرِ وَاجِبٌ عِنْدَ انْعِدَامِ دَلِيلٍ فَوْقَهُ او په دې وجه (هم) چې هغه وخت پر ښکاره دليل عمل واجب دی چې کله تر هغه لوړ (او غټ) دليل نه وي وَالْإِسْتِخْبَارُ فَوْقَ التَّحَرِّي او (له سړي څخه د قبلې په باره کي) معلومول له تحری څخه لوړ دي.

**اللغات:** ﴿حضرة﴾ موجودوالی، شتون. ﴿تحرّوا﴾ د تفعل د باب ماضي صيغه ده: غور او فکر کول، طلب کول محنت کول.

﴿استخبار﴾ د استفعال د باب مصدر دی: پوښتنه کول، خبر لټول.

**تشريح:** صورت د مسئلې: دا دی که پر يو سړي د قبلې طرف شکمن سو، او داسي څوک هم ور سره نه وو چې هغه ته د قبلې خبر وي، او له هغه څخه پوښتنه وکړي، نو دې سړي لپاره تحري (اجتهاد، غور او فکر) پکار دی، نو کوم طرف ته چې يې غالب ګومان راسي پر هغه طرف دي لمونځ وکړي.

مصنف رَحِمَهُ الله فرمايي: وليس بحضرته من يسأله عنها، نو له دې څخه معلومه سوه چې که يو داسي سړی وو چې له هغه څخه د قبلې په اړه پوښتنه وسي، نو په دې صورت کي به تحری جائز نه وي، او فرمايي: اجتهد، له دې څخه معلومه سوه چې له تحری (اجتهاد) څخه ماسوا لمونځ نه کيږي.

**دليل:** د تحری د جواز لپاره دليل دا دی چې يو وار پر صحابه کرامو رَضِيَ اللهُ عَنْهُمْ قبله شکمنه سوه، نو هغوی تحری وکړه، او لمونځ يې وکړی، بيا يې دا واقعه رسول الله ﷺ ته بيان کړه، نبي ﷺ له دې څخه هيڅ انکار نه وکړی، او که داسي سړی وو چې له هغه څخه پوښتنه وسي نو د ده لپاره تحري جائز نه ده ځکه چې پر ښکاره دليل په هغه وخت کي عمل واجبيږي چې له هغه څخه لوړ بل دليل نه وي او له سړي څخه پوښتنه کول او قبله معلومول له تحري څخه لوړ او غټ دليل دی، نو تر څو چې معلومول ممکن وي تر هغه وخته تحري کول جائز نه دي.

## که تر لمانځه وروسته معلومه سي چې قبله پر دې طرف نه وه، نو څه حکم دی؟

فَإِنْ عَلِمَ أَنَّهُ أَخْطَأَ بَعْدَ مَا صَلَّى او که (لمونځ کونکي ته) تر لمانځه وروسته معلومه سوه چې هغه غلط سوی دی لَا يُعِيدُهَا نو لمونځ به نه راګرځوي وَقَالَ الشَّافِعِيُّ رَحِمَهُ اللهُ: يُعِيدُهَا إِذَا اسْتَدْبَرَ او امام شافعي فرمايي: که يې (په لمانځه کي) قبلې ته شا کړې وه نو لمونځ به را ګرځوي لِتَيَقُّنِهِ بِالْخَطَاءِ ځکه چې هغه ته د غلطۍ يقين وسو وَنَحْنُ

---

• تخريج: أخرجه ابن ماجه في كتاب اقامة الصلوٰة، باب من يصلي لغير القبلة، حديث رقم: ۱۰۲۰.

نَقُوْلُ: لَيْسَ فِيْ وُسْعِهِ إِلَّا التَّوَجُّهُ إِلَىٰ جِهَةِ التَّحَرِّيْ او موږ وايو: چې د ده په وس کې صرف د تحري (اجتهاد) و طرف ته متوجه کېدل وو وَالتَّكْلِيْفُ مُقَيَّدٌ بِالْوُسْعِ او مکلف والی د وس مطابق دی.

**اللغات:** ﴿اِسْتَدْبَرَ﴾ شا کول، ﴿تَيَقُّن﴾ د تفعّل د باب مصدر دی: يقيني کېدل، قطعي کېدل.

**تشريح: صورت د مسئلې:** دا دی چې که پر يو سړي قبله شکمنه سوه او هغه د قبلې معلومولو لپاره تحري (غور او فکر) وکړی او لمونځ يې وکړی، تر لمانځه وروسته ورته معلومه سوه چې له قبلې څخه ماسوا يې بل طرف ته لمونځ کړی وو، نو په دې صورت کې پر هغه لمونځ راګرځول ضروري نه دي، ځکه په داسې وخت کې شرعي قبله هغه طرف ته ده کوم طرف چې په تحری سره معلوم سوی وي، نو ګواکې هغه د شريعت مطابق لمونځ وکړی.

وقال الشافعي الخ امام شافعي فرمايي: که يو څوک په تحری سره لمونځ کړی وو او وروسته ورته معلومه سوه چې د قبلې طرف ته يې شا وه، نو د لمونځ راګرځول پر واجب دي، ځکه چې په دې صورت کې غلطي په يقين سره ثابته سوه.

**زموږ جواب:** دا دی چې د ده په وس کې له دې څخه ماسوا بل څه نه وو، او تکليف به د وس په اندازه وي، نو څومره چې د ده وس وو هغسې يې وکړه، نو ځکه به پر هغه د لمانځه راګرځول واجب نه وي.

## که د لمانځه په دوران کې معلومه سي چې قبله بلې خوا ته ده نو څه حکم دی؟

وَإِنْ عَلِمَ ذٰلِكَ فِي الصَّلٰوةِ اِسْتَدَارَ إِلَى الْقِبْلَةِ او که لمونځ ګزاره د لمانځه په دوران کې د قبلې په غلطېدلو پوه سو نو د قبلې و طرف ته دي وګرځېږي (او پر هغه لمانځه دې بناء وکړي) لِأَنَّ أَهْلَ قُبَاءَ لَمَّا سَمِعُوْا بِتَحَوُّلِ الْقِبْلَةِ ځکه کله چې د قباء خلکو د تحويلِ قبله (قبلې اوښتولو) خبر واورېدی اِسْتَدَارُوْا كَهَيْئَتِهِمْ فِي الصَّلٰوةِ نو هغوی چې په لمانځه کې پر کوم حالت وو پر هغه حالت (د قبلې وطرف ته) وګرځېدل وَاسْتَحْسَنَهَا النَّبِيُّ ﷺ[1] او نبي ﷺ دا طريقه ښه وګڼله وَكَذَا إِذَا تَحَوَّلَ رَأْيُهُ إِلَىٰ جِهَةٍ أُخْرَىٰ تَوَجَّهَ إِلَيْهَا همدارنګه که د هغه رايه بل طرته واوښتل نو هغه طرف ته دي وګرځېږي لِوُجُوْبِ الْعَمَلِ بِالْاِجْتِهَادِ فِيْمَا يَسْتَقْبِلُ ځکه چې په را روان (پاته) لمانځه کې پر هغه د اجتهاد (او تحری) مطابق لمونځ کول واجب دي مِنْ غَيْرِ نَقْضِ الْمُؤَدّٰى قَبْلَهُ د هغه حصې له فاسدولو څخه بغير چې مخکې يې کړې وي.

**اللغات:** ﴿اِسْتَدَارَ﴾ د استفعال د باب ماضي صيغه ده: ګرځېدل، ﴿تَحَوُّل﴾ د تفعّل د باب مصدر دی: اوښتل، ګرځېدل. ﴿مُؤَدّٰى﴾ د تفعيل د باب اسم مفعول دی: هغه چې اداء کړی سوی وي.

**تشريح: مسئله:** دا ده که يو سړي په تحري سره لمونځ شروع کړی وو، او هغه ته د لمانځه په جريان کې معلومه سوه چې د قبلې په طرف کې خطا سوی دي، نو هغه دي د لمانځه په جريان کې د قبلې و طرف ته وګرځېږي، دليل دا دی چې کله د قباء خلکو ته په لمانځه کې دا معلومه سوه چې قبله بدله سوه، يعني د بيت المقدس پر ځای د کعبې شريفې و طرف ته د مخ ګرځولو حکم وسو، نو دوی په هغه لمانځه کې د رکوع په حالت کې د قبلې و طرف ته وګرځېدل، بيا چې کله نبي ﷺ په دې خبر سو، نو نبي ﷺ د دوی تعريف وکړی، او انکار يې نه وکړی.

وکذا إذا تحوّل الخ همدا حکم په هغه صورت کې دی چې کله د انسان رايه په لمانځه کې بل طرف ته بدله سي يعني بل ته طرف ته يې رايه پخه سي، نو هغه طرف ته دي وګرځېږي، تر دې چې که په ګرځېدلو کې قصداً يو څه ځنډ وکړی نو لمونځ يې فاسدېږي، ځکه

[1] تخريج: أخرجه البخاري في كتاب الصلوٰة، باب ما جاء في القبلة، حديث رقم: ٤٠٣.

چې د لمانځه په را روانه حصه کې پر ده د اجتهاد مطابق عمل کول واجب دي، بغیر له دې څخه چې هغه حصه ماته کړي کوم چې یې تر دې مخکې اداء کړې ده.

## که د امام او مقتدیانو په تحري کې اختلاف راغلی نو څه حکم دی؟

وَمَنْ أَمَّ قَوْمًا فِي لَيْلَةٍ مُظْلِمَةٍ او که یو سړي په توره شپه کې د یو قوم امامت وکړی فَتَحَرَّى الْقِبْلَةَ وَصَلَّى إِلَى الْمَشْرِقِ نو امام د قبلې تحري وکړه او د مشرق طرف ته یې لمونځ وکړی وَتَحَرَّى مَنْ خَلْفَهُ فَصَلَّى كُلُّ وَاحِدٍ مِنْهُمْ إِلَى جِهَةٍ او د امام شا ته چې کوم خلک دي هغو ټولو هم تحري وکړه وَكُلُّهُمْ خَلْفَهُ او حال دا چې ټوله د امام شا ته وه وَلَا يَعْلَمُونَ مَا صَنَعَ الْإِمَامُ او په دې خبر نه وه چې امام څه وکړه أَجْزَأَهُمْ نو د دوی لمونځ جائز دی لِوُجُودِ التَّوَجُّهِ إِلَى جِهَةِ التَّحَرِّي د تحری و طرف ته د مخ کېدلو په وجه سره وَهَذِهِ الْمُخَالَفَةُ غَيْرُ مَانِعَةٍ كَمَا فِي جَوْفِ الْكَعْبَةِ او دا مخالفت له لمانځه څخه مانع نه دی لکه په کعبه کې دننه لمونځ وَمَنْ عَلِمَ مِنْهُمْ بِحَالِ إِمَامِهِ تَفْسُدُ صَلَاتُهُ او که په دې مقتدیانو کې چا ته د خپل امام حال معلوم سو نو د هغه لمونځ فاسدیږي لِأَنَّهُ اعْتَقَدَ أَنَّ إِمَامَهُ عَلَى الْخَطَإِ ځکه چې هغه د خپل امام د غلطی اعتقاد وکړی وَكَذَا لَوْ كَانَ مُتَقَدِّمًا عَلَى الْإِمَامِ او همدارنګه که هغه تر امام مخکې وو (نو هم د هغه لمونځ فاسدیږي) لِتَرْكِهِ فَرْضَ الْمَقَامِ ځکه چې هغه فرض ځای پرېښووی.

**اللغات:** ﴿أَمَّ﴾ د نصر د باب ماضي صیغه ده: امامت کول، امام جوړېدل، ﴿مُظْلِمَةٍ﴾ تاریکه، تیاره، تورتم.

**تشریح:** **صورت د مسئلې:** دا دی چې که یو امام په توره تیاره کې یو قوم ته امامت ورکړی، او دا امامت که په یو کور کې وو یا په دښت کې وو او داسې سړی نه وو چې له هغه څخه قبله معلومه کړي، نو امام تر تحري وروسته قبله معلومه کړه او د مشرق طرف ته یې لمونځ وکړی او کوم خلک چې د امام شاته وه هغوی هم تحري وکړه، نو له هغوی څخه هر یوه خپل طرف ته لمونځ وکړی، یعني پر کوم طرف چې یې غالب ګومان راغلی هغه طرف ته یې لمونځ وکړی، او حال دا چې دا ټوله د امام شاته وه، یو هم له امام څخه مخته نه وو، او بیا که هغوی په دې خبر وو او که نه وو چې امام څه کوي یعني کوم طرف ته یې مخ دی، خو دومره خبر وو چې امام مخ ته دی، دلته یو اعتراض کېداسی هغه دا چې لمونځ خو د شپې په تیاره دی، نو بیا دا خلک له جهري آواز څخه ولې اندازه نه معلومولي، نو جواب دا دی چې شاید د قضاء لمونځ وي یا جهر ځنې هېر سوی وي یا له اواز څخه صرف دا معلومیږي چې امام مخته دی، او دا نه ورته معلومیږي چې د امام مخ کوم طرف ته دی، یا له دښمن یا ډاکوګانو څخه د بیرې په وجه امام جهر نه کوي، او د اخفاء کوښښ کوي، حاصل دا چې په دې صورت کې د دوی لمونځ جائز دی، ځکه چې د دوی مخ و هغه طرف ته سو کوم چې هر یوه په خپل تحري سره معلوم کړی، او همدا ضروري وه.

وهذه المخالفة الخ او پاته سو دا مخالفت چې د امام مخ یو طرف ته وي او د قوم مخ بل طرف ته وي نو دا د لمانځه له صحت څخه مانع نه دی، لکه په کعبه کې چې دننه د هر یوه مخ جلا جلا طرف ته وي بیا هم لمونځ جائز دی.

ومن علم منهم الخ او په پورتني صورت کې یعني که امام په تیاره کې لمونځ ورکوی، نو که په مقتدیانو کې چا ته د خپل امام حال معلوم سو، نو د هغه لمونځ فاسدیږي، ځکه چې ده خپل طرف صحیح وګڼی او د نورو طرف یې غلط وګڼی، نو په امام پسې یې اقتداء صحیح نه سوه، ځکه چې ده د خپل امام د خطاء کېدلو عقیده وکړه. همدارنګه که څوک له امام سـ ـي وو نو هم یې لمونځ فاسدیږي، ځکه چې ده خپل فرض ځای یعني خپل د درېدلو ځای یې پرېښووی (چې هغه د امام شا ته درېدل دي). والله اعلم بالصواب

# بَابُ صِفَةِ الصَّلَاةِ

## (دا) باب دلمانځه د كيفيت (او حالت په بيان كي) دی

**تشريح:** تر دې مخكي چي څومره بابونه هم صاحب د كتاب د لمانځه په باره كي بيان كړل، هغه ټوله د وسائلو او مقدماتو(سريزو) له قبيلې څخه ول، اوس له دې ځايه مقاصد يعني د لمانځه حالت و كيفيت(څرنګوالی) او داسي نور بياتوي.

صاحب دعنايه رَحِمَهُ الله ليكلي دي چي د لغتپوهانو په نيز وصف او صفة دواړه مترادف الفاظ دي (يعني كه څه هم لفظونه يې جلا دي خو معنیٰ يې يوه ده) او د صفة په آخر كي چي كومه تاء راغلې ده هغه د وصف له واو څخه بدل ده، لكه وعد او عدة چي دواړه مترادف دي، او د عدة تاء د وعد له واو څخه بدل ده.

په عامه توګه صفت هغه وصف ته ويل كيږي چي هغه د موصوف په ذات سره قائم وي، لكه علم، سپينوالی، توروالی او داسي نور(چي دا په انسان سره قائم دی)، د بعضو خلكو رايه دا ده چي: الصفة هي الأمارة اللازمة بذات الموصوف الذي يعرف بها، (يعني صفت د هغه نښي(علامې) نوم دی چي هغه د موصوف د ذات سر لازمه وي او په هغه سره د موصوف پېژندنه كيږي)، او د متكلمينو په نيز وصف د صفت كونكي خبرو ته ويل كيږي، او صفت هغه معنیٰ ته ويل كيږي چي هغه د موصوف په ذات سره قائمه وي، صاحب دعنايه رَحِمَهُ الله ليكلي دي چي له صفت څخه مراد د لمانځه هغه كيفيت او صورت دی چي د لمانځه له اركانو او عوارضو يعني قيام، ركوع او سجود او نورو څخه حاصليږي. (عنايه ج:۱، ص:۲۸۰)

### د لمانځه فرضونه

فَرَائِضُ الصَّلَاةِ سِتَّةٌ: التَّحْرِيمَةُ د لمانځه فرضونه شپږ(۶) دي: (اول فرض) تحريمه (ده) لِقَوْلِهِ تَعَالَى: وَرَبَّكَ فَكَبِّرْ ځكه د الله فرمان دی: د خپل پروردګار لويي بيان كړه وَالْمُرَادُ تَكْبِيرَةُ الِافْتِتَاحِ او له تحريمې څخه مراد د لمانځه د شروع كولو تكبير دی وَالْقِيَامُ لِقَوْلِهِ تَعَالَى: وَقُومُوا لِلّٰهِ قَانِتِينَ [البقرة:۲۳۸] او (بل فرض) قيامه (ولاړه) ده ځكه الله تعالیٰ فرمايلي دي: الله جَلَّ لره د عاجزی او خشوع په حالت كي ودرېږئ! وَالْقِرَاءَةُ لِقَوْلِهِ تَعَالَى فَاقْرَءُوا مَا تَيَسَّرَ مِنَ الْقُرْآنِ [المزمل:۲۰] او (بل فرض) قراءت(دی) ځكه الله تعالیٰ فرمايلي دي: له قرآن څخه چي كوم آسانه وي هغه واياست وَالرُّكُوعُ وَالسُّجُودُ لِقَوْلِهِ تَعَالَى: وَارْكَعُوا وَاسْجُدُوا [الحج:۷۷] او (بل فرض) ركوع او سجده (ده) ځكه د الله تعالیٰ فرمان دی: تاسو ركوع او سجده كوئ! وَالْقَعْدَةُ فِي آخِرِ الصَّلَاةِ مِقْدَارَ التَّشَهُّدِ او (بل فرض) د لمانځه په آخر كي د تشهد په اندازه ناسته (ده) لِقَوْلِهِ عَلَيْهِ الصَّلَاةُ وَالسَّلَامُ لِابْنِ مَسْعُودٍ رَضِيَ اللهُ عَنْهُ • حِينَ عَلَّمَهُ التَّشَهُّدَ ځكه كله چي

• تخريج: أخرجه ابو داؤد في كتاب الصلاة، باب التشهد، حديث رقم: ۹۷۰.

نبي ﷺ حضرت عبد الله ابن مسعود رَضِيَ اللهُ عَنْهُمَا ته تشهد ور وښووی نو نبي ﷺ هغه ته داسي وفرمايل إِذَا قُلْتَ هَذَا أَوْ فَعَلْتَ هَذَا فَقَدْ تَمَّتْ صَلَاتُكَ کله چي ته دا ووايې يا داسي وکړې نو ستا لمونځ پوره سو عَلَّقَ التَّمَامَ بِالْفِعْلِ نبي ﷺ د لمونځ پوره والی په فعل پوري معلق کړی قَرَأَ أَوْلَمْ يَقْرَأْ هغه که يې تشهد ويلی وي او که نه وي.

**اللغات**: ﴿قَانِتِيْنَ﴾ د نصر له باب څخه د اسم فاعل جمع صيغه ده، واحد يې قَانِتٌ دی: تابعداره، فرمان برداره. ﴿عَلَّقَ﴾ د تفعيل د باب ماضي صيغه ده: راځړول، موقوف کول. ﴿التَّمَام﴾ د ضرب د باب مصدر دی: پوره کېدل، بشپړ کېدل.

**تشريح**: د عبارت تر حل مخکي په ښه توګه په دې دريو خبرو ځان پوه کړئ چي په عنايه او نورو کي په ډېر ارزښت سره دا خبري ذکر سوي دي: (۱) اوله خبره دا چي فرائض جمع د فريضة ده. نو د اعدادو د قاعدې مطابق دلته عدد مذکر راتلل پکار دي او د سِتَّةٌ پر ځای بايد د سِتٌّ لفظ راوړل سي، ځکه چي د اعدادو قاعده دا ده چي کله معدود مؤنث وي نو عدد مذکر راوړل پکار دي، او دلته فرائض مؤنث دي نو د ستة پر ځای ست راوړل پکار وو، لېکن د هغه پر ځای مؤنث يعني ستة راوړل سو څه وجه ده؟. صاحب د عنايه او نورو د دې جواب داسي کړی دی چي په عبارت کي فرائض د فُرُوض په تأويل سره اوښتی دی، خو تر تأويل وروسته بيا هم اعتراض کېدای سي، ځکه چي فروض جمع د فرض ده، او د غير ذوي العقول جمع په حکم کي د واحد مونث وي، نو په دې اعتبار سره هم د ستة پر ځای ست راوړل پکار وو، نو غوره جواب دا دی چي دلته ستة شايد د کاتب (ليکونکي) غلطي وي، کنې په بعضي نسخو کي د ست لفظ راغلی دی.

(۲) دويمه خبره دا ده چي صاحب د کتاب فرائض الصلاة ووايی، او أركان الصلاة يې نه ووايی، ځکه چي د أركان په مقابله کي د فرائض لفظ عام دی، فرائضو او ارکانو ټولو ته شامل دی، که يې أركان ويلي وای نو ډېر شيان به له فرائضو څخه وتلي وای.

(۳) دريمه خبره دا ده چي فرض هغه حکم ته ويل کيږي چي د هغه ثبوت په قطعي دليل سره سوی وي او عمل پر کول ضروري وي، رکن هغه شي ته ويل کيږي چي پر هغه يو بل شی موقوف وي، يا چي د هغه په ذريعه سره د يو بل شي تکميل او بشپړتيا کيږي او هغه شی (يعني رکن) په دې کي داخل وي، او شرط د هغه شي نوم دی چي پر هغه باندي د يو شي وجود موقوفه وي، لېکن شرط د دې شي له حقيقت او ماهيت څخه خارج وي او د دې شي په وجود کي بالذات مؤثر نه وي.

**اوس د عبارت تشريح ته ګوري!**: د عبارت حاصل دا دی چي د لمانځه ټوله فرضونه شپږ (۶) دي، په هغو کي له ټولو څخه ① اول فرض تکبيرِ تحريمه يعني الله أکبر ويل او لمونځ شروع کول دي، او د دې دليل د الله ﷻ فرمان وربک فکبر دی، او له دې آيت څخه استدلال په دې توګه کيږي، چي ټولو مفسرينو له فکبر څخه تکبير تحريمه مـ ـري دی، او صرف دغه يو تکبير دی چي په لمانځه کي فرض او ضروري دی، او دې تکبير ته تحريمه ځکه ...ـ ـيږي چي د دې تکبير تر ويلو وروسته هغه ټوله شيان حراميږي، کوم چي تر تکبير مخکي د هغو کول مباح او حلال وو (عنايه ج۱، ص۲۸۰). ② د لمانځه دويم فرض قيامه ده، يعني که لمونځ ګذاره په ولاړه لمونځ کولای سي او هيڅ عذر نه لري، نو د ده

لپاره په ولاړه لمانځ کول فرض دي، او د ولاړي د فرضيت دليل په خپله د قرآن کريم دا فرمان دی: وقوموا لله قانتين. ③ دريم فرض قرائت دی، يعني د قرآن کريم دومره اندازه قرائت چي په هغه سره لمونځ جائز کيږي، هم فرض دي، او د دې دليل د قرآن کريم دا آيت دی: فاقرؤا ما تيسر من القرآن. ④ څلورم فرض رکوع ده، او ⑤ پنځم فرض سجده ده يعني که لمونځ گزاره هيڅ عذر نه لري، نو د هغه لپاره رکوع هم فرض ده او سجده هم فرض ده، او د دې دواړو د فرضيت دليل د الله تعالیٰ دا فرمان دی: وارکعوا واسجدوا. ⑥ شپږم فرض په قعدهٔ اخيره (آخره ناسته) کي د تشهد ويلو په اندازه کښېنستل دي، ښکاره دي وي چي د تشهد ويل جلا خبره ده او د تشهد په اندازه کښېنستل جلا خبره ده، دلته چي کوم شی مقصود دی هغه د تشهد په اندازه کښېنستل دي، ځکه کله چي نبي ﷺ حضرت ابن مسعود ﷛ ته د تشهد تعليم ورکړی نو نبي ﷺ په آخر کي دا جمله هم وفرمايله إذا قلت هذا أو فعلت هذا فقد تمت صلاتك، (يعني کله چي تا تشهد ووايي يا د تشهد ويلو په اندازه کښېنستې نو ستا لمونځ پوره سو)، په دې حديث سره په دې توگه استدلال کيږي چي نبي ﷺ د ابن مسعود ﷛ د لمانځه پوره کېدل تر دوو شيانو پوري معلق کړل: د تشهد د ويلو سره، او له تشهد ويلو څخه بغير صرف د تشهد په اندازه کښېنستلو سره، نو په دواړو کي چي هر صورت راسي لمونځ يې کيږي، هغه که قعود مع القراءة وي او که قعود بدون القراءة وي، اصلي شی قعود دی.

## د لمانځه د فرضونو دليلونه

صاحب د هدايې رَحِمَهُ الله د لمانځه د شپږو فرضونو لپاره د قرآن او حديث له ظاهري الفاظو څخه استدلال کړی دی، لېکن صاحب د عنايه رَحِمَهُ الله او صاحب د بنايه رَحِمَهُ الله او نورو پر دې موقع د استدلال وجه هم ذکر کړې ده، او هغه يې داسي ذکر کړې دي چي په قرآن کريم کي چي په کومو آيتونو سره فرضونه ثابت کړی سوی دی په هغو ټولو کي د امر صيغه استعمال سوې ده او امر د وجوب لپاره راځي، نو ځکه به دا ذکر سوي شيان د لمانځه له واجباتو څخه وي، او څرنگه چي د لمانځه له حالت څخه ماسوا په نورو حالتونو کي تکبير، قيام او رکوع او داسي نور واجب او ضروري نه دي، نو ځکه به دا شيان په لمانځه کي واجب وي، په هدايه کي دا ذکر سوي دي چي دا شپږ شيان د فرائضو له قبيلې څخه دي او د استدلال له وجهي څخه صرف وجوب ثابتيږي، نو په ښکاره توگه د استدلال وجه صحيح نه معلوميږي، خو د محققينو رايه دا ده چي هغه واجب کوم چي د أرکانو په باره کي استعماليږي او هغه واجب کوم چي د نورو شيانو لپاره استعماليږي، د هغو دواړو واجباتو په مېنځ کي فرق سته، له أرکانو څخه ماسوا چي کوم واجب استعماليږي له هغه څخه د ضروري او لازموالي مفهوم را وځي، او په ارکانو يعني په لمانځه کي چي کوم واجب استعماليږي هغه د لمانځه لپاره د بشپړ کېدونکي او متمّم حيثيت لري، يعني له دې واجب څخه ماسوا به لمونځ نه پوره کيږي، او که چا دا پرېښوول نو د هغه لمونځ به نابشپړ او ناقص پاته کيږي، او تقريباً همدغه حال د فرضو د پرېښوولو هم دی چي د هغو د پرېښوولو په وجه هم لمونځ ناقص پاته کيږي بلکي فاسديږي، نو په دې حواله سره د استدلال ذکر سوې وجه صحيح کېدای سي. (والله اعلم)

## د لمانځه واجبات

| قَالَ: وَمَا سِوَىٰ ذٰلِكَ فَهُوَ سُنَّةٌ فرمايي: چي له دې (فرائضو) څخه ماسوا چي کوم افعال دي هغه (ټوله) سنت دي أَطْلَقَ اسْمَ السُّنَّةِ امام قدوري د دې ټولو افعالو لپاره د سنت نوم استعمال کړی وَفِيْهَا وَاجِبَاتٌ كَقِرَاءَةِ الْفَاتِحَةِ وَضَمِّ |
|---|

السُّوْرَةِ إِلَيْهَا حال دا چې په دې افعالو کې ډېر واجبات (هم) سته لکه د سورۂ الفاتحه ويل او د هغې سره بل سورت يو ځای کول وَمُرَاعَاةِ التَّرْتِيْبِ فِيْمَا شُرِعَ مُكَرَّرًا مِنَ الْأَفْعَالِ او کوم افعال چې مکرر مشروع سوي دي په هغو کې د ترتيب خيال ساتل وَالْقَعْدَةِ الْأُوْلٰى وَقِرَاءَةِ التَّشَهُّدِ فِي الْقَعْدَةِ الْأَخِيْرَةِ او په اوله او آخره ناسته کې تشهد ويل وَالْقُنُوْتِ فِي الْوِتْرِ وَتَكْبِيْرَاتِ الْعِيْدَيْنِ او په وترو کې د قنوت دعاء ويل او د اخترونو تکبيرونه وَالْجَهْرِ فِيْمَا يُجْهَرُ فِيْهِ او په کومو لمونځونو کې چې جهر (په لوړ آواز قرائت) واجب وي په هغو کې جهر کول وَالْمُخَافَتَةِ فِيْمَا يُخَافَتُ فِيْهِ او چې په کومو لمونځ کې اخفاء (په کرار آواز قرائت) واجب وي په هغو کې اخفاء کول وَلِهٰذَا تَجِبُ عَلَيْهِ سَجْدَتَا السَّهْوِ بِتَرْكِهَا نو په دې وجه په دې ټولو کې د (هر) يوه په پرېښوولو سره پر لمونځ کونکي د سهوي لپاره دوې سجدې واجبيږي هٰذَا هُوَ الصَّحِيْحُ همدا صحيح ده وَتَسْمِيَتُهَا سُنَّةً فِي الْكِتَابِ لِمَا أَنَّهُ ثَبَتَ وُجُوْبُهَا بِالسُّنَّةِ او دې (شيانو) ته په قدوري کې په دې وجه د سنت نوم ورکول سوی دی ځکه چې دا شيان په سنت (يعني په حديث) سره ثابت دي.

**اللغات:** ﴿ضَمّ﴾ د نصر د باب مصدر دی: يو ځای کول. ﴿اَلْقُنُوْت﴾ د نصر د باب مصدر دی: اطاعت کول، فرمان برداري کول، دلته مراد ځني دعائي قنوت ده. ﴿اَلْمُخَافَتَة﴾ د مفاعله د باب مصدر دی: په کرار آواز ويل.

**تشريح:** صورت د مسئلې خو بالکل ښکاره دی او په عبارت کې صرف دا ښوول سوې ده چې له فرضونو څخه ماسوا چې په لمانځه کې څومره افعال دي، له هغو څخه بعضي سنت دي او بعضي واجب دي، خو دلته امام قدوري رَحِمَهُ الله سنت او واجب دواړه په يوه نامه سره ياد کړي دي، چې د هغه وجه صاحب د هدايې د عبارت په آخر کې بيانوي فرمايي: چې په ذکر سوي عبارت کې چې کوم واجبات هم امام قدوري رَحِمَهُ الله د سنت په نامه سره ياد کړي دي، له هغو څخه هغه سنت مراد نه دي چې په عامه توګه سره فهمول کيږي، بلکې له هغو څخه مراد هغه واجبات دي چې د هغو وجوب په سنت يعني په حديث سره ثابت سوی وي، هم په دې وجه پر دوی د سنت اطلاق کيږي، (يعني دې واجباتو ته سنت ځکه ويل کيږي چې د دوی ثبوت په سنت او حديثو سره سوی دی).

لنډه دا چې له فرضونو څخه ماسوا د الحمدلله ويل، سورت ور سره يو ځای کول، په مکرره افعالو کې د ترتيب خيال ساتل، اوله ناسته (قعدۂ اولیٰ) او داسې نور د لمانځه له واجباتو څخه دي، او د واجب حکم دا دی چې که په هېره پاته سي نو سجدۂ سهو به کوي او که قصداً پرېښوول سي نو لمونځ به راګرځوي. او صاحب د عنايه رَحِمَهُ الله فرمايي چې له سنت څخه مراد دا دي چې نبي ﷺ په پابندي سره پر هغه عمل کړی وي او بې له عذره يې هيڅکله هم پرې ايښی نه وي، لکه په لمانځه کې ثناء، تعوذ او داسې نور ويل.

## د لمانځه شروع کولو طريقه، او تکبير تحريمه شرط ده، که نه؟ (د فقهاؤ قولونه)

وَإِذَا شَرَعَ فِي الصَّلَاةِ كَبَّرَ او چې کله (لمونځ کونکی) لمونځ شروع کړي نو تکبير دې ووايي لِمَا تَلَوْنَا د هغه آيت په وجه کوم چې موږ تلاوت کړی وَقَالَ عَلَيْهِ الصَّلَاةُ وَالسَّلَامُ: تَحْرِيْمُهَا التَّكْبِيْرُ او نبي ﷺ فرمايلي دي: د لمانځه تحريم

تکبير دی وَهُوَشَرْطٌ عِنْدَنَا خِلَافًا لِلشَّافِعِيِّ رَحِمَهُ اللهُ او دا زموږ په نيز شرط دی په خلاف د امام شافعي رَحِمَهُ الله حَتّٰى أَنَّ مَنْ يَحْرَمَ لِلْفَرْضِ تر دې که يو څوک د فرض لمانځه لپاره تحريمه وتړي كَانَ لَهُ أَنْ يُؤَدِّيَ بِهَا التَّطَوُّعَ نو د هغه لپاره دا جائز دي چې په دغه تحريمه سره نفلي لمونځ وکړي وَهُوَيَقُولُ: إِنَّهُ يُشْتَرَطُ لَهَا مَا يُشْتَرَطُ لِسَائِرِ الْأَرْكَانِ او امام شافعي فرمايي: چې د تحريمې لپاره هر هغه شی شرط دی کوم چې د نورو ارکانو لپاره شرط وي وَهٰذَا آيَةُ الرُّكْنِيَّةِ او دا د رکنيت نښه ده وَلَنَا: أَنَّهُ عَطَفَ الصَّلٰوةَ عَلَيْهِ فِي قَوْلِهِ تَعَالٰى وَذَكَرَ اسْمَ رَبِّهِ فَصَلّٰى[سورة الاعلى: ١٥] او زموږ دليل دا دی چې د الله تعالىٰ په دې قول وذكر اسم ربه فصلّٰى کې لمونځ عطف سوی دی په تکبير تحريمه باندې وَمُقْتَضَاهُ الْمُغَايَرَةُ او عطف د مغايرت تقاضا کوي وَلِهٰذَا لَا يَتَكَرَّرُ كَتَكَرُّرِ الْأَرْكَانِ هم په دې وجه د نورو ارکانو د مکرر کېدلو په ډول تکبير تحريمه نه مکرر کيږي وَمُرَاعَاةُ الشَّرَائِطِ لِمَا يَتَّصِلُ بِهِ مِنَ الْقِيَامِ او (د لمانځه) د ټولو شرطونو ځکه خيال ساتل کيږي چې هغوی د ولاړې سره متصل (جوخت) دي.

**اللغات:** ﴿تلاوت﴾ د نصر د باب ماضي صيغه ده: لوستل، تلاوت کول. ﴿تطوع﴾ د تفعّل د باب مصدر دی: په کوښښ او تکلف سره فرمان برداري کول، داسې عبادت کول کوم چې واجب نه وي، نفلي عبادت. ﴿مقتضی﴾ د افتعال د باب اسم مفعول دی: تقاضا، غوښتنه. ﴿المغايرة﴾ د مفاعلې د باب مصدر دی: يو له بل څخه بدلېدل.

**تشريح: مسئله:** دا ده چې کله لمونځ گزاره د لمونځ شروع کولو اراده وکړي، هغه که فرضي لمونځ وي او که نفلي، نو تکبير تحريمه دې په ولاړه ووايي، نو که يو سړي په ناسته تکبير تحريمه وويل او بيا ودرېدی، نو د هغه لمونځ نه صحيح کيږي، او که يو سړي په لمانځه کې د شرکت په اراده راغلی او امام په رکوع کې وو، او دې سړي د رکوع لپاره ملا کښته کړه، او تکبير يې ووايي نو په دې صورت کې که دا سړی د تکبير ويلو په وخت کې ولاړې ته نژدې وو نو لمونځ يې جائز دی، کنه نه دی، او که يو سړي امام په رکوع کې ونيوی، او د رکوع لپاره يې په ولاړه تکبير ووايي. نو هم جائز دی، ځکه چې د ده اراده لغو ده، او د ولاړې په حال کې به د ده تکبير د تحريمې لپاره گرځول کيږي.

**دليل:** هغه آيت دی کوم چې مخکې تېر سو يعني وربك فكبّر، او دويم دليل د نبي ﷺ دا قول دی: تحريمها التكبير.

صاحب د هدايې فرمايي چې تکبير تحريمه زموږ په نيز شرط ده او د امام شافعي رَحِمَهُ الله په نيز رکن ده، ثمر د اختلاف داسې ښکاره کيږي چې څرنگه زموږ په نيز تحريمه شرط ده نو د فرضو په تحريمه به نفل اداء کول جائز وي، او څرنگه چې د امام شافعي رَحِمَهُ الله په نيز رکن ده، نو د ده په نيز به د فرضو په تحريمه نفل اداء کول جائز نه وي، وجه دا ده چې په يوه شرط باندې ډېر لمونځونه کول جائز دي، خو په يوه رکن باندې ډېر لمونځونه جائز نه دي.

**د امام شافعي دليل:** د تکبير تحريمه پر رکنيت د امام شافعي رَحِمَهُ الله دليل دا دی چې د تکبير تحريمه لپاره هر هغه شی شرط دی کوم چې د نورو ارکانو لپاره شرط وي، لکه طهارت، د عورت پټول. مخامخ پر قبلې کېدل. نيت او وخت يعني لکه څرنگه چې دا شيان د قيام، قراءت، رکوع او سجدې او د داسې نورو ارکانو لپاره شرط دي، همدغه رنگه د تکبير تحريمه لپاره هم شرط دي، او د کوم شي لپاره چې هغه ټولې خبرې شرط وي کومې چې د ټولو ارکانو لپاره شرط وي. نو دا د هغه شي د رکنيت نښه ده، يعني پر نورو ارکانو به قياسيږي، او دا به هم رکن گرځول کيږي.

**زموږ دليل:** دا دی چي د الله تعالیٰ په دې قول وذکر اسم ربه فصلی کي د فصلی عطف پر وذکر اسم ربه باندي سوی دی، يعني د لمانځه عطف پر تکبير تحريمه باندي سوی دی، او عطف د مغايرت تقاضا کوي، يعني د معطوف عليه او معطوف په مينځ کي تغاير (فرق) ضروري دی، اوس که تکبير رکن ومنل سي نو د کل عطف به پر جزء باندي راسي، او څرنګه چي دلته کُل هغه جزء ته شامل هم دی، نو له دې څخه به عطف د شي علی نفسه لازم دي، او دا ناجائز دي، نو په دې وجه موږ وايو چي تکبير تحريمه رکن نه دی، بلکي شرط دی، او څرنګه چي شرط د شي له هغه شي څخه خارج وي، نو ځکه به په تکبير تحريمه او لمانځه کي تغاير وي، او عطف به صحيح وي، نو ثابته سوه چي تکبير تحريمه د لمانځه لپاره شرط دی رکن نه دی.

**دويم دليل:** دا دی چي څرنګه نور ارکان په لمانځه کي مکرر دي، تکبير تحريمه مکرره نه ده، نو دا د دې خبري نښه ده چي تکبير تحريمه رکن نه ده، کنې د نورو ارکانو په ډول به تکبير تحريمه هم مکرره وای.

**جواب:** په ومراعاة الشرائط سره د امام شافعي رَحِمَهُ الله د دليل جواب ورکوي، د جواب حاصل دا دی چي د دې ذکر سره شرائطو (طهارت، د عورت پټول او داسي نورو) خيال ساتل خاص د تکبير تحريمه لپاره نه دي بلکي د قيامي (ولاړي) لپاره دي کوم چي د تکبير تحريمه سره متصل ده، او رکن ده، نو په دې سره د تکبير تحريمه رکن کېدل نه ثابتيږي.

**د تکبير سره لاسونه پورته کول او د دې صحيح وخت**

<table><tr><td>وَيَرْفَعُ يَدَيْهِ مَعَ التَّكْبِيرِ او لمونځ ګزاره به د تکبير سره خپل دواړه لاسونه پورته کوي وَهُوَ سُنَّةٌ او دا سنت دي لِأَنَّ النَّبِي صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ ● وَاظَبَ عَلَيْهِ ځکه نبي ﷺ پر دې همېشتوب کړی دی وَهَذَا اللَّفْظُ يُشِيْرُ إِلَى اِشْتِرَاطِ الْمُقَارَنَةِ او دا لفظ اشاره کوي د مقارنت د شرطيت و طرف ته وَهُوَ الْمَرْوِيُّ عَنْ أَبِي يُوسُفَ او دا له امام ابو يوسف رَحِمَهُ الله څخه روايت سوي دي وَالْمَحْكِيُّ عَنِ الطَّحَاوِيِّ او همدا له امام طحاوي رَحِمَهُ الله څخه را نقل سوي دي وَالْأَصَحُّ ● أَنَّهُ يَرْفَعُ يَدَيْهِ أَوَّلًا ثُمَّ يُكَبِّرُ او صحيح دا ده چي اول به دواړه لاسونه پورته کوي او بيا به تکبير وايي لِأَنَّ فِعْلَهُ نَفْيُ الْكِبْرِيَاءِ عَنْ غَيْرِ اللهِ ځکه چي د لمونځ ګزاره فعل (يعني لاسونه پورته کول) له غير الله څخه د لويي نفي کول دي وَالنَّفْيُ مُقَدَّمٌ او نفي مخکي وي.</td></tr></table>

**اللغات:** ﴿المقارنة﴾ د مفاعلې د باب مصدر دی: يو تر بله سره نژدې کېدل. ﴿محکي﴾ د ضرب د باب اسم مفعول دی: را نقل سوی، حکايت کړی سوی. ﴿کبرياء﴾ تکبر.

**تشريح: مسئله:** دا ده چي د لمونځ کونکي لپاره د لمانځه د شروع کولو په وخت کي تکبير تحريمه ويل فرض دي، او د تکبير تحريمه طريقه دا ده چي خپل دواړه لاسونه دي د الله اکبر ويلو سره پورته وکړي او دا عمل يعني لاسونه پورته کول سنت دی، ځکه چي نبي ﷺ پر دې همېشتوب کړی دی، پاته سو دا سوال چي لاسونه به د الله اکبر ويلو سره پورته کېږي، او که د الله اکبر تر ويلو مخکي؟ نو په دې لړ کي له امام ابو يوسف رَحِمَهُ الله او له امام طحاوي رَحِمَهُ الله څخه را نقل

---

● تخريج: أخرجه الائمة الستة فی کتبهم والبخاری فی کتاب الاذان، باب رفع اليدين فی التکبير الاولی، حديث رقم:۱۷۳۵ و مسلم فی کتاب الصلاة، باب استحباب رفع اليدين، حديث رقم:۲۱، ۲۴، ۲۵.

● القول الراجح: قول الطرفين رَحِمَهُمَاالله، کذا فی فتح القدير ج:۱ج، ص:۲۴۴. [القول الراجح، ج:۱، ص:۶۹]

سوي دي چې د الله اکبر ویلو سره دې یو ځای لاسونه پورته کړي یعني د تکبیر تحریمه او رفع یدین په مینځ کې مقارنت ضروري دی، د امام قدوري رَحِمَهُ الله هم دغه رایه ده، ځکه چې د یرفع یدیه مع التکبیر څخه همدغه فهمول کیږي.
صاحب د هدایې فرمایي چې صحیح دا ده چې لمونځ کونکي دې خپل لاسونه اول پورته کړي بیا دې تکبیر ووایي (دا قول د طرفینو دی)، او شمس الائمه سرخسي او نور ټوله مشایخ هم دې قائل دي، او د دوی دلیل دا دی چې دلته دوه شیان جمع کیږي: (۱) د لمونځ کونکي فعل (۲) د لمونځ کونکی قول یعنې الله اکبر ویل، او لمونځ کونکی په دې دواړو کې د فعل په ذریعه له غیر الله څخه د عظمت او لويي نفي کوي، او د قول په ذریعه د الله لپاره عظمت او لويي ثابتوي، او قاعده دا ده چې په یوه مسئله کې نفي او اثبات دواړه سره جمع سي نو نفي به پر اثبات مخکې وي، نو دلته به هم نفي یعني د لمونځ کونکي فعل چې لاسونه پورته کول دي پر اثبات یعني د تکبیر تحریمه پر ویلو مخکې وي، نو اول به لاسونه پورته کوي بیا به تکبیر تحریمه وایي.

**راجح قول**: په پورتنی مسئله کي راجح قول د طرفینو رَحِمَهُمَا الله دی، قال العلامة ابن الهمام رَحِمَهُ الله وعلیه عامة المشائخ. (فتح القدیر ج:۱، ص:۲۴۴). [القول الراجح، ج:۱، ص:۶۹]

## لاسونه به تر اوږو او که د غوږو تر نرمی پوري پورته کیږي؟ (د فقهاؤ قولونه)

وَيَرْفَعُ يَدَيْهِ او لمونځ کزاره به خپل دواړه لاسونه پورته کوي حَتّٰى يُحَاذِيَ بِإِبْهَامَيْهِ شَحْمَةَ أُذُنَيْهِ تر دې چې خپلې دواړي بټې ګوتي د خپلو دواړو غوږونو د نرمۍ سره برابري کړي وَعِنْدَ الشَّافِعِيِّ رَحِمَهُ اللهُ: يَرْفَعُ إِلٰى مَنْكِبَيْهِ او د امام شافعي رَحِمَهُ الله په نېز به یې تر اوږو پوري پورته کوي وَعَلٰى هٰذَا تَكْبِيرَةُ الْقُنُوتِ وَالْأَعْيَادِ وَالْجِنَازَةِ او د قنوت، اخترونو او د جنازې د لمانځه تکبیرونه هم پر دغه اختلاف دي لَهُ حَدِيثُ أَبِي حُمَيْدٍ السَّاعِدِيِّ رَضِيَ اللهُ عَنْهُ د امام شافعي رَحِمَهُ الله دلیل د حضرت ابو حمید الساعدي رضي الله عنه حدیث دی قَالَ كَانَ النَّبِيُّ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ ● إِذَا كَبَّرَ رَفَعَ يَدَيْهِ إِلٰى مَنْكِبَيْهِ هغه فرمایي چې کله به رسول الله ﷺ تکبیر وایی نو خپل دواړو لاسونه به یې تر اوږو پوري پورته کول وَلَنَا رِوَايَةُ وَائِلِ بْنِ حُجْرٍ وَالْبَرَاءِ وَأَنَسٍ رَضِيَ اللهُ عَنْهُمْ او زموږ دلیل د حضرت وائل بن حجر، حضرت براء او حضرت انس رَضِيَ الله عَنْهُمْ روایت دی أَنَّ النَّبِيَّ عَلَيْهِ الصَّلَاةُ وَالسَّلَامُ ● كَانَ إِذَا كَبَّرَ رَفَعَ يَدَيْهِ حِذَاءَ أُذُنَيْهِ چې نبي ﷺ به کله تکبیر ووایی نو خپل دواړه لاسونه به یې د دواړو غوږونو تر برابر پوري پورته کول وَلِأَنَّ رَفْعَ الْيَدِ لِإِعْلَامِ الْأَصَمِّ او په دې وجه هم چې د لاس پورته کول د کاڼه سړي د خبرولو لپاره دي وَهُوَ بِمَا قُلْنَاهُ او دا په هغه صورت کي حاصلیږي کوم چې موږ ذکر کړی (یعني کوڼ په هغه وخت کي په ښه توګه خبریږي چې تر غوږو پوري لاسونه پورته کړی سي) وَمَا رَوَاهُ يُحْمَلُ عَلٰى حَالَةِ الْعُذْرِ او د امام شافعي رَحِمَهُ الله بیان سوی روایت به د عذر پر حالت حمل کیږي.

---

● تخریج: أخرجه البخاري في كتاب الأذان، باب سنة التشهد في الجلوس، حديث رقم: ۸۲۸.

● تخریج: أخرجه مسلم في كتاب الصلاة، باب وضع يده اليمنى على اليسرى، حديث رقم: ۵۴.

**اللغات:** ﴿يُحَاذِيْ﴾ د مفاعلې د باب مضارع صيغه ده: يو د بل سره برابرېدل. ﴿إِبْهَامٌ﴾ بټه ګوته، د لاس په پنځو ګوتو کې پنډه ګوته کومه چې له نورو څلورو ګوتو څخه جلا وي. ﴿شَحْمَةٌ﴾ د غوږ نرمۍ. ﴿مَنْكِبٌ﴾ وږه. (اوږه، ووږه). ﴿أَعْيَادٌ﴾ جمع ده، واحد يې عيد دى: داختر ورځ. ﴿أَصَمُّ﴾ کوڼ.

**تشريح: صورت د مسئلې:** دا دي چې زموږ په نېز به په تکبير تحريمه کې دواړه لاسونه تر غوږونو پورې پورته کيږي، لېکن د امام شافعي رَحِمَهُ الله په نېز به صرف تر اُوږو پورې پورته کيږي، د امام مالک او امام احمد رَحِمَهُمَا الله هم دغه مسلک دى، همدغه اختلاف د قنوت، اخترونو، جنازې او د داسې نورو په تکبيرونو کې هم دى، يعني زموږ په نېز به تر غوږونو پورې لاسونه پورته کيږي او د دوی په نېز به تر اُوږو پورې پورته کيږي.

**د امام شافعي او نورو دليل:** د حضرت ابو حميد ساعدي رَحِمَهُ الله هغه حديث دى کوم چې په کتاب کې ذکر سو، چې نبي ﷺ به د تکبير تحريمه ويلو په وخت کې تر اُوږو پورې لاسونه پورته کول، په دې حديث سره دليل په دې توګه نيول کيږي چې په حديث کې په ښکاره توګه د إلى منکبيه مضمون راغلى دى، نو اوس که د دې په خلاف فتوىٰ ورکول سي نو ښکاره ده چې بيا د صريح نص په ځاګه مخالفت راځي چې هغه په هيڅ صورت کې هم صحيح نه دى، نو ځکه به په تکبير تحريمه کې تر اُوږو پورې لاسونه پورته کيږي هغه که مطلق لمونځ وي، او که د جنازې يا بل لمونځ وي.

**زموږ دليل:** هغه حديث دى، کوم چې له حضرت وائل بن حجر، حضرت براء بن عازب او حضرت انس رَضِيَ اللهُ عَنْهُمْ او نورو صحابه وو څخه را نقل سوي دي، چې له هغه څخه دا خبره څرګنديږي چې کله به نبي ﷺ تکبير تحريمه ويل، نو خپل دواړه لاسونه به يې د غوږونو تر برابر يا د غوږونو تر نرمۍ پورې پورته کول، د حديث مضمون په کتاب کې ذکر سو، همدارنګه دويم حديث په بيهقي او نورو کې د حضرت انس ﷺ په حواله را نقل سوی دی، د حدث مضمون داسې دى: كان النبي ﷺ إذا افتتح الصلاة كبّر ثم رفع يديه حتى يحاذي بإبهاميه أذنيه. (يعني نبي ﷺ چې به کله لمونځ شروع کوی نو تکبير تحريمه به يې ويل او خپل لاسونه به يې پورته کول تر دې چې بټې ګوتې به يې د غوږونو سره برابرې کړې)، له دې څخه هم معلومه سوه چې په تکبير تحريمه کې چې کوم د لاسونو پورته کېدل دي هغه به تر وږو پورې نه وي بلکې دغوږو سره به برابر او مساوي وي.

**عقلي دليل:** زموږ د مذهب په تائيد کې عقلي دليل دا دی چې د تکبير تحريمه په وخت کې لاس پورته کول کاڼه سړي ته د لمانځه د شروع کېدلو د خبر ورکولو لپاره دي، او ښکاره ده چې خبر په هغه وخت کې په پوره توګه ورکول کېدای سي چې کله لاسونه تر غوږو پورې پورته کړی سي، ځکه چې کله امام تر غوږو پورې لاسونه پورته کړي، نو کوڼ سړی به پوه سي چې تکبير وويل سو، نو په خپله به هم تکبير ووايي او لمونځ به شروع کړي.

ومَا رَوَاهُ الخ پاته سو د حضرت ابو حميد ساعدي ﷺ روايت چې په هغه کې تر اُوږو پورې د لاسونو پورته کولو مضمون راغلى دى نو د هغه جواب دا دی چې هغه د عذر پر صورت حمل کيږي. يعني په عامو حالتونو کې به نبي ﷺ او د نبي ﷺ صحابه وو په تکبير تحريمه کې لاسونه تر غوږو پورې پورته کول، لېکن څرنګه چې په يخ او په پنډو کالو کې تر غوږونو پورې لاس پورته کول ستونزمن وه، نو ځکه به يې صرف تر اُوږو پورې لاسونه پورته کول، او زموږ پر دې خبره دليل د حضرت وائل بن حجر ﷺ دا حديث دى: قدمت المدينة فوجدتهم يرفعون أيديهم إلى الأذنين. ثم قدمت عليهم من قابل وعليهم الأكسية والبرانس من شدة البرد فوجدتهم يرفعون أيديهم إلى المناكب. (يعني زه مديني ته راغلم نو ما خلک وليدل چې لاسونه يې تر غوږو پورې پورته کول، بيا چې کله را روان کال راغلم نو د سخت يخ له کبله

خلګو پنډ کالي او خولۍ لرونکي کالي اغوستي وه، او ومې وليدل چې (په دې وار) هغوی تر اوږو پورې لاسونه پورته کول. (عنايه ج:۱، ص:۲۸۸)

## ښځه به تر کومه ځايه لاسونه پورته کوي؟

وَالْمَرْأَةُ تَرْفَعُ يَدَيْهَا حِذَاءَ مَنْكِبَيْهَا او ښځه به خپل لاسونه تر خپلو اوږو پورې پورته کوي هُوَ الصَّحِيْحُ همدا صحيح ده لِأَنَّهُ أَسْتَرُلَهَا ځکه چې دا دې لپاره ډېر پرده ده.

**اللغات**: ﴿حِذَاءَ﴾ د مفاعلې د باب مصدر دی: برابرېدل. ﴿أَسْتَرُ﴾ زيات پرده لرونکی، زيات پټوونکی.

**تشريح**: د تکبير تحريمه په وخت کې به ښځه تر خپلو اوږو پورې لاسونه پورته کوي، صحيح قول همدغه دی، او حسن بن زياد رَحِمَهُ الله له امام اعظم رَحِمَهُ الله څخه روايت کړی دی چې ښځه به خپل لاسونه تر غوږو پورې پورته کوي، د حسن بن زياد رَحِمَهُ الله د روايت وجه دا ده چې د لاس پورته کول (رفع يدين) له ورغوو څخه متحقق کېږي او مخکې تېر سوه چې د ښځې ورغوي عورت نه دي، نو ځکه به تر غوږو پورې په لاس پورته کولو کې نارينه او ښځه دواړه برابر وي، او د صحيح قول دليل دا دی چې تر غوږو پورې په لاس پورته کولو کې د ښځې لپاره زياته پرده ده. نو په دې وجه د ښځې لپاره تر اوږو پورې لاس پورته کول مناسب دي.

## د الله اکبر پر ځای د الله تعالی نور اسماء حسنیٰ ويل (او په دې باره کې د فقهاؤ قولونه)

فَإِنْ قَالَ بَدَلَ التَّكْبِيْرِ اَللهُ أَجَلُّ أَوْ أَعْظَمُ أَوِ الرَّحْمٰنُ أَكْبَرُ أَوْ لَا إِلٰهَ إِلَّا اللهُ يا که لمونځ کونکي د الله أکبر ويلو پر ځای الله أجل يا الله أعظم يا الرحمن أكبر، يا لا إله إلا الله ووايي أَوْ غَيْرَهُ مِنْ أَسْمَاءِ اللهِ تَعَالٰى يا له دې څخه ملسوا يې د الله تعالیٰ له نومونو څخه يو بل نوم ووايي أَجْزَأَهُ عِنْدَ أَبِي حَنِيْفَةَ وَمُحَمَّدٍ رَحِمَهُمَا الله نو د طرفينو په نيز د هغه لپاره (دا) جائز دي وَقَالَ أَبُوْ يُوْسُفَ رَحِمَهُ اللهُ●: إِنْ كَانَ يُحْسِنُ التَّكْبِيْرَ او امام ابو يوسف رَحِمَهُ الله فرمايي: که يې تکبير په ښه ډول سره ويلی سو لَمْ يُجْزِئْهُ إِلَّا قَوْلُهُ اَللهُ أَكْبَرُ أَوِ اللهُ الْأَكْبَرُ أَوِ اللهُ الْكَبِيْرُ نو د هغه لپاره له الله أكبر، الله الأكبر او الله الكبير څخه ملسوا نور څه ويل جائز نه دي وَقَالَ الشَّافِعِيُّ رَحِمَهُ اللهُ: لَا يَجُوْزُ إِلَّا بِالْأَوَّلَيْنِ او امام شافعي رَحِمَهُ الله فرمايي: چې صرف لومړنۍ دوې کلمې جائز دي وَقَالَ مَالِكٌ رحِمَهُ الله: لَا يَجُوْزُ إِلَّا بِالْأَوَّلِ او امام مالک رَحِمَهُ الله فرمايي: چې صرف لومړۍ کلمه (يعني الله أكبر) جائز دی لِأَنَّهُ هُوَ الْمَنْقُوْلُ ځکه چې همدغه کلمه را نقل سوې ده وَالْأَصْلُ فِيْهِ التَّوْقِيْفُ او په دې کې هم د شريعت له طرفه خبر ورکول اصل دي وَالشَّافِعِيُّ رَحِمَهُ اللهُ يَقُوْلُ: إِدْخَالُ الْأَلِفِ وَاللَّامِ فِيْهِ أَبْلَغُ فِي الثَّنَاءِ امام شافعي رَحِمَهُ الله فرمايي: چې د الف لام داخلول په تعريف کې مبالغه پيدا کوي فَيَقُوْمُ مَقَامَهُ نو ځکه الأكبر د أكبر قائم مقام سو وَأَبُوْ يُوْسُفَ رَحِمَهُ اللهُ يَقُوْلُ: إِنَّ أَفْعَلَ وَفَعِيْلًا فِي صِفَاتِهِ تَعَالٰى سَوَاءٌ او امام ابو يوسف رَحِمَهُ الله فرمايي: چې د أفعل او فعيل صيغې د الله په تعريف کې برابري دي بِخِلَافِ مَا إِذَا كَانَ لَا يُحْسِنُ په خلاف د هغه صورت چې کله هغه سړی په ښه ډول سره

---

● القول الراجح: قول الطرفين رَحِمَهُمَا الله، كذا في رد المحتار ج:۱، ص:۵۷. [القول الراجح، ج:۱، ص:۷۰]

تکبیر نه سي ویلی لِأَنَّهُ لَا يَقْدِرُ إِلَّا عَلَى الْمَعْنٰی ځکه چې (په دې صورت کې) هغه صرف پر معنیٰ قدرت لري وَلَهُمَا: أَنَّ التَّكْبِيرَ هُوَ التَّعْظِيمُ لُغَةً د طرفینو رَحِمَهُمَا الله دلیل دا دی: چې د تکبیر لغوي معنیٰ د تعظیم ده وَهُوَ حَاصِلٌ او هغه (په نورو الفاظو سره هم) حاصلیږي.

**اللغات:** ﴿أَجَلُّ﴾ زيات لوی، ﴿أَجْزَأَ﴾ د افعال ماضي ده: کافي سو، اداء سو (مجازاً جائز سو).

**تشريح:** په دې عبارت کې هغه الفاظ بیانیږي چې د هغو په ذریعه سره لمونځ شروع کول جائز دي، د طرفینو رَحِمَهُمَا الله په نیز په هر هغه لفظ سره لمونځ شروع کول جائز دي چې هغه د الله تعالیٰ په تعظیم باندې دلالت کوي، هغه که الله أکبر وي یا الله الأکبر یا الله الکبیر یا الله أجل یا الله أعظم یا الرحمن أکبر یا لا إله إلا الله یا الحمد لله یا سبحان الله وي، یا که د الله په نومونو کې یو بل نوم وي نو دا ټوله جائز دي، امام ابو یوسف رَحِمَهُ الله فرمایي: که لمونځ کونکی په ښه توګه تکبیر ویلای سو، نو صرف په دریو الفاظو الله أکبر، الله الأکبر الله الکبیر کې په یوه لفظ باندې په لمانځه شروع کول جائز دي، له دې څخه ماسوا په بل هیڅ لفظ باندې جائز نه دي، امام شافعي رَحِمَهُ الله فرمایي: چې صرف په الله أکبر او الله الأکبر لمونځ شروع کول جائز دي، او امام مالک رَحِمَهُ الله فرمایي چې: صرف په الله أکبر جائز دي، همدا د امام احمد بن حنبل رَحِمَهُ الله قول دی.

**د امام مالک دلیل:** دا دی چې له نبي ﷺ څخه صرف الله أکبر را نقل سوی دی، او څرنګه چې د لمانځه په باب کې اصل توقیف یعني د شریعت له طرفه خبر بدل دي، او نبي ﷺ موږ د لمانځه د شروع کولو لپاره په الله أکبر سره خبر کړي یو، نو ځکه به صرف په دغه کلمې سره لمونځ شروع کول جائز وي.

**د امام شافعي دلیل:** دا دی چې بېشکه له نبي ﷺ څخه الله أکبر را نقل سوی دی، لېکن الأکبر د معرف باللام کېدلو په وجه د أکبر په مقابله کې زیات بلیغ دی، نو ځکه به دا د الله أکبر قائم مقام وي.

**د امام ابو یوسف دلیل:** دا دی چې د الله تعالیٰ په صفاتو کې أفعل (پر وزن د اسم تفضیل) او فعیل (په معنیٰ د فاعل) دواړه سره برابر دي، ځکه چې له دې څخه د الله په صفاتو کې زیاتوب ثابتول مراد نه دي، ځکه په اصل عظمت او لوی والي کې د الله تعالیٰ سره هیڅوک برابر نه دی چې د أفعل صیغه دې د زیاتوب لپاره وګرځول سي، لکه څرنګه چې د بندګانو په صفتونو کې راځي نو افعل او فعیل به دواړه د الله په صفاتو کې برابر وي. د دې په خلاف که هغه سړي په ښه توګه سره تکبیر نه سو ویلای نو څرنګه چې د هغه په وس وي کې هغه بول دې د تعظیم معنیٰ اداء کړي، ځکه چې دا سړی صرف پر معنیٰ قادر دی، د تکبیر پر الفاظو قادر نه دی.

**د طرفینو دلیل:** دا دی چې په لغت کې تکبیر د تعظیم په معنیٰ سره راځي، د الله تعالیٰ قول دی: وربك فكبر یعني فعظّم او فلما رأينه أكبرنه یعني عظّمنه، او د تعظیم معنیٰ په هغو ټولو الفاظو سره پوره کیږي، کوم چې موږ ذکر کړل، نو ځکه به د لمانځه شروع په هر هغه لفظ سره صحیح وي چې هغه د الله پر تعظیم دلالت کوي.

**راجح قول:** په پورتنۍ مسئله کې راجح قول د طرفینو رَحِمَهُمَا الله دی، وقال العلامة وهبة الذحيلي مدظله العالي: و أجاز ابو حنيفة رَحِمَهُ الله ومحمد رَحِمَهُ الله افتتاح الصلوة بكل تعبير خالصا لله تعالى فيه تكبير و تعظيم كقول المصلي: الله أجل. إلى أن قال

يشتمل على معنى التعظيم فأشبه قوله الله اكبر ولو افتتح بقوله اللهم فالأصح أنه يجزئه لأن معناه يا الله (فقه اسلامي ج١، ص٣٢٠).
[القول الراجح ج١، ص٧١]

## په فارسي ژبه د قرائت کولو حکم (د فقهاؤ قولونه او دليلونه)

فَإِنِ افْتَتَحَ الصَّلَاةَ بِالْفَارِسِيَّةِ بيا که يو سړي په فارسي ژبه لمونځ شروع کړی أَوْ قَرَأَ فِيهَا بِالْفَارِسِيَّةِ يا په لمانځه کي يې په فارسي ژبه قرائت وکړی أَوْ ذَبَحَ وَسَمَّى بِالْفَارِسِيَّةِ يا يې ښاروی حلال کړی او تسميه يې په فارسي ووېله وَهُوَ يُحْسِنُ الْعَرَبِيَّةَ حال دا چي دا سړی په عربي ښه پوهېدی أَجْزَأَهُ عِنْدَ أَبِي حَنِيفَةَ رَحِمَهُ اللهُ نو د امام ابو حنيفه رَحِمَهُ الله په نيز د ده لپاره دا جائز دي وَقَالَا●: لَا يُجْزِئُهُ إِلَّا فِي الذَّبِيحَةِ او صاحبين فرمايي: چي صرف په ذبيحه کي جائز دي وَإِنْ لَمْ يُحْسِنِ الْعَرَبِيَّةَ أَجْزَأَهُ او که هغه سړی په عربي ښه نه پوهېدی نو دا جائز دي أَمَّا الْكَلَامُ فِي الِافْتِتَاحِ فَمُحَمَّدٌ رَحِمَهُ اللهُ مَعَ أَبِي حَنِيفَةَ رَحِمَهُ اللهُ فِي الْعَرَبِيَّةِ او د لمانځه د شروع کولو په باره کي چي کوم کلام دی نو د عربي په مسئله کي امام محمد رَحِمَهُ الله د امام ابو حنيفه رَحِمَهُ الله سره دی وَمَعَ أَبِي يُوسُفَ رَحِمَهُ اللهُ فِي الْفَارِسِيَّةِ او د فارسي په مسئله کي د امام ابو يوسف رَحِمَهُ الله سره دی لِأَنَّ لُغَةَ الْعَرَبِ لَهَا مِنَ الْمَزِيَّةِ ځکه چي عربي ژبي ته هغه فضيلت (او ارزښت) حاصل دی مَا لَيْسَ لِغَيْرِهَا چي هغه نورو ژبو لره نشته وَأَمَّا الْكَلَامُ فِي الْقِرَاءَةِ فَوَجْهُ قَوْلِهِمَا أَنَّ الْقُرْآنَ اِسْمٌ لِمَنْظُومٍ عَرَبِيٍّ او پاته سو د قرائت په باره کي کلام نو د صاحبينو رَحِمَهُمَا الله د قول دليل دا دی چي قرآن د عربي کلام نوم دی كَمَا نَطَقَ بِهِ النَّصُّ لکه څرنګه چي نص په دې باره کي ګويا دی إِلَّا أَنَّ عِنْدَ الْعَجْزِ يُكْتَفَى بِالْمَعْنَى لېکن د عجز (عاجزۍ) په وخت کي به پر معنیٰ اکتفاء کيږي كَالْإِيمَاءِ لکه اشاره (يعني لکه څرنګه چي په رکوع او سجدې باندي د قدرت نه درلودلو په وخت کي په اشاره اکتفاء کيږي) بِخِلَافِ التَّسْمِيَةِ په خلاف د تسميې لِأَنَّ الذِّكْرَ يَحْصُلُ بِكُلِّ لِسَانٍ ځکه چي ذکر په هر ژبه سره حاصلېږي وَلِأَبِي حَنِيفَةَ رَحِمَهُ اللهُ قَوْلُهُ تَعَالَىٰ: وَإِنَّهُ لَفِي زُبُرِ الْأَوَّلِينَ [الشعراء: ١٩٦] او د امام صاحب رَحِمَهُ الله دليل د الله تعالیٰ دا فرمان دی: وإنه لفي زبر الأولين (او بېشکه قرآن په مخکينيو کتابونو کي وو) وَلَمْ يَكُنْ فِيهَا بِهَذِهِ اللُّغَةِ او په مخکينيو کتابونو کي قرآن په عربي ژبه نه وو وَلِهَذَا يَجُوزُ عِنْدَ الْعَجْزِ هم په دې وجه د عجز په وخت کي په غير عربي باندي هم (تلاوت) جائز دی إِلَّا أَنَّهُ يَصِيرُ مُسِيئًا لِمُخَالَفَةِ السُّنَّةِ الْمُتَوَارَثَةِ لېکن د سنتِ متوارثه د مخالفت په وجه به (په غير عربي باندي) قرائت کونکی ګنهکاره وي وَيَجُوزُ بِأَيِّ لِسَانٍ كَانَ سِوَى الْفَارِسِيَّةِ او له فارسي ژبي څخه ماسوا په هره ژبه کي (قرائت کول) جائز دي هُوَ الصَّحِيحُ همدا صحيح ده لِمَا تَلَوْنَا د هغه آيت په وجه کوم چي موږ تلاوت کړی وَالْمَعْنَى لَا يَخْتَلِفُ بِاخْتِلَافِ اللُّغَاتِ او د ژبو په بدلون سره په معنیٰ کي هيڅ بدلون نه راځي وَالْخِلَافُ فِي الِاعْتِدَادِ

---

● القول الراجح: قول الصاحبين رَحِمَهُمَا الله، كذا في رد المحتار ج:١، ص:٥٧. [القول الراجح، ج:١، ص:٧١]

او اختلاف په اعتبار کې دی وَلَا خِلَافَ فِي أَنَّهُ لَا فَسَادَ او په دې خبره کې اختلاف نشته چې لمونځ نه فاسدېږي وَيُرْوَى رُجُوعُهُ فِي أَصْلِ الْمَسْأَلَةِ إِلَى قَوْلِهِمَا او په اصل مسئله کې د صاحبينو د قول و طرف ته د امام صاحب رجوع را نقل سوې ده وَعَلَيْهِ الِاعْتِمَادُ او هم پر دې اعتماد دی وَالْخُطْبَةُ وَالتَّشَهُّدُ عَلَى هَذَا الِاخْتِلَافِ په خطبه او تشهد کې هم دغه اختلاف دی وَفِي الْأَذَانِ يُعْتَبَرُ التَّعَارُفُ او په اذان کې تعارف معتبر دی.

**اللغات:** ﴿مزية﴾ فضيلت، لوړ والی، (ارزښت)، ﴿تعلق﴾ د نصر د باب ماضي صيغه ده: وېل، ﴿الاعتداد﴾ معتبر کېدل، شمارل، ﴿ايماء﴾ اشاره، ﴿السنة المتوارثة﴾ هغه سنت کوم چې تر اوسه را روان دی، ﴿المنظوم﴾ ترتيب کړی سوی کلام، ﴿النص﴾ قرآن او حديث ته نص وېل کېږي، ﴿زُبُر﴾ جمع ده، واحد يې زَبُورٌ دی: صحيفه، کتاب.

**تشريح:** په فارسي ژبه لمونځ شروع کول او په لمانځه کې دننه په فارسي قرائت کول، او د څاروي حلالولو په وخت کې په فارسي ژبه تسميه وېل مثلاً: بنام خدای بزرگ وېل د امام اعظم رَحِمَهُ الله په نېز جائز دي، که دا سړی پر عربي ژبه قدرت لري او که يې نه لري، او صاحبين فرمايي: چې که پر عربي ژبه قدرت لري نو په فارسي وېل جائز نه دي، او د څاروي حلالولو په وخت کې په فارسي ژبه بلکې په هره ژبه تسميه جائز ده، او که پر عربي يې قدرت نه وي نو توله په فارسي ژبه باندې جائز دي.

په تکبير تحريمه کې تفصيل دا دی چې امام محمد رَحِمَهُ الله په عربي ژبه کې د امام صاحب رَحِمَهُ الله سره دی يعني څرنګه چې د امام صاحب رَحِمَهُ الله په نېز په عربي کې عموم دی او د امام صاحب په نېز په هر هغه کلمې او جملې سره لمونځ شروع کېدای سي چې هغه پر تعظيم دلالت کوي، همدارنګه د امام محمد رَحِمَهُ الله په نېز هم په هرې داسې کلمې او جملې سره لمونځ په عربي ژبه شروع کېدای سي، او په فارسي ژبه کې د امام ابو يوسف رَحِمَهُ الله سره دی، يعنې لکه څرنګه چې د امام ابو يوسف رَحِمَهُ الله په نېز پر عربي د قدرت سره سره په غير عربي مثلاً په فارسي او نورو باندې لمونځ شروع کول جائز نه دي، همدارنګه د امام محمد رَحِمَهُ الله په نېز هم په غير عربي مثلاً په فارسي او نورو باندې لمونځ شروع کول جائز نه دي.

**د صاحبينو دليل:** دا دی چې عربي ژبې ته يو ځانګړی فضيلت او ارزښت حاصل دی کوم چې بلې ژبې ته حاصل نه دی، د نبي ﷺ فرمان دی: تفضل لسان العربي على سائر الألسنة أنا عربي والقرآن عربي ولسان أهل الجنة عربي. (عربي ژبه پر ټولو ژبو فضيلت لري، زه عربي يم، قرآن عربي دی، او د جنتيانو ژبه به عربي وي).

پاته سو د قرائت مسئله، نو د صاحبينو دليل دا دی چې د کوم شي حکم چې په لمانځه کې سوی دی هغه د قرآن قرائت دی، او قرآن د هغه عربي الفاظو نوم دی کوم چې پر معنیٰ دلالت کوي، او په مصاحفو کې مکتوب دی، او موږ ته په متواتر نقل سره را نقل سوی دی، الله تعالیٰ فرمايي: إنا جعلنه قرآنا عربيا، او فرمايي قرآنا عربيا غير ذي عوج لعلهم يتقون، لنو دا چې مأمور به د قرآن کريم قرائت دی، او قرآن په عربي کې دی، نو ځکه به په عربي ژبه قرائت کول فرض وي، بلکې د دې تقاضا خو دا ده چې په حالت د عجز کې دې هم عربي الفاظ نه پرېښوول کېږي، خو خبره دا ده چې د عجز په وخت کې په معنیٰ باندې ځکه اکتفاء وکړی سوه چې تکليف د ما لايطاق لازم نه سي، لکه څرنګه چې يو سړی پر

رکوع او سجده باندي قدرت نه لري نو د هغه لپاره په رکوع او سجده کي صرف اشاره کافي ده، رکوع او سجده کول ضروري نه دي.

بخلاف التسمية الخ په خلاف د تسميې ويلو د ځاروي د حلالولو په وخت کي چي هغه په فارسي ژبه هم جائز ده، که څه هم په عربي ژبه قدرت لري، ځکه چي دلته مقصود تسميه نه ده، بلکي ذکر دی، الله تعالیٰ فرمايلي دي: وَلَا تَأْكُلُوا مِمَّا لَمْ يُذْكَرِ اسْمُ اللَّهِ عَلَيْهِ (سورة الأنعام: ۱۲۱) او ذکر په هره ژبه کېدای سي.

**د امام ابو حنيفه دليل:** دا دی چي الله تعالیٰ فرمايلي دي: وانّه لفي زبر الأولين، (يعني قرآن په پخوانيو کتابونو کي وو)، معلومه سوه چي په پخوانيو کتابونو کي د قرآن معنیٰ وه، نو ثابته سوه چي قرآن د معنیٰ نوم دی، د نظم (الفاظو) نوم نه دی، او کله چي قرآن د ترجمې په توګه په لمانځه کي په فارسي ژبه وويل سي نو دا به د قرآن پر معنیٰ د مشتمل کېدلو په وجه جائز وي، ځکه چي د قرآن قرائت خو پيدا سو، او څرنګه چي قرآن په مخکنيو کتابونو کي په عربي الفاظو سره موجود نه وو، نو ځکه به پر عربي الفاظو د قدرت نه درلودلو په وخت کي په فارسي ژبه قرائت کول جائز وي، لېکن ګنهګاره به وي ځکه چي هغه د سنت متواتره مخالفت وکړی.

**دويم دليل:** دا دی چي د فارس (پارس) خلکو له حضرت سلمان فارسي رضي الله عنه څخه د خط په ذريعه دا غوښتنه وکړه چي زموږ لپاره په فارسي ژبه سوره فاتحه وليکه را واېې ستوه، سلمان فارسي رضي الله عنه په فارسي ژبه سورة الفاتحه وليکله، او هغو به په لمانځه کي سورت فاتحه په فارسي ويل، تر دې چي هغو عربي ژبه زده کړه، سلمان فارسي رَحِمَهُ الله تر ليکلو وروسته سورت فاتحه نبي ﷺ ته وربنکاره کړه، نبي ﷺ هيڅ انکار نه وکړی، نو له دې څخه هم ثابته سوه چي په لمانځه کي په فارسي ژبه قرائت کول جائز دي.

ويجوز بأي لسان الخ صاحب د هدايې رَحِمَهُ الله فرمايي: لکه څرنګه چي په فارسي ژبه په لمانځه کي قرائت کول جائز دي، همدغه رنګه له فارسي ژبې څخه ماسوا په هره ژبه قرائت جائزدی، همدا صحيح قول دی. او د ابو سعيد رَحِمَهُ الله قول دا دی چي امام ابو حنيفه رَحِمَهُ الله صرف په فارسي ژبه قرائت کول جائز ګرځولی دی، له فارسي څخه ماسوا يې په نورو ژبو اجازت نه دی ورکړی، وجه يې دا ده چي فارسي ژبه د عربي سره نژدې ده، نو ځکه په فارسي کي د قرائت اجازه سوې ده، او څرنګه چي نورو ژبو ته دا نژديکت حاصل نه دی، نو ځکه په هغو قرائت کول جائز نه دي، او د صحيح قول دليل دا آيت وَإِنَّهُ لَفِي زُبُرِ الْأَوَّلِينَ دی، ځکه څرنګه چي په مخکني کتابو کي په عربي ژبه قرآن نه وو همدارنګه په فارسي ژبه هم نه وو، دويم دليل دا دی چي بلي ژبې ته د قرآن د نقلولو په وخت کي اعتماد پر معنیٰ کېږي او معنیٰ د ژبو په اختلاف سره نه بدلېږي، نو ځکه په ترکي، هندي او هره ژبه کي جائز دی.

والخلاف في الاعتداد الخ د دې حاصل دا دی چي د صاحبينو او امام صاحب په مېنځ کي چي کوم د عربي او غير عربي اختلاف دی هغه د اعتبار دی، يعني د صاحبينو په نېز پر عربي ژبه د قدرت سره سره په غير عربي قرائت کول معتبر نه دی او د امام صاحب رَحِمَهُ الله په نېز معتبر دی، پاته سوه د لمانځه د صحت مسئله نو لمونځ د دواړو په نېز صحيح دی، په دې سره د لمانځه په صحيح والي کي څه خبره نسته.

ويروى الخ فرمايي چي په اصل مسئله يعني د قرائت بالعربية په سلسله کي امام صاحب رَحِمَهُ الله د صاحبينو رَحِمَهُمَا الله د مسلک وطرف ته رجوع وکړه، نو اوس د صاحبينو رَحِمَهُمَا الله مسلک معتمد، مستند او مفتیٰ به دی، او په عربي ژبه باندي

د پوهېلونکو لپاره په غیر عربي ژبه قرآن ویل جائز نه دي، د دې رجوع روایت امام ابو بکر رازي رَحِمَهُ الله بیان کړی دی.
(عنایه ج۱، ص۲۹۱)

والخطبة الخ فرمایي چې په خطبه او التحیات کي هم د امام صاحب او صاحبینو په مینځ کي اختلاف دی، نو د امام صاحب په نېز خطبه او تشهد په فارسي او نورو ژبو هم جائز دي، او د صاحبینو رَحِمَهُمَا الله په نېز له عربي ژبې څخه ماسوا په بله ژبه جائز نه دي، او د اذان په سلسله کي د عرف اعتبار ردی، یعني غوره او اصل همدغه دی چې اذان هم په عربي ژبه وي او په هغه کلمو سره وي چې په عامه توگه رواج دي، لېکن که په یو ځای کي په غیر عربي ژبه د اذان کولو رواج وي او خلک په غیر عربي ژبه اداء سوي کلمې اذان گني، نو دا هم جائز دي، ځکه چې د اذان مقصد اعلان او خبر ورکول دي، او د عرف په اعتبار سره د هر ځای او هري سیمي په اعلان کي فرق وي، فقط والله أعلم.

**راجح قول:** په پورتنی مسئله کي راجح قول د صاحبینو رَحِمَهُمَا الله دی، قال العلامة اکمل الدین البابرتي رَحِمَهُ الله (ویروی رجوعه) روی ابو بکر الرازي أن أبا حنیفة رَحِمَهُ الله رجع إلی قولهما وعلیه الاعتماد لتنزله منزلة الاجماع.

## په "أَللّٰهُمَّ اغْفِرْلِي" سره د لمانځه د شروع کولو حکم

| |
|---|
| وَإِنِ افْتَتَحَ الصَّلَاةَ بِاللّٰهُمَّ اغْفِرْلِي او که یو چا په أَللّٰهُمَّ اغْفِرْلِي سره لمونځ شروع کړی لَا تَجُوْزُ نو دا جائز نه دي لِأَنَّهُ مَشُوْبٌ بِحَاجَتِهِ ځکه چې دا جمله د هغه پر حاجت مشتمله ده فَلَمْ يَكُنْ تَعْظِيْمًا خَالِصًا نو خالص تعظیم نه سو وَإِنِ افْتَتَحَ بِقَوْلِهِ أَللّٰهُمَّ فَقَدْ قِيْلَ يُجْزِئُهُ او که چا په اللّٰهم سره لمونځ شروع کړی نو یو قول دا دی چې جائز دي لِأَنَّ مَعْنَاهُ يَا أَللّٰهُ ځکه چې د دې معنیٰ ده: یا الله وَقِيْلَ لَا يُجْزِئُهُ او بل قول دا دی چې جائز نه دي لِأَنَّ مَعْنَاهُ يَا أَللّٰهُ أُمَّنَا بِخَيْرٍ ځکه چې د دې معنیٰ ده: اې الله زموږ د خیر اراده وکړې فَكَانَ سُؤَالًا نو دا هم غوښتنه سوه. |

**اللغات:** ﴿مَشُوْبٌ﴾ گډ، مختلط، (مشتمل).

**تشریح:** او که یو سړي لمونځ په اللهم اغفرلی سره شروع کړی نو د هغه لمونځ جائز نه دی، ځکه که څه هم اللهم اغفرلی د تعظیم معنیٰ ورکوي، لېکن د تعظیم سره سره د ضرورت او حاجت معنیٰ هم پکښې سته، نو ځکه په دې جملې سره لمونځ شروع کول جائز نهدي، ځکه چې د لمانځه د شروع کولو لپاره داسې جمله پکار ده چې خاص د تعظیم معنیٰ ورکوي.

همدارنگه که یو سړي صرف په أللهم سره لمونځ شروع کړی نو د هغه د لمانځه په جواز او نه جواز کي دوه قولونه دي:
(۱) د بصرې د علماؤ قول دا دی چې په دې کلمې سره لمونځ شروع کېدای سي، ځکه چې د دې معنیٰ ده: یا الله، نو دا د خالص تعظیم لپاره سوه، او په دې کي د حاجت او ضرورت هیڅ گډون نسته (۲) دویم قول د کوفې د عالمانو دی چې په دې کلمې سره هم لمونځ شروع کول جائز نه دي، ځکه چې د دې معنیٰ ده: اې الله! زموږ د خیر اراده وکړې! لو ښکاره ده چې په دې صورت کي دا کلمه پر خالص تعظیم دلالت نه کوي، نو ځکه به په دې کلمې سره لمونځ شروع کول جائز نه وي. (عنایه ج۱، ص۲۹۲)

## په لمانځه کې د لاس نیولو طریقه (او په دې باره کې د فقهاؤ قولونه)

قَالَ: وَيَعْتَمِدُ بِيَدِهِ الْيُمْنٰى عَلَى الْيُسْرٰى تَحْتَ السُّرَّةِ مصنف رَحِمَهُ الله فرمايي: چي لمونځ کونکي به په راسته لاس سره چپه لاس نیسي تر نامه لاندي لِقَوْلِهِ ● ﷺ: إِنَّ مِنَ السُّنَّةِ وَضْعَ الْيَمِيْنِ عَلَى الشِّمَالِ تَحْتَ السُّرَّةِ ځکه نبي ﷺ فرمايلي دي: چي تر نامه لاندي راسته لاس پر چپه لاس اېښوول سنت دي وَهُوَ حُجَّةٌ عَلَى مَالِكٍ رَحِمَهُ اللهُ فِي الْإِرْسَالِ او دا حديث د امام مالک رَحِمَهُ الله په خلاف د لاسونو د راځړلو په باره کي حجت دی وَعَلَى الشَّافِعِيِّ رَحِمَهُ اللهُ فِي الْوَضْعِ عَلَى الصَّدْرِ او د امام شافعي رَحِمَهُ الله په خلاف پر سينه باندي د لاس اېښولو په باره کي حجت دی وَلِأَنَّ الْوَضْعَ تَحْتَ السُّرَّةِ أَقْرَبُ إِلَى التَّعْظِيمِ او په دې وجه (هم) چي تر نامه لاندي لاس اېښوول تعظيم ته زيات نژدې دي وَهُوَ الْمَقْصُوْدُ او تعظيم مطلوب دی ثُمَّ الْاِعْتِمَادُ سُنَّةُ الْقِيَامِ عِنْدَ أَبِي حَنِيْفَةَ وَأَبِي يُوْسُفَ رَحِمَهُمَا اللهُ ● او بيا لاس نيول د شيخينو رَحِمَهُمَا الله په نيز د ولاړي (قيامي) سنت دی حَتّٰى لَا يُرْسِلَ حَالَةَ الثَّنَاءِ تر دې چي د ثناء په حالت کي به هم (لاسونه) نه ايله کوي وَالْأَصْلُ أَنَّ كُلَّ قِيَامٍ فِيْهِ ذِكْرٌ مَسْنُوْنٌ يَعْتَمِدُ فِيْهِ او (په دې باره کي) اصل قاعده دا ده چي هره هغه ولاړه چي په هغه کي سنت ذکر وي نو په هغه کي به لاسونه نيسي وَمَا لَا فَلَا او چي په کومه ولاړه کي سنت ذکر نه وي به هغه کي به يې نه نيسي هُوَ الصَّحِيْحُ همدا صحيح قول دی فَيَعْتَمِدُ فِي حَالَةِ الْقُنُوْتِ وَصَلَاةِ الْجِنَازَةِ نو د دعائي قنوت په حالت او د جنازې په لمانځه کي به لاسونه نيسي وَيُرْسِلُ فِي الْقَوْمَةِ وَبَيْنَ تَكْبِيْرَاتِ الْأَعْيَادِ او په قومه او د اخترونو په تکبيرونو کي به لاسونه ايله کوي.

**اللغات**: ﴿يعتمد﴾ د افتعال د باب مضارع صيغه ده: مرسته اخيستل، نيول، ترل. ﴿سُرّة﴾ نوم (ناف). ﴿قومة﴾ تر رکوع کولو وروسته چي د دريدلو څومره اندازه وي هغه ته قومه وايي.

**تشريح**: په دې عبارت کي د لاس نيولو په اړه څلور مسئلې ذکر سوي دي: (۱) په لمانځه کي به راسته لاس پر چپه لاس اېښوول کيږي، که نه؟ (۲) څرنګه به يې ږدي؟ (۳) چيري به يې ږدي؟ (۴) کله به يې ږدي.

**اوله مسئله**: په اوله مسئله کي زموږ د دريو علماؤ قول دا دی چي په لمانځه کي راسته پر چپه لاس اېښوول سنت دي، او امام مالک رَحِمَهُ الله وايي چي إرسال دي کوي يعني په لمانځه کي دي لاسونه ايله کوي او که خوښه يې وي نو تړي دي يې، نو د امام مالک رَحِمَهُ الله په نيز ارسال عزيمت او اعتماد (لاس نيول) رخصت دی.

**زموږ دليل**: دا دی چي نبي ﷺ پر دې همېشتوب کړی دی او فرمايلي يې دي: إنا معشر الانبياء أمرنا بأن نأخذ شمائلنا بأيماننا في الصلاة. (يعني زموږ د نبيانو جماعت ته حکم سوی دی چي په لمانځه کي په راسته لاس سره چپه لاس ونيسو) او حضرت علي ﷺ فرمايي: من السنة أن يضع المصلي يمينه على شماله تحت السرة في الصلاة. صاحب د هدايې دا اثر

---

● تخريج: أخرجه ابو داؤد في كتاب الصلاة، باب وضع اليمنى على اليسرى، حديث رقم:۷۵۵.

● القول الراجح: قول الشيخين رَحِمَهُمَاالله، كذا في رد المحتار ج:۱، ص:۳۵۹. [القول الراجح، ج:۱، ص:۷۲]

په دې الفاظو سره ذکر کړی دی: إن من السنة وضع اليمين على الشمال تحت السرة. د دواړو حاصل دا دی چې حضرت علي ﷺ فرمايلي دي: (په لمانځه کې راسته لاس پر چپه لاس ايښوول سنت دي)، دلته دا خبره د يادوني وړ ده چې د هدايې په اصلي نسخه کې دا عبارت دا ډول ليکل سوی وو لقول علي ﷺ إن من السنة الخ لېکن ناپوه ليکوالانو دا لقوله ﷺ ليکلی دی.

او په ابو داؤد کې راغلي دي: عن ابن مسعود رَضِيَ اللهُ عَنْهُمَا أنه كان يصلي فوضع يده اليسرى على اليمنى فرآه النبي ﷺ فوضع يده اليمنى على اليسرى. (روايت دی چې ابن مسعود ﷺ لمونځ کوی، نو خپل چپه لاس يې پر راسته لاس کېښوی، نبي ﷺ چې وليدی، نو د ابن مسعود ﷺ راسته لاس يې پر چپه لاس کېښوی)، لنډه دا چې له دې رواياتو څخه ثابته سوه چې سنت د راسته لاس پر چپه لاس ايښوول دي، نو دا حديثونه د امام مالک رَحِمَهُ الله په خلاف حجت دي او زموږ مذهب په ثابتيږي.

**دويمه مسئله**: دا ده چې راسته لاس به پر چپه لاس څنګه ايږدي؟ طريقه يې څنګه ده؟، د دې طريقه يې دا ده چې د راسته لاس ورغوی دي د چپه لاس د ورغوي پر شا کېښږدي، او د راسته لاس په بټه او غچنه ګوته دي د چپه لاس مروند ونيسي. (عنايه)

**دريمه مسئله**: د لاس د ايښولو د ځای ده، نو زموږ په نېز افضله او غوره دا ده چې تر نامه لاندي دي لاسونه ونيسي، او د امام شافعي رَحِمَهُ الله په نېز پر سينه لاسونه ايښوول افضله دي.

**د امام شافعي دليل**: د الله تعالیٰ دا قول: فَصَلِّ لِرَبِّكَ وَانْحَرْ دی، (يعني د خپل رب لپاره لمونځ وکړه او پر سينه راسته لاس پر چپه لاس کېښږده)، علامه ابن الهمام رَحِمَهُ الله او صاحب د عنايه رَحِمَهُ الله فرمايي چې مفسرينو ويلي دي: چې له وانحر څخه مراد راسته لاس پر چپه لاس ايښوول دي، دويم دليل دا دی چې سينه د ايمان د نور ځای دی، نو ځکه په لمانځه کې دننه د دې حفاظت کول غوره دي.

**زموږ دليل**: د حضرعت علي ﷺ اثر دی يعني: إن من السنة وضع اليمين على الشمال تحت السرة. او د سنت له لفظ څخه په عامه توګه د رسول الله ﷺ سنت مراد وي، نو ثابته سوه چې تر نامه لاندي لاس ايښوول سنت دي.

**دويم دليل**: دا دی چې تعظيم په دې کې دی چې تر نامه لاندي لاس کېښوول سي، او په لمانځه کې تعظيم مطلوب او مقصود وي، نو په دې وجه هم تر نامه لاندي لاس ايښوول افضله دي، صاحب د کفايه رَحِمَهُ الله ليکلي دي چې تر نامه لاندي په لاس ايښوولو کې د اهل کتاب سره د مشابهت خطره هم ليري کيږي، او دا طريقه د عورت پټوالي ته هم زيات نژدې ده، نو په دې وجه هم تر نامه لاندي لاس نيول غوره دي.

**جواب**: د امام شافعي د دليل جواب دا دی چې په وانحر سره دليل نيول صحيح نه دي، ځکه چې په آيت کې له وانحر څخه مراد دلوی اختر تر لمانځه وروسته د قرباني د څاروي نحر کول (حلالول) دي. (عنايه)

**څلورمه مسئله**: دا ده چې لمونځ کونکی به لاسونه کله نيسي، نو په دې باره کې د شيخينو رَحِمَهُمَا الله مذهب دا دی چې لاس نيول د ولاړي سنت دی او له امام محمد رَحِمَهُ الله څخه روايت دی چې د قرائت سنت دی، مطلب دا چې د شيخينو په نېز به لمونځ کونکی په ثناء کې لاسونه نيسي، او د امام محمد رَحِمَهُ الله په نېز به ثناء کې لاسونه ايله کوي، لاکن کله چې قرائت شروع سي نو لاسونه به نيسي.

والأصل أن كل الخ صاحب د هدايې د لاس نيولو او ايله كولو په باره كې دا قاعده بيان كړې ده چې هره هغه ولاړه (قيامه) چې په هغې كې يو ذكر كول سنت وي، (يعني د ولاړې په جريان كې يو سنت ذكر ويل مشروع وي) نو په داسې ولاړه كې دې لاسونه نيسي، او كومه ولاړه چې داسې نه وي نو په هغې كې لاسونه نيول سنت نه دي، همدا قول صحيح دى، نو تر دې اصل لاندې به په قنوت او د جنازې په لمانځه كې لاس نيول كيږي، ځكه چې په دې كې ذكر سنت او مشروع دى، يعني په قنوت كې دعاء ويل كيږي او د جنازې په لمانځه كې درود شريف او نورې دعاوې ويل كيږي، او څرنګه چې په قومه او د اخترونو په تكبيرونو كې يو خاص سنت ذكر نشته، نو ځكه به په هغو كې لاسونه ايله كول (ځړول) سنت وي.

**راجح قول:** په پورتنۍ مسئله كې راجح قول د شيخينو رَحِمَهُمَا الله دى، او صاحب د عنايه رَحِمَهُ الله ليكلي دي: وبه كان يفتى شمس الائمة السرخسي رَحِمَهُ الله وبرهان الائمة صدر الشهيد. (عنايه ج:۱، ص:۲۹۳)؛ وقال العلامة الحصكفي رَحِمَهُ الله ووضع الرجل يمينه على يساره تحت سرته آخذا رسغها بخنصره و ابهامه. هو المختار الى أن كما فرغ من التكبير بلا ارسال فى الاصح. (رد المحتار ج:۱، ص:۳۵۹). [القول الراجح ج:۱، ص:۷۲]

## په ثناء كې به څه ويل كيږي؟ (د فقهاؤ قولونه)

ثُمَّ يَقُوْلُ: سُبْحَانَكَ اللّٰهُمَّ وَبِحَمْدِكَ إِلٰى آخِرِهٖ بيا دې لمونځ كونكى سبحانك اللهم وبحمدك تر آخره پورې ووايي وَعَنْ أَبِيْ يُوْسُفَ رَحِمَهُ اللهُ أَنَّهُ يَضُمُّ إِلَيْهِ قَوْلَهُ إِنِّيْ وَجَّهْتُ وَجْهِيَ [سورة الانعام:۷۹] إِلٰى آخِرِهٖ او له امام ابو يوسف رَحِمَهُ الله څخه روايت دى چې د ثناء سره دې د الله تعالىٰ قول إني وجهت وجهي تر آخره پورې يو ځاى كوي لِرِوَايَةِ عَلِيٍّ رَضِيَ اللهُ عَنْهُ أَنَّ النَّبِيَّ عَلَيْهِ الصَّلَاةُ وَالسَّلَامُ ● كَانَ يَقُوْلُ ذٰلِكَ ځكه له حضرت علي رَحِمَهُ الله څخه روايت دى چې نبي ﷺ به دا ويله وَلَهُمَا رِوَايَةُ أَنَسٍ رَضِيَ اللهُ عَنْهُ او د طرفينو لپاره د حضرت انس رضي الله عنه روايت دليل دى أَنَّ النَّبِيَّ عَلَيْهِ الصَّلَاةُ وَالسَّلَامُ ● كَانَ إِذَا افْتَتَحَ الصَّلَاةَ كَبَّرَ وَقَرَأَ: سُبْحَانَكَ اللّٰهُمَّ وَبِحَمْدِكَ إِلٰى آخِرِهٖ چې كله به نبي ﷺ لمونځ شروع كړو نو تكبير به يې وويې او سبحانك اللهم وبحمدك به يې تر آخره پورې وويله وَلَمْ يَزِدْ عَلٰى هٰذَا او پر دې به يې زياتوب نه كوو (بعضو شارحينو د ولم يزد ضمير حضرت انس رضي الله عنه ته راجع كړى دى) وَمَا رَوَاهُ مَحْمُوْلٌ عَلَى التَّهَجُّدِ او د امام شافعي رَحِمَهُ الله روايت سوى حديث د تهجدو پر لمانځه حمل سوى دى وَقَوْلُهُ وَجَلَّ ثَنَاؤُكَ لَمْ يُذْكَرْ فِي الْمَشَاهِيْرِ او دا قول وَجَلَّ ثَنَاؤُكَ په مشهوره حديثونو كې نه دى ذكر سوى فَلَا يَأْتِيْ بِهٖ فِي الْفَرَائِضِ نو ځكه دې لمونځ كونكى دا په فرضي لمونځونو كې نه وايي وَالْأَوْلٰى أَنْ لَا يَأْتِيَ بِالتَّوَجُّهِ قَبْلَ التَّكْبِيْرِ او غوره دا ده چې تر تكبير تحريمه مخكې دې يې إنى وجهت (هم) نه وايي لِتَتَّصِلَ النِّيَّةُ بِهٖ دې لپاره چې نيت د تكبير سره متصل (جوخت) سي هُوَ الصَّحِيْحُ همدا صحيح ده.

---

● تخريج: أخرجه البيهقى فى كتاب الصلوٰة، باب من روى الجمع بينهما، حديث رقم: ۲۳۵۱.

● القول الراجح: قول الطرفين، كذا فى مجمع الانهر ج:۱، ص:۹۴. [القول الراجح، ج:۱، ص:۷۳]

● تخريج: أخرجه البيهقى فى كتاب الصلوٰة، باب الاستفتاح بسبحانك اللهم وبحمدك، حديث رقم:۲۳۲۷.

**اللغات:** ﴿وَجَّهْتُ﴾ د تفعیل د باب ماضي صیغه ده: مخ کول، مخ کرځول. ﴿لَا يَزِيدُ﴾ د ضرب له باب څخه دجحد صیغه ده: زیاتوب کول، اضافه کول. ﴿مَشَاهِيرُ﴾ جمع ده، واحد يې مَشْهُورٌ دی: د حديث يو قسم دی.

**تشریح:** صورت د مسئلې: دا دی چي لمونځ کزاره به تر تکبیر تحریمه وېلو او تر نامه لاندي لاس نیولو وروسته ثناء يعني سبحانك اللهم وبحمدك وتبارك اسمك وتعالى جدك ولا إله غيرك وايي، او د طرفینو رَحِمَهُمَا الله په نېز به صرف پر دغه ثناء اکتفاء کوي او له ثناء څخه ماسوا به بله دعاء نه وايي، امام ابو یوسف رَحِمَهُ الله فرمايي چي د ثناء سره دې إني وجهت وجهي... تر آخره پوري هم وايي، ځکه چي د حضرت علي ﷺ په روایت کي دي چي نبي ﷺ به تر ثناء وروسته دا دعاء ويل.

**د طرفینو دلیل:** د حضرت انس ﷺ هغه حديث دی چي په هغه کي له نبي ﷺ څخه صرف د ثناء وېلو ذکر سوی دی او نوره اضافه ځني ثابته نه ده، له دې حديث څخه په ښکاره توګه دا فهمول کېږي چي په فرض لمونځونو کي به پر ثناء زیاتوب نه کوي، نو ځکه د امام ابو یوسف رَحِمَهُ الله روایت فقهاؤ پر تهجدو حمل کړی دی، ځکه چي د فرائضو په مقابله کي په نوافلو کي زیات وسعت سته. صاحب د هدايې فرمايي چي د لمونځ کزاره لپاره غوره دا ده چي تر نیت کولو وروسته او تر تکبیر تحریمه مخکي هم إني وجهت... الخ نه ووايي، د دې لپاره چي په نیت او تکبیر کي اتصال راسي، او د يوبلي دعاء په ذریعه د دواړو په مېنځ کي فصل را نه سي، ځکه چي تکبیر تحریمه د نیت سره يو ځای کول ډېر غوره دي.

**راجح قول:** په پورتنۍ مسئله کي راجح قول د طرفینو رَحِمَهُمَا الله دی، قال عبد الله داماد آفندی رَحِمَهُ الله: ولا يضم وجهت وجهي إلى آخره، إلى أن قال قبل الشروع ولا بعده وهو الصحيح المعتمد (مجمع الانهر ج:١، ص:٩٢). [القول الراجح، ج:١، ص:٧٣]

## تر قرائت مخکي د أَعُوذُ بِاللهِ ویلو بیان

﴿وَيَسْتَعِيذُ بِاللهِ مِنَ الشَّيْطَانِ الرَّجِيمِ﴾ او لمونځ کزاره به پناه غواړي په الله سره له ترټلي شیطان څخه (يعني اعوذ بالله... الخ به وايي) ﴿لِقَوْلِهِ تَعَالَى فَإِذَا قَرَأْتَ الْقُرْآنَ فَاسْتَعِذْ بِاللهِ مِنَ الشَّيْطَانِ الرَّجِيمِ﴾ [النحل: ٩٨] ځکه الله تعالیٰ فرمايلي دي: کله چي تاسو قرآن واياست نو په الله ﷻ له ترټلي شیطان څخه پناه طلب کوئ ﴿مَعْنَاهُ: إِذَا أَرَدْتَ قِرَاءَةَ الْقُرْآنِ﴾ معنیٰ يې دا ده: اذا أردت قراءة القرآن (يعني کله چي تاسو د قرآن لوستلو اراده وکړی) ﴿وَالْأَوْلَى أَنْ يَقُولَ أَسْتَعِيذُ بِاللهِ لِيُوَافِقَ الْقُرْآنَ﴾ او غوره دا ده چي أستعيذ بالله من الشيطان الرجيم ووايي د دې لپاره چي د قرآن سره موافق سي ﴿وَيَقْرُبُ مِنْهُ أَعُوذُ بِاللهِ﴾ او أعوذ بالله من الشيطان الرجيم هم دې ته نژدې ده ﴿ثُمَّ التَّعَوُّذُ تَبَعٌ لِلْقِرَاءَةِ دُونَ الثَّنَاءِ عِنْدَ أَبِي حَنِيفَةَ وَمُحَمَّدٍ رَحِمَهُمَا اللهُ﴾ بیا أعوذ بالله د طرفینو رَحِمَهُمَا الله په نېز د قرائت تابع دی، د ثناء تابع نه دی ﴿لِمَا تَلَوْنَا﴾ د هغه آیت په وجه کوم چي موږ تلاوت کړی ﴿حَتَّى يَأْتِيَ بِهِ الْمَسْبُوقُ دُونَ الْمُقْتَدِي﴾ تر دې چي صرف به مسبوق أعوذ بالله وايي مقتدي

● القول الراجح: قول الطرفين رَحِمَهُمَا الله، كذا في رد المحتار ج:١، ص:٣٦٢. [القول الراجح، ج:١، ص:٧٤]

به يې نه وايي وَيُؤَخِّرُ عَنْ تَكْبِيْرَاتِ الْعِيْدِ او امام به أعوذ بالله د اختر تر تكبيرونو وروسته وايي خِلَافًا لِأَبِيْ يُوسُفَ رَحِمَهُ اللهُ په خلاف د امام ابو يوسف رَحِمَهُ الله.

**اللغات:** ﴿رَجِيْمٌ﴾ ترټل سوی، شړل سوی، مردود. ﴿أَسْتَعِيْذُ﴾ زه پناه غواړم. ﴿تَعَوُّذٌ﴾ أعوذ بالله من الشيطان الرجيم ويل. (په پناه کې راتلل).

**تشريح: مسئله:** دا ده چې کله لمونځ گزاره له ثناء ويلو څخه فارغه سي نو د ده لپاره حکم دا دی چې تر الحمد لله ويلو مخکې تعوّذ (اعوذ بالله) ووايي، امام مالک رَحِمَهُ الله فرمايي چې تعوّذ دې نه وايي.

**د امام مالک دليل:** د حضرت انس ﷺ دا روايت دی: صليت خلف رسول الله ﷺ وخلف أبي بكر وعمر رَضِيَ اللهُ عَنْهُمَا وكانوا يفتتحون القراءة بالحمد لله رب العالمين، (ما د نبي ﷺ او د ابوبکر او حضرت عمر رَضِيَ اللهُ عَنْهُمَا تر شا لمونځ کړی دی، او دې حضراتو به په الحمد لله رب العالمين سره قرائت شروع کوی)، نو له دې روايت څخه معلوميږي چې تر قرائت مخکې به تعوّذ او نور هيڅ نه وايي، ځکه چې په دې حديث کې د تعوّذ ذکر نسته.

**زموږ دليل:** دا دی چې قرآن کريم په ښکاره توگه دا اعلان کړی دی: فَإِذَا قَرَأْتَ الْقُرْآنَ فَاسْتَعِذْ بِاللهِ مِنَ الشَّيْطَانِ الرَّجِيمِ (النحل: ۹۸)، او د دې اعلان په وجه خو تر قرآن لوستلو مخکې تعوّذ ويل واجب کېدل پکار دي، ځکه چې فاستعذ د امر صيغه ده. او امر د وجوب لپاره راځي، خو صاحب د عنايې وايي چې څرنگه سلفو حضراتو د تعوّذ پر سنتوالي اجماع کړې ده، نو ځکه موږ هم دا سنت گرځوو. او دا تعوّذ تر قرائت مخکې سنت دي، ځکه چې "قراءة القرآن" د "إذا أردت قراءة القرآن" په معنیٰ سره دی، لکه "إذا قمتم إلى الصلاة" چې د "إذا أردتم" په معنیٰ سره دی، نو ځکه به تعوذ تر قرائت مخکې ويل کيږي.

ولأولى الخ فرمايي چې لمونځ کونکي لره د تعوذ لپاره د أستعيذ بالله من الشيطان الرجيم ويل زيات غوره دي، ځکه چې دا د قرآن کريم د آيت فاستعذ بالله... الخ سره مطابق او موافق دی، او دې ته نژدې نژدې أعوذ بالله من الشيطان الرجيم دی، نو ځکه دا هم ويل کېدلای سي، په نهايه شرح هدايه کې راغلي دي چې أعوذ بالله... الخ په اکثره حديثونو کې تعوذ گرځول سوی دی، او هم پر دې د خلگو عمل دی، او همدغه غوره او مختاره مذهب دی.

ثم التعوذ الخ د دې حاصل دا دی چې د طرفينو رَحِمَهُمَا الله په نيز تعوّذ د قرائت تابع دی، او د امام ابو يوسف رَحِمَهُ الله په نيز د ثناء تابع دی.

**د امام ابو يوسف دليل:** دا دی چې تعوذ تر ثناء وروسته دی او د دعاء کېدلو په اعتبار سره د ثناء له جنس څخه دی، او د هر شي تابع تر هغه وروسته اداء کيږي، نو ځکه به تر ثناء وروسته تعوذ ويل کيږي او د کوم سړي لپاره چې ثناء ويل سنت وي، د هغه لپاره به تعوّذ هم سنت وي.

**د طرفينو رَحِمَهُمَا الله دليل:** دا دی چې په قرآن کريم کې له إذا قرأت څخه مراد إذا أردت قراءة القرآن دی، او دا هله صحيح کېدلای سي چې کله موږ تعوذ د قرائت تابع وگرځوو، نو ځکه موږ تعوذ د قرائت تابع وگرځوی، او زموږ په نيز چې پر کوم سړي قرائت واجب وي د هغه لپاره تعوذ ويل سنت دي، مثلاً! مسبوق (هغه مقتدی چې د لمانځه بعضي حصه څني تېره

سوی وي)، پر هغه قرائت واجب دی، نو د هغه لپاره به تعوذ ویل سنت وي، او څرنګه چې پر هغه مقتدي قرائت واجب نه دی چې تو له لمونځ یې د امام سره نیولی وي، نو ځکه به د هغه لپاره تعوذ ویل سنت نه وي.

ویؤخرالخ فرمایي: چې امام به د اختر په لمونځونو کې تر تکبیرونو وروسته تعوذ وایي، ځکه چې د اختر د لمونځونو په اولو رکعتونو کې تر تکبیرونو وروسته قرائت ویل کیږي، نو له دې څخه هم معلومه سوه چې تعوذ د قرائت تابع دی نه د ثناء.

**راجح قول:** په پورتنی مسئله کې راجح قول د طرفینو دی، قال المفتی غلام قادر النعمانی. قد اختلفت الفاظ الفتوی فی الترجیح لکن الراجح قول الطرفین لأن قولهما موافق لنص القرآن. قال الله تعالی: فَإِذَا قَرَأْتَ الْقُرْآنَ فَاسْتَعِذْ بِاللَّهِ مِنَ الشَّيْطَانِ الرَّجِيمِ (النحل، ۹۸). [القول الراجح ج۱، ص۷۲]

## د بسم الله ویلو بیان

وَيَقْرَأُ بِسْمِ اللَّهِ الرَّحْمٰنِ الرَّحِيمِ او لمونځ کونکی به بسم الله الرحمن الرحیم وایي هٰكَذَا نُقِلَ فِي الْمَشَاهِيرِ● همدغه رنګه په مشهوره حدیثونو کې را نقل سوي دي.

**تشریح:** فرمایي: څرنګه چې د لمونځ ګزاره لپاره أعوذ بالله ویل سنت دي، همدارنګه د هغه لپاره بسم الله ویل هم سنت دي، دلیل او تفصیل به یې په لاندي عبارت کې ذکر سي. ښکاره دي وي چې زموږ په نیز بسم الله نه د سورة الفاتحه جزء ده او نه د یو بل سورت بلکې د سورتونو په مینځ د فصل کولو لپاره ده، په خلاف د امام شافعي رَحِمَهُ الله.

## په اعوذ بالله، بسم الله او آمین کې د سر او جهر بحث

وَيُسِرُّ بِهِمَا او لمونځ کونکی به تعوذ (اعوذ بالله) او تسمیه (بسم الله) په کراره وایي لِقَوْلِ ابْنِ مَسْعُودٍ رَضِيَ اللهُ عَنْهُ: أَرْبَعٌ يُخْفِيهِنَّ الْإِمَامُ وَذَكَرَ مِنْهَا التَّعَوُّذَ وَالتَّسْمِيَةَ وَآمِينَ ځکه ابن مسعود رَحِمَهُ الله فرمایي: څلور شیان داسي دي کوم چې به امام په کراره وایي او له هغو څخه یې تعوذ، تسمیه او آمین (هم) ذکر کړل وَقَالَ الشَّافِعِيُّ رَحِمَهُ اللهُ: يَجْهَرُ بِالتَّسْمِيَةِ عِنْدَ الْجَهْرِ بِالْقِرَاءَةِ او امام شافعي فرمایي: چې تسمیه به په جهر (یعني په لوړ آواز) سره وایي د جهري قرائت په وخت کې لِمَا رُوِيَ أَنَّ النَّبِيَّ عَلَيْهِ الصَّلَاةُ وَالسَّلَامُ جَهَرَ● فِي صَلَاتِهِ بِالتَّسْمِيَةِ ځکه روایت سوی دی چې نبي ﷺ په خپل لمانځه کې بسم الله په جهر سره وویله قُلْنَا: هُوَ مَحْمُولٌ عَلَى التَّعْلِيمِ موږ جواب ورکوو: چې دا پر تعلیم حمل کیږي لِأَنَّ أَنَسًا رَضِيَ اللهُ عَنْهُ أَخْبَرَ أَنَّهُ عَلَيْهِ الصَّلَاةُ وَالسَّلَامُ● كَانَ لَا يَجْهَرُ بِهَا ځکه حضرت انس رضی الله عنه خبر ورکړی دی چې رسول الله ﷺ به په جهر بسم الله نه ویله ثُمَّ عَنْ أَبِي حَنِيفَةَ رَحِمَهُ اللهُ أَنَّهُ لَا يَأْتِي بِهَا فِي أَوَّلِ كُلِّ رَكْعَةٍ بیا له امام ابو حنیفه رَحِمَهُ الله څخه روایت دی چې بسم الله به د هر رکعت په اول کې نه وایي كَالتَّعَوُّذِ لکه څرنګه چې

---

● تخریج: أخرجه الترمذي فی کتاب الصلوٰة، فی باب من رأی الجهر ببسم الله الرحمٰن الرحیم، حدیث رقم:۲۴۵.

● تخریج: أخرجه دار قطني فی کتاب الصلاة، باب وجوب قرأة بسم الله الرحمٰن الرحیم فی الصلاة، حدیث رقم: ۱۱۴۳، ۱۱۴۶، ۱۱۴۷.

● تخریج: أخرجه النسائي فی کتاب الافتتاح، باب ترك الجهر ببسم الله الرحمٰن الرحیم، حدیث رقم:۹۰۷.

اعوذ بالله (په هر رکعت کي نه ويل کيږي) وَعَنْهُ أَنَّهُ يَأْتِيْ بِهَا اِحْتِيَاطًا او دويم روايت دا دی چي احتياطاً به بسم والله وايي وَهُوَ قَوْلُهُمَا او دا د صاحبينو رَحِمَهُمَا الله قول (هم) دی وَلَا يَأْتِيْ بِهَا بَيْنَ السُّوْرَةِ وَالْفَاتِحَةِ او د الحمد لله او سورت په مينځ کي به بسم الله نه وايي إِلَّا عِنْدَ مُحَمَّدٍ رَحِمَهُ اللهُ مګر د امام محمد رَحِمَهُ الله په نيز فَإِنَّهُ يَأْتِيْ بِهَا فِيْ صَلَاةِ الْمُخَافَتَةِ ځکه (د هغه په نيز به) بسم الله په سرّي لمانځه (د الحمد لله او سورت په مينځ کي) وايي.

**اللغات:** ﴿يأتي﴾ د افعال مضارع ده: په کراره او سوکه ويل. ﴿جملة﴾ ټوله، مجموعه. ﴿المخافتة﴾ د مفاعلې د باب مصدر دی: په پټه ويل، په کراره ويل.

**تشريح:** صورت د مسئلې: دا دی چي زموږ په نيز په سرّي او جهري دواړو لمونځونو کي تعوّذ او تسميه په کراره ويل کيږي، ليکن امام شافعي رَحِمَهُ الله فرمايي چي په جهري لمونځونو کي به تسميه هم په جهر سره ويل کيږي.

**د امام شافعي دليل:** هغه حديث دی کوم چي له حضرت ابو هريره ﷺ څخه رانقل سوی دی: أن النبي ﷺ كان يجهر بسم الله الرحمن الرحيم او همدا ډول روايت له حضرت ابن عباس رَضِيَ اللهُ عَنْهُمَا څخه روايت سوی دی، له دې څخه معلوميږي چي نبي ﷺ به تسميه جهراً (په زوره) ويله، بيا صاحب د فتح القدير د نسائي او نورو په حواله سره د نعيم مجمر رَحِمَهُ الله دا قول هم رانقل کړی دی: صليت وراء أبي هريرة ﷺ فقرأ بسم الله الرحمن الرحيم، ثم قرأ بأم القرآن حتى بلغ ولا الضالين، فقال آمين، ثم يقول إذا سلم والذي نفسي بيده إني لأشبهكم صلاة برسول الله ﷺ. (يعني ما په حضرت ابو هريره ﷺ پسي لمونځ وکړی، هغه بسم الله الرحمن الرحيم وويله، بيا يې سورة فاتحه وويله بيا يې آمين ووايي او تر سلام ګرځولو وروسته يې وفرمايل: چي زه په تاسو ټولو کي د لمانځه په حواله د رسول الله ﷺ سره زيات مشابه يم)(يعني تر تاسو ټولو زما لمونځ د نبي ﷺ د لمانځه سره زيات مشابه دی). له دې واقعې څخه هم معلوميږي چي په جهري لمونځونو کي به تسميه جهراً ويل کيږي، ځکه حضرت ابو هريره ﷺ چي کوم جهر کړی دی هغه به يقيناً له نبي ﷺ څخه رانقل سوی وي. (فتح القدير ج:۱، ص:۲۹۶)

**زموږ دليل:** د حضرت ابن مسعود رَحِمَهُ الله فرمان دی چي څلور شيان داسي دي چي امام به يې په کراره وايي او په دې څلور شيانو کي يې تسميه هم شمار کړه. **دويم دليل:** د حضرت انس ﷺ دا قول دی: صليت خلف رسول الله ﷺ وخلف أبي بكر وعمر وعثمان رَضِيَ اللهُ عَنْهُمْ فلم أسمع أحدا منهم يجهرون ببسم الله الرحمن الرحيم (يعني ما په نبي ﷺ او درې خليفه ګانو پسي لمونځ کړی دی ليکن له يوه څخه مي بسم الله الرحيم په زوره نه ده اورېدلې). **دريم دليل:** د حضرت ابن عباس رَحِمَهُ الله دا روايت دی کوم چي حازمي بيان کړی دی: لم يجهر النبي ﷺ بالبسملة حتى مات، (چي نبي ﷺ تر مرګه پوري بسم الله [په لمانځه کي] جهراً ويلې نه ده)، همدارنګه امام طحاوي رَحِمَهُ الله له ابن عباس رَضِيَ اللهُ عَنْهُمَا څخه دا رانقل کړي دي چي: الجهر قراءة الأعراب، (يعني بسم الله جهراً ويل د صحراياتو [او کوچيانو] قرائت دی). له دې ټولو آثار او روايتونو څخه معلوميږي چي بسم الله په کراره ويل سنت دي، ځکه چي همدغه د نبي ﷺ او د صحابه وو معمول وو، او همدغه له دوی څخه رانقل سوي دي.

**جواب:** پاته سو د امام شافعي رَحِمَهُ الله هغه حديث چي په هغه کي د تسميه بالجهر خبره راغلې ده، نو د هغه يو جواب دا دی چي د اسلام په شروع کي تسميه او آمين او نور ټوله جهراً ويل کېدله، ليکن څه وخت چي دا آيت أدعوا ربكم تضرعاً

وخفية را نازل سو، له هغه وخته څخه جهر بند سو دويم جواب دا دی چې د بسم الله او نورو سره متعلق د جهر روايتونه پر تعليم او تعلّم(ښوونې او زده کړې) باندې حمل سوي دي، يعني تر کومه وخته چې په خلکو کې اسلامي تعليمات عام سوي نه وو تر هغه وخته به په لمانځه او نورو کې د تعليم لپاره په تسميه، ثناء، تعوذ او نورو کې جهر کېدی، لکه څرنګه چې له حضرت عمر ﷺ څخه روايت دی چې هغه د تعليم لپاره تر تکبير تحريمه وروسته ثناء هم جهراً ويلې ده.

ثم عن أبي حنيفة رَحِمَهُ الله الخ د دې حاصل دا دی چې آيا تسميه به د هر رکعت په شروع کې ويل کيږي يا به صرف د اول رکعت په شروع کې ويل کيږي، لکه تعوذ چې صرف په اول رکعت کې ويل کيږي، په دې سلسله کې د امام اعظم رَحِمَهُ الله دوه روايتونه دي: (۱) اول روايت چې د هغه راوي حسن بن زياد رَحِمَهُ الله دی دا دی: چې صرف د اول رکعت په شروع کې به تسميه ويل کيږي، ځکه چې تسميه د سورة الفاتحه جزء نه ده، بلکې د لمانځه د افتتاح(شروع کولو) لپاره ويل کيږي، نو د يوه لمانځه لپاره يو وار تسميه ويل کافي دي، د هر رکعت په شروع کې تسميه ويل ضروري نه دي.(۲) دويم روايت چې د هغه راوي امام ابو يوسف رَحِمَهُ الله دی دا دی: چې که احتياطاً د هر رکعت په شروع کې تسميه وويل سي نو غوره ده، ځکه چې د تسميې د سورة فاتحه په جزء کېدلو او نه کېدلو کې اختلاف دی، نو د احتياط تقاضا همدغه ده چې د هر رکعت په شروع کې وويل سي، همدغه د صاحبينو رَحِمَهُمَا الله قول هم دی.

ولا يأتي بها الخ فرمايي چې د سورة فاتحې او سورت په مينځ کې به بسم الله نه ويل کيږي، ليکن د امام محمد رَحِمَهُ الله په نيز په سري لمونځونو کې د سورة فاتحې او سورة په مينځ کې تسميه ويل مستحب دي، ځکه چې داسې کول د دې آيت فإذا قرأت القرآن...الخ سره زيات نژدې او مناسب دي.

**راجح قول:** په پورتنۍ مسئله کې راجح قول د صاحبينو رَحِمَهُمَا الله دی، قال العلامة عبد الله داماد آفندی رَحِمَهُ الله: اول كل ركعة عندهما وعند الامام في رواية اخرى عنه في الركعة الاولى فقط والاول احوط وعليه الفتوى (مجمع الانهر ج:۱، ص:۹۵). [القول الراجح ج:۱، ص:۷۶]

## د الحمد لله سره د سورت يوځای کولو حکم (او په دې باره کې د فقهاؤ قولونه)

ثُمَّ يَقْرَأُ فَاتِحَةَ الْكِتَابِ بيا به لمونځ کونکی سورت فاتحه(الحمد لله) وايي وَسُورَةً أَوْ ثَلَاثَ آيَاتٍ مِنْ أَيِّ سُوَرَةٍ شَاءَ او يو سورت يا درې آيتونه چې له کوم سورت څخه يې خوښه وي فَقِرَاءَةُ الْفَاتِحَةِ لَا تَتَعَيَّنُ رُكْنًا عِنْدَنَا نو د سورت فاتحه رکن کېدل زموږ په نيز متعين نه دي وَكَذَا ضَمُّ السُّورَةِ إِلَيْهَا همدارنګه د سورت فاتحې سره د سورت يو ځای کول هم (رکن نه دي) خِلَافًا لِلشَّافِعِيِّ رَحِمَهُ اللهُ فِي الْفَاتِحَةِ په سورت فاتحه کې د امام شافعي رَحِمَهُ الله اختلاف دی وَلِمَالِكٍ رحِمَهُ اللهُ فِيهِمَا او د امام مالک رَحِمَهُ الله په دواړو کې اختلاف دی لَهُ قَوْلُهُ عَلَيْهِ الصَّلَاةُ وَالسَّلَامُ ● د امام مالک

رَحِمَهُ الله دليل د نبي ﷺ دا قول دی لَا صَلَاةَ إِلَّا بِفَاتِحَةِ الْكِتَابِ وَسُورَةٍ مَعَهَا چي د سورتِ فاتحې او له سورت څخه ماسوا لمونځ نه دی(يعني لمونځ نه صحيح کيږي) وَلِلشَّافِعِيِّ رَحِمَهُ اللهُ قَوْلُه عَلَيْهِ الصَّلَاةُ وَالسَّلَامُ ● لَا صَلَاةَ إِلَّا بِفَاتِحَةِ الْكِتَابِ او د امام شافعي رَحِمَهُ الله دليل د نبي ﷺ دا قول دی: چي له سورتِ فاتحې څخه بغير لمونځ نه دی وَلَنَا قَوْلُهُ تَعَالَىٰ: فَاقْرَءُوْا مَا تَيَسَّرَ مِنَ الْقُرْآنِ [المزمل: ۲۰] او زموږ دليل د الله تعالیٰ دا فرمان دی: وایاست هغه کوم چي تاسو ته په قرآن کي آسانه وي وَالزِّيَادَةُ عَلَيْهِ بِخَبَرِ الْوَاحِدِ لَا يَجُوْزُ او پر قرآن کريم باندي په خبر واحد سره زياتوب جائز نه دی لٰكِنَّهُ يُوْجِبُ الْعَمَلَ لېکن خبر واحد عمل واجبوي فَقُلْنَا بِوُجُوْبِهِمَا نو ځکه موږ دواړو(يعني سورتِ فاتحې او د سورت يو ځای کولو) ته واجب وايو.

**تخريج:** ﴿تَيَسَّرَ﴾ د تفعّل ماضي ده: آسانه کېدل. ﴿فَاتِحَةُ الْكِتَابِ﴾ سورتِ فاتحه. (الحمد لله).

**تشريح: صورتِ د مسئلې:** دا دی چي زموږ په نېز سورتِ فاتحه ويل او بل سورت ور سره يو ځای کول واجب دي، د امام شافعي رَحِمَهُ الله په نېز سورتِ فاتحه ويل رکن دي او د امام مالک رَحِمَهُ الله په نېز سورتِ فاتحه ويل او سورت ور سره يو ځای کول دواړه رکن دي.

**د امام مالک دليل:** دا دی چي نبي ﷺ په خپل دې فرمان لا صلاة إلا بفاتحة الكتاب و سورة معها کي د لا په ذريعه له سورتِ فاتحې او ضمّ سورت څخه بغير د لمانځه نفي کړي دي(يعني په کوم لمانځه کي چي سورتِ فاتحه او بل سورت نه ويل سي نو هغه بالکل لمونځ نه دی)، او ښکاره خبره ده چي د کوم شي په پرېښوولو سره چي د لمانځه نفي کيږي نو هغه رکن وي، نو ځکه به دا دواړه شيان د لمانځه رکن وي.

**د امام شافعي دليل:** هم لا صلاة إلا بفاتحة الكتاب دی، او استدلال د امام مالک رَحِمَهُ الله په توګه کوي.

**زموږ دليل:** د قرآن کريم دا آيت دی: فاقرؤا ما تيسر من القرآن، په دې آيت سره موږ په دې توګه دليل نيسي چي الله ﷻ تر ما تيسر وروسته د من القرآن ذکر مطلق کړی دی، او قاعده دا ده: المطلق يجری علی إطلاقه، نو تر دې قاعدې لاندي به د ادنیٰ ما يطلق عليه اسم القرآن په اندازه ويل فرض وي(يعني صرف دومره اندازه به فرض وي چي پر هغه د قرآن اطلاق وسي)، او له دې څخه علاوه به د سورت ور سره يو ځای کول، يا سورتِ فاتحه ويل واجب وي.

**جواب:** والزيادة الخ له دې ځايه د امام مالک رَحِمَهُ الله او د امام شافعي رَحِمَهُ الله د دليل جواب ورکوي، حاصل يې دا دی چي وروره! د فرضيت او رکنيت ثابتولو لپاره ټينګ دليل پکار دی، او په مذکوره مسئله کي چي تاسو په کومو حديثونو سره د سورتِ فاتحه او ضمّ سورتِ رکنيت ثابتوی هغه خبر واحد دی، او خبر واحد ظنی الثبوت وي چي په هغه سره فرضيت يا رکنيت نه سي ثابتېدلای، نو ځکه به په دې حديثونو سره ستاسو استدلال باطل وي؛ هو! اخبار آحاد عمل واجبوي، يعني د کوم عمل سره چي تعلق لري په هغه کي وجوب ثابتوي، نو ځکه موږ دا دواړه واجب ګرځوو.

---

● تخريج: أخرجه الائمة الستة في كتبهم؛ البخاری في كتاب التوحيد، باب سمى النبي ﷺ الصلاة عملا، حديث رقم:۷۵۳۴؛ و ابو داؤد في كتاب الصلاة، باب من ترك القرأة في الصلاة بفاتحة الكتاب، حديث: ۸۱۹ .

## د امام او مقتدي لپاره د آمين ويلو حکم (او په دې باره کې د فقهاؤ قولونه)

وَإِذَا قَالَ الْإِمَامُ وَلَا الضَّالِّيْنَ او کله چې امام وَ لا الضّالين ووايي قَالَ آمِيْنَ نو امام دې آمين ووايي وَيَقُوْلُهَا الْمُؤْتَمُّ او مقتدي دې هم آمين ووايي لِقَوْلِهِ عَلَيْهِ الصَّلَاةُ وَالسَّلَامُ • إِذَا أَمَّنَ الْإِمَامُ فَأَمِّنُوْا ځکه نبي ﷺ فرمايلي دي: کله چې امام آمين ووايي نو تاسو هم آمين واياست وَلَا مُتَمَسَّكَ لِمَالِكٍ رَحِمَهُ اللهُ فِيْ قَوْلِهِ عَلَيْهِ الصَّلَاةُ وَالسَّلَامُ • إِذَا قَالَ الْإِمَامُ وَلَا الضَّالِّيْنَ فَقُوْلُوْا آمِيْنَ مِنْ حَيْثُ الْقِسْمَةِ او د امام مالک رَحِمَهُ الله لپاره د نبي ﷺ په دې قول إذا قال الإمام ولا الضّالين فقولوا آمين کې د تقسيم په اعتبار سره هيڅ دليل نشته لِأَنَّهُ قَالَ فِيْ آخِرِهٖ ځکه نبي ﷺ د حديث په آخر کې دا (هم) فرمايلي دي فَإِنَّ الْإِمَامَ يَقُوْلُهَا (يعني امام به هم آمين وايي).

**اللغات:** ﴿الْمُؤْتَمُّ﴾ مقتدي، ﴿أَمَّنَ﴾ د تفعيل د باب ماضي صيغه ده: آمين ويل، ﴿مُتَمَسَّكَ﴾ دليل، د تمسک ځای.

**تشريح:** **مسئله:** دا ده چې د سورت فاتحې تر ختمېدلو وروسته چې کله امام ولا الضّالين ووايي، نو امام او مقتدي دواړو له آمين ويل پکار دي.

**زموږ دليل:** دا حديث دی: إذا أمن الإمام فأمنوا فإنه من وافق تأمينه تأمين الملائكة غفر له ما تقدم من ذنبه. (کله چې امام آمين ووايي نو تاسو هم آمين واياست ځکه چې د چا آمين د فرښتو د آمين ويلو سره برابر سي نو د هغه تېر سوي ټول ګناهونه معاف کيږي)، امام مالک رَحِمَهُ الله فرمايي چې صرف مقتدی به آمين وايي، امام به آمين نه وايي.

**د امام مالک دليل:** دا حديث دی: اذا قال الإمام "ولا الضّالين" فقولوا آمين، پوره حديث مسلم داسي را نقل کړی دی: إنما جعل الإمام ليؤتم به فلا تختلفوا عليه فإذا كبر فكبروا وإذا قرأ فانصتوا وإذا قال "ولا الضّالين" فقولوا آمين، (امام خو جوړ سوی د دې لپاره دی چې د هغه اقتداء وکړی سي، نو ځکه تاسو له هغه څخه اختلاف مه کوئ، کله چې هغه تکبير ووايي نو تاسو تکبير واياست، او کله چې هغه قرائت کوي نو تاسو چپ اوسئ، او کله چې هغه ولا الضّالين ووايي، نو تاسو آمين واياست)، امام مالک رَحِمَهُ الله په دې حديث سره په دې توګه دليل نيسي چې نبي ﷺ د امام او مقتدي په مينځ کي تقسيم کړی دی، نو د امام په برخه کي د قرائت پوره کول دی، او د مقتدي په برخه کي آمين ويل دي، او څرنګه چې تقسيم د شرکت منافی دی، نو ځکه به په آمين ويلو کي امام او مقتدی دواړه شريک نه وي، بلکي صرف مقتدی به آمين وايي.

**جواب:** د امام مالک رَحِمَهُ الله د حديث جواب دا دی چې د دې حديث په آخر کي راغلي دي: فإن الإمام يقولها، يعني امام به هم آمين وايي نو معلومه سوه چې له دې حديث څخه تقسيم او وېش مراد نه دی.

---

• تخريج: أخرجه ابو داؤد في كتاب الصلاة، باب التأمين وراء الامام، حديث رقم: ۹۳۶.

• تخريج: أخرجه ابو داؤد في كتاب الصلاة، باب التأمين وراء الامام، حديث رقم: ۹۳۵.

## آمین په غوږنګه ویل کېږي

قَالَ: وَيُخْفُونَهَا فرمايي: چي امام او تول خلګ به آمین په کراره وايي لِمَا رَوَيْنَاهُ مِنْ حَدِيْثِ ابْنِ مَسْعُودٍ رَضِيَ اللهُ تَعَالَى عَنْهُ د هغه دليل په وجه کوم چي موږ د ابن مسعود ﷺ په حديث سره بيان کړی وَلِأَنَّهُ دُعَاءٌ فَيَكُونُ مَبْنَاهُ عَلَى الْإِخْفَاءِ او په دې وجه هم چي آمين دعاء ده نو ځکه به د دې بنياد په اخفاء باندي وي وَالْمَدُّ وَالْقَصْرُ فِيْهِ وَجْهَانِ او په آمين کي دوه لغتونه دي يعني مدّ او قصر وَالتَّشْدِيْدُ فِيْهِ خَطَأٌ فَاحِشٌ لېکن آمين مشدد ويل ښکاره غلطي ده.

**اللغات:** ﴿يُخْفُونَهَا﴾ د افعال مضارع ده: په پټه او کراره ويل، ﴿مَدّ﴾ کشول، اوږدول، ﴿قَصْر﴾ کوچني کول، د مدّ ضد، ﴿فَاحِش﴾ بد، هغه چي بد معلومېږي..

**تشريح:** زموږ په نېز د امام او تولو مقتديانو لپاره آمين په کراره ويل سنت دي، او امام شافعي رَحِمَهُ الله وايي چي په جهر سره دي يې وايي.

**د امام شافعي دليل:** د ابو داؤد روايت دی: عن وائل بن حجر قال كان رسول الله إذا قرأ ولا الضالين قال آمين ورفع بها صوته.

او په ترمذي کي راغلي دي ومدّ بها صوته. (يعني وائل بن حجر ﷺ وايي چي کله به نبي ﷺ ولا الضالين ووايی نو آمين به يې ووايی او په آمين سره به يې خپل آواز پورته کړی).

**زموږ دليل:** د ابن مسعود ﷺ حديث دی کوم چي مخکي تېر سو يعني: قال اربع يخفيهن الامام التعوذ وبسم الله الرحمن الرحيم و اللهم ربنا لك الحمد و آمين، او په يوه روايت کي راغلي دي: خمس يخفيهن الامام، له دې روايت څخه هم د آمين کرار ويل ثابتېږي. **دوېيم دليل:** دا دی چي آمين د إِسْتَجِبْ په معنیٰ سره دی، او د استجب معنی ده: اې الله! (زموږ دعاء) قبوله کړه (يعني د استجب لفظ دعاء ده)، او په دعاء کي به اخفاء (کراروالی) وي، ځکه چي الله فرمايلي دي: ادْعُوا رَبَّكُمْ تَضَرُّعًا وَخُفْيَةً. نو ځکه به په آمين کي اخفاء کول سنت وي.

**جواب:** د امام د شافعي د دليل جواب دا دی چي علقمه بن وائل چي له خپل پلار وائل څخه کوم روايت کړی دی په هغه کي خفض به صوته راغلي دي، نو د تعارض په وجه سره دواړه دليلونه د استدلال وړ نه دي، او د ابن مسعود ﷺ حديث کوم چي زموږ دليل دی، د استدلال وړ دی.

والمد والقصر الخ صاحب د هدايې فرمايي چي د آمين په الف کي د مد او قصر دواړه صورتونه جائز دي، يعني په مد سره ويل هم جائز دي، او بغير له مده ويل هم جائز دي، لېکن آمّين په تشديد سره ويل صحيح نه دي، بلکي دا ښکاره غلطي ده، او د بعضي علماؤ په نېز خو لمونځ هم فاسدوي.

**فايده:** د آمين د لفظ همزه بعضي خلګو ممدوده ويلې ده او بعضي خلګو مقصوره ويلې ده، خو ښکاره دي وي چي په دواړو صورتونو کي به د فَعِيْل وزن پاتېږي، نو د ممدوده ويلو په صورت کي به الف د اشباع وي، او د ممدوده ويلو دليل يې د "مجنون" دا شعر دی: ويرحم الله عبداً قال آمينا، په دې کي آمين ممدوده استعمال سوی دی، او په دې کي آخري الف هم د اشباع دی.

## د رکوع په وخت کې تکبير ويل

قَالَ: ثُمَّ يُكَبِّرُ فرمايي: چې بيا به لمونځ کونکي تکبير ووايي وَيَرْكَعُ او رکوع به وکړي وَفِي الْجَامِعِ الصَّغِيْرِ: وَيُكَبِّرُ مَعَ الِانْحِطَاطِ او په جامع صغير کې راغلي دي: چې د ټيټېدلو سره دې تکبير وايي لِأَنَّ النَّبِيَّ عَلَيْهِ الصَّلَاةُ وَالسَّلَامُ• كَانَ يُكَبِّرُ عِنْدَ كُلِّ خَفْضٍ وَرَفْعٍ ځکه چې نبي ﷺ به د هر وار کښته کېدلو او را پورته کېدلو سره تکبير وايي وَيَحْذِفُ التَّكْبِيْرَ حَذْفًا او تکبير به په ښه قصر (لنډون) سره وايي لِأَنَّ الْمَدَّ فِي أَوَّلِهِ خَطَأٌ مِنْ حَيْثُ الدِّيْنُ ځکه چې د تکبير په شروع کې مدّ کول ديني غلطي ده لِكَوْنِهِ اِسْتِفْهَامًا ځکه چې دا استفهام دی وَفِي آخِرِهِ لَحْنٌ مِنْ حَيْثُ اللُّغَةُ او د تکبير په آخر کې مد کول لغوي غلطي ده.

**اللغات:** ﴿انحطاط﴾ دا انفعال مصدر دی: کوږ والی، کښته والی، ټيټوالی، ﴿خفض﴾ د ضرب مصدر دی: کښته کېدل، لاندې کېدل، ﴿لحن﴾ غلطي، خطا.

**تشريح:** **مسئله:** دا ده چې لمونځ کونکی دې تر قرائت پوره کولو وروسته بغير له څه ځنډه تکبير ووايي، او بيا دې رکوع وکړي، د امام قدوري رَحِمَهُ الله په نيز هم دا مذهب صحيح دی، او په جامع صغير کې دي چې رکوع ته د تللو په وخت کې به تکبير وايي، يعني رکوع ته د ټيټېدلو په وخت کې به تکبير شروع کوي، امام طحاوي رَحِمَهُ الله فرمايي چې همدا صحيح ده.

**دليل:** دا دی چې نبي ﷺ به د هر کښته کېدلو او پورته کېدلو په وخت کې تکبير وايي، د دې روايت ابن مسعود رضي الله عنه داسې کړی دی: كان النبي ﷺ يكبر في كل خفض و رفع وقيام وقعود و أبوبكر و عمر رَضِيَ اللهُ عَنْهُمَا، (يعني نبي کريم ﷺ او شيخينو رَضِيَ اللهُ عَنْهُمَا به د هر کښته والي او پورته والي او د ولاړې او ناستې په وخت کې تکبير وايی)، نو په دې حديث سره هم رکوع ته د تللو په وخت کې تکبير ويل ثابت سوه).

ويحذف الخ د دې حاصل دا دی چې په الله أکبر کې به نه په شروع کې مد کوي او نه په آخر کې، په شروع کې د مد کولو مطلب دا دی چې د الله الف په مد سره اداء کړی سي لکه آلله، ځکه چې دلته بيا د استفهام معنیٰ ورکوي، او د الله أکبر معنیٰ به سي: آيا الله غټ دی؟ حال دا چې د شريعت له رويه دا معنیٰ بالکل غلطه ده، ځکه چې د تکبير په ذريعه سره د خدای لويي ثابتيږي، شک او تردد نه ثابتيږي.

همدارنګه په آخر کې د مد کولو مطلب دا دی چې په دويم لفظ يعني أکبر کې الف د زبر(زور) پر ځای په مد سره وويل سي يعني أکبار وويل سي، نو دا هم غلطي ده، ځکه چې په دې صورت کې يې ترجمه داسې کيږي چې: الله آيا غټ دی؟ او ښکاره ده چې دا ترجمه هم بالکل غلطه ده او د شريعت له نظره خلاف ده، همدارنګه د أکبر په آخر کې مد کول هم يو ډول لغوي غلطي ده، نو ځکه لمونځ ګزار ته له داسې غلطيو څخه ځان ساتل پکار دي او بالکل په صحيح توګه سره اَللهُ أَكْبَرُ ويل پکار دي.

---

• تخريج: أخرجه الترمذي في كتاب الصلاة، باب ما جاء في التكبير عند الركوع والسجود، حديث رقم:۲۵۳.

## د رکوع طریقه او تسبیح

وَيَعْتَمِدُ بِيَدَيْهِ عَلَى رُكْبَتَيْهِ او لمونځ کونکی به په خپلو دواړو لاسو سره خپل دواړه زنګونان نیسي وَيُفَرِّجُ بَيْنَ أَصَابِعِهِ او د ګوتو په مینځ کي به پراخي راولي(یعني د ګوتو په مینځ کي به فاصله راولي) لِقَوْلِهِ عَلَيْهِ الصَّلَاةُ وَالسَّلَامُ لِأَنَسٍ رَضِيَ اللهُ عَنْهُ • ځکه نبي ﷺ حضرت انس رضی الله عنه ته فرمایلي وو إِذَا رَكَعْتَ فَضَعْ يَدَيْكَ عَلَى رُكْبَتَيْكَ کله چي ته رکوع کوې نو خپل دواړه لاسونه پر خپلو دواړو زنګونانو ایږده وَفَرِّجْ بَيْنَ أَصَابِعِكَ او دخپلو ګوتو په مینځ کي پراخي راوله وَلَا يُنْدَبُ إِلَى التَّفْرِيجِ إِلَّا فِي هَذِهِ الْحَالَةِ او صرف په دغه حالت کي (د ګوتو) پراخوالی مستحب دی لِيَكُونَ أَمْكَنَ مِنَ الْأَخْذِ دې لپاره چي په ښه توګه سره(د زنګونانو) نیول ممکنه وي وَلَا إِلَى الضَّمِّ إِلَّا فِي حَالَةِ السُّجُودِ او د ګوتو یو ځای کول (جوختول) صرف د سجدې په حالت کي مستحب دي وَفِيمَا وَرَاءَ ذَلِكَ يُتْرَكُ عَلَى الْعَادَةِ او له ذکر سوو حالتونو څخه علاوه به ګوتي پر خپل عادت پرېښوول کیږي وَيَبْسُطُ ظَهْرَهُ او لمونځ کونکي به خپله ملا (په رکوع کي) غوړوي (یعني خپله ملا به هواره ساتي) لِأَنَّ النَّبِيَّ عَلَيْهِ الصَّلَاةُ وَالسَّلَامُ • كَانَ إِذَا رَكَعَ بَسَطَ ظَهْرَهُ ځکه کله چي به نبي ﷺ رکوع کوله نو ملا به یې هواره ساتله وَلَا يَرْفَعُ رَأْسَهُ وَلَا يُنَكِّسُهُ او لمونځ کونکی به (په رکوع کي) نه سر پورته کوي او نه به یې کښته کوي(ټیټوي) لِأَنَّ النَّبِيَّ • عَلَيْهِ الصَّلَاةُ وَالسَّلَامُ كَانَ إِذَا رَكَعَ لَا يُصَوِّبُ رَأْسَهُ وَلَا يُقْنِعُهُ ځکه نبي ﷺ چي به کله رکوع کوله نو نه به یې سر کښته کوی او نه به یې پورته کوی وَيَقُولُ سُبْحَانَ رَبِّيَ الْعَظِيمِ ثَلَاثًا او (په رکوع کي به) درې واره سبحان ربي العظيم وایي وَذَلِكَ أَدْنَاهُ او درې واره دا دې کمه اندازه ده لِقَوْلِهِ • عَلَيْهِ الصَّلَاةُ وَالسَّلَامُ إِذَا رَكَعَ أَحَدُكُمْ فَلْيَقُلْ فِي رُكُوعِهِ سُبْحَانَ رَبِّيَ الْعَظِيمِ ثَلَاثًا ځکه نبي ﷺ فرمایلي دي: کله چي په تاسو کي څوک رکوع کوي نو هغه دي په رکوع کي درې واره سبحان ربي العظيم وایي وَذَلِكَ أَدْنَاهُ او دا یې کمه اندازه ده أَيْ أَدْنَى كَمَالِ الْجَمْعِ یعني د جمعي د کمال کمه اندازه ده.

**اللغات:** ﴿رُكْبَتَيْهِ﴾ تثنیه ده، واحد یې رُكْبَةٌ دی: زنګون، ﴿يَبْسُطُ﴾ د نصر د باب مضارع صیغه ده: غوړول، ﴿يُفَرِّجُ﴾ د تفعیل د باب مضارع صیغه ده: غوړول، ﴿يُنْدَبُ﴾ دا هم د نصر د باب مضارع ده: مستحب کېدل، ﴿يُصَوِّبُ﴾ د تفعیل د باب مضارع صیغه ده: پورته کول، سیده کول، ﴿يُنَكِّسُ﴾ د ضرب د باب مضارع صیغه ده: سر کښته کول.

---

• تخريج: أخرجه ابو داؤد في كتاب الصلاة، باب الصلاة من لايقيم صلبه في الركوع، حديث رقم:٨٥٩، ٨٦٣.
• تخريج: أخرجه ابن ماجه في كتاب الاقامة، باب الركوع في الصلاة، حديث رقم:٨٧٢.
• تخريج: أخرجه الترمذي في كتاب الصلاة، باب ما جاء في وصف الصلاة، حديث رقم:٣٠٢.
• تخريج: أخرجه ابو داؤد في كتاب الصلاة، باب مقدار الركوع والسجود، حديث رقم:٨٨٦.

**تشريح:** په دې عبارت کې د رکوع طريقه او د رکوع تسبيح بيانيږي، نو د رکوع سنت طريقه دا ده چې لمونځ کونکی دې په خپلو دواړو لاسونو خپل دواړه زنګونان ونيسي، او د لاس ګوتې دې پراخه پرېږدي، او دواړه پنډۍ دې سيده ولري.

**دليل:** دا دی چې نبي ﷺ حضرت انس ؓ ته (کوم چې د نبي ﷺ خادم وو) وفرمايل: اې بچيه! کله چې ته رکوع کوې نو دواړه لاسونه پر زنګونانو ايږده، او خپلې ګوتې پراخې لره.

ويندب الخ صاحب د هدايې رَحِمَهُ الله فرمايي چې د رکوع په حالت کې ګوتې پراخه کول(خورول) مستحب دي، د دې لپاره چې په ګوتو باندې زنګونان په ښه توګه سره ونيول سي، او له رکوع څخه ماسوا په بل حالت کې ګوتې پراخه ساتل مستحب نه دي، او د سجدې په حالت کې د لاس ګوتې يو ځای کول (جوختول) مستحب دي، د دې لپاره چې د ګوتو سرونه د قبلې وطرف ته متوجه سي، له دې دواړو حالتونو څخه په ماسوا په نورو حالتونو کې ګوتې پر خپل عادت پرېښول کيږي، يعني نه به سره يو ځای کيږي او نه به سره پراخه کيږي بلکې خپل پر طبعي حالت به اېښول کيږي، د رکوع په حالت کې به لمونځ کونکی ملا دومره اندازه هواره او برابره ساتي چې که پر ملا له اوبو څخه وکه پياله(کوپ) کېښښول سي نو هغه به پر خپل ځای ولاړه پاته وي او ښوري به نه.

**دليل:** دا دی چې نبي ﷺ به کله رکوع کوله، نو خپله شا به يې هواره او برابره ساتله، د حضرت عائشې رَضِيَ اللهُ عَنْهَا روايت دی: أنه كان يعتدل لو وضع على ظهره قدح ماء تستقر (يعني نبي ﷺ به ملا دومره هواره ساتله چې که د هغه پر ملا د اوبو وکه پياله اېښول سوې وای نو هغه به پر خپل ځای پاته وای [يعني ښوربدلای به نه])

ولا يرفع رأسه الخ صاحب د قدوري رَحِمَهُ الله وايي چې د رکوع په حالت کې به سر نه پورته کوي او نه به يې کښته کوي، يعني د کوناټو سره به يې برابروي، دليل يې دا چې کله به رسول الله ﷺ رکوع کوله، نو خپل سر به يې نه کښته کوی او نه به يې پورته کوی.

**د رکوع تسبيحات:** د رکوع تسبيحات دا دي: چې درې واره به سبحان ربي العظيم وايي، درې واره يې ويل کمه اندازه ده، کنې پنځه يا اووه يا له دې څخه يې زيات هم ويلای سي، دليل د نبي ﷺ دا قول دی: إذا ركع أحدكم فليقل في ركوعه سبحان ربي العظيم ثلثا. (يعني کله چې په تاسو کې څوک رکوع کوي نو په خپله رکوع کې دې درې واره سبحان ربي العظيم وايي) او درې واره د جمع د کمال او بشپړتيا کمه درجه ده.

## په قومه کې به امام او مقتدي څه وايي؟ (د فقهاؤ قولونه)

**ثُمَّ يَرْفَعُ رَأْسَهُ** بيا به امام خپل سر راپورته کړي **وَيَقُولُ: سَمِعَ اللّٰهُ لِمَنْ حَمِدَهُ** او سمع الله لمن حمده به ووايي **وَيَقُولُ الْمُؤْتَمُّ: رَبَّنَا لَكَ الْحَمْدُ** او مقتدي به ربنا لک الحمد ووايي **وَلَا يَقُولُهَا الْإِمَامُ عِنْدَ أَبِي حَنِيفَةَ رَحِمَهُ اللهُ** او د امام ابو حنيفه رَحِمَهُ الله په نيز به امام ربنا لک الحمد نه وايي **وَقَالَا يَقُولُهَا فِي نَفْسِهِ** او صاحبين رَحِمَهُ الله فرمايي چې په خپل زړه کې به يې وايي **لِمَا رَوَىٰ أَبُوْ هُرَيْرَةَ رَضِيَ اللّٰهُ عَنْهُ** د هغه حديث په وجه کوم چې له حضرت ابو هريره ؓ څخه روايت سوی دی **أَنَّ النَّبِيَّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ ● كَانَ يَجْمَعُ بَيْنَ الذِّكْرَيْنِ** چې نبي ﷺ به دواړه ذکرونه جمع کوله **وَلِأَنَّهُ حَرَّضَ**

---

● تخريج: أخرجه البخاري في كتاب الاذان، باب ما يقول الامام ومن خلفه إذا رفع رأسه من الركوع، حديث رقم:۷۹۵.

غَيْرَهُ فَلَا يَنْسٰى نَفْسَهُ او په دې وجه هم چي امام مقتديان دې ته وهڅول نو خپل ځان به نه هېروي وَلِأَبِي حَنِيْفَةَ رَحِمَهُ اللهُ قَوْلُهُ ● عَلَيْهِ الصَّلَاةُ وَالسَّلَامُ او د امام صاحب رَحِمَهُ الله دليل د نبي ﷺ دا فرمان دی إِذَا قَالَ الْإِمَامُ سَمِعَ اللهُ لِمَنْ حَمِدَهُ چي کله امام سمع الله لمن حمده ووايي فَقُوْلُوْا رَبَّنَا لَكَ الْحَمْدُ نو تاسو ربنا لك الحمد وواياست هٰذِهٖ قِسْمَةٌ دا تقسيم(وېش) دی وَأَنَّهَا تُنَافِي الشِّرْكَةَ او تقسيم د شرکت منافي(ضد) دی وَلِهٰذَا لَا يَأْتِي الْمُؤْتَمُّ بِالتَّسْمِيْعِ عِنْدَنَا نو ځکه به زموږ په نيز مقتدی سمع الله لمن حمده نه وايي خِلَافًا لِلشَّافِعِيِّ رَحِمَهُ اللهُ د امام شافعي رَحِمَهُ الله اختلاف دی وَلِأَنَّهُ يَقَعُ تَحْمِيْدُهُ بَعْدَ تَحْمِيْدِ الْمُقْتَدِيْ او په دې وجه هم چي د امام ربنا لك الحمد به د مقتدي له ربنا لك الحمد څخه وروسته واقع سي وَهُوَ خِلَافُ مَوْضُوْعِ الْإِمَامَةِ او دا د امامت له شان (او مرتبې) څخه خلاف دي وَمَا رَوَاهُ مَحْمُوْلٌ عَلٰى حَالَةِ الْاِنْفِرَادِ او صاحبينو چي کوم روايت کړی دی هغه د منفرد والي پر حالت حمل سوی دی وَالْمُنْفَرِدُ يَجْمَعُ بَيْنَهُمَا فِي الْأَصَحِّ او منفرد به د صحيح قول مطابق دواړه ذکرونه جمع کوي وَإِنْ كَانَ يُرْوٰى الْاِكْتِفَاءُ بِالتَّسْمِيْعِ که څه هم دا روايت سته چي منفرد به صرف پر سمع الله لمن حمده اکتفاء کوي وَيُرْوٰى بِالتَّحْمِيْدِ او يو روايت دا هم سته چي منفرد به صرف پر ربنا لك الحمد اکتفاء کوي وَالْإِمَامُ بِالدَّلَالَةِ عَلَيْهِ آتٍ بِهِ مَعْنًى او امام په ربنا لك الحمد د دلالت کولو په وجه د معنیٰ په توګه د ربنا لك الحمد اداء کونکی سو.

**اللغات:** ﴿حرّض﴾ د تفعيل د باب ماضي صيغه ده: ترغيب ورکول، پارول، هڅول. ﴿تسميع﴾ سمع الله لمن حمده ويل. ﴿تحميد﴾ ربنا لك الحمد ويل.

**تشريح:** د عبارت تر حل مخکي دا خبره په ياد لرئ! چي تسميع د سمع الله لمن حمده مخفف دی، او تحميد د ربنا لك الحمد مخفف دی، حنفي عالمان خو پر دې خبره متفق دي چي که لمونځ ګزاره يوازي لمونځ کوي(يعني منفرد وي) نو تسميع او تحميد به دواړه وايي، همدارنګه که يو سړی په بل چا پسي لمونځ کوي نو هغه به صرف تحميد وايي، لېکن اختلاف په دې کي دی چي امام به په خپله دواړه وايي او که به صرف پر تسميع اکتفاء کوي، د امام صاحب رَحِمَهُ الله مسلک دا دی چي امام به صرف پر تسميع اکتفاء کوي او تحميد به نه وايي، او د صاحبينو رَحِمَهُمَا الله مسلک دا دی چي د منفرد په ډول به امام هم تسميع او تحميد دواړه جمع کوي.

**د صاحبينو دليل:** د حضرت ابو هريره رضي الله عنه دا حديث دی: أن النبي ﷺ كان يجمع بين الذكرين، او په صحيحين کي د حضرت ابو هريره رضي الله عنه يو بل حديث هم دې ته نږدې سته چي د هغه په آخر کي راغلي دي: ثم يقول سمع الله لمن حمده حين يرفع صلبه من الركوع ثم يقول وهو قائم ربنا لك الحمد...الخ، (يعني نبي ﷺ چي به کله له رکوع څخه خپله ملا راپورته کوله نو سمع الله لمن حمده به يې وايی، او بيا به يې د ولاړي په حالت کي ربنا لك الحمد وايی)، له دې دواړو روايتونو څخه د صاحبينو رَحِمَهُمَا الله استدلال په دې توګه دی چي په دې روايت کي له نبي ﷺ څخه جمع بين التسميع

● تخريج: أخرجه البخاری فی كتاب الاذان، باب فضل اللهم ربنا لك الحمد، حديث رقم:۷۹۶.

والتحميد ثابته سوه، او نبي ﷺ به په خپل ژوند مبارک کي زياتره او اکثره امامت ورکوی، نو معلومه سوه چي نبي ﷺ به د امامت په حالت کي جمع بين الذكرين کوله، نو ځکه موږ هم دا د امام لپاره سنت او مستحب وګرځول، که څه هم هغه يې په زړه کي ووايي.

**د صاحبينو عقلي دليل:** دا دی چي کله امام په تسميع ويلو سره مقتديان پر ذکر را هڅوي او د ذکر ترغيب ورکوي، نو عقلاً هم دا خبره په ذهن کي راځي چي امام دې په خپله هم هغه ذکر اداء کړي، ځکه چي هغه ته دا په ښه توګه معلومه ده چي د داسي نه کولو په صورت کي به د أتأمرون الناس بالبر وتنسون أنفسكم تر وعيد لاندي راسي.

**د امام صاحب دليل:** ولأبي حنيفة رَحِمَهُ الله له دې ځايه د امام صاحب دليل بيانوي حاصل يې دا دی چي نبي ﷺ فرمايلي دي کله چي امام سمع الله لمن حمده ووايي نو مقتدي به ربنا لك الحمد وايي، او د نبي ﷺ دا فرمان په اصل کي د امام او د مقتدي لپاره د تقسيم او وېش حيثيت لري، يعني پر دې موقع د اما وظيفه تسميع ده او د متقديانو وظيفه تحميد ده، نو کله چي د امام او مقتديانو په مينځ کي تقسيم وکړی سو، نو اوس د امام يا د مقتدي لپاره د دې دواړو جمع کول د نبي ﷺ د فرمان هم خلاف دي او له تقسيم څخه هم منافي دي، نو ځکه زموږ په نيز (د امام صاحب په نېز) به امام تحميد نه وايي، او مقتدی به تسميع نه وايي، که څه هم د امام شافعي رَحِمَهُ الله په نېز د مقتدي لپاره تسميع هم جائز ده، لېکن زموږ په نېز به په اتفاق سره مقتدی تسميع نه وايي.

**د امام صاحب عقلي دليل:** دا دی چي د امام په حق کي د امامت شان دا دی چي مقتدي به د ده اتباع او تابعداري کوي، او د تابعداري مفهوم هغه وخت ثابتيږي چي کله امام مخکي تحميد ووايي او مقتدي وروسته تحميد ووايي، حال دا چي په مذکوره مسئله کي چي کله امام سمع الله لمن حمده ووايي، نو د مقتديانو پر ژبه د ربنا لك الحمد کلمه جاري سي، اوس که موږ امام هم د تحميد مکلّف وګرځوو نو ښکاره ده چي د امام تحميد به د مقتديانو تر تحميد وروسته واقع سي، او دا د امامت له شان څخه هم خلاف ده او د اتباع له مفهوم څخه هم منافي ده، نو ځکه د امام لپاره د تحميد وظيفه سنت او مستحب نه ده.

**جواب:** صاحب د هدايې رَحِمَهُ الله له وما رواه څخه د صاحبينو د حديث جواب ورکوي فرمايي چي دا د انفراد او يوازي والي پر حالت حمل دي، او د دې خو امام صاحب هم قائل دی چي منفرد به تسميع او تحميد دواړه جمع کوي، همدا صحيح ده.

د صاحبينو د عقلي دليل جواب دا دی چي کله امام مقتديان تحميد ته هڅوي، نو څومره مقتديان چي تحميد وايي د ټولو له طرفه به امام ته ثواب رسيږي، نو ګواکي امام په معنوي توګه باندي هم تحميد ووايي، نو ځکه اوس د امام لپاره د تحميد ويلو ضرورت نسته.

## د ارکانو د تعديل بيان ( او د قومې، سجدې، جلسې حکم، او په دې باره کي د فقهاؤ قولونه او دليلونه)

قَالَ: ثُمَّ إِذَا اسْتَوَى قَائِمًا فرمايي چي بيا کله لمونځ کونکی سيده ودرېږي كَبَّرَ وَسَجَدَ نو تکبير به ووايي او سجده به وکړي أَمَّا التَّكْبِيرُ وَالسُّجُودُ فَلِمَا بَيَّنَّا هر چي تکبير او سجده کول دي نو دا له هغه دليل څخه ثابت دي کوم چي موږ بيان کړی وَأَمَّا الِاسْتِوَاءُ قَائِمًا فَلَيْسَ بِفَرْضٍ او پاته سو سيده درېدل نو هغه فرض نه دي وَكَذَا الْجَلْسَةُ بَيْنَ السَّجْدَتَيْنِ همدارنګه د دوو سجدو په مينځ کي کښېنستل (هم فرض نه دي) وَالطُّمَأْنِينَةُ فِي الرُّكُوعِ وَالسُّجُودِ او

(همدارنګه) په رکوع او سجده کې آرام کول (هم فرض نه دي) وَهٰذَا ● عِنْدَ أَبِي حَنِيْفَةَ وَمُحَمَّدٍ رَحِمَهُمَا اللهُ دا حکم د طرفینو رَحِمَهُمَا الله په نېز دی قَالَ أَبُوْيُوْسُفَ رَحِمَهُ اللهُ: يَفْتَرِضُ ذٰلِكَ كُلُّهُ او امام ابو یوسف رَحِمَهُ الله فرمایي: چې دا ټوله شیان فرض دي وَهُوَقَوْلُ الشَّافِعِي رَحِمَهُ اللهُ ● دا امام شافعي رَحِمَهُ الله قول هم دی لِقَوْلِهِ عَلَيْهِ الصَّلَاةُ وَالسَّلَامُ قُمْ فَصَلِّ فَإِنَّكَ لَمْ تُصَلِّ ځکه نبي ﷺ فرمایلي دي: ولاړ سه لمونځ وکړه ځکه چې تا لمونځ نه دی کړی قَالَهُ لِأَعْرَابِيٍّ حِيْنَ أَخَفَّ الصَّلَاةَ دا جمله نبي ﷺ یو صحرایي ته فرمایلې وه چې کله هغه په تخفیف سره لمونځ وکړی وَلَهُمَا أَنَّ الرُّكُوْعَ هُوَ الِانْحِنَاءُ وَالسُّجُوْدَ هُوَ الِانْخِفَاضُ لُغَةً د طرفینو رَحِمَهُمَا الله دلیل دا دی چې لغت په اعتبار سره د رکوع معنیٰ ده: ټیټېدل (کږېدل) او د سجدې معنیٰ ده: کښته کېدل فَتَتَعَلَّقُ الرُّكْنِيَّةُ بِالْأَدْنٰى فِيْهِمَا نو ځکه به فرض په دې دواړو کې د ادنیٰ سره تعلق لري وَكَذَا فِي الِانْتِقَالِ إِذْ هُوَغَيْرُ مَقْصُوْدٍ او همدغه حال په منتقل کېدلو کې هم دی ځکه چې هغه مقصود نه دي وَفِي آخِرِ مَا رُوِيَ تَسْمِيَتُهُ إِيَّاهُ صَلَاةً او امام شافعي رَحِمَهُ الله چې کوم (د صحرایي) روایت کړی دی د هغه په آخر کې دې ته لمونځ ویل سوي دي حَيْثُ قَالَ: وَمَا نَقَصْتَ مِنْ هٰذَا شَيْئًا فَقَدْ نَقَصْتَ مِنْ صَلَاتِكَ لکه څرنګه چې نبي ﷺ فرمایلي دي: که تا کوم شی له دې څخه کم کړی نو ستا په لمانځه کې کمي راغله ثُمَّ الْقَوْمَةُ وَالْجَلْسَةُ سُنَّةٌ عِنْدَهُمَا بیا د طرفینو رَحِمَهُمَا الله په نېز قومه او جلسه سنت دي وَكَذَا الطُّمَأْنِيْنَةُ فِي تَخْرِيْجِ الْجُرْجَانِي رَحِمَهُ اللهُ همدارنګه د امام جرجاني رَحِمَهُ الله د تخریج مطابق اطمینان (تعدیل ارکان) سنت دی وَفِي تَخْرِيْجِ الْكَرْخِي رَحِمَهُ اللهُ وَاجِبَةٌ او د امام کرخي رَحِمَهُ الله د تخریج مطابق واجب دی حَتّٰى تَجِبَ سَجْدَتَا السَّهْوِ بِتَرْكِهَا عِنْدَهُ تر دې چې د امام کرخي رَحِمَهُ الله په نېز د اطمینان په پرېښوولو سره د سهوي دوې سجدې واجبېږي.

**اللغات:** ﴿اِسْتِوَاء﴾ برابرېدل، سیده کېدل، ﴿اِنْحِنَاء﴾ کږېدل، ټیټېدل، ﴿اِنْخِفَاض﴾ کښته کېدل، ﴿قَوْمَة﴾ له رکوع څخه د پورته کېدلو په وخت کې ولاړه، ﴿جَلْسَة﴾ د دوو سجدو په مینځ کې ناسته.

**تشریح:** **مسئله:** داده چې کله لمونځ ګزاره له رکوع څخه راپورته سي او سیده ودرېږي، نو تکبیر دې ووایي او سجدې ته دې ولاړ سي، دلیل یې مخکې تېر سوی چې انه ﷺ کان یکبر عند کل خفض ورفع، او د سجدې دلیل د الله تعالیٰ دا قول وارکعوا واسجدوا دی. صاحب د هدایه رَحِمَهُ الله فرمایي چې تعدیل د ارکانو یعني له رکوع څخه سیده درېدل چې قومه ورته وایي، او د دواړو سجدو په مینځ کې کښېنستل او په رکوع او سجده کې اطمینان یعني د څه وخت لپاره وقفه کول د طرفینو رَحِمَهُمَا الله په نېز فرض نه دي، او د امام ابو یوسف رَحِمَهُ الله په نېز تعدیل د ارکانو فرض دی، امام شافعي رَحِمَهُ

---

● القول الراجح: قول أبي حنيفة و محمد رَحِمَهُمَا الله، يعني أنها واجبة ويلزم سجود السهو بتركها ساهياً كذا في الفقه الاسلامي ج:۱، ص:۶۶. [القول الراجح، ج:۱، ص:۷۹]

● تخريج: أخرجه ابو داؤد في كتاب الصلاة، باب صلاة من لايقيم صلبه في الركوع والسجود، حديث رقم:۸۵۶.

الله هم د دې قائل دی، ثمره د اختلاف دا ده چې د تعدیل له ارکانو څخه علاوه.به د طرفینو رَحِمَهُمَا الله په نېز لمونځ جائز وي، خو د امام ابو یوسف رَحِمَهُ الله په نېز به جائز نه وي.

**د امام ابو یوسف دلیل:** د اعرابي یعني د صحرایي حدیث دی، د صحرایي نوم خلاد بن رافع ﷺ وو، په صحیحینو کې دا حدیث په دې الفاظو سره روایت سوی دی:

أَنَّ أَعْرَابِيًّا دَخَلَ الْمَسْجِدَ فَصَلَّى رَكْعَتَيْنِ، ثُمَّ جَاءَ فَسَلَّمَ عَلَى النَّبِي صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ. فَقَالَ لَهُ النَّبِي صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ: اِرْجِعْ فَصَلِّ فَإِنَّكَ لَمْ تُصَلِّ، فَرَجَعَ فَصَلَّى كَمَا صَلَّى ثُمَّ جَاءَ فَسَلَّمَ عَلَى النَّبِي صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ، فَقَالَ لَهُ: اِرْجِعْ فَصَلِّ فَإِنَّكَ لَمْ تُصَلِّ، فَقَالَ لَهُ فِي الثَّالِثَةِ: وَالَّذِي بَعَثَكَ بِالْحَقِّ مَا أُحْسِنُ غَيْرَهُ فَعَلِّمْنِي. فَقَالَ لَهُ النَّبِي صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ: إِذَا قُمْتَ إِلَى الصَّلَاةِ فَكَبِّرْ ثُمَّ اقْرَأْ مَا تَيَسَّرَ مَعَكَ مِنَ الْقُرْآنِ، ثُمَّ ارْكَعْ حَتَّى تَطْمَئِنَّ رَاكِعًا، ثُمَّ ارْفَعْ حَتَّى تَعْتَدِلَ قَائِمًا، ثُمَّ اسْجُدْ حَتَّى تَطْمَئِنَّ سَاجِدًا، ثُمَّ ارْفَعْ حَتَّى تَطْمَئِنَّ جَالِسًا، ثُمَّ افْعَلْ ذَلِكَ فِي صَلَاتِكَ كُلِّهَا حَتَّى تَقْضِيَهَا. (یعني یو صحرایي مسجد ته راغلی لمونځ یې وکړی، بیا راغلی نبي ﷺ ته یې سلام وکړی، نبي ﷺ ورته وفرمایل: واپس ولاړه سه لمونځ وکړه ځکه چې تا لمونځ کړی نه دی، (یعني ستا لمونځ سوی نه دی) نو هغه واپس ولاړی او د اول وار په ډول یې بیا لمونځ وکړی بیا راغلی او د الله رسول ﷺ ته یې سلام وکړی، نبي ﷺ ورته بیا وفرمایل: واپس ولاړه سه لمونځ وکړه ځکه چې تا لمونځ کړی نه دی، نو هغه صحرایي په دریم وار نبي ﷺ ته وویل: په هغه ذات دې مې قسم وي چې ته یې ریښتوني پیغمبر رالېږلی یې له دې څخه ماسوا کوم صورت غوره دی تاسو هغه ما ته وښیه یاست، نبي ﷺ ورته وفرمایل: کله چې ته د لمانځه لپاره ودرېږې نو تکبیر ووایه بیا چې له قرآن څخه کوم در ته اسانه وي هغه ووایه بیا رکوع وکړه تر دې چې د رکوع په حالت کې مطمئن سې، بیا دغسې په خپل ټوله لمانځه کې وکړه تر دې چې لمونځ پوره سي).

په دې حدیث سره په دې توګه دلیل نیول کیږي چې د تعدیلِ ارکان د پرېښېدلو په وجه نبي ﷺ د لمانځه نفي وکړه، او ویې فرمایل: فإنك لم تصل، او دا مرتبه د فرضو وي، ځکه چې له فرضو څخه ماسوا د بل شي په منتفي کېدلو سره لمونځ نه منتفي کیږي، نو ثابته سوه چې په لمانځه کې تعدیل د ارکانو فرض دی.

**د طرفینو دلیل:** د الله تعالیٰ دا فرمان دی: واركعوا واسجدوا، په دې توګه چې رکوع ویل کیږي مطلقاً ټیټېدلو ته او سجده ویل کیږي کښېته کېدلو ته، یعني پر مخکه مخ لګولو ته، نو مطلق رکوع او مطلق سجده فرض سوه او له آیت څخه هم دا مطلوب دي، او څرنګه چې دا آیت خاص د رکوع او سجدې پر معنیٰ دلالت کوي، او خاص د بیان محتاج نه وي، نو ځکه د صحرایي حدیث د دې آیت لپاره بیان نه سي واقع کېدلای، او که تاسو وایاست چې دا آیت دې د صحرایي په حدیث سره منسوخ وګرځول سي، نو موږ وایو چې دا هم ممکنه نه ده، ځکه چې دا حدیث خبر واحد دی، او په خبر واحد سره کتاب الله نه سي منسوخ کېدلای، نو ثابته سوه چې مطلق ټیټېدل او پر مخکه مخ ایښوول فرض دي.

**جواب:** امام ابو یوسف رَحِمَهُ الله چې د صحرایي کوم حدیث ذکر کړی، د هغه جواب دا دی چې نبي ﷺ د دې حدیث په آخر کې داسې ویلي دي: وما نقصت من هذا شيئا فقد نقص من صلاتك، (یعني که په دې شیانو کې تا کمي وکړه، نو ستا په لمانځه کې به کمي راسي)، په دې جمله کې نبي ﷺ د تعدیلِ ارکان د پرېښوولو سره سره د صحرایي عبادت ته لمونځ ویلي دي، او د صلاة نوم یې ورکړی دی، نو که تعدیل د ارکانو فرض وای نو نبي ﷺ به د صحرایي پر عبادت د صلاة نوم نه ایښوولای، لهذا معلومه سوه چې د تعدیلِ ارکان په پرېښوولو سره په لمانځه کې نقصان راځي، خو لمونځ نه

فلسدیږي، او ښکاره ده چي د فرضو مرتبه داسي نه وي، نو د صحرايي له حديث څخه د ارکانو د تعدیل فرضیت نه ثابتیږي.

ثم القومة الخ صاحب د هدایې فرمایي چي قومه او د دواړو سجدو په مینځ کي جلسه د طرفینو رَحِمَهُمَا الله په نیز سنت ده او پاته سو په رکوع او سجده کي د اطمینان حکم نو د دې په تخریج کي اختلاف دی، د امام ابو عبد الله جرجاني رَحِمَهُ الله تخریج دا دی چي اطمینان هم سنت دی، او د امام کرخي رَحِمَهُ الله تخریج دا دی چي واجب دیٌ، تر دې چي د امام کرخي په نیز د اطمینان په پرېښوولو سره سجدهٔ سهو واجبیږي.

د جرجاني رَحِمَهُ الله د قول وجه دا ده چي اطمینان د رکن د تکمیل (بشپړتیا) لپاره مشروع سوی دی او کوم شی چي د رکن د تکمیل لپاره وي هغه سنت وي، نو اطمینان به هم سنت وي، او د امام کرخي د قول وجه دا ده چي اطمینان د داسي رکن د تکمیل لپاره مشروع سوی دی چي هغه بذات خود مقصود دی، او کوم شی چي داسي وي هغه واجب وي، نو ځکه به دا اطمینان واجب وي.

**راجح قول:** په پورتنی مسئله کي راجح قول د طرفینو رَحِمَهُمَا الله دی، قال العلامة جلال الدين الخوارزمي رَحِمَهُ الله (قوله ثم القومة والجلسة سنة) أي القومة بعد ما رفع رأسه من الركوع والجلسة بين السجدتين سنة عندهما وكذا الطمأنينة في الركوع والسجود عند عبد الله الجرجاني رَحِمَهُ الله، (الكفاية ص: ٢٦٢). [القول الراجح ج:١، ص:٧٩]

## د سجدې طریقه

وَيَعْتَمِدُ بِيَدَيْهِ عَلَى الْأَرْضِ او (لمونځ کونکی به) په سجده کي دواړه لاسونه پر مځکه اږدي لِأَنَّ وَائِلَ بْنَ حُجْرٍ رَضِيَ اللهُ عَنْهُ ● وَصَفَ صَلَاةَ رَسُولِ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ ځکه چي وائل بن حجر ﷺ (چي کله) د نبي ﷺ لمونځ بیان کړی فَسَجَدَ نو سجده یې وکړه وَادَّعَمَ عَلَى رَاحَتَيْهِ او پر دواړو ورغوو یې تکیه ولګوله وَرَفَعَ عَجِيزَتَهُ او شاتنی حصه یې پورته کړه وَوَضَعَ وَجْهَهُ بَيْنَ كَفَّيْهِ او (لمونځ کونکی به) خپل مخ د دواړو ورغوو په مینځ کي اږدي وَيَدَيْهِ حِذَاءَ أُذُنَيْهِ او دواړه لاسونه به د دواړو غوږونو پر برابر اږدي لِمَا رُوِيَ أَنَّهُ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ ● فَعَلَ كَذٰلِكَ ځکه روایت سوی دی چي رسول الله هم داسي کړي دي.

**اللغات:** ﴿إِدَّعَمَ﴾ په اصل کي اِدْتَعَمَ وو، چي د صرفي قانون په وجه سره اِدَّعَمَ ځني جوړ سو: پر ورغوي تکیه کول، ﴿رَاحَتَيْنِ﴾ دواړه ورغوي، ﴿عَجِيزَةٌ﴾ د انسان شاتنی حصه، کوناټي (سرین).

**تشریح:** فرمایي: چي کله لمونځ کونکی سجده وکړي نو تر ټولو مخکي دي پر مځکه لاسونه کښېږدي بیا دي خپل مخ د دواړو ورغوو په مینځ کي کښېږدي، خپل کوناټي دي پورته کړي، او دواړه لاسونه دي د دواړو غوږونو پر برابر کښېږدي، دا د سجدې سنت طریقه ده، همدغه له نبي ﷺ څخه را نقل سوې ده، لکه څرنګه چي په خپله د رسول الله ﷺ صحابي حضرت وائل بن حجر هم داسي سجده کړې ده، سربېره پر دې علامه ابن الهمام له ابو حمید ساعدي ﷺ، حضرت براء بن عازب ﷺ او له حضرت وائل بن حجر ﷺ څخه بېلا بېل روایتونه را نقل کړي دي چي په هغه کي

● تخريج: أخرجه ابو داؤد في كتاب الصلاة، باب صفة السجود، حديث رقم: ٨٩٦.
● تخريج: أخرجه مسلم في كتاب الصلاة، باب وضع يده اليمنى على اليسرى، حديث رقم: ٧٩٦.

همدغه مضمون دی چي: أنه ﷺ لما سجد وضع كفيه حذاء منكبيه ووضع يديه حذاء أذنيه. (يعني نبي ﷺ به د سجدې کولو په وخت کي خپل دواړه ورغوي د اوږو پر برابر ايښوول، او دواړه لاسونه به يې د غوږونو پر برابر ايښوول). (فتح القدير ج:۱، ص:۳۰۹)

## پر پزه او تندي د سجدې کولو يا پر يوه د اکتفاء کولو حکم (او په دې باره کي د فقهاؤ قولونه)

قَالَ: وَسَجَدَ عَلَى أَنْفِهِ وَجَبْهَتِهِ فرمايي: چي لمونځ کونکي به پر خپله پزه او پر خپل تندي سجده وکړي لِأَنَّ النَّبِيَّ عَلَيْهِ الصَّلَاةُ وَالسَّلَامُ ● وَاظَبَ عَلَيْهِ ځکه چي نبي ﷺ پر دې همېشتوب کړی دی فَإِنِ اقْتَصَرَ عَلَى أَحَدِهِمَا بيا که يې په دې دواړو کي پر يوه اکتفاء وکړه جَازَ عِنْدَ أَبِي حَنِيفَةَ رَحِمَهُ اللهُ نو د امام ابو حنيفه رَحِمَهُ الله په نېز جائز دي وَقَالَا ●: لَا يَجُوزُ الِاقْتِصَارُ عَلَى الْأَنْفِ إِلَّا مِنْ عُذْرٍ او صاحبين فرمايي: چي بغير له عذره پر پزه اکتفاء کول جائز نه دي وَهُوَ رِوَايَةٌ عَنْهُ او همدغه روايت له امام صاحب څخه دی لِقَوْلِهِ عَلَيْهِ الصَّلَاةُ وَالسَّلَامُ ● ځکه نبي ﷺ فرمايلي دي أُمِرْتُ أَنْ أَسْجُدَ عَلَى سَبْعَةِ أَعْظُمٍ ما ته حکم سوی دی چي پر اوو هډوکو سجده وکړم وَعَدَّ مِنْهَا الْجَبْهَةَ او له هغو څخه يې (يو) تندی شمار کړی وَلِأَبِي حَنِيفَةَ رَحِمَهُ اللهُ أَنَّ السُّجُودَ يَتَحَقَّقُ بِوَضْعِ بَعْضِ الْوَجْهِ د امام ابو حنيفه رَحِمَهُ الله دليل دا دی چي د مخ د بعضي حصې په ايښوولو سره سجده ثابتيږي وَهُوَ الْمَأْمُورُ بِهِ او همد دې حکم سوی دی إِلَّا أَنَّ الْخَدَّ وَالذَّقَنَ خَارِجٌ بِالْإِجْمَاعِ خو باړخوګان او زنه په اجماع سره وتلي دي وَالْمَذْكُورُ فِيمَا رُوِيَ الْوَجْهُ فِي الْمَشْهُورِ او په مشهوره روايت کي (صرف) مخ ذکر سوی دی وَوَضْعُ الْيَدَيْنِ وَالرُّكْبَتَيْنِ سُنَّةٌ عِنْدَنَا او د دواړو لاسونو او دواړو زنګونانو ايښوول زموږ په نېز سنت دي لِتَحَقُّقِ السُّجُودِ بِدُونِهِمَا ځکه چي له دوی څخه بغير هم سجده ثابتيږي وَأَمَّا وَضْعُ الْقَدَمَيْنِ پاته سو د دواړو پښو ايښوول فَقَدْ ذَكَرَ الْقُدُورِيُّ رَحِمَهُ اللهُ أَنَّهُ فَرِيضَةٌ فِي السُّجُودِ نو امام قدوري رَحِمَهُ الله ذکر کړي دي چي هغه په سجده کي فرض دي.

**اللغات:** ﴿أَنْف﴾ پزه، ﴿جَبْهَتِه﴾ د دې په آخر کي هاء د ضمير ده: تندی، د تندي هډوکی، ﴿خَدّ﴾ باړخو، ﴿ذَقَن﴾ زنه.

**تشريح:** په دې عبارت کي د سجدې طريقه بيانيږي، حاصل يې دا دی چي لمونځ کونکي به پر پزه او تندي دواړو سجده کوي، ځکه چي نبي ﷺ همېشه داسي کړي دي، لکه څرنګه چي په طبراني شريف کي د ابو يعلیٰ رَحِمَهُ الله په حواله سره دا حديث ذکر سوی دی: كان ﷺ يضع أنفه على الأرض مع جبهته. (يعني نبي ﷺ به د سجدې په وخت کي د تندي سره پزه هم پر مځکه ايښووله)، له دې څخه معلوميږي چي نبي ﷺ به همېشه پر دواړو سجده کوله. بيا که يو سړی صرف پر تندي سجده وکړي نو زموږ په نېز دا جائز دي، لېکن که يو سړی په سجده کي صرف پر پزه اکتفاء

● تخريج: أخرجه البخاري في كتاب الاذان، باب سنة الجلوس في التشهد، حديث رقم:۸۲۸.

● القول الراجح: قول الصاحبين رَحِمَهُمَا الله، كذا في فتح القدير ج:۱، ص:۲۶۴.

● تخريج: أخرجه الائمة الستة في كتبهم: البخاري في كتاب الاذان، باب السجود على سبعة اعظم، حديث:۸۰۹ - ۸۱۰، ومسلم في كتاب الصلاة، حديث رقم:۲۲۸.

وکړه، نو د امام اعظم رَحِمَهُ الله په نیز دا صورت هم جائز دی، لیکن د صاحبینو رَحِمَهُمَا الله په نیز له یو عذر څخه بغیر پر پزه اکتفاء کول جائز نه دي.

**د صاحبینو دلیل:** هغه حدیث دی کوم چي په زیاتره کتابونو کي سته یعني: أُمِرتُ أَنْ أَسْجُدَ عَلَى سَبْعَةِ أَعْظُمٍ (ما ته پر اوو هډوکو د سجدې کولو حکم سوی دی)، صاحبین رَحِمَهُمَا الله په دې حدیث سره دلیل په دې توګه نیسي چي پر کومو اوو هډوکو چي نبي ﷺ ته د سجدې کولو حکم سوی دی په هغو کي پزه نسته، هغه اووه هډوکي دا دي: (۱) تندی (۲ – ۳) دواړه لاسونه (۴ – ۵) دواړه زنګونان، (۶ – ۷) د دواړو پښو (قدمونو) سرونه؛ په دې اوو (۷) سره وو کي پزه نسته، نو ګواکي پزه د سجدې ځای هم نه دی، نو ځکه به پر دې اکتفاء کول هم جائز نه وي، خو څرنګه چي د مخ لو تندي سره جوخت ده، نو له سجدې څخه به هم جلا نه وي.

**د امام صاحب دلیل:** دا دی چي په قرآن کریم کي د واسجدوا په ذریعه سره د مطلق سجدې حکم سوی دی، او پر ټوله د مخ په بعضي حصې ایښوولو سره هم سجده ثابتیږي، ځکه چي ټوله مخ پر ځمکه ایښوول ناممکنه دی، ځکه چي پزه او تندی دواړه راپورته سوي هډوکي دي او په پوره توګه پر ځمکه نه سي ایښوول کېدلای، نو ځکه به د بعضې مخ ایښوول مأمور به وي (یعني کوم امر چي د مخ ایښوولو سوی دی له هغه څخه به پوره مخ نه بلکي بعضي مخ مراد وي)، او څرنګه چي تندی د سجدې محل (ځای) دی او یوازي پر تندي اکتفاء کول جائز هم دي، نو ځکه به پزه هم د سجدې محل وي او صرف پر پزه به اکتفاء کول جائز هم وي.

**جواب:** والمذکور فیما الخ له دې ځایه د صاحبینو رَحِمَهُمَا الله د قیاس جواب ورکول سوی دی، تفصیل یې دا دی: صاحبینو چي کوم حدیث یعني أمرت على أن أسجد... الخ ذکر کړی دی، په دې حدیث کي خو د جبهة لفظ دی، لیکن دا حدیث په نورو طریقو سره هم روایت سوی دی، او په هغو ټولو کي د جبهة پر ځای د وجه لفظ راغلی دی، لکه څرنګه چي په سنن اربعه ؤ کي د حضرت ابن عباس رَضِيَ اللهُ عَنْهُمَا په حواله همدغه حدیث داسي ذکر سوی دی: أنه سمع رسول الله ﷺ یقول إذا سجد العبد سجد معه سبعة آراب: وجهه وکفاه ورکبتاه وقدماه. (یعني کله چي بنده سجده کوي نو دهغه سره اووه اندامونه سجده کوي، مخ، دواړه ورغوي، دواړه زنګونان، دواړه پښې). نو له دې څخه معلومه سوه چي په مشهوره حدیثونو کي د جبهة پر ځای د وجه لفظ دی او په وجه کي پزه او تندی دواړه شامل دي نو ځکه موږ ویل چي د سجدې په حکم کي به پزه او تندی دواړه برابر وي.

ووضع اليدين الخ د دې حاصل دا دی چي زموږ په نیز دواړه لاسونه او دواړه زنګونان په سجده کي پر ځمکه ایښوول سنت دي، او د امام زفر او امام شافعي رَحِمَهُمَا الله او نورو په نیز واجب دي، د دوی دلیل د ابن عباس دا حدیث دی: أمرت أن أسجد... الخ، او په دې حدیث سره دلیل په دې توګه نیسي چي نبي ﷺ ته چي پر کومو اوو اندامونو د سجدې حکم سوی دی په هغه کي دا دواړه اندامونه هم سته، نو ځکه به د دوی ایښوول هم لازم او واجب وي، ځکه چي امر وجوب ثابتوي.

**جواب:** د امام زفر او امام شافعي د دلیل جواب دا دی چي څرنګه امر د وجوب لپاره راځي همدا ډول د استحباب لپاره هم راځي، او دلته له امر څخه استحباب مراد دی، ځکه چي د دې دوو اندامونو د سجدې په عمل کي خاص دخل نسته. هو هم

**جواب:** دا دی چې د ابن عباس رضي الله عنهما له حديث څخه دا ثابتيږي چې دا دواړه اندامونه د سجدې محل (ځای) دي، لېکن د سجدې له محل څخه دا نه لازميږي چې پر ځمکه به د دوی اينبوول هم لازمي او ضروري وي.

و أماوضع القدمين الخ فرمايي چې په سجده کې د دواړو پښو د اينبوولو مسئله د امام قدوري رحمه الله د صراحت مطلق فرض او واجب معلوميږي، نو که يو سړی د خپلو پښو ګوتې له ځمکې څخه پورته کړي او سجده وکړي نو د هغه سجده جائز نه ده، همدا مسلک د امام کرخي رحمه الله او ابوبکر جصاص رحمه الله دی، لېکن د علامه تمرتاشي رحمه الله قول دا دی چې د لاسو او پښو اينبوولو مسئله برابره ده، يعني څرنګه چې د لاسو اينبوول سنت دي، همدارنګه د پښو اينبوول هم سنت دي، صاحب د عنايه رحمه الله فرمايي: وهو الذي يدل عليه كلام شيخ الإسلام في مبسوطه وهو الحق. (عنايه ج:۱، ص:۳۱۱)

**راجح قول:** په پورتنی مسئله کې راجح قول د صاحبينو رحمهما الله دی، قال العلامة ابن الهمام رحمه الله و تحمل الكراهة المروية عنه على كراهة التحريم وعلى هذا فجمل بعض المتأخرين الفتوى على الرواية الاخرى الموافقة لقولهما (فتح القدير ج:۱، ص:۲۶۴). [القول الراجح، ج:۱، ص:۸۱]

## دلنګوټې پر ول(پېچ) او پر زياته جامه د سجدې کولو حکم

قَالَ: فَإِنْ سَجَدَ عَلٰى كَوْرِ عِمَامَتِهِ فرمايي: بياکه يو لمونځ کونکي د لنګوټې پر ول(پېچ) باندې سجده وکړه أَوْ فَاضِلِ ثَوْبِهِ يا يې پر خپلو زياتو کالو(جامو) باندې سجده وکړه جَازَ نو دا جائز دي لِأَنَّ النَّبِيَّ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ ● كَانَ يَسْجُدُ عَلٰى كَوْرِ عِمَامَتِهِ ځکه نبي ﷺ به د خپلې لنګوټې پر پېچ باندې سجده کوله وَيُرْوٰى أَنَّهُ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ ● صَلّٰى فِي ثَوْبٍ وَاحِدٍ او روايت سوی دی چې نبي ﷺ به يوه جامه کې لمونځ کوی يَتَّقِيْ بِفُضُوْلِهِ حَرَّ الْأَرْضِ وَبَرْدَهَا چې د هغې په زياتی حصه به يې د ځمکې له ګرموالي او يخوالي څخه ځان ساتی.

**اللغات:** ﴿كَوْر﴾ د لونګوټې ول(د لنګوټې هغه پېچ ته ويل کيږي چې د لنګوټې ترلو په وخت کې تندی پټ کړي).

﴿فَاضِل الثَّوْب﴾ د کالو باقي مانده حصه، د کالو زياته حصه لکه لمن او داسې نور.

**تشريح:** زموږ په نيز د لنګوټې پر ول او د کالو پر زياته حصه سجده کول جائز دي، او امام شافعي رحمه الله فرمايي چې د لنګوټې پر ول سجده کول جائز نه دي، ځکه چې د ده په نيز دا واجب دي چې د سجدې په وخت کې به پر تندي يو شی نه وي، بلکې ښکاره به وي.

**زموږ دليل:** د ابن عباس رضي الله عنه حديث دی: أن النبي ﷺ كان يسجد على كور عمامته. (يعني نبي ﷺ به په د لنګوټې پر ول او پېچ سجده کوله)، له عبد الله بن ابی اوفیٰ څخه روايت دی: قال: رأيت رسول الله يسجد على كور عمامته. (عبد الله بن ابی اوفیٰ فرمايي: ما رسول الله وليدی چې د لنګوټې پر ول يې سجده وکړه).

**دويم دليل:** دا دی چې له ابن عباس رضي الله عنه څخه روايت دی: أن النبي ﷺ صلى في ثوب واحد تبقى بفضوله حر الارض و بردها، (يعني نبي ﷺ په يوه جامه کې لمونځ وکړی او د هغې په زياتی حصه باندې يې د ځمکې له ګرمي او يخ څخه

---

● تخريج: أخرجه عبد الرزاق في مصنفه، باب السجود على العمامة، حديث رقم: ۱۵۶۴.

● تخريج: أخرجه ابن ابي شيبة في مصنفه، باب في الرجل يسجد على ثوبه من الحر، حديث رقم: ۲۷۷.

ځان وساتي)، بل روایت د حضرت انس ﷺ دی: کان نصلی مع النبي ﷺ في شدة الحر فاذا لم يستطع احدنا أن يمكن وجهه من الارض بسط ثوبه فسجد عليه. (له حضرت انس ﷺ څخه روایت دی چي موږ به د نبي ﷺ سره په سخته ګرمي کي لمونځ کوی. چا چي به وس نه درلودی چي پر مځکه مخ کښېږدي نو خپله جامه به یې غوړوله او پر هغه به یې سجده کوله).

## په سجده کي دواړه متان (لیخي) پراخه ساتل

| |
|---|
| وَيُبْدِيْ ضَبْعَيْهِ او لمونځ کونکي به خپل دواړه متان خلاص لري لِقَوْلِهِ عَلَيْهِ الصَّلَاةُ وَالسَّلَامُ ● وَأَبِدْ ضَبْعَيْكَ ځکه نبي ﷺ فرمایلي دي: خپل دواړه متان خلاص لره وَيُرْوٰى وَأَبِدَّ مِنَ الْإِبْدَادِ: او په یوه روایت کي وَأَبِدَّ راغلي دي چي هغه له إبداد څخه اخیستل سوی دی وَهُوَ الْمَدُّ او د هغه معنیٰ ده: کښول (یعني خپل متان او لاسونه کش کړه) وَالْأَوَّلُ مِنَ الْإِبْدَاءِ وَهُوَ الْإِظْهَارُ او اول (یعني وَأَبِدِ) له إبداء څخه را اخیستل سوی دی چي د هغه معنیٰ ده ښکاره کول(او خلاصول). |

**اللغات**: ﴿ضبعين﴾ تشنیه ده، واحد یې ضَبْعٌ دی مټ او لیخي ته هم ویل کیږي او د بغل (اوخ) لپاره هم استعمالیږي.

**تشریح**: **مسئله**: دا ده چي د سجدې په حالت کي به لمونځ کونکی خپل متان پراخه ساتي، د حیوان په ډول به پر مځکه نه غوړیږي، دلیل دا روایت دی: عن آدم بن علي البكري قال رأى ابن عمر ﷺ وانا اصلي لا أتجافى عن الارض بذراعي فقال يا ابن أخي لا تبسط بسط السبع وادعم على راحتيك وابد ضبعيك فانك اذا فعلت ذلك سجد كل عضو منك. (آدم بن علي البكري فرمایي چي ابن عمر رَضِيَ اللهُ عَنْهُمَا زه ولیدم، په داسي حال کي چي ما لمونځ کوی، او له مځکي څخه مي لاسونه نه جلا کول، نو ویې فرمایل: اې وراره! د درندګانو په ډول مه غوړیږه او پر خپلو ورغوو تکیه کوه او خپل متان خلاص ساته، ځکه چي کله ته داسي وکړې نو ستا هر اندام به سجده وکړي).

ويروى الخ صاحب د هدایې رَحِمَهُ الله فرمایي چي په یوه روایت کي أبِدّ د دال په تشدید سره راغلي دی چي دا له إبداد څخه مشتق دی او معنیٰ یې ده: کښول، یعني خپل متان کښوه. او اول له إبداء څخه مشتق دی چي معنیٰ یې ده: ښکاره کول، یعني خپل متان ښکاره کوه، معنیٰ دا چي پراخ او خلاص یې ساته (خو مطلب د دواړو یو دی).

## په سجده کي نس له ورنو څخه لیري ساتل

| |
|---|
| وَيُجَافِيْ بَطْنَهُ عَنْ فَخِذَيْهِ او لمونځ کونکي به خپل نس له خپلو ورنو څخه جلا ساتي لِأَنَّهُ عَلَيْهِ الصَّلَاةُ وَالسَّلَامُ ● كَانَ إِذَا سَجَدَ ځکه کله چي به نبي ﷺ سجده کوله جَافٰى نو نس به یې له ورنو څخه جلا ساتی حَتّٰى أَنَّ بَهْمَةً لَوْ أَرَادَتْ أَنْ تَمُرَّ بَيْنَ يَدَيْهِ لَمَرَّتْ تر دې که سیرلي (ورغومي) د نبي ﷺ د دواړو لاسونو په مینځ کي تېرېدل غوښتلای نو تېر سوی به وای وَقِيلَ إِذَا كَانَ فِي الصَّفِّ لَا يُجَافِيْ او یو قول دا دی چي که لمونځ کونکی په صف کي وو نو جلا دي یې نه ساتي كَيْ لَا يُؤْذِيَ جَارَهُ چي همسایه ته تکلیف ور نه کړي. |

---

● تخریج: أخرجه عبد الرزاق في مصنفه، باب السجود، حديث رقم: ۲۹۲۷.

○ تخریج: [illegible] في كتاب الصلاة، باب الاعتدال في السجود، حديث رقم: [illegible]

**اللغات:** ﴿يُجافي﴾ د مفاعلې د باب مضارع صيغه ده: جلا ساتل، ليرې ساتل، پراخه کول. ﴿ضبع﴾ ورون. ﴿بهمة﴾ سېرلی(ورغومی)، دوزې کوچنی بچی.

**تشريح: مسئله:** دا ده چې لمونځ کونکې به د سجدې په حالت کې خپل نس له ورنو څخه جلا ساتي، دليل دا دی چې کله به نبي ﷺ سجده کول نو نس به يې له ورنو څخه جلا ساتی او څنګلې به له مڅکې څخه پورته ساتلې، تر دې اندازه چې يو ورغومي به هم د ده د لاسونو تر مينځ په آسانې سره وتلی سو، خو بعضي فقهاوو ويلي دي چې که څوک په صف کې وي نو لاسونه دې نه غوړوي(اوليځې دې نه پراخه کوي) چې نژدې لمونځ کونکې ته تکليف نه ورسيږي.

## په سجده کې د پښې ګوتې د قبلې و طرف ته کول

وَيُوَجِّهُ أَصَابِعَ رِجْلَيْهِ نَحْوَ الْقِبْلَةِ او لمونځ کونکې به د خپلو پښو ګوتې د قبلې و طرف ته کوي لِقَوْلِهِ عَلَيْهِ الصَّلَاةُ وَالسَّلَامُ● إِذَا سَجَدَ الْمُؤْمِنُ سَجَدَ كُلُّ عُضْوٍ مِنْهُ ځکه نبي ﷺ فرمايلي دي کله چې مؤمن سجده کوي نو د هغه هر اندام سجده کوي فَلْيُوَجِّهْ مِنْ أَعْضَائِهِ الْقِبْلَةَ مَا اسْتَطَاعَ نو چې څومره يې وس وي خپل اندامونه دې د قبلې و طرف ته مخامخ کوي.

**اللغات:** ﴿يُوَجِّهُ﴾ د تفعيل مضارع ده: مخامخ کول.

**تشريح: مسئله:** دا ده چې د لمونځ ګزاره لپاره په سجده کې د خپلو دواړو پښو ګوتې پر مځکه درول او سرونه يې د قبلې وطرف ته کول هم سنت او مستحب دي، ځکه نبي ﷺ فرمايلي دي چې کله مؤمن سجده کوي نو د هغه ټوله اندامونه هم سجده کوي، لهذا د وس مطابق لمونځ کونکې لره خپل اندامونه د قبلې و طرف ته کول پکار دي، د دې لپاره چې په پوره ډول سره سجده اداء سي.

## د سجدې تسبيح

وَيَقُولُ فِي سُجُودِهِ: سُبْحَانَ رَبِّيَ الْأَعْلَى ثَلَاثًا او لمونځ ګزاره به په سجده کې درې واره سبحان ربی الاعلی وايي وَذَلِكَ أَدْنَاهُ او دا يې کمه اندازه ده لِقَوْلِهِ عَلَيْهِ الصَّلَاةُ وَالسَّلَامُ● د نبي ﷺ د دې قول په وجه إِذَا سَجَدَ أَحَدُكُمْ فَلْيَقُلْ فِي سُجُودِهِ: سُبْحَانَ رَبِّيَ الْأَعْلَى ثَلَاثًا کله چې په تاسو کې څوک سجده کوي نو هغه دې په سجده کې درې واره سبحان ربی الأعلی وايي وَذَلِكَ أَدْنَاهُ او دا کمه يې اندازه ده أَيْ أَدْنَى كَمَالِ الْجَمْعِ يعني د جمعي د بشپړتيا کمه اندازه ده وَيُسْتَحَبُّ أَنْ يَزِيدَ عَلَى الثَّلَاثِ فِي الرُّكُوعِ وَالسُّجُودِ او په رکوع او سجده کې پر دريو اضافه کول مستحب دي بَعْدَ أَنْ يَخْتِمَ بِالْوِتْرِ په دې شرط چې پر طاق شمېر يې ختم کړي لِأَنَّهُ عَلَيْهِ الصَّلَاةُ وَالسَّلَامُ● كَانَ يَخْتِمُ بِالْوِتْرِ ځکه نبي ﷺ به پر طاق شمېر ختمول وَإِنْ كَانَ إِمَامًا لَا يَزِيدُ عَلَى وَجْهٍ او که لمونځ ګزاره امام وو نو دومره اضافه دې نه کوي يُمِلُّ الْقَوْمَ چې مقتديان ستړي کړي(او په تکليف سي) حَتَّى لَا يُؤَدِّيَ إِلَى التَّنْفِيرِ د دې لپاره چې دا زياتوب(او اضافه) د نفرت

---

● تخريج: أخرجه البخاري في كتاب الصلاة، باب سنة الجلوس في التشهد، حديث رقم:۸۲۸.

● تخريج: أخرجه ابو داؤد في كتاب الصلاة، باب ما يقول الرجل في ركوعه وسجوده، حديث رقم: ۸۷۰.

● تخريج: أخرجه الترمذي في كتاب الصلاة، باب ما جاء في التسبيح في الركوع والسجود، حديث رقم:۲۶۱.

سبب جوړ نه سي ثُمَّ تَسْبِيْحَاتُ الرُّكُوْعِ وَالسُّجُوْدِ سُنَّةٌ بيا د ركوع او سجدو تسبيحات ويل سنت دي لِأَنَّ النَّصَّ تَنَاوَلَهُمَا ځكه چي نص(يعني آيت) ركوع او سجدې دواړو ته شامل دي دُوْنَ تَسْبِيْحَاتِهِمَا د دوی تسبيحاتو ته شامل نه دی فَلَا يُزَادُ عَلَى النَّصِّ نو ځكه به پر نص زياتوب نه كيږي.

**اللغات**: ﴿يمل﴾ د افعال د باب مضارع صيغه ده: ستړي كول، ﴿تنفير﴾ بيزارول، نفرت وركول.

**تشريح**: **مسئله**: داده چي د لمونځ كونكي لپاره په سجده كي درې واره سبحان ربي الأعلى ويل سنت دي او دا د دريو شمېر د تسبيحاتو كمه اندازه، كنې موږ د ركوع د تسبيحاتو په ترڅ كي ويلي وو چي تر پنځو يا اوو ځلو پوري يې د ويلو اجازه سته، درې واره ويل له نبي ﷺ څخه را نقل سوي دي، او دا هم را نقل سوي دي چي د دريو شمېر د تسبيحاتو كمه اندازه ده.

صاحب د هدايې رَحِمَهُ الله فرمايي چي كه لمونځ كونكی يوازې(منفرد) وي يا مقتدي وي نو د هغه لپاره په ركوع او سجده كي له دريو وارو څخه زيات تسبيحات ويل مستحب دي، لېكن شرط دا دی چي پر طاق شمېر به يې ختموي، مثلاً پنځه واره يا اووه واره، ځكه چي پر طاق شمېر ختمول د نبي ﷺ معمول وو، لېكن كه څوک امام وو نو دومره دي يې نه زياتوي چي خلک په ستړيا او بوج اخته سي، او د هغو په زړو كي د لمانځه د اوږدوالي په وجه له امام څخه نفرت او بدخوندي پيدا سي، ځكه چي د امام لپاره د نبي ﷺ فرمان دا دی: مَنْ أَمَّ قَوْمًا فَلْيُخَفِّفْ بِالصَّلَاةِ فَإِنَّ فِيْهِمُ الضَّعِيْفَ وَالْمَرِيْضَ وَذَا الْحَاجَةِ. (يعني امام ته پكار دي چي خلكو ته لنډ لمونځ وركړي، ځكه چي په مقتديانو كي سپين ږيري، ناجوړي، حاجت مند او هر ډول خلک سته).

ثم تسبيحات الخ صاحب د هدايې فرمايي چي د ركوع او سجدې تسبيحات سنت دي ځكه چي د واركعوا واسجدوا نص صرف ركوع او سجدې ته شامل دی، و دې تسبيحاتو ته شامل نه دی، نو ځكه به دا تسبيحات فرض نه وي، لېكن څرنګه چي له نبي ﷺ څخه د دې ويل را نقل سوي دي، نو په دې وجه به سنت وي، پا ته سوه دا خبره چي په إذا سجد أحدكم فليقل...الخ كي خو د فليقل په ذريعه سره أمر سوی دی، نو ښكاره خبره ده چي څرنګه أمر د وجوب لپاره راځي همدارنګه د استحباب لپاره هم راځي، وهو المراد ههنا.

## د ښځي لپاره د سجدې طريقه

وَالْمَرْأَةُ تَنْخَفِضُ فِيْ سُجُوْدِهَا او ښځه به په خپله سجده كي (بالكل) ټيټيږي(يعني په پوره توګه به سره راټوليږي) وَتُلْزِقُ بَطْنَهَا بِفَخِذَيْهَا او خپل نس به د خپلو ورنو سره يو ځای كوي(جوختوي) لِأَنَّ ذٰلِكَ أَسْتَرُ لَهَا ځكه داسي كول د دې په حق كي زيات ستر دی.

**اللغات**: ﴿تنخفض﴾ د انفعال د باب مضارع صيغه ده: ټيټېدل، لاندي كېدل، ﴿تلزق﴾ د فتح د باب مضارع صيغه ده: موښلول، جوختول، يو ځای كول.

**تشریح:** په دې عبارت کې د بنځې د سجدې طریقه بیان سوې ده،نو فرمایي چې بنځه دې د سجدې په وخت کې ټیټیږي یعني مځکې ته دې ډېر نژدې کیږي او نس دې د ورنو سره جوختوي، دلیل دا دی چې په داسې طریقه سجده کول د بنځې لپاره زیاته پرده ده، او په شریعت کې د بنځې په حق کې مطلوب پرده ده.

## د دوو سجدو په مینځ کې د ناستې (جلسې) بیان

قَالَ: ثُمَّ يَرْفَعُ رَأْسَهُ وَيُكَبِّرُ فرمایي: بیا دې لمونځ کزاره (له سجدې څخه) خپل سر راپورته کړي او تکبیر دې ووایې لِمَا رَوَيْنَا د هغه حدیث په وجه کوم چې موږ روایت کړی فَإِذَا اطْمَأَنَّ جَالِسًا كَبَّرَ وَسَجَدَ بیا چې کله په اطمینان (آرام) سره کښېني نو تکبیر دې ووایې او سجده دې وکړي لِقَوْلِهِ عَلَيْهِ الصَّلَاةُ وَالسَّلَامُ • فِي حَدِيثِ الْأَعْرَابِيِّ ځکه د صحرایي په حدیث کې نبي ﷺ دا جمله فرمایلې وه ثُمَّ ارْفَعْ رَأْسَكَ حَتَّى تَسْتَوِيَ جَالِسًا بیا ته خپل سر پورته کړه تر دې چې سیده کښېنې وَلَوْلَمْ يَسْتَوِ جَالِسًا وَسَجَدَ أُخْرَى او که سیده نه کښېنستی (تکبیر یې ووایې) او دویمه سجده یې وکړه أَجْزَأَهُ عِنْدَ أَبِي حَنِيفَةَ وَمُحَمَّدٍ رَحِمَهُمَا اللهُ نو د طرفینو رَحِمَهُ الله نېز دا جائز دي وَقَدْ ذَكَرْنَاهُ او موږ د دې بیان کړی دی وَتَكَلَّمُوا فِي مِقْدَارِ الرَّفْعِ او فقهاوو د سر راپورته کولو په اندازه کې خبره کړې ده وَالْأَصَحُّ أَنَّهُ إِذَا كَانَ إِلَى السُّجُودِ أَقْرَبُ لَا يَجُوزُ خو زیاته صحیح داده چې که لمونځ کونکی سجدې ته زیات نژدې وو نو جائز نه دي لِأَنَّهُ يُعَدُّ سَاجِدًا ځکه چې هغه سجده کونکی شمارل کیږي وَإِنْ كَانَ إِلَى الْجُلُوسِ أَقْرَبُ جَازَ او که ناستې ته زیات نژدې وو نو جائز دي لِأَنَّهُ يُعَدُّ جَالِسًا ځکه چې (اوس) هغه ناست شمارل کیږي فَتَتَحَقَّقُ الثَّانِيَةُ نو دویمه سجده ثابته سوه.

**تشریح: صورت د مسئلې:** دا دی چې کله لمونځ کزاره اوله سجده وکړي نو په تکبیر ویلو سره دې سر راپورته کړي او په اطمینان سره دې کښېني بیا دې دویم وار تکبیر ووایې او دویمه سجده دې وکړي، صاحب د هدایې فرمایي چې دویمې سجدې ته د تللو په وخت کې د تکبیر ویلو دلیل هغه حدیث دی کوم چې موږ مخکې بیان کړی یعني: كان النبي ﷺ يسجد عند كل خفض ورفع، او د دوو سجدو په مینځ کې په اطمینان او آرام سره د کښېنستلو دلیل د اعرابي یعني د خلاد بن رافع حدیث دی، چې په هغه کې دا مضمون هم راغلی دی: ثم ارفع رأسك حتى تستوي قائما...الخ. تر دې مخکې دا خبره په ښه تفصیل سره بیان سوه چې د امام ابو یوسف رَحِمَهُ الله او د امام شافعي رَحِمَهُ الله په نېز تعدیل د ارکانو فرض دی او د طرفینو رَحِمَهُمَا الله په نېز تعدیل د ارکانو فرض نه دی، نو که یو سړی تر اولې سجدې وروسته په اطمینان سره نه کښېني او دویمه سجده وکړي نو د طرفینو رَحِمَهُ الله په نېز په دې کې هیڅ حرج نسته، د هغه لمونځ کیږي، او د امام ابو یوسف رَحِمَهُ الله او امام شافعي رَحِمَهُ الله په نېز د هغه لمونځ فاسدیږي، د هر یوه دلیل مخکې بیان سو.

وتكلموا الخ صاحب د هدایې رَحِمَهُ الله فرمایي چې مشائخو په دې کې اختلاف کړی دی چې له اولې سجدې څخه چې څومره سر را پورته سي نو جلسه (ناسته) به ګڼل کیږي او دویمه سجده به جائز وي، د دې اختلاف حاصل دا دی چې که لمونځ کونکي له اولې سجدې څخه دومره سر را پورته کړی چې ناستې ته نژدې سو نو پوه سه! چې هغه کښېنستی،

• تخريج: أخرجه البخاري في كتاب الاذان، باب امر النبي ﷺ الذي لا يتم ركوعه بالاعادة، حديث رقم: ۷۹۳.

نو اوس د هغه لپاره دويمه سجده جائز ده، او که سرېې لږ راپورته کړی يعني سجدې ته نژدې وو نو ګواکې هغه سر نه دی راپورته کړی، نو اوس به د هغه لپاره دويمه سجده صحيح نه وي.

## څه وجه ده چې په هر رکعت کې رکوع يوه ده او سجدې دوې دي؟؟

د دې څه علت دی چې په يوه رکعت کې سجدې دوې دي او رکوع يوه ده ؟ په دې کې د زياتره حضراتو رايه دا ده چې دامسئله توقيفي ده، يعني څرنګه چې په شريعت کې همدا سې را نقل سوي دي نو پرته له يو اعتراض او سوال څخه موږ ته پر دې عمل کول ضروري دي.

لېکن د بعضو خلګو رايه دا ده چې دوې سجدې د شيطان د ذليله کولو او رسوا کولو لپاره دي، ځکه چې الله تعالیٰ ده ته د سجدې حکم کړی وو چې حضرت آدم ﷺ ته سجده وکړه، لېکن ده نه وکړه، نو ځکه موږ د شيطان د رسوا کولو او ذليله کولو لپاره دوې سجدې کوو، په سجده سهو کې نبي ﷺ هم د دې و طرف ته اشاره کړې ده چې فرمايي: هما ترغيما للشيطان، (يعني د سهوې لپاره دوې سجدې د شيطان د ذليله کولو لپاره دي).

او بعضو ويلي دي چې په اوله سجده کې و دې طرف ته اشاره ده چې انسان له خاورو څخه پيدا سوی دی او په دويمه سجده کې دا اشاره ده چې بېرته به خاوروته ځي، يعني دوې سجدې د الله تعالیٰ له دې قول څخه را اخيستل سوي دي: مِنْهَا خَلَقْنَاكُمْ وَفِيهَا نُعِيدُكُمْ (سورة طه، ٥٥). [عنايه ج: ١، ص: ٣١٥ / ٣١٦]

## له دويمې سجدې څخه د راپورته کېدلو صحيح طريقه

قَالَ: فَإِذَا اطْمَأَنَّ سَاجِدًا كَبَّرَ فرمايي: چې کله په اطمينان سره سجده وکړي نو تکبير دې ووايي وَقَدْ ذَكَرْنَاهُ او موږ د دې بيان کړی دی وَاسْتَوٰى قَائِمًا عَلٰى صُدُوْرِ قَدَمَيْهِ او د خپلو پښو پر سينو دې سيده ودرېږي وَلَا يَقْعُدُ او نه دې کښېني وَلَا يَعْتَمِدُ بِيَدَيْهِ عَلَى الْأَرْضِ او نه دې په خپلو لاسو سره پر مځکه تکيه لګوي وَقَالَ الشَّافِعِيُّ رَحِمَهُ اللهُ: يَجْلِسُ جَلْسَةً خَفِيْفَةً امام شافعي رَحِمَهُ الله فرمايي چې لږ څه دې کښېني ثُمَّ يَنْهَضُ مُعْتَمِدًا عَلَى الْأَرْضِ بيا دې پر مځکه په تکيه لګولو سره ولاړ سي لِأَنَّ النَّبِيَّ عَلَيْهِ الصَّلَاةُ وَالسَّلَامُ ● فَعَلَ ذٰلِكَ ځکه چې نبي ﷺ داسې کړي دي وَلَنَا حَدِيْثُ أَبِيْ هُرَيْرَةَ رَضِيَ اللهُ عَنْهُ او زموږ دليل د حضرت ابوهريره ﷺ (دا) حديث دی أَنَّ النَّبِيَّ عَلَيْهِ الصَّلَاةُ وَالسَّلَامُ ● كَانَ يَنْهَضُ فِي الصَّلَاةِ عَلٰى صُدُوْرِ قَدَمَيْهِ چې نبي ﷺ به په لمانځه کې د خپلو پښو پر تلو ولاړېدی وَمَا رَوَاهُ مَحْمُوْلٌ عَلٰى حَالَةِ الْكِبَرِ او کوم حديث چې امام شافعي رَحِمَهُ الله روايت کړی دی هغه د بوډا والي (سپين ږيروالي) پر حالت حمل سوی دي وَلِأَنَّ هٰذِهٖ قَعْدَةُ اسْتِرَاحَةٍ او په دې وجه هم چې دا د استراحت نلسته ده وَالصَّلَاةُ مَا وُضِعَتْ لَهَا او لمونځ د استراحت لپاره نه دی وضع سوی.

---

● تخريج: أخرجه البخاري في كتاب الصلاة، باب من استوٰى قاعدا في وتر من صلاته ثم نهض، حديث رقم: ٨٢٣.

● تخريج: أخرجه الترمذي في كتاب الصلاة، باب ما جاء كيف النهوض من السجود، حديث رقم: ٢٨٨

**اللغات:** ﴿صُدُوْرِ قَدَمَيْهِ﴾ صدور جمع د صَدْرٌ ده: د پښو سينه، يا د پښو تله. ﴿يَعْتَمِدُ﴾ د افتعال د باب مضارع صيغه ده: تکيه کول (تکيه لګول)، باور کول. ﴿يَنْهَضُ﴾ د فتح د باب مضارع صيغه ده: پورته کېدل، درېدل.

**تشريح: صورت د مسئلې:** دا دی چي کله لمونځ ګزاره په ښه آرام او طمينان سره دويمه سجده وکړي نو تکبير دي ووايي او د خپلو پښو پر تلو دي سيده ودرېږي او له درېدلو څخه مخکي دي نه کښېني او نه دي د درېدلو لپاره خپل لاسونه پر مځکه تکيه کوي، صاحب د هدايې رَحِمَهُ الله فرمايي چي د تکبير ويلو متعلق خو دليل هغه حديث دی کوم چي مخکي بيان سو، يعني: كان النبي ﷺ يكبر عند كل خفض و رفع، پاته سو د نه کښېنستلو او په مځکه باندي د لاس نه تکيه کولو مسئله، نو په دې کي زموږ دليل د حضرت ابو هريره رضي الله عنه هغه حديث دی کوم چي په کتاب کي ذکر سو يعني: أن النبي ﷺ كان ينهض في الصلاة على صدور قدميه، په دې حديث کي په ښکاره توګه سره ويل سوي دي چي نبي ﷺ به په لمانځه کي له ناستي او تکيه لګولو څخه بغير سيده درېدی، د دې په خلاف چي امام شافعي رَحِمَهُ الله کومه ناسته او تکيه لګول ثابتوي هغه مناسب نه معلومېږي.

**د امام شافعي دليل:** امام شافعي رَحِمَهُ الله د حضرت مالک بن الحويرث رضي الله عنه په دې حديث سره دليل نيسي، يعني ناسته او تکيه لګول په دې حديث سره ثابتوي چي: أن النبي ﷺ كان إذا رفع رأسه من السجود قعد ثم نهض، (کله چي به نبي ﷺ له سجدې څخه سر راپورته کړی نو (اول) به کښېنستی بيا به ولاړ سو)، له دې حديث څخه معلومه سوه چي تر دويمي سجدې وروسته ناسته سنت ده.

**جواب:** زموږ له طرفه د امام شافعي رَحِمَهُ الله د حديث جواب دا دی چي د نبي ﷺ دا عادت همېشه نه وو، بلکي په سپين ږيروالي کي چي کله د نبي ﷺ بدن ضعيف او دروند سو او د دوی لپاره په سيده درېدلو کي تکليف وو، نو داسي به يې کول، يعني دا عمل پر عذر مبني وو، او د عذر په حالت کي خو موږ هم د ناستي او تکيه کولو اجازه ورکوو، خو تاسو د ځوانانو لپاره هم د بوډاتوب عمل ثابتوئ، دويمه خبره دا ده چي تر دويمي سجدې وروسته ناسته خو د استراحت او آرام لپاره ده، او تاسو ته ښه معلومه ده چي لمونځ د عبادت او بندګۍ لپاره فرض سوی دی، د آرام او استراحت لپاره نه دي فرض سوی، (خو د عذر حالت له دې څخه جلا دی).

## د دويم رکعت طريقه

وَيَفْعَلُ فِي الرَّكْعَةِ الثَّانِيَةِ مِثْلَ مَا فَعَلَ فِي الرَّكْعَةِ الْأُولَى او په دويم رکعت کي دي هغه څه وکړي کوم چي يې په اول رکعت کي وکړه لِأَنَّهُ تَكْرَارُ الْأَرْكَانِ ځکه چي دا د ارکانو تکرار دی إِلَّا أَنَّهُ لَا يَسْتَفْتِحُ وَلَا يَتَعَوَّذُ لېکن (په دويم رکعت کي به) ثناء او تعوذ نه وايي لِأَنَّهُمَا لَمْ يُشْرَعَا إِلَّا مَرَّةً وَاحِدَةً ځکه چي دا دواړه صرف يو وار مشروع سوي دي.

**اللغات:** ﴿لَا يَسْتَفْتِحُ﴾ د استفعال د باب مضارع منفي صيغه ده: د نوي سره شروع کول. ﴿لَا يَتَعَوَّذُ﴾ د تفعّل د باب مضارع منفي صيغه ده: اعوذ بالله ويل.

**تشريح:** صورت د مسئلې خو بالکل ښکاره دی چي په دويم رکعت کي به هم د اول رکعت په څېر سورت فاتحه، ضمّ سورت (يعني بل سورت ور سره يو ځای کول)، او رکوع او سجده کوي، دليل دا دی چي په دويم رکعت کي د ارکانو تکرار دی، او تکرار د ارکانو د اعمالو د تکرار تقاضا کوي، نو ځکه ويل سوه چي په دويم رکعت کي دي د اول رکعت

په دوو عمل کوي، هو! دومره فرق سته چې په دويم رکعت کي به نه سبحانك اللهم وايي او نه به اعوذ بالله وايي، ځکه چي دا دواړه شيان صرف يو وار مشروع سوي دي، ځکه کومو صحابه وو چي له نبي ﷺ څخه د لمانځه روايت کړی دی هغوی دا شيان صرف يو وار را نقل کړي دي.

## د رفع يدين (لاس پورته کولو) حکم (د فقهاؤ قولونه او دليلونه)

وَلَا يَرْفَعُ يَدَيْهِ او لمونځ کونکي دې لاسونه نه پورته کوي إِلَّا فِي التَّكْبِيرَةِ الْأُولَى مګر په اول تکبير کي خِلَافًا لِلشَّافِعِيِّ رَحِمَهُ اللهُ د امام شافعي رَحِمَهُ الله اختلاف دی فِي الرُّكُوعِ وَالرَّفْعِ مِنْهُ رکوع ته په تللو او له رکوع څخه په را پورته کېدلو کي لِقَوْلِهِ عَلَيْهِ الصَّلَاةُ وَالسَّلَامُ • لَا تُرْفَعُ الْأَيْدِي إِلَّا فِي سَبْعِ مَوَاطِنَ ځکه نبي ﷺ فرمايلي دي: لاسونه به نه پورته کيږي مګر په اوو(۷) ځايونو کي تَكْبِيرَةُ الِافْتِتَاحِ وَتَكْبِيرَةُ الْقُنُوتِ وَتَكْبِيرَاتُ الْعِيدَيْنِ [۱] د لمانځه د شروع کېدلو په تکبير کي [۲] د قنوت په تکبير کي [۳] او د اخترونو په تکبيرونو کي وَذَكَرَ الْأَرْبَعَ فِي الْحَجِّ او څلور ځايونه يې په حج کي بيان کړي دي وَالَّذِي يُرْوَى مِنَ الرَّفْعِ مَحْمُولٌ عَلَى الِابْتِدَاءِ او کوم حديث چي د رفع يدين په باره کي روايت سوی دی هغه د اسلام پر شروع حمل کيږي كَذَا نُقِلَ عَنِ ابْنِ الزُّبَيْرِ رَضِيَ اللهُ عَنْهُ همدارنګه له ابن زبير ﷺ څخه را نقل سوي دي.

**اللغات:** ﴿رَفْعِ يَدَيْنِ﴾ لاسونه پورته کول، ﴿مَوَاطِن﴾ جمع ده، واحد يې مَوْطِن دی: ځای.

**تشريح: صورت د مسئلې:** دا دی چي زموږ په نيز صرف د تکبير تحريمه ويلو په وخت کي رفع يدين (لاسونه پورته) کيږي، له دې څخه ماسوا په نورو ځايونو کي مثلاً رکوع ته د تللو په وخت کي، له رکوع څخه د سر راپورته کولو په وخت کي او سجدې ته د تللو په وخت کي صرف تکبير ويل کيږي، لاسونه نه پورته کيږي، د دې په خلاف د امام شافعي رَحِمَهُ الله په نيز له تکبير تحريمه څخه ماسوا رکوع ته د تللو په وخت کي او له رکوع څخه د سر را پورته کولو په وخت کي هم لاسونه پورته کيږي.

**امام شافعي دليل:** د حضرت ابن عمر رَضِيَ اللهُ عَنْهُمَا دا حديث دی: أن النبي ﷺ كان يرفع يديه عند الركوع وعند رفع الرأس من الركوع، (يعني نبي ﷺ به رکوع ته د تللو او له رکوع څخه د راپورته کېدلو په وخت کي لاسونه پورته کول)، له دې څخه معلومه سوه چي له تکبير تحريمه څخه علاوه په دې ځايونو کي هم رفع يدين سته.

**زموږ دليل:** هغه حديث دی کوم چي په کتاب کي ذکر سو، د دې حديث روايت کونکی حضرت ابن عباس رَضِيَ اللهُ عَنْهُمَا دی، هغه فرمايي چي نبي ﷺ وفرمايل: لا ترفع الأيدي إلا في سبع مواطن، (يعني له اوو ځايونو څخه ماسوا به چيري هم رفع يدين نه کيږي)، او هغه اوه ځايونه دا دي: (۱) تکبير تحريمه (۲) د قنوت تکبير (۳) د اخترونو تکبيرونه (۴) د جمرو تکبيرونه (۵) د صفا و مروه تکبير (۶) د عرفات تکبيرونه (۷) د حجر اسود تکبيرونه، په دې حديث سره موږ په دې توګه دليل نيسو چي نبي ﷺ رفع يدين په دې اوو ځايونو کي حصر کړی دی، او په دې اوو ځايونو کي رکوع ته د تللو او له رکوع څخه د راپورته کېدلو تکبيرونه نسته، نو ځکه به په دې ځايونو کي لاسونه پورته کول صحيح نه وي.

---

• تخريج: أخرجه البيهقي في السنن الكبرى، باب رفع اليدين إذا رأى البيت، حديث رقم: ۹۲۱۰.

**جواب:** والذی الخ له دې ځايه صاحب د هدايې د امام شافعي رَحِمَهُ الله د حديث جواب ورکوي فرمايي چي دا حديث د اسلام پر ابتداء (شروع) باندي حمل سوی دی، يعني د اسلام په شروع کي به رکوع او نورو ته د تللو په وخت کي لاسونه پورته کېدل، خو وروسته دا حکم منسوخ سو، او په دې نسخ باندي دليل د حضرت عبد الله بن زبير رَضِيَ اللهُ عَنْهُمَا دا فرمان دی: أنه رأى رجلا يصلي في المسجد الحرام يرفع يديه عند الركوع وعند رفع الرأس من الركوع فلما فرغ من صلاته قال له لا تفعل فإن هذا شيئ فعله رسول الله ﷺ ثم تركه. (عبد الله ابن زبير ﷺ په مسجد حرام کي يو سړی وليدی چي هغه د لمانځه په جريان کي رکوع ته د تللو په وخت کي او له رکوع څخه د سر راپورته کولو په وخت کي رفع يدين کوی، څه وخت چي هغه له خپل لمانځه څخه فارغ سو، نو حضرت ابن زبير هغه ته وفرمايل چي په دې ځايونو کي رفع يدين مه کوه، ځکه چي نبيّ ﷺ به رفع يدين کوی لېکن بيا يې پرېښووی)، نو معلومه سوه چي مخکي د رکوع او نورو په تکبيرونو کي د رفع يدين حکم خو مشروع وو، لېکن وروسته منسوخ سو.

**زموږ دويم دليل:** د حضرت ابن عباس رَضِيَ اللهُ عَنْهُمَا دا فرمان هم دی: إن العشرة الذين شهد لهم النبي ﷺ بالجنة لم يكونوا يرفعون أيديهم إلا عند افتتاح الصلاة. (يعني عشره مبشره وو به هم له تکبير تحريمه څخه ماسوا رفع يدين نه کوی).
(عنايه ج:١، ص: ٣٢٠/٣٢١)

## د دويمي ناستي او آخري ناستي طريقه

وَإِذَا رَفَعَ رَأْسَهُ مِنَ السَّجْدَةِ الثَّانِيَةِ فِي الرَّكْعَةِ الثَّانِيَةِ او کله چي لمونځ کونکی په دويم رکعت کي له دويمي سجدې څخه خپل سر راپورته کړي اِفْتَرَشَ رِجْلَهُ الْيُسْرٰى فَجَلَسَ عَلَيْهَا نو چپه پښه دې وغوړي او پر هغه دې کښيني وَنَصَبَ الْيُمْنٰى نَصْبًا او راسته پښه دې (سمه) ودروي وَوَجَّهَ أَصَابِعَهُ نَحْوَ الْقِبْلَةِ او د هغې ګوتي دې د قبلې و طرف ته کړي هٰكَذَا وَصَفَتْ عَائِشَةُ قُعُوْدَ رَسُوْلِ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ● فِي الصَّلَاةِ همدارنګه حضرت عائشي رَضِيَ اللهُ عَنْهَا په لمانځه کي د نبي ﷺ ناسته بيان کړه وَوَضَعَ يَدَيْهِ عَلَى فَخِذَيْهِ او خپل دواړه لاسونه دې پر دواړو ورنو کښېږدي وَبَسَطَ أَصَابِعَهُ او ګوتي دې وغوړوي وَتَشَهَّدَ او تشهد دې ووايي يُرْوٰى ذٰلِكَ فِي حَدِيْثِ وَائِلٍ رَضِيَ اللهُ عَنْهُ● دا د حضرت وائل ﷺ په حديث کي روايت سوي دي وَلِأَنَّ فِيْهِ تَوْجِيْهَ أَصَابِعِ يَدَيْهِ إِلَى الْقِبْلَةِ او په دې وجه (هم) چي په دې کي د قبلې و طرف ته د ګوتو متوجه کېدل دي وَإِنْ كَانَتِ امْرَأَةً جَلَسَتْ عَلٰى أَلْيَتِهَا الْيُسْرٰى او که لمونځ کونکې ښځه وه نو هغه دې پر خپل چپه کوناټي کښيني وَأَخْرَجَتْ رِجْلَيْهَا مِنَ الْجَانِبِ الْأَيْمَنِ او خپلي دواړي پښي دې له راسته طرف څخه راوباسي لِأَنَّهُ أَسْتَرُ لَهَا ځکه چي دا د هغې لپاره زياته پرده ده.

**اللغات:** ﴿اِفْتَرَشَ﴾ د افتعال باب دی: غوړول، ﴿نصب﴾ د فتح باب دی: درول، ﴿أَلْيَة﴾ د کوناټو يو طرف، (يو کوناټی).

● تخريج: أخرجه مسلم في كتاب الصلاة، باب ما يجمع صفة الصلاة، وما يفتتح به، حديث رقم: ٢٤٠.
● تخريج: أخرجه مسلم في كتاب المساجد، باب صفة الجلوس في الصلاة، حديث رقم: ١١٦.

**تشريح:** امام قدوري رَحِمَهُ الله په دې عبارت کي د قعدې طريقه او څرنګوالی بيان کړی دی، فرمايي چي کله لمونځ ګزاره د دويم رکعت له دويمي سجدې څخه سر راپورته کړي نو خپله چپه پښه دي وغوړوي پر هغه دي کښېني او راسته پښه دي داسي ودروي چي ګوتي يې د قبلې و طرف ته سي، ځکه حضرت عائشې رَضِيَ اللهُ عَنْهَا په لمانځه کي د نبي ﷺ ناسته همداسي بيان کړې ده، بيا چي کله لمونځ ګزاره په دې طريقه سره کښېني، نو د ده لپاره حکم دا دی چي خپل دواړه لاسونه دي پر ورنو کښېږدي، او د لاسو ګوتي دي پر ورنو وغوړوي بيا دي تشهد ووايي، د لاس د ګوتو په باره کي دي دا خبره هم په ذهن کي لري چي هغه دي د قبلې و طرف ته وي، لکه څرنګه چي تر دې مخکي تاسو ووېل چي تر څومره د انسان وس رسېږي هغومره دي خپل اندامونه په لمانځه کي د قبلې و طرف ته متوجه کوي.

وإن كانت الخ د دې حاصل دا دی چي په لمانځه کي به د ښځي ناسته د نارينه له ناستي څخه جلا وي، طريقه يې دا ده چي ښځه به پر چپه کوناټې کښېني او له راسته طرف څخه به خپلي پښي دباندې راباسي، ځکه چي په دې طريقه کي د هغې په حق کي پرده زياته ده، او د ښځي په حق کي پرده مطلوب ده، لکه څرنګه چي د دغه مقصد په خاطر د ښځي سجده هم له نارينه څخه جلا ده.

## د حضرت عبدالله ابن مسعود رضي الله عنه تشهد (التحيات)

وَالتَّشَهُّدُ التَّحِيَّاتُ لِلّٰهِ وَالصَّلَوَاتُ وَالطَّيِّبَاتُ اَلسَّلَامُ عَلَيْكَ أَيُّهَا النَّبِيُّ إِلَىٰ آخِرِهٖ او تشهد دا دی: التحيات لله ....... الخ

وَهٰذَا تَشَهُّدُ عَبْدِ اللهِ بْنِ مَسْعُوْدٍ رَضِيَ اللهُ عَنْهُ او دا د عبد الله بن مسعود رضي الله عنه تشهد دی فَإِنَّهُ قَالَ أَخَذَ● رَسُوْلُ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ بِيَدَيَّ ځکه ابن مسعود رضي الله عنه وفرمايل: چي رسول الله ﷺ زما لاسونه ونيول وَعَلَّمَنِي التَّشَهُّدَ كَمَا كَانَ يُعَلِّمُنِيْ سُوْرَةً مِنَ الْقُرْآنِ او ماته يې تشهد داسي را زده کړی لکه څرنګه چي به يې د قرآن يو سورت را زده کوی وَقَالَ: قُلْ اَلتَّحِيَّاتُ لِلّٰهِ إِلَىٰ آخِرِهٖ او ويې فرمايل: ووايه! التحيات لله..... الخ وَالْأَخْذُ بِهٰذَا أَوْلَىٰ مِنَ الْأَخْذِ بِتَشَهُّدِ ابْنِ عَبَّاسٍ رَضِيَ اللهُ عَنْهُمَا او پر دې تشهد عمل کول د ابن عباس رَضِيَ اللهُ عَنْهُمَا له تشهد څخه زيات غوره دي وَهُوَ قَوْلُهُ اَلتَّحِيَّاتُ الْمُبَارَكَاتُ الصَّلَوَاتُ الطَّيِّبَاتُ لِلّٰهِ سَلَامٌ عَلَيْكَ أَيُّهَا النَّبِيُّ وَرَحْمَةُ اللهِ وَبَرَكَاتُهُ سَلَامٌ عَلَيْنَا إِلَىٰ آخِرِهٖ او د ابن عباس رضي الله عنه تشهد دا دی: التحيات المبارکات..... الخ لِأَنَّ فِيْهِ الْأَمْرَ ځکه چي د عبد الله ابن مسعود رضي الله عنه په التحيات کي (د قليقل په ذريعه سره) امر (سوی) دی وَأَقَلُّهُ الْاِسْتِحْبَابُ او د امر کمه درجه داستحباب ده وَالْأَلِفُ وَاللَّامُ وَهُمَا لِلْاِسْتِغْرَاقِ او (په السلام عليك کي) الف او لام دواړه داستغراق لپاره دي وَزِيَادَةُ الْوَاوِ وَهِيَ لِتَجْدِيْدِ الْكَلَامِ او (په والصلوات کي) واو زيات سوی دی چي هغه د خبرو د نوي کولو لپاره دی كَمَا فِي الْقَسَمِ لکه په قسم کي (چي واو د خبرو د نوي کولو لپاره وي) وَتَأْكِيْدَ التَّعْلِيْمِ او د دې تشهد د زده کولو تأکيد (ټينګار) سوی دی (يعني نبي ﷺ عبد الله بن مسعود رضي الله عنه د دې تشهد پر زده کولو ټينګار کړی دی نو په دې وجه هم دا تشهد غوره دی).

● تخريج: أخرجه البخاري في كتاب الاذان، باب التشهد في الاخيرة، حديث رقم: ۸۳۱ ومسلم في كتاب الصلاة باب التشهد في الصلاة، حديث رقم: ٥٥

**اللغات:** ﴿التَّحِيَّاتُ﴾ جمع ده، واحد یې تَحِيَّةٌ دی: د عاجزۍ ښکاره کول، سلام. ﴿الإستغراق﴾ یو شی په بشپړه توګه نیول.

**تشریح:** په دې عبارت کې د تشهد بیان دی، د عبارت تر حل مخکې په دې خبره پوه سئ چې زموږ په نېز په اوله نسته کې د تشهد ویل واجب دی، لیکن اختلاف په دې کې دی چې کوم تشهد ویل غوره او افضله دي، زموږ په نېز د عبد الله ابن مسعود رضي الله عنه تشهد ویل افضله دي، او د شوافعو په نېز د عبدالله ابن عباس رضي الله عنه تشهد ویل افضله دي، او له دې دواړو څخه ماسوا له حضرت عمر، حضرت علي، حضرت عائشه او حضرت جابر رَضِيَ اللهُ عَنْهُمْ او نورو څخه هم د تشهد کلمې او الفاظ را نقل سوي دي.

د حضرت ابن عباس رَضِيَ اللهُ عَنْهُمَا تشهد دا دی: اَلتَّحِيَّاتُ الْمُبَارَكَاتُ الصَّلَوَاتُ الطَّيِّبَاتُ لِلّٰهِ سَلَامٌ عَلَيْكَ أَيُّهَا النَّبِيُّ وَرَحْمَةُ اللّٰهِ وَبَرَكَاتُهُ، سَلَامٌ عَلَيْنَا وَعَلٰى عِبَادِ اللّٰهِ الصَّالِحِيْنَ، أَشْهَدُ أَنْ لَا إِلٰهَ إِلَّا اللّٰهُ وَأَشْهَدُ أَنَّ مُحَمَّدًا رَسُولُ اللّٰهِ.

- امام شافعي رَحِمَهُ الله د دې تشهد ویل افضله ګڼلي دي، او د دې یې څو وجهې بیان کړي دي:

(۱) د ابن عباس رضي الله عنه په تشهد کې د مبارکات کلمه زیاته ده چې هغه د ابن مسعود رضي الله عنه په تشهد کې نسته. (۲) د ابن عباس رضي الله عنه تشهد د قرآن کریم موافق دی، الله تعالیٰ فرمایي: تَحِيَّةً مِّنْ عِنْدِ اللّٰهِ مُبٰرَكَةً طَيِّبَةً. (۳) ابن عباس رضي الله عنه د سلام لفظ بغیر له الف لام څخه ذکر کړی دی او په قرآن کریم کې هم اکثره سلامونه د الف لام څخه خالي دي، مثلاً: سَلٰمٌ عَلَيْكُمْ طِبْتُمْ، سَلٰمٌ عَلَيْهِ يَوْمَ وُلِدَ او داسې نور، نو په دې حواله سره هم د ابن عباس رضي الله عنه تشهد د قرآن سره مشابه دی. (۴) د ابن عباس رضي الله عنه تشهد د ابن مسعود رضي الله عنه تر تشهد وروسته دی ځکه چې ابن عباس رضي الله عنه تر ابن مسعود رضي الله عنه په عمر کې کوچنی وو، او دا خبره ښکاره ده چې وروستنی حکم د مخکني حکم لپاره ناسخ وي، نو امام شافعي رَحِمَهُ الله وایي چې د دې څلورو وجهو په سبب موږ د ابن عباس رَضِيَ اللهُ عَنْهُمَا تشهد اختیار کړی دی، او د هغه تشهد افضله ګڼو.

- احنافو د ابن مسعود رَضِيَ اللهُ عَنْهُمَا تشهد اختیار کړی دی، او د هغه هم ډېرې وجهې دي، چې څلور له هغو څخه مصنف رَحِمَهُ الله بیان کړي دي:

اول د ابن مسعود رضي الله عنه تشهد ته ګورئ:

اَلتَّحِيَّاتُ لِلّٰهِ وَالصَّلَوَاتُ وَالطَّيِّبَاتُ، اَلسَّلَامُ عَلَيْكَ أَيُّهَا النَّبِيُّ وَرَحْمَةُ اللّٰهِ وَبَرَكَاتُهُ، اَلسَّلَامُ عَلَيْنَا وَعَلٰى عِبَادِ اللّٰهِ الصَّالِحِيْنَ. أَشْهَدُ أَنْ لَا إِلٰهَ إِلَّا اللّٰهُ وَأَشْهَدُ أَنَّ مُحَمَّدًا عَبْدُهُ وَرَسُولُهُ.

مصنف چې کومې وجهې لیکلي دي هغه دا دي: (۱) اوله وجه دا ده چې نبي ﷺ د امر په صیغه قُلْ سره ابن مسعود رضي الله عنه ته د دې تشهد تعلیم ورکړی دی، او د امر کمه درجه استحباب ده، نو د امر په وجه همدغه تشهد مستحب دی. (۲) په دې کې د سلام لفظ په الف لام سره معرفه دی (السلام)، او دا د استغراق فایده ورکوي، یعني ټولو سلامونو ته شاملیږي، او بغیر له الف لام څخه دا فایده نه ورکوي کوم چې د ابن عباس رضي الله عنه په حدیث کې دی. (۳) تر الصلوات مخکې واو زیات سوی دی یعني والصلوات، همدارنګه تر الطیبات مخکې هم واو زیات سوی دی چې په دې سره کلام خپل مینځ کې جلا کیږي او کلام د نوي سره شروع کیږي. (۴) نبي ﷺ د ابن مسعود لاس ونیوی او دا تشهد یې ور لازده کړی چې له دې څخه د تعلیم تأکید او توجه ښکاره کیږي. دوې وجهې یې موږ نورې ذکر کوو: (۵) د زیاتره محدثینو رایه دا ده

چي د ابن مسعود ﷺ تشهد د اسناد په اعتبار سره "احسن" دی. (۶) زياتره صحابه وو همدغه تشهد اختيار کړی دی او خلکو ته يې د دې تعليم هم ورکړی دی.

**جواب:** امام شافعي رَحِمَهُ الله چي کومي د ترجيح وجهي بيان کړي دي د هغه جوابونه دا دي: (۱) د اولي وجهي جواب يې دا دی چي که د يوې کلمې زياتونه د افضيلت سبب وای نو د حضرت جابر ﷺ تشهد به اولیٰ وای ځکه چي په هغه کي بسم الله الرحمن الرحيم زياته سوې ده، او د ابن مسعود ﷺ په تشهد کي واو او الف لام او لفظ د "عبده" دواړه زيات سوی دی، نو ځکه به د ابن مسعود ﷺ تشهد اولیٰ وي، (۲) د دويمي وجهي جواب يې دا دی چي د قرآن سره موافق کېدل د افضليت سبب نه دی، ځکه چي د لمانځه په ناسته (قعده) کي د قرآن ويل مکروه دي، نو د قرآن د قرائت سره به موافقت څرنګه مستحب وي، (۳) د دريمي وجهي يې جواب دا دی چي څرنګه سلام بغير له الف لام څخه په قرآن کي راغلی دی همدارنګه د الف لام سره هم راغلی دی، الله تعالیٰ فرمايلي دي: وَالسَّلَامُ عَلَيَّ يَوْمَ وُلِدْتُّ (سورة مريم، ۳۳)، وَالسَّلَامُ عَلَىٰ مَنِ اتَّبَعَ الْهُدَىٰ (سورة طه، ۴۷)، (۴) د څلورمي وجهي جواب يې دا دی چي داسي نه ده چي د تشهد په باره کي د ابن عباس ﷺ حديث وروسته دی، بلکي د ابن مسعود ﷺ حديث وروسته دی، لکه څرنګه چي له امام کرخي رَحِمَهُ الله څخه روايت دی چي ابن مسعود ﷺ وفرمايل: د اسلام په ابتداء کي به موږ التحيات الطاهرات المباركات الزاكيات وايي، نو له دې څخه هم معلومه سوه چي د ابن مسعود ﷺ تشهد د ابن عباس ﷺ له تشهد څخه وروسته دی.

**فوائد:** له التحيات څخه مراد قولي عبادتونه دي، له صلوات څخه مراد بدني عبادتونه دي، له الطيبات څخه مراد مالي عبادتونه دي، او السلام عليك له هغه سلام څخه دی کوم چي د معراج په شپه کي الله رب العزت د نبي ﷺ د التحيات لله والصلوات والطيبات په جواب کي فرمايلی وو؛ يعني نبي ﷺ چي کله د معراج په شپه کي د لوی څښتن جَلَّ په دربار کي حاضر سو نو ويې فرمايل: التحيات لله والصلوات والطيبات، الله تعالیٰ په جواب کي وفرمايل: السلام عليك ايها النبي ورحمة الله وبركاته، بيا نبي ﷺ وفرمايل: السلام علينا وعلى عباد الله الصالحين، ملائکو چي واورېدل نو ويې فرمايل: أشهد أن لا إله إلا الله وأشهد أن محمد عبده ورسوله.

## په اوله ناسته کي د تشهد حکم

وَلَا يَزِيدُ عَلَىٰ هٰذَا فِي الْقَعْدَةِ الْأُولَىٰ او په اوله ناسته کي به پر دې تشهد زياتوب نه کوي لِقَوْلِ ابْنِ مَسْعُودٍ رَضِيَ اللهُ عَنْهُمَا● ځکه حضرت ابن مسعود رَضِيَ اللهُ عَنْهُمَا فرمايلي دي عَلَّمَنِي رَسُوْلُ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ التَّشَهُّدَ فِي وَسْطِ الصَّلَاةِ وَآخِرِهَا نبي ﷺ ماته د لمانځه په مېنځ او د لمانځه په آخر (يعني په دې دواړو ځايونو) کي تشهد را وښووی فَإِذَا كَانَ وَسْطُ الصَّلَاةِ نو چي کله به د لمانځه مېنځ وو نَهَضَ إِذَا فَرَغَ مِنَ التَّشَهُّدِ نو (فوراً) به ودرېدی کله چي به له تشهد څخه فارغه سو وَإِذَا كَانَ آخِرَ الصَّلَاةِ او کله چي به د لمانځه آخر وو دَعَا لِنَفْسِهِ بِمَا شَاءَ نو د خپل ځان لپاره چي به يې کومه دعاء خوښه وه هغه به يې وکړه.

● تخريج: أخرجه احمد في مسنده، حديث رقم:۴۵۹.

**اللغات:** ﴿عَلَّمَنِيْ﴾ د تفعيل د باب ماضي صيغه ده، په آخر کي نون د وقايه او ياء د متکلم ده: تعليم ورکول، ور ښوول.

**تشريح:** فرمايي چي لمونځ گزاره دي په اوله ناسته کي پر تشهد زياتوب نه کوي، او د امام شافعي رَحِمَهُ الله جديد(نوی) قول دا دی چي په اوله ناسته کي هم پر نبی ﷺ باندي درود ويل سنت دی.

**د امام شافعي دليل:** د ام سلمه رَضِيَ اللهُ عَنْهَا حديث دی: في کل رکعتين تشهد وسلام على المرسلين، يعني په هر دوو رکعتونو کي تشهد او سلام على المرسلين سته.

**زموږ دليل:** د ابن مسعود ﷜ قول دی: علمني رسول الله ﷺ التشهد في وسط الصلوة وأخرها فإذا كان في وسط الصلوة نهض إذا فرغ من التشهد وإذا كان أخر الصلوة دعا لنفسه ما شاء.

**جواب:** امام شافعي رَحِمَهُ الله چي کوم د ام سلمه رَضِيَ اللهُ عَنْهَا حديث ذکر کړی دی د هغه جواب دا دی چي له سلام على المرسلين څخه مراد درود شريف نه دی بلکي د تشهد دا سلام څني مراد دی: السلام عليك ايها النبي ورحمة الله وبركاته السلام علينا وعلى عباد الله الصالحين.

## د آخري دوو رکعتونو د قرائت بيان

وَيَقْرَأُ فِي الرَّكْعَتَيْنِ الْأُخْرَيَيْنِ بِفَاتِحَةِ الْكِتَابِ وَحْدَهَا او په آخري دوو رکعتو کي به صرف سورت فاتحه وايي لِحَدِيْثِ أَبِيْ قَتَادَةَ د حضرت ابو قتاده ﷜ د حديث په وجه أَنَّ النَّبِيَّ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ ● قَرَأَ فِي الْأُخْرَيَيْنِ بِفَاتِحَةِ الْكِتَابِ چي نبي ﷺ په آخري دوو رکعتو کي سورت فاتحه وويله وَهٰذَا بَيَانُ الْأَفْضَلِ او دا د افضليت (غوره والي) بيان دی هُوَ الصَّحِيْحُ همدا صحيح ده لِأَنَّ الْقِرَاءَةَ فَرْضٌ فِي الرَّكْعَتَيْنِ ځکه چي قرائت کول خو په(اولو) دوو رکعتونو کي فرض دي عَلٰى مَا يَأْتِيْكَ مِنْ بَعْدُ إِنْ شَاءَ اللهُ چي بحث به يې انشاء الله وروسته راسي.

**اللغات:** ﴿وَحْدَهَا﴾ يوازي.

**تشريح:** مسئله: دا ده چي د ماپښين، مازيگر او ماخوستن په آخري دوو رکعتونو کي به او د ماښام په آخري رکعت کي به فقط سورت فاتحه(الحمد لله) ويل کيږي، دليل د ابی قتاده ﷜ حديث دی: أنه ﷺ كان يقرأ في الركعتين الاوليين من الظهر والعصر بفاتحة الكتاب وسورتين وفي الاخريين بفاتحة الكتاب. (صحيحين) (يعني نبي ﷺ به د ماپښين او مازيگر په اولو دوو رکعتونو کي سورت فاتحه او بل سورت وايی، او په آخري دوو رکعتونو کي به يې سورت فاتحه ويله).

وهٰذا بيان الخ صاحب د هدايې رَحِمَهُ الله فرمايي چي دا بيان د افضليت دی، يعني په آخري دوو رکعتونو کي سورت فاتحه ويل افضله او مستحب دي، لهذا که چا په آخري دوو رکعتو کي سورت فاتحه او تسبيح دواړه پرېښوول نو هيڅ حرج نسته، او پر هغه سجده سهوه هم واجب نه ده، لېکن ويل يې افضله او غوره دي، همدا صحيح روايت دی. حسن بن زياد رَحِمَهُ الله له امام اعظم رَحِمَهُ الله څخه يو روايت دا هم را نقل کړی دی چي په آخري دوو رکعتونو کي سورت فاتحه

---

● تخريج: أخرجه البخاري في كتاب الاذان في باب القراءة في الظهر، حديث رقم: ۷۵۹.

ویل واجب دي، نو که له چا څخه په هېره پاته سوه نو پر هغه سجده سهوه واجب ده؛ دلیل یې دا دی چې په آخري دوو رکعتونو کي قیامه (ولاړه) مقصود ده، نو ځکه دا له ذکر او قرائت څخه خالي ساتل مکروه دي، لکه څرنګه چې رکوع او سجده له ذکر څخه خالي ساتل مکروه دي، او د صحیح قول دلیل دا دی چې قرائت صرف په اولو دوو رکعتونو کي فرض دی، چي تفصیل به یې انشاء الله وروسته راسي. فانتظروا اِني معکم من المنتظرین.

## د آخري ناستي (قعدهٔ اخیره) بیان

**وَجَلَسَ فِي الْأَخِيرَةِ** او لمونځ ګزاره به په آخره ناسته کي داسي کښېني **كَمَا جَلَسَ فِي الْأُولَى** څرنګه چي په اوله ناسته کي کښېنستی وو **لِمَا رَوَيْنَا مِنْ حَدِيثِ وَائِلٍ وَعَائِشَةَ رَضِيَ اللهُ عَنْهُمَا** د حضرت وائل ﷺ او د حضرت عائشي رَضِيَ اللهُ عَنْهَا د حدیثونو په وجه کوم چي مونږ روایت کړل **وَلِأَنَّهَا أَشَقُّ عَلَى الْبَدَنِ** او په دې وجه (هم) چي داسي کښېنستل پر بدن بوج (او تکلیف) دي **فَكَانَ أَوْلَى مِنَ التَّوَرُّكِ الَّذِي يَمِيلُ إِلَيْهِ مَالِكٌ رَحِمَهُ اللهُ** نو ځکه به دا له هغه تورک څخه غوره وي چي د هغه و طرف ته امام مالک رَحِمَهُ الله رغبت کړی دی **وَالَّذِي يُرْوَى** او هغه حدیث کوم چي (د تورک په باره کي) رانقل سوی دی **أَنَّهُ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ قَعَدَ مُتَوَرِّكًا** چي نبي ﷺ د تورک پر طریقه کښېنستی **ضَعَّفَهُ الطَّحَاوِيُّ رَحِمَهُ اللهُ** نو امام طحاوي رَحِمَهُ الله هغه ضعیف ګرځولی دی **أَوْ يُحْمَلُ عَلَى حَالَةِ الْكِبَرِ** یا هغه به د بوډاتوب پر حالت حمل کېږي.

**اللغات:** ﴿أَشَقُّ﴾ د نصر د باب اسم تفضیل دی: زیات سخت، زیات دروند. ﴿تَوَرُّكٌ﴾ د تفعیل د باب مصدر دی: دواړي پښې یو طرف ته ایستل او پر کوناټو کښېنستل، پر کوناټو تکیه لګول.

**تشریح: صورت د مسئلې:** دا دی چي کله لمونځ کونکی په څلورم رکعت کي له دویمي سجدې څخه فارغه سي نو آخرنه ناسته دي وکړي، او په دې ناسته کي دي بالکل په هغه حالت او شکل باندي کښېني لکه په اوله ناسته کي چي کښېنستی وو، یعني چپه پښه دي وغوړوي او پر هغه دي کښېني، او راسته پښه دي ودروي، ځکه چي په ناسته کي همدغه طریقه د حضرت وائل بن حجر ﷺ او د حضرت عائشي رَضِيَ اللهُ عَنْهَا له حدیثونو څخه ثابته ده، او بیا په دې طریقه سره کښېنستل پر بدن باندي بوج او تکلیف دي، او په عبادت کي همدغه مطلوب دي (ځکه چي څومره د عبادت بوج زیات وي هغومره یې ثواب زیات وي)، نو په دې وجه به هم دغه طریقه غوره وي.

د دې په خلاف امام مالک رَحِمَهُ الله د متورکا ناستي قائل دی، یعني پر دواړو کوناټو کښېنستل او پښې یوه طرف ایستل د امام مالک رَحِمَهُ الله په نیز سنت دي.

**د امام مالک دلیل:** دا دی چي نبي ﷺ به پر دغه طریقه کښېنستی، لیکن صاحب د هدایې رَحِمَهُ الله جواب دا ورکوي چي د متورکا ناستي په باره کي چي کوم حدیث نبي ﷺ ته منسوب دی، هغه ضعیف دی، او امام طحاوي رَحِمَهُ الله د هغه د ضعف علت بیانوي فرمایي چي: هذا من حدیث عبد الحمید بن جعفر، وهو ضعیف عند نقله الحدیث. (یعني دا مضمون د عبد الحمید بن جعفر له حدیث څخه را اخیستل سوی دی او د هغه حدیث ضعیف وي). (عنایه)، نو ځکه به په دې

---

● تخریج: أخرجه ابو داؤد فی کتاب الصلاة، باب من ذکر التورك فی الرابعة، حدیث رقم: ۹۶۶.

حديث سره دليل نيول صحيح نه وي، ځکه چي دا حديث د وائل بن حجر ﷺ او د حضرت عائشې رضي الله عنها د حديث سره مقابله نه سي کولای.

## په لمانځه کې د تشهد او درود حيثيت (د فقهاؤ قولونه او دليلونه)

وَيَتَشَهَّدُ او (په آخره ناسته کي به هم لمونځ کونکی) تشهد وايي وَهُوَ وَاجِبٌ عِنْدَنَا او تشهد زموږ په نيز واجب دي وَصَلَّى عَلَى النَّبِيِّ عَلَيْهِ السَّلَامُ او پر نبي ﷺ به درود وايي وَهُوَ لَيْسَ بِفَرِيضَةٍ عِنْدَنَا او درود زموږ په نيز فرض نه دي خِلَافًا لِلشَّافِعِيِّ رَحِمَهُ اللهُ فِيهِمَا او په دې دواړو کې د امام شافعي رَحِمَهُ الله اختلاف دی لِقَوْلِهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ ● ځکه نبي ﷺ فرمايلي دي إِذَا قُلْتَ هَذَا أَوْ فَعَلْتَ فَقَدْ تَمَّتْ صَلَاتُكَ کله چي تا تشهد ووايی يا داسې دې وکړه نو ستا لمونځ پوره سو إِنْ شِئْتَ أَنْ تَقُومَ فَقُمْ که غواړې چي ولاړ سې نو ولاړ سه وَإِنْ شِئْتَ أَنْ تَقْعُدَ فَاقْعُدْ او که غواړې چي کښېنې نو کښېنه وَالصَّلَاةُ عَلَى النَّبِيِّ عَلَيْهِ الصَّلَاةُ وَالسَّلَامُ خَارِجَ الصَّلَاةِ وَاجِبَةٌ او له لمانځه څخه دباندي پر نبي ﷺ درود ويل واجب دي إِمَّا مَرَّةً وَاحِدَةً يا خو يو وار واجب دي كَمَا قَالَهُ الْكَرْخِيُّ رَحِمَهُ اللهُ لکه څرنګه چي امام کرخي رَحِمَهُ الله ويلي دي أَوْ كُلَّمَا ذُكِرَ النَّبِيُّ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ يا چي کله هم د نبي ﷺ يادونه وسي كَمَا اخْتَارَهُ الطَّحَاوِيُّ لکه څرنګه چي امام طحاوي رَحِمَهُ الله دغه اختيار کړي دي فَكَفَيْنَا مُؤْنَةَ الْأَمْرِ نو په آيت کي د امر د صيغې خبره زموږ لپاره کافي سوه (يعني د امر د صيغې تقاضا بس همدومره ده) وَالْفَرْضُ الْمَرْوِيُّ فِي التَّشَهُّدِ او د تشهد په باره کي چي په حديث کي کوم فرض رانقل سوي دي هُوَ التَّقْدِيرُ د هغه معنیٰ د اندازه کولو ده.

**اللغات:** ﴿صلاة﴾ درود، لمونځ. ﴿مرّة﴾ يو وار، يو ځل. ﴿مؤنة﴾ بوج، تکليف، سامان.

**تشريح:** په آخره ناسته کي تشهد ويل زموږ په نيز واجب دي او درود شريف ويل واجب او فرض نه دي، بلکي سنت دي، د امام شافعي رَحِمَهُ الله په نيز د تشهد ويل او پر نبي ﷺ درود ويل دواړه فرض دي.

**د امام شافعي دليل:** د ابن مسعود ﷺ حديث دی: أنه قال كنا نقول قبل أن يفترض التشهد السلام على الله السلام على جبريل وميكائيل فقال النبي ﷺ: قولوا التحيات لله...الخ. بيا په آخر کي فرمايي: إذا قلت هذا او فعلت هذا فقد تمت صلاتك. په دې حديث سره امام شافعي رَحِمَهُ الله په درې طريقو سره دليل نيسي، (۱) اول دا چي ابن مسعود ﷺ فرمايي: قبل أن يفترض التشهد، يعني پر تشهد د فرضو اطلاق سوی دی، نو له دې څخه ثابته سوه چي تشهد فرض دی، (۲) دويم دا چي نبي ﷺ وفرمايل قولوا التحيات لله او قولوا د امر صيغه ده، او امر د وجوب لپاره وي، نو معلومه سوه چي التحيات ويل واجب دي، او د امام شافعي رَحِمَهُ الله په نيز واجب او فرض دواړه يو شی دي، نو کله چي التحيات ويل واجب سو نو فرض به هم وي، (۳) دريم دا چي نبي ﷺ د لمانځه پوره والی په تشهد پوري معلق کړی دي، له دې څخه معلومه

---

● اخرجه دار قطني في كتاب الصلاة، باب صفة التشهد ووجوبه، حديث رقم: ۱۳۱۹، ۱۳۲۰، ۱۳۲۱.

سوه چي له تشهد څخه بغير لمونځ نه پوره کيږي، او چي له کوم شي څخه بغير لمونځ نه پوره کيږي هغه فرض وي، نو معلومه سوه چي تشهد ويل فرض دي.

**جواب:** زموږ له طرف جواب دا دی چي په قبل أن يفترض التشهد کي له فرض څخه لغوي معنیٰ مراد ده، يعني تقدير(اندازه کول)، الله تعالیٰ فرمايلي دي: فَنِصْفُ مَا فَرَضْتُمْ (البقرة:۲۳۷)، يعني قَدَّرْتُمْ اوس يې مطلب دا سو چي "د تشهد له مقدر کېدلو او معلومېدلو څخه مخکي به موږ دا ويل: والسلام على الله ...الخ"، نو پر تشهد د فرضو اطلاق صحيح نه سو؛ دوېيم جواب دا دی چي دلته دامر صيغه د تعليم او تلقين لپاره ده، نو له دې څخه فرضيت نه ثابتيږي، د دريم جواب دا دی چي په حديث کي د لمانځه پوره کېدل په دې دواړو کي د يوه سره يعني په تشهد ويلو او په آخره ناسته کي د يوه سره معلق سوي دي، او پر دې د ټولو اتفاق دی چي د لمانځه پوره کېدل پر آخره ناسته معلق دي، ځکه چي که آخره ناسته پرېښوول سي نو لمونځ نه صحيح کيږي، نو کله چي د لمانځه پوره کېدل پر آخره ناسته معلق سوه، نو قرائت(ويل) به پر تشهد نه معلق کيږي، د دې لپاره چي اختيار پاته سي، ځکه چي نبي ﷺ د ناستي او قراءت(ويلو) اختيار ورکړی دی، چي په دې کي د يوه په اداء کولو سره لمونځ پوره کيږي، نو که موږ تشهد هم فرض کړو، نو اختيار ختم سو.

والصلاة الخ مخکي موږ وويل چي درود شريف هم د امام شافعي رَحِمَهُ الله په نېز فرض دی، هغه په دې آيت سره دليل نيسي: يَا أَيُّهَا الَّذِينَ آمَنُوا صَلُّوا (الاحزاب:۵۶)، په داسي توګه چي صلّوا د امر صيغه ده، او امر د وجوب لپاره وي، او له لمانځه څخه دباندي درود ويل واجب نه دي، نو ثابته سوه چي په لمانځه کي دننه درود ويل واجب دي. **دوېيم دليل:** د امام شافعي رَحِمَهُ الله دوېيم دليل دا دی چي نبي ﷺ فرمايي: لا صلاة لمن لم يصل علىّ في صلاته. (يعني څوک چي پر ما په لمانځه کي درود نه ووايي نو د هغه لمونځ نه صحيح کيږي)، او ښکاره ده چي د لمانځه نه صحيح والی د فرضو د پرېښوولو په وجه راځي، د سنتو په پرېښوولو سره نه راځي، نو ثابته سوه چي درود شريف ويل فرض دي.

**د امام شافعي د اول دليل جواب:** د اول دليل جواب يې دا دی چي موږ دا خبره نه منو چي له لمانځه څخه دباندي درود ويل واجب نه دي، ځکه چي صلّوا د امر صيغه ده، او امر د تکرار تقاضا نه کوي، او امام طحاوي رَحِمَهُ الله فرمايي چي کله هم د نبي ﷺ ذکر وسي، نو درود ويل واجب دي، خو په وار وار درود ويل ځکه واجب نه دي چي امر د تکرار تقاضا نه کوي، ځکه چي د درود د واجبوالي متعلق دی د سبب متکرر سره، او هغه سبب متکرر د نبي ذکر (يادېدل) دي، نو د ذکر په تکرار سره به درود مکرره وي، لکه څرنګه چي د وختونو په تکرار سره د لمانځه وجوب مکرره کيږي، لهذا چي کله له لمانځه څخه دباندي درود ويل واجب سو، نو په امر يعني صلوا عليه باندي عمل وسو، او په لمانځه کي د درود واجبولو څه ضرورت نسته.

**د دوېيم دليل جواب:** دا دی چي دا حديث د کمال پر نفي محمول دی، يعني له درود څخه بغير لمونځ کامل او بشپړ نه دی، لکه څرنګه چي لا صلاة لجار المسجد إلا في المسجد د کمال پر نفي محمول دی، او په دې باندي قرينه دا ده چي نبي ﷺ صحرائي ته د لمانځه د تعليم ورکولو په وخت کي نبي ﷺ درود ذکر نه کړی، که درود فرض وای نو نبي ﷺ به حتماً ذکر کولای.

**فايده:** پاته سوه دا خبره چي پر نبي ﷺ به درود شريف په کوم کيفيت او طريقه سره ويل کيږي، نو په دې باره کي عيسی بن ابان رَحِمَهُ الله په کتاب الحج على اهل المدينة کي ذکر کړي دي چي له امام صاحب څخه د درود په باره کي

پوښتنه وسوه، نو هغه فرمايل چې دا دي وايې: اللهم صل على محمد وعلى ال محمد كما صليت على ابراهيم وعلى ال ابراهيم انك حميد مجيد، صاحب د كفايه ليكلي دي چې دا درود د كعب بن عجره ﷺ د حديث سره موافق دی. حضرت علي، ابن عباس او جابر رضي الله عنهم نبي ﷺ ته وويل چې موږ ته خو پر تا د سلام کولو طريقه معلومه ده ليکن درود به څرنګه وايو، نو نبي ﷺ وفرمايل: داسې واياست: اللهم صل على محمد وعلى ال محمد وبارك على محمد وعلى ال محمد وارحم محمد وال محمد كما صليت وباركت وترحمت على ابراهيم وعلى ال ابراهيم في العالمين انك حميد مجيد.

## په آخره ناسته کې د ماثوره(را نقل سوو) دعاګانو ويل

قَالَ: وَدَعَا بِمَا يُشْبِهُ أَلْفَاظَ الْقُرْآنِ وَالْأَدْعِيَةِ الْمَأْثُورَةِ فرمايي چې په داسې الفاظو سره به دعاء کوي چې هغه د قرآن د الفاظو سره او د را نقل سوو دعاګانو سره مشابه(ورته) وي لِمَا رَوَيْنَا مِنْ حَدِيثِ ابْنِ مَسْعُودٍ رَضِيَ اللهُ عَنْهُ د هغه دليل په وجه کوم چې موږ د ابن مسعود رضي الله عنهما له حديث څخه بيان کړی قَالَ لَهُ النَّبِيُّ• عَلَيْهِ الصَّلَاةُ وَالسَّلَامُ چې نبي ﷺ هغه ته وفرمايل ثُمَّ اخْتَرْ مِنَ الدُّعَاءِ أَطْيَبَهُ وَأَعْجَبَهُ إِلَيْكَ بيا ته هغه دعاء غوره کړه چې هغه تاته ډېره جالبه او زياته ښه معلومه سي وَيَبْدَأُ بِالصَّلَاةِ عَلَى النَّبِيِّ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ او دعاء به پر نبي ﷺ په درود ويلو سره شروع کوي لِيَكُونَ أَقْرَبَ إِلَى الْإِجَابَةِ د دې لپاره چې قبوليت ته زياته نژدې سي.

**اللغات**: ﴿أدعية﴾ جمع ده، واحد يې: دعاء دی: بلل، نداء، ﴿أطيب﴾ اسم تفضيل دی: زيات پاک، زيات صفا او خوشبودار، ﴿أعجب﴾ دا هم اسم تفضيل دی: زيات ښه، په زړه پوري.

**تشريح**: **مسئله**: دا ده چې لمونځ کوونکی دې په آخره ناسته کې تر تشهد او درود ويلو وروسته دعاء کوي، او د دې خبرې اهتمام او پابندي دې کوي چې د دعاء کلمې په قرآن کې د ذکر سوو دعاګانو د الفاظو سره مشابه وي، مثلاً دا دعاء دې کوي: اللهم اغفرلي ولوالدي... الخ رب اجعلني مقيم الصلاة. ربنا إننا سمعنا مناديا... الخ، ربنا وآتنا ما وعدتنا... الخ او نور، يا دې دعاء په حديثونو کې د ذکر سوو دعاګانو د الفاظو سره مشابه وي، مثلاً: اللهم إني ظلمت نفسي... الخ، اللهم إنا نسألك من خير ما سألك منه عبدك ونبيك سيدنا محمد ﷺ او داسې نور، کومې دعاوې چې را نقل سوي دي هغه دې يادې کړي او هغه دې وايي.

**دليل**: د دعاء کولو دليل هم د حضرت ابن مسعود رضي الله عنهما حديث دی، ځکه چې د هغه په آخر کې دا الفاظ ذکر سوي دي: ثم اختر من الدعاء... الخ، ښکاره دي چې أطيب او أعجب په معنیٰ کې خاص فرق نه لري.

ويبدأ الخ فرمايي چې کله دعاء شروع کوي نو په درود سره دې يې شروع کوي، ځکه چې الله درود شريف ضروري قبلوي، نو د درود په ضمن کې به د لمونځ ګزاره دعاء هم قبوله کړي، ځکه چې الله کريم دی، او له کريم ذات څخه دا ليرې ده چې هغه د دعاء څه حصه قبوله کړي او څه دې رد کړي. (عنايه)

---

• أخرجه البخاري في كتاب الاذان، باب ما يتخير من الدعاء بعد التشهد، حديث رقم: ۸۳۵.

## په آخره ناسته کې کومې دعاوې ممنوع دي

وَلَا يَدْعُوْ بِمَا يُشْبِهُ كَلَامَ النَّاسِ او لمونځ گزاره دې په (آخره ناسته کې په) داسې الفاظو سره دعاء نه کوي چې هغه د خلکو د کلام (خبرو) سره مشابه وي تَحَرُّزًا عَنِ الْفَسَادِ د لمانځه له فساد څخه د ځان ساتلو لپاره وَلِهٰذَا يَأْتِيْ بِالْمَأْثُوْرِ الْمَحْفُوْظِ نو ځکه دې هغه دعاء کوي چې هغه په حديث کې را نقل سوې وي او محفوظه (خوندي) وي وَمَا لَا يَسْتَحِيْلُ سُؤَالُهُ مِنَ الْعِبَادِ او هغه شيان چې د هغه غوښتل له بندګانو څخه ناممکنه نه وي كَقَوْلِهِ اَللّٰهُمَّ زَوِّجْنِيْ فُلَانَةَ لکه د هغه اللهم زوجني فلانة ويل يُشْبِهُ كَلَامَهُمْ (نو دا) د خلکو د خبرو (كلامُ الناس) سره مشابه دي وَمَا يَسْتَحِيْلُ او د کومو شيانو غوښتنه چې (له بندګانو څخه) ناممکنه وي كَقَوْلِهِ اَللّٰهُمَّ اغْفِرْلِيْ لکه د هغه اللهم اغفرلي ويل لَيْسَ مِنْ كَلَامِهِمْ دا د خلکو د خبرو (كلامُ الناس) څخه نه دي وَقَوْلُهُ اَللّٰهُمَّ ارْزُقْنِيْ مِنْ قَبِيْلِ الْاَوَّلِ او د هغه اللهم ارزقني ويل د كلام الناس له قبيلې څخه دي لِاسْتِعْمَالِهَا فِيْمَا بَيْنَ الْعِبَادِ ځکه چې د بندګانو په مينځ کې دا استعماليږي يُقَالُ: رَزَقَ الْاَمِيْرُ الْجَيْشَ ويل کيږي: رزق الامير الجيش (امير لښکر ته روزي ور کړه).

**اللغات:** ﴿مأثور﴾ اسم مفعول دی: را نقل سوی، روايت سوی، (يعني هغه دعاوې چې له نبي ﷺ څخه را نقل سوې وي) ﴿يستحيل﴾ د استفعال د باب مضارع صيغه ده: ناممکنه کېدل، محاله کېدل، ﴿زوّج﴾ د امر صيغه ده د تفعيل له باب څخه: واده کول، نکاح کول، ﴿الجيش﴾ لښکر، فوج.

**تشريح:** **مسئله:** دا ده چې لمونځ کونکی دې تر درود وروسته په داسې الفاظو سره دعا نه کوي چې هغه د خلکو د کلام (خبرو) سره مشابه وي، د دې لپاره چې د لمانځه دغه آخري جزء له فاسدېدلو څخه خوندي پاته سي، نو په دې وجه وويل سوه چې لمونځ گزار ته پکار دي چې را نقل سوي دعاگاني ووايي.

**د خلکو د کلام سره مشابه دعاء لمونځ فاسدوي، که نه؟** ښکاره دې وي چې تر تشهد وروسته که په داسې الفاظو سره دعاء وسي چې هغه د خلکو د خبرو سره مشابه وي نو په دې سره تولو لمونځ نه فاسديږي، ځکه که تر تشهد وروسته حقيقةً هم د خلکو خبري پيدا سي، نو لمونځ نه فاسديږي، نو په هغه خبرو سره خو په طريقه اولیٰ نه فاسديږي چې هغه صرف د خلکو د خبرو سرو مشابه وي، دا حکم د صاحبينو په نېز دی، همدارنګه د امام صاحب رَحِمَهُ الله په نېز هم نه فاسديږي، ځکه چې كلامُ الناس په خپله د لمونځ گزاره له طرف څخه خروج بصنعه (يعني له لمانځه څخه وتل) دي. نو ځکه به په دې سره لمونځ پوره کيږي، او هغه دعاء کوم چې د خلکو د خبرو سره مشابه او تر تشهد وروسته وسي، نو هغه به له لمانځه څخه د باندي شمارل کيږي، او لمونځ به نه ور سره فاسديږي. (متب)

**د خلکو د کلام سره د مشابه کېدلو معنیٰ:** پاته سوه دا خبره چې کومه دعاء د خلکو د خبرو سره مشابهت لري. او کومه دعاء د خلکو د خبرو سره مشابهت نه لري، نو په دې باره کې فرمايي چې د کومو شيانو غوښتنه له بندګانو څخه ناممکنه نه وي لکه دا قول: اللهم زوجني فلانة (اې الله! د فلانکۍ ښځې سره زما واده وکړې) نو دا د خلکو د خبرو سره مشابه دي. او د کومو شيانو غوښتنه چې له بندګانو څخه محاله او ناممکنه وي لکه دا قول: اللهم اغفرلي (اې الله! ما ته بخښنه وکړې) نو دا د خلکو د خبرو سره مشابه نه دي، او دا قول: اللهم ارزقني (الهي! رزق راکړې) نو دا د اول قسم يعني د خلکو د خبرو

سره مشابه دي، همدا صحيح ده، دليل يې دا دی چې داسي خبره د خلکو په مينځ کي استعماليږي، لکه څرنګه چې ويل سوي دي: رزق الامير الجيش، (امير ولښکر ته رزق او روزي ورکړه).

## راسته او چپه طرف ته سلام ګرځول، او په سلام کي د نيت حکم

ثُمَّ يُسَلِّمُ عَنْ يَمِيْنِهِ بيا دي خپل راسته طرف ته سلام وګرځوي فَيَقُوْلُ: اَلسَّلَامُ عَلَيْكُمْ وَرَحْمَةُ اللهِ او ودې وايي: السلام عليکم ورحمة الله وَعَنْ يَسَارِهِ مِثْلَ ذٰلِكَ او چپه طرف ته دي هم داسي ووايي لِمَا رَوَى ابْنُ مَسْعُوْدٍ ﷺ د هغه حديث په وجه چې ابن مسعود ﷺ روايت کړی دی أَنَّ النَّبِيَّ عَلَيْهِ الصَّلَاةُ وَالسَّلَامُ • كَانَ يُسَلِّمُ عَنْ يَمِيْنِهِ چې نبي ﷺ به راسته طرف ته سلام (داسي) ګرځوی حَتّٰى يُرَىٰ بَيَاضُ خَدِّهِ الْأَيْمَنِ تر دې چې د نبي ﷺ د راسته باړخو (رخسار) سپينوالی به ليدل کېدی وَعَنْ يَسَارِهِ حَتّٰى يُرَىٰ بَيَاضُ خَدِّهِ الْأَيْسَرِ او چپه طرف ته به يې سلام ګرځوی تر دې چې د چپه باړخو سپينوالی به يې ليدل کېدی وَيَنْوِي بِالتَّسْلِيْمَةِ الْأُوْلٰى مَنْ عَلٰى يَمِيْنِهِ او لمونځ کونکی دي په اول سلام کي د هغو نيت کوي کوم چې د ده راسته طرف ته وي مِنَ الرِّجَالِ وَالنِّسَاءِ وَالْحَفَظَةِ يعني د خلکو او د ښځو او د حفاظت کونکو فرشتو وَكَذٰلِكَ فِي الثَّانِيَةِ او همدا نيت دي په دويم سلام کي هم کوي لِأَنَّ الْأَعْمَالَ بِالنِّيَّاتِ ځکه چې د اعمالو مدار پر نيتونو دی (نو که په سلام کي د مقتديانو او فرشتو نيت وکړي نو هغو ته به ثواب حاصليږي) وَلَا يَنْوِي النِّسَاءَ فِي زَمَانِنَا او زموږ په زمانه کي دي د ښځو نيت نه کوي وَلَا مَنْ لَا شِرْكَةَ لَهُ فِي صَلَاتِهِ او نه دي د هغو خلکو نيت کوي چې په لمانځه شريک نه وي هُوَ الصَّحِيْحُ همدا صحيح ده لِأَنَّ الْخِطَابَ حَظُّ الْحَاضِرِيْنَ ځکه چې خطاب د حاضرينو حق دی.

**اللغات**: ﴿بياض﴾ سپينوالی، ځلا، ﴿خد﴾ باړخو، اننګي (رخسار)، ﴿حفظة﴾ جمع ده، واحد يې حافظ دی: ساتونکي فرشتې، کراماً کاتبين، ﴿حظ﴾ حصه، برخه، حق.

**تشريح**: د عبارت حاصل دا دی چې لمونځ کوونکي به تر تشهد او درود او دعاء ويلو وروسته دواړو طرفونو ته سلام ګرځوي، اول به راسته طرف ته او بيا چپه طرف ته، او د سلام الفاظ دا دي: السلام عليکم ورحمة الله، (يعني پر تاسو دې سلام او د الله رحمت وي)، د جمهورو عالمانو او د سترو صحابه کرامو لکه حضرت عمر، حضرت علي او حضرت عبد الله بن مسعود رضی الله عنهم هم دا مذهب دی.

**دليل**: د حضرت عبد الله بن مسعود رَحِمَهُ الله حديث دی: أن النبي ﷺ كان يسلم عن يمينه حتى يرى بياض خده الأيمن و عن يساره حتى يرى بياض خده الأيسر.

وينوي الخ مصنف رَحِمَهُ الله فرمايي چې د اول سلام ګرځولو په وخت کي به د هغه خلکو نيت کوي کوم چې د ده راسته طرف ته وي، هغه که نارينه وي او که ښځي، همدارنګه به د ساتونکو فرشتو نيت کوي، او چپه طرف ته به هم د دې انسانانو او فرشتو نيت کوي.

• أخرجه النسائي في كتاب التطبيق، باب التكبير، عند رفع من السجود، حديث رقم: ۱۱۴۳.

**دليل:** دا دی چې د دې اعمالو مدار پر نيت دی، لکه په حديث کې چې هم راغلي دي.

ولاينوى الخ صاحب د هدايې رَحِمَهُ الله فرمايي: چې زموږ په زمانه کې به د ښځو نيت نه کوي ځکه چې په دې زمانه کې د ښځو مسجد ته راتلل د متأخرينو په اجماع سره پرېښوول سوي دي، (نو د دوی د نيت ضرورت پاته نه سو).

ولا من لاشركة الخ او کوم مسلمانان چې په لمانځه کې شريک نه وي د هغوی نيت به هم نه کوي، همدا صحيح قول دی، او حاکم شهيد رَحِمَهُ الله ويلي دي چې د ټولو خلکو او ښځو نيت به کوي هغه که په لمانځه کې شريک وي او که نه وي، د دې لپاره چې دا سلام د تشهد د سلام يعني د: السلام علينا وعلى عباد الله الصالحين سره موافق سي.

د صحيح قول دليل دا دی چې په السلام عليکم کې خطاب حاضرينو ته دی، او خطاب د حاضرينو حصه ده، نو ځکه به په سلام کې صرف د حاضرينو نيت کيږي.

## مقتدي او يوازې لمونځ کونکی به په سلام کې د چا نيت کوي؟

وَلَا بُدَّ لِلْمُقْتَدِيْ مِنْ نِيَّةِ إِمَامِهِ او د مقتدي لپاره د خپل امام نيت کول ضروري دي فَإِنْ كَانَ الْإِمَامُ مِنَ الْجَانِبِ الْأَيْمَنِ أَوِ الْأَيْسَرِ نو که امام راسته طرف ته وو يا چپه طرف ته وو نَوَاهُ فِيْهِمْ نو د خلکو سره به د هغه نيت (هم) کوي وَإِنْ كَانَ بِحِذَائِهِ او که امام د مقتدي مخ ته وو (يعني مقتدي د امام راسته يا چپه طرف ته نه وو بلکې خاص د امام شاته وو) نَوَاهُ فِي الْأَوَّلِ عِنْدَ أَبِيْ يُوْسُفَ رَحِمَهُ اللهُ نو (په داسې صورت کې به) په اول سلام کې د هغه نيت کوي د امام ابو يوسف رَحِمَهُ الله په نيز تَرْجِيْحًا لِلْجَانِبِ الْأَيْمَنِ راسته طرف ته د ترجيح ورکولو په وجه (يعني د راسته طرف د غوره ګڼلو په وجه) وَعِنْدَ مُحَمَّدٍ رَحِمَهُ اللهُ● وَهُوَ رِوَايَةٌ عَنْ أَبِيْ حَنِيْفَةَ رَحِمَهُ اللهُ نَوَاهُ فِيْهِمَا او د امام محمد رَحِمَهُ الله په نيز او همدغه د امام ابو حنيفه رَحِمَهُ الله يو روايت دی چې په دواړو طرفونو کې به د امام نيت کوي لِأَنَّهُ ذُوْ حَظٍّ مِنَ الْجَانِبَيْنِ ځکه چې امام په دواړو طرفونو کې حصه لرونکی دی وَالْمُنْفَرِدُ يَنْوِي الْحَفَظَةَ لَا غَيْرُ او منفرد (يوازې لمونځ کونکی) به صرف د ساتونکو فرشتو نيت کوي لِأَنَّهُ لَيْسَ مَعَهُ سِوَاهُمْ ځکه چې له هغو څخه ماسوا نور څوک د ده سره نسته.

**اللغات:** ﴿ترجيح﴾ غوره ګڼه، ښه ګڼه.

**تشريح:** صورت د مسئلې: دا دی چې مقتدي دې په خپل سلام کې د خپل امام نيت هم کوي، هغه که امام راسته طرف ته وي يا چپه طرف ته، د مقتدي لپاره د امام نيت ضروري دی، او که امام د مقتدي په مقابل کې وو يعني بالکل د مقتدي مخ ته وو، نو په دې صورت کې د امام ابو يوسف رَحِمَهُ الله په نيز حکم دا دی چې مقتدي دې په اول سلام کې د امام نيت کوي، ځکه چې اول سلام راسته طرف ته وي او راسته طرف ته فضيلت حاصل دی، په حديث کې راغلي دي: كان رسول الله ﷺ يحب التيامن في كل شيء... الخ (يعني رسول الله ﷺ په هر شي کې راسته والی خوښوی). او د امام محمد او امام اعظم رَحِمَهُمَا الله مسلک دا دی چې هم دې په راسته طرف کې د امام نيت کوي او هم دې په چپه طرف کې، ځکه چې

---

● القول الراجح: قول محمد رَحِمَهُ الله، كذا في الدر المختار ج:۱، ص:۳۹. [القول الراجح ج:۱، ص:۸۲]

امام له دواړو طرفونو څخه حصه لري، (يعني ګواکي امام د مقتدي دواړو طرفونو ته واقع دی) نو ځکه به هغه په دواړو سلامونو کي د نيت کولو حقداره وي.

والمنفرد الخ او منفرد سړی کوم چي يوازي لمونځ کوي، هغه دي په دواړو طرفونو کي د ساتونکو فرشتو (کراماً کاتبين) نيت کوي، ځکه چي په السلام عليکم کي خطاب حاضرينو ته دی، او له فرشتو څخه علاوه بل هيڅوک د ده سره نسته، نو ځکه به صرف د هغو نيت کوي.

**راجح قول:** په پورتني مسئله کي راجح قول د امام محمد رَحِمَهُ الله دی، قال العلامة جلال الدين الخوارزمي رَحِمَهُ الله (قوله لا بد للمقتدى من نية امامه) تخصيص الامام بالذكر يؤيد قول من يقول انه ينوى من يشاركه فى الصلوة، كذا فى الجامع الصغير لقاضيخان رَحِمَهُ الله، (كفايه ج۱، ص۲۷۹). [القول الراجح، ج۱، ص۸۲]

## امام به په سلام کي د چا نيت کوي؟

وَالْإِمَامُ يَنْوِي بِالتَّسْلِيمَتَيْنِ او امام به په دواړو سلامو کي نيت کوي هُوَ الصَّحِيحُ همدا صحيح ده وَلَا يَنْوِي فِي الْمَلَائِكَةِ عَدَدًا مَحْصُورًا او په ملائکو کي به د يو متعين شمېر نيت نه کوي لِأَنَّ الْأَخْبَارَ فِي عَدَدِهِمْ قَدِ اخْتَلَفَتْ ځکه چي د دوی د شمېر متعلق حديثونه مختلف دي فَأَشْبَهَ الْإِيمَانَ بِالْأَنْبِيَاءِ عَلَيْهِمُ السَّلَامُ نو دا پر نبيانو عليهم السلام باندي د ايمان راوړلو په څېر سو ثُمَّ إِصَابَةُ لَفْظِ السَّلَامِ وَاجِبَةٌ عِنْدَنَا بيا زموږ په نېز د سلام لفظ اداء کول واجب دي وَلَيْسَتْ بِفَرْضٍ او فرض نه دي خِلَافًا لِلشَّافِعِيِّ رَحِمَهُ اللهُ د امام شافعي رَحِمَهُ الله (په دې کي) اختلاف دی هُوَ يَتَمَسَّكُ بِقَوْلِهِ عَلَيْهِ الصَّلَاةُ وَالسَّلَامُ● هغه د نبي ﷺ په دې قول سره دليل نيسي تَحْرِيمُهَا التَّكْبِيرُ وَتَحْلِيلُهَا التَّسْلِيمُ چي د لمانځه تحريمه په تکبير سره کيږي او د لمانځه ختمېدل په سلام سره کيږي وَلَنَا مَا رَوَيْنَا مِنْ حَدِيثِ● ابْنِ مَسْعُودٍ رَضِيَ اللهُ عَنْهُ او زموږ دليل د حضرت ابن مسعود رَضِيَ اللهُ عَنْهُمَا هغه حديث دی کوم چي موږ بيان کړی (چي په هغه کي اختيار ورکول سوی دی) وَالتَّخْيِيرُ يُنَافِي الْفَرْضِيَّةَ وَالْوُجُوبَ او اختيار ورکول د فرض کېدلو او واجبېدلو دواړو منافي دی إِلَّا أَنَّا أَثْبَتْنَا الْوُجُوبَ بِمَا رَوَاهُ احْتِيَاطًا خو بيا هم موږ د امام شافعي رَحِمَهُ الله د بيان سوي روايت په وجه د احتياط په توګه وجوب ثابت کړی دی وَبِمِثْلِهِ لَا تَثْبُتُ الْفَرْضِيَّةُ خو په داسي روايت سره فرضيت نه ثابتيږي، والله أعلم.

**اللغات:** ﴿مَحْصُوْر﴾ معلوم، متعين، شمېرل سوی، تاکل سوی، ﴿أَشْبَهَ﴾ د افعال باب دی: مشابه کېدل، ورته کېدل، ﴿إِصَابَةُ﴾ د افعال د باب مصدر دی: رسول، راوړول، اچول، اداء کول، ﴿يَتَمَسَّكُ﴾ د تفعّل د باب مضارع صيغه ده: دليل نيول، تکيه کول، نيول.

**تشريح: مسئله:** دا ده چي امام به په خپلو دواړو سلامونو کي د ساتونکو فرشتو او د دواړو طرفونو مقتديانو نيت کوي، همدا صحيح قول دی، بعضو ويلي دي چي امام د نيت محتاج نه دی، او بعضو ويلي دي چي په يوه سلام کي نيت کول کافي دي. صاحب د هدايې رَحِمَهُ الله فرمايي چي په فرشتو کي به د معين او ټاکلي شمېر نيت نه کوي، بلکي مطلق به د

● تخريج: أخرجه دار قطني فى كتاب الصلاة، باب تحليل الصلاة التسليم.

● تخريج: تقدم تخريجه، راجع تحت حديث رقم:۴۵.

فرشتو نيت کوي، ځکه چې د ساتونکو فرشتو شمېر په آثارو او حديثونو کې مختلف ذکر سوی دی (په يوه روايت کې دوه، په بل روايت کې پنځه، او په بعضو کې شپېته، او په بعضو کې يوسل و شپېته).

## په سلام کې د "السلام" لفظ ضروري دی

ثم إصابة الخ له دې ځايه دا راښيي چې زموږ په نيز د السلام لفظ ادا کول واجب دي، فرض نه دي، او د امام شافعي رَحِمَهُ الله په نيز د السلام لفظ اداء کول فرض دي، د امام شافعي رَحِمَهُ الله دليل د نبي ﷺ دا فرمان دی: تحليلها التسليم له دې فرمان څخه امام شافعي رَحِمَهُ الله دليل په دې توګه نيسي چې تر دې مخکې نبي ﷺ تحريمها التکبير ويلي دي چې له هغه څخه مراد تکبير تحريمه ده، او تکبير تحريمه په لمانځه کې فرض ده، نو ځکه به د السلام اداء کول هم په لمانځه کې فرض وي، ځکه څرنګه چې په تحريمها التکبير کې حصر دی، همدارنګه په تحليلها التسليم کې هم حصر دی، نو لکه څرنګه چې له تکبير څخه بغير په لمانځه کې داخلېدل صحيح نه دي، همدارنګه له سلام څخه بغير له لمانځه څخه وتل صحيح نه دي.

زموږ دليل: دا دی چې کله نبي ﷺ ابن مسعود رَضِيَ اللهُ عَنْهُمَا ته د تشهد تعليم ورکړی، نو داسې يې ورته وفرمايل: إذا قلت هذا أو فعلت هذا فقد تمت صلاتك، إن شئت أن تقوم فقم، وإن شئت أن تقعد فاقعد، (يعني تر تشهد وروسته ستا لمونځ پوره کېږي، نو بيا که ته غواړې چې ولاړ سې نو ولاړ سه او که غواړې چې کښېنې نو ناست ووسه). له دې څخه معلومه سوه چې د لمانځه آخري رکن او آخري فرض د تشهد په اندازه کښېنستل دي، او تر هغه وروسته لمونځ کونکي ته اختيار دی که غواړي نو له لمانځه څخه دې ولاړ سي او که غواړي نو ناست دې ووسي، او ذهلوي دې ووايي، او اختيار د فرضيت او وجوب دواړو منافي دی، نو ځکه د السلام لفظ به نه فرض وي او نه واجب، لېکن امام شافعي رَحِمَهُ الله چې کوم دليل بيان کړی دی څرنګه چې په هغه کې په حصر سره تحليلها السلام ويل سوی دی، نو ځکه د احتياط په وجه موږ د السلام ادا ينه واجب وګرځول، او بيا دا حديث د خبر واحد له قبيلې څخه دی، او خبر واحد وجوب ثابتوی سي، فرضيت هيڅکله ثابتولای نه سي، ځکه چې د فرضيت د ثبوت لپاره قطعي نص ضروري دی، هغه دلته نسته، نو ځکه به د السلام ادا ينه فرض نه وي، لېکن له وجوب څخه يې انکار نه سي کېدای.

# فَصْلٌ فِي الْقِرَاءَةِ

## (دا) فصل د قرائت (د احکامو په بیان کي) دی

**تشريح:** تر دې مخکي صاحب د کتاب د لمانځه فرائض، ارکان، واجبات او سنتونه بیان کړل چي د هغو په ضمن کي د قرائت یادونه هم وسوه، خو څرنګه چي د قرائت احکام ډېر پیښیږي یعني کثیر الوقوع دي، او متعلقات یې هم بې شمېره دي، نو ځکه په تفصیلي توګه د هغو ټولو د بیانولو لپاره د قرائت احکام په جلا او علیحده فصل کي بیانوي، او د قرائت له دوو قسمونو څخه یعني له سرّي او جهري څخه د قرائت بالجهر احکام مخکي بیانوي، وجه یې دا ده چي قرائت بالجهر داسي صفت دی چي په هغه سره په پوره او کامله توګه اداء ثابتیږي. (منیه ج۱، ص:۳۳۱)

### د جهري او سرّي لمونځونو بیان

قَالَ: وَيَجْهَرُ بِالْقِرَاءَةِ فرمایي: چي لمونځ کزاره به په لوړ اواز سره قرائت کوي فِي الْفَجْرِ وَفِي الرَّكْعَتَيْنِ الْأُولَيَيْنِ مِنَ الْمَغْرِبِ وَالْعِشَاءِ د سهار په لمانځه کي او د ماښام او ماخوستن په اولو دوو رکعتو کي إِنْ كَانَ إِمَامًا که دا لمونځ کزاره امام وو وَيُخْفِي فِي الْأُخْرَيَيْنِ او په آخري دوو رکعتو کي به په کراره قرائت کوي هَذَا هُوَ الْمُتَوَارَثُ● همدغه متوارث دي (یعني همدغه د نبي ﷺ او د صحابه وو رَضِيَ اللهُ عَنْهُمْ او د تابعینو له زمانې څخه را نقل سوي دي او تر اوسه عمل په کیږي) وَإِنْ كَانَ مُنْفَرِدًا او که لمونځ کزاره منفرد (یوازي لمونځ کونکی) وو فَهُوَ مُخَيَّرٌ نو هغه ته اختیار دی إِنْ شَاءَ جَهَرَ وَأَسْمَعَ نَفْسَهُ که غواړي نو جهري قرائت دي وکړي او په خپل ځان دي یې واوري لِأَنَّهُ إِمَامٌ فِي حَقِّ نَفْسِهِ ځکه چي هغه د خپل ځان په حق کي امام دی وَإِنْ شَاءَ خَافَتَ او که غواړي نو په کراره سره دي قرائت وکړي لِأَنَّهُ لَيْسَ خَلْفَهُ مَنْ يُسْمِعُهُ ځکه د ده شاته داسي څوک نسته چي دی خپل قرائت په واوري وَالْأَفْضَلُ هُوَ الْجَهْرُ لِيَكُونَ الْأَدَاءُ عَلَى هَيْئَةِ الْجَمَاعَةِ لو جهري قرائت غوره دی د دې لپاره چي اداء د جماعت په توګه وي وَيُخْفِيهَا الْإِمَامُ فِي الظُّهْرِ وَالْعَصْرِ او امام به د ماپښین او مازیګر په لمانځه کي سرّي قرائت کوي وَإِنْ كَانَ بِعَرَفَةَ که څه هم هغه په عرفات کي وي لِقَوْلِهِ عَلَيْهِ الصَّلَاةُ وَالسَّلَامُ ● صَلَاةُ النَّهَارِ عَجْمَاءُ ځکه نبي ﷺ فرمایلي دي: د ورځي لمونځ ګونګ دی أَيْ لَيْسَتْ فِيهَا قِرَاءَةٌ مَسْمُوعَةٌ یعني په هغه کي داسي قرائت نسته چي واورېدل سي وَفِي عَرَفَةَ خِلَافُ مَالِكٍ رَحِمَهُ اللهُ او په عرفات کي د امام مالک رَحِمَهُ الله اختلاف دی وَالْحُجَّةُ عَلَيْهِ مَا رَوَيْنَاهُ او د هغه په خلاف زموږ روایت سوی حدیث حجت دی (یعني: صلاة النهار عجماء).

---

● تخريج: أخرجه العجلوني في كشف الخفاء، حديث رقم: ١٦٠٩؛ و رواه عبد الرزاق في مصنفه من قول مجاهد.

● تخريج: قال الزيلعي في نصب الراية ج:٢، ص:٢ غريب ورواه عبد الرزاق في مصنفه، من قول مجاهد وابي عبيدة فقال اخبرنا محمد عن عبد الكريم الجزري، قال: سمعت ابا عبيدة يقول: صلاة النهار عجماء.

**اللغات:** ﴿الْمَوَارِيثُ﴾ په ورثه کې تر لاسه سوی شی، مراد ځني را نقل سوی شی دی، ﴿هَيْئَة﴾ صورت، شکل، حالت، توګه، ﴿عَجِيْبًا﴾ کونګی، د څه ویلو او خبرو کولو څخه بې برخي، ﴿عَرَفَة﴾ په مکه مکرمه کي د یو ځای نوم دی چي د حج له مشاعرو څخه یو ستر مشعر دی.

**تشریح:** مصنف رَحِمَهُ الله فرمایي چي که لمونځ کونکی امام وي نو پر هغه د سهار په دوو رکعتونو او د ماښام او ماخوستن په اولو دوو رکعتونو کي قرائت په لوړ اواز سره(جهراً) کول واجب دي، او په پاته رکعتونو کي یعني د ماښام په دریم رکعت او د ماخوستن په آخري دوو رکعتونو کي قرائت په کراره (سراً) کول واجب دي، همدغه له نبي ﷺ او صحابه وو رَضِيَ اللهُ عَنْهُمْ او تابعینو څخه را نقل سوي دي.

بیا په جهري لمانځه کي جهر کول او په سرّي لمانځه کي اخفاء کول(یعني په کراره ویل) واجب دي، او وجوب له سنت(یعني حدیث) څخه ثابت دی.

**نقلي دلیل:** له حضرت ابو هریره رضي الله عنه څخه روایت دی: أنه قال في كل صلاة يقرأ فما أسمعنا رسول الله ﷺ أسمعناكم وما أخفى علينا أخفينا عليكم (یعني په هر لمانځه کي د قرآن قرائت کیږي، نو رسول الله ﷺ چي په کوم ځای کي په موږ قرائت اورولی وو، موږ په تاسو واوروی او چیري چي یې پر موږ پټ کړی وو، موږ پر تاسو پټ کړی)؛ حاصل دا چي په کومو لمونځونو کي رسول الله ﷺ جهر کړی وو او په موږ یې اورېدلی وو، نو په هغو کي موږ جهر کړی دی، او په تاسو مو اورېدلی دی، او په کومو لمونځونو کي چي رسول الله ﷺ اخفاء کړې وه، نو په هغو کي موږ اخفاء کړې ده، او په تاسو مو هلته قرائت نه دي اورېدلی، نو معلومه سوه چي په جهري لمونځونو کي جهر او په سري لمونځونو کي اخفاء په سنت سره ثابت دي، او د امت اجماع هم دلیل دی، ځکه چي د نبي ﷺ له زمانې څخه واخله تر اوسه پوري په جهري لمونځونو کي پر جهر او په سري لمونځونو کي پر اخفاء د ټوله امت اجماع ده.

**عقلي دلیل:** دا دی چي قرائت د لمانځه له ارکانو څخه یو رکن دی، نو څرنګه چي د ټولو ارکانو ښکاره کول ضروري دي همدارنګه د قرائت ښکاره کول هم ضروري دي، همدا وجه وه چي د اسلام په شروع کي به نبي ﷺ په ټولو لمونځونو کي قرائت بالجهر کوی، او مشرکینو چي به قرائت واورېدی نو نبي ﷺ ته به یې تکلیف رسوی او رد و بد به یې ویل، نو الله تعالیٰ دا آیت را نازل کړی: وَلَا تَجْهَرْ بِصَلَاتِكَ وَلَا تُخَافِتْ بِهَا [سورة الإسراء: ۱۱۰] (یعني نه په ټولو لمونځونو کي جهر کوه او نه په ټولو لمونځونو کي اخفاء کوه) وَابْتَغِ بَيْنَ ذَٰلِكَ سَبِيلًا [سورة الإسراء: ۱۱۰] (بلکي مینځنی لاره اختیار کړه)، یعني د شپې په لمونځونو کي جهر کوه او د ورځي په لمونځونو کي اخفاء کوه، نو تر دې آیت وروسته نبي ﷺ د ماپښین او مازیګر په لمونځونو کي اخفاء شروع کړه، ځکه چي په دې دوو وختونو کي به کفار د تکلیف رسولو لپاره فارغه وه، لیکن په نورو وختونو کي به په خوراک، خوب یا غفلت او خپل مینځوي ګپ شپ سره مشغوله وه، نو ځکه په دې نورو وختونو کي نبي ﷺ جهر اختیار کړی.

وإن كان منفرداً الخ لیکن که لمونځ ګزاره منفرد وو، نو هغه ته اختیار دی، که خوښه یې وي، نو جهر دي وکړي او په خپل ځان دي یې واوري، ځکه چي دی د خپل ځان په حق کي امام دی، او که خوښه یې نو اخفاء دي وکړي، ځکه چي بل داسي څوک د ده سره نسته چي دی خپل قرائت په واوري، هر چي لوی څښتن ﷻ دی نو هغه هر پټ او ښکاره اوري، حاصل دا چي پر منفرد نه جهر واجب دی او نه اخفاء، لیکن جهر افضل دی، د دې لپاره چي د منفرد لمونځ د جماعت په شکل سي.

ويخفيها الإمام الخ د ماپښين او مازيګر په لمانځه کي پر امام اخفاء يعني په کراره قرائت کول واجب دي، نو کله چي د جماعت په حالت کي اخفاء کول واجب دي، نو پر منفرد به په طريقه اولیٰ سره په ماپښين او مازيګر کي اخفاء کول واجب وي.

**دليل:** د نبي ﷺ دا قول دی: صلاة النهار عجماء. (يعني ورځنی لمونځ ګونګ دي) يعني داسي قرائت پکښي نسته چي واورېدل سي، حاصل دا چي د ورځي په لمونځونو کي قرائت خو سته خو په کراره به ويل کيږي نه دا چي په لوړ اواز سره، حضرت ابن عباس رَضِيَ اللهُ عَنْهُمَا د دې حديث تفسير داسي کړی دی: لا قراءة في هاتين الصلاتين، يعني د ورځي په دې دوو لمونځونو کي قرائت نسته، نه په جهر سره او نه په اخفاء سره، خو د ابن عباس رَضِيَ اللهُ عَنْهُمَا دا تفسير صحيح نه دی. ځکه چي يو وار له خباب بن ارت رضي الله عنه څخه پوښتنه وسوه چي: بم عرفتم قراءة رسول الله ﷺ في صلاة الظهر والعصر. قال باضطراب لحيته، (يعني تاسو څرنګه وپېژندله چي نبي ﷺ د ماپښين او مازيګر په لمونځونو کي قرائت کوي، نو خباب بن ارت رضي الله عنه وفرمايل چي د نبي ﷺ د ږيري مبارکي په ښورېدلو سره).

وفي عرفة الخ زموږ په نيز د ماپښين او مازيګر په لمونځونو کي على الاطلاق اخفاء واجب ده، که څه هم دا لمونځونه په عرفات کي اداء کړی سي، يا په بل ځای کي اداء کړی سي، لېکن امام مالک رَحِمَهُ الله فرمايي چي په عرفات کي په دې دوارو لمونځونو کي جهر واجب دی.

**د امام مالک دليل:** دا دی چي په عرفات کي په لوی جماعت سره دا لمونځونه اداء کيږي، نو لکه څرنګه چي د جمعې په ورځ جهر کيږي، دلته به هم جهر کيږي.

**جواب:** د امام مالک رَحِمَهُ الله په خلاف هغه حديث حجت دی کوم چي موږ روايت کړی يعني: صلاة النهار عجماء، او د دې په خلاف د امام مالک رَحِمَهُ الله هيڅ دليل نسته.

## په جمعه، اختر او نفلي لمانځه کي د جهر حکم

وَيَجْهَرُ فِي الْجُمُعَةِ وَالْعِيدَيْنِ او امام به د جمعې او اخترونو په لمونځونو کي جهر کوي (يعني په لوړ اواز به قرائت کوي) لِوُرُوْدِ النَّقْلِ الْمُسْتَفِيْضِ بِالْجَهْرِ ځکه چي د جهر په باره کي مشهوره حديث وارد سوی دی وَفِي التَّطَوُّعِ بِالنَّهَارِ يُخَافِتُ او په نفلي لمانځه کي به اخفاء کوي (يعني په پټه به قرائت کوي) وَفِي اللَّيْلِ يَتَخَيَّرُ او د شپې په نفلي لمانځه کي ورته اختيار دی اِعْتِبَارًا بِالْفَرْضِ فِي حَقِّ الْمُنْفَرِدِ د منفرد په حق کي په فرضو باندي په قياسولو سره وَهٰذَا لِأَنَّهُ مُكَمِّلٌ لَهُ او دا حکم په دې وجه دی چي نفل د فرضو لپاره پوره کونکي دي فَيَكُوْنُ تَبَعًا لَهُ نو ځکه به نفل د فرضو تابع وي.

**اللغات:** ﴿مُسْتَفِيْض﴾ عام، مشهور، د حديثو يو قسم دی چي له متواتر څخه د کمي درجې او له خبرِ واحد څخه د لوړي درجې دی، ﴿مُكَمِّل﴾ د تفعيل د باب اسم فاعل دی: بشپړ کونکی، پوره کونکی.

**تشريح:** **مسئله:** دا ده چي پر امام د جمعې او اخترونو په لمونځونو کي جهري قرائت واجب دی، او په دې لړ کي مشهوره حديثونه او روايتونه سته، څنګه چي زياتره محدثينو دا روايت بيان کړی دی: أنه ﷺ كان يقرأ في العيدين ويوم الجمعة "سبح اسم ربك الأعلى، وهل أتاك حديث الغاشية"، له دې څخه ماسوا په مسلم شريف کي د ابو واقد ليثي

ﷺ دا روايت ذکر سوی دی چي له هغه شخصه حضرت عمر ﷺ پوښتنه وکړه: ما كان يقرأ به رسول الله ﷺ في الأضحى والفطر فقال كان يقرأ ق والقرآن المجيد، و اقتربت الساعة، (يعني نبي ﷺ به په اخترونو کي کوم سورتونه، هغه جواب ورکړی چي سورة ق او سورة اقتربت الساعة). ښکاره خبره ده چي نبي ﷺ به قرائت بالجهر کوی نو ځکه به صحابه وو ته معلومه وه چي نبي ﷺ به دا سورتونه ويله.

وفي التطوع الخ د دې حاصل دا دی چي د ورځي په نفلي لمونځونو کي اخفاء واجب ده، او د شپې په نفلي لمونځونو کي لمونځ گزار لره اختيار دی، که غواړي نو اخفاء دي وکړي او که غواړي نو جهر دي وکړي، ځکه چي نفل کونکی پر هغه سړي قياس کړی سوی دی چي هغه منفرد وي او فرض کوي، يعني څرنگه چي پريوازي فرض کونکي سړي د ورځي په لمونځونو کي يعني په ماپښين او مازيگر کي اخفاء واجب ده، او د شپې په لمونځونو کي ورته اختيار دی، همدارنگه پر متنفل هم د ورځي په نفلونو کي اخفاء واجب ده، او د شپې په نفلو کي ورته اختيار دی.

وهذا الخ فرمايي چي نفل کونکی ځکه د فرض کونکي تابع دی چي په نفلو سره فرض پوره کيږي، په دې توگه چي نفل کونکی انسان به يقيناً هم د فرضو پابندي کوي، او کوم سړی چي نفل کوي نو اندازه وکړئ چي هغه به په څومره خشوع و خضوع، عاجزی او په څومره توجه سره فرض اداء کوي، او په دې باره کي په حديث کي هم بيان سوی دی، چي الله پاک به د قيامت په ورځ وواييي چي وگورئ زما د بنده لپاره يو نفلي لمونځ سته که نه؟ نو که وو، الله پاک به وفرمايي: چي په دې سره د ده فرضي لمونځونه ور پوره کړئ!.

## د جهري لمانځه په قضاء راگرځولو کي د جهر حکم

وَمَنْ فَاتَتْهُ الْعِشَاءُ او له چا څخه چي د ماخوستن لمونځ فوت (قضا) سي فَصَلَّاهَا بَعْدَ طُلُوعِ الشَّمْسِ او بيا يې هغه تر لمر راختلو وروسته وکړي (يعني تر لمر ختلو وروسته يې را وگرځوي) إِنْ أَمَّ فِيهَا جَهَرَ نو که هغه سړی په دې لمانځه کي امامت ورکوی نو په جهر سره دي قرائت وکړي (يعني په لوړ اواز دي قرائت وکړي) كَمَا فَعَلَ● رَسُولُ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ لکه څرنگه چي رسول الله ﷺ وکړی حِينَ قَضَى الْفَجْرَ غَدَاةَ لَيْلَةِ التَّعْرِيسِ بِجَمَاعَةٍ کله چي نبي ﷺ د سهار د لمانځه قضاء د ليلة التعريس په سهار را وگرځوله وَإِنْ كَانَ وَحْدَهُ خَافَتَ حَتْمًا او که دا سړی يوازي (تنها) وو نو خامخا به اخفاء کوي (يعني په پټه به قرائت کوي) وَلَا يَتَخَيَّرُ او ده ته اختيار نه سته هُوَ الصَّحِيحُ همدا صحيح ده لِأَنَّ الْجَهْرَ يَخْتَصُّ إِمَّا بِالْجَمَاعَةِ حَتْمًا ځکه چي جهر خو يا د جماعت سره خاص دی أَوْ بِالْوَقْتِ فِي حَقِّ الْمُنْفَرِدِ عَلَى وَجْهِ التَّخْيِيرِ يا د منفرد په حق کي د اختيار په توگه د وخت سره خاص دی وَلَمْ يُوجَدْ أَحَدُهُمَا او (دلته) له دواړو څخه يو هم نسته.

**اللغات:** ﴿أَمَّ﴾ د نصر د باب ماضي صيغه ده: امامت ورکول، امام جوړېدل، ﴿خَافَتَ﴾ د مفاعلې د باب ماضي صيغه ده: پټول، په کراره ويل، ﴿حَتْمًا﴾ خامخا، لازمي، يقيني، ﴿لَيْلَةُ التَّعْرِيسِ﴾ د کوچ او کلدي شپه، (له دې څخه مراد هغه شپه ده چي کله نبي ﷺ او صحابه رضي الله عنهم د جهاد له سفر څخه واپس راتلل، په لاره کي د خوب لپاره يو ځای تم سول، او حضرت بلال ﷺ ورا

● أخرجه مسلم في كتاب المساجد، باب قضاء الصلاة الفائتة، حديث رقم: ٣١١.

وینځولو ته واري خپل په غاړه واخیستل، خو تر څو له بیده سول او هغه وخت راپورته سول چي لمر راوختی، بیا نبي ﷺ له هغه ځای څخه د کوچ حکم وکړی، کله چي لمر یو نیزه راپورته سو نو د سهار لمونځ یې را وګرځوی)

**تشریح: صورت د مسئلې:** دا دی که له یو چا څخه د ماخوستن لمونځ قضاء سي، او هغه د دې قضاء په را روانه ورځ کي تر لمر راختلو وروسته راګرځول غواړي نو د دې دوه صورتونه دي: (۱) یا به هغه په جماعت سره د لمانځه قضاء را ګرځوي، (۲) یا به یې یو ازې راګرځوي، که اول صورت وي یعني هغه سړی په جماعت سره قضاء را ګرځوي، او د خلکو امامت کوي، نو د هغه لپاره حکم دا دی چي جهري قرائت به کوي، ځکه چي کله له نبي ﷺ څخه د لیلة التعریس په وخت کي د سهار لمونځ قضاء سو، نو نبي ﷺ د دې لمانځه قضاء تر لمر راختلو وروسته په جماعت سره را وګرځوله، او قرائت بالجهر یې وکړی، نو دا قصه د دې خبري دلیل ده چي کله قضائي لمونځ په جماعت سره را ګرځول کیږي نو که هغه جهري لمونځ وو، جهر به پکښي کیږي. لېکن که هغه سړی یوازي د لمانځه قضاء راګرځول (یعني منفرد وو)، نو د هغه لپاره حکم دا دی چي هغه به خامخا اخفاء یعني په کراره به قرائت کوي، او د هغه لپاره دا خپیار نسته چي جهر وکړي، همدا قول صحیح دی، صاحب د هدایې رَحِمَهُ الله په هو الصحیح سره د د شمس الائمه سرخسي، فخر الاسلام بزدوي او د قاضي خان او نورو له هغه قول څخه احتراز کړی دی چي په هغه کي دوی د منفرد لپاره هم جهر غوره ګڼلی دی، او دا یې دا بیان کړی دی چي د ماخوستن په لمانځه کي جهري قرائت کیږي، نو په قضاء راوړلو کي به یې هم جهري قرائت کیږي چي اداء د قضاء سره موافق سي. (عنایه)

## په لمانځه کي د سورت فاتحې یا قرائت هېرېدلو بیان

وَمَنْ قَرَأَ فِي الْعِشَاءِ فِي الْأُولَيَيْنِ السُّورَةَ او چا چي د ماخوستن په اولو دوو رکعتو کي سورت ووایی وَلَمْ يَقْرَأْ بِفَاتِحَةِ الْكِتَابِ خو سورتِ فاتحه یې نه وویله لَمْ يُعِدْ فِي الْأُخْرَيَيْنِ نو په آخري دوو رکعتو کي به سورت فاتحه نه راګرځوي وَإِنْ قَرَأَ الْفَاتِحَةَ وَلَمْ يَزِدْ عَلَيْهَا او که یې صرف سورتِ فاتحه وویل او پر هغه یې د سورت اضافه نه وکړه قَرَأَ فِي الْأُخْرَيَيْنِ الْفَاتِحَةَ وَالسُّورَةَ نو په آخري دوو رکعتو کي به سورتِ فاتحه او سورت دواړه وایي وَجَهَرَ او په جهر (لوړ اواز) سره به قرائت کوي وَهٰذَا● عِنْدَ أَبِي حَنِيفَةَ وَمُحَمَّدٍ رَحِمَهُمَا اللهُ او دا حکم د طرفینو رَحِمَهُمَا الله په نېز دی وَقَالَ أَبُو يُوسُفَ رَحِمَهُ اللهُ لَا يَقْضِي وَاحِدَةً مِنْهُمَا امام ابو یوسف رَحِمَهُ الله فرمایي چي له سورتِ فاتحه او سورت څخه به یو هم نه راګرځوي لِأَنَّ الْوَاجِبَ إِذَا فَاتَ عَنْ وَقْتِهِ ځکه کله چي واجب له خپل وخت څخه فوت (قضاء) سي لَا يُقْضَى إِلَّا بِدَلِيلٍ نو له دلیل څخه به بغیر د هغه قضاء نه راوړل کیږي وَلَهُمَا او د طرفینو دلیل دا دی وَهُوَ الْفَرْقُ بَيْنَ الْوَجْهَيْنِ او په دواړو خبرو کي د فرق وجه همدغه ده أَنَّ قِرَاءَةَ الْفَاتِحَةِ شُرِعَتْ عَلَى وَجْهٍ يَتَرَتَّبُ عَلَيْهَا السُّورَةُ چي د سورتِ فاتحې ویل داسي مشروع سوي دي چي پر دې به سورت مرتب وي (یعني د دې سره به یو سورت یو ځای کیږي) فَلَوْ قَضَاهَا فِي الْأُخْرَيَيْنِ نو (اوس) که په آخري دوو رکعتونو کي سورتِ فاتحه را وګرځوي تَتَرَتَّبُ الْفَاتِحَةُ عَلَى السُّورَةِ نو فاتحه به پر سورت مرتبه سي (یعني سورتِ فاتحه به تر سورت وروسته سي) وَهٰذَا خِلَافُ الْمَوْضُوعِ او دا له موضوع څخه خلاف دي بِخِلَافِ مَا إِذَا

---

● القول الراجح: قول الطرفین، کذا فی فتح القدیر ج:۱، ص:۲۸۶. [القول الراجح، ج:۱، ص:۸۴]

تَرْكَ السُّورَةِ په خلاف د هغه صورت چي کله سورت پرېږدي لِأَنَّهُ أَمْكَنَ قَضَاؤُهَا عَلَى الْوَجْهِ الْمَشْرُوعِ ځکه چي د مشروع طريقې مطابق د سورت قضاء راګرځول ممکن دي ثُمَّ ذُكِرَ هٰهُنَا مَا يَدُلُّ عَلَى الْوُجُوبِ بيا دلته (يعني په جامع صغير کي) هغه عبارت بيان سوی دی کوم چي پر وجوب دلالت کوي وَفِي الْأَصْلِ بِلَفْظَةِ الِاسْتِحْبَابِ او په اصل (يعني مبسوط) کي د استحباب په لفظ سره دی لِأَنَّهَا إِنْ كَانَتْ مُؤَخَّرَةً فَغَيْرُ مَوْصُولَةٍ بِالْفَاتِحَةِ ځکه که سورت وروسته سي نو هغه به د فاتحې سره متصل نه سي فَلَمْ يُمْكِنْ مُرَاعَاةُ مَوْضُوعِهَا مِنْ كُلِّ وَجْهٍ نو په هر اعتبار سره د هغه د موضوع خيال ساتل ممکن نه سو.

**اللغات:** ﴿لَمْ يُعِدْ﴾ د افعال د باب جحد معلوم نفي دی: راګرځول، دوباره کول. ﴿مَشْرُوع﴾ تاکل سوی، شروع سوی، فيصله سوی.

**تشريح: صورت د مسئلې:** دا دی که يو سړي د ماخوستن په اولو دوو رکعتونو کي د سورت فاتحې پر ځای يو سورت ووايي او سورت فاتحه يې نه ويل، نو اوس په آخري دوو رکعتونو کي به د دې قضاء نه راوړي، او که يو سړي په اولو دوو رکعتونو کي صرف سورت فاتحه ووېل او سورت يې ور سره يو ځای نه کړی، نو په آخري دوو رکعتو کي به هغه سړی سورت فاتحه هم وايي او سورت به هم ور سره يو ځای کوي، او جهري قرائت به کوي، دا حکم د طرفينو رَحِمَهُمَا الله په نېز دی، امام ابو يوسف رَحِمَهُ الله فرمايي: چي په دواړو صورتونو کي به لمونځ ګزاره د هيڅ شي قضاء نه راوړي، بلکي پر خپل حال به لمونځ کوي، او په آخر کي به سجدهٔ سهو کوي.

**د امام ابو يوسف دليل:** دا دی چي له سورت او سورت فاتحې څخه هر يو واجب دی (همدا وجه ده چي که له دې دواړو څخه يو په هېره پاته سي نو سجدهٔ سهو واجبيږي، بيا برابره خبره ده که په نورو رکعتونو کي د دې قضاء راوړل سي او که نه)، او د واجب په باره کي قاعده دا ده چي کله هغه له خپل وخت څخه فوت سي (يعني په خپل وخت کي اداء نه کړی سي) نو بغير له يو دليل څخه به د هغه قضاء نه راوړل کيږي، او دلته د واجب د قضاء راوړلو هيڅ دليل نسته، نو ځکه به يې قضاء هم نه راوړل کيږي، دلته د واجب پر قضاء دليل په دې وجه نسته چي د قضاء معنیٰ ده: چي شريعت د کوم شي لپاره کوم حق او وخت ټاکلی وي د قضاء په ذريعه سره هغه شی و هغه حق او وخت ته واپس کول. او څرنګه چي شريعت په آخري دوو رکعتونو کي سورت نه دی مشروع کړی، نو ځکه به د هغه قرائت قضاء په آخري رکعتونو کي نه راوړل کيږي کوم چي په اولو دوو رکعتونو کي قضاء سوی وي.

**د طرفينو دليل:** د وَلهما الخ څخه د طرفينو دليل بيانوي، د دوی دليل دا دی چي فاتحه په داسي طريقه سره مشروع سوې ده چي پر هغې بل سورت مرتب کړل سي، يعني داسي مشروع سوې ده چي فاتحه مخکي وي او بل سورت وروسته وي، نو که فاتحه په آخري دوو رکعتونو کي راوګرځول سي نو فاتحه به تر سورت وروسته سي، او دا له مشروع او موضوع څخه خلاف دي، (ځکه چي په دې صورت کي به سورت مخکي وي او سورت فاتحه به وروسته وي) نو ځکه به د فاتحې قضاء په آخري دوو رکعتونو کي نه راوړل کيږي. ليکن په دويم صورت کي يعني چي کله لمونځ کونکي په اولو دوو رکعتونو کي سورت فاتحه ويلې وي او سورت يې ويلی نه وي، نو په آخري دوو رکعتونو کي به يې قضاء راوړي، ځکه چي په دې صورت کي پر مشروع طريقه قضاء راوړل ممکن دي، ځکه چي مشروع طريقه دا ده چي تر فاتحې وروسته دي سورت وي، او دلته هم دغه ډول ده. (او په دواړو صورتونو کي همدغه فرق دی).

ثم ذکر الخ له دې ځايه دا رابښيي چې په هدايه کې د جامع صغير کوم عبارت ذکر سوی دی يعني قرأ في العشاء في الأخريين...الخ، له دې څخه دا مطلب را وځي چې په آخري دوو رکعتونو کې قرائت واجب دی ځکه چې قرأ دلته د إقرأ په معنیٰ سره دی او امر د وجوب لپاره راځي، نو له دې څخه د قرائت واجبوالی ثابتيږي، او په مبسوط کې بيا دا عبارت ذکر دی: إذا ترك السورة في الأولين أحب إلیّ أن يقضيها، او ښکاره ده چې د أحب له لفظ څخه استحباب ثابتيږي، نه وجوب.

د جامع صغير د عبارت دليل هم هغه دی کوم چې د طرفينو رَحِمَهُمَا الله دليل دی، لېکن په مبسوط کې چې کوم د استحباب عبارت دی د هغه دليل دا دی چې په پورتنۍ مسئله کې خو سورت يې له شکه تر سورت فاتحې وروسته سو، لېکن د اولي فاتحې سره جوخت نه سو ځکه چې د اولي فاتحې او سورت په مينځ کې دويمه فاتحه(يعني هغه فاتحه چې په آخري دوو رکعتونو کې ويل کيږي) واقع سوه، او د اولي فاتحې او سورت په مينځ کې يې فصل راوستی، نو من کل الوجوه د مشروع رعايت نه وسو، يعني من کل الوجوه تر سورت فاتحې وروسته سورت نه راغلی، نو په دې وجه په مبسوط کې وويل سوه چې د سورت قضاء راوړل مستحب دي، واجب نه دي.

## په آخري رکعتونو کې د سورت د قضاء راوړلو طريقه او حکم

وَيَجْهَرُ بِهِمَا او لمونځ ګزاره به په سورت او فاتحه دواړو کې جهر کوي هُوَ الصَّحِيحُ همدا صحيح قول دی لِأَنَّ الْجَمْعَ بَيْنَ الْجَهْرِ وَالْمُخَافَتَةِ فِي رَكْعَةٍ وَاحِدَةٍ شَنِيعٌ ځکه چې په يوه رکعت کې د جهر او سرّ جمع کول ناوړه(او بد) دي وَتَغْيِيرُ النَّفْلِ وَهُوَ الْفَاتِحَةُ أَوْلَى او د نفلو يعني د فاتحې بدلول( او جهر کول) غوره دي.

**اللغات:** ﴿جهر﴾ په لوړ اواز سره ويل، ښکاره کول، ﴿شنيع﴾ بد، ناجائز، نا روا.

**تشريح:** **مسئله:** دا ده چې کله لمونځ ګزاره په آخري دوو رکعتونو کې د سورت فاتحې سره د سورت قضاء راوړي، نو دواړه به په جهر سره وايي، همدا صحيح ده، په صحيح ويلو سره يې له هغه قولونو څخه احتراز وکړی، چې له هغو څخه په بعضو کې د سرّي قرائت بيان دی، لکه د حضرت هشام رَحِمَهُ الله او امام محمد رَحِمَهُ الله څخه چې همدغه روايت سوی دی، او په بعضو کې ويل سوي دي چې صرف به په سورت کې جهري قرائت وي، او سورت فاتحه به په اخفاء سره ويل کيږي، دا قول ابن سماعه له شيخينو څخه را نقل کړی دی.

خو صحيح دا ده چې په دواړو کې به قرائت بالجهر وي، ځکه چې په يوه رکعت کې جهر او خفاء دواړه جمع کول بد او ناوړه دي، او په دواړو کې اخفاء کول هم ناخوښه او غير مستحسن دي، ځکه چې په دې صورت کې واجب د مستحب په صورت بدليلږي(يعني سورت کوم چې واجب دی په اولو رکعتونو کې جهراً ويل کيږي او فاتحه کوم چې په آخري دوو رکعتونو کې مستحب ده سراً ويل کيږي نو اوس که د سورت قضاء په آخري دوو رکعتونو کې راوړل سي نو سورت دې هم جهراً وويل سي او فاتحه دې هم جهراً وويل سي يعني فاتحه دې له سراً څخه را واړول سي په جهراً دې بدله سي، او دا صحيح طريقه ده لکه څرنګه په کتاب کې هم دا حکم دی، لېکن که سورت چې هغه په اولو رکعتونو کې واجب دی دلته سراً وويل سي نو ښکاره ده چې سورت له خپل جهري قرائت څخه را واړول سو او په سرّي قرائت بدل سو نو ګواکي له وجوب څخه راواړول سو په استحباب بدل سو) او تاسو ته معلومه ده چې د مستحب په مقابله کې واجب لوړه درجه لري، نو ځکه غوره صورت همدغه دی، چې په دواړو کې قرائت بالجهر وسي، ځکه چې په دې کې هيڅ خرابي نه راځي، بلکې دلته ادنیٰ يعني فاتحه د اعلیٰ يعني د سورت تابع کيږي، او دا طريقه غوره او افضله. (عنايه)

## د جهر او سرّ (اخفاء) تعريف

ثُمَّ الْمُخَافَتَةُ أَنْ يُسْمِعَ نَفْسَهُ بيا اخفاء (يعني سرّي قرائت کول) دا دي چي لمونځ گزاره يې په خپل ځان واوري وَالْجَهْرُ أَنْ يُسْمِعَ غَيْرَهُ او جهر دا دی چي په بل چا يې واوري وَهٰذَا عِنْدَ الْفَقِيْهِ أَبِيْ جَعْفَرٍ الْهِنْدُوَانِيِّ رَحِمَهُ اللهُ او دا تعريف د فقيه ابو جعفر هندواني رَحِمَهُ الله په نيز دی لِأَنَّ مُجَرَّدَ حَرَكَةِ اللِّسَانِ لَا يُسَمّٰى قِرَاءَةً بِدُوْنِ الصَّوْتِ ځکه چي بغير له آواز څخه فقط ژبې ښوروِلو ته قرائت نه ويل کيږي وَقَالَ الْكَرْخِيُّ رَحِمَهُ اللهُ: أَدْنَى الْجَهْرِ أَنْ يُسْمِعَ نَفْسَهُ او امام کرخي رَحِمَهُ الله فرمايي: چي د جهر کمه اندازه دا ده چي په خپل ځان يې واوري وَأَدْنَى الْمُخَافَتَةِ تَصْحِيْحُ الْحُرُوْفِ او د اخفاء کمه اندازه دا ده چي حروف صحيح کړی سي لِأَنَّ الْقِرَاءَةَ فِعْلُ اللِّسَانِ ځکه چي قرائت د ژبې کار دی دُوْنَ الصِّمَاخِ نه د غوږ (يعني د غوږو کار نه دی) وَفِيْ لَفْظِ الْكِتَابِ إِشَارَةٌ إِلٰى هٰذَا او د متن په لفظ کي هم ودغه طرف ته اشاره ده وَعَلٰى هٰذَا الْأَصْلِ كُلُّ مَا يَتَعَلَّقُ بِالنُّطْقِ او پر همدغه قاعدې به هر هغه شی (متفرع کيږي) چي د هغه د وينګ(ويلو) سره تعلق لري كَالطَّلَاقِ وَالْعِتَاقِ وَالْإِسْتِثْنَاءِ وَغَيْرِ ذٰلِكَ لکه طلاق، عتاق، استثناء او له دې څخه ماسوا نور.

**اللغات:** ﴿صوت﴾ آواز، ﴿مجرد﴾ يوازي، تنها، ﴿صماخ﴾ غوږ، د غوږ سورى، ﴿نطق﴾ وينګ، ويل، د ويلو ورتيا، ﴿عتاق﴾ آزادول، غلام پرېښوول.

**تشريح:** صاحب د هدايې رَحِمَهُ الله په دې عبارت کي د جهر او خفاء دوه تعريفه کړي دي، او د دوو حنفي امامانو طرف ته يې منسوب کړي دي:

(١) اول تعريف کوم چي د فقيه ابو جعفر هندواني رَحِمَهُ الله دی، دا دی: چي اخفاء (يا سري قرائت) دومره آواز را ايستلو ته ويل کيږي چي ويونکي يې په خپله واوري، او جهر هغه آواز ته ويل کيږي چي له ويونکي څخه علاوه يې بل څوک هم واوري، ځکه چي له آواز څخه بغير صرف ژبې ښوروِلو ته قرائت نه ويل کيږي، نه په عرف کي او نه په عادت او لغت کي. (عنايه)

(٢) دويم تعريف کوم چي د امام کرخي رَحِمَهُ الله دی، دا دی: چي د جهر کمه اندازه دا ده چي ويونکي يې په خپله واوري، او د اخفاء کمه اندازه دا ده چي قرائت په داسي اندازه سره وکړی سي چي په هغه کي حروف صحيح اداء سي، ځکه چي د قرائت تعلق د ژبې سره دی نه د غوږ سره، نو ځکه به په دې کي د غوږ د اوريدلو هيڅ دخل نه وي.

وفي لفظ الخ فرمايي چي په متن يعني د قدوري په الفاظو کي چي کوم څه ذکر سوي دي يعني: فهو مخير إن شاء جهر و أسمع نفسه وإن شاء خافت (دا جمله د فصل په شروع کي ذکر سوې ده) نو په دې جمله کي هم د امام کرخي رَحِمَهُ الله د قول و طرف ته اشاره ده، ځکه چي په دې کي هم د جهر تعريف دا سوی دی چي په خپل ځان يې واوري، يعني په و أسمع نفسه سره د جهر تعريف سوی دی.

وعلى هذا الخ د دې حاصل دا دی چي د جهر او اخفاء په تعريف کي چي کوم اختلاف د امام کرخي رَحِمَهُ الله او د ابو جعفر هندواني رَحِمَهُ الله ذکر سو، دا اختلاف به په هر هغه شي کي جاري کيږي چي د هغه تعلق د نطق، او ويلو سره وي، د مثال

په توګه که یو چا په أنتِ طالق سره خپلې ښځې طلاق ورکړی، یا یې په أنتَ حرٌ سره خپل غلام آزاد کړی، او په خپله یې هم دا کلمې نه واورېدلې، نو د امام کرخي رَحِمَهُ الله په نیز به طلاق او عتاق واقع کیږي، ځکه چې د هغه په نیز خو د اخفاء کمه اندازه راغله (چې هغه د حروفو صحیح اداینه ده)، او د فقیه ابو جعفر رَحِمَهُ الله په نیز به طلاق او عتاق نه واقع کیږي ځکه چې د اخفاء کمه اندازه نه راغله (چې هغه په خپل ځان اورول دي)، همدارنګه که یو سړي په جهري آواز سره أنتِ طالق او أنتَ حرٌ وواییی او متصلاً یې استثناء وکړه، لیکن دا استثناء یې په دومره کښته اواز سره وکړه چې خپله یې هم نه واورېدله، نو د امام کرخي رَحِمَهُ الله په نیز به استثناء معتبره وي، لیکن د فقیه ابو جعفر رَحِمَهُ الله په نیز به د استثناء هیڅ اعتبار نه کیږي، او سملستي به طلاق او عتاق واقع کیږي. (عنایه ج:۱، ص:۳۲۹)

## د قرائت هغه اندازه چې لمونځ په صحیح کیږي (د فقهاؤ قولونه او دلیلونه)

وَأَدْنَى مَا يُجْزِئُ مِنَ الْقِرَاءَةِ فِي الصَّلَاةِ او د قرائت هغه لږ مقدار کوم چې په لمانځه کې کفایت کوي آيَةٌ عِنْدَ أَبِي حَنِيفَةَ رَحِمَهُ اللهُ هغه یوه آیت دی د امام ابو حنیفه رَحِمَهُ الله په نیز وَقَالَا●: ثَلَاثُ آيَاتٍ قِصَارٍ او صاحبین فرمایي چې درې کوچنې آیتونه دي أَوْ آيَةٌ طَوِيلَةٌ یا یو غټ آیت دی لِأَنَّهُ لَا يُسَمَّى قَارِئًا بِدُونِهِ ځکه چې تر دې کم لستونکي ته لستونکی نه ویل کیږي فَأَشْبَهَ قِرَاءَةَ مَا دُونَ الْآيَةِ نو داسې سو لکه تر یوه آیت چې یې کم لوستلی وي وَلَهُ قَوْلُهُ تَعَالَى فَاقْرَءُوا مَا تَيَسَّرَ مِنَ الْقُرْآنِ [المزمل: ۲۰] او د امام صاحب دلیل د الله تعالیٰ دا قول دی: فاقرءوا... الخ مِنْ غَيْرِ فَصْلٍ چې دا آیت بغیر له څه تفصیل څخه وارد سوی دی إِلَّا أَنَّ مَا دُونَ الْآيَةِ خَارِجٌ مګر دا چې تر یوه آیت کم خارج (وتلی) دی وَالْآيَةُ لَيْسَتْ فِي مَعْنَاهُ او پوره آیت تر یوه آیت د کم په معنیٰ کې نه دی.

**اللغات:** ﴿قِصَار﴾ جمع ده، واحد یې قاصِرٌ دی: لنډ، کم، کوچنی، ﴿فصل﴾ جلا کول، فاصله، (تفصیل).

**تشریح:** **صورت د مسئلې:** دا دی چې د قرائت کم او لږ مقدار (اندازه) چې په هغه سره لمونځ صحیح کیږي، د امام صاحب رَحِمَهُ الله په نیز یو آیت دی لکه: فَقُتِلَ كَيْفَ قَدَّرَ ثُمَّ نَظَرَ او د صاحبینو رَحِمَهُ الله په نیز د دې مقدار درې کوچنې آیتونه دي، یا یو غټ آیت چې د دریو کوچنیو آیتونو سره برابر وي، غټ آیت لکه آیت الکرسي او نور. او کوچنې درې آیتونه لکه سورت کوثر، نو که څوک تر دې کم قرائت وکړي نو د هغه لمونځ نه صحیح کیږي. ځکه چې په عرف کې تر دې کم ویونکي ته قاري نه ویل کیږي، نو تر دې کم ویونکی د هغه سړي سره مشابه سو چې هغه تر یوه آیت کم ویلی وي، او چا چې تر یوه آیت کم ویلی وي د هغه لمونځ نه صحیح کیږي، نو ځکه به له دې مقدار څخه په کم قرائت سره هم لمونځ نه صحیح کیږي.

**د امام صاحب دلیل:** دا دی چې دا آیت کوم چې د قرائت سره تعلق لري: فاقرءوا ما تیسّر من القرآن مطلق دی، او په دې کې د یوه آیت، ما دون الآیت (تر یوه آیت کم) همدارنګه د مافوق الآیت (تر یوه آیت زیات) هیڅ تفصیل نسته، نو په دې اعتبار سره خو په مطلق قرائت سره لمونځ جائز کېدل پکار وو، که څه هم هغه له آیت څخه کم وي، لیکن څرنګه

● القول الراجح: قول الصاحبین، کذا في الکفایة ج:۱، ص:۲۹۰. [القول الراجح، ج:۱، ص:۸۲]

چي له ما تيسر من القرآن څخه په اجماع تر يوه آيت کم ايستل سوی دی، نو ځکه به تر يوه آيت په کم سره لمونځ نه جائز کيږي.

او له فاقرؤا ما تيسر من القرآن څخه ځکه ما دون الآيت ايستل سوی دی چي من القرآن مطلق دی، نو د المطلق يجری علی إطلاقه په وجه به د من القرآن څخه د قرآن فرد کامل مراد وي، او د لمانځه د جواز په لړ کي د قرآن فرد کامل لږ تر لږه يو آيت دی، ځکه چي يو آيت حقيقتاً هم قرآن دی او حکماً هم قرآن دی، او تر يوه آيت کم خو حقيقتاً قرآن دی، لېکن حکماً قرآن نه دی، ځکه چي د حائضې او جنب لپاره د مادون الآيت ويلو اجازت سته. نو له دې څخه معلومه سوه چي ما دون الآيت حکماً د قرآن فرد کامل نه دی، نو کله چي فرد کامل نه سو، نو دا به د فاقرؤا ما تيسر من القرآن مصداق هم نه وي، او په دومره اندازه قرائت سره به لمونځ هم نه صحيح کيږي، ځکه چي د لمانځه لپاره د قرآن قرائت ضروري دی، او تر يوه آيت کم قرآن نه دی.

والآية الخ د دې حاصل دا دی چي تر يوه آيت کم د پوره آيت سره نه سي لاحق کېدلای، ځکه چي پوره آيت د هغه په معنیٰ او درجه کي نه دی.

## په سفر کي د لمانځه د قرائت حکم

| |
|---|
| وَفِي السَّفَرِ يَقْرَأُ بِفَاتِحَةِ الْكِتَابِ او په سفر کي به سورت فاتحه وايي وَأَيِّ سُورَةٍ شَاءَ او کوم سورت چي وغواړي (هغه دي ور سره يو ځای کوي) لِمَا رُوِيَ ځکه روايت سوی دی أَنَّ النَّبِيَّ عَلَيْهِ الصَّلَاةُ وَالسَّلَامُ • قَرَأَ فِي صَلَاةِ الْفَجْرِ فِي سَفَرِهِ بِالْمُعَوِّذَتَيْنِ چي نبي ﷺ په خپل سفر کي د سهار په لمانځه کي معوذتين (قل اعوذ برب الفلق او قل اعوذ برب الناس) وويل وَلِأَنَّ لِلسَّفَرِ أَثَرًا فِي إِسْقَاطِ شَطْرِ الصَّلَاةِ او په دې وجه (هم) چي د نيم لمانځه په ساقطولو کي د سفر اثر دی فَلَأَنْ يُؤَثِّرَ فِي تَخْفِيفِ الْقِرَاءَةِ أَوْلَى نو ځکه به د قرائت په تخفيف کي په طريقهٔ اولیٰ اثر کوي وَهَذَا إِذَا كَانَ عَلَى عَجَلَةٍ مِنَ السَّيْرِ او دا حکم هغه وخت دی چي د تګ تلوار يې وي وَإِنْ كَانَ فِي أَمَنَةٍ وَقَرَارٍ او که مسافر د امن او سکون په حالت کي وي يَقْرَأُ فِي الْفَجْرِ نَحْوَ سُورَةِ الْبُرُوجِ وَانْشَقَّتْ نو د سهار په لمانځه کي به د سورت بروج او د سورت انشقاق په څېر سورت وايي لِأَنَّهُ يُمْكِنُهُ مُرَاعَاةُ السُّنَّةِ مَعَ التَّخْفِيفِ ځکه چي د هغه لپاره د تخفيف سره سره د سنت خيال ساتل (هم) ممکن دي. |

**اللغات:** ﴿شطر﴾ نيم، معتبره اندازه، ﴿عجلة﴾ تلوار، بېړه، چابکي، ﴿سير﴾ سفر کول، تګ کول، ﴿أمنة﴾ سکون، امن، ﴿قرار﴾ هوسايي، قراري.

**تشريح:** په دې عبارت کي مصنف رَحِمَهُ الله د سفر په لمانځه کي د قرائت ذکر کوي، فرمايي چي د سفر په حالت کي سنت قرائت دا دی چي مسافر دي سورة فاتحه او کوم سورت چي وغواړي هغه دي ووايي، که کوچنی سورت ووايي نو هم سنت اداء کيږي، ځکه روايت دی چي نبي ﷺ د سفر په حالت کي د سهار په لمانځه کي قل اعوذ برب الفلق او قل اعوذ برب الناس ووايی، دا حديث ابو داؤد او نسائي د عقبه بن عامر رضی الله عنه په حواله سره روايت کړی دی، او د دې په آخر کي

• تخريج: أخرجه ابو داؤد في كتاب الوتر، باب المعوذتين، حديث رقم: ۱۴۶۲.

ذکر سوي دي: فلما نزل لصلاة الصبح صلّی بهما صلاة الصبح للناس. (يعني کله چي نبي ﷺ د سهار دلمانځه لپاره راښوه سو نو خلکو ته يې په همدې دوو سورتونو سره لمونځ ورکيو).

**عقلي دليل:** دا دی چي سفر نيم لمونځ ساقطوي، نو کله چي سفر نيم لمونځ ساقطوي، نو قرائت به طريقه اولیٰ سره کوچنی کوي، مطلب دا چي کله د سفر په وجه په اصل لمانځه کي څه کمي راغله نو د دې په وصف يعني په قرائت کي خو به په طريقه اولیٰ سره کمي راځي، صاحب د هدايې رَحِمَهُ الله وايي چي دومره اندازه تخفيف به هغه وخت کوي، چي کله دا سړی په تلوار کي وي، او که دامن او قراری په حالت کي وي مثلاً په يو کور کي وي او اراده يې دا وي چي په آرام سره به څه وخت دلته تېر کرم بيا به روان سم، يا يو بل داسي صورت وي، نو په داسي وخت کي دي د سهار په لمانځه کي والسماء ذات البروج او إذا السماء انشقت وايي، ځکه چي دا ډول به تخفيف هم راسي، او د سنتو خيال به هم وساتل سي.

## د اقامت په حال کي د سهار په لمانځه کي د قرائت اندازه

وَيَقْرَأُ فِي الْحَضَرِ او د اقامت په حال کي دي وايي فِي الْفَجْرِ فِي الرَّكْعَتَيْنِ د سهارو په دوارو رکعتونو کي بِأَرْبَعِيْنَ آيَةً أَوْ خَمْسِيْنَ آيَةً سِوَى فَاتِحَةِ الْكِتَابِ له سورت فاتحې څخه ماسوا څلوېښت يا پنځوس آيتونه وَيُرْوَى مِنْ أَرْبَعِيْنَ إِلَى سِتِّيْنَ او يو روايت دا دی چي له څلوېښتو څخه تر شپېتو پوري وَمِنْ سِتِّيْنَ إِلَى مِائَةٍ او له شپېتو څخه تر سلو پوري وَبِكُلِّ ذٰلِكَ وَرَدَ الْأَثَرُ او د دې هر روايت په باره کي حديث راغلی دی وَوَجْهُ التَّوْفِيْقِ او (د ټولو روايتونو په مينځ کي) د موافقت طريقه دا ده أَنَّهُ يَقْرَأُ بِالرَّاغِبِيْنَ مِائَةً چي د (اوږده قرائت د) شوقيانو لپاره دي سل آيتونه وايي وَبِالْكُسَالٰى أَرْبَعِيْنَ او د سستانو (کمزورو) لپاره دي څلوېښت آيتونه وايي وَبِالْأَوْسَاطِ مَا بَيْنَ خَمْسِيْنَ إِلَى سِتِّيْنَ او د مينځنۍ درجې خلکو لپاره دي له پنځوسو څخه تر شلوېښتو آيتونو پوري وايي وَقِيْلَ: يَنْظُرُ إِلٰى طُوْلِ اللَّيَالِيْ وَقِصَرِهَا او ويل سوي دي: چي د شپو اوږدوالی او کوچنيوالي ته دي ګوري وَإِلٰى كَثْرَةِ الْأَشْغَالِ وَقِلَّتِهَا او د کارونو ډېرښت او کمښت ته دي ګوري.

**اللغات:** ﴿حضر﴾ د سفر ضد، په کور کي د پاته کېدلو حالت، په ښار کي اوسېدنه، اقامت. ﴿كُسَالٰى﴾ جمع ده، واحد يې: كَسْلَانٌ دی: سست، تمبل، (کمزوری). ﴿لَيَالِيْ﴾ جمع ده، واحد يې: لَيْل دی: شپه.

**تشريح: مسئله:** دا ده چي لمونځ کونکي دي د اقامت او حَضَر په حالت کي د سهار په دوارو رکعتونو کي له سورت فاتحې څخه ماسوا څلوېښت آيتونه وايي، يا دي پنځوس آيتونه وايي، يعني په هر رکعت کي دي شل يا پنځويشت آيتونه وايي، او په يوه روايت کي راغلي دي چي په دوارو رکعتونو کي دي له څلوېښتو څخه واخله تر شپېتو پوري وايي، او په يوه کي له شپېتو څخه تر سلو پوري ذکر سوي دي، صاحب د هدايې رَحِمَهُ الله وايي چي په دې کي د هريوه لپاره حديث سته، لکه څرنګه چي له ابن عباس څخه روايت دی: أن النبي ﷺ قرأ في الفجر يوم الجمعة الٓمٓ تنزيل السجدة وهل أتى على الانسان. (يعني نبي ﷺ د جمعې په ورځ د سهار په لمانځه کي الم تنزيل السجده او هل أتى على الانسان ووايي)، په اول سورت کي دېرش آيتونه دي او په دويم سورت کي يو دېرش آيتونه دي، (نو ټوله يو شپېته

آيتونه سوه)، په مسلم شريف کي د جابر بن سمر ﷺ دا حديث ذکر سوی دی: أن النبي ﷺ كان يقرأ في الفجر بـ ق، او له ابو هريره ﷺ څخه روايت دی: قال كان رسول الله ﷺ يقرأ في الفجر مابين الستين إلى مائة اية.

**په مختلفه روايتونو کي د توفيق وجه:** صاحب د هدايې وايي چي په دې ټولو روايتونو کي د توفيق او ترتيب وجه دا ده چي که مقتديان د قرائت اوږدلو زيات شوق لري، نو تر سلو آيتونو پوري دي قرائت کوي، او که مقتديان سست، تمبل يا ضعيفه وي، نو څلوېښت آيتونه دي وايي، او که مقتديان د مينځنۍ درجې خلک وي نو پنځوس، شپېته آيتونه دي وايي.

وقيل الخ د ځينو خلکو قول دا دی چي امام ته پکار دي چي د شپو اوږدوالي او لنډوالي ته دي ګوري، يعني د ژمي په شپو کي دي زيات قرائت کوي، او د ګرمۍ په شپو کي دې کم قرائت کوي، او امام ته پکار دي چي د خپلو مقتديانو د کارونو دېرښت او کمښت ته هم وګوري، يعني که مقتديان زيات مصروفه وي نو مختصره قرائت دي کوي، او که فارغ وي نو اوږد قرائت دي کوي.

## د ماپښين په لمانځه کي د قرائت اندازه

قَالَ: وَفِي الظُّهْرِ مِثْلَ ذَلِكَ فرمايي: او د ماپښين په لمانځه کي دي د سهار په شان قرائت کوي لِاسْتِوَائِهِمَا فِي سَعَةِ الْوَقْتِ ځکه چي سهار او ماپښين دواړه د وخت په پراختيا کي سره برابر دي وَقَالَ فِي الْأَصْلِ او امام محمد رَحِمَهُ الله په مبسوط کي (دا) فرمايلي دي أَوْ دُونَهُ يا دي (د ماپښين په لمانځه کي) له سهار څخه کم قرائت کوي لِأَنَّهُ وَقْتُ الِاشْتِغَالِ ځکه چي دا د مشغولتيا (او کار) وخت دی فَيَنْقُصُ عَنْهُ تَحَرُّزًا عَنِ الْمَلَالِ نو له سهار څخه دي يې کم کړي له بيزارۍ څخه د ځان ساتلو لپاره (يعني چي خلک بېزاره نه سي).

**اللغات:** ﴿سَعَة﴾ پراخي، ﴿تَحَرُّزًا﴾ د تفعّل د باب مصدر دی: خوندي کېدل، ځان ساتل، ﴿مَلَال﴾ ستړيا، بېزاري.

**تشريح:** د ماپښين په لمانځه کي دي دومره اندازه قرائت کوي کوم چي د سهار په لمانځه کي ذکر سو، ځکه چي د وخت په پراخۍ کي دواړه سره برابر دي، او روايت سوی دی چي نبي ﷺ به د ماپښين په لمانځه کي الم تنزيل السجدة ويله، او موږ مخکي ذکر کړه چي نبي ﷺ به د سهار په اول رکعت کي الم تنزيل السجدة او په دويم رکعت کي هل أتى على الانسان وايی، نو ثابته سوه چي نبي ﷺ به د ماپښين په لمانځه کي هغه ويل کوم چي به يې د سهار په دوو رکعتونو کي ويل.

وقال في الأصل الخ امام محمد رَحِمَهُ الله په مبسوط کي ويلي دي چي: أو دونه، يعني د ماپښين په لمانځه کي دي د سهار د لمانځه په مقابله کي کم قرائت کوي، ځکه چي د ماپښين وخت د مشغوليت او مصروفيت وخت دی، نو ځکه به قرائت کم کوي، چي پر خلکو بوج نه سي او په دوی کي بېزاري پيدا نه سي، او ابو سعيد خدري ﷺ روايت کړی دی چي: أنه ﷺ كان يقرأ في الظهر قدر ثلاثين آية وهو نحو سورة الملك، (يعني نبي ﷺ به د ماپښين په لمانځه کي د دېرشو آيتونو په اندازه قرائت کوی، لکه سورة الملك [تبارك الذي]).

## د مازيګر، ماښام او ماخوستن په لمونځونو کي د قرائت اندازه

وَالْعَصْرُ وَالْعِشَاءُ سَوَاءٌ او د مازيګر او ماخوستن لمونځونه سره برابر دي يَقْرَأُ فِيْهِمَا بِأَوْسَاطِ الْمُفَصَّلِ په دوی کي به اوساطِ مفصّل وايي وَفِي الْمَغْرِبِ دُوْنَ ذٰلِكَ او په ماښام کي به له دې څخه کم (وايي) يَقْرَأُ فِيْهِمَا بِقِصَارِ الْمُفَصَّلِ (يعني) د ماښام په لمانځه کي به قصارِ مفصّل وايي وَالْأَصْلُ فِيْهِ كِتَابُ عُمَرَ ﷺ او په دې باره کي اصل د حضرت عمر ﷺ خط دی إِلَى أَبِيْ مُوْسَى الْأَشْعَرِيِّ ﷺ کوم چي يې ابو موسی اشعري ﷺ ته ليکلی وو أَنِ اقْرَأْ فِي الْفَجْرِ وَالظُّهْرِ بِطِوَالِ الْمُفَصَّلِ چي د سهار او ماپښين په لمانځه کي طوال مفصل وايه وَفِي الْعَصْرِ وَالْعِشَاءِ بِأَوْسَاطِ الْمُفَصَّلِ او د مازيګر او ماخوستن په لمانځه کي اوساطِ مفصل وايه وَفِي الْمَغْرِبِ بِقِصَارِ الْمُفَصَّلِ او د ماښام په لمانځه کي قصارِمفصل وايه وَلِأَنَّ مَبْنَى الْمَغْرِبِ عَلَى الْعَجَلَةِ او په دې وجه هم چي د ماښام بنياد پر تلوار(او چابکی) دی وَالتَّخْفِيْفُ أَلْيَقُ بِهَا او تخفيف(سپکوالی) د ماښام سره زيات لايق دی وَالْعَصْرُ وَالْعِشَاءُ يُسْتَحَبُّ فِيْهِمَا التَّأْخِيْرُ او د مازيګر او ماخوستن په لمونځونو کي تأخير مستحب دی وَقَدْ يَقَعَانِ بِالتَّطْوِيْلِ فِيْ وَقْتٍ غَيْرِ مُسْتَحَبٍّ او(کله ناکله) په قرائت اوږدولو سره دا دواړه په غير مستحب وخت کي واقع کيږي فَيُوَقَّتُ فِيْهِمَا بِالْأَوْسَاطِ نو ځکه به په دوی دواړو کي اوساطِ مفصل ټاکي.

**اللغات**: ﴿عجلة﴾ تلوار، بيړه، جلتي، چابکي، ﴿أليق﴾ زيات مناسب، زيات لائق، ﴿يُوَقَّتُ﴾ د تفعيل د باب مضارع ده، وَقَّتَ يُوَقِّتُ تَوْقِيْتًا: ټاکل، مقررول، معلومول، متعين کول.

### طوالِ مفصل، اوساطِ مفصل او قصارِ مفصل څه ته وايي؟

د عبارت تر تشريح مخکي د طوالِ مفصل، اوساطِ مفصل او قصارِ مفصل تعريف ته ګورئ:

له طوالِ مفصل څخه مراد اوږده سورتونه دي، او دا له سورتِ حجرات څخه واخله تر سورتِ بروج پوري دي. او دې سورتونو ته طوالِ مفصل ويل کيږي. له اوساطِ مفصل څخه مراد د مينځوی درجې سورتونه دي يعني چي نه زيات اوږده وي او نه زيات کوچني، او دا له سورتِ بروج څخه واخله تر سورتِ البينه(لم يكن الذين كفروا) پوري دي. له قصارِ مفصل څخه مراد کوچني سورتونه دي، او دا له سورتِ البينه څخه د قرآن تر آخره يعني تر سورتُ الناس پوري دي.

**تشريح**: امام قدور رَحِمَهُ الله فرمايي چي د وخت د پراختيا په حواله د مازيګر او ماخوستن لمونځونه دواړه سره برابر دي، نو په دې دواړو کي به اوساطِ مفصل وايي. **دليل**: د جابر بن سمره ﷺ روايت دی: أن النبي ﷺ كان يقرأ في الركعتين الأوليين من العصر والسماء ذات البروج والسماء والطارق. (يعني نبي به ﷺ د مازيګر په دوو رکعتونو کي والسماء ذات البروج او والسماء والطارق ويل). **دويم دليل**: د معاذ بن جبل ﷺ حديث دی: أن قومه شكوا إلى رسول الله ﷺ تطويل قراءته في العشاء فقال له النبي ﷺ أفتان أنت يا معاذ اين انت من سبح اسم ربك الاعلى والشمس وضحها. (يعني د معاذ بن جبل ﷺ قوم نبي ﷺ ته شکايت وکړی چي معاذ ﷺ د ماخوستن په لمانځه کي قرائت اوږدوي، نو نبي ﷺ معاذ ته وويل چي اې معاذ! آيا ته خلک په فتنه کي مبتلا کوې، چيري يې ته له سبح اسم ربك الاعلى او له والشمس وضحها څخه)،

يعني دا سورتونه ولې نه وايي، لنډه دا چې دواړه روايتونه پر دې خبره دلالت کوي چې د مازيګر او ماخوستن په لمونځونو کي اوساط مفصل ويل مستحب او غوره دي.

وفي المغرب الخ او د ماښام په لمانځه کي دي قصارِ مفصل وايي. دليل: دا روايت دی: أنه ﷺ قرأ في صلاة المغرب بالمعوذتين، يعني نبي ﷺ دماښام په لمانځه کي معوذتين وويل.

والأصل فيه الخ صاحب د هدايې رَحِمَهُ الله فرمايي چې د ټولو لمونځونو د مستحب قرائت په باره کي اصل هغه خط دی کوم چې دويم خليفه امير المؤمنين سيدنا عمر بن الخطاب ﷺ دابو موسیٰ اشعري ﷺ په نامه استولی وو : أن اقرأ في الفجر والظهر بطوال المفصل وفي العصر والعشاء باوساط المفصل وفي المغرب بقصار المفصل، (يعني په سهار او ماپښين کي طوال مفصل وايه او په مازيګر او ماخوستن کي اوساط مفصل وايه، او په ماښام کي قصار مفصل وايه).

عقلي دليل: دا دی چې د ماښام مدار پر تلوار دی، او د تلوار سره تخفيف مناسب دی، نو ځکه به کوچني سورتونه پکښي ويل کيږي؛ او په مازيګر او ماخوستن کي تأخير مستحب دی، نو په دې کي به هم قرائت مختصره وي، ځکه که په دې کي اوږد قرائت وسي، نو دا لمونځونه به له خپل مستحب وختونو څخه ووځي، او په غيرِ مستحب وخت کي به داخل سي، او دا استحباب په اوساط مفصل ويلو سره حاصليږي، نو ځکه به په دې لمونځونو کي اوساط مفصل ويل کيږي.

## د سهار اول رکعت د دويم رکعت په نسبت اوږدول

| وَيُطِيْلُ الرَّكْعَةَ الْأُولَى مِنَ الْفَجْرِ عَلَى الثَّانِيَةِ او امام به د سهار د لمانځه اول رکعت تر دويم رکعت اوږدوي إِعَانَةً لِلنَّاسِ عَلَى إِدْرَاكِ الْجَمَاعَةِ چې د خلګو سره (په دې کي) مرسته وکړي چې هغوی د جماعت لمونځ ونيسي. |
|---|

اللغات: ﴿يُطِيْلُ﴾ د افعال د باب مضارع صيغه ده: أَطَالَ يُطِيْلُ: اوږدول.

تشريح: د عبارت حاصل دا دی چې امام ته پکار دي چې د سهار د لمانځه اول رکعت د دويم رکعت په نسبت اوږد کړي، ځکه چې په دې توګه په آسانی سره خلګ جماعت نيولای سي، او امام ته به هم د دې ثواب رسيږي، او صاحب د عنايه رَحِمَهُ الله وايي: چې د نبي ﷺ له زمانې څخه تر اوسه پوري دا عادت او معمول را روان دی چې امامان د سهار د لمانځه اول رکعت د دويم رکعت په نسبت اوږدوي.

## له سهار څخه ماسوا په نورو لمونځونو کي اول رکعت د دويم رکعت په نسبت اوږدول

| قَالَ: وَرَكْعَتَا الظُّهْرِ سَوَاءٌ فرمايي: چې د ماپښين دواړه رکعتونه برابر دي وَهٰذَا عِنْدَ أَبِيْ حَنِيْفَةَ وَأَبِيْ يُوْسُفَ رَحِمَهُمَا اللهُ او دا حکم د شيخينو رَحِمَهُمَا الله په نيز دی وَقَالَ مُحَمَّدٌ رَحِمَهُ اللهُ● امام محمد رَحِمَهُ الله فرمايي أَحَبُّ إِلَيَّ زما خوښه دا ده أَنْ يُطِيْلَ الرَّكْعَةَ الْأُولَى عَلَى غَيْرِهَا فِي الصَّلَوَاتِ كُلِّهَا چې په ټولو لمونځونو کي دي اول رکعت تر دويم رکعت اوږدوي لِمَا رُوِيَ ځکه روايت سوی دی أَنَّ النَّبِيَّ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ● كَانَ يُطِيْلُ الرَّكْعَةَ الْأُولَى عَلَى غَيْرِهَا فِي الصَّلَوَاتِ كُلِّهَا چې نبي |
|---|

● القول الراجح: قول محمد رَحِمَهُ الله كذا في رد المحتار ج:١، ص:٢٠١. [القول الراجح، ج:١، ص:٨٦]

● تخريج: أخرجه البخاري في كتاب الاذان، باب القراءة في الظهر، حديث رقم:٧٥٧.

ﷺ به په ټولو لمونځونو کې اول رکعت تر دويم رکعت اوږدوی وَلَهُمَا أَنَّ الرَّكْعَتَيْنِ اِسْتَوَيَا فِي اسْتِحْقَاقِ الْقِرَاءَةِ او د شيخينو رَحِمَهُمَا الله دليل دا دی چې د قرائت په حق کې دواړه رکعتونه برابر دي فَيَسْتَوِيَانِ فِي الْمِقْدَارِ نو په مقدار کې به هم سره برابر وي بِخِلَافِ الْفَجْرِ په خلاف د سهار د لمانځه لِأَنَّهُ وَقْتُ نَوْمٍ وَغَفْلَةٍ ځکه چې د سهار وخت د خوب او غفلت وخت دی وَالْحَدِيثُ مَحْمُولٌ عَلَى الْإِطَالَةِ مِنْ حَيْثُ الثَّنَاءِ وَالتَّعَوُّذِ وَالتَّسْمِيَةِ او حديث به پر دې حمل کيږي چې (د نبي ﷺ لمونځ به) په ثناء، اعوذ بالله او بسم الله سره اوږدېدی وَلَا مُعْتَبَرَ بِالزِّيَادَةِ وَالنُّقْصَانِ بِمَا دُونَ ثَلَاثِ آيَاتٍ او له دريو آيتونو څخه په کم کې د زياتوب او کمښت هيڅ اعتبار نشته لِعَدَمِ إِمْكَانِ الِاحْتِرَازِ عَنْهُ مِنْ غَيْرِ حَرَجٍ ځکه چې له حرج (او تکليف) څخه بغير له دې څخه ځان ساتل ممکن نه دي.

**اللغات:** ﴿يطيل﴾ د افعال د باب مضارع صيغه ده: أطال يطيل: اوږدول، ﴿إحتراز﴾ د افتعال د باب مصدر دی: خونديکېدل، پرهېز کول، ځان ساتل، ﴿حرج﴾ تکليف، سختي، ستونزه.

**تشريح:** په مخکنۍ مسئله کې ووېل سوه چې د سهار په لمانځه کې به په اتفاق سره اول رکعت تر دويم رکعت اوږديږي، لېکن د سهار له لمانځه څخه ماسوا په نورو لمونځونو کې د شيخينو مذهب دا دی چې دواړه رکعتونه به خپل مينځ کې سره برابر وي، اول رکعت به تر دويم رکعت نه اوږدېږي، او امام محمد رَحِمَهُ الله فرمايي چې په ټولو لمونځونو کې اول رکعت تر دويم رکعت اوږدول مستحب دي.

**د امام محمد دليل:** د ابو قتاده ﷺ روايت دی: أن النبي ﷺ كان يطيل الركعة الاولى على غيرها في الصلوات كلها.

**د شيخينو دليل:** دا دی چې د قرائت په حق کې دواړه رکعتونه برابر دي، يعني د دواړو رکعتونو حق دا دی چې قرائت پکښې وکړی سي، نو کله چې په حق کې برابر دي، نو په مقدار کې هم برابرېدل پکار دي، په خلاف د سهار د لمانځه، ځکه چې د سهار وخت په غيراختياري توګه سره د غفلت او خوب وخت دی، نو په ټوله لمانځه کې د خلکو د شريکولو لپاره به اول رکعت اوږديږي.

**جواب:** امام محمد رَحِمَهُ الله چې کوم حديث ذکر کړی دی د هغه جواب دا دی چې د نبي ﷺ اول رکعت به ځکه اوږدېدلی چې په دې کې به سبحانك اللهم، اعوذ بالله او بسم الله ويل کېدله کوم چې په دويم رکعت کې نه ويل کيږي، او پاته سو د قرائت حق نو په هغه کې دواړه رکعتونه برابر دي.

ولا معتبر الخ صاحب د هدايې فرمايي چې دويم رکعت تر اول رکعت اوږدول بالاتفاق مکروه دي، لېکن دا اوږدوالی په يوه آيت يا دوو آيتونو سره نه ثابتيږي، مثلاً که يو سړي په اول رکعت کې شپږ (۶) آيتونه ووېل او په دويم کې يې اووه (۷) يا اته (۸) آيتونه ووېل نو ښکاره خبره ده چې دويم رکعت دوه آيته اوږد سو، لېکن د دومره اوږدوالي او زياتوب هيڅ اعتبار نشته، ځکه چې له نبي ﷺ څخه د ماښام په لمانځه کې قل اعوذ برب الفلق او قل اعوذ برب الناس ثابت دي، او د قل اعوذ برب الفلق په مقابله کې قل اعوذ برب الناس اوږد دی، ځکه چې په قل اعوذ برب الناس کې يو آيت زيات دی، نو ځکه به په يوه يا دوو آيتونو سره کراهت نه راځي، ځکه چې له تکليف او حرج څخه بغير له دې څخه ځان ساتل ممکن نه دي، والحرج مدفوع في الشرع، هو! که درې يا له دريو څخه زيات آيتونه ووايي نو دا مکروه دي.

## د قرائت لپاره د يو ځانګړي سورت معلومولو حکم

وَلَيْسَ فِي شَيْءٍ مِنَ الصَّلَوَاتِ قِرَاءَةُ سُورَةٍ بِعَيْنِهَا او په هيڅ يوه لمانځه کي (هم) د يو داسي معلوم سورت ويل صحيح نه دي لَا يَجُوزُ غَيْرُهَا چي له هغه څخه ماسوا دي د بل ويل جائز نه وي لِإِطْلَاقِ مَا تَلَوْنَا د هغه آيت د مطلق کېدلو په وجه کوم چي موږ تلاوت کړی وَيُكْرَهُ او مکروه دي أَنْ يُوَقِّتَ بِشَيْءٍ مِنَ الْقُرْآنِ لِشَيْءٍ مِنَ الصَّلَوَاتِ چي يو څوک د لمانځه لپاره د قرآن يوه حصه متعينه کړي لِمَا فِيهِ مِنْ هَجْرِ الْبَاقِي ځکه چي په دې کي د پاته قرآن پرېښوول راځي وَإِيهَامِ التَّفْضِيلِ او (د متعيني حصې) د فضيلت وهم راځي.

**اللغات:** ﴿هجر﴾ د نصر د باب مصدر دی: پرېښوول. ﴿إيهام﴾ د افعال د باب مصدر دی: وهم پيدا کول، په وهم کي اچول. (وهم راتلل).

**تشريح:** مسئله: دا ده چي په يوه لمانځه کي يو سورت په داسي توګه سره متعين کول او دا خيال کول چي له دې څخه ماسوا دا لمونځ جائز نه دی، صحيح نه دي، دليل د الله تعالیٰ دا قول دی: فاقرءوا ماتيسر من القرآن. او دا آيت مطلق دی، او د اطلاق تقاضا دا ده چي يو معلوم سورت دې نه متعينه کېږي، او د يوه لمانځه لپاره د يو سورت يا يو آيت معلومول مکروه دي، ځکه چي يو خو په دې کي د باقي قرآن پاته کېدل راځي، دويم دا چي د فضيلت وهم پيدا کېږي يعني چي دا سورت د قرآن تر نورو سورتونو افضله دی، حال دا چي په افضيلت کي ټوله قرآن برابر دی.

## د قرائت خلف الامام (يعني د امام تر شا د قرائت کولو) شرعي حيثيت

وَلَا يَقْرَأُ الْمُؤْتَمُّ خَلْفَ الْإِمَامِ او مقتدي به د امام تر شا قرائت نه کوي خِلَافًا لِلشَّافِعِيِّ رَحِمَهُ اللهُ فِي الْفَاتِحَةِ په سورت فاتحه کي د امام شافعي رَحِمَهُ الله اختلاف دی لَهُ أَنَّ الْقِرَاءَةَ رُكْنٌ مِنَ الْأَرْكَانِ د امام شافعي رَحِمَهُ الله دليل دا دی چي قرائت د لمانځه له ارکانو څخه يو رکن دی فَيَشْتَرِكَانِ فِيهِ نو امام او مقتدي به دواړه په دې کي شريک وي وَلَنَا قَوْلُهُ عَلَيْهِ الصَّلَاةُ وَالسَّلَامُ [1] او زموږ دليل د نبي ﷺ دا قول دی مَنْ كَانَ لَهُ إِمَامٌ چي د چا لپاره امام وي فَقِرَاءَةُ الْإِمَامِ لَهُ قِرَاءَةٌ نو د امام قرائت د هغه لپاره قرائت دی وَعَلَيْهِ إِجْمَاعُ الصَّحَابَةِ او پر دې د صحابه وو اجماع ده وَهُوَ رُكْنٌ مُشْتَرَكٌ بَيْنَهُمَا او قرائت (خو) د امام او مقتدي په مېنځ کي مشترک رکن دی لَكِنْ حَظُّ الْمُقْتَدِي الْإِنْصَاتُ وَالْإِسْتِمَاعُ لېکن د مقتدي حصه چپ پاته کېدل او په غور سره غوږ نيول دي قَالَ عَلَيْهِ الصَّلَاةُ وَالسَّلَامُ نبي ﷺ فرمايلي دي وَإِذَا قَرَأَ الْإِمَامُ فَأَنْصِتُوا [2] کله چي امام قرائت کوي نو تاسو چپ اوسئ! وَيُسْتَحْسَنُ عَلَى سَبِيلِ الْاِحْتِيَاطِ او د احتياط په

---

[1] أخرجه ابن ماجه في كتاب الاقامة، باب اذا قرأ الامام فانصتوا، حديث رقم: ٨٥٠.

[2] أخرجه ابن ماجه في كتاب الاقامة، باب اذا قرأ الامام فانصتوا، حديث رقم: ٨٤٧.

توګه د سورتِ فاتحې ویل ښه دي فِيْمَا يُرْوٰى عَنْ مُحَمَّدٍ رَحِمَهُ اللهُ د امام محمد رَحِمَهُ الله په روایت کې وَيُكْرَهُ عِنْدَهُمَا لیکن د شیخینو رَحِمَهُمَا الله په نیز مکروه دي لِمَا فِيْهِ مِنَ الْوَعِيْدِ● ځکه چې د مقتدي د قرائت په باره کې وعید راغلی دی.

**اللغات:** ﴿المؤتم﴾ مقتدي، ﴿حظ﴾ حصه، حق، برخه، ﴿إنصات﴾ د افعال د باب مصدر دی: چپ پاته کېدل، خاموشي.

**تشریح: صورت د مسئلې:** دا دی چې زموږ په نیز د مقتدي لپاره قرائت کول مکروه دي، هغه که جهري لمونځ وي او که سرّي لمونځ وي، له قرائت څخه هم مراد مطلق قرائت دی، یعني نه قرآن ویل صحیح دي او نه سورتِ فاتحه، د امام شافعي رَحِمَهُ الله مسلک دا دی چې پر مقتدي په هر لمانځه کې سورت فاتحه ویل واجب دي هغه که سرّي لمونځ او که جهري، همدا وجه ده چې د شوافعو په نیز د امام لپاره حکم دا دی چې تر سورتِ فاتحه ویلو وروسته به دومره اندازه چپ پاته کیږي چې مقتدیان فاتحه ووایي.

**د امام شافعي دلیل:** دا دی چې قرائت د لمانځه له ارکانو څخه یو رکن دی، نو څرنګه چې امام او مقتدي د لمانځه په نورو ارکانو کې مثلاً په قیام، رکوع او سجود کې سره شریک دي، همدارنګه په دې رکن کې هم دواړه سره شریک دي.

**زموږ اول دلیل:** دا دی چې د زیاترو صحابه وو پر دې خبر اجماع ده چې د مقتدي لپاره قرائت کول صحیح نه دي، لکه څرنګه چې صاحب د عنایه لیکلي دي: روی عن ثمانین نفرا من کبار الصحابة منع المقتدي عن القراءة خلف الامام، (یعني د مقتدي لپاره د امام تر شا قرائت کول تقریباً له اتیا(۸۰) غټو صحابه وو څخه را نقل سوي دي)، امام شعبي رَحِمَهُ الله فرمایي چې: أدرکت سبعین بدریًا کلهم یمنعون المقتدی عن القراءة خلف الامام، (ما اویا [۷۰] بدري صحابه ولیدل چې په دوی کې هریوه د امام تر شا له قرائت څخه مقتدي منع کوی)، نو په دې حواله سره هم دا خبره ثابته سوه چې د مقتدي لپاره د امام تر شا قرائت جائز نه دی.

**جواب:** وهو رکن الخ امام شافعي رَحِمَهُ الله فرمایلي وو چې قرائت د لمانځه رکن دی نو ځکه به امام او مقتدي دواړو پکښې شامل وي، له دې ځای څخه صاحب د هدایې د دې خبرې رد کوي فرمایي چې د قرائت رکن کېدل موږ په سر او سترګو منو، او د نور ارکانو په ډول په دې رکن کې هم د امام او مقتدي دواړو شریکېدل پکار دي، خو زموږ په مخکې مجبوري دا ده چې په دې رکن کې د امام او مقتدي په مینځ کې تقسیم او وېش سوی دی، د امام وظیفه قرائت کول دي او د مقتدي وظیفه چپ پاته کېدل او د امام قرائت په غور سره اورېدل دي، څرنګه چې په خپله قرآن کریم اعلان کړی دی: وَإِذَا قُرِئَ الْقُرْآنُ فَاسْتَمِعُوا لَهُ وَأَنْصِتُوا (سورة الأعراف:۲۰۴)، (یعني کله چې قرآن ویل کیږي نو چپ او خاموشه اوسئ!)، په دې آیت کې له قرائت څخه مراد د لمانځه قرائت دی، له دې آیت څخه زموږ استدلال په دې توګه دی چې حضرت ابن عباس رضي الله عنه فرمایي: أن أصحاب رسول الله ﷺ لما قرءوا خلفه فخلطوا علیه القراءة فنزلت، (یعني کله چې به صحابه وو په لمانځه کې د نبي ﷺ شاته قرائت کوی، او پر نبي ﷺ به قرائت ګډوډ سو نو دا آیت نازل سو)؛ له دې څخه معلومه سوه چې د دې آیت تعلق د لمانځه سره دی، او په لمانځه کې د مقتدیانو لپاره قرائت جائز نه دی. **دویم دلیل:** په دې لړ کې زموږ دویم دلیل هغه حدیث دی کوم چې له ابو هریره رضي الله عنه څخه روایت سوی دی: انما جعل الامام لیؤتم به فاذا کبّر

● القول الراجح: قول الشیخین رَحِمَهُمَا الله، کذا فی رد المحتار ج:۱، ص:۴۰۲. [القول الراجح، ج:۱، ص:۸۷]

فكبّروا و اذا قرأ فانصتوا. (يعني امام ځکه امام جوړېږي چې د هغه اقتداء وکړی سي، نو کله چې هغه تکبير ووايي نو تاسو هم تکبير واياست او کله چې هغه قرائت وکړي نو خاموشه اوسئ!)، په دې حديث سره هم د مقتدي لپاره د امام تر شا له قرائت کولو څخه منع ثابته سوه. (عنايه ج:۱، ص:۳۴۸)

ويستحسن الخ د دې حاصل دا دی چې د امام محمد رَحِمَهُ الله په نېز د مقتدي لپاره سورتِ فاتحه ويل مستحسن او غوره دي، ځکه چې د حضرت عباده بن صامت ﷺ په حديث کي سورتِ فاتحه ويل راغلي دي، لېکن د شيخينو رَحِمَهُمَا الله په نېز د مقتدي لپاره فاتحه ويل مکروه دي، ځکه چې په دې باره کي وعيد راغلی دی، په عنايه کي راغلي دي چې نبي ﷺ وفرمايل: من قرأ خلف الامام ففي فيه جمرة وقال قد أخطأ السنة. (يعني کوم سړی چې د امام تر شا قرائت وکړی نو د هغه په خوله کي سکروټه ده او ويې فرمايل چې هغه له سنت څخه مخ واړوی)، له حضرت عمر ﷺ څخه روايت دی چې هغوی وفرمايل: ليت في فم الذي يقرأ خلف الامام حجرا و غير ذلك. (کاشکي! د امام تر شا د قرائت کونکي په خوله کي ډبره او داسې نور وای او هغه قرائت نه سوی کولای)، د دې وعيدونو په سبب د شيخينو په نېز د امام تر شا قرائت کول مکروه دي. علامه ابن الهمام رَحِمَهُ الله ليکلي دي چې صحيح دا ده چې امام محمد رَحِمَهُ الله هم د شيخينو رَحِمَهُمَا الله سره موافق دی(يعني د امام محمد رَحِمَهُ الله په نېز هم قرائت خلف الامام مکروه دی)، ځکه چې په کتاب الآثار کي د علقمه بن قيس په حواله سره روايت سوی دي چې امام محمد رَحِمَهُ الله په هيڅ يوه جهري او سري لمانځه کي هم قرائت خلف الامام کړی نه دي، او د کوم سړي عمل چې د هغه له روايت او قول څخه مخالف وي، نو د هغه عمل حجت او دليل جوړېږي، قول يې دليل نه جوړېږي. (فتح القدير ج:۱، ص:۳۴۹)

## د امام د قرائت او خطبو په وخت کي د مقتدي لپاره څه حکم دی؟

وَيَسْتَمِعُ وَيُنْصِتُ او مقتدي به(د امام قرائت) په غور سره اوري او چپ به اوسي وَإِنْ قَرَأَ الإِمَامُ آيَةَ التَّرْغِيبِ وَالتَّرْهِيبِ که څه هم امام د ترغيب او ترهيب آيت ووايي لِأَنَّ الاِسْتِمَاعَ وَالإِنْصَاتَ فَرْضٌ بِالنَّصِّ ځکه چې اورېدل او چپ پاته کېدل په (قرآني) نص سره فرض دي وَالْقِرَاءَةُ وَسُؤَالُ الْجَنَّةِ وَالتَّعَوُّذُ مِنَ النَّارِ او لوستل، د جنت غوښتنه کول، او له اور څخه پناه غوښتل كُلُّ ذَلِكَ مُخِلٌّ بِهِ دا ټوله شيان په اورېدلو کي خلل راولي وَكَذَلِكَ فِي الْخُطْبَةِ او همدارنګه په خطبه کي (به هم غوږ ايږدي او چپ به پاتېږي) وَكَذَلِكَ إِنْ صَلَّى عَلَى النَّبِيِّ عَلَيْهِ الصَّلَاةُ وَالسَّلَامُ او همدارنګه (به غوږ ايږدي او چپ به پاتېږي کله) چې (خطيب) پر نبي ﷺ درود ووايي لِفَرْضِيَّةِ الاِسْتِمَاعِ ځکه چې اورېدل فرض دي إِلَّا أَنْ يَقْرَأَ الْخَطِيبُ قَوْلَهُ تَعَالَى يَا أَيُّهَا الَّذِينَ آمَنُوا صَلُّوا عَلَيْهِ الآيَةَ [الاحزاب: ٥٦] مګر دا چې خطيب د الله تعالیٰ دا قول ووايي: يا أيها الذين آمنوا صلّوا عليه الآية فَيُصَلِّي السَّامِعُ فِي نَفْسِهِ نو اورېدونکي به په خپل زړه کي درود شريف وايي وَاخْتَلَفُوا فِي النَّائِي عَنِ الْمِنْبَرِ او د فقهاوو اختلاف دی په هغه سړي کي چې له منبر څخه لېري وي وَالأَحْوَطُ هُوَ السُّكُوتُ خو (د هغه لپاره) زيات احتياط په چوپتيا کي دی إِقَامَةً لِفَرْضِ الإِنْصَاتِ د چپ پاتېدلو د فرض قائمولو لپاره. والله أعلم.

**اللغات**: ﴿ترغيب﴾ د تفعيلَ د باب مصدر دی: شوق ورکول، هڅول، ﴿ترهيب﴾ ليرې کول، نفرت ورکول، ډارول، ﴿مخِل﴾ د افعال د باب اسم فاعل دی: خلل اچوونکی، جلا کونکی، پرده، ﴿نائي﴾ ليرې. •

**تشريح**: **صورت د مسئلې**: دا دی چې کله امام قرائت کوي نو ټوله مقتديان دې چپ اوسيږي، او د امام قرائت دې په غور سره اوري، او که امام د ترغيب يو آيت مثلاً: وَأَمَّا الَّذِينَ سُعِدُوا فَفِي الْجَنَّةِ خَالِدِينَ فِيهَا مَا دَامَتِ السَّمَوَاتُ وَالْأَرْضُ (سورة هود، ۱۰۸) او د ترهيب يو آيت مثلاً: فَأَمَّا الَّذِينَ شَقُوا فَفِي النَّارِ لَهُمْ فِيهَا زَفِيرٌ وَشَهِيقٌ (سورة هود، ۱۰۶) ووايي نو هم به مقتدي چپ وي، او د امام قرائت دې اوري، ځکه چې د قرآني نص: فإذا قرئ القرآن فاستمعوا له و أنصتوا او د حديث إذا قرأ الإمام فانصتوا په وجه د قرآن د قرائت په وخت کې چپ پاتې کېدل ضروري دي، نو د ترغيب او ترهيب هر ډول قرائت په دې کې داخل دی، او که يو سړی د امام سره قرائت کوي يا د ترغيب د آيت په وخت کې د جنت غوښتنه کوي يا د ترهيب د آيت په وخت کې له جهنم څخه پناه غواړي نو ښکاره ده چې په اورېدلو او چپ پاتې کېدلو کې خلل راځي، کوم چې صحيح نه دی. وكذالك الخ فرمايي چې دا د چپ پاتې کېدلو او په غور اورېدلو حکم په هغه وخت کې هم دی چې کله امام د جمعې خطبه وايي، ځکه چې له حضرت ابو هريرة ﷺ څخه روايت دی: من قال لصاحبه والإمام يخطب: أنصت فقد لغا، ومن لغا فلا صلاة له. (يعني کوم چا چې د امام د خطبې ويلو په وخت کې خپل ملګري ته وويل: چپ سه!، نو هغه لغو کار وکړی او چا چې لغو کار وکړی، نو د هغه لمونځ نه کيږي)، فکر وکړئ! چې کله د خطبې د اورېدلو ترغيب ورکول هم لغو کار دی، نو د خطبې په وخت کې خبري کول او خطبه نه اورېدل به څومره غټ جرم وي، او همدغه حکم هلته هم دی چې کله امام په خطبه کې پر نبي کريم ﷺ درود ووايي، يعني په دغه وخت کې به هم مقتدي خاموش او چپ وي، ځکه چې د جمعې خطبه اورېدل واجب دي، او په دې وخت کې درود ويل واجب نه دي، لېکن که امام په خطبه کې دا آيت يا أيها الذين آمنوا صلّوا عليه...الخ ووايي نو په دې صورت کې اورېدونکي ته پکار دي، چې په زړه کې درود شريف ووايي، ځکه کله چې خطيب دا آيت ووايی نو ګواکي د دې خبري وضاحت يې وکړی چې د الله او د هغه فرشتې پر نبي ﷺ درود وايي، او په خپله يې زه هم وايم، لهذا تاسو يې هم ووايئ. دا حکم په هغه وخت کې دی چې کله اورېدونکی د منبر سره نژدې وي، او د خطبې اواز اوري، لېکن که يو سړی له منبر څخه ليرې وي او تر هغه پورې د خطبې اواز نه رسيږي، نو آيا د هغه لپاره چپ پاتې کېدل افضله دي که قرآن ويل؟ په دې لړ کې د محمد بن سلمة ﷺ رايه دا ده چې چپ پاتې کېدل غوره دي، همدا د امام کرخي رَحِمَهُ الله او د علامه مرغيناني رَحِمَهُ الله په نېز مختاره دي، ځکه چې د قرآن د قرائت په وخت کې دوه شيان فرض دي: (۱) چپ پاتې کېدل (۲) په غور سره اورېدل، او کله چې د ليرې والي په وجه اورېدل ناممکنه سو، نو د چپ پاتې کېدلو حکم به پاتې وي او چپ اوسېدل به غوره او افضله وي. او د ځينې خلکو رايه دا ده چې قرآن ويل غوره او افضله دي، د امام فضلي رَحِمَهُ الله همدغه رايه ده، دليل دا دی چې د قرآن د قرائت په وخت کې د قرآن د فهمولو لپاره چپ پاتې کېدل فرض دي، لېکن د نه اورېدلو په وجه چې کله د قرآن فهمول او فکر پکښې کول پاتې سو، نو لمونځ ګزاره ته پکار دي چې خالي نه کښېني، بلکې قرآن دې وايي چې نور ثواب تر لاسه کړي. (عنايه ج:۱، ص: ۳۵۲)



# بَابُ الْإِمَامَةِ

## (دا) باب د امامت (د احکامو په بیان کي) دی

**تشریح**: تر دې مخکي صاحب د کتاب د امام افعال هم ذکر کړل، یعني د جهر او اخفاء وجوب، او د قرائت متعین کول، همداسي یې د مقتدي افعال هم ذکر کړل یعني د استماع او انصات وجوب، اوس له دې ځایه امامت او د امامت د حقدارہ احکام او مسائل بیانوي، چي په ښه توګه دا ښکاره سي چي د لمانځه ورکولو لپاره څرنګه سړی پکار دی.

### د جماعت شرعي حیثیت

**اَلْجَمَاعَةُ سُنَّةٌ مُؤَكَّدَةٌ** جماعت سنت مؤکده دی **لِقَوْلِهِ**[•] ﷺ ځکه نبي ﷺ فرمایلي دي **اَلْجَمَاعَةُ مِنْ سُنَنِ الْهُدٰى** جماعت له سننِ هُدیٰ ځخه دی **لَا يَتَخَلَّفُ عَنْهَا إِلَّا الْمُنَافِقُ** له دې څخه به صرف منافق شاته پاتېږي.

**اللغات**: ﴿سُنَن﴾ جمع ده، واحد یې سُنَّةٌ دی: طریقه، په دین کي د یو شي را نقل سوې طریقه. ﴿الْهُدٰى﴾ هغه سنت چي عمل پر کول د هدایت لامل وي او پرېښوول یې د ګمراهۍ لامل وي، ﴿يَتَخَلَّفُ﴾ د تفعل د باب مضارع صیغه ده: شاته پاته کېدل.

**تشریح**: **صورت د مسئلې**: دا دی چي په جماعت سره لمونځ کول سنت مؤکده دي، او د چا په زړه کي چي یو ذره اسلام هم وي نو هغه به د جماعت پابندي کوي، او له جماعت څخه به نه شاته کیږي، ځکه چي له جماعت څخه شاته کېدل د منافقانو کار دی، نبي ﷺ جماعت له سننِ هدیٰ څخه ګرځولی دی، نو یاد لره! چي هر هغه سنت چي په هغه باندي عمل کول د هدایت سبب او د خلاصون ذریعه وي او د هغه پرېښوول د ګمراهۍ او ذلالت لامل وي هغه سنت، سنتِ هدیٰ دی، او په اصطلاح کي د سنت دوه قسمه دي: ① سنتِ هدیٰ ② سنتِ زائده؛

① سنتِ هدیٰ هغه سنت دی چي نبي ﷺ د عبادت په طریقه په پابندي سره اداء کړی وي.

② او سنتِ زائده هغه سنت دی چي نبي ﷺ د عادت په توګه په پابندي سره اداء کړی وي خو کله کله یې پرېښی هم وي.

د جماعت تأکید په ډېرو حدیثونو کي راغلی دی، لکه څرنګه چي په یو حدیث کي ذکر سوي دي چي د جماعت لمونځ له یوازي لمانځه څخه اوویشت (۲۷) درجې زیات فضیلت لري، په ابن ماجه کي راغلي دي: من سمع النداء فلم یأته لا صلاة له إلا من عذر. (یعني کوم سړی چي اذان واوري بیا هم مسجد ته رانه سي نو د هغه لمونځ نه کیږي، مګر دا چي یو عذر ولري)، او د جماعت د پرېښوونکي لپاره ډېر وعیدونه راغلي دي، لکه څرنګه چي په صحیحین او نورو کي ذکر سوي دي: لقد هممت أن آمر بالمؤذن فيؤذن، ثم آمر رجلاً فيصلي بالناس ثم أنطلق معي برجال معهم حزم الحطب إلى قوم يتخلفون عن الصلاة فأحرق عليهم بيوتهم بالنار. (د حدیث مفهوم دا دی چي زړه مي غواړي چي په یو مؤذن اذان

---

• أخرجه مسلم في كتاب المساجد، باب صلاة الجماعة، حديث رقم: ۲۵۶.

وکرم او په يو سري خلګو ته لمونځ ورکرم او بيا داسي ډېر خلک د ځان سره روان کرم چې د هغو سره لرګي (بوټي) وي او د کورو وطرف ته مخ کرم او د هغو خلګو و کورو ته اُور ور واچوم کوم چي له لمانځه څخه شاته پاتېږي)؛ په دې حديث سره استدلال په دې معنیٰ دی چي په دې کي لا يتخلفون عن الصلاة څخه د لمانځه پرېښوونکي مراد نه دی، بلکي د جماعت پرېښوونکي مراد دي، ځکه چي د لمانځه د پرېښوونکو وعيد له دې څخه هم زيات دی. (عنايه، فتح القدير)

## د امامت د منصب زيات حقداره څوک دی؟

وَأَوْلَى النَّاسِ بِالْإِمَامَةِ أَعْلَمُهُمْ بِالسُّنَّةِ او په خلګو کي د امامت تر ټولو زيات حقداره هغه څوک دی چي په سنتو زيات عالم (خبر) وي وَعَنْ أَبِي يُوسُفَ• رَحِمَهُ اللهُ او له امام ابو يوسف رَحِمَهُ الله څخه روايت دی أَقْرَؤُهُمْ (چي د قرائت زيات حقداره هغه دی) چي تر ټولو زيات قاري وي لِأَنَّ الْقِرَاءَةَ لَا بُدَّ مِنْهَا ځکه چي د لمانځه لپاره قرائت ضروري دی وَالْحَاجَةُ إِلَى الْعِلْمِ إِذَا نَابَتْ نَائِبَةٌ او د علم ضرورت هغه وخت پېښېږي چي يوه واقعه پېښه سي وَنَحْنُ نَقُولُ الْقِرَاءَةُ مُفْتَقَرٌ إِلَيْهَا لِرُكْنٍ وَاحِدٍ او موږ وايو چي د قرائت ضرورت د يوه رکن لپاره دی وَالْعِلْمُ لِسَائِرِ الْأَرْكَانِ او د علم ضرورت د ټولو ارکانو لپاره دی.

**اللغات:** ﴿أَوْلَى﴾ زيات حقداره، زيات لائق، ﴿نَابَتْ﴾ د نصر د باب واحده مؤنثه غائبه صيغه ده: پېښېدل، واقع کېدل، ﴿نَائِبَةٌ﴾ پېښه، واقعه، حادثه.

**تشريح: صورت د مسئلي:** دا دی چي د طرفينو رَحِمَهُمَا الله په نيز تر ټولو زيات د امامت حقداره هغه سړی دی چي د مخارجو د صحيح ويلو سره سره په خلګو کي تر ټولو زيات په فقه او شريعت خبر وي، لېکن د امام ابو يوسف رَحِمَهُ الله په نيز د امامت زيات حقداره هغه سړی دی چي هغه تر ټولو زيات قاري وي او تر ټولو ښه قرآن وايي، ځکه چي قرائت د لمانځه يو رکن دی، نو په دې کي چي کوم څوک ډېر مهارت لري هغه به د امامت زيات حقداره وي، او د "علم او فقهي" ضرورت هغه وخت پېښېږي، چي کله د لمانځه يو فاسدونکی شی (مفسدِ صلاة) مخ ته راسي، او په علمه توګه قاريان حضرات دومره علم لري چي په هغه سره د مفسدِ صلاة اصلاح وکړی سي، نو ځکه به د أعلم بالسنة په مقابله کي أقرأ بالقرآن ته د مخکي کېدلو زيات حق حاصل وي.

**د طرفينو دليل:** او د امام د ابو يوسف رَحِمَهُ الله د دليل جواب دا دی چي د قرائت ضرورت صرف د يو رکن په وجه سره دی، او د علم ضرورت د ټولو ارکانو لپاره دی، او تر فکر کولو وروسته معلومېږي چي د قرائت لپاره هم د علم ضرورت سته، نو ځکه به د علم ضرورت د قرائت له ضرورت څخه عام او تام (پوره) وي، او أعلم بالسنة به پر أقرأ بالقرآن مخکي او لوړ وي، او د دې خبري تائيد په هغه حديث سره هم کېږي چي د هغه تخريج حاکم داسي کړی دی: يؤم القوم أقدمهم هجرة، فإن كانوا في الهجرة سواء فأفقههم في الدين، فإن كانوا في الفقه سواء فأقرؤهم للقرآن، په دې حديث سره استدلال په دې توګه کېږي چي په دې کي أفقه تر أقرأ مخکي سوي دي، نو ځکه موږ هم أفقه پر أقرأ مخکي کړی.

---

• القول الراجح: قول الطرفين، كذا في رد المحتار ج:١، ص:٤١٢.

## که په علم کې ټوله خلک برابر وه نو څوک حقداره دی؟

فَإِنْ تَسَاوَوْا بیا که ټوله په علم کې برابر سوه فَأَقْرَؤُهُمْ نو په خلکو کې چې تر ټولو ښه قاري وي (هغه دامامت حقداره دی) لِقَوْلِهِ عَلَيْهِ الصَّلَاةُ وَالسَّلَامُ ● ځکه نبي ﷺ فرمایلي دي يَؤُمُّ الْقَوْمَ أَقْرَؤُهُمْ لِكِتَابِ اللهِ تَعَالَى هغه سړی به د قوم امامت کوي چې تر ټولو زیات د قرآن ښه ویونکی وي فَإِنْ كَانُوا سَوَاءً بیا که (په دې صفت) کې ټوله خلک برابر وه فَأَعْلَمُهُمْ بِالسُّنَّةِ نو هغه سړی (زیات حقداره دی) چې په سنت زیات عالم (خبر) وي وَأَقْرَؤُهُمْ كَانَ أَعْلَمَهُمْ او په صحابه وو کې چې به کوم یو ښه قاري وو هغه به زیات عالم هم وو لِأَنَّهُمْ كَانُوا يَتَلَقَّوْنَهُ بِأَحْكَامِهِ ځکه چې هغوی به قرآن د خپلو احکامو سره زده کوی فَقُدِّمَ فِي الْحَدِيثِ نو ځکه په حدیث کې أقرء (زیات قاري) مخکې کړی سو وَلَا كَذٰلِكَ فِي زَمَانِنَا لیکن زموږ په زمانه کې داسې نه ده فَقَدَّمْنَا الْأَعْلَمَ نو ځکه موږ أعلم (زیات عالم) مخکې کړی.

**اللغات:** ﴿تَسَاوَوْا﴾ د تفاعل د باب ماضي جمع صیغه: یو د بل سره برابریدل، ﴿يَتَلَقَّوْنَ﴾ د تفعیل د باب مضارع صیغه ده: زده کول، حاصلول، تر لاسه کول.

**تشریح:** **مسئله:** دا ده که په اعلم بالسنة کې ټوله حاضرین خلک برابر وه، نو اوس به په دوی کې هغه یو غوره وي چې هغه تر ټولو ښه قاري وي.

**دلیل:** د نبي ﷺ دا قول دی: یؤم القوم اقرأهم لکتاب الله فان کانوا سواء فأعلمهم بالسنة. په دې حدیث سره د استدلال وجه ښکاره ده، لیکن پر دې دوه سواله کیږي.

**اول سوال:** دا چې یؤم القوم د امر په معنیٰ سره دی، او امر د وجوب لپاره راځي، نو مطلب یې دا سو چې کوم ترتیب په حدیث کې ذکر سوی دی، د هغه خیال ساتل به واجب وي، یعني زیات قاري به پر زیات عالم مخکې کول واجب وي، حال دا چې داسې نه ده، بلکې دغه حدیث د ترتیب افضیلیت بیانوي، جواز نه بیانوي. **دویم سوال:** دا دی چې په دې حدیث سره استدلال د مدعیٰ خلاف دی، حال دا چې مدعیٰ د زیات عالم مخکې کول دي، او حدیث دلالت کوي د زیات قاري پر مخکې کولو، نو ځکه دا حدیث په استدلال کې ذکر کول صحیح نه دي.

**د اول سوال جواب:** دا دی چې یؤم القوم د امر په معنیٰ سره نه دی، بلکې دا د إخبار صیغه ده (یعني د خبر ور کولو صیغه ده) یا دا چې یؤم القوم د مشروعیت د بیانولو لپاره دی، او دا معنیٰ یې حقیقت دی، او قاعده دا ده چې تر کومه وخت په حقیقت عمل کول ممکن وي، تر هغه وخته به د مجاز و طرف ته رجوع نه کیږي، نو ځکه به دلته د مجاز و طرف ته رجوع نه کیږي، او دا یؤم القوم به د امر په معنیٰ سره نه وي. **د دویم سوال جواب:** دا دی چې په صحابه وو کې به کوم یو زیات قاري وو هغه به زیات عالم هم وو، ځکه چې په هغه زمانه کې به خلکو قرآن د خپلو احکامو سره زده کوی، لکه څرنګه چې له حضرت عمر ﷺ څخه روایت دی چې هغه په دوولس کاله کې سورت بقره یاده کړه، ښکاره خبره ده چې په دومره ډېر وخت کې به د سورت بقره یادول د خپلو احکامو سره وه، نو د صحابه وو په زمانه کې چې به کوم یو زیات

● أخرجه مسلم في كتاب المساجد، باب من أحق بالامامة، حديث رقم: ۲۹۰.

قاري وو هغه به زيات عالم هم وو، نو ځکه په حديث کي زيات قاري پر زيات عالم مخکي کړی سو. او څرنګه چي زموږ په زمانه کي داسي نه ده، نو ځکه موږ زيات عالم پر زيات قاري مخکي کړی.

## که په علم او قرائت کي ټوله برابر وه نو څوک حقداره دي؟

فَإِنْ تَسَاوَوْا بيا که (په علم او قرائت کي) ټوله برابر سوه فَأَوْرَعُهُمْ نو په خلګو کي تر ټولو تقوا داره (پرهيزګاره) سړی (د امامت حقداره) دی لِقَوْلِهِ عَلَيْهِ الصَّلَاةُ وَالسَّلَامُ ● ځکه نبي ﷺ فرمايلي دي مَنْ صَلَّى خَلْفَ عَالِمٍ تَقِيٍّ کوم سړي چي په تقوا داره عالم پسي لمونځ وکړی فَكَأَنَّمَا صَلَّى خَلْفَ نَبِيٍّ ګواکي هغه په يو نبي پسي لمونځ وکړی.

**اللغات:** ﴿أَوْرَع﴾ زيات پرهيزګار، زيات متقي، ﴿تَقِيّ﴾ متقي، پرهيزګار، ﴿الْوَرَع﴾ الاجتناب عن الشبهات. ﴿التقوى﴾ الاجتناب عن المحرمات.

**تشريح:** په ورع او تقوى کي فرق دا دی چي ورع له شبهاتو (شکمنو شيانو) څخه پرهيز کولو ته ويل کيږي، او تقوى له محرماتو (حرامو شيانو) څخه پرهيز کولو ته ويل کيږي.

**مسئله:** دا ده که ټوله حاضرين خلک په علم او قرائت کي برابر وه، نو بيا به په دوی کي زيات پرهيزګاره غوره وي.

**دليل:** د نبي ﷺ دا قول دی: من صلى خلف عالم تقي فكأنما صلى خلف نبي، د دې حديث په باره کي ملا علي قاري رحمه الله ليکلي دي چي دا حديث موضوعي دي، مولانا ثمير الدين مدظله العالي فرمايي: چي ما د حديثو په ذخيره کي دا بول حديث پيدا نه کړی، ليکن دې ته نژدې حديث مي پيدا کړی چي هغه د مستدرک للحاکم. په دريم جلد، ص: ۲۴۶ کي را نقل سوی دی: قال: قال رسول الله ﷺ إن سركم أن تقبل صلوتكم فليؤمكم خياركم فانهم وفدكم فيما بينكم وبين ربكم عز وجل، د حديث مفهوم دا دی (که تاسو غواړئ چي ستاسو لمونځونه قبول سي نو په تاسو کي دي نېک او ښه سړی ستاسو امامت وکړي).

## که په علم، قرائت، او تقوىٰ کي ټوله برابر وه نو څوک د امامت حقداره دي؟

فَإِنْ تَسَاوَوْا بيا که (په علم، قرائت او تقوا کي) ټوله خلک برابر سوه فَأَسَنُّهُمْ نو په دوی کي له ټولو څخه د زيات عمر والا سړی (د امامت زيات حقداره) دی لِقَوْلِهِ عَلَيْهِ الصَّلَاةُ وَالسَّلَامُ ● لِابْنَيْ أَبِي مُلَيْكَةَ ځکه نبي ﷺ د ابو مليکه دوو زامنو ته فرمايلي وو وَلْيَؤُمَّكُمَا أَكْبَرُكُمَا سِنًّا په تاسو دواړو کي دي هغه امامت کوي چي په عمر کي غټ وي وَلِأَنَّ فِي تَقْدِيمِهِ تَكْثِيرَ الْجَمَاعَةِ او په دې وجه هم چي د غټ عمره سړي په مخته کولو سره جماعت زياتيږي.

**اللغات:** ﴿أَسَنّ﴾ د اسم تفضيل صيغه ده: زيات عمر والا.

**تشريح: مسئله:** دا ده چي که په مذکوره شيانو کي ټوله خلک برابر سوه، نو په حاضرينو کي به هغه يو تر ټولو زيات غوره وي چي د زيات عمر والا وي. **نقلي دليل:** د نبي ﷺ دا قول دی د ابو مليکه و دوو زامنو ته: وليؤمكما أكبركما. **عقلي دليل:** دا دی چي د مشر سړي په مخکي کولو د جماعت ډېرښت راځي، او مخکي تېر سوي دي چي د جماعت ډېرښت د

---

● أخرجه البيهقي في سننه في كتاب الصلوٰة، باب اجعلوا ائمتكم خياركم، حديث رقم: ۵۱۳۲.

● أخرجه البيهقي في سننه في كتاب الصلوٰة، باب اذا استووا في الفقه والقراءة، حديث رقم: ۵۲۹۳.

الله تعالیٰ زيات خوښ دی، په حديث کي راځي: من لم يوقر کبيرنا فليس منا، (چا چي د مشر سړي احترام نه وکړی هغه زموږ څخه نه دی)، نو کله چي خلک مشر او د زيات عمر والا انسان خپل امام جوړ کړي، نو دا د هغه لپاره ښه احترام دی.

صاحب د هدايې رَحِمَهُ الله دا نه دي ذکر کړي چي که تو له په عمر کي برابر سوه نو بيا به څوک غوره وي، خو نورو فقهاوو د دې صراحت کړی دی چي که تو له په عمر کي برابر سوه، نو بيا به په تو لو کي غوره هغه يو وي چي اخلاق يې تر ټولو ښه وي، ځکه چي په حديث کي راغلي دي: خياركم أحسنكم أخلاقا، او که په اخلاقو کي تول برابر سوه، نو په هغوی کي چي څوک زيات ښايسته وي، هغه به د امامت لپاره غوره وي. لنډه دا چي تر ټولو زيات د امامت حقدار هغه څوک دی چي هغه په علم، قرائت، نېکي، نسب، اخلاق، ښائست او داسي نورو ټولو شيان کي افضله وي، ځکه چي په دې کي د نبي ﷺ اقتداء ده، او نبي ﷺ خپل تر مرګه پوري امامت وکړی، او په دې ټولو صفتونو کي نبي ﷺ تر ټولو انسانانو مخکي وو.

## د کومو خلکو امامت مکروه دی؟

وَيُكْرَهُ تَقْدِيمُ الْعَبْدِ او د (امامت لپاره) غلام مخته کول مکروه دي لِأَنَّهُ لَا يَتَفَرَّغُ لِلتَّعَلُّمِ ځکه چي هغه د زده کړي لپاره فراغت نه لري وَالْأَعْرَابِيِّ او د صحرايي (مخته کول هم مکروه دي) لِأَنَّ الْغَالِبَ فِيهِمُ الْجَهْلُ ځکه چي په دوی کي جهالت (ناپوهي) زياته وي وَالْفَاسِقِ او د فاسق (مخته کول هم مکروه دي) لِأَنَّهُ لَا يَهْتَمُّ لِأَمْرِ دِينِهِ ځکه چي هغه خپل ديني کار ته خاص ارزښت نه ورکوي (او د دين لپاره هيڅ بندوبست نه کوي) وَالْأَعْمَى او د ړانده سړي لِأَنَّهُ لَا يَتَوَقَّى النَّجَاسَةَ ځکه چي هغه له نجاست (پليتي) څخه نه سي خوندي کېدلی وَوَلَدِ الزِّنَا او د ارموني (حرام زاده) لِأَنَّهُ لَيْسَ لَهُ أَبٌ يُثَقِّفُهُ ځکه چي د هغه پلار نه وي چي شفقت پر وکړي فَيَغْلِبُ عَلَيْهِ الْجَهْلُ نو پر هغه (هم) جهل غالبه وي وَلِأَنَّ فِي تَقْدِيمِ هَؤُلَاءِ تَنْفِيرَ الْجَمَاعَةِ او په دې وجه (هم) چي د دې خلکو په مخته کولو سره د جماعت خلک په نفرت کي اچول دي فَيُكْرَهُ نو ځکه به د دوی مخته کول مکروه وي وَإِنْ تَقَدَّمُوا جَازَ او که دا خلک مخته سي نو جائز دي لِقَوْلِهِ عَلَيْهِ الصَّلَاةُ وَالسَّلَامُ ځکه نبي ﷺ فرمايلي دي صَلُّوا خَلْفَ كُلِّ بَرٍّ وَفَاجِرٍ لمونځ کوئ! د هر نېک او بد سړي تر شا.

**اللغات:** ﴿يَتَفَرَّغُ﴾ د تفعّل د باب مضارع ده: فارغ کېدل، فرصت پيدا کېدل. ﴿يَهْتَمُّ﴾ د افتعال د باب مضارع صيغه ده: اهتمام او بندوبست کول، ارزښت ورکول. ﴿أَعْمَى﴾ ړوند. ﴿يَتَوَقَّى﴾ د تفعيل د باب مضارع صيغه ده: خوندي کېدل، محفوظه کېدل. ﴿تَنْفِيرٌ﴾ د تفعيل د باب مصدر دی: ليري کول، په نفرت کي اچول.

**تشريح:** **صورت د مسئلي:** دا دی چي غلام امام جوړول مکروه دي، ځکه چي امامت يو مهم او لوړ منصب دی، او د امامت لپاره د يو علمي او عملي مهارت ضرورت دی، لېکن غلام ټوله وخت د خپل بادار په خدمت کي وي، د زده کړي لو

● تخريج: أخرجه البيهقي في سننه في كتاب الصلوٰة، خلف من لايحمد فعله، حديث رقم: ٥٣٠٠.

تعلیم لپاره فراغت نه لري، نو ځکه د هغه په اقتداء کې لمونځ کول مکروه دي، لیکن امام شافعي رَحِمَهُ الله فرمايي چې که په يو غلام کې د امامت صفتونه وي نو د هغه امام جوړول صحيح دي، او هيڅ کراهت پکښې نشته، ځکه نبي ﷺ فرمايلي دي: اسمعوا و أطيعوا ولو أمر عليكم عبد حبشي. (يعني که حبشي غلام هم ستاسو امير جوړ کړی سي نو هم تاسو د هغه اطاعت او فرمان برداري کوئ).

جواب: زموږ له طرفه د امام شافعي رَحِمَهُ الله د حديث اول جواب دا دی چې په دې حديث کې د امارت او خلافت بيان دی، يعني که يو مسلمان د مسلمانانو خلفيه جوړ کړی سي، نو پر مسلمانانو د هغه اطاعت ضروري دی، نو په دې حديث سره د امامت لپاره دليل نيول صحيح نه دي. دويم جواب: دا دی چې د غلام په مخته کولو کې د جماعت د کمښت انديښنه ده، ځکه چې د هغه پر مخکې والي به ډېر خلک اعتراض کوي، او خپل لمونځونه به جلا کوي، حال دا چې په شريعت کې د جماعت ډېرښت مطلوب دی، نو په دې حواله سره هم د امام جوړول صحيح نه دي.

ولاأعرابي الخ فرمايي چې د صحرايي امام جوړول صحيح نه دي، ځکه چې په هغه کې هم ناپوهي غالبه وي، او د صحراء اوسېدونکو ته د ديني احکامو هيڅ فکر نه وي، او د امامت لپاره په احکامو او مسائلو پوره خبرتيا ضروري ده، نو د جهل د غلبې په سبب د صحرايي امامت هم مکروه دی.

والفاسق الخ همدارنګه د فاسق امامت مکزوه دی، ځکه چې هغه د خپل دين او د خپل ايمان هيڅ لحاظ نه کوي، او ديني کارونو ته خاص اهميت نه ورکوي، او د شريعت په خلاف کارونو کې په بې فکري سره بوخت وي.

والأعلى الخ فرمايي چې د ړانده سړي امامت هم مکروه دی، ځکه چې د امامت لپاره د طهارت صفت ډېر ضروري دی، او ړوند سړی له نجاستونو څخه ځان نه سي خوندي کولای، نو په دې حواله سره د هغه امامت مکروه دی.

وولد الزنا الخ همدارنګه د ارموني امامت هم مکروه دی، ځکه چې د هغه پلار نه وي، او نه د هغه د پالني، تعليم او ساتني يو بندوبست کيږي، نو ځکه په هغه کې جهالت غالبه وي، نو څرنګه چې د جهالت په وجه د صحرايي امامت مکروه دی، همدارنګه د ولد زنا امامت هم مکروه دی، او بل دا چې د پورتني خلکو په مخته کولو کې خلک نفرت او عار محسوسوي، او ډېر ځله خو د ډېري غتې فتنې سبب جوړيږي، نو د دې خلکو په امام نه جوړولو کې عافيت او راحت دی، ليکن که بيا هم د امامت لپاره دا خلک مخته کړی سي، نو امامت يې په هر حال جائز دی، ځکه چې د نبي ﷺ فرمان دی: صلوا خلف كل بر وفاجر (يعني د هر نېک او بد تر شا لمونځ کوئ!)، او ښکاره ده چې له اعرابي، فاسق او ولدِ زنا څخه به هر يو يا خو بد وي يا خو به فاجر وي، نو هر څه چې وي خو په اقتداء کې يې لمونځ جائز دی.

## د امام لپاره د کومو خبرو خيال ساتل پکار دي؟

**وَلَا يُطَوِّلُ الْإِمَامُ بِهِمُ الصَّلَاةَ** او امام به پر خلکو لمونځ نه اوږدوي لِقَوْلِهِ عَلَيْهِ الصَّلَاةُ وَالسَّلَامُ ● ځکه نبي ﷺ فرمايلي دي مَنْ أَمَّ قَوْمًا کوم سړی چې خلکو ته امامت ورکوي فَلْيُصَلِّ بِهِمْ صَلَاةَ أَضْعَفِهِمْ نو هغوی ته دې د هغوی د ضعيف سړي مطابق لمونځ ورکوي فَإِنَّ فِيهِمَا الْمَرِيضَ وَالْكَبِيرَ وَذَا الْحَاجَةِ ځکه چې په لمونځ کونکو کې ناروغه، سپين ږيري او ضرورت مند (هر ډول خلک) وي.

● أخرجه البخاري في كتاب الاذان، باب إذا صلى لنفسه، حديث رقم:۷۰۳.

**تشريح**: **مسئله**: دا ده چي امام به خلګو ته اوږد لمونځ نه ورکوي، دليل دا دی چي نبي ﷺ فرمايلي دي: څوک چي قوم ته لمونځ ورکوي، نو د هغوی د کمزوي سړي مطابق دي لمونځ ورکوي ځکه چي په مقتديانو کي ناروغه خلګ هم وي، سپين ږيري او حاجتمن هم وي، او د دې دليل د حضرت معاذ رضی الله عنه حديث هم دی، ځکه چي معاذ رضی الله عنه خپل قوم ته اوږده لمونځونه ورکول، نو د قوم خلګو نبي ﷺ ته شکايت وکړی، نبي ﷺ وفرمايل: أفتان أنت يا معاذ. دا حديث مخکي تېر سو، او دا خبره په صحيح سند سره ثابته ده چي يو وار نبي ﷺ د سهار په لمانځه کي قل اعوذ برب الفلق او قل اعوذ برب الناس ووېل، کله چي نبي ﷺ له لمانځه څخه فارغ سو، نو صحابه وو عرض وکړی، اې د الله رسوله! تاسو لمونځ ډېر مختصره وکړی، نبي ﷺ وفرمايل: د کوچني د ژړا په وجه ما ته دا ېږه سوه چي د دې مور په فتنه کي ونه لوېږي، له دې واقعې څخه معلومېږي چي د امام لپاره د خپل قوم د حال خيال ساتل مناسب دي.

## د ښځو د جماعت حکم

وَيُكْرَهُ لِلنِّسَاءِ او مکروه دي د ښځو لپاره أَنْ يُصَلِّيْنَ وَحْدَهُنَّ الْجَمَاعَةَ چي يوازي په جماعت سره لمونځ وکړي لِأَنَّهَا لَا تَخْلُوْ عَنْ اِرْتِكَابِ مُحَرَّمٍ ځکه چي دا به د يو حرام کار له کولو څخه خالي نه وي وَهُوَ قِيَامُ الْإِمَامِ وَسَطَ الصَّفِّ او هغه (حرام کار) دربدل د امام دي په مينځ د صف کي فَيُكْرَهُ كَالْعُرَاةِ نو د لڅو خلګو په ډول به د دوی جماعت هم مکروه وي وَإِنْ فَعَلْنَ قَامَتِ الْإِمَامُ وَسَطَهُنَّ او که (بيا هم) ښځو جماعت کوی نو امام به د دوی په مينځ کي درېږي لِأَنَّ عَائِشَةَ رَضِيَ اللهُ عَنْهَا فَعَلَتْ● كَذٰلِكَ ځکه حضرت عائشې رضي الله عنها همداسي کړي وو وَحُمِلَ فِعْلُهَا الْجَمَاعَةَ عَلٰى ابْتِدَاءِ الْإِسْلَامِ لېکن د حضرت عائشې رضي الله عنها دا کار (يعني امامت ورکول) به د اسلام پر شروع حمل کېږي وَلِأَنَّ فِي التَّقَدُّمِ زِيَادَةَ الْكَشْفِ او په دې وجه (هم) چي (د ښځي) په مخته کولو کي د عورت لڅېدل زيات دي.

**اللغات**: ﴿تخلو﴾ د نصر باب ماضي صيغه ده: خالي کېدل. ﴿ارتكاب﴾ د افتعال د باب مصدر دی: عمل کول. په ګناه کي مبتلا کېدل، يو کار په خپله کول. ﴿عراة﴾ جمع ده، واحد يې عاري دی: لڅ. برېنډ. ﴿كشف﴾ لڅېدل. ښکاره کېدل پرده ليري کېدل.

**تشريح**: **مسئله**: دا ده چي د ښځو جلا او ځان ته جماعت کول مکروه تحريمي دي، ځکه چي د ښځو جماعت کول د حرام (مکروه) فعل څخه خالي نه وي، ځکه چي د ښځو امامه به يا له ښځو څخه مخکي ولاړه وي، يا به د دوی په مينځ کي ولاړه وي، په اول صورت کي د عورت ښکاره کېدل زيات راځي، حال دا چي دا مکروه دي. او په دويم صورت کي امامي خپل ځای پرېښوول راځي، حال دا چي دا هم مکروه دی، او جماعت سنت دی. او قاعده دا ده چي د مکروه کار کولو په نسبت د سنت پرېښوول غوره دي، نو ځکه د ښځو په حق کي د جماعت سنت پرېښوول سوی دی. او د ښځو حالت د لڅو (برېنډو) خلګو حالت په ډول دی، يعني لکه څرنګه چي د لڅو جماعت مکروه دی، همدغه رنګه د ښځو جماعت هم مکره دی.

---

● أخرجه بيهقي في السنن في كتاب الصلوٰة، باب المرأة تؤم النساء، حديث رقم: ٥٣٥٥.

فإن فعلن الخ صاحب د قدوري رَحِمَهُ الله فرمايي چې که ښځو سره د دې تحريمي کراهته د جماعت لمونځ بيا هم کول خوښتله، نو امامه به د دوی په مينځ کې درېږي، ځکه چې حضرت عائشې رَضِيَ اللهُ عَنْهَا همداسې کړي وو.

**سوال:** د لته يو سوال کيږي چې کله چې حضرت عائشې رَضِيَ اللهُ عَنْهَا په جماعت لمونځ کړی دی نو بيا دا مکروه تحريمي ولې دی؟

**جواب:** دا دی چې د حضرت عائشې رَحِمَهُ الله دا فعل د اسلام پر ابتداء او شروع باندې حمل سوی دی، يعني حضرت عائشې رَحِمَهُ الله ښځو ته امامت د اسلام په اول وخت کې ورکړی وو.

**سوال:** خو پر دې جواب هم اعتراض کيږي چې تر نبوت وروسته نبي ﷺ ديارلس کاله په مکه شريف کې تېر کړل، او بيا يې په مدينه منوره کې د حضرت عائشې رَضِيَ اللهُ عَنْهَا سره د شپږو کالو په عمر کې نکاح وکړه، بيا چې کله حضرت عائشه د نهو(۹) کالو سوه، نو واده يې ور سره وکړی، او د نبي ﷺ په ژوند کې نهه کاله پاته سو، او د حضرت عائشې رَضِيَ اللهُ عَنْهَا د امامت واقعه تر بلوغت وروسته واقع سوې ده، نو په دې صورت کې به دا فعل څرنګه د اسلام پر ابتداء حمل کيږي.

**جواب:** دا دی چې د اسلام پر ابتداء باندې له حمل کولو څخه مراد دا دی چې د ښځو جماعت حکم منسوخ دی، يعني حضرت عائشې رَضِيَ اللهُ عَنْهَا خو وکړی ليکن اوس دا حکم منسوخ سوی دی، او په دې زمانه کې د ښځو لپاره په کورونو کې لمونځ کول زيات غوره دي.

## که مقتدي يو وي نو څه حکم دی؟

وَمَنْ صَلَّى مَعَ وَاحِدٍ او څوک چې د يوه سړي سره لمونځ کوي أَقَامَهُ عَنْ يَمِينِهِ نو هغه دې خپل راسته طرف ته ودروي لِحَدِيثِ ابْنِ عَبَّاسٍ رَضِيَ اللهُ عَنْهُمَا د حضرت ابن عباس رضي الله عنه د حديث په وجه فَإِنَّهُ عَلَيْهِ الصَّلَاةُ وَالسَّلَامُ • صَلَّى بِهِ ځکه چې نبي ﷺ هغه ته لمونځ ورکړی وَأَقَامَهُ عَنْ يَمِينِهِ او هغه يې خپل راسته طرف ته ودروی وَلَا يَتَأَخَّرُ عَنِ الْإِمَامِ او دا (يوازي) مقتدي به له امام څخه نه شاته کيږي وَعَنْ مُحَمَّدٍ رَحِمَهُ اللهُ • أَنَّهُ يَضَعُ أَصَابِعَهُ عِنْدَ عَقِبِ الْإِمَامِ او له امام محمد رَحِمَهُ الله څخه روايت دی چې دا (يوازي) مقتدي به خپل (د پښې) ګوتې د امام د پوندې سره برابروي وَالْأَوَّلُ هُوَ الظَّاهِرُ ليکن اول قول ښکاره دی فَإِنْ صَلَّى خَلْفَهُ أَوْ فِي يَسَارِهِ او که دې يوه سړي د امام شاته يا د هغه وچپه طرف ته لمونځ وکړی جَازَ نو جائز دی وَهُوَ مُسِيءٌ ليکن دی به ګنهګاره وي لِأَنَّهُ خَالَفَ السُّنَّةَ ځکه چې ده د سنتو مخالفت وکړی.

**اللغات:** ﴿أَصابع﴾ جمع ده، واحد يې: إِصْبَعْ دی: ګوته، ﴿عَقِب﴾ پونده، جمع يې: أَعْقَاب راځي، ﴿مُسِيءٌ﴾ د افعال د باب اسم فاعل دی: ګنهګاره (ګناهکاره)، مجرم، بد کار کونکی.

---

• أخرجه البخاري في كتاب العلم، باب السمر في العلم، حديث رقم: ۱۱۸ ومسلم في كتاب للمسافرين، حديث رقم: ۱۸۱.

• القول الراجح: قول الاول، أي ومن صلى مع واحد أقامه عن يمينه كما رجحه في الهداية بقوله: والاول، هو الظاهر، كذا في رد المحتار ج:۱، ص:۴۱۹. [القول الراجح، ج:۱، ص:۸۸]

**تشریح: صورت د مسئلې:** دا دی که د امام سره صرف یو مقتدي وي، نو په دې صورت کې سنت طریقه دا ده چې هغه یوازې مقتدی دې د امام راسته طرف ته ودرېږي. دلیل دا ابن عباس ﷺ حدیث دی، پوره حدیث داسې دی:

بِتُّ عِنْدَ خَالَتِي مَيْمُونَةَ لِأُرَاقِبَ صَلَاةَ النَّبِيِّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ بِاللَّيْلِ، فَانْتَبَهَ فَقَالَ: نَامَتِ الْعُيُونُ وَغَارَتِ النُّجُومُ وَبَقِيَ الْحَيُّ الْقَيُّومُ، ثُمَّ قَرَأَ آخِرَ سُورَةِ آلِ عِمْرَانَ: إِنَّ فِي خَلْقِ السَّمَاوَاتِ وَالْأَرْضِ وَاخْتِلَافِ اللَّيْلِ وَالنَّهَارِ [آل عمران:١٩٠] إِلَى آخِرِهَا، ثُمَّ قَامَ إِلَى شَنٍّ مُعَلَّقٍ فَتَوَضَّأَ وَافْتَتَحَ. فَقُمْتُ وَتَوَضَّأْتُ وَوَقَفْتُ عَلَى يَسَارِهِ. فَأَخَذَ بِأُذُنِي وَأَدَارَنِي خَلْفَهُ حَتَّى أَقَامَنِي عَنْ يَمِينِهِ. (متفق عليه)

(ابن عباس فرمايي: چې ما د خپلې خاله میمونې رَضِيَ اللهُ عَنْهَا په کور کې شپه تېره کړه، چې د نبي ﷺ د شپې لمونځ وګورم، نو نبي ﷺ را پورته سو، او وېې فرمایل: ستر ګې بیدې سوې، او ستوري پټ سول، او حی او قیوم ذات پاته دی، بیا نبي ﷺ د سورت آل عمران آخري آیتونه یعني له إِنَّ فِي خَلْقِ السَّمٰوٰتِ وَالْأَرْضِ وَاخْتِلَافِ اللَّيْلِ وَالنَّهَارِ لَآيٰتٍ لِّأُولِي الْأَلْبَابِ څخه د سورت تر آخره پوري وویل، بیا نبي ﷺ له یو را ځړول سوي ژي څخه اوبه را وخیستلې، اودس یې وکړی، او لمونځ یې شروع کړی، نو زه هم را پورته سوم، اودس مې وکړی، او د نبي ﷺ چپه طرف ته ودرېدم، لېکن نبي ﷺ زه تر غوږ ونیولم، د خپلې شا پر طرف یې را وګرځولم او راسته طرف ته یې ودرولم). له دې حدیث څخه معلومه سوه چې که د امام سره یو مقتدی وي نو هغه راسته طرف ته درول غوره دي.

وعن محمد الخ او له امام محمد رَحِمَهُ الله څخه را نقل سوي دي که د امام سره یو مقتدی وي نو د امام سره دې بالکل برابر نه درېږي، بلکې د امام شاته دې درېږي، او د خپلې پښې ګوتې دې د امام د پوندې سره برابروي، د دې لپاره چې نه په پوره توګه شاته کېدل ثابت سي او نه په پوره توګه محاذاة او برابري ثابته سي، لېکن صاحب د هدایې فرمایي چې اول قول ښکاره دی (یعني چې د امام سره به برابر درېږي) ځکه چې هغه د ابن عباس ﷺ په حدیث سره ثابت دي، او په حدیث کې مطلق د راسته طرف ذکر سته، د شاته او مخته هیڅ تصریح سوې نه ده.

## که مقتدیان دوه وي نو څه حکم دی؟

وَإِنْ أَمَّ اثْنَيْنِ او که یوه سړي د دوو خلکو امامت کوی تَقَدَّمَ عَلَيْهِمَا نو هغه به تر دوی مخکې کېږي وَعَنْ أَبِي يُوسُفَ رَحِمَهُ اللهُ ● يَتَوَسَّطُهُمَا او له امام ابو یوسف رَحِمَهُ الله څخه روایت دی چې هغه به د دوی په مېنځ کې درېږي وَنُقِلَ ذٰلِكَ عَنْ عَبْدِ اللهِ بْنِ مَسْعُودٍ رَضِيَ اللهُ عَنْهُ ● او همدغه له حضرت عبد الله بن مسعود رَضِيَ اللهُ عَنْه څخه را نقل سوي دي وَلَنَا أَنَّهُ عَلَيْهِ الصَّلَاةُ وَالسَّلَامُ ● تَقَدَّمَ عَلَى أَنَسٍ وَالْيَتِيمِ حِينَ صَلَّى بِهِمَا او زموږ دلیل دا دی ﷺ چې کله نبي ﷺ حضرت انس ﷺ او (د هغه ورور) حضرت یتیم ﷺ ته لمونځ ورکوی نو له دوی څخه مخکې سو فَهٰذَا لِلْأَفْضَلِيَّةِ نو دا د افضلیت (غوره والي) دلیل دی وَالْأَثَرُ دَلِيلُ الْإِبَاحَةِ او (د ابن مسعود ﷺ) اثر د روایت دلیل دی.

---

● القول الراجح: قول الجمهور، كذا في رد المحتار ج:١، ص:٣٢٠. [القول الراج، ج:١، ص: ٨٩]

● أخرجه مسلم في كتاب المساجد، باب الندب الى وضع الايدى، حديث رقم: ٢٨.

● أخرجه مسلم في كتاب المساجد، باب جواز الجماعة في النافلة، حديث رقم: ٢٦٦.

**اللغات:** ﴿يُكْرَهُ﴾ د تفعيل د باب مضارع صيغه ده: په مينځ کي راتلل، په مينځ کي کېدل. ﴿يَتِيمٌ﴾ هلک، کم عمره کوچنی، يتيم د حضرت انس ﷺ پلرنی ورور وو(يعني په پلار ور سره شريک وه)، او نوم يې عمير وو، او د حديثو په کتابونو کي د ده نوم: ضميرة بن سعد الحميری المدنی هم ذکر سوی دی، والله اعلم. (عنايه ج:۱، ص:۳۶۷)

**تشريح: مسئله:** دا ده که دوه مقتديان وه، نو په دې صورت کي زموږ په نېز د امام مخته کېدل سنت او غوره دي، لېکن که امام په مينځ کي ودرېږي، نو هم جائز دي، هيڅ حرج پکښې نسته، امام ابو يوسف رَحِمَهُ الله هم دا خبره کوي، او په ...يه کي له حضرت ابن مسعود رَضِيَ اللهُ عَنْهُمَا څخه هم دغه را نقل سوي دي چي حضرت ابن مسعود رَضِيَ اللهُ عَنْهُمَا حضرت علقمه ﷺ او حضرت اسود ﷺ ته لمونځ ورکوی نو د دوی په مينځ کي ودرېدی لومونځ يې ورکړی، نو د دې اثر په وجه سره په مينځ کي درېدل مباح دي، لېکن غوره او سنت دا ده چي که مقتديان دوه وي نو امام دي له دوی څخه مخکي سي، لکه څرنګه چي حضرت انس ﷺ فرمايي: صففت أنا واليتيم وراءه والعجوز من ورائنا فصلّى لنا رسول الله ﷺ ركعتين ...الخ (يعني زه او زما وروړ يتيم د نبي ﷺ شا ته صف جوړ کړی او سپين سرې انا زموږ شا ته ولاړه وه)؛ له دې څخه معلومه سوه چي که مقتديان دوه وي نو د دوی لپاره د امام شاته درېدل سنت دي.

**راجح قول:** په پورتنی مسئله کي راجح قول د جمهورو دی، يعني که مقتديان دوه وي، نو د امام شاته به درېږي، وقال في الهندية: وإذا كان معه اثنان قاما خلفه (هندية ج:۱، ص:۸۸). [القول الراجح ج:۱، ص:۹۰]

## د نارينه ؤ لپاره د ښځو او کوچنيانو د اقتداء حکم

وَلَا يَجُوزُ لِلرِّجَالِ او د خلکو لپاره جائز نه دي أَنْ يَقْتَدُوا بِامْرَأَةٍ وَصَبِيٍّ چي په ښځي او کوچني پسي اقتداء وکړي أَمَّا الْمَرْأَةُ فَلِقَوْلِهِ عَلَيْهِ الصَّلَاةُ وَالسَّلَامُ● هر چي ښځه ده نو په دې وجه چي نبي ﷺ فرمايلي دي أَخِّرُوهُنَّ مِنْ حَيْثُ أَخَّرَهُنَّ اللهُ وروسته کړئ ښځي څرنګه چي الله تعالیٰ وروسته کړي دي فَلَا يَجُوزُ تَقْدِيمُهَا نو ځکه د هغوی مخته کول جائز نه دي وَأَمَّا الصَّبِيُّ فَلِأَنَّهُ مُتَنَفِّلٌ او هر چي کوچنی دی نو په دې وجه(د هغه امامت صحيح نه دی) چي هغه نفل کونکی دی فَلَا يَجُوزُ اقْتِدَاءُ الْمُفْتَرِضِ بِهِ نو د فرض کونکي اقتداء په نفل کونکي پسي جائز نه ده وَفِي التَّرَاوِيحِ وَالسُّنَنِ الْمُطْلَقَةِ جَوَّزَهُ مَشَايِخُ بَلْخٍ او په تراويحو او مطلق سنتو کي د بلخ مشايخو د کوچني اقتداء جائز ګرځولې ده وَلَمْ يُجَوِّزْهُ مَشَايِخُنَا رَحِمَهُمُ اللهُ لېکن زموږ مشايخ يې جائز نه ګڼي وَمِنْهُمْ مَنْ حَقَّقَ الْخِلَافَ فِي النَّفْلِ الْمُطْلَقِ بَيْنَ أَبِي يُوسُفَ وَمُحَمَّدٍ● رَحِمَهُمَا اللهُ او له مشايخو څخه بعضو په مطلق نفلو کي د صاحبينو رَحِمَهُمَا الله په مينځ کي اختلاف متحقق(ثابت) کړی دی وَالْمُخْتَارُ أَنَّهُ لَا يَجُوزُ فِي الصَّلَوَاتِ كُلِّهَا او غوره مذهب دا دی چي په ټولو لمونځونو کي د کوچني اقتداء جائز نه ده لِأَنَّ نَفْلَ الصَّبِيِّ دُونَ نَفْلِ الْبَالِغِ ځکه د کوچني نفل(هم) د بالغ تر نفلو کمزوري دي حَيْثُ لَا يَلْزَمُهُ الْقَضَاءُ بِالْإِفْسَادِ بِالْإِجْمَاعِ ځکه چي د کوچني لپاره په نفل فاسدولو سره پر کوچني بالاجماع قضاء(راوړل) نه

---

● أخرجه مسلم هذا الحديث في معناه في كتاب الصلاة، باب تسوية الصفوف و اقامتها، حديث رقم:۱۳۲.

● القول الراجح: قول أبي يوسف، كذا في الدرالمختار ج:۱، ص:۴۲۷. [القول الراجح، ج:۱، ص: ۹۰]

لازمیږي وَلَا یَبْنِی الْقَوِیُّ عَلَی الضَّعِیفِ او د قوي بناء پر کمزوري نه کیږي بِخِلَافِ الْمَظْنُونِ په خلاف د ګومان کونکي د لمانځه(بله معنی یې داسې هم کیږي: په خلاف د هغه لمانځه چي ګومان پکښې سوی وي، یا د ګومان په وجه پر ځان لازم کړی سوی وي) لِأَنَّهُ مُجْتَهِدٌ فِیهِ ځکه چي هغه مجتهد فیه دی فَاعْتُبِرَ الْعَارِضُ عَدَمًا نو دا اعتبار وسو چي ګواکي عارض سته نه بِخِلَافِ اقْتِدَاءِ الصَّبِیِّ بِالصَّبِیِّ په خلاف د کوچني د اقتداء په کوچني پسې لِأَنَّ الصَّلَاةَ مُتَّحِدَةٌ ځکه چي د دواړو لمونځ یو(متحد) دی(نو ځکه به د کوچني اقتداء په کوچني پسې صحیح وي).

**اللغات:** ﴿علّق﴾ د تفعیل د باب ماضي صیغه ده: ځړنه کول، ژوره کتنه کول او یو شی په ثابتول. ﴿مظنون﴾ ګمان کړی سوی، شکمن، مشتبه.

**تشریح: مسئله:** دا ده چي د خلکو لپاره په ښځو او کوچنیانو پسې اقتداء کول جائز نه دي، ځکه نبي ﷺ فرمایلي دي: أخروهن من حیث أخرهن الله، په دې حدیث سره استدلال په دې توګه کیږي چي د حیث د لفظ څخه مراد ځای دی، او چي په کوم ځای کي د ښځو وروسته کول واجب دي، هغه د لمانځه له ځای څخه ماسوا بل ځای نه دي، نو ثابته سوه چي الله تعالیٰ ښځې د لمانځه په ځای کي وروسته کړي دي، یعني دا حق یې نه دی ورکړی چي ښځه د خلکو امامت وکړي، او بعضې حضراتو فرمایلي دي چي حیث د تعلیل لپاره دی، نو اوس یې معنیٰ دا سوه چي: "تاسو ښځې وروسته کړئ! ځکه چي الله تعالیٰ دوی وروسته کړي دي"، یعني الله تعالیٰ دوی په شهادت(ګواهي)، وراثت، بادشاهي او په نورو ټولو ملکیتونو کي وروسته کړي دي، نو هر کله چي الله ښځه وروسته کړې ده، نو د هغې مخکي کول یعني امام جوړول به هم جائز نه وي.

و أما الصبي الخ پاته سو د کوچني د امامت خبره، نو د کوچني امامت په دې وجه جائز نه دی چي هغه نفل کونکی دی، (یعني هغه چي هر لمونځ کوي هغه لمونځ نفل ګرځي)، نو د فرض کونکي اقتداء په نفل کونکي پسې جائز نه ده، صاحب د هدایې فرمایي چي په تراویحو او سننِ مطلقه کي اختلاف دی: د بلخ د مشائخو په نېز په تراویحو او سنن مطلقه وو کي د کوچني امام جوړول جائز دي؛ او زموږ د مشائخو یعني د ماوراء النهر د مشائخو په نېز جائز نه دي.

**سنن مطلقه:** له سنن مطلقه څخه مراد سننِ رواتب دي یعني هغه سنت لمونځونه کوم چي تر فرضو مخکي او وروسته مشروع سوي دي، د یوه روایت مطابق د اختر لمونځ هم سنت دی، او د وترو، کسوف، خسوف او استسقاء لمونځونه هم د صاحبینو په نېز سنت دي. لنډه دا چي د بلخ د مشائخو په نېز په تراویحو او سنن مطلقه وو کي د کوچني امام جوړول جائز دي، لېکن زموږ د ماوراء النهر یعني د بخارا او سمرقند د مشائخو په نېز جائز نه دي.

**دلیل:** د بلخ مشائخ دا پر مظنونه لمونځ قیاسوي، مظنونه لمونځ دا دی چي مثلاً یو سړی دا ګومان وکړي چي د هغه پر ذمه یو لمونځ واجب دی، نو په دغه ګومان سره یې لمونځ شروع کړی، بیا د لمانځه په مېنځ کي یو داسې مفسد شی ورپېښ سو چي په هغه سره یې لمونځ فاسد سو، نو اوس د دغه فاسد سوي لمانځه قضاء راوړل واجب دي، که نه؟ نو په دې باره کي د ائمه ثلاثه وو په نېز حکم دا دی چي قضاء یې واجب نه ده، لېکن د امام زفر رَحِمَهُ الله په نېز قضاء واجب ده، همدارنګه که یو بالغ انسان نفلي لمونځ کوی، او په دې مظنونه لمونځ والا پسې یې اقتداء وکړه نو اقتداء او لمونځ یې جائز دي. اوس د بلخ د مشائخو قیاس حاصل دا سو چي نفل په شروع کولو سره واجبیږي، او مظنونه لمونځ په شروع

کولو سره نه واجبیږي، نو کله چي نفل کونکی په دې د مظنونه لمونځ والا سړي پسي اقتداء کولای سي، نو همدارنګه به نفل اداء کونکی هم د کوچني اقتداء کولای سي.

ومنهم من حقق الخ فرمايي چي زموږ په مشائخو کي بعضو د مطلق نفلو په صورت کي د امام ابو یوسف رَحِمَهُ الله او د امام محمد رَحِمَهُ الله په مینځ کي اختلاف بیان کړی دی، یعني امام ابو یوسف رَحِمَهُ الله وايي چي په مطلق نفلو کي هم د بالغ سړي اقتداء کول په کوچني پسي جائز نه ده، او امام محمد رَحِمَهُ الله وايي چي جائز ده، صاحب د هدایې فرمايي: لېکن صحیح دا ده چي په هیڅ یوه لمانځه کي هم د کوچني امامت او اقتداء کول صحیح نه دي، هغه که فرض وي او که نفل، ځکه چي د کوچني لمونځ په هر اعتبار سره د بالغینو له لمانځه څخه کم او کمزوری دی، او پر کمزوري شي د قوي بناء هیڅکله نه سي کېدلای.

بخلاف المظنون الخ له دې ځایه د بلخ د مشائخو جواب ورکوي، د جواب حاصل دا دی چي بالغ سړی چي کومه اقتداء په کوچني پسي کوي دا اقتداء د مظنونه لمونځ والا پر اقتداء قیاسول صحیح نه دي، ځکه چي مظنونه لمونځ مختلف فیه دی، یعني اختلاف پکښي سوی دی، د امام زافر رَحِمَهُ الله په نېز د مظنونه لمونځ د فاسدېدلو په صورت کي پر ظان (ګومان کونکي) باندي قضاء راوړل واجب دي، او د کوچني لمونځ مختلف فیه نه دی، ځکه چي بالاجماع پر هغه قضاء راوړل واجب نه دي، همدارنګه کوچنیتوب (طفولیت) یو داسي امر دی چي تر بالغتوب پوري خامخا پاته کیږي. نو د بالغ لمونځ د هغه د لمانځه سره متحد نه دی، ځکه چي د فاسدولو په صورت کي پر بالغ قضاء واجبیږي. او پر نابالغ قضاء نه واجبیږي، د دې په خلاف مظنونه لمونځ دی، ځکه چي ظن (ګومان) یو عارضي شی دی، او معدوم (نیستي) ګڼل سوی دی، نو که نفل کونکی په مظنونه لمانځه والا پسي اقتداء وکړي نو د دواړو لمونځ متحد دی، په ځانګړي توګه د امام زفر رَحِمَهُ الله په نېز ځکه چي د فساد په صورت کي پر دواړو قضاء واجبیږي.

لنډه دا چي د بالغ او نابالغ لمونځ غیرمتحد دی، او د بالغ او ظان (ګومان کونکي) لمونځ متحد دی. په ځانګړې توګه د امام زفر رَحِمَهُ الله په نېز، نو د دې فرق په وجه اقتداء البالغ بالصبی د ظان پر اقتداء قیاسول قیاس مع الفارق دی. د دې په خلاف که یو نابالغ کوچنی په بل نابالغه پسي اقتداء وکړي نو اقتداء يې جائز ده، ځکه چي د دواړو لمونځونه متحد دي. ځکه چي پر یوه هم قضاء راوړل واجب نه دي، نو دا ګواکي د کمزوري بناء پر کمزوري سوه.

## د صفونو د ترتیب بیان

| وَيَصُفُّ الرِّجَالُ اول به خلک صف جوړوي ثُمَّ الصِّبْيَانُ بیا به کوچنیان (صف جوړوي) ثُمَّ النِّسَاءُ بیا به ښځي (صف جوړوي) لِقَوْلِهِ عَلَيْهِ الصَّلَاةُ وَالسَّلَامُ [1] ځکه د نبي ﷺ فرمان دی لِيَلِيَنِي مِنْكُمْ أُولُو الْأَحْلَامِ وَالنُّهَى په تلسو کي دي بالغ او عقلمن خلک ماته نژدې کیږي وَلِأَنَّ الْمُحَاذَاةَ مُفْسِدَةٌ او په دې وجه هم چي د ښځي (او نر) برابر والی (او نژدې والی) لمونځ فاسدوي فَيُؤَخَّرْنَ نو ځکه به ښځي شاته کیږي. |
|---|

اللغات: ﴿يصف﴾ د نصرد باب مضارع صیغه ده: صف جوړول. ﴿صبيان﴾ کوچنیان. ﴿أولوا الأحلام﴾ د پوهې خاوندان، بالغه خلک، عالمان.

[1] أخرجه مسلم في كتاب الصلوٰة، باب تسوية الصفوف و اقامتها، حديث رقم:١٢٢.

**تشریح:** صورت د مسئلې: دا دی چې د جماعت په لمانځه کې به امام تر ټولو مخکې وي، او تر امام شاته به اول د نارینه وو صف جوړیږي، که څه هم د هغوی صفونه ډېر سي، بیا به د کوچنیانو صف جوړیږي، بیا به د نرښځیانو صف جوړیږي او په آخر کې به د ښځو صف جوړیږي، ځکه چې نبي ﷺ فرمایلي دي: لیلینی منکم...الخ، په دې حدیث سره استدلال په دې توګه دی چې په حدیث کې له الأحلام څخه بالغ او له النهی څخه عقلمن خلګ مراد دي، ځکه چې أحلام جمع د حلم ده، معنیٰ یې ده: ما یراه النائم یعني خوب، لیکن زیاتره وخت د بالفتوب په معنیٰ استعمالیږي، نو ځکه به له دې څخه بالغ خلګ مراد وي، او نُهیٰ جمع د نُهیة ده، معنیٰ یې ده: عقل او پوهې، او ښکاره ده چې عقل لو بالفتوب په خلګو کې وي، نو په دې سره د خلګو د صف مخکې کېدل ثابت سو، او څرنګه چې په نارینه توب کې کوچنیان د خلګو کې تابع دي، نو ځکه به تر خلګو وروسته د کوچنیانو صف جوړیږي، ځکه چې تابع تر متبوع وروسته وي، تر دې وروسته به د نرښځیانو، او په آخر کې به د ښځو صف جوړیږي، ځکه چې د ښځو محاذات لمونځ فاسدوي، نو د لمانځه د حفاظت په سبب به ښځې شاته کېږي.

او د ښځو د شاته کېدلو بل دلیل د حضرت انس ﷺ د أنا حضرت ملیکه رَضِیَ اللہُ عَنْہَا هغه واقعه هم ده چې په هغه کې حضرت ملیکه رَضِیَ اللہُ عَنْہَا د حضرت انس او د حضرت یتیم رَضِیَ اللہُ عَنْہُمَا شاته ولاړه وه، او نبي ﷺ لمونځ ورکوی، حال دا چې حضرت ملیکه یوازې وه (خو بیا هم شاته ولاړه وه).

## د ښځو د محاذات مسئله

وَإِنْ حَاذَتْهُ امْرَأَةٌ او که ښځه د یو سړي سره برابره سو (په لمانځه کې) وَهُمَا مُشْتَرِكَانِ فِي صَلَاةٍ وَاحِدَةٍ او حال دا چې دواړه په لمانځه کې شریک وه فَسَدَتْ صَلَاتُهُ نو د سړي لمونځ فاسدیږي إِنْ نَوَى الْإِمَامُ إِمَامَتَهَا په دې شرط چې امام د دې ښځې د امامت نیت کړی وي وَالْقِيَاسُ أَنْ لَا تَفْسُدَ او قیاس دا دی چې د سړي لمونځ دې فاسد نه سي وَهُوَ قَوْلُ الشَّافِعِيِّ رَحِمَهُ اللّٰهُ همدغه د امام شافعي رَحِمَهُ الله قول دی اعْتِبَارًا بِصَلَاتِهَا د ښځې پر لمانځه باندې په قیاسولو سره حَيْثُ لَا تَفْسُدُ ځکه چې د ښځې لمونځ نه فاسدیږي وَجْهُ الِاسْتِحْسَانِ مَا رَوَيْنَاهُ د استحسان دلیل هغه حدیث دی کوم چې موږ روایت کړی وَأَنَّهُ مِنَ الْمَشَاهِيرِ او هغه حدیث له مشهوره حدیثونو څخه دی وَهُوَ الْمُخَاطَبُ بِهِ او نارینه (سړی) د هغه مخاطب دی دُونَهَا ښځه نه ده فَيَكُونُ هُوَ التَّارِكُ لِفَرْضِ الْمَقَامِ نو سړی به د فرض مقام (ځای) پرېښوونکی وي فَتَفْسُدُ صَلَاتُهُ دُونَ صَلَاتِهَا نو ځکه به د سړي لمونځ فاسدیږي نه د ښځې كَالْمَأْمُومِ إِذَا تَقَدَّمَ عَلَى الْإِمَامِ لکه متقدی چې کله تر امام مخکې سي (نو صرف د مقتدي لمونځ فاسدیږي).

**اللغات:** ﴿حاذت﴾ د مفاعلې د باب واحده مؤنثه ماضي صیغه ده: یو د بل سره سیده کېدل، برابرېدل. ﴿مشاهیر﴾ جمع ده، واحد یې مَشْهُوْر: د حدیث یو قسم دی. ﴿مأموم﴾ مقتدی (په لمانځه کې تر امام شاته درېدونکی).

**تشریح:** صورت د مسئلې: دا دی چې که یو ځای په جماعت سره لمونځ شروع وي، او یوه ښځه راسي د یو نارینه لمونځ ګزاره پر برابر باندې ودریږي، او هم د دغه لمونځ نیت وکړي، همدارنګه امام هم د دې ښځې نیت وکړي، نو په دې

صورت کي زموږ په نېز د دې نارينه لمونځ فاسدېږي. خو د قياس تقاضا دا ده چي د نارينه لمونځ دي فاسد نه وي، او د امام شافعي رَحِمَهُ الله قول هم دا دی.

**د امام شافعي دليل :** دليل قياس دی، يعني څرنګه چي په دې صورت کي د ښځي لمونځ نه فاسديږي. نو د قياس تقاضا دا ده چي د نارينه لمونځ دي هم فاسد نه سي. ځکه چي په محاذات(برابر والي) کي دواړه شريک دي. او بيا محاذات هم د ښځي له طرفه راغلی دی، نو کله چي دا محاذات د ښځي د لمانځه لپاره مفسد نه دی نو د نارينه د لمانځه لپاره به څرنګه مفسد وي؟

**د استحسان دليل:** هغه حديث دی کوم چي تر دې مخکي ذکر سو. يعني: أخروهن من حيث أخرهنّ الله. او په دې حديث سره دليل په دې توګه نيول کيږي، چي نبي ﷺ په أخروهن سره خلګو ته حطاب کړی دی او د ښځو شاته کولو حکم يې ورته کړی دي، نو د دې فرمان په وجه خلګو ته پکاري دي چي هغوی د دې خبري خيال وساتي چي که ښځي مسجد ته راسي نو شاته دي يې ودروي، يا دي يې بالکل جلا کړي. لکه په حرم شريف او نورو ځايو کي، د دې لپاره چي محاذات را نه سي. اوس که يوه ښځه د يو نارينه څنګ (برابر) ته راسي ودريږي نو مطلب يې دا دی چي دې سړي په أخروهن باندي عمل نه دي کړی، او خپل څنګ ته يې د ښځي په درولو سره خپل فرض مقام (تقدم من المرأة) پرېښوولی، نو ځکه به صرف د ده لمونځ فاسديږي، د ښځي لمونځ به نه فاسديږي، لکه يو مقتدي چي په لمانځه کي د خپل امام څخه مخ ته سي نو د فرض مقام په پرېښوولو سره صرف د مقتدي لمونځ فاسديږي. او د امام پر لمانځه باندي هيڅ اثر نه لوېږي، همدارنګه په دې مسئلي کي هم صرف د نارينه لمونځ فاسديږي، د ښځي په لمانځه کي هيڅ خلل نه راځي.

**فايده:** صاحب د عنايې رَحِمَهُ الله ليکلي دي چي د ښځي محاذات په دې شرط سره لمونځ فاسدوي چي د ښځي پښه د نارينه د يو اندام سره برابره سي، او هغه ښځه مشتهاة(يعني د شهوت قابله) وي، او امام د هغې د امامت نيت کړی، لو مطلق لمونځ وي يعني د جنازې او نورو لمونځ نه وي، نارينه او ښځه په تحريمه او اداء کي مشترک وي، او د دواړو په مينځ کي يو حائل (او پرده) نه وي. (عنايه ج:١، ص:٣٧١)، دا تفصيل به په کتاب کي هم راسي.

## که امام د محاذي ښځي د امامت نيت نه وکړي نو څه حکم دی؟

وَإِنْ لَمْ يَنْوِ إِمَامَتَهَا او که امام د ښځي د امامت نيت نه وي کړی لَمْ تَضُرَّهُ نو د ښځي محاذات نارينه ته هيڅ تاوان نه رسوي وَلَا تَجُوزُ صَلَاتُهَا او د ښځي لمونځ به جائز نه وي لِأَنَّ الِاشْتِرَاكَ لَا يَثْبُتُ دُونَهَا عِنْدَنَا ځکه چي زموږ په نېز د امامت له نيت څخه بغير اشتراک نه ثابتيږي خِلَافًا لِزُفَرَ رَحِمَهُ اللهُ د امام زفر رَحِمَهُ الله اختلاف دی أَلَا تَرَى أَنَّهُ يَلْزَمُهُ التَّرْتِيبُ فِي الْمَقَامِ آيا ته نه ګوري چي د امام لپاره د مقام( د درېدلو د ځای) ترتيب ضروري دی فَيَتَوَقَّفُ عَلَى الْتِزَامِهِ نو دا خبره به د امام پر لازمولو موقوفه وي كَالِاقْتِدَاءِ لکه اقتداء(چي هم دا ډول ده) إِنَّمَا يُشْتَرَطُ نِيَّةُ الْإِمَامَةِ لو د امامت نيت هغه وخت شرط دی إِذَا ائْتَمَّتْ مُحَاذِيَةً چي کله ښځي د محاذات(برابروالي) په حالت کي نيت کړی وي وَإِنْ لَمْ يَكُنْ بِجَنْبِهَا رَجُلٌ او که د ښځي پر څنګ يو سړی نه وي فَفِيهِ رِوَايَتَانِ نو په دې صورت کي دوه روايتونه دي وَالْفَرْقُ عَلَى إِحْدَاهُمَا او له دواړو څخه په يوه کي فرق دا دی أَنَّ الْفَسَادَ فِي الْأَوَّلِ لَازِمٌ چي په اول(يعني د محاذات په) صورت

کي د لمانځه فاسدېدل لازمي (يقيني) دي وَفِي الثَّانِي مُحْتَمَلٌ او په دويم صورت (يعني د ښاته دربدلو په صورت) کي د لمانځه د فاسدېدلو احتمال دی.

**اللغات:** ﴿اِشْتَرَكَتْ﴾ د افتعال د باب واحده مؤنثه ماضي صيغه ده: اقتداء کول، په جماعت کي شريکېدل.

**تشريح:** صورت د مسئلي: دا دی چي د ښځي محاذات په هغه وخت کي لمونځ فاسدوي چي امام د دې ښځي نيت کړی وي، لېکن که امام د دې ښځي نيت نه وي کړی، نو په دې صورت کي د دې ښځي محاذات د سړي پر لمانځه هيڅ اغېزه نه کوي، او په خپله د دې ښځي لمونځ فاسدېږي، ځکه چي کله امام ګرسره د دې د امامت نيت کړی نه وي، نو نه دا د سړي سره شريکه ده او نه د امام سره، نو د سړي سره د اشتراک نه کېدلو په وجه د سړي لمونځ نه فاسدېږي، او د امام سره د اشتراک نه کېدلو په وجه د ښځي لمونځ نه صحيح کېږي.

لېکن امام زفر رَحِمَهُ الله فرمايي چي د امام له نيت څخه بغير هم د ښځي په محاذات سره د سړي لمونځ فاسدېږي، ځکه چي د سړي لمونځ په هغه وخت کي هم جائز دی چي امام يې د امامت نه وي کړی، نو همدارنګه به د امام له نيت څخه بغير د ښځي لمونځ هم صحيح وي، ګواکي امام زفر رَحِمَهُ الله دلته هم د مخکي په څېر له قياس څخه کار اخيستی دی. او د ښځي اقتداء يې د سړي پر اقتداء باندي قياس کړې ده.

لېکن زموږ په نېز نيت زيات ضروري دی، هغه په دې توګه چي د نبي ﷺ د فرمان أخروهن ...الخ په وجه سره پر امام باندي لازم دي چي هغه د لمانځه د صفونو خيال وساتي، او هر سړی پر خپل ځای باندي ودروي، او کوم شی چي د امام پر لازم والي باندي موقوف وي نو ښکاره ده چي د هغه شي لازموالي به د امام له طرفه کېږي، که يې امام لازم کړي نو لازم به وي، کني نه به وي، لکه پر مقتدي چي د اقتداء نيت کول لازم دي، نو کله چي مقتدي د امام د اقتداء نيت وکړي، نو په دې نيت سره هغه خپل لمونځ د امام په ضمانت کي ورکوي، يعني د اقتداء په نيت سره به د ده د لمونځ فساد او صحت د امام د لمانځه پر فساد او صحت باندي موقوف وي، او دا حکم هغه وخت جاري کېدای سي چي کله مقتدي پر ځان باندي اقتداء لازمه کړي، همدارنګه د امام لپاره دا هم ضروري ده چي هغه د ښځو د امامت نيت وکړي، د دې لپاره چي د ښځو د لمانځه صحت او فساد د امام د لمانځه پر صحت او فساد باندي موقوف سي، او ښکاره ده چي دا شی په نيت سره حاصلېږي، نو ځکه موږ وايو چي که امام د يو ښځي د امامت نيت کړی وي نو بيا به د دې په لمانځه کي شريکېدل صحيح وي، کني نه به وي.

إنما يشترط الخ د دې حاصل دا دی چي د امام لپاره د امامت نيت کول په هغه وخت کي شرط او معتبر دي چي کله ښځه د يو سړي پر څنګ او برابره سي او د امام د قتداء نيت وکړي، لېکن که ښځه د امام سره محاذي وي نو په نيت کولو سره د امام لمونځ فاسدېږي، او که د يو سړي سره برابره سي نو د امام په نيت کولو سره د هغه سړي لمونځ فاسدېږي. ځکه چي په نيت کولو سره به د دې په لمانځه کي شريکېدل ثابت سي، او همدغه شی خطرناک دی. لېکن که د ښځي پر برابر سړی نه وي نو په دې صورت کي د نيت په اړه دوه روايتونه دي:

(۱) اول روايت دا دی چي په دې صورت کي هم د امام لپاره د دې ښځي نيت کول شرط دي، ځکه که څه هم لوس د ښځي له طرفه محاذات نسته، خو کېدای سي چي په وروسته کي به محاذات ثابت سي، نو د دې احتمال په وجه نيت شرط دی.

(۲) دويم روايت دا دی چي کله د ښځي پر برابر سړی نه وي، نو احتمال يې هم نسته چي وروسته به سړی راسي، نو ځکه به د امام لپاره د هغې نيت شرط نه وي.
صاحب د هدايې فرمايي چي له دواړو راويتونو څخه په يوه کي (يعني د نيت د نه شرط کېدلو والا په روايت کي) او په اول صورت کي يعني چي کله محاذات وي فرق دا دی چي د محاذات په صورت کي فساد لازمي او يقيني دی، نو ځکه نيت شرط او ضروري دی، د دې لپاره چي د امام په لازمولو سره فساد واقع سي، او نقط محاذات مفسد نه وګرځول سي، او په دويم صورت چي کله صرف د محاذات احتمال وي، نو نيت ضروري نه دی، ځکه چي د احتمال په وجه سره هيڅ شی نه شرط کيږي. (والله اعلم)

## د محاذات د شرطونو بيان

وَمِنْ شَرَائِطِ الْمُحَاذَاةِ او د محاذات له شرطونو څخه دا دي أَنْ تَكُونَ الصَّلَاةُ مُشْتَرَكَةً چي د ښځي او نر لمونځ به مشترک وي وَأَنْ تَكُونَ مُطْلَقَةً او دا چي لمونځ به مطلق وي (يعني د رکوع او سجدې والا لمونځ به وي) وَأَنْ تَكُونَ الْمَرْأَةُ مِنْ أَهْلِ الشَّهْوَةِ او دا چي ښځه به د شهوت قابله وي وَأَنْ لَا يَكُونَ بَيْنَهُمَا حَائِلٌ او (بل) دا چي د نر او ښځي په مينځ کي به يوه پرده (او منع کونکی شی) نه وي لِأَنَّهَا عُرِفَتْ مُفْسِدَةً بِالنَّصِّ بِخِلَافِ الْقِيَاسِ ځکه چي د ښځي په محاذات سره د لمانځه فاسدېدل د نص په ذريعه سره د قياس خلاف ثابت دي فَيُرَاعَىٰ جَمِيعُ مَا وَرَدَ بِهِ النَّصُّ نو ځکه به د هغو ټولو شرطونو خيال ساتل کيږي چي د هغو په باره کي نص (حديث) وارد سوی دی.

**اللغات:** ﴿أَهْلِ الشَّهْوَةِ﴾ هغه ښځه چي د شهوت قابله وي (يعني شهوت لري)، ﴿حَائِل﴾ مانع، خنډ، پرده، بندونکی.
**تشريح:** په دې عبارت کي د هغه محاذات شرطونه بيانيږي چي لمونځ فاسدوي، دا شرطونه خو موږ مخکي د عنايې په حواله سره (په مختصره توګه) بيان کړل، لېکن دلته په تفصيل سره ذکر کيږي:
(۱) اول شرط دا دی چي د سړي او ښځي دواړو لمونځ به مشترک وي، يعني د دواړو په لمانځه کي به د تحريمې او اداء په اعتبار سره اتحاد (يو والی) او اشتراک وي، د تحريمې په اعتبار سره د اتحاد مطلب دا دی چي دواړو به د يوه امام پر تحريمه د خپلي تحريمې بناء کړې وي، يا په دوی دواړو کي به يو د بل پر تحريمه بناء کړې وي په دې توګه چي په ښځه او نر کي يو امام او بل مقتدي وي، او د اداء په اعتبار سره د اشتراک مطلب دا دی چي هغه لمونځ کوم چي دوی يې اداء کوي په هغه کي به حقيقتاً يا حکماً يو څوک د دوی امام وي، د حقيقتاً امام مطلب دا دی چي دواړه مسبوق وي او له شروع څخه په لمانځه کي د امام سره شريک وي، او د حکماً امام مطلب دا دی چي مثلاً يو سړي او يوې ښځي په څلور رکعتيز لمانځه کي په دريم رکعت کي د يو امام اقتداء کړې وي، او د قتداء په وخت کي د دوی په مينځ کي محاذات نه وي، لېکن دواړو ته حدث لاحق سي (يعني دواړه بې اودسه سي) خو کله چي اودس وکړي، واپس راسي، نو امام خپل لمونځ پوره کړی وي، نو دوی (بېرته) لمونځ شروع کړي (يعني دواړه لاحقين سي)، او د لاحق کېدلو په وخت کي په دواړو کي محاذات راسي (يعني مخکي خو محاذات نه وي لېکن کله چي اودس وکړي دوباره د لمانځه لپاره راسي نو د دوی په مينځ کي محاذات واقع سي)، نو اوس حکماً د امام په اقتداء کي د اداء په اعتبار سره شريک سول، نو په دې صورت کي هم د دوی لمونځ فاسديږي (فتح القدير). (۲) دويم شرط دا دی چي دا لمونځ به مطلق وي، يعني د رکوع او سجدې والا لمونځ به وي، د جنازې او داسي نورو لمونځونه به نه وي. (۳) دريم شرط دا دی چي ښځه به د شهوت قابله وي (يعني شهوت به لري) هغه

که دا ښځه مینځه وي یا آزاده وي، یا خپله ښځه وي. یا مور یا خور یا داسې نورې محرماتې وي. (۴) څلورم شرط دا دی چې د سړي او ښځې په مینځ کې به یوه پرده او حائل نه وي، بلکې محاذات به بغیر له حائل څخه وي.
نو که دا څلور سره شرطونه پیدا سول، د ښځې محاذات به لمونځ فاسدوي. کنې! نه به یې فاسدوي، ځکه چې محاذات د لمانځه لپاره مفسد کېدل د أخروهن من حیث أخرهن الله له نص(حدیث) څخه خلاف القیاس ثابت دی.(یعنې په محاذات سره د لمانځه فاسدېدل د قیاس خلاف دي، خو څرنګه چې په حدیث سره ثابت دي نو موږ به یې منو او پوره خیال به یې ساتو)، نو که په دې کې یو شرط هم نیستې سو، نو محاذات به مفسد نه وي.

## د ښځې لپاره د جماعت په لمانځه کې د شرکت(ګډون) حکم

| وَيُكْرَهُ لَهُنَّ حُضُورُ الْجَمَاعَاتِ او د ښځو لپاره جماعت ته حاضرېدل مکروه دي يَعْنِي الشَّوَابَّ مِنْهُنَّ يعنې د ځوانو ښځو لپاره لِمَا فِيهِ مِنْ خَوْفِ الْفِتْنَةِ ځکه په دې کې د فتنې اندېښنه سته. |
|---|

**اللغات:** ﴿شَوَابّ﴾ جمع ده، واحد یې: شَابَّةٌ دی: ځوانه ښځه، پېغله.

**تشریح:** د پېغلو ښځو لپاره په جماعت کې حاضرېدل مکروه دي. او امام شافعي رَحِمَهُ الله فرمایي چې روا دي.

**د امام شافعي دلیل:** د نبي ﷺ دا قول دی: لا تمنعوا أماء الله مساجد الله. (یعنې د الله مینځې د الله له مسجدونو څخه مه بندوئ). او په بل روایت کې راغلي دي: إذا استأذنت أحدكم امرأته إلى المسجد فلا يمنعها. (یعنې که په تاسو کې له یوه څخه خپله ښځه مسجد ته د تللو اجازت وغواړي، نو هغه دې دا نه منع کوي).

**زموږ دلیل:** دا دی چې د پېغلو ښځو په حاضرېدلو کې د فتنې ېره سته، نو ځکه به هغوی له مسجد څخه منع کېږي. **دویم دلیل:** دا دی چې کله حضرت عمر ﷺ ښځې له مسجدونو څخه بندي کړې، نو ښځو حضرت عائشې رَضِيَ اللهُ عَنْهَا ته شکایت وکړی، حضرت عائشې رَضِيَ اللهُ عَنْهَا وفرمایل: که نبي ﷺ ته د اوسني حالت خبر وای، او دا ستونزې ورته معلومې وای، چې هغه نن سبا حضرت عمر ﷺ ته معلومې دي، نو نبي ﷺ به (هم) بالکل اجازت نه ورکولای.
زموږ د مذهب تائید په هغه حدیث سره هم کېږي کوم چې عبد البر په خپل سند سره له حضرت عائشې رَضِيَ اللهُ عَنْهَا څخه روایت کړی دی: أيها الناس انهوا نساءكم عن لبس الزينة والتبختر في المساجد فإن بني اسرائيل لم يلعنوا حتى لبست نساءهم الزينة وتبختروا في المساجد. (اې خلکو! خپلې ښځې په مسجدونو کې د ښایستو او د فخرجنو کالو(جامو) له اغوستلو څخه منع کړئ. ځکه چې پر بني اسرائیلو هغه وخت لعنت وسو چې د هغو ښځو په مسجدونو کې د ښایست، فخر او غرور کالي واغوستل). خو څرنګه چې زموږ په دې اوسني زمانه کې د فاسقانو غلبه زیاته ده، نو ځکه مطلقاً ښځې منع دي. هغه که یې ښایست لو سینګار کړی وي، که نه وي.

## د سپین سرو ښځو لپاره په جماعت کې د ګډون حکم (او د فقهاؤ قولونه)

| وَلَا بَأْسَ لِلْعَجُوزِ او د سپین سرې ښځې لپاره هیڅ حرج(او پروا) نشته أَنْ تَخْرُجَ فِي الْفَجْرِ وَالْمَغْرِبِ وَالْعِشَاءِ چې د سهار، ماښام او د ماخوستن د لمونځونو لپاره را ووځي وَهَذَا عِنْدَ أَبِي حَنِيفَةَ رَحِمَهُ اللهُ دا حکم د امام ابو حنیفه رَحِمَهُ الله په نېز دی وَقَالَا ●: يَخْرُجْنَ فِي الصَّلَوَاتِ كُلِّهَا او صاحبین رَحِمَهُمَا الله فرمایي چې سپین سرې(بوډۍ) ښځه دې په ټولو لمونځونو کې راوځي لِأَنَّهُ لَا فِتْنَةَ لِقِلَّةِ الرَّغْبَةِ إِلَيْهَا ځکه (په سپین سرې ښځه کې د خلکو) د رغبت د کمښت په |
|---|

● القول الراجح: هو عدم الجواز مطلقاً، كذا في رد المحتار ج:١، ص:٤١٨. [القول الراجح، ج:١، ص:٩١]

وجه هیڅ فتنه نسته فَلَا يُكْرَهُ كَمَا فِي الْعِيْدِ نو ځکه به د سپين سرو ښځو راوتل مکرو نه وي لکه په اختر کي وَلَهُ: أَنَّ فَرْطَ الشَّبَقِ حَامِلٌ او د امام صاحب دليل دا دی: چې د شهوت زياتوالی (سختوالی) د جماع باعث (لامل) دی فَتَقَعُ الْفِتْنَةُ نو ځکه به فتنه واقع سي غَيْرَ أَنَّ الْفُسَّاقَ اِنْتِشَارُهُمْ فِي الظُّهْرِ وَالْعَصْرِ وَالْجُمُعَةِ خو فاسقان (بد خلک) په ماپښين، مازيګر او جمعه کي خواره وي (نو په دې وختونو کي د فتنې زيات امکان سته) أَمَّا فِي الْفَجْرِ وَالْعِشَاءِ فَهُمْ نَائِمُوْنَ خو په سهار او ماخوستن کي هغوی بيده وي وَفِي الْمَغْرِبِ بِالطَّعَامِ مَشْغُوْلُوْنَ او د ماښام په وخت کي په خوراک بوخت وي (نو په دې وختونو کي د فتنې امکان کم وي) وَالْجَبَّانَةُ مُتَّسِعَةٌ او عيدګاه پراخه وي فَيُمْكِنُهَا الْاِعْتِزَالُ عَنِ الرِّجَالِ نو (هلته) د ښځو لپاره له خلکو څخه جلا کېدل ممکنه دي فَلَا يُكْرَهُ نو ځکه به (په اختر کي د دوی راوتل) مکروه نه وي.

**اللغات**: ﴿عَجُوْز﴾ بوډۍ، بوډۍ، د ډېر عمر انسان (د ښځي او نر دواړو لپاره استعماليږي). ﴿فَرْط﴾ زياتوالی، ډېرښت، ﴿شَبَق﴾ شهوت، جنسي غوښتنه، د سمع له باب څخه دی. شَبِقَ يَشْبَقُ: شهوت والا کېدل. ﴿جَبَّانَة﴾ صحرا، بيابان، خلاص ځای، عيدګاه (هغه ځای چې د اخترونو لمونځونه پکي کيږي).

**تشريح**: امام صاحب رَحِمَهُ الله سپين سري ښځې د ماپښين او مازيګر په وخت کي له راوتلو څخه منع کړي دي. لېکن د سهار، ماخوستن او ماښام په وخت کي يې اجازت ورکړی دی، او صاحبينو رَحِمَهُ الله په ټولو لمونځونو کي اجازت ورکړی دی.

**د صاحبينو دليل**: دا دی چې د سپين سرو ښځو وطرف ته طبعي ميلان (رغبت) کم وي. نو ځکه د هغوی را وتل هم مکروه نه دي، لکه په اختر کي چې د هغوی را وتل بالاتفاق جائز دي.

**د امام صاحب دليل**: دا دی چې د شهوت ډېروالی او سختوالی د جماع سبب دی. نو ځکه به د سپين سرو ښځو په راوتلو کي هم فتنه وي، هو! دومره خبره ده چې فاسقان خلک د ماپښين، مازيګر او د جمعې په وختونو کي ګرځي راګرځي، نو ځکه دې په دې وختونو کي سپين سري ښځې نه راوځي. پاته سو د سهار او ماخوستن وخت. نو په دې وختونو کي دا غلط خلک بيده وي، او د ماښام په وخت کي په خوراک مشغوله وي؛ معلومه سوه چې په دې دريو وختونو کي له فاسقانو څخه امان سته، نو ځکه به په دې درېو ختونو کي د لمانځه لپاره د سپين سرو ښځو را وتل جائز وي.

**جواب**: صاحبِ د هدايې رَحِمَهُ الله فرمايي چې د صاحبينو قياس صحيح نه دی، ځکه چې د اختر لمونځ عموماً په خلاص ځای او عيدګاه کي کيږي، او عيدګاه پراخه وي، نو په پراخه ميدان کي دا ممکنه ده چې سپين سري ښځې دې له نرانو څخه يو طرف ته او جلا وي، نو په دې وجه په اختر کي د دوی راوتل مکرونه دي.

**فوائد**: څرنګه چې په اوسني وخت کي فساد عام دی، نو ځکه په ټولو لمونځونو کي د سپين سرو ښځو را وتل مکروه دي. (عنايه)

**راجح قول**: په پورتنی مسئله کي راجح قول دا آخري قول دی، يعني مطلقاً د ښځو راوتل جائز نه دي، قال العلامة البابرتي رَحِمَهُ الله: والفتوى اليوم على كراهة حضورهن في الصلوات كلها لظهور الفساد. (العنايه على هامش الفتح القدير ج:۱، ص:۳۱۸). [القول الراجح ج:۱، ص:۹۱]

## د پاکي ښځي لپاره د مستحاضې ښځي د اقتداء حکم

قَالَ: وَلَا يُصَلِّي الطَّاهِرُ فرمايي: چي پاک سړي دي لمونځ نه کوي خَلْفَ مَنْ هُوَ فِي مَعْنَى الْمُسْتَحَاضَةِ په هغه چا پسي چي د مستحاضې په معنیٰ سره وي وَلَا الطَّاهِرَةُ خَلْفَ الْمُسْتَحَاضَةِ او نه دي پاکه ښځه په مستحاضې ښځي پسي لمونځ کوي لِأَنَّ الصَّحِيحَ أَقْوَى حَالًا مِنَ الْمَعْذُورِ ځکه چي صحيح انسان تر معذوره انسان د حال په اعتبار سره زيات قوی وي وَالشَّيْءُ لَا يَتَضَمَّنُ مَا هُوَ فَوْقَهُ او يو شی د هغه شي لپاره ضامن نه سي کېدلای کوم چي تر هغه لوړ وي وَالْإِمَامُ ضَامِنٌ او امام ضامن وي بِمَعْنَى تَضَمُّنِ صَلَاتِهِ صَلَاةَ الْمُقْتَدِي په دې معنیٰ چي دده لمونځ د مقتدي د لمانځه ضامن دی.

**اللغات:** ﴿ضَامِن﴾ ذمه وار، ضمانت کونکی، کفيل، ﴿أَقْوَى﴾ د اسم تفضيل صيغه ده: زيات زورور، د ډېر قوت خاوند.

**تشريح:** مستحاضه او کوم څوک چي د مستحاضه په حکم کي هغه ته د فقهاؤ په اصطلاح کي معذور ويل کېږي.

**صورت د مسئلې:** دا دی چي هيڅ يو جوړ روغ او پاک سړی دي په معذوره سړي پسي لمونځ نه کوي، او نه دي هيڅ يوه روغه او پاکه ښځه په معذوري او مستحاضې ښځي پسي لمونځ کوي، ځکه روغ او پاک سړی د معذوره او مستحاضه په نسبت زيات قوي وي، او د لمانځه په باره کي حکم دا دی چي د امام لمونځ د مقتدي د لمانځه ضامن دی، ځکه چي د مقتدي لمونځ د صحت او فساد په اعتبار د امام پر لمانځه موقوف وي، نو په دې حواله سره په رُتبه کي د مقتدي لمونځ د امام د لمانځه په مقابله کي کم وي، او قاعده دا ده چي يو شی د بل شي ضامن هغه وخت جوړېدای سي چي دا بل شی تر هغه شي لاندي وي، لېکن د هغه شي ضامن نه سي جوړېدلای چي تر هغه لوړ وي، خو که په ذکر سوي صورت کي د روغ انسان لپاره د معذوره انسان د اقتداء اجازت وسي، نو ښکاره ده چي ضعيفه به د قوي لپاره ضامن جوړ سي کوم چي صحيح نه دي، نو ځکه د غير معذور لپاره د معذور اقتدا هم صحيح نه ده.

## د قاري لپاره په امي (نالوستي) پسي او د پټ سړي لپاره په لڅ سړي پسي د اقتداء حکم

وَلَا يُصَلِّي الْقَارِئُ خَلْفَ الْأُمِّيِّ او لمونځ به نه کوي قاري سړی په امي سړي (نالوستي) پسي وَلَا الْمُكْتَسِي خَلْفَ الْعَارِي او نه به (لمونځ کوي) جامې اغوستونکی په لڅ پسي لِقُوَّةِ حَالِهِمَا ځکه چي د قاري او جامې اغوستونکي حال قوي دی (په نسبت د امي او لڅ ته).

**اللغات:** ﴿أُمِّي﴾ نا لوستی، بې تعليمه، نا خبره، ﴿مُكْتَسِي﴾ هغه چي جامې يې اغوستي وي (پټ)، ﴿عَارِي﴾ لڅ، بربند.

**تشريح:** **مسئله:** دا ده چي د قاري (او عالم) لپاره د امي (او نالوستي) اقتداء کول او د پټ (هغه چي کالي يې اغوستي وي) لپاره د لڅ (بربند) اقتداء کول صحيح نه دي، ځکه چي د قاري او کالي اغوستونکي حالت د امي او لڅ د حالت په پر تله کي زيات قوي وي، نو اوس که د دوی د اقتداء اجازت ورکول سي، نو ښکاره ده چي ضعيف به د قوي لپاره ضامن جوړ سي، او پر ضعيف به د قوي بناء راسي، او له دې څخه يو هم صحيح نه دي.

## آیا اودس والا په تیمم والا پسي لمونځ کولای سي؟

وَيَجُوزُ أَنْ يَؤُمَّ الْمُتَيَمِّمُ الْمُتَوَضِّئِينَ او تیمّم کونکي لره د اودس کونکو امامت جائز دی وَهٰذَا عِنْدَ أَبِي حَنِيفَةَ وَأَبِي يُوسُفَ رَحِمَهُمَا اللهُ او دا حکم د شیخینو رَحِمَهُمَا الله په نیز دی وَقَالَ مُحَمَّد رَحِمَهُ اللهُ●: لَا يَجُوزُ او امام محمد رَحِمَهُ الله فرمایي چي جائز نه دی لِأَنَّهُ طَهَارَةٌ ضَرُورِيَّةٌ ځکه چي تیمّم د مجبوری طهارت دی وَالطَّهَارَةُ بِالْمَاءِ أَصْلِيَّةٌ او د اوبو طهارت اصلي طهارت دی وَلَهُمَا أَنَّهُ طَهَارَةٌ مُطْلَقَةٌ د شیخینو رَحِمَهُمَا الله دلیل دا دی چي تیمّم مطلق طهارت دی وَلِهٰذَا لَا يَتَقَدَّرُ بِقَدْرِ الْحَاجَةِ همدغه وجه ده چي د ضرورت مطابق نه متعین کیږي.

**اللغات:** ﴿الْمُتَيَمِّم﴾ هغه چي تیمّم یې کړی وي، (تیمّم والا) ﴿الْمُتَوَضِّئ﴾ هغه چي اودس یې کړی وي، (اودس والا).

**تشریح:** په دې باره کي اختلاف دی چي اودس کونکی د تیمّم والا اقتداء کولای سي، که نه؟ شیخین رَحِمَهُمَا الله دا جائز ګرځوي، او امام محمد رَحِمَهُ الله یې ناجائز ګرځوي.

**د امام محمد دلیل:** دا دی چي تیمّم ضروري طهارت دی یعني د اوبو د نشتون په وخت کي یا یې پر استعمال د قدرت نه لرلو په وخت کي د مجبوری په وجه تیمّم کیږي، نو ځکه تیمّم کونکی د معذور په درجه کي سو، او په اوبو سره چي کوم اودس دی هغه اصلي طهارت او قوي دی، نو ځکه معذوره د اصلي طهارت والا اقتداء نه سي کولای.

**د شیخینو دلیل:** دا دی چي تیمّم مطلق طهارت دی، یعني غیر مؤقت دی، او د مستحاضې ښځي د طهارت په ډول مؤقت نه دی، همدغه وجه ده چي تیمّم په حاجت او ضرورت سره مقدر نه دی، (لکه څرنګه چي اودس مقدر دی)، بلکي که تر لسو کالو پوري هم اوبه پیدا نه سي، یا یې پر استعمال قدرت را نه سي نو تیمّم به جائز وي، نو کله چي تیمّم طهارت مطلقه سو، نو د تیمّم کونکي او اودس والا حال سره برابر سو، او چي کله د دواړو حال برابر سو، نو یو د بل امامت کولای سي.

**راجح قول:** په پورتنۍ مسئله کي راجح قول د شیخینو رَحِمَهُمَا الله دی، قال العلامة ابن الهمام رَحِمَهُ الله بعد بسط المسئلة و دل على صحة هذا الاعتبار حديث عمرو بن العاص انه بعثه النبي ﷺ اميرا على سرية فاجنب وصلّى باصحابه بالتيمم لخوف البرد وعلم النبي ﷺ فلم يأمرهم بالاعادة. (فتح القدير ج:۱، ص:۳۲۰). [القول الراجح ج:۱، ص:۹۲]

## پر موزو د مسح کونکی او د پښو د پرېولونکی حکم

وَيَؤُمُّ الْمَاسِحُ الْغَاسِلِينَ او (پر موزو) مسح کوونکی والا د (پښو) پرېولونکو خلکو امامت کولای سي لِأَنَّ الْخُفَّ مَانِعٌ سِرَايَةَ الْحَدَثِ إِلَى الْقَدَمِ ځکه چي موزه حدث (بې اودسي) منع کوي (له دې څخه) چي پښې ته سرایت وکړي وَمَا حَلَّ بِالْخُفِّ يُزِيلُهُ الْمَسْحُ او کوم حدث چي په موزه کي سرایت کړی وي هغه مسح لیري کوي بِخِلَافِ الْمُسْتَحَاضَةِ په خلاف د مستحاضې ښځي لِأَنَّ الْحَدَثَ لَمْ يُعْتَبَرْ شَرْعًا ځکه چي په هغه وخت کي د حدث زائلېدل شرعاً معتبر نه دي مَعَ قِيَامِهِ حَقِيقَةً کله چي په حقیقت کي حدث موجوده وي.

---

● القول الراجح: قول الشيخين، كذا في فتح القدير ج:۱، ص:۳۲۰. [القول الراجح، ج:۱، ص:۹۲]

**اللغات:** ﴿ماسح﴾ هغه چي پر موزو یې مسح کړي وي(مسح کونکي)، ﴿خف﴾ موزه، ﴿سرایة﴾ رسېدل، حلول کول، ننوتل. ﴿حدث﴾ بې اودسي، ناپاکي. ﴿حل﴾ شوه کېدل، دننه کېدل، پراو کول.

**تشریح: صورت د مسئلې:** دا دی چي پر موزو مسح کونکی د پښو د پرېولونکي امامت کولای سي. **دلیل:** دا دی چي موزو والا خپلې پښې پرېولې دي او بیا یې موزې اغوستي دي او موزه داسي ده چي حدث منع کوي له دې څخه چي په موزه کي سرایت (حلول) وکړي. (یعني حدث له دې څخه منع کوي چي موزو ته وردننه سي). نو دا سړی د پښو پرېولونکی پاته سو، پاته سوه دا خبره چي حدث په موزو کي حلول وکړي، نو د دې جواب دا دی چي کوم څه چي په موزو کي حلول کړی دی هغه مسح لیري کوي. نو ځکه به د موزې والا طهارت د پرېولونکي په څېر پاته وي.

د دې په خلاف مستحاضه ښځه ده یعني په مستحاضې پسي د معذور والي په وجه اقتداء جائز نه ده. د دې وجه دا ده چي د معذور حدث په حقیقت کي قائم دی، نو د حدث په موجود والي سره شریعت هغه معذور ګرځولی دی. داسي نه ده چي شریعت د هغه حدث زائل ګرځولی وي، نو څرنګه چي په معذور کي حدث په حقیقت کي قائم دی، نو ځکه به د غیر معذور لپاره د معذور اقتداء کول جائز نه وي.

## د ولاړ لپاره په ناست پسي د اقتداء حکم

وَيُصَلِّي الْقَائِمُ خَلْفَ الْقَاعِدِ● او ولاړ سړی په ناست سړي پسي لمونځ کولای سي(د شیخینو رَحِمَهُمَا الله په نېز) وَقَالَ مُحَمَّد رَحِمَهُ اللهُ: لَا يَجُوزُ او امام محمد رَحِمَهُ الله فرمایي چي داسي جائز نه ده وَهُوَ الْقِيَاسُ او دا قیاس دی (یعنې د قیاس تقاضا همدغه ده) لِقُوَّةِ حَالِ الْقَائِمِ ځکه چي د ولاړ سړي حالت مضبوط دی وَنَحْنُ تَرَكْنَاهُ بِالنَّصِّ او موږ د حدیث په وجه دا خبره پرېښوولې وَهُوَ مَا رُوِيَ او هغه حدیث دغه روایت دی أَنَّه عَلَيْهِ الصَّلَاةُ وَالسَّلَامُ صَلَّى آخِرَ صَلَاتِهِ قَاعِدًا وَالْقَوْمُ خَلْفَهُ قِيَامٌ چي نبي ﷺ آخري لمونځ په ناسته وکړی او ټوله خلک په نبي ﷺ پسي ولاړ وه.

**الغات:** ﴿قاعد﴾ ناست، ﴿قیام﴾ جمع د قائم ده: ولاړ.

**تشریح: صورت د مسئلې:** دا دی چي د شیخینو رَحِمَهُمَا الله په نېز ناست سړی د ولاړو خلکو امامت کولای سي، لېکن د امام محمد رَحِمَهُ الله په نېز ناست سړی د ولاړو امامت نه سي کولای، همدغه د قیاس تقاضا ده، ځکه چي د ولاړ سړي حالت د ناست د حالت په پرتله کي ډېر قوي دی، او د قوي لپاره د ضعیف اقتداء کول صحیح نه دي، ځکه چي په دې صورت کي د قوي بناء پر ضعیف راځي او دا صحیح نه دي.

**د شیخینو دلیل:** دا دی چي د امام محمد رَحِمَهُ الله قول خو د قیاس او عقل له رویه ښه ښکاري، لېکن موږ څه وکړو، زموږ سره مجبوري دا ده چي دلته یو مهم (او مشهور) حدیث سته، او هغه حدیث د ولاړ لپاره په ناست پسي لمونځ جائز ګرځوي، د هغه تفصیل دا دی چي کله په آخر د عمر کي د نبي ﷺ مرض زیات سو، نو نبي ﷺ ابو بکر رضی الله عنه ته د لمانځه ورکولو حکم وکړی، او کله چي صدیق اکبر رضی الله عنه د لمانځه ورکولو لپاره ولاړ سو، نو د نبي ﷺ حالت لږ غوندي ښه سو، او د حضرت علي رضی الله عنه او حضرت ابن عباس رَضِيَ اللهُ عَنْهُمَا په مرسته سره د منبر وطرف ته راووتی، ابو بکر رضی الله عنه چي د نبي ﷺ کښېهاری واورېدی نو شاته سو، او نبي ﷺ پر مسئله کښېنستی خلکو ته یې لمونځ ورکړی، او ټولو صحابه وو د

● القول الراجح: قول الشيخين، قال العلامة قاضي خان رَحِمَهُ الله: وصح اقتداء القائم بالقاعد الذي يركع ويسجد ج: ١، ص:٣٤، وكذا في الدر المختار ج:١، ص:٤٣٥. [القول الراجح، ج:١، ص:٥١٨]

نبي ﷺ په اقتداء کي لمونځ وکړی، دا واقعه په دې سلسله کي د صريح نص حيثيت لري. او په ماکه وايي چي د ولاړ سړي لمونځ په ناست پسي جائز دی، او د نص په مقابله کي به عقل او قياس پرېښوول کيږي.

## په اشاره سره د لمونځ کونکي د اقتداء حکم

وَيُصَلِّي الْمُومِيْ خَلْفَ مِثْلِهِ او په اشاره سره لمونځ کونکی د ځان په ډول په بل اشاره کونکي پسي لمونځ کولای سي لِاسْتِوَائِهِمَا فِي الْحَالِ ځکه چي دوی دواړه په حالت کي برابر دي إِلَّا أَنْ يُومِيَ الْمُؤْتَمُّ قَاعِدًا وَالْإِمَامُ مُضْطَجِعًا مګر دا چي مقتدی په ناسته اشاره کوي او امام په پروته اشاره کوي (نو اقتداء جائز نه ده) لِأَنَّ الْقُعُوْدَ مُعْتَبَرٌ ځکه چي ناسته معتبره ده فَيَثْبُتُ بِهِ الْقُوَّةُ نو په دې سره قوت ثابتيږي.

**اللغات:** ﴿المومي﴾ اشاره کونکی، ﴿المضطجع﴾ تکيه کونکی، پروت، د شا پر تخته پروت.

**تشريح: صورت د مسئلې:** دا دی چي په اشاره سره لمونځ کونکی د خپل ځان په څير په بل اشاره کونکي پسي لمونځ کولای سي، ځکه چي دا دواړه په حالت کي سره برابر او مساوي دي، نو په دوی کي د بناء الضعيف على القوي يا د تضمين الضعيف القوي خرابي نه راځي، او څرنګه چي همدغه د ناجائز والي لامل او علت دی، نو کله چي دا علت معدوم او نيستي سو، نو د لمانځه جواز هم ثابتيږي.

لېکن که مقتدي په ناستي په اشاره سره لمونځ کوی، او امام په پروتي په اشاره سره لمونځ کوی، نو په دې صورت کي اقتداء صحيح نه ده، ځکه چي ناسته يو معتبر رکن دی، او د مقتدي د ناستي حالت د امام د پروتي له حالت څخه غوره او قوي دی، نو ځکه د قوي والي په وجه سره په دې صورت کي هم اقتداء صحيح نه دي، همدا وجه ده چي هغه سړی په پروتي نفل نه سي کولای کوم چي پر ناسته قدرت لري.

## د رکوع او سجده کونکي لپاره د اشاره کونکي د اقتداء حکم

وَلَا يُصَلِّي الَّذِيْ يَرْكَعُ وَيَسْجُدُ خَلْفَ الْمُومِيْ او رکوع او سجدې والا دي په اشاره کونکي پسي لمونځ نه کوي لِأَنَّ حَالَ الْمُقْتَدِيْ أَقْوَىٰ ځکه چي د مقتدي حال (له امام څخه) ډېر قوي دی وَفِيْهِ خِلَافُ زُفَرَ رَحِمَهُ اللهُ او په دې کي د امام زفر رَحِمَهُ اللهُ اختلاف دی.

**تشريح: صورت د مسئلې:** دا دی چي کوم سړی په رکوع او سجده سره پر لمانځه کولو قدرت لري، د هغه لپاره د اشاره کونکي په اقتداء کي لمونځ صحيح نه دی، لېکن امام زفر رَحِمَهُ اللهُ وايي چي د رکوع او سجدې والا په اشاره کونکي پسي اقتداء کولای سي.

**د امام زفر دليل:** دا دی چي اشاره د رکوع او سجدې بدل او خليفه ده، او په بدل سره يو شی اداء کول داسي دي لکه په اصل سره اداء کول، همدا وجه ده چي تيمّم والا د اودس کونکي امامت کولای سي.

**زمو دليل:** دا دی چي په دې مسئله کي د مقتدي حال زيات قوي دی، او د امام حالت زيات ضعيف دی. او مخکي دا اصول تېر سو چي ضعيف د قوي امامت نه سي کولای. پاته سوه دا خبره چي اشاره د رکوع او سجدې بدل ده، نو موږ دا خبره نه منو، ځکه چي اشاره د رکوع او سجدې بعضي حصه ده، او د شي بعضي حصه، د پوره شي بدل نه سي کيدلای.

## د فرض کونکي لپاره په نفل کونکي پسي د اقتداء حکم

وَلَا يُصَلِّي الْمُفْتَرِضُ خَلْفَ الْمُتَنَفِّلِ او فرض کونکی دي په نفل کونکي پسي لمونځ نه کوي لِأَنَّ الِاقْتِدَاءَ بِنَاءٌ ځکه چي د اقتداء مطلب بناء کول دي وَوَصْفُ الْفَرْضِيَّةِ مَعْدُومٌ فِي حَقِّ الْإِمَامِ او د فرضيت وصف د امام په حق کي معدوم (نيستي) دی فَلَا يَتَحَقَّقُ الْبِنَاءُ عَلَى الْمَعْدُومِ نو پر معدوم بناء نه ثابتيږي.

**تشريح:** صورت د مسئلې: دا دی چي که يو سړی نفلي لمونځ کوي، نو په هغه پسي د فرض کونکي اقتداء جائز نه ده، ځکه چي اقتداء بناء کولو ته ويل کيږي، او بناء يو وجودي امر دی، ځکه چي بناء دې ته ويل کيږي چي يو سړی د بل سړي په افعالو او صفاتو کي تابعداري وکړي، او دا خبره ښکاره ده چي تابعداري وجودي مفهوم لري، سلبي مفهوم نه لري، او د وجودي امر بناء پر عدمي امر صحيح نه ده، نو څرنګه چي په ذکر سوې مسئله کي د فرضيت وصف د امام په حق کي معدوم (عدمي) دی، نو ځکه بناء نه متحققه کيږي، او کله چي بناء متحققه نه سوه، نو اقتداء کول به هم صحيح نه وي.

## که د امام او مقتدي فرض سره جلا وي نو په دې صورت کي د اقتداء حکم

قَالَ: وَلَا مَنْ يُصَلِّي فَرْضًا فرمايي: او نه دي اقتداء کوي هغه سړی چي فرض کوي خَلْفَ مَنْ يُصَلِّي فَرْضًا آخَرَ په هغه سړي پسي چي هغه نور (جلا) فرض کوي لِأَنَّ الِاقْتِدَاءَ شَرِكَةٌ وَمُوَافَقَةٌ ځکه چي اقتداء شرکت (ګډون) او موافقت ته ويل کيږي فَلَا بُدَّ مِنَ الِاتِّحَادِ نو ځکه (د دواړو) په لمانځه کي يو والی ضروري دی وَعِنْدَ الشَّافِعِيِّ رَحِمَهُ اللهُ يَصِحُّ فِي جَمِيعِ ذٰلِكَ او د امام شافعي رَحِمَهُ الله په نيز په دې ټولو صورتونو کي اقتداء صحيح ده لِأَنَّ الِاقْتِدَاءَ عِنْدَهُ أَدَاءٌ عَلَى سَبِيلِ الْمُوَافَقَةِ ځکه چي اقتداء د هغه په نيز د موافقت په توګه اداء کول دي وَعِنْدَنَا مَعْنَى التَّضَمُّنِ مُرَاعًى او زموږ (د احنافو) په نيز د ضامن کېدلو د معنیٰ لحاظ کيږي.

**اللغات:** ﴿تَضَمُّن﴾ د تفعيل مصدر دی: شاملېدل، ضامن کېدل. ﴿مُرَاعًى﴾ د مفاعلې د باب اسم مفعول دی: هغه چي رعايت او لحاظ يې سوی وي.

**تشريح:** صورت د مسئلې: دا دی که يو سړی مثلاً د ماپښين لمونځ کوي، او بل سړی د مازيګر لمونځ کوي، نو په دوی کي د يوه لپاره د دويم اقتداء صحيح نه ده، ځکه چي زموږ په نيز اقتداء په تکبير تحريمه کي شريکېدلو (شرکت في التحريمه) ته او په افعالو کي موافقت کولو (موافقت في الافعال) ته ويل کيږي، او ښکاره ده چي د فرض د بدلون په وجه په تحريمه کي شرکت نه سي کېدلای، که څه هم په افعالو کي شرکت او موافقت راسي، او د اقتداء د صحيح کېدلو لپاره په تحريمه او افعالو دواړو کي اتحاد او يو والی ضروري دی، همدغه زموږ مسلک دی، امام مالک رَحِمَهُ الله او امام احمد رَحِمَهُ الله هم د دې قائل دي.

وعند الشافعي الخ د دې په خلاف د امام شافعي رَحِمَهُ الله مسلک دا دی چي په ټولو صورتونو کي يعني په دې ذکر سوي صورت کي او په هغو ټولو صورتونو کي کوم چي مخکي بيان سول، اقتداء صحيح ده، هغه که د فرضو والا اقتداء په

نفلو والا پسې وي، او که د رکوع او سجدې والا اقتداء په اشاره کونکي پسې وي، یا یو بل داسې صورت وي، لنډه چې دا چې د امام شافعي رَحِمَهُ الله په نېز په دې ټولو صورتونو کې اقتداء صحیح ده.

**د امام شافعي دلیل:** دا دی چې د امام شافعي رَحِمَهُ الله په نېز اقتداء صرف دې ته ویل کیږي چې یو سړی د بل چا موافقت (او تابعداري) صرف په افعالو کې وکړي، په تحریمه کې د شرکت ضرورت نشته، نو کله چې د امام شافعي رَحِمَهُ الله په نېز د اقتداء لپاره شرکت فی التحریمه ضروري نه دی، نو ښکاره ده چې په دې صورت کې هر سړی خپل خپل لمونځ کوي، نو که څوک فرض کوي، او څوک نفل کوي یا دواړه جلا جلا فرض کوي، په دې سره د بل پر لمانځه هیڅ اغېزه نه پرېوځي، او د هر سړي لمونځ به پر خپل ځای صحیح وي، او د هیڅا لمونځ به هم د بل تر لمانځه قوي نه وي، بلکې هر یو به پر خپل خپل ځای غښتلی (پلوان) وي، لېکن زموږ په نېز دا ټول اقتداء ته د اقتداء نوم ورکول صحیح نه دي، ځکه چې په اقتداء کې د دې حدیث: الإمام ضامن په وجه د تضمّن او ضمانت معنیٰ پټه ده، یعني امام د مقتدي د لمانځه ضامن دی، نو ځکه موږ پورتني صورتونو ته د اقتداء نوم ورکولای سو، لېکن د شوافعو په نېز دې صورتونو ته د اقتداء نوم ورکول صحیح نه دي.

## د نفل کونکي لپاره په فرض کونکي پسې د اقتداء حکم

وَيُصَلِّي الْمُتَنَفِّلُ خَلْفَ الْمُفْتَرِضِ او نفل کونکی په فرض کونکي پسې اقتداء کولای سي لِأَنَّ الْحَاجَةَ فِي حَقِّهِ إِلَى أَصْلِ الصَّلَاةِ ځکه چې د نفل کونکي لپاره د اصل لمانځه ضرورت دی وَهُوَ مَوْجُودٌ فِي حَقِّ الْإِمَامِ او هغه د امام په حق کې سته فَيَتَحَقَّقُ الْبِنَاءُ نو بناء ثابتیږي.

**تشریح:** فرض والا خو په نفل والا پسې لمونځ نه سي کولای، لېکن نفل والا په فرض کونکي پسې لمونځ کولای سي، دلیل یې دا دی چې د نفل کونکي په حق کې صرف د اصل لمانځه ضرورت دی، او دلته اصل لمونځ د امام په حق کې هم سته، نو ځکه د نفل کونکي اقتداء په فرض کونکي پسې کېدای سي، وجه دا ده چې د نفلي لمانځه د صحت لپاره مطلق نیت کافي دی او پر مطلق نیت فرض هم متشمل وي، نو ځکه به اقتداء صحیح وي.

## که تر اقتداء وروسته معلومه سي چې امام بې اودسه دی نو څه حکم دی؟

وَمَنِ اقْتَدَى بِإِمَامٍ او که یو چا په یو امام پسې اقتداء وکړه ثُمَّ عَلِمَ أَنَّ إِمَامَهُ مُحْدِثٌ بیا ورته معلومه سوه چې د هغه امام بې اودسه دی أَعَادَ نو هغه دې خپل لمونځ راوګرځوي لِقَوْلِهِ عَلَيْهِ الصَّلَاةُ وَالسَّلَامُ[1] ځکه نبي ﷺ فرمایلي دي مَنْ أَمَّ قَوْمًا کوم سړي چې د یو قوم امامت وکړي ثُمَّ ظَهَرَ أَنَّهُ كَانَ مُحْدِثًا أَوْ جُنُبًا او بیا (وروسته) ښکاره سي چې امام بې اودسه وو یا جنب وو أَعَادَ صَلَاتَهُ وَأَعَادُوا نو امام دې (هم خپل) لمونځ را وګرځوي او (ټوله) مقتدیان دې (هم خپل) لمونځونه را وګرځوي وَفِيهِ خِلَافُ الشَّافِعِيِّ رَحِمَهُ اللهُ او په دې کې د امام شافعي رَحِمَهُ الله اختلاف دی بِنَاءً عَلَى مَا تَقَدَّمَ (امام شافعي) پر هغه دلیل بناء کوي کوم چې مخکې تېر سو وَنَحْنُ نَعْتَبِرُ مَعْنَى التَّضَمُّنِ او موږ د ضامن کېدلو د معنیٰ اعتبار کوو وَذَلِكَ فِي الْجَوَازِ وَالْفَسَادِ او دا ضامن کېدل د لمانځه په جائز کېدلو او د لمانځه په فاسدېدلو (یعني په دواړو) کې سته.

---

[1] أخرجه دارقطني في كتاب الصلوٰة، باب صلوٰة الامام وهو جنب، حديث رقم: ١٣٥٤ - ١٣٥٥.

**اللغات:** ﴿المحدث﴾ د افعال اسم فاعل دی: بې اودسه، ناپاک.

**تشریح: مسئله:** دا ده که چا د يو امام په اقتداء کې لمونځ وکړی، او وروسته معلومه سوه چې امام بې اودسه وو يا جنب وو، نو دامام لپاره هم د لمانځه را ګرځول واجب دي او پر مقتدي هم واجب دي، ځکه نبي ﷺ فرمايلي دي: چا چې د يو قوم امامت وکړی، او وروسته ښکاره سوه چې هغه بې اودسه وو يا جنب وو نو هغه دي هم خپل لمونځ را وګرځوي. او خلک دي هم لمونځونه را وګرځوي. امام شافعي رَحِمَهُ الله فرمايي په دې صورت کې صرف پر امام لمونځ را ګرځول واجب دي، نه پر مقتديانو، ځکه چې دا خبره مخکي تېره سوه چې د امام شافعي رَحِمَهُ الله په نېز اقتداء دې ته ويل کېږي چې يو سړی د بل چا موافقت (او تابعداري) صرف په افعالو کې وکړي. او په تحريمه کې د اشتراک د نشتوالي په وجه د امام لمونځ د صحت او فساد په اعتبار سره د مقتديانو د لمانځه ضامن نه دی، نو ځکه به د امام حدث صرف د امام په حق کې نقصاني وي، او د مقتديانو پر لمانځه به د هغه د حدث هيڅ اغيزه نه وي. بلکې د هغوی لمونځ به صحيح او جائز وي، ځکه چې په مقتديانو کې هر يوه خپل خپل لمونځ وکړی، نو که موږ د مقتديانو لمونځ فاسد وګرځوو، نو دا داسې سو لکه بغير له يوه جرمه څخه څوک مجرم ګڼل، او دا صحيح نه دي.

د دې په خلاف زموږ په نېز د اقتداء په معنیٰ کې د موافقت سره سره د تضمن معنیٰ هم سته (ځکه په حديث کې راغلي دي: الامام ضامن) او زمو په نېز په اقتداء کې شرکت فی التحريم هم سته، نو ځکه به د امام لمونځ د صحت او فساد په حواله سره د مقتديانو د لمانځه ضامن وي، او په ذکر سوې مسئله کې چې څرنګه د امام لمونځ د بې اودسی (حدث) په وجه سره واجبُ الاعاده دی، نو ځکه به د مقتديانو لمونځ هم واجبُ الاعاده وي. کنې د دې حديث: الامام ضامن له موجب څخه به انحراف راسي کوم چې صحيح نه دی.

**فايده:** په ذکر سوي صورت کې چې تر اقتداء وروسته د راګرځولو کوم حکم بيان سوی دی دا پر هغه صورت مبنی چې کله تر اقتداء مخکې د حدث علم نه وي، لېکن که تر اقتداء مخکې د حدث علم وي نو په دې صورت کې بالاتفاق اقتداء صحيح نه ده. (عنايه ج:١، ص:٣٥٨)

## د قاريانو او اميانو لپاره د امي د اقتداء حکم

وَإِذَا صَلَّى أُمِّيٌّ بِقَوْمٍ يَقْرَءُونَ وَبِقَوْمٍ أُمِّيِّينَ او که يو امي سړي قاريانو او اميانو (دواړو) ته لمونځ ورکړي فَصَلَاتُهُمْ فَاسِدَةٌ عِنْدَ أَبِي حَنِيفَةَ رَحِمَهُ اللهُ نو د امام صاحب رَحِمَهُ الله په نېز د دوی ټولو لمونځ فاسد دی وَقَالَا●: صَلَاةُ الْإِمَامِ وَمَنْ لَا يَقْرَأُ تَامَّةٌ صاحبين رَحِمَهُمَا الله فرمايي: چې د امام او د اميانو لمونځ پوره دی لِأَنَّهُ مَعْذُورٌ ځکه چې امام معذوره دی (يعني امي دی) أَمَّ قَوْمًا مَعْذُورِينَ او د معذوره خلکو (اميانو) امامت يې وکړی فَصَارَ كَمَا إِذَا أَمَّ الْعَارِي عُرَاةً وَلَابِسِينَ نو دا داسې سو لکه لڅ (برېند) سړی چې د لڅو خلکو او د کالو اغوستونکو خلکو امامت وکړي وَلَهُ أَنَّ الْإِمَامَ تَرَكَ فَرْضَ الْقِرَاءَةِ مَعَ الْقُدْرَةِ عَلَيْهَا د امام صاحب رَحِمَهُ الله دليل دا دی چې امام پر قرائت د قدرت سره سره فرض قرائت پرېښوی فَتَفْسُدُ صَلَاتُهُ نو ځکه به د هغه لمونځ فاسديږي وَهَذَا لِأَنَّهُ لَوِ اقْتَدَى بِالْقَارِئِ لو ما په دې

● القول الراجح: قول ابی حنيفة رَحِمَهُ الله، كذا في رد المحتار ج:١، ص:٢٣٨. [القول الراجح، ج:١، ص:٩٢]

وجه چي که امي سړی د قاري اقتداء وکړي تَكُونُ قِرَاءَتُهُ قِرَاءَةً لَهُ نو د قاري قرائت به د امي لپاره قرائت وي بِخِلَافِ تِلْكَ الْمَسْأَلَةِ وَأَمْثَالِهَا په خلاف د هغه مسئلې او د هغه په ډول د نورو مسئلو لِأَنَّ الْمَوْجُودَ فِي حَقِّ الْإِمَامِ ځکه کوم شی چي د امام په حق کي موجود وي لَا يَكُونُ مَوْجُودًا فِي حَقِّ الْمُقْتَدِي هغه د مقتدي په حق کي نه موجودیږي.

**اللغات:** ﴿عُرَاةٌ﴾ جمع د عَارٍ ده: لغړ، بربنډ. ﴿أَمْثَالٌ﴾ جمع د مِثْلٌ: مشابه، هم مثل.

**تشريح:**

**د امّي وجه تسميه:** امي (او نالوستي سړي) ته امي ځکه ویل کیږي چي دا منسوب الی الأم دی، او اُم مور ته ویل کیږي، يعني څرنګه چي مور دی زېږولی وو، هغسي (اوس) هم دی، يعني لکه څرنګه چي د زېږېدلو په وخت کي بې تعليمه او نا لوستی وو او هيڅ ليکل يې نه سوه کولای، همدارنګه اوس هم دی، او دا لفظ چي په قرآن، حديثو او په عربي ژبه کي هر ځای راسي، نو له دې څخه مراد هغه سړی دی چي پر ليکلو او ويلو قدرت نه لري، نو کوم سړی چي د قرآن يو آيت ويلای سي، د امام ابو حنيفه رَحِمَهُ الله په نيز هغه امي نه دی، او د صاحبينو رَحِمَهُ الله په نيز چي څوک پر درې آيته يا يو غټ آيت قدرت لري هغه له امي والي څخه وتلی دی. (عنايه)

**صورت د مسئلې:** دا دی که يوه امي سړي اميانو او قاريانو دواړو ته لمونځ ورکړی، نو د امام ابو حنيفه رَحِمَهُ الله په نيز د ټولو لمونځ فاسد سو، او د صاحبينو رَحِمَهُمَا الله قول دا دی چي د امام او اميانو لمونځ صحيح سو، لېکن د قاريانو لمونځ فاسد سو.

**د صاحبينو دليل:** دا دی چي دلته يو معذوره سړي يعني امي و معذوره خلکو يعني اميانو ته امامت ورکړی، او دا په اتفاق سره جائز او صحيح دي. او داسي سو لکه يو لغړ سړی چي لغړو او پټو خلکو ته امامت ورکړي، نو په دې صورت کي په اتفاق سره د لغړ امام او لغړو مقتديانو لمونځ جائز دی، او د عورت پټونکو مقتديانو لمونځ فاسد دی، همدارنګه دلته هم د امي امام او اميانو مقتديانو لمونځ جائزدی، او د قاريانو لمونځ فاسد دی.

**د امام صاحب دليل:** دا دی چي که يو سړی پر قرائت قدرت لري، خو د قدرت سره سره قرائت پرېږدي نو د هغه لمونځ فاسديږي، همدارنګه په دې خلکو کي قاريان مقتديان هم وه، نو که قاري امام جوړ سوی وای نو د ټولو خلکو لمونځ به صحيح وای، لېکن دې امي امام خپل پر ځای قاري امام جوړ نه کړی، نو ګواکي پر قرائت يې د قدرت سره سره قرائت پرېښووی، ځکه چي د امام قرائت داسي دی لکه د مقتدي قرائت، څرنګه چي په حديث کي راځي: من كان له امام فقراءة الامام له قراءة. لېکن په داسي نه کولو سره د دغه امي امام لمونځ فاسد سو، او کله چي د امام لمونځ فاسد سو نو د ټولو لمونځ فاسد سو، ځکه چي د امام لمونځ د صحت او فساد په اعتبار سره د مقتدي د لمانځه ضامن وي.

**جواب:** له بخلاف تلك المسئلة...الخ څخه د صاحبينو د قياس جواب ورکوي، فرمايي چي د دې په خلاف د لغړو او پټو خلکو د جماعت مسئله ده، او د دې په ډول نوري مسئلې هم دي، مثلاً ګونګي سړي د ګونګيانو او قاريانو امامت وکړی، يا اشاره کونکي د اشاره کونکو او پر رکوع او سجدې د قدرت لرونکو امامت وکړی، نو په دې ډول مسئلو سره دليل نيول صحيح نه دي، ځکه چي په ذکر سوې مسئله کي د حديث په روی سره د امام قرائت د مقتدي لپاره قرائت ګرځول سوی دی، لېکن په نورو مسئلو کي چي د امام لپاره کوم شی ثابت وي، هغه د مقتدي لپاره نه سي ثابتېدلای، د مثال په توګه د امام په کالو اغوستلو سره مقتديان کالي اغوستونکي (لابسين) نه شمارل کيږي، او نه داسي ده چي که امام پر رکوع او

سجدې قدرت لري نو مقتديان به هم پر رکوع قدرت لرونکي شمارل کيږي، (يعني داسي نه سي کېدلای)، لهذا د قرائت په مسئله او په دې مسئلو کي د مخکي او اسمان فرق دی، نو ځکه به د دوی په مينځ کي قياس بالکل صحيح نه وي.

**راجح قول:** په پورتنۍ مسئله کي راجح قول د امام ابو حنيفه رَحِمَهُ الله دی، چي هغه فرمايي که امي سړي قاريانو او اميانو ته لمونځ ورکړی نو د ټولو لمونځ فاسد دی يعني هم د امام، او هم د ټولو مقتديانو هغه که اميان وي او که قاريان.

وقال العلامة قاضي خان رَحِمَهُ الله: ولا يصح اقتداء امي وقاري بامي ولا بالاخرس. (خانية ج:۱، ص:۸۹). [القول الراجح ج:۱، ص:۹۴]

## د قاري او امي لپاره د جلا جلا لمونځ کولو حکم

وَلَوْ كَانَ يُصَلِّي الْأُمِّيُّ وَحْدَهُ او که امي يوازي لمونځ کوی وَالْقَارِئُ وَحْدَهُ او قاري (هم) يوازي لمونځ کوی جَازَ نو جائز دي هُوَ الصَّحِيحُ همدا صحيح ده لِأَنَّهُ لَمْ يَظْهَرْ مِنْهُمَا رَغْبَةٌ فِي الْجَمَاعَةِ ځکه چي د دواړو له طرفه په جماعت کي رغبت (شوق) نه دي ښکاره سوی.

**اللغات:** ﴿وَحْدَه﴾ يوازي، يک تنها، ﴿رَغْبَةٌ﴾ شوق، خواهش، غوښتنه.

**تشريح:** **مسئله:** دا ده که يو امي ځان ته جلا لمونځ وکړی او هلته يو قاري هم وو او هغه هم جلا لمونځ وکړي، نو د دواړو لمونځ صحيح دی، ځکه چي شريعت د اقتداء په صورت کي د امام قرائت د مقتدي لپاره قرائت ګرځولی دی، او دلته خو د امي او قاري اقتداء پرېږده، صرف د اقتداء رغبت هم ښکاره سوی نه دي، نو ځکه به د دواړو لمونځ پر خپل خپل ځای جائز او صحيح وي، او له فساد څخه به خوندي وي.

په هو الصحيح ويلو سره صاحب د کتاب رَحِمَهُ الله د امام مالک رَحِمَهُ الله او ابو حاتم رَحِمَهُ الله له هغه قولونو څخه احتراز کړی دی، چي په هغو کي په دې صورت کي هم امي پر قرائت قادر بلل سوی دی، او لمونځ يې فاسد ګرځول سوی دی، لېکن صحيح هغه دي کوم چي موږ بيان کړه.

## که امام په آخري دوو رکعتونو کي امي مخته کړي نو څه حکم دی؟

فَإِنْ قَرَأَ الْإِمَامُ فِي الْأُولَيَيْنِ او که امام په اولو دوو رکعتو کي قرائت وکړی ثُمَّ قَدَّمَ فِي الْأُخْرَيَيْنِ أُمِّيًّا او بيا يې يو امي سړی په آخري دوو رکعتو کي مخته کړی (يعني خپل خليفه يې جوړ کړی) فَسَدَتْ صَلَاتُهُمْ نو د ټولو مقتديانو لمونځ فاسد سو وَقَالَ زُفَرُ رَحِمَهُ اللهُ: لَا تَفْسُدُ او امام زفر رَحِمَهُ الله فرمايي: چي نه فاسديږي لِتَأَدِّي فَرْضِ الْقِرَاءَةِ ځکه چي فرض قرائت اداء سو وَلَنَا أَنَّ كُلَّ رَكْعَةٍ صَلَاةٌ او زموږ دليل دا دی چي هر رکعت لمونځ دی فَلَا تَخْلُو عَنِ الْقِرَاءَةِ نو هر رکعت به له قرائت څخه خالي نه وي إِمَّا تَحْقِيقًا أَوْ تَقْدِيرًا هغه که حقيقتاً قرائت وي او که تقديراً وَلَا تَقْدِيرَ فِي حَقِّ الْأُمِّيِّ او د امي په حق کي تقديراً قرائت (هم) نسته لِانْعِدَامِ الْأَهْلِيَّةِ ځکه چي په هغه کي (د قرائت) اهليت (ورتيا) نسته وَكَذَا عَلَى هٰذَا او همدارنګه به په دې قاعدې سره (لمونځ فاسديږي) لَوْ قَدَّمَهُ فِي التَّشَهُّدِ که يې امي سړی په تشهد کي مخته کړی وَاللهُ تَعَالَى أَعْلَمُ بِالصَّوَابِ او الله په حقيقي حال زيات خبر دی.

**اللغات:** ﴿تَأَدِّي﴾ د تفعّل د باب مصدر دی: اداء کېدل.

**تشريح: صورت د مسئلې:** دا دی که يو قاري امام لمونځ شروع کړی، او اول دوه رکعتونه يې پوره کړل، په دريم رکعت کې بې اودسه سو، نو د دا نورو رکعتو لپاره يې يو امي سړی را مخته ګړی او د خپل ځان خليفه يې جوړ کړی. نو په دې صورت کې زمونږ په نيز د ټولو خلکو لمونځ فاسديږي، لېکن امام زفر رَحِمَهُ الله فرمايي چې د ټولو لمونځ صحيح دی.

**د امام زفر دليل:** دا دی چې د امام له طرفه د لمانځه د فاسدېدلو خطره صرف د قرائت په باره کې ده، لېکن په ذکر سوي صورت کې امام په دوارو رکعتونو کې قرائت پوره کړی او په آخري رکعتو کې يې امي خپل خليفه او امام جوړ کړی، نو ځکه به په دې صورت کې د امي په امامت سره لمونځ نه فاسديږي، ځکه چې په آخري رکعتو کې قرائت فرض نه دی، نو امي به د فرضو پرېښوونکي نه شمارل کيږي، او کله چې هغه د فرضو پرېښوونکی نه سو، نو لمونځ به يې صحيح وي، او کله چې د هغه لمونځ صحيح سو، نو کومو خلکو چې په هغه پسې اقتداء کړې وي، د هغو لمونځ به هم صحيح وي.

**زمونږ دليل:** دا دی چې په دوه رکعتيز، يا درې رکعتيز، يا څلور رکعتيز لمانځه کې هر رکعت د لمانځه دی. يعني هر رکعت لمونځ دی، او د لمانځه يو رکعت هم له قرائت څخه خالي نه دی، هغه که حقيقتاً قرائت وي لکه د اولو دوو رکعتو قرائت، او که تقديراً قرائت وي، لکه په آخري رکعتو کې چې سورت فاتحه ويل کيږي، او له حديث څخه دا خبره ثابته ده چې د اولو دوو رکعتونو قرائت د آخري رکعتونو لپاره هم قرائت دی، او د امي په حق کې خو نه حقيقتاً قرائت ثابت دی او نه تقديراً، ځکه چې په ده کې د قرائت اهليت نسته، نو څرنګه چې په اولو رکعتو کې د ده د امام جوړول صحيح نه دي، همدارنګه په آخري رکعتو کې هم د ده امام جوړول صحيح نه دي، تر دې چې په تشهد يعني په آخري ناسته کې هم د ده امامت زمونږ په نيز صحيح نه دی، لېکن امام زفر رَحِمَهُ الله په دې صورت کې دا صحيح ګرځوي.



# بَابُ الْحَدَثِ فِي الصَّلَاةِ

## (دا) باب په لمانځه کي د بې اودسه کېدلو (په بيان کي)

**تشريح:** تر دې مخکي مصنف رَحِمَهُ الله هغه احکام ذکر کړل چي د هغو په ذريعه انسان له عوارضو څخه خوندي کېدی سي، اوس په دې باب کي د هغه عوارضو ذکر کوي چي هغه د لمانځه لپاره فاسدونکي (مُفسد) او مانع وي، او څرنګه چي د مُفسد په مقابله کي مُصلح مخکي وي، نو په دې وجه صاحب د هدايې دلته اول غير مفسده عوارض بيانوي، او عوارضِ مفسده او مانعه وروستهٔ بيانوي. (عنايه ج:١ ص:٣٨٩)

### که په لمانځه کي امام بې اودسه سي نو څه حکم دی؟

وَمَنْ سَبَقَهُ الْحَدَثُ فِي الصَّلَاةِ او کوم سړی چي په لمانځه کي بې اودسه سو اِنْصَرَفَ واپس دي سي فَإِنْ كَانَ إِمَامًا يا که دا سړی امام وو اِسْتَخْلَفَ نو (خپل) خليفه دي جوړ کړي وَتَوَضَّأَ وَبَنَى او اودس وکړي او (پر مخکني لمانځه دي) بناء وکړي وَالْقِيَاسُ أَنْ يَسْتَقْبِلَ او قياس دا دی چي دا سړی دي د سره لمونځ وکړي وَهُوَ قَوْلُ الشَّافِعِيِّ رَحِمَهُ اللهُ او همدا د امام شافعي رَحِمَهُ الله قول دی لِأَنَّ الْحَدَثَ يُنَافِيهَا ځکه چي حدث د لمانځه سره منافي دی وَالْمَشْيُ وَالْإِنْحِرَافُ يُفْسِدَانِهَا او تګ او له قبلې څخه مخ اړول دواړه د لمانځه فاسدونکي دي فَأَشْبَهَ الْحَدَثَ الْعَمْدَ نو دا حدث داسي سو لکه قصداً حدث وَلَنَا قَوْلُهُ عَلَيْهِ الصَّلَاةُ وَالسَّلَامُ او زموږ دليل د نبي ﷺ دا قول دی مَنْ قَاءَ● أَوْ رَعَفَ أَوْ أَمْذَى فِي صَلَاتِهِ چا چي قی وکړی يا يې پزه وريني سوه يا مذي څني ووتل په لمانځه کي فَلْيَنْصَرِفْ نو هغه دي واپس سي وَلْيَتَوَضَّأْ اودس وکړي وَلْيَبْنِ عَلَى صَلَاتِهِ او پر خپل لمانځه دي بناء وکړي مَا لَمْ يَتَكَلَّمْ تر څو چي يې خبري نه وي کړي وَقَالَ عَلَيْهِ الصَّلَاةُ وَالسَّلَامُ● او نبي ﷺ فرمايلي دي إِذَا صَلَّى أَحَدُكُمْ کله چي په تاسو کي څوک لمونځ کوي فَقَاءَ أَوْ رَعَفَ نو قی يې وکړي يا يې پزه وريني وکړي فَلْيَضَعْ يَدَهُ عَلَى فَمِهِ نو پر خوله دي لاس کښېږدي وَلْيُقَدِّمْ مَنْ لَمْ يُسْبَقْ بِشَيْءٍ او غير مسبوق سړی دي مخته کړي (يعني داسي سړی دي مخته کړي چي يو رکعت هم نه وي څني تېر سوی) وَالْبَلْوَى فِيمَا يُسْبَقُ او ابتلاء (عموم بلوىٰ) خو په هغه حدث کي ده کوم چي بې اختياره ووځي دُونَ مَا يَتَعَمَّدُ نه په هغه حدث کي کوم چي قصداً وکړي (يعني په هغه بې اودسی کي عموم بلوىٰ نسته کوم چي يې لمونځ ګزاره په خپل قصد وکړي) فَلَا يَلْحَقُ بِهِ نو بې اختيار حدث به د قصداً حدث سره نه يو ځای کيږي وَالْإِسْتِئْنَافُ أَفْضَلُ او له سره لمونځ کول افضله دي تَحَرُّزًا عَنْ شُبْهَةِ الْخِلَافِ د اختلاف له شبهې څخه د ځان ژغورلو لپاره وَقِيلَ إِنَّ الْمُنْفَرِدَ يَسْتَقْبِلُ او ويل

---

● أخرجه ابن ماجه في كتاب الاقامة، باب ما جاء في البناء على الصلاة، حديث رقم: ١٢٢١.

● أخرجه ابن ماجة في كتاب الاقامة، باب ما جاء فيمن أحدث في الصلاة، حديث رقم: ١٢٢٢.

سوي دي چي منفرد به له سره لمونځ را ګرځوي وَالْإِمَامَ وَالْمُقْتَدِيَ يَبْنِي او امام او مقتدي به (پر مخکني لمانځه) بناء کوي صِيَانَةً لِفَضِيْلَةِ الْجَمَاعَةِ چي د جماعت فضيلت خوندي سي.

**اللغات:** ﴿إِنْحِرَاف﴾ د انفعال مصدر دی: ګرځېدل، اوښتل، ليري کېدل، ﴿قَاءَ﴾ د ضرب د باب ماضي صيغه ده؛ قی کول، خوا ګرځېدل، ﴿رُعَاف﴾ پزه ويني کېدل، له پزه څخه ويني را بهېدل، ﴿بَلْوَى﴾ ازمايښت، ابتلا، ﴿إِسْتِئْنَاف﴾ له نوي سره شروع کول، له شروع څخه راګرځول، يو کار له سره شروع کول.

**تشريح: صورت د مسئلې:** دا دی چي که يو سړی په لمانځه مصروفه وو، او د لمانځه په دوران کي بې اودسه سو، نو د هغه لپاره حکم دا دی چي بغير له څه فکر او ځنډ څخه دي فوراً مخ را واړوي، د اودس ځای ته دي ولاړ سي، اودس دي وکړي، او پر لمانځه دي بناء وکړي، او که هغه سړی امام وو نو د هغه لپاره اول حکم دا دی چي له لمانځه څخه دي ليري سي او بل سړی دي خپل نائب (خليفه) جوړ کړي، او خپله دي ولاړ سي اودس دي وکړي او پر لمانځه دي بناء وکړي، صاحب د عنايې رَحِمَهُ الله ليکلي دي چي د فوراً مخ را اړولو حکم په دې وجه سوی دی چي که تر بې اودسی وروسته لږ ځنډ وکړي (يعني لږ ودرېږي) نو په بې اودسی سره به د لمانځه د يو جزء اداء کونکی سي، او په بې اودسی سره لمونځ جائز نه دی، نو په دې وجه لږ غوندي توقف هم د هغه ټوله لمونځ فاسدوي. نو په هر حال زموږ په نېز خو حکم همدغه دی چي هغه سړی دي اودس وکړي او د لمانځه بناء دي وکړي، لېکن د قياس تقاضا دا ده چي داسي سړی دي له نوي سره لمونځ وکړي، او دا خبره امام شافعي رَحِمَهُ الله هم کوي.

**د امام شافعي دليل:** دا دی چي د لمانځه لپاره پاکي شرط ده، ځکه چي بې اودسي د لمانځه منافي ده، همدارنګه په لمانځه کي مخامخ پر قبله درېدل هم شرط دي، او په لمانځه کي تګ کول، ګرځېدل، مخ را اړول منع دي، لېکن کله چي لمونځ ګزاره مخ را واړوي ولاړ سي اودس وکړي، نو په دې صورت کي له قبلې څخه مخ اوښتنه هم راغله، او تګ هم راغلی، او دا دواړه شيان لمونځ فاسدوي، نو دلته يو مُفسد نه بلکي ډېر مفاسد جمع سول، نو ځکه د نوي سره لمونځ کول ضروري دي، د بناء کولو اجازه او ګنجايش نسته، لکه څرنګه چي په قصداً او اختياري حدث (بې اودسي) کي د سره لمونځ کول ضروري دي، همدارنګه به په بېله قصده او بېله اختياره حدث کي هم له سره لمونځ کول ضروري وي، او د بناء اجازه به نه وي.

**زموږ دليل:** هغه دوه حديثونه دي کوم چي په کتاب کي ذکر سوه، په اول حديث کي د وليبن على صلاته حکم سوی دی او د امر کمه درجه د اباحت او جواز ده، او مقصود هم د بناء جواز دی، نو په دې حديث سره خو د بناء جواز ثابت سو، او په دويم حديث کي د وَليقدم من لم يسبق...الخ حکم راغلی دی، کوم چي د امام سره تعلق لري، يعني د امام لپاره د بې اودسه کېدلو په وخت کي غير مسبوق يعني مدرک سړی خليفه جوړول ضروري دي، د مدرک خليفه جوړول ځکه ضروري دي، چي خلګو ته پوره لمونځ ورکړي، لېکن که يو مسبوق سړی خليفه جوړ کړي، نو د سلام ګرځولو په وخت کي به دا مسبوق دويم خليفه جوړوي، ځکه چي د سلام ګرځولو اجازه ده ته نسته، نو ځکه به د سلام ګرځولو لپاره د دويم خليفه جوړول ضروري وي، نو په دې توګه به د لمانځه پوره خشوع و خضوع، سکون و اطمينان ختم سي، لهذا امام ته پکار دي چي په دې صورت کې يو مدرک مقتدي خليفه جوړ کړي، مسبوق مقتدي مخته نه کړي.

**جواب:** له والبلوی الخ څخه د امام شافعي د قياس جواب ورکوي ځکه چي امام شافعي رَحِمَهُ الله غير اختياري (بېله قصده) حدث پر اختياري (قصداً) حدث قياسوي، او فرمايي چي لمونځ به له سره او شروع څخه راګرځول کيږي، نو

له دې ځایه د هغه قول او قیاس رد کیږي، خلاصه یې دا ده چې بېله قصده (غیر عمد) حدث پر قصداً حدث قیاسول صحیح نه دي، ځکه چې په دواړو کې فرق دی په دې توګه چې غیرِ عمد حدث په غیر اختیاري توګه له انسان څخه وځي، او په انسان په دې کې معذوره وي، او قصداً حدث په اختیاري توګه وځي، او په هغه کې انسان معذوره نه وي، نو په دې وجه به بېله قصده حدث پر قصداً حدث قیاسول صحیح نه وي لأن القیاس لایصح مع الفارق.

والاستیناف الخ فرمایي چې زموږ په نیز خو بناء جائز ده، لېکن لمونځ د سره راګرځول افضله او غوره دي، د دې لپاره چې د اختلاف له شک څخه خوندي سي، د ځینو رایه دا ده چې د منفرد لپاره له سره لمونځ راګرځول غوره دي، او د امام او مقتدي لپاره بناء کول افضله دي، ځکه چې د منفرد لپاره جماعت هیڅ مسئله نه ده، لېکن د امام او مقتدي لپاره د جماعت د فضیلت ساتلو مسئله سته، نو ځکه د دوی لپاره بناء کول افضله دي، والله اعلم.

## که منفرد سړی په لمانځه کې بې اودسه سي نو څه حکم دی؟

وَالْمُنْفَرِدُ إِنْ شَاءَ أَتَمَّ فِي مَنْزِلِهِ او منفرد که وغواړي نو پر خپل ځای دي لمونځ پوره کړي وَإِنْ شَاءَ عَادَ إِلَى مَكَانِهِ او که وغواړي نو خپل (مخکني) ځای ته دي واپس راسي وَالْمُقْتَدِي يَعُودُ إِلَى مَكَانِهِ او مقتدی به خپل ځای ته واپس ځي إِلَّا أَنْ يَكُونَ إِمَامُهُ قَدْ فَرَغَ خو دا چې د هغه د امام فارغه سوی وي أَوْ لَا يَكُونَ بَيْنَهُمَا حَائِلٌ یا دا چې د دوی دواړو په مینځ کې څه حائل (خند) نه وي.

**اللغات:** ﴿منزله﴾ کور، دلته مراد ځني نوی ځای دی یعني هغه ځای دی چېرې چې یې اودس کړی وي، ﴿مکانه﴾ ځای، دلته مراد ځني پخوانی ځای دي یعني هغه ځای چېرې چې یې لمونځ کړی وي.

**تشریح:** فرمایي: چې د لمانځه د بناء په باره کې د منفرد (یوازې لمونځ کونکي) لپاره اختیار دی، که غواړي نو پر هغه ځای دې بناء وکړي چېرې چې یې اودس کړی وي او لمونځ دي پوره کړي، د دې لپاره چې له زیات تګ او ګرځېدلو څخه محفوظ سي، او که غواړي نو خپل اول او پخواني ځای ته دي راسي او لمونځ دي پوره کړي، د دې لپاره چې پر یوه ځای تول لمونځ اداء سي، لېکن د مقتدي لپاره دا اختیار نسته، بلکې د هغه لپاره پر خپل اول ځای لمونځ پوره کول واجب دي، لېکن که مقتدی له اودس څخه فارغ سو او په دې وخت کې امام له لمانځه څخه هم فارغ سو نو په دې صورت کې د مقتدي لپاره پر خپل ځای (یعني د اوداسه پر ځای) د لمانځه پوره کول صحیح دي، همدارنګه په هغه وخت کې هم پر خپل ځای لمونځ کول صحیح دي کله چې د امام او مقتدي په مینځ کې یو داسې حائل (خند) وي چې هغه له لمانځه څخه مانع وي، لکه واله (نهر)، یا غټ دېوال او داسې نور.

## د ګومان کونکي سړي د لمانځه حکم؟

وَمَنْ ظَنَّ أَنَّهُ أَحْدَثَ او څوک چې دا ګومان وکړي چې هغه (په لمانځه کې) بې اودسه سو فَخَرَجَ مِنَ الْمَسْجِدِ او له مسجد څخه را ووځي ثُمَّ عَلِمَ أَنَّهُ لَمْ يُحْدِثْ بیا ورته معلومه سي چې هغه نه دي بې اودسه سوی اِسْتَقْبَلَ الصَّلَاةَ نو دا سړی به له سره لمونځ کوي وَإِنْ لَمْ يَكُنْ خَرَجَ مِنَ الْمَسْجِدِ او که له مسجد څخه نه را ووځي يُصَلِّي مَا بَقِيَ نو پاته لمونځ به کوي وَالْقِيَاسُ فِيهِمَا الِاسْتِقْبَالُ او قیاس دا دی چې په دواړو صورتونو کې به له سره لمونځ کوي وَهُوَ رِوَايَةٌ عَنْ مُحَمَّدٍ رَحِمَهُ اللهُ او همدغه له امام محمد رَحِمَهُ اللهُ څخه یو روایت دی لِوُجُودِ الِانْصِرَافِ مِنْ غَيْرِ عُذْرٍ ځکه چې بغیر له یو

عذره واپس کېدل (او له قبلې څخه مخ اوښتل) راغله وَجْهُ الِاسْتِحْسَانِ أَنَّهُ انْصَرَفَ عَلَى قَصْدِ الْإِصْلَاحِ داستحسان وجه دا ده چې دا سړی د اصلاح په نیت واپس سو أَلَا تَرَى أَنَّهُ لَوْ تَحَقَّقَ مَا تَوَهَّمَهُ آیا ته نه ګورې که هغه خبره ثابته وای د کومې چې ده ګومان وکړی بَنَى عَلَى صَلَاتِهِ نو ده به پر خپل لمانځه بناء کولای فَأُلْحِقَ قَصْدُ الْإِصْلَاحِ بِحَقِيقَتِهِ نو د اصلاح نیت به په حقیقي اصلاح پورې ملحق کیږي مَا لَمْ يَخْتَلِفِ الْمَكَانُ بِالْخُرُوجِ تر څو چې له مسجد څخه د وتلو په وجه ځای بدل نه کړي.

**اللغات:** ﴿اِسْتَقْبَلَ﴾ له سره کول، له شروع څخه کول.

**تشریح: صورت د مسئلې:** دا دی که د یو سړي په لمانځه کي دا ګومان سو چي د ده اودس مات سو (یعني په لمانځه کي بې اودسه سو)، نو په دغه ګومان کي تر مسجد ووتی، او تر وتلو وروسته ورته معلومه سوه چي نه دي بې اودسه سوی، دا خو صرف یو ګومان وو، نو په دې صورت کي د ده لپاره له سره لمونځ کول ضروري دي، د بناء کولو اجازه ورته نسته، لېکن که دا سړی تر مسجد وتلی نه وي، بلکي په مسجد کي دننه ورته معلومه سي چي نه دي بې اودسه سوی، نو اوس ده ته د بناء کولو اجازه سته، او پر ده د سره لمونځ راګرځول ضروري نه دي، دا استحسان دی، لېکن د قیاس تقاضا دا ده چي پر دې سړي په دواړو صورتونو کي د سره لمونځ راګرځول ضروري دي، او د امام محمد رَحِمَهُ الله یو روایت هم داسي دی.

**د قیاس دلیل:** دا دی چي په لمانځه کي مخ پر قبلې درېدل شرط دي، او بې له څه عذره له قبلې څخه مخ اړول لمونځ فاسدوي، او په ذکر سوې مسئله کي مخ اوښتنه بېله څه عذره دي، ځکه چي هغه سړی په حقیقت کي بې اودسه نه وو، بلکي هغه ته صرف د بې اودسی (حدث) وهم (ګومان) وو، لېکن بیا یې هم له قبلې څخه مخ واړوی، نو ځکه د هغه لمونځ فاسدیږي، او د سره به لمونځ کوي، هغه که له مسجد څخه را وتلی وي، که نه وي.

**د استحسان دلیل:** دا دی چي دا سړی د لمانځه د اصلاح او سمون په نیت را ووتی، او له قبلې څخه یې مخ واړوی، همدا وجه ده که د ده وهم (ګومان) صحیح وای، او په رښتیا هم بې اودسه وای، نو د ده لپاره به د لمانځه بناء کول صحیح وای، نو ځکه به دلته صرف د اصلاح نیت او اراده په حقیقي اصلاح پوري ملحق کیږي، او د بې اودسی (حدث) د ګومان په صورت کي به هم د ده لپاره د بناء کولو اجازه وي، خو په دې شرط چي تر مسجد وتلی نه وي، فقط تر صف وتلی وي، لېکن که تر مسجد ووځي، نو په دې صورت کي د ده لپاره د بناء کولو اجازه نسته، ځکه چي له مسجد څخه د وتلو په صورت کي د لمانځه په ځای کي بدلون راځي، او د لمانځه د ځای بدلون تحریمه باطلوي، او د تحریمې د باطلوالي په وخت کي د لمانځه له سره راګرځولو څخه ماسوا بله چاره نسته.

## د ګومان کونکي امام د لمانځه حکم

وَإِنْ كَانَ اسْتَخْلَفَ او که دې ګومان کونکي سړي (یو مقتدی) خپل خلیفه جوړ کړی فَسَدَتْ صَلَاتُهُ نو د ده لمونځ فاسدیږي لِأَنَّهُ عَمَلٌ كَثِيرٌ مِنْ غَيْرِ عُذْرٍ ځکه چي دا بغیر له یو عذره عمل کثیر دی وَهَذَا بِخِلَافِ مَا او دا صورت له دې صورت څخه خلاف دی إِذَا ظَنَّ أَنَّهُ افْتَتَحَ الصَّلَاةَ عَلَى غَيْرِ وُضُوءٍ چي کله دی دا ګومان وکړي چي ده بې اودسه لمونځ شروع کړی دی فَانْصَرَفَ نو مخ وګرځوی ثُمَّ عَلِمَ أَنَّهُ عَلَى وُضُوءٍ بیا ورته معلومه سي چي په اوداسه وو حَيْثُ تَفْسُدُ نو (په دې صورت کي هم) د ده لمونځ فاسدیږي وَإِنْ لَمْ يَخْرُجْ که څه هم له مسجد څخه نه ووځي لِأَنَّ الِانْصِرَافَ عَلَى سَبِيلِ الرَّفْضِ ځکه چي دا مخ ګرځول د لمانځه پرېښوولو لپاره دي أَلَا تَرَى آیا ته نه ګورې أَنَّهُ لَوْ تَحَقَّقَ مَا تَوَهَّمَهُ چي

که هغه شی ثابت سوی وای کوم چي يې ده ګومان کړی دی يَسْتَقْبِلُهُ نو د سره به يې لمونځ کولای فَهٰذَا هُوَ الْحَرْفُ نو په دې مسئله کي همدغه اصلي قاعده ده وَمَكَانُ الصُّفُوفِ فِي الصَّحْرَاءِ لَهُ حُكْمُ الْمَسْجِدِ او په صحراء (بيابان) کي د صفونو ځای د مسجد په حکم کي دی وَلَوْ تَقَدَّمَ قُدَّامَهُ او که دی مخته سو د صف پر مخکني طرف فَالْحَدُّ السُّتْرَةُ نو ستره حد ده وَإِنْ لَمْ تَكُنْ او که (مخته) سترنه وه فَبِقَدَارُ الصُّفُوفِ خَلْفَهُ نو شاته د صفونو اندازه (حد ده) وَإِنْ كَانَ مُنْفَرِدًا او که ګومان کونکی يوازې لمونځ کونکی وو فَمَوْضِعُ سُجُوْدِهٖ مِنْ كُلِّ جَانِبٍ نو له هر طرفه د ده د سجدې ځای حد دی.

**اللغات:** ﴿إِنْصَرَفَ﴾ د انفعال د باب ماضي صيغه ده: ګرځېدل، ليري کېدل، واپس کېدل، ﴿رَفْض﴾ پرېښوول، ﴿قُدَّام﴾ د مخ خوا، مخکنی طرف.

**تشريح:** **صورت د مسئلي:** دا دی که د بې اودسی ګومان امام وکړی، بيا يې يو بل څوک خليفه (هم) جوړ کړي، نو په دې صورت کي د امام لمونځ فاسديږي، ځکه چي دا عمل کثير (ډېر عمل) دی، او څرنګه چي دلته هيڅ عذر هم نسته، نو ځکه به دا لمونځ فاسد وي، ځکه بېله يو عذره کثير عمل لمونځ فاسدوي.

وهذا بخلاف الخ او دا صورت د هغه صورت برعکس دی، چي که يو څوک دا ګومان وکړي چي هغه بې اودسه لمونځ شروع کړی دی، او د دغه ګومان په وجه خپل له ځای څخه ليري سي، لېکن بيا ورته معلومه سوه چي هغه خو په اوداسه وو، نو په دې صورت کي د هغه لمونځ فاسديږي، که څه هم له مسجد څخه وتلی نه وي، ځکه په دې صورت کي انصراف (يعني له قبلې څخه مخ اړول او له ځای څخه ليري کېدل) علی سبيل رفض يعني د لمانځه د پرېښوولو په توګه وو، او هر هغه انصرف کوم چي د لمانځه د پرېښوولو په توګه وي هغه لمونځ فاسدوي، نو ځکه به دا انصراف هم لمونځ فاسدوي.

'همدا وجه ده که د هغه ګومان رښتيا وای يعني رښتيا هم بې اودسه وای، نو بنکاره ده چي هغه به له سره لمونځ کولای، ځکه چي په دې صورت کي به د هغه انصراف د لمانځه د پرېښوولو په توګه وای، نو ځکه به د ده لمونځ فاسد وای، او په دې لړ کي همدغه اصل دی، يعني کوم انصرف او ګرځېدل چي د اصلاح په اراده سره وي هغه د لمانځه فاسدوونکی نه دی، لېکن کوم انصرف چي د لمانځه د پرېښېدلو (رفض) په اراده سره وي، هغه حتماً د لمانځه فاسدوونکي دی.

ومکان الصفوف الخ فرمايي چي که يو سړی د مسجد پر ځای په صحراء يا ميدان کي لمونځ کوي، او داسي پېښه راسي (لکه پورته چي بيان سوه) نو د ده لپاره د صفونو ځای د مسجد حکم لري، که دی تر صفو ووتی نو ګواکي تر مسجد ووتی، نو د ده لمونځ به فاسد وي، او د ده لپاره به د بناء کولو اجازه نه وي، لېکن که تر صفو دباندي نه ووتی، نو له مسجد څخه به وتونکی نه شمارل کيږي، او د ده لپاره به د بناء کولو اجازه وي؛ لېکن که په صحراء کې لمونځ ګزاره د شا پر طرف نه ووتی، بلکي پر مخکني طرف ولاړتی، نو که مخته ستره وه، نو له سترې څخه د تېرېدلو په صورت کي به له مسجد څخه وتونکی شمارل کيږي؛ لېکن که مخته ستره نه وه، نو تر شا چي څومره صفونه وي، نو د هغو صفونو مقدار (اندازه) به د ده لپاره د وتلو او نه وتلو حيثيت لري، مثلاً که صفونه ټوله پنځه وي، او مساحت يې لس ګزه وي، نو اوس که دا سړی د مخ پر طرف د لس ګزو څخه ووځي (يعني تر لس ګزه تېر سي)، نو وتونکي به شمارل کيږي، کنې نه به شمارل کيږي.

وإن كان منفردا الخ او كه لمونځ ګزاره منفرد وو، نو دده لپاره هيڅ صف نسته، بلكې د پښو له ځايه ځخه واخله د سجدې تر ځايه پورې چې كوم ځاى دى (چې تقريباً ځلور فوټه (فته) كيږي) هغه د مسجد په حكم كې دي، او له ځلورو سره وو طرفونو ځخه دغومره ځاى (يعنې تقريباً ځلور فوټه) د مسجد په حكم كې دى، نو كه له راسته طرف يا چپه طرف يا له مخ يا شا ځخه تر ځلورو فوټو زيات ووتى، نو بيا پر اول لمانځه بناء نه سي كولاى، او كه له دې ځخه كم ووتى نو بيا بناء كولاى سي.

## د لمانځه په دوران كې د بې هوښه كېدلو يا لېونتوب حكم

وَإِنْ جُنَّ او كه (په لمانځه كې) يو سړى لېونى سو أَوْ نَامَ فَاحْتَلَمَ يا بيده سو نو احتلام ورته راغلى (يعنې شيطان خطا ايستى) أَوْ أُغْمِيَ عَلَيْهِ يا بې هوښه سو إِسْتَقْبَلَ نو لمونځ به له سره كوي (يعنې لمونځ به له شروع ځخه راګرځوي) لِأَنَّهُ يَنْدُرُ وُجُودُ هَذِهِ الْعَوَارِضِ ځكه چې د داسې عوارضو (حدثونو) پېښېدل نادر دي فَلَمْ يَكُنْ فِي مَعْنَى مَا وَرَدَ بِهِ النَّصُّ نو ځكه به دا په هغه درجه كې نه وي چې د هغه په باره كې نص (حديث) راغلى دى وَكَذَلِكَ إِذَا قَهْقَهَ او همدارنګه كه لمونځ ګزاره په قهقه خندا سره وخندل (نو لمونځ به له سره كوي) لِأَنَّهُ بِمَنْزِلَةِ الْكَلَامِ ځكه چې قهقه خندا د خبرو په شير ده وَهُوَ قَاطِعٌ او خبرې لمونځ ماتوي (فاسدوي).

**اللغات:** ﴿جُنَّ﴾ د نصر د باب ماضي مجهول صيغه ده: لېونى كېدل. ﴿يَنْدُرُ﴾ د نصر د باب مضارع معلوم صيغه ده: نادره كېدل، كمېدل، كله كله كېدل.

**تشريح: مسئله:** دا ده كه لمونځ كونكى لېونى سو، يا د لمانځه په خالت كې بيده سو او شيطان خطا ايستى، يا بې هوښه سو، نو لمونځ به د سره را ګرځوي، بيا برابره ده كه دا لمونځ كونكى يوازې وي (يعنې يوازې لمونځ كوي). او كه مقتدي وي او كه امام وي. دليل يې دا دى چې په لمانځه كې د دا ډول عوارضو (پېښو) راتلل نادره دي، نو ځكه به دا عوارض د هغه عوارضو په معنىٰ كې نه وي، چې د هغو په باره كې دا حديث راغلى دي: من قاء او رعف في صلاته...الخ. خلاصه دا چې هغه حدث كوم چې نادره نه وي (بلكې هر وخت پېښيږي لكه قى، باد، د پزې وينې) نو په داسې حدث كې بناء جائز ده، او په نادره حدث كې بناء جائز نه ده. همدارنګه كه لمونځ ګزاره قهقهه خندا وكړه، نو هم بناء جائز نه ده، بلكې له سره به لمونځ كوي، ځكه چې قهقهه خندا د خبرو په شير ده، او په خبرو سره لمونځ فاسديږي، ځكه نبي ﷺ فرمايلي دي: مالم يتكلم يعنې تر ځو چې يې خبرې كړې نه وي نو بناء كولاى سي، ليكن كه يې خبرې وكړې، نو بناء جائز نه ده.

## له قرائت ځخه د عاجزه كېدلو حكم (او د فقهاؤ قولونه)

وَإِنْ حُصِرَ الْإِمَامُ عَنِ الْقِرَاءَةِ او كه امام له قرائت ځخه بند سو (يعنې له قرائت ځخه عاجزه سو) فَقَدَّمَ غَيْرَهُ او بل سړى يې مخته كړى أَجْزَأَهُمْ عِنْدَ أَبِي حَنِيفَةَ * رَحِمَهُ اللهُ نو د امام ابو حنيفه رَحِمَهُ الله په نيز د خلكو لمونځ جائز دى وَقَالَا: لَا يُجْزِئُهُمْ او صاحبين رَحِمَهُمَا الله فرمايي: چې د هغوى لمونځ جائز نه دى لِأَنَّهُ يَنْدُرُ وُجُودُهُ ځكه چې له قرائت ځخه

* القول الراجح: قول ابى حنيفة رَحِمَهُ الله، كذا في رد المحتار ج:١، ص:٤٢۶. [القول الراجح ج:١، ص:٩٥]

عاجزه کېدل نادره وي فَأَشْبَهَ الْجَنَابَةَ نو دا د جنابت په شان سو وَلَهُ أَنَّ الاِسْتِخْلَافَ لِعِلَّةِ الْعَجْزِ او د امام ابو حنیفه رَحِمَهُ الله دلیل دا دی چې خلیفه جوړول د عاجزه کېدلو په وجه دي وَهُوَ هٰهُنَا أَلْزَمُ او د خلیفه جوړولو ضرورت دلته زیات دی وَالْعَجْزُ عَنِ الْقِرَاءَةِ غَيْرُ نَادِرٍ او له قرائت څخه عاجزه کېدل نادره نه دي فَلَا يَلْحَقُ بِالْجَنَابَةِ نو د جنابت سره به نه ملحق کیږي وَلَوْ قَرَأَ مِقْدَارَ مَا تَجُوزُ بِهِ الصَّلَاةُ او که امام دومره اندازه قرائت کړی وو چې په هغه سره لمونځ جائز کېدی لَا يَجُوزُ الاِسْتِخْلَافُ بِالْإِجْمَاعِ نو خلیفه جوړول په اجماع سره جائز نه دي لِعَدَمِ الْحَاجَةِ إِلَيْهِ ځکه چې خلیفه جوړولو ته ضرورت نسته وَإِنْ سَبَقَهُ الْحَدَثُ بَعْدَ التَّشَهُّدِ او که لمونځ گذاره تر تشهد وروسته بې اودسه سو تَوَضَّأَ وَسَلَّمَ نو اودس دې وکړي او سلام دې وګرځوي لِأَنَّ التَّسْلِيمَ وَاجِبٌ ځکه چې سلام گرځول واجب دي فَلَا بُدَّ مِنَ التَّوَضُّؤِ نو ځکه به اودس کول ضروري وي لِيَأْتِيَ بِهِ چې سلام (په اوداسه سره) اداء کړي.

**اللغات:** ﴿الحصر﴾ د ماضي مجهول صیغه ده: بندېدل، منع کېدل، (عاجزه کېدل)، ﴿ألزم﴾ د اسم تفضیل صیغه ده: زیات ضروري، زیات لازم.

**تشریح:** په دې عبارت کې درې بېلابېلې مسئلې بیانیږي:

(۱) **اوله مسئله:** دا ده که یو امام له قرائت څخه عاجزه سو، نور قرائت یې نه سو کولای، بیا یې یو دویم سړی خپل خلیفه جوړ کړی، او د امامت لپاره یې را مخته کړی، نو د امام صاحب په نېز دا صحیح دي، او د خلکو لمونځ هم جائز دی، صاحبین رَحِمَهُمَا الله فرمایي چې دا صحیح نه دي، نو ځکه به د خلکو لمونځ هم جائز نه وي.

**د صاحبینو دلیل:** دا دی چې داسې حالت پېښېدل ډېر شاذ او نادره دي، نو دا د جنابت د حالت سره مشابه سو، یعني څرنګه چې جنابت د ما ورد به النص په معنیٰ سره نه دی، او د جنابت د پېښېدلو په وخت کې له سره لمونځ کول ضروري دي او خلیفه جوړول صحیح نه دي، همدارنګه په دې حالت کې هم له سره لمونځ کول ضروري دي، او خلیفه جوړول صحیح نه دي.

**د امام صاحب دلیل:** دا دی چې د خلیفه جوړولو علت او سبب د رکن له اداء کېدلو څخه عاجزه کېدل دي (یعني عجز دی)، او د قرآن په هېرېدلو او له قرائت څخه په عاجزه کېدلو کې دا عجز په پوره توګه سته، ځکه چې که اودس مات سي، نو له مسجد څخه په وتلو او اودس کولو سره د دې تلافي کېدی سي، لېکن که له یو سړي څخه قرآن هېر سي، نو هیڅ ځای د دې تلافي نه سي کېدلی، نو ځکه په دې صورت کې د نورو احداثو په پرتله کې عاجزي زیاته ده، نو په دې صورت کې په طریقه اولیٰ سره خلیفه جوړول صحیح دي، او کله چې خلیفه جوړول صحیح دي، نو ښکاره ده چې لمونځ به هم صحیح وي.

**جواب:** له والقراءة الخ څخه د صاحبینو د دلیل جواب ورکوي چې هغوی وایي له قرائت څخه عاجزه کېدل نادره دي، فرمایي چې دا صورت نادره نه دی، بلکې زیات پېښیږي، نو ځکه دا نادر گرځول او د جنابت سره تړل او لمونځ فاسد په گرځول صحیح نه دي.

(۲) **دویمه مسئله:** دا ده که امام دومره اندازه قرائت کړی وو چې په هغه سره لمونځ صحیح کیږي، او بیا قرآن ځني هېر سو (یعني له قرائت څخه عاجزه سو)، نو اوس د ده لپاره بالاتفاق خلیفه جوړول صحیح نه دي، نه د امام صاحب رَحِمَهُ الله

په نیز، نه د صاحبینو رَحِمَهُ الله په نیز، ځکه چې ده د ما تجوز به الصلاة په اندازه قرائت وکړی، نو اوس فرض قرائت اداء سو، او د خلیفه جوړولو هیڅ ضرورت نسته، او دا خو تاسو ته هم معلومه ده چې بېله ضرورت ته خلیفه جوړول صحیح نه دي.

## که تر تشهد وروسته انسان بې اودسه سي نو څه حکم دی؟

(۳) دریمه مسئله: دا ده که لمونځ گزاره په آخره ناسته کي تر تشهدویلو وروسته بې اودسه سو، نو د ده لپاره حکم دا دی چې ولاړ دي سي، اودس دي وکړي او سلام دي وګرځوي، ځکه چې سلام ګرځول واجب دي، نو د واجب د اداء کولو لپاره اودس هم ضروري دی.

**راجح قول**: په پورتني مسئله کي راجح قول د امام صاحب رَحِمَهُ الله دی، یعني که امام هسې په یو وجه له قرائت څخه عاجزه سو، نو په داسي صورت کي د بل سړي مخته کول او امام جوړول صحیح دي، قال العلامة ابن الهمام رَحِمَهُ الله في النهاية انما يجوز الاستخلاف إذا لحقه خجل او خوف فامتنعت عليه القرأة. (فتح القدير ج:١، ص:٣٣٤). (القول الراجح ج:١، ص:١٩٥)

## تر تشهد وروسته قصداً اودس ماتول

وَإِنْ تَعَمَّدَ الْحَدَثَ فِي هَذِهِ الْحَالَةِ او که لمونځ گزاره په دې حالت کي (تر تشهد وروسته) په قصده ځان بې اودسه کړی. أَوْ تَكَلَّمَ یا یې خبري وکړې أَوْ عَمِلَ عَمَلًا يُنَافِي الصَّلَاةَ یا یې داسي یو کار وکړی چې د لمانځه سره منافي (مخالف) وو تَمَّتْ صَلَاتُهُ نو د هغه لمونځ پوره سو لِأَنَّهُ يَتَعَذَّرُ الْبِنَاءُ لِوُجُودِ الْقَاطِعِ ځکه چې د لمانځه د فاسدونکي شي د پیدا کېدلو په وجه بناء کول متعذره (مشکل) دي لَكِنْ لَا إِعَادَةَ عَلَيْهِ خو پر ده د لمانځه راګرځول (هم) نسته لِأَنَّهُ لَمْ يَبْقَ عَلَيْهِ شَيْءٌ مِنَ الْأَرْكَانِ ځکه چې له فرضو څخه یو فرض (هم) پر ده پاته نه دي.

**اللغات**: ﴿تَعَمَّدَ﴾ د تفعّل د باب ماضي صیغه ده: یو کار قصداً کول، د قصد او ارادې له مخي، په نیت سره. ﴿إِعَادَة﴾ دافعال د باب مصدر دی: راګرځول، دویم وار کول.

**تشریح**: مسئله: دا ده که تر تشهد وروسته لمونځ گزاره قصداً اودس مات کړی، یا یې قصداً خبري وکړې، یا یې یو بل داسي کار وکړی کوم چې د لمانځه منافي وو، نو د ده لمونځ پوره سوه، دلیل یې دا دی چې د لمانځه د فاسدونکي شي د پیدا کېدلو په وجه خو بناء کول مشکل سو، لیکن پر ده د لمانځه راګرځول هم نسته، ځکه چې ټوله ارکان (فرضونه) پوره سوه او یو داسي رکن نسته چې پر ده پاته وي، او پاته سو تحليل اوخروج بصنعه (یعني په خپل فعل له لمانځه څخه وتل)، نو هغه هم په قصداً فعل سره راغله، که څه هم د سلام په لفظ سره تحلیل واجب وو، لیکن په دې سره په ارکانو کي هیڅ فساد نه راځي، او د عبد الله ابن مسعود رَحِمَهُ الله حدیث هم د دې تقاضا کوي (لکه څرنګه چې په هغه کي ویل سوي دي: که تر تشهد وروسته ستا زړه وغواړي چې ولاړ سې، نو ولاړ سه).

## که تیمم کونکي په لمانځه کي اوبه ووینې نو څه حکم دی؟

فَإِنْ رَأَى الْمُتَيَمِّمُ الْمَاءَ فِي صَلَاتِهِ که تیمم والا په خپل لمانځه کي اوبه ولیدې بَطَلَتْ نو د هغه لمونځ باطل سو وَقَدْ مَرَّ مِنْ قَبْلُ او دا مسئله مخکي تېره سوې ده.

**تشريح:** فرمايي كه تيمّم والا په لمانځه كي دننه اوبه وليدلې، او پر استعمال يې قادره هم وو، نو د ده لمونځ باطل سو، او دا مسئله په پوره وضاحت سره په باب التيمم كي تېره سوې ده، نو د دويم ځل لپاره يې دلته نه ذكر كوو.

**مسائل اثنا عشريه (يعني هغه دوولس مسئلې چي تر تشهد وروسته د بې اودسه كېدلو په باره كي دي)**

فَإِنْ رَآهَا بَعْدَمَا قَعَدَ قَدْرَ التَّشَهُّدِ [١] بيا كه تيمّم والا (متيمّم) د تشهد په اندازه له كښېنستلو څخه وروسته اوبه وليدې أَوْ كَانَ مَاسِحًا فَانْقَضَتْ مُدَّةُ مَسْحِهِ [٢] يا يې پر موزو مسح كړې وه او د مسحې موده يې پوره سوه أَوْ عَلِمَ حُقَّيْهِ بِعَمَلٍ يَسِيرٍ [٣] يا يې په لږ عمل سره موزې وكښلې أَوْ كَانَ أُمِّيًّا فَتَعَلَّمَ سُورَةً [٤] يا امي (نالوستی) وو او يو سورت يې زده كړی أَوْ عُرْيَانًا فَوَجَدَ ثَوْبًا [٥] يا لغړ (برېنډ) وو نو كالي يې پيدا كړه أَوْ مُومِيًا فَقَدَرَ عَلَى الرُّكُوعِ وَالسُّجُودِ [٦] يا په اشاره لمونځ كونكی وو نو پر ركوع او سجده قادره سو أَوْ تَذَكَّرَ فَائِتَةً عَلَيْهِ قَبْلَ هٰذِهٖ [٧] يا قضائي لمونځ په ياد ورغلی كوم چي تر دې مخكي د ده پر ذمه واجب وو أَوْ أَحْدَثَ الْإِمَامُ الْقَارِئُ فَاسْتَخْلَفَ أُمِّيًّا [٨] يا قاري امام بې اودسه سو نو امي سړی يې د ځان خليفه جوړ كړی أَوْ طَلَعَتِ الشَّمْسُ فِي الْفَجْرِ [٩] يا د سهار په لمانځه كي لمر راوختی أَوْ دَخَلَ وَقْتُ الْعَصْرِ [١٠] يا د ماز يګر وخت داخل سو وَهُوَ فِي الْجُمُعَةِ په داسي حال كي چي هغه د جمعې په لمانځه كي وو أَوْ كَانَ مَاسِحًا عَلَى الْجَبِيرَةِ [١١] يا يې پر پټۍ مسح كړې وه فَسَقَطَتْ عَنْ بُرْءٍ او هغه د زخم ښه كېدلو په وجه ايله سوه (ليري سوه) أَوْ كَانَ صَاحِبَ عُذْرٍ فَانْقَطَعَ عُذْرُهُ [١٢] يا معذوره وو او عذر يې ختم سو كَالْمُسْتَحَاضَةِ وَمَنْ بِمَعْنَاهَا لكه مستحاضه ښځه او هغه چي د مستحاضې په معنیٰ وي (لكه سلسل بول والا او داسي نور) بَطَلَتِ الصَّلَاةُ فِي قَوْلِ• أَبِي حَنِيفَةَ رَحِمَهُ اللهُ نو (په دې ټولو صورتونو كي) د امام ابو حنيفه رَحِمَهُ الله په نيز د هغه لمونځ باطل سو وَقَالَا تَمَّتْ صَلَاتُهُ او صاحبين رَحِمَهُ الله فرمايي چي لمونځ يې پوره سو وَقِيلَ الْأَصْلُ فِيهِ او ويل سوي دي چي په دې باب كي اصل قاعده دا ده أَنَّ الْخُرُوجَ عَنِ الصَّلَاةِ بِصُنْعِ الْمُصَلِّي فَرْضٌ عِنْدَ أَبِي حَنِيفَةَ رَحِمَهُ اللهُ چي د امام ابو حنيفه رَحِمَهُ الله په نيز د لمونځ ګزاره په خپل فعل له لمانځه څخه وتل فرض دي وَلَيْسَ بِفَرْضٍ عِنْدَهُمَا او د صاحبينو رَحِمَهُمَا الله په نيز فرض نه دي فَاعْتِرَاضُ هٰذِهِ الْعَوَارِضِ عِنْدَهُ فِي هٰذِهِ الْحَالَةِ نو د امام ابو حنيفه رَحِمَهُ الله په نيز په دې حالت كي د دغه عوارضو (حدثونو) پېښېدل داسي دي كَاعْتِرَاضِهَا فِي خِلَالِ الصَّلَاةِ لكه د لمانځه په مينځ كي د دې عوارضو پېښېدل وَعِنْدَهُمَا كَاعْتِرَاضِهَا بَعْدَ التَّسْلِيمِ او د صاحبينو رَحِمَهُمَا الله په نيز (د دغه عوارضو پېښېدل داسي دي) لكه تر سلام وروسته د دې عوارضو پېښېدل لَهُمَا مَا رَوَيْنَا مِنْ حَدِيثِ ابْنِ مَسْعُودٍ• رَضِيَ اللهُ عَنْهُ د صاحبينو دليل د ابن مسعود

---

• القول الراجح: قول ابى حنيفة رَحِمَهُ الله، قال العلامة ابن عابدين رَحِمَهُ الله فى رد المحتار ج: ١، ص: ٤٢٩: ومن المقرر طلب الاحتياط فى صحة العبادة لتبرأ ذمة المكلف بها وليس الاحتياط الا بقول الامام الاعظم رَحِمَهُ الله أنها تبطل [القول الراجح ج: ١، ص: ٩٧]

• قد مرّ تخريجه فى حديث رقم: ٣٥، راجع.

رَحِمَهُ الله حديث دی کوم چي مونږ روايت کړی وَلَهُ أَنَّهُ لَا يُمْكِنُهُ أَدَاءُ صَلَاةٍ أُخْرٰى إِلَّا بِالْخُرُوجِ مِنْ هٰذِهٖ او د امام صاحب دليل دا دی چي دلمونځ گزاره لپاره له دې لمانځه څخه دوتلو بغير دبل لمونځ اداء کول ممکن نه دي وَمَا لَا يُتَوَصَّلُ إِلَى الْفَرْضِ إِلَّا بِهٖ او هر هغه شی چي له هغه څخه بغير تر فرضو پوري رسېدل ممکن نه وي يَكُونُ فَرْضًا هغه (هم) فرض وي وَمَعْنٰى قَوْلِهٖ تَمَّتْ او په حديث کي د نبي ﷺ د دې قول: تمّت صلوته معنیٰ ده قَارَبَتِ التَّمَامَ (يعني) لمونځ پوره کېدلو ته نږدې سو وَالْإِسْتِخْلَافُ لَيْسَ بِمُفْسِدٍ او خليفه جوړول فاسدوونکي نه دي (د لمانځه لپاره) حَتّٰى يَجُوْزَ فِيْ حَقِّ الْقَارِئِ تر دې چي د قاري په حق کي (خليفه جوړول) جائز دي وَإِنَّمَا الْفَسَادُ ضَرُوْرَةُ حُكْمٍ شَرْعِيٍّ او د لمانځه فاسدېدل خو د يو شرعي حکم د ضرورت په وجه سره دي وَهُوَ عَدَمُ صَلَاحِيَّةِ الْإِمَامَةِ او هغه حکم (د امي سړي) د امامت صلاحيت نه لرل دي.

**اللغات**: ﴿إنقضت﴾ د انفعال د باب ماضي صيغه ده: ختمېدل. ﴿خلع﴾ د فتح د باب ماضي صيغه ده: کښته کېدل. ﴿عريان﴾ لڅ، بربنډ. ﴿مؤمي﴾ اشاره کونکی. ﴿جبيرة﴾ پټۍ، پلستر. ﴿برء﴾ د کېدل، د زخم جوړېدل. ﴿صنع﴾ کار، کوښښ.

**تشريح**: په دې عبارت کي هغه دوولس مسئلې بيانيږي چي هغه د تشهد په اندازه تر کښېنستلو وروسته پيښي سي، او دې مسئلو ته د فقهاؤ په اصطلاح کي مسائل اثناعشريه وايي، چي هغه دا دي:

(١) تيمّم کونکي لمونځ گزاره د تشهد په اندازه تر کښېنستلو وروسته اوبه وليدلې. (٢) يو سړي پر موزو مسح کړې وه او د تشهد په اندازه تر کښېنستلو وروسته يې د مسحې موده پوره سوه. (٣) يو سړي موزې په پښو کړي وې، او د تشهد په اندازه تر ناستي وروسته يې په عملِ يسير يعني په معمولي غوندي عمل سره يې موزې وړيستلې، عملِ يسير دا دی چي موزې داسي سستي وي چي د لاسو ضرورت پيدا نه سي، صرف د پښې په معمولي غوندي ښورېدلو سره موزه وخيږي. (۴) يا لمونځ گذاره امي وو، او د تشهد په اندازه تر ناستي وروسته يې د قرآن يو سورت زده کړی، صاحب د عنايې ويلي دي چي له دې څخه مراد دا دی چي قرآن يې هېر سوی وو، لېکن د تشهد په اندازه تر کښېنستلو وروسته يې په يادسو، دا يې مطلب نه دی چي په دې وخت کي يې زده کړی، ځکه چي د زده کړي لپاره تعليم ضروري دي، او تعليم د لمانځه منافي فعل دی، او بعضو ويلي دي چي د سورت د زده کړي مطلب دا دی چي ده بېله اختياره واورېدی، او بغير له کوښښ څخه د ده يادسو. (۵) لمونځ گزاره لڅ لمونځ کوی، او د تشهد تر اندازې وروسته يې کالي پيدا کړل. (۶) يا لمونځ گزاره په اشاره سره لمونځ کوی او د تشهد تر اندازې وروسته يې پر رکوع او سجده قدرت پيدا کړی. (۷) يا ده ته د تشهد په اندازه تر ناستي وروسته قضاء سوی لمونځ ور په يادسو، مثلاً د ماپښين په لمانځه کي د تشهد په اندازه تر کښېنستلو وروسته په يادورغله چي د سهار لمونځ له ده څخه قضاء سوی دی، حال دا چي د صاحب ترتيب کېدلو په وجه هغه مخکي کول پکار وو. (۸) يا د تشهد په اندازه تر ناستي وروسته قاري امام بې اودسه سو او خليفه يې امي سړی جوړ کړی. (۹) يا تشهد په اندازه له ناستي څخه وروسته د سهار لمر راوختی. (۱۰) يا د تشهد په اندازه تر ناستي وروسته د مازيگر وخت داخل سو، حال دا چي دا سړی تر اوسه لا د جمعې په لمانځه کي وو. (۱۱) يا دا چي لمونځ گزاره په پټۍ باندي مسح کړې وه، نو د تشهد په اندازه تر ناستي وروسته پټۍ د زخم جوړوالي په وجه ليري سوه.

(١٢) یا یو سړی معذوره وو، او د معذورینو د احکامو مطابق یې لمونځ کوی، او تر تشهد وروسته یې عذر ختم سو. لکه مستحاضه ښځه یا د دې په معنیٰ نور معذورین، د مثال په توګه سلسل بول والا ، یا هغه چې هر وخت یې پزه وینې کوي او داسې نور.

دا ټوله دوولس مسئلې دي، د دې حکم دا دی چې د امام اعظم رَحِمَهُ الله په نیز په دې ټولو صوتونو کي لمونځ باطلیږي. او د صاحبینو رَحِمَهُمَا الله په نیز په دې ټولو صورتونو کي لمونځ صحیح او پوره کیږي.

والاصل الخ او بعضي مشائخو فرمایلي دي چې په دې باب کي اصل دا دی چې د امام ابو حنیفه رَحِمَهُ الله په نیز له لمانځه څخه وتل د لمونځ کونکي په خپل اختیار سره فرض دي، او د صاحبینو رَحِمَهُمَا الله په نیز فرض نه دي، نو د دې اصل پر بنیاد د امام ابو حنیفه رَحِمَهُ الله په نیز په آخري ناسته کي تر تشهد وروسته د دې عوارضو (حدثونو) راتګ کوم چې هر یو جلا جلا ذکر سو داسې دی، لکه د لمانځه په مینځ کي چې راغلي وي. او د لمانځه په مینځ کي د دې عوارضو راتګ لمونځ فاسدوي، نو د تشهد په اندازه تر آخري ناستي وروسته هم د دې عوارضو راتګ لمونځ فاسدوي. او د صاحبینو رَحِمَهُمُ الله په نیز تر آخري ناستي وروسته د دې عوارضو راتګ داسې دی لکه تر سلام وروسته چې راغلي وي. او دا بنکاره خبره ده چې تر سلام ګرځولو وروسته یو عارض لمونځ نه فاسدي.

**د صاحبینو دلیل:** د عبد الله ابن مسعود رضی الله عنه دا حدیث دی: چې رسول الله ﷺ حضرت ابن مسعود رضی الله عنه ته فرمایلي وو: إذا قلت هذا أو فعلت هذا فقت تمت صلاتك إن شئت أن تقوم فقم... (یعني کله چې تا تشهد وویله. یا د تشهد په اندازه کښېنستې نو ستا لمونځ پوره سو، که ته غواړې چې ولاړ سې، نو ولاړ سه!). صاحبین په دې حدیث سره دلیل په دې توګه نیسي دی چې نبي ﷺ د لمانځه پوره کېدل په تشهد ویلو یا د تشهد په اندازه د ناستي سره معلق کړه. نو کوم سړی چې د لمانځه پوره والی په بل شي پوري معلق کوي، هغه له دې نص څخه مخالفت کوي. لنهه دا چې په دې مسئلو کي هم دا خبره کیږي: "چې که د تشهد په اندازه تر ناستي وروسته یعني که تر آخري ناستي وروسته دا عوارض مخته راغله، او دا خبره نه کیږي چې که تر آخري ناستي مخکي راغله"؛ او پر آخره ناسته خو لمونځ پوره کیږي. نو که چې پر آخره ناسته لمونځ پوره کیږي، نو تر آخري ناستي وروسته به لمونځ څرنګه باطل سي.

**د امام صاحب دلیل:** دا دی چې لمونځ ګزاره کوم لمونځ کوي د هغه لپاره له دې لمانځه څخه وتل. او په بل وخت کي د بل فرضي لمانځه کول فرض دي، او بل فرضي لمونځ تر هغه وخته نه سي اداء کېدلای تر څو چې لمونځ ګزاره له دې لمانځه څخه نه ووځي، ګواکي د بل فرض اداء کول له دې فرضو څخه پر وتلو موقوف دي، او دا خبره تسلیم سوې ده چې کوم شه پر فرضو موقوف وي هغه فرض وي، نو ځکه زموږ په نیز خروج بصنعه المصلي (یعني د لمونځ ګزاره په خپل فعل له لمانځه څخه وتل) فرض دي، او د لمونځ ګزاره لپاره تر تشهد وروسته داسې کول ضروري دي، خو که هغه داسې نه وکړه، نو هغه د فرضو پرېښوونکی سو، او د فرضو په پرېښوولو سره لمونځ باطلیږي، نو ځکه د امام صاحب رَحِمَهُ الله په نیز که تر تشهد وروسته هم له پورتني دوولسو عوارضو څخه یو عارض مخته راسي نو لمونځ به باطلیږي.

**جواب:** له ومعنی قوله تمت الخ څخه د ابن مسعود رضی الله عنه د حدیث جواب دی، د جواب حاصل دا دی چې په حدیث کي تمت صلاتك په معنیٰ سره د قاربت التمام دی، نو معنیٰ یې داسوه: "کله چې ته تشهد ووایې نو ستا لمونځ پوره کېدلو ته نژدې سو"، د دې مثال داسې دیٰ لکه د نبي ﷺ دا قول: من وقف بعرفته فقد تم حجه، (یعني څوک چې پر عرفت

ودرېدې، د هغه حج پوره سو)، حال دا چي تر وقوفِ عرفات وروسته لا طواف زیارت پاته وي چي هغه فرض دی، نو دلته همدا معنیٰ ده چي حج پوره کېدلو ته نژدې سو.

والاستخلاف الخ په دې سره د یو مقدر سوال جواب ورکوي، سوال دا دی چي کله د تشهد په اندازې تر ناستي وروسته قاري امام بې اودسه سي، او امي سړی خلیفه جوړ کړي، نو د امام ابو حنیفه رَحِمَهُ الله په نېز باید د دهٔ لمونځ فاسد نه سي، ځکه چي خلیفه جوړول لمونځ نه فاسدوي، ځکه که دې بې اودسه قاري امام بل قاري خلیفه جوړ کړی وای نو لمونځ به نه فاسدېدلای، نو همدارنګه دلته هم لمونځ نه فاسدېدل پکار وو.

جواب دا چي بېشکه خلیفه جوړول لمونځ نه فاسدوي، همدا وجه ده چي د قاري لپاره د بل قاري خلیفه جوړول جائز دي، خو په ذکر سوې مسئله کي فساد د خلیفه جوړولو په وجه نه دی، بلکي د بل شي په وجه دی، او هغه بل شی د شرعي حکم ضرورت دی، او د شرعي حکم ضرورت دا دی چي کوم امي خلیفه جوړ کړی سو، په هغه کي د امامت صلاحیت(ورتیا) نسته، نو په امام کي د امامت د صلاحیت د نشتون په وجه لمونځ فاسدېږي، نه دا چي د خلیفه جوړولو په وجه.

## که امام د لمانځه په دوران کي بې اودسه سي نو څه حکم دی؟

| |
|---|
| وَمَنِ اقْتَدٰى بِإِمَامٍ او څوک چي په امام پسي اقتداء وکړي بَعْدَ مَا صَلّٰى رَكْعَةً وروسته له دې چي امام یو رکعت کړی وي(یعني په دویم رکعت کي په امام پسي اقتداء وکړي) فَأَحْدَثَ الْإِمَامُ او امام بې اودسه سي فَقَدَّمَهُ او بیا امام همدغه مسبوق(چي له ده څخه یو رکعت تېر سوی دی) مخته کړي أَجْزَأَهُ نو جائز دي لِوُجُودِ الْمُشَارَكَةِ فِي التَّحْرِيمَةِ ځکه چي په تحریمه کي مشارکت(ګډون) سته وَالْأَوْلٰى لِلْإِمَامِ أَنْ يُقَدِّمَ مُدْرِكًا خو د امام لپاره غوره دا ده چي مدرک سړی(یعني هغه سړي چي ټوله رکعتونه یې نیولي وي) مخته کړي لِأَنَّهُ أَقْدَرُ عَلٰى إِتْمَامِ صَلَاتِهِ ځکه چي مدرک د امام د لمانځه پر پوره کولو زیات قادره دی وَيَنْبَغِي لِهٰذَا الْمَسْبُوقِ أَنْ لَا يَتَقَدَّمَ او دې مسبوق لپاره مناسب دا ده چي مخته نه سي لِعَجْزِهِ عَنِ التَّسْلِيمِ ځکه چي دی له سلام ګرځولو څخه عاجزه دی. |

**اللغات:** ﴿أَحْدَثَ﴾ د افعال د باب ماضي صیغه ده: اودس ماتېدل، ﴿مُدْرِك﴾ هغه مقتدي چي له شروع څخه یې لمونځ نیولی وي.

**تشریح: صورت د مسئلې:** دا دی که یو سړي د امام اقتداء وکړه په داسي حال کي چي امام یو رکعت کړی وو. نو ښکاره ده چي دا سړی مسبوق سو، په نورو الفاظو داسي هم ویل کېدای سي چي که یو مسبوق سړي د امام اقتداء وکړه، او امام بې اودسه سو، اومسبوق یې مخته کړی یعني مسبوق یې خپل خلیفه جوړ کړی، نو دا جائز دي، ځکه چي امام او مسبوق دواړه په تحریمه کي مشترک دي، نو د هغه خلیفه جوړول هم صحیح دي. لېکن غوره دا ده چي امام یو مدرک سړی خلیفه جوړ کړي، ځکه چي مدرک د امام د لمانځه پر پوره کولو زیات قدرت لري، ځکه که مسبوق خلیفه جوړ کړی سي، نو مسبوق به د سلام ګرځولو لپاره بل څوک خلیفه جوړوي، او ښکاره ده چي په دې صورت کي دوه واره خلیفه جوړول راځي، او یو وار خلیفه جوړول غوره دي په نسبت سره و بار بار خلیفه جوړولو ته.

## که مسبوق خلیفه جوړ سي نو څه حکم دی؟

فَلَوْ تَقَدَّمَ بیا که (دا) مسبوق سړی مخته سو يَبْتَدِئُ مِنْ حَيْثُ انْتَهَى إِلَيْهِ الْإِمَامُ نو له هغه ځایه به لمونځ شروع کوي کوم ځای ته چي امام رسېدلی وو لِقِيَامِهِ مَقَامَهُ ځکه چي (اوس دا) مسبوق د امام پر ځای ولاړ دی (یعني د امام قائم مقام دی) وَإِذَا انْتَهَى إِلَى السَّلَامِ يُقَدِّمُ مُدْرِكًا او کله چي (دا مسبوق سړی) سلام ته ورسېږي نو (یو) مدرک سړی به مخته کړي يُسَلِّمُ بِهِمْ چي (دا مدرک سړی به) په قوم سره سلام وګرځوي فَلَوْ أَنَّهُ حِينَ أَتَمَّ صَلَاةَ الْإِمَامِ قَهْقَهَ بیا که (دا) مسبوق خلیفه دامام د لمانځه د پوره کولو په وخت کي تهقهه خندا وکړه أَوْ أَحْدَثَ مُتَعَمِّدًا یا یې قصداً ځان بې اودسه کړی أَوْ تَكَلَّمَ یا یې خبري وکړې أَوْ خَرَجَ مِنَ الْمَسْجِدِ یا له مسجد څخه ووتی فَسَدَتْ صَلَاتُهُ نو د ده لمونځ فاسد سو وَصَلَاةُ الْقَوْمِ تَامَّةٌ او د مقتدیانو لمونځ پوره سو لِأَنَّ الْمُفْسِدَ فِي حَقِّهِ وُجِدَ فِي خِلَالِ الصَّلَاةِ ځکه چي فاسدونکی شی د مسبوق په حق کي د لمانځه په دوران کي واقع سو وَفِي حَقِّهِمْ بَعْدَ تَمَامِ أَرْكَانِهَا او د مقتدیانو په حق کي د لمانځه د ارکانو تر پوره کېدلو وروسته (واقع سو) وَالْإِمَامُ الْأَوَّلُ إِنْ كَانَ فَرَغَ لَا تَفْسُدُ صَلَاتُهُ او که اول امام (له لمانځه څخه) فارغ سوی وو نو د هغه لمونځ نه فاسدېږي وَإِنْ لَمْ يَفْرُغْ تَفْسُدُ او که نه وو فارغ سوی نو د هغه لمونځ (هم) فاسدېږي وَهُوَ الْأَصَحُّ همدا زیاته صحیح ده.

**تشریح: صورت د مسئلې:** دا دی که بې اودسه امام خپل خلیفه یو مسبوق مقتدی جوړ کړی، نو دا مسبوق دي له هغه ځایه څخه لمونځ شروع کړي تر کومه ځایه چي امام رسېدلی وي، ځکه چي دی د امام قائم مقام دی، او کله چي مسبوق لمونځ پوره کړي او تر سلام ګرځولو پوري ورسیږي، نو په خپله دي شاته سي، او یو مدرک دي رامخته کړي، د دې لپاره چي هغه په مقتدیانو سلام وګرځوي او د دوی لمونځ ور پوره کړي، او مسبوق خلیفه به مدرک په دې وجه مخته کوي ځکه چي مسبوق په خپله له سلام ګرځولو څخه عاجزه دی، ځکه چي تر اوسه پر ده یو رکعت لا پاته دی، نو له داسي سړي څخه دي مرسته طلب کړي چي هغه د سلام قدرت لري.

فلو أنه حين الخ او که صورت داسي سو چي کله مسبوق خلیفه د امام لمونځ پوره کړی، نو تهقهه خندا یې وکړه، یا یې قصداً اودس مات کړی، یا یې خبري وکړې، یا له مسجد څخه ووتی، نو په دې صورتونو کي د مسبوق خلیفه لمونځ په خپله فاسد سو، همدارنګه که په مقتدیانو کي یو مسبوق وو، نو د هغه لمونځ هم فاسد سو، او د پاته مقتدیانو لمونځ پوره سو، په دې شرط چي دا مقتدیان له اوله څخه تر آخره پوري د امام سره شریک سوي وي.

**دلیل:** دا دی چي د لمانځه فاسدونکی شی د مسبوق په حق کي د لمانځه په مینځ کي راغلی، او د مقتدیانو په حق کي د ټولو ارکانو تر پوره کېدلو وروسته راغلی، او دا خبره تسلیم سوې ده چي د لمانځه په مینځ کي د مُفسد شي راتلل لمونځ فاسدوي، لېکن د ارکانو تر پوره کېدلو وروسته لمونځ نه فاسدوي.

والإمام الاول الخ پاته سو اول امام نو د هغه دوه حالتونه دي نو که هغه اودس کړی وو او په لمانځه کي شریک سوی وو، او د دویم امام سره یې خپل لمونځ پوره کړی وو نو د هغه لمونځ هم پوره سو، لېکن که هغه د دویم امام سره لمونځ پوره کړی نه وو، نو په دې صورت کي صحیح دا ده چي د هغه لمونځ هم فاسدېږي، ځکه چي هغه د دویم امام یعني د مسبوق

مقتدي دی، او څرنګه چې د مسبوق لمونځ فاسد سوی دی، نو ځکه به د هغه لمونځ هم فاسديږي، صاحب د هدايې په اصح ويلو سره د ابو حفص له هغه روايت څخه احتراز کړی دی چې په هغه کې د اول امام لمونځ فاسد نه بلکې صحيح ګرځول سوی دی.

## که امام تر تشهد وروسته لمونځ فاسد کړي نو د مسبوق د لمانځه حکم

فَإِنْ لَمْ يُحْدِثِ الْإِمَامُ الْأَوَّلُ (لېکن) که اول امام بې اودسه نه سو وَقَعَدَ قَدْرَ التَّشَهُّدِ او د تشهد په اندازه کېښېنستی ثُمَّ قَهْقَهَ أَوْ أَحْدَثَ مُتَعَمِّدًا بيا يې قهقهه خندا وکړه يا يې قصداً ځان بې اودسه کړی فَسَدَتْ صَلَاةُ الَّذِي لَمْ يُدْرِكْ أَوَّلَ صَلَاتِهِ عِنْدَ• أَبِي حَنِيفَةَ رَحِمَهُ اللهُ نو د امام اعظم رَحِمَهُ الله په نېز د هغه سړي لمونځ فاسديږي چې د لمانځه اوله حصه يې نېولې نه وي (يعني د مسبوق لمونځ فاسديږي) وَقَالَا: لَا تَفْسُدُ او صاحبين رَحِمَهُمَا الله فرمايي: چې لمونځ يې نه فاسديږي وَإِنْ تَكَلَّمَ أَوْ خَرَجَ مِنَ الْمَسْجِدِ او که امام خبري وکړي يا له مسجد څخه ووتی لَمْ تَفْسُدْ فِي قَوْلِهِمْ جَمِيعًا نو لمونځ نه فاسديږي په اتفاق سره د دې ټولو عالمانو لَهُمَا أَنَّ صَلَاةَ الْمُقْتَدِي بِنَاءٌ عَلَى صَلَاةِ الْإِمَامِ د صاحبينو رَحِمَهُمَا الله دليل دا دی چې د مقتدي لمونځ د امام پر لمانځه مبني دی جَوَازًا وَفَسَادًا د جواز او فساد دواړو په اعتبار سره وَلَمْ تَفْسُدْ صَلَاةُ الْإِمَامِ او د امام لمونځ نه دی فاسد سوی فَكَذَا صَلَاتُهُ همدارنګه به د مقتدي لمونځ هم (فاسد نه وي) وَصَارَ كَالسَّلَامِ وَالْكَلَامِ او دا د سلام او خبرو په څېر سو (يعني لکه څرنګه چې تر تشهد وروسته د امام په خبرو او سلام ګرځولو سره د مسبوق لمونځ نه فاسديږي، همدارنګه په ذکر سوې مسئله کې هم د هغه لمونځ نه فاسديږي) وَلَهُ أَنَّ الْقَهْقَهَةَ مُفْسِدَةٌ لِلْجُزْءِ الَّذِي يُلَاقِيهِ مِنْ صَلَاةِ الْإِمَامِ او د امام صاحب رَحِمَهُ الله دليل دا دی چې قهقهه د هغه جزء لپاره فاسدونکې ده کوم چې د امام د لمانځه سره متصل وي (يعني قهقهه چې په کومه حصه کې هم واقع سي نو د امام د لمانځه هغه حصه ورفاسدوي) فَيَفْسُدُ مِثْلُهُ مِنْ صَلَاةِ الْمُقْتَدِي نو د دغه جزء په شان به د مقتدي د لمانځه جزء هم فاسديږي غَيْرَ أَنَّ الْإِمَامَ لَا يَحْتَاجُ إِلَى الْبِنَاءِ لېکن امام بناء ته ضرورت نه لري (د فرائضو د پوره کېدلو په وجه) وَالْمَسْبُوقُ يَحْتَاجُ إِلَيْهِ او مسبوق بناء ته ضرورت لري (او دلته پر فاسد لمونځ بناء کوي) وَالْبِنَاءُ عَلَى الْفَاسِدِ فَاسِدٌ او پر فاسد شي بناء کول (هم) فاسد وي بِخِلَافِ السَّلَامِ لِأَنَّهُ مُنْهٍ په خلاف د سلام ځکه چې هغه د لمانځه پوره کونکی دی وَالْكَلَامُ فِي مَعْنَاهُ او خبري هم د سلام په معنیٰ سره دي وَيَنْتَقِضُ وُضُوءُ الْإِمَامِ او د امام اودس ماتيږي لِوُجُودِ الْقَهْقَهَةِ فِي حُرْمَةِ الصَّلَاةِ د لمانځه په حرمت کې د قهقهه خندا راتللو په وجه.

اللغات: ﴿يلاقي﴾ د مفاعلې د باب مضارع ده: يو ځای کېدل، (متصل کېدل). ﴿ينتقض﴾ د افتعال د باب مضارع ده: ماتېدل له نقض څخه دی.

---

• القول الراجح: قول ابی حنیفة، کذا فی الدر المختار ج:۱، ص:۴۵۲. [القول الراجح ج:۱، ص:۹۸]

**تشريح: صورت د مسئلې:** دا دی که يو سړي خلګو ته لمونځ ورکوی، او په مقتديانو کي مسبوق او مدرک يعني هر ډول خلک وه، او په اولو رکعتو کي خو د امام اودس مات نه سو، لېکن په آخره ناسته کي د تشهد په اندازه تر کښېنستلو وروسته امام په زوره وخندل يعني قهقهه خندا يې وکړه، او قصداً يې اودس مات کړی، نو په دې صورت کي د امام صاحب رَحِمَهُ الله په نېز په مقتديانو کي د هغو خلګو لمونځ فاسديږي کوم چي مسبوق دي، او د صاحبينو رَحِمَهُمَا الله په نېز نه فاسديږي، خو د مدرک مقتديانو لمونځ بالاتفاق صحيح دی، همدارنګه که امام ته له قهقهې څخه علاوه بل عارض ور پېښ سو، د مثال په توګه خبري يې وکړې، يا له مسجد څخه ووتی، نو بالاتفاق د هيڅا لمونځ هم نه فاسديږي، نه د مدرک مقتديانو او نه د مسبوق مقتديانو.

**د صاحبينو دليل:** دا دی چي د مقتدي لمونځ هغه که مدرک وي او که مسبوق د جواز او فساد په اعتبار سره د امام پر لمانځه مبني او موقوف دی، او په ذکر سوې مسئله کي چي څرنګه د امام لمونځ فاسد سوی نه دی، همدارنګه به د مقتديانو لمونځ هم نه فاسديږي.

**د امام صاحب دليل:** دا دی چي دا ښکاره خبره ده چي په قهقهه سره لمونځ فاسديږي، او چي د لمانځه د هر جزء سره قهقهه متصله سي هغه جزء فاسديږي، او څرنګه چي د مقتديانو لمونځ د صحت او فساد په اعتبار سره د امام پر لمانځه موقوف دی، نو قهقهه چي د امام د لمانځه کوم جزء ور فاسد کړي د مقتديانو د لمانځه هم هغه جزء ور فاسدوي، او څرنګه چي په ذکر سوې مسئله کي قهقهه په آخره ناسته کي تر تشهد وروسته پېښه سوې ده، نو د امام او د مدرک مقتديانو پر لمانځه به د دې قهقهې هيڅ اثر نه وي، ځکه چي په آخره ناسته کي د تشهد په اندازه کښېنستل د لمانځه آخري رکن دی، او قهقهه د آخري رکن تر اداء کېدلو وروسته پېښه سوې ده، نو ځکه به دا قهقهه د امام او مدرک مقتديانو اصل لمونځ نه فاسدوي، ځکه چي په آخره ناسته کي د تشهد په اندازه تر کښېنستلو وروسته د دوی لمونځ پوره سو، لېکن دا قهقهه به د مسبوقينو لمونځ فاسدوي، ځکه چي د مسبوق والي په وجه د دوی لمونځ تر اوسه لا نه دي پوره سوي، بلکي پر دې لمانځه نور پاته سوی لمونځ بناء کوي، او څرنګه چي د دوی په حق کي د لمانځه دا جزء فاسد سوی دی، نو ځکه به د دوی ټوله لمونځ فاسد وي، ځکه چي پر فاسد لمونځ بناء کول صحيح نه دي، د دې په خلاف د امام او د مدرک مقتديانو لمونځ صحيح دی، ځکه چي د امام او مدرک لپاره د بناء کولو هيڅ ضرورت نسته.

بخلاف السلام الخ فرمايي چي د سلام او خبرو (کلام) مسئله جلا ده د قهقې او د قصداً حدث له مسئلې څخه، ځکه چي السلام عليکم لمونځ نه دی بلکي د لمانځه پوره کونکی لفظ دی، يعني د سلام په ذريعه لمونځ پوره کيږي، او څرنګه چي د سلام په ډول کلام هم خطاب دی، نو ځکه به کلام هم د سلام په معنیٰ کي وي، نو نه به په سلام سره لمونځ فاسديږي او نه په کلام سره، او بيا دا دواړه پر قهقهه او حدث قياسول هم صحيح نه دي، ځکه چي مورد نښوولي دي چي قهقهه او داسي نور لمونځ فاسدونکي دي او سلام او داسي نور د لمانځه پوره کونکي دي.

وينتقض الخ د دې حاصل دا دی چي د امام صاحب او طرفينو رَحِمَهُمُ الله په نېز په ذکر سوې مسئله کي خو د امام لمونځ نه فاسديږي، ځکه چي دا قهقهه د لمانځه د ارکانو له بشپړتيا څخه وروسته راغلې ده، خو د دوی په نېز د امام اودس ماتيږي، او هغه ته د را روان لمانځه لپاره د نوي اودس کول ضروري دي، ځکه چي د هغه دا قهقهه د لمانځه په حرمت کي راغله، او د لمانځه په حرمت کي راتلونکې قهقهه اودس ماتوي، د لمانځه د حرمت مطلب دا دی، چي دا قهقهه په داسي وخت کي راغله چي د لمانځه ختمېدلو ته لا دومره وخت پاته وو، چي په هغه کي قهقهه او داسي نور شيان حرام وه، يعني څرنګه چي تر اوسه صرف تشهد پوره سوی وو، سلام نه وو ګرځول سوی، نو ځکه دا قهقهه اوس صحيح نه وه. د

دې په خلاف امام زفر رَحِمَهُ الله فرمايي: چې څرنګه په ذکر سوې مسئله کې د امام لمونځ صحيح دی، همدارنګه د هغه اودس هم پاته دی، ځکه چې د امام زفر رَحِمَهُ الله په نيز قاعده داده چې أن كل قهقهة توجب إعادة الصلاة توجب الوضوء، وما لا فلا، يعني د ده په نيز چې کومه خندا د لمانځه د راګرځولو سبب وي هغه خندا د اودس لپاره فاسلونکې هم ده، او په ذکر سوې مسئله کې چې څرنګه د دې قهقهې په سبب لمونځ نه راګرځول کيږي، نو ځکه به اودس هم نه فاسدوي. (منيه ج:١، ص:٢٠١)

**راجح قول:** په پورتنې مسئله کې راجح قول د امام صاحب رَحِمَهُ الله دی. قال العلامة عبيد الله بن مسعود بن تاج الشريعة رَحِمَهُ الله وهكذا قهقهة الامام وحدثه عمدا صلوة المسبوق أي يبطل بعد التشهد صلوة المسبوق لوقوعه في خلال صلوته. (شرح الوقاية ج:١، ص:١٨٦). [القول الراجح ج:١، ص:٩٨]

### که د لمانځه په يو رکن کې انسان بې اودسه سي نو هغه رکن به راګرځول کيږي، که نه؟

وَمَنْ أَحْدَثَ او کوم سړی چې بې اودسه سو فِي رُكُوعِهِ أَوْ سُجُودِهِ په خپله رکوع يا سجده کې تَوَضَّأَ وَبَنَى نو هغه دې اودس وکړي او د لمانځه بناء دې وکړي وَلَا يَعْتَدُّ بِالَّتِي أَحْدَثَ فِيهَا او هغه رکن (يعني رکوع او سجده) دې نه شماري چې په هغه کې بې اودسه سوی وي لِأَنَّ إِتْمَامَ الرُّكْنِ بِالِانْتِقَالِ ځکه چې رکن په نقل کېدلو سره پوره کيږي وَمَعَ الْحَدَثِ لَا يَتَحَقَّقُ او د حدث په وجه انتقال ثابت نه سو فَلَا بُدَّ مِنَ الْإِعَادَةِ نو ځکه د رکن راګرځول ضروري دي وَلَوْ كَانَ إِمَامًا او که دا بې اودسه امام وو فَقَدَّمَ غَيْرَهُ او بل سړی يې مخته کړی (يعني خليفه يې جوړ کړی) دَامَ الْمُقَدَّمُ عَلَى الرُّكُوعِ نو مخته کړی سوی (خليفه) دې پر رکوع دوام وکړي لِأَنَّهُ يُمْكِنُهُ الْإِتْمَامُ بِالِاسْتِدَامَةِ ځکه چې د خليفه لپاره په دوام سره د رکوع پوره کول ممکن دي.

**اللغات:** ﴿لا يعتد﴾ د افتعال د باب نفي صيغه ده: شمارل، ﴿دام﴾ د نصر د باب ماضي ده: پاته کېدل، همېشتوب. ﴿المقدم﴾ کوم يو چې مخکې سوی وي (مراد ځنې خليفه دی)، ﴿استدامة﴾ پاته کېدل، همېشتوب.

**تشريح: صورت د مسئلې:** دا دی که يو سړی په رکوع يا سجده کې بې اودسه سو، نو د هغه لپاره حکم دا دی چې اودس دې وکړي او پر لمانځه دې بناء وکړي، او په کومه رکوع يا سجده يعني په کوم رکن کې چې بې اودسه سوی وو، هغه دې پوره نه شماري، بلکې د بناء کولو په وخت کې دې هغه را وګرځوي، ځکه چې يو رکن هغه وخت پوره کيږي چې کله بل رکن ته منتقل سي، او د بې اودسی (حدث) په وخت کې د بل رکن و طرف ته منتقل کېدل ممکن نه دي، ځکه څرنګه چې د رکن د اداء کولو لپاره طهارت شرط دی، همدارنګه دويم رکن ته د انتقال لپاره هم طهارت شرط دی، او د حدث په وجه سره طهارت ختم سوی دی، همدا وجه ده چې په کوم رکن کې حدث راسي، د هغه رکن راګرځول به ضروري وي.

ولو كان إماماً الخ د دې حاصل دا دی چې که دا سړی امام وو او په رکوع کې بې اودسه سو، او بيا يې په تېښته (يعني په رکوع کې دننه) بل مقتدي خليفه جوړ کړی، نو د دې خليفه لپاره له شروع څخه د رکوع کولو ضرورت نشته، بلکې د رکوع په اندازه دې په همدغه رکوع کې پاته سي، دليل يې دا دی چې په کوم رکن کې چې دوام کيږي او د هغه د اداء کولو لپاره څه وخت پکار وي، په هغه کې پاته کېدلو او استدامت ته د انشاء حکم ور کول کيږي، (يعني که لمونځ کونکی

په هغه رکن کي پاته سي او له شروع څخه يې نه راوګرځوي نو دا حکم به کيږي چي لمونځ کونکي دا رکن له شروع څخه کړی دی)، نو دلته هم د خليفه لپاره په استدامت او پاته کېدلو سره د رکوع پوره کول ممکن دي، نو ځکه وويل سوه چي هغه دي په رکوع د رکوع په اندازه پاته سي، له شروع څخه د رکوع کولو هيڅ ضرورت نسته.

## د لمانځه په ارکانو کي د ترتيب هېرېدلو حکم

## (او د دې د بېلا بېلو صورتونو بيان)

وَلَوْ تَذَكَّرَ وَهُوَ رَاكِعٌ أَوْ سَاجِدٌ او که لمونځ ګزار ته د رکوع يا سجدې په حالت کي په ياد ورغله أَنَّ عَلَيْهِ سَجْدَةً چي پر ده يوه سجده پاته وه فَانْحَطَّ مِنْ رُكُوعِهِ نو هغه له رکوع څخه د سجدې د قضاء راوړلو لپاره ټيټ سو أَوْ رَفَعَ رَأْسَهُ مِنْ سُجُودِهِ يا يې خپل سر له سجدې څخه پورته کړی فَسَجَدَهَا او قضاء سوې سجده يې وکړه يُعِيدُ الرُّكُوعَ وَالسُّجُودَ نو رکوع او سجده به راګرځوي وَهٰذَا بَيَانُ الْأَوْلَى او دا بيان د افضيلت(اولويت) دی لِتَقَعَ أَفْعَالُ الصَّلَاةِ مُرَتَّبَةً بِالْقَدْرِ الْمُمْكِنِ د دې لپاره چي تر خپلې وسه(او طاقته) د لمانځه افعال په ترتيب سره اداء سي وَإِنْ لَمْ يُعِدْ أَجْزَأَهُ او که رکوع يا سجده يې نه را وګرځوله نو دا هم د ده لپاره جائز دي لِأَنَّ التَّرْتِيبَ فِي أَفْعَالِ الصَّلَاةِ لَيْسَ بِشَرْطٍ ځکه چي د لمانځه په افعالو کي ترتيب شرط نه دی وَلِأَنَّ الِانْتِقَالَ مَعَ الطَّهَارَةِ شَرْطٌ او ځکه چي په اودسه سره منتقل کېدل شرط دي وَقَدْ وُجِدَ او هغه پيدا سوه(يعني هغه دلته سته) وَعَنْ أَبِي يُوسُفَ رَحِمَهُ اللهُ• أَنَّهُ يَلْزَمُهُ إِعَادَةُ الرُّكُوعِ او له امام ابو يوسف رَحِمَهُ الله څخه روايت دی چي پر دې لمونځ ګزاره د رکوع او سجدې راګرځول ضروري دي لِأَنَّ الْقَوْمَةَ فَرْضٌ عِنْدَهُ ځکه چي د امام ابو يوسف رَحِمَهُ الله په نيز قومه فرض ده.

**اللغات:** ﴿تَذَكَّرَ﴾ د تفعيل د باب ماضي ده: په يادېدل، په ياد راتلل، ﴿اِنْحَطَّ﴾ د انفعال د باب ماضي ده: کرېدل، ټيټېدل، کښته کېدل.

**تشريح:** صورت د مسئلې: دا دی که لمونځ ګزار ته د رکوع په وخت کي دا په ياد ورغله چي پر ده مخکي د تلاوت سجده يا يو بله سجد پاته وه، يا د سجدې په حالت کي په ياد ورغله چي پر ده بله سجده پاته وي، نو د رکوع يا د سجدې په حالت کي يې سر ټيټ کړی او قضائي سجده يې راوګرځول، نو د ده قضائي سجده خو صحيح سوه، لېکن په کومه رکوع يا سجده کي چي يې قضائي سجده وکړه، هغه رکوع او سجده به راګرځوي، او دا راګرځول غوره او مستحب دي، د دې لپاره چي حتى الامکان افعال په ترتيب سره اداء سي، او له رکوع او سجدې څخه قضائي سجده مخکي کول ممکن دي، نو ځکه به د هغې مخکي کول غوره وي.

وإن لم يعد الخ خو که رکوع او سجده يې نه را وګرځول، نو بيا هم صحيح ده، ځکه چي په کومه رکوع او سجده کي چي قضائي سجده په ياد ورغلې وي هغه رکوع او سجده خو په حقيقت کي سوې ده، خو راګرځول يې صرف د ترتيب په

---

• القول الراجح: قول الطرفين، قال العلامة عبيد الله بن مسعود رَحِمَهُ الله: و إن تذكر في ركوع او سجوده أنه ترك سجدة هو في الركعة الاولى فقضاؤها لا يجب عليه اعادة الركوع او السجود الذى تذكره فيه لكن إن اعادا أن يكون مندوباً، شرح الوقاية ج:١، ١٤٢. [القول الراجح ج:١، ص: ٩٩]

وجه دي، لېکن څرنګه چې د لمانځه په افعالو کې ترتیب شرط نه دی. نو ځکه که په افعالو کې ترتیب را نه سي نو په لمانځه کې هیڅ فرق نه راځي.

**دليل:** په افعالو کې د ترتیب د نه شرط کېدلو دليل دا دی چې مسبوق (هغه سړی چې څه لمونځ ځني تېر سوی وي)، هغه خپل لمونځ له هغه ځایه شروع کوي له کوم ځای څخه چې امام ونیسي. بیا د امام تر سلام ګرځولو وروسته پاته سوی لمونځ راګرځوي، ګواکې مسبوق آخري لمونځ اول اداء کوي او اول لمونځ وروسته اداء کوي. نو که ترتیب شرط وای نو د مسبوق لپاره به د جماعت د عذر په وجه د ترتیب پرېښوول جائز نه وای.

وعن أبي يوسف الخ فرمايي چې د امام ابو یوسف رَحِمَهُ الله په نېز که لمونځ ګزاره په رکوع کې وو، او په رکوع کې قضائي سجده په یاد ورغله، بیا بغیر له دې څخه چې له رکوع څخه سر راپورته کړي د دې قضائي سجدې د اداء کولو لپاره ټیټ او منتقل سو، نو په دې صورت کې پر ده د دې رکوع راګرځول ضروري دي، ځکه چې د امام ابو یوسف رَحِمَهُ الله په نېز له رکوع څخه سر راپورته کول او قومه کول فرض دي، نو لمونځ ګزاره چې کله سیده سجدې ته ولاړی سر یې راپورته نه کړی، نو هغه دا فرض پرېښووی، او رکوع یې اداء نه سوه، نو ځکه به پر ده دې رکوع راګرځول ضروري یې.

## که د امام شاته صرف یو مقتدي وي او امام بې اودسه سي نو څه حکم دی؟

وَمَنْ أَمَّ رَجُلًا وَاحِدًا او که یو چا یوه سړي ته لمونځ ورکوی (یعني مقتدي یې صرف یو وو) فَأَحْدَثَ وَخَرَجَ مِنَ الْمَسْجِدِ نو بیا دغه لمونځ ورکونکی (یعني امام) بې اودسه سو او له مسجد څخه ووتی فَالْمَأْمُومُ إِمَامٌ نو مقتدي امام دی نَوَى أَوْ لَمْ يَنْوِ هغه که اول امام د ده د امامت نیت کړی وي او که نه وي لِمَا فِيهِ مِنْ صِيَانَةِ الصَّلَاةِ ځکه چې په دې کې د لمانځه ساتنه ده وَتَعْيِينُ الْأَوَّلِ لِقَطْعِ الْمُزَاحَمَةِ او د اول امام لپاره (د یو سړي) متعین کول د مزاحمت (خند او انتشار) د مخنیوي لپاره دي وَلَا مُزَاحَمَةَ هَهُنَا او دلته هیڅ مزاحمت نسته وَيُتِمُّ الْأَوَّلُ صَلَاتَهُ مُقْتَدِيًا بِالثَّانِي او اول امام به خپل لمونځ پوره کوي د دویم (امام) په اقتداء کولو سره (یعني اول امام دې تر اودس کولو وروسته د دویم امام مقتدي جوړ سي او خپل لمونځ دې پوره کړي) كَمَا إِذَا اسْتَخْلَفَهُ حَقِيقَةً لکه په هغه صورت کې چې کله یې حقیقتًا دویم امام خلیفه جوړ کړی وي وَلَوْ لَمْ يَكُنْ خَلْفَهُ إِلَّا صَبِيٌّ أَوْ امْرَأَةٌ او که د بې اودسه امام شاته صرف کوچنی یا ښځه وه قِيلَ تَفْسُدُ صَلَاتُهُ نو یو قول دا دی چې د امام لمونځ فاسدیږي لِاسْتِخْلَافِ مَنْ لَا يَصْلُحُ لِلْإِمَامَةِ د هغه چا د خلیفه جوړېدلو په وجه چې هغه د امامت صلاحیت (وړتیا) نه لري وَقِيلَ لَا تَفْسُدُ او بل قول دا دی چې د بې اودسه امام لمونځ نه فاسدیږي لِأَنَّهُ لَمْ يُوجَدِ الِاسْتِخْلَافُ قَصْدًا ځکه چې قصداً د خلیفه جوړول نه دي راغلي (یعني امام په خپل قصد سره ښځه یا کوچني د امامت لپاره نه دي مخته کړي) وَهُوَ لَا يَصْلُحُ لِلْإِمَامَةِ او (په خپله) دا (کوچنی او ښځه) د امامت صلاحیت نه لري.

**اللغات:** ﴿أَمَّ﴾ د نصر د باب ماضي ده: امامت کول، لمونځ ورکول، ﴿مَأْمُوم﴾ مقتدي، ﴿صِيَانَة﴾ ساتنه، ژغورنه، حفاظت، ﴿مُزَاحَمَة﴾ خند، ستونزه.

**تشريح:** صورت د مسئلې: دا دی که یوه سړي د بل سړي امامت وکړی، (یعني له امام څخه ملسوا صرف یو مقتدي وو) بیا امام بې اودسه سو، او له مسجد څخه ووتی، نو د هغه پر ځای مقتدي په خپله امام ګرځي، برابره خبره ده که اول امام د

ده د خلافت نیت کړی وي، که نه وي، خو په دې شرط چې دی د امامت اهل (لائق) وي. (په دې عبارت کې دا احتمال هم سته چې مقتدي د خلیفه کېدلو نیت کړی وي، که نه وي).

**دلیل:** دا دی چې په دې صورت کې یعني د مقتدي په امام کېدلو کې د مقتدي د لمانځه ساتنه او محافظت دی، ځکه که مقتدی امام نه کړی سي نو د امامت ځای به خالي پاته سي، او کله چې د امامت ځای له امام شخصه خالي سي نو د مقتدي لمونځ فاسدیږي، نو ځکه موږ وویل چې په ذکر سوې صورت کې مقتدي په خپله امام ګرځي.

وتعین الأول الخ له دې ځایه دیو سوال جواب ورکوي:

**سوال:** دا دی چې د مقتدي په خپله امام جوړېدل موږ نه منو، ځکه د بې اودسه کېدلو په وخت کې دا دریم سری (مقتدی) هغه وخت امام جوړیږي چې کله د اول امام له طرفه د ده تعیین وسي، او دلته تعیین نه دي سوی، نو ځکه موږ د ده امامت نه منو.

**جواب:** صاحب د هدایې د دې جواب ورکوي چې وروره! تعین هلته کیږي چې هلته له امام شخه ماسوا مقتدي یو نه وي بلکې ډېر وي، د دې لپاره چې په مقتدیانو کې انتشار او خندا نه سي (یعني دیو زړه به غواړي چې زه مخته سم او د بل زړه به غواړي چې زه مخته سم، یا دا چې هیڅوک به هم نه مخته کیږي نو له دې کبله به کړکېچ او انتشار پیدا سي)، او څرنګه چې په ذکر سوې مسئله کې صرف یو مقتدی دی، نو معلومه ده چې هیڅ کړکېچ او انتشار نه پیدا کیږي، نو ځکه دلته د تعیین ضرورت نسته، او بې له تعیینه په اتوماتیک توګه سړه مقتدی امام جوړیږي، نو کله چې دا سړی په خپله امام جوړ سو، نو اول امام به اودس وکړي، او په دې امام پسې به اقتداء وکړي او خپل لمونځ به پوره کړي، لکه څرنګه چې په هغه صورت کې به یې هم د دې امام اقتداء کولای کله چې یې دی حقیقتاً خلیفه جوړ کړی وای.

ولولم یکن الخ فرمایي که د بې اودسه امام شاته نابالغه کوچنی یا ښځه وه، بل څوک نه وو، نو په دې باره کې د مشائخو اختلاف دی، د بعضو خیال دا دی چې د امام لمونځ فاسدیږي، ځکه چې ده هغه انسان خلیفه جوړ کړی کوم چې د امامت اهل او لایق نه دی، نو کله چې کوچنی یا ښځه د امامت لپاره که څه هم حکماً متعین کړل سوه، نو بې اودسه امام د دوی اقتداء کونکی سو، او قاعده دا ده چې کوم سړی د داسې انسان اقتداء کوي چې هغه د امامت اهل نه وي، نو د هغه لمونځ فاسدیږي، او بعضو مشائخو ویلي دي چې د هغه لمونځ نه فاسدیږي، ځکه چې د لمانځه فاسدېدل خو د مقتدي پر خلیفه کېدلو موقوف دي، او هغه دلته نسته، ځکه چې خلیفه جوړول به حقیقةً وي یا حکماً، او دلته له دواړو څخه یو هم نسته، حقیقةً خو ځکه نسته چې دې امام خو قصداً څوک خلیفه نه دي جوړ کړی، او حکماً ځکه نسته چې کوچنی یا ښځه د امامت صلاحیت او لیاقت نه لري، نو کله چې په دې دواړو کې د امامت صلاحیت نسته، نو حکماً هم نه سي خلیفه کېدلای، نو کله چې نه حقیقةً خلیفه کېدل ثابت سوه او نه حکماً نو د بې اودسه امام لمونځ به هم فاسد نه وي ځکه چې د امام د لمانځه فاسدېدل د مقتدي په خلیفه کېدلو باندې مبني دي، والله اعلم بالصواب.

# بَابُ مَا يُفْسِدُ الصَّلَاةَ وَمَا يُكْرَهُ فِيهَا

(دا) باب د هغه شيانو (په بيان کي) دی چي لمونځ فاسدوي او د هغه شيانو (په بيان کي) دی چي په لمانځه کي مکروه دي

**تشريح:** صاحب د کتاب په دې باب کي هم د لمانځه عوارض بيانوي، او تر دې مخکي يې هم عوارض بيان کړل، ليکن مخکي د هغه عوارضو بيان وو کوم چي غير اختياري او آسماني وه، او اوس هغه عوارض بيانوي کوم چي اختياري او کسبي دي، او ځرنګه چي غير اختياري عوارض د اختياري عوارضو په پرتله کي زيات معروف او مشهور دي او زيات واقع کېدونکي دي، نو ځکه يې هغه مخکي بيان کړه، اوس اختياري عوارض بيانوي.

## په لمانځه کي په خبرو سره د لمانځه د باطلېدلو حکم

وَمَنْ تَكَلَّمَ فِي صَلَاتِهِ عَامِدًا أَوْ سَاهِيًا او چا چي قصداً يا په هېره سره په خپل لمانځه کي خبري وکړې بَطَلَتْ صَلَاتُهُ نو د هغه لمونځ باطل سو خِلَافًا لِلشَّافِعِيِّ رَحِمَهُ اللهُ فِي الْخَطَإِ وَالنِّسْيَانِ په خطاء او هېره کي د امام شافعي رَحِمَهُ الله اختلاف دی وَمَفْزَعُه الْحَدِيثُ الْمَعْرُوفُ● د امام شافعي رَحِمَهُ الله دليل (هغه) مشهوره حديث دی وَلَنَا: قَوْلُه عَلَيْهِ الصَّلَاةُ وَالسَّلَامُ● او زموږ دليل دا دی: چي نبي ﷺ فرمايلي دي إِنَّ صَلَاتَنَا هٰذِهٖ لَا يَصْلُحُ فِيهَا شَيْءٌ مِنْ كَلَامِ النَّاسِ بې له شکه زموږ په دې لمانځه کي د خلکو خبري صحيح نه دي وَإِنَّمَا هِيَ التَّسْبِيحُ وَالتَّهْلِيلُ وَقِرَاءَةُ الْقُرْآنِ (بلکي) دا خو صرف تسبيح، تهليل او قرائت دی وَمَا رَوَاهُ مَحْمُولٌ عَلَى رَفْعِ الْإِثْمِ او کوم حديث چي امام شافعي رَحِمَهُ الله روايت کړی دی هغه د ګناه په پورته کېدلو حمل سوی دی بِخِلَافِ السَّلَامِ سَاهِيًا په خلاف په هېره سره د سلام ګرځولو لِأَنَّهُ مِنَ الْأَذْكَارِ ځکه چي سلام له ذکرونو څخه دی فَيُعْتَبَرُ ذِكْرًا فِي حَالَةِ النِّسْيَانِ نو ځکه به د هيري په حالت کي سلام ذکر ګرځول کيږي وَكَلَامًا فِي حَالَةِ التَّعَمُّدِ او د قصد په حالت کي به سلام خبري ګرځول کيږي لِمَا فِيهِ مِنْ كَافِ الْخِطَابِ ځکه چي په السلام عليکم کي کاف د خطاب دی.

**اللغات:** ﴿ساهي﴾ هېروونکی، ﴿مفزع﴾ پناه ځای، مراد ځني دليل دی، ﴿تهليل﴾ کلمه ويل (يعني لا إله إلا الله ويل). ﴿نسيان﴾ هېره، له ياده وتنه.

**تشريح:** سهو ويل کيږي له قوت مدرکه څخه د يو صورت زائلېدل، او نسيان ويل کيږي له قوت حافظه څخه د يو صورت زائلېدل، تر دې چي د کسب جديد (دوباره يادولو) احتياج پيښ سي، او خطاء دا ده چي صورت خو پاته وي

● أخرجه ابن ماجه في كتاب الطلاق، باب طلاق المكره، حديث رقم: ٢٠٤٥.

● أخرجه مسلم في كتاب المساجد باب تحريم الكلام، في الصلاة، حديث رقم: ٣٣.

خو کله چې د يو شي د تکلم اراده وکړي. نو بيا له ارادې بل شي پر ژبه راسي، دلته له سهو څخه عامه معنیٰ مراد ده او درې سره قسمونو ته شامله ده. او څرنګه چې د سهو او نسيان په مينځ کې د شرعي حکم له رويه هيڅ فرق نشته. نو ځکه مصنف رَحِمَهُ الله هم د دوی په مينځ کې هيڅ فرق نه دي کړی.

**صورت د مسئلې:** دا دی که يو سړي په لمانځه کې قصداً يا په سهو سره خبري وکړې(يعني کلام يې وکړي)، نو د ده لمونځ باطل سو، کلام څه ته ويل کيږي؟. کلام د داسې حروفو و آواز ته وايي چې د معنیٰ فايده ورکوي، کله يو حرف د معنیٰ فايده ورکوي لکه: قِ! معنیٰ يې ده: خوندي سه!، ځان وژغوره!، او که يو حرف بې معنیٰ وي نو کلام نه دی، لېکن د امام شافعي رَحِمَهُ الله په نيز د خطا او نسيان په صورت کې په کلام سره لمونځ نه فاسديږي، په دې شرط چې کلام اوږد نه وي، ځکه چې اوږد کلام د خطاء او نسيان سره منافي دی.

**د امام شافعي دليل:** دا مشهوره حديث دی: رفع عن أمتي الخطاء والنسيان. (يعني زما له امت څخه خطاء او نسيان پورته کړی سوي دي)؛ په دې حديث سره دليل په دې توګه نيسي چې حکم پر دوه قسمه دی: (١) دنياوي حکم(د لمانځه فاسدونکی) (٢) او اُخروي حکم(ګناهګاره کېدل)، نو ګواکې نبي ﷺ وفرمايل چې زما له امت څخه دواړه حکمونه يعني د دنياوي او اُخروي خطاء او نسيان حکمونه پورته سوي دي، يعني په دې دواړو کې نه يو شی فاسدونکی دی او نه يو شی په آخرت کې د يو ګناه سبب دی؛ صاحب د عنايې رَحِمَهُ الله ليکلي دي چې له دې څخه په دې توګه دليل نيسي چې د دې دواړو حقيقت خو غير مرفوع دی، ځکه چې دا دواړه په خلکو کې موجود دي، نو د دې حکم يعني مفسد کېدل به مرفوع وي.

**زموږ دليل:** د معاويه بن الحکم اسلمي ﷺ حديث دی، پوره حديث داسې دی: قَالَ صَلَّيْتُ خَلْفَ رَسُولِ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ فَعَطَسَ بَعْضُ الْقَوْمِ فَقُلْتُ يَرْحَمُكَ اللهُ. فَرَمَانِي الْقَوْمُ بِأَبْصَارِهِمْ فَقُلْتُ: وَاثُكْلَ أُمَّاهُ مَالِي أَرَاكُمْ تَنْظُرُونَ إِلَيَّ شَزْرًا؟ فَضَرَبُوا أَيْدِيَهُمْ عَلَى أَفْخَاذِهِمْ فَعَلِمْتُ أَنَّهُمْ يُسْكِتُونَنِي فَلَمَّا فَرَغَ النَّبِيُّ دَعَانِي. فَوَاللهِ مَا رَأَيْتُ مُعَلِّمًا أَحْسَنَ تَعْلِيمًا مِنْهُ مَا قَهَرَنِي وَلَا زَجَرَنِي وَلَكِنْ قَالَ إِنَّ صَلَاتَنَا هَذِهِ لَا يَصْلُحُ فِيهَا شَيْءٌ مِنْ كَلَامِ النَّاسِ وَإِنَّمَا هِيَ التَّسْبِيحُ وَالتَّهْلِيلُ وَقِرَاءَةُ الْقُرْآنِ.

(معاويه بن الحکم ﷺ فرمايي: چې ما په رسول الله ﷺ پسې لمونځ کوی نو يو سړي نوږی(انتروشی) وکړی، ما ده ته په جواب کې: يرحمك الله ووايي، نو ما ته خلکو په تېره نظر سره وکتل، ما وويل: د ده مور دې بوره سي، ما څه چم وکړی چې تاسو په تېرو سترګو را ته ګوری، نو هغوی خپل ورونان په خپلو لاسونو ووهل، نو زه پوه سوم چې دوی ما چپول(خاموشه کول) غواړي، نو کله چې نبي ﷺ له لمانځه څخه فارغه سو، نو زه يې راوغوبنتلم، په الله دې مې قسم وي چې ما له نبي ﷺ څخه ښه معلم(ښوونکی) نه دي ليدلی، دوی ﷺ نه ما ته غصه وکړه، او نه يې زه ورټلم، بلکې ويې فرمايل چې زموږ په دې لمانځه کې د خلکو د خبرو هيڅ ګنجايش نشته، دا خو صرف تسبيح، تهليل او د قرآن قرائت ته ويل کيږي).

له دې حديث څخه معلومه سوه چې په لمانځه کې خبرې نه کول د لمانځه حق دی، لکه څرنګه چې طهارت د لمانځه حق دی، نو څرنګه چې په د طهارت په نيستوالي سره لمونځ نه جائز کيږي، همدارنګه د کلام په شتون(وجود) سره به هم لمونځ جائز نه وي.

**جواب:** د امام شافعي رَحِمَهُ الله د حديث جواب دا دی چې په حديث: رُفِعَ عن أمتي الخطأ والنسيان کې له رُفع څخه مراد د ګناه پورته کېدل دي، ځکه چې د دې سره دوه حکمونه متعلق کېدی سي: (١) دنياوي (٢) اخروي، دنياوي حکم د

لمانځه فساد او جواز دی، او اخروي حکم پر هغه د ګناه مرتب کېدل، او په حديث شريف کي بالاجماع اخروي حکم يعني د ګناه پورته کېدل مراد دي. نو ځکه به اوس له دې څخه دنيوي حکم يعني د لمانځه فساد نه مرادېږي. ځکه چي زموږ په نيز عموم مشترک جائز نه دی.

بخلاف والسلام الخ په دې سره د امام شافعي رَحِمَهُ الله د قياس جواب ورکوي، د امام شافعي رَحِمَهُ الله د قياس حاصل دا دی چي سلام د کلام په ډول دی. ځکه چي په دې دواړو کي هريو قاطع دلمانځه دی. او د سلام په حق کي د عمد او نسيان په باره کي تفصيل دی، يعني سهواً سلام مفسد نه دی، او عمداً مفسد دی. نو همدغه تفصيل په کلام کي هم پکار دی، يعني بايد سهواً کلام هم مفسد نه سي او عمداً کلام مفسد سي.

د جواب حاصل دا دی چي سلام په پوره توګه د کلام په ډول هم نه دی. ځکه سلام خو د لمانځه له ذکرونو څخه يو ذکر دی دی، او په التحيات کي هم ويل کيږي. يعني: السلام عليك أيها النبي. او سلام د الله تعالیٰ په اسماء حسنیٰ کي هم سته، لېکن سلام د خطاب په وجه د کلام حکم هم اخيستی دي، (يعني د السلام عليکم په "کم" کي خلکو ته خطاب دی، نو ځکه د کلام په حکم کي هم سو)، لنډه دا چي السلام عليکم من وجه ذکر دی، او من وجه کلام دی. نو موږ په دواړو وجوهو عمل وکړی، نو که سلام په هېره وو، نو دا به د ذکرونو سره ملحق کيږي، او لمونځ به نه په فاسديږي، او که قصداً وو، نو د کلام سره به ملحق کيږي او لمونځ به په فاسديږي.

## په لمانځه کي د اسوېلي کولو، ژړلو او د غم څرګندولو حکم

فَإِنْ أَنَّ فِيهَا او که چا په لمانځه کي سوګلی (سلګی) وکړې (يعني ترېته او نويلي ژړا يې وکړه، يا معنی دا چي د ګېډې په توګه يې وژړل) أَوْ تَأَوَّهَ يا يې اسويلی وکښل (يعني آه يا اف يې وکړی) أَوْ بَكَى فَارْتَفَعَ بُكَاؤُهُ يا يې وژړل او ژړا يې پورته سوه فَإِنْ كَانَ مِنْ ذِكْرِ الْجَنَّةِ أَوِ النَّارِ نو که دا (شيان) د جنت يا د دوږخ د ياد په وجه وه لَمْ يَقْطَعْهَا نو لمونځ نه فاسدوي لِأَنَّهُ يَدُلُّ عَلَى زِيَادَةِ الْخُشُوعِ ځکه چي دا د خشوع (بيري) پر زياتوالي دلالت کوي وَإِنْ كَانَ مِنْ وَجَعٍ أَوْ مُصِيبَةٍ او که د درد يا مصيبت په وجه وه قَطَعَهَا نو لمونځ فاسدوي لِأَنَّ فِيهِ إِظْهَارُ الْجَزَعِ وَالتَّأَسُّفِ ځکه چي په دې کي د غم او افسوس څرګندول دي فَكَانَ مِنْ كَلَامِ النَّاسِ نو ځکه به دا د کلام الناس له قبيلې څخه وي وَعَنْ أَبِي يُوسُفَ رَحِمَهُ اللهُ● أَنَّ قَوْلَهُ آهٍ لَمْ يُفْسِدْ فِي الْحَالَيْنِ او له امام ابو يوسف رَحِمَهُ الله څخه رانقل سوي دي چي آه کول په دواړو حالتونو (يعني د خشوع او مصيبت په حالت) کي لمونځ نه فاسدوي وَأُوهِ يُفْسِدُهُ او اُوه کول لمونځ فاسدوي وَقِيلَ الْأَصْلُ عِنْدَهُ او ويل سوي دي چي د امام ابو يوسف رَحِمَهُ الله په نيز اصل دا دی أَنَّ الْكَلِمَةَ إِذَا اشْتَمَلَتْ عَلَى حَرْفَيْنِ چي کلمه کله پر دوو حرفونو مشتمله وي وَهُمَا زَائِدَتَانِ او هغه دواړه زيات وي أَوْ إِحْدَاهُمَا يا په هغه دواړو کي يو زيات وي لَا تُفْسِدُ نو لمونځ نه فاسديږي وَإِنْ كَانَتَا أَصْلِيَّتَيْنِ او که هغه دواړه حروف اصلي وي تُفْسِدُ نو لمونځ فاسديږي وَحُرُوفُ الزَّوَائِدِ جَمَعُوهَا فِي قَوْلِهِمْ: اَلْيَوْمَ تَنْسَاهُ او لغتپوهانو حروف زائده په خپل قول: اليوم تنساه کي جمع کړي دي وَهَذَا لَا يَقْوَى او دا اصل قوي نه دی لِأَنَّ

---

● القول الراجح: قول الطرفين، كذا في رد المحتار ج:١، ص:٢٥٧. [القول الراجح، ج:١، ص:١٠٠]

كَلَامُ النَّاسِ فِي مُتَفَاهَمِ الْعُرْفِ يَتْبَعُ وُجُوْدَ حُرُوْفِ الْهِجَاءِ وَإِفْهَامَ الْمَعْنٰى ځکه چې د عُرف په اصطلاح کې کلامُ الناس د حروفو د وجود او د معنیٰ د پوهولو تابع وي وَيَتَحَقَّقُ ذٰلِكَ فِي حُرُوْفٍ كُلُّهَا زَوَائِدُ او دا په داسې حروفو کې هم ثابتیږي چې د هغو ټوله حروف زيات وي.

**اللغات:** ﴿أنَّ﴾ په سوګلی سره ژړل، بعضې شارحینو یې د زګیروي کولو معنیٰ کړې ده، ﴿تأوَّهَ﴾ د تفعّل د باب ماضي ده: اسوېلی کښل، آه او اُف کول، سړې ساوې کښل، ﴿بكىٰ﴾ د ضرب د باب ماضي ده: ژړل، ﴿جزع﴾ بېره، غم، پرېشاني، ﴿تأسّف﴾ افسوس، حسرت.

**تشريح:** **مسئله:** دا ده که يو سړي د لمانځه په حالت کې د ژړا په توګه زګیروی وکړی، یا اسوېلی یې وکښل یعنې آه آه، یا اُوه اُوه یا اُف یې وکړی، یا یې په لمانځه کې یې وژړل او دومره په زوره یې وژړل چې له ژړا څخه حروف پیداسول، نو دده د لمانځه څه حکم دی؟

فرمایي چې که دا پورته افعال د جنت یا جهنم د یادېدلو په وجه صادر سول، نو په دې سره د ده لمونځ نه فاسدیږي، او د ده لمونځ به صحیح وي، ځکه چې د جنت یا جهنم د یاد په وجه د دې افعالو صادرېدل د دې خبرې دلیل دا دی چې دا سړی په لمانځه کې په پوره توګه متوجه دی، او د الله په یاد کې غرق دی، او ډېره خشوع وخضوع لري، نو د دې شیانو په صادرېدلو سره د ده په لمانځه کې نوره ترقي او لوړوالی راځي، لیکن که د دې سړي آه یا اُوه کول یا ژړل د یو درد یا یو غم په وجه وه نو بیا د ده لمونځ فاسدیږي، ځکه چې په دې صورت کې آه او ژړا د غم او افسوس کولو ښېنه ده، نو د ده دا عمل به له کلامُ الناس څخه وي (یعني د خبرو له جنس څخه وي)، او کلامُ الناس که په لمانځه کې صراحتاً وي نو لمونځ فاسدوي، او که کنايةً وي نو هم يې فاسدوي.

وعن أبي يوسف الخ له امام ابو یوسف رَحِمَهُ الله څخه روایت سوی دی چې که لمونځ گزاره په لمانځه کې آه کوی نو په دواړو صورتونو کې لمونځ نه فاسدیږي، یعنې که د جنت او جهنم د یاد په وجه وي، او که د مصیبت یا درد په وجه وي، په دواړو صورتونو کې لمونځ نه فاسدیږي، او که لمونځ گزاره اُوه اُوه کوي، نو په دواړو صورتونو کې لمونځ فاسدیږي، بعضې خلګو د امام ابو یوسف رَحِمَهُ الله اُصول او ضابطه دا ښوولې ده چې که دا ډول کلمې پر دوو حروفو مشتملې وي، او دواړه حروف زائد وي، یا یو زائد وي نو په دې سره لمونځ نه فاسدیږي، او که دواړه اصلي وي نو لمونځ فاسدیږي، صاحب د عنايې رَحِمَهُ الله لیکلي دي چې د دې قول بنیاد دا دی چې د عربو په کلام کې د هري خبري بنیاد پر دریو حروفو دی، چې په هغه کې اول حرف د کلام د شروع لپاره وي، دویم حرف د وقف کولو لپاره وي او دریم حرف د فصل او فرق لپاره وي، نو ځکه نه به د یوه حرف اعتبار کیږي، نه به د دوو حروفو اعتبار کیږي، په دې شرط چې له دوی څخه یو حرف زیات وي؛ لیکن که دوه حرفونه وي او دواړه اصلي وي، یا درې حرفونه وي او په هغو کې دوه اصلي وي نو په دې صورت کې د للأكثر حكم الكل د قاعدې په وجه به د هغو اعتبار کیږي، په دې ځای کې دا خبره هم په ذهن کې ونیسئ! چې لغت پوهانو ټوله زائد حروف په اليوم تنساه کې جمع کړي دي، نو له دې حروفو څخه ماسوا چې نور کوم حروف دي هغو ته اصلي ویل کیږي، اوس حروف زوائدو ته وګورئ! او آه ته وګورئ! چې امام ابو یوسف رَحِمَهُ الله د آه په کولو سره ولې لمونځ نه فاسدوي؟، ځکه چې په دې کې خو اول دوه حروف دي، او بیا هغه دواړه زائد هم دي، د دې په خلاف په اُوه سره ولې لمونځ فاسدوي؟، ځکه چې په دې کې له دوو حروفو څخه زیات حروف دي، او په دې باب کې د حروفو شمېر

معتبر دی، د هغو اصلي يا زائد کېدل معتبر نه دي، او څرنګه چې درې حروف د جمعې اندازه ده، او دا اندازه د عربو په کلام کې متعارفه ده، نو ځکه به اُوه لمونځ فاسدوي.

وهذا لا يقوى الخ صاحب د هدايې رَحِمَهُ الله فرمايي چې د امام ابو يوسف رَحِمَهُ الله دا اصول زيات زورور نه معلومېږي، ځکه چې د عرف په اصطلاح کې د کلامُ الناس تحقق پر دوو شيانو موقوف دی: (۱) په دې کلام کې به حروف هجاء موجود وي، (۲) او دا کلام به مفيد معنیٰ لره وي، نو هره هغه جمله يا کلام چې په هغه کې دا دواړه خبرې وي نو هغه به لمونځ فاسدوي، هغه که يې حروف اصلي او که زائد، او صاحب د نهايې وايي چې که چا دا جمله په لمانځه کې ووېل: أنتم سألتمونيها اليوم، نو په دې جملې کې مبتداء، خبر، فعل، فاعل، مفعول او داسې نور ټوله موجود دي، او ټوله حروف يې زائد دي، لېکن بيا هم دا جمله د ده لمونځ فاسدوي، ځکه چې دا جمله پر حروف هجاء او پر معنیٰ مشتمله ده.

**راجح قول:** په پورتنۍ مسئله کې راجح قول د طرفينو رَحِمَهُمَا الله دی، يعني که ژړا او نور افعال د درد يا مصيبت په وجه وه، نو لمونځ فاسدوي. [القول الراجح، ج:۱، ص:۱۰۰]

## په لمانځه کې د عذر په وجه يا بې له عذره د ټوخې، انټروشې او داسې نورو کولو حکم

وَإِنْ تَنَحْنَحَ بِغَيْرِ عُذْرٍ او که لمونځ ګزاره غاړه تازه کړه بې له عذره بِأَنْ لَمْ يَكُنْ مَدْفُوعًا إِلَيْهِ په دې توګه چې هغه د غاړې تازه کولو ته مجبوره نه وو وَحَصَلَ بِهِ الْحُرُوفُ او له دې څخه حروف پيدا سوه يَنْبَغِي أَنْ يُفْسِدَ عِنْدَهُمَا نو مناسب دا دي چې د طرفينو رَحِمَهُمَا الله په نېز لمونځ فاسد سي وَإِنْ كَانَ بِعُذْرٍ او که غاړه تازه کول د عذر په وجه وه فَهُوَ عَفْوٌ نو هغه معاف دي كَالْعُطَاسِ وَالْجُشَاءِ لکه نوړۍ (انټروشی) او اروې إِذَا حَصَلَ بِهِ حُرُوفٌ کله چې له دې څخه حروف پيدا سي.

**اللغات:** ﴿تنحنح﴾ غاړه تازه کول، غاړه صفا کول. ﴿مدفوع﴾ مجبور. ﴿عطاس﴾ په ضمه د عين سره: انټروشی، نوړۍ، پرنجی. ﴿جشاء﴾ اروې، تېغ.

**تشريح: مسئله:** دا ده که لمونځ کونکي په لمانځه کې غاړه تازه کړه او د هغه په وجه حروف هم پيدا سوه، مثلاً: أح أح يا أح أح يې وکړې، نو د دې دوه صورتونه دي، د عذره په وجه به وي يا به بې له عذره وي، که بې له عذره وي يعني اضطراري نه وي بلکې اختياري وي، نو د طرفينو رَحِمَهُمَا الله په نېز په دې سره لمونځ فاسدېږي، او که د عذر په وجه وي نو دا معاف دي، يعني لمونځ نه په فاسدېږي، لکه څرنګه چې په نوړۍ او اروې سره لمونځ نه فاسدېږي، که څه له دې څخه حروف ښکاره سي.

## په لمانځه کې د نوړۍ (انټروشي) د جواب ورکولو حکم

وَمَنْ عَطَسَ او که چا ته نوړۍ (انټروشی) راغلی فَقَالَ لَهُ آخَرُ: يَرْحَمُكَ اللهُ وَهُوَ فِي الصَّلَاةِ او بل سړي کوم چې په لمانځه کې وو د هغه په جواب کې: يرحمك الله ووايي فَسَدَتْ صَلَاتُهُ نو د هغه لمونځ فاسد سو لِأَنَّهُ يَجْرِي فِي مُخَاطَبَاتِ النَّاسِ ځکه چې دا د خلکو په خطاباتو (او خبرو اترو) کې جاري دی فَكَانَ مِنْ كَلَامِهِمْ نو دا به د خلکو له خبرو (کلام) څخه وي بِخِلَافِ مَا إِذَا قَالَ الْعَاطِسُ أَوِ السَّامِعُ: الْحَمْدُ لِلّٰهِ په خلاف د هغه صورت چې کله نوړۍ کونکی يا اورېدونکی ووايي: الحمد لله (نو لمونځ نه فاسدېږي) عَلَى مَا قَالُوا لکه څرنګه چې فقهاؤ ويلي دي لِأَنَّهُ لَمْ يُتَعَارَفْ جَوَابًا ځکه چې دا د جواب په توګه متعارف نه دي (يعني د خلکو عرف داسې نه دی چې د نوړۍ په جواب کې الحمد لله وايي).

**تشريح: صورت د مسئلې:** دا دی که يو سړي اتروشي(نوږی) وکړی. او بل سړي کوم چې په لمانځه کي وو، ده ته د نوږي جواب ورکړی يعني: يرحمك الله يې ووايي. نو د هغه لمانځ فاسديږي، ځکه چې په دې کي د خطاب کاف دی، او دا ډول کلام(خبري) د خلکو په مينځ کي جاري او رواني هم دي.(يعني خلک خپل مينځ کي د نوږي په جواب کي يرحمك الله وايي) نو ځکه دا به د کلامُ الناس له جنس څخه وي، او په کلامُ الناس سره لمونځ فاسديږي. نو ځکه به په يرحمك الله ويلو سره هم لمونځ فاسديږي.

د دې په خلاف که يو سړی تر نوږي کولو وروسته الحمد لله ووايي، يا اوريدونکی الحمد لله ووايي، او دواړه په لمانځه کي وي، نو په دې سلسله کي د مشائخو قول دا دی چې لمونځ نه فاسديږي، ځکه چې الحمد لله ويل په عرف کي جواب نه شمارل کيږي، (بلکي دا د الله ذکر دی)، او په ذکرُ الله سره لمونځ نه فاسديږي، نو ځکه وويل سوه چې په الحمد لله ويلو سره لمونځ نه فاسديږي.

## له خپل امام څخه ماسوا بل چا ته د لقمې(فتحي) ورکول حکم

وَإِنِ اسْتَفْتَحَ او که يو چا فتح(لقمه) وغوښتل فَفَتَحَ عَلَيْهِ فِي صَلَاتِهِ او لونځ گزاره په خپل لمانځه کي هغه ته فتح ورکړه، تَفْسُدُ نو د ده لمونځ فاسديږي وَمَعْنَاهُ أَنْ يَفْتَحَ الْمُصَلِّيْ عَلٰى غَيْرِ إِمَامِهٖ مطلب يې دا دی چې لمونځ گزاره له خپل امام څخه ماسوا بل چاته فتح ورکړي(نو لمونځ يې فاسديږي) لِأَنَّهٗ تَعْلِيْمٌ وَتَعَلُّمٌ ځکه چې دا ښوول او زده کول دي فَكَانَ مِنْ جِنْسِ كَلَامِ النَّاسِ نو دا د کلامُ الناس(يعني د خلکو د خبرو) له جنس څخه سو ثُمَّ شَرَطَ التَّكْرَارَ فِي الْأَصْلِ بيا امام محمد رَحِمَهُ الله په اصل(يعني مبسوط) کي تکرار شرط کړی دی لِأَنَّهٗ لَيْسَ مِنْ أَعْمَالِ الصَّلَاةِ ځکه چې دا د لمانځه له افعالو څخه نه دي فَيُعْفَى الْقَلِيْلُ مِنْهُ نو د دې لږ اندازه به معاف وي وَلَمْ يُشْتَرَطْ فِي الْجَامِعِ الصَّغِيْرِ او په جامع صغير کي دا شرط نه دي لګول سوی لِأَنَّ الْكَلَامَ بِنَفْسِهٖ قَاطِعٌ ځکه چې په خپله خبري لمونځ قطع کوي (فاسدوي) وَإِنْ قَلَّ که څه هم لږ وي.

**اللغات:** ﴿إِسْتَفْتَحَ﴾ د استفعال ماضي ده: لقمه غوښتل، فتح غوښتل، يعني دا غوښتل چې زما غلطي را اصلاح کړه.

﴿فَفَتَحَ﴾ د فتح ماضي ده: فتح ورکول، يعني غلطي ورښوول. ﴿يُعْفَى﴾ د مضارع مجهول صيغه ده: معاف کيدل.

**تشريح:** له دې ځايه د فتحي (لقمې) ورکولو او د فتحي اخيستلو (قبلولو) صورتونه بيانيږي، چې ټوله صورتونه يې څلور دي، او په وقفه وقفه سره بيانيږي، په دې عبارت کي چې کوم صورت بيانيږي هغه دا دی چې يو سړی لمونځ کوي او د ده په بغل کي بل سړی هم لمونځ کوي، او دا دواړه امام او مقتدي نه وي، بلکي هر يو خپل خپل لمونځ کوي، نو اوس که په دوی کي يو له بل څخه فتحه وغواړي، او هغه بل سړی فتحه ورکړي، نو د دواړو لمونځ فاسديږي. ځکه چې د لمانځه د متحد نه کيدلو په وجه دا صورت د تعليم او تعلم يعني د ښوولو او زده کړي په ډول سو، او تعليم او تعلم له کلامُ الناس د قبيلې څخه دی، او کلامُ الناس لمونځ فاسدوي، نو ځکه به دا صورت هم لمونځ فاسدوي، صاحب د هدايې له ومعناه الخ څخه همدغه بيانوي چې د فتحي ورکونکي او فتحي اخيستونکي لمونځونه به جلا جلا وي.

ثم شرط الخ فرمايي چي امام محمد رَحِمَهُ الله پر دې موقع په مبسوط کي دا شرط هم لګولی دی چي که فتحه ورکول له يوه وار څخه زيات وي، نو لمونځ فاسدوي، ځکه چي دا د لمانځه له اعمالو څخه خارج ده، او د لمانځه له اعمالو څخه چي کوم شی خارج وي د هغه حکم دا دی چي که هغه عمل کثير (ډېر عمل) وي نو فاسدونکی به وي، کنې نه به وي، ځکه له لمانځه له افعالو څخه ماسوا په نورو افعالو کي عمل قليل معاف دی، او ښکاره ده چي هر عمل هغه وخت کثير کيږي، چي کله په هغه کي تکرار وي. نو ځکه د تکرار شرط ولګول سو؛ لېکن په جامع صغير کي دا شرط نه دي ذکر سوی، ځکه چي په لمانځه کوم عمل هم د لمانځه له افعالو څخه ماسوا وي هغه به د كلامُ الناس يا د افعالُ الناس له جنس څخه وي، او کلام الناس يا افعالُ الناس مطلقاً د لمانځه فاسدونکي دي، هغه که قليل وي او که کثير.

## خپل امام ته د لقمې(فتحې) ورکولو حکم

وَإِنْ فَتَحَ عَلَى إِمَامِهِ او که مقتدي خپل امام ته فتح ورکړه لَمْ يَكُنْ كَلَامًا اسْتِحْسَانًا نو د استحسان په وجه دا کلام نه دی (يعني د استحسان په وجه به دا فتح خبري نه شمارل کيږي) لِأَنَّهُ مُضْطَرٌّ إِلَى إِصْلَاحِ صَلَاتِهِ ځکه چي مقتدي د خپل لمانځه د اصلاح لپاره مجبوره دی فَكَانَ هَذَا مِنْ أَعْمَالِ صَلَاتِهِ مَعْنًى نو دا فتح ورکول به په معنوي توګه د هغه د لمانځه له اعمالو څخه وي وَيَنْوِي الْفَتْحَ عَلَى إِمَامِهِ او مقتدي به خپل امام ته د فتح ورکولو نيت کوي دُونَ الْقِرَاءَةِ د قرائت نيت به نه کوي هُوَ الصَّحِيحُ همدا صحيح ده لِأَنَّهُ مُرَخَّصٌ فِيهِ ځکه چي د فتح ورکولو اجازه (رخصت) هغه ته سته وَقِرَاءَتُهُ مَمْنُوعٌ عَنْهَا لېکن قرائت د هغه لپاره منع دی.

**اللغات:** ﴿مُضْطَر﴾ د افتعال اسم مفعول دی: مجبور. ﴿مُرَخَّص﴾ د تفعيل اسم مفعول دی: هغه څوک چي رخصت او اجازه ورکول سوې وي.

**تشريح:** په دې عبارت کي دويم صورت بيانيږي، حاصل يې دا دی چي که د فتحه ورکونکي او فتحه اخيستونکي دواړو لمونځ يو او متحد وو، په دې توګه چي فتح اخيستونکی امام وو او فتح ورکونکی مقتدي وو. نو په دې صورت کي د مقتدي فتحه ورکول کلام نه دی، او نه په دې سره لمونځ فاسديږي. په دې لړ کي دليل هغه حديث دی کوم چي عنايه او نورو په دې الفاظو سره ذکر دی:

**نقلي دليل:** ان رسول الله ﷺ قرأ في الصلاة سورة المؤمنين فترك منها كلمة فلما فرغ منها قال الم يكن فيكم أبي بن كعب. فقال بلى يا رسول الله. فقال ﷺ هلا فتحت علىّ فقال ظننت أنها نسخت. فقال ﷺ لو نسخت لأنبأتكم.

(يعني نبي ﷺ په لمانځه کي سورتِ مؤمنين ووايی او په دې کي يوه کلمه څني پاته سو، کله چي نبي ﷺ له لمانځه څخه فارغه سو، نو له خلکو څخه يې پوښتنه وکړه، آيا په تاسو کي ابی بن کعب نسته. نو ابی بن کعب ووېل: اې د الله رسوله! حاضر يم، نبي ﷺ وفرمايل چي تا ما ته فتحه ولي نه راکړه، نو هغه ووېل: ما دا ګومان کړی وو چي دا کلمه منسوخه سوې ده، نو نبي ﷺ وفرمايل که منسوخه سوې وای نو ما به تاسو ته خبر درکړی وای). له دې حديث څخه په ډاګه ښکاره کيږي چي که مقتدي خپل امام ته فتحه ورکړه نو په هغه سره لمونځ نه فاسديږي.

**عقلي دليل:** په دې لړ کي عقلي دليل دا دی چي د مقتدي لمونځ د امام پر لمانځه موقوف دی، نو د امام د هېري په وخت کي مقتدي د خپل لمانځه د اصلاح لپاره فتحه ورکولو ته مجبوره دی، (ځکه که فتحه نه ورکړي نو د امام لمونځ به فاسد سي او کله چي د

امام لمونځ فاسد سو نو د مقتدي لمونځ به هم فاسد سي) نو ځکه به فتحه ورکول د مقتدي د لمانځه په اعمالو کي داخله وي، او د لمانځه له اعمالو څخه يو عمل هم لمونځ نه فاسدوي، نو د مقتدي فتحه ورکول به هم لمونځ نه فاسدوي.

وينوي الخ د دې حاصل دا دی چي مقتدي به د فتحي ورکولو په وخت کي د فتحي ورکولو نيت کوي، د قرائت نيت به نه کوي، همدا صحيح ده، ځکه چي شريعت ده ته د فتحي ورکولو اجازه ورکړې ده لېکن د قرائت کولو اجازه يې ورکړې نه ده، نو ده کوم شي اجازه چي ورکول سوې ده، د ده لپاره هغه اختيارول پکار دي.

## بغير له ضرورته امام ته فتحه ورکول

وَلَوْ كَانَ الْإِمَامُ انْتَقَلَ إِلَى آيَةٍ أُخْرَى او که امام د بل آيت و طرف ته منتقل سوی وو تَفْسُدُ صَلَاةُ الْفَاتِحِ نو د فتح ورکونکي لمونځ فاسديږي وَتَفْسُدُ صَلَاةُ الْإِمَامِ لَوْ أَخَذَ بِقَوْلِهِ او که امام د ده فتح واخيستله لو د امام لمونځ هم فاسديږي لِوُجُودِ التَّلْقِينِ وَالتَّلَقُّنِ مِنْ غَيْرِ ضَرُورَةٍ ځکه چي د مقتدي تلقين(فتح ورکول) او د امام تلقن(فتح اخيستل) بې له ضرورت راغله وَيَنْبَغِي لِلْمُقْتَدِي أَنْ لَا يُعَجِّلَ بِالْفَتْحِ او مقتدي ته پکار دي چي په فتح ورکولو کي تلوار نه وکړي وَلِلْإِمَامِ أَنْ لَا يُلْجِئَهُمْ إِلَيْهِ او امام ته هم پکار دي چي فتح ورکولو ته مقتديان مجبوره نه کړي بَلْ يَرْكَعُ۞ إِذَا جَاءَ أَوَانُهُ بلکي چي کله هم د فتحي(لقمې) وخت راسي نو رکوع دي کوي أَوْ يَنْتَقِلُ۞ إِلَى آيَةٍ أُخْرَى يا دي د بل آيت وطرف ته نقل کيږي.

**اللغات**: ﴿فاتح﴾ فتح ورکونکی، لقمه ورکونکی ﴿تلقين﴾ پوهونه، نصيحت کول، دلته مراد فتح ورکول دي، ﴿تلقن﴾ پوهېدل، په نصيحت عمل کول، دلته مراد فتح اخيستل دي، ﴿ينبغي﴾ مناسب دا دي، ﴿لا يلجئهم﴾ د افعال له باب څخه د نفي صيغه ده، الجاء يلجئ: مجبورول، اړ ايستل.

**تشريح**: په دې عبارت کي د بيان سوي مسئلې حاصل دا دی چي په لمانځه کي فتحه ورکول او فتحه اخيستل د استحسان پر بنياد صحيح دي، لېکن د عقل او قياس تقاضا خو دا ده چي فتحه ورکول او اخيستل دي په لمانځه کي بالکل صحيح نه وي، ځکه چي په لمانځه کي مقتدي له قرائت څخه منع سوی دی، خو بيا هم د استحسان پر بنسټ د فتحي ورکولو او اخيستلو اجازه ورکړل سوې ده، همدا وجه ده که له امام څخه يو آيت هېر سو او د فتحي اخيستلو په غرض يې بار بار وايي، ليکن په مقتدياتو کي چا فتحه نه ورکړه، او بيا له هغه آيت څخه ووتی، او وروسته يو مقتدي فتحه ورکړه، نو د مقتدي لمونځ فاسديږي، او که امام د ده فتحه واخيستله نو د امام لمونځ هم فاسديږي، ځکه چي په دې صورت کي بې له ضرورته د فتحي ورکول او د فتحي اخيستل راغله، او ښکاره ده چي دا مسئله پر استحسان مبني ده، نو بې له ضرورته به د دې جواز نه وي، نو ځکه به په ذکر سوې مسئله کي د امام او مقتدي دواړو لمونځ فاسد وي.

وينبغي الخ صاحب د هدايې فرمايي: مقتدي ته پکار دي چي په فتحه ورکولو کي دې تيزي او تلوار نه کوي، چي محض امام بند سوی لا نه وي، دی د فتحي ولړ پر وکړي، بلکي امام ته دي د راګرځولو او دوباره ويلو موقع ورکړي، چي دويم ولر يې رلوګرځوي او صحيح يې کړي، او د فتحي ضرورت پاته نه سي؛ همدارنګه امام ته هم پکار دي چي مقتديان فتحه ورکولو ته مجبوره نه کړي، بلکي خپل تر وسه دي دا کوښښ کوي چي کله هم د فتحي موقع راسي نو فوراً دي رکوع کوي، يا دي د يو بل آيت وطرف ته ځي، او له فتحي اخيستلو څخه دي ځان ژغوري، لېکن دا حکم په

هغه وخت کي دی چي کله يې د ما تجوز به الصلاة په اندازه قرآن ويلی وي، يعني دومره اندازه قرائت يې کړی وي چي په هغه سره لمونځ صحيح کيږي.

## په لمانځه کي د يو سړي د سوال جواب په "لَا إِلٰهَ إِلَّا اللهُ" سره ورکول

فَلَوْ أَجَابَ رَجُلًا فِي الصَّلَاةِ بِلَا إِلٰهَ إِلَّا اللهُ او که لمونځ کونکي چا ته په لمانځه کي په لا إله إلا الله سره جواب ورکړی فَهٰذَا كَلَامٌ مُفْسِدٌ عِنْدَ أَبِي حَنِيفَةَ وَمُحَمَّدٍ رَحِمَهُمَا اللهُ نو دا د طرفينو رَحِمَهُمَا الله په نيز د لمانځه فاسدونکي خبري دي وَقَالَ أَبُو يُوسُفَ رَحِمَهُ اللهُ: لَا يَكُونُ مُفْسِدًا او امام ابو يوسف رَحِمَهُ الله فرمايي: چي لمونځ نه فاسدوي وَهٰذَا الْخِلَافُ فِيمَا إِذَا أَرَادَ بِهِ جَوَابَهُ او دا اختلاف په هغه صورت کي دی چي لمونځ گزاره په دې کلام سره د سوال کونکي د جواب اراده وي لَهُ أَنَّهُ ثَنَاءٌ بِصِيغَتِهِ د امام ابو يوسف رَحِمَهُ الله دليل دا دی چي دا جمله د صيغې په اعتبار سره د الله تعريف دی فَلَا يَتَغَيَّرُ بِعَزِيمَتِهِ نو د لمونځ کونکي په نيت سره به د دې حقيقت نه بدليږي وَلَهُمَا أَنَّهُ أَخْرَجَ الْكَلَامَ مَخْرَجَ الْجَوَابِ او د صاحبينو رَحِمَهُمَا الله دليل دا دی چي هغه لا إله إلا الله د جواب په توګه استعمال کړې ده وَهُوَ يَحْتَمِلُهُ او دا د جواب احتمال هم لري فَيُجْعَلُ جَوَابًا نو ځکه به جواب گرځول کيږي كَالتَّشْمِيتِ لکه د نوږي(انتروشي) جواب ورکول وَالْاِسْتِرْجَاعِ او إنا لله وإنا إليه راجعون ويل (چي په دې دواړو سره هم لمونځ فاسديږي) عَلَى الْخِلَافِ فِي الصَّحِيحِ په دې باره کي هم صحيح خبره دا ده چي اختلاف دی.

**اللغات:** ﴿صيغة﴾ لفظه، اصل، ﴿عزيمته﴾ اراده، عزم، ﴿تشميت﴾ د نوږي والا په جواب کي يرحمك الله ويل، ﴿استرجاع﴾ د مصيبت په وخت کي إنا لله وإنا إليه راجعون ويل.

**تشريح: صورت د مسئلې:** دا دی که يو سړي لمونځ کوی، او بل سړي دا جمله ووېله: أإله مع الله (آيا د الله سره بل معبود[د عبادت لائق] سته)، نو پر دې د لمونځ گزاره له خولې څخه ووتل: لا إله إلا الله، (له الله څخه ماسوا هيڅ څوک د عبادت لائق نسته)، نو اوس د ده لمونځ فاسد دی، لېکن د امام ابو يوسف رَحِمَهُ الله په نيز په دې کلام سره لمونځ نه فاسديږي، او لمونځ يې بالکل صحيح دی.

**د امام ابو يوسف دليل:** دا دی چي لا إله إلا الله د خپل وضع سوي معنیٰ په اعتبار سره د الله ﷻ د حمد او تعريف معنیٰ ورکوي، نو په دې سره د جواب ورکولو په وخت کي د دې موضوعي معنیٰ نه بدليږي، بلکي د الله د حمد او ثناء په معنی کي به وي، نو په ذکر سوې مسئله کي که څه هم لمونځ گزاره په لا إله إلا الله سره د بل سړي د جواب اراده کړې ده، خو بيا هم دا کلمه پر حمد او ثناء مشتمله ده، او د الله په حمد او ثناء سره لمونځ بالکل نه باطليږي، نو ځکه په ذکر سوې مسئله کي به هم لمونځ باطل نه وي.

---

● القول الراجح: قول الطرفين رَحِمَهُمَا الله، كذا في الدر المختار ج:١، ص:١٥٩. [القول الراجح، ج:١، ص:١٠١]

**د طرفینو دلیل:** دا دی چې په ذکر سوي مسئلې کې لا إله إلا الله د ثناء او جواب دواړو احتمال لري، نو ځکه به دا په دواړو معناګانو کې مشترکه وي، نو کله چې لمونځ ګزاره د جواب په اراده سره د دې یوه معنیٰ مراده کړه چې هغه د جواب معنیٰ ده، نو اوس ثنه له دې څخه دویمه معنیٰ یعنې ثناء او تعریف مرادول صحیح نه وي، ځکه چې زموږ په نیز عموم مشترک جائز نه دی، نو دا جمله هم د تشمیت یعنې د یرحمك الله ویلو په څېر سوه، او تشمیت لمونځ فاسدوي ځکه چې هغه د کلامُ الناس له جنس څخه دی، نو دا جمله به هم په دې ځای کې لمونځ فاسدوي.

والاسترجاع الخ د دې حاصل دا دی چې که یو سړي خلکو ته د یو چا د مړیني خبر ورکړی، او بل سړي چې دلته یې لمونځ کوی په لمانځه کې یې إنا لله وإنا إليه راجعون ووایې، نو په دې صورت کې هم صحیح خبره دا ده چې د طرفینو او د امام ابو یوسف رَحِمَهُ الله په مینځ کې اختلاف سته، یعنې د طرفینو رَحِمَهُمَا الله په نیز لمونځ فاسدیږي، او د امام ابو یوسف رَحِمَهُ الله په نیز لمونځ نه فاسدیږي، لیکن له مشائخو څخه بعضو امام ابو یوسف رَحِمَهُ الله په دې صورت کې د طرفینو رَحِمَهُمَا الله هم فکره بللی دی، او دا صورت یې متفق علیه ګرځولی دی، او علت یې دا بیان کړی دی چې لا إله إلا الله د خالص تعریف او ثناء لپاره ده، نو ځکه لمونځ نه فاسدوي، لیکن إنا لله ...الخ صرف د حمد او ثناء لپاره نه ده، بلکې د مصیبت، غم او ستونزې په وخت کې استعمالیږي، نو ځکه به په دې صورت کې لمونځ فاسدیږي. لیکن صحیح خبره دا ده چې په دې صورت کې هم اختلاف دی لکه مخکې چې موږ وویل، یعنې د امام ابو یوسف رَحِمَهُ الله په نیز استرجاع هم لمونځ نه فاسدوي.

**راجح قول:** په پورتنی مسئله کې راجح قول د طرفینو رَحِمَهُمَا الله دی، وقال العلامة الحصكفي رَحِمَهُ الله: وكذا يفسدها كل ما قصد به الجواب، كأن قيل أمع الله إله، فقال: لا إله إلا الله، أو قيل: ما لك، فقال الخيل والبغال والحمير إلى أن قال: والصحيح قولهما عملاً بقصد التكلم (الدر المختار ج:۱، ص:۱۵۹). [القول الراجح ج:۱، ص:۱۰۱]

**په لمانځه کې کلمه، ثناء، یا یو آیت د بل سړي د خبرولو لپاره ویل**

وَإِنْ أَرَادَ بِهِ إِعْلَامَهُ أَنَّهُ فِي الصَّلَاةِ او که په کلمه، ثناء یا د قرآن په ویلو سره یې اراده بل ته خبر ورکول وو چې زه په لمانځه کې یم لَمْ تَفْسُدْ بِالْإِجْمَاعِ نو په اجماع سره لمونځ نه فاسدیږي لِقَوْلِهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ ځکه نبي ﷺ فرمایلي دي إِذَا نَابَتْ أَحَدَكُمْ نَائِبَةٌ فِي الصَّلَاةِ که په تاسو کې چا ته په لمانځه کې څه واقعه پېښه سي فَلْيُسَبِّحْ نو تسبیح دې وایي.

**اللغات:** ﴿إِعْلَام﴾ د افعال مصدر دی: خبر ورکول، ور ښوول، ﴿نَابَتْ﴾ د نصر واحده مؤنثه غائبه ماضي صیغه ده: پېښېدل، واقع کېدل، ﴿نَائِبَة﴾ پېښه، حادثه، واقعه.

**تشریح: مسئله:** دا ده که یو سړي لمونځ کوی او یو بل سړي د ده په تلاش کې وو، او نعرې یې وهلې چې فلانکیه څه سوې؟، یا یو سړی د ده مخته تېرېدی، یا داسې یو بل صورت وو، نو د دې سړي لپاره حکم دا دی چې لا إله إلا الله دې ووایي یا دې تسبیح ووایي او خبر دې ورکړي چې زه په لمانځه کې یم، او په داسې کولو سره د ده پر لمانځه بالاتفاق هیڅ اغېزه نه پرېوځي، یعنې د ده لمونځ نه فاسدیږي، نه د امام ابو یوسف رَحِمَهُ الله په نیز او نه د طرفینو رَحِمَهُ الله په نیز، ځکه

چي د نبي ﷺ فرمان دی: إذا نابت أحدكم نائبة في الصلاة فليسبح فإن التسبيح للرجال والتصفيق للنساء. (يعني كه د لمونځ ګزار مخته څه واقعه راسي، نو ده ته پکار دي چي تسبيح ووايي، ځکه چي د نارينه وو لپاره په داسي ځايو کي تسبيح ويل او د ښځو لپاره تصفيق کول پکار دي). تصفيق دا دی چي ښځه خپل د راسته لاس ورغوی د چپه لاس د ورغوي پر شابه ووهي.

## د لمانځه په دوران کي بل لمونځ شروع کول

وَمَنْ صَلَّى رَكْعَةً مِنَ الظُّهْرِ او كه چا د ماپښين د لمانځه يو ركعت وكړی ثُمَّ افْتَتَحَ الْعَصْرَ أَوِ التَّطَوُّعَ بيا يې (تر يوه ركعت وروسته) د مازيګر لمونځ شروع كړی يا يې نفل شروع كړه فَقَدْ نَقَضَ الظُّهْرَ نو د ماپښين لمونځ يې فاسد سو لِأَنَّهُ صَحَّ شُرُوعُهُ فِي غَيْرِهِ ځكه چي په بل لمانځه سره د ده شروع كول صحيح سو فَيَخْرُجُ عَنْهُ نو د اول لمانځه څخه وځي.

**اللغات:** ﴿تطوع﴾ نفل، ﴿نقض﴾ د نصر د باب ماضي ده: ماتول، (فاسدول).

**تشريح:** كه يو چا مثلاً د ماپښين د لمانځه يو ركعت وكړی، بيا يې د مازيګر لمونځ شروع كړي يا يې د نفلي لمانځه نيت وكړی، او دا نيت يې په زړه كي وكړی، په ژبه سره نه، او تر غوږو پوري يې لاس هم پورته نه كړی، نو په دې صورت كي اول لمونځ يعني د ماپښين لمونځ باطل سو. دليل يې دا دی چي د دې سري دويم لمونځ شروع كول شرعاً صحيح دي او د دويم لمانځه د شروع كولو لپاره له اول لمانځه څخه وتل ضروري دي، نو كله چي له اول لمانځه څخه ووتی، نو هغه باطل سو.

## د لمانځه په دوران كي لمونځ له سره شروع كول

وَلَوِ افْتَتَحَ الظُّهْرَ بَعْدَمَا صَلَّى مِنْهَا رَكْعَةً او كه د ماپښين تر يوه ركعت كولو وروسته يې بيا د ماپښين لمونځ (له سره) شروع كړی فَهِيَ هِيَ نو دا دويم لمونځ هغه اول لمونځ دی (يعني دا دويم لمونځ هغه د ماپښين لمونځ دی) وَيَجْتَزِئُ بِتِلْكَ الرَّكْعَةِ او اول ركعت به شمارل كيږي لِأَنَّهُ نَوَى الشُّرُوعَ فِي عَيْنِ مَا هُوَ فِيهِ ځكه چي لمونځ ګزاره د داسي لمونځ د شروع كولو نيت وكړی چي په هغه كي دی د مخه لا وو فَلَغَتْ نِيَّتُهُ نو ځكه به د ده نيت لغو وي وَبَقِيَ الْمَنْوِيُّ عَلَى حَالِهِ او د كوم نيت چي يې (اول) كړی وو هغه به پر خپل حال پاته وي.

**اللغات:** ﴿يجتزئ﴾ د افتعال مضارع ده: كافي كېدل، دلته مراد څنې شمارل او حسابل دي، ﴿لغت﴾ د نصر ماضي ده: لغو كېدل، ﴿منوي﴾ د ضرب اسم مفعول دی: د كوم شي نيت چي سوی وي.

**تشريح:** مسئله: دا ده كه يو چا اول د ماپښين لمونځ شروع كړی، تر يوه ركعت وروسته يې بيا د دغه ماپښين د لمانځه نيت له تكبير تحريمه ويلو څخه بغير په ژبه سره وكړی، نو دا دويم لمونځ هغه اول لمونځ دی، يعني له اول لمانځه څخه نه وځي، او كوم ركعت چي يې كړی دی هغه هم شمارل كيږي، نو كه تر دې وروسته يې درې ركعته وكړه نو د ماپښين فرض يې اداء سوه، او كه تر دې وروسته يې څلور ركعته وكړه په دې ګومان چي زما اول ركعت يې باطل سو، لو پر دريم ركعت كښېنستي هم نه، نو د آخري ناستي د پرېښوولو په وجه د ده لمونځ باطل سو. دليل يې دا دی چي لمونځ ګزاره بعينه د هغه شي د شروع كولو نيت كړی دی چي په هغه كي اول دی وو، نو ځكه به د ده نيت لغو وي، او د كوم شي نيت چي يې مخكي كړی وي هغه به پر خپل حال پاته وي.

## په لمانځه کې له قرآن شريف څخه تلاوت کول

وَإِذَا قَرَأَ الْإِمَامُ مِنَ الْمُصْحَفِ او که امام له قرآن کريم څخه قرائت وکړي فَسَدَتْ صَلَاتُهُ عِنْدَ* أَبِي حَنِيفَةَ رَحِمَهُ اللهُ نو د امام ابو حنيفه رَحِمَهُ الله په نيز د هغه لمونځ فاسد سو وَقَالَا: هِيَ تَامَّةٌ او صاحبين فرمايي: چې د هغه لمونځ پوره دی لِأَنَّهَا عِبَادَةٌ انْضَافَتْ إِلَى عِبَادَةٍ أُخْرَى ځکه چې (دلته) يو عبادت (يعني قرآن ته کتل) د بل عبادت (يعني د قرائت) سره يو ځای سو إِلَّا أَنَّهُ يُكْرَهُ خو دا مکروه دي لِأَنَّهُ تَشَبُّهٌ بِصُنْعِ أَهْلِ الْكِتَابِ ځکه چې دا طريقه د اهلِ کتابو (عيسائيانو) د طريقې سره مشابه ده وَلِأَبِي حَنِيفَةَ رَحِمَهُ اللهُ او د امام ابو حنيفه رَحِمَهُ الله دليل دا دی أَنَّ حَمْلَ الْمُصْحَفِ وَالنَّظَرَ فِيهِ وَتَقْلِيبَ الْأَوْرَاقِ عَمَلٌ كَثِيرٌ چې د قرآن اخيستل او قرآن ته کتل او د ورقو (پاڼو) اړول را اړول عملِ کثير دی وَلِأَنَّهُ تَلَقُّنٌ مِنَ الْمُصْحَفِ او په دې وجه (هم) چې دا له قرآن څخه زده کول دي فَصَارَ كَمَا إِذَا تَلَقَّنَ مِنْ غَيْرِهِ نو دا داسې سو لکه له بل چا څخه زده کول وَعَلَى هَذَا لَا فَرْقَ بَيْنَ الْمَوْضُوعِ وَالْمَحْمُولِ او په دې صورت کې د ايښوول سوي قرآن او د را اخيستل سوي قرآن په مينځ کې هيڅ فرق نسته وَعَلَى الْأَوَّلِ يَفْتَرِقَانِ او په اول صورت کې د دواړو په مينځ کې فرق سته.

**اللغات:** ﴿المصحف﴾ قرآن شريف، ﴿إنضافت﴾ د انفعال د باب ماضي صيغه ده: اضافه کول، ور سره يو ځای کول، ﴿صنع﴾ کار، عمل، ﴿تقليب﴾ د تفعيل مصدر دی: اړول، کرځول، ﴿محمول﴾ د ضرب اسم مفعول دی: پوره ته کړی سوی، اخيستل سوی، مراد ځني دا دي چې په لمانځه کې چا قرآن په لاس کې را اخيستی وي، ﴿موضوع﴾ د فتح اسم مفعول دی: ايښوول سوی، مراد ځني دا دي چې قرآن په رحل (رهيل) يا بل شي کې پرووت وي.

**تشريح: صورت د مسئلې:** دا دی که يو امام يا يو لمونځ گزاره له قرآن پاک څخه تلاوت کوی، نو د امام صاحب رَحِمَهُ الله په نيز د هغه لمونځ فاسديږي، لېکن د صاحبينو رَحِمَهُمَا الله په نيزيې لمونځ نه فاسديږي، لېکن دا مکروه دي.

**د صاحبينو دليل:** دا دی چې قرائت او تلاوت کول يو عبادت دی، او قرآن ته کتل هم يو عبادت دی، نو په دې وجه له قرآن څخه په قرائت کولو لمونځ نه فاسديږي، بلکې نور به په ښه طريقه سره اداء سي، ځکه يو عبادت چې کله د بل عبادت سره يو ځای سي نو نور طاقت او تقويه پکښې راسي، او بيا د حضرت عائشې رَضِيَ اللهُ عَنْهَا په باره کې روايت دی چې د هغې يو غلام د ذکوان په نامه وو، دې غلام چې به کله د روژې په مياشت کې حضرت عائشې رَضِيَ اللهُ عَنْهَا ته قرائت کوی، نو له قرآن څخه به يې کوی، له دې څخه هم جواز ثابتيږي، لېکن څرنګه چې دا صورت د اهل کتابو د طريقې سره شه مشابهت لري، نو ځکه مکروه دی، د اهل کتابو عادت دا وو چې هغوی به هر ډول اذکار په لاس کې اخيستل او ويل به يې، او نبي ﷺ موږ د اهل کتابو له مشابهت څخه منع کړي يو، نو په دې حواله سره دا صورت مکروه دی.

**د امام صاحب دليل:** دا دی چې د قرآن شريف راپورته کول او له هغه څخه قرائت کول، او بيا يې پاڼې اړول را اړول عمل کثير دی، او عمل کثير لمونځ فاسدوي، نو ځکه به له قرآن څخه د قرائت په کولو سره لمونځ فاسديږي، او دويم دليل دا دی چې له قرآن څخه قرائت کول له بل چا څخه د قرآن زده کولو په درجه کې دي، او مخکې موږ وويل چې بې له

---

* القول الراجح: قول ابی حنيفة رَحِمَهُ الله، کذا فی رد المحتار ج:١، ص:٤٦١. [القول الراجح، ج:١، ص:١٠٢]

ضرورت نه لري بل چا څخه قرآن زده کول او فتحه اخيستل لمونځ فاسدوي، نو ځکه به له قرآن څخه قرائت کول هم لمونځ فاسدوونکي وي.

وعلى هذا الخ صاحب د هدايې رَحِمَهُ الله فرمايي چي د دويم دليل په رڼا کي که انسان په خپله قرآن را اخيستی وي، او له هغه څخه قرائت کوي يا يې قرآن مخته په رحل يا بل شي کي ايښی وي، يا يو بل ځای پروت وي او دی يې ويني او له هغه څخه قرائت کوي، نو په دې دواړو صورتونو کي هيڅ فرق نسته، او په دواړو صورتونو کي لمونځ فاسديږي، ځکه چي له قرآن څخه زده کړه په دواړو صوروونو کي سته، او زده کړه لمونځ فاسدوي؛ د دې په خلاف د اول دليل په رڼا کي د دې صورتونو په مينځ کي فرق سته، هغه دا چي د قرآن را اخيستلو په صورت کي به د عملِ کثير په وجه لمونځ فاسد وي، لېکن که قرآن خلاص يو ځای پروت وي، او له هغه څخه قرائت کيږي، نو دا لمونځ به فاسد نه وي، ځکه چي په دې صورت کي عملِ کثير نسته.

**راجح قول:** په پورتني مسئله کي راجح قول د امام صاحب رَحِمَهُ الله دی، قال العلامة قاضي خان رَحِمَهُ الله: إذا قرأ المصلي من المصحف فسدت صلوته في قول ابي حنيفة رَحِمَهُ الله ولو نظر في المصحف أو المحراب ففهم ولم يقرأ لا تفسد صلوته، وهو الصحيح (الخانية ج۱، ص۶۵). [القول الراجح، ج۱، ص۱۰۲]

## که په لمانځه کي يو خط ته کتل او په هغه پوهېدل

وَلَوْنَظَرَإِلَى مَكْتُوبٍ او که لمونځ گزاره (له قرآن څخه ماسوا) بل ليکل سوي شي ته وکتل وَفَهِمَهُ او په هغه پوه سو فَالصَّحِيحُ أَنَّهُ لَا تَفْسُدُ صَلَاتُهُ بِالْإِجْمَاعِ نو صحيح قول دا دی چي په اجماع سره د هغه لمونځ نه فاسديږي بِخِلَافِ مَا إِذَا حَلَفَ لَا يَقْرَأُ كِتَابَ فُلَانٍ په خلاف د هغه چي صورت چي کله هغه قسم کړی وي چي د فلانکي کتاب به نه وايم حَيْثُ يَحْنَثُ بِالْفَهْمِ عِنْدَ مُحَمَّدٍ رَحِمَهُ اللهُ نو (په دې صورت کي) د امام محمد رَحِمَهُ الله په نيز په پوهېدلو سره دغه سړی حانث کيږي (يعني قسم يې ماتيږي) لِأَنَّ الْمَقْصُودَ هُنَالِكَ الْفَهْمُ ځکه چي دلته مقصود پوهېدل دي أَمَّا فَسَادُ الصَّلَاةِ فَبِالْعَمَلِ الْكَثِيرِ پاته سو د لمانځه فاسدېدل نو هغه په عملِ کثير سره راځي وَلَمْ يُوجَدْ او عملِ کثير (دلته) نسته.

**اللغات:** ﴿مكتوب﴾ د نصر اسم مفعول دی: ليکل سوی، (مراد ځني خط دی). ﴿يحنث﴾ د فتح مضارع ده: قسم ماتېدل.

**تشريح:** مسئله: دا ده که لمونځ گزاره د لمانځه په دوران کي له قرآن څخه ماسوا بل ليکل سوي شي ته وکتل او په هغه پوه سو، لېکن په ژبه سره يې تلفظ او تکلم نه په وکړی، نو بالاتفاق په دې سره لمونځ نه فاسديږي، همدا صحيح ده، صاحب د کتاب په فالصحيح سره له هغه قول څخه احتراز کړی دی چي بعضي مشائخو ويلي دي چي په ذکر سوې مسئله کي د نه فاسدېدلو قول د امام ابو يوسف رَحِمَهُ الله دی، کنې د امام محمد رَحِمَهُ الله په نيز په دې صورت کي هم لمونځ فاسديږي، مگر صحيح قول همدغه دی چي په دې صورت کي د هيچا په نيز لمونځ نه فاسديږي، نه د امام ابو يوسف رَحِمَهُ الله په نيز او نه د امام محمد رَحِمَهُ الله په نيز، ځکه چي د لمانځه د فاسدېدلو لپاره عمل کثير پکار دی، او هغه دلته نسته.

بخلاف الخ د دې په خلاف که يو سړي قسم وکړی چې د فلانکي سړي کتاب به نه وايم، بيا پر هغه کتاب د ده نظر ولوېدی، او په هغه کې په ليکل سوي عبارت باندې پوه سو، نو په دې صورت کې د امام محمد رَحِمَهُ الله په نېز قسم کونکی حانث کيږي، لېکن د امام ابو يوسف رَحِمَهُ الله په نېز هغه نه حانث کيږي.

**د امام محمد دليل:** دا دی چې د ويلو مقصد پوهېدل دي، نو د نه ويلو قسم به پر نه پوهېدلو حمل کيږي، او په پوهېدلو سره به قسم کونکی حانث کيږي، که څه هم تکلّم او تلفظ نه وکړي، ځکه چې په شريعت کې د معناګانو اعتبار کيږي، د الفاظو اعتبار نه کيږي، د فقهي مشهوره قاعده ده: الاعتبار للمعاني لا للمباني.

**د امام ابو يوسف دليل:** دا دی چې په ذکر سوې مسئله قسم کونکي د نه ويلو قسم کړی دی، نو قسم به صرف په ويلو سره ماتيږي، په پوهېدلو او پوهولو سره به نه ماتيږي، ځکه چې د ويلو تعلق د ژبې ښورولو سره دی، او دلته د ژبې ښورېدل نه دي راغلي، نو ځکه تر کومه وخت چې دکتاب عبارت په ژبه نه ووايي. تر هغه وخته به نه حانث کيږي، که څه هم دی يې د پر وګڼي.

همدارنګه د لمانځه د فساد مسئله ده، چې صرف په پوهېدلو سره هم لمونځ نه فاسديږي، ځکه چې د لمانځه د فساد لپاره د عملِ کثير ضرورت دی، او بغير له تکلمه پوهېدل مورِ عملِ کثير نه سو ګرځولای، نو ځکه به صرف د پوهېدلو په وجه د لمانځه د فساد حکم نه لګوو.

## د لمونځ ګزار مخته د ښځې تېرېدل

وَإِنْ مَرَّتْ اِمْرَأَةٌ بَيْنَ يَدَيِ الْمُصَلِّيْ او که د لمونځ کونکي مخته يو ښځه تېره سوه لَمْ تَقْطَعِ الصَّلَاةَ نو دا تېرېدل لمونځ نه فاسدوي لِقَوْلِهِ عَلَيْهِ الصَّلَاةُ وَالسَّلَامُ● ځکه نبي ﷺ فرمايلي دي لَا يَقْطَعُ الصَّلَاةَ مُرُوْرُ شَيْءٍ د هيڅ شي تېرېدل لمونځ نه فاسدوي إِلَّا أَنَّ الْمَارَّ آثِمٌ لېکن تېرېدونکي به ګنهکاره وي لِقَوْلِهِ عَلَيْهِ الصَّلَاةُ وَالسَّلَامُ ځکه نبي ﷺ فرمايلي دي لَوْ عَلِمَ الْمَارُّ بَيْنَ يَدَيِ الْمُصَلِّيْ● که هغه سړي ته معلومه سي کوم چې د لمونځ کونکي مخته تېرېږي مَاذَا عَلَيْهِ مِنَ الْوِزْرِ چې پر ده څومره ګناه ده لَوَقَفَ أَرْبَعِيْنَ نو هغه به تر څلوېښتو پورې ولاړ وي وَإِنَّمَا يَأْثَمُ إِذَا مَرَّ فِيْ مَوْضِعِ سُجُوْدِهِ او تېرېدونکي هغه وخت ګنهکاره کيږي چې کله هغه د لمونځ کونکي د سجدې په ځای کې تېر سي عَلٰى مَا قِيْلَ لکه څرنګه چې ويل سوي دي وَلَا يَكُوْنُ بَيْنَهُمَا حَائِلٌ او (چې) د دواړه په مېنځ کې څه حائل (پرده) هم نه وي وَتُحَاذِيْ أَعْضَاءُ الْمَارِّ أَعْضَاءَهُ او د تېرېدونکي اندامونه د لمونځ ګزاره د اندامونو سره برابر سي لَوْ كَانَ يُصَلِّيْ عَلَى الدُّكَّانِ (په هغه صورت کې) که لمونځ ګزاره پر دوکانچه (چوتره) لمونځ کوی.

**اللغات:** ﴿الآثم﴾ ګنهکاره (ګناهکاره)، مجرم، ﴿وِزْر﴾ ګناه، بوج، ﴿دُكَّان﴾ لوړ ځای، دوکانچه، چوتره.

**تشريح:** **صورت د مسئلې:** دا دی چې زموږ په نېز د لمونځ ګزاره مخته د سړي، ښځې، خره او داسې نورو په تېرېدلو سره د هغه لمونځ نه فاسديږي، او اصحابِ ظواهر وايي: چې د دې شيانو په تېرېدلو سره لمونځ فاسديږي.

---

● أخرجه ابو داؤد في كتاب الصلاة، باب من قال لا يقطع الصلاة، حديث رقم:٧١٩.

● أخرجه ابو داؤد في كتاب الصلاة، باب ماينهى عن المرور، حديث رقم:٧٠١.

**د اصحاب ظواهر دليل:** دا حديث دی: تقطع المرأة الصلاة والكلب والحمار. (يعني ښځه، سپی او خر لمونځ فاسدوي). نو له دې څخه معلومه سوه چې ښځه او خر د لمانځه فاسدوونکي دي، او د دوی په تېرېدلو سره لمونځ فاسديږي.

**جواب:** زموږ له طرفه د دې حديث جواب دا دی چې دا حديث موضوعي دی، او د استدلال وړ نه دی، ځکه چې صاحب د عنايې رَحِمَهُ الله ليکلي دي: أنكرتها عائشة رَضِيَ اللهُ عَنْهَا حين بلغتها فقال يا أهل العراق والشقاق والنفاق قرنتمونا بالحمر والكلاب، كان رسول الله ﷺ يصلي و أنا معترضة بين يديه اعتراض الجنازة فإذا سجد حبست رجلي وإذا قام مددتها (العنايه، ج ۱، ص ۴۱۴). (يعني کله چې حضرت عائشې رَضِيَ اللهُ عَنْهَا ته دا حديث ورسېدی، نو هغه ناراضه سوه، او په سختۍ سره يې د دې انکار وکړی، او داسې يې وفرمايل چې: اې عراقيانو! او اې د نفاق او شقاق خاوندانو! ستاسو دې پېره فرقه سي تاسو خو موږ د خرو او سپيانو په صف کې ودرولو، واورئ! کله چې به نبي ﷺ لمونځ کوی نو زه به د جنازې په ډول د نبي ﷺ مخته پرته وم، چې نبي ﷺ به سجده کول نو ما به خپلې پښې را ټولولې او چې نبي ﷺ به ولاړ سو نو ما به (بيرته) غوړولې)، په دې حديث سره دا خبره په ډاګه ښکاره کيږي چې د ښځې تېرېدل لمونځ نه فاسدوي، ځکه کله چې د لمونځ ګزار مخ ته د ښځې استقرار لمونځ نه فاسدوي، نو د مُرور څه حيثيت دی، همدارنګه د سړي، او خره تېرېدل هم لمونځ نه فاسدوي، دليل دا حديث دی: لا يقطع الصلاة مرور شيء. يعني د هيڅ شي تېرېدل هم لمونځ نه فاسدوي، او ځرنګه چې شی عام دی، او نکره دی، نو ځکه به د عموم فايده ورکوي، ځکه قاعده دا ده: چې کله نکره تحت النفي واقع سي نو د عموم فايده ورکوي، نو ځکه دلته به هم په شي کې سړی، سپی او خر ټوله داخل وي، او د هيڅ شي تېرېدل به هم د لمانځه فاسدوونکي نه وي، ليکن که تېرېدونکي انسان وي نو په داسې حرکت کولو سره به انسان حتماً ګنهګاره کيږي، ځکه چې د نبي ﷺ فرمان دی: که د لمونځ ګزاره مخ ته د تېرېدلو عذب او سزا تېرېدونکي ته معلومه سي نو هغه به څلوېښت کاله له خپل ځخه نه وښوري او پر دغه ځای به پاته وي، او په بل قول کې راغلي دي څلوېښت مياشتې، او په بل کې راغلي دي څلوېښت ورځې، خير خو له حديث څخه دا ثابتيږي چې د لمونځ ګزاره مخته ته تېرېدل ډېر غټ جرم دی او عذاب به يې ډېر سخت وي.

و إنما يأثم الخ له دې ځايه دا را ښيي چې د تېرېدلو اندازه څومره ده، او په څه ډول تېرېدلو سره لمونځ ګزاره ګنهګاره کيږي، نو په دې سلسله کې يو څو اقوال دي، او بيا د صحراء او مسجد فرق هم سته، صاحب د عنايې رَحِمَهُ الله ليکلي دي چې که لمونځ ګزاره په صحرا کې لمونځ کوی نو د سجدې په ځای کې په تېرېدلو سره انسان ګنهګاره کيږي، وهو اختيار شمس الائمة السرخسي و شيخ الاسلام و قاضي خان، يعني د دې حضراتو په نېز ښه او خوښ قول همدغه دی، د علامه فخر الدين رَحِمَهُ الله رايه دا ده چې که لمونځ ګزاره د سجدې ځای ته ګوري لمونځ کوي او تېرېدونکي په نظر نه ورځي، نو بيا تېرېدل مکروه نه وي، همدارنګه تېرېدونکی ګنهګاره نه دی، بعضې خلکو په دوو او درې صفونو سره د دې اندازه بيان کړې ده، او بعضو په درې ذراعه او بعضو په پنځه ذراعه سره د دې اندازه بيان کړې ده، او بعضو په څلوېښت ذراعه سره د دې اندازه ذکر کړې ده، والله اعلم؛ او که لمونځ ګزاره په مسجد کې لمونځ کوی، نو په دې صورت کې د بعضې حضراتو رايه دا ده چې د لمونځ ګزاره او د قبلې د دېوال تر مينځ تېرېدل صحيح نه دي، او ګناه لري، او د بعضې حضراتو رايه دا ده چې تر پنځوس ذراعو مخته تېرېدلای سي، په هغه کې هيڅ حرج نسته. (منيه ج ۱، ص ۴۱۵)

ولا يكون بينهما الخ فرمايي چې تېرېدونکي په هغه وخت کې ګنهګاره کيږي چې کله د ده او د لمونځ ګزاره تر مينځ يو شی مثلاً دېوال، ستن (پيلر) او داسې بل شي حائل نه وي، ليکن که دېوال او داسې نور حائل وي، نو په دې صورت کې

په تېرېدلو کي هيڅ حرج نشته، او که لمونځ ګزاره پر دوکانچه يا پر يو بل لوړ ځای لمونځ کوي، نو په دې صورت کي که تېرېدونکي دومره نژدې تېرېدی چي د ده اندامونه د لمونځ ګزاره د اندامونو سره برابر او مقابل سوه، نو بيا دی ګنهکاره کيږي، کنې نه ګنهکاره، او که پر دومره لوړ ځای يې لمونځ کوی چي هغه د انسان د قد(تنې) په اندازه لوړ وو، نو په دې صورت کي تېرېدونکی نه ګنهکاره کيږي.

## په صحرا (ميدان) کي د لمونځ کونکي لپاره ستُره درول

وَيَنْبَغِيْ لِمَنْ يُصَلِّيْ فِي الصَّحْرَاءِ او څوک چي په صحراء(ميدان) کي لمونځ کوي د هغه لپاره مناسب دا ده أَنْ يَتَّخِذَ أَمَامَهُ سُتْرَةً چي مخته ستره ودروي لِقَوْلِهٖ عَلَيْهِ الصَّلَاةُ وَالسَّلَامُ ● ځکه نبي ﷺ فرمايلي دي إِذَا صَلّٰى أَحَدُكُمْ فِي الصَّحْرَاءِ کله چي ستاسو څخه څوک په صحرا کي لمونځ کوي فَلْيَجْعَلْ بَيْنَ يَدَيْهِ سُتْرَةً نو خپل مخته دي ستره ودروي وَمِقْدَارُهَا ذِرَاعٌ فَصَاعِدًا او د سترې مقدار يو ذراع يا له دې څخه زيات دي لِقَوْلِهٖ عَلَيْهِ الصَّلَاةُ وَالسَّلَامُ ● ځکه نبي ﷺ فرمايلي دي أَيَعْجِزُ أَحَدُكُمْ آيا له تاسو څخه يو سړی دا کولای نه سي إِذَا صَلّٰى فِي الصَّحْرَاءِ چي کله هغه په صحرا کي لمونځ کوي أَنْ يَكُوْنَ أَمَامَهُ مِثْلُ مُؤْخِرَةِ الرَّحْلِ چي د هغه و مخ ته دي د کجاوې د لرګي په څېر يو شی وي وَقِيْلَ يَنْبَغِيْ أَنْ تَكُوْنَ فِيْ غِلَظِ الْأُصْبُعِ او وېل سوي دي مناسب دا ده چي ستره به د ګوتي په اندازه پنډه وي لِأَنَّ مَا دُوْنَهُ لَا يَبْدُوْ لِلنَّاظِرِ مِنْ بَعِيْدٍ ځکه چي تر دې نرۍ ستره له ليري څخه کتونکي ته په نظر نه راځي فَلَا يَحْصُلُ الْمَقْصُوْدُ نو مقصود نه (په) حاصليږي.

**اللغات:** ﴿صحراء﴾ ناآباده ميدان، صحرا، بيابان، ﴿ذراع﴾ يو لاس، شرعي ګز، ﴿رحل﴾ کجاوه، ﴿مؤخرة﴾ د کجاوې هغه لرګي ته وېل کيږي کوم چي د سپاره(راکب) د سر سره برابر وي (منايه)، ﴿غلظ﴾ پنډوالی.

**تشريح: مسئله:** دا ده که يو سړي په صحرا او ميدان کي لمونځ کوی نو خپل مخته دي ستره ودروي، او ستره درول مستحب دي، دليل د نبي ﷺ دا قول دی: إذا صلى أحدكم في الصحراء فليجعل بين يديه سترة، پاته سوه دا خبره چي د سترې اندازه به څومره وي، نو په دې باره کي فرمايي چي د سترې اوږدوالی لږ تر لږه يوه ذراع پکار دی، او زيات چي څومره وي، څه حرج پکښې نشته، دليل د نبي ﷺ دا قول دی: أيعجز أحدكم إذا صلى في الصحراء أن يكون امامه مثل مؤخرة الرحل، (مؤخرة د ميم په ضمه او د خاء په کسره هغه لرګي ته وېل کيږي چي هغه د کجاوې شاته وي او د سپور سړي د سر سره برابر وي، د خاء په شد سره وېل غلط دی، رحل کجاوې ته وېل کيږي)، صاحب د قدوري رَحِمَهُ الله وايي چي د سترې پنډوالی د يوې ګوتي په اندازه پکار دی، دليل يې دا دی چي تر دې کم پنډوالی له ليري څخه خلکو ته نه معلوميږي، او تر دې چي کومه ستره نرۍ وي په هغه سره مقصود نه حاصليږي، نو ځکه وويل سوه چي لږ تر لږه به ستره د يوې ګوتي په اندازه پنډه وي.

---

● أخرجه ابو داؤد في كتاب الصلاة، باب الخط إذا لم يجد عصًا، حديث رقم: ٦٨٩.

● أخرجه مسلم في كتاب الصلوٰة، باب سترة المصلي، حديث رقم: ٢٤١.

## د سترې درولو ادبونه

وَيَقْرُبُ مِنَ السُّتْرَةِ او لمونځ ګزاره دې سترې ته نژدې دربږي لِقَوْلِهِ عَلَيْهِ الصَّلَاةُ وَالسَّلَامُ ځکه نبي ﷺ فرمايلي دي مَنْ صَلَّى إِلَى سُتْرَةٍ کوم سړی چې سترې ته لمونځ کوی فَلْيَدْنُ مِنْهَا نو هغه ته پکار دي چې سترې ته نژدې سي وَيَجْعَلُ السُّتْرَةَ عَلَى حَاجِبِهِ الْأَيْمَنِ أَوْ عَلَى الْأَيْسَرِ او ستره دې د راسته يا چپه ورځي (وروځي) پر طرف دروي بِهِ وَرَدَ الْأَثَرُ او په دغه باره کې اثر وارد سوی دی وَلَا بَأْسَ بِتَرْكِ السُّتْرَةِ او د سترې په پرېښوولو کې څه خبره نسته إِذَا أَمِنَ الْمُرُورَ وَلَمْ يُوَاجِهِ الطَّرِيقَ کله چې لمونځ ګزاره له تېرېدلو څخه په امن وي او پر لاري مخامخ نه وي.

**اللغات:** ﴿فَلْيَدْنُ﴾ د نصرب له باب څخه امر غائب دی: نژدې کېدل، ﴿حاجب﴾ د سترګو ورځه (وروځه).

**تشريح:** په عبارت کې د سترې په اړه دوه (۲) حکمونه بيان سوي دي: (۱) اول حکم دا دی چې لمونځ کونکي ته پکار دي چې سترې ته بالکل نژدې ودرېږي، ليرې دي نه ځني درېږي، ځکه په حديث کې د دې تأکيد راغلی دي.

(۲) دويم حکم دا دی چې لمونځ کونکي دې ستره بالکل مخامخ نه دروي بلکې د خپل راسته يا چپه ورځي سره دې يې برابروي، ځکه له نبي ﷺ څخه همدغه ډول رانقل سوي دي، لکه په عنايه کې چې ذکر دي: روی عنه ﷺ ما صلّی إلی شجرة ولا إلی عود ولا إلی عمود إلّا جعله علی حاجبه الأيمن ولم يصمده صمداً...الخ (يعني نبي ﷺ چې به کله هم درختي يا لرګي او نورو ته لمونځ کوی نو هغه به يې د راسته ورځي سره برابرول، او بالکل به يې مخته نه درول).

ولا بأس الخ د دې حاصل دا دی چې د سترې درولو اصلي علت د يو چا د تېرېدلو احتمال او انديښنه ده، نو که د تېرېدلو خطره او احتمال نه وي، او لمونځ ګزاره بالکل د لاري مخته ولاړ هم نه وي، په دې صورت کې که څه هم ستره نه ودروي، نو څه پروا نه لري، ځکه چې د علت د نيستوالي په وجه معلول هم ختمېږي.

## د امام ستره د مقتديانو لپاره کافي کېدل

وَسُتْرَةُ الْإِمَامِ سُتْرَةٌ لِلْقَوْمِ او د امام ستره د قوم لپاره (هم) ستره ده لِأَنَّهُ عَلَيْهِ الصَّلَاةُ وَالسَّلَامُ صَلَّى بِبَطْحَاءَ مَكَّةَ إِلَى عَنَزَةٍ ځکه نبي ﷺ د مکې په بطحا کې د لکړې (امسا) و طرف ته لمونځ وکړی وَلَمْ يَكُنْ لِلْقَوْمِ سُتْرَةٌ او د قوم لپاره ستره نه وه.

**اللغات:** ﴿بطحاء﴾ دبرېنه ځکه، ﴿عنزة﴾ په اصل کې هغه لکړې ته ويل کېږي چې په آخر کې يې د نيزې هغه تېره اوسپنه لګېدلې کوم چې د نېزې په لاندينۍ حصه کې وي، بعضي شارحينو ويلي دي چې له عنزة څخه مراد "نېزه" ده، خو صحيح دا ده چې لکړه ځني مراده.

**تشريح:** فرمايي که لمونځ په جماعت سره کېدی او هلته د سترې درولو ضرورت پېښ سو، نو صرف د امام لپاره ستره درول ضروري دي، او د امام ستره د مقتديانو لپاره هم ستره شمارل کېږي، او د مقتديانو لپاره د جلا سترې درولو ضرورت نسته، دليل دا دی چې کله نبي ﷺ د مکې شريفې په بطحاء کې خلکو ته لمونځ ورکوی، نو صرف د نبي ﷺ مخته

ستره وه، د مقتديانو مخته ستره نه وه، لهذا څرنګه چې د امام قرائت د مقتديانو لپاره قرائت ګرځول کيږي، همدارنګه به د امام ستره د مقتديانو لپاره ستره ګرځول کيږي، او د دوی لپاره به د جلا سترې درولو هيڅ ضرورت نه وي.

## ستره په مځکه کې ښخول

وَيُعْتَبَرُ الْغَرْزُ او د سترې درول(ښخول) معتبر دي دُونَ الْإِلْقَاءِ د سترې غورځول(معتبر نه دي) وَالْخَطُّ او نه ليکه(کرښه) کښل (معتبر دي) لِأَنَّ الْمَقْصُوْدَ لَا يَحْصُلُ بِهِ ځکه په دې سره مقصود نه حاصليږي.

**اللغات:** ﴿الغرز﴾ درول، جګول، ښخول، ﴿الإلقاء﴾ د افعال د باب مصدر دی: غورځول، اچول، ﴿الخط﴾ د نصر د باب مصدر دی: ليکه کښل (کاږل).

**تشريح:** مسئله: دا ده چې ستره په مځکه کې درول او ښخول معتبره دي، د دې لپاره چې د هوا يا بل شي په وجه غورځېږه نه سي، ځکه چې د سترې مقصد همدغه دی چې خلکو ته دا وښوول سي چې يو څوک لمونځ کوي، او ښکاره ده چې دا صرف د سترې په درولو سره حاصليږي، نو ځکه صرف د سترې اېښوولو يا د کرښې کښلو هيڅ اعتبار نسته، ځکه چې په دې طريقه سره مقصود نه حاصليږي.

## که ستره نه وه نو څه حکم دی؟

وَيَدْرَأُ الْمَارَّ او لمونځ ګزاره دې تېرېدونکي منع کوي إِذَا لَمْ يَكُنْ بَيْنَ يَدَيْهِ سُتْرَةٌ که د لمونځ ګزاره مخته ستره نه وه أَوْ مَرَّ بَيْنَهُ وَبَيْنَ السُّتْرَةِ يا که تېرېدونکی د لمونځ ګزاره او سترې په مينځ کې تېر سو (نو هم دې يې منع کوي) لِقَوْلِهِ • عَلَيْهِ الصَّلَاةُ وَالسَّلَامُ ځکه نبي ﷺ فرمايلي دي فَادْرَءُوْا مَا اسْتَطَعْتُمْ څومره چې ستاسو وس وي(تېرېدونکی) منع کوئ! وَيَدْرَأُ بِالْإِشَارَةِ او په اشاره سره دې يې منع کوي كَمَا فَعَلَ رَسُوْلُ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ • بِوَلَدَيْ أُمِّ سَلَمَةَ رَضِيَ اللهُ عَنْهَا لکه څرنګه چې نبي ﷺ د ام سلمه رَضِيَ اللهُ عَنْهَا د دواړو ځامنو سره داسې کړي وو أَوْ يَدْفَعُهُ بِالتَّسْبِيْحِ يا دې يې د تسبيح په ذريعه سره منع کوي لِمَا رَوَيْنَا مِنْ قَبْلُ د هغه حديث په وجه کوم چې مونږ مخکې روايت کړی وَيُكْرَهُ الْجَمْعُ بَيْنَهُمَا (خو) اشاره او تسبيح دواړه جمع کول مکروه دي لِأَنَّ بِأَحَدِهِمَا كِفَايَةً ځکه له دوی څخه يو (هم) کافي دی.

**اللغات:** ﴿يدرأ﴾ د فتح د باب مضارع ده: ليري کول، منع کول، ﴿كفاية﴾ کفايت، ضرورت پوره کونکی شی.

**تشريح:** مسئله: دا ده که د لمونځ ګزار مخته ستره نه وي، يا ستره خو وي، ليکن د سترې او لمونځ ګزار تر مينځ يو څوک د تېرېدلو اراده لري، نو لمونځ ګزاره دې دا تېرېدونکی منع کړي، ځکه نبي ﷺ فرمايلي دي: فادرؤا ما استطعتم (يعني څومره چې ممکنه وي تېرېدونکی منع کړئ!). پاته سوه دا خبره چې لمونځ ګزار به تېرېدونکی څرنګه منع کوي، په دې باره کې فرمايي: چې په اشارې سره دې يې منع کوي، لکه نبي ﷺ چې د ام سلمه رَضِيَ اللهُ عَنْهَا دوه کوچنيان منع کړي وو، صاحب د عنايې او بنايې د دې تفصيل داسې ذکر کړی دی: أَنَّ النَّبِيَّ ﷺ كَانَ يُصَلِّي فِي بَيْتِهَا فَقَامَ وَلَدُهَا عُمَرُ لِيَمُرَّ بَيْنَ يَدَيْهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ، فَأَشَارَ إِلَيْهِ أَنْ قِفْ، فَوَقَفَ، ثُمَّ قَامَتْ بِنْتُهَا زَيْنَبُ لِتَمُرَّ بَيْنَ يَدَيْهِ، فَأَشَارَ إِلَيْهَا أَنْ قِفِي فَأَبَتْ فَمَرَّتْ.

---

• أخرجه مسلم فی کتاب الصلاة، باب منع المار بين يدی المصلی، حديث رقم: ٢٥٨.

• أخرجه ابن ماجه فی کتاب الاقامة، باب ما يقطع الصلوٰة، حديث رقم: ٩٤٨.

فلما خرج من عندها قال: إنكن ناقصات العقل ناقصات الدين صواحب يوسف صواحب يوسف يغلبن الكرام ويغلبهن اللئام. (نبي كريم ﷺ د حضرت ام سلمه رضي الله عنها په كور كې لمونځ كوي، د ام سلمې رضي الله عنها ځوی ولاړ سو چې د نبي ﷺ مخته تېر سي، نبي ﷺ هغه ته اشاره وكړه چې ودرېږه، نو هغه ودرېدی، بیا د ام سلمې رضي الله عنها لور د تېرېدلو لپاره را ولاړه سوه نبي ﷺ هغې ته هم اشاره وكړه چې ودرېږه، لېكن هغې نه ومنله او تېره سوه، كله چې نبي ﷺ له لمانځه څخه فارغه سو، نو وېې ويل چې د (آدم عليه السلام لوڼي)، د دين او عقل ناقصې، او د يوسف (عليه السلام) او كرسف لاروياني دي، پر نېكانو او ښو خلكو غالبه كيږي، بې وقوفه او كم اصله خلك پر دوی غالبه كيږي)؛ لنډه دا چې له دې حديث څخه په اشاره باندې منع كول ثابت سوه.

اويدفعه بالتسبيح الخ يا دې يې په تسبيح ويلو سره منع كړي، دليل يې مخكې تېر سو يعني د نبي ﷺ دا قول: إذا نابت أحدكم نائبة في الصلاة فليسبح. لېكن اشاره او تسبيح دواړه جمع كول مكروه دي، ځكه چې په دواړو كې يو كفايت كوي، نو د بل څه ضرورت نسته.



## فَصْلٌ أَيْ هٰذَا فَصْلٌ فِيْ بَيَانِ الْمُفْسِدِ

### دا فصل د لمانځه د فاسدونكو شيانو (په بيان كي) دی

**تشريح**: مخكې تر دې صاحب د كتاب مفسدات بيان كړل، اوس له دې ځايه صرف مكروهات بيانوي، او څرنګه چې مفسد تر مكروه زيات قوي وي، نو ځكه يې مفسدات مخكې كړل.

### په لمانځه كي په جامو (كپړو) او بدن سره بازي كول

وَيُكْرَهُ لِلْمُصَلِّيْ او لمونځ كونكي لره مكروه دي أَنْ يَعْبَثَ بِثَوْبِهٖ أَوْ بِجَسَدِهٖ چې په خپلو جامو يا بدن سره بازي كوي لِقَوْلِهٖ عَلَيْهِ الصَّلَاةُ وَالسَّلَامُ • ځكه نبي ﷺ فرمايلي دي إِنَّ اللّٰهَ تَعَالٰى كَرِهَ لَكُمْ ثَلَاثًا چي الله تعالیٰ ستاسو لپاره درې شيان مكروه ګرځولي دي وَذَكَرَ مِنْهَا الْعَبَثَ فِي الصَّلَاةِ او نبي ﷺ له هغه درېو شيانو څخه په لمانځه كي عبث كار هم ذكر كړی وَلِأَنَّ الْعَبَثَ خَارِجَ الصَّلَاةِ حَرَامٌ او په دې وجه هم چي له لمانځه څخه دباندي لا عبث كار حرام دی فَمَا ظَنُّكَ فِي الصَّلَاةِ نو په لمانځه كي ستا څه خيال دی!؟

**اللغات**: ﴿عبث﴾ بې فايدې كار.

**تشريح**: **مسئله**: دا ده چي د لمونځ ګزاره لپاره په خپل بدن يا جامو سره بازي كول مكروه دي. دليل دا دی چي نبي ﷺ فرمايلي دي: الله تعالیٰ ستاسو لپاره درې شيان مكروه كړي دي، چي له هغو څخه يو په لمانځه كي دننه بازي او لوبي كول دي، او له نورو دوو څخه

---

• أخرجه قضاعي في مسندالشهاب، باب ان الله كره لكم العبث في الصلاة، حديث رقم:١٠٨٧، ج:٢.

يو د روژې په حالت كې ګنده او چټلې خبرې كول دي، او دويم شی په هديره كې خندل دي؛ دويم دليل دا دی چې عبث كار خو له لمانځه څخه دباندې هم حرام دی، نو په لمانځه كې ستا څه خيال دی!؟ يعني په لمانځه كې خو په طريقه اولىٰ حرام دی.

## په لمانځه كې شګې ليرې كول

وَلَايُقَلِّبُ الْحَصَا او شګې دې (هم) په لمانځه كې نه ليرې كوي لِأَنَّهُ نَوْعُ عَبَثٍ ځكه چې دا هم يو ډول عبث كار دی إِلَّا أَنْ لَا يُمْكِنُهُ مِنَ السُّجُوْدِ خو دا چې د لمونځ ګزاره لپاره سجده كول ممكن نه وي فَيُسَوِّيَهُ مَرَّةً وَاحِدَةً نو يو وار به يې برابروي لِقَوْلِهِ عَلَيْهِ الصَّلَاةُ وَالسَّلَامُ ● ځكه د نبي ﷺ فرمان دی مَرَّةً يَا أَبَا ذَرٍّ وَإِلَّا فَذَرْ اې ابوذره! يو وار (داسې كوه) كنې پرې يې ږده يې وَلِأَنَّ فِيْهِ إِصْلَاحَ صَلَاتِهِ او ځكه چې په دې كې د لمونځ ګزاره د لمانځه اصلاح (هم) ده.

**اللغات:** ﴿حصا﴾ شګې، كوچنۍ ډبرې، ﴿فذر﴾ ذَرْ د امر صيغه ده: پرېښوول.

**تشريح: مسئله:** دا ده چې د لمونځ ګزاره لپاره په لمانځه كې شګې ليرې كول، يا داسې بل شی اړول را اړول هم مكروه دي، ځكه چې دا هم يو ډول عبث كار دی، او عبث كار مكروه دی، نو دا به هم مكروه وي، ليكن كه له شګو او ډبرو ليرې كولو څخه بغير سجده كول ممكن نه وي، نو په دې صورت كې يې يو وار ليرې كولای سي، په يو وار ليرې كولو كې هيڅ حرج نسته، ځكه نبي ﷺ حضرت ابو ذر ﷺ ته د يو وار داسې كولو اجازه وركړې وه، څرنګه چې په مصنف عبد الرزاق كې د حضرت ابو ذر غفاري ﷺ په حواله سره را نقل سوي دي: سألت النبي ﷺ عن كل شئ حتى سألته عن مسح الحصى فقال واحدة، أو دع، (يعني ما له نبي ﷺ د هر شي په باره كې پوښتنه كړې ده تر دې چې د شګو ليرې كولو په باره كې مې هم پوښتنه څني وكړه، نو نبي ﷺ وفرمايل چې صرف يو وار د ليرې كولو اجازه سته، د دويم وار اجازه نسته)؛ او ښه خبره دا ده چې يو وار يې هم ليرې نه كړې. (فتح القدير ج:١، ص: ٣٢٠)

**عقلي دليل:** دا دی چې د شګو او داسې نورو په ليرې كولو كې د لمونځ كونكي د لمانځه اصلاح هم ده، په دې توګه چې كله شګې او نور ليرې سي، نو لمونځ كونكي به په ښه سكون او اطمينان سره لمونځ وكړي، او ښكاره ده چې په كوم شي سره د لمانځه اصلاح كيږي، هغه عبث نه وي، همدا وجه ده چې د يو وار شګو ليرې كولو رخصت او اجازه سته.

## په لمانځه كې په ګوتو ټكان كول او پر تشه (ډډه) لاس اېښوول

وَلَايُفَرْقِعُ أَصَابِعَهُ او لمونځ ګزاره به په ګوتو ټكان نه كوي لِقَوْلِهِ عَلَيْهِ الصَّلَاةُ وَالسَّلَامُ ځكه نبي ﷺ فرمايلي دي لَا تُفَرْقِعْ أَصَابِعَكَ ● وَأَنْتَ تُصَلِّيْ د لمانځه په حالت كې په ګوتو ټكان مه كوه وَلَا يَتَخَصَّرُ او لمونځ ګزاره به تخصّر هم نه كوي وَهُوَ وَضْعُ الْيَدِ عَلَى الْخَاصِرَةِ او تخصّر پر تشه (ډډه) لاس اېښوول دي لِأَنَّهُ عَلَيْهِ الصَّلَاةُ وَالسَّلَامُ ● نَهَى عَنِ الْاِخْتِصَارِ فِي الصَّلَاةِ ځكه نبي ﷺ په لمانځه كې له تخصّر څخه منع فرمايلې ده وَلِأَنَّ فِيْهِ تَرْكَ الْوَضْعِ الْمَسْنُوْنِ او په دې وجه (هم) چې په تخصّر كې د سنت طريقې پرېښوول دي.

---

● أخرجه احمد في مسنده، باب رقم: ٣٥، حديث رقم:٢١٤٤٦ في معناه.

● تخريج: أخرجه ابن ماجه في كتاب الاقامة، باب ما يكره في الصلاة، حديث رقم:٩٦٥.

● تخريج: البيهقي في السنن الكبرىٰ، باب كراهية التخصر، حديث رقم: ٣٧٠.

**اللغات:** ﴿يفرقع﴾ د فعلله د باب مضارع صيغه ده: په ګوتو ټکان کول، له ګوتو څخه ټکان ايستل، ﴿يتخصر﴾ د تفعّل د باب مضارع ده: پر تش لاس ايښول، ﴿الخاصرة﴾ تش، بډه، اړخ (د نس له دواړو طرفونو څخه خالي حصه چې تر پښتيو لاندي واقع ده).

**تشريح:** په دې عبارت کي دوې مسئلې بيان سوي دي: (١) اوله مسئله دا ده چي د لمونځ ګزار لپاره د لمانځه په دوران کي په ګوتو ټکان کول مکروه دي، ځکه نبي ﷺ له دې څخه منع کړې ده، په کتاب کي چي د حديث کوم الفاظ ذکر سوي دي، بعينه همدغه الفاظ په ابن ماجه کي د حضرت علي ﷺ په حواله سره هم ذکر سوي دي. (٢) دويمه مسئله دا ده چي د لمونځ ګزار لپاره تخصّر او اختصار هم مکروه دی، ځکه نبي ﷺ له دې څخه منع فرمايلې ده، لکه څرنګه چي مشهورو محدثينو د حضرت ابو هريره ﷺ په حواله سره دا روايت رانقل کړی دی: نهى رسول الله ﷺ أن يصلي الرجل مختصراً، صاحب د هدايې د اختصار تعريف داسي کړی دی: وضع اليد على الخاصرة، يعني پر تشه لاس ايښولو ته تخصّر او اختصار ويل کيږي، او په لمانځه کي داسي کول ممنوع او مکروه دي، او بيا خو لمونځ ګزار ته د لمانځه په حالت کي تر نامه لاندي د لاسونو ايښوولو حکم سوی دی، نو ښکاره ده چي کوم سړی پر تشه لاس اږدي نو هغه به د سنت طريقې پرېښوونکي سي، نو په دې وجه هم په لمانځه کي داسي کول مکروه دي.

همدارنګه په دنيوي محفلو او مجلسو کي هم په ګوتو ټکان کول او پر بډه لاس ايښول مکروه او ناخوښ ګڼل کيږي، نو به د مالکُ الملک او احکم الحاکمين په دربار کي او بيا د عبادت په وخت کي به څرنګه د دې اجازه وي.

## په لمانځه کي شا وخوا، چپه او راسته طرف ته کتل

> وَلَايَلْتَفِتُ او لمونځ ګزاره دي (شا وخوا) نه ګوري لِقَوْلِهِ عَلَيْهِ الصَّلَاةُ وَالسَّلَامُ● ځکه نبي ﷺ فرمايلي دي لَوْعَلِمَ الْمُصَلِّيْ مَنْ يُنَاجِيْ مَا الْتَفَتَ که لمونځ ګزاره په دې پوه سي چي د چا سره مناجات کوي نو التفات به نه وکړي وَلَوْنَظَرَ بِمُؤْخِرِ عَيْنَيْهِ يُمْنَةً وَيُسْرَةً او که لمونځ ګزاره د سترګو تر طرفونو (ښخونو) راسته او چپه طرف ته وګوري مِنْ غَيْرِأَنْ يَلْوِيَ عُنُقَهُ بغير له غاړې پېچلو (او مخ اړولو) څخه لَايُكْرَهُ نو مکروه نه دي لِأَنَّهُ عَلَيْهِ الصَّلَاةُ وَالسَّلَامُ● كَانَ يُلَاحِظُ أَصْحَابَهُ فِيْ صَلَاتِهِ بِمُوْقِ عَيْنَيْهِ ځکه نبي ﷺ به په لمانځه کي خپل اصحابو ته د سترګو تر بغلونو کتل.

**اللغات:** ﴿المؤخر﴾ په ضمه د ميم او په کسره د خاء سره: آخري طرف، بغل، مراخني د سترګو ښخ او آخري طرف دی، ﴿يلوي﴾ د ضرب د باب مضارع ده: اړول، ګرځول، کږول، ﴿عنق﴾ غاړه، ﴿موق﴾ همزه په واؤ سره اړول هم صحيح دي يعني: مُؤق: د سترګو ښخ، د سترګو آخري طرف، ګوشهٔ چشم.

**تشريح:** صورت د مسئلې: دا دی چي لمونځ ګزاره دي د لمانځه په دوران کي شاوخوا، دلته و هلته نه ګوري، ځکه چي دی په لمانځه کي د الله سره مناجات او خبري کوي، او په دې وخت کي داسي کول د توجه د نيستوالي دليل دی، او دا بالکل مناسب نه دي، په خپله نبي ﷺ کريم فرمايي چي که لمونځ ګزار ته دا معلومه سي يعني ده ته د دې خبري احساس وسي چي دی د کوم ذات سره مناجات کوي، نو التفات خو پرېږده، د التفات سوچ به هم نه وکړي، ځکه چي تر څو بنده

● تخريج: أخرجه ابو داؤد في كتاب الصلاة، باب التفات الصلاة، حديث رقم: ٩٠٩ بمعناه.

● تخريج: أخرجه الترمذي في كتاب الجمعة، باب ماذكر في التفات الصلا، حديث: ٥٨٧.

په پوره توجه سره په لمانځه کې مشغوله وي، تر هغه وخته هغه د الله ﷻ د رحمت په سایه کې وي، لیکن څرنګه چې هغه له لمانځه څخه خپله توجه لیرې کړي، نو الهي رحمت هم مخ ګرځني واړوي، له حضرت ابو ذر ؓ څخه روایت دی چې نبي ﷺ وفرمایل: لا یزال الله تعالی مقبلا علی العبد وهو فی صلاته مالم یلتفت، فاذا التفت انصرف عنه. (فتح القدیر)

ولو نظر الخ د دې حاصل دا دی چې که په لمانځه کې التفات کول ډېر ضروري وو او د یو شي په سبب بې له التفاته د لمانځه په خشوع و خضوع او توجه کې خلل راتلی، نو په دې صورت کې د سترګو تر بغلونو کتل جائز دي، خو په دې شرط چې غاړه د قبلې له طرف څخه ونه ګرځیږي، دلیل دا دی چې نبي ﷺ به د سترګو تر بغلونو صحابه وو ؓ ته کتل.

## په لمانځه کې د سپي په ډول کښېنستل

**وَلَا يُقْعِيَ** او لمونځ کونکي دې د سپي په څېر نه کښېني **وَلَا يَفْتَرِشُ ذِرَاعَيْهِ** او نه دې خپلې لیڅې (مټان) غوړوي **لِقَوْلِ أَبِيْ ذَرٍّ رَضِيَ اللهُ عَنْهُ** ځکه ابو ذر ؓ فرمایلي دي **نَهَانِيْ خَلِيْلِيْ عَنْ ثَلَاثٍ: أَنْ أَنْقُرَ نَقْرَ الدِّيْكِ** زما خلیل (ملګري) ﷺ زه له دریو شیانو څخه منع کړی یم: (یو دا) چې د چرګ په ډول منبوکه ووهم **وَأَنْ أُقْعِيَ إِقْعَاءَ الْكَلْبِ** (دویم دا) چې د سپي په ډول کښېنم **وَأَنْ أَفْتَرِشَ اِفْتِرَاشَ الثَّعْلَبِ** (دریم دا) چې د ګیدړ (چغال) په ډول لاسونه وغوړوم **وَالْإِقْعَاءُ: أَنْ يَضَعَ أَلْيَتَيْهِ عَلَى الْأَرْضِ** او اقعاء دا ده چې انسان خپل کوناټي پر ځمکه کښېږدي **وَيَنْصِبَ رُكْبَتَيْهِ نَصْبًا** او خپل دواړه زنګونان ودروي **هُوَ الصَّحِيْحُ** همدا صحیح ده.

**اللغات**: ﴿يُقْعِيْ﴾ د افعال باب دی: د سپي په ډول کښېنستل، ﴿يَفْتَرِشُ﴾ د افتعال باب دی: پر ځمکه غوړول، ﴿أَنْقُرَ﴾ د نصر باب دی: منبوکه وهل، ﴿دِيْك﴾ چرګ، ﴿ثَعْلَب﴾ ګیدړ، چغال، ﴿أَلْيَتَيْن﴾ دواړه کوناټي (همیشه تثنیه استعمالیږي).

**تشریح**: صاحب د قدوري رَحِمَهُ الله فرمایي: چې د سپي په ډول ناسته او د سجدې په حالت کې لاسونه او لیڅې ځمکه غوړول مکروه دي، صاحب د هدایې رَحِمَهُ الله په دلیل کې د حضرت ابو ذر ؓ قول پیش کړی دی، خو د هدا شارحینو رَحِمَهُمُ الله ویلي دي چې امام احمد رَحِمَهُ الله په خپل مسند کې په دې اړه د امام ابو هریره ؓ روایت پیش کړ دی، مطلب دا چې د ابو ذر ؓ قول غریب دی، د حدیث متن دا دی: نهانی رسول الله ﷺ عن ثلاثة عن نقرة کنقرة الدیک واقعاء کاقعاء الکلب والتفات کالتفات الثعلب، (ابو هریره ؓ وفرمایل: چې زه رسول الله ﷺ له دریو خبرو څخه منع یم: یو د چرګ په ډول له منبوکه وهلو څخه (یعني سجده دومره لنډه کول لکه چرګ چې [illegible] کړي)، دویم یې د سپي په شان له ناستې څخه منع کړی یم (یعني په التحیات او د دواړو سجدو په مینځ کې د سپي په ډول کښېنستل)، دریم یې د ګیدړ په ډول له شا وخوا کتلو څخه منع کړی یم). او د ابو ذر په حدیث کې که صاحب د هدایې رَحِمَهُ الله ذکر کړی، دریمه خبره [illegible] افتراش کافتراش الثعلب یعني د ګیدړ په ډول یې (په سجده کې) پر ځمکه له لاسونو غوړولو څخه منع [illegible].

د اقعاء معنی: د اقعاء دوه تفسيره سوي دي: يو د امام طحاوي رَحِمَهُ الله دی، او دويم د امام کرخي رَحِمَهُ الله دی، د امام طحاوي په نيز اقعاء دا ده چې لمونځ کزاره پر کوناټې کښېني او دواړه ورنونه ودروي او دواړه زنګونان د سينې سره جوخت کړي (ومښلوي)، او دواړه لاسونه پر مځکه کېښېږدي، همدا صحيح تفسير دی، صاحب د هدايې هم دغه تفسير اختيار کړی دی، د امام کرخي رَحِمَهُ الله په نيز اقعاء دا ده چې خپلې دواړه پښې ودروي او کوناټې پر پونډو کېښږدي او دواړه زنګونان پر مځکه کېښږدي، لېکن دا تفسير صحيح نه دی.

## په لمانځه کې د سلام جواب ورکول

وَلَا يَرُدُّ السَّلَامَ بِلِسَانِهِ او لمونځ کونکي دې په ژبه د سلام جواب نه ورکوي لِأَنَّهُ كَلَامٌ ځکه چې دا کلام (خبري) دي وَلَا بِيَدِهِ او نه دې په لاس سره (د سلام جواب ورکوي) لِأَنَّهُ سَلَامٌ مَعْنًى ځکه چې دا (هم) معناً سلام دی حَتَّى لَوْ صَافَحَ بِنِيَّةِ التَّسْلِيمِ تر دې که د سلام په نيت سره يې مصافحه وکړه تَفْسُدُ صَلَاتُهُ نو لمونځ يې فاسديږي.

اللغات: ﴿صافح﴾ مصافحه کول، يو بل ته لاس ورکول، روغبړ کول. ﴿تسليم﴾ سلام کول.

تشريح: مسئله: دا ده چې د لمانځه په دوران کې د لمونځ ګزار لپاره په ژبه او لاس سره د سلام جواب ورکول صحيح نه دي، او لمونځ په فاسديږي، په ژبه سره د سلام جواب ورکول ځکه صحيح نه دي، چې سلام کلام (اوخبري) دي، او کلام لمونځ فاسدوي، او په لاس سره جواب ځکه ورکول صحيح نه دي، چې په لاس سره د جواب اشاره کول هم د سلام معنیٰ لري، همدا وجه ده که يو څوک په لمانځه کې د سلام په نيت خپل لاس د يو چا په لاس کې ورکړي، نو د هغه لمونځ فاسديږي، ځکه چې لاس اوږدول او روغبړ کول عمل کثير دی، او عملِ کثير لمونځ فاسدوي، نو ځکه په دې صورت کې لمونځ فاسديږي.

## په لمانځه کې چارزانو کښېنستل او وربښتيان ترل

وَلَا يَتَرَبَّعُ او لمونځ کونکي دې چارزانو نه کښېني إِلَّا مِنْ عُذْرٍ خو دا چې يو څه عذر وي لِأَنَّ فِيهِ تَرْكَ سُنَّةِ الْقُعُودِ ځکه چې په چارزانو ناسته کې د سنت ناستې پرېښوول دي وَلَا يَعْقِصُ شَعْرَهُ او لمونځ کونکي دې د خپلو وربښتيانو عقص هم نه کوي وَهُوَ أَنْ يَجْمَعَ شَعْرَهُ عَلَى هَامَتِهِ او عقص دا دی چې وربښتيان په ترندي باندې راټول کړي وَيَشُدَّهُ بِخَيْطٍ او په تار سره يې وتړي أَوْ بِصَمْغٍ يا يې په کنهورو سره ومښلوي لِيَتَلَبَّدَ چې سره را ټول (يعني سره غونچه سي) فَقَدْ رُوِيَ ځکه روايت سوی دی أَنَّهُ عَلَيْهِ الصَّلَاةُ وَالسَّلَامُ [1] نَهَى أَنْ يُصَلِّيَ الرَّجُلُ وَهُوَ مَعْقُوصٌ چې نبي ﷺ د معقوص کېدلو په حالت کې سړي له لمونځ کولو څخه منع کړې دی.

اللغات: ﴿يتربع﴾ چارزانو کښېنستل. ﴿يعقص﴾ د ضرب د باب مضارع ده: وربښتيان ترل، جمع کول. ﴿هامه﴾ د سر هلوکې، مجازاً تندي او سر ته هم ويل کيږي. ﴿خيط﴾ تار، سپنسی. ﴿يتلبد﴾ د تفعّل د مضارع ده: يو ځای کېدل، جوړه کېدل، غونچه کېدل.

---

[1] تخريج: أخرجه ابن ماجه في كتاب الاقامة، باب كفّ الشعر والثوب في الصلاة، حديث:١١٢٢.

**تشريح:** مسئله: دا ده چي د لمانځه په حالت کي بې له عذره چارزانو کښېنستل مکروه دي، ځکه چي په دا ډول ناستي سره د سنت ناستي پرېښوول راځي، او بعضي حضراتو يې د کراهت علت دا بيان کړی دی چي دا د کبرجنو خلکو ناسته ده، نو د دې علت په وجه داسي ناسته له لمانځه څخه دباندي هم مکروه ده، ليکن شمس الائمه سرخسي رَحِمَهُ الله او نورو دا خبره رد کړي دې، ځکه چي له لمانځه څخه دباندي د نبي ﷺ چارزانو ناسته ثابته ده. (فتح القدير)، همدارنګه به په مسجد نبوي کي د حضرت عمر رضي الله عنه ناسته هم تربعاً(چارزانو) کېدل؛ صحيح خبره دا ده چي د چارزانو ناستي په نسبت پر دواړو زنګونو کښېنستل تواضع ته ډېر نژدې دي، همدا وجه ده چي د لمانځه په حالت کي هم دغه ډول ناسته غوره او اولیٰ ده، خو که يو عذر وي، نو بيا چارزانو ناسته څه پروا نه لري.

ولايعقص الخ فرمايي چي د لمونځ ګزاره لپاره د لمانځه په حالت کي عقص کول، يعني د سر له وېښتيانو څخه چوټي جوړول هم مکروه دي، صاحب د کفايې رَحِمَهُ الله د عقص درې صورتونه ليکلي دي: (۱) د سر له وېښتيانو څخه کوڅۍ (يا چوټي) جوړول لکه څرنګه چي يې ښځي جوړوي (۲) د سر وېښتيان پر تندي (يا د سر پر مينځ) سره جمع کول او په تار باندي تړل(چي غونچه غوندي څني جوړ سي) (۳) د سر وېښتيان پر تندي (يا د سر پر مينځ) سره را ټولول او په کندوړو يا بل سرېښناکه شي سره مښلول.

**دليل:** دابو رافع حديث دی: قال نهى رسول الله ﷺ أن يصلي الرجل و رأسه معقوص.

## په لمانځه کي کالي(جامې) را ټولول او سَدَلْ کول

| |
|---|
| وَلَا يَكُفُّ ثَوْبَهُ او لمونځ ګزاره دي خپل کالي (هم) نه راټولوي لِأَنَّهُ نَوْعُ تَجَبُّرٍ ځکه چي دا هم يو ډول تکبر دی وَلَا يَسْدُلُ ثَوْبَهُ او نه دي خپل کالي را ځوړوي لِأَنَّهُ عَلَيْهِ الصَّلَاةُ وَالسَّلَامُ نَهَى[●] عَنِ السَّدْلِ ځکه نبي ﷺ له کالو ځړولو څخه منع کړې ده وَهُوَ أَنْ يَجْعَلَ ثَوْبَهُ عَلَى رَأْسِهِ وَكَتِفَيْهِ او د کالو راځړول دا دي چي خپل کالي پر سر او اوږو باندي واچوي ثُمَّ يُرْسِلَ أَطْرَافَهُ مِنْ جَوَانِبِهِ بيا پر خپل اړخونو(او اوږو) باندي د کالو طرفونه راوځړوي. |

**اللغات:** ﴿يَكُفُّ﴾ د نصر د باب مضارع ده: را ټولول، را جمع کول، درول، ﴿تَجَبُّر﴾ د تفعّل د باب مصدر دی: تکبر کول، لويي کول، ﴿يَسْدُلُ﴾ د نصر د باب مضارع ده: ځړول، ځوړندول، ﴿كَتِف﴾ اوږه، ﴿يُرْسِلُ﴾ د افعال باب دی: پرېښوول، راځړول، ﴿جَوَانِب﴾ جمع ده، واحد يې جَانِبٌ دی: طرف، بغل.

**تشريح:** د کالو را ټولو معنیٰ دا ده چي د سجدې کولو په وخت کي د شا او د مخ د طرف کالي راپورته کول، لوس حاصل د مسئلې دا سو چي که کالي پر مځکه باندي لوېدله، نو نه دي يې راپورته او نه دي يې راګرځوي، ځکه چي په دې کي يو ډول تکبر دی.

ولايسدل الخ فرمايي چي د لمونځ ګزار لپاره خپل کالي بې ډوله را ځړول هم مکروه دي، ځکه چي دا د متکبرنو طريقه ده، او عجمي باچاهانو به دا د ځان لپاره د فخر او لويي ذريعه ګڼل، او بل دا چي دا طريقه له خشوع و خضوع څخه هم منافي ده، نو ځکه نبي ﷺ له دې څخه منع کړې ده، صاحب د هدايې رَحِمَهُ الله فرمايي چي د کالو د راځړلو صورت دا دی

---

● تخريج: أخرجه ابو داؤد في كتاب الصلاة، باب السدل في الصلاة، حديث:۶۴۳.

چې لمونځ ګزاره خپلي جامې (يا پټو[څادر]) پر سر او اوږو واچوي، او پر دواړو اوږو يا تر دواړو لاسو لاندي يې را يله کړي د دې لپاره چې را وځړېږي، صاحب د کفايې وايي چې د کالو راځړول دا دي چې پټو يا چپنه پر اوږو واچوي، او لستوڼي يې نه واغوندي، بلکي را ځړېدلي يې پرېږدي.

## په لمانځه کي قصداً يا په هېره سره خوراک کول

> وَلَا يَأْكُلُ وَلَا يَشْرَبُ او لمونځ ګزاره دي نه (يو شی) خوري او نه څيښي لِأَنَّهُ لَيْسَ مِنْ أَعْمَالِ الصَّلَاةِ ځکه چې خوراک او څښاک د لمانځه له اعمالو څخه نه دي فَإِنْ أَكَلَ أَوْ شَرِبَ بيا که لمونځ ګزاره خوراک يا څښاک وکړی عَامِدًا أَوْ نَاسِيًا هغه که قصداً وو او که په هېره وو فَسَدَتْ صَلَاتُهُ نو د هغه لمونځ فاسد سو لِأَنَّهُ عَمَلٌ كَثِيرٌ ځکه چې دا عملِ کثير دی وَحَالَةُ الصَّلَاةِ مُذَكِّرَةٌ او د لمانځه حالت ور په يادونکی دی.

**اللغات:** ﴿عامدًا﴾ قصداً، په قصدسره، د قصد له موخي، ﴿ناسيًا﴾ په هېره، په سهوه، ﴿مذكِّرة﴾ د تفعيل د باب واحد مؤنث اسم فاعل دی: ور په يادول، په ياد ور ويستل.

**تشريح: مسئله:** دا ده چي د لمانځه په حالت کي خوراک او څښاک لمونځ فاسدوي، لمونځ که فرض وي، که نفل وي، او خوراک، څښاک قصداً وي، که په سهوه او هېره سره وي، دليل دا دی چي له خوراک او څښاک څخه هر يو عمل کثير دی، او عملِ کثير لمونځ فاسدوي، نو ځکه به په دې دواړو صورتونو کي لمونځ فاسديږي.

وحالة الصلوٰة مذكرة له دې ځايه د يو سوال جواب ورکوي:

**سوال:** دا دی چي څرنګه د روژې په حالت کي په هېره سره خوراک او څښاک معاف دی، همدارنګه د لمانځه په حالت کي هم معاف کېدل پکار دي.

**جواب:** د لمانځه حالت د روژې په ډول نه دی، ځکه چي د لمانځه حالت په ياد ور ويستونکی دی، يعني د بيداری او خبرداری حالت دی، او په لمانځه کي انسان هر وخت بيداره او ويښ وي، د دې په خلاف د روژې حالت هغه په ياد ور ويستونکی نه دی، او په عامه توګه خلک په روژه کي په هېره سره خوراک کوي، نو په دې وجه د روژې په حالت کي هېره او نسيان معاف دی.

## په محراب کي د امام د درېدلو بېلا بېل صورتونه

> وَلَا بَأْسَ بِأَنْ يَكُونَ مَقَامُ الْإِمَامِ فِي الْمَسْجِدِ او څه پروا نه لري چي امام په مسجد کي ولاړ وي وَسُجُودُهُ فِي الطَّاقِ او سجده يې په محراب کي وي وَيُكْرَهُ أَنْ يَقُومَ فِي الطَّاقِ خو مکروه دا دي چي امام په محراب کي ولاړ وي لِأَنَّهُ يُشْبِهُ صَنِيعَ أَهْلِ الْكِتَابِ ځکه چي دا د عيسايانو د عمل سره مشابه دي مِنْ حَيْثُ تَخْصِيصِ الْإِمَامِ بِالْمَكَانِ په دې توګه چي هغوی د امام ځای خاصوي (يعني امام ته يو ځانګړی ځای ورکوي) بِخِلَافِ مَا إِذَا كَانَ سُجُودُهُ فِي الطَّاقِ په خلاف د هغه صورت چي د امام سجده په محراب کي وي وَيُكْرَهُ أَنْ يَكُونَ الْإِمَامُ وَحْدَهُ عَلَى الدُّكَّانِ او مکروه دي چي امام يوازي پر دوکانچه (چوتره) ولاړ وي لِمَا قُلْنَا د هغه دليل په وجه کوم چي موږ بيان کړی وَكَذَا عَلَى الْقَلْبِ فِي ظَاهِرِ الرِّوَايَةِ او همدارنګه د دې برعکس (هم) د ظاهر الرواية مطابق مکروه دي لِأَنَّهُ ازْدِرَاءٌ بِالْإِمَامِ ځکه چي دا د امام سپکاوی دی.

**اللغات**: ﴿طاق﴾ محراب، د غشي په ډول ودانۍ. ﴿صنيع﴾ طرز، عمل، د کار کولو طريقه. ﴿دکان﴾ دوکانچه، لوړ ځای. ﴿ازدراء﴾ د افتعال د باب مصدر دی: بې ادبي کول، ملنډې وهل، سپکاوی، سپک گڼنه.

**تشريح**: صورت د مسئلې: دا دی که امام ولاړ په مسجد کې وي او سجده په محراب کې کوي، نو په دې کې هيڅ حرج نشته. يعني که د امام پښې په مسجد کې وي او سجده يې په محراب کې اداء کيږي، نو په دې سره پر لمانځه هيڅ اغېزه نه پرېوځي، ځکه چې په دې صورت کې د يو چا سره د مشابهت او نورو خطره نشته، د دې په خلاف که د امام پښې هم په محراب کې وي او سجده يې هم په محراب کې وي، نو دا صورت مکروه دی، ځکه چې په دې کې د اهل کتابو (عيسائيانو) سره مشابهت راځي، لکه څرنګه چې د اهل کتابو طريقه دا ده چې هغوی به خپل امام له نورو مقتديانو څخه جلا او ممتاز ګڼي. او امام به يې په محراب کې په داسې اندازسره دروي، چې اتصال او تړاو يې بالکل د نورو سره ختم سي، نو څرنګه چې په محراب کې د دريدلو په صورت کې د دوی سره مشابهت راځي، نو ځکه دا صورت مکروه دی، او زموږ په نېز خو امام هم لمونځ کوونکی دی، او مقتدي هم لمونځ کوونکی دی، او په دواړو کې هيڅ امتياز او فرق نشته.

بخلاف ما إذا كان الخ فرمايي چې که د امام قدم (پښې) په مسجد کې وي او سجده يې په محراب کې وي نو په دې کې هيڅ حرج نشته، ځکه چې په لمانځه کې د پښو اعتبار دی، کله چې پښې په مسجد کې وي نو د مقتديانو سره به د امام ظاهري ربط او تړاو هم باقي پاته وي، او د اهل کتابو سره به مشابهت هم نه راځي، نو ځکه دا صورت مکروه نه دی.

ويكره أن يكون الامام وحده الخ فرمايي که امام پر لوړ ځای ولاړ وي او مقتدی لاندې وي، يا مقتدی پر لوړ ځای وي او امام لاندې وي نو دا دواړه صورتونه مکروه دي، ځکه چې په اول صورت کې د اهل کتابو سره مشابهت دی، هغه ځکه چې کله امام يې لوړ ځای ودرېږي، نو ښکاره ده چې امام به له مقتديانو څخه ممتاز او معتبر ګڼل کيږي، نو ځکه دا صورت خو د اهل کتابو د مشابهت په وجه مکروه دی، او دويم صورت ځکه مکروه دی چې کله مقتدي په لوړ ځای وي او امام لاندې وي، نو مقتدی به ممتاز او معتبر ګڼل کيږي، او امام به لاندې وي، او امتياز او اعتبار د تعظيم سبب دی، نو په دې صورت کې به د مقتدي تعظيم راسي، او د امام تحقير او سپکاوی به وسي، نو ځکه دا صورت هم مکروه دی.

**فايده**: صاحب د کتاب د لوړوالي او ارتفاع هيڅ اندازه بيان کړې نه ده، ليکن صاحب د عنايې رحمه الله په دې اړ کې درې قولونه ذکر کړي دي: (۱) اول د امام طحاوي رحمه الله و طرف ته منسوب دی، هغه دا چې لوړوالی که د يوه سړي د قد (تنې) برابر وي، نو مکروه دی، کنې نه دی (۲) دويم قول دا دی چې که لوړوالی دومره وي چې په هغه سره د امام امتياز او اعتبار راځي، نو مکروه دی (۳) دريم قول دا دی چې که د امام او مقتديانو په مينځ کې د يوه ذراع (شرحي کنز) په اندازه لوړوالی او ارتفاع وي، نو مکروه دی، او همدا دريم قول معتبر دی. (ملتقطه ج۱، ص۲۲۶)

## د سړي د شا (ملا) وطرف ته لمونځ کول

**ولا بأس بأن يصلي إلى ظهر رجل** او د يو داسې سړي د شا وطرف ته په لمونځ کولو کې هيڅ پروا نشته **قاعد يتحدث** چې هغه ناست وي او خبرې کوي **لأن ابن عمر رضي الله عنهما ربما كان يستتر بنافع في بعض أسفاره** ځکه ابن عمر رضي الله عنهما به ډېر کرته خپل په بعضې سفرونو کې له حضرت نافع رحمه الله څخه ستره جوړول (او لمونځ به يې کوی).

* قال الزيلعي رحمه الله: رواه ابن ابي شيبة في مصنفه نصب الراية ج:۲، ص:۹۲.

**اللغات:** ﴿ظَهر﴾ ملا، شا، ﴿يَتَحَدَّثُ﴾ د تفعّل د مضارع صيغه ده: خبري اترې کول، ﴿أَسْفَار﴾ جمع د سَفَر ده: سفر، له يوه ځايه و بل ليرې ځای ته تګ کول.

**تشريح:** مسئله: دا ده که يو سړی نلغت وي خبرې کوي، نو د هغه د ملا و طرف ته لمونځ کول مکروه نه دي، ځکه چي حضرت ابن عمر رَضِيَ اللهُ عَنْهُمَا به د سفر په دورانَ کي له خپل غلام حضرت نافع رحمه الله څخه ستره جوړول او د هغه د ملا و طرف ته به يې لمونځ کوی، نو دا د دې خبرې ښکاره دليل دی چي د نلست سړي د ملا وطرف ته په لمونځ کولو کي هيڅ حرج نسته، صاحب د قلوري رَحِمَهُ الله په ملا (ظهر) ذکر کولو سره له مخ (وجه) څخه احتراز کړی دی، او دا اشاره يې کړې ده چي د بل سړي د مخ وطرف ته لمونځ کول مکروه دي، لکه څرنګه چي روايت دی چي حضرت عمر رضي الله عنه يو سړی وليدی چي د بل سړي د مخ وطرف ته يې لمونځ کوی، نو په دوره يې ووهی، او ورته ويې ويل: تستقبل الصورة في صلاتك، (يعني په خپل لمانځه کي تصوير ته مخامخ کيږې)، او ناست سړي ته يې وويل: أتستقبل المصلي بوجهك، (يعني آيا خپل مخ د لمونځ کونکي و طرف ته کوې)، نو له دې څخه معلومه سوه چي د انسان د مخ و طرف ته لمونځ کول مکروه دي.

## په لمانځه کي مخ ته قرآن مجيد يا توره اېښوول

وَلَا بَأْسَ بِأَنْ يُصَلِّيَ او څه پروا نسته چي يو سړی لمونځ کوي وَبَيْنَ يَدَيْهِ مُصْحَفٌ مُعَلَّقٌ او مخته يې قرآن شريف راځړېږي (يا پروت وي) أَوْ سَيْفٌ مُعَلَّقٌ يا توره راځړېږي لِأَنَّهُمَا لَا يُعْبَدَانِ ځکه چي د قرآن او توري عبادت نه کيږي وَبِاعْتِبَارِهِ تَثْبُتُ الْكَرَاهَةُ او د عبادت په اعتبار سره کراهت ثابتيږي.

**اللغات:** ﴿المُصْحَف﴾ مُجلد کتاب، مجازاً قرآن مجيد، ﴿مُعَلَّق﴾ راځړول سوی، ﴿سَيْف﴾ توره، جمع يې: أَسْيَاف راځي.

**تشريح:** مسئله: دا ده که يو سړي لمونځ کوی او مخته يې قرآن مجيد پروت وو يا راځړېدلی، يا يوه توره پرته وه يا راځړېدله، نو په دې کي هيڅ حرج نسته، د ده لمونځ صحيح دی، ځکه چي نه د قرآن شريف عبادت کيږي، او نه د توري عبادت کيږي، نو د توري په وجه د لمونځ ګزاره خشوع و خضوع نه متأثره کيږي، او هم په دغه وجه کراهت پيدا کيږي، يعني که د دې شيانو عبادت (کافرانو يا مشرکانو) کولای، نو ښکاره ده چي د دې شيانو په ليدلو سره به د لمونځ ګزاره په خيال کي د غيرُ الله خيال راتلای، او د ده پر خشوع و خضوع او توجه به يې منفي اغېزه کولای، خو څرنګه چي د دې شيانو عبادت (هيڅ ځای هم) نه کيږي، نو ځکه به د دوی په مخامخ کېدلو سره د غيرُ الله د عبادت خيال هم نه پيدا کيږي.

## پر داسي فرش لمونځ کول چي عکس (فوټو) پکښې وي

وَلَا بَأْسَ او هيڅ حرج نسته بِأَنْ يُصَلِّيَ عَلَى بِسَاطٍ فِيهِ تَصَاوِيرُ چي لمونځ ګزاره پر داسي فرش (يا کپړه) لمونځ وکړي چي په هغه کي عکسونه (تصويرونه) وي لِأَنَّ فِيهِ اسْتِهَانَةً بِالصُّوَرِ ځکه چي په دې کي د تصويرونو سپکاوی دی وَلَا يَسْجُدُ عَلَى التَّصَاوِيرِ او پر عکسونو به سجده نه کوي لِأَنَّهُ يُشْبِهُ عِبَادَةَ الصُّورَةِ ځکه چي دا د عکس د عبادت سره مشابه دي وَأَطْلَقَ الْكَرَاهَةَ فِي الْأَصْلِ او په مبسوط کي کراهت مطلق ليکل سوی دی لِأَنَّ الْمُصَلَّى مُعَظَّمٌ ځکه چي مسله (ځای نماز) د تعظيم وړ ده.

**اللغات:** ﴿بِسَاط﴾ فرش، مجازاً کپړې او بسترې ته هم ويل کيږي، ﴿اِسْتِهَانَة﴾ د استعمال د باب مصدر دی: سپکاوی، بې عزتي کول، حقير ګڼنه، ﴿المُصَلّٰى﴾ مَسَلَه، مصله، جای نماز، هغه کپړه چې انسان لمونځ پر کوي.

**تشريح:** **مسئله:** دا ده که په يوه بستره يا کوربچه(نالي) کې تصويرونه(عکسونه) وي، هغه که د ذي روحو(ساکښو) وي او که د غير ذي روحو(غير ساکښو) وي، يا په پټو(څادر) يا مسله(جای نماز) يا بل شی کې تصويرونه وي، نو پر هغه درېدل او لمونځ کول مکروه نه دي، ځکه چې پر هغه شي د درېدلو کې د تصويرونو سپکاوی او تذليل کيږي، لېکن پر تصويرونو يې سجده کول مکروه دي، ځکه چې په دې صورت کې د تصوير د عبادت سره مشابهت راځي، چې هغه په هيڅ حال کې هم صحيح نه دی.

دا مسئله خو د جامع صغير ده چې پر تصويرونو درېدل او لمونځ کول صحيح ګرځول سوي دي، او پر هغو سجده کول مکروه ګرځول سوي دي، لېکن په مبسوط کې امام محمد رَحِمَهُ الله پر تصوير والا مسله(جای نماز) باندي مطلقاً لمونځ کول مکروه ګرځولي دي، هغه که پر تصويرو باندي سجده راسي او که را نه سي، او دليل يې دا بيان کړی دی چې مسله د تعظيم او عزت لائق شی دی، او په تصوير والا مسله کې د مسلې سره سره د تصوير تعظيم هم کيږي، او په شريعت کې د تصوير د تعظيم هيڅ اجازه نسته، نو ځکه به پر تصوير داره مسله لمونځ کول مکروه وي.

## که د لمونځ ګزاره چپه يا راسته يا لوړ طرف ته عکس(فوتو) وو نو څه حکم دی؟

وَيُكْرَهُ او مکروه دي أَنْ يَكُونَ فَوْقَ رَأْسِهِ فِي السَّقْفِ چې د لمونځ کونکي پر سر په چت(بام) کې أَوْ بَيْنَ يَدَيْهِ يا د ده مخته أَوْ بِحِذَائِهِ يا د ده پر برابر(يعني راسته او چپه طرف ته) تَصَاوِيرُ أَوْ صُورَةٌ مُعَلَّقَةٌ عکسونه(تصويرونه) وي يا يو راځړول سوی تصوير وي لِحَدِيثِ جِبْرِيلَ عَلَيْهِ السَّلَام• د جبرئيل عليه السلام د حديث په وجه إِنَّا لَا نَدْخُلُ بَيْتًا فِيهِ كَلْبٌ أَوْ صُورَةٌ چې موږ داسي کور ته نه داخليږو چې په هغه کې سپی يا تصوير وي وَلَوْ كَانَتِ الصُّورَةُ صَغِيرَةً بِحَيْثُ لَا تَبْدُو لِلنَّاظِرِ او که تصوير دومره کوچنی وو چې کتونکي ته په نظر نه راتلی لَا يُكْرَهُ نو مکروه نه دي لِأَنَّ الصِّغَارَ جِدًّا لَا تُعْبَدُ ځکه چې د زياتو کوچنيو تصويرونو عبادت نه کيږي.

**اللغات:** ﴿سَقْف﴾ د خوني دننی بام، ﴿حِذَاء﴾ برابر، او د مجاز په توګه د راسته او چپه طرف لپاره هم استعماليږي، ﴿تَبْدُوْ﴾ د نصر باب دی: ښکاره کېدل، څرګندېدل، ﴿صِغَار﴾ جمع ده، واحد يې صَغِيْرٌ دی: کوچنی، ﴿جِدًّا﴾ ډېر، زيات، ښه.

**تشريح:** **صورت د مسئلې:** دا دی که تر لمونځ ګزاره لوړ پر بام(چت) تصوير وي، يا د ده مخته يا د ده پر برابر او بغل کې تصوير وي، نو د ده لمونځ مکروه دی، دليل د حضرت جبرئيل عليه السلام هغه حديث دی چې يوه جمله يې په کتاب کې ذکر سوه، پوره حديث داسي دی: أن جبرئيل عليه السلام استأذن على رسول الله صلى الله عليه وسلم فقال له أدخل. فقال كيف أدخل بيتا عليه ستر فيه تماثيل أو رجال، إما أن تقع رؤسها أو تجعل بساط يوطأ. إنا معاشر الملائكة لا ندخل بيتا فيه كلب أو صورة.(يعني جبرئيل عليه السلام د نبي صلى الله عليه وسلم حجرې ته د ورتللو اجازه وغوښتل، نبي صلى الله عليه وسلم وفرمايل: راسه!، نو حضرت جبرئيل عليه السلام وفرمايل: زه هغه کور ته څرنګه ورتلی سم چې په هغه کې داسي پرده (راځړېږي) چې پر هغې د حيوانانو يا انسانانو

---

• تخريج: أخرجه البخاري في كتاب بدء الخلق، باب قال إذا أحدكم آمين والملائكة في السماء، حديث رقم:٣٢٢٤ - ٣٢٢٥.

تصويرونه وي، يا خو دي له دوی څخه سرونه پرې کړل سي يا دي بستره څني جوړه سي چي تر پښو لاندي سي (نو بيا به زه راسم)، ځکه چي موږ ملائکي يو داسي کور ته نه ورځو چي په هغه کي سپی يا تصوير وي).

له دې حديث او له دې قصې څخه دليل په دې توګه نيول کيږي چي په کوم کور کي ملائکي نه داخليږي، هغه شرّ البيوت يعني بد او شرّ کور دی، او په شرّ البيوت کي لمونځ کول مکروه دي، نو په تصوير داره ځای کي به لمونځ کول هم مکروه وي.

هو! که هغه تصوير دومره کوچنی وي چي کتونکي ته په نظر نه راځي، نو په دې صورت کي که پر بام وي يا پر راسته يا چپه طرف وي، هيڅ فرق پکښي نسته، ځکه په دې مسئله کي د مکروه والي مدار او علت د تصويرونو عبادت دی، او د کوچني تصويرونو عبادت نه کيږي، نو کله چي په کوچني تصويرونو کي د مکروه والي علت يعني عبادت نسته، نو ځکه به د هغو سره لمونځ مکروه نه وي.

## د هغه عکس (فوټو) حکم چي سر څني ليري سوی وي

| وَإِذَا كَانَ التِّمْثَالُ مَقْطُوعَ الرَّأْسِ او که له عکس (تصوير) څخه سر پرېکړل سوی وو أَيْ مَمْحُوَّ الرَّأْسِ يعني سر څني خراب سوی (مسح سوی) وو فَلَيْسَ بِتِمْثَالٍ نو دا عکس نه دی لِأَنَّهُ لَا يُعْبَدُ بِدُونِ الرَّأْسِ ځکه چي بغير له سره د عکس عبادت نه کيږي وَصَارَ كَمَا او دا داسي ده لکه إِذَا صَلَّى إِلَى شَمْعٍ أَوْ سِرَاجٍ يو سړی چي د شمعي يا څراغ و طرف ته لمونځ وکړي عَلَى مَا قَالُوا لکه څرنګه چي فقهاوو رحمهم الله فرمايلي دي. |
|---|

**اللغات**: ﴿تِمْثَال﴾ تصوير، مجسمه، صورت، ﴿مَمْحُوّ﴾ د نصر د باب اسم مفعول دی: خراب سوی، مسح سوی (متاو سوی)، ﴿شَمْع﴾ شمعه، موم بتی، ﴿سِرَاج﴾ څراغ.

**تشريح**: فرمايي که د تصوير سر نه وي يعني سر يې پرېکړل سوی وي يا بالکل خراب سوی او مسح سوی وي نو هغه په حقيقت کي تصوير نه دی، ځکه چي د سر پرېکړل سوي تصوير عبادت نه کيږي، او اوس موږ وويل چي د مکروه والي اصلي علت او بنياد عبادت دی، نو کله چي د مکروه والي علت يعني عبادت نسته، نو بيا دا تصوير پر لمانځه هيڅ اغېزه نه کوي، هغه که مخته وي، که شاته وي، که راسته يا چپه طرف ته وي او که لوړ وي، او څرنګه چي د شمعي يا څراغ په مخامخ ايښولو سره په لمانځه کي هيڅ حرج نسته، همدارنګه په سر پرېکړل سوي تصوير کي هم هيڅ حرج نسته، د زياترو فقهاوو رايه همدغه ده، لېکن بعضو د شمعي او څراغ په مخامخ ايښولو سره لمونځ مکروه ګرځولی دی، لېکن صحيح قول د عدمِ کراهت دی.

## که تصوير پر بالښت يا بستره وو نو څه حکم دی؟

| وَلَوْ كَانَتِ الصُّورَةُ عَلَى وِسَادَةٍ مُلْقَاةٍ او که عکس پر ايښوول سوي بالښت وو أَوْ عَلَى بِسَاطٍ مَفْرُوشٍ يا پر غوړېدلې بستره (او کوربچه) وو لَا يُكْرَهُ نو مکروه نه دي لِأَنَّهَا تُدَاسُ ځکه چي بالښت تر شا لاندي کيږي وَتُوطَأُ او بستره تر پښو لاندي کيږي (يعني پايماله کيږي) بِخِلَافِ مَا إِذَا كَانَتِ الْوِسَادَةُ مَنْصُوبَةً په خلاف د هغه صورت چي بالښت ولاړ وي أَوْ كَانَتْ عَلَى السِّتْرِ يا تصوير پر پرده وي لِأَنَّهُ تَعْظِيمٌ لَهَا ځکه چي دا د تصوير تعظيم دی وَأَشَدُّهَا كَرَاهَةً او له تولو څخه زيات کراهت په هغه صورت کي دي أَنْ تَكُونَ أَمَامَ الْمُصَلِّي چي تصوير د لمونځ ګزاره مخته وي ثُمَّ مِنْ |
|---|

فَوْقَ رَأْسِهِ يا (په هغه صورت کې زيات کراهت دی) چې کله د هغه تر سر لوړ وي ثُمَّ عَلٰى يَمِينِهِ يا (په هغه صورت کې) چې د هغه پر راسته طرف وي ثُمَّ عَلٰى شِمَالِهِ يا (په هغه صورت کې) چې د هغه پر چپه طرف وي ثُمَّ خَلْفَهُ يا (په هغه صورت کې) چې د هغه د شا وطرف ته وي.

**اللغات:** ﴿وِسَادَة﴾ بالښت، ﴿مُلْقَاة﴾ اسم مفعول دی: اچول سوی، ايښوول سوی، ﴿مَفْرُوش﴾ اسم مفعول دی: غوړول سوی، ﴿مَنْصُوبَة﴾ اسم مفعول دی: درول سوی، نصب کړی سوی، ﴿سِتْر﴾ پرده.

**تشريح:** صورت د مسئلې: دا دی که د لمونځ کونکي مخته يو بالښت پروت وي او پر هغه تصويرونه وي يا يو بل تصوير داره بستره يا کوربچه وي نو هلته لمونځ کول مکروه نه دي، ځکه چې د بالښت او بسترې تصويرونه د تکيه وهلو او کښېنستلو په وجه لاندي کيږي، نو ښکاره ده چې په دې صورت کې د تصوير تذليل او سپکاوی کيږي، نه تعظيم، او د دې د تائيد په باره کې يوه قصه هم سته، قصه دا ده چې يو وار حسن بصري رَحِمَهُ الله او عطاء رَحِمَهُ الله يو داسي کور ته ورننوتل چې په هغه کې پر يوه کوربچه تصويرونه وه، نو عطاء رَحِمَهُ الله ولاړ سو، او حسن بصري رَحِمَهُ الله پر کښېنستی، حسن بصري عطاء رَحِمَهُ الله ته وويل: "چې د تصوير تعظيم هغه وخت کيږي چې نه پر کښېنې". هو! که بالښت ولاړ وي يا تصوير پر پرده وي، نو مکروه دي، ځکه چې دا د تصوير تعظيم دی، يعني هيڅ بې عزتي يې نه کيږي.

وأشدها كراهة الخ له دې ځايه دا خبره بيانوي چې د تصوير کراهت برابر نه دی، بلکي د تصوير د مخته او شاته کېدلو په وجه سره د تصوير په مرتبو کي فرق راځي، نو تر ټولو زيات کراهت په هغه تصوير کي بې چې د لمونځ ګزار مخته وي، يا له دې څخه کم کراهت په هغه تصوير کي دی چې د لمونځ ګزاره پر سر وي، يا له دې څخه کم دا دی چې د لمونځ ګزاره راسته طرف ته وي، يا دا چې چپه طرف ته وي، يا دا چې د لمونځ ګزاره شاته وي، بعضې علماء وايي چې که تصوير شاته وي، نو لمونځ مکروه نه دی لېکن صحيح دا ده چې په کوږ کي مطلق تصوير مکروه دی، ځکه چې تصوير د ملائکو د نه راتګ سبب دی، او مخکي دا خبره ذکر سوه چې کوم کور ته ملائکي نه راځي هغه شر البيوت دی، او په هغه کي لمونځ کول مکروه دی.

## په عکس داره کالو کي لمونځ کول

وَلَوْلَبِسَ ثَوْبًا فِيهِ تَصَاوِيرُ او که لمونځ کونکي داسي کالي واغوستل چې په هغه کي تصويرونه وه يُكْرَهُ نو دا مکروه دي لِأَنَّهُ يُشْبِهُ حَامِلَ الصَّنَمِ ځکه چې هغه د بُت د پورته کونکي سره مشابه کيږي وَالصَّلَاةُ جَائِزَةٌ فِي جَمِيعِ ذٰلِكَ او په دې ټوله مکروه صورتونو کي لمونځ جائز دی لِاسْتِجْمَاعِ شَرَائِطِهَا ځکه چې د لمانځه ټوله شرطونه موجود دي وَتُعَادُ عَلٰى وَجْهٍ غَيْرِ مَكْرُوهٍ او په غير مکروه طريقه سره به لمونځ راګرځول کيږي وَهٰذَا الْحُكْمُ فِي كُلِّ صَلَاةٍ أُدِّيَتْ مَعَ الْكَرَاهَةِ او دا حکم په هر هغه لمانځه کي دی چې په کراهت سره اداء سوی وي وَلَا يُكْرَهُ تِمْثَالُ غَيْرِ ذِي الرُّوحِ او د غير ذی روح تصوير مکروه نه دی لِأَنَّهُ لَا يُعْبَدُ ځکه چې د هغه عبادت نه کيږي.

**اللغات:** ﴿صَنَم﴾ بُت، هغه چې عبادت يې کيږي، ﴿اِسْتِجْمَاع﴾ د استعمال د باب مصدر دی: جمع کول او پوره کول.

**تشریح: مسئله:** دا ده چې د انسان لپاره تصویر لرونکې کالي اغوستل مکروه دي. ځکه چې دا انسان د بُت د پورته کونکی سره مشابه کیږي(یعني لکه بت چې پر کالووي)، او په هیڅ ډول هم د بت سره مشابهت صحیح نه دی.

والصلاة الخ صاحب د هدایې رَحِمَهُ الله فرمایي: موږ چې د تصویر د مکروه والي په باره کې څومره صور تونه بیان کړه، په هغو ټولو مکروه صورتونو کي لمونځ جائز دی، ځکه چې په دې صورتونو کي د لمانځه ټوله شرطونه جمع دي، او یو شرط هم ځني وتلی نه دي، خو مکروه دی، نو په دې مکروه صورتونو کې که چا لمونځ کړی وي، نو د احتیاط لپاره دي یې په غیر مکروه طریقه سره راوګرځوي، یعني داسي ځای دي یې را وګرځوي چې د تصویر یا د بل شي د کراهت شبهه نه وي، شیخ قوام الدین کاکي رَحِمَهُ الله فرمایلي دي چې کوم لمونځ د کراهت سره اداء سوی وي، د هغه راګرځول واجب دي، لېکن صحیح خبره دا ده چې کوم لمونځ دکراهت تحریمي سره اداء سوی وي. نو د هغه راګرځول واجب دي، او که د کراهت تنزیهي سره اداء سوی وي نو د هغه راګرځول مستحب دي، ځکه چې مکروه تنزیهي د مستحب په درجه کې وي. (فتح القدير)

## د غیر ذي روحو تصویرونه مکروه نه دي

ولايكره...الخ فرمایي چې د غیر ذي روحو یعني د هغه شیانو تصویرنه مکروه نه دي چې ساه نه لري، لکه درخته، کور او داسي نور، یعني که په کالو کې د درختې یا کور او داسي نور شیانو تصویرونه وي نو په هغه کالو کي لمونځ کول مکروه نه دي، ځکه چې د غیر ذي روح تصویر عبادت نه کیږي، او د کراهت مدار او انحصار پر عبادت دی.

## د لمانځه په دوران کې د مار، لړم او د داسي نورو مضرو شیانو وژل

وَلَا بَأْسَ بِقَتْلِ الْحَيَّةِ وَالْعَقْرَبِ فِي الصَّلَاةِ او د لمانځه په دوران کې د مار او لړم په مړه کولو کې هیڅ حرج نسته لِقَوْلِهِ عَلَيْهِ الصَّلَاةُ وَالسَّلَامُ[1] ځکه نبي ﷺ فرمایلي دي اُقْتُلُوا الْأَسْوَدَيْنِ وَلَوْ كُنْتُمْ فِي الصَّلَاةِ تاسو دوه توران مړه کوئ که څه هم په لمانځه کې یاست (دوه توران یعني مار او لړم) وَلِأَنَّ فِيهِ إِزَالَةُ الشُّغْلِ او په دې وجه (هم) چې په دې کې د زړه د مشغولیت(او توجه) لیري کول دي فَأَشْبَهَ دَرْءَ الْمَارِّ نو دا د (لمونځ ګزار مخته د) تېرېدونکي سړي د منع کولو سره مشابه سو وَيَسْتَوِي جَمِيعُ أَنْوَاعِ الْحَيَّاتِ او په دې حکم کې د مار ټوله قسمونه(ډولونه) برابر دي هُوَ الصَّحِيحُ همدا صحیح ده لِإِطْلَاقِ مَا رَوَيْنَا ځکه زموږ روایت سوی حدیث مطلق دی.

**اللغات:** ﴿حَيَّة﴾مار، ﴿عَقْرَب﴾ لړم. ﴿دَرْء﴾د فتح د باب مصدر دی: لیري کول. منع کول. ﴿مَارّ﴾د نصر د باب اسم فاعل دی: تېرېدونکی.

**تشریح: صورت د مسئلې:** دا دی که یو سړي لمونځ کوی. او ده ته نژدې مار یا لړم راغلی. او دا اندېښنه وه چې ضرر به را ورسوي، نو د لمانځه په دوران کې د هغه په وژلو کې هیڅ پروا نسته. **نقلي دلیل:** د نبي ﷺ دا فرمان دی: اقتلو الأسودين ولو كنتم في الصلوة. په حدیث کې له أسودین څخه مراد مار او لړم دي، نو معنیٰ یې دا سوه: چې مار او لړم مړه کوئ که څه هم تاسو په لمانځه کې یاست؛ او څرنګه چې د نبي ﷺ دا فرمان مطلق دی. نو ځکه دا د مار ټولو قسمونو ته شاملیږي، او

[1] تخريج: أخرجه ابو داؤد في كتاب الصلاة، باب الامر في الصلاة، حديث رقم: ٩٢١.

هر ډول مار په دې حکم کې داخلیږي، هغه که زهرجن وي، که نه وي، همدارنګه دا حکم د وژلو سره تعلق لري، یعني مار دې تر هغه وخته وهل کیږي چې تر څو مړ سي، ځکه چې د قتل معنیٰ د وژلو ده، نو تر څو چې مار مړ سوی نه وي، تر هغه وخته دې وهل کیږي(که څه هم لمونځ ګزاره په لمانځه کې وي). **عقلي دلیل:** دا دی چې لمونځ ګزاره که د لمانځه په حالت کې مار یالړم مړ نه کړي، نو د ده زړه به د لمانځه پر ځای په مار او لړم کې وي، او ټوله توجه به یې د هغه و طرف ته وي، چې داسي نه له دې خوا څخه راسي، داسي نه له دې خوا څخه راسي، او دا ډول به د ده ټوله لمونځ تر مار او لړم قربان سي، نو ځکه شریعت ده ته اختیار ورکړی دی چې مړه یې کړي، چې د زړه حضور او توجه د لمانځه او د الله ﷻ و طرف ته سي، که څه هم دا عملِ کثیر دی، لیکن څرنګه چې د لمانځه مخته تېرېدونکي سړی منع کول روا دي او په هغه کې هم عمل کثیر دی، نو دا د ضرر رسوونکو حیواناتو مسئله هم د هغه سره مشابه ده.

صاحب د هدایې رَحِمَهُ الله په هو الصحیح سره د فقیه ابو جعفر او نورو له هغه قول څخه احتراز کوي چې هغوی وایې د سپین مار د مړه کولو اجازه نسته، او پر دې باندې دلیل د نبي ﷺ دا فرمان وړاندې کوي: إیاکم والحیة البیضاء فإنها من الجن، (یعني سپین مار مه وژنئ، ځکه چې هغه پېری وي)

**جواب:** لیکن زموږ له طرفه د دې قول جواب دا دی چې زموږ بیان سوی حدیث یعني: أقتلوا الأسودین...الخ مطلق دی، او په هغه کې د سپین، تور او بل رنګ هیڅ تفصیل نسته، نو ځکه به د مطلق مار وژلو اجازه وي، هغه که د هر رنګ وي.

**دویم جواب:** صاحب د فتح القدیر رَحِمَهُ الله د امام طحاوي رَحِمَهُ الله په حواله د دې دویم جواب دا ورکړی دی چې د سپینو مارانو تخصیص کول صحیح نه دی، ځکه چې نبي ﷺ له پېریانو څخه دا وعده او ژمنه اخیستې وه چې هغوی به زما د اُمت و مخ ته د سپین مار په شکل کې نه راځي، او نه به د مار په شکل کې د هغوی و کورو ته داخلیږي، نو اوس که یو پېری دا ډول حرکت کوي او د مار په شکل کې راځي، نو هغه به وژل کیږي، ځکه چې هغه د وعدې مخالفت کوي. (فتح القدیر ج:۱، ص:۴۲۱)

## په لمانځه کې په لاس سره آیتونه او تسبیحات شمېرل

وَيُكْرَهُ عَدُّ الْآيِ وَالتَّسْبِيحَاتِ بِالْيَدِ فِي الصَّلَاةِ او په لمانځه کې آیتونه او تسبیحات په لاس سره شمېرل مکروه دي وَكَذٰلِكَ عَدُّ السُّوَرِ همدارنګه د سورتونو شمېرل هم مکروه دي لِأَنَّ ذٰلِكَ لَيْسَ مِنْ أَعْمَالِ الصَّلَاةِ ځکه چې دا د لمانځه له اعمالو څخه نه دي وَعَنْ أَبِي يُوسُفَ وَمُحَمَّدٍ رَحِمَهُمَا اللهُ تَعَالَى أَنَّهُ لَا بَأْسَ بِذٰلِكَ فِي الْفَرَائِضِ وَالنَّوَافِلِ جَمِيعًا او له صاحبینو څخه روایت دی چې په فرائضو او نوافلو کې داسي کول څه خبره نه ده مُرَاعَاةً لِسُنَّةِ الْقِرَاءَةِ د سنت قرائت د خیال ساتلو په وجه وَالْعَمَلِ بِمَا جَاءَتْ بِهِ السُّنَّةُ او د حدیث پر بیان سوي حکم د عمل کولو په وجه قُلْنَا يُمْكِنُهُ أَنْ يَعُدَّ ذٰلِكَ قَبْلَ الشُّرُوعِ موږ وایو چې د لمانځه تر شروع کولو مخکې د دې شیانو شمېرل ممکن دي فَيَسْتَغْنِي عَنِ الْعَدِّ بَعْدَهُ او (په دې توګه به) تر شروع کولو وروسته له شمېرلو څخه استغناء حاصله سي، والله أعلم.

**اللغات:** ﴿عد﴾ د نصر د باب مصدر دی: شمېرل(شمارل). ﴿آی﴾ جمع ده، واحد یې آیة دی: د قرآن آیت.

**تشريح: مسئله**: دا ده چې په لمانځه کې دننه د لاس په ذريعه د تسبيحاتو او آيتونو شمارل مکروه دئ، لمونځ که فرض وي او که نفل، همدارنګه د سورتونو شمارل هم مکروه دي، ځکه چې د آيتونو، تسبيحاتو يا سورتونو شمارل د لمانځه له اعمالو څخه نه دي، همدا ظاهر الرواية دی، د باليد له قيد څخه معلوميږي چې د ګوتو سرونه کښېکاږل، يا په زړه کې شمارل مکروه نه دي.

مصنف رَحِمَهُ الله د في الصلوٰة په ذکر سره و دې طرف ته اشاره کړې ده چې له لمانځه څخه دباندې شمارل مکروه نه دي، لېکن د فخر الاسلام بزدوي رَحِمَهُ الله په نيز له لمانځه څخه دباندې هم د تسبيحاتو شمارل مکروه دي، او فرمايي: وكان السلف يقول نذنب ولا نحصی و نسبح ونحصی، (يعني مخکني بزرګانو به ويل چې موږ خو ګناوې بې شمېره کوو لېکن هغه نه شمارو، خو تسبيحات شمارو)؛ او له صاحبينو څخه په غير ظاهر الرواية کې روايت سوی دی چې تسبيحات، آيتونه او نور په لاس سره شمارل په فرائضو کې هم جائز دي، او په نوافلو کې هم جائز دي، او په دې کې هيڅ کراهت او بدي نسته.

**د صاحبينو ليل**: دليل دا دی چې ډېر کرته انسان ته د آيتونو شمارلو ضرورت پرېوځي، مثلاً هغه غواړي چې په فرض لمونځونو کې پر سنت طريقه قرائت وکړي، يعني څلوېښت يا شپېته آيتونه ووايي لکه څرنګه چې له رسول الله څخه ثابت دي، يا مثلاً په صلاة التسبيح کې چې کوم تسبيحات دي چې د هغه په اړه حديث هم راغلی دی، نو اوس ښکاره ده چې په دې دواړو صورتونو کې بغير له شمارلو څخه هيڅ چاره نسته، نو ځکه به په دې وخت کې شمارل مکروه نه وي.

**د امام ابو حنيفه دليل**: دا دی چې په لمانځه کې د دې شيانو د شمارلو څه ضرورت دی؟ ځکه چې تر لمانځه مخکې هم دا شيان شمارل کېدلای سي، يعني لمونځ ګزاره دې تر لمانځه مخکې دا متعين کړي چې په اول رکعت کې به يې له دې ځای څخه تر دې ځايه پوري وايم، او په دويم رکعت کې به يې له دې ځايه څخه تر دې ځايه پوري وايم، او دا طريقه دې ښه په ذهن کې ونيسي، نو په دې صورت کې به په لمانځه کې د شمارولو ضرورت نه پيښيږي، پاته سوه د صلاة التسبيح مسئله نو په هغه کې د دې ډېر ضرورت نسته چې په لاس سره دې تسبيحات وشمارل سي، بلکې د ګوتو په سرونو دې يې شماري. والله اعلم بالصواب



# فَصْلٌ

**تشريح:** تر دې مخکې صاحب د کتاب رَحِمَهُ الله د لمانځه مکروهات بيان کړل، اوس له دې ځايه هغه مکروهات بيانوي چې هغه له لمانځه څخه خارج وي، يعني چې له لمانځه څخه دباندې مکروه وي.

## په بيت الخلاء (تشي) کې مخ اوشا د قبلې وطرف ته کول

وَيُكْرَهُ اسْتِقْبَالُ الْقِبْلَةِ بِالْفَرْجِ فِي الْخَلَاءِ او په تشي (بيت الخلا) کې په شرمګاه سره د قبلې وطرف ته مخ کول مکروه دي لِأَنَّهُ عَلَيْهِ الصَّلَاةُ وَالسَّلَامُ نَهَى عَنْ ذٰلِكَ ځکه نبي ﷺ له دې څخه منع کړې ده وَالْإِسْتِدْبَارُ يُكْرَهُ فِي رِوَايَةٍ او په يوه روايت کې د قبلې و طرف ته شاه کول هم مکروه دي لِمَا فِيهِ مِنْ تَرْكِ التَّعْظِيمِ ځکه چې په دې کې د تعظيم پرېښوول دي وَلَا يُكْرَهُ فِي رِوَايَةٍ او په بل روايت کې د قبلې و طرف ته شاه کول مکروه نه دي لِأَنَّ الْمُسْتَدْبِرَ ځکه چې د قبلې و طرف ته شا کونکی په داسې حال کې وي فَرْجُهُ غَيْرُ مُوَازٍ لِلْقِبْلَةِ چې د هغه فرج (شرمګاه) پر قبله مخامخ نه وي وَمَا يَنْحَطُّ مِنْهُ يَنْحَطُّ إِلَى الْأَرْضِ او څه چې له شرمګاه څخه را لوېږي هغه پر مځکه لوېږي بِخِلَافِ الْمُسْتَقْبِلِ په خلاف د قبلې و طرف ته د مخ کونکي لِأَنَّ فَرْجَهُ مُوَازٍ لَهَا ځکه چې د هغه شرمګاه پر قبله مخامخ وي وَمَا يَنْحَطُّ مِنْهُ يَنْحَطُّ إِلَيْهَا او کوم څه چې له شرمګاه څخه را لوېږي هغه د قبلې و طرف ته لوېږي.

**اللغات:** ﴿فرج﴾ شرمګاه، شرم ځای، پراخي، خلا، ﴿إستدبار﴾ د استفعال د باب مصدر دی: شا کول، ﴿مُوَازٍ﴾ مُوازي هم راځي، د مفاعلې د باب اسم فاعل دی: مقابل، برابر، مخامخ، متوازي، ﴿ينحط﴾ د انفعال باب دی: لوېدل.

**تشريح: مسئله:** دا ده چې د قضاءِ حاجت يعني د متيازو يا د غټ اودس ماتي په وخت کې خپله شرمګاه (ذکر) د قبلې وطرف ته کول مکروه تحريمي دي، هغه که په خلاص ميدان کې وي او که په ودانۍ کې وي، په مخ کې يو حائل لکه دېوال او داسې بل شي وي، که نه وي، په هرحال کې مکروه دي، دليل يې دا دی چې نبي ﷺ له دې څخه منع کړې ده، د نبي ﷺ ارشاد دی: عن سلمان رضي الله عنه قال قيل له لقد علمكم نبيكم كل شئ حتى الخراءة قال أجل لقد نهانا أن نستقبل بغائط أو بول (ابوداؤد)، (له سلمان فارسي رضي الله عنه څخه يو چا پوښتنه وکړه چې تاسو ته پېغمبر د هر شي تعليم در کړی دی حتی د متيازو او غايطو هم (د سائل ورېنا د تمسخر او ملنډو په توګه وه) نو حضرت سلمان فارسي رضي الله عنه وفرمايل: هو! موږ نبي ﷺ د متيازو او غايطو په حالت کې د قبلې له مخامخ کېدلو څخه منع کړي يو).

او په استدبار قبله يعني د مکې شريفې و طرف ته په شا کولو کې له امام صاحب رَحِمَهُ الله څخه دوه روايتونه دي، د يوه روايت مطابق قبلې ته په شا کولو کې هم د تعظيم پرېښوول دي، او په بل روايت کې دا دي چې قبلې ته شا کول مکروه

---

● تخريج: أخرجه الائمة الستة في كتبهم والبخاري في كتاب الصلاة، باب القبلة اهل مدينة والشام، حديث: ٣٩٤ ومسلم في كتاب الطهارة، حديث رقم: ٥٩.

نه دي، ځکه چې د کوم سړي قبلې ته شاوي، نو د هغه شرمګاه (ذکر) د قبلې وطرف ته نه وي. او څه چې د شرمګاه ځخه راوځي، هغه د مځکې و خوا ته ځي، يعني د متيازو دار (ليکه) بل طرف ته ځي، خو لنډه دا چې مخ دي د قبلې پر طرف نه کوي.

بخلاف المستقبل الخ خو په خلاف د هغه کسانو چې د قبلې و طرف ته يې مخ وي، ځکه چې د هغوی شرمګاه د قبلې و طرف ته برابره وي، او د متيازو ليکه يې د قبلې پر طرف ځي، نو ځکه قبلې ته مخ کول مکروه دي. په دې مسئله کي ډېر تفصيل سته. چې اصل چينه يې د حديثو کتابونه (سُنن) دي. د لوی دورې (دورهٔ حديث) د کال انتظار وکړئ چې پر دې مهمه مسئله به تفصيلي بحث واورئ. انشاء الله.

## د مسجد پر بام وطي، متيازي او غايطه مواد کول

> وَيُكْرَهُ الْمُجَامَعَةُ فَوْقَ الْمَسْجِدِ وَالْبَوْلُ وَالتَّخَلِّيْ او د مسجد پر بام کوروالی. متيازي (بولي) او غايطه مواد (ډکي متيازي) کول مکروه دي لِأَنَّ سَطْحَ الْمَسْجِدِ لَهُ حُكْمُ الْمَسْجِدِ ځکه چې د مسجد بام د مسجد په حکم کي دی حَتّٰى يَصِحَّ الاقْتِدَاءُ مِنْهُ بِمَنْ تَحْتَهُ تر دې چې له بامه څخه د هغه سړي اقتداء صحيح ده چې هغه تر بام لاندې وي وَلَا يَبْطُلُ الاعْتِكَافُ بِالصُّعُوْدِ إِلَيْهِ او (د مسجد) بام ته په ختلو سره اعتکاف نه باطليږي وَلَا يَحِلُّ لِلْجُنُبِ الْوُقُوْفُ عَلَيْهِ او د جنب سړي لپاره د مسجد پر بام باندې دربدل جائز نه دي.

**اللغات**: ﴿المجامعة﴾ جماع. کوروالی. ﴿التخلي﴾ د تفعل د باب مصدر دی: خلوت اختيارول. مجازاً: د غايطو لپاره تلل.

﴿الصعود﴾ د سمع د باب مصدر دی: ختل.

**تشريح**: **مسئله**: دا ده چې د مسجد په هره حصه کي جماع يا غايطه مواد او متيازي کول مکروه دي، هغه که د مسجد کونج وي يا د مسجد چت (بام) او نور وي، ځکه چې د مسجد چت هم د مسجد په حکم دی. همدا وجه ده که يو سړی د مسجد له چت څخه د هغه امام اقتداء وکړي چې هغه تر چت لاندې په مسجد کې وي. نو د دې سړي اقتداء صحيح ده. او که يو معتکف د مسجد چت ته وخيږي، نو د هغه اعتکاف نه باطليږي. د جنب سړي لپاره د مسجد چت ته د تللو اجازه نسته، ځکه چې د مسجد چت لره د مسجد حکم حاصل دی، او په مسجد کي دننه دا ټوله شيان مکروه دي، نو د مسجد پر چت به هم مکروه وي.

**فايده**: په ذکر سوې مسئله کي له مکروه څخه مراد مکروه تحريمي دی. (فتح القدير)

## که مسجد په کور کي وي نو څه حکم دی؟

> وَلَا بَأْسَ بِالْبَوْلِ فَوْقَ بَيْتٍ او د داسې کور پر بام په متيازو کولو کي هيڅ حرج نسته فِيْهِ مَسْجِدٌ چې په هغه کور کي مسجد وي وَالْمُرَادُ مَا أُعِدَّ لِلصَّلَاةِ فِي الْبَيْتِ او دلته له مسجد څخه مراد هغه ځای دی چې په کور کي د لمانځه لپاره تيار کړی سي لِأَنَّهُ لَمْ يَأْخُذْ حُكْمَ الْمَسْجِدِ ځکه چې دغه ځای د مسجد حکم نه دي اخيستی وَإِنْ نُدِبْنَا إِلَيْهِ که څه هم موږ ته په کورنو کي د مسجد جوړولو ترغيب راکول سوی دی.

**اللغات**: ﴿مسجد﴾ دلته له مسجد څخه مراد: د لمانځه لپاره تيار سوی ځای دی. ﴿ندبنا﴾ د مجهول صيغه ده: موږ ته ترغيب راکول سوی دی، موږ هڅول سوي يو.

**تشریح**: **مسئله**: دا ده چي په كورونو كي په عامه توګه په كوم ځای كي لمونځونه كيږي، او كوم ځاي چي د لمانځه لپاره ټاكل كيږي، د هغه پر چت كه متيازي وكړی سي نو هيڅ خبره نه ده، ځكه چي هغه ځای د لمانځه لپاره خو متعين دی، لیکن هغه ته د مسجد حكم حاصل نه دی، همدا وجه ده چي د هغه ځای نزول، خرڅول او د هغه وارث جوړيدل ټوله صحيح دي، صاحب د هدايې رَحِمَهُ الله فرمايي چي د شريعت له طرفه موږ ته له كورنو څخه د مسجد جوړولو حكم سوی دی، لكه څرنګه چي حديث دی: لا تتخذوا بيتوكم قبوراً، (يعني له خپلو كورنو څخه هديره مه جوړوئ!)، په دې حديث كي دا اشاره سوې ده چي په كورو كي د سنتو او نفلو پابندي كول پكار دي، لیکن فرض په مسجد كي كول پكار دي.

## د مسجد دروازه بندول

| وَيُكْرَهُ أَنْ يُغْلَقَ بَابُ الْمَسْجِدِ او د مسجد دروازه بندول مكروه دي لِأَنَّهُ يُشْبِهُ الْمَنْعَ مِنَ الصَّلَاةِ ځكه چي دا له لمانځه څخه د منع كولو سره مشابه دي وَقِيلَ لَا بَأْسَ بِهِ او ويل سوي دي چي حرج پكښي نسته إِذَا خِيفَ عَلَى مَتَاعِ الْمَسْجِدِ چي كله د مسجد پر سامان باندي (د غلا كېدلو) بيره وي فِي غَيْرِ أَوَانِ الصَّلَاةِ د لمانځه له وختونو څخه ماسوا. |
|---|

**اللغات**: ﴿يُغْلَقُ﴾ د انفعال د باب مضارع مجهوله ده: بندول، ﴿خِيفَ﴾ د فتح د باب ماضي مجهوله ده: بيرول، ﴿أَوَان﴾ جمع د آن ده: يوه ثانيه، له جمعي څخه يې مراد وخت دی.

**تشریح**: **مسئله**: دا ده چي د مسجد دروازه بنده ساتل مكروه دي، ځكه دا داسي ده لكه يو څوک له لمانځه څخه بندول، او له لمانځه څخه بندول حرام دي، د الله ﷻ فرمان دی: ومن أظلم ممن منع مساجد الله أن يذكر فيها اسمه. ځينو حضراتو ويلي دي چي كه د مسجد د سامان د ضايع كېدلو يا غلا كېدلو بيره وه، نو بيا په دروازه بندولو كي هيڅ بدي نسته، ځكه چي د زمانې په اختلاف سره د خلكو حالتونه هم بدليږي، تاسو غور وكړئ چي په يوه زمانه كي د ښځو لپاره مسجد ته تلل جائز وو، لیکن د فتنې د بيري هغوی بندي سوې، همدارنګه كه په اوسني وخت كي كوم چي د فتنو او فساد وخت دی، دروازې بندي سي نو په دې كي به هيڅ بدي نه وي، بلكي صحيح به وي.

## په مسجد كي نقش و نګار (ګلكاري) كول

| وَلَا بَأْسَ او څه حرج نسته بِأَنْ يُنْقَشَ الْمَسْجِدُ چي نقش كړی سي مسجد بِالْجِصِّ په ګچ سره وَالسَّاجِ او د ساج په لرګي سره وَمَاءِ الذَّهَبِ او د سرو زرو په اوبو سره وَقَوْلُهُ لَا بَأْسَ يُشِيرُ إِلَى او د امام قدوري رَحِمَهُ الله د لابأس ويل و دې ته اشاره كوي أَنَّهُ لَا يُؤْجَرُ عَلَيْهِ چي په داسي كولو سره ثواب نه وركول كيږي لَكِنَّهُ لَا يَأْثَمُ بِهِ لیکن داسي كونكی ګنهكاره كيږي هم نه وَقِيلَ هُوَ قُرْبَةٌ او يو قول دا دی چي دا (هم) يو ډول عبادت دی وَهَذَا إِذَا فَعَلَ مِنْ مَالِ نَفْسِهِ او دا (د لابأس) حكم په هغه صورت كي دی چي دا (نقش و نګار) خپل له ذاتي مال څخه وكړي أَمَّا الْمُتَوَلِّي فَيَفْعَلُ مِنْ مَالِ الْوَقْفِ هر چي متولي دی نو هغه به د وقف له مال څخه هغه كار كوي مَا يَرْجِعُ إِلَى إِحْكَامِ الْبِنَاءِ چي په هغه سر (د مسجد) عمارت (ودانی) مضبوطه سي دُونَ مَا يَرْجِعُ إِلَى النَّقْشِ داسي كار به نه كوي چي د مسجد د نقش و نګار سره تعلق لري حَتَّى لَوْ فَعَلَ يَضْمَنُ نو كه متولي داسي وكړه نو ضامن به وي وَاللهُ أَعْلَمُ بِالصَّوَابِ او الله په حقيقي حال زيات خبر دی. |
|---|

**اللغات:** ﴿جص﴾ ګچ، ﴿ساج﴾ یو ډول قیمتي لرګی دی، ﴿یؤجر﴾ افعال د باب مجهوله صیغه ده: اجر ورکول، ثواب ورکول، مزدوري ورکول.

**تشریح: صورت د مسئلې:** دا دی چې په چونه، ګچ او د سرو زرو په اوبو او داسې نور سره د مسجدونو ښائسته کول او نقش ونګار کول هیڅ پروا نه لري، لېکن بعضي علماؤ د مسجدونو ښایسته کول او نقش و نګار پکښې کول مکروه ګرځولي دي، او دلیل یې د حضرت علي ﷺ دا قول ذکر کړی دي: "چې کله حضرت علي یو منقش او ډېر ښایسته مسجد ولیدی، نو ویې فرمایل: لمن هذه البیعة دا کلیسا د چا ده"، نو ښکاره د چې د حضرت علي رَحِمَهُ الله دا فرمان په مسجدونو کې د دې مکروه عمل په وجه وو، همدارنګه نبي ﷺ د قیامت له نښو څخه یوه نښه د مسجدونو ښایسته کېدل هم شمارلي دي، لېکن صحیح دا ده چې که یو سړی په خپل شخصي مال سره په مسجد کې نقش و نګار کول او مسجد ښایسته کول غواړي، نو په دې کې هیڅ حرج نسته، لکه څرنګه چې امام قدوري رَحِمَهُ الله دا مسئله په لا بأس سره بیان کړې ده، چې له دې څخه دا اشاره تر لاسه کیږي چې که څه هم پر دې کار ثواب نه ورکول کیږي، لېکن دا سړی ګنهګاره کیږي هم نه، ځکه چې حضرت عمر ﷺ د خپل خلافت په دور کې د مسجد نبوي تعمیر وکړی، او نور یې ښائسته کړی، او بیا قرآن کریم هم د إنما یعمر مساجد الله ...الخ په فرمان سره د مسجدونو د جوړولو او پخولو حکم کړی دی، او دا خبره هم پر خپل ځای تسلیم شوې ده چې مسجدونه څومره ښایسته، ښکلي او په زړه پوري وي، هغومره به د خلګو د توجهاتو او پاملرنو مرکز وي، او په زیات شمېر خلک به د مسجدونو و طرف ته مخ کوي، نو په دې حواله سره هم د مسجد نقش و نګار او ښکلي کول مستحسن او غوره دي.

نو ځکه بعضي خلګو تر دې پوري ویلي دي چې د مسجدونو ښایسته کول هم یو ډول عبادت دی، لېکن دا حکم په هغه صورت کې دی چې کله یو سړی په خپل شخصي او ذاتي مال سره د ښایست او نقش ونګار کار تر سره کوي، هم په دې وجه متولي سړي ته د وقف او چندې په مال سره د هغه کار کولو اجازه خو سته چې په هغه سره د مسجد عمارت او ودانی مضبوطه سي، او نور ټینګوالی او استحکام پکښې راسي، لېکن د هغه لپاره د وقف په پیسو سره د مسجد د نقش ونګار کولو او د مسجد ښایسته کولو حق نسته، او که داسې کوي، نو د دې حساب او تاوان به ورکوي.



# بَابُ صَلَاةِ الْوِتْرِ

## (دا) باب د وترو د لمانځه (په بيان کي) دی

**تشريح:** کله چي مصنف رَحِمَهُ الله له فرائضو او د هغوله متعلقاتو يعني وختونو، کيفيت، اداء کامل او قاصر څخه فارغ سو، نو اوس په دې باب کي د هغه لمانځه بيان کوي. کوم چي تر فرضو کم او تر نفلو زيات دی، يعني صلاةِ وتر، او د دوی په مينځ کي د مناسبت وجه دا ده چي وروسته نوافل بيانيږي. نو واجب يعني وترې د فرضو او نفلو په مينځ کي بيان کړه. لکه څرنګه چي د واجبو حق همدارنګه دی.

### د وترو د لمانځه شرعي حيثيت

الْوِتْرُ وَاجِبٌ عِنْدَ أَبِي حَنِيفَةَ رَحِمَهُ اللهُ● وتر د امام ابو حنيفه رَحِمَهُ الله په نيز واجب دي وَقَالَا سُنَّةٌ لِظُهُورِ آثَارِ السُّنَنِ فِيهِ او صاحبين رَحِمَهُمَا الله فرمايي چي وتر سنت دي ځکه په وترو کي د سنتونو آثاره ښکاره دي حَيْثُ لَا يُكَفَّرُ جَاحِدُهُ په دې توګه چي د وترو منکر نه کافر کيږي وَلَا يُؤَذَّنُ لَه او د وترو لپاره به اذان نه کيږي وَلِأَبِي حَنِيفَةَ رَحِمَهُ الله قَوْلُه عَلَيْهِ الصَّلَاةُ وَالسَّلَامُ○ او د امام ابو حنيفه رَحِمَهُ الله دليل د نبي ﷺ دا فرمان دی إِنَّ اللهَ تَعَالَى زَادَكُمْ صَلَاةً أَلَا وَهِيَ الْوِتْرُ بېشکه الله ستاسو لپاره يو لمونځ زيات کړی خبردار! چي هغه وتر دي فَصَلُّوهَا مَا بَيْنَ الْعِشَاءِ إِلَى طُلُوعِ الْفَجْرِ نو دا د ماخوستن او د سهار راختلو (طلوعِ فجر) په مينځ کي کوئ أَمَرٌ دا امر دی وَهُوَ لِلْوُجُوبِ او امر د وجوب لپاره وي وَلِهَذَا وَجَبَ الْقَضَاءُ بِالْإِجْمَاعِ نو هم په دې وجه د وترو قضاء راوړل په اجماع سره واجب دي وَإِنَّمَا لَمْ يُكَفَّرْ جَاحِدُهُ او د وترو منکر ځکه نه کافر کيږي لِأَنَّ وُجُوبَهُ ثَبَتَ بِالسُّنَّةِ چي د وترو وجوب په حديثو سره ثابت دی وَهُوَ الْمَعْنَى بِمَا رُوِيَ عَنْهُ أَنَّهُ سُنَّةٌ او همدغه مطلب د هغه روايت دی چي هغه له امام صاحب رَحِمَهُ الله څخه را نقل سوی دی چي وتر سنت دي وَهُوَ يُؤَدَّى فِي وَقْتِ الْعِشَاءِ او وتر د ماخوستن په وخت کي اداء کيږي فَاكْتُفِيَ بِأَذَانِهِ وَإِقَامَتِهِ نو ځکه (په وترو) کي د ماخوستن پر اذان او اقامت اکتفاء وسوه.

**اللغات:** ﴿جاحد﴾ د فتح د باب اسم فاعل دی: انکار کول. نه منل، ﴿فاکتُفِيَ﴾ د افتعال د باب مجهوله صيغه ده: اکتفاء کول کول، کافي کېدل.

**تشريح:** د وترو په باره کي له امام ابو حنيفه رَحِمَهُ الله څخه درې روايتونه دي: (۱) اول دا چي وتر واجب دي، (۲) دويم دا چي وتر سنت مؤکده دی، همدا مسلک د صاحبينو رَحِمَهُمَا الله او د امام شافعي رَحِمَهُ الله دی، (۳) دريم دا چي وتر فرض دي، او دا قول امام زفر او مالکيانو اختيار کړی دی.

---

● القول الراجح: قول ابي حنيفة رَحِمَهُ الله كذا في رد المحتار ج:۱، ص:۴۹۱.

○ تخريج: أخرجه ابو داؤد فى كتاب الوضوء، باب استحباب الوتر، حديث رقم:۱۴۱۸. [القول الراجح، ج:۱، ص:۱۰۵]

**د صاحبينو دليل:** دا دی چي په وترو کي د سنتو آثار ښکاره دي، مثلاً د سنتو په ډول د وترومنکر هم کافر نه دی. او نه د وترو لپاره اذان سته، لکه څرنګه چي د سنتو لپاره اذان نسته، نو معلومه سوه چي وتر سنت دي، او صاحب د شرح نقايې رَحِمَهُ الله د صاحبينو له طرفه نقلي دليل دا بيان کړی دی چي نبي ﷺ يو صحرايي ته وفرمايل: خمس صلاة كتبهن الله عليك قال هل علي غيرها قال إلا أن تطوع. (الله تعالیٰ پر تا باندي پنځه لمونځونه فرض کړي دي، صحرايي ووېل: آيا له دې څخه ماسوا نور فرض هم پر ما سته. نبي ﷺ وفرمايل: نه! خو دا چي ته نفل وکړې)؛ له دې حديث څخه معلومه سوه چي د پنځه وختونو له لمونځونو څخه ماسوا نور ټوله نفل دي، نو ځکه د وترو واجب کېدل نه ثابتيږي، ځکه چي وتر له پنځو لمونځونو څخه ماسوا دي، بل دا چي په صحيحينو کي له ابن عمر رَضِيَ اللهُ عَنهُمَا څخه را نقل سوي دي: أن النبي ﷺ أوتر على البعير. (چي نبي کريم ﷺ وتر پر اوښ وکړه)، او دا خبره ښکاره ده چي پر سپرلي نفلي لمونځ اداء کيږي. فرض او واجب نه اداء کيږي، نو که واجب وای، نو نبي ﷺ به د سپرتيا په حالت کي نه کولای.

**د امام صاحب دليل:** د نبي ﷺ دا فرمان دی: إن الله زادكم صلاة ألا وهي الوتر فصلوها ما بين العشاء إلى طلوع الفجر. صاحب د عنايې رَحِمَهُ الله ليکلي دي چي په دې حديث سره په څو طريقو استدلال سوی دی: اول دا چي د زياتوب نسبت الله تعالیٰ ته سوی دی، او د سنتو نسبت رسول الله ﷺ ته کيږي، نو که وتر سنت وای، نو په حديث کي به الله تعالیٰ ته د نسبت پر ځای رسول ته نسبت سوی وای؛ خو څرنګه چي نبي ﷺ ته نسبت نه دي سوی، نوځکه به د وترو لمونځ سنت نه وي، بلکي واجب به وي، دويم دا چي پر يو شي زياتوب هغه وخت کيږي، چي مزيد عليه شي يعني هغه چي پر هغه زياتوب سوی وي، محدود العدد وي، او دا خبره منل سوې ده چي نوافل غير محدود دي. د دې څه انتهاء نسته. نو زياتوب په فرائضو کي کيږي، ځکه چي فرائض محدود العدد دي، او څرنګه چي مزيد (د کوم چي زياتوب سوی وي) د مزيد عليه له جنس څخه کېدل ضروري دي، نو د دې مقتضا دا ده، چي پر فرائضو د کوم شي زياتوب سوی وي. هغه دي هم يعني وتر دي هم فرض وي، خو څرنګه چي حديث خبر واحد دی، او خبر واحد غير قطعي دليل دی. او په غير قطعي دليل سره فرض نه ثابتيږي، نو ځکه به وتر له فرضو څخه د کمي درجې وي، چي هغه واجب دي، دريم دا چي په ذکر سوي حديث کي فصلوها د امر صيغه ده، او امر د وجوب لپاره وي، نو له دې څخه هم د وترو وجوب ثابتيږي. صاحب د هدايې رَحِمَهُ الله فرمايي چي د وترو قضاء هم په دغه وجه واجب ده چي دوی واجب دي.

د امام صاحب رَحِمَهُ الله تائيد په دې حديث سره هم کيږي، چي نبي ﷺ فرمايلي دي: الوتر حق واجب فمن لم يوتر فليس منا، (يعني وتر حق واجب دي، چا چي وتر نه وکړل، نو هغه زمونږ څخه نه دی). په مسلم کي د ابو سعيد خدري رضي الله عنه حديث دی: أن النبي ﷺ قال أوتروا قبل أن تصبحوا، (يعني نبي ﷺ فرمايلي دي چي له سهار راختلو څخه مخکي وتر کوئ)، په دې حديث کي: اوتروا، د امر صيغه ده، او امر پر وجوب دلالت کوي.

**جواب:** د صاحبينو د عقلي دليل جواب دا دی چي د وترو منکر ځکه کافر نه دی چي د وترو ثبوت په سنت غير متواتره سره دی، او کوم چي له امام ابو حنيفه رَحِمَهُ الله څخه روايت سوي دی، چي وتر سنت دی، د هغه معنیٰ هم دا ده چي د وترو ثبوت په سنت سره سوی دی. څرنګه چي د وترو لمونځ د ماخوستن په وخت کي اداء کيږي، نو ځکه به د ماخوستن پر اذان او اقامت اکتفاء کيږي، د وترو لپاره به د جلا اذان او اقامت ضرورت نه وي.

**راجح قول:** په پورتنۍ مسئله کې راجح قول د امام صاحب دی، یعني وتر واجب دي، وقال فی الهندیة عن ابي حنیفة رَحِمَهُ الله عنه فی الوتر ثلاث روایات فی روایة فریضة وفی روایة سنة مؤکدة وفی روایة واجب وهی آخر اقواله، وهو الصحیح. (الهندیة ج:۱، ص:۱۱۰). [القول الراجح ج:۱، ص:۱۰۵]

## د وترو درې رکعتونه به په یوه سلام سره کیږي

قَالَ: الْوِتْرُثَلَاثُ رَكَعَاتٍ فرمایي: چې وتر درې رکعته دي لَا يُفْصَلُ بَيْنَهُنَّ بِسَلَامٍ د هغو په مینځ کې به د سلام په ذریعه سره فصل نه کیږي لِمَا رَوَتْ عَائِشَةُ رَضِيَ اللهُ عَنْهَا ځکه چې حضرت عائشې رضی الله عنها روایت کړی دی أَنَّهُ عَلَيْهِ الصَّلَاةُ وَالسَّلَامُ ● كَانَ يُوتِرُ بِثَلَاثٍ چې نبي ﷺ به درې رکعته وتر کول وَحَكَى الْحَسَنُ رَحِمَهُ اللهُ إِجْمَاعَ الْمُسْلِمِينَ عَلَى الثَّلَاثِ او حضرت حسن بصري رَحِمَهُ الله پر درېو رکعتونو د مسلمانانو اجماع را نقل کړې ده وَهَذَا أَحَدُ أَقْوَالِ الشَّافِعِيِّ رَحِمَهُ اللهُ او همدا د امام شافعي رَحِمَهُ الله له اقوالو څخه یو قول دی وَفِي قَوْلٍ او د امام شافعي رَحِمَهُ الله په بل قول کې راغلي دي يُوتِرُ بِتَسْلِيمَتَيْنِ چې په دوو سلامونو سره به وتر کوي وَهُوَ قَوْلُ مَالِكٍ رَحِمَهُ اللهُ او همدغه د امام مالک رَحِمَهُ الله قول دی وَالْحُجَّةُ عَلَيْهِمَا مَا رَوَيْنَاهُ او د دوی په خلاف هغه روایت حجت دی چې موږ بیان کړی.

**اللغات:** ﴿يُفْصَلُ﴾ د ضراب مضارع ده: جلا کول، فاصله ورکول، ﴿تَسْلِيمَة﴾ په یوه وار سلام ویلو سره دواړه طرفونو ته مخ ګرځول.

**تشریح:** د عبارت حاصل دا دی چې زموږ په نېز وتر درې رکعته دي په یوه سلام سره، د دې په خلاف د امام شافعي رَحِمَهُ الله او امام ململک رَحِمَهُ الله مسلک دا دی چې د وترو درې رکعته دي په دوو سلامو سره، له دې څخه علاوه د دې حضراتو په نېز له یوه رکعت څخه واخله تر نهو رکعتو پورې اقوال سته، لېکن معتبر قول یې هغه دی کوم چې موږ بیان کړی یعني د وترو درې رکعته دي په دوو سلامو سره، دې حضراتو د خپل دریځ لپاره په څو طریقو سره استدلال کړی دی، اول استدلال یې دا دی چې په مشکوة شریف کې د صحیحینو په حواله سره د حضرت عائشې رَضِيَ اللهُ عَنْهَا حدیث دی چې په هغه کې دا مضمون وارد سوی دی: ويوتر بواحدة، (یعني نبي ﷺ به یو رکعت وتر کوی)، په دې حدیث سره دلیل په دې توګه نیسي چې نبي ﷺ به پر اولو دوو رکعتو سلام ګرځوی، وروسته به یې د هغو سره یو رکعت یو ځای کوي، او هغه رکعت چې به یې پوره کړی بیا به یې سلام ګرځوی. د دې خضراتو دویم دلیل دا حدیث دی: صلاة اللیل مثنی مثنی (یعني د شپې لمونځونه دوه دوه رکعته دي)، او څرنګه چې وتر هم د شپې کیږي، نو ځکه به په وترو کې هم پر دویم رکعت سلام ګرځول کیږي او وروسته به دریم رکعت ور سره یو ځای کیږي. دریم دلیل یې دا دی چې په بخاري شریف کې د ابن عمر رَضِيَ اللهُ عَنْهُمَا په باره کې روایت سوی دی: کان یسلم بین الرکعة والرکعتین فی الوتر...الخ (یعني حضرت ابن عمر رَضِيَ اللهُ عَنْهُمَا به د وترو د یوه او دوو رکعتونو په مینځ کې سلام ګرځوی)، نو له دې څخه هم معلومه سوه چې د وترو په دریو رکعتونو کې به دوه واره سلام ګرځول کیږي.

---

● تخریج: أخرجه النسائي فی کتاب الصلاة، باب کیف الوتر بثلاث، حدیث رقم:۱۱۶۹۸ والطحاوی فی شرح معانی الآثار، باب الوتر، حدیث:۱۶۵۴.

**زموږ اول دليل:** د حضرت عائشې رَضِيَ اللهُ عَنْهَا دا حديث دی: كان رسول الله يوتر بثلاث لا يسلم الا في آخرهن (يعني نبي ﷺ به وتر په دريو ركعتو سره كوله، او صرف په آخري ركعت كې به يې سلام ګرځوی). **دويم دليل:** د ابن عباس رَضِيَ اللهُ عَنْهُمَا دا حديث دی: ثم أوتر بثلاث...الخ. **دريم دليل:** په نسائي شريف كې د حضرت عائشې رَضِيَ اللهُ عَنْهَا دا حديث دی: كان النبي ﷺ لا يسلم في ركعتي الوتر (يعني نبي ﷺ به د وترو په دوو ركعتو كې سلام نه ګرځوی). **څلورم دليل:** د حضرت ابي بن كعب رضي الله عنه هغه حديث دی كوم چې په ترمذي او نورو كې ذكر سوی دی، چې په آخر كې يې دا جمله راغلې ده: لايسلم الا في اخرهن. **پنځم دليل:** په مصنف بن ابي شيبه كې د حضرت حسن بصري رَحِمَهُ الله دا قول دی: أجمع المسلمون على أن الوتر ثلاثة لا يسلم الا في آخرهين...الخ. له دې ټولو رواياتو څخه دا خبره ښكاره كيږي چې وتر درې ركعته دي، او درې سره په يوه سلام دي.

**جواب:** امام شافعي رَحِمَهُ الله او نورو چې كوم حديثونه ذكر كړي دي، د هغو اول حديث جواب دا دی چې د يوتر بواحدة هغه مطلب صحيح نه دی كوم چې يې دوی څني اخلي چې په وترو كې دوه سلامه ثابتوي، بلكې صحيح مطلب يې دا دی چې نبي ﷺ به په وترو كې د دوو ركعتو سره دريم ركعت هم يو ځای كوی، او د دې دريم په ذريعه سره به يې جفت طاق جوړول، او پر دې مطلب قرينه دا ده چې نبي ﷺ له صلاة بتيراء يعني صرف له يوه ركعت والا لمانځه څخه منع فرمايلې ده، د دويم حديث صلاة الليل مثنى... الخ جواب يې دا دی چې د وترو سره د دې هيڅ تعلق نسته، دا د نفلو سره تعلق لري، او موږ هم د شپې نفلونه دوه دوه ركعته افضله او غوره ګڼو، د دريم دليل يعني د حضرت ابن عمر رَضِيَ اللهُ عَنْهُمَا د معمول جواب يې دا دی چې د عمر رَضِيَ اللهُ عَنْهُمَا دا عمل د ده د نورو اعمالو سره معارض دی ځكه چې له ده څخه وتر په يوه سلام هم ثابت دي، نو څرنګه چې د ده د نورو اعمالو او د دې عمل تر مينځ تعارض دی، نو د إذا تعارضا تساقطا په وجه به په دې سره دليل نيول صحيح نه وي.

## دعائې قنوت به كله ويل كيږي؟ تر ركوع مخكې كه وروسته (د فقهاؤ قولونه)

> وَيَقْنُتُ فِي الثَّالِثَةِ قَبْلَ الرُّكُوعِ او د دريم ركعت تر ركوع مخكې به قنوت وايي وَقَالَ الشَّافِعِيُّ رَحِمَهُ اللهُ بَعْدَهُ او امام شافعي رَحِمَهُ الله فرمايي: چې تر ركوع وروسته به يې وايي لِمَا رُوِيَ أَنَّهُ عَلَيْهِ الصَّلَاةُ وَالسَّلَامُ قَنَتَ فِي آخِرِ الْوِتْرِ ځكه روايت دی چې نبي ﷺ د وترو په آخر كې قنوت ووايی وَهُوَ بَعْدَ الرُّكُوعِ او د وترو آخر تر ركوع وروسته دی وَلَنَا مَا رُوِيَ أَنَّهُ عَلَيْهِ الصَّلَاةُ وَالسَّلَامُ قَنَتَ قَبْلَ الرُّكُوعِ او زموږ دليل دا روايت دی چې نبي ﷺ تر ركوع مخكې قنوت ووايی وَمَا زَادَ عَلَى نِصْفِ الشَّيْءِ آخِرُهُ او كومه حصه چې د يوه شي تر نيمايي زياته سي هغه ته د شي آخر ويل كيږي.

**اللغات:** ﴿يَقْنُتُ﴾ د نصر د باب مضارع ده: دعائې قنوت ويل.

**تشريح:** **صورت د مسئلې:** دا دی چې زموږ په نيز به وتر كونكی تر ركوع مخكې دعائې قنوت وايي، لېكن د شوافعو په نيز به تر ركوع وروسته دعائې قنوت وايي.

**د شوافعو دليل:** د حضرت ابو هريره رضي الله عنه دا حديث دی: أنه ﷺ قنت بعد الركوع. (يعني نبي ﷺ تر ركوع وروسته دعائې قنوت ووېله)، په بل روايت كې راغلي دي: قنت في آخر الوتر. (يعني نبي ﷺ د وترو په آخر كې دعائې قنوت

وربله)، او د وترو آخر په دریم رکعت کې تر رکوع وروسته کېدای سي، نو ځکه به د دعائي قنوت محل تر رکوع وروسته وي، نه مخکې.

**زموږ دليل:** د حضرت ابی بن کعب رضی الله عنه دا حديث دی: أن رسول الله صلى الله عليه وسلم كان يوتر فيقنت قبل الركوع. (يعني نبي ﷺ چي به کله وتر کوله نو تر رکوع مخکې به يې دعائي قنوت ويله). **دويم دليل:** د حضرت ابن عمر رَضِيَ اللهُ عَنْهُمَا دا حديث دی: أن النبي صلى الله عليه وسلم كان يوتر بثلاث ويجعل القنوت قبل الركوع. (يعني نبي ﷺ به وتر په دري رکعتو سره کوله. او دعائي قنوت به يې تر رکوع مخکې ويله)؛ له دې روايتونو څخه معلومه سوه چي دعائي قنوت به تر رکوع مخکې ويل کيږي نه وروسته.

**جواب:** د امام شافعي رَحِمَهُ الله د اول حديث جواب دا دی چي د ابو هريره رضی الله عنه په حديث کي چي د کوم قنوت يادونه سوې ده له هغه څخه د وترو قنوت مراد نه دی، بلکي له هغه څخه قنوت نازله مراد دی. او د قنوت نازله په باره کي خو موږ هم دا وايو چي تر رکوع وروسته به وي، د دويم حديث جواب يې دا دی چي د يو شي له نيمايي څخه چي کومه حصه زياته سي، هغه ته آخر ويل کيږي، نو له في آخر الوتر څخه به تر نيمايي وروسته والا حصه مراده وي. او دا حصه تر رکوع مخکې هم کېدی سي، او په آثارو او قرائنو سره د دې تائيد هم سوی. نو ځکه به همدغه مخکنۍ حصه مراد وي. او تر رکوع مخکې به دعائي قنوت ويل افضله وي.

## قنوت به ټوله کاله ويل کيږي (او د امام شافعي مسلک)

> **وَيَقْنُتُ فِي جَمِيعِ السَّنَةِ** او ټوله کال به قنوت وايي خِلَافًا لِلشَّافِعِيِّ رَحِمَهُ اللهُ فِي غَيْرِ النِّصْفِ الْأَخِيرِ مِنْ رَمَضَانَ لېکن د روژې د مياشتي په آخري نيمه حصه (يعني آخري پنځلسو ورځو) کي د امام شافعي رَحِمَهُ الله اختلاف دی لِقَوْلِهِ عَلَيْهِ الصَّلَاةُ وَالسَّلَامُ لِلْحَسَنِ بْنِ عَلِيٍّ رَضِيَ اللهُ عَنْهُ (زموږ دليل) د نبي ﷺ دا قول دی حسن بن علي رَضِيَ اللهُ عَنْهُ ته حِينَ عَلَّمَهُ دُعَاءَ الْقُنُوتِ • کله چي يې هغه ته دعائي قنوت ور وښووله اِجْعَلْ هَذَا فِي وِتْرِكَ (چي) دا دعاء په خپلو وترو کي شامله کړه مِنْ غَيْرِ فَصْلٍ په دې حديث کي (د دې) هيڅ تفصيل نسته (چي په دې وخت کي يې شامله کړه او په دې وخت کي يې مه شاملوه)

**اللغات:** ﴿فَصْل﴾ جلا لوالی، تفصيل.

**تشريح:** زموږ په نيز په وترو کي ټوله کال دعائي قنوت ويل واجب دي، او د امام شافعي رَحِمَهُ الله په نيز صرف د رمضان په آخري نيمه حصه کي دعائي قنوت ويل مستحب دي، او نور په ټوله کال کي يې له کراهته جائز دی (واجب او مستحب نه دی).

**د امام شافعي دليل:** دا اثر دی: أن عمر رضی الله عنه أمر أبي بن كعب بالإمامة في ليال رمضان وأمر القنوت في النصف الأخير منه. (يعني حضرت عمر رضی الله عنه ابی بن کعب رضی الله عنه ته په رمضان کي د امامت حکم وکړی، او د رمضان په آخري نيمه حصه کي يې د دعائي قنوت حکم ورته وکړی).

**جواب:** د امام شافعي د دليل جواب دا دی چي له قنوت څخه مراد په لمانځه کي دننه قرائت اوږدول دي. يعني حضرت عمر رضی الله عنه ابی بن کعب رضی الله عنه ته د رمضان په آخري نيمه حصه کي د قرائت اوږدولو حکم وکړی، تر دې جواب وروسته دا اثر امام شافعي رَحِمَهُ الله دليل نه سي کېدلای.

---

• تخريج: [illegible] ۱۴۲۵

او که تسليم هم سي چي له قنوت څخه مراد دعائي قنوت ده، نو موږ بيا دا جواب ورکوو: چي دا ديو صحابي اثر دی، او امام شافعي رَحِمَهُ الله د صحابي اثر داستدلال وړ نه ګڼي.

**سوال:** خو د امام شافعي رَحِمَهُ الله له طرفه دا اعتراض کېدلای سي چي دا اثر ځکه د استدلال وړ دی چي دا اجماع معنیٰ لري، ځکه چي حضرت ابی بن کعب رضي الله عنه د صحابه وو يو لوی جماعت ته امامت ورکړی، او هيڅ صحابي انکار نه وکړی، نو ځکه به دا اثر د اجماع په حکم کي وي او د اجماع قائم مقام به وي.

**جواب:** خو موږ په جواب کي وايو چي د ابن عمر رضي الله عنه اختلاف ثابت دی، ځکه چي ابن عمر رضي الله عنه فرمايي: لا أعرف القنوت إلا طول القيام، (يعني زما په نېز له رکعت اوږدولو څخه ماسوا د قنوت بله هيڅ معنیٰ نسته(يعني زما په نېز قنوت صرف د رکعت اوږدولو ته وايي))، نو د ابن عمر رَضِيَ اللهُ عَنْهُمَا د اختلاف باوجود به اجماع څرنګه ثابته وي.

**زموږ دليل:** دا حديث دی چي نبي ﷺ حسن بن علي رضي الله عنه ته د دعائي قنوت تعليم ورکړی، او بيا يې ورته وفرمايل: اجعل هذا في وترك، يعني دا دعا په خپل وترو کي داخله کړه، په دې کي د رمضان او غير رمضان هيڅ تفصيل نسته، نو له دې څخه ټوله کال د دعائي قنوت ويل ثابت سو.

## د وترو په هر رکعت کي به سورت فاتحه او بل سورت ويل کيږي

وَيَقْرَأُ فِي كُلِّ رَكْعَةٍ مِنَ الْوِتْرِ فَاتِحَةَ الْكِتَابِ وَسُورَةً او د وترو په هر رکعت کي به فاتحه او سورت وايي لِقَوْلِهِ تَعَالَى ځکه الله تعالیٰ فرمايلي دي فَاقْرَءُوا مَا تَيَسَّرَ مِنَ الْقُرْآنِ [المزمل: ٢٠] وايياست هغه له قرآن څخه کوم چي آسانه وي.

**تشريح: مسئله:** دا ده چي د وترو په هر رکعت کي سورت فاتحه او بل سورت ويل په اتفاق سره واجب دي، د صاحبينو رَحِمَهُمَا الله او امام شافعي رَحِمَهُ الله په نېز خو په دې وجه چي وتر سنت دي، او د سنتو او نفلو په هر رکعت کي قرائت سته، او د امام ابو حنيفه رَحِمَهُ الله په نېز وتر که څه هم واجب دي، خو څرنګه چي د وترو د وجوب ثبوت په سنت سره سوی دی، او سنت يقين نه فايده کوي، نو ځکه د دې په وجوب کي يو قسم شک پاته سو، نو د احتياط په وجه امام ابو حنيفه رَحِمَهُ الله په هر رکعت کي قرائت واجب وګرځوی، لکه څرنګه چي د سنتو او نوافلو په هر رکعت کي قرائت واجب دی.

صاحب د هدايې رَحِمَهُ الله چي کوم دليل ذکر کړی دی يعني: فاقرءوا...الخ، نو په دې سره د مطلق قرائت لپاره دليل نيول کېدای سي، د سورت فاتحه او د بل سورت د تعيين استدلال نه سي ځني کېدلای.

## د دعائي قنوت ويلو طريقه

وَإِنْ أَرَادَ أَنْ يَقْنُتَ كَبَّرَ او که لمونځ کونکي د دعائي قنوت اراده وکړي نو تکبير دي ووايي لِأَنَّ الْحَالَةَ قَدِ اخْتَلَفَتْ ځکه چي حالت بدل سو وَرَفَعَ يَدَيْهِ او دواړه لاسونه دي پورته کړي وَقَنَتَ او قنوت دي ووايي لِقَوْلِهِ عَلَيْهِ الصَّلَاةُ وَالسَّلَامُ ● ځکه نبي ﷺ فرمايلي دي لَا تُرْفَعُ الْأَيْدِي إِلَّا فِي سَبْعِ مَوَاطِنَ لاسونه به صرف په اوو(٧) ځايونو کي پورته کيږي وَذَكَرَ مِنْهَا الْقُنُوتَ او له هغو اوو ځايونو څخه يې يو قنوت(هم) ذکر کړی.

**اللغات:** ﴿أَيْدِي﴾ جمع د يَدٌ ده: لاس، ﴿مَوَاطِن﴾ جمع د مَوْطِنٌ ده: ځای، مقام.

---

● تخريج: أخرجه البيهقي في السنن الكبرى، باب رفع اليدين، حديث رقم: ٩١١.

**تشریح: مسئله:** دا ده چې کله لمونځ گزاره د دعائي قنوت ویلو اراده وکړي، نو هغه ته پکار دي چې تکبیر ووايي، ځکه چې تر تکبیر مخکې هغه په قرائت کي مشغوله وو، او تر تکبیر وروسته به د قرائت په مشابه یعني دعاء سره مشغولیږي، نو د قرائت او دعاء په مینځ کي د فرق کولو لپاره او د انتقال د اطلاع ورکولو لپاره پر ده تکبیر ویل واجب دي، او د دې تکبیر سره به لاسونه هم پورته کوي، ځکه نبي چې په کومو اوو ځایونو کي د لاسونو پورته کول واجب گرځولو دي، په هغه کي قنوت هم ستة، نو پر دې موقع به هم لاسونه پورته کوي.

## آیا دعائي قنوت به په نورو لمونځونو کي ویل کیږي؟

وَلَا يَقْنُتُ فِي صَلَاةٍ غَيْرِهَا او له وترو څخه ماسوا به په بل لمانځه کي قنوت (دعائي قنوت) نه وایي خِلَافًا لِلشَّافِعِيِّ رَحِمَهُ اللهُ فِي الْفَجْرِ د سهار په لمانځه کي د امام شافعي رَحِمَهُ الله اختلاف دی لِمَا رَوَى ابْنُ مَسْعُودٍ رَضِيَ اللهُ عَنْهُ ❶ ځکه ابن مسعود رَحِمَهُ الله روایت کړی دی أَنَّهُ عَلَيْهِ الصَّلَاةُ وَالسَّلَامُ قَنَتَ فِي صَلَاةِ الْفَجْرِ شَهْرًا چې نبي ﷺ تر یوې میاشتي پوري د سهار په لمانځه کي قنوت وایی ثُمَّ تَرَكَهُ بیا یې پرېښووی.

**اللغات:** ﴿شَهْرًا﴾ شهر: میاشته.

**تشریح: مسئله:** دا ده چې د احنافو په نیز له وترو څخه ماسوا په بل لمانځه کي دعائي قنوت ویل نسته، او امام شافعي رَحِمَهُ الله فرمایي چې د سهار په لمانځه کي قنوت ویل سنت دي.

**د امام شافعي دلیل:** د انس ﷺ حدیث دی: كان النبي ﷺ يقنت في صلاة الفجر إلى أن فارق الدنيا. (یعني نبي ﷺ به د سهار په لمانځه کي قنوت وایی تر دې چې له دنیا څخه رخصت سو).

**زموږ دلیل:** د ابن مسعود ﷺ حدیث دی: أن النبي ﷺ قنت في صلاة الفجر شهراً يدعو على حي من أحياء العرب. (نبي ﷺ یوه میاشت د سهار په لمانځه کي د عربو د یوې قبیلې لپاره د ښرا (ښېرا) په توگه دعائي قنوت ویله)، بل دلیل دا دی چې په خپله له حضرت انس ﷺ څخه را نقل سوي دي چې: قال قنت رسول الله ﷺ في صلاة الفجر شهراً أو قال أربعين يوما على أهل ذكوان و عصبة حين قتلوا القراء وهم سبعون رجلاً أو ثمانون. (یعني نبي ﷺ یوه میاشت یا څلوېښت ورځي دعائي قنوت ویله، مقصد یې هغه خلکو ته ښرا کول وو چې هغو اویا یا اتیا قاریان شهیدان کړه)، له دې حدیث څخه هم معلومه سوه چې نبي ﷺ د سهار په لمانځه کي له یو څه وخت څخه علاوه دعائي قنوت ویلې نه ده، بل دلیل دا دی چې ابو عثمان نهندي رَحِمَهُ الله فرمایي: صليت خلف أبي بكر ﷺ سنتين و صليت خلف عمر ﷺ كذالك فلم أر واحدا منهما يقنت في صلاة الفجر (یعني ما په ابو بکر او عمر رَضِيَ اللهُ عَنْهُمَا پسې دوه کاله لمونځ وکړی، خو په دوی کي مي له یوه څخه هم د سهار په لمانځه کي دعائي قنوت اورېدلې نه ده).

## که امام د سهار په لمانځه کي دعائي قنوت وویله نو مقتدی به څه کوي؟

فَإِنْ قَنَتَ الْإِمَامُ فِي صَلَاةِ الْفَجْرِ بیا که امام د سهار په لمانځه کي دعائي قنوت وویله يَسْكُتُ مَنْ خَلْفَهُ عِنْدَ أَبِي حَنِيفَةَ وَمُحَمَّدٍ رَحِمَهُمَا اللهُ نو د طرفینو رَحِمَهُمَا الله په نیز به مقتدی چپ پاتیږي وَقَالَ أَبُو يُوسُفَ رَحِمَهُ اللهُ: يُتَابِعُهُ او امام ابو

---

❶ أخرجه بيهقي في سننه، باب ما يجوز في الدعاء، حديث رقم:٣٢٥.

يوسف رَحِمَهُ الله فرمايي: چي مقتدي به د امام تابعداري (پيروي) کوي لِأَنَّهُ تَبَعٌ لِإِمَامِهِ ځکه مقتدي د امام تابع دی وَالْقُنُوتُ مُجْتَهَدٌ فِيْهِ او د سهار په لمانځه کي قنوت ويل مختلف فيه دي(يعني اختلاف پکښي سته) وَلَهُمَا أَنَّهُ مَنْسُوْخٌ او د طرفينو دليل دا دی چي دا منسوخ سوي دي وَلَا مُتَابَعَةَ فِيْهِ او په منسوخ کي به تابعداري نه کيږي ثُمَّ قِيْلَ يَقِفُ قَائِمًا بيا يو قول دا دی چي مقتدی به ولاړ اوسي لِيُتَابِعَهُ فِيْمَا تَجِبُ مُتَابَعَتُه د دې لپاره چي د امام تابعداري(متابعت)وکړي په هغه شي کي چي د هغه متابعت واجب دی وَقِيْلَ يَقْعُدُ تَحْقِيْقًا لِلْمُخَالَفَةِ او دويم قول دا دی چي د مخالفت ثابتولو لپاره دي مقتدی کښيني لِأَنَّ السَّاكِتَ شَرِيْكُ الدَّاعِي ځکه چي چپ (خاموش) سړی د داعي(بلونکي) سري شريک وي وَالْأَوَّلُ أَظْهَرُ او اول قول زيات ښکاره دی وَدَلَّتِ الْمَسْأَلَةُ عَلٰى جَوَازِ الْاِقْتِدَاءِ بِالشَّفْعَوِيَّةِ او دغه مسئلې پر دې خبري دلالت وکړی چي په شافعي مذهب والا(امام) پسي اقتداء کول جائز دي وَعَلَى الْمُتَابَعَةِ فِيْ قِرَاءَةِ الْقُنُوْتِ فِي الْوِتْرِ او پر دې خبري يې (هم) دلالت وکړی چي په وترو کي به مقتدی د قنوت په ويلو کي د امام تابعداري کوي وَإِذَا عَلِمَ الْمُقْتَدِيْ مِنْهُ مَا يَزْعَمُ بِهِ فَسَادَ صَلَاتِهِ او کله چي (حنفي) مقتدي ته له (خپل شافعي المذهب) امام څخه داسي خبره معلومه سي چي په هغه سره د ده لمونځ فاسديږي كَالْفَصْدِ وَغَيْرِهِ لکه ښکر لګول او داسي نور لَا يُجْزِئُهُ الْاِقْتِدَاءُ بِهِ نو د دغه (حنفي) مقتدي لپاره د دې (شافعي) امام اقتداء کول جائز نه دي وَالْمُخْتَارُ فِي الْقُنُوْتِ الْإِخْفَاءُ او د قنوت په سلسله کي اخفاء غوره ده لِأَنَّهُ دُعَاءٌ ځکه چي قنوت دعاء ده.

**تشريح**: په دې عبارت کي څو مسئلې بيان سوي دي چي له هغو څخه اوله مسئله دا ده چي که امام د سهار په لمانځه کي دعائي قنوت وايي او هغه شافعي المذهب وو، نو د ده په اقتداء کي چي څومره حنفي مقتديان شريک دي، د هغو ټولو لپاره د طرفينو رَحِمَهُمَا الله په نيز حکم دا دی چي هغوی دي چپ اوسي، او دعائي قنوت دي نه وايي، امام ابو يوسف رَحِمَهُ الله فرمايي چي حنفي مقتديانو ته په دې صورت کي هم د خپل امام اتباع(تابعداري) ضروري ده، او د امام سره د دوی لپاره هم قنوت ويل ضروري دي.

**د امام ابو يوسف دليل**: دا دی چي کله مقتديانو د امام ماقتداء وکړه، نو د دوی لپاره په ټولو شيانو کي د امام اتباع ضروري سوه، او بيا چي څرنګه د سهار په لمانځه کي قنوت ويل او نه ويل مختلف فيه دی(يعني اختلاف پکښي سته)، نو د دې اختلاف په وجه به اصل شی يعني تابعداري نه پرېښوول کيږي، او پر مقتديانو به د امام اتباع ضروري وي، او په اتباع کي قنوت ويل هم شامل دي، نو ځکه به د دوی لپاره د قنوت ويل هم ضروري وي.

**د طرفينو دليل**: دا دی چي تابعداري په هغه شيانو کي راتلاسی چي هغه ثابت او موجود وي، او څرنګه چي د سهار په لمانځه کي د قنوت ويل منسوخ سوي دي، نو ځکه په دې کي تابعداري هم ضروري نه ده، ځکه چي په منسوخه سوو شيانو کي اتباع ضروري نه وي، نو له همدې کبله به په ذکر سوې مسئله کي مقتديان خاموش اوسي، او قنوت به نه ايي، خو دا خاموشي او چُپتيا به څه رنګه وي؟ نو په دې باره کي دوې رايي دي: (١) اوله رايه دا ده چي مقتديان به د ولاړي په حال کي چپ اوسي، (٢) او دويمه رايه دا ده چي مقتديان به د ناستي په حال کي چپ اوسي، د دې لپاره چي د شافعي المسلک امام پوره مخالفت ثابت سي، ځکه چي صرف په چپ پاته کېدلو سره مخالفت نه ثابتيږي، ځکه چپ او

خاموشه لمونځ گزاره هم حکماً قاري منل کيږي، لکه په فرضي لمونځونو کي د امام قرائت د خاموش مقتدي لپاره قرائت منل سوی دی، نو د پوره مخالفت ثابتولو لپاره دي مقتدي کښېني، لېکن صاحب د هدايې رَحِمَهُ الله فرمايي چي اوله رايه يعني د ولاړي په حال کي خاموشه اوسېدل زيات ظاهر دي، ځکه چي امام مشروع او غير مشروع هر ډول کار کوي، نو په مشروع کي به د هغه اتباع کيږي، او په غير مشروع کي به د هغه اتباع نه کيږي، او څرنګه چي د ولاړي په حالت کي اقتداء کول مشروع امر دی، نو ځکه به پر مقتديانو د ولاړي په حالت کي چپ اوسېدل ضروري وي.

ودلت المسئلة الخ له دې ځايه دا راښيي چي په عبارت کي چي کومه د قنوت مسئله بيان سوه، له هغې څخه نوري دوې مسئلې هم ښکاره سوې: (١) اول خو دا مسئله ښکاره سوه چي د حنفي مقتدي لپاره د شافعي امام اقتداء کول صحيح دي. او په دې کي هيڅ ډول کراهت او بدي نسته. (٢) او دويمه مسئله دا وأضحه سوه چي د مقتدي لپاره د وترو په لمانځه کي قنوت ويل واجب دي، ځکه چي په وترو کي بذات خود قنوت واجب دي، همدا وجه ده چي د دې په پرېښوولو سره سجدهٔ سهو واجبيږي، نو کله چي په وترو کي بذات خود قنوت واجب وي، نو پر لمونځ گزاره به د دې ويل هم واجب وي، که څه هم هغه د شافعي امام اقتداء کوي (او لوړ چي کومه مسئله بيان سوه، هغه د وترو سره نه بلکي د سهار د لمانځه سره تعلق لري).

وإذا علم الخ د دې حاصل دا دی چي که حنفي مقتدي ته په خپل شافعي امام کي په يقيني توګه يو داسي خبره معلومه سي چي هغه د احنافو په نېز لمونځ فاسدوي، نو د دې حنفي مقتدي لپاره د هغه اقتداء کول جائز نه دي. د مثال په توګه شافعي امام اودس وکړی بيا يې ښکر ولګوی يا يې له غير سبيلينو څخه نجاست ووتی، او اودس يې نه راوګرځوی. نو د دې حنفي مقتدي لپاره د هغه اقتداء کول جائز نه دي، ځکه چي دا شيان که څه هم د شوافعو په نېز اودس نه ماتوي. لېکن د احنافو په نېز اودس ماتوي، ځکه چي د حنفي مقتدي د ګومان مطابق د هغه امام بې اودسه سو، او په بې اودسه پسي اقتداء کول جائز نه دي.

والمختار الخ فرمايي چي په دعائي قنوت کي اخفاء يعني په کراره او پټه ويل غوره او مستحسنه دي، ځکه چي دا دعاء ده، او د دعاګانو په سلسله کي د قرآن مجيد اعلان دا دی: أدعو ربكم تضرعًا وخفيه. نو په دې وجه په دعائي قنوت کي هم اخفاء غوره ده، که څه هم بعضي حضرات وايي چي دعائي قنوت دي په جهر يعني په زوره ويل کيږي. او په دليل کي وايي چي دعائي قنوت د قرآن سره مشابه دی، لېکن اخفاء غوره او افضله ده.



# بَابُ النَّوَافِلِ

## (دا) باب د نفلونو (د احکامو په بیان کې) دی

**تشریح:** تر دې مخکې صاحب د کتاب د فرضو او واجبو بیان وکړی، اوس په دې باب کې د سنتو او نفلو بیان کوي؛ د نفل معنیٰ ده: هغه لمونځ چې پر فرضو زیات وي، نو څرنګه چې دا معنیٰ سنتو ته هم شاملیږي، نو ځکه یې په عنوان کې فقط د "نوافل" لفظ ذکر کړی، او د "سنن" لفظ یې ذکر نه کړی.

### د ورځې او شپې د مؤکده او غیر مؤکده سنتونو د رکعتونو شمیر

**اَلسُّنَّةُ رَكْعَتَانِ قَبْلَ الْفَجْرِ** د سهار (تر لمانځه) مخکې دوه رکعته سنت دي **وَأَرْبَعٌ قَبْلَ الظُّهْرِ وَبَعْدَهَا رَكْعَتَانِ** او تر ماپښين مخکې څلور رکعته او تر ماپښين وروسته دوه رکعته سنت دي **وَأَرْبَعٌ قَبْلَ الْعَصْرِ** او تر مازيګر مخکې څلور رکعته سنت دي **وَإِنْ شَاءَ رَكْعَتَيْنِ** او که وغواړي نو دوه رکعته دي وکړي **وَرَكْعَتَانِ بَعْدَ الْمَغْرِبِ** او تر ماښام وروسته دوه رکعته سنت دي **وَأَرْبَعٌ قَبْلَ الْعِشَاءِ وَأَرْبَعٌ بَعْدَهَا** او تر ماخوستن مخکې څلور رکعته او تر ماخوستن وروسته څلور رکعته سنت دي **وَإِنْ شَاءَ رَكْعَتَيْنِ** او که وغواړي نو دوه رکعته دي وکړي **وَالْأَصْلُ فِيهِ قَوْلُهُ عَلَيْهِ الصَّلَاةُ وَالسَّلَامُ** او د دې لمونځونو په سنت والي کې اصل د نبي ﷺ دا فرمان دی **مَنْ ثَابَرَ• عَلٰى ثِنْتَيْ عَشْرَةَ رَكْعَةً فِي الْيَوْمِ وَاللَّيْلَةِ** چا چې په شپه او ورځ کې پر دوولسو رکعتونو همېشتوب وکړی **بَنَى اللّٰهُ لَهُ بَيْتًا فِي الْجَنَّةِ** الله تعالیٰ به د هغه لپاره په جنت کې یو کور جوړ کړي **وَفَسَّرَ عَلٰى نَحْوِ مَا ذُكِرَ فِي الْكِتَابِ** او نبي ﷺ (په حديث کې د دې دوولسو رکعتونو) هم دغه رنګه تفصيل بيان کړی دی لکه څرنګه چې په قدوري (متن) کې ذکر دی **غَيْرَ أَنَّهُ لَمْ يَذْكُرِ الْأَرْبَعَ قَبْلَ الْعَصْرِ** لېکن نبي ﷺ تر مازيګر مخکې څلور رکعته ذکر کړي نه دي **فَلِهٰذَا سَمَّاهُ فِي الْأَصْلِ حَسَنًا** نو په دې وجه امام محمد رَحِمَهُ الله په مبسوط کې دې څلورو رکعتونو ته حسن ويلي دي **وَخَيَّرَ لِاخْتِلَافِ الْآثَارِ** او د آثارو د اختلاف په وجه لمونځ ګزاره ته اختيار ورکول سوی دی **وَالْأَفْضَلُ هُوَ الْأَرْبَعُ** خو غوره دا ده چې څلور رکعته وکړي **وَلَمْ يَذْكُرِ الْأَرْبَعَ قَبْلَ الْعِشَاءِ** او نبي ﷺ تر ماخوستن مخکې څلور رکعت هم ذکر کړي نه دي **فَلِهٰذَا كَانَ مُسْتَحَبًّا لِعَدَمِ الْمُوَاظَبَةِ** نو ځکه به هغه هم د نه همېشتوب په وجه مستحب وي **وَذَكَرَ فِيهِ رَكْعَتَيْنِ بَعْدَ الْعِشَاءِ** او په دې حديث کې نبي ﷺ تر ماخوستن وروسته دوه رکعته ذکر کړي دي **وَفِي غَيْرِهِ ذَكَرَ الْأَرْبَعَ** او په بل حديث کې یې څلور رکعته ذکر کړي دي **فَلِهٰذَا خُيِّرَ** نو په دې وجه لمونځ ګزار ته اختيار ورکول سوی دی **إِلَّا أَنَّ الْأَرْبَعَ أَفْضَلُ** خو څلور

---

• **تخريج:** أخرجه مسلم في كتاب صلوٰة المسافرين، باب فضل السنن، حديث رقم:١٠٣.

رکعته غوره دي خُصُوْصًا عِنْدَ أَبِيْ حَنِيْفَةَ رَحِمَهُ اللهُ په ځانګړې توګه د امام ابو حنيفه رَحِمَهُ الله په نيز عَلٰى مَا عُرِفَ مِنْ مَذْهَبِهِ لکه څرنګه چې دا خبره د هغه له مذهب څخه معلومه ده وَالْأَرْبَعُ قَبْلَ الظُّهْرِ بِتَسْلِيْمَةٍ وَاحِدَةٍ عِنْدَنَا او زموږ په نيز تر ماپښين مخکې څلور رکعته په يوه سلام سره دي كَذَا قَالَهُ رَسُوْلُ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ● همداسې رسول الله ﷺ فرمايلي دي وَفِيْهِ خِلَافُ الشَّافِعِيِّ او په دې کې د امام شافعي رَحِمَهُ الله اختلاف دی.

**اللغات:** ﴿ثَابَرَ﴾ د مفاعلې د باب ماضي ده: همېشتوب کول، پابندي کول. ﴿الْمُوَاظَبَة﴾ د مفاعلې د باب مصدر دی: همېشتوب.

**تشريح:** په عبارت کې چې کومه مسئله بيان سوې ده، بالکل آسانه ده، او په هغې کې د سنتو تفصيل څېړل سوی دی، د عبارت تر حل مخکې په لنډه توګه دا خبره په ياد لرئ چې سنت پر دوه قسمه دي: (١) سننِ مؤکده، (٢) سننِ غير مؤکده، سنن مؤکده هغو سنتونو ته ويل کيږي چې نبي ﷺ پر هغو د کله نا کله پرېښوولو سره همېشتوب کړی وي او سنن غير مؤکده هغو سنتونو ته ويل کيږي چې پر هغو نبي ﷺ همېشتوب نه وي کړی، امام قدوري رَحِمَهُ الله چې په متن کې کوم عبارت ذکر کړی دی، په هغه کې مؤکده او غير مؤکده دواړه قسمه سنتونه داخل دي، تاسو د آسانتيا په خاطر دا خبره په ذهن کې کېنېږدئ چې د سنن مؤکده وو شمېر دوولس (١٢) رکعته دي، دوه رکعته د سهار تر لمانځه مخکې، څلور رکعته د ماپښين تر لمانځه مخکې، دوه رکعته د ماپښين تر لمانځه وروسته، دوه رکعته د ماښام تر لمانځه وروسته، دوه رکعته د ماخوستن تر لمانځه وروسته، دا ټوله دوولس رکعته سوه، چې دا له سننِ مؤکده وو څخه شمېرل کيږي، او هم د دغو په باره کې د نبي ﷺ دا فرمان وارد سوی دی: من ثابر على ثنتى عشرة ركعة فى اليوم والليلة بنى الله له بيتا فى الجنة، له دې څخه ماسوا چې کوم سنتونه بيان سوي دي هغه ټوله سنن غير مؤکده دي، لېکن د هغو کول او اداء کول له پرېښوولو څخه افضله دي، خو په کله کله پرېښوولو کې يې هيڅ پروا نسته.

وفسر على نحو الخ صاحب د هدايې رَحِمَهُ الله فرمايي چې د نبي ﷺ په حديث ثنتى عشرة ركعة کې هم هغسې وضاحت سوی دی کوم چې امام قدوري رَحِمَهُ الله کړی دی، (يعني څرنګه چې په قدوري کې د رکعتونو شمېر ذکر سوی دی، هغسې په حديث کې هم ذکر سوی دی) يعني په سهار، ماپښين، ماښام او ماخوستن کې چې څرنګه سنن مؤکده په قدوري کې بيان سوي دي، همدارنګه په سپېڅلي حديث کې هم بيان سوي، او څرنګه چې په حديث کې صرف د سنن مؤکده وو يادونه سوې ده، نو ځکه د مازيګر تر لمانځه مخکې د څلورو رکعتو بيان هم په حديث کې نسته، همدا وجه ده چې حضرت امام محمد رَحِمَهُ الله په خپل کتاب مبسوط کې د مازيګر تر لمانځه مخکې څلور رکعته احسن او غوره ګڼلي دي، همدارنګه د مازيګر تر لمانځه مخکې د نبي ﷺ په معمول کې د آثارو د اختلاف په وجه امام محمد رَحِمَهُ الله لمونځ ګزار ته دا اختيار ورکړی دی چې که هغه غواړي نو څلور رکعته دې کوي، او که غواړي نو پر دوو رکعتو دې اکتفاء کوي، د آثارو اختلاف صاحب د عنايې رَحِمَهُ الله داسې څرګند کړی دی چې له ابن عمر رَضِيَ اللهُ عَنْهُمَا څخه را نقل سوي دي: قال رسول الله ﷺ رحم الله إمرأ صلى قبل العصر أربعا، (يعني الله تعالىٰ دې پر هغه سړي رحم وکړي چې هغه د مازيګر تر لمانځه

● تخريج: أخرجه ابو داؤد فى كتاب التطوع، باب الاربع قبل الظهر، حديث رقم: ١٢٦٩.

مخکي څلور رکعته وکړي)، او له حضرت علي ﷜ څخه را نقل سوي دي: كان النبي ﷺ يصلي قبل العصر ركعتين، (يعني نبي ﷺ به د مازيګر تر لمانځه مخکي دوه رکعته کول)، نو کله چي د مازيګر تر لمانځه مخکي د نبي ﷺ په عمل کي آثار مختلفه سوه، نو لمونځ ګزار ته به د دوو او څلورو رکعتو په مينځ کي اختيار وي؛ بيا هم څلور رکعته کول به د دوو په مقابله کي افضله او غوره وي، ځکه چي په دې کي شمېر هم زيات دی او ثواب هم.

ولم يذكر الأربع الخ فرمايي چي نبي ﷺ په ثنتی عشرة ركعة والا حديث کي تر ماخوستن مخکي د څلور رکعتو يادونه هم نه ده کړې، نو ځکه تر ماخوستن مخکي څلور رکعته مستحب ګرځولو سوي دي، ځکه چي پر دې نبي ﷺ همېشتوب هم کړی نه دی، او په دې حديث کي تر ماخوستن وروسته د دوو رکعتو ذکر سوی دی، او په يو بل حديث کي د څلور رکعتو ذکر سوی دی، لکه څرنګه د ابن عمر رَضِيَ اللهُ عَنْهُمَا روايت دی چي نبي ﷺ وفرمايل: من صلى بعد العشاء أربع ركعات كن كمثلهن من ليلة القدر. (يعني څوک چي تر ماخوستن وروسته څلور رکعته وکړي، نو دا څلور رکعته به د هغو څلورو رکعتو سره برابر سي کوم چي د ليلة القدر په شپه کي اداء سوي وي)؛ له دې حديث څخه ثابتيږي چي تر ماخوستن وروسته څلور رکعته سنت دي، او له ثنتی عشرة والا حديث څخه دوه رکعته ثابتيږي، نو په دې وجه فقهاؤ لمونځ ګزار ته دا اختيار ورکړی دی چي دوه رکعته هم کولای سي او څلور رکعته هم کولای سي، ليکن د ثواب په حواله سره څلور رکعته افضله دي، او د امام اعظم رَحِمَهُ الله په نېز خو څلور رکعته نور هم غوره او افضله دي، ځکه چي د ده په نېز صلاة الليل أربع ركعات بتسليمة واحدة کول افضله دي (يعني د ده په نېز نفل او سنت لمونځ د شپې څلور رکعته په يوه سلام سره کول ډېر غوره دي)، او د صاحبينو رَحِمَهُمَا الله په نېز دوه رکعته افضله دي.

ﷺ ربع قبل الظهر الخ د دې حاصل دا دی چي زموږ په نېز د ماپښين تر لمانځه مخکي په يوه سلام سره څلور رکعته کول افضله دي، او له نبي ﷺ څخه هم دارنګه را نقل سوي دي، لکه څرنګه چي د حضرت ابو ايوب انصاري ﷜ حديث دی، هغه فرمايي: أن النبي ﷺ كان يصلي بعد الزوال أربع ركعات فقلت؟ ما هذا الصلاة التي تداوم عليها. فقال هذه ساعة تفتح فيها أبواب السماء، و أحب أن يصعد لي فيها عمل صالح. فقلت، أفي كلهن قراءة؟ قال نعم. فقلت أبتسليمة، أم بتسليمتين فقال بتسليمة واحدة. (يعني نبي ﷺ به تر زوال وروسته څلور رکعته لمونځ اداء کوی، ما پوښتنه څني وکړه چي دا کوم لمونځ دی چي تاسو همېشتوب پر کوی، نو دوی ﷺ وفرمايل: دا هغه ساعت دی چي په دې کي د آسمان دروازې خلاصيږي، او زه دا غواړم چي په دې ساعت کي زما يو نېک عمل لوړ وخيږي، ما پوښتنه وکړه، چي آيا په هر رکعت کي قرائت سته، نو دوی ﷺ وفرمايل: هو!، بيا ما پوښتنه وکړه چي دا څلور رکعته په يوه سلام سره دي او که په دوو سلامو سره، نبي ﷺ جواب راکړی چي په يو سلام سره).

دا حديث په دې باره کي زيات څرګند او مفصل دليل دی چي د ماپښين تر لمانځه مخکي چي کوم څلور رکعته کيږي، هغه به په يوه سلام سره کيږي، ليکن امام شافعي رَحِمَهُ الله بيا هم اختلاف کوي، دې مفصل دليل ته نه ګوري، او په دوو سلامو سره دا سنت افضله ګڼي.

**د امام شافعي دليل:** په دې لړ کي د امام شافعي رَحِمَهُ الله دليل د حضرت ابو هريره ﷜ دا حديث دی: أن النبي ﷺ كان يصليهن بتسليمتين، (يعني نبي ﷺ به د ماپښين تر لمانځه مخکي څلور رکعته په دوو سلامو سره کول).

جواب: لیکن زموږ له طرفه د دې جواب دا دی چې بتسلیمتین په معنیٰ سره د بتشهدین دی، او د حال په ویلو سره محل مراد سوی دی، یعني نبي ﷺ به څلور رکعته په دوو تشهدو سره کوله. او دا حکم زموږ په نیز هم دی، د حضرت ابو هریره رضی الله عنه د حدیث دغه مطلب حضرت ابن مسعود رضی الله عنه هم بیان کړی دی. (عنایه)

## د ورځې او شپې د نفلي لمونځونو د رکعتونو د مقدار بیان

قَالَ: وَنَوَافِلُ النَّهَارِ إِنْ شَاءَ صَلَّى بِتَسْلِيمَةٍ رَكْعَتَيْنِ فرمایي: چې د ورځې نفلونه که لمونځ گزاره وغواړي نو دوه رکعته دې په یوه سلام کوي وَإِنْ شَاءَ أَرْبَعًا او که وغواړي نو څلور رکعته دې (په یوه سلام) کوي وَتُكْرَهُ الزِّيَادَةُ عَلَى ذٰلِكَ او پر دې زیاتوب مکروه دی وَأَمَّا نَافِلَةُ اللَّيْلِ پاتې سوه د شپې نفلونه قَالَ أَبُو حَنِيفَةَ رَحِمَهُ اللهُ ●: إِنْ صَلَّى ثَمَانِ رَكَعَاتٍ بِتَسْلِيمَةٍ جَازَ نو امام ابو حنیفه رَحِمَهُ الله فرمایي؛ که په یوه سلام اته رکعته وکړي نو (هم) جائز دي وَتُكْرَهُ الزِّيَادَةُ لیکن پر دې زیاتوب مکروه دی وَقَالَا: لَا يَزِيدُ بِاللَّيْلِ عَلَى رَكْعَتَيْنِ بِتَسْلِيمَةٍ او صاحبین رَحِمَهُمَا الله فرمایي: چې د شپې (په نفلونو کې) به په یوه سلام سره پر دوو رکعتو زیاتوب نه کوي وَفِي الْجَامِعِ الصَّغِيرِ لَمْ يَذْكُرِ الثَّمَانِ فِي صَلَاةِ اللَّيْلِ او په جامع صغیر کې د شپې په نفلونو کې د اتو رکعتو ذکر نه دی سوی وَدَلِيلُ الْكَرَاهَةِ أَنَّهُ عَلَيْهِ الصَّلَاةُ وَالسَّلَامُ ● لَمْ يَزِدْ عَلَى ذٰلِكَ او د کراهت دلیل دا دی چې نبي ﷺ پر اتو رکعتو زیاتوب نه دی کړی وَلَوْلَا الْكَرَاهَةُ لَزَادَ تَعْلِيمًا لِلْجَوَازِ او که کراهت نه وای نو د جواز ښوولو لپاره به یې له اتو څخه (ضرور) زیات کړي وای.

تشریح: د ورځې او د شپې د نفلونو د مقدار په باره کې د جواز او افضلیت په حواله سره د علماؤ اختلاف دی، په دې عبارت کې جواز بیان سوی دی، او په را روان عبارت کې افضلیت بیانیږي، نو د جواز په باره کې حکم دا دی چې په ورځ کې له زیاتو څخه زیات څلور رکعته په یوه سلام سره کېدلای سي، او پر څلور رکعتو زیاتوب مکروه دی، او د شپې په نفلو کې د امام صاحب رَحِمَهُ الله په نیز له زیاتو څخه زیات اته رکعته په یوه سلام سره کېدلای سي، او له اتو رکعتو څخه زیاتوب مکروه دي، او تقریباً د ټولو احنافو علماؤ همدغه رایه او په جواز او اباحت کې یې د هیڅ اختلاف سته، نه په شپه کې او نه په ورځ کې، لیکن امام شافعي رَحِمَهُ الله په شپه کې له څلورو رکعتو څخه زیات مکروه گڼي، همدارنگه په جامع صغیر کې له امام محمد رَحِمَهُ الله څخه هم د لمانځه پر ځای د یو قول ذکر دی، چې له هغه څخه دا ښکاري چې امام محمد رَحِمَهُ الله په شپه کې له شپږو څخه زیاتوب مکروه گڼي، لنډه دا چې په شپه کې پر اتو رکعتو زیاتوب ځکه مکروه دی چې نبي ﷺ د شپې په یوه سلام سره پر اتو رکعتو هیڅ کله اضافه کړې نه ده، او که اضافه مکروه نه وای، نو نبي ﷺ به د جواز ښوولو لپاره یو وار ضرور اضافه کولای، نو معلومه سوه چې په شپه کې له اتو رکعتو څخه زیات په یوه سلام سره کول مکروه دي، او امام قدوري رَحِمَهُ الله چې په وقالا لا یزید فی...الخ کې کوم قول تر دوو رکعتو د زیات نه کولو بیان کړی دی، هغه په اصل کې د افضلیت سره تعلق لري، نه د اباحت سره، نو په دې سره به د اباحت او جواز په باره کې اعتراض نه کیږي.

---

● القول الراجح: قول أبي حنيفة رَحِمَهُ الله، كذا في الدر المختار ج:١، ص:٥٠٠. [القول الراجح، ج:١، ص:١٠٦]

● تخريج: أخرجه مسلم في كتاب صلوٰة المسافرين، باب جامع صلوٰة الليل، حديث رقم:١٣٩.

راجح قول: په پورتنی مسئله کي راجح قول د امام صاحب رَحِمَهُ الله دی چي د ورځي په یو سلام سره څلور رکعته نفل کولای سي، او د شپې په یوه سلام سره اته رکعته نفل کولای سي، او پر دې زیاتوب مکروه دی، وقال العلامة الحصكفي رَحِمَهُ الله وتكره الزيادة على اربع في نفل النهار وعلى ثمان ليلا بتسليمة لانه لم يرد (الدر المختار ج۱، ص۵۰۰). [القول الراجح، ج۱، ص۱۰۷]

## د ورځي او شپې د نفلي لمونځونو د افضله مقدار بیان

وَالْأَفْضَلُ فِي اللَّيْلِ عِنْدَ أَبِي يُوسُفَ وَمُحَمَّدٍ رَحِمَهُمَا اللهُ مَثْنٰى مَثْنٰى او په شپه کي د صاحبینو رَحِمَهُمَا الله په نېز دوه دوه رکعته افضله (غوره) دي وَفِي النَّهَارِ أَرْبَعٌ أَرْبَعٌ او په ورځ کي څلور څلور رکعته (افضله دي) وَعِنْدَ الشَّافِعِيِّ رَحِمَهُ اللهُ فِيهِمَا مَثْنٰى مَثْنٰى او د امام شافعي رَحِمَهُ الله په نېز په شپه او ورځ دواړو کي دوه دوه رکعته (افضله) دي وَعِنْدَ أَبِي حَنِيفَةَ رَحِمَهُ اللهُ فِيهِمَا أَرْبَعٌ أَرْبَعٌ• او د امام صاحب رَحِمَهُ الله په نېز په شپه او ورځ دواړو کي څلور څلور رکعته (افضله) دي لِلشَّافِعِيِّ رَحِمَهُ اللهُ قَوْلُهُ عَلَيْهِ الصَّلَاةُ وَالسَّلَامُ• د امام شافعي رَحِمَهُ الله دلیل د نبي ﷺ دا قول دی صَلَاةُ اللَّيْلِ وَالنَّهَارِ مَثْنٰى مَثْنٰى چي د شپې او ورځي لمونځ دوه دوه رکعته دی وَلَهُمَا: اَلْاِعْتِبَارُ بِالتَّرَاوِيحِ او د صاحبینو دلیل دا دی: چي هغوی پر تراویحو قیاس کوي وَلِأَبِي حَنِيفَةَ رَحِمَهُ اللهُ او د امام ابو حنیفه رَحِمَهُ الله دلیل دا دی أَنَّهُ عَلَيْهِ الصَّلَاةُ وَالسَّلَامُ• كَانَ يُصَلِّي بَعْدَ الْعِشَاءِ أَرْبَعًا أَرْبَعًا چي نبي ﷺ به د ماخوستن تر لمانځه وروسته څلور څلور رکعته کول رَوَتْهُ عَائِشَةُ رَضِيَ اللهُ عَنْهَا• دا حدیث حضرت عائشې رَضِيَ اللهُ عَنْهَا روایت کړی دي وَكَانَ عَلَيْهِ الصَّلَاةُ وَالسَّلَامُ يُوَاظِبُ عَلَى الْأَرْبَعِ فِي الضُّحٰى او نبي ﷺ به په څاښت کي (هم) پر څلورو رکعتو همېشتوب کوی وَلِأَنَّهُ أَدْوَمُ تَحْرِيمَةً او په دې وجه (هم) چي په څلورو رکعتو کي د تحریمې دوام دی (یعني په څلورو رکعتو کي تکبیر تحریمه تر ډېره وخته پاتېږي په نسبت د دوو رکعتو ته) فَيَكُونُ أَكْثَرَ مَشَقَّةً لهذا په دې کي به تکلف زیات وي وَأَزْيَدَ فَضِيلَةً نو فضیلت (او ثواب) به یې هم زیات وي وَلِهٰذَا لَوْ نَذَرَ همدا وجه ده که یو سړی نذر وکړي أَنْ يُصَلِّيَ أَرْبَعًا بِتَسْلِيمَةٍ چي هغه به په یوه سلام سره څلور رکعته کوي لَا يَخْرُجُ عَنْهُ بِتَسْلِيمَتَيْنِ نو په دوو سلامونو سره هغه له دې نذر څخه نه سي وتلای وَعَلَى الْقَلْبِ يَخْرُجُ او د دې په بر عکس کي (یعني که د دوو رکعتو نذر یې وکړی او څلور یې وکړه نو) له نذر څخه وتلی سي وَالتَّرَاوِيحُ تُؤَدّٰى بِجَمَاعَةٍ او تراویح به په جماعت سره اداء کېږي فَيُرَاعٰى فِيهَا جِهَةُ التَّيْسِيرِ نو ځکه به په هغو کي د آسانی خیال ساتل کېږي وَمَعْنٰى مَا رَوَاهُ شَفْعًا او د امام شافعي رَحِمَهُ الله د بیان سوي حدیث معنیٰ دا ده چي شفعه (جفت) دي یې اداء کړي لَا وِتْرًا طاق دي یې نه اداء کوي وَاللهُ أَعْلَمُ او الله زیات خبر دی.

---

• القول الراجح: قول أبي حنيفة رَحِمَهُ الله، كذا في البحر الرائق ج:۱، ص:۵۲ [القول الراجح، ج:۱، ص:۱۰۸]

• تخريج: أخرجه ابو داؤد في كتاب التطوع، باب صلوة النهار، حديث رقم:۱۲۹۵.

• تخريج: أخرجه ابو داؤد في كتاب التطوع، باب في صلاة الليل، حديث رقم:۱۳۴۶.

• تخريج: أخرجه مسلم في كتاب صلوة المسافرين، حديث رقم: ۷۹.

**اللغات:** ﴿مَثنیٰ﴾ دوه دوه، ﴿ضُحیٰ﴾ څاښت، ﴿أدوَمُ﴾ تر ډېره وخته پاتې کېدونکي، ځنډني. ﴿شَفع﴾ جفت (جوړت، جوړه)، ﴿وِتر﴾ طاق.

**تشریح:** په دې عبارت کې د شپې او ورځې د نفلونو په مقدار او اندازه کې د افضیلت په حواله سره بیان سوی دی، حاصل یې دا دی چې د صاحبینو په نېز د شپې نفلونه په دوو رکعتو سره کول افضله دي. او د ورځې نفلونه په څلورو رکعتو سره کول افضله دي، د امام شافعي رَحِمَهُ الله په نېز د شپې او ورځې دواړو نفلونه په دوو رکعتو سره کول افضله دي، او د امام صاحب رَحِمَهُ الله په نېز د شپې او ورځې دواړو نفلونه په څلورو رکعته سره کول افضله دي.

**د امام شافعي دلیل:** د نبي ﷺ دا فرمان دی: صلاة اللیل والنهار مثنیٰ مثنیٰ، (یعني د شپې او ورځې نفلي لمونځ دوه دوه رکعته دي)، نو د دې حدیث په وجه په شپه او ورځ دواړو کې دوه دوه رکعته کول افضله دي.

**د صاحبینو دلیل:** قیاس دی یعني پر ترایحو قیاس کوي، یعني څرنګه چې په ترایحو کې لمونځ دوه دوه رکعته دی، همدارنګه به په نفلو کې هم دوه رکعته وي چې د شپې به دوه رکعته کول افضله وي، او پاته سوه د ورځې مسئله، نو د ورځې په باره کې د دوی هغه دلیل دی کوم چې د امام صاحب رَحِمَهُ الله دی.

**د امام صاحب دلیل:** دا دی چې نبي ﷺ به د ماخوستن تر لمانځه وروسته څلور رکعته په یوه سلام سره کول، همدارنګه به یې په یوه سلام سره د څاښت په وخت کې په پابندي سره څلور رکعته کول. ګواکي د نبي ﷺ معمول د ورځې او شپې په څلور رکعتو سره نفل کول وو، نو د امت لپاره د نبي ﷺ معمول واجبُ العمل دی، نو ځکه د ورځې او شپې په څلورو رکعتو سره نفل کول افضله دي.

**د امام صاحب عقلي دلیل:** دا دی چې په یوه سلام سره د څلورو رکعتو په کولو کې د تکبیر تحریمه دوام او ځنډ هم سته، او په مینځ کې د نه فارغه کېدلو په وجه مشقت او تکلیف هم زیات دی، او په کوم عبادت کې چې تکلیف او مشقت زیات وي هغه افضله وي، نو ځکه به په یوه سلام سره څلور رکعته اداء کول افضله وي په نسبت سره د دوو رکعتو ته، همدا وجه ده که یو سړي پر ځان دا نذر ومنی چې هغه به په یوه سلام سره څلور رکعته کوي، او بیا یې دیوه سلام پر ځای په دوو سلامونو سره څلور رکعته وکړه، نو د ده دا نذر به نه اداء کیږي، او که یې دا نذر ومنی چې په دوو سلامونو سره به څلور رکعتونه کوي، نو بیا یې په یو سلام سره وکړه، نو نذر یې پوره کیږي، په دې دواړو صورتونو کې فرق دا دی چې په اول صورت کې چې ده په یوه سلام سره د څلور رکعتو کولو نذر وکړی، نو دا ګواکي ده پر افضله طریقه د لمانځه کولو نذر وکړی، بیا چې کله ده په دوو سلامونو سره لمونځ وکړی، نو افضل (اعلیٰ) یې د مفضول (ادنیٰ) په شکل اداء کړی، نو ځکه به نذر پوره نه وي، هو! که په دوو سلامو سره یعني په مفضوله او ادانیٰ طریقه سره یې نذر وکړی، او بیا یې په یوه سلام یعني افضله طریقه سره اداء کړی، نو نذر یې پوره کیږي، ځکه چې افضل په مفضول کې داخلېدای سي، خو په مفضول کې افضل لره هیڅ ګنجایش نسته.

**د صاحبینو د قیاس جواب:** له والتراویح الخ څخه د صاحبینو د قیاس جواب ورکوي، حاصل یې دا دی چې نفل پر تراویحو قیاسول صحیح نه دي، ځکه چې د تراویحو لمونځ په جماعت سره اداء کیږي، او په جماعت کې روغ او ناروغه هر ډول خلک وي، نو د دوی د رعایت او خیال ساتلو په وجه په ترایحو کې دوه دوه رکعته اداء کیږي، لېکن نفل د دې په خلاف دي ځکه چې نفل په انفرادي توګه سره اداء کیږي، او په هغه کې د هیڅ رعایت او خیال ساتلو وجه نسته، نو ځکه به په نفلو کې څلور څلور رکعته کول افضله او غوره وي، او دا به پر تراویحو نه قیاسیږي.

**د امام شافعي د دليل جواب:** له ومعنی ما رواه الخ څخه د امام شافعي رَحِمَهُ الله د بيان سوي روايت جواب ورکوي فرمايي چي په دې کي له مثنی مثنی څخه مراد دوه دوه رکعته نه دي، بلکي د دې مفهوم دا دی چي د شپې او د ورځي تو له لمونځونه دي شفعاً شفعاً يعني جفت جفت او جوړه جوړه اداء کيږي، او هيڅ لمونځ دي هم وتراً يعني طاق او په يوه رکعت سره نه اداء کيږي، ځکه چي نبي ﷺ له صلاة بتيراء څخه منع کړې ده.

**راجح قول:** په پورتنی مسئله کي راجح قول د امام صاحب رَحِمَهُ الله دی، يعني په شپه او ورځ دواړو کي په څلورو رکعتو سره نفل کول افضله دي، وقال في الهندية: والافضل فيهما رباع لأنه أدوم تحريمة فيكون أكثر مشقة و أزيد فضيلة (الهندية ج:١، ص:١١٣). [القول الراجح ج:١، ص:١٠٨]



# فَصْلٌ فِي الْقِرَاءَةِ

## (دا) فصل د قرائت (داحکامو په بيان کي) دی

**تشريح:** کله چي صاحب د کتاب رَحِمَهُ الله د فرائضو، واجباتو، سنتو او نفلو په اعتبار سره د لمانځه له قسمونو او انواعو څخه فارغ سو، نو اوس د قرائت مسئلې بيانوي، ځرنګه چي د لمانځه په اختلاف او بدلون سره په قرائت کي هم اختلاف او بدلون راځي، نو ځکه د لمانځه تر مسئلو وروسته د قرائت مسئلې بيانوي، چي د مسئلو په پوهه او تطبيق ورکولو کي آساني راسي.

### د فرضي لمانځه په رکعتونو کي د قرائت تفصيل (او د فقهاؤ قولونه)

وَالْقِرَاءَةُ فِي الْفَرْضِ وَاجِبَةٌ فِي الرَّكْعَتَيْنِ او د فرضو په (اولو) دوو رکعتو کي قرائت کول واجب دي وَقَالَ الشَّافِعِيُّ رَحِمَهُ اللهُ فِي الرَّكَعَاتِ كُلِّهَا او امام شافعي رَحِمَهُ الله فرمايي چي د فرضو په هر رکعت کي (قرائت کول واجب دي) لِقَوْلِهِ عَلَيْهِ الصَّلَاةُ وَالسَّلَامُ● ځکه نبي ﷺ فرمايلي دي لَا صَلَاةَ إِلَّا بِقِرَاءَةٍ چي له قرائت څخه بغير لمونځ نه کيږي وَكُلُّ رَكْعَةٍ صَلَاةٌ او هر رکعت لمونځ دی وَقَالَ مَالِكٌ رحِمَهُ اللهُ او امام مالک رَحِمَهُ الله فرمايي فِي ثَلَاثِ رَكَعَاتٍ چي په دريو رکعتو کي (قرائت واجب) دی إِقَامَةً لِلْأَكْثَرِ مَقَامَ الْكُلِّ تَيْسِيرًا د آسانی لپاره اکثر د کل په قائم مقام کولو سره (يعني د اسلامتيا په خاطر به اکثر د کل پر ځای درول کيږي) وَلَنَا قَوْلُهُ تَعَالَى: فَاقْرَءُوا مَا تَيَسَّرَ مِنَ الْقُرْآنِ [المزمل: ٢٠] او زموږ دليل د الله تعالیٰ دا قول دی: فَاقْرَءُوا مَا تَيَسَّرَ مِنَ الْقُرْآنِ (له قرآن څخه هغه واياست چي آسانه وي) وَالْأَمْرُ بِالْفِعْلِ لَا يَقْتَضِي التَّكْرَارَ او د فعل امر د تکرار تقاضا نه کوي وَإِنَّمَا أَوْجَبْنَا فِي الثَّانِيَةِ اِسْتِدْلَالًا بِالْأُولَى او موږ په دويم رکعت کي قرائت واجب کړی

---

● تخريج: أخرجه مسلم في كتاب الصلوٰة، باب وجوب قرأة الفاتحة، حديث رقم:٣٢.

پر اول رکعت باندې په قیاسولو سره لِأَنَّهُمَا يَتَشَاكَلَانِ مِنْ كُلِّ وَجْهٍ ځکه چې دا دواړه رکعتونه په هر اعتبار سره مشابه دي فَأَمَّا الْأُخْرَيَانِ پاتې سوه آخري دوه رکعتونه فَيُفَارِقَانِهِمَا نو هغه له اولو دوو رکعتونو څخه بېل (او مختلف) دي فِي حَقِّ السُّقُوطِ بِالسَّفَرِ [۱] په سفر کې د ساقطېدلو په وجه وَصِفَةِ الْقِرَاءَةِ [۲] او د قرائت په صفت کې وَقَدْرِهَا [۳] او د قرائت په مقدار (اندازه) کې فَلَا تَلْحَقَانِ بِهِمَا نو ځکه به دا آخري دوه رکعته د اولو دوو رکعتونو سره نه ملحق کېږي وَالصَّلَاةُ فِيمَا رُوِيَ مَذْكُورَةٌ صَرِيحًا او د امام شافعي رَحِمَهُ الله په بیان سوي حدیث کې د "صلاة" لفظ ښکاره ذکر سوی دی فَتَنْصَرِفُ إِلَى الْكَامِلَةِ نو ځکه به "صلاة" د کامل (بشپړ) لمونځ و طرف ته ګرځول کېږي وَهِيَ الرَّكْعَتَانِ عُرْفًا او بشپړ لمونځ په عرف کې دوه رکعته دي كَمَنْ حَلَفَ لَا يُصَلِّي صَلَاةً لکه يو څوک چې قسم وکړي چې يو (پوره) لمونځ به نه کوم بِخِلَافِ مَا إِذَا حَلَفَ لَا يُصَلِّي په خلاف د هغه صورت چې کله قسم وکړي چې هیڅ لمونځ به (هم) نه کوم (یعني په اول قسم کې د "صلاة" لفظ ذکر سوی دی او په دویم قسم کې نه دی ذکر سوی، نو په اول قسم کې که پوره دوه رکعته وکړي نو حانثیږي، او که یو رکعت وکړي نو نه حانثیږي، او په دویم صورت کې که یو رکعت هم وکړي نو حانثیږي).

**اللغات:** ﴿يَتَشَاكَلَانِ﴾ د تفاعل له باب څخه د تثنیه مذکر غائب مضارع صیغه ده: یو د بل سره مشابه کېدل، هم شکله کېدل، ﴿يُفَارِقَانِ﴾ د مفاعلې له باب څخه مخکنی صیغه ده: یو له بل څخه جلا کېدل.

**تشریح: صورت د مسئلې:** دا دی چې زموږ په نېز په د فرضو د څلور رکعتیز لمانځه په اولو رکعتو کې قرائت کول واجب دي، او د امام شافعي رَحِمَهُ الله مسلک دا دی چې په هر هر رکعت کې يې قرائت کول واجب دي، او د امام مالک رَحِمَهُ الله مذهب دا دی چې په درې رکعتو کې يې قرائت کول واجب دي.

**د امام شافعي دلیل:** دا دی چې نبي ﷺ د لا صلاة إلا بقراءة په ذریعه د هغه لمانځه نفي کړې دې چې په هغه کې قرائت نه وسي، او د لمانځه هر رکعت د لمانځه درجه او د لمانځه په مرتبه کې دی، نو ځکه په هر رکعت کې قرائت کول واجب دي.

**د امام مالک دلیل:** همدغه حدیث دی، او فرمايي چې د حدیث له رویه پکار دا وو چې په هر رکعت کې قرائت واجب وای، خو څرنګه چې په شریعت کې په ډېرو احکامو کې اکثر ته د کُل حکم ورکول سوی دی، نو ځکه زموږ په نېز اکثر ته د کل درجه ورکول سوې ده، او څرنګه چې درې رکعته د څلورو اکثر دي، نو د دآسانی په خاطر په درې رکعتو کې قرائت واجب وګرځول سو.

**زموږ دلیل:** د قرآن کریم دا اعلان دی: فاقرؤا...الخ، او په دې سره موږ دلیل په دې توګه نیسو چې الله جل جلاله د امر په صیغه یعني د فاقرؤا په ذریعه سره د قرآن د قرائت حکم کړی دی، نو ځکه قرائت کول واجب دي، خو څرنګه چې امر د تکرار تقاضا نه کوي، نو ځکه صرف په یوه رکعت کې به قرائت واجب وي، خو دویم رکعت د ارکانو، فرائضو او نورو په اعتبار سره د اول رکعت په څیر او مشابه دی، نو ځکه موږ له اول رکعت څخه استدلال کوو د دلالة النص په توګه په دویم رکعت کې هم قرائت واجب ګرځوو.

## د فرضي لمانځه په آخري دوو رکعتونو کې د قرائت حکم

وَهُوَ مُخَيَّرٌ فِي الْأُخْرَيَيْنِ او لمونځ ګزار ته اختيار دی په آخري دوو رکعتونو کې مَعْنَاهُ مطلب يې دا دی إِنْ شَاءَ سَكَتَ وَإِنْ شَاءَ قَرَأَ که يې زړه غواړي نو چپ دې دريږي او که يې زړه غواړه نو قرائت دې کوي وَإِنْ شَاءَ سَبَّحَ او که يې زړه غواړي نو تسبيح دې وايي كَذَا رُوِيَ عَنْ أَبِي حَنِيفَةَ رَحِمَهُ اللهُ همدغه له امام ابو حنيفه رَحِمَهُ الله را نقل سوي دي وَهُوَ الْمَأْثُورُ عَنْ عَلِيٍّ وَابْنِ مَسْعُودٍ وَعَائِشَةَ رَضِيَ اللهُ عَنْهُمْ او همدغه له حضرت علي، حضرت ابن مسعود او حضرت عائشې رَضِيَ اللهُ عَنْهُمْ څخه را نقل سوي دي إِلَّا أَنَّ الْأَفْضَلَ أَنْ يَقْرَأَ خو افضله دا ده چي قرائت وکړي لِأَنَّهُ عَلَيْهِ الصَّلَاةُ وَالسَّلَامُ دَاوَمَ عَلَى ذَلِكَ ځکه چي نبي ﷺ پر دې همېشتوب کړی دی وَلِهَذَا لَا يَجِبُ السَّهْوُ بِتَرْكِهَا فِي ظَاهِرِ الرِّوَايَةِ همدغه وجه ده چي (په آخري دوو رکعتونو کې) د ظاهر الروايه مطابق د قرائت په پرېښوولو سره سجدهٔ سهو نه واجبيږي.

**تشريح:** صاحب د قدوري رَحِمَهُ الله فرمايي چي په آخري دوو رکعتو کي لمونځ ګزار ته اختيار دی که سورتِ فاتحه ايي، يا د دې تسبيحاتو په اندازه خاموشه (چپ) دريږي، يا دې تسبيحات وايي، د امام ابو حنيفه رَحِمَهُ الله همدغه روايت دی، يعني ظاهر الرواية همدغه دی، او تسبيح ويل له حضرت علي، ابن مسعود او حضرت عائشې رَضِيَ اللهُ عَنْهُمْ څخه هم را نقل سوي دي، خو په آخري دوو رکعتو کي قرائتِ کول افضله دي، ځکه چي نبي ﷺ د کله نا کله پرېښوولو سره پر دې همېشتوب کړی دی، همدا وجه ده چي که په آخري رکعتو کي سورت فاتحه پرېښوول سي، نو سجدهٔ سهو نه واجبيږي، نو له دې څخه هم په آخري رکعتو کي د سورتِ فاتحې د قرائت افضل والي معلوميږي، صاحب د هدايي فرمايي: چي ظاهر الرواية همدغه دی.

امام حسن بن زياد رَحِمَهُ الله له امام اعظم څخه روايتِ کړی دی چي که په آخري رکعتو کي لمونځ ګزاره نه قرائت وکړی او نه يې قصداً تسبيح وويل نو ګنهګاره به وي، او که سهواً يې دا شيان پرېښوول نو سجدهٔ سهو به واجب وي، دليل دا دی چي په آخري رکعتو کي ولاړه (قيامه) مقصود ده، نو ځکه به دا له قرائت او ذکر څخه خالي پرېښوول مکروه وي، صاحب د عنايې رَحِمَهُ الله ليکلي دي چي ظاهر الرواية ډېر صحيح دی، ځکه چي په ولاړه کي خو اصل قرائت دی نو کله چي قرائت ساقط سو، نو ولاړه خالي پاته سو، نو داسي سوه لکه د مقتدي ولاړه. (عنايه)

## په نفلي لمونځونو کي د قرائت حکم

وَالْقِرَاءَةُ وَاجِبَةٌ فِي جَمِيعِ رَكَعَاتِ النَّفْلِ وَفِي جَمِيعِ رَكَعَاتِ الْوِتْرِ او د نفلو او وترو په ټولو رکعتونو کي قرائت واجب دی أَمَّا النَّفْلُ په نفلو کي خو په دې وجه واجب دی فَلِأَنَّ كُلَّ شَفْعٍ مِنْهُ صَلَاةٌ عَلَى حِدَةٍ ځکه چي د نفلو هره شفعه (يعني هر دوه رکعته) جلا (او ځانته) لمونځ دی وَالْقِيَامُ إِلَى الثَّالِثَةِ كَتَحْرِيمَةٍ مُبْتَدَأَةٍ او د دريم رکعت لپاره ولاړېدل د نوي (مستقلي) تحريمې په څېر دی (يعني ګواکي د نفلو دريم رکعت په جلا تحريمه سره شروع کيږي) وَلِهَذَا لَا يَجِبُ بِالتَّحْرِيمَةِ الْأُولَى إِلَّا رَكْعَتَانِ نو ځکه په اوله تحريمه سره صرف دوه رکعته واجب دي فِي الْمَشْهُورِ عَنْ أَصْحَابِنَا رَحِمَهُمُ اللهُ زموږ له اصحابو څخه د مشهوره روايت مطابق وَلِهَذَا قَالُوا نو هم په دغه وجه زموږ علماؤ فرمايلي دي يَسْتَفْتِحُ فِي

الثَّالِثَةِ أَيْ يَقُوْلُ: سُبْحَانَكَ اللّٰهُمَّ چې په دریم رکعت کې به ثناء یعني سبحانك اللهم... الخ وایي وَأَمَّا الْوِتْرُ فَلِلاحْتِيَاطِ او پاتې سو وتر نو (په هغه کې) د احتیاط لپاره (په هر رکعت کې قرائت واجب) دی.

**اللغات:** ﴿شفع﴾ جفت (جوت)، مراد ځني دوه رکعته دي، ﴿يستفتح﴾ دویم وار شروع کول.

**تشریح:** مسئله: دا ده چې قرائت د نفلو او وترو په ټولو رکعتونو کې واجب دی، د نفلو په ټولو رکعتونو کې قرائت ځکه واجب دی چې د نفلو هر دوه رکعته جلا او مستقل لمونځ دی، نو په اوله تحریمه سره دوه رکعته واجب سوه، که څه هم نیت یې تر دوو رکعتو زیات کړی وي، د احنافو علماؤ مشهوره قول همدغه دی، تر دې که یو چا د څلورو رکعتو نفلي لمانځه نیت وکړی بیا یې دا لمونځ د دوو رکعتو تر پوره کولو مخکې فاسد کړی، نو پر ده به د شروع کولو په وجه صرف د اولو دوو رکعتو قضاء واجب وي، نو معلومه سوه چې په اولي تحریمې سره صرف دوه رکعته لازمیږي.
څرنګه چې هر دوه رکعته بېل او مستقل لمونځ دی، نو هم په دې وجه د احنافو مشائخو ویلي دي چې دریم رکعت ته دي د ولاړېدلو په وخت کې ثناء وایي، ځکه چې د دریم رکعت لپاره دربدل د نوي تحریمې په مرتبه کې دي، او د وترو په ټولو رکعتو کې قرائت ځکه واجب دی چې په لمانځه کې قرائت بذات خود مقصود رکن دی، او د وترو وجوب په حدیثو سره ثابت دی، نو د نفل کېدلو احتمال یې پیدا سو، نو د احتیاط په وجه د وترو په ټولو رکعتو کې قرائت واجب کړی سو، حاصل دا چې د امام ابو حنیفه رَحِمَهُ الله په نېز که څه هم د وترو لمونځ واجب دی، خو څرنګه چې د نفل کېدلو آثار په هغه کې ښکاره دي، نو موږ احتیاطاً د هغه په هر رکعت د سنتو او نفلو په شیر قرائت واجب کړی.

## که تر شروع کولو وروسته نفل فاسد کړی سي نو څه حکم دی؟

قَالَ: وَمَنْ شَرَعَ فِي نَافِلَةٍ فرمایي: چا چې نفلي لمونځ شروع کړی ثُمَّ أَفْسَدَهَا او بیا یې فاسد کړی قَضَاهَا نو د هغه قضاء به راوړي وَقَالَ الشَّافِعِيُّ رَحِمَهُ اللهُ: لَا قَضَاءَ عَلَيْهِ او امام شافعي رَحِمَهُ الله فرمایي: چې پر هغه قضاء واجب نه ده لِأَنَّهُ مُتَبَرِّعٌ فِيْهِ ځکه چې هغه په نفلي لمانځه کې متبرع دی (یعني استحساناً یې کوي) وَلَا لُزُوْمَ عَلَى الْمُتَبَرِّعِ او پر تبرع کوونکي هیڅ شی نه لازمیږي وَلَنَا أَنَّ الْمُؤَدّٰى او زموږ دلیل دا دی چې د لمانځه کومه حصه چې اداء سوې ده وَقَعَ قُرْبَةً هغه عبادت ګرځېدلې ده فَيَلْزَمُ الْإِتْمَامُ ضَرُوْرَةَ صِيَانَتِهِ عَنِ الْبُطْلَانِ نو له باطلوالي څخه د خوندي کولو لپاره به د هغې پوره کول ضروري دي.

**اللغات:** ﴿متبرع﴾ د تفعیل د باب اسم فاعل دی: هغه شوک چې بغیر له واجب کېدلو څخه یو کار کوي، ﴿إتمام﴾ د افعال مصدر دی: پوره کول، ﴿صيانة﴾ ساتنه، ژغورنه.

**تشریح:** صورت د مسئلې: دا دی که یو سړي نفلي لمونځ تر شروع کولو وروسته فاسد کړی، نو زموږ په نېز پر دې سړي د هغه قضاء واجب ده، او امام شافعي رَحِمَهُ الله فرمایي چې پر داسې سړي هیڅ قضاء نسته، ځکه چې نفل کوونکی متبرع وي، یعني بغیر له وجوب او لزوم څخه هغه دا نفلي کار تر سره کوي، او شریعت پر متبرع هیڅ شی نه لازموي، نو ځکه به په ذکر سوې مسئله کې پر نفل کوونکي متبرع هم قضاء لازمه نه وي.

**زموږ دليل:** دا دې چې نفل کونکی چې د لمانځه کومه حصه اداء کوي، هغه عبادت جوړه سوې ده، نو له باطلوالي څخه د ژغورلو لپاره د دې عبادت پوره کول ضروري ګرځول سوي دي، اوس که يو سړی دا پوره نه کړي، او همدغسې نابشپړ يې پرېږدي، نو پر ده به د دې قضاء لازمه وي.

**جواب:** امام شافعي رَحِمَهُ الله چې کومه خبره کوي چې پر متبرع هيڅ شی لازم نه دی، د هغه جواب دا دی چې دا حکم مطلق نه دی، بلکي په دې کي تفصيل سته، او هغه دا چې پر متبرع خو له شروع څخه يقيناً هم هيڅ شی لازم نه دی، او موږ هم دا خبره کوو، خو کله چې متبرع يوه تبرع شروع کړي، نو اوس به پر هغه د دې شي پوره کول لازمي او ضروري وي، او څرنګه چې زموږ بيان د بعد الشروع سره متعلق دی، نو ځکه به پر متبرع د دې نفلو پوره کول ضروري وي، او د فساد په صورت کي به د دې قضاء راوړل هم پر ضروري وي.

## په څلور رکعتيز نفلو کي د آخري دوو رکعتونو د فاسدولو بېلا بېل صورتونه

وَإِنْ صَلَّى أَرْبَعًا او که يو سړي څلور رکعته نفلي لمونځ شروع کړی وَقَرَأَ فِي الْأُولَيَيْنِ او په اولو دوو رکعتو کي يې قرائت وکړی وَقَعَدَ او کښېنستی ثُمَّ أَفْسَدَ الْأُخْرَيَيْنِ بيا يې آخري دوه رکعته فاسد کړل قَضَى رَكْعَتَيْنِ نو هغه به د (آخري) دوو رکعتونو قضاء راوړي لِأَنَّ الشَّفْعَ الْأَوَّلَ قَدْ تَمَّ ځکه چې اول دوه رکعته خو پوره سوي دي وَالْقِيَامُ إِلَى الثَّالِثَةِ بِمَنْزِلَةِ تَحْرِيمَةٍ مُبْتَدَأَةٍ او دريم رکعت ته ولاړېدل د نوي (او مستقلي) تحريمي په درجه کي دي فَيَكُونُ مُلْزِمًا نو دا تحريمه به (د آخري دوو رکعتونو) لازمونکې وي هَذَا إِذَا أَفْسَدَ الْأُخْرَيَيْنِ بَعْدَ الشُّرُوعِ فِيهِمَا او دا (د واجبيدلو) حکم په هغه صورت کي دی چې کله يې آخري دوه رکعته تر شروع کولو وروسته فاسد کړي وي وَلَوْ أَفْسَدَ قَبْلَ الشُّرُوعِ فِي الشَّفْعِ الثَّانِي او که آخري دوه رکعته يې تر شروع کولو مخکي فاسد کړي وي لَا يَقْضِي الْأُخْرَيَيْنِ نو د آخري دوو رکعتونو قضاء به نه راوړي وَعَنْ أَبِي يُوسُفَ رَحِمَهُ اللهُ أَنَّهُ يَقْضِي● او له امام ابو يوسف رَحِمَهُ الله څخه روايت دی چې قضاء به يې راوړي اعْتِبَارًا لِلشُّرُوعِ بِالنَّذْرِ امام ابو يوسف رَحِمَهُ الله شروع کول پر نذر قياسوي وَلَهُمَا أَنَّ الشُّرُوعَ يُلْزِمُ مَا شَرَعَ فِيهِ او د طرفينو رَحِمَهُمَا الله دليل دا دی چې شروع کول هغه شی لازموي کوم چې شروع کړی سوی وي وَمَا لَا صِحَّةَ لَهُ إِلَّا بِهِ او (هغه شی لازموي) چې هغه له شروع کړی سوي شي څخه بغير نه صحيح کېږي وَصِحَّةُ الشَّفْعِ الْأَوَّلِ لَا تَتَعَلَّقُ بِالثَّانِي او د اولو دوو رکعتونو صحت پر آخري دوو رکعتونو موقوف نه دی بِخِلَافِ الرَّكْعَةِ الثَّانِيَةِ په خلاف د دوېم رکعت وَعَلَى هَذَا سُنَّةُ الظُّهْرِ او هم پر دې اختلاف د ماپښين سنت دي لِأَنَّهَا نَافِلَةٌ ځکه چې هغه نفل دي وَقِيلَ او يو قول دا دی يَقْضِي أَرْبَعًا احْتِيَاطًا چې لمونځ ګزاره به د احتياط په توګه څلور رکعته راګرځوي لِأَنَّهَا بِمَنْزِلَةِ صَلَاةٍ وَاحِدَةٍ ځکه چې هغه د يوه لمانځه په مرتبه کي دي.

**اللغات:** ﴿الشَّفْعُ الْأَوَّلُ﴾ اول دوه رکعته. ﴿الشَّفْعُ الثَّانِي﴾ آخري دوه رکعته.

---

● القول الراجح: قول الطرفين رَحِمَهُمَاالله، كذا في فتح القدير ج:١ ص:٣٦٩. [القول الراجح، ج:١، ص:١٠٨]

**تشريح:** صورت د مسئلې: دا دی که يو سړي د څلورو رکعتو په نيت نفل شروع کړل، او په اولو دوو رکعتو کې يې واجب قرائت هم وکړی، او پر دويم رکعت يې قعده(ناسته) هم وکړه، بيا يې دويمه شفعه(آخري دوه رکعته) فاسد کړه، نو پر ده صرف د دويمې شفعې قضاء واجب ده. په دې مسئله کې په دويم رکعت کې د ناستې قيد په دې وجه ذکر کړی سو، چې که پر دويم رکعت نه کښېني، او آخري شفعه فاسده کړي، نو په اتفاق سره د څلورو رکعتونو قضاء پر واجب ده، لنډه دا چې که دريم رکعت ته د دې تر ولاړېدلو وروسته دويمه شفع فاسده کړه، نو پر ده صرف د دويمې شفعې قضاء واجب ده، ځکه چې اوله شفعه خو پوره سوې ده، او د دريم رکعت لپاره ولاړه د نوي تحريمې په مرتبه کې ده، نو په دې تحريمه سره صرف دويمه شفعه لازمه سوه، نو د فساد په صورت کې به هم صرف د دې قضاء واجب وي.

هذا إذا أفسد الخ صاحب د هدايې رَحِمَهُ الله فرمايي چې د دويمې شفعې د قضاء راوړلو حکم په هغه وخت کې دی چې په دې يې شروع کړی وي او بيا يې فاسده کړې وي، او که دريم رکعت ته تر ولاړېدلو مخکې يې دويمه شفعه فاسده کړې وي، نو پر ده د هيڅ شي قضاء واجب نه ده، ځکه چې د دويم رکعت پر ناسته(قعده) اوله شفعه پوره سوه، او دويمه شفعه يې لا نه ده شروع کړې، نو اوس د اولې شفعې قضاء خو په دې وجه نسته چې هغه خو پوره سوه، او د دويمې شفعې قضاء ځکه نسته چې په هغې تر اوس شروع نه ده سوې.

له امام ابو يوسف رَحِمَهُ الله څخه يو روايت دا دی چې که يې اوله شفعه فاسده کړې وي، او که دويمه شفعه، په هر صورت کې به د څلورو رکعتو قضاء واجب وي.

**د امام ابو يوسف دليل:** قياس دی، يعني امام ابو يوسف رَحِمَهُ الله په څلور رکعتيز نفلي لمانځه شروع کول پر نذر قياسوي، يعني لکه څرنګه چې د څلور رکعتو نفلو په نذر کولو سره څلور رکعتونه واجبېږي، همدغه رنګه که چا د څلورو رکعتو په نيت سره نفل شروع کړل، نو پر هغهٔ څلور رکعته واجبېږي، تر دې که په اوله شفعه کې يې نفل باطل کړل، نو بيا به هم د څلورو رکعتونو قضاء واجب وي، او که په دويمه شفعه کې يې نفل فاسد کړل، نو به هم د څلورو رکعتو قضاء واجب وي، د دې قياس علت جامعه او سبب لزوم دی يعني لکه څنګه چې په نذر سره نفل لازمېږي، همدغه رنګه په شروع کولو سره هم نفل لازمېږي.

**د طرفينو دليل:** دا دی چې په يو شي شروع کول د هغه شي د وجوب سبب وي کوم چې شروع سوی وي، همدارنګه د هغه شي د وجوب سبب وي، چې پر هغه د شروع سوي شي صحت موقوفه وي، مثلاً د نفلي لمانځه په شروع کولو سره اول رکعت واجبېږي، ځکه چې اول رکعت ماشرع فيه(شروع کړی سوی شی) دی، او د اول رکعت صحت موقوفه دی پر دويم رکعت، نو په شروع کولو سره دويم رکعت هم واجب سو. پاته سوه شفع ثاني (آخري دوه رکعته) نو هغه نه ما شرع فيه دي، او نه پر دې دويمې شفعې د ماشرع فيه صحت موقوف دی، نو په اولې شفعې په شروع کولو سره به دويمه شفعه نه واجبېږي، او هر کله چې دويمه شفعه واجب نه سوه، نو د اولې شفعې په باطلېدلو سره به د دويمې شفعې قضاء هم نه واجبېږي، همدغه رنګه که دويمه شفعه باطله کړي، نو صرف د دويمې شفعې قضاء به واجب وي، د اولې شفعې قضاء به واجب نه وي، د دې په خلاف که په نذر کې په يوه سلام سره د څلورو رکعتو نذر وکړي، نو په يو سلام سره به څلور رکعته واجب وي، او که په دوو سلامو سره څلور رکعته وکړي، نو نذر يې نه پوره کېږي.

وعلى هذا سنة الظهر الخ همدغه اختلاف تر ماپښين مخکې په څلورو رکعتو سنتو کې دی، يعني که چا د ماپښين تر لمانځه مخکې د څلورو رکعتو سنت نيت وکړی او لمونځ يې شروع کړی، بيا يې اول دوه رکعته وکړه او د دريم لپاره

چي ولاړ سو نو فاسد يې کړل، نو امام ابو يوسف رَحِمَهُ الله په نېز به د څلور رکعتو قضاء راوړي، او د طرفينو رَحِمَهُمَا الله په نېز به د دوو رکعتو قضاء راوړي.

وقيل الخ بعضي علماؤ فرمايلي دي چي په دې صورت کي به د احتياط لپاره د څلورو رکعتو قضاء راوړي، ځکه چي دا څلور رکعتونه د يو لمانځه په مرتبه کي دي، ځکه که يوه ښځه د دې سنتو په اوله شفعه کي وه او خپل خاوند دې ته د طلاق خيار ورکړی، او دې څلور رکعته پوره کړل سلام يې وګرځوي، نو د دې ښځي خيار نه باطلېږي، حال دا چي د مجلس په بدلېدلو سره خيار باطلېږي، او د کلې په بدلون سره مجلس بدلېږي، نو معلومه سوه چي تر ماپښين مخکي څلور رکعته سنت يو لمونځ دی، ليکن که اوله شفعه جلا لمونځ وای او دويمه شفعه جلا لمونځ وای نو د دويمي شفعي په شروع کولو سره به يې خيار باطل سوی وای، ځکه چي د عمل په بدلون سره مجلس بدلېږي.

**راجح قول:** په پورتنی مسئله کي راجح قول د طرفينو رَحِمَهُمَا الله دی چي دوی فرمايي: که چا د نفلو په څلور رکعتيز لمانځه کي دويمه شفعه تر شروع کولو مخکي فاسده کړه نو د هغي قضاء به نه راوړي، وقال العلامة ابن الهمام رَحِمَهُ الله: وقد رجع ابو يوسف رَحِمَهُ الله عن قوله. (فتح القدير ج:۱، ص:۳۹۶). [القول الراجح ج:۱، ص:۱۰۹]

## د څلور رکعتيز نفلي لمانځه په ټولو رکعتونو کي د قرائت پرېښوولو بېلا بېل صورتونه

وَإِنْ صَلّٰى أَرْبَعًا او که لمونځ کزاره څلور رکعته نفلي لمونځ وکړی وَلَمْ يَقْرَأْ فِيهِنَّ شَيْئًا او په يوه رکعت کي يې هم قرائت نه وکړی أَعَادَ رَكْعَتَيْنِ نو هغه به دوه رکعتونه را ګرځوي وَهٰذَا عِنْدَ أَبِي حَنِيْفَةَ وَمُحَمَّدٍ رَحِمَهُمَا اللهُ دا حکم د طرفينو رَحِمَهُمَا الله په نېز دی وَعِنْدَ أَبِي يُوسُفَ رَحِمَهُ اللهُ يَقْضِي أَرْبَعًا او د امام ابو يوسف رَحِمَهُ الله په نېز به هغه سري څلور رکعته راګرځوي وَهٰذِهِ الْمَسْأَلَةُ عَلٰى ثَمَانِيَةِ أَوْجُهٍ او د دې مسئلې اته صورتونه دي وَالْأَصْلُ فِيهَا او اصل په دې مسئله کي دا دی أَنَّ عِنْدَ مُحَمَّدٍ رَحِمَهُ اللهُ تَرْكَ الْقِرَاءَةِ فِي الْأُولَيَيْنِ أَوْ فِي إِحْدَاهُمَا يُوجِبُ بُطْلَانَ التَّحْرِيمَةِ چي د امام محمد رَحِمَهُ الله په نېز په اولو دوو رکعتونو کي يا له هغو څخه په يوه کي قرائت پرېښوول د تحريمې بطلان (باطلېدل) واجبوي لِأَنَّهَا تُعْقَدُ لِلْأَفْعَالِ ځکه چي تحريمه د افعالو (د اداء کولو) لپاره تړل کېږي وَعِنْدَ أَبِي يُوسُفَ رَحِمَهُ اللهُ تَرْكُ الْقِرَاءَةِ فِي الشَّفْعِ الْأَوَّلِ لَا يُوجِبُ بُطْلَانَ التَّحْرِيمَةِ او د امام ابو يوسف رَحِمَهُ الله په نېز په اولو دوو رکعتونو کي قرائت پرېښوول د تحريمې بطلان نه واجبوي وَإِنَّمَا يُوجِبُ فَسَادَ الْأَدَاءِ بلکي د اداء فساد واجبوي (يعني صرف اداء فاسدوي) لِأَنَّ الْقِرَاءَةَ رُكْنٌ زَائِدٌ ځکه چي قرائت زائد رکن دی أَلَا تَرٰى أَنَّ لِلصَّلَاةِ وُجُودًا بِدُونِهَا آيا ته نه ګورې چي له قرائت څخه بغير هم د لمانځه وجود سته غَيْرَ أَنَّهُ لَا صِحَّةَ لِلْأَدَاءِ إِلَّا بِهَا خو له قرائت څخه بغير اداء نه صحيح کېږي وَفَسَادُ الْأَدَاءِ لَا يَزِيدُ عَلٰى تَرْكِهِ او د اداء فاسدېدل د اداء تر پرېښوولو زيات نه دي فَلَا يُبْطِلُ التَّحْرِيمَةَ نو ځکه تحريمه نه باطلوي وَعِنْدَ أَبِي حَنِيْفَةَ رَحِمَهُ اللهُ تَرْكُ الْقِرَاءَةِ فِي الْأُولَيَيْنِ يُوجِبُ بُطْلَانَ التَّحْرِيمَةِ او د امام ابو حنيفه رَحِمَهُ الله په نېز په اولو دوو رکعتونو کي د قرائت پرېښوول د تحريمې بطلان واجبوي وَفِي إِحْدَاهُمَا لَا يُوجِبُ او له دواړو څخه په يوه کي يې پرېښوول د تحريمې بطلان نه واجبوي لِأَنَّ كُلَّ شَفْعٍ مِنَ التَّطَوُّعِ صَلَاةٌ عَلٰى حِدَةٍ ځکه چي د نفلو هر دوه رکعته جلا (مستقل)

لمونځ دی وَفَسَادُهَا بِتَرْكِ الْقِرَاءَةِ فِي رَكْعَةٍ وَاحِدَةٍ مُجْتَهَدٌ فِيهِ او په يوه رکعت کي د قرائت په پرېښوولو سره د لمانځه فاسدېدل مختلف فيه دي (يعني اختلاف پکښې سته) فَقَضَيْنَا بِالْفَسَادِ فِي حَقِّ وُجُوبِ الْقَضَاءِ نو ځکه موږ د قضاء د واجبېدلو په حق کي د لمانځه د فساد فيصله وکړه وَحَكَمْنَا بِبَقَاءِ التَّحْرِيمَةِ فِي حَقِّ لُزُومِ الشَّفْعِ الثَّانِي اِحْتِيَاطًا او د آخري دوو رکعتونو د لازمېدلو په حق کي موږ احتياطاً د تحريمې د پاته کېدلو فيصله وکړه إِذَا ثَبَتَ هٰذَا نو کله چي دا ټوله اصول ثابته سوه نَقُوْلُ: إِذَا لَمْ يَقْرَأْ فِي الْكُلِّ قَضٰى رَكْعَتَيْنِ عِنْدَهُمَا* نو موږ وايو: چي که لمونځ گزاره په څلور سره رکعتونو کي قرائت نه وکړي نو د طرفينو رَحِمَهُمَا الله په نيز به دوه رکعتونه راگرځوي لِأَنَّ التَّحْرِيمَةَ قَدْ بَطَلَتْ بِتَرْكِ الْقِرَاءَةِ فِي الشَّفْعِ الْأَوَّلِ عِنْدَهُمَا ځکه چي په اولو دوو رکعتونو کي د قرائت د پرېښوولو په وجه د طرفينو رَحِمَهُمَا الله په نيز تحريمه باطله سوه فَلَمْ يَصِحَّ الشُّرُوْعُ فِي الشَّفْعِ الثَّانِي نو د آخري دوو رکعتونو شروع کول به صحيح نه وي وَبَقِيَتْ عِنْدَ أَبِي يُوسُفَ رَحِمَهُ اللهُ او د امام ابو يوسف رَحِمَهُ الله په نيز تحريمه باقي پاته سوه فَصَحَّ الشُّرُوْعُ فِي الشَّفْعِ الثَّانِي نو په آخري دوو رکعتونو به شروع کول صحيح وي ثُمَّ إِذَا فَسَدَ الْكُلُّ بِتَرْكِ الْقِرَاءَةِ فِيهِ بيا چي کله لمونځ گزاره د قرائت په پرېښوولو سره ټوله لمونځ فاسد کړي فَعَلَيْهِ قَضَاءُ الْأَرْبَعِ عِنْدَهُ نو اوس به د امام ابو يوسف رَحِمَهُ الله په نيز پر هغه د څلور سره رکعتونو قضاء راوړل واجب وي.

**اللغات:** ﴿الشَّفْعُ الْأَوَّلُ﴾ اول دوه رکعته، ﴿الشَّفْعُ الثَّانِي﴾ آخري دوه رکعته.

**تشريح:** **صورت د مسئلې:** دا دی که يو سړي د څلورو رکعتو نفلو نيت وتړی، او په يوه رکعت کي هم يې قرائت نه وکړی، نو د طرفينو رَحِمَهُمَا الله په نيز پر ده د دوو رکعتو قضاء واجب ده، او د امام ابو يوسف رَحِمَهُ الله په نيز د څلورو رکعتو قضاء پر واجب ده، اصلاً په دې مسئله کي چي کوم اختلاف دی، هغه د ائمه وو د خپلو خپلو اصولو د اختلاف په وجه سره دی، او په احتمالي توگه سره په دې مسئله کي ټوله اته (۸) صورتونه جوړېږي، نو اول هغه اته صورتونو ته پلم وکړئ، وروسته به اصول ذکر کړو:

## ﴿اته صورتونه دا دي﴾

[۱] اول دا چي لمونځ گزاره په څلور سره وو (يعني په ټولو) رکعتونو کي قرائت پرېږدي

[۲] په شفع ثاني کي يې پرېږدي

[۳] په شفع اول کي يې پرېږدي

[۴] په شفع ثاني کي يې په يوه رکعت کي پرېږدي

[۵] په شفع اول کي يې په يوه رکعت کي پرېږدي

[۶] د شفع اول او شفع ثاني په يوه يوه رکعت کي يې پرېږدي

[۷] د شفع ثاني په دواړو رکعتونو کي او د شفع اول په يوه رکعت کي يې پرېږدي

[۸] د شفع اول په دواړو رکعتونو کي او د شفع ثاني په يوه رکعت کي يې پرېږدي

---

* القول الراجح: قول الطرفين رَحِمَهُمَا الله، كذا في البحر الرائق ج:١، ص:٥٩. [القول الراجح، ج:١، ص:١١٠]

صاحب د کتاب د ائمه وو له اصولو څخه تر تولو مخکي د امام محمد رَحِمَهُ الله اصل بیانوي حاصل یې دا دی چي د امام محمد رَحِمَهُ الله په نېز په اولو دوو رکعتو کي یا له دوی څخه په یوه رکعت کي د قرائت په پرېښوولو سره تحریمه باطلیږي، ځکه چي تحریمه د افعالو د اداء کولو لپاره ترل کیږي، او د قرائت په پرېښوولو سره بالاتفاق افعال فاسدیږي، نو ځکه به په دې سره تحریمه هم باطلیږي، د امام ابو یوسف رَحِمَهُ الله اصل دا دی چي په اوله شفعه کي د قرائت په پرېښوولو سره تحریمه نه باطلیږي، خو اداء په فاسدیږي، تحریمه ځکه نه په فاسدیږي چي قرائت یو زائد رکن دی، لو د ګونګي په حق کي له قرائت څخه بغیر هم لمونځ متحقق کیږي، نو ځکه به د قرائت په پرېښوولو سره پر تحریمه هیڅ اثر نه پرېوځي، لېکن څرنګه چي د قرائت په پرېښوولو سره اداء نه صحیح کیږي، نو ځکه به صرف اداء فاسدیږي، او د اداء فساد د اداء تر پرېښوولو زیات نه دی، یعني که یو سړی بې اودسه سي، او هغه اداء پرېږدي د اودسه لپاره ولاړ سي، نو په دې صورت کي هم تحریمه نه باطلیږي، نو کله چي د اداء په پرېښوولو سره تحریمه نه باطلیږي. نو د اداء په فساد سره خو به په طریقه اولیٰ نه باطلیږي.

د حضرت امام اعظم رَحِمَهُ الله اصل دا دی چي په اولو دوو رکعتو کي د قرائت په پرېښوولو سره خو تحریمه باطلیږي، لېکن په یوه رکعت کي د قرائت په پرېښوولو سره تحریمه نه باطلیږي، ځکه چي د نفل هره شفعه جلا لمونځ دی. نو هغه له قرائت څخه خالي کول د لمانځه خالي کول دي، او د لمانځه خالي کولو په صورت کي تحریمه باطلیږي، او د هغه قضاء واجبیږي، لېکن په یوه رکعت کي د قرائت په پرېښوولو سره د لمانځه فاسدېدل مختلف فیه دی. د حضرت حسن بصري رَحِمَهُ الله او نورو په نېز که د سهار په یوه رکعت کي قرائت وکړی سو، نو لمونځ کیږي. لېکن د نورو حضراتو په نېز د سهار په هر رکعت کي قرائت کول ضروري دی، او دا خبره فیصله سوې ده چي په اختلاف سره تخفیف راځي، نو ځکه موږ همدغه وکړه، چي د قضاء د وجوب په حق کي مو د لمانځه د فساد فیصله وکړه. لو دا مو وویل چي که په یوه رکعت کي قرائت پرېښوول سو نو لمونځ فاسدیږي، او د هغه قضاء به واجب وي، لېکن د دې قرائت په پرېښوولو سره به پر تحریمه هیڅ اثر نه کیږي، او د شفعي ثاني په حق کي به تحریمه پر خپل ځای پاته وي.

اوس له دې اصولو څخه وروسته د عبارت حاصل دا دی چي که لمونځ ګزاره په یوه رکعت کي هم قرائت نه وکړی، نو د طرفینو رَحِمَهُمَا الله په نېز د هغه تحریمه باطلیږي، او د دوی په نېز د دوېمي شفعي شروع کېدل نه دي راغلي، نو ځکه به پر هغه صرف د اولي شفعي قضاء واجب وي، او د امام ابو یوسف رَحِمَهُ الله په نېز چي څرنګه د قرائت په پرېښوولو سره پر تحریمه هیڅ اثر نه پرېوځي، نو په دې وجه د امام ابو یوسف رَحِمَهُ الله په نېز د هغه تحریمه پاته ده لو دوېمي شفعي ته هم شامله ده، نو ځکه به هغه د اولي او دوېمي دواړو شفعو شروع کونکی وي، خو څرنګه چي یې په یوه رکعت کي هم قرائت نه دي کړی، نو ځکه به پر ده د څلور سره وو رکعتونو قضاء واجب وي.

**راجح قول:** په پورتنی مسئله کي راجح قول د طرفینو رَحِمَهُمَا الله دی چي دوی فرمایي: که چا څلور رکعته نفلي لمونځ وکړی لو په یوه رکعت کي یې هم قرائت نه وکړی، نو دوو رکعتو قضاء به راوړي، قال المفتی غلام قادر النعماني. وقد علم من هذا أنه لا خلاف في الأخذ بقول الامام إذا وافقه أحدهما ولذا قال الامام قاضیخان رَحِمَهُ الله وإن كانت المسئلة مختلفا فيها بين أصحابنا رَحِمَهُ الله. فإن كان مع أبي حنيفة رَحِمَهُ الله أحد صاحبيه. يأخذ بقولهما أي بقول الإمام ومن وافقه(شرح عقود رسم المفتي ص۷۱). (القول الراجح ج۱، ص۱۱۰)

## د خلور رکعتیز نفلي لمانځه په اولو دوو یا آخري دوو رکعتونو کې د قرائت پرېښوولو حکم

وَلَوْ قَرَأَ فِي الْأُولَيَيْنِ او که لمونځ گزاره په اولو دوو رکعتو کې قرائت وکړي لَا غَيْرُ په آخري دوو رکعتو کې يې قرائت نه وکړي فَعَلَيْهِ قَضَاءُ الْأُخْرَيَيْنِ بِالْإِجْمَاعِ نو پر هغه بالاجماع د آخري دوو رکعتو قضاء واجب ده لِأَنَّ التَّحْرِيمَةَ لَمْ تَبْطُلْ ځکه چې تحریمه (د هیڅا په نیز) باطله نه ده فَصَحَّ الشُّرُوعُ فِي الشَّفْعِ الثَّانِي نو په دویمه شفعه شروع کول صحیح سو ثُمَّ فَسَادُهُ بِتَرْكِ الْقِرَاءَةِ لَا يُوجِبُ فَسَادَ الشَّفْعِ الْأَوَّلِ بیا د قرائت پرېښوولو په وجه د دویمي شفعي فساد د اولي شفعي فساد نه واجبوي وَلَوْ قَرَأَ فِي الْأُخْرَيَيْنِ او که لمونځ گزاره په آخري دوو رکعتو کې قرائت وکړي لَا غَيْرُ او په اولو دوو رکعتو کې يې نه وکړي فَعَلَيْهِ قَضَاءُ الْأُولَيَيْنِ بِالْإِجْمَاعِ نو پر هغه بالاجماع د اولو دوو رکعتو قضاء واجب ده لِأَنَّ عِنْدَهُمَا لَمْ يَصِحَّ الشُّرُوعُ فِي الشَّفْعِ الثَّانِي ځکه چې د طرفینو رَحِمَهُمَا الله په نیز د دویمي شفعي شروع کول صحیح نه دي وَعِنْدَ أَبِي يُوسُفَ رَحِمَهُ اللهُ إِنْ صَحَّ لیکن د امام ابو یوسف رَحِمَهُ الله په نیز که څه هم صحیح دي فَقَدْ أَدَّاهُمَا خو هغه آخري دوه رکعتونه اداء کړل.

**اللغات:** ﴿الشَّفْعُ الْأَوَّلُ﴾ اول دوه رکعته. ﴿الشَّفْعُ الثَّانِي﴾ آخري دوه رکعته.

**تشریح:** مسئله: دا ده که لمونځ گزاره د څلور رکعتیز نفلي لمانځه په اولو دوو رکعتو کې قرائت وکړي، او په آخري دوو رکعتو کې يې قرائت نه وکړي، نو بالاتفاق پر ده د آخري دوو رکعتو قضاء راوړل واجب دي، ځکه چې په اوله شفعه کې د قرائت کولو په وجه تحریمه باطله نه سوه، نو کله چې تحریمه باطله نوه سوه، نو د دویمي شفعي شروع کول هم صحیح سو، لیکن د قرائت پرېښوولو په وجه د دویمي شفعي په فاسدېدلو سره اوله شفعه نه فاسدیږي، نو کله چې صرف دویمه شفعه فاسده سوه، نه اوله، نو قضاء به هم د دویمي شفعي واجب وي، نه د اولي شفعي. ښکاره دي وي چې دا حکم په هغه وخت کې دی چې کله يې پر اوله شفعه قعده (ناسته) کړې وي، نو که يې قعده نه وي کړې نو د څلورو رکعتو قضاء واجب ده، د دویمي شفعي قضاء به د قرائت پرېښوولو په وجه واجب وي، او د اولي شفعي قضاء به د قعدې د پرېښوولو په وجه واجب وي.

ولو قرأ في الأخريين الخ فرمایيکه لمونځ گزاره صرف په آخري دوو رکعتو کې قرائت وکړي او اول دوه رکعتونه يې له قرائت څخه خالي پرېښوول نو په دې صورت کې بالاتفاق پر ده د اولو دوو رکعتو قضاء راوړل واجب دي، د طرفینو ﷺ په نیز خو په دې وجه چې په اولو دوو رکعتو کې د قرائت د پرېښوولو په وجه په دویمه شفعه شروع کول هم صحیح نه دي، ځکه چې د ده تحریمه باطله سوه، نو په دې وجه پر دې سري صرف د اولو رکعتو قضاء واجب ده، او د امام ابو یوسف رَحِمَهُ الله په نیز هم پر ده د اولو دوو رکعتو قضاء واجب ده، ځکه چې د قرائت د پرېښوولو سره سره که څه هم د ده په نیز دویمه شفعه شروع کول صحیح دي، خو څرنگه چې دې سړي دویمه شفعه په قرائت سره اداء کړې ده، نو ځکه به د ده په نیز له شفعي ثاني څخه دلته هیڅ بحث نه کیږي او پر لمونځ گزاره به صرف د اولي شفعي قضاء واجب وي.

## د څلور رکعتیز نفلي لمانځه په زیاتو رکعتونو کې د قرائت پرېښوولو بېلا بېل صورتونه

وَلَوْ قَرَأَ فِي الْأُولَيَيْنِ وَإِحْدَى الْأُخْرَيَيْنِ او که لمونځ گزاره په اولو دوو رکعتو او د آخري دوو رکعتو په یوه رکعت کې قرائت وکړي فَعَلَيْهِ قَضَاءُ الْأُخْرَيَيْنِ بِالْإِجْمَاعِ نو بالاتفاق پر ده د آخري دوو رکعتونو قضاء واجب ده وَلَوْ قَرَأَ فِي

الْأُخْرَيَيْنِ وَإِحْدَى الْأُولَيَيْنِ او که ده په آخري دوو رکعتو کي او د اولو دوو رکعتو په یوه رکعت کي یې قرائت وکړی فَعَلَيْهِ قَضَاءُ الْأُولَيَيْنِ بِالْإِجْمَاعِ نو بالاتفاق پر ده د اولو دوو رکعتونو قضاء واجب ده وَلَوْ قَرَأَ فِي إِحْدَى الْأُولَيَيْنِ وَإِحْدَى الْأُخْرَيَيْنِ او که ده د اولو دوو رکعتونو په یوه رکعت کي او دآخري دوو رکعتونو په یوه رکعت کي قرائت وکړی عَلَى قَوْلِ أَبِي يُوسُفَ رَحِمَهُ اللهُ قَضَاءُ الْأَرْبَعِ نو د امام ابو یوسف رَحِمَهُ الله پر قول د څلور سره وو رکعتونو قضاء واجب ده وَكَذَا عِنْدَ أَبِي حَنِيفَةَ رَحِمَهُ اللهُ او همدا حکم د امام ابو حنیفه رَحِمَهُ الله په نېز دی لِأَنَّ التَّحْرِيمَةَ بَاقِيَةٌ ځکه چي تحریمه پاته ده وَعِنْدَ مُحَمَّدٍ رَحِمَهُ اللهُ عَلَيْهِ قَضَاءُ الْأُولَيَيْنِ او د امام محمد رَحِمَهُ الله په نېز پر ده د اولو دوو رکعتونو قضاء واجب ده لِأَنَّ التَّحْرِيمَةَ قَدِ ارْتَفَعَتْ عِنْدَهُ ځکه چي د امام محمد رَحِمَهُ الله په نېز تحریمه ختمه سوه وَقَدْ أَنْكَرَ أَبُو يُوسُفَ رَحِمَهُ اللهُ هَذِهِ الرِّوَايَةَ عَنْهُ او امام ابو یوسف رَحِمَهُ الله له امام ابو حنیفه رَحِمَهُ الله څخه د دې روایت انکار وکړی وَقَالَ: رَوَيْتُ لَكَ عَنْ أَبِي حَنِيفَةَ رَحِمَهُ اللهُ أَنَّهُ يَلْزَمُهُ قَضَاءُ رَكْعَتَيْنِ او (امام محمد رَحِمَهُ الله ته یې) وویل: چي ما تا ته د امام ابو حنیفه رَحِمَهُ الله دا روایت بیان کړی وو (چي په دې صورت کي) پر لمونځ گزاره د دوو رکعتونو قضاء واجب ده وَمُحَمَّدٌ رَحِمَهُ اللهُ ● لَمْ يَرْجِعْ عَنْ رِوَايَتِهِ عَنْهُ لیکن امام محمد رَحِمَهُ الله د امام ابو حنیفه د دې روایت له رانقل کولو څخه رجوع نه وکړه.

**تشریح:** په دې عبارت کي درې صورتونه ذکر سوي دي: (۱) یو دا که لمونځ گزاره په اولو دواړو رکعتونو کي او له آخري دوو رکعتونو څخه یې په یوه رکعت کي قرائت کړی وي، په دې صورت کي په اتفاق سره دآخري دوو رکعتونو قضاء واجب ده. (۲) دویم دا چي په آخري دواړو رکعتونو کي او له اولو دوو څخه یې په یوه رکعت کي قرائت کړی وي، نو په دې صورت کي په اتفاق سره د اولو دوو قضاء واجب ده. (۳) دریم دا چي له اولو دوو څخه یې په یوه کي او له آخري دوو څخه یې هم په یوه کي قرائت کړی وي، نو په دې صورت کي د امام ابو یوسف رَحِمَهُ الله په نېز د څلور سره وو رکعتونو قضاء واجب ده، همدا د امام اعظم رَحِمَهُ الله مذهب دی، او د امام محمد رَحِمَهُ الله په نېز د اولو دوو رکعتونو قضاء واجب ده.

**د امام محمد دلیل:** دا دی چي له اولو دوو څخه په یوه رکعت کي د قرائت په پرېښوولو سره تحریمه ختمه سوه. یعني تحریمه باطله سوه، ځکه چي د امام محمد رَحِمَهُ الله په نېز د اولي شفعي په یوه رکعت کي د قرائت په پرېښوولو سره تحریمه باطلیږي، نو چي تحریمه باطله سوه، نو د دویمي شفعي شروع کول هم صحیح نه سو، او کله چي د دویمي شفعي شروع کول صحیح نه سو، نو د دې قضاء به هم واجب نه وي، بلکي صرف د اولي شفعي قضاء به واجب وي.

**د امام ابو یوسف دلیل:** څرنګه چي د امام ابو یوسف رَحِمَهُ الله په نېز د قرائت په پرېښوولو سره تحریمه نه باطلیږي، نو ځکه د ده په نېز په دویمه شفعه شروع کول صحیح دي، نو څرنګه چي دلته د دواړو شفعو په یوه یوه رکعت کي قرائت پرېښوول سوی دی، نو ځکه به د دواړو شفعو یعني د څلور سره رکعتونو قضاء واجب وي.

وقد أنكر أبو يوسف هذه الرواية الخ صاحب د هدايې له دې ځایه د امام ابو حنیفه رَحِمَهُ الله مذهب د امام ابو یوسف رَحِمَهُ الله په واسطه سره بیان کړی دی چي د امام ابو حنیفه رَحِمَهُ الله په نېز هم د څلورو رکعتونو قضاء واجب ده، لیکن امام محمد رَحِمَهُ

● القول الراجح: قول محمد رَحِمَهُ الله، كذا في رد المحتار ج:١، ص:٥١٣. [القول الراجح، ج١، ص: ١١٠]

الله چي کله له جامع صغير څخه فارغه سو، نو جامع صغير يې په امام ابو يوسف رَحِمَهُ الله واورېدی، پر دې موقع امام ابو يوسف رَحِمَهُ الله امام محمد رَحِمَهُ الله ته وويل چي ما ستامخ ته له امام صاحب رَحِمَهُ الله څخه دا روايت نه وو رانقل کړی، بلکي ما ستامخ ته له امام صاحب رَحِمَهُ الله څخه دا روايت رانقل کړی وو چي پر دې سري د دوو رکعتو قضاء واجب ده، امام محمد رَحِمَهُ الله وويل چي داسي نه ده، بلکي تا ماته همدغه روايت رانقل کړی چي د امام صاحب رَحِمَهُ الله په نېز هم پر دې سري د څلورو رکعتو قضاء واجب ده.

خو امام محمد رَحِمَهُ الله خپل پر يادابنت داسي کلک ولاړ وو چي د امام ابو يوسف رَحِمَهُ الله تر انکار وروسته يې هم رجوع نه وکړه، ځکه چي د ده قول د امام صاحب د اصل موافق دی کوم چي مخکي تېر سو، د اصل عبارت دا دی: وعند أبي حنيفة رَحِمَهُ الله ترك القراءة في الأولين يوجب بطلان التحريمة وفي إحداهما لا يوجب، لأن كل شفع من التطوع صلاة على حدة، د دې اصل په رڼا کي تاسو خپله فيصله کولای سئ چي د امام محمد رَحِمَهُ الله دريځ صحيح دی او که د امام ابو يوسف رَحِمَهُ الله انکار؟ (تر لږ غور وروسته به درته معلومه سي چي د امام محمد رَحِمَهُ الله خبره بالکل صحيح ده).

**راجح قول:** په پورتنۍ مسئله کي راجح قول د امام محمد رَحِمَهُ الله دی، قال العلامة بن الهمام رَحِمَهُ الله واعتمدت المشائخ رواية محمد رَحِمَهُ الله مع تصريحهم في الاصول. (فتح القدير ج:۱، ص:۳۹۹). [القول الراجح ج:۱، ص:۱۱۰]

## فقط په يوه رکعت کي د قرائت کولو حکم (د فقهاؤ قولونه)

**وَلَوْ قَرَأَ فِي إِحْدَى الْأُولَيَيْنِ** او که لمونځ گزاره (فقط) له اولو دوو رکعتو نو څخه په يوه رکعت کي قرائت وکړی **لَا غَيْرُ** او په نورو کي يې نه وکړی **قَضَى أَرْبَعًا عِنْدَهُمَا** نو د شيخينو رَحِمَهُمَا الله په نېز به هغه د څلورو رکعتونو قضاء راوړي **وَعِنْدَ مُحَمَّدٍ رَحِمَهُ اللهُ ● قَضَى رَكْعَتَيْنِ** او د امام محمد رَحِمَهُ الله په نېز به د دوو رکعتونو قضاء راوړي **وَلَوْ قَرَأَ فِي إِحْدَى الْأُخْرَيَيْنِ** او که هغه (فقط) له آخري دوو رکعتونو څخه په يوه کي قرائت وکړی **لَا غَيْرُ** او په نورو کي يې نه وکړی **قَضَى أَرْبَعًا عِنْدَ أَبِي يُوسُفَ رَحِمَهُ اللهُ** نو د امام ابو يوسف رَحِمَهُ الله په نېز به د څلورو رکعتونو قضاء راوړي **وَعِنْدَهُمَا رَكْعَتَيْنِ** او د طرفينو رَحِمَهُمَا الله په نېز به د دوو رکعتونو قضاء راوړي **قَالَ: وَتَفْسِيرُ قَوْلِهِ عَلَيْهِ الصَّلَاةُ وَالسَّلَامُ ● لَا يُصَلِّي بَعْدَ صَلَاةٍ مِثْلُهَا** امام محمد رَحِمَهُ الله (په جامع صغير کي) وايي: چي د نبي ﷺ د دې قول: لا يصلى بعد صلاة مثلها تفسير دا دی **يَعْنِي رَكْعَتَيْنِ بِقِرَاءَةٍ** يعني دوه رکعته به د قرائت سره کوي **وَرَكْعَتَيْنِ بِغَيْرِ قِرَاءَةٍ** او دوه رکعته به بغير له قرائته کوي **فَيَكُونُ بَيَانُ فَرْضِيَّةِ الْقِرَاءَةِ فِي رَكَعَاتِ النَّفْلِ كُلِّهَا** نو دا حديث به د نفلو په ټولو رکعتونو کي د قرائت د فرض کېدلو بيان وي.

**تشريح:** په دې عبارت کي هم د احنافو پر اُصولو دوې متفرع سوي مسئلې بيان سوي دي:

(۱) اوله مسئله دا ده که لمونځ گزاره په څلور رکعتيز نفلي لمانځه کي صرف د اولي شفعي په يوه رکعت کي قرائت وکړی، نو د شيخينو رَحِمَهُمَا الله په نېز پر ده د څلور سره وو رکعتونو قضاء واجب ده، دليل يې دا دی چي د اولي شفعي په

---

● القول الراجح: قول محمد رَحِمَهُ الله، كذا في رد المحتار ج:۱، ص:۵۱۳. [القول الراجح، ج:۱، ص:۱۱۲]

● تخريج: أخرجه ابو داؤد في كتاب الصلوة، باب اذا صلى في جماعة ثم ادرك جماعة، حديث رقم:۵۷۹.

یوه رکعت کې د قرائت په کولو سره د شیخینو په نېز د دې سرې تحریمه پاته ده. نو د دویمې شفعې شروع کول هم صحیح سو، او څرنګه چې دلته لمونځ ګزاره په یوه شفعه کې هم پوره قرائت کړی نه دی، نو ځکه به پر ده د څلورو سره وو رکعتونو قضاء واجب وي، لیکن د امام محمد رَحِمَهُ الله په نېز پر ده صرف د دوو رکعتونو قضاء واجب ده، ځکه کله چې یې په اوله شفعه کې پوره قرائت نه وکړی، نو د دویمې شفعې شروع کول صحیح نه سو، نو په دې وجه به صرف د اولې شفعې قضاء واجب وي.

(۲) دویمه مسئله دا ده چې که لمونځ ګزاره په آخري دوو رکعتونو کې صرف په یوه رکعت کې قرائت وکړی او په اولو دوو رکعتونو کې یې په یوه رکعت کې هم قرائت نه وکړی، نو په دې صورت کې د امام ابو یوسف رَحِمَهُ الله په نېز پر ده د څلورو رکعتونو قضاء واجب ده، ځکه په اولو رکعتو کې له قرائت څخه بغیر هم د امام ابو یوسف رَحِمَهُ الله په نېز د دې سرې تحریمه پاته ده، او د ده لپاره د دویمې شفعې شروع کول صحیح دي، نو ځکه به پر ده د ټولو رکعتونو قضاء واجب وي، او څرنګه چې د طرفینو په نېز په اوله شفعه کې د قرائت په پرېښوولو سره تحریمه باطلیږي، نو د دویمې شفعې شروع کول یې صحیح نه سو، نو کله چې د هغې شروع کول صحیح نه سو، نو قضاء به یې هم واجب نه وي. بلکې صرف د اولې شفعې قضاء به د قرائت پرېښوولو په وجه واجب وي.

وقال وتفسیر الخ فرمایي چې د امام محمد په نظر کې د نبي ﷺ د فرمان لا یصلی بعد صلاة مثلها (چې هیڅوک دې د فرضې لمانځه په څېر بل لمونځ نه کوي) مفهوم همدغه دی چې د نفلو او سنتو په ټولو رکعتونو کې قرائت فرض دی، یعني د حدیث مطلب دا دی چې د فرضو په څېر دې هیڅوک داسې څلور رکعته تر فرضو وروسته یا مخکې نه کوي چې دوه رکعته یې په قرائت وکړي، او دوه رکعته یې له قرائت څخه خالي کړي، بلکې د نفلو او سنتو په ټولو رکعتونو کې به قرائت کوي، نو له دې حدیث څخه د نفلو او سنتو په ټولو رکعتونو کې د قرائت فرضیت ثابت سو.

**راجح قول:** په پورتنۍ مسئله کې راجح قول د امام محمد رَحِمَهُ الله دی، وقال فی الهندیة: أی لو ترك القرأة فی رکعة أو رکعتین فسد ذالك الشفع، (الهندیة ج:۱، ص:۱۱۳). [القول الراجح، ج:۱، ص:۱۱۱]

## بې له عذره نفلي لمونځ په ناستې کول

وَيُصَلِّي النَّافِلَةَ قَاعِدًا مَعَ الْقُدْرَةِ عَلَى الْقِيَامِ او لمونځ ګزاره پر ولاړې د قدرت سره سره په ناستې نفل کولای سي لِقَوْلِهِ عَلَيْهِ الصَّلَاةُ وَالسَّلَامُ* ځکه نبي ﷺ فرمایلي دي صَلَاةُ الْقَاعِدِ عَلَى النِّصْفِ مِنْ صَلَاةِ الْقَائِمِ د ناست سړي د لمانځه ثواب د ولاړ سړي د لمانځه (له ثواب) څخه نیمی دی وَلِأَنَّ الصَّلَاةَ خَيْرٌ مَوْضُوعٌ او په دې وجه هم چې لمونځ غوره موضوع ده (یعني هر وخت تر لاسه کېدونکې نېکي ده) وَرُبَّمَا يَشُقُّ عَلَيْهِ الْقِيَامُ او کله کله پر لمونځ ګزاره په ولاړه کې تکلیف وي فَيَجُوزُ لَهُ تَرْكُهُ نو د هغه لپاره ولاړه پرېښوول جائز دي كَيْ لَا يَنْقَطِعَ عَنْهُ د دې لپاره چې له هغه څخه دا غوره موضوع پاته نه سي وَاخْتَلَفُوا فِي كَيْفِيَّةِ الْقُعُودِ او فقهاؤ د ناستې په کیفیت (څرنګوالي) کې اختلاف کړی دی وَالْمُخْتَارُ أَنْ يَقْعُدَ كَمَا يَقْعُدُ فِي حَالَةِ التَّشَهُّدِ لیکن مختاره (غوره) دا ده چې داسې به کېنې لکه څرنګه چې په تشهد کې کېنې لِأَنَّهُ عُهِدَ مَشْرُوعًا فِي الصَّلَاةِ ځکه چې د لمانځه په حالت کې همدغه ناسته مشهوره او مشروع ده.

---

* تخریج: أخرجه ابو داؤد فی کتاب الصلاة، باب فی صلاة القاعد، حدیث رقم: ۹۵۰، ۹۵۱.

تشريح: صورت د مسئلې: دا دی که يو سړی پر قيامه يعني پر ولاړه او د ډېدلو قدرت لري، نو بيا هم د هغه لپاره په ناستې نفل کول صحيح او جائز دي. ځکه نبي ﷺ د ناستي د لمانځه ثواب د ولاړي د لمانځه په مقابله کې نيم ګرځولی دی. او دا خبره فيصله سوې ده چې پر ولاړي د قدرت سره سره نفلي لمونځ په ناستې کول بې له کراهته جائز او صحيح دی، خو د دې ثواب به نيمی وي په نسبت د ولاړي و لمانځه ته.

عقلي دليل: دا دی چې نفلي لمونځ خير موضوع ده، يعني بنده دا ښکي هر وخت تر لاسه کولای سي او هر وخت ده ته د نفلي لمونځ اجازه سته، او د دې لپاره هيڅ يو ځانګړی وخت تاکل سوی نه دي، لنډه دا چې نفلي لمونځ واجب نه دی. او کوم شی چې داسي وي نو په هغه کې به هيڅ يو داسي شرط نه لګيږي چې هغه د دې د پرېښوولو سبب سي، ځکه کوم شی چې د خير د پرېښوولو سبب وي هغه خير نه سي کېدلای، او د ولاړي شرط لګول د نفلو د پرېښوولو سبب جوړيږي، ځکه ډېر کرته پر لمونځ ګزاره ولاړه بوج وي، نو که ولاړه د نفلي لمانځه لپاره شرط سي، نو زياتره کمزوري خلک به د ولاړي د بوج او تکليف په وجه نفل پرېږدي، حال دا چې نفل خير موضوع ده، يعني په ټولو وختونو کې تر لاسه کېدونکي ښکي ده، نو په دې وجه د نفلي لمانځه لپاره ولاړه او قيامه شرط نه سوه.

واختلفوا الخ دې د دې حاصل دا دی چې په ناستې سره د لمونځ کولو په وخت کې د ناستي د څرنګوالي او کيفيت په اړه د علماؤ رايې مختلفې دي، له امام محمد رَحِمَهُ الله څخه په دې باره کې دوه روايتونه دي: (۱) اول روايت دا دی چې څرنګه لمونځ ګزار ته آسانه وي، هغسي دي کښېني، ځکه کله چې ولاړه پاته سي، نو اوس په ناسته کې د زړه د خوښي اجازه سته، او د ناستي يو ځانګړي صفت ته به نه کتل کيږي. (۲) دويم روايت دا دی چې لمونځ ګزار دي چلرزانو کښېني، ځکه چې دا برابره ناسته ده، له امام ابو يوسف رَحِمَهُ الله څخه روايت دی چې د احتباء په ډول دي کښېني، ځکه چې نبي ﷺ به د خپل ژوند مبارک په آخري ورځو کې هم د احتباء په ډول کښېنستی، د احتباء کيفيت دا دی چې دواړه کوناټي دي پر مځکه کښېږدي، او دواړه زنګونان دي ودروي.

او له امام زفر رَحِمَهُ الله څخه روايت دی چې داسي دي کښېني لکه څرنګه چې په تشهد کې کښېني، ځکه چې په دې کيفيت سره ناسته په لمانځه کې مشروع ده، او په دې کې زياته خشوع ده، او همدا قول فقيه ابو الليث او شمس الائمة السرخسي او مصنف رَحِمَهُمُ الله هم اختيار کړی دی. (عنايه ج:۱، ص:۴۷۹)

## د ولاړي په حالت کې نفل شروع کول او بيا وروسته کښېنستل

وَإِنْ افْتَتَحَهَا قَائِمًا او که يو چا نفل د ولاړي په حالت کې شروع کړه ثُمَّ قَعَدَ مِنْ غَيْرِ عُذْرٍ او بيا بې له عذره کښېنستی جَازَ عِنْدَ أَبِي حَنِيفَةَ رَحِمَهُ اللهُ نو د امام ابو حنيفه رَحِمَهُ الله په نېز جائز دي وَهَذَا اسْتِحْسَانٌ او دا استحسان دی وَعِنْدَهُمَا لَا يُجْزِئُهُ او د صاحبينو رَحِمَهُمَا الله په نېز جائز نه دي وَهُوَ قِيَاسٌ او دا قياس دی لِأَنَّ الشُّرُوعَ مُعْتَبَرٌ بِالنَّذْرِ ځکه چې شروع پر نذر قياس کړی سوې ده لَهُ أَنَّهُ لَمْ يُبَاشِرْ الْقِيَامَ فِيمَا بَقِيَ د امام ابو حنيفه رَحِمَهُ الله دليل دا دی چې لمونځ ګزاره په پاته لمانځه کې ولاړه نه وکړه وَلَمَّا بَاشَرَ صَحَّ بِدُونِهِ او په کوم لمانځه کې چې يې ولاړه وکړه هغه هم بغير له ولاړي صحيح دي بِخِلَافِ النَّذْرِ په خلاف د نذر لِأَنَّهُ الْتَزَمَهُ نَصًّا ځکه چې لمونځ ګزاره (په نذر کې پر ځان) صراحتاً ولاړه

---

[۴] القول الراجح: قول ابي حنيفة رَحِمَهُ الله، كذا في رد المحتار ج:۱، ص:۵۱۵. [القول الراجح، ج:۱، ص:۱۱۲]

لازمه کړه حَتّٰی لَوْلَمْ يَنُصَّ عَلَى الْقِيَامِ تر دې که نذر کونکی د ولاړې صراحت نه وکړي لَا يَلْزَمُهُ الْقِيَامُ عِنْدَ بَعْضِ الْمَشَايِخِ رَحِمَهُمُ اللهُ نو د بعضې مشائخو رَحِمَهُمَا اللهُ په نېز پر هغه ولاړه نه لازمیږي.

**تشریح: مسئله:** دا ده که يو سړي نفلي لمونځ په ولاړې شروع کړی، بیا بې له عذره کښېنستی، نو دا د امام ابو حنیفه رَحِمَهُ الله په نېز جائز دي، او د صاحبینو رَحِمَهُمَا الله په نېز ناجائز دي، د امام صاحب حکم استحساني دی، او د صاحبینو رَحِمَهُمَا الله حکم قیاسي دی.

**د صاحبینو دلیل:** قیاس دی، يعني دوی د نفلي لمانځه شروع کول پر نذر کړی سوي لمانځه قیاسوي، يعني که يو چا دا نذر وکړی چې په ولاړه به لمونځ کوم، نو د هغه لپاره په ناسته لمونځ کول جائز نه دي، همدا ډول که چا په ولاړه نفلي لمونځ شروع کړی نو د هغه لپاره به هم په ناستې سره جائز نه وي.

**د امام صاحب دلیل:** دا دی چې په نفلي لمانځه کې پر لمونځ کونکي ولاړه (قیامه) واجب نه ده، لهذا پر ولاړې د قدرت سره سره د ولاړې پرېښوول هم جائز دي، او دلته لمونځ کزاره د لمانځه په يو څه حصه کې ولاړه پرې ايښې ده، لیکن تاسو خو وګورئ چې کومه حصه يې په ولاړې اداء کړې ده، هغه هم بغیر له ولاړې جائز ده، ځکه چې ټوله نفلي لمونځ هم بې ولاړې کول جائز دي، نو کله چې ټوله نفلي لمونځ بې ولاړې جائز دی، نو د ناستې او د ولاړې په مجموعې سره خو به په طريقه اولیٰ جائز وي.

**دلیل جواب:** بخلاف النذر الخ له دې ځایه د صاحبینو د قیاس جواب ورکوي، فرمايي: د دې په خلاف نذر دی، ځکه چې د نذر په صورت کې هغه صراحتاً او په ښکاره توګه پر ځان ولاړه لازمه کړې ده، نو نذر به صرف د ولاړې په حالت کې پوره کیږي، او په نفلو کې خو هغه هیڅ يو شی پر ځان لازم کړی نه دي، نو ځکه به په نفلو کې پر هغه ولاړه لازمه نه وي، همدغه وجه ده چې بعضې مشائخ چې په هغو کې فخر الاسلام بزدوي رَحِمَهُ الله هم دی تر دې اندازې پورې وايي: چې که يو لمونځ کزاره په نذر منل سوي لمانځه کې د ولاړې وضاحت نه وکړي، نو د هغه لپاره ولاړه ضروري نه ده.

**راجح قول:** په پورتنۍ مسئله کې راجح قول د امام صاحب رَحِمَهُ الله دی، قال في الهندية: وإذا افتتح التطوع قائماً ثم أراد أن يقعد من غير عذر فله ذالك عند أبي حنيفة رَحِمَهُ الله إستحساناً. كذا في المحيط (الهندية ج۱، ص۱۱۴). [القول الراجح ج۱، ص۱۱۲]

## پر سپرلي د نفل کولو حکم (او د فقهاؤ قولونه)

وَمَنْ كَانَ خَارِجَ الْمِصْرِ او کوم سړی چې له ښار څخه ډباندي وي يَتَنَفَّلُ عَلَى دَابَّتِهِ هغه پر خپل سپرلي نفل کولای سي إِلَى أَيِّ جِهَةٍ تَوَجَّهَتْ کوم طرف ته چې هم سپرلي مخ کړي يُومِئُ إِيمَاءً (او) اشاره به کوي لِحَدِيثِ • ابْنِ عُمَرَ رَضِيَ اللهُ عَنْهُمَا د ابن عمر رَضِيَ اللهُ عَنْهُمَا د حدیث په وجه قَالَ: رَأَيْتُ رَسُولَ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ هغه فرمايي: ما رسول الله ﷺ وليدی يُصَلِّيْ عَلَى حِمَارٍ چې پر خره باندي يې لمونځ کوی وَهُوَ مُتَوَجِّهٌ إِلَى خَيْبَرَ په داسې حال کې چې نبي ﷺ د خیبر پر طرف روان وو يُومِئُ إِيمَاءً او په اشاره سره يې لمونځ کوی وَلِأَنَّ النَّوَافِلَ غَيْرُ مُخْتَصَّةٍ بِوَقْتٍ او په دې وجه هم چې نفلي لمونځونه د وخت سره خاص نه دي فَلَوْ أَلْزَمْنَاهُ النُّزُولَ وَالْإِسْتِقْبَالَ نو که موږ پر هغه له سپرلي څخه را شوه

• تخریج: أخرجه ابو داؤد في كتاب صلاة المسافر، باب التطوع على الراحلة، حديث رقم: ۱۲۲۶.

کېدل او د قبلې وطرف ته مخ کول لازم کړو تَنْقَطِعُ عَنْهُ النَّافِلَةُ نو له هغه شخصه به نفلي لمونځ پاتـه سي أَوْ يَنْقَطِعُ هُوَعَنِ النَّافِلَةِ يا به له کاروان شخصه جلا سي أَمَّا الْفَرَائِضُ فَمُخْتَصَّةٌ بِوَقْتٍ هر چي فرضي لمونځونه دي نو هغه د وخت سره خاص دي وَالسُّنَنُ الرَّوَاتِبُ نَوَافِلُ او رواتب سنتونه (هم) نفل دي وَعَنْ أَبِيْ حَنِيْفَةَ رحِمَهُ اللهُ او له امام ابو حنيفه رَحِمَهُ الله شخصه روايت دی أَنَّهُ يَنْزِلُ لِسُنَّةِ الْفَجْرِ چي سپور سړی به د سهار د سنتو لپاره (له سپرلي شخصه) را ښکته کیږي لِأَنَّهَا آكَدُ مِنْ سَائِرِهَا ځکه چي دا له نورو ټولو سنتونو شخصه زيات مؤکد دي وَالتَّقْيِيْدُ بِخَارِجِ الْمِصْرِ او (په متن کي) له ښار شخصه د دباندي (يعني د خارج المصر) قيد لګول يَنْفِيْ اِشْتِرَاطَ السَّفَرِ د سفر د شرط نفي کوي وَالْجَوَازَ فِي الْمِصْرِ او په ښار کي (پر سپرلي د نفلو) د جائز کېدلو نفي (هم) کوي وَعَنْ أَبِيْ يُوْسُفَ رَحِمَهُ اللهُ ● أَنَّهُ يَجُوْزُ فِي الْمِصْرِ أَيْضًا او له امام ابو يوسف رَحِمَهُ الله شخصه روايت دی چي په ښار کي هم (پر سپرلي نفل کول) جائز دي وَوَجْهُ الظَّاهِرِ او د ظاهر الرواية دليل دا دی أَنَّ النَّصَّ وَرَدَ خَارِجَ الْمِصْرِ چي حديث له ښار شخصه د دباندي (نفل کولو) په باره کي راغلی دی وَالْحَاجَةُ إِلَى الرُّكُوْبِ فِيْهِ أَغْلَبُ او له ښار شخصه دباندي سپرتيا ته زياته اړتيا سته.

**اللغات:** ﴿يُوْمِئُ﴾ د افعال د باب مضارع صيغه ده: اشاره کول. ﴿السُّنَنُ الرَّوَاتِبُ﴾ سنت مؤکده. ﴿آكَدُ﴾ د اسم تفضيل صيغه ده: زيات مؤکد، زيات ټينګ. ﴿رُكُوْبٌ﴾ د فتح مصدر دی: سپرتيا، سپرېدل.

**تشريح: صورت د مسئلې:** دا دی که يو سړی له ښار شخصه دباندي وو، او پر سپرلي يا داسي بل شي سپور وو، نو د ده لپاره دا جائز دي چي پر سپرلي د ناستي په حالت کي نفل وکړي، او پر ده نه ولاړه او سجده ضروري ده، او نه مخ پر قبله کېدل ضروري دي، بلکي کوم طرف ته چي د ده سپرلی روان وو، هغه طرف د ده قبله ده، او د رکوع او سجدو پر ځای دي دا سړی اشاره کوي. د دې په باره کي تر ټولو ښېن او ښکاره دليل دا ابن عمر رَضِيَ اللهُ عَنْهُمَا هغه حديث دی چي په هغه کي پر سپرلي د نبي ﷺ نفل کول ثابت دي، او په اشاري سره د رکوع او سجدې کول هم ثابت دي، او دا حکم مطلق دی يعني که عذر وي، که نه وي، په دواړو حالتونو کي پر سپرلي نفل کول جائز دي.

**عقلي دليل:** په دې باره کي عقلي دليل دا دی چي د نفلو لپاره يو ځانګړی او ټاکلی وخت نسته، بلکي هر وخت د دې اجازه سته، نو اوس که موږ د سپور سړي لپاره له سپرلي شخصه را ښکته کېدل او د قبلې پر طرف مخ کول لازم وګرځوو، نو له هغه شخصه به نفل پاتـه سي، په دې توګه چي درېدل او را ښکته کېدل به د ده لپاره ستونزمن او بوج وي، او د لازموالي په وجه به هغه پر دې شيانو قدرت نه لري، يا که هغه را ښکته سي او مخ پر قبله سي نو له کاروان والا شخصه به شاته پاتـه سي، نو په دې وجه د سپرتيا په حالت کي نه را ښکته کېدل لازم دي او نه مخ پر قبله کېدل لازم دي، بلکي کوم طرف ته چي هم د سپرلي مخ وي، د سپور لپاره هغه طرف ته د نفلي لمونځ کولو اجازه سته.

وأما الفرائض الخ له دې ځايه دا را ښيي چي نفل مطلقًا پر سپرلي جائز دي، هغه که عذر وي، که نه وي، لېکن په فرضو کي دا اختيار نسته، بلکي د فرضو مسئله دا ده چي که عذر وي، مثلًا د يو درنده يا دښمن ېېره وي، يا د غلا او ډاکې

---

● القول الراجح: قول أبي حنيفة رَحِمَهُ الله أنه لا يجوز النفل على الدابة في المصر، وقال العلامة ابن نجيم رَحِمَهُ الله: وقيد بخارج المصر لانه لا يجوز التنفل عليها في المصر البحر الرائق ج:٢، ص:٦٢، وكذا في رد المحتار ج:١، ص:٥١۶. [القول الراجح، ج:١، ص:١١٢]

اندېښنه وي، یا سپور سړی دېر سپین ږیری (بوډا) وي، او په خپله نه سي سپرېدلی، او بل خپلوونکی یې هم نه وي، نو څرنګه چې په دې ټولو صورتونو کي عذر سته، نو پر سپرلۍ په ناستي سره فرض کول جائز دي، او د دې د جائز والي دلیل د قران کریم دا اعلان دی: فَإِنْ خِفْتُمْ فَرِجَالًا أَوْ رُكْبَانًا. (یعني که تاسو ته د یو شي بېره وي نو په ولاړه یا د سپرتیا په حالت کي لمونځ کوئ)، له دې آیت څخه همدغه خبره ښکاره سوه چي د عذر په وخت کي پر سپرلۍ د فرضي لمونځ اجازه سته، او بې له عذره یې هیڅ اجازه نسته.

والسنن الرواتب الخ فرمایي چي مؤکد سنتونه هم د نفلو په درجه کي دي، نو څرنګه چي بې له عذره او د عذر سره پر سپرلۍ د نفلو اجازه سته، همدارنګه د سنتو اجازت هم سته، خو له امام اعظم رَحِمَهُ الله څخه روایت دی چي څرنګه د سهار سنت له ټولو سنتو څخه دېر مهم او دېر مؤکد دي، نو ځکه که د سهار سنت پر سپرلۍ نه وکړی سي نو دېره به غوره او افضله وي، خو هسي هم په جواز کي یې شک و شبهه نسته، خبره صرف په افضیلت کي ده.

والتقیید الخ له دې ځایه دا را ښیي چي په قدوري کي چي کوم د خارج المصر (یعني له ښار څخه د دباندي) قید لګول سوی دی، هغه قید احترازي دی، او د هغه قید دوه مقصده ده: (۱) اول مقصد دا چي له ښار څخه دباندي پر سپرلۍ مطلقاً نفلي لمونځ جائز دی، هغه که سپور سړی مقیم وي او که مسافر وي، (۲) دوېم مقصد دا چي په ښار کي پر سپرلۍ د نفلي لمونځ جواز نسته، ځکه چي له ښار څخه دباندي پر سپرلۍ چي کوم د نفلو جواز دی هغه خلاف قیاس له نص څخه ثابت دی، او د ښار څخه دباندي حصه د ښار په حکم کي هم نه ده، نو په ښار کي به دته پر قیاس عمل کیږي، او له ښار څخه دباندي به خلاف القیاس پر نص عمل کیږي.

وعن أبي یوسف الخ له امام ابو یوسف رَحِمَهُ الله څخه یو روایت دا دی چي په ښار او آبادۍ کي هم پر سپرلۍ نفل جائز دي، ځکه چي له نبي ﷺ څخه په مدینه منوره کي پر سپرلۍ نفل ثابت دی، خو د دې جواب دا دی چي دا عمل دېر شاذ او نادر دی، او ممکنه ده چي له دې څخه به ماسوا هیڅکله هم نبي ﷺ داسي کړي نه وي، نو په دې سره دلیل نیول، او په ښار کي پر سپرلۍ د نفلو اجازه ورکول صحیح نه دي. د دې په خلاف د ظاهر الروایه دلیل دا دی چي نص یعني دابن عمر رَضِيَ اللهُ عَنْهُمَا حدیث له ښار څخه د دباندي په باره کي وارد سوی دی، او له ښار څخه دباندي د سپرلۍ ضرورت زیات پرېوځي، نو ځکه به نص د ما ورد به النص سره خاص وي، او له ښار یا آبادي څخه به دباندي د دې اجازه نه وي.

## د نفلو په دوران کي له سپرلۍ څخه راشوه کېدل

فَإِنِ افْتَتَحَ التَّطَوُّعَ رَاكِبًا نو که یو سړي پر سپرلۍ نفلي لمونځ شروع کړی ثُمَّ نَزَلَ بیا راشوه سو يَبْنِي نو دا سړی به پر هغه لمانځه بناء کوي وَإِنْ صَلَّى رَكْعَةً نَازِلًا ثُمَّ رَكِبَ او که یو رکعت یې کښته پر ځمکه وکړی او بیا سپور سو إِسْتَقْبَلَ نو له سره به لمونځ کوي لِأَنَّ إِحْرَامَ الرَّاكِبِ انْعَقَدَ مُجَوِّزًا لِلرُّكُوعِ وَالسُّجُودِ ځکه چي د سپور کس تحریمه په داسي حال کي منعقده سوه چي هغه د رکوع او سجدې جائز ګرځوونکې وه لِقُدْرَتِهِ عَلَى النُّزُولِ ځکه چي دا سړی پر شوه کېدلو قادره وو فَإِنْ أَتَى بِهِمَا صَحَّ نو کله چي ده دواړه اداء کړه نو صحیح دي وَإِحْرَامُ النَّازِلِ انْعَقَدَ لِوُجُوبِ الرُّكُوعِ وَالسُّجُودِ او (پر ځمکه) د لاندي سړي تحریمه د رکوع او سجدې د واجبولو لپاره منعقده سوه فَلَا يَقْدِرُ عَلَى تَرْكِ مَا لَزِمَهُ مِنْ غَيْرِ عُذْرٍ نو هغه بې له عذره د هغه شي پر پرېښوولو قادر نه دی کوم چي یې (پر ځان) لازم کړی دی وَعَنْ أَبِي

يُوْسُفَ رَحِمَهُ اللّٰهُ • أَنَّهُ يَسْتَقْبِلُ إِذَا نَزَلَ أَيْضًا او له امام ابو يوسف رَحِمَهُ الله څخه روايت دی چي کله هغه له سپرلي څخه را شوه سي نو هم به له سره لمونځ کوي وَكَذَا عَنْ مُحَمَّدٍ رَحِمَهُ اللّٰهُ إِذَا نَزَلَ بَعْدَ مَا صَلّٰى رَكْعَةً او همدارنګه له امام محمد رَحِمَهُ الله څخه روايت دی چي کله تر يوه رکعت کولو وروسته را شوه سي (نو له سره به لمونځ کوي) وَالْأَصَحُّ هُوَالْأَوَّلُ وَهُوَالظَّاهِرُ لېکن زيات صحيح هغه اول روايت يعني ظاهر الرواية دی.

**اللغات:** ﴿إحرام﴾ تکبير تحريمه. ﴿إِسْتَقْبَلَ﴾ د استفعال د باب ماضي صيغه ده: مخامخ کېدل. له نوي سره شروع کول. له شروع څخه کول.

**تشريح: صورت د مسئلې:** دا دی که يو سړي پر سپرلي نفلي لمونځ شروع کړی، او تر يوه رکعت کولو وروسته را شوه سو، نو اوس به دا سړی پر هغه لمانځه بناء کوي، يعني هغه لمونځ به کوي، او له شروع څخه د لمانځه کولو ضرورت نسته، د دې په خلاف که يو سړي پر ځمکه نفلي لمونځ شروع کړی، او تر يوه رکعت کولو وروسته پر سپرلي سپور سو، نو اوس د هغه لپاره دغه لمونځ پوره کول صحيح نه دي، بلکې پر هغه له شروع څخه د دې لمانځه کول ضروري دي.

**دليل:** له دليل څخه مخکې يوه مقدمه په ذهن کې ونيسئ، مقدمه دا ده چي د بعضې لمانځه بناء کول پر بعضې لمانځه باندې هغه وخت جائز ده کله چي دواړو ته يوه تحريمه شامله وي، او که دواړو ته يوه تحريمه شامله نه وه، نو بناء جائز نه ده.

اوس دليل دا سو چي د سپرتيا په حالت کې چي کومه تحريمه تړل سوې ده، هغه د رکوع او سجدې اشاره هم جائز کوي او له اشارې څخه ملسوا په خپله رکوع او سجده هم جائز کوي، په دې توګه چي که دا سړی د لمانځه له باطلونکي عمل څخه بغير له سپرلي څخه را شوه سي او په رکوع او سجده سره لمونځ وکړي، نو اوس چي ده کوم لمونځ پر سپرلي کړی دی، او کوم چي يې لاندې په رکوع او سجده سره کړی دی، دواړو ته يوه تحريمه شامله ده، نو کله چي دواړو ته يوه تحريمه شامله ده نو د يوه بناء پر بل باندې هم جائز ده، خو کومه تحريمه چي پر ځمکه تړل سوې ده، هغه فقط د رکوع او سجدې لپاره منعقده سوې ده، او فقط رکوع او سجدې ته شامله ده، يعني په دې سره صرف رکوع او سجده واجب سوي ده، اشاره نه ده واجب سوې، ځکه چي دغه سړی کوم چي يې پر ځمکه تحريمه تړلې ده پر دې قادر نه دی چي د لمانځه له باطلونکي عمل څخه بغير سپور سي او اشاره وکړي، او د لمانځه باطلوونکی عمل، عملِ کثير دی، نو کوم لمونځ چي يې په رکوع او سجده سره پر ځمکه کړی دی، او کوم لمونځ چي يې د سپرتيا په حالت کې په اشاره اداء کړی دی، دې دواړو ته يوه تحريمه شامله نه ده، او کله چي يوه تحريمه دواړو ته شامله نه ده، نو د يوه بناء به پر بل هم جائز نه دي.

**دويم دليل:** د دې مسئلې دليل داسې هم کېدای سي چي په رکوع او سجده سره لمونځ کول اصل دي، او په اشاره سره لمونځ کول فرع او خلافُ الاصل دي، نو اوس ښکاره ده چي د سپور لپاره د راشوه کېدلو په حالت کې لمونځ اداء کول داسې دي لکه چي له ادنىٰ او فرع څخه د اعلىٰ او اصل و طرف ته رجوع کول نو دا عقلاً او شرعاً ممکن او صحيح دي، لېکن د دې په خلاف د لاندې سړي لپاره د سپرتيا په حالت کې لمونځ پوره کول داسې دي لکه له اعلىٰ څخه د ادنىٰ و طرف ته رجوع کول، کوم چي عقلاً او شرعاً نا ممکنه دي، لېکن که يو شرعي عذر وي نو د دې ګنجايش سته، لېکن بې له عذره د دې هيڅ ګنجايش نسته. (شارح احسن الهدايه)

---

• القول الراجح: قول ابی حنيفة رَحِمَهُ الله، كذا فی الدر المختار ج:١، ص:٥١٧. [القول الراجح، ج:١، ص:١١٥]

وعن أبي يوسف الخ فرمايي چي له امام ابو يوسف رَحِمَهُ الله څخه يو روايت دا دی چي د سپور سړي لپاره هم د راشوه کېدلو په حالت کي لمونځ پوره کول صحيح نه دي، بلکي پر ده هم له شروع څخه لمونځ کول ضروري دي، ځکه چي د سپر تيا په حالت کي د لمانځه شروع کول او بيا د راشوه کېدلو په حالت کي د هغه پوره کول داسي دي لکه پر ضعيف د قوي بناء کول، او پر ضعيف د قوي بناء صحيح نه ده، نو ځکه په دې صورت کي هم د سره لمونځ کول ضروري دي، همدارنګه له امام محمد رَحِمَهُ الله څخه روايت دی چي که سپورسړی تر يوه رکعت وروسته راشوه سوی وي، نو بيا د هغه لپاره بناء کول جائز نه دي، لېکن که د يوه رکعت تر پوره کولو مخکي راشوه سوی وي، نو بيا د هغه لپاره د بناء کولو اجازه سته، لېکن صاحب د هدايې رَحِمَهُ الله فرمايي چي صحيح همدغه ده کوم چي په ظاهر الرواية کي ذکر دي، يعني د سپور لپاره د راشوه کېدلو په حالت کي بناء کول جائز دي، ځکه چي د سپرتيا په حالت کي دا سړی هم پر رکوع او سجده حکماً قادره دی، او د ده تحريمه د راشوه کېدلو (نزول) حالت ته هم شامله ده، نو کله چي د ده تحريمه د نزول حالت ته شامله ده، نو ښکاره ده چي د ده لپاره د هغه اعمالو او افعالو اجازه هم سته کوم چي د نزول په وخت کي کيږي.

**راجح قول:** په پورتنۍ مسئله کي راجح قول د امام صاحب رَحِمَهُ الله دی يعني: که چا د سپرتيا په حالت کي نفل شروع کړه، او وروسته راشوه سو، نو پر هغه لمانځه بناء کول جائز دي، قال العلامة ابن الهمام رَحِمَهُ الله: والأصح هو الظاهر عنهم يعني إذا نزل يبني مطلقاً (فتح القدير ج:١، ص:٢٠٦). [القول الراجح ج:١، ص:١١٥]



## فَصْلٌ فِي قِيَامِ رَمَضَانَ

### (دا) فصل د روژې د مياشتي د تراويحو (په بيان کي) دی

**تشريح:** څرنګه چي تراويح څه غوندي له نفلو څخه مختلف دي، نو ځکه تراويح په جلا فصل کي بيانوي، تراويح له عامو نفلو څخه په يو څو شيانو کي مختلف دي: (١) اول دا چي په عامو نفلو کي جماعت نسته، او په تراويحو کي جماعت سته، (٢) دويم دا چي په نفلو کي د رکعتونو تاکلې او معلومه اندازه نسته، او د تراويحو په رکعتونو کي د رکعتونو اندازه معلومه ده چي شل رکعته دي، (٣) دريم دا چي نفل د يو وخت سره خاص نه دي، او تراويح د روژې د مياشتي سره خاص دي، (٤) څلورم دا چي په ترايحو کي يو وار د قرآن ختمول سنت دي، او په نفلو کي دا سنت نه دي. (عنايه)

التراويح جمع د ترويحة ده، د ترويحة معنى ده: إيصال الراحة آرام رسول (هوسا کول)، نو څرنګه چي په تراويحو کي تر هرو څلور رکعتونو وروسته ترويحه يعني د آرام او ځان هوسا کولو لپاره ناسته کيږي، نو ځکه هرو څلورو رکعتو ته ترويحة ويل کيږي، او ټولو شلو رکعتو ته تراويح ويل کيږي. (عنايه ج:١، ص:٤٨٢)

## د تراویحو شرعي حیثیت او د رکعتونو شمېر

يُسْتَحَبُّ أَنْ يَجْتَمِعَ النَّاسُ فِي شَهْرِ رَمَضَانَ بَعْدَ الْعِشَاءِ مستحب دي چي د روژې په میاشت کي خلک د ماخوستن تر لمانځه وروسته سره راجمع سي فَيُصَلِّي بِهِمْ إِمَامُهُمْ خَمْسَ تَرْوِيحَاتٍ نو امام به دوی ته پنځه ترویحې وکړي كُلُّ تَرْوِيحَةٍ بِتَسْلِيمَتَيْنِ چي هر ترویحه به په دوو سلامونو سره وي وَيَجْلِسُ بَيْنَ كُلِّ تَرْوِيحَتَيْنِ مِقْدَارَ تَرْوِيحَةٍ او د هرو دوو ترویحو په مینځ کي به د یوې ترویحې په اندازه کښېني ثُمَّ يُوتِرُ بِهِمْ بیا به امام (په آخر کي) خلکو ته وتر ورکوي ذَكَرَ لَفْظَ الِاسْتِحْبَابِ امام قدوري رَحِمَهُ الله د استحباب لفظ ذکر کړی دی وَالْأَصَحُّ أَنَّهَا سُنَّةٌ خو صحیح دا ده چي تراویح سنت دي كَذَا رَوَى الْحَسَنُ عَنْ أَبِي حَنِيفَةَ رَحِمَهُ اللهُ همدارنګه حضرت حسن رَحِمَهُ الله له امام ابو حنیفه رَحِمَهُ الله څخه روایت کړي دي لِأَنَّهُ وَاظَبَ عَلَيْهَا الْخُلَفَاءُ الرَّاشِدُونَ ځکه چي خلفاءِ راشدینو پر دې همېشتوب کړی دی وَالنَّبِيُّ عَلَيْهِ الصَّلَاةُ وَالسَّلَامُ بَيَّنَ الْعُذْرَ فِي تَرْكِهِ الْمُوَاظَبَةَ• او نبي ﷺ د همېشتوب د پرېښوولو په باره کي عذر بیان کړی دی وَهُوَ خَشْيَةُ أَنْ تُكْتَبَ عَلَيْنَا او هغه عذر دا ېېره وه چي تراویح به پر موږ فرض سي.

**اللغات:** ﴿ترویحه﴾ څلور رکعته، ﴿خشية﴾ بېره، اندېښنه.

**تشریح:** امام قدوري رَحِمَهُ الله فرمايي چي د روژې په میاشت کي د ماخوستن تر لمانځه وروسته د تراویحو په غرض د خلکو را جمع کېدل سنت دي، او امام به دوی ته پنځه ترویحې ورکوي، او هره ترویحه به په دوو سلامونو سره اداء کوي، او د هرو دوارو ترویحو په مینځ کي به د یوې ترویحې په اندازه د آرام لپاره ناسته کوي، بیا به په آخر کي د وترو لمونځ ورکوي.

ذكر لفظ الخ صاحب د هدایې رَحِمَهُ الله فرمايي چي امام قدوري رَحِمَهُ الله د تراویحو د مشروعیت لپاره د استحباب لفظ ذکر کړی دی، لېکن صحیح دا ده چي تراویح سنت مؤکده دی، او همدا له امام اعظم څخه روایت سوي دي، ځکه چي د تراویحو پر لمانځه خلفاءِ راشدینو (یعني ابو بکر، عمر، علي، عثمان رَضِيَ اللهُ عَنْهُمْ) همېشتوب کړی دی، او د خلفاء راشدینو قول او عمل د امت لپاره حجت او دلیل دی، نبي ﷺ فرمایلي دي: عليكم بسنتي وسنة الخلفاء الراشدين المهديين من بعدي، (یعني اې خلکو! پر تاسو زما او تر ما وروسته د راتلونکو خلیفه ګانو پر سنت عمل کول ضروري دی)، او څرنګه چي خلفاءِ راشدینو پر دې سنت همېشتوب کړی دی، نو ځکه به زموږ لپاره هم پر دې همېشتوب کول او په پابندي سره اداء کول سنت وي.

**سوال:** پاته سوه دا خبره چي کله د تراویحو لمونځ دومره ضروري او مهم دی، او سنت مؤکده دی، نو بیا نبي ﷺ پر دې همېشتوب ولي نه دی کړی.

**جواب:** دا دی چي نبي ﷺ د تراویحو لمونځ په پوره اهتمام سره شروع کړی، خو کله چي نبي ﷺ د خلکو زیات شوق او د تراویحو په باره کي یې د دوی زیاته پملرنه ولیدله، نو تر دوو درځو وروسته یې پرېښوولې او د پرېښوولو وجه یې دا بیان کړه چي ما ته دا اندېښنه ده چي داسي نه پر خلکو د تراویحو لمونځ فرض وګرځول سي.

---

• تخريج: من حديث عائشة رَضِيَ اللهُ عَنْهَا، رواه البخاري في التهجد، باب رقم: ۵ .

**سوال:** کله چې تراويح سنت مؤکده دی، نو امام قدوري رَحِمَهُ الله د ويستحب لفظ ولې استعمال کړی؟

**جواب:** مخکني مشائخو د مستحب لفظ د "ډېر ښه" لپاره استعمالوی، او "ډېر ښه" واجبو ته هم شامل دي، نو ممکنه ده چې د مستحب لفظ دلته په همدغه معنیٰ سره وي، يعنې د تراويحو لپاره را جمع کېدل ډېر ښه او ډېر فضيلت لري، او ډېر فضيلت سنت لري.

**دويم جواب:** دا دی چې امام قدوري رَحِمَهُ الله د خلکو را جمع کېدلو ته مستحب ويلي دي، نه تراويحو ته، نو داسې يې وګڼه چې د روژې په مياشت کې د ماخوستن تر لمانځه وروسته د ترايحو لپاره را جمع کېدل مستحب دي، لېکن د تراويحو لمونځ سنت دی.

**دريم جواب:** دا دی چې له بعضې صحيح روايتونو څخه ثابت دي چې نبي ﷺ تراويح د وترو سره يوولس رکعته کړي دي، او له بعضې روايتونو څخه شل رکعته ثابته دي، نو ځينې حضراتو د دې دواړو حديثنو په مينځ کې داسې موافقت ورکړی دی چې اته رکعت له وترو څخه ماسوا سنت دي، او شل رکعته مستحب دي، نو دلته کېدای سي چې امام قدوري رَحِمَهُ الله د مستحب په لفظ سره پر همدغه قول عمل کړی وي، يعنې شل رکعته په پنځه ترويحو سره مستحب دي:

## د تراويحو د جماعت شرعي حيثيت

وَالسُّنَّةُ فِيهَا الْجَمَاعَةُ او په تراويحو کې جماعت سنت دی لٰكِنْ عَلٰى وَجْهِ الْكِفَايَةِ لېکن د کفايه په توګه دی(يعنې سنت کفايي دی) حَتّٰى لَوِ امْتَنَعَ أَهْلُ الْمَسْجِدِ عَنْ إِقَامَتِهَا تر دې که د يو مسجد (ټوله) خلک تراويح پرېږدي كَانُوا مُسِيئِيْنَ نو (ټوله) به ګنهګاره وي وَلَوْ أَقَامَهَا الْبَعْضُ فَالْمُتَخَلِّفُ عَنِ الْجَمَاعَةِ تَارِكٌ لِلْفَضِيْلَةِ او که بعضو خلکو تراويح وکړې نو شاته پاته کېدونکي (پرېښوونکي) به د فضيلت پرېښوونکي وي لِأَنَّ أَفْرَادَ الصَّحَابَةِ رَضِيَ اللهُ عَنْهُمْ رُوِيَ عَنْهُمُ التَّخَلُّفُ* ځکه چې له ځينو صحابه وو څخه شاته پاته کېدل (پرېښوول) را نقل سوي دي وَالْمُسْتَحَبُّ فِي الْجُلُوْسِ بَيْنَ التَّرْوِيْحَتَيْنِ مِقْدَارُ التَّرْوِيْحَةِ او د دوو ترويحو په مينځ کې د يوې ترويحې په اندازه کښېنستل مستحب دي وَكَذَا بَيْنَ الْخَامِسَةِ وَبَيْنَ الْوِتْرِ همدغه رنګه د پنځمې ترويحې او د وترو په مينځ کې(هم د ترويحې په اندازه کښېنستل مستحب دي) لِعَادَةِ أَهْلِ الْحَرَمَيْنِ ځکه چې د اهل حرمينو همدغه عادت دی وَاسْتَحْسَنَ الْبَعْضُ الِاسْتِرَاحَةَ عَلٰى خَمْسِ تَسْلِيْمَاتٍ او بعضو حضراتو پر پنځو سلامونو استراحت غوره ګڼلی دی وَلَيْسَ بِصَحِيْحٍ او دا صحيح نه ده وَقَوْلُهُ: ثُمَّ يُوْتِرُ بِهِمْ او د ماتن (امام قدوري) رَحِمَهُ الله دا قول: ثم يوتر بهم (يعنې [په آخر کې به] امام خلکو ته وتر ورکوي) يُشِيْرُ إِلٰى (دا قول) اشاره کوي و دې طرف ته أَنَّ وَقْتَهَا بَعْدَ الْعِشَاءِ قَبْلَ الْوِتْرِ چې د تراويحو وخت د ماخوستن تر لمانځه وروسته او تر وترو مخکې دی وَبِهِ قَالَ عَامَّةُ الْمَشَايِخِ او همدغه د علمو مشائخو رَحِمَهُمُ الله قول دی وَالْأَصَحُّ أَنَّ وَقْتَهَا بَعْدَ الْعِشَاءِ إِلٰى آخِرِ اللَّيْلِ قَبْلَ الْوِتْرِ او زياته صحيح دا ده چې د تراويحو وخت د ماخوستن تر لمانځه وروسته

---

* أثر: فادی: عن ابن عمر أنه كان لايقوم مع الناس في شهر رمضان، قال وكان سالم والقاسم لا يقومون مع الناس. مصنف ابن ابي شيبه، ج:٢، ص:١٦٨، باب رقم: ٦٨٠، أثر رقم: ٧٧١٣ .

دی (بیا) د شپې تر آخري حصې پورې تر وترو مخکې دی وَبَعْدَهُ او تر وترو وروسته (هم) دی لِأَنَّهَا نَوَافِلُ سُنَّتْ بَعْدَ الْعِشَاءِ ځکه چې تراویح نفل دي (او) د ماخوستن تر لمانځه وروسته سنت سوي دي وَلَمْ يَذْكُرْ قَدْرَ الْقِرَاءَةِ فِيهَا او امام قدوري رَحِمَهُ الله په تراویحو کې د قرائت اندازه ذکر نه کړه وَأَكْثَرُ الْمَشَايِخِ رَحِمَهُمُ اللهُ عَلَى أَنَّ السُّنَّةَ فِيهَا الْخَتْمُ مَرَّةً خو د اکثرو مشائخو رَحِمَهُمُ الله رایه دا ده چې په تراویحو کې یو وار قرآن ختمول سنت دي فَلَا يُتْرَكُ لِكَسَلِ الْقَوْمِ نو د قوم د کهالی (سستوالي) په وجه به نه پرېښوول کیږي بِخِلَافِ مَا بَعْدَ التَّشَهُّدِ مِنَ الدَّعَوَاتِ په خلاف د هغو دعاګانو چې تر تشهد وروسته وي حَيْثُ يَتْرُكُهَا نو هغه امام پرېښوولای سي لِأَنَّهَا لَيْسَتْ بِسُنَّةٍ ځکه چې هغه دعاوې سنت نه دي.

**اللغات**: ﴿مسیئین﴾ جمع د مُسِيْئٌ ده: خطا کونکی، ګنهکاره. ﴿کَسَل﴾ سستي (کهالي).

**تشریح**: په دې عبارت کې د تراویحو متعلق څو مسئلې بیان سوي دي، نو ټوله به انشاء الله په ترتیب ذکر سي:

(۱) اوله مسئله خو دا بیان سوې ده، چې د تراویحو لمونځ په جماعت سره سنتِ کفایه دی، او د سنتِ کفایه مطلب دا دی. چې که یو څو خلک یې اداء کړي نو له نور خلکو څخه دا حکم ساقطیږي، لکه څرنګه چې صاحب د هدایې رَحِمَهُ الله دا څرګندونه کړې ده او فرمایي: چې که د مسجد ټوله خلک تراویح نه وکړي، نو ټوله ګنهکاره کیږي، خو که بعضو خلک یې وکړي، نو کونکو ته به یې فضیلت او ثواب ورکول کیږي، او نه کونکي به ګنهګاره وي، او یوازې کونکي به یې له ثواب څخه بې برخي وي.

**دلیل**: د دې دلیل چې تراویح سنت کفایه دي، دا دی چې په صحابه وو کې به بعضې صحابه په کورونو کې تراویح کولې، او مسجد ته به نه تلل، چې له هغو صحابه وو څخه ابن عمر رَضِيَ اللهُ عَنْهُمَا او حضرت عروه رضي الله عنه هم دي، دا حضرات د نبي ﷺ په دې فرمان سره دلیل نیسي: عليكم بالصلاة في بيوتكم فإن خير صلاة المرء في بيته إلا المكتوبة. (یعني پر تاسو په خپلو کورونو کې لمونځ کول (هم) ضروري دي، ځکه چې له فرضي لمونځ څخه علاوه د انسان لمونځ په خپل کور کې ښه دی). او څرنګه چې تراویح فرض نه دي، نو ځکه دا هم په کور کې اداء کول زیات غوره دي په نسبت د دې ته چې په مسجد کې اداء کړی سي، له امام ابو یوسف رَحِمَهُ الله څخه روایت دی چې که په کور کې ممکنه وي چې د تراویحو د قرائت او سنت به ښه خیال وساتل سي، نو په داسي وخت کې تراویح په کور کې کول زیات غوره دي. (فتح القدیر)

## تر څلورو رکعتونو وروسته د ناستې حکم

والمستحب في الجلوس الخ له دې ځایه دا راښیي چې په تراویحو کې د هرو دوو ترویحو په مینځ کې یعني پر څلورو رکعتو دیوې ترویحې په اندازه کښېنستل مستحب دي، همدارنګه د پنځمي ترویحې او وترو په مینځ کې هم، یعني د شلو رکعتو تر پوره کېدلو وروسته او له وترو کولو څخه مخکې هم دیوې ترویحې په اندازه کښېنستل مستحب دي، ځکه چې د مکې مکرمې او د مدینې شریف د خلکو عادت همدغه ډول دی، صاحب د هدایې صرف ناسته بیان کړې ده، او د ناستې یې هیڅ تفصیل بیان کړی نه دی، چې خاموش (چپ) به کښېني، یا به تسبیح، دعاء یا بل شي وایي، نو په دې اړه صاحب د عنایې رَحِمَهُ الله وایي چې: چپ دي کښېني، ځکه چې د ناستې مقصد راحت لو آرام دی، لو آرام په چپ

کښېنستلو کي دی، لېکن غوره دا ده چي تسبيح يا دعاء ووايي، ځکه چي په ناسته کي چي کوم راحت دی هغه د ولاړي په مقابله کي دی نه د قرائت او اذکارو په مقابله کي، او بيا خو قرائت هم صرف د امام کار دی نه د مقتديانو، نو ځکه به د مقتديانو په حق کي جلوس مع الدعاء تر جلوس مع السکوت غوره وي، او د مدينې او مکې خلګو خو به ګردسره ناسته نه کول، بلکي دهري تراويحې وروسته به يې طواف کوی، نو له دې څخه هم دا خبره په ذهن کي راځي چي د مقتديانو لپاره د چپ کښېنستلو او نندارې کولو څخه غوره دا ده چي د الله يو ذکر وکړي.

## تر لسو رکعتونو وروسته د ناستي حيثيت

واستحسن البعض الخ فرمايي چي د ځيني مشائخو په نېز پر خمس تسليمات، يعني پر لس رکعتو کښېنستل او آرام کول غوره دي، لېکن دا قول صحيح نه دی، ځکه چي دا طريقه له را نقل سوي طريقې څخه خلاف ده، او په دې کي تکليف او مشقت هم زيات دی.

## د تراويحو صحيح وخت او د وترو د جماعت بيان

وقوله ثم يوتربهم الخ د دې حاصل دا دی چي د تراويحو د وخت په سلسله کي درې اقوال دي، يو قول دا دی چي د تراويحو وخت تر ماخوستن وروسته يعني د ماخوستن تر لمانځه وروسته او تر وترو مخکي دی او همدغه د علمو مشائخو رايه ده، نو که يو چا د ماخوستن تر لمانځه مخکي يا تر وترو وروسته تراويح وکړې، نو د هغه تراويحو اعتبار نسته، ځکه چي د تراويحو وخت د صحابه وو له معمول څخه معلوم سوی دی، او صحابه وو د ماخوستن تر لمانځه وروسته او تر وترو مخکي تراويح کړي دي، نو هم په دغه وخت کي به تراويح صحيح وي، او د بلخ د مشائخو نظريه دا ده چي د تراويحو وخت د ماخوستن تر لمانځه وروسته دی، بيا د طلوع فجر تر مخکي پوري دی، ځکه چي تراويحو ته قيام الليل (يعني د شپې لمونځ) ويل سوي دي، نو د شپې په هره حصه کي يې د اداء کولو اجازه سته، په دې ټولو کي تر ټولو غوره او معتمد قول دا دی چي د تراويحو وخت د ماخوستن تر لمانځه وروسته دی، هغه که تر وترو مخکي وسي او که تر وترو وروسته، خو د ماخوستن تر لمانځه به وروسته وي، همدا وجه ده که چا د ماخوستن تر لمانځه مخکي تراويح وکړې، نو هغه صحيح نه دي، لېکن که تر وترو يې مخکي يا وروسته وکړې، نو په دواړو صورتو کي د هغه تراويح صحيح او معتبره دي.

## د تراويحو په شلو رکعتونو کي به څومره اندازه قرائت کيږي

ولم يذكر قدر القراءة الخ فرمايي چي امام قدوري رَحِمَهُ الله د قرائت هيڅ اندازه بيان نه کړه، خو په دې باره کي د علماؤ اختلاف دی، د بعضو رايه دا ده چي په هرو دوو رکعتو کي به دومره قرآن ويل کيږي څومره چي د ماښام په لمانځه کي ويل کيږي، ځکه چي نفل له فرضو څخه د کمي درجې دي، نو په نفلو کي به د أخف القراءة في المكتوبة اعتبار کيږي، او څرنګه چي په ټولو فرضونو کي تر ټولو مختصره قرائت د ماښام په لمانځه کي کيږي، نو ځکه به د تراويحو په هر دوو رکعتو کي همدومره قرائت کيږي، حضرت حسن بن زياد رَحِمَهُ الله له امام اعظم رَحِمَهُ الله څخه روايت کړی چي په هر رکعت کي د لسو آيتونو په ويلو سره په ټوله شلو رکعتونو کي دوه سوه آيتونه کيږي، نو په دې توګه به په ټوله مياشت کي شپږ زره آيتونه سي، او د قرآن آيتونه هم تقريباً له شپږ زرو څخه څه زيات دي، نو په دې صورت کي به په آسانۍ سره

يو قرآن ختم سي، او همدا سنت دي، نو ځکه فقهاؤ فرمايلي دي چي د خلګو د کهالی او سستوالي په وجه به له يوه قرآن ځخه کم نه ختميږي، او که خلګ د اوږدو رکعتونو او ډېر قرائت سره زيات شوق لري نو له يوه قرآن ځخه په زيات ختمولو کي هم هيڅ حرج نسته.

بخلاف ما بعد التشهد الخ د دې حاصل دا دی چي که امام ته دا انديښنه وسوه چي ما قرائت اوږد کړی، او خلګ ستړي سوه، نو که په داسي وخت کي تر تشهد وروسته دعاوي پرېږدي، نو هيڅ حرج نسته، ځکه چي دا سنت نه دي. خو د درود شريف ويل مناسب دي، هغه دي نه پرېږدي، ځکه چي د درود ويل د امام شافعي رَحِمَهُ الله په نېز فرض دي، او زموږ په نېز احتياط هم په دې کي چي وې وايي.

## د روژې له مياشتي څخه علاوه د وترو د جماعت حکم

وَلَا يُصَلِّي الْوِتْرُ بِجَمَاعَةٍ فِي غَيْرِ شَهْرِ رَمَضَانَ او د روژې له مياشتي ځخه ملسوا به وتر په جماعت سره نه کوي عَلَيْهِ إِجْمَاعُ الْمُسْلِمِينَ هم پر دې د مسلمانانو اجماع ده وَاللهُ أَعْلَمُ او الله زيات خبر دی.

**تشريح:** صورت د مسئلې خو بالکل ښکاره دی چي د روژې له مياشتي ځخه ملسوا به په جماعت سره وتر نه کيږي، دليل دا دی چي حضرت عمر ﷺ صرف د روژې په مياشت کي په جماعت سره وتر کړي وو، او څرنګه چي له دې ځخه ملسوا وتر په جماعت سره کول ثابت نه دي، نو د روژې له مياشتي ځخه ملسوا به په نورو وختو کي وتر په جماعت سره خلاف اولیٰ دي.



# بَابُ إِدْرَاكِ الْفَرِيْضَةِ

(دا) باب د فرضي لمانځه د نيولو (موندلو، په بيان کې) دی

**تشريح:** کله چې صاحب د کتاب له فرائضو، واجباتو سنتو او نفلو څه فارغه سو، نو اوس په پوره توګه د لمونځونو د اداء کولو بيان شروع کوي، او څرنګه چې د جماعت لمونځ د يوازي لمانځه په مقابله کې زيات بشپړ او افضله دی، نو ځکه په دې باب کې په ښه تفصيل سره د جماعت فضيلت او احکام بيانوي.

## د لمانځه په دوران کې د جماعت درېدلو حکم

وَمَنْ صَلَّى رَكْعَةً مِنَ الظُّهْرِ او چا چې د ماپښين د لمانځه يو رکعت وکړی ثُمَّ أُقِيمَتْ (او) بيا د ماپښين جماعت ودرېدی يُصَلِّيْ أُخْرَى نو دا سړی دې دوېم رکعت هم وکړي صِيَانَةً لِلْمُؤَدَّى عَنِ الْبُطْلَانِ له باطلوالي څخه د اداء کړی سوي وي لمانځه د خوندي کولو لپاره ثُمَّ يَدْخُلُ مَعَ الْقَوْمِ بيا دې د مقتديانو سره (په لمانځه کې) داخل سي إِحْرَازًا لِفَضِيْلَةِ الْجَمَاعَةِ د جماعت د ثواب حاصلولو لپاره وَإِنْ لَمْ يُقَيِّدِ الْأُوْلَى بِالسَّجْدَةِ او که دې سړي د ماپښين اول رکعت په سجده مقيد کړی نه وو (يعني د اول رکعت سجده يې کړې نه وه) يَقْطَعُ نو لمونځ دې ختم کړي (يعني لمونځ دې پرېږدي) وَيَشْرَعُ مَعَ الْإِمَامِ او د امام سره دې (لمونځ) شروع کړي هُوَ الصَّحِيْحُ همدا صحيح ده لِأَنَّهُ بِمَحَلِّ الرَّفْضِ ځکه چې تر يوه رکعت کم د پرېښوولو په ځای کې دی وَهٰذَا الْقَطْعُ لِلْإِكْمَالِ او دا ختمول (په ښه توګه) د پوره کولو لپاره دي بِخِلَافِ مَا إِذَا كَانَ فِي النَّفْلِ په خلاف د دې چې دا سړی په نفلو کې وي لِأَنَّهُ لَيْسَ لِلْإِكْمَالِ ځکه چې د نفلو ختمول د پوره کولو لپاره نه دي وَلَوْ كَانَ فِي السُّنَّةِ قَبْلَ الظُّهْرِ وَالْجُمُعَةِ او که دا سړی د ماپښين له لمانځه يا د جمعې له لمانځه څخه په مخکينيو سنتو کې وو فَأُقِيْمَ أَوْ خَطَبَ بيا اقامت شروع سو يا خطبه شروع سوه يَقْطَعُ عَلَى رَأْسِ الرَّكْعَتَيْنِ نو پر دوو رکعتو به لمونځ ختموي يُرْوَى ذٰلِكَ عَنْ أَبِيْ يُوْسُفَ رَحِمَهُ اللّٰهُ دا له امام ابو يوسف رَحِمَهُ الله څخه را نقل سوي دي وَقَدْ قِيْلَ يُتِمُّهَا او (دا هم) ويل سوي دي چې څلور سره رکعته به پوره کوي.

**اللغات:** ﴿الْمُؤَدّٰى﴾ د تفعيل اسم مفعول دی: داء کړی سوی، ﴿إِحْرَاز﴾ د افعال مصدر دی: حاصلول، تر لاسه کول، ﴿رَفْض﴾ د ضرب مصدر دی: پرېښوول.

**تشريح: صورت د مسئلې:** دا دی که يو سړي يواځې د ماپښين لمونځ کوی، او يو رکعت يې پوره کړی وو چې د دغه لمانځه د جماعت لپاره اقامت شروع سو (يعني د ماپښين لمونځ ودرېدی)، نو اوس د دې سړي لپاره حکم دا دی چې دوېم رکعت دې هم وکړي، د دې لپاره چې اول رکعت له باطلوالي څخه وساتل سي، او سلام دې وګرځوي، او بيا دې په جماعت کې شريک سي، د دې لپاره چې د جماعت فضيلت حاصل کړي، او د يوه رکعت سره د دوېم رکعت يو ځای

کولو حکم ځکه ورکول سوی دی چې په حدیث کې له یو رکعت لمونځ (صلاة بتیراء) څخه منع سوې ده، نو ځکه د دویم رکعت ور سره یو ځای کول ضروري دي، لیکن دا حکم په هغه صورت کې دی چې کله دې سړي د اول رکعت سجده هم کړې وي، لیکن که ده د اول رکعت سجده نه وي کړې، او جماعت ودریږي، نو اوس د ده لپاره حکم دا دی چې لمونځ دي ختم کړي یعني لمونځ دي پرېږدي، او په جماعت کې دي شریک سي، ځکه چې کله ده سجده نه وي کړې نو د ده یو رکعت هم پوره سوی نه دی، نو په پرېښوولو کې یې هم څه باک نسته، ځکه چې د رکعت تر پوره کېدلو مخکې دې لمانځه ته بتیراء یعني یو رکعت والا لمونځ نه ویل کیږي، همدارنګه که یو سړی په څلور رکعتیز لمانځه کې له آخري ناستې څخه بغیر د پنځم رکعت لپاره ولاړ سي، نو د هغه لپاره هم شرعي حکم دغه دی چې که د پنځم رکعت سجده یې نه وي کړې، نو کښېني دې، همدارنګه به په ذکر سوې مسئله کې هم که دې سړي د اول رکعت سجده نه وي کړې نو هغه به دا لمونځ پرېږدي او جماعت به شروع کوي، همدا صحیح ده، ځکه چې دا لمونځ د پرېښوولو په ځای کې دی، او د دې پرېښوول او ختم کول د إکمال یعني په کامله او بشپړه طریقه سره د فرضو د اداء کولو لپاره دی، او داسې کول صحیح دي.

هو الصحیح الخ امام قدوري رَحِمَهُ الله د هو الصحیح په ویلو سره د شمس الائمه سرخسي رَحِمَهُ الله او نورو له هغه قول څخه احتراز کړی دی چې په هغه کې ویل سوي دي: که د اول رکعت سجده یې نه وي کړې نو هم دې دوه رکعته پوره کړي، دلیل یې دا ی چې که څه هم دا حصه له سجدې کولو څخه مخکې لمونځ او رکعت نه دی، خو بیا هم عبادت دی، او بیا د فرضو په نیت سره شروع سوی دی، نو نور مهم سو، نو د جماعت په وجه سره به کوم چې سنت دی دا عبادت نه پرېښوول کیږي، لیکن زموږ له طرفه جواب دا دی چې په ذکر سوې مسئله کې د دې حصې پرېښوول او ختمول په دې وجه نه دي چې دا دې پرېښوول سي او سنت دې اداء کړی سي، بلکې په دې وجه دي چې د دې په پرېښوولو سره به فرض په پوره او کامله طریقه یعني په جماعت سره اداء کړی سي، نو ځکه به د دې پرېښوول صحیح او جائز وي.

بخلاف ما إذا کان الخ فرمایي چې د دې په خلاف که یو سړی نفلي لمونځ کوي، او داسې صورت را مخته سي، نو په دې صورت کې د ده لپاره نفل پرېښوول او ختمول صحیح نه دي، بلکې دوه رکعته دې پوره کړي او وروسته دې په فرضي لمانځه کې شریک سي، ځکه چې دَ نفلو پرېښوول بې ځایه او بېکاره دي، نو د نفلي لمانځه په صورت کې ختمول او پرېښوول هم صحیح نه دي، بلکې تر دوو رکعتو پوره کولو وروسته په جماعت کې د شریک کېدلو اجازه سته.

ولو کان في السنة الخ د دې حاصل دا دی که یو څوک د ماپښین یا د جمعې په مخکینیو سنتو کې مشغول وو، او لمونځ ودرېدی، یا امام د خطبې لپاره ودرېدی نو په دې صورت کې هم د ده لپاره حکم همدغه دی چې دوه رکعته دې پوره کړي او په جماعت کې دې شریک سي، هغه که یې د اول رکعت سجده کړې وي، که نه وي، ځکه چې تر دې مخکې تاسو دا ویلي دي چې سنت د نفلو په درجه کې دي، نو کوم حکم چې د نفلو وي هغه به د سنتو هم وي، او څرنګه چې په نفلو کې د دوو رکعتو پوره کول ضروري دي، نو په سنتو کې به هم د دوو رکعتو پوره کول ضروري وي.

یروی ذلك الخ فرمایي چې دا قول له امام ابو یوسف رَحِمَهُ الله څخه را نقل دی او په دې سلسله کې یو بل قول دا دی چې که یو سړي د څلورو رکعتو سنتو نیت تړلی وي نو د هغه لپاره د څلور سره وو رکعتو پوره کول ضروري دي، ځکه چې څلور سره رکعته د یوه لمانځه په درجه کې دي، نو پر دوو رکعتو پرېښوول صحیح نه دي، خو دا قول ډېر ضعیف دی، او

د ضعيفوالي دليل يې دا دی چې د تمريض يعني د قيل په صيغه سره بيان سو، او بيا به شايد ده ته دا هم معلومه نه وي چې سنت د نفلو په درجه کي دي، او د نفلو هره شفعه (يعني هر دوه رکعته) جلا لمونځ دی، والله أعلم.

## تر دريو رکعتو وروسته د جماعت د دربدلو حکم

وَإِنْ كَانَ قَدْ صَلَّى ثَلَاثًا مِنَ الظُّهْرِ او که يو سړي د ماپښين (د لمانځه) درې رکعته کړي وه يُتِمُّهَا نو (څلور سره) دي پوره کړي لِأَنَّ لِلْأَكْثَرِ حُكْمَ الْكُلِّ ځکه چي اکثر لره حکم د کُل دی فَلَا يَحْتَمِلُ النَّقْضَ نو د ماتولو (پرېښوولو) گنجايش نه لري بِخِلَافِ مَا إِذَا كَانَ فِي الثَّالِثَةِ بَعْدُ په خلاف د هغه صورت چي تر اوسه لا دی په دريم رکعت کي وي (يعني دريم رکعت يې لا پوره کړی نه وي) وَلَمْ يُقَيِّدْهَا بِالسَّجْدَةِ او په سجده سره يې مقيد کړی نه وي (يعني د دريم رکعت سجده يې لا تراوسه نه وي کړې) حَيْثُ يَقْطَعُهَا نو دا لمونځ ختموای سي (يعني پرېښوای سي) لِأَنَّهُ مَحَلُّ الرَّفْضِ ځکه چي دا د پرېښوولو ځای دی وَيَتَخَيَّرُ إِنْ شَاءَ عَادَ فَقَعَدَ وَسَلَّمَ او ده ته اختيار دی که غواړي نو (د پرېښوولو په وخت کي) دي را وگرځيږي او کښېني دي سلام دي وگرځوي وَإِنْ شَاءَ كَبَّرَ قَائِمًا او که غواړي په ولاړه دي تکبير ووايي يَنْوِي الدُّخُولَ فِي صَلَاةِ الْإِمَامِ (او) د امام په لمانځه کي دي د داخلېدلو نيت وکړي وَإِذَا أَتَمَّهَا يَدْخُلُ مَعَ الْقَوْمِ او کله چي د ماپښين لمونځ پوره کړي نو د خلکو (مقتديانو) سره دې داخل سي وَالَّذِي يُصَلِّي مَعَهُمْ نَافِلَةٌ او کوم لمونځ چي د دوی سره کوي هغه به نفل وي لِأَنَّ الْفَرْضَ لَا يَتَكَرَّرُ فِي وَقْتٍ وَاحِدٍ ځکه چي په يوه وخت کي فرض نه سي مکرر کېدلای.

**اللغات**: ﴿لَا يَتَكَرَّرُ﴾ د تفعّل د باب مضارع نفي صيغه ده: مکرر کېدل، بيا بيا کېدل.

**تشريح**: صورت د مسئلې: دا دی که يو سړي يو ازې د ماپښين لمونځ کوی او درې رکعته يې پوره کړي وه چي د ماپښين جماعت ودرېدی، نو اوس د ده لپاره حکم دا دی چي څلور رکعت دي هم پوره کړي، او د لمانځه تر پوره کولو وروسته دي په جماعت کي شريک سي، ځکه چي کله ده په څلورو رکعتو کي درې رکعته کړي وي، نو ده د څلورو اکثره حصه اداء کړې ده، او دا د فارغ کېدلو سره مشابه سو، ځکه چي اکثر د کُل په درجه کي دی، نو کله چي دی د فارغ سره مشابه سو، نو اوس به هغه وخت په جماعت کي داخليږي چي کله دا څلور رکعته پوره کړي، لکه څرنګه چي په هغه صورت کي هم دا حکم دی چي کله دی له لمانځه څخه فارغ سي، يا د څلورم رکعت په ناسته (قعده) کي وي.

بخلاف ما إذا الخ د دې حاصل دا دی چي که دا سړی صرف په دريم رکعت کي وو، او د دريم رکعت سجده يې کړې نه وه، نو اوس د ده لپاره حکم دا دی چي لمونځ دي پرېږدي، او په جماعت کي دي شريک سي، ځکه چي د دوو رکعتو د پوره کېدلو په وجه د ده لمانځه ته بتيراء يعني يو رکعت والا لمونځ نه ويل کيږي، نو ده ته د لمانځه د پرېښوولو حق سته، او دا اختيار هم ورته سته چي په دريم رکعت کي له ولاړي څخه د ناستي (قعود) و طرف ته را وگرځيږي، او قعده وکړي پر مشروع طريقه لمونځ پرېږدي، او که وغواړي نو د ولاړي په حالت کي دي د امام په لمانځه کي د داخلېدلو نيت وکړي او تکبير دي ووايي، او په جماعت کي دي شريک سي، د دې لپاره چي د جماعت لمونځ ژر ونيسي او د ځنډ په وجه سره د جماعت زياته برخه پاته نه سي.

وإذا أتمها الخ د دغه عبارت تعلق د متن د دې عبارت وإن كان قد صلى ثلاثا سره دی، او حاصل يې دا دی چې کله دا سړی د ماپښين لمونځ پوره کړي، نو چې په جماعت کې شرکت کوي، د نفلو په نيتو سره به شرکت کوي، ځکه چې ده خو فرض وکړه، او په يوه وخت کې يو فرضي لمونځ دوه واره نه سي اداء کېدلای، نو په دې وجه د بعضو خلګو رايه دا ده چې دا سړی دې په جماعت کې نه شريک کېږي، لېکن افضله او غوره دا ده چې دا سړی دې په جماعت کې شريک سي، ځکه چې که دی په جماعت کې شريک نه سي، نو خلک به پر ده تهمت ووايي چې د جماعت له لمانځه څخه يې اعراض وکړی، او د شريک کېدلو په صورت کې به دا تهمت نه وي. (عنايه)

## د سهار د لمانځه په دويم رکعت کې د جماعت د درېدلو حکم

فَإِنْ صَلَّى مِنَ الْفَجْرِ رَكْعَةً او که يو سړي د سهار (دلمانځه) يو رکعت کړی وو ثُمَّ أُقِيمَتْ بيا جماعت ودرېدی يَقْطَعُ نو دا سړی دې لمونځ ختم کړي (پرېږدي) وَيَدْخُلُ مَعَهُمْ او د خلګو سره دې (په جماعت) کې داخل سي لِأَنَّهُ لَوْ أَضَافَ إِلَيْهَا أُخْرَى ځکه که دی دويم رکعت ور سره يو ځای کړي تَفُوتُهُ الْجَمَاعَةُ نو جماعت به څني فوت سي وَكَذَا إِذَا قَامَ إِلَى الثَّانِيَةِ قَبْلَ أَنْ يُقَيِّدَهَا بِالسَّجْدَةِ او همدارنګه هغه وخت چې کله دی د دويم رکعت لپاره ولاړ سوی وي خو په سجده سره يې مقيد کړی نه وي (يعني د دويم رکعت لپاره يې سجده کړې نه وي نو هم دې لمونځ پرېږدي او په جماعت کې دې داخل سي) وَبَعْدَ الْإِتْمَامِ لَا يَشْرَعُ فِي صَلَاةِ الْإِمَامِ او د لمانځه تر پوره کولو وروسته دې دا سړی د امام سره د جماعت لمونځ نه شروع کوي لِكَرَاهَةِ التَّنَفُّلِ بَعْدَ الْفَجْرِ ځکه چې د سهار تر لمانځه وروسته نفل مکروه دي وَكَذَا بَعْدَ الْعَصْرِ او همدارنګه د مازيګر تر لمانځه وروسته (هم) لِمَا قُلْنَا د هغه دليل په وجه کوم چې مونږ بيان کړی وَكَذَا بَعْدَ الْمَغْرِبِ فِي ظَاهِرِ الرِّوَايَةِ او همدارنګه په ظاهر الرواية کې د ماښام تر لمانځه وروسته (هم) لِأَنَّ التَّنَفُّلَ بِالثَّلَاثِ مَكْرُوهٌ ځکه چې درې رکعته نفل کول مکروه دي وَفِي جَعْلِهَا أَرْبَعًا مُخَالَفَةٌ لِإِمَامِهِ او په څلور رکعته کولو کې يې د امام مخالفت دی.

**اللغات**: ﴿التنفل﴾ د تفعل د باب مصدر دی، نفل کول. ﴿جعل﴾ د فتح د باب مصدر دی: ګرځول، جوړول.

**تشريح**: صورت د مسئلې: دا دی که يو سړي د سهار د فرضو يو رکعت کړی وو، او بيا جماعت ودرېدی، نو دا سړی دې خپل دا لمونځ پرېږدي او د خلګو سره دې په جماعت کې شريک سي، ځکه که دويم رکعت هم وکړي، نو د ده لمونځ به پوره سي، او جماعت به څني پاته سي، حال دا چې جماعت سنت مؤکده دی، نو د جماعت د فضيلت حاصلولو لپاره دې دغه لمونځ پرېږدي کوم چې يې يوازي شروع کړی دی، همدارنګه که دا سړی د سهار د دويم رکعت لپاره ولاړ سوی وو لېکن د دويم رکعت سجده يې نه وه کړې، نو په دې صورت کې دې هم لمونځ پرېږدي، په جماعت کې دې شريک سي، خو که ده د سهار لمونځ پوره کړی وو، او بيا جماعت ودرېدی، نو اوس دې په جماعت کې شرکت نه کوي، ځکه چې په دې صورت کې هغه د امام سره کوم لمونځ کوي هغه به نفل وي، حال دا چې د سهار تر لمانځه وروسته تر لمر راختلو پورې نفل مکروه دي، همدارنګه د مازيګر تر لمانځه وروسته تر لمر لوېدلو پورې نفل مکروه دي.

وكذا بعد المغرب الخ فرمايي چې که چا يوازي د ماښام لمونځ کړی وو نو هغه دې هم د ظاهر الرواية مطابق په جماعت کې شرکت نه کوي، ځکه که په جماعت کې شريک سو، نو دوه صورتونه دي: يا به د امام سره يو ځای سلام ګرځوي، يا به د

امام تر فارغه کېدلو وروسته يو رکعت بل هم کوي د دې لپاره چې څلور رکعته سي، (درې د امام سره او يو د امام تر فارغه کېدلو وروسته)، په اول صورت کي (يعني چي د امام سره يو ځای سلام کرځوي) نفل به درې رکعته سي، حال دا چي درې رکعته نفل کول مکروه دي، او په دويم صورت کي (يعني چي يو رکعت بل هم وکړي) د امام مخالفت به راسي، او دا هم صحيح نه دي، نو ځکه ووېل سوه که يو چا يوازي د ماښام لمونځ کړی وو او بيا جماعت ودرېدی، نو په جماعت کي به شرکت نه کوي.

## تر اذان وروسته له مسجد څخه د وتلو حکم

وَمَنْ دَخَلَ مَسْجِدًا قَدْ أُذِّنَ فِيهِ او که يو سړی داسي مسجد ته داخل سو چي په هغه کي اذان سوی وو يُكْرَهُ لَهُ أَنْ يَخْرُجَ نو د هغه لپاره دا مکروه دي چي له مسجد څخه ووځي حَتَّى يُصَلِّيَ تر دې چي لمونځ وکړي لِقَوْلِهِ عَلَيْهِ الصَّلَاةُ وَالسَّلَامُ• ځکه نبي ﷺ فرمايلي دي لَا يَخْرُجُ مِنَ الْمَسْجِدِ بَعْدَ النِّدَاءِ إِلَّا مُنَافِقٌ تر اذان وروسته له مسجد څخه يا خو منافق وځي أَوْ رَجُلٌ يَخْرُجُ لِحَاجَةٍ يُرِيدُ الرُّجُوعَ يا داسي سړی وځي چي د يو ضرورت لپاره ولاړ سي او د واپس راتللو اراده لري قَالَ: إِلَّا إِذَا كَانَ مِمَّنْ يَنْتَظِمُ بِهِ أَمْرُ جَمَاعَةٍ فرمايي: خو دا چي د هغه په ذريعه د جماعت د يو کار انتظام کيږي لِأَنَّهُ تَرْكٌ صُورَةً ځکه چي دا وتل خو په ښکاره (د جماعت) پرېښوول دي تَكْمِيلٌ مَعْنًى (او) په باطن کي (د جماعت) پوره کول دي.

**تشريح: صورت د مسئلې:** دا دی که يو سړی داسي مسجد ته داخل سو چي په هغه کي اذان سوی وو، نو د هغه سړي به دوه حاله وي، يا خو به يې لمونځ کړی وي يا به يې نه وي کړی، که يې لمونځ کړی وي، نو د هغه حکم به وروسته (په را روانه مسئله کي) بيان کړو، او که يې لمونځ نه وي کړی، نو بيا دوه صورتونه دي: يا خو به دا مسجد د ده د خپلې محلې (کلي) وي يا به نه وي، که د کلي مسجد يې وي نو تر لمونځ کولو مخکي له مسجد څخه وتل مکروه دي، ځکه چي مؤذن ده ته د لمانځه دعوت ورکړی دی، نو دا دعوت دي قبول کړي او بغير له لمانځه څخه دي نه وځي، او که دا مسجد د ده د کلي نه وي، نو بيا دوه صورتونه دي: يا به د ده د خپل کلي خلکو په خپل مسجد کي لمونځ کړی وي، يا به نه وي، که اول صورت وي نو له مسجد څخه بېله لمانځه وتل مکروه دي، ځکه چي دی په دې مسجد کي د داخلېدلو په وجه د دې مسجد له خلکو څخه سو، او که دويم صورت وي نو سړی د خپل کلي په مسجد کي د لمانځه کولو لپاره وتلی سي، ځکه چي پر ده د خپل کلي په مسجد کي لمونځ واجب دی. (عنايه)، صاحب د هدايې دا مسئله داسي ذکر کړې ده چي که يو سړی په داسي مسجد کي داخل سو چي په هغه کي اذان سوی وو نو بېله لمانځه له مسجد څخه وتل مکروه دي.

**دليل:** د نبي ﷺ دا قول دی: لا يخرج من المسجد بعد نداء إلا منافق أو رجل يخرج لحاجته يريد الرجوع. (مراسيل ابي داؤد)

**قال: إلا إذا كان الخ** امام قدوري رَحِمَهُ الله فرمايي چي که دې سړي د بل مسجد د يو کار سره تعلق درلودی د مثال په توګه د بل مسجد امام يا مؤذن وو، نو تر اذان وروسته هم د ده لپاره وتل جائز دي، ځکه چي دا وتل خو په ښکاره د جماعت پرېښوول دي لېکن په باطن کي پوره کېدل دي.

**سوال:** پاته سو دا اعتراض چي له حديث څخه ثابت دي چي تر اذان وروسته له مسجد څخه وتل مطلق منع دي، هغه که دا سړی د بل مسجد سره تعلق لري او که نه لري.

● تخريج: أخرجه ابو داؤد و معناه في كتاب الاذان، باب إذا اذن و انت ... حديث رقم: ٧٣٢ ،

**جواب:** دا دی چي په حديث کي مقصود د تهمت بنديز دی، يعني که څوک تر اذان وروسته له مسجد څخه ووځي نو خلک به دا تهمت پر وايي چي هغه له لمانځه څخه اعراض وکړی، او د امام او مؤذن په حق کي دا تهمت نسته، يعني دا دواړه تو له خلک پېژني چي دا په بل مسجد کي اذان يا لمونځ ورکوي، نو ځکه په دې دواړو کي هيڅ حرج نسته چي ووځي.

## که تر اذان وروسته يې لمونځ کړی وي نو څه حکم دی؟

وَإِنْ كَانَ قَدْ صَلَّى او که دې سړي لمونځ کړی وو وَكَانَتِ الظُّهْرَ أَوِ الْعِشَاءَ او دا لمونځ د ماپښين يا ماخوستن وو فَلَا بَأْسَ بِأَنْ يَخْرُجَ نو (له مسجد څخه په وتلو) کي څه باک نسته لِأَنَّهُ أَجَابَ دَاعِيَ اللهِ مَرَّةً ځکه چي هغه يو وار د مؤذن (اذان کونکي) دعوت قبول کړی دی إِلَّا إِذَا أَخَذَ الْمُؤَذِّنُ فِي الْإِقَامَةِ خو که مؤذن اقامت شروع کړي (نو نه دي وځي) لِأَنَّهُ يُتَّهَمُ بِمُخَالَفَةِ الْجَمَاعَةِ عِيَانًا ځکه چي (په دې وخت کي په وتلو سره) دی په ښکاره توګه د جماعت په مخالفت سره متهم کيږي وَإِنْ كَانَتِ الْعَصْرَ أَوِ الْمَغْرِبَ أَوِ الْفَجْرَ او که دا لمونځ د مازيګر يا د ماښام يا د سهار وو خَرَجَ نو ودي وځي وَإِنْ أَخَذَ الْمُؤَذِّنُ فِيهَا که څه هم مؤذن اقامت شروع کړي وي لِكَرَاهَةِ التَّنَفُّلِ بَعْدَهَا ځکه چي تر دې لمونځونو وروسته نفل کول مکروه دي.

**اللغات:** ﴿دَاعِيَ اللهِ﴾ د الله و طرف ته بلونکی، يعني اذان کونکی (مؤذن).

**تشريح:** په دې عبارت کي هغه صورت ذکر سوی دی چي په مخکښې مسئله کي يې وعده وسو.

**صورت د مسئلې:** دا دې که يو سړی هغه مسجد ته ورغلی چي په هغه کي اذان سوی وو او دې سړي دغه لمونځ کړی وو د کوم لپاره چي اذان سوی دی، نو اوس که دا لمونځ د ماپښين يا ماخوستن وو، نو د ده لپاره له مسجد څخه وتل صحيح دي او په دې کي هيڅ خبره نسته، ځکه چي دې سړي يو وار د الله ﷻ د داعي يعني مؤذن دعوت قبول کړی دی، هو! که د دغه لمانځه لپاره اقامت شروع سو، نو په دې صورت کي به دا سړی له مسجد څخه نه وځي، بلکه په جماعت کي به شرکت کوي، که څه هم دغه لمونځ يې کړی وي.

**دليل:** دا دی چي که دی تر اقامت او جماعت شروع کېدلو وروسته ووځي نو خلک به پر ده دا تهمت وايي چي دی د جماعت مخالفت کوي، نو له تهمت څخه د خوندي کېدلو لپاره دي په جماعت کي شريک سي، او دا لمونځ کوم چي يې په جماعت سره اداء کوي نفل به وي، ځکه چي فرض يې مخکي اداء کړي دي، لېکن که دا لمونځ د مازيګر، ماښام يا سهار وي، نو دا سړی تر اقامت او جماعت شروع کېدلو وروسته هم له مسجد څخه وتلی سي، ځکه چي ده خو فرض اداء کړي دي نو اوس چي کوم لمونځ کوي هغه به نفل وي، او د مازيګر او سهار تر لمونځونو وروسته نفل مکروه دي، او د ماښام تر لمانځه وروسته که څه هم نفل مکروه نه دي، خو په جماعت کي د شريک کېدلو په وجه به نفل درې رکعته وي، حال دا چي درې رکعته نفل کول مکروه دي، او که ته وايې چي د امام تر سلام ګرځېدلو وروسته دي بل رکعت وکړي چي نفل يې څلور رکعته سي، نو په دې صورت کي هم د امام مخالفت راځي، او د امام مخالفت صحيح نه دی.

## د سهار د لمانځه په وخت کې د سهار د سنتو حکم

وَمَنِ انْتَهَى إِلَى الْإِمَامِ فِي صَلَاةِ الْفَجْرِ او که يو سړی د سهار په لمانځه کې امام ته په داسې حال کې ورسېدی وَهُوَ لَمْ يُصَلِّ رَكْعَتَيِ الْفَجْرِ چې د سهار دوه رکعته سنت يې کړي نه وه إِنْ خَشِيَ أَنْ تَفُوتَهُ رَكْعَةٌ نو که (اوس) د دې سړي دا بېره وه چې يو رکعت به ځنې فوت سي (تېر سي) وَيُدْرِكَ الْأُخْرَى او بل رکعت به ونيسي يُصَلِّي رَكْعَتَيِ الْفَجْرِ عِنْدَ بَابِ الْمَسْجِدِ نو د سهار دوه رکعته سنت دې د مسجد د دروازې سره وکړي ثُمَّ يَدْخُلُ بيا دې (په جماعت کې) شريک سي لِأَنَّهُ أَمْكَنَهُ الْجَمْعُ بَيْنَ الْفَضِيلَتَيْنِ ځکه چې د ده لپاره د دواړو فضيلتونو جمع کول ممکن دي وَإِنْ خَشِيَ فَوْتَهُمَا او که ده ته د دواړو رکعتونو د فوتېدلو بېره وه دَخَلَ مَعَ الْإِمَامِ نو د امام سره دې داخل سي لِأَنَّ ثَوَابَ الْجَمَاعَةِ أَعْظَمُ ځکه چې د جماعت ثواب ډېر زيات دی وَالْوَعِيدُ بِالتَّرْكِ أَلْزَمُ او د جماعت پرېښودلو وعيد ډېر سخت دی بِخِلَافِ سُنَّةِ الظُّهْرِ په خلاف د ماپښين د سنتو حَيْثُ يَتْرُكُهَا فِي الْحَالَتَيْنِ چې دا په دواړو حالتونو کې پرېښودی سي لِأَنَّهُ يُمْكِنُهُ أَدَاؤُهَا فِي الْوَقْتِ بَعْدَ الْفَرْضِ ځکه چې د ماپښين د سنتو تر فرضو وروسته په (خپل) وخت کې اداء کول ممکن دي هُوَ الصَّحِيحُ همدا صحيح ده وَإِنَّمَا الِاخْتِلَافُ بَيْنَ أَبِي يُوسُفَ وَمُحَمَّدٍ رَحِمَهُمَا اللهُ● فِي تَقْدِيمِهَا عَلَى الرَّكْعَتَيْنِ وَتَأْخِيرِهَا عَنْهُمَا خو د صاحبينو په مينځ کې اختلاف صرف په دې باره کې دی چې مخکښې څلور رکعته (سنت) به تر دوو رکعتو (سنتو) مخکې کوي او که وروسته کوي وَلَا كَذَلِكَ سُنَّةُ الْفَجْرِ او د سهار په سنتو کې دا خبره نسته عَلَى مَا نُبَيِّنُ إِنْ شَاءَ اللهُ تَعَالَى لکه څرنګه چې به موږ د دې بيان وکړو انشاء الله تعالیٰ وَالتَّقْيِيدُ بِالْأَدَاءِ عِنْدَ بَابِ الْمَسْجِدِ او د مسجد د دروازې سره د سهار د سنتو د اداء کولو قيد لګول يَدُلُّ عَلَى الْكَرَاهَةِ فِي الْمَسْجِدِ دلالت کوي (پر دې خبره) چې په مسجد کې اداء کول مکروه دي إِذَا كَانَ الْإِمَامُ فِي الصَّلَاةِ خو چې کله امام په لمانځه کې وي وَالْأَفْضَلُ فِي عَامَّةِ السُّنَنِ وَالنَّوَافِلِ الْمَنْزِلُ او د عامو سنتو او نفلو په باره کې کور افضله (غوره) دی (يعني افضله دا ده چې په کور کې وکړی سي) هُوَ الْمَرْوِيُّ● عَنِ النَّبِيِّ عَلَيْهِ الصَّلَاةُ وَالسَّلَامُ همدا له نبي ﷺ څخه رانقل سوي دي.

**اللغات:** ﴿انْتَهَى﴾ د افتعال ماضي ده: رسېدل، ختمېدل، ﴿الْمَنْزِلُ﴾ کور.

**تشريح:** صورت د مسئلې: دا دی چې که يو سړی په داسې وخت کې مسجد ته ورغلی چې امام د سهار لمونځ کوی، او دې سړي تر اوسه د سهار سنت کړي نه وه، نو اوس پوښتنه دا ده چې دا سړی دې له سنتو څخه بغير په جماعت کې شريک سي، او که لول دې سنت وکړي بيا دې په جماعت کې شريک سي؟، نو د دې جواب دا دی: که د ده دا بېره وه چې

---

● القول الراجح: قول محمد رحمه الله أي تقديم الركعتين القبلية بعد الفرض على الاربع التي فاتت، كما قال العلامة ابن الهمام رحمه الله الأولى تقديم الركعتين لأن الاربع فاتت عن الموضع المسنون فلا تفوت الركعتين عن موضعهما قصداً بلا ضرورة. فتح القدير ج ١، ص ٤١٥ [القول الراجح، ج ١، ص ١١٦]

● تخريج: أخرجه ابو داؤد في كتاب الوتر، باب فضل التطوع في البيت، حديث رقم ١٤٢٧ - ١٤٢٨

که اول سنت وکړي نو له فرضو څخه به یو رکعت تېر سي، او دویم رکعت به ونیسي، نو په دې صورت کي دي اول د مسجد د دراوزې سره د سهار سنت وکړي، بیا دي د امام سره په جماعت کي شریک سي.

**دلیل:** دا دی چي د سهار سنت تر ټولو سنتو قوي او افضل دي، نبي ﷺ فرمایلي دي: صلوهما وإن طردتکم الخیل (یعني د سهار دوه رکعته سنت کوي که څه هم آسونه تاسو تر پښو لاندي (پایماله) کړي)، همدارنګه د سهار د یوه رکعت نیول داسي دي لکه ټوله لمونځ نیول، ځکه چي نبي ﷺ فرمایلي دي: من أدرك ركعة من الفجر فقد أدرك الصلوة (یعني چا چي د سهار یو رکعت ونیوی، نو ګواکي هغه ټوله لمونځ ونیوی)، نو دلته دواړه فضیلتونه یعني د سهار د سنتو فضیلت او د جماعت فضیلت جمع کول ممکن دي، نو ځکه دي اول سنت وکړي او بیا دي په جماعت کي شریک سي چي دواړه فضیلتونه حاصل کړي.

او که د هغه دا بېره وه چي که د سهار په سنتو کي مشغول سم نو د فرضو دواړه رکعتونه به را څخه تېر سي، نو په دې صورت کي حکم دا دی چي سنت دي نه کوي بلکي د امام سره دي په جماعت کي شریک سي.

**دلیل:** ځکه چي د جماعت ثواب ډېر زیات دی، د نبي ﷺ فرمان دی: صلوة الجماعة تفضل صلوة المنفرد بسبع وعشرين درجة، (یعني د جماعت لمونځ د یوازي لمانځه په نسبت اویا (۷۰) درجې افضله دی)، او د جماعت په پرېښوولو باندي سخت وعید راغلی دی، نبي کریم ﷺ فرمایلي دي: تارك الجماعة ملعون، (یعني د جماعت پرېښوونکی لعنتي دی)، او داسي نور سخت وعیدونه هم راغلي دي، حاصل د دلیل دا دی چي کله د جماعت ثواب هم زیات دی او د جماعت په پرېښوولو باندي وعید هم راغلی دی نو ځکه به دا سړی په جماعت کي شریک کیږي، او سنت به پرېږدي.

بخلاف سنة الظهر الخ او همدغه صورت که د ماپښین په سنتو کي راپېښ سو، یعني که یو سړی د ماپښین په وخت کي مسجد ته راغلی او د ماپښین جماعت ولاړ وو، او د ده د ماپښین سنت نه وه کړي، نو اوس به دا سړی د ماپښین سنت مخکي کوي او که په جماعت کي به شریک کیږي، او سنت به پرېږدي؟، نو په دې باره کي مصنف رَحِمَهُ الله فرمایي: که د ده دا بېره وه چي که سنت وکړم نو لمونځ به را څخه تېر سي هغه که یو رکعت تیرېږي او که ټوله لمونځ تیرېږي، په دې دواړو صورتونو کي به سنت پرېږدي، او په جماعت کي به شریک کیږي، ځکه چي په وخت کي دننه تر فرضو وروسته د سنتو اداء کول ممکن دي، نو کله چي تر فرضو وروسته د سنتو اداء کول ممکن دي، نو د سنتو په وجه دي د جماعت فضیلت نه پرېږدي، او همدغه صحیح قول دی.

**دلیل:** له حضرت عائشې رضي الله عنها څخه روایت دی چي یو وار له نبي کریم ﷺ څخه د ماپښین څلور رکعته سنت فوت سول، نو نبي کریم ﷺ تر فرضو وروسته د هغو قضاء راوړه. (عنایه)

**د ماپښین څلور رکعته سنت قضاء کېدل:** لېکن اختلاف په دې باره کي دی چي کله د ماپښین تر فرضو مخکي څلور رکعته سنت فوت سي، نو د ماپښین تر فرضو وروسته چي کوم دوه رکعته سنت دي، نو تر هغه دوه رکعته به مخکي د دې څلورو رکعتو سنتو قضاء راوړي او که تر هغه دوو رکعتو وروسته، نو په دې باره کي د امام ابو یوسف رَحِمَهُ الله مذهب دا دی چي اول دي وروستني دوه رکعته سنت وکړي، او بیا دي مخکني څلور رکعته (قضاء سوي) سنت وکړي، او امام محمد رَحِمَهُ الله فرمایي: چي اول دي د څلورو رکعتو سنتو قضاء راوړي، بیا دي دوه رکعته سنت وکړي.

**د امام ابو یوسف دلیل:** دا دی چي دا څلور رکعته خو د خپل مسنون (سنت) ځای څخه فوت سوي دي او د دوی مسنون ځای تر فرضو مخکي دی، نو د دې په وجه دي وروستني دوه رکعته له خپل مسنون ځای څخه نه فوت کوي، همدارنګه

دا څلور رکعته سنت د خپل ځای يعني له قبل الفرض څخه وروسته سول نو ځکه به اوس وروسته وروسته وي. او د دې په وجه به وروستني دوه رکعته سنت نه وروسته کيږي، بلکي هغه به اول اداء کوي، بيا به څلور رکعته سنت راګرځوي.

**د امام محمد دليل:** دليل دا دی چي تر ماپښين مخکي څلور رکعته سنت خو هسي هم وروسته سول، خو اوس دي نور نه وروسته کيږي، نو ځکه مناسب دا ده چي اول دي مخکني څلور رکعت سنت وکړي او بيا دي وروستني دوه رکعته سنت وکړي.

والتقييد الخ د دې حاصل دا دی چي په قدوري کي د عند باب المسجد کوم قيد لګول سو دی له هغه څخه دا مفهوم را وځي چي که امام د سهار په فرضي لمانځه کي مشغول وو، نو لمونځ ګزار ته په مسجد کي دننه د سهار سنت کول پکار نه دي، داسي کول مکروه دي، نو ځکه وويل سوه چي د سهار سنت دي د دروازې سره اداء کوي، لېکن که د مسجد د دروازې سره خالي ځای نه وو نو د مسجد يوې ستني (پيلر) ته دي ودريږي سنت دي وکړي، لېکن داسي دي هيڅکله نه کوي چي د جماعت په صف کي سنت وکړي، ځکه چي دا سخت مکروه دي.

**له تراويحو څخه ماسوا نور سنت او نوافل په کور کي کول غوره دي:** صاحب د هدايې رَحِمَهُ الله فرمايي چي له تراويحو څخه علاوه په نورو عامو سنتو او نفلو کي افضله دا ده چي په کور کي وکړی سي، همداسي له نبي ﷺ څخه را نقل سوي دي، لکه څرنګه چي په حديث کي راځي: (۱) نوّروا بيوتكم بالصلوٰة ولا تجعلوها قبورًا. (يعني خپل کورونه په لمانځه سره ځلانده کړئ او هديره مه ځني جوړئ)، ښکاره ده چي له لمانځه څخه مراد سنت او نفل دي، نه فرض ځکه چي د فرضو لپاره مسجد دی. (۲) همدارنګه په بل ځای کي راځي: أن جميع سنن رسول الله ﷺ و وتره كان في بيته، (يعني د نبي ﷺ ټوله سنت او وتر ته به کور کي وه). همدارنګه نور هم ډېر حديثونه سته چي په کور کي د سنتو او نفلو افضل والی ځني ثابتيږي.

**راجح قول:** په پورتنۍ مسئله کي راجح قول د امام محمد رَحِمَهُ الله دی يعني که له چا څخه د ماپښين مخکني څلور رکعته سنت پاته سوه، نو تر فرضو وروسته به يې قضاء هغه وخت را ګرځوي چي کله هغه دوه رکعته سنت اداء کړي کوم چي تر فرضو وروسته دي، علامه ابن عابدين رَحِمَهُ الله فرمايي چي پر همدغه قول فتویٰ ده، او مفتي غلام قادر نعماني وايي: ښکاره دا ده چي دا اختلاف په افضليت کي دی، په جواز او نه جواز کي نه دی، نو که چا څلور رکعته مخکي وکړه نو څه حرج نسته، وګورئ: [القول الراجح ج:۱، ص:۱۱۶]

## که د سهار سنت قضاء سي نو څه وخت به يې قضاء راوړل کيږي؟

قَالَ: وَإِذَا فَاتَتْهُ رَكْعَتَا الْفَجْرِ فرمايي: که له يو چا څخه د سهار دوه رکعته سنت فوت (قضاء) سي لَا يَقْضِيهِمَا قَبْلَ طُلُوعِ الشَّمْسِ نو تر لمر راختلو مخکي دي د هغو قضاء نه راوړي لِأَنَّهُ يَبْقَى نَفْلًا مُطْلَقًا ځکه چي دا دواړه رکعته (اوس) فقط نفل پاته سوه وَهُوَ مَكْرُوهٌ بَعْدَ الصُّبْحِ او د سهار تر لمانځه وروسته نفل کول مکروه دي وَلَا بَعْدَ ارْتِفَاعِهَا عِنْدَ أَبِي حَنِيفَةَ وَأَبِي يُوسُفَ رَحِمَهُمَا اللهُ او د شيخينو رَحِمَهُمَا الله په نيز به يې تر لمر راختلو وروسته هم قضاء نه●

● القول الراجح: قول الشيخين رَحِمَهُمَا الله، كذا في رد المحتار ج:۱، ص:۴۹۹. [القول الراجح، ج:۱، ص:۱۱۷]

راوړي ﴿وَقَالَ مُحَمَّدٌ رَحِمَهُ اللهُ: أَحَبُّ إِلَيَّ أَنْ يَّقْضِيَهُمَا إِلَى وَقْتِ الزَّوَالِ﴾ او امام محمد رَحِمَهُ الله فرمايي: چې زما دا خوښه ده چې تر زواله پورې د هغو قضاء راوړي ﴿لِأَنَّهُ عَلَيْهِ الصَّلَاةُ وَالسَّلَامُ● قضاءهُمَا بَعْدَ ارْتِفَاعِ الشَّمْسِ غَدَاةَ لَيْلَةِ التَّعْرِيسِ﴾ ځکه چې نبي كريم ﷺ د ليلة التعريس په سهار تر لمر راختلو وروسته د هغو قضاء راوړه ﴿وَلَهُمَا: أَنَّ الْأَصْلَ فِي السُّنَّةِ أَنْ لَا تُقْضَى﴾ او د شيخينو رَحِمَهُمَا الله دليل دا دی: چې په سنتو کې اصل دا دی چې قضاء به يې نه راوړل كيږي ﴿لِاخْتِصَاصِ الْقَضَاءِ بِالْوَاجِبِ﴾ ځکه چې قضاء د واجبو سره خاص ده ﴿وَالْحَدِيْثُ وَرَدَ فِيْ قَضَائِهِمَا تَبَعًا لِلْفَرْضِ﴾ او حديث د فرضو په اتباع کې د هغو د قضاء راوړلو په باره کې وارد سوی دی ﴿فَبَقِيَ مَا وَرَاءَهُ عَلَى الْأَصْلِ﴾ نو له فرضو څخه علاوه (خپل) پر اصل پاته سوه ﴿وَإِنَّمَا تُقْضَى تَبَعًا لَهُ﴾ او د دې دوو ركعتو قضاء به د فرضو په اتباع کې راوړل كيږي ﴿وَهُوَ يُصَلِّيْ بِالْجَمَاعَةِ﴾ (برابره ده) که فرض په جماعت سره كوي (يعني که په جماعت سره د فرضو قضاء راوړي) ﴿أَوْ وَحْدَهُ﴾ يا يوازي لمونځ كوي ﴿إِلَى وَقْتِ الزَّوَالِ﴾ تر زواله پورې ﴿وَفِيْمَا بَعْدَهُ اخْتِلَافُ الْمَشَايِخِ رَحِمَهُمُ اللهُ﴾ او تر زوال وروسته د فقهاو رَحِمَهُمُ الله اختلاف دی ﴿وَأَمَّا سَائِرُ السُّنَنِ سِوَاهَا﴾ او پاته سوه نور سنت بغير د سهار له سنتو څخه ﴿فَلَا تُقْضَى بَعْدَ الْوَقْتِ وَحْدَهَا﴾ نو تر خپل وخت وروسته به د هغو قضاء يوازي نه راوړل كيږي ﴿وَاخْتَلَفَ الْمَشَايِخُ فِيْ قَضَائِهَا تَبَعًا لِلْفَرْضِ﴾ او علماو رَحِمَهُمُ الله د فرضو په اتباع کې د هغو په قضاء راوړلو کې اختلاف كړی دی.

**اللغات**: ﴿اِرْتِفَاعُ الشَّمْسِ﴾ د افتعال مصدر دی: د لمر راختل، يعني د اشراق وخت. ﴿غَدَاةٌ﴾ ورځ.

**تشريح**: **صورت د مسئلې**: دا دی که له يو چا څخه د سهار سنت فوت سي، نو د هغه قضاء به راوړي او که نه؟ پر دې ټوله متفق دي چې تر لمر راختلو مخكې دې د هغو قضاء نه راوړي، ځکه کله چې سنت له خپل ځای څخه فوت سي نو نفل كرځي، او د سهار تر لمانځه وروسته تر لمر راختلو پورې نفل كول مكروه دي، نو تر لمر راختلو مخكې به د دې قضاء نه راوړي، او تر لمر راختلو وروسته يې په قضاء راوړلو کې اختلاف دی. د شيخينو رَحِمَهُمَا الله په نيز به يې تر لمر راختلو وروسته هم قضاء نه راوړل كيږي. (يعني د شيخينو په نيز يې قضاء راوړل واجب نه دي)، او امام محمد رَحِمَهُ الله فرمايي چې واجب خو نه دي، خو غوره دا ده چې قضاء يې راوړي.

**د امام محمد دليل**: دا دی چې د تعريس په شپه کې تر لمر راختلو وروسته نبي كريم ﷺ د سهار د سنتو قضاء راوړه.

**د شيخينو دليل**: دا دی چې په اصل کې د سنتو قضاء نه راوړل كيږي، ځکه چې قضاء د واجب سره خاص ده. د قضاء تعريف دا دی: تسليم ما وجب بالأمر (يعني كوم شی چې په يو حكم سره واجب سوی وي د هغه شي ور سپارلو نوم قضاء ده). او څرنګه چې سنت واجب نه دي، نو ځکه د هغو قضاء راوړل هيڅ مطلب نه لري.

**جواب**: د امام محمد رَحِمَهُ الله د ليلة التعريس د حديث جواب دا دی چې پر دې موقع نبي ﷺ د فرضو په تبعيت کې د سهار د سنتو قضاء راوړه.

● تخريج: أخرجه مسلم في كتاب المساجد، باب قضاء الفائتة، حديث رقم: ٣١٠ - ٣١١.

وإنما تقضى تبعا له الخ د دې د حاصل دا دی چې د فرضو په تبعیت کي د سهار د سنتو قضاء فقط تر زواله پوري را وړل کېدلای سي، لېکن که یو سړي تر زواله پوري قضاء نه راوړه او لمر زائل سو، نو اوس څه حکم دی؟ د قضاء راوړلو اجازه سته او که نه؟ په دې اړه د مشائخو اختلاف دی، د بعضي حضراتو رایه دا ده چې تر زوال وروسته هم د فرضو په تبعیت کي د سنتو قضاء راوړل کېدلای سي، او د بعضي حضراتو رایه دا ده چې تر زوال وروسته یې قضاء نه سي راوړل کېدلای، ځکه چې په لیلة التعریس کي خلافُ القیاس تر لمر راختلو وروسته د دې قضاء راوړل ثابت دي، نو د دې واقعې په سبب تر زوال وروسته د قضاء راوړلو اجازه نسته، لېکن تر زوال مخکي جائز دي، هغه که فرض په جماعت سره اداء کوي او که یې یوازي کوي.

**راجح قول:** په پورتنی مسئله کي راجح قول د شیخینو رَحِمَهُمَا الله دی، وقال العلامة احمد الطحطاوی رَحِمَهُ الله: و أفاد الكلام أنها لا تقضى قبل طلوع الشمس وحدها أصلا ولا بعد الطلوع وهو المعتمد (حاشية الطحطاوي ص: ۳۰۰). [القول الراجح ج: ۱، ص: ۱۱۷]

## که چا د ماپښین د لمانځه صرف یو رکعت ونیوی نو څه حکم دی؟

وَمَنْ أَدْرَكَ مِنَ الظُّهْرِ رَكْعَةً او کوم سړي چي د ماپښین (د لمانځه) یو رکعت ونیوی وَلَمْ يُدْرِكِ الثَّلَاثَ او درې رکعته یې نه ونیول فَإِنَّهُ لَمْ يُصَلِّ الظُّهْرَ بِجَمَاعَةٍ نو هغه د ماپښین لمونځ په جماعت سره نه وکړی (یعني د جماعت نیونکی نه شمارل کیږي) وَقَالَ مُحَمَّدٌ: قَدْ أَدْرَكَ فَضْلَ الْجَمَاعَةِ او امام محمد رَحِمَهُ الله فرمایي چي هغه د جماعت ثواب حاصل کړی لِأَنَّ مَنْ أَدْرَكَ آخِرَ الشَّيْءِ فَقَدْ أَدْرَكَهُ ځکه چا چي د یو شي آخر حاصل کړی نو ده هغه شی حاصل کړی فَصَارَ مُحْرِزًا ثَوَابَ الْجَمَاعَةِ نو دا سړی د جماعت د ثواب حاصلوونکي سو لَكِنَّهُ لَمْ يُصَلِّهَا بِالْجَمَاعَةِ حَقِيقَةً خو په حقیقت کي یې (د ماپښین لمونځ) په جماعت سره نه وکړی وَلِهَذَا يَحْنَثُ بِهِ فِي يَمِينِهِ لَا يُدْرِكُ الْجَمَاعَةَ همدا وجه ده چي (صرف) د یوه رکعت په نیولو سره په خپل دې قسم کي حانثیږي: چي جماعت به نه نیسي (یعني که یو څوک قسم وکړي چي جماعت به نه نیسم نو په دې وخت کي فقط د یوه رکعت په نیولو سره هم حانثیږي) وَلَا يَحْنَثُ فِي يَمِينِهِ لَا يُصَلِّي الظُّهْرَ بِالْجَمَاعَةِ او په خپل دې قسم کي نه حانثیږي: چي د ماپښین لمونځ به جماعت سره نه کوي (یعني که یو څوک قسم وکړي چي د ماپښین لمونځ به په جماعت سره نه کوم نو فقط د یوه رکعت په نیولو سره نه حانثیږي).

**اللغات:** ﴿محرزا﴾ حاصلوونکی، تر لاسه کونکی، ﴿یمین﴾ قسم.

**تشریح: مسئله:** دا ده که یو چا په څلور رکعتیز لمانځه کي یو رکعت د امام سره ونیوی، او درې رکعته یې نه ونیول، نو دا به ویل کیږي چي ده په جماعت سره لمونځ نه دي کړی، لېکن امام محمد رَحِمَهُ الله فرمایي چي د جماعت فضیلت ور ته حاصل سو، په متن کي خو د امام محمد رَحِمَهُ الله تخصیص سوی دی، کنې دا حکم د احنافو په نېز متفق علیه دی. دلیل دا دی چي کوم چا د یو شي آخري جزء تر لاسه کړی، نو ګواکي ده هغه شی تر لاسه کړی، لهذا دا سړی د جماعت د فضیلت حاصلوونکی سو، خو په حقیقت کي یې دا لمونځ په جماعت سره نه دي کړی، همدا وجه ده چي که یو چا قسم وکړی چي جماعت به نه نیسم، بیا یې یو رکعت ونیوی نو دا سړی حانث سو، ځکه چي دې سړي ته د جماعت فضیلت او ثواب حاصل سو، او که دا قسم یې وکړی چي زه به د ماپښین لمونځ په جماعت سره نه کوم، بیا یې یو

رکعت د امام سره ونیوی، نو دا سړی نه حانث کیږي، ځکه چې په حقیقت کې ده په جماعت سره د ماپښین لمونځ نه دی کړی.

## که څوک مسجد ته په داسې وخت کې ورسېدی چې لمونځ سوی وو نو څه حکم دی؟

وَمَنْ أَتَى مَسْجِدًا قَدْ صُلِّيَ فِيهِ او که یو سړی هغه مسجد ته راغلی چې په هغه کې لمونځ سوی وو فَلَا بَأْسَ بِأَنْ يَتَطَوَّعَ قَبْلَ الْمَكْتُوبَةِ نو هیڅ باک نسته چې تر فرضو مخکې نفلي لمونځ وکړي مَا بَدَا لَهُ مَا دَامَ فِي الْوَقْتِ تر څو چې ده ته معلومه وي چې هغه په وخت کې دی وَمُرَادُهُ إِذَا كَانَ فِي الْوَقْتِ سَعَةٌ د امام قدوري رَحِمَهُ الله مراد دا دی چې که په وخت کې پراخي وه وَإِنْ كَانَ فِيهِ ضِيقٌ او که په وخت کې تنګي وه تَرَكَهُ نو نفل دې پرېږدي قِيلَ هَذَا فِي غَيْرِ سُنَّةِ الظُّهْرِ وَالْفَجْرِ ویل سوي دي چې دا حکم د ماپښین او د سهار له سنتو څخه ماسوا (په نورو سنتو) کې دی لِأَنَّ لَهُمَا زِيَادَةُ مَزِيَّةٍ ځکه چې د ماپښین او د سهار سنتو ته زیات فضیلت (او خصوصیت) حاصل دی قَالَ عَلَيْهِ الصَّلَاةُ وَالسَّلَامُ● فِي سُنَّةِ الْفَجْرِ نبي ﷺ د سهار د سنتو په باره کې فرمایلي دي صَلُّوهُمَا وَلَوْ طَرَدَتْكُمُ الْخَيْلُ د سهار دوه رکعته سنت کوئ که څه هم آسونه تاسو تر پښو لاندې (پایماله) کړي وَقَالَ فِي الْأُخْرَى او د ماپښین د سنتو په باره کې یې فرمایلي دي مَنْ تَرَكَ الْأَرْبَعَ قَبْلَ الظُّهْرِ لَمْ تَنَلْهُ شَفَاعَتِي چا چې د ماپښین تر لمانځه مخکې څلور رکعته (سنت) پرېښوول هغه ته به زما شفاعت نصیب نه سي وَقِيلَ هَذَا فِي الْجَمِيعِ او ویل سوي دي چې دا حکم د ټولو سنتونو په باره کې دی لِأَنَّهُ عَلَيْهِ الصَّلَاةُ وَالسَّلَامُ وَاظَبَ عَلَيْهَا عِنْدَ أَدَاءِ الْمَكْتُوبَاتِ بِجَمَاعَةٍ ځکه چې نبي کریم ﷺ په جماعت سره د فرضو اداء کولو په وخت کې پر دې سنتو همېشتوب کړی دی وَلَا سُنَّةَ دُونَ الْمُوَاظَبَةِ او له همېشتوب څخه بغیر سنت نه سي کېدلای وَالْأَوْلَى أَنْ لَا يَتْرُكَهَا فِي الْأَحْوَالِ كُلِّهَا او غوره دا ده چې په هیڅ یو حالت کې سنت نه پرېښوول سي لِكَوْنِهَا مُكَمِّلَاتٍ لِلْفَرَائِضِ ځکه چې سنت د فرضو لپاره بشپړ کونکي دي إِلَّا إِذَا خَافَ فَوْتَ الْوَقْتِ خو کله چې د وخت پر تېرېدلو وېرېږي.

**اللغات:** ﴿يَتَطَوَّعُ﴾ د تفعّل د باب مضارع ده: نفل اداء کول. ﴿سَعَةٌ﴾ ګنجایش، پراخي. ﴿ضِيقٌ﴾ تنګي. ﴿مَزِيَّةٌ﴾ فضیلت، ځانګړتیا. ﴿لَمْ تَنَلْهُ﴾ د فتح له باب څخه د جحد معلوم صیغه ده: حاصلېدل، نصیب کېدل، تر لاسه کېدل.

**تشریح:** **صورت د مسئلې:** دا دی که یو له چا څخه د جماعت لمونځ پاته سو او هغه داسې مسجد ته راغلی چې په هغه کې جماعت سوی وو، یا یې په کور کې د فرضي لمونځ اراده وکړه، نو په دې کې هیڅ خبره نسته چې دی تر فرضو مخکې چې څومره وغواړي سنت او نفل اداء کړي، خو په دې شرط چې په وخت کې ګنجایش وي، او که وخت تنګ وو نو اول دې فرض لمونځ وکړي، چې فرضي لمونځ له خپل وخت څخه قضاء نه سي.

قیل الخ ځیني حضراتو ویلي دي چې د سنتو او نفلو پرېښوولو حکم هلته دی چې د سهار او ماپښین سنت نه وي، ځکه چې د سهار او ماپښین سنت د نورو سنتونو په مقابله کې زیات فضیلت لري، نو که څه هم وخت تنګ وي، هغه به

● تخریج: أخرجه ابو داؤد فی کتاب التطوع، باب رکعتي الفجر، باب فی تخفیفهما، حدیث رقم:۱۲۵۸.

ضرور کوي، هو! که وخت دومره تنګ سو چي له فرضي لمانځه څخه ماسوا د بل هيڅ شي ګنجايش نه وو، نو په داسي نازک صورت کي د سهار او ماپښين سنتونه هم پرېښوولای سي.

وقيل الخ ځيني حضراتو ويلي دي چي د وخت د تنګوالي په صورت کي د سنتو پرېښوولو حکم په ټولو سنتو کي دی، هغه که د ماپښين او سهار سنت وي او که له دې څخه ماسوا نور سنت وي، ځکه نبي ﷺ به پر سنتو همېشتوب هغه وخت کوی چي کله به يې فرض په جماعت سره کوله، او کله چي به يې فرض يوازي کول نو پر سنتو يې همېشتوب نه کوی، او بيا له همېشتوب څخه سنت نه ثابتيږي، نو د منفرد په حق کي به دا لمونځونه سنت نه وي بلکي نفل به وي او په نفلو کي اختيار دی که يې کوي او که يې نه کوي، نو ځکه وويل سوه چي د نه کولو حکم په ټولو سنتو کي دی.

والأولی الخ صاحب د هدايې رَحِمَهُ الله فرمايي چي غوره دا ده چي دا سنتونه په هيڅ حال کي هم نه پرېږدي، هغه که په وخت کي تنګي وي او که پراخي، فرض لمونځ په جماعت سره کوي او که يې يوازي کوي، مقيم وي، که مسافر، ځکه چي سنت د فرضو لپاره پوره کونکي دي، نو د فرضو د ثواب د پوره کولو لپاره دي په هيڅ حال کي سنت نه پرېږدي، خلفاء راشدينو، او جليل القدر صحابه وو او تابعينو هم پر دې عمل کړی دی چي سنتونه به يې په هيڅ وخت کي هم نه پرېښوول، هو! که د وخت د تېرېدلو بېره وه نو سنت دي پرېږدي او فرض دي اداء کړي. (عنايه)

## چا چي امام په رکوع کي نه ونيوی نو د هغه څه حکم دی؟

وَمَنِ انْتَهٰى إِلَى الْإِمَامِ فِي رُكُوْعِهٖ او څوک چي امام ته په رکوع کي ورسېدی (يعني امام يې په رکوع کي ونيوی) فَكَبَّرَ او تکبير تحريمه يې ووايی وَوَقَفَ لېکن ودرېدی حَتّٰى رَفَعَ الْإِمَامُ رَأْسَهٗ تر دې چي امام سر را پورته کړی لَا يَصِيْرُ مُدْرِكًا لِتِلْكَ الرَّكْعَةِ نو دا سړی د دې رکعت نيوونکی نه سو خِلَافًا لِزُفَرَ د امام زفر رَحِمَهُ الله اختلاف دی هُوَ يَقُوْلُ: أَدْرَكَ الْإِمَامَ فِيْمَا لَهٗ حُكْمُ الْقِيَامِ هغه فرمايي چي امام يې په داسي حالت کي ونيوی چي د هغه حکم د ولاړي دی فَصَارَ كَمَا لَوْ أَدْرَكَهٗ فِي حَقِيْقَةِ الْقِيَامِ نو دا داسي سو لکه په حقيقت کي چي يې امام په ولاړه نيولی وي وَلَنَا: أَنَّ الشَّرْطَ هُوَ الْمُشَارَكَةُ فِيْ أَفْعَالِ الصَّلَاةِ او زموږ دليل دا دی: چي (د رکعت نيولو لپاره) د لمانځه په افعالو کي شرکت کول شرط دی وَلَمْ يُوْجَدْ لَا فِي الْقِيَامِ وَلَا فِي الرُّكُوْعِ او (دلته) شرکت کول نه په ولاړه کي راغلی دي او نه په رکوع کي (نو ځکه به يې رکعت نيولی نه وي).

**اللغات:** ﴿المشاركة﴾ شرکت کول، ګډون کول.

**تشريح: مسئله:** دا ده که يو سړی مسجد ته په داسي حال کي ورسېدی چي جماعت شروع سوی وو او امام په رکوع کي وو، نو دې سړي تکبير ووايی او لږ وخت ودرېدې تر دې چي امام سر را پورته کړی، نو د علماء ثلاثه وو په نيز هغه د دې رکعت نيونکی نه شمارل کيږي، امام زفر رَحِمَهُ الله فرمايي چي دا سړی د دې رکعت نيونکی شمارل کيږي، همدغه قول د سفيان ثوري، ابن ابی ليلیٰ او د عبدالله بن مبارک هم دی.

**د امام زفر دليل:** دا دی چي دې سړي امام د رکوع په حالت کي ونيوی که څه هم په خپله يې رکوع نه وکړه، او رکوع ته د قيلمي (ولاړي) حکم حاصل دی، نو د رکوع په حالت کي نيول داسي دي لکه د ولاړي په حالت کي نيول، او د ولاړي په وخت کي نيونکی د رکعت نيونکی وي، نو ځکه به د رکوع په حالت کي د امام نيونکی هم د دغه رکعت نيونکی شمارل کيږي.

**د علماء ثلاثه وو دليل:** دا دی چې اقتداء د لمانځه په افعالو کې شرکت کولو ته ویل کیږي، او دلته شرکت نشته، نه په ولاړه کې او نه په رکوع کې، نو کله چې د دې رکعت نه په ولاړه کې شرکت سته او نه په رکوع کې، نو دا سړی به د دې رکعت نیونکی هم نه شمارل کیږي.

**جواب:** د امام زفر رَحِمَهُ الله دا خبره چې رکوع ته د ولاړې حکم حاصل دی، موږ نه منو ځکه چې د عبد الله بن عمر رَضِيَ اللهُ عَنْهُمَا حدیث دی: إذا أدركت الإمام راكعاً فركعت قبل أن يرفع رأسه فقد أدركت تلك الركعة وإن رفع رأسه قبل أن يركع فاتتك تلك الركعة. (یعني کله چې تا امام د رکوع په حالت کې ونیوی، بیا تا د امام تر سر راپورته کولو مخکې رکوع وکړه، نو تا دغه رکعت ونیوی او که ستا تر رکوع کولو مخکې امام سر راپورته کړی نو دا رکعت ستا څخه تیر (فوت) سو).

## چا چې تر امام مخکې رکوع وکړه نو د هغه څه حکم دی؟

وَلَوْ رَكَعَ الْمُقْتَدِيْ قَبْلَ إِمَامِهِ او که مقتدي تر خپل امام مخکې رکوع وکړه فَأَدْرَكَهُ الْإِمَامُ فِيْهِ بیا امام هغه په دې رکوع کې ونیوی جَازَ نو دا جائز دي (یعني دا رکوع د ده لپاره کافي ده) وَقَالَ زُفَرُ رَحِمَهُ اللهُ: لَا يُجْزِئُهُ او امام زفر رَحِمَهُ الله فرمایي: چې دا جائز نه دي (یعني دا رکوع د ده لپاره کافي نه ده) لِأَنَّ مَا أَتَى بِهِ قَبْلَ الْإِمَامِ ځکه مقتدي چې کومه رکوع تر امام مخکې وکړه غَيْرُ مُعْتَدٍّ بِهِ هغه معتبره نه ده فَكَذَا مَا يَبْنِيْ عَلَيْهِ نو همدارنګه به هغه هم معتبر نه وي کوم چې پر دې بناء کیږي وَلَنَا: أَنَّ الشَّرْطَ هُوَ الْمُشَارَكَةُ فِيْ جُزْءٍ وَاحِدٍ او زموږ دلیل دا دی: چې (صرف) په یوه جزء کې شرکت کول شرط دي كَمَا فِي الطَّرَفِ الْأَوَّلِ لکه څنګه چې په اوله حصه کې (شرکت کول)، والله اعلم.

**تشريح: مسئله:** دا ده که مقتدي تر امام مخکې رکوع ته ولاړ، بیا امام هم رکوع ته ولاړ تر دې چې دواړه په رکوع کې شریک سوه، نو په دې صورت کې د مقتدي لمونځ نه فاسدیږي، همدغه حکم د سجدې په صورت کې دی، خو په دې سره د مقتدي لمونځ مکروه کیږي، ځکه نبي ﷺ فرمایلي دي: لا تبادروني بالركوع والسجود. (یعني په رکوع او سجده کې زما څخه مه مخته کیږئ!).

همدارنګه نبي ﷺ فرمایلي دي: أما يخشى الذي يركع قبل الامام أن يحول رأسه رأس الحمار. (آیا هغه سړی نه بیریږي چې تر امام مخکې رکوع کوي چې سره یې د خره سي). امام زفر رَحِمَهُ الله فرمایي چې د مقتدي لمونځ جائز نه دی، نو پر مقتدي د دې رکوع راګرځول واجب دي، او که یې نه راوګرځوي نو لمونځ یې نه صحیح کیږي.

**د امام زفر دليل:** دا دی چې مقتدي د رکوع کومه حصه له امام څخه مخکې اداء کړې ده هغه معتبره نه ده، ځکه نبي ﷺ فرمایلي دي إنما جعل الامام ليؤتم به فلا تختلفوا عليه. (یعني امام د دې لپاره جوړیږي چې د هغه اقتداء وکړی سي نو له هغه څخه اختلاف مه کوئ)، نو کومه حصه چې معتبره نه سوه او فاسده سوه نو پر هغې حصې چې کومه حصه بناء کیږي هغه به هم فاسده وي، لأن البناء على الفاسد فاسد، نو ځکه به د ده لمونځ فاسد وي.

**زموږ دليل:** دا دی چې د اقتداء د صحت لپاره د رکن په یو جزء کې شرکت شرط دی، او څرنګه چې په ذکر سوې مسئله د رکوع په آخر کې شرکت سته، نو ځکه اقتداء صحیح ده، او کله چې اقتداء صحیح ده، نو د مقتدي لمونځ هم صحیح سو، او لکه څرنګه چې په اوله حصه یعني د رکوع په اول جزء کې که شرکت راغلی وای، په دې توګه چې مقتدي د امام سره یو ځای رکوع کړې وای او د امام تر سر راپورته کولو مخکې مقتدي سر راپورته کړی وی نو د شرکت راتلو په وجه به اقتداء صحیح وای، همدارنګه به په دې صورت کې هم د مقتدي اقتداء صحیح وي، ځکه چې د رکن یعني د رکوع په آخري جزء کې شرکت سته، او دا شرکت د لمانځه د صحت لپاره کافي دی. والله أعلم بالصواب

# بَابُ قَضَاءِ الْفَوَائِتِ

(دا) باب د قضاء سوو لمونځونو د قضاء راوړلو (په بيان کي) دی

**تشريح:** تر دې مخکي صاحب د کتاب د اداء او د اداء د متعلقاتو احکام بيان کړل، اوس له دې ځايه د قضاء احکام بيانوي، او ځرنګه چي د قضاء په مقابله کي اداء اصل ده، نو ځکه اداء مخکي بيان سوه، او قضاء وروسته بيانيږي.

الأداء عبارة عن تسليم نفس الواجب بسبب إلى مستحقه. والقضاء عبارة عن تسليم مثل الواجب. (يعني خپل مستحق ته د نفسِ واجب اداء کولو ته اداء ويل کيږي، او خپل مستحق ته د مثلِ واجب اداء کولو ته قضاء ويل کيږي).

## د قضاء سوي لمانځه د قضاء راوړلو وخت

وَمَنْ فَاتَتْهُ صَلَاةٌ او له چا ځخه چي لمونځ قضاء(فوت) سي قَضَاهَا إِذَا ذَكَرَهَا نو کله چي يې په ياد سي د هغه قضاء دي راوړي وَقَدَّمَهَا عَلَىٰ فَرْضِ الْوَقْتِ او تر وختي فرضو دي يې مخکي کړي وَالْأَصْلُ فِيْهِ أَنَّ التَّرْتِيْبَ بَيْنَ الْفَوَائِتِ وَفَرْضِ الْوَقْتِ عِنْدَنَا مُسْتَحَقٌّ او اصل په دې کي دا دی چي زموږ په نيز د قضاء سوو (لمونځونو) او د وختي فرضي (لمانځه) په مينځ کي ترتيب واجب دی وَعِنْدَ الشَّافِعِيِّ رَحِمَهُ اللهُ مُسْتَحَبٌّ او د امام شافعي رَحِمَهُ الله په نيز مستحب دی لِأَنَّ كُلَّ فَرْضٍ أَصْلٌ بِنَفْسِهِ فَلَا يَكُوْنُ شَرْطًا لِغَيْرِهِ ځکه هر فرض په خپله يو اصل دی نو دا به د بل لپاره شرط نه وي وَلَنَا قَوْلُهُ عَلَيْهِ الصَّلَاةُ وَالسَّلَامُ• او زموږ دليل د نبي ﷺ (دا) قول دی مَنْ نَامَ عَنْ صَلَاةٍ أَوْ نَسِيَهَا څوک چي د لمانځه په وخت کي بيده(ويده) سو او يا لمونځ ځني هېر سو فَلَمْ يَذْكُرْهَا إِلَّا وَهُوَ مَعَ الْإِمَامِ او دا لمونځ په هغه حال کي په ياد ورغلی چي دا سړی د امام سره وو (يعني په جماعت کي وو) فَلْيُصَلِّ الَّتِي هُوَ فِيْهَا نو (اول) دي هغه لمونځ وکړي چي په کوم کي (شريک) دی (د امام سره) ثُمَّ لِيُصَلِّ الَّتِي ذَكَرَهَا بيا دي په ياد ورغلی لمونځ وکړي ثُمَّ لِيُعِدِ الَّتِي صَلَّىٰ مَعَ الْإِمَامِ بيا دي هغه لمونځ راوګرځوي کوم چي يې د امام سره کړی دی.

**اللغات:** ﴿فَوَائِت﴾ جمع ده، واحد يې فَائِتَةٌ دی: قضاء سوی لمونځ، فوت سوی لمونځ، ﴿لِيُعِدْ﴾ د افعال له باب ځخه دامر غائب صيغه ده: راګرځول، بيرته کول.

**تشريح:** د مسئلې تر صورت مخکي دا اصل په ذهن کي ونيسئ چي زموږ په نيز د قضاء سوو او وختي لمونځونو په مينځ کي ترتيب واجب دی، يعني پر لمونځ ګزاره دا لازم دي چي اول دي قضاء سوی لمونځ وکړي او بيا دي وختي لمونځ وکړي، د دې په خلاف د امام شافعي رَحِمَهُ الله په نيز د قضاءسوو او وختي لمونځونو په مينځ کي ترتيب مستحب دی، او که يو سړی بې له قضاء سوي لمانځه وختي لمونځ وکړي، نو هيڅ حرج نسته.

---

• تخريج: أخرجه دار قطني في كتاب الصلاة، باب قضاء الصلاة، حديث رقم:۱۲۲۹.

**صورت د مسئلې:** دا دی که له یو سړي څخه فرضي لمونځ قضاء سي، نو هغه دي د دویم فرضي لمانځه تر کولو مخکي دغه قضاء سوی لمونځ را وګرځوي، او تر هغه وروسته دي فرضي لمونځ وکړي.

**دلیل:** دا دی چي د دغه حدیث: من نام عن صلاة په آخر کي په ثم لیعد التي صلّى مع الإمام سره د امر د صیغې په ذریعه تر وختي لمانځه (وقتي لمانځه) مخکي د قضاء سوي لمانځه د راګرځولو حکم سوی دی، په دې توګه چي نبي ﷺ د قضاء سوي لمانځه د یادېدلو په صورت کي د وختي لمانځه د راګرځولو حکم کړی دی، او د لمانځه راګرځول د واجب پرېښوولو په وجه کیږي، نو له دې څخه معلومه سوه، چي قضاء سوی لمونځ پر وختي لمونځ مخکي کول ضروري او واجب دي، او که یو چا قضائي لمونځ وروسته کړی، نو په دې صورت کي د وختي لمانځه راګرځول واجب دي.

لېکن امام شافعي رَحِمَهُ الله فرمایي چي داسي نه ده، یعني نه خو پر وختي لمانځه د قضائي لمانځه مخکي کول واجب دي، او نه د وختي لمانځه د مخکي اداء کولو په صورت کي د وختي لمانځه راګرځول واجب دي.

**د امام شافعي دلیل:** دا دی چي هر فرض په خپله اصل دی (یعني بذات خود واجب او اصل دی) نو هغه د دویم شي لپاره شرط نه سي جوړېدلای، ځکه چي شرط تابع وي، او د اصالت او تبعیت په مینځ کي منافات دی، نو که د وختي لمانځه لپاره د قضاء سوي لمانځه راګرځول واجب (او شرط) وګرځول سي، نو په دې صورت کي به قضاء سوي لمونځ تابع وګرځیږي، حال دا چي قضاء سوی لمونځ د فرض کېدلو په وجه په خپله اصل دی، نو ثابته سوه چي قضائي لمونځ پر وختي لمانځه مخکي کول واجب نه دي.

## په قضاء کي د ترتیب ساقطوونکو شیانو بیان

وَلَوْ خَافَ فَوْتَ الْوَقْتِ او که لمونځ ګزار ته د وخت د فوتېدلو (تېرېدلو) بېره وه يُقَدِّمُ الْوَقْتِيَّةَ نو وختي لمونځ دي (پر قضاء سوي لمانځه) مخکي کړي ثُمَّ يَقْضِيهَا بیا دي د قضاء سوي لمانځه قضاء راوړي لِأَنَّ التَّرْتِيبَ يَسْقُطُ بِضِيقِ الْوَقْتِ ځکه چي د وخت د تنګېدلو په وجه ترتیب ساقطیږي وَكَذَا بِالنِّسْيَانِ وَكَثْرَةِ الْفَوَائِتِ همدارنګه په هېره او د قضاء سوو لمونځونو په ډېرښت سره (هم ترتیب ساقطیږي) كَيْ لَا يُؤَدِّيَ إِلَى تَفْوِيتِ الْوَقْتِيَّةِ د دې لپاره چي د وختي لمانځه د فوتولو سبب جوړ نه سي.

**اللغات:** ﴿ضِيق﴾ تنګي، ﴿نِسْيَان﴾ هېره، ﴿تَفْوِيت﴾ د تفعیل د باب مصدر دی: فوت کول، قضاء کول.

**تشریح:** په دې عبارت کي هغه شیان بیانیږي چي ترتیب په ساقطیږي، او هغه درې شیان دي: (۱) که د وخت د فوتېدلو او تېرېدلو بېره وي (۲) که له انسان څخه قضائي لمونځ هېر سي (۳) که قضائي لمونځونه ډېر سي، نو د دې تفصیل په رڼا کي د عبارت حاصل دا سو چي که له دې دریو شیانو څخه یو شی راغلی نو په دې صورت کي قضائي لمونځ وروسته کول او وختي لمونځ مخکي کول صحیح دي، ځکه که داسي نه وسي، نو وختي لمونځ به قضاء سي، او د قضائي لمانځه په وجه د وختي لمانځه قضاء کول یا د تنګی په وخت کي اداء کول صحیح نه دي، ځکه چي د اداء مقام له قضاء څخه لوړ دی.

## که د وخت د تنګوالي سره قضاء سوی لمونځ مخکي کړی سي نو څه حکم دی؟

وَلَوْ قَدَّمَ الْفَائِتَةَ او که لمونځ ګزاره (د وخت د تنګوالي په صورت کي) قضاء سوی لمونځ مخکي کړی جَازَ نو (هم) جائز دي لِأَنَّ النَّهْيَ عَنْ تَقْدِيمِهَا ځکه له مخکي کولو څخه چي کوم ممانعت دی لِمَعْنًى فِي غَيْرِهَا هغه د داسي معنیٰ په

وجه دی کوم چې په غیر کې ده بِخِلَافِ مَا إِذَا كَانَ فِي الْوَقْتِ سَعَةٌ په خلاف د هغه صورت چې کله په وخت کې پراخي (گنجایش) وي وَقَدَّمَ الْوَقْتِيَّةَ او وختي لمونځ مخکې کړي حَيْثُ لَا يَجُوزُ نو (دا) جائز نه دی لِأَنَّهُ أَدَّاهَا قَبْلَ وَقْتِهَا الثَّابِتِ بِالْحَدِيثِ ځکه چې دا یې له خپل هغه وخت څخه مخکې اداء کړی کوم چې په حدیث سره ثابت دی.

**تشریح:** مسئله: دا ده که یو چا د وخت د تنګوالي سره سره قضائي لمونځ وکړی او وختي لمونځ یې پرېښوی، نو قضائي لمونځ خو به یې اداء سي لېکن په دې وجه به ګناهکاره وي چې وختي لمونځ یې په خپل وخت کې اداء نه کړی، او صحیح ځکه دی چې د قضائي لمانځه د مخکې کولو ممانعت او بندیز د داسي معنیٰ په وجه سره دی چې هغه په غیر یعني په وختي لمانځه کې ده، ځکه چې د وختي لمانځه په رعایت کې د وخت د تنګوالي په صورت کې د قضائي لمانځه د وروسته کولو حکم راغلی دی، لېکن کله چې هغه د وختي لمانځه رعایت نه وکړی، او اول یې قضائي لمونځ اداء کړی، نو د هغه دا کار جائز دی، خو د وختي لمانځه د قضاء کولو په وجه به ګنهګاره وي.

بخلاف الخ د دې په خلاف که په وخت کې ګنجایش او پراخي وه او بیا یې وختي لمونځ تر قضائي لمانځه مخکې وکړی نو داسي کول جائز نه دي ځکه دا داسي سوه لکه هغه چې وختي لمونځ تر خپل وخت مخکې اداء کړی، او تر وخت مخکې یې په دې وجه اداء کړی چې په حدیث کې راغلي چې د وختي لمانځه وخت تر قضائي لمانځه وروسته دی او کوم لمونځ چې تر وخت مخکې وسي، هغه صحیح نه دی، نو ځکه به په هغه صورت کې وختي لمونځ پر قضائي لمونځ مخکې کول صحیح نه وي چې په وخت کې ګنجایش او پراخي وي.

## په قضاء سوو لمونځونو کې د ترتیب حکم

وَلَوْ فَاتَتْهُ صَلَوَاتٌ او که له هغه څخه ډېر لمونځونه قضاء (فوت) سوه رَتَّبَهَا فِي الْقَضَاءِ كَمَا وَجَبَتْ فِي الْأَصْلِ نو په قضاء راوړلو کې دې یې په هغه ترتیب سره اداء کړي لکه څرنګه چې په اداء کې واجب سوي وه لِأَنَّ النَّبِيَّ عَلَيْهِ الصَّلَاةُ وَالسَّلَامُ • شُغِلَ عَنْ أَرْبَعِ صَلَوَاتٍ يَوْمَ الْخَنْدَقِ ځکه نبي کریم ﷺ د خندق په ورځ له څلورو لمونځونو څخه مشغوله کړی سو فَقَضَاهُنَّ مُرَتَّبًا نو نبي ﷺ هغه څلور لمونځونه په ترتیب سره اداء کړل ثُمَّ قَالَ: صَلُّوا كَمَا رَأَيْتُمُونِي أُصَلِّي بیا یې وفرمایل: تاسو داسي لمونځ کوئ لکه څرنګه چې تاسو ما پر لمونځ کولو وینئ إِلَّا أَنْ تَزِيدَ الْفَوَائِتُ عَلَى سِتِّ صَلَوَاتٍ خو دا چې قضاء سوي لمونځونه تر شپږو زیات سي (نو بیا ترتیب ساقطیږي) لِأَنَّ الْفَوَائِتَ قَدْ كَثُرَتْ ځکه چې (په دې صورت کې) قضاء سوي لمونځونه ډېر سول فَيَسْقُطُ التَّرْتِيبُ فِيمَا بَيْنَ الْفَوَائِتِ نَفْسِهَا نو په خپله به د قضاء سوو لمونځونو په مینځ کې ترتیب ساقطیږي كَمَا سَقَطَ بَيْنَهَا وَبَيْنَ الْوَقْتِيَّةِ لکه څرنګه چې د قضاء سوو او وختي لمونځونو په مینځ کې ترتیب ساقط سو وَحَدُّ الْكَثْرَةِ او د ډېرښت حد دا دی أَنْ تَصِيرَ الْفَوَائِتُ سِتًّا لِخُرُوجِ وَقْتِ الصَّلَاةِ

• تخریج: أخرجه الترمذي في كتاب الصلوٰة، باب ما جاء في الرجل تفوت الصلوات، حديث رقم: ١٧٩

السَّادِسَةِ چي د شپږم لمانځه د وخت د وتلو په وجه قضاء سوي لمونځونه شپږ سي وَهُوَ الْمُرَادُ بِالْمَذْكُورِ فِي الْجَامِعِ الصَّغِيرِ• او په جامع صغير کي چي کوم ذکر دي له هغه څخه هم دغه مراد دي وَهُوَ قَوْلُهُ او په جامع صغير کي د امام محمد رَحِمَهُ الله دا قول دی وَإِنْ فَاتَتْهُ أَكْثَرُ مِنْ صَلَاةِ يَوْمٍ وَلَيْلَةٍ او که له يو چا څخه د يوې ورځي او شپې تر لمونځونو زيات لمونځونه قضاء سي أَجْزَأَتْهُ الَّتِي بَدَأَ بِهَا نو د هغه لپاره هغه لمونځ کافي دی په کوم چي يې شروع کړې ده لِأَنَّهُ إِذَا زَادَ عَلَى يَوْمٍ وَلَيْلَةٍ تَصِيرُ سِتًّا ځکه چي کله قضاء سوي لمونځونه پر يوې ورځي او شپې زيات سي نو شپږ کرځي وَعَنْ مُحَمَّدٍ رَحِمَهُ اللهُ او له امام محمد څخه (بل) روايت دا دی أَنَّهُ اعْتَبَرَ دُخُولَ وَقْتِ السَّادِسَةِ چي هغه د شپږم لمانځه د وخت د داخلېدلو اعتبار کړی دی وَالْأَوَّلُ هُوَ الصَّحِيحُ (ليکن) اول قول صحيح دی لِأَنَّ الْكَثْرَةَ بِالدُّخُولِ فِي حَدِّ التَّكْرَارِ ځکه چي ډېرښت د تکرار په حد کي په داخلېدلو سره راځي وَذَٰلِكَ فِي الْأَوَّلِ او دا په اول قول کي دي.

**اللغات:** ﴿شُغِلَ﴾ د فتح د باب ماضي مجهول صيغه ده: مشغوله کېدل، بوختېدل. ﴿أَجْزَأَتْهُ﴾ د افعال د باب ماضي صيغه ده: کافي کېدل، جائز کېدل.

**تشريح:** مسئله دا ده چي څرنګه ترتيب د وختي او قضائي لمونځونو په مينځ کي فرض دی، همدغه ډول په خپله د قضائي لمونځونو په مينځ کي فرض دی، نو که يو څو لمونځونه قضاء سول، د هغو قضاء به هم په هغه ترتيب سره راوړي په کوم ترتيب چي دا واجب سوي دي. (په دې شرط چي تر شپږو لمونځونو زيات نه سي، ځکه که تر شپږو لمونځونو زيات سي، نو بيا "يو څو لمونځونه" نه بلکي "ډېر لمونځونه" سول)

**دليل:** د نبي کريم ﷺ دا حديث دی: عن عبد الله بن مسعود ﷺ قال: إن المشركين شغلوا رسول الله ﷺ عن اربع صلوات يوم الخندق حتى ذهب من الليل ما شاء الله فأمر بلالا فأذن ثم أقام فصلى الظهر ثم أقام فصلى العصر ثم أقام فصلى المغرب ثم أقام فصلى العشاء؛ ثم قال صلوا كما رأيتموني أصلي. له دې حديث څخه ثابته سوه چي په کوم ترتيب سره لمونځونه قضاء سوي وو، په هغه ترتيب سره نبي کريم ﷺ د هغو قضاء راوړه، او بيا يې حکم وکړی: صلوا كما رأيتموني أصلي (تاسو داسي لمونځ کوئ لکه څرنګه چي زه لمونځ کوم).

وحد الكثرة الخ فرمايي چي د قضائي لمونځونو د ډېرښت (کثرت) لپاره د شپږم لمانځه د وخت وتل شرط دي، د شپږم لمانځه د وخت داخلېدل معتبر نه دي، ځکه چي په دې سره په لمونځونو کي تکرار نه پيدا کېږي، او د کثرت لپاره تکرار ضروري دي، (يعني کله چي د شپږم لمانځه وخت ووځي، نو بيا به مثلاً داسي ويل کېدای سي چي زما څخه د ماپښين دوه لمونځونه قضاء سوي دي او داسي نور).

وهو المراد بالمذكور الخ او کوم چي امام محمد رَحِمَهُ الله په جامع صغير کي بيان کړي دي يعني: که له يو سړي څخه تر يوې ورځي او شپې زيات لمونځونه قضاء سي، نو هغه چي د هر لمانځه قضاء څخه شروع کوي، کافي دي، له دې څخه همدغه مرا دي چي کله قضائي لمونځونه شپږو ته ورسيږي، يا تر شپږو زيات سي، نو بيا په هغو کي ترتيب

• القول الراجح: قول الشيخين أى خروج الوقت السادسة و عند محمد رَحِمَهُ الله المعتبر دخول وقت السادسة، و قال العلامة علاء الدين الحصكفى رَحِمَهُ الله لدخولها فى حد التكرار المقتضى للحرج بخروج وقت السادسة على الأصح رد المحتار ج:١، ص:٥٣٩. [القول الراجح ج:١، ص:١١٨]

ساقطیږي، خو له امام محمد رَحِمَهُ الله څخه یو روایت دا را نقل سوی دی چي کله د شپږم قضائي لمونځ وخت داخل سي نو ترتیب ساقطیږي، لیکن د اول قول په مقابله کي د دې قول هیڅ ارزښت نسته، او اول قول صحیح دی، دلیل یې دا دی چي د کثرت (ډېرښت) لفظ هغه وخت صادقیږي چي کله په لمونځونو کي تکرار شروع سي، او تکرار هغه وخت راځي چي کله د شپږم لمانځه وخت ووځي، ځکه چي کله د شپږم لمانځه وخت ووځي، نو د قضائي لمونځونو تکرار شروع سي.

لوی څښتن جَلَّ جَلَالُهُ دي پر صاحب د عنایې رحم وکړي، هغوی پر دې موقع یوه بله خبره هم لیکلې ده او د پاملرني وړه ده چي د قضائي لمونځونو ډېرښت او مکرروالی د اغماء (بې هوښه کېدلو) پر مسئله باندي هم قیاسېدلای سي، ځکه چي د بې هوښی د حالت هم دغه حکم دی چي که له یوسړي څخه تر یوې ورځي او شپې زیات لمونځونه قضاء سي، نو پر هغه د دې لمونځونو قضاء واجب نه ده، ځکه چي ابن عمر رَضِيَ اللهُ عَنْهُمَا تر یوې ورځي او شپې زیات بې هوښه وو، لیکن کله چي په هوښ کي راغلی نو د قضاء سوو لمونځونو قضاء یې نه راوړه، د دې په خلاف حضرت علي او حضرت عمار یاسر رَضِيَ اللهُ عَنْهُمَا تر یوې ورځي او شپې کم بې هوښه ول، نو تر جوړېدلو وروسته دې حضراتو د قضائي لمونځونو قضاء راوړه، له دې څخه هم دا خبره څرګندیږي چي د کثرت حدّ ته د رسېدلو لپاره د وخت تېرېدل ضروري دي. (عنايه ج:۱، ص:۵۱۰)

## که تر شپږو لمونځونو زیات لمونځونه قضاء سي نو د راکړخولو صحیح طریقه

وَلَوِ اجْتَمَعَتِ الْفَوَائِتُ الْقَدِيمَةُ وَالْحَدِيثَةُ او که نوي او زړاه قضاء سوي لمونځونه سره جمع سول قِيلَ تَجُوزُ الْوَقْتِيَّةُ مَعَ تَذَكُّرِ الْحَدِيثَةِ نو یو قول دا دی چي د نوي لمانځه د یادېدلو په وخت کي هم وختي لمونځ جائز دی لِكَثْرَةِ الْفَوَائِتِ ځکه چي قضاء سوي لمونځونه ډېر دي وَقِيلَ لَا تَجُوزُ او دویم قول دا دی چي جائز نه دی وَيُجْعَلُ الْمَاضِي كَأَنْ لَمْ يَكُنْ او تېر سوي لمونځونه به د نه کېدلو په ډول ګڼل کیږي (یعني قضاء سوي لمونځونه داسي وګڼه چي ګردسره قضاء سوي نه دي) زَجْرًا لَهُ عَنِ التَّهَاوُنِ چي د سستوالي په وجه د ده غندنه (رټنه) وسي.

**اللغات:** ﴿قديمة﴾ پخواني، ﴿حديثة﴾ نوي، ﴿زجر﴾ د غلطی احساس ورکول، غندنه، رټنه، ﴿تهاون﴾ سستي کول، قصور.

**تشریح: صورت د مسئلې:** دا دی چي مثلاً له یو سړي څخه د یوې میاشتي لمونځونه قضاء سوه، او د هغو قضاء راوړل یې شروع کړه، خو د هغو تر پوره کولو مخکي بیا له هغه څخه څو لمونځ قضاء سول، لیکن دا څو لمونځونه له شپږو څخه کم وه نو اول قضاء سوو لمونځونو ته قدیمه او دا وروستني قضاء سوو لمونځونو ته جدیده ویل کیږي، نو اوس که د دې سړي دا تر شپږو کم قضائي لمونځونه یعني جدیده قضائي لمونځونه په یاد وه او وختي لمونځ یې کوی، نو د ده لپاره د وختي لمانځه اجازه سته، که نسته؟ په دې باره کي د مشائخو اختلاف دی، د بعضي مشائخو رایه دا ده چي د جدیده فوائتو (قضائي لمونځونو) د یاد په وخت کي هم د دې سړي لپاره وختي لمونځ جائز دی، ځکه که څه هم دا فوائت تر شپږو کم دي، خو د قدیمه فوائتو سره چي یو ځای سي نو تر شپږو زیاتیږي، او په حد د تکرار کي داخلیږي، نو کله چي د تکرار په حد کي داخل سول نو د ډېروالي په وجه د فوائتو او وختي لمونځونو په مینځ کي ترتیب ساقط سو، او د فوائتو د یاد په وخت کي به هم وختي لمونځ جائز وي.

په دې سلسله کې د بعضې متأخرینو مشائخو رایه دا ده چې د جدیده فوائتو د یاد په وخت کې وختي لمونځ کول جائز نه دي، ځکه چې د جدیده فوائتو شمېر له شپږو څخه کم دی، او د وخت تنګوالی او هېره هم نسته، نو ځکه په دې صورت کې دې لمونځ ګزاره اول فائته (قضائي) لمونځ وکړي، بیا دې وختي لمونځ وکړي، پاته سوه قدیمه قضائي لمونځونه نو شریعت د ده په حق کې هغه لمونځونه معدوم (نیستي) ګرځولي دي، ګواکي پخواني فوائت د ده پر ذمه د سره سته نه، د دې لپاره چې ده ته عبرت حاصل سي او دا نصیحت تر لاسه کړي چې د آینده لپاره یو لمونځ ځني قضاء نه سي، او بیا د وختي لمانځه د پرېښوولو او د قضائي لمونځ د کولو نوبت را نه سي، لېکن صاحب د عنایې او علامه ابن الهمام دلته اول قول معتبر او معتمد ګرځولی دی او پر هغه فتویٰ هم ده.

## که په قضاء راوړلو سره قضاء سوي لمونځونه تر شپږو کم سي نو څه حکم دی؟

وَلَوْ قَضٰى بَعْضَ الْفَوَائِتِ او که لمونځ ګزاره بعضې قضاء سوي لمونځونه راوګرځوله حَتّٰى قَلَّ مَا بَقِيَ تر دې چې پاته لمونځونه (تر شپږو) کم سول عَادَ التَّرْتِيْبُ عِنْدَ الْبَعْضِ● نو د بعضو حضراتو په نېز ترتیب (بیرته) راګرځي وَهُوَ الْأَظْهَرُ او همدا قول زیات ظاهر دی فَإِنَّهُ رُوِيَ عَنْ مُحَمَّدٍ فِيْمَنْ ځکه چې له امام محمد رَحِمَهُ الله څخه د هغه سړي په باره کې روایت دی تَرَكَ صَلَاةَ يَوْمٍ وَلَيْلَةٍ چې هغه دیوې ورځي او شپې لمونځونه پرې ایښي وي وَجَعَلَ يَقْضِيْ مِنَ الْغَدِ مَعَ كُلِّ وَقْتِيَّةٍ فَائِتَةً او درا رواني ورځي (له سهار) څخه د هر وختي لمانځه سره یو قضاء سوی لمونځ اداء کوي فَالْفَوَائِتُ جَائِزَةٌ عَلٰى كُلِّ حَالٍ نو د قضاء سوو لمونځونو اداء کېدل خو په هر حال کې جائز دي وَالْوَقْتِيَّاتُ فَاسِدَةٌ إِنْ قَدَّمَهَا لېکن وختي لمونځونه فاسد دي که یې تر قضاء سوو لمونځونو مخکې کړي وه لِدُخُوْلِ الْفَوَائِتِ فِيْ حَدِّ الْقِلَّةِ ځکه چې قضاء سوي لمونځونه د قلت (کمښت) په حد کې داخل سول وَإِنْ أَخَّرَهَا فَكَذٰلِكَ او که یې وختي لمونځونه وروسته کړه نو همدغه حکم دی (یعني هم وختي لمونځونه فاسد دي) إِلَّا الْعِشَاءَ الْأَخِيْرَةَ ما سوا له آخري ماخوستن څخه (یعني د ماخوستن لمونځ نه فاسدېږي) لِأَنَّهُ لَا فَائِتَةَ عَلَيْهِ فِيْ ظَنِّهِ حَالَ أَدَائِهَا ځکه چې د ماخوستن د لمانځه د اداء کولو پر موقع د ده په ګومان کې پر ده هېڅ قضاءیي لمونځ نسته.

**اللغات:** ﴿غد﴾ سبا، را روانه ورځ.

**تشریح: صورت د مسئلې:** دا دی که د یو سړي پر غاړه دېر لمونځونه وه، او هغه هره ورځ دوه دوه، درې درې لمونځونه راګرځول، تر دې چې زیاتره قضائي لمونځونه یې راوګرځول، او پر غاړه یې قضائي لمونځونه تر شپږو کم پاته سوه، نو آیا اوس به هم قضائي لمونځونه تر وختي لمونځونو مخکې کوي، یا که د قضائي لمونځونو د یاد په وخت کې هم د ده لپاره د وختي لمانځه اجازه سته؟ نو په دې سلسله کې له امام محمد رَحِمَهُ الله څخه دوه روایتونه دي: (۱) اول روایت دا دی چې اوس پر دې سړي ترتیب واجب سو، لهذا د ده لپاره وختي لمونځ پر قضائي لمونځ مخته کول صحیح نه دي، بلکې اول دې قضائي لمونځ کوي او بیا دې وختي لمونځ کوي، او دویم روایت دا دی چې اوس هم د دې سړي لپاره

● القول الراجح: هو عدم عود الترتيب كما قال الشيخ احمد الطحطاوي رَحِمَهُ الله: و لم يعد الترتيب بين الفوائت التي كانت كثرة بعودها إلى القلة بقضاء بعضها لأن الساقط لايعود في أصح الروايتين، وعليه الفتوى، و ترجيح عود الترتيب ترجيح بلا مرجّح. حاشية الطحطاوي ص: ٢٤١. [القول الراجح، ج: ١، ص: ١٢٠]

وختي لمونځ تر قضائي لمانځه مخکي کول صحيح دي، او د شمس الائمه سرخسي، قاضي خان او د صاحب د محيط او د عنايې والا ټولو همدغه رايه او پر همدغه فتوىٰ ده.

دليل: د دې قول دليل دا دی چي کله د قضائي لمونځونو د ډېرښت په وجه يو وار د ده له ذمې څخه ترتيب ساقط سو، نو تر کومه وخته چي دا قضائي لمونځونه په بشپړه توګه پوره سوي نه وي، تر هغه وخته ترتيب نه را ګرځي.

لېکن د علامه مرغيناني رَحِمَهُ الله په نيز اول روايت زيات ظاهر دی، او صاحب د عنايې رَحِمَهُ الله وايي چي اول روايت هم درايةً ظاهر دی، او هم روايةً. درايةً خو ځکه چي د ترتيب د ساقط کېدلو علت د قضائي لمونځونو ډېرښت وو، ځکه چي ډېرښت مفضی إلی الحرج دی يعني د تکليف سبب دی، او حرج او تکليف په شريعت کي ليري سوي دي، لېکن کله چي علت ختم سو او د قضائي لمونځونو شمېر له ډېرښت څخه د کمښت حد ته را ورسېدی، نو ترتيب به بيرته راګرځي، ځکه چي د علت په ختمېدلو سره معلول او حکم هم ختمېږي.

او روايةً ځکه ظاهر دی چي له امام محمد رَحِمَهُ الله څخه د هغه سړي په باره کي روايت دی چي له هغه څخه ديوې ورځي او شپې لمونځونه قضاء سوي وي، د مثال په توګه د سهار له لمانځه څخه واخله د ماخوستن تر لمانځه پوري ځني قضاء سوي وي، او بيا را روانه ورځ د هر وختي لمانځه سره يو قضاء سوی لمونځ راګرځوي، مثلاً د سهار د لمانځه سره د تيري ورځي د سهار د لمانځه قضاء راوړي، او د ماپښين د لمانځه سره د تيري ورځي د ماپښين قضاء راوړي او داسي نور، نو په دې صورت کي خو قضائي لمونځونه په هر حال کي جائز دي، هغه که يې پر وختي لمونځونو مخکي کړي وي يا يې وروسته کړي وي، خو دومره فرق ضرور سته چي د قضائي لمونځونو د مخکي والي په صورت کي وختي لمونځونه ټوله يعني د سهار څخه تر ماخوستنه پوري فاسديږي، ځکه چي قضائي لمونځونه تر شپږو کم دي، او د کمښت په حد کي داخل دي، نو د دوی او وختي لمونځونو په مينځ کي ترتيب ضروري دي او پر وختي لمونځونو د دوی مخکي کول ضروري دي، لېکن کله چي يې تر قضائي لمانځه مخکي مثلاً د سهار تر قضائي لمانځه مخکي يې اول وختي لمونځ وکړی نو وختي لمونځ فاسد سو، او په دې توګه د قضائي لمونځونو شمېره شپږ سوه، لېکن کله چي ده اول د تيري ورځي د سهار د لمانځه قضاء راوړه، نو څرنګه چي دا قضاء صحيح ده، نو اوس د ده پر ذمه صرف پنځه قضائي لمونځونه پاته سوه، او دا سړی بيرته صاحب د ترتيب سو، اوس د ماپښين په وخت کي د ده لپاره حکم دا دی چي اول دې قضائي لمونځ وکړي او بيا دې وختي لمونځ وکړي، لېکن که ده له جهل څخه کار واخيستی او د قضائي لمانځه د ياد په وخت کي يې هم د ماپښين وختي لمونځ وکړی نو دا لمونځ يې هم فاسديږي او د قضائي لمونځونو شمېر يې شپږ کيږي، او کله چي وروسته هغه د قضائي لمونځ قضاء راوړه، نو څرنګه چي قضاء راوړل صحيح دي، نو له شپږو څخه بيا د تيري ورځي د ماپښين لمونځ وځي او د قضائي لمونځونو شمېر يو وار بيا پنځه کيږي، او دا سړی صاحب د ترتيب پاته کيږي، او کله چي هم دی وختي لمونځ مخکي کوي، تر هغه وخته فساد پر جاري کيږي، نو ځکه موږ مطلق دا وويل چي د دې سړي لپاره وختي لمونځونه پر قضائي لمونځونو مخکي کول صحيح نه دي.

وإن أخرها فكذلك الخ د دې حاصل دا دی چي په ذکر سوې مسئله کي لمونځ ګزاره د هر اړخ څخه را ګير دی، ځکه چي وختي لمونځونه پر قضائي لمونځونو مخکي کول خو د ده لپاره صحيح نه دي، همدارنګه د وختي لمونځونو په وروسته کولو کي هم هيڅ چاره نسته، او په دې صورت کي هم د ده لپاره د خلاصون لاره نسته، بلکي څرنګه چي د وختي لمونځونو د مخکي والي په صورت کي وختي لمونځونه فاسديږي، همدارنګه د وختي لمونځونو د وروسته والي په صورت کي هم هغه فاسديږي، ځکه که دې سړي مثلاً را روانه ورځ اول د سهار قضاء راوړه او بيا يې د سهار وختي لمونځ وکړی نو قضاء يې صحيح ده، خو وختي لمونځ يې فاسد دی، ځکه چي دا سړی صاحب د ترتيب دی او تر لوسه

پر ده څلور لمونځونه پاته دي، همدغه حال د ماپښين، مازيگر او نورو هم دی، لېکن که هغه ته د دې مسئلو علم نه وو، نو د هغه په حق کي د ماخوستن وختي او قضائي دواړه لمونځونه صحيح دي، د قضائي په صحت کي خو هيڅ خبره نسته، او د وختي د صحيح والي علت دا دی چي د ماخوستن د وختي لمانځه اداء کولو په وخت کي هغه سړی دا گڼي چي پر ما هيڅ قضائي لمونځ نسته، نو څرنگه چي د قضائي لمونځ د هېرېدلو په وخت کي د وختي لمونځ کول جائز دي، همدارنگه په دې صورت کي هم د دې سړي لپاره د ماخوستن وختي لمونځ جائز دی، لېکن ښکاره دي وي چي دا حکم هغه وخت دی چي کله دا سړی نا خبره وي، لېکن که ده ته د ترتيب د وجوب علم وو، نو بيا د ده په حق کي د ماخوستن وختي لمونځ هم جائز نه دی، بلکي فاسد دی.

## د قضائي لمانځه د يادابنت په وخت کي وختي لمونځ کول

وَمَنْ صَلَّى الْعَصْرَ او چا چي د مازيگر (لمونځ) وکړی وَهُوَ ذَاكِرٌ أَنَّهُ لَمْ يُصَلِّ الظُّهْرَ په داسي حال کي چي دا يې په ياد وه چي د ماپښين لمونځ يې نه دي کړی فَهِيَ فَاسِدَةٌ نو دا د مازيگر (لمونځ) فاسد دی إِلَّا إِذَا كَانَ فِي آخِرِ الْوَقْتِ خو که دا يادېدل د مازيگر په آخري وخت کي وه (نو د مازيگر لمونځ فاسد نه دی) وَهِيَ مَسْأَلَةُ التَّرْتِيبِ او دا مسئله د ترتيب ده وَإِذَا فَسَدَتِ الْفَرْضِيَّةُ او کله چي فرضيت فاسد سو لَا يَبْطُلُ أَصْلُ الصَّلَاةِ عِنْدَ أَبِي حَنِيفَةَ وَأَبِي يُوسُفَ رَحِمَهُمَا اللهُ نو د شيخينو رَحِمَهُمَا الله په نيز اصل لمونځ نه فاسديږي وَعِنْدَ مُحَمَّدٍ رَحِمَهُ اللهُ● يَبْطُلُ او د امام محمد رَحِمَهُ الله په نيز باطليږي لِأَنَّ التَّحْرِيمَةَ عُقِدَتْ لِلْفَرْضِ ځکه چي تحريمه د فرضو لپاره تړل سوې ده فَإِذَا بَطَلَتِ الْفَرْضِيَّةُ بَطَلَتِ التَّحْرِيمَةُ أَصْلاً نو کله چي فرضيت باطل سو نو اصل تحريمه به هم باطليږي وَلَهُمَا: أَنَّهَا عُقِدَتْ لِأَصْلِ الصَّلَاةِ بِوَصْفِ الْفَرْضِيَّةِ او د شيخينو رَحِمَهُمَا الله دليل دا دی: چي تحريمه د فرضيت په وصف سره د اصل لمانځه لپاره تړل سوې ده فَلَمْ يَكُنْ مِنْ ضَرُورَةِ بُطْلَانِ الْوَصْفِ بُطْلَانُ الْأَصْلِ نو د وصف باطلېدلو په وجه به اصل نه باطليږي.

**اللغات:** ﴿عُقِدَتْ﴾ د نصر د باب ماضي مجهوله صيغه ده: منعقد کول، تړل.

**تشريح:** **مسئله :** دا ده که يو سړي د مازيگر لمونځ کوی او دا يې په ياد وه چي تر اوسه يې د ماپښين لمونځ نه دي کړی نو د مازيگر لمونځ يې فاسديږي، ځکه چي ده ترتيب پرېښووی، حال دا چي پر ده ترتيب فرض دی، هو! که د مازيگر لمونځ يې د مازيگر په آخري وخت کي کوی، او دا يې په ياد وه چي د ماپښين لمونځ يې نه دي کړی نو د مازيگر لمونځ يې صحيح دی، ځکه چي د وخت تنگېدل ترتيب ساقطوي.

و إذا فسدت الخ پاته سوه دا خبره چي (په اول صورت کي) د ترتيب په فوت کېدلو سره چي کله فرضيت باطل سو (يعني د مازيگر لمونځ باطل سو)، نو اصل لمونځ هم باطليږي، که نه؟ (يعني اصل لمونځ چي څلور رکعته دي هغه نفل پاته کيږي او که نفل هم نه پاته کيږي بلکي بالکل فاسديږي؟) نو په دې باره کي اختلاف دی، شيخين رَحِمَهُمَا الله فرمايي چي اصل لمونځ نه باطليږي، يعني د ترتيب د نيستوالي په وجه که څه هم فرض باطل سو، لېکن نفل پاته کيږي.

---

● القول الراجح: قول الشيخين رَحِمَهُمَا الله، كذا في رد المحتار ج:١، ص:٥٣٧.

لنډه دا چې د مازیګر لمونځ به د فرضو اداء نه شمارل کیږي بلکې د نفلو اداء به شمارل کیږي، او امام محمد رَحِمَهُ الله فرمایي چې د فرضیت په باطلیدلو سره اصل لمونځ هم باطلیږي، یعني د مازیګر دا لمونځ نه فرض شمارل کیږي او نه نفل. ثمره د اختلاف په دې صورت کې ښکاره کیږي چې که یو سړي د مازیګر لمونځ په داسې حال کې شروع کړی چې وخت پراخه وو او د ماپښین قضائي لمونځ یې په یاد وو، بیا دې سړي په لمانځه کې قهقهه وکړه نو د شیخینو په نیز د ده اودس ماتیږي، ځکه چې د شیخینو په نیز اصل لمونځ پاته دی، او د لمانځه په حالت کې قهقهه خندا کول اودس ماتوي، نو ځکه د دوی په نیز اودس ماتیږي، او د امام محمد رَحِمَهُ الله په نیز یې اودس نه ماتیږي، ځکه چې د امام محمد رَحِمَهُ الله په نیز اصل لمونځ باطل سو، نو د ده په نیز دا قهقهه خندا د لمانځه په حالت کې نه ده، او له لمانځه څخه دباندې قهقهه خندا اودس نه ماتوي، نو ځکه په دې صورت کې قهقهه خندا اودس نه ماتوي.

**د امام محمد دلیل:** په پورتنۍ مسئله کې د امام محمد رَحِمَهُ الله دلیل دا دی چې تحریمه د مازیګر د لمانځه لپاره منعقده سوې ده، او هر هغه شی چې د هغه لپاره تحریمه منعقده سي، کله چې هغه باطل سي نو تحریمه هم باطلیږي، ځکه چې تحریمه د دې شي د حاصلولو ذریعه ده، نو کله چې مقصود باطل سو نو د هغه وسیله او ذریعه هم باطله سوه، او کله چې تحریمه باطله سوه نو اصل (مطلق) لمونځ هم باطل سو، او کله چې اصل لمونځ باطل سو نو نه فرض اداء کیږي او نه نفل.

**د شیخینو دلیل:** دا دی چې تحریمه د مطلق (اصل) لمانځه لپاره نه ده منعقده سوې چې د دې په باطلوالي سره دې اصل لمونځ هم باطل سي، بلکې د تحریمې انعقاد په وصف فرضیت سره د لمانځه د اداء کولو لپاره سوی دی او دلته صرف وصف فرضیت باطل سوی دی، نو په دې سره پر اصل لمانځه هیڅ اثر نه لویږي ځکه چې د وصف بطلان د اصل بطلان ته لازم نه دی، نو په ذکر سوې مسئله کې صرف د دې سړي فرض لمونځ باطلیږي، نفل او تطوع به د ده په حق کې پاته وي.

صاحب د فتح القدیر د دې مسئلې یو بل مثال داسې بیان کړی دی چې که پر یو سړي د قسم کفاره واجب وي، او د مسکینۍ (غریبتوب) په وجه دا سړی پر إطعام او کسوة باندې قدرت نه لري، او روژې شروع کړي، او له دوو، درو روژو څخه وروسته مالداره سي، نو اوس د ده لپاره په إطعام او کسوة سره کفار ورکول ضروري دي، لیکن کومې روژې چې یې نیولې دي هغه نه دي باطلې سوې، بلکې د هغو د کفارت وصف یعني د کفارې لپاره یې اداء کیدل باطل سوه، او اصل روژې به یې نفل شمارل کیږي، همدارنګه په پورتنۍ مسئله کې به هم د لمونځ ګزاره د فرضیت وصف باطل وي، او اصل لمونځ به یې باطل نه وي، بلکې په نفل سره به بدلیږي.

**راجح قول:** په پورتنۍ مسئله کې راجح قول د شیخینو رَحِمَهُمَا الله دی یعني اصل لمونځ فاسد نه دی بلکې نفل شمارل کیږي. [القول الراجح ج:۱، ص:۱۲۰]

## د مازیګر لمونځ د موقوف فساد په توګه فاسدېدل (او د دې مطلب)

**ثُمَّ الْعَصْرُ يَفْسُدُ فَسَادًا مَوْقُوفًا** بیا (د امام ابو حنیفه رَحِمَهُ الله په نیز) د مازیګر لمونځ د موقوف فساد په توګه فاسدیږي **حَتَّى لَوْ صَلَّى سِتَّ صَلَوَاتٍ** تر دې که یې شپږ لمونځونه وکړل **وَلَمْ يُعِدِ الظُّهْرَ** او د ماپښین لمونځ یې نه راوګرځوی **انْقَلَبَ الْكُلُّ جَائِزًا** نو ټوله لمونځونه جائز ګرځي **وَهٰذَا عِنْدَ أَبِي حَنِيفَةَ رَحِمَهُ اللهُ**● او دا حکم د امام ابو حنیفه رَحِمَهُ الله په نیز دی **وَعِنْدَهُمَا يَفْسُدُ فَسَادًا بَاتًّا** او د صاحبینو رَحِمَهُمَا الله په نیز د مازیګر لمونځ یقیني فاسدیږي (نه د موقوف

---

● القول الراجح: قول أبي حنيفة رَحِمَهُمَا الله كذا في رد المحتار ج:۱، ص:۵۳۰. [القول الراجح، ج:۱، ص:۱۲۳]

فساد په توګه) لَا جَوَازَ لَهُ بِحَالٍ او په هيڅ صورت کې هم نه جائز کيږي وَقَدْ عُرِفَ ذٰلِكَ فِي مَوْضِعِهِ او دا خبره پر خپل ځای معلومه سوې ده.

**اللغات:** ﴿مَوْقُوْف﴾ پر يو بل شي ولاړ، پر يو بل شي منحصر، ﴿بَاتًا﴾ يقيني، حتمي، پوخ.

**تشريح:** په مخکني عبارت کې ويل سوي وو چې که يو چا د مازيګر لمونځ کوی، او دا يې په ياد وه چې د ماپښين لمونځ يې تر اوسه نه دي کړی، نو د ترتيب د فوت کېدلو په وجه د ده د مازيګر لمونځ فاسد دی، ليکن په دې کې اختلاف دی چې د مازيګر دا لمونځ په موقوف فساد سره فاسد دی او که په حتمي او يقيني فساد سره فاسد دی؟ نو د امام ابو حنيفه رَحِمَهُ الله په نېز دا لمونځ په فسادِ موقوف سره فاسد دی، تر دې که شپږ لمونځونه وکړي، يعني له دغه مازيګره څخه تر را روان مازيګره پورې، او د ماپښين قضائي لمونځ نه را وګرځوي، نو دا ټوله لمونځونه يې جائز دي.

**د امام صاحب دليل:** دا دی چې د مازيګر او د را روانو پنځو لمونځونو د فساد علت د ترتيب واجب کېدل دي، يعني د مازيګر، ماښام، ماخوستن، سهار او ماپښين لمونځونه يې ځکه فاسد دي چې ده تر اوسه د تيري ورځې د ماپښين لمونځ نه دي را ګرځولی، حال دا چې د ترتيب تقاضا دا وه چې د تيري ورځې د ماپښين لمونځ يې را ګرځولی وای، ليکن کله چې ده د را رواني ورځې د مازيګر لمونځ هم وکړی نو اوس ګويا د تيري ورځې د ماپښين له لمانځه څخه شپږ لمونځونه فاسد سول، او شپږ لمونځونه کثير (ډېر) دي، او مخکې ذکر سول چې د قضائي لمونځونو په ډېرښت سره ترتيب ساقطيږي، نو کله چې دې سړي د را رواني ورځې د مازيګر لمونځ اداء کړی نو د قضائي لمونځونو د ډېرښت په وجه سره ترتيب ساقط سو، او کله چې ترتيب ساقط سو نو ټوله لمونځونه يې جائز سوه.

صاحبين رَحِمَهُمَا الله فرمايي چې د مازيګر لمونځ حتماً او قطعاً فاسديږي (يعني فساد يې حتمي او يقيني دی)، يعني په هيڅ حال کې هم جائز نه دی، د دې صورت دا دی چې مثلاً يو سړي د ماپښين لمونځ نه وکړی، بيا د ماپښين تر لمانځه وروسته پنځه لمونځونه په خپل خپل وخت کې وکړه نو د صاحبينو رَحِمَهُمَا الله په نېز پنځه سره فاسد دي.

**د صاحبينو دليل:** دا دی چې د ترتيب د ساقطېدلو علت د قضائي لمونځونو کثرت (ډېرښت) دی او قاعده دا ده چې حکم تر علت وروسته وي، نو د ترتيب د ساقطېدلو حکم به هغه وخت وي چې کله قضائي لمونځونه کثير (شپږ) سي، نو که د قضائي لمانځه يعني د ماپښين له لمانځه څخه بغير پنځه لمونځونه په خپل خپل وخت کې وکړي نو پنځه سره لمونځونه به يې په قطعي او يقيني توګه سره فاسد وي، ځکه چې د ترتيب د ساقطېدلو علت نه سو پيدا.

**راجح قول:** په پورتنۍ مسئله کې راجح قول د امام صاحب رَحِمَهُ الله دی، قال الاستاذ المفتي غلام قادر النعماني: ثبت ترجيح قول الامام رَحِمَهُ الله على ترتيب أصول الإفتاء التى ذكر العلامة ابن عابدين رَحِمَهُ الله في "شرح عقود رسم المفتي" الاستحسان مقدم على القياس، وقول الامام رَحِمَهُ الله هو الاستحسان. (و قول الصاحبين رَحِمَهُمَا الله القياس). [القول الراجح ج:١، ص:١٢٣]

## له وترو څخه بغير د سهار د لمانځه حکم

وَلَوْصَلَّى الْفَجْرَ او که يو سړي د سهار لمونځ وکړی وَهُوَ ذَاكِرٌ أَنَّهُ لَمْ يُوتِرْ په داسې حال کې چې د هغه په ياد وه چې وتر يې نه دي کړي فَهِيَ فَاسِدَةٌ عِنْدَ● أَبِي حَنِيْفَةَ رَحِمَهُ اللهُ نو د امام ابو حنيفه رَحِمَهُ الله په نېز د هغه د سهار لمونځ فاسد سو

● القول الراجح: قول أبي حنيفة رَحِمَهُ الله كذا فى رد المحتار ج:١، ص:٥٣٦. [القول الراجح، ج:١، ص: ١٢٤]

خِلَافًا لَهُمَا د صاحبینو رَحِمَهُمَا الله اختلاف دی وَهٰذَا بِنَاءٌ عَلَى او دا حکم پر دې اصل مبني دی أَنَّ الْوِتْرَ وَاجِبَةٌ عِنْدَهُ سُنَّةٌ عِنْدَهُمَا چې د امام صاحب رَحِمَهُ الله په نیز وتر واجب دي (او) د صاحبینو رَحِمَهُمَا الله په نیز سنت دي وَلَا تَرْتِيبَ فِيمَا بَيْنَ الْفَرَائِضِ وَالسُّنَنِ او د فرضو او سنتو په مینځ کې ترتیب واجب نه دی وَعَلَى هٰذَا إِذَا صَلَّى الْعِشَاءَ او هم پر دې بناء که یو سړي د ماخوستن لمونځ وکړی ثُمَّ تَوَضَّأَ وَصَلَّى السُّنَّةَ وَالْوِتْرَ بیا یې اودس وکړی او سنت او وتر یې وکړل ثُمَّ تَبَيَّنَ أَنَّهُ صَلَّى الْعِشَاءَ بِغَيْرِ طَهَارَةٍ بیا ورته معلومه سوه چې د ماخوستن لمونځ یې بې اودسه کړی وو فَعِنْدَهُ• يُعِيدُ الْعِشَاءَ وَالسُّنَنَ نو د امام صاحب رَحِمَهُ الله په نیز به د ماخوستن فرض او سنت راګرځوي دُونَ الْوِتْرِ وتر به نه راګرځوي لِأَنَّ الْوِتْرَ فَرْضٌ عَلَى حِدَةٍ عِنْدَهُ ځکه چې د امام صاحب رَحِمَهُ الله په نیز وتر جلا (او مستقل) فرض دي وَعِنْدَهُمَا يُعِيدُ الْوِتْرَ أَيْضًا او د صاحبینو رَحِمَهُمَا الله په نیز به وتر هم راګرځوي لِكَوْنِهِ تَبَعًا لِلْعِشَاءِ ځکه چې وتر د ماخوستن تابع دي.

**تشریح**: صورت د مسئلې: دا دی که یو سړي د سهار لمونځ کوی، حال دا چې د وترو لمونځ یې تر اوسه کړی نه وو، او د وترو لمونځ یې په یاد هم وو چې تر اوسه یې نه کړی دي، نو په دې صورت کې د امام صاحب رَحِمَهُ الله په نیز د سهار لمونځ فاسد دی، او د صاحبینو رَحِمَهُمَا الله په نیز فاسد نه دی، د امام صاحب او صاحبینو په مینځ کې دا اختلاف پر دې خبره مبني دي چې د امام صاحب په نیز د وترو لمونځ واجب دی، او د صاحبینو په نیز سنت دی، او دا خبره تسلیم سوې ده چې ترتیب فقط د فرضي لمونځونو په مینځ کې واجب دی، او واجب لمونځ هم د فرضو په درجه کې دی، لېکن د سنتو او نفلو په مینځ کې واجب نه دی، نو څرنګه چې د امام صاحب په نیز وتر واجب دي، نو ځکه به د وترو او د سهار په لمانځه کې ترتیب واجب وي، او څرنګه چې دې سړي د ترتیب رعایت کړی نه دي، نو ځکه به یې د سهار لمونځ فاسد وي، او د صاحبینو په نیز وتر د ماخوستن له لمانځه څخه دي (او سنت دي) نو ځکه به د سهار د لمانځه او د وترو په مینځ کې ترتیب واجب نه وي.

وعلی هذا الخ او دا مسئله هم پر دغه اصول مبني ده چې د امام صاحب په نیز وتر واجب دي او د صاحبینو په نیز سنت دي. د مسئلې حاصل دا دی چې که یو سړي د ماخوستن لمونځ وکړی بیا یې اودس وکړی، او تر اودس کولو وروسته یې سنت او وتر هم اداء کړه او بیا ورته معلومه سوه چې هغه د ماخوستن لمونځ بې اودسه کړی دی، نو اوس د امام صاحب رَحِمَهُ الله په نیز پر دې سړي د ماخوستن د لمانځه او سنتو راګرځول واجب دي، او د وترو راګرځول پر واجب نه دي، ځکه که څه هم د سنتو په بول او وتر هم د ماخوستن د لمانځه تابع دي، لېکن څرنګه چې وتر ځانته او مستقل واجب دي، نو ځکه سنت خو به راګرځول کیږي، لېکن وتر به نه راګرځول کیږي، د دې په خلاف د صاحبینو رَحِمَهُمَا الله په نیز چې څرنګه د سنتو راګرځول ضروري دي، همدارنګه د وترو راګرځول هم ضروري دي، ځکه څرنګه چې د ماخوستن سنت د ماخوستن د لمانځه تابع دي، همدارنګه د وترو لمونځ هم د دوی په نیز سنت دی، او د ماخوستن د لمانځه تابع دی، نو څرنګه چې د سنتو راګرځول ضروري دي، همدارنګه د وترو راګرځول هم ضروري دي.

**راجح قول**: د پورتني عبارت په دواړو مسئلو کې راجح قول د امام صاحب رَحِمَهُ الله دی، د اولي مسئلې په باره کې مفتي غلام قادر نعماني وايي: والمتون على قول الامام رَحِمَهُ الله، كما فى الهداية والكنز والوقاية وغيرها [القول الراجح ج:۱، ص:۱۲۴]، او په آخر کې وايي: الراجح فى كلتا المسئلتين قول الامام لأن الوتر واجب على الصحيح عند الاحناف.... [القول الراجح، ج:۱، ص:۱۲۴] والله أعلم بالصواب

• القول الراجح: قول ابى حنيفة رَحِمَهُ الله أى لا يعيد الوتر، كذا فى رد المحتار ج:۱، ص:۵۳۸. [القول الراجح، ج:۱، ص:۱۲۴]

# بَابُ سُجُوْدِ السَّهْوِ

## (دا) باب د سهوي د سجدې (په بيان کي) دی

**تشريح:** تر دې مخکي صاحب د کتاب د اداء او قضاء احکام بيان کړل، اوس له دې ځايه د هغه شي احکام او مسائل بيانوي چي هغه په اداء يا قضاء کي د واقع کېدونکي نقصان او خطاء تلافي کوي، يعني د سجدهٔ سهو احکام او مسائل بيانوي؛ او څرنګه چي په لمانځه کي د سهوي په وجه دوې سجدې واجبېږي، نو په عنوان کي چي کوم عبارت ذکر سو، هغه د إضافة المسبب إلى السبب له قبيلې څخه دی.

**د دوو سجدو حکمت:** حکيم الامت اشرف علي تهانوي رَحِمَهُ الله فرمايي چي د سهوي د دوو سجدو حکمت دا دی چي په اوله سجده کي نفس ته په دې خبره تنبيه ورکول دي چي زه له دې خاورې څخه پيدا سوی يم او دويمه سجده پر دې خبره دلالت کوي چي دغه خاورو ته به بيرته ورځم.

### د سجده سهوي د وجوب وخت او د اداء کولو طريقه

يَسْجُدُ لِلسَّهْوِ فِي الزِّيَادَةِ وَالنُّقْصَانِ سَجْدَتَيْنِ بَعْدَ السَّلَامِ لمونځ کونکي به (په لمانځه کي د سهوي په وجه) د زياتوب او کمښت په صورت کي تر سلام وروسته د سهوي لپاره دوې سجدې کوي ثُمَّ يَتَشَهَّدُ ثُمَّ يُسَلِّمُ بيا به تشهد وايي بيا به سلام ګرځوي وَعِنْدَ الشَّافِعِيِّ رَحِمَهُ اللهُ يَسْجُدُ قَبْلَ السَّلَامِ او د امام شافعي رَحِمَهُ الله په نيز به تر سلام مخکي سجده کوي لِمَا رُوِيَ ځکه روايت سوی دی أَنَّه عَلَيْهِ الصَّلَاةُ وَالسَّلَامُ ● سَجَدَ لِلسَّهْوِ قَبْلَ السَّلَامِ چي نبي کريم ﷺ تر سلام مخکي سجدهٔ سهو وکړه وَلَنَا قَوْلُه عَلَيْهِ الصَّلَاةُ وَالسَّلَامُ ● او زموږ دليل د نبي ﷺ (دا) قول دی لِكُلِّ سَهْوٍ سَجْدَتَانِ بَعْدَ السَّلَامِ د هري سهوي لپاره تر سلام وروسته دوې سجدې دي وَرُوِيَ أَنَّه عَلَيْهِ الصَّلَاةُ وَالسَّلَامُ ● سَجَدَ سَجْدَتَيِ السَّهْوِ بَعْدَ السَّلَامِ او روايت سوی دی چي نبي ﷺ تر سلام وروسته د سهوي دوې سجدې وکړې فَتَعَارَضَتْ رِوَايَتَا فِعْلِهِ نو د نبي کريم ﷺ د فعل دوه روايتونه سره متعارض سول فَبَقِيَ التَّمَسُّكُ بِقَوْلِهِ سَالِمًا او د نبي کريم ﷺ په قول سره دليل نيول صحيح (او بې له معارضه) پاته سوه وَلِأَنَّ سُجُوْدَ السَّهْوِ مِمَّا لَا يَتَكَرَّرُ او ځکه چي سجدهٔ سهو له هغه شيانو څخه ده چي نه مکرر کيږي (يعني بار بار نه کيږي) فَيُؤَخَّرُ عَنِ السَّلَامِ نو ځکه به تر سلام وروسته کيږي حَتَّى لَوْ سَهَى عَنِ السَّلَامِ تر دې که سلام (هم) څني هېر سو يَنْجَبِرُ بِه نو په دې سجدهٔ سهو سره به د هغه تلافي کوي وَهٰذَا

---

● تخريج: أخرجه البخاري في كتاب السهو، باب ماجاء في السهو إذا قام من ركعتي الفريضة، حديث:١٢٢٤.

● تخريج: أخرجه في كتاب الصلوٰة، باب من نسي أن يتشهد، حديث رقم: ١٠٣٨

● تخريج: أخرجه ابو داؤد في كتاب الصلوٰة، باب من نسي أن يتشهد، حديث رقم: ١٠٣٦.

الْخِلَافُ فِي الْأَوْلَوِيَّةِ او دا اختلاف په غوره والي کې دی وَيَأْتِي بِتَسْلِيْمَتَيْنِ او دوه سلامه به ګرځوي هُوَ الصَّحِيْحُ همدا صحيح قول دی صَرْفًا لِلسَّلَامِ الْمَذْكُوْرِ إِلَى مَا هُوَ الْمَعْهُوْدُ په حديث کي د ذکر سوي سلام د ګرځولو لپاره د معهود (سلام) و طرف ته وَيَأْتِي بِالصَّلَاةِ عَلَى النَّبِي عَلَيْهِ الصَّلَاةُ وَالسَّلَامُ وَالدُّعَاءِ فِي قَعْدَةِ السَّهْوِ او د سجدهٔ سهوي په ناسته(قعده) کي به پر نبي ﷺ درود وايي او دعاء به (هم) کوي هُوَ الصَّحِيْحُ همدا صحيح ده لِأَنَّ الدُّعَاءَ مَوْضِعُه آخِرُ الصَّلَاةِ ځکه چي د دعاء ځای د لمانځه آخري حصه ده.

**اللغات:** ﴿سَهْو﴾ هېره، تېروتنه، ناپامي، خطا، ﴿تَعَارَضَتْ﴾ د تفاعل د باب ماضي صيغه ده: يو تر بله مخالف کېدل، معارض کېدل ﴿تَمَسُّك﴾ د تفعّل مصدر دی: دليل نيول، استدلال کول، منګولې لګول، ﴿تَسَاقَطَا﴾ له تعارض څخه خوندي، ﴿يَنْجَبِرُ﴾ د انفعال د باب مضارع صيغه ده: تلافي او جبران کېدل، عوض کېدل.

**تشريح: صورت د مسئلې:** دا دی که يو سړی په لمانځه کي يو شی په هېره (سهوه) سره کم کړي يا يې زيات کړي، نو پر دې سړي لازم دي چي هغه د دې کمي يا زياتوب لپاره د سهوي دوې سجدې وکړي، په دې دواړو سجدو سره به د کمي يا زياتوب مسئله حل سي، اوس پاته سوه دا مسئله چي د سهوي سجدې به تر سلام وروسته وي او که مخکي؟ نو په دې لړ کي زموږ او د شوافعو اختلاف دی، لېکن په ياد لرئ چي دا اختلاف په جواز اوغير جواز کي نه دی، بلکي په اولیٰ او غير اولیٰ (يعني په افضل والی) کي دی، لکه څرنګه چي په خپله صاحب د هدايې د دې څرګندونه کړې ده، نو زموږ په نېز سجدهٔ سهو تر سلام وروسته کول زيات اولیٰ او افضله دي، او د شوافعو په نېز تر سلام مخکي کول غوره او افضله دی، او په دې سلسله کي دواړه قسمه روايات سته.

**د امام شافعي دليل:** شوافع په دې روايت سره دليل نيسي چي: أنه سجد للسهو قبل السلام، (يعني نبي ﷺ سجدهٔ سهو تر سلام مخکي وکړه)، نو له دې څخه معلوميږي چي سجدهٔ سهو به تر سلام مخکي وي.

**د امام ابو حنيفه دليل:** د نبي ﷺ دا قول دی: لکل سهو سجدتان بعد السلام (ابو داؤد ابن ماجه)، دويم حديث فعلي دی يعني: سجد سجدتي السهو بعد السلام، (يعني نبي ﷺ تر سلام وروسته دوې سجدهٔ سهوي وکړې)، صاحب د هدايې وايي چي دوه فعلي حديثونه سره متعارض سول، نو دا دواړه پرېږدو، د نبي ﷺ پر قول عمل کوو، او د نبي ﷺ قول دا دی چي د سهوي لپاره دوې سجدې تر سلام وروسته دي.

**د امام ابو حنيفه عقلي دليل:** دا دی چي په اجماع سره سجدهٔ سهو نه تکرارېږي، او تر سلام مخکي د سجدهٔ سهو د تکرار امکان سته، په دې توګه چي که تر سلام مخکي سجده وکړي، بيا چي کله د سلام ګرځولو وخت راسي نو ده ته شک سي چي دزې رکعته يې کړي دي او که څلور، په دغه سوچ کي سلام ځني وځنډيږي (يعني د سوچ په وجه يې په سلام کي تأخير راسي) بيا پٔ ياد ورسي چي څلور رکعته يې کړي دي نو اوس د سلام د ځنډولو په وجه پر ده دويم وار سجدهٔ سهو واجب ده؛ نو اوس که دا سړی دويمه سجدهٔ سهو نه وکړي، نو په لمانځه کي يې يو داسي نقص پاته سو چي د هغه تلافي نه وسوه، او که دويمه سجدهٔ سهو وکړي نو سجدهٔ سهو به مکرره سي، حال دا چي دا بالاجماع غير مشروع دي، نو ځکه مناسب دا ده چي سجدهٔ سهو تر سلام وروسته وسي چي د ټولو خطاګانو (او سهوو) تلافي ممکنه وي.

ويأتي بتسليمتين الخ د دې حاصل دا دی چې کله دا خبره ثابته سوه چې داحنافو په نيز به سجدۀ سهو تر سلام وروسته اداء کيږي، نو اوس دا مسئله هم واوره! چې د صحيح قول مطابق سجدۀ سهو به تر دوو سلامونو وروسته اداء کيږي، ځکه چيري چې هم په حديث او نورو کي د سلام يادونه سوې ده، هلته له سلام څخه دوه سلامونه مراد دي، نو دلته به هم له دوو سلامو څخه وروسته سجدۀ سهو اداء کيږي، صاحب د کتاب په هو الصحيح سره د فخر الاسلام بزدوي او علامه کرخي رَحِمَهُمَا الله له هغه قول څخه احتراز کړی دی چې دوی وايي صرف تر يوه سلام وروسته به سجدۀ سهو کوي، او دا دليل ذکر کوي چې په دوو سلامونو کي يو سلام د قوم لپاره وي او دويم سلام د لمانځه د ختمولو لپاره وي، او په سجدۀ سهو سره خو د لمانځه ختمول مقصود نه دي، نو ځکه به پر يوه سلام اکتفاء کوي، خو زيات صحيح اول قول دی.

ويأتي بالصلاة الخ د دې حاصل دا دی چې د صحيح قول مطابق د سجدۀ سهوي په ناسته کي به درود شريف او دعاء هم ويل کيږي، ځکه چې د دعاء ځای د لمانځه آخري حصه ده، او د سجدۀ سهوي ناسته(قعده) هم د لمانځه آخري حصه ده، نو درود او دعاء به دواړه پکښې ويل کيږي، د دې په خلاف د امام طحاوي رَحِمَهُ الله مسلک دا دی چې د سجدۀ سهوي په ناسته(قعده) کي به هم درود او دعاء ويل کيږي او د لمانځه په ناسته (قعده) کي به هم ويل کيږي، (د لمانځه د ناستي څخه مراد هغه ناسته ده کوم چې تر سجدۀ سهوي مخکي وي، د صحيح قول مطابق به په دې ناسته کي صرف تشهد ويل کيږي او بيا به سجدۀ سهو کيږي او تر سجدۀ سهوي وروسته چې کومه ناسته وي په هغه کي به درود او دعاء ويل کيږي، دا مسلک د امام محمد رَحِمَهُ الله دی او همدا صحيح دی، او همدغه علامه فخر الاسلام رَحِمَهُ الله اختيار کړی دی).

## هغه سببونه چي د هغو په وجه سجده سهو واجبيږي

قَالَ: فرمايي وَيَلْزَمُهُ السَّهْوُ او په لمونځ گزاره باندي سجدۀ سهو (هغه وخت) لازميږي إِذَا زَادَ فِي صَلَاتِهِ فِعْلًا مِنْ جِنْسِهَا لَيْسَ مِنْهَا چې کله په لمانځه کي يو داسي فعل زيات کړي چې هغه د لمانځه له جنس څخه وي (ليکن) د لمانځه جزء نه وي وَهَذَا يَدُلُّ عَلَى أَنَّ سَجْدَةَ السَّهْوِ وَاجِبَةٌ او دا حکم پر دې خبره دلالت کوي چې سجدۀ سهو واجب ده هُوَ الصَّحِيحُ همدا صحيح ده لِأَنَّهَا تَجِبُ لِجَبْرِ نَقْصٍ ځکه چې سجدۀ سهو د هر هغه نقصان د تلافي کولو لپاره واجب ده تَمَكَّنَ فِي الْعِبَادَةِ کوم نقصان چې په لمانځه کي ځای ونيسي فَتَكُونُ وَاجِبَةً نو دا به واجب وي كَالدِّمَاءِ فِي الْحَجِّ لکه په حج کي قربانياني وَإِذَا كَانَ وَاجِبًا او کله چې دا سجدۀ سهو واجب سوه لَا يَجِبُ إِلَّا بِتَرْكِ وَاجِبٍ نو نه به واجبيږي مگر د واجبو په پرېښوولو سره أَوْ تَأْخِيرِهِ يا د واجبو په ځنډلو سره أَوْ تَأْخِيرِ رُكْنٍ سَاهِيًا يا په هېره د يو فرض په ځنډلو سره هَذَا هُوَ الْأَصْلُ قاعده همدا ده وَإِنَّمَا وَجَبَ بِالزِّيَادَةِ او د زياتوب په سبب سجدۀ سجوه په دې وجه واجبيږي لِأَنَّهَا لَا تَعْرَى عَنْ تَأْخِيرِ رُكْنٍ أَوْ تَرْكِ وَاجِبٍ ځکه چې زياتوب د يو رکن له ځنډلو يا د يو واجب له پرېښوولو څخه خالي نه وي.

**اللغات:** ﴿الفعل من جنسها ليس منها﴾ داسي کار چي د لمانځه له جنس څخه خو وي لېکن د لمانځه جزء نه وي، ﴿جابر﴾ تلافي، عوض، جبران. ﴿دماء﴾ جمع د دَمٌ ده: هغه قربانيانې چي په حج کي دجنايت په وجه واجبيږي. ﴿لا تعري﴾ د فتح د باب مضارع منفي صيغه ده: خالي کېدل.

**تشريح:** په مخکني عبارت کي امام قدوري رَحِمَهُ الله بيان کړه چي سجدهٔ سهو د کمي يا زياتوب په وجه سره واجبيږي، خو دا ذکر نه سوه چي کوم زياتوب او کمي څني مراد دي، نو له دې ځايه د هغه تفصيل ذکر کيږي، امام قدوري رَحِمَهُ الله فرمايي چي سجدهٔ سهو د هر هغه فعل په زياتولو سره لازميږي چي هغه فعل خو د لمانځه له جنس څخه وي لېکن د لمانځه جزء نه وي، د مثال په توګه د يوه رکعت لپاره دوې رکوعې وکړي يا درې سجدې وکړي، نو يوه رکوع او يوه سجده کوم چي زياتې سوې دي، هغه که څه هم د لمانځه له جنس څخه دي خو د لمانځه جزء نه دي، نو ځکه به په دې صورت کي سجدهٔ سهو واجبيږي.

**ويلزمه السهو الخ** صاحب د هدايې وايي چي د ماتن دا قول ويلزمه الخ د سجدهٔ سهوې پر واجبېدلو دلالت کوي. او د وجوب قول پې صحيح دی، همدغه مسلک د امام مالک او امام احمد رَحِمَهُمَا الله هم دی، لېکن د بعضې حنفي علماؤ په نېز سجدهٔ سهو سنت ده، لکه امام ابو الحسن کرخي رَحِمَهُ الله.

**دليل:** د صحيح قول دليل دا دی چي سجدهٔ سهو د هغه نقصان د پوره کولو لپاره واجبيږي، کوم چي په عبادت کي پيدا سوی وي، نو که د سجدهٔ سهوې په ذريعه نقصان پوره نه کړی سي، نو د لمانځه راګرځول به واجب وي چي نقصان پوره سي، نو کله چي د نقصان په وجه د لمانځه راګرځول واجب دي، نو سجدهٔ سهو به هم واجب وي، ځکه چي په دې سره هم نقصان پوره کيږي، لکه د لمانځه په راګرځولو سره چي نقصان پوره کيږي، او د سجدهٔ سهوې مثال داسې لکه په حج کي د يو جنايت لپاره قرباني کول، يعني که د احرام په حالت کي جنايت وسي نو په هغه سره په حج کي نقصان پيدا کيږي، او د دې نقصان تلافي په قرباني سره کيږي، او قرباني واجب ده، نو څرنګه چي په حج کي د جنايت لپاره قرباني واجب ده همدغه رنګه په لمانځه کي د سهوې لپاره سجده سهو واجب ده.

**وإذا كان واجبا الخ** فرمايي: څرنګه چي سجدهٔ سهو واجب ده، نو دا هغه وخت واجبيږي کله چي په لمانځه کي په سهوه سره يو واجب پاته سي يا واجب وځنډول سي، يا يو رکن وځنډول سي، د واجب د پاته کېدلو مثال اوله نلسته ده، يا د اخترونو تکبيرات دي (لېکن په اخترونو کي به د ډېري ګڼي ګوڼي [ارش] په وجه امام سجدهٔ سهو نه کوي). د واجب د ځنډولو مثال لکه د پنځم رکعت لپاره ولاړېدل، ځکه چي په دې سره سلام وځنډېدی، او سلام واجب دی. او د رکن د ځنډولو مثال لکه په اوله ناسته کي تر تشهد وروسته درود وويل، نو د دريم رکعت ولاړه کوم چي رکن او فرض ده وځنډېدله؛ لنډه دا چي د سجدهٔ سهو په واجب کېدلو کي اصل دا دی چي سجدهٔ سهو هغه وخت واجبيږي چي سهواً يو واجب پرېښول سي يا يو واجب يا رکن وځنډول سي.

**وإنما وجبت الزيادة الخ** له دې ځايه د يو سوال جواب ورکوي:

**سوال:** دا دی چي تاسو وويل چي سجدهٔ سهو د واجب په پرېښوولو سره يا د واجب او رکن په ځنډولو سره واجبيږي، نو د زياتوب په صورت کي پکار دا دي چي سجدهٔ سهو واجب نه کړی سي.

**جواب:** دا دی چي د زياتوب په صورت کي هم د يو رکن ځنډول يا د يو واجب پرېښوول راځي، نو که څوک درې سجدې وکړي نو په دريمه سجده سره ولاړه (قيامه) "کوم چي رکن او فرض ده" ځنډيږي، د واجب پرېښوولو مثال

لکه په آخره ناسته (قعده) کې چې په هېره د پنځم رکعت لپاره ولاړ سي، او د پنځم رکعت سجده هم وکړي، نو حکم دا دی چې د دې سره دې شپږم رکعت یو ځای کړي، د دې لپاره چې څلور رکعته فرض سي او دوه رکعته نفل شمار سي، تر هغه وروسته دې سلام وګرځوي، نو په دې صورت کې هم تر څلورم رکعت وروسته سلام کوم چې واجب دی پرېښوول سو، نو ثابته سوه چې زیاتوب هم دیو رکن د تأخیر او دیو واجب د پرېښوولو سبب جوړېږي.

## د سنت په پرېښوولو سره د سجده سهوي حکم (او د سنت صحيح مطلب)

قَالَ: فرمايي وَيَلْزَمُهُ او پر لمونځ ګزاره (هغه وخت هم) سجدهٔ سهو واجبيږي إِذَا تَرَكَ فِعْلًا مَسْنُونًا چې کله هغه (په لمانځه کې) یو سنت فعل پرېږدي كَأَنَّهُ أَرَادَ بِهِ فِعْلًا وَاجِبًا ګواکي له سنت فعل څخه د امام قدوري رَحِمَهُ الله مراد واجب فعل دی إِلَّا أَنَّهُ أَرَادَ بِتَسْمِيَتِهِ سُنَّةً أَنَّ وُجُوبَهَا بِالسُّنَّةِ خو واجب ته د سنت په ويلو سره د امام قدوري رَحِمَهُ الله اراده دا ده چې د واجب شي وجوب په حديث سره سوی دی.

**اللغات:** ﴿تَسْمِيَة﴾ د تفعيل مصدر دی: نوم ايښوول، نوم ورکول. ﴿بِالسُّنَّةِ﴾ له سنت څخه مراد دلته حديث دی.

**تشريح:** **مسئله:** امام قدوري رَحِمَهُ الله فرمايي چې که لمونځ ګزاره یو سنت فعل پرېښووی، نو سجدهٔ سهو پر واجب ده.

صاحب د هدايې رَحِمَهُ الله فرمايي چې په متن کې له سنت فعل څخه مراد واجب دی؛ ځکه چې د سنت فعل په پرېښوولو سره سجدهٔ سهو نه واجبيږي، بلکي د واجب په پرېښوولو سره سجده واجبيږي، پاته سوه دا خبره چې په متن کې فعلاً مسنونا ولي ويل سوي دي؟

**جواب:** دا دی چې د دې خبرې د ښوولو لپاره چې واجب هم په سنت يعني په حديث سره ثابت دي.

## د واجب په پرېښوولو سره د سجده سهوي حکم

قَالَ: فرمايي أَوْ تَرَكَ قِرَاءَةَ الْفَاتِحَةِ يا (که) لمونځ ګزاره (په هېره) سورتِ فاتحه ويل پرېښوول (نو سجدهٔ سهو واجبيږي) لِأَنَّهَا وَاجِبَةٌ ځکه چې (په لمانځه کې) سورتِ فاتحه واجب ده أَوِ الْقُنُوتَ يا يې دعائي قنوت پرېښوول أَوِ التَّشَهُّدَ أَوْ تَكْبِيرَاتِ الْعِيدَيْنِ يا يې تشهد او د اخترونو تکبيرات پرېښوول (نو په دې ټولو صورتونو کې سجدهٔ سهو پر واجب ده) لِأَنَّهَا وَاجِبَاتٌ ځکه چې دا ټوله شيان واجب دي فَإِنَّهُ عَلَيْهِ الصَّلَاةُ وَالسَّلَامُ وَاظَبَ عَلَيْهَا مِنْ غَيْرِ تَرْكِهَا مَرَّةً ځکه نبي ﷺ بغير له يوه وار پرېښوولو څخه پر دې همېشتوب کړی دی (يعني نبي ﷺ دا شيان يو وار هم نه دي پرې ايښي) وَهِيَ أَمَارَةُ الْوُجُوبِ او دا د واجب کېدلو نښه (علامه) ده وَلِأَنَّهَا تُضَافُ إِلَى جَمِيعِ الصَّلَاةِ او په دې وجه (هم) چې دا شيان د ټوله لمانځه و طرف ته منسوبيږي فَدَلَّ عَلَى أَنَّهَا مِنْ خَصَائِصِهَا نو دا پر دې خبره دلالت کوي چې دا شيان د لمانځه له خصوصياتو (ځانګړتياو) څخه دي وَذَلِكَ بِالْوُجُوبِ او دا خصوصيت کېدل به د واجب کېدلو په وجه وي ثُمَّ ذِكْرُ التَّشَهُّدِ يَحْتَمِلُ الْقَعْدَةَ الْأُولَى وَالثَّانِيَةَ بيا د تشهد (مطلقاً) ذکر کول د اولي ناستي (قعدهٔ اولی) او دويمي ناستي (قعدهٔ ثانيه) دواړو احتمال لري وَالْقِرَاءَةَ فِيهِمَا او په دې دواړو ناستو کې د تشهد ويلو (احتمال لري) وَكُلُّ

ذٰلِكَ وَاجِبٌ او له دې شیانو څخه هر شی واجب دی وَفِيْهَا سَجْدَةُ السَّهْوِ نو په دې شیانو کې به سجدهٔ سهو هم واجب وي هُوَ الصَّحِيْحُ همدا قول صحیح دی.

**اللغات:** ﴿وَاظَبَ﴾ همېشتوب او پابندي کول، ﴿أَمَارَةٌ﴾ نښه، علامه، ﴿خَصَائِص﴾ جمع ده، واحد یې خاصَّةٌ دی، خصوصیات، ځانګړتیاوي.

**تشریح:** په دې عبارت کې د هغو شیانو تفصیل ذکر کیږي چې د هغو په پرېښوولو سره سجدهٔ سهو واجبیږي، فرمایي: چې په لمانځه کې د سورت فاتحه پرېښوول هم سجدهٔ سهو واجبوي، ځکه چې د سورت فاتحه ویل واجب دي، خو دا یاد ساتل پکار دي چې د فرضي لمونځ په اولو دوو رکعت کې د سورت فاتحه په پرېښوولو سره سجدهٔ سهو واجبیږي، نه په آخري دوو رکعتو کې، ځکه چې په آخري دوو رکعتو کې سورتِ فاتحه ویل واجب نه دي، بلکې مستحب دي، لیکن له امام ابو حنیفه رَحِمَهُ الله څخه د حسن بن زیاد روایت دا دی چې په آخري دوو رکعتو کې هم د فاتحې په پرېښوولو سره سجدهٔ سهو واجبیږي؛ او تشهد پرېښوول، او په وترو کې دعائي قنوت او داخترونو تکبیرونه پرېښوول هم سجدهٔ سهو واجبوي.

**دلیل:** دا دی چې دا درې سره شیان واجب دي، او د واجب په پرېښوولو سره سجدهٔ سهو واجبیږي، نو د دې په پرېښوولو سره به هم سجدهٔ سهو واجبیږي، او د دې شیانو د واجب کېدلو دلیل دا دی چې نبي کریم ﷺ پر دې شیانو همېشتوب کړی دی، او هیڅ کله یې هم پرې ایښې نه دي، او پر یو شي بغیر له پرېښوولو څخه د نبي ﷺ همېشتوب کول د هغه شي د وجوب دلیل دی.

**دویم عقلي دلیل:** دا دی چې دا شیان د ټوله لمانځه و طرف ته منسوبیږي، یعني خلک وایي: د وترو دعائي قنوت، نو دعائي قنوت یې د ټوله لمانځه و طرف ته منسوب کړه، همدارنګه وایي: د اخترونو تکبیرونه، نو تکبیرونه یې د ټوله لمانځه و طرف ته منسوب کړه، او وایي: د لمانځه تشهد، نو د تشهد نسبت یې د ټوله لمانځه وطرف ته وکړی؛ او د دې شیانو د ټوله لمانځه و طرف ته منسوبېدل د دې خبري دلیل دی چې دا شیان د لمانځه له خصوصیاتو څخه دي، او کوم شیان چې د لمانځه له خصوصیاتو څخه وي هغه واجب دي، نو ځکه به دا شیان هم واجب وي.

ثم ذکر التشهد الخ د دې حاصل دا دی چې امام قدوري رَحِمَهُ الله په متن کې د "التشهد" لفظ مطلق ذکر کړی دی، نو په دې کې اوله ناسته او آخره ناسته او په دواړو کې تشهد ویل یعني دا ټوله پکښې شامل او داخل دي، او د دې په پرېښوولو سره سجدهٔ سهو واجبیږي، او دا صحیح قول دی، صاحب د هدایې په هو الصحیح سره له هغه قول څخه احتراز کړی دی چې په هغه کې د اولې ناستې تشهد ته واجب نه بلکې سنت ویل سوي دي.

## په جهري لمانځه کې سرّي قرائت کول یا په سرّي کې جهري قرائت کول

وَلَوْ جَهَرَ الْإِمَامُ او که امام په هغه لمونځونو کې جهري (په زوره) قرائت وکړی فِيْمَا يُخَافَتُ چې په هغو کې سرّي (په پټه) قرائت کیږي أَوْ خَافَتَ یا یې په هغه لمونځونو کې سرّي قرائت وکړی فِيْمَا يُجْهَرُ چې په هغو کې جهري قرائت کیږي تَلْزَمُهُ سَجْدَتَا السَّهْوِ نو پر هغه د سهوي دوې سجدې لازمیږي لِأَنَّ الْجَهْرَ فِيْ مَوْضِعِهِ وَالْمُخَافَتَةَ فِيْ مَوْضِعِهَا مِنَ الْوَاجِبَاتِ ځکه چې جهر پر خپل ځای او اخفاء پر خپل ځای له واجباتو څخه دي وَاخْتَلَفَتِ الرِّوَايَةُ فِي الْمِقْدَارِ او

د(آیت) د مقدار په باره کي په روایت کي اختلاف دی وَالْأَصَحُّ قَدْرُ مَا تَجُوزُ بِهِ الصَّلَاةُ فِي الْفَصْلَيْنِ او صحیح روایت دا دی چي (د جهر او د اخفاء) په دواړو صورتونو کي چي په څومره مقدار سره لمونځ جائز کیږي(نو په دواړو صورتونو کي په هغومره مقداره سره سجدهٔ سهو واجبیږي) لِأَنَّ الْيَسِيرَ مِنَ الْجَهْرِ وَالْإِخْفَاءِ لَا يُمْكِنُ الِاحْتِرَازُ عَنْهُ ځکه چي د لږ غوندي جهر او اخفاء څخه ځان ساتل ممکن نه دي وَعَنِ الْكَثِيرِ مُمْكِنٌ او له ډېر (جهر او اخفاء) څخه ځان ساتل ممکن دي وَمَا يَصِحُّ بِهِ الصَّلَاةُ كَثِيرٌ او په څومره مقدار چي لمونځ صحیح کیږي هغه کثیر(ډېر) دی غَيْرَ أَنَّ ذٰلِكَ عِنْدَهُ آيَةٌ وَاحِدَةٌ خو د امام ابو حنیفه رَحِمَهُ الله په نېز دا مقدار یو آیت دی وَعِنْدَهُمَا ثَلَاثُ آيَاتٍ او د صاحبینو رَحِمَهُمَا الله په نېز درې آیته دي وَهٰذَا فِي حَقِّ الْإِمَامِ دُونَ الْمُنْفَرِدِ او په دې دواړو صورتونو کي د سجدهٔ سهوي واجبېدل د امام په حق کي دي، نه د منفرد په حق کي لِأَنَّ الْجَهْرَ وَالْمُخَافَتَةَ مِنْ خَصَائِصِ الْجَمَاعَةِ ځکه چي جهر او اخفاء د جماعت له ځانګړتیاوو (خصوصیاتو) څخه دي.

**اللغات:** ﴿جهر﴾ د فتح د باب ماضي ده: په زوره ویل، ﴿خافت﴾ د مفاعلې د باب ماضي ده: په کراره ویل، ﴿المنفرد﴾ د انفعال اسم فاعل دی: یوازي لمونځ کونکی.

**تشریح: صورت د مسئلې:** دا دی چي زموږ په نېز د ماپښین او مازیګر په لمونځونو کي اخفاء یعني سرّي قرائت کول او د سهار، ماښام او ماخوستن په لمونځونو کي جهري یعني په زوره قرائت کول واجب دي، اوس که یو سړی د دې په خلاف یعني په ماپښین یا مازیګر کي خو جهري قرائت وکړي او په سهار او نورو کي سرّي قرائت وکړي، نو زموږ په نېز د واجب د پرېښوولو په وجه پر دې سړي دوې سجدهٔ سهوي واجب دي، ځکه چي د واجب په پرېښوولو سره سجدهٔ سهو واجبیږي.

د دې خلاف د امام شافعي رَحِمَهُ الله رایه دا ده چي په هیڅ یو لمانځه کي هم جهر یا اخفاء کول واجب نه دي، نو په دې صورتونو کي به پر لمونځ ګزاره سجدهٔ سهو نه واجبیږي.

**د امام شافعي دلیل:** دا حدیث دی: أن النبي ﷺ كان يسمعنا الآية والآيتين من الظهر والعصر (یعني نبي ﷺ به د ماپښین او مازیګر په لمونځونو کي یو، دوه آیته په موږ اورېدل)، نو له دې څخه معلومه سوه چي په ماپښین او مازیګر کي اخفاء واجب نه ده، نو کله چي په دې لمونځونو کي اخفاء واجب نه ده، نو له دې څخه به ماسوا په نورو لمونځونو کي هم جهر واجب نه وي.

**جواب:** د امام شافعي د دلیل جواب دا دی چي په صحابه وو د نبي ﷺ اورېدل د دې خبري د ښوولو لپاره وو چي امت ته معلومه سي چي د ماپښین او مازیګر په لمونځونو کي قرائت سته، بل جواب دا دی چي ممکنه ده چي حضرت قتاده ﷺ به نبي کریم ﷺ ته ډېر نژدې وو، او د نبي ﷺ د اخفاء آواز به یې هم صفا اورېدی.

**زموږ دلیل:** د نبي ﷺ هغه فرمان دی چي د مکې له کافرانو څخه د قرآن د خوندي کولو لپاره صادر سوی دی، یعني کله چي به مسلمانانو د ماپښین او مازیګر په لمونځونو کي جهري قرائت کوی نو کفار به مسجد ته نژدې راغله، چغې، نارې او شور به یې جوړ کړی، او پر لمونځ کونکو به یې خپل قرائت ګډوډ کړی، نو د قرآن او لمانځه د خوندي کولو لپاره نبي ﷺ د ورځې په لمونځونو کي یعني د ماپښین او مازیګر په لمونځونو کي د سرّي قرائت حکم وکړی، نو له هغه وخت

ځکه په دې لمونځونو کې سرّي قرائت شروع سوی دی چې وروسته یې د وجوب شکل اختیار کړی، لهذا اوس که یو سری له دې ځخه مخالفت کوي، نو پر هغه د واجب د پرېښوولو په وجه سجدهٔ سهو واجبیږي.

واختلفت الروایة الخ فرمایي چې د جهر او اخفاء په وجه د سجدهٔ سهوي د واجب کېدلو په حواله د قرائت په اندازه کې اختلاف دی، په ظاهر الروایه کې دي چې مطلقاً برعکس کول(یعني په جهري لمونځونو کې اخفاء کول او په سرّي لمونځونو کې جهر کول) سجدهٔ سهو واجبوي، او په دې کې د قرائت هیڅ اندازه نسته، بلکې لږ او ډېر دواړه برابر دي، لېکن صحیح روایت دا دی چې که دومره اندازه جهر یا اخفاء وکړي چې په هغه سره لمونځ جائز کیږي، یعني د ما تجوز به الصلاة په اندازه په جهري لمانځه کې سرّي قرائت وکړي، یا په سرّي لمانځه کې جهري قرائت وکړي، نو په هغه سره سجدهٔ سهو واجبیږي، لېکن تر ما تجوز به الصلاة کم قرائت معاف دی ځکه چې هغه معمولي غوندي دی، او له هغه ځخه ځان ساتل ناممکنه دي، او د ما تجوز به الصلاة اندازه د امام صاحب رَحِمَهُ الله په نیز یو غټ آیت دی، او د صاحبینو رَحِمَهُمَا الله په نیز درې کوچني آیتونه دي.

وهذا في حق الإمام الخ فرمایي چې د جهر او اخفاء برعکس کول او اړول د امام په حق کې دي یعني که امام په جهري لمانځه کې سرّي قرائت یا په سرّي لمانځه کې جهري قرائت وکړي نو سجدهٔ سهو واجبیږي، او دا حکم د منفرد (کوم چې یوازې لمونځ کوي) په حق کې نه دی، یعني که منفرد دا سې وکړي، نو پر هغه سجدهٔ سهو نه واجبیږي، ځکه چې د جهر او اخفاء د جماعت له خصوصیاتو ځخه دي، نو د سجدهٔ سهو د واجبېدلو تعلق به هم د جماعت سره وي، او د انفرادي حالت سره به د دې هیڅ تعلق نه وي.

## د امام په سهوي(هېرې) سره پر مقتدي او امام دواړو سجدهٔ سهو لازمېدل

قَالَ: وَسَهْوُ الْإِمَامِ يُوجِبُ عَلَى الْمُؤْتَمِّ السُّجُودَ فرمایي: چې د امام سهوه پر مقتدي (هم) سجدهٔ سهو واجبوي لِتَقَرُّرِ السَّبَبِ الْمُوجِبِ فِي حَقِّ الْأَصْلِ ځکه چې د اصل(امام) په حق کې د سجدهٔ سهوي واجبوونکی سبب ثابت سو وَلِهَذَا يَلْزَمُهُ حُكْمُ الْإِقَامَةِ بِنِيَّةِ الْإِمَامِ هم په دې وجه پر مقتدي د اقامت (مقیم کېدلو) حکم د امام په نیت سره لازمیږي فَإِنْ لَمْ يَسْجُدِ الْإِمَامُ لَمْ يَسْجُدِ الْمُؤْتَمُّ بیا که امام سجده نه وکړي نو مقتدی به هم سجده نه کوي لِأَنَّهُ يَصِيرُ مُخَالِفًا لِإِمَامِهِ ځکه چې (په دې صورت کې به) مقتدی له خپل امام ځخه مخالفت کوونکی سي وَمَا الْتَزَمَ الْأَدَاءَ إِلَّا مُتَابِعًا حال دا چې مقتدي د امام په اطاعت کې د (لمانځه) اداء کولو التزام کړی دی.

**اللغات**: ﴿مؤتم﴾ مقتدی، ﴿إقامة﴾ مقیم کېدل، سفر پرېښوول، ﴿التزم﴾ خپل په غاړه اخیستل، خپل پر ذمه اخیستل.

**تشریح**: صورت د مسئلې: دا دی که یو امام په لمانځه کې سهوه سو، نو سجدهٔ سهو به پر امام هم واجب وي، او پر مقتدي هم، هغه که مقتدی لاحق وي او که مسبوق، نو د مسبوق لپاره حکم دا دی چې کله امام سلام گرځوي نو نه دي ولاړیږي بلکې سجدهٔ سهو دي د امام سره وکړي او تر دویم سلام وروسته دي ولاړ سي او پاته لمونځ دي پوره کړي. دلیل دا دی چې د امام په سهوي سره پر مقتدي سجدهٔ سهو په دې وجه واجب ده ځکه چې امام اصل دی، او مقتدي یې تابع دی، نو کله چې د اصل په حق کې سجدهٔ سهو واجب سوه، نو د تابع او فرع په حق کې به په درجه اولیٰ واجب وي.

ولهذا الخ د دې تعلق د امام د اصل والي سره دی، حاصل یې دا دی چې که امام او مقتدیان ټوله مسافرین وه، او د مسافر توب لمونځ یې کوی، خو د لمانځه په دوران کې امام د اقامت نیت وکړي، نو دا نیت به د مقتدیانو له طرفه هم معتبر وي، او د دوی لپاره به د جلا نیت کولو هیڅ ضرورت نه وي، ځکه چې هغوی د امام تابع دي، او د متبوع قول او عمل د تابع لپاره هم حجت او دلیل وي.

فإن لم يسجد الخ فرمايي که امام د سهوي په صورت کې سجدهٔ سهو نه وکړه، نو د مقتدیانو لپاره هم د سجدهٔ سهوي کولو اجازه نشته، ځکه که امام سجدهٔ سهو نه وکړه، او مقتدیانو وکړه، نو په دې صورت کې به مقتدیان د خپل امام مخالفت کونکي سي، حال دا چې مقتدي د امام د تابعداری او موافقت لپاره اقتداء کړې ده، او د موافقت او مخالفت په مینځ کې ښکاره تضاد دی.

## د مقتدي په هېرې سره سجده سهو لازمېدل

فَإِنْ سَهَا الْمُؤْتَمُّ بیا که مقتدی سهوه سو لَمْ يَلْزَمِ الْإِمَامَ وَلَا الْمُؤْتَمَّ السُّجُودُ نو نه پر امام سجدهٔ سهو لازم ده او نه پر مقتدي لِأَنَّهُ لَوْ سَجَدَ وَحْدَهُ ځکه که مقتدي یوازې سجدهٔ سهو وکړه كَانَ مُخَالِفًا لِإِمَامِهِ نو دی به له خپل امام څخه مخالفت کونکی سي وَلَوْ تَابَعَهُ الْإِمَامُ او که امام هم د ده تابعداري وکړه يَنْقَلِبُ الْأَصْلُ تَبَعًا نو کوم چې اصل دی هغه به تابع وګرځیږي (یعني امام به [کوم چې اصل دی] د مقتدي تابع سي).

**اللغات:** ﴿سَهَا﴾ هېرېدل، ﴿وَحْدَهُ﴾ یوازې، ځانته، ﴿يَنْقَلِبُ﴾ د انفعال د باب مضارع ده: ګرځېدل، اوښتل.

**تشريح:** صورت د مسئلې: دا دی که له مقتدي څخه په لمانځه کې څه سهوه وسوه، د مثال په توګه په اوله ناسته کې یې تشهد نه ووایی نو د ده د سهوي په وجه سره نه پر امام سجدهٔ سهو لازمیږي او نه پر مقتدي، ځکه چې د صحت او فساد په اعتبار سره د امام لمونځ د مقتدي پر لمانځه نه مبني کیږي، نو د مقتدي د لمانځه په ناقصوالي سره د امام لمونځ نه ناقص کیږي، او کله چې د امام په لمانځه کې هیڅ نقص واقع نه سو، نو سجدهٔ سهو هم نه پر واجبیږي، او کله چې پر امام سجدهٔ سهو واجب نه سوه نو پر مقتدي هم نه واجبیږي، ځکه که پر مقتدي سجدهٔ سهو واجب سي نو هغه به یا یوازې سجدهٔ سهو کوي یا به یې امام هم ور سره کوي، په اول صورت کې د امام مخالفت راځي، او په دویم صورت کې موضوع اوړي، یعني امام کوم چې اصل دی هغه به تابع سي او مقتدي کوم چې تابع دی هغه به اصل سي. او دا دواړه خبرې جائز نه دي، یعني د امام مخالفت او د موضوع اوښتل دواړه جائز نه دي، نو کله چې دا دواړه ناجائز دي، نو پر مقتدي به سجدهٔ سهو هم واجب نه وي.

## که اوله ناسته (قعدهٔ اولی) هېره سي نو څه حکم دی؟

وَمَنْ سَهَا عَنِ الْقَعْدَةِ الْأُولَى او د کوم سړي چې اوله ناسته هېره سوه ثُمَّ تَذَكَّرَ وَهُوَ إِلَى حَالَةِ الْقُعُودِ أَقْرَبُ بیا په داسې حال کې په یاد ورغله چې د ناستې و حال ته زیات نژدې وو عَادَ نو دا سړی دې (د ناستې و طرف ته) را وګرځیږي وَقَعَدَ وَتَشَهَّدَ او کښېني دې او تشهد دې ووایي لِأَنَّ مَا يَقْرُبُ مِنَ الشَّيْءِ ځکه چې کوم شی یو شي ته نژدې وي يَأْخُذُ حُكْمَهُ هغه د دغه شي حکم اخلي ثُمَّ قِيلَ يَسْجُدُ لِلسَّهْوِ لِلتَّأْخِيرِ بیا یو قول دا دی چې د ځنډېدلو په وجه دې سجدهٔ سهو وکړي وَالْأَصَحُّ أَنَّهُ لَا يَسْجُدُ او زیاته صحیح دا ده چې سجدهٔ سهو دې نه کوي كَمَا إِذَا لَمْ يَقُمْ لکه ګرد سره چې ولاړ

سوی نه دي وَلَوْ كَانَ إِلَى الْقِيَامِ أَقْرَبَ لَمْ يَعُدْ او كه ولاړې ته زيات نژدې وو نو (د ناستې وطرف ته) دي نه را ګرځي لِأَنَّهُ كَالْقَائِمِ مَعْنًى ځکه چې دی په معنیٰ کې د ولاړ په څير دی وَيَسْجُدُ لِلسَّهْوِ او سجدهٔ سهو دي وکړي لِأَنَّهُ تَرَكَ الْوَاجِبَ ځکه چې ده واجب پرېښووی.

**تشریح: صورت د مسئلې:** دا دی که له يو چا څخه په څلور رکعتيز يا درې رکعتيز فرضي لمانځه کې اوله ناسته (قعدهٔ اولیٰ) هېره سي او بيا په ياد ورسي، نو د دې دوه صورتونه دي: يا به ناستې ته زيات نژدې وي، په دې توګه چې زنګونان به يې نه وي راپورته کړي، يا به ولاړې ته زيات نژدې وي په دې توګه چې زنګونان به يې راپورته کړي وي، نو که اول صورت وي نو د ناستې و طرف ته دي را وګرځي او تشهد دي ووايي، ځکه چې يو شي ته نژدې د هغه شي په حکم کې دی، لکه د اختر او جمعې د لمانځه په حق کې د ښار شاوخوا (فناء) ته د ښار حکم حاصل دی، ځکه چې فناء ښار ته نژدې وي، پاته سوه دا خبره چې پر دې سرې سجدهٔ سهو واجب ده، که نه، نو د ځينې حضراتو رايه دا ده چې سجدهٔ سهو پر واجب ده، ځکه چې اوله ناسته کوم چې واجب ده هغه وځنډول سوه، لېکن صحيح قول دا دی چې سجدهٔ سهو واجب نه ده، ځکه کله چې شي ته نژدې د هغه شي په حکم کې دی نو ګواکې هغه ولاړ سوی نه دی، نو کله چې داسې ده نو اوله ناسته ځنډول سوې نه ده، او کله چې ځنډول سوې نه ده نو سجدهٔ سهو هم واجب نه ده.

او که دويم صورت وو يعنې سړی د ولاړې و طرف ته نژدې وي [يعنې زنګونان يې پورته کړي وي]، نو د ناستې و طرف ته دي نه را ګرځي، بلکې د درېيم رکعت لپاره دي ولاړ سي، ځکه چې اوس دا قاعده ذکر سوه چې شي ته نژدې د شي په حکم کې دی، نو کله چې دا سړی ولاړې ته نژدې دی، نو معناً د ولاړ په حکم کې سو، او د ولاړ لپاره د اولې ناسته و طرف ته را ګرځېدل جائز نه دي، ځکه چې د درېيم رکعت ولاړه فرض ده، او اوله ناسته واجب ده، او د واجب په وجه فرض پرېښوول صحيح نه دي، خو په دې صورت کې سجدهٔ سهو واجب ده، ځکه چې ده واجب يعنې اوله ناسته پرېښووله.

## که په څلور رکعتيز لمانځه کې پنځم رکعت ته ولاړ سي نو څه حکم دی؟

وَإِنْ سَهَا عَنِ الْقَعْدَةِ الْأَخِيرَةِ او که له لمونځ ګزار څخه آخري ناسته هېره سوه حَتَّى قَامَ إِلَى الْخَامِسَةِ تر دې چې د پنځم رکعت لپاره ولاړ سو رَجَعَ إِلَى الْقَعْدَةِ مَا لَمْ يَسْجُدْ نو تر څو چې يې (د پنځم رکعت لپاره) سجده نه وي کړې را دې وګرځيږي (د ناستې و طرف ته) لِأَنَّ فِيهِ إِصْلَاحَ صَلَاتِهِ ځکه چې په دې کې د هغه د لمانځه اصلاح (سمونه) ده وَأَمْكَنَهُ ذَٰلِكَ او د هغه لپاره د اصلاح امکان هم سته لِأَنَّ مَا دُونَ الرَّكْعَةِ بِمَحَلِّ الرَّفْضِ ځکه چې له يوه رکعت څخه کم د پرېښوولو په ځای کې دی (يعنې تر يوه رکعت کم لمونځ پرېښوول کېدای سي) قَالَ: وَأَلْغَى الْخَامِسَةَ امام قدوري رَحِمَهُ الله فرمايي: او پنځم رکعت دې ختم کړي لِأَنَّهُ رَجَعَ إِلَى شَيْءٍ مَحَلُّهُ قَبْلَهَا ځکه چې دا لمونځ ګزاره د داسې شي وطرف ته را ګرځېدلی دی چې د هغه محل (ځای) تر پنځم رکعت مخکې دی فَيَرْتَفِضُ نو ځکه به پنځم رکعت پرېږدي وَيَسْجُدُ لِلسَّهْوِ او سجدهٔ سهو دې وکړي لِأَنَّهُ أَخَّرَ وَاجِبًا ځکه چې هغه يو واجب وروسته کړی (يعنې سلام او آخره ناسته يې وځنډول).

**تشریح: صورت د مسئلې:** دا دی که له لمونځ ګزار څخه آخره ناسته هېره سي او د دې پر ځای چې پر څلورم رکعت کښېني پنځم رکعت ته ولاړ سي، نو تر کومه وخته چې يې د پنځم رکعت لپاره سجده نه وي کړې تر هغه وخته ده ته دا اختيار سته چې بېرته د ناستې و طرف ته را وګرځيږي، او تشهد دي ووايي سلام دې وګرځوي او سجدهٔ سهو دي

وکړي، ځکه چې په دا ډول کولو سره د ده لمونځ صحیح کیږي، او د ده لپاره د خپل لمانځه صحیح کول ممکن هم دي، ځکه تر څو چې د پنځم رکعت لپاره سجده نه وکړي نو هغه یو رکعت نه دی، نو تر یوه رکعت د کم پرېښوول هیڅ پروا نه لري، ځکه چې تر یوه رکعت کم نه حقیقتاً لمونځ دی او نه حکماً، او د دې پنځم رکعت په پرېښوولو سره لمونځ گزاره د داسي رکن و طرف ته راګرځي چې د هغه ځای او محل تر پنځم رکعت مخکې دی، یعني د آخري ناستي و طرف ته راګرځي، او آخره ناسته فرض ده، نو د دې په رعایت کې به پنځم رکعت پرېښوول کیږي، خو څرنګه چې پنځم رکعت ته د ولاړېدلو په وجه رکن یعني آخري ناسته وځنډېدل، نو ځکه به د هغې د ځنډېدلو لپاره سجدهٔ سهو کول ضروري وي.

## که د پنځم رکعت لپاره سجده هم وسي نو څه حکم دی؟

وَإِنْ قَيَّدَ الْخَامِسَةَ بِسَجْدَةٍ او که لمونځ کونکي پنځم رکعت په سجده سره مقید کړی (یعني د پنځم رکعت لپاره یې سجده وکړه) بَطَلَ فَرْضُهُ عِنْدَنَا نو زموږ په نېز د هغه فرض باطل سو خِلَافًا لِلشَّافِعِيِّ په خلاف د امام شافعي رَحِمَهُ الله لِأَنَّهُ اسْتَحْكَمَ شُرُوعَهُ فِي النَّافِلَةِ قَبْلَ إِكْمَالِ أَرْكَانِ الْمَكْتُوبَةِ ځکه چې د فرضو د ارکانو تر پوره کولو مخکې د هغه په نفلو شروع کول مضبوط سول (یعني هغه د فرضو تر پوره کولو مخکې نفل شروع کړه) وَمِنْ ضَرُورَتِهِ خُرُوجُهُ عَنِ الْفَرْضِ حال دا چې د هغه لپاره له فرضو څخه وتل ضروري وه وَهَذَا لِأَنَّ الرَّكْعَةَ بِسَجْدَةٍ وَاحِدَةٍ صَلَاةٌ حَقِيقَةً او دا ځکه چې رکعت په یوې سجدې سره په حقیقت کې لمونځ دی (یعني کله چې د رکعت لپاره سجده وکړی سي نو په حقیقت کې هغه یو رکعت لمونځ ګرځي) حَتَّى يَحْنَثَ بِهَا فِي يَمِينِهِ لَا يُصَلِّي تر دې چې لمونځ کونکي د "لایصلی" په قسم کې د یوې سجدې والا په رکعت سره حانثیږي (یعني قسم یې ماتیږي) وَتَحَوَّلَتْ صَلَاتُهُ نَفْلًا عِنْدَ● أَبِي حَنِيفَةَ وَأَبِي يُوسُفَ رَحِمَهُمَا اللهُ او د شیخینو رَحِمَهُمَا الله په نېز د هغه لمونځ په نفلو بدل سو خِلَافًا لِمُحَمَّدٍ رَحِمَهُ اللهُ عَلَى مَا مَرَّ د امام محمد رَحِمَهُ الله اختلاف دی لکه څرنګه چې (مخکې) تېر سو.

**اللغات:** ﴿قَيَّدَ﴾ د تفعیل د باب ماضي صیغه ده: مقید کول. ﴿اِسْتَحْكَمَ﴾ د استفعال د باب ماضي صیغه ده: مضبوطه کول، ټینګول. ﴿يَحْنَثُ﴾ د فتح د باب مضارع صیغه ده: قسم ماتېدل.

**تشریح: صورت د مسئلې:** دا دی که یو سړي په څلور رکعتیز فرض لمانځه کې آخري نلسته (قعده اخیره) نه وکړه (بلکې ځني هېره سوه) او د پنځم رکعت لپاره ولاړ سو تر دې چې د پنځم رکعت سجده یې هم وکړه، نو اوس زموږ په نېز د ده فرض لمونځ باطل سو، او د امام شافعي رَحِمَهُ الله په نېز د ده لپاره حکم دا دی چې پنځم رکعت دي پرېږدي او بیر ته دي آخري ناستي ته راسي التحیات او نور دي ووایي او سلام دي وګرځوي.

**د امام شافعي دلیل:** دا دی چې له نبي ﷺ څخه د ماپښین په لمانځه کې پنځه رکعته ثابت دي، او د لمانځه راګرځول نه دي ځني را نقل سوي.

---

● القول الراجح: قول الشیخین، کذا فی رد المحتار ج:١، ص:٥٥٢. [القول الراجح، ج:١، ص:١٢٥]

**زموږ دليل:** دا دی چي دا سړی يو فرضي لمونځ کوي، نو تر کومه وخته چي دغه يو فرضي لمونځ پوره نه کړي، تر هغه وخته د دغه لپاره د دويم لمونځ شروع کول صحيح نه دي، ليکن کله چي دې سړي فرضي لمونځ پوره نه کړی او آخره ناسته يې پرېښوول او د پنځم رکعت لپاره ولاړ سو او د پنځم رکعت سجده يې هم وکړه، نو اوس د ده له طرفه د فرضو د ارکانو تر پوره کولو مخکي په نفلو شروع کول مؤکد او محکم سوه، حال دا چي د ده لپاره د فرضو ارکان پوره کول او له فرضو څخه وتل ضروري وه، ليکن کله چي ده داسي نه وکړه او نفل يې شروع کړه نو ښکاره ده چي د ده فرض به باطل وي.

وهذا الخ له دې عبارت څخه دا ربنيي چي د پنځم رکعت له سجدې کولو څخه مخکي فرض ولي نه باطلیږي، او په خپله پنځم رکعت ولي بېکاره پاتیږي، او د پنځم رکعت تر سجدې کولو وروسته فرض ولي باطليږي، نو د دې وجه دا ښيي چي تر سجدې کولو مخکي رکعت پوره نه وو، او نه له رکعت څخه لمونځ جوړ سوی وو، نو ځکه که تر سجدې کولو مخکي بیرته کښېني نو پنځم رکعت به بېکاره وي، خو تر سجدې کولو وروسته يو رکعت پوره سو، او لمونځ ځني جوړ سو، نو ګواکي د فرضو تر پوره کولو مخکي يې نفل شروع کړل، او قاعده دا ده که څوک د فرضو تر پوره کولو مخکي نفل شروع کړي، او هغه محکم کړي نو فرض باطليږي، نو ځکه به دلته فرض باطل وي، او د دې دليل چي تر سجدې کولو وروسته يو رکعت پوره کيږي او لمونځ ځني جوړيږي، دا دی چي که يو څوک قسم وکړي: لا يصلي (چي لمونځ به نه کوم)، نو که دا اول رکعت لپاره سجده وکړي نو حانثیږي، او که سجده نه وکړي، صرف ولاړه، قرائت او رکوع وکړي، نو نه حانثیږي، له دې څخه هم معلومه سوه چي تر سجدې وروسته يو رکعت پوره کيږي او لمونځ ځني جوړيږي، نه تر سجدې مخکي.

وتحولت صلاته الخ فرمايي چي کله د احنافو په نېز د دې سړي فرض لمونځ باطل سو، نو آيا د ده اصل لمونځ به هم باطل وي، که نه؟، فرمايي چي په دې مسئله کي د شيخينو رَحِمَهُمَا الله او د امام محمد رَحِمَهُ الله هغه اختلاف دلته هم سته کوم چي تر دې مخکي بيان سو، يعني د شيخينو رَحِمَهُمَا الله په نېز دا لمونځ نفل جوړيږي، او د نفل ثواب هغه ته رسيږي، ځکه چي د دوی په نېز د لمانځه د صفت په باطلېدلو سره اصل لمونځ نه باطليږي، او د امام محمد رَحِمَهُ الله په نېز اصل لمونځ باطليږي، ځکه چي د ده په نېز د لمانځه د صفت په باطلېدلو سره تحريمه هم باطليږي، نو ځکه به هغه نفل لمونځ باقي پاته نه وي، د دې مسئلې پوره تفصيل په باب قضاء الفوائت کي تېر سو.

**راجح قول:** په پورتنی مسئله کي راجح قول د شيخينو رَحِمَهُمَا الله دی، يعني که د پنځم رکعت لپاره سجده وکړي نو لمونځ يې نفل ګرځي، كما قال العلامة أكمل الدين البابرتي رَحِمَهُ الله: ولا شك أن بطلان وصف الفرضية وتحوله نفلاً أولى من بطلان أصل الصلوٰة و وصفها. [راجح قول ج:۱، ص:۱۲۵]

## د شپږم رکعت د يو ځای کولو حکم

فَيَضُمُّ إِلَيْهَا رَكْعَةً سَادِسَةً نو د دې پنځو رکعتو سره دې شپږم رکعت (هم) يو ځای کړي وَلَوْ لَمْ يَضُمَّ لَا شَيْءَ عَلَيْهِ او که ور سره يو ځای يې نه کړي نو پر هغه هيڅ شی واجب نه دي لِأَنَّهُ مَظْنُونٌ ځکه چي دا د ګمان لمونځ دی (يعني ګمان پکښي سوی دی) ثُمَّ إِنَّمَا يَبْطُلُ فَرْضُهُ بِوَضْعِ الْجَبْهَةِ عِنْدَ أَبِي يُوسُفَ رَحِمَهُ اللهُ بيا د امام ابو يوسف رَحِمَهُ الله په نېز د تندي په اېښوولو سره د هغه فرض باطليږي لِأَنَّهُ سُجُودٌ كَامِلٌ ځکه چي دا بشپړه سجده ده وَعِنْدَ● مُحَمَّدٍ رَحِمَهُ اللهُ بِرَفْعِهِ او د امام محمد رَحِمَهُ الله په نېز په سر پورته کولو سره (د هغه فرض باطليږي) لِأَنَّ تَمَامَ الشَّيْءِ بِآخِرِهِ ځکه چي د يو شي

---

● القول الراجح: قول محمد رَحِمَهُ الله، كما قال العلامة جلال الدين الخوارزمي رَحِمَهُ الله: قوله وعند محمد رَحِمَهُ الله برفعه الجبهة وهو المختار للفتوى. [القول الراجح، ج:۱، ص:۱۲۶]

پوره کېدل د هغه په آخر سره کيږي وَهُوَ الرَّفْعُ او هغه سر پورته کول دي وَلَمْ يَصِحَّ مَعَ الْحَدَثِ (همدا وجه ده چي) دا سر پورته کول په بې اودسی سره صحيح نه دي (يعني د بې اودسی په وخت کي په سر راپورته کولو سره سجده نه پوره کيږي) وَثَمَرَةُ الْإِخْتِلَافِ تَظْهَرُ فِيمَا إِذَا سَبَقَهُ الْحَدَثُ فِي السُّجُوْدِ او نتيجه د اختلاف په دې صورت کي ښکاره کيږي چي کله هغه د سجدې په حالت کي بې اودسه سي بَنَى عِنْدَ مُحَمَّدٍ رَحِمَهُ اللهُ (نو په دې صورت کي به) د امام محمد رَحِمَهُ الله په نېز بناء کوي خِلَافًا لِأَبِي يُوسُفَ په خلاف د امام ابو يوسف رَحِمَهُ الله.

**اللغات**: ﴿يَصُلُ﴾ د نصر مضارع صيغه ده: يو ځای کول. ﴿مَظْنُوْنٌ﴾ د نصر اسم مفعول دی: شکمن، گمان پکښې کړی سوی، غيريقيني. ﴿الجَبْهَة﴾ تندی. ﴿ثَمَرَة﴾ نتيجه، پايله.

**تشريح**: **صورت د مسئلې**: دا دی که له يو سړي څخه په څلور رکعتيز لمانځه کي آخره ناسته هېره سوه او د پنځم رکعت لپاره ولاړ سو او د پنځم رکعت سجده يې هم وکړه، نو څرنګه چي د شيخينو رَحِمَهُمَا الله په نېز صرف د ده فرض باطليږي، اصل لمونځ يې نه باطليږي، نو ځکه اوس ده ته پکار دي چي د پنځم رکعت سره يو بل رکعت يو ځای کړي چي ټوله شپږ رکعته سي، د دې لپاره چي د ده لمونځ جفت (جوت) سي او طاق پاته نه سي، ځکه چي په نفل کي طاق عدد نسته. بيا هم که هغه داسې نه وکړي لو شپږم رکعت نه ور سره يو ځای کړي نو هم هيڅ پروا نه لري، ځکه چي دا لمونځ مظنون دی يعني دا سړی په دې لمانځه کي قصداً د پنځم رکعت لپاره نه دي ولاړ سوی بلکي د وهم گومان (او هيري) په وجه ولاړ سوی دی (يعني پنځم رکعت يې په دې گومان سره شروع کړی دی چي تر اوسه څلور رکعته نه دي پوره سوي)، او د گومان په وجه نه يو شی واجبيږي، او نه د يو شي قضاء راوړل کيږي.

ثم انما يبطل فرضه الخ څرنګه چي مخکي معلومه سوه چي د پنځم رکعت لپاره د سجدې په کولو سره فرض لمونځ باطليږي، نو د امام ابو يوسف رَحِمَهُ الله په نېز چي پر مځکه سر کښېږدي نو سجده يې پوره کيږي او فرض يې باطليږي، د امام ابو يوسف رَحِمَهُ الله دليل دا اثر دی: عن ابن عمر قال: إذا وضع الرجل جبهته بالأرض أجزاه (مصنف ابن ابی شيبة ج:١، ص:٢٢۶)، په دې اثر کي راغلي دي چي پر مځکه په تندي ايښولو سره سجده پوره کيږي، او امام محمد رَحِمَهُ الله فرمايي چي کله له مځکي څخه سر راپورته کړي نو بيا يې سجده پوره کيږي او فرض يې باطليږي، ځکه چي يو شی هغه وخت پوره کيږي چي کله هغه شی آخري حدّ ته ورسيږي، او سجده آخري حدّ ته هغه وخت رسيږي چي کله له مځکي څخه راپورته کړی سي، همدا وجه ده چي که يو څوک په سجده کي سر کښېږدي او د سر تر راپورته کولو مخکي بې اودسه سي، نو هغه سجده پوره نه شمارل کيږي، له دې څخه معلومه سوه چي سجده تر سر راپورته کولو وروسته پوره کيږي.

**راجح قول**: په پورتنی مسئله کي راجح قول د امام محمد رَحِمَهُ الله دی، وقال العلامة جلال الدين الخوارزمي رَحِمَهُ الله: قوله وعند محمد رَحِمَهُ الله برفعه الجبهة وهو المختار للفتوی (کفايه ج:١، ص:٤٤۶). [القول الراجح، ج:١، ص:١٢۶]

## په آخره ناسته کي د تشهد ويلو او بيا د پنځم رکعت لپاره د ولاړېدلو بيان

وَلَوْ قَعَدَ فِي الرَّابِعَةِ او که لمونځ کونکي په څلورم رکعت کي ناسته (قعده) وکړه، ثُمَّ قَامَ بيا ولاړ سو وَلَمْ يُسَلِّمْ او سلام يې نه وګرځوی عَادَ إِلَى الْقَعْدَةِ مَا لَمْ يَسْجُدْ لِلْخَامِسَةِ نو تر څو چي يې د پنځم رکعت لپاره سجده کړې نه وي نو د ناستې و طرف ته دي (بيرته) را وګرځيږي وَسَلَّمَ او سلام دي وګرځوي لِأَنَّ التَّسْلِيمَ فِي حَالَةِ الْقِيَامِ غَيْرُ مَشْرُوْعٍ ځکه چي د ولاړې په حالت کي سلام ګرځول مشروع نه دي وَأَمْكَنَهُ الْإِقَامَةُ عَلَى وَجْهِهِ بِالْقُعُوْدِ او د ده لپاره په ناستې

په مشروع طريقه سره سلام قائم کول ممکن دي لِأَنَّ مَا دُوْنَ الرَّكْعَةِ بِمَحَلِّ الرَّفْضِ ځکه چې تر يوه رکعت کم لمونځ د پرېښوولو په محل کې دی (يعني پرېښوول کېدای سي).

**اللغات:** ﴿غَيْرُ مَشْرُوعٍ﴾ نا مشروع، ناجائز. ﴿مَحلّ الرَّفْض﴾ هغه ځای چې پرېښوول کېدلای سي (يعني پرېښوول يې صحيح وي).

**تشريح:** تر دې ځايه خو د هغو صورتونو بيان وو چې په هغه کې له لمونځ ګزار څخه آخري ناسته هېره سي او د پنځم رکعت لپاره ولاړ سي، له دې ځايه دا راښيي چې که لمونځ ګزاره د تشهد په اندازه آخري ناسته وکړي، خو سلام نه وګرځوي او په هېره سره د پنځم رکعت لپاره ولاړ سي، نو حکم دا دی چې که د پنځم رکعت سجده يې کړې نه وې نو د ناستې وطرف ته دې (بيرته) راوګرځېږي، او سلام دې وګرځوي، ځکه چې په ولاړه سلام ګرځول مشروع نه دي، او څرنګه چې په دې صورت کې د لمونځ ګزار لپاره پر مشروع طريقه يعني په ناستې سره سلام ګرځول ممکن دي، نو ځکه دي پر مشروع طريقه عمل وکړي، او د ده لپاره په ناستې يعني په مشروع طريقه سره سلام ګرځول په دې توګه ممکن دي چې کله ده د پنځم رکعت سجده نه کړې وي، نو ښکاره ده چې دا رکعت لمونځ نه دی، او چې کله لمونځ نه سو نو د دې رفض يعني پرېښوول هم صحيح دي، نو ځکه په دې صورت کې د لمونځ ګزاره لپاره شرعي حکم همدغه دی چې له پنځم رکعت څخه دې د ناستې و طرف ته راوګرځيږي، او سلام دې وګرځوي.

## تر پنځم رکعت وروسته شپږم رکعت کول

وَإِنْ قَيَّدَ الْخَامِسَةَ بِالسَّجْدَةِ او که يې پنځم رکعت په سجده سره مقيد کړی (يعني که يې د پنځم رکعت لپاره سجده وکړه) ثُمَّ تَذَكَّرَ بيا يې په ياد سوه (چې دا خو پنځم رکعت دی) ضَمَّ إِلَيْهَا رَكْعَةً أُخْرَى نو د هغه سره دې يو بل رکعت هم يو ځای کړي وَتَمَّ فَرْضُهُ او د ده فرض پوره سوه لِأَنَّ الْبَاقِيَ إِصَابَةُ لَفْظَةِ السَّلَامِ ځکه چې (صرف) د سلام لفظ اداء کول پاته دي وَهِيَ وَاجِبَةٌ او سلام واجب دی وَإِنَّمَا يَضُمُّ إِلَيْهَا أُخْرَى او بل رکعت به په دې وجه ور سره يو ځای کوي لِتَصِيْرَ الرَّكْعَتَانِ نَفْلًا چې دوه رکعته نفل سي لِأَنَّ الرَّكْعَةَ الْوَاحِدَةَ لَا تُجْزِئُهُ ځکه چې يو رکعت جائز نه دی لِنَهْيِهِ عَلَيْهِ الصَّلَاةُ وَالسَّلَامُ عَنِ الْبُتَيْرَاءِ• ځکه نبي ﷺ له بتيراء لمانځه څخه منع کړې ده (يعني د يوه رکعت له لمانځه څخه يې منع کړې ده) ثُمَّ لَا تَنُوْبَانِ عَنْ سُنَّةِ الظُّهْرِ بيا دا دوه رکعته د ماپښين د سنتو پر ځای نه دريږي هُوَ الصَّحِيْحُ همدا صحيح ده لِأَنَّ الْمُوَاظَبَةَ عَلَيْهَا بِتَحْرِيْمَةٍ مُبْتَدِأَةٍ ځکه چې پر دې دوو رکعتو (به د نبي کريم ﷺ) همېشتوب په نوې تحريمه سره وو.

**اللغات:** ﴿إِصَابَة﴾ اداء کول. ﴿لَا تَنُوْبَانِ﴾ د نصر د باب مضارع منفي صيغه ده: نائب کېدل، قائم مقام کېدل، پر ځای درېدل. ﴿مُبْتَدِأَة﴾ نوې.

**تشريح: صورت د مسئلې:** دا دی که يو سړی پر څلورم رکعت کښېنستی او بيا په هېره د پنځم رکعت لپاره ولاړ سو او د پنځم رکعت سجده يې هم وکړه او بيا په ياد ورغله، نو اوس د ده لپاره حکم دا دی چې د دې رکعت سره دې شپږم رکعت هم يو ځای کړي، نو په دې صورت کې به فرض لمونځ پوره سي، او پنځم او شپږم رکعت به يې نفل سي، فرض لمونځ

---

• أخرجه البيهقي في كتاب الصلاة بمعناه، باب الوتر بركعة واحدة، حديث رقم: ۴۹۱.

خو به یې ځکه پوره سي چي له لماتحه څخه د سلام په لفظ سره وتل زموږ په نېز واجب دي، او په دې صورت کي د سلام لفظ پرېښوول سو او د واجب په پرېښولو سره لمونځ نه فاسدیږي، نو ځکه په دې صورت کي فرض لمونځ نه فاسدیږي، پاته سنو دا چي د واجب په پرېښوولو سره نقصان پیدا سو، نو هغه نقصان په سجدهٔ سهو سره پوره کیږي، امام شافعي رَحِمَهُ الله فرمایي چي که شپږم رکعت ور سره یو ځای کړي نو فرض لمونځ یې فاسدیږي، ځکه چي په دې صورت کي دا سړی د دویم لماتحه و طرف ته منتقل سو، حال دا چي د سلام لفظ لا تر اوسه پاته دی، او د سلام لفظ د امام شافعي رَحِمَهُ الله په نېز فرض دی، او د فرض په پرېښوولو سره لمونځ فاسدیږي، نو ځکه به په دې صورت کي لمونځ فاسدیږي.

وإنما يضم إليها الخ فرمایي چي پر لمونځ ګزاره د پنځم رکعت سره د شپږم رکعت یو ځای کول واجب او لازم دي، د دې لپاره چي له شپږو څخه څلور رکعته فرض سي او دوه رکعت نفل سي، او د دې لپاره چي له فرضو څخه ملسوا یو رکعت پاته نه سي، ځکه نبي ﷺ له صلاة بتیراء څخه منع کړې ده، او صلاة بتیراء یو رکعت والا لماتحه ته وایي.

ثم لا تنوبان الخ فرمایي چي که لمونځ ګزار ته دا پورتنی صورت د ماپښین په لماتحه کي ور پېښ سو نو کوم دوه رکعته چي زیات سوي دي هغه د ده لپاره د ماپښین د دوو رکعتو سنتو پر ځای نه سي دربدلای، همدا صحیح قول دی، ځکه چي د ماپښین دوه رکعته سنت په نوې او جلا تحریمه سره اداء کول ضروري دي، ځکه چي همدغه د نبي ﷺ معمول وو، او ټوله ژوند به یې پر دې عمل کوی.

## د شپږم رکعت په آخر کي د سجدهٔ سهو حکم

وَيَسْجُدُ لِلسَّهْوِ اِسْتِحْسَانًا او سجدهٔ سهو دي وکړي استحساناً لِتَمَكُّنِ النُّقْصَانِ فِي الْفَرْضِ بِالْخُرُوجِ لَا عَلَى الْوَجْهِ الْمَسْنُوْنِ ځکه چي نقصان راغلی په فرضو کي په غیر مسنون (نا سنت) توګه سره د وتلو په وجه (یعني چي کله له فرضو څخه په غیر مسنون طریقه سره ووتی نو په فرضو کي یې نقصان راغلی) وَفِي النَّفْلِ بِالدُّخُوْلِ لَا عَلَى الْوَجْهِ الْمَسْنُوْنِ او نقصان راغلی په نفلو کي په نا سنت توګه سره د داخلېدلو په وجه وَلَوْ قَطَعَهَا لَمْ يَلْزَمْهُ الْقَضَاءُ او که دا (پنځم) رکعت قطع کړي (پرېږدي) نو پر ده قضاء نه لازمیږي لِأَنَّهُ مَظْنُوْنٌ ځکه چي دا د ګومان (او هېري) لمونځ دی وَلَوِ اقْتَدٰى بِهِ إِنْسَانٌ فِيْهِمَا او که په دې دوو رکعتونو کي یو سړي د ده اقتداء وکړه يُصَلِّيْ سِتًّا عِنْدَ• مُحَمَّدٍ رَحِمَهُ اللهُ نو د امام محمد رَحِمَهُ الله په نېز به هغه سړی شپږ رکعته کوي لِأَنَّهُ الْمُؤَدّٰى بِهٰذِهِ التَّحْرِيْمَةِ ځکه چي دوه رکعته (هم) په دغه تحریمه سره اداء سوي دي وَعِنْدَهُمَا رَكْعَتَيْنِ او د شیخینو رَحِمَهُمَا الله په نېز به (صرف) دوه رکعت کوي لِأَنَّهُ اسْتَحْكَمَ خُرُوْجُهُ عَنِ الْفَرْضِ ځکه چي له فرضو څخه د ده وتل محکم (ټینګ) سوي دي وَلَوْ أَفْسَدَهُ الْمُقْتَدِيْ او که مقتدي دا فاسد کړل

---

• القول الراجح: قول محمد رَحِمَهُ الله، كذا في رد المحتار ج:١، ص:٥٥٢٠. [القول الراجح ج:١، ص:١٢٨]

فَلَا قَضَاءَ عَلَيْهِ عِنْدَ مُحَمَّدٍ رَحِمَهُ اللهُ نو د امام محمد رَحِمَهُ الله په نيز پر مقتدي قضاء نشته اِعْتِبَارًا بِالْإِمَامِ امام محمد رَحِمَهُ الله پر امام قياس كوي وَعِنْدَ أَبِيْ يُوْسُفَ يَقْضِيْ رَكْعَتَيْنِ او د امام ابو يوسف رَحِمَهُ الله په نيز به مقتدي د دوو ركعتونو قضاء راوړي لِأَنَّ السُّقُوْطَ بِعَارِضٍ يَخُصُّ الْإِمَامَ ځكه چي (له امام څخه) ساقطيدل د داسي عارض په وجه سره دي كوم چي د امام سره خاص دي.

**اللغات:** ﴿الْمُؤَدَّى﴾ د تفعيل له باب څخه د اسم مفعول صيغه ده: اداء كړى سوى.

**تشريح:** فرمايي په مخكني عبارت كي چي كوم د سجدهٔ سهو خبره وسوه يعني: كه لمونځ گزاره په آخره ناسته كي د تشهد په اندازه كښېنستي، بيا په هېره سره د پنځم ركعت لپاره ولاړ سو، او د پنځم ركعت سجده يې هم وكړه، نو اوس حكم دا دى چي شپږم ركعت دي هم وكړي او په آخر كي دي سجدهٔ سهو وكړي، نو په دې سجدهٔ سهو كي د استحسان او قياس دوې جلا جلا نظريې دي، د استحسان له رويه پر دې سړي سجدهٔ سهو واجب ده. لېكن د قياس له رويه سجدهٔ سهو پر واجب نه ده، ځكه چي لمونځ گزاره په فرضي لمانځه كي سهوه سوى دئ، او دى په نفلي لمانځه كي د سجدهٔ سهوي كولو مكلف جوړېږي، نو عقلاً او قياساً دا خبره له فهمه لېري ده، ځكه چي په كوم لمونځ كي سهوه سوې وي، په هغه كي به سجدهٔ سهو واجب وي، او د دې سجدي ادا ينه به هم په هغه لمانځه كي كيږي، همدغه د قياس تقاضا ده، نو په ذكر سوې مسئله كي د فرضو د سجد سهوي حكم په نفلو كي د قياس مطابق نه دى، خو استحساناً واجب ده.

**دليل:** د استحسان دليل دا دى چي دلته دوې خرابياني ښته: (١) اوله خرابي خو دا ده چي له لمانځه څخه د وتلو لپاره د السلام عليكم په ذريعه سره سلام گرځول واجب دي، او همدغه سنت طريقه ده، لېكن په ذكر سوې مسئله كي دا طريقه پرېښوول سوې ده. (٢) او دويمه خرابي دا ده چي د فرضو په تحريمه نفل شروع كړى سوي دي، حال دا چي د نفلو لپاره جلا تحريمه ترل واجب دي، نو دلته په فرضو او نفلو دواړو كي كمي راغله، او څرنگه چي دواړه لمونځونه په يوه تحريمه سره اداء كيږي، نو ټوله لمونځ به يعني شپږ ركعته به د يوه لمانځه په درجه گرځول كيږي او دا به ويل كيږي چي دا يو پوره لمونځ دى، او د يوه لمانځه په آخر كي سجدهٔ سهو كېداى سي، نو ځكه به په دې صورت كي هم په آخر كي سجدهٔ سهو كيږي، او دا سجدهٔ سهو به د فرضو د سهوي وي، كه څه هم دا د نفلو په آخر كي وسي.

ولو قطعها الخ فرمايي چي كه لمونځ گزاره په ذكر سوې مسئله كي د پنځم ركعت لپاره سجده وكړي خو شپږم ركعت ور سره يو ځاى نه كړي بلكي لمونځ ختم كړي، نو پر ده هيڅ حرج نشته او نه پر ده د دې دوو ركعتونو قضاء ضروري ده، ځكه چي ده دا دوه ركعته قصداً نه دي شروع كړي، بلكي په هېره او په دې گومان يې شروع كړي دي چي زه څلورم ركعت كوم، او د هغه لمانځه قضاء نشته چي په هېره او گومان شروع سوى وي: إن الله تجاوز لي عن أمتي الخطأ والنسيان وما استكرهوا عليه. (ابن ماجه، باب طلاق المكروه والناسي)

ولو اقتدى به إنسان الخ د دې حاصل دا دى كه يو سړي په دغه د هېري او گومان والا په پنځم او شپږم ركعت كي د دې سړي اقتداء وكړه، نو اوس به دا مقتدي څه كوي، او څومره ركعته به كوي، نو په دې لړ كي د امام محمد رَحِمَهُ الله رايه دا ده چي مقتدي به شپږ ركعته كوي، يعني كه په پنځم ركعت كي يې اقتداء پسي وكړه نو د امام سلام تر گرځولو وروسته به څلور ركعته نور كوي، او كه په شپږم كي يې اقتداء پسي وكړه نو د امام تر سلام وروسته به پنځه ركعته نور كوي په

● القول الراجح: قول أبي يوسف رَحِمَهُ الله، كما قال العلامة المفتي هنا على قول أبي يوسف رَحِمَهُ الله فتح القدير ج:١، ص:٣٢٨. [القول الراجح ج:١، ص:١٢٩]

دې توګه چې یو رکعت به وکړي او ناسته به وکړي، بیا به پر دوه رکعته کېنیني او بیا به دوه رکعته وکړي او آخري ناسته به وکړي او سلام به وګرځوي.

**د امام محمد دلیل:** دا دی چې مقتدي د دې امام اقتداء وکړه، او امام شپږ رکعته کوي، او په مخکني تحریمه سره شپږ رکعته کوي، نو پر مقتدي به هم شپږ رکعته اداء کول ضروري وي.

د دې په خلاف د شیخینو رَحِمَهُمَا الله په نیز پر مقتدي صرف دوه رکعته ضروري دي، نو که یې په پنځم رکعت کې د امام اقتداء وکړه، نو د امام سره دې سلام وګرځوي، او که په شپږم رکعت کې یې اقتداء وکړه، نو د امام تر سلام وروسته دې صرف یو رکعت وکړي او سلام به وګرځوي، ځکه چې د نفلو د شروع کولو په وجه دده د امام له فرضو څخه وتل محکم او مضبوط سوي دي (یعني کله چې امام څلور رکعته فرض پوره کړه او دوه رکعته نفل یې شروع کړه، نو د نفلو شروع کولو په وجه له فرضو څخه د هغه وتل محکم سو، یعني په محکمه توګه له فرضو څخه ووتی) نو اوس به د مقتدي اقتداء صرف په نفلو کې صحیح او معتبره وي، او څرنګه چې امام دوه رکعته نفل کوي، نو پر مقتدي به هم صرف دوه رکعته لازم او ضروري وي.

ولو أفسده الخ د دې حاصل دا دی که مقتدي تر اقتداء کولو وروسته دا لمونځ فاسد کړي نو د امام محمد رَحِمَهُ الله په نیز څرنګه چې پر امام د دې قضاء واجب نه ده، همدارنګه پر مقتدي هم د دې قضاء واجب نه ده، ځکه چې د مقتدي حال د امام تر حال قوي نه دی، نو کله چې پر امام قضاء واجب نه ده، نو پر مقتدي به هم نه وي.

د دې په خلاف د امام ابو یوسف رَحِمَهُ الله په نیز پر مقتدي قضاء واجب ده، ځکه چې د امام په حق کې د قضاء ساقطېدل د یو عارض یعني ګومان (ظن) په وجه سره وو، خو څرنګه چې عارض د امام سره خاص دی، نو د قضاء ساقطېدل به هم د امام سره خاص وي، او د مقتدي څخه به قضاء نه ساقطیږي، ځکه چې د مقتدي په حق کې هیڅ عارض نسته.

## د نفلي لمانځه په اولو دوو رکعتونو کې سهوه کېدل

> قَالَ: وَمَنْ صَلَّى رَكْعَتَيْنِ تَطَوُّعًا فرمایي: که یو سړي دوه رکعته نفلي لمونځ وکړی فَسَهَا فِيهِمَا او په دې کې سهوه سو وَسَجَدَ لِلسَّهْوِ او سجدهٔ سهو یې (هم) وکړه ثُمَّ أَرَادَ أَنْ يُصَلِّيَ أُخْرَيَيْنِ بیا یې وغوښتل چې نور دوه رکعته وکړي لَمْ يَبْنِ نو (پر دغه دوو رکعتو به) بناء نه کوي لِأَنَّ السُّجُودَ يَبْطُلُ لِوُقُوعِهِ فِي وَسَطِ الصَّلَاةِ ځکه چې سجدهٔ سهو د لمانځه په مینځ کې د واقع کېدلو په وجه بناء باطلوي بِخِلَافِ الْمُسَافِرِ إِذَا سَجَدَ السَّهْوَ په خلاف د مسافر چې کله هغه سجدهٔ سهو وکړي ثُمَّ نَوَى الْإِقَامَةَ بیا د اقامت نیت وکړي حَيْثُ يَبْنِي نو هغه بناء کولای سي لِأَنَّهُ لَوْ لَمْ يَبْنِ ځکه که هغه بناء ونه کړي تَبْطُلُ جَمِيعُ الصَّلَاةِ نو ټوله لمونځ یې باطلیږي وَمَعَ هَذَا لَوْ أَدَّى او که د دې سره سره دغه سړي پر دوو رکعتو نور لمونځ اداء کړی (یعني پر دوو رکعتو یې د نور لمانځه بناء وکړه) صَحَّ نو صحیح ده لِبَقَاءِ التَّحْرِيمَةِ ځکه چې تحریمه پاته ده وَيَبْطُلُ سُجُودُ السَّهْوِ او سجدهٔ سهو باطلیږي هُوَ الصَّحِيحُ همدا صحیح ده.

**اللغات:** ﴿لَمْ يَبْنِ﴾ د ضرب له باب څخه جحد معلوم صیغه ده: بناء کول.

**تشریح: صورت د مسئلې:** دا دی که یو سړي دوه رکعته نفلي لمونځ شروع کړی، او بیا پکښې سهوه سو او سجدهٔ سهو یې هم وکړه، اوس که دی پر دې دوو رکعتو نفلو نور دوه رکعته نفل کول غواړي، نو کولای یې نه سي، یعني د ده لپاره پر دې دوو رکعتو د نورو دوو رکعتو بناء کول صحیح نه دي، ځکه چې د لمانځه په مینځ کې سجدهٔ سهو واقع سوه، او د

لمانځه په مینځ کي د سجدهٔ سهوي په واقع کېدلو سره بناء باطلیږي، ځکه چي سجدهٔ سهو د لمانځه په آخر کي مشروع ده، نه د لمانځه په مینځ کي، نو اوس د ده په حق کي غوره دا ده چي هغه اول دوه رکعته پوره کړي، او بیا دي په نوې تحریمه سره نور دوه رکعته وکړي.

بخلاف المسافر الخ فرمايي که يو سړی مسافر وي، او د قصر په نيت د دوو رکعتو فرضو نيت وتړي او د لمانځه په مينځ کي سهوه سي، او سجدهٔ سهو هم وکړي، خو تر سلام ګرځولو مخکي د اقامت نيت وکړي، نو ښکاره ده چي اوس به هغه د دوو رکعتو پر ځای څلور رکعته کوي، نو اوس که د دغه دوو رکعتو سره نور دوه رکعته يو ځای کړي يعني بناء وکړي، نو د ده لپاره دا بناء صحيح ده، او د مسافر په حق کي د لمانځه په مينځ کي د سجدهٔ سهو په واقع کېدلو سره بناء نه باطليږي، ځکه چي پر مسافر د مقيم کېدلو په وجه اوس څلور رکعته فرض دي، او ده تر اوسه دوه رکعته کړي دي، اوس که موږ د ده په حق کي بناء جائز نه وګرځوو، نو د ده دوه رکعته به باطل سي، نو ځکه به د ده په حق کي بناء جائز وي، ځکه چي په دې صورت کي صرف د واجب يعني د سجدهٔ سهوي باطلېدل راځي، او د بناء د نه جائز کېدلو په صورت کي فرض باطليږي، او د واجبو ابطال له فرضو د ابطال څخه سپک دی، نو د يختار أهون الشرين قاعدې په وجه به د ده لپاره د بناء اجازه وي.

او د نفل کونکي لپاره به د بناء اجازه نه وي بيا هم که هغه بناء وکړي او نور دوه رکعته وکړي نو صحيح به وي، ځکه چي تر سلام ګرځولو مخکي د هغه تحريمه پاته ده، او د تحريمې بقاء د لمانځه د جواز لپاره کافي ده، لېکن کومه سجده سهوه چي يې پر دوو رکعتو کړې ده، هغه به باطله وي، او دويم وار به سجده سهوه کوي.

## که د امام د سجده سهوي په وخت کي يو مقتدي راسي نو څه حکم دی؟

وَمَنْ سَلَّمَ او که يو امام (د لمانځه په آخر کي) سلام وګرځوی وَعَلَيْهِ سَجْدَتَا السَّهْوِ حال دا چي پر هغه (لا) د سهوي دوې سجدې پاته وي فَدَخَلَ رَجُلٌ فِي صَلَاتِهِ بَعْدَ التَّسْلِيمِ او د امام تر سلام ګرځولو وروسته يو سړی د امام په لمانځه کي داخل سو فَإِنْ سَجَدَ الْإِمَامُ كَانَ دَاخِلًا نو که امام سجدهٔ سهو وکړه نو دا سړی به په لمانځه کي داخل وي (يعني په لمانځه کي به داخل شمارل کيږي) وَإِلَّا فَلَا کنې نو داخل به نه وي وَهٰذَا عِنْدَ أَبِي حَنِيفَةَ وَأَبِي يُوسُفَ رَحِمَهُمَا اللهُ او دا حکم د شيخينو رَحِمَهُمَا الله په نيز دی وَقَالَ مُحَمَّدٌ رَحِمَهُ اللهُ: هُوَ دَاخِلٌ او امام محمد رَحِمَهُ الله فرمايي چي دا سړی په لمانځه کي داخل دی سَجَدَ الْإِمَامُ أَوْ لَمْ يَسْجُدْ هغه که امام سجدهٔ سهو کړې وي او که نه وي لِأَنَّ عِنْدَهُ سَلَامُ مَنْ عَلَيْهِ السَّهْوُ لَا يُخْرِجُهُ عَنِ الصَّلَاةِ أَصْلًا ځکه چي د امام محمد رَحِمَهُ الله په نيز د هغه سړي سلام (ګرځول) چي سجدهٔ سهو پر واجب وي هغه بالکل له لمانځه څخه نه باسي (يعني د امام محمد رَحِمَهُ الله په نيز چي پر کوم سړي سجدهٔ سهو پاته وي د هغه په سلام ګرځولو سره بالکل لمونځ نه ختميږي) لِأَنَّهَا وَجَبَتْ جَبْرًا لِلنُّقْصَانِ ځکه چي سجدهٔ سهو د نقصان د تلافي لپاره واجب سوې ده فَلَا بُدَّ مِنْ أَنْ يَكُونَ فِي إِحْرَامِ الصَّلَاةِ نو ځکه ضروري ده چي دا سړی دي د لمانځه په احرام (او حالت) کي وي وَعِنْدَهُمَا يُخْرِجُهُ

---

● القول الراجح: قول الشيخين رَحِمَهُمَا الله، كما قال العلامة ابن الهمام رَحِمَهُ الله بعد تفصيل المسئلة: و التوقف في بقاء التحريمة و بطلانها أصح لأن التحريمة واحدة فإذا بطلت لا تعود إلا بإعادة و لم توجد فتح القدير ج:١، ص: ٣٥٠. [القول الراجح ج:١، ص:١٣٠]

عَلٰى سَبِيلِ التَّوَقُّفِ او د شيخينو رَحِمَهُمَا الله په نيز (سلام ګرځول) لمونځ کونکی د توقف په توګه (له لمانځه) څخه باسي لِأَنَّهُ مُحَلِّلٌ فِي نَفْسِهِ ځکه چي سلام خو په خپل ذات کي حلالونکی دی (يعني د لمانځه ختمونکی دی) وَإِنَّمَا لَا يَعْمَلُ ليکن دلته سلام خپل عمل نه کوي (يعني لمونځ نه ختموي) لِحَاجَتِهِ إِلَى أَدَاءِ السَّجْدَةِ ځکه چي دلته د سجدې اداء کولو ضرورت سته فَلَا يَظْهَرُ دُونَهَا نو د سجدۀ سهوي تر کولو به مخکي د سلام عمل نه ښکاره کيږي وَلَا حَاجَةَ عَلَى اعْتِبَارِ عَدَمِ الْعَوْدِ او د نه را ګرځولو په اعتبار سره هيڅ ضرورت نسته (يعني که امام سجدۀ سهو نه را وګرځوي نو تر سلام وروسته د لمانځه ختمولو هيڅ ضرورت نسته) وَيَظْهَرُ الِاخْتِلَافُ فِي هٰذَا [۱] او (د) اختلاف (ثمره خو به يو) په دې مسئله کي ښکاره کيږي وَفِي انْتِقَاضِ الطَّهَارَةِ بِالْقَهْقَهَةِ [۲] او (بل به) په قهقهه خندا سره په اودس ماتېدلو کي (ښکاره کيږي) وَتَغَيُّرِ الْفَرْضِ بِنِيَّةِ الْإِقَامَةِ فِي هٰذِهِ الْحَالَةِ [۳] او (بل به) په دې حالت کي د اقامت په نيت سره د فرضو په بدلېدلو کي (ښکاره کيږي).

**اللغات: ﴿المحلّل﴾** حلالوونکی.

**تشريح: صورت د مسئلې:** دا دی که پر يو امام سجدۀ سهو واجب وه، او د سجدۀ سهوي له اداء کولو څخه بغير يې سلام وګرځوی، او بل سړی راغلی د ده تر سلام ګرځولو وروسته د ده په لمانځه کي داخل او شريک سو، نو د شيخينو رَحِمَهُمَا الله په نيز حکم دا دی که تر سلام ګرځولو وروسته امام سجدۀ سهو وکړه نو دا مقتدي د ده په لمانځه کي داخل او شريک شمارل کيږي، او که امام سجدۀ سهو ونه کړه نو د ده په لمانځه کي به شريک او داخل نه شمارل کيږي.

**د سجدۀ سهوي سلام د لمانځه له حرمت څخه لمونځ ګزاره باسي، که نه؟:** دا مسئله او له دې څخه ماسوا نور درې مسئلې پر دې اصل موقوفي دي چي پر چا سجده سهوه واجب وي، نو سلام هغه د لمانځه له حرمت څخه باسي او که نه؟ په دې باره کي د امام محمد رَحِمَهُ الله مذهب دا دی چي د دې سړي سلام دی له لمانځه څخه نه باسي، نه موقوفاً او نه باتاً (قطعي)، همدا قول د امام زفر رَحِمَهُ الله دی.

**د امام محمد دليل:** دا دی چي سجدۀ سهو د هغه نقصان د تلافي او جبران لپاره واجب ده کوم نقصان چي په مؤدی يعني په اداء سوي لمانځه کي پيدا سوی وي، او تلافي په هغه وخت کي متحقق کيږي چي هغه شی موجود وي چي د هغه تلافي کول مقصود وي، يعني د سجدې په ذريعه د لمانځه د نقصان تلافي هغه وخت کېدای سي چي کله لمونځ موجود وي، او د لمانځه بقاء پر تحريمه موقوفه ده، نو معلومه سوه چي پر چا چي سجدۀ سهو واجب وي، د هغه سلام ګرځول هغه د لمانځه له احرامه څخه نه خارجوي، بلکي د سلام بلوجود تحريمه پاته کيږي، نو کله چي تر سلام وروسته تحريمه پاته ده، نو تر سلام وروسته به د هغه اقتداء کول هم صحيح وي، هغه که امام سجدۀ سهو وکړي او که نه وکړي.

د شيخينو رَحِمَهُمَا الله مذهب دا دی چي سلام هغه له لمانځه څخه موقوفاً باسي، د موقوفاً مطلب دا دی چي تر سلام وروسته که هغه سجدۀ سهو وکړه نو ويل کيږي به چي تحريمه پاته ده، او چي تحريمه پاته ده نو د بل لمونځ کونکي اقتداء کول به هم (په هغه پسي) صحيح وي، او که تر سلام وروسته هغه سجده نه وکړه، نو ويل کيږي به چي تحريمه پاته نه سوه او کله چي تحريمه پاته نه سوه نو اقتداء به يې هم صحيح نه وي.

د شيخينو دليل: دا دی چې سلام په خپله محلل دی يعني له لمانځه څخه باسونکی او د لمانځه ختمونکی دی، لکه د نبي ﷺ فرمان دی: تحليلها التسليم هو! که يو مانع پېښ سي نو لفظ د سلام به خپل عمل نه کوي، او مانع د سجدۀ سهوي اداء کول دي، نو که تر سلام وروسته سجدۀ سهو وکړي، نو مانع پيدا سو، نو ځکه به سلام خپل عمل نه کوي، يعني لمونځ گزار به له لمانځه څخه نه باسي، او که سجدۀ سهو نه وکړي، نو د سلام د عمل مانع يعني د تحليل مانع پيدا نه سو په دې وجه به لفظ د سلام خپل عمل کوي، يعني لمونځ گزاره به له لمانځه څخه باسي، نو له دليل څخه ثابته سوه چې پر کوم سړي سجدۀ سهو واجب وي د هغه سلام هغه موقوفاً له لمانځه څخه باسي.

ويظهر الاختلاف الخ د شيخينو او د امام محمد رَحِمَهُ الله په نيز د اختلاف نتيجه په دې درې مسئلو کي ښکاره کيږي: (١) اوله مسئله دا ده که يو څوک تر سلام گرځولو وروسته او تر سجدۀ سهو کولو مخکې د امام اقتداء وکړه، نو د شيخينو په نيز که امام سجدۀ سهو وکړي نو د مقتدي اقتداء به صحيح وي، او د امام محمد په نيز که سجدۀ سهو وکړي او که نه وکړي، په هر حال کي به د مقتدي اقتداء صحيح وي، ځکه که سجدۀ سهو هم نه وکړي نو بيا به هم تر سلام وروسته د هغه تحريمه پاته وي. (٢) دويمه مسئله دا ده که تر سلام وروسته دغه امام قهقهه خندا وکړه، نو د امام محمد رَحِمَهُ الله په نيز د هغه اودس ماتيږي، ځکه چې تر اوسه لا تحريمه پاته ده، نو ځکه د لمانځه په مينځ کي قهقهه واقع سوه. او د شيخينو په نيز که سجدۀ سهو وکړي نو د هغه اودس ماتيږي، ځکه چې په دې صورت کي به د لمانځه په مينځ کي قهقهه واقع سي، او که سجدۀ سهو نه وکړي نو اودس يې نه ماتيږي، ځکه گواکي تر سلام وروسته لمونځ ختم سو، او قهقهه تر لمانځه وروسته واقع سوه. (٣) دريمه مسئله دا ده که يو مسافر د ماپښين فرضي لمونځ دوه رکعته کوی او تر سلام وروسته يې د اقامت نيت وکړی، نو د امام محمد رَحِمَهُ الله په نيز به فرض بدليږي او څلور رکعته به کوي، ځکه چې تر اوسه لا تحريمه پاته ده، او د شيخينو په نيز که مسافر سجدۀ سهو وکړي نو د هغه فرض به څلور رکعتو ته بدليږي، او که سجدۀ سهو نه وکړي، نو د هغه فرض به څلورو رکعتو ته نه بدليږي، ځکه چې د سلام په وخت کي د هغه لمونځ ختم سو. (ځکه اصول دا دی چې د امام په محمد رَحِمَهُ الله په نيز که سجدۀ سهو وکړي او که نه وکړي تر سلام وروسته به تحريمه هم پاته وي، او د شيخينو رَحِمَهُمَا الله په نيز که سجدۀ سهو وکړي نو تحريمه به پاته وي، او که يې نه وکړي نو پر سلام به تحريمه هم ختميږي).

## که تر سلام وروسته څوک سجدۀ سهو نه وکړي نو څه حکم دی؟

> وَمَنْ سَلَّمَ يُرِيْدُ بِهِ قَطْعَ الصَّلَاةِ او څوک چې د لمانځه د ختمولو په اراده سره سلام وکړي وَعَلَيْهِ سَهْوٌ حال دا چې پر هغه سجدۀ سهو پاته وي فَعَلَيْهِ أَنْ يَّسْجُدَ لِلسَّهْوِ نو پر هغه ضروري ده چې سجدۀ سهو وکړي لِأَنَّ السَّلَامَ غَيْرُ قَاطِعٍ ځکه چې سلام لمونځ نه ختمونکی دی (يعني لمونځ نه ختموي) وَنِيَّتُهُ تَغْيِيْرُ لِلْمَشْرُوْعِ او د هغه نيت د (يو) مشروع (شي) بدلوونکی دی فَلَغَتْ نو ځکه به د هغه نيت بېکاره وي.

اللغات: «قَطْع» د فتح د باب مصدر دی: ختمول، «لَغَتْ» د نصر د باب ماضي صيغه ده: لغو کېدل، بېکاره کېدل.

تشريح: مسئله: دا ده که پر يو سړي سجدۀ سهو واجب وه، او دې سړي په قصده او عمداً د لمانځه ختمولو په نيت سره سلام وگرځوی، نو تر کومه وخته چې هغه سجدۀ سهو نه وکړي تر هغه وخته له لمانځه څخه نه سي وتلای، ځکه چې سلام خو لمونځ ختموي، لېکن پر کوم سړي چې سجدۀ سهو واجب وي د هغه په سلام لمونځ نه ختميږي، نو تر کومه

وخته چې هغه سجدهٔ سهو نه وکړي تر هغه وخته له لمانځه څخه نه سي وتلای، که يو وار نه بلکي لس واره هم سلام وکړي له لمانځه څخه نه سي وتلای، او د لمانځه ختمولو چې څومره پوخ نيت هم وکړي، نيت به يې بېکاره وي، ځکه چې په سلام سره د لمانځه ختمول مشروع سوي دي او د مشروع کار ختمول د بنده په اختيار کي نه دي.

## د لمانځه په رکعتونو کي د اول وار لپاره د شک کونکي سړي حکم

وَمَنْ شَكَّ فِيْ صَلَاتِهٖ او څوک چې په خپل لمانځه کي شکمن سو فَلَمْ يَدْرِ أَثَلَاثًا صَلّٰى أَمْ أَرْبَعًا او هغه ته دا معلومه نه وه چې درې رکعته يې کړي دي او که څلور وَذٰلِكَ أَوَّلُ مَا عَرَضَ لَهٗ او دا اول وار وو چې ده ته شک ور پېښ سو إِسْتَأْنَفَ نو دا سړی دي د نوي سره (له شروع څخه) لمونځ وکړي لِقَوْلِهٖ عَلَيْهِ الصَّلَاةُ وَالسَّلَامُ● ځکه نبي ﷺ فرمايلي دي إِذَا شَكَّ أَحَدُكُمْ فِيْ صَلَاتِهٖ أَنَّهٗ كَمْ صَلّٰى کله چې په تاسو کي څوک په خپل لمانځه کي شکمن سي چې څومره (رکعتونه) يې کړي دي فَلْيَسْتَقْبِلِ الصَّلَاةَ نو له شروع څخه دي لمونځ وکړي.

**اللغات:** ﴿إِسْتَأْنَفَ﴾ د استفعال ماضي ده: له نوي سره کول، له شروع څخه کول.

**تشريح:** صورت د مسئلې خو بالکل ښکاره دي چې که يو سړي ته په لمانځه کي شک سي او په يقين سره دا ورته معلومه نه وي چې څو رکعته يې کړي دي، او په خپل ژوند کي يې دا اول وار وي چې شک ورته پېښ سي، نو اوس حکم دا دی چې دا سړی دي له نوي سره لمونځ وکړي، ځکه په حديث شريف کي د شکمن لپاره له شروع څخه د لمونځ کولو حکم سوی دی.

**فايده:** د وذلك أول ما عرض له په مصداق کي د فقهاؤ اختلاف دی، صاحب د اجناس وايي چې له دې څخه مراد دا دي، چې سړی په خپل ژوند کي اول وار سهوه سي، د شمس الائمه سرخسي رَحِمَهُ الله او د نورو فقهاؤ په نېز د دې مطلب دا دی چې هېره او سهوه د ده په عادت او فطرت کي نه وي، خو په يو وجه سره سهوه سي، د فخر الاسلام بزدوي رَحِمَهُ الله رايه دا ده چې له دې څخه مراد دا دي چې په نورو کارو کي خو سهو کيږي، لېکن په لمانځه کي يې دا اوله سهوه وي، په دې درې سره قولونو کي د شمس الائمه سرخي رَحِمَهُ الله قول زيات غوره دی، او د قياس مطابق دی.

## هر وخت او په وار وار د شک کونکي سړي حکم

وَإِنْ كَانَ يَعْرِضُ لَهٗ كَثِيْرًا او که لمونځ کونکي ته دا شک ډېر (او په وار وار) ور پېښېږي بَنٰى عَلٰى أَكْبَرِ رَأْيِهٖ نو خپل پر غالب ګومان دي بناء کوي لِقَوْلِهٖ عَلَيْهِ الصَّلَاةُ وَالسَّلَامُ ځکه نبي ﷺ فرمايلي دي مَنْ شَكَّ● فِيْ صَلَاتِهٖ کوم سړي ته چې په لمانځه کي شک سو فَلْيَتَحَرَّ الصَّوَابَ نو هغه دي د صحيح خبرې لپاره اندازه ولګوي وَإِنْ لَمْ يَكُنْ لَهٗ رَأْيٌ او که د هغه هيڅ ګومان نه وو. بَنٰى عَلَى الْيَقِيْنِ نو پر يقين دي بناء کوي لِقَوْلِهٖ عَلَيْهِ الصَّلَاةُ وَالسَّلَامُ● ځکه نبي کريم ﷺ فرمايلي دي مَنْ شَكَّ فِيْ صَلَاتِهٖ فَلَمْ يَدْرِ أَثَلَاثًا صَلّٰى أَمْ أَرْبَعًا چا ته چې په خپل لمانځه کي شک سو او ورته معلومه نه

---

● تخريج: أخرجه في العرف الشذي في شرح سنن ترمذي، حديث رقم: ٣٤٠، ج:٢.

● تخريج: أخرجه البخاري في كتاب الصلاة، باب التوجه نحو القبلة، حديث رقم: ٤٠١.

● تخريج: أخرجه الترمذي في كتاب الصلاة، باب فيمن شك في الزيادة والنقصان، حديث رقم: ٣٩٦.

وه چې درې رکعته يې وکړه که څلور يَبْنِي عَلَى الْأَقَلِّ نو پر کم دې بناء وکړي وَالْإِسْتِقْبَالُ بِالسَّلَامِ أَوْلَى او له نوي سره په سلام شروع کول غوره دي(يعني د شک په صورت کې چې کله لمونځ د نوي سره شروع کوي نو مخکې لمونځ په سلام سره ختمول غوره دي) لِأَنَّهُ عُرِفَ مُحَلِّلًا ځکه چې سلام د (لمانځه د) حلالوونکي په توګه پېژندل سوی دی دُوْنَ الْكَلَامِ نه خبرې وَمُجَرَّدُ النِّيَّةِ يَلْغُوْ او خالي نيت بېکاره دی وَعِنْدَ الْبِنَاءِ عَلَى الْأَقَلِّ يَقْعُدُ فِي كُلِّ مَوْضِعٍ يَتَوَهَّمُ آخِرَ صَلَاتِهِ او پر کم باندې د بناء کولو په وخت کې دې لمونځ کونکي په هر هغه ځای کې کښېني چې هلته د آخري لمانځه وهم وي كَيْ لَا يَصِيْرَ تَارِكًا فَرْضَ الْقَعْدَةِ د دې لپاره چې د فرض ناستې (قعدې) پرېښوونکی نه سي، والله أعلم.

**اللغات:** ﴿أَكْبَرُ رَأْيِهِ﴾ غالب ګومان. ﴿فَلْيَتَحَرَّ﴾ د تفعّل له باب څخه د امر غائب صيغه ده: اندازه لګول. ﴿يَلْغُوْ﴾ د تفعّل له باب څخه د مضارع صيغه ده: بېکاره او لغوه کېدل.

**تشريح: صورت د مسئلې:** دا دی که يو سړی د رکعتونو د شمار په باره کې زيات شکمن کېدی، نو د دې دوه صورتونه دي: يا خو به د ده يو طرف ته غالب ګومان وي يا به يې نه وي، که يې غالب ګومان وي نو د هغه مطابق دې عمل وکړي.

**نقلي دليل:** دا حديث دی: من شك في صلاته فيتحر الصواب، ملا علي قاري د بخاري و مسلم په حواله سره دا حديث څه په داسې تفصيل سره بيان کړی دی: عن ابن مسعود أن النبي ﷺ قال إذا شك أحدكم فليتحر الصواب وليتم عليه ثم ليسلم ثم ليسجد سجدتين، (يعني کله چې په تاسو کې يو چا ته شک ور پېښ سي نو هغه دې د صحيح خبرې لپاره تحري وکړي او د تحري او غالب ګومان مطابق دې عمل وکړي بيا دې سلام وګرځوي او دوې سجدې دې وکړي).

**عقلي دليل:** دا دی چې که هر وار د لمانځه راګرځولو حکم ورکړل سي نو حرج او تکليف به راسي. نو د حرج لېرې کولو لپاره به پر غالب ګومان عمل کيږي.

او که يوطرف ته يې هم غالب ګومان نه وي نو پر کمه اندازه دې عمل وکړي يعني که په درې يا څلورو رکعتو کې يې شک سو او يو طرف ته يې غالب ګومان نه وو، نو درې رکعته دې وکړي، دليل د نبي ﷺ دا فرمان دی: من شك في صلاته فلم يدر أثلاثا صلى أم أربعا بنى على الأقل.

والاستقبال بالسلام الخ له دې عبارت څخه د مصنف رَحِمَهُ الله مقصد دا دی چې که يې اراده دا وي چې له شروع څخه لمونځ وکړي نو دغه اوسنی او شکمن لمونځ په سلام سره ختمول زيات غوره دی، يعني سم سلام دې وګرځوي. او له شروع څخه دې لمونځ وکړي، او په خبرو سره لمونځ ختمول غوره نه دي، ځکه چې په شريعت کې سلام ته محلل (حلالوونکی او د لمانځه ختموونکی) ويل سوي دي، نه خبرو ته، خبرې خو لمونځ فاسدوي. نبي ﷺ فرمايلي دي: تحليلها السلام.

ومجرد النية الخ فرمايي چې څرنګه د خبرو په ذريعه سره لمونځ ختمول غوره نه دي، همدارنګه صرف په نيت سره هم لمونځ ختمول غوره نه دي، يعني دا چې لمونځ کونکي صرف په ولاړه نيت وکړي دويم لمونځ شروع کړي، دا هم غير اولیٰ ده، بلکې نيت دې د داسې عمل سره يو ځای کړي چې هغه د لمانځه د ختمولو لپاره مشروع سوی وي يعني سلام.

وعند البناء على الأقل الخ د دې عبارت حاصل دا دی چې که لمونځ کونکي ته د رکعتونو د شمار په باره کې هر وخت شک پیښیدی، او غالب گومان یې هم نه وو، نو د ده لپاره حکم دا دی چې پر کمه اندازه دې بناء کوي (لکه اوس چې ذکر سول)، نو پر کمه اندازه د بناء کولو په صورت کې دې دا سړی پر هر رکعت ناسته کوي. د مثال په توگه لمونځ کونکي ته په څلور رکعتیز لمانځه کې دا شک سو چې دا اول رکعت دی او که دویم رکعت دی، او یو طرف ته یې غالب گومان هم نه وو، نو هغه دې دا اول رکعت وگڼي، لیکن د دې اول رکعت تر پوره کولو وروسته دې ناسته (قعده) وکړي، ځکه چې دا هم ممکنه ده چې دا دې دویم رکعت وي، او پر دویم رکعته ناسته واجب ده. نو ځکه دې ناسته وکړي، بیا دې ولاړ سي، او دویم رکعت دې وکړي او ناسته دې وکړي ځکه چې لمونځ کونکي دا دویم رکعت گرځولی دی. بیا دې ولاړ سي دریم رکعت دې وکړي او بیا دې ناسته وکړي ځکه چې ممکنه ده چې دا دې څلورم رکعت وي او پر څلورم رکعت ناسته فرض ده، بیا دې ولاړ سي څلورم رکعت دې وکړي او ناسته دې وکړي، ځکه چې د لمونځ کونکي په نېز دا د څلورم رکعت په حکم کې دی، او پر څلورم رکعت ناسته فرض ده، صاحب د هدایې فرمایي چې دا طریقه دې په دې وجه کوي، چې فرض ناسته څني پاته نه سي، لنډه دا چې د فرض او واجب ناستې د پاته کېدلو د اندېښنې په وخت کې دې پر هر رکعت ناسته کوي چې صورت یې موږ اوس په تفصیل سره بیان کړی.



# بَابُ صَلَاةِ الْمَرِيْضِ
## (دا) باب د ناروغه د لمانځه (په بيان کي) دی

**تشريح:** تر دې مخکي صاحب د کتاب د سجدهٔ سهوي احکام بيان کړل، اوس له دې ځايه د مريض (ناروغه) د لمانځه احکام بيانوي، د دې دواړو په مينځ کي مناسبت دا دی چي سهوه (هېره) او مرض دواړه عوارض دي، او دواړه آسماني يعني غير اختياري عوارض دي، نو ځکه يو تر بل وروسته بيانيږي، او څرنګه چي د سهوي عارض د مرض په مقابله کي زيات پيښيږي، او په خپله مريض هم د سهوي تر اغېز لاندي راځي، نو ځکه د سهوي احکام د مريض تر احکامو مخکي بيان سول. (عنايه ج:٢، ص:٣)

### د داسي مريض حکم چي پر ولاړه قدرت نه لري

| |
|---|
| إِذَا عَجَزَ الْمَرِيْضُ عَنِ الْقِيَامِ کله چي مريض له ولاړي څخه عاجزه سي صَلَّى قَاعِدًا يَرْكَعُ وَيَسْجُدُ نو په ناسته دي په رکوع او سجده سره لمونځ کوي لِقَوْلِهِ عَلَيْهِ الصَّلَاةُ وَالسَّلَامُ لِعِمْرَانَ بْنِ حُصَيْنٍ رَضِيَ اللهُ عَنْهُ • ځکه نبي ﷺ عمران بن حصين ﷺ ته (چي د بواسيرو په مرض مبتلا وو) فرمايلي وو صَلِّ قَائِمًا په ولاړه لمونځ کوه فَإِنْ لَمْ تَسْتَطِعْ که په ولاړي دي لمونځ نه سو کولای فَقَاعِدًا نو بيا په ناسته لمونځ کوه فَإِنْ لَمْ تَسْتَطِعْ او که په ناسته دي (هم) لمونځ نه سو کولای فَعَلَى الْجَنْبِ تُوْمِئُ إِيْمَاءً نو پر بغل باندي (په پروتي سره) په اشاره لمونځ کوه وَلِأَنَّ الطَّاعَةَ بِحَسَبِ الطَّاقَةِ او په دې وجه (هم) چي طاعت په اندازه د وس (او توان) وي. |

**اللغات:** ﴿عجز﴾ د سمع د باب ماضي ده: عاجزه کېدل، بې وسه کېدل. ﴿جنب﴾ اړخ، څنګ، بغل.

**تشريح:** **مسئله:** دا ده که يو سړی مريض وي او دومره کمزوری او ضعيفه سي چي لمونځ په ولاړي نه سي کولای، نو د هغه لپاره حکم دا دی چي په ناسته دي لمونځ وکړي او په ناسته دي رکوع او سجده اداء کوي، او که مرض دومره سخت سي چي په ناسته هم لمونځ نه سي کولای نو حکم دا دی چي په پروته دي په اشاره سره لمونځ کوي.

**نقلي دليل:** ځکه چي عمران بن حصين ﷺ د بواسيرو په مرض مبتلا وو، او له نبي ﷺ څخه يې د لمانځه په اړه پوښتنه وکړه، نو نبي ﷺ اول په ولاړه د لمونځ کولو حکم ورته وکړی، او ورته ويې فرمايل: "چي که پر ولاړه هم قدرت نه لرې نو په ناستي لمونځ کوه او که پر ناسته هم قدرت نه لرې نو په پروتي لمونځ کوه". د نبي ﷺ دا حکم د دې خبري ښکاره دليل دی چي په هر ډول مرضونو کي دا آساني سته، او مريض ته د دې د اختيارولو او پر دې د عمل کولو حکم دی.

---

• تخريج: أخرجه الترمذي في كتاب الصلاة، باب ما جاء أن صلاة القاعد على النصف من صلاة القائم، حديث رقم: ٣٧٢.

**عقلي دليل:** دا دی چې پر بندګانو د وس او توان مطابق اطاعت کول ضروري دي، نو د چا چې په کوم حالت او صورت سره د عبادت کولو وس او توان وي او په کوم حالت کي عبادت ورته آسانه وي، نو د هغه په حق کي د عبادت او اطاعت هغه حالت ضروري واجب دی، او په دې وجه هم چې قرآن کريم په ډاګه دا اعلان کړی دی: لا يكلف الله نفساً إلا وسعها.

## د مريض لپاره د رکوع او سجدې طريقه

قَالَ: فَإِنْ لَمْ يَسْتَطِعِ الرُّكُوعَ وَالسُّجُودَ فرمايي: که (بيا) يې د رکوع او سجدې وس نه درلودی أَوْمَأَ إِيمَاءً نو اشاره دې کوي يَعْنِي قَاعِدًا يعني په ناستې سره لِأَنَّهُ وَسْعُ مِثْلِهِ ځکه چې دا ډول اداء کول د ده په وس کې دي وَجَعَلَ سُجُودَهُ أَخْفَضَ مِنْ رُكُوعِهِ او خپله سجده دې د رکوع په نسبت کښته کوي لِأَنَّهُ قَائِمٌ مَقَامَهُمَا ځکه چې اشاره د دې دواړو قائم مقام ده فَأَخَذَ حُكْمَهُمَا نو ځکه يې د دواړو حکم واخيستی وَلَا يَرْفَعُ إِلَى وَجْهِهِ شَيْئًا يَسْجُدُ عَلَيْهِ او خپل مخ ته دې يو داسې شی نه راپورته کوي چې پر هغه سجده وکړي لِقَوْلِهِ عَلَيْهِ الصَّلَاةُ وَالسَّلَامُ• ځکه نبي ﷺ فرمايلي دي إِنْ قَدَرْتَ أَنْ تَسْجُدَ عَلَى الْأَرْضِ فَاسْجُدْ که په ځمکه باندې د سجدې کولو قدرت لرې نو پر ځمکه سجده کوه وَإِلَّا فَأَوْمِ بِرَأْسِكَ کنې په خپل سر اشاره کوه فَإِنْ فَعَلَ ذَٰلِكَ او که لمونځ ګزاره داسې وکړه وَهُوَ يَخْفِضُ رَأْسَهُ په داسې حال کې چې سر يې (هم) ټيټوي أَجْزَأَهُ لِوُجُودِ الْإِيمَاءِ نو د هغه لپاره دا کافي ده ځکه چې اشاره راغله فَإِنْ وَضَعَ ذَٰلِكَ عَلَى جَبْهَتِهِ او که دا شی يې پر تندي کېښېنوی لَا يُجْزِئُهُ لِانْعِدَامِهِ نو دا د هغه لپاره کافي نه ده ځکه چې اشاره نه راغله.

**اللغات:** ﴿أَوْمَأَ﴾ د افعال د باب ماضي ده: اشاره کول. ﴿أَخْفَض﴾ د سمع د باب اسم تفضيل دی: زيات کښته، زيات ټيټ.

**تشريح:** امام قدوري رَحِمَهُ الله فرمايي چې که مريض پر رکوع او سجده کولو قدرت نه لري، نو په ناسته دې په اشاره سره رکوع او سجده کوي، ځکه چې په دغه وخت کې د ده طاقت او توان همدومره دی، او مخکې تېر سول چې طاعت د وس او طاقت مطابق واجبېږي، خو د سجدې اشاره دې د رکوع په نسبت کښته کوي، يعني د سجدې د اشاره کولو په وخت کې دې سر زيات ټيټوي.

**دليل:** دا دی چې اشاره د رکوع او سجدې پر ځای ولاړه ده، نو ځکه د رکوع او سجدې په حکم کې به وي، او څرنګه چې سجده د رکوع په نسبت کښته وي، نو د سجدې اشاره به هم د رکوع د اشارې په نسبت کښته وي.

ولا يرفع الخ امام قدوري رَحِمَهُ الله فرمايي چې مريض به د سجدې لپاره يو شی مثلاً لرګی، بالښت او داسې بل شی نه راپورته کوي، دليل دا حديث دی: إن قدرت أن تسجد على الأرض فاسجد وإلا فأوم برأسك.

وإن فعل ذلك الخ فرمايي چې د مريض سرې لپاره لرګی، بالښت او نور راپورته کول مکروه دي، لېکن بيا هم که يو مريض د لمانځه په وخت کې داسې وکړه نو د دې به دوه صورتونه وي: (۱) د رکوع او سجدې لپاره به سره ټيټوي يا به يې نه ټيټوي، که يې سر ټيټوی نو دا کافي ده، ځکه چې په سر ټيټولو سره اشاره راغله، او همدغه اشاره پر ده فرض ده، خو دا

• تخريج: أخرجه البهقي في السنن الكبرى، باب الايماء بالركوع والسجود إذا عجز عنهما، حديث رقم: ۳۶۶۹.

صورت صرف مکروه دی، او که لرګی یا بالښت یې را پورته کوی او تندی پر لګوی، او سریې بالکل نه ټیټوی، نو په دې ډول سره رکوع او سجده نه اداء کیږي، ځکه چې په دې صورت کې اشاره نسته، حال دا چې اشاره فرض ده.

## د هغه مریض لپاره د لمانځه طریقه چې له ناستې څخه عاجزه وي

فَإِنْ لَمْ يَسْتَطِعِ الْقُعُوْدَ او که مریض پر ناسته (هم) قدرت نه درلودی اِسْتَلْقٰى عَلٰى ظَهْرِهٖ نو پر خپله شا دې پرېوځي وَجَعَلَ رِجْلَيْهِ إِلَى الْقِبْلَةِ او خپلي پښې دې د قبلې و طرف ته کړي وَأَوْمَأَ بِالرُّكُوْعِ وَالسُّجُوْدِ او رکوع او سجده دې په اشاره سره کوي لِقَوْلِهٖ عَلَيْهِ الصَّلَاةُ وَالسَّلَامُ• ځکه نبي کريم ﷺ فرمايلي دي يُصَلِّي الْمَرِيْضُ قَائِمًا ناروغه (مريض) به په ولاړې لمونځ کوي فَإِنْ لَمْ يَسْتَطِعْ فَقَاعِدًا او که د ولاړې وس يې نه وو نو په ناستې به يې کوي فَإِنْ لَمْ يَسْتَطِعْ فَعَلٰى قَفَاهُ او که د ناستې وس يې (هم) نه وو نو د شتې پر طرف (يعني د شا پر تخته) به لمونځ کوي يُوْمِئُ إِيْمَاءً او اشاره به کوي فَإِنْ لَمْ يَسْتَطِعْ او که پر دې يې (هم) قدرت نه وو فَاللّٰهُ تَعَالٰى أَحَقُّ بِقَبُوْلِ الْعُذْرِ مِنْهُ نو الله (د دې) زيات لائق دی چې له هغه څخه عذر قبول کړي.

**اللغات:** ﴿اِسْتَلْقٰى﴾ د استفعال د باب ماضي ده: د شا پر تخته بيدېدل، ﴿قَفَا﴾ شته، ورمېږ، د غاړې د شا طرف.

**تشريح:** په دې عبارت کې هم د مريض د حالت او د مريض لمانځه بيان دی، فرمايي چې که لمونځ کونکي په ناستې په اشاره سره هم لمونځ نه سو کولای، نو اوس حکم دا دی چې پر شا دې پرېوځي او خپلي پښې دې د قبلې پر طرف کړي په اشاره سره دې رکوع او سجده کوي، او تر سر دې لاندې يو پنډ بالښت کښېږدي، چې په اشاره کولو کې آسانی وي.

**دليل:** په دې سلسله کې دليل د نبي ﷺ هغه حديث کوم چې په کتاب کې ذکر سو، چې د هغه په آخر کې دا دي: که په ناستې مريض لمونځ نه سو کولای نو د شتې پر طرف يعني پر شا دې پرېوځي او په اشاره دې لمونځ کوي، دا د مريض لپاره آخري صورت دی، او که هغه داسې هم نه سي کولای، نو اوس د هغه لپاره د لمانځه کولو بل صورت نسته، لهذا د الله ﷻ له سپېڅلې ذات څخه دا اميد سته چې د هغه عذر قبول کړي.

د عذر د قبلېدلو دوه مطلبه کېدای سي: (۱) اول مطلب دا چې الله تعالىٰ به په اوس وخت کې له هغه څخه اداء ساقطه کړي، لېکن د جوړوالي په صورت کې به د دې لمونځونو قضاء پر واجب وي، (۲) او دويم مطلب دا چې اداء او قضاء به دواړه د هغه له ذمې څخه ساقط کړي، لکه څرنګه صاحب د عنايې و دې مطلب ته ميلان کړی دی. (عنايه ج۲، ص۶)

## په پروتي سره پر ډډه (اړخ) د لمونځ کولو حکم

قَالَ: وَإِنِ اسْتَلْقٰى عَلٰى جَنْبِهٖ او که مريض پر اړخ پرېوتی وَوَجْهُهٗ إِلَى الْقِبْلَةِ او د هغه مخ د قبلې پر طرف وو فَأَوْمَأَ او اشاره يې کول جَازَ نو (دا) جائز دي لِمَا رَوَيْنَا مِنْ قَبْلُ د هغه حديث په وجه کوم چې موږ مخکې بيان کړی إِلَّا أَنَّ الْأُوْلٰى هِيَ الْأَوْلٰى عِنْدَنَا لېکن زموږ په نېز اول صورت (يعني د شا پر تخته پرېوتل) زيات غوره دي خِلَافًا لِلشَّافِعِيِّ رَحِمَهُ اللّٰهُ په خلاف د امام شافعي رَحِمَهُ الله لِأَنَّ إِشَارَةَ الْمُسْتَلْقِيْ تَقَعُ إِلٰى هَوَاءِ الْكَعْبَةِ ځکه چې د شا پر تخته باندې د پروت لمونځ کونکي اشاره د کعبې (مبارکې) د فضا و طرف ته راځي وَإِشَارَةَ الْمُضْطَجِعِ عَلٰى جَنْبِهٖ إِلٰى جَانِبِ قَدَمَيْهِ او

---

• تخريج: أخرجه دار قطني، باب صلاة المريض لايستطيع القيام، حديث رقم: ۱۴۱۰ - ۱۴۱۲.

پر اړخ باندې د پروت لمونځ کونکي اشاره د هغه د پښو و طرف ته راځي وَبِهِ تَتَأَدَّى الصَّلَاةُ او لمونځ هم د کعبې د فضا وطرف ته په اشاره کولو سره اداء کیږي.

**اللغات**: ﴿هَوَاء﴾ فضاء، د کعبې تر بام لوړه فضاء. ﴿المضطجع﴾ د افتعال اسم فاعل دی: پر بغل پرېوتونکی.

**تشریح**: امام قدوري رَحِمَهُ الله فرمايي چې که مريض پر بغل (اړخ) پرېوځي او په اشاره سره لمونځ کوي، په داسي حال کي چې د ده مخ د قبلې پر طرف وي، نو دا هم جائز دی، دليل د عمران بن حصين ﷺ حديث دی چې په آخر کي يې دا دي: فإن لم تستطع فعلى الجنب تؤمي إيماء، کوم چې د باب په اول کي ذکر سو. او د الله دا فرمان: يذكرون الله قياما وقعودا و على جنوبهم هم پر دې دلالت کوي، خو د احنافو په نيز اول صورت يعني پر شا پرېوتل او اشاره کول زيات غوره دي، او د شوافعو په نيز پر اړخ پرېوتل زيات غوره دي، زموږ په نيز ځکه پر شا پرېوتل غوره ګرځول سوي دي چې د پر شا پرېوتونکي اشاره د کعبې په فضاء کي واقع کيږي، لېکن پر بغل د پرېوتونکي اشاره د پښو پر طرف واقع کيږي، او بيا د پښو په واسطه د قبلې پر طرف واقع کيږي، نو ښکاره ده چې په کوم صورت کي سيده او يې له څه خنډه د قبلې و طرف ته اشاره کيږي، هغه صورت به زيات غوره وي.

وبه تتأدى الصلاة الخ مطلب يې دا دی چې کله د مريض لمونځ کونکي اشاره د کعبې د فضاء وطرف ته سي نو ګواکي دا د کعبې و طرف ته سوه، او لمونځ هم په هغه وخت کي اداء کيږي چې کله د لمونځ کونکي اشاره د قبلې و طرف ته وي، نو ځکه دا صورت غوره دی.

## د هغه مريض حکم چې په سر هم اشاره نه سي کولای

فَإِنْ لَمْ يَسْتَطِعِ الْإِيمَاءَ بِرَأْسِهِ او که مريض په خپل سر هم د اشارې کولو وس نه درلودی أُخِّرَتِ الصَّلَاةُ عَنْهُ نو له هغه څخه به لمونځ وروسته کيږي وَلَا يُومِئُ بِعَيْنَيْهِ وَلَا بِقَلْبِهِ وَلَا بِحَاجِبَيْهِ او اشاره به نه کوي په خپلو سترګو سره او نه په خپل زړه سره او نه په خپلو وروځو (وروځو) سره خِلَافًا لِزُفَرَ رَحِمَهُ اللهُ● لِمَا رَوَيْنَا مِنْ قَبْلُ د امام زفر رَحِمَهُ الله اختلاف دی د هغه دليل په وجه کوم چې مخکي بيان کړی وَلِأَنَّ نَصْبَ الْإِبْدَالِ بِالرَّأْيِ مُمْتَنِعٌ او په دې وجه (هم) چې په (خپله) رايه سره د بدل ټاکل منع دي وَلَا قِيَاسَ عَلَى الرَّأْسِ او پر سر قياس نه سي کېدلای لِأَنَّهُ يَتَأَدَّى بِهِ رُكْنُ الصَّلَاةِ ځکه چې په سر د لمانځه رکن اداء کيږي دُونَ الْعَيْنِ وَأُخْتَيْهَا نه دا چې په سترګو او د سترګو په خونډو (يعني په زړه او وروځو) سره وَقَوْلُهُ أُخِّرَتْ عَنْهُ إِشَارَةٌ إِلَى او د امام قدوري رَحِمَهُ الله دا وينا: أخرت عنه و دې طرف ته اشاره ده أَنَّهُ لَا تَسْقُطُ عَنْهُ الصَّلَاةُ چې له مريض څخه به لمونځ نه ساقطيږي (صرف وروسته کيږي به) وَإِنْ كَانَ الْعَجْزُ أَكْثَرَ مِنْ يَوْمٍ وَلَيْلَةٍ که څه هم دا عاجزه کېدل تر يوې ورځي او شپې زيات وي إِذَا كَانَ مُفِيقًا په دې شرط چې په هوښ کي وي (يعني حواس او هوښ يې پر خپل ځای وي) هُوَ الصَّحِيحُ صحيح قول همدا دی لِأَنَّهُ يَفْهَمُ مَضْمُونَ الْخِطَابِ ځکه چې هوښ لرونکی سړی د خطاب (مخاطب والي) په مضمون پوهيږي بِخِلَافِ الْمُغْمَى عَلَيْهِ په خلاف د بې هوښه سړي.

● القول الراجح: قول علمائنا الثلاثة يعني لا يؤمئ بعينه ولا بقلبه..... كما قال العلامة قاضيخان رَحِمَهُ الله: إذا عجز المريض عن الايماء بالرأس في ظاهر الرواية يسقط عنه فرض الصلوة ولايعتبر الايماء بالعين والحاجبين، الخانيه ج:١، ص:٨٣. [القول الراجح ج:١، ص:١٣١]

**اللغات:** ﴿اُخِّرَتْ﴾ د تفعیل د باب ماضي مجهول ده: وروسته کول، ځنډول، ﴿عاجِزِیْنَ﴾ ورځي، ﴿المُوَفَّقِی﴾ هغه چي هوښ او حواس یې پر ځای وي.

**تشریح:** امام قدوري رَحِمَهُ الله فرمايي که د يو سړي مرض دومره زيات سو چي په سر يې هم اشاره نه سوه کولای نو د ده په حق کي به لمونځ وروسته کېږي، (يعني لمونځ به ځنډيږي وروسته به يې قضاء راوړي)، او د ده لپاره به په سترګو، زړه او وريځو سره اشاره کافي نه وي، امام زفر رَحِمَهُ الله فرمايي چي مريض به په سترګو او زړه سره اشاره کوي او چي کله جوړ سي دا لمونځ به را ګرځوي، دا امام شافعي رَحِمَهُ الله همدا مسلک دی.

**زموږ دليل:** د نبي ﷺ هغه حديث دی کوم چي مخکي تېر سو يعني: إن قدرت أن تسجد على الارض فاسجد وإلا فأومِ برأسك، په دې حديث کي په آخري صورت کي سر بيان سوی دی، که له سر څخه ماسوا په بل اندام سره اشاره جائزه وای نو نبي ﷺ به هغه ضرور بيانولای، نو د نبي ﷺ نه بيانول د نه جواز دليل دی.

**عقلي دليل:** دا دی چي اشاره په حقيقت کي د رکوع او سجدې بدل (او قائم مقام) ده، او بدل په خپله رايه سره متعين کول منع دي، او په حديث کي د سر د اشارې ذکر سته، نه د سترګو او نورو، نو که په دې شيانو سره د اشاره کولو اجازه ورکړل سي، نو بدل به په خپله رايه متعين کړل سي، حال دا چي دا جائز نه دي، او که تاسو ووایاست چي دا په رايه سره د بدل متعين کول نه دي، بلکي دا خو د سر پر حکم قياسول دي، يعني څرنګه چي په سره اشاره کول د رکوع او سجدې لپاره کافي دي، همدارنګه په سترګو او نورو سره اشاره کول هم کافي دي، نو جواب دا دی چي سترګي او نور پر سر قياسول صحيح نه دي، ځکه چي په سر د لمانځه يو رکن يعني سجده اداء کېږي، او په سترګو، وريځو او زړه سجده نه اداء کېږي، يعني په دې درې اندامونو سره د سجدې په ادائنه کي هيڅ دخل نسته، نو د دې فرق په وجه به يو پر بل قياسول څرنګه صحيح وي.

و أخرت عنه صاحب د هدايې رَحِمَهُ الله فرمايي چي په متن کي کوم د لمانځه د ځنډولو (وروسته کولو) حکم سوی دی، هغه د دې خبري و طرف ته اشاره کوي چي په ذکر سوې مسئله کي به د مريض له ذمې څخه لمونځ نه ساقطيږي، بلکي لمونځ به د ده په حق کي ځنډول کيږي او لمونځ به د ده پر ذمه پاته وي، چي هر وخت جوړ سي نو قضاء به يې پر واجب وي، که څه هم دا د سخت مرض حالت له يوې ورځي او شپې څخه زيات وي، خو په دې شرط چي په دې موده کي مريض په هوښ کي وي، همدا قول صحيح دی، ځکه چي کله مريض په هوښ کي وي نو د مخاطبوالي په مضمون يعني په أقيموا الصلاة او د لمانځه په حکم پوهيدای سي، او له هغه سړي څخه فرض نه ساقطيږي چي د خطاب په مضمون او د لمانځه په حکم پوهيږي، نو په ذکر سوې مسئله کي د دې سړي له ذمې څخه فرض نه ساقطيږي، د دې په خلاف که يو سړی تر يوې ورځي او شپې زيات بې هوښه وي نو د هغه له ذمې څخه لمونځ معاف کيږي، ځکه چي هغه د خطاب په مفهوم نه پوهيږي.

په فتاویٰ قاضي خان او داسي نورو کي دا حکم ذکر سوی دی چي که د مريض دا حالت چي په سر هم د اشارې کولو قدرت نه لري، له يوې ورځي او شپې څخه زيات سي، نو د مريض له ذمې څخه لمونځونه ساقطيږي او قضاء يې پر لازم نه ده، او که له يوې ورځي او شپې څخه کم وي نو نه ځني ساقطيږي او قضاء يې پر لازم ده. (کفايه)

## د هغه مريض حکم چې ولاړه کولای سي لېکن رکوع او سجده نه سي کولای

قَالَ: وَإِنْ قَدَرَ عَلَى الْقِيَامِ فرمايي: او که مريض پر ولاړه قدرت درلودی وَلَمْ يَقْدِرْ عَلَى الرُّكُوعِ وَالسُّجُودِ او پر رکوع او سجدې يې قدرت نه درلودی لَمْ يَلْزَمْهُ الْقِيَامُ نو پر هغه ولاړه لازم نه ده وَيُصَلِّي قَاعِدًا يُومِئُ إِيمَاءً او په ناسته دې په اشاره سره لمونځ کوي لِأَنَّ رُكْنِيَّةَ الْقِيَامِ لِلتَّوَسُّلِ بِهِ إِلَى السَّجْدَةِ ځکه چې د ولاړې رکن کېدل د سجدې د وسيلې لپاره دي لِمَا فِيهَا مِنْ نِهَايَةِ التَّعْظِيمِ ځکه چې په سجده کې زيات تعظيم دی فَإِذَا كَانَ لَا يَتَعَقَّبُهُ السُّجُودُ خو کله چې ولاړه داسې وي چې تر هغې وروسته سجده نه وي لَا يَكُونُ رُكْنًا نو (بيا) به ولاړه رکن نه وي فَيَتَخَيَّرُ نو ځکه به مريض ته اختيار وي وَالْأَفْضَلُ هُوَ الْإِيمَاءُ قَاعِدًا او افضل په ناستې اشاره کول دي لِأَنَّهُ أَشْبَهُ بِالسُّجُودِ ځکه چې په ناستې اشاره کول د (حقيقي) سجدې سره زيات مشابهت لري.

**اللغات:** ﴿توسّل﴾ د تفعّل د باب مصدر دی: وسيله جوړول، ﴿نهاية﴾ دغتې درجې، ﴿يتعقّب﴾ د تفعّل د باب مضارع ده: وروسته راتلل، ور پسې کېدل.

**تشريح: مسئله:** دا ده که يو سړی داسې مريض وي چې پر ولاړه خو قدرت لري لېکن پر رکوع او سجده قدرت نه لري، نو پر هغه ولاړه لازمه نه ده، بلکې په ناسته دې په اشاره سره لمونځ کوي، امام زفر رَحِمَهُ الله او امام شافعي رَحِمَهُ الله فرمايي چې که پر ولاړه يې قدرت وي او پر رکوع اوسجده يې قدرت نه وي، نو ولاړه نه ځنې ساقطيږي.

**د امام زفر او امام شافعي دليل:** دا دی چې ولاړه (قيام) رکن دی، او مريض له دې څخه عاجز (هم) نه دی، بلکې د دويم رکن يعنې له رکوع او سجده څخه عاجز دی، نو له رکوع او سجدې څخه به د عاجز والي په وجه ولاړه ولې ساقطيږي؟

**زموږ دليل:** دا دی چې ولاړه محض په دې غرض سره رکن ده چې دا د سجدې اداء کولو وسيله ده، او ولاړه د سجدې وسيله په دې وجه ده چې په هغه سجده کې تعظيم بېخي زيات وي چې تر ولاړې وروسته وي (يعنې چې له ولاړې څخه کښته سي او سجده وکړي په دې سجده کې تعظيم ډېر زيات دی)، او په دې کې په پوره توګه د الله د لويي اظهار او اقرار دی، نو کله چې تر ولاړې وروسته سجده نه وي هغه ولاړه به رکن نه وي، او کله چې په دې حالت کې ولاړه رکن پاته نه سوه، نو مريض لمونځ کونکي ته اختيار دی چې که ولاړه کوي او که يې نه کوي، خو غوره دا ده چې په ناسته دې رکوع او سجده په اشاره سره کوي، ځکه چې په ناستې سره د سجدې اشاره کول د حقيقي سجدې سره زيات مشابه دي، ځکه چې د ناستې پر وخت په اشاره کولو کې سر زيات مځکې ته نژدې کېږي په نسبت د ولاړې پر وخت په اشاره کولو سره.

## د لمانځه په مېنځ کې د ناروغه کېدلو حکم

وَإِنْ صَلَّى الصَّحِيحُ بَعْضَ صَلَاتِهِ قَائِمًا او که روغ (جوړ) سړي په ولاړه د لمانځه يو څه حصه اداء کړه ثُمَّ حَدَثَ بِهِ مَرَضٌ بيا يو مرض ور پېښ سو يُتِمُّهَا قَاعِدًا يَرْكَعُ وَيَسْجُدُ نو په ناسته دې په رکوع او سجده سره لمونځ پوره کړي أَوْ يُومِئُ يا په اشاره سره دې لمونځ وکړي إِنْ لَمْ يَقْدِرْ که يې (پر رکوع او سجده) قدرت نه درلودی أَوْ مُسْتَلْقِيًا يا دې د شا پر تخته لمونځ وکړي إِنْ لَمْ يَقْدِرْ که يې (پر اشاره) قدرت نه درلودی لِأَنَّهُ بِنَاءُ الْأَدْنَى عَلَى الْأَعْلَى ځکه چې دا بناء د ادنیٰ

ده پر اعلیٰ فَصَارَ كَالِاقْتِدَاءِ نو دا داقتداء په څیر سوه.

**اللغات:** ﴿مُسْتَلْقٍ﴾ داستفعال دباب اسم فاعل دی: پر شا پرېوتل، مطلق پرېوتلو ته هم ويل کيږي.

**تشريح: مسئله:** دا ده که جوړ سړي دلمانځه يوه حصه په ولاړي اداء کړه، بيا دلمانځه په مينځ کي داسي مرض ورپېښ سو چي پر ولاړه يې قدرت ختم سو، نو که پر رکوع او سجده يې قدرت وو نو په ناسته دي په رکوع او سجده سره پاته لمونځ پوره کړي، او که پر رکوع او سجده يې هم قدرت نه وو، نو په اشاره سره دي رکوع او سجده وکړي او پاته لمونځ دي پوره کړي، او که دومره سخت مريض سو چي پر ناسته يې هم قدرت ختم سو، نو دشا پر تخته (ستونی ستخ) دي پرېوځي، او لمونځ دي پوره کړي.

**دليل:** دا دی چي په دغه دريو سره صورتونو کي دادنیٰ بناء پر اعلیٰ کيږي، او دادنیٰ بناء پر اعلیٰ کول جائز دي، لکه څرنګه چي دادنیٰ حالت والا اقتداء په اعلیٰ حالت والا پسي جائز ده، يعني څرنګه چي دناست مقتدي اقتداء په ولاړ امام پسي جائز ده، همدارنګه دخپل ځان په حق کي دا خبره جائز ده چي دلمانځه اوله حصه په ولاړه وکړی سي، او بيا دعذر په وجه پاته حصه په ناستي پوره کړی سي.

## دلمانځه په مينځ کي د روغېدلو حکم (د فقهاؤ قولونه)

وَمَنْ صَلّٰى قَاعِدًا يَرْكَعُ وَيَسْجُدُ لِمَرَضٍ او کوم سړی چي د يو مرض په وجه په ناستي په رکوع او سجده سره لمونځ کوی ثُمَّ صَحَّ بيا جوړ(روغ) سو بَنٰى عَلٰى صَلَاتِهِ قَائِمًا عِنْدَ أَبِي حَنِيْفَةَ وَأَبِي يُوسُفَ● رَحِمَهُمَا اللّٰهُ نو دشيخينو رَحِمَهُمَا الله په نېز به په ولاړي سره پرخپل لمانځه بناء کوي وَقَالَ مُحَمَّدٌ رَحِمَهُ اللّٰهُ: اِسْتَقْبَلَ او امام محمد رَحِمَهُ الله فرمايي: چي له شروع څخه به لمونځ کوي بِنَاءً عَلَى اخْتِلَافِهِمْ فِي الِاقْتِدَاءِ (دا مسئله) داقتداء په باره کي ددوی پر اختلاف مبني ده وَقَدْ تَقَدَّمَ بَيَانُهُ او ددې بيان مخکي تېر سو.

**اللغات:** ﴿اِسْتَقْبَلَ﴾ له شروع څخه کول، له نوي سره کول.

**تشريح: صورت د مسئلې:** دا دی که يو سړي د يو مرض په وجه په ناستي په رکوع او سجده سره دلمانځه يوه حصه اداء کړه، او بيا دلمانځه په مينځ کي جوړ سو او پر ولاړه قادر سو، نو دشيخينو په نېز به د ولاړي په حالت کي بناء کوي(يعني خپل پاته لمونځ به په ولاړه پوره کوي)، او د امام محمد رَحِمَهُ الله په نېز به د سره لمونځ کوي.

د امام محمد رَحِمَهُ الله او شيخينو رَحِمَهُمَا الله اصل اختلاف په دې خبره کي دی چي ولاړ سړی په ناست سړي پسي اقتداء کولای سي، که نه؟ امام محمد رَحِمَهُ الله فرمايي چي اقتدا نه سي کولای، او شيخين رَحِمَهُمَا الله فرمايي چي اقتداء کولای سي، يعني د امام محمد رَحِمَهُ الله په نېز د ولاړ اقتداء په ناست پسي جائز نه ده، او د شيخينو رَحِمَهُمَا الله په نېز جائز ده، نو څرنګه چي د امام محمد رَحِمَهُ الله په نېز د ولاړ اقتداء په ناست پسي جائز نه ده، نو ځکه د ده په نېز د ولاړي د لمانځه بناء

---

● القول الراجح: قول الشيخين رَحِمَهُمَاالله، قال صاحب القول الراجح للمفتي غلام قادر النعماني: فاقتداء القائم خلف القاعد صحيح عندهما أى عند أبي حنيفة وأبي يوسف رَحِمَهُمَاالله فكذا البناء أيضًا صحيح. [القول الراجح ج:١، ص:١٣٢]

کول د ناستي پر لمانځه هم جائز نه ده، او د شيخينو رَحِمَهُمَا الله په نېز د ولاړ اقتداء په ناست پسي جائز ده، نو د دوی په نېز د ولاړي لمونځ د ناستي پر لمانځه مبني کول جائز دي.

## د لمانځه په مينځ کي پر رکوع او سجدې د قدرت پيدا کولو حکم

وَإِنْ صَلَّى بَعْضَ صَلَاتِهِ بِإِيمَاءٍ او که يو مريض د لمانځه څه حصه په اشاره سره اداء کړه ثُمَّ قَدَرَ عَلَى الرُّكُوعِ وَالسُّجُودِ بيا يې پر رکوع او سجدې قدرت پيدا کړی اِسْتَأْنَفَ عِنْدَهُمْ جَمِيعًا نو د ټولو په نېز به د سره لمونځ کوي لِأَنَّهُ لَا يَجُوزُ اقْتِدَاءُ الرَّاكِعِ بِالْمُومِئِ ځکه چي د رکوع کونکي اقتداء په اشاره کونکي پسي جائز نه ده فَكَذَا الْبِنَاءُ همدارنګه به بناء هم جائز نه وي.

**اللغات:** ﴿اِسْتَأْنَفَ﴾ له نوي سره شروع کول. ﴿الْمُومِئ﴾ اشاره کونکی.

**تشريح:** مسئله: دا ده که يو سړي د مرض او عذر په وجه د لمانځه يو څه حصه په اشاره سره وکړه، بيا د لمانځه په مينځ کي پر سجده او رکوع قادره سو، نو د امام صاحب او صاحبينو ټولو په نېز به له نوي سره لمونځ کوي، امام زفر رَحِمَهُ الله فرمايي چي په دې صورت کي هم بناء کول جائز دي، ځکه د امام زفر رَحِمَهُ الله په نېز د رکوع کونکي اقتداء په اشاره کونکي پسي جائز ده، ليکن زموږ په نېز جائز نه ده.

## که په نفلي لمانځه کي د ستړيا په وجه پر يو شي تکيه وکړي نو څه حکم دی؟

وَمَنِ افْتَتَحَ التَّطَوُّعَ قَائِمًا او څوک چي په ولاړه نفلي لمونځ شروع کړي ثُمَّ أَعْيَى بيا ستړی سي لَا بَأْسَ نو د هغه لپاره هيڅ حرج نسته بِأَنْ يَتَوَكَّأَ عَلَى عَصًا أَوْ حَائِطٍ چي پر لکړه يا پر ديوال تکيه ولګوي أَوْ يَقْعُدَ يا کښېني لِأَنَّ هَذَا عُذْرٌ ځکه چي دا عذر دی وَإِنْ كَانَ الِاتِّكَاءُ بِغَيْرِ عُذْرٍ يُكْرَهُ او که تکيه لګول بې له عذره وو نو دا مکروه دي لِأَنَّهُ إِسَاءَةٌ فِي الْأَدَبِ ځکه چي دا بې ادبي ده وَقِيلَ لَا يُكْرَهُ عِنْدَ أَبِي حَنِيفَةَ رَحِمَهُ اللهُ او يو قول دا دی چي د امام ابو حنيفه رَحِمَهُ الله په نېز مکروه نه دي لِأَنَّهُ لَوْ قَعَدَ عِنْدَهُ بِغَيْرِ عُذْرٍ يَجُوزُ ځکه که لمونځ کونکي بې له عذره کښېني نو (هم) د امام صاحب په نېز (د هغه ناسته) جائز ده فَكَذَا لَا يُكْرَهُ الِاتِّكَاءُ همدغه رنګه به تکيه لګول هم مکروه نه وي وَعِنْدَهُمَا يُكْرَهُ او د صاحبينو رحمهما الله په نېز مکروه دي لِأَنَّهُ لَا يَجُوزُ الْقُعُودُ عِنْدَهُمَا ځکه چي د دوی په نېز (په نفلي لمانځه کي) کښېنستل جائز نه دي فَيُكْرَهُ الِاتِّكَاءُ نو (بې له عذر) به تکيه لګول (هم) مکروه وي.

**اللغات:** ﴿أَعْيَى﴾ د افعال د باب ماضي ده: ستړي کېدل، ستومانه کېدل. ﴿يَتَوَكَّأُ﴾ د تفعل د باب مضارع ده: تکيه لګول، تکيه کول. ﴿حَائِط﴾ ديوال. ﴿إِسَاءَة﴾ د افعال مصدر دی: د کول.

**تشريح:** صورت د مسئلې: دا دی که يو چا نفلي لمونځ په ولاړه شروع کړی، بيا يې پر يو شي تکيه ولګول، نو د دې دوه صورتونه دي: تکيه لګول به يې د عذر په وجه وي يا به بې له عذره وي، که اول صورت وي مثلاً د ستړيا په وجه وي، نو جائز دي او هيڅ حرج پکښې نسته، او که دويم صورت وي نو ځيني مشائخو ويلي دي چي په اتفاق د احنافو سره دا مکروه دي، وجه د کراهت يې دا ده چي بې له عذره په تکيه لګولو کي بې ادبي او بې احترامي ده، خو يو قول دا دی چي د

امام صاحب رَحِمَهُ الله په نيز بې له عذره هم تکيه لګول مکروه نه دي لکه څرنګه چي د ده په نيز بې له عذره کښېنستل هم مکروه نه دي، ليکن صحيح قول دا دی چي د امام صاحب رَحِمَهُ الله په نيز که څه هم بې له عذره کښېنستل جائز دي، ليکن بې له عذره تکيه لګول جائز نه دي، بلکي مکروه دي، او په دواړو کي فرق دا دی چي نفل کونکي ته له شروع څخه لا د نفلو ليارې په ولاړه او ناسته کي اختيار سته، يعني څرنګه چي د ده ليارې نفل په ولاړه شروع کول صحيح دي، همدارنګه په ناسته شروع کول هم صحيح دي، نو کله چي له شروع څخه نفل کونکي ته اختيار دی، نو د نفلو په مينځ او آخر کي هم په ناسته او ولاړه کي اختيار ورته سته، او که بې له عذره په نفلو کي کښېنستي نو هيڅ قباحت او کراهت نسته. د دې په خلاف نفل کونکي ته له شروع څخه په تکيه لګولو او نه لګولو کي هيڅ اختيار نسته، بلکي د ده ليارې بغير له تکيه لګولو څخه نفل شروع کول صحيح دي، او د ده ليارې له شروع څخه بې له عذره تکيه لګول مکروه دي، نو کله چي ده ته له شروع څخه د تکيه لګولو او نه لګولو اختيار نسته، او د ده ليارې له شروع څخه بې له عذره تکيه لګول مکروه دي، نو په مينځ او آخر کي هم به ده ته د تکيه لګولو هيڅ اختيار نه وي، او بې له عذره به په مينځ او آخر کي هم تکيه لګول مکروه وي. (عنايه)

وعندهمايكره الخ فرمايي: څرنګه چي د صاحبينو رَحِمَهُمَا الله په نيز بې له عذره کښېنستل مکروه دي، نو د دوی په نيز بيله عذره تکيه لګول هم مکروه دي، خو د عذر په صورت کي لمونځ کونکي ته اجازه سته.

## په نفلي لمانځه کي د بې له عذره کښېنستلو حکم

> وَإِنْ قَعَدَ بِغَيْرِ عُذْرٍ او که نفل کونکی بې له عذره کښېنستی يُكْرَهُ بِالِاتِّفَاقِ نو دا په اتفاق سره مکروه دي وَتَجُوزُ الصَّلَاةُ عِنْدَهُ (خو په دې صورت کي) د امام صاحب رَحِمَهُ الله په نيز لمونځ جائز دی وَلَا تَجُوزُ عِنْدَهُمَا● او د صاحبينو رَحِمَهُمَا الله په نيز جائز نه دی وَقَدْ مَرَّ فِي بَابِ النَّوَافِلِ او دا مسئله په بابُ النوافل کي تېره سوه.

**اللغات**: ﴿مَرَّ﴾ د نصر د باب ماضي ده: تېرېدل.

**تشريح**: مسئله: دا ده چي د نفل کونکي ليارې بې له عذره د نفل په مينځ کي کښېنستل بالاتفاق مکروه دي. يعني د امام صاحب رَحِمَهُ الله په نيز هم مکروه دي، او د صاحبينو رَحِمَهُمَا الله په نيز هم، او د بې له عذره کښېنستونکي په لمانځه کي بيا اختلاف دی، نو د امام صاحب رَحِمَهُ الله په نيز د هغه لمونځ جائز دی، او د صاحبينو رَحِمَهُمَا الله په نيز جائز نه دی. او دا مسئله په باب النوافل کي تر فصل القراءة لاندي په پوره تفصيل سره بيان سوه.

**تسامح**: په دې عبارت کي څه سهوه سوې ده هغه داسي چي بې له عذره کښېنستل د صاحبينو په نيز ناجائز دي، او ناجائز ته د مکروه نوم ورکول صحيح نه دي، نو د صاحبيو د مسلک پر بنياد به د يکره بالاتفاق ويل څرنګه صحيح وي، (يعني پکار دا وه چي د صاحبينو د مسلک ليارې لايجوز ويل سوي وای)، دويمه خبره دلته دا ده چي د امام صاحب رَحِمَهُ الله په نيز د نفلي لمانځه په مينځ کي بې له عذره کښېنستل مکروه بلل سوي دي، حال دا چي مخکي موږ وويل چي د امام صاحب په نيز بې له عذره کښېنستل مکروه نه دي، نو د دواړو په مينځ کي تطبيق دا دی چي د مبسوط د روايت مطابق د

---

● القول الراجح: قول الامام رَحِمَهُ الله، كما قال فخر الاسلام: لو قعد في النفل من غير عذر لا يكره في الصحيح، الكفاية ج:١، ص:٣٦٢. [القول الراجح ج:١، ص:١٣٣]

امام صاحب صحيح قول د نه مکروه والی دي، او يو قول يې د مکروه والي هم سته، نو په تېره مسئله کې يې صحيح قول ذکر سو، او دلته يې دويم قول ذکر سو.

**په کښتۍ (بېړۍ) کې بې له عذره په ناستې سره د لمونځ کولو حکم (د فقهاؤ قولونه)**

وَمَنْ صَلَّى فِي السَّفِينَةِ قَاعِدًا مِنْ غَيْرِ عِلَّةٍ او چا چې بې له څه عذره په کښتۍ کې لمونځ وکړی أَجْزَأَهُ عِنْدَ أَبِي حَنِيفَةَ رَحِمَهُ اللهُ نو د امام ابو حنيفه رَحِمَهُ الله په نېز د هغه لمونځ جائز دی وَالْقِيَامُ أَفْضَلُ خو ولاړه افضله ده وَقَالَا: لَا يُجْزِئُهُ او صاحبين فرمايي: چې جائز نه دی إِلَّا مِنْ عُذْرٍ خو د يو عذر په وجه (جائز دی) لِأَنَّ الْقِيَامَ مَقْدُورٌ عَلَيْهِ ځکه چې پر ولاړه د هغه قدرت سته فَلَا يُتْرَكُ إِلَّا لِعِلَّةٍ نو بې له عذره به نه پرېښوول کيږي وَلَهُ: أَنَّ الْغَالِبَ فِيهَا دَوَرَانُ الرَّأْسِ او د امام صاحب رَحِمَهُ الله دليل دا دی: چې په کښتۍ کې زياتره وخت سر ګرځي وَهُوَ كَالْمُتَحَقِّقِ او دا د حقيقتاً سر ګرځېدلو په ډول دي إِلَّا أَنَّ الْقِيَامَ أَفْضَلُ خو ولاړه افضله ده لِأَنَّهُ أَبْعَدُ عَنْ شُبْهَةِ الْخِلَافِ ځکه چې ولاړه د اختلاف له شبهې څخه لېري ده وَالْخُرُوجُ أَفْضَلُ مَا أَمْكَنَهُ او څومره چې ممکنه وي له کښتۍ څخه راوتل (او لمونځ کول) افضله دي لِأَنَّهُ أَسْكَنُ لِقَلْبِهِ ځکه چې په دې کې د لمونځ کونکي د زړه اطمينان زيات وي وَالْخِلَافُ فِي غَيْرِ الْمَرْبُوطَةِ او (په ناستې سره د لمونځ کولو) اختلاف په هغه کښتۍ کې دی چې (د سمندر پر غاړه) تړل سوې نه وي وَالْمَرْبُوطَةُ كَالشَّطِّ او تړل سوې کښتۍ د سمندر د غاړې (څنډې) په څېر ده هُوَ الصَّحِيحُ همدا صحيح ده.

**اللغات:** ﴿سَفِينَة﴾ کښتۍ، بېړۍ. ﴿دَوَرَانُ الرَّأْسِ﴾ د سر ګرځېدل، چورلېدل. ﴿مَرْبُوطَة﴾ د نصر د باب مؤنث اسم مفعول دی: تړل سوې. ﴿شَطّ﴾ د سمندر او درياب غاړه (څنډه، ساحل).

**تشريح: صورت د مسئلې:** دا دی چې که کښتۍ روانه وي، او يو سړی بې له عذره په کښتۍ کې په ناسته لمونځ کوي، نو د امام صاحب رَحِمَهُ الله په نېز د دې سړي لمونځ بې له کراهته جائز دی، خو بيا هم د ده لپاره په ولاړه لمونځ کول غوره او افضله دي، او د صاحبينو رَحِمَهُمَا الله مسلک دا دی چې د ده لپاره بې له عذره په ناسته لمونځ کول جائز نه دي، ځکه چې دی په کښتۍ کې په ولاړې سره د لمونځ کولو قدرت لري، نو ځکه بې له عذره ولاړه پرېښوول او کښېنستل جائز نه دي.

**د امام صاحب دليل:** دا دی چې په کښتۍ کې د سفر په وخت کې اکثره پر سر چکر راځي او سر پر له ګرځي، او په شريعت کې اکثر او غالب ته د متحقق درجه ورکول سوې ده. يعني د يو شي اکثره او غالبه کېدل داسې دي لکه چې ګردسره هغه شی ثابت او متحقق دی، نو ځکه په کښتۍ کې په ولاړه لمونځ کول يو ډول عذر سو، نو که يو چا په ناسته لمونځ کوی نو د عذر په وجه د هغه لمونځ جائز دی، خو بيا هم د هغه لپاره په ولاړه لمونځ کول اولیٰ او افضله دي، ځکه چې د ولاړې په لمانځه کې د هيچا اختلاف نسته، او د ناستې په لمانځه کې اختلاف دی، او له اختلاف څخه ځان کتل غوره دي.

---

❶ القول الراجح: قول الصاحبين رَحِمَهُمَاالله، كما قال العلامة الحصكفي رَحِمَهُ الله و قول الصاحبين رَحِمَهُمَاالله أظهر، رد المحتار ج:۱، ص:۵۶۳. [القول الراجح ج:۱، ص:۱۳۲]

والخروج افضل الخ فرمايي که د لمونځ کونکي لپاره له کښتۍ څخه د باندي وتل او لمونځ کول ممکن وي نو د باندي دي لمونځ وکړي، ځکه چي دا تر ټولو ښه صورت او غوره طريقه ده، ځکه په دې صورت کي به هغه دوې فائدې تر لاسه کړي: (۱) يو خو به له اختلاف څخه ځان وژغوري، (۲) او دويمه فايده به دا سي چي زړه به يې هم په لمانځه کي مطمئن او په سکون وي.

والخلاف في غير المربوطة الخ فرمايي چي د امام صاحب او صاحبينو رَحِمَهُمُ الله په مينځ کي دا ذکر سوی اختلاف په هغه صورت کي دی چي کله کښتۍ روانه وي، او تړل سوې نه وي، لېکن که کښتۍ تړل سوې وي،(يعني د سمندر د غاړي سره ولاړه وي او پر يو شي تړل سوې وي) نو په دې صورت کي د هيڅ چا په نېز هم په ناستي لمونځ کول جائز نه دي، ځکه چي تړل سوې کښتۍ د سمندر د غاړي(ساحل) په څېر ده، او د سمندر پر غاړه بې له عذره لمونځ په ناستي کول جائز نه دي، نو ځکه به په تړل سوې کښتۍ کي هم بې له عذره په ناستي لمونځ کول جائز نه وي.

## د بې هوښۍ په سبب د ډېرو قضا سوو لمونځونو حکم

وَمَنْ أُغْمِيَ عَلَيْهِ خَمْسَ صَلَوَاتٍ أَوْ دُوْنَهَا او کوم سړی چي پنځه لمونځونه يا تر دې کم بې هوښه سي قَضَى نو د دې لمونځونو قضاء به راوړي وَإِنْ كَانَ أَكْثَرَ مِنْ ذٰلِكَ او که تر پنځو لمونځونو زيات بې هوښه سي لَمْ يَقْضِ نو قضاء به يې نه راوړي وَهٰذَا اسْتِحْسَانٌ او دا استحسان دی(يعني دا د استحسان تقاضا ده) وَالْقِيَاسُ أَنْ لَا قَضَاءَ عَلَيْهِ إِذَا اسْتَوْعَبَ الْإِغْمَاءُ وَقْتَ صَلَاةٍ كَامِلًا او قياس دا دی چي کله بې هوښي د يوه لمانځه ټوله وخت ونيسي نو پر بې هوښه سړي به (مطلقاً) قضاء نه وي لِتَحَقُّقِ الْعَجْزِ د عاجزۍ د ثابتوالي په وجه فَشَابَهَ الْجُنُوْنَ نو بې هوښي د لېونتوب سره مشابه سوه وَجْهُ الِاسْتِحْسَانِ د استحسان وجه دا ده أَنَّ الْمُدَّةَ إِذَا طَالَتْ چي کله د بې هوښۍ موده اوږده سي كَثُرَتِ الْفَوَائِتُ نو قضائي لمونځونه ډېر سي فَيَتَحَرَّجُ فِي الْأَدَاءِ نو د هغو په قضاء راوړلو کي تکليف (او حرج) وي وَإِذَا قَصُرَتْ قَلَّتْ او چي کله موده کمه سي نو قضائي لمونځونه لږ سي فَلَا حَرَجَ نو (هيڅ) تکليف نه وي وَالْكَثِيْرُ أَنْ تَزِيْدَ عَلٰى يَوْمٍ وَلَيْلَةٍ او زيات دا دي چي قضائي لمونځونه تر يوې ورځي او شپې زيات سي لِأَنَّهُ يَدْخُلُ فِيْ حَدِّ التَّكْرَارِ ځکه چي (په دې صورت کي) هغه د تکرار په حد کي داخليږي وَالْجُنُوْنُ كَالْإِغْمَاءِ او لېونتوب د بې هوښۍ په ډول دی كَذَا ذَكَرَهُ أَبُوْ سُلَيْمَانَ رَحِمَهُ اللهُ همدا رنګه علامه ابو سليمان رَحِمَهُ الله ذکر کړي دي بِخِلَافِ النَّوْمِ په خلاف د خوب لِأَنَّ امْتِدَادَهُ نَادِرٌ ځکه چي د خوب اوږدېدل نادر دي(يعني خوب دومره ډېر وخت نه نيسي لکه بې هوښي او لېونتوب) فَيَلْحَقُ بِالْقَاصِرِ نو خوب به د کوچني (مودې والا) عذر سره ملحق کيږي ثُمَّ الزِّيَادَةُ تُعْتَبَرُ مِنْ حَيْثُ الْأَوْقَاتِ عِنْدَ مُحَمَّدٍ● رحِمَهُ اللهُ بيا زياتوب (او ډېربښت) د امام محمد رَحِمَهُ الله په نېز د وختونو په اعتبار سره معتبر دی لِأَنَّ التَّكْرَارَ يَتَحَقَّقُ بِهِ ځکه چي تکرار (هم) د وختونو په

● القول الراجح: قول محمد رَحِمَهُمَاالله كما قال العلامة ابن الهمام رَحِمَهُ‌الله: وهو الأصح، أى قول محمد رَحِمَهُ‌الله أصح الأقوال فتح القدير ج: ۱، ص:۴۶۳. [القول الراجح ج:۱، ص:۱۳۵]

زیاتوب سره ثابتیږي وَعِنْدَهُمَا مِنْ حَيْثُ السَّاعَاتِ او د شيخينو رَحِمَهُمَا الله په نیز زیاتوب د ساعتونو په اعتبار سره معتبر دی هُوَ الْمَأْثُوْرُ عَنْ عَلِيٍّ وَابْنِ عُمَرَ رَضِيَ اللهُ عَنْهُمْ همدا له حضرت علي ﷺ او حضرت ابن عمر رضي الله عنهما څخه را نقل سوي دي.

**اللغات:** ﴿أُغْمِيَ﴾ د افعال د باب ماضي مجهوله ده: بې هوښه کېدل، ﴿اِسْتَوْعَبَ﴾ د استفعال د باب ماضي ده: کښېباسل، پوره نیول، غوړېدل، ﴿اِمْتَدَّ﴾ اوږدېدل، ﴿مَأْثُوْر﴾ را نقل سوی، (منقول)، روایت سوی.

**تشریح: مسئله:** دا ده که یو سړی له پنځو لمونځونو څخه زیات بې هوښه سو نو له هغه څخه چي کوم لمونځونه قضاء سول، د هغو لمونځونو قضاء راوړل واجب نه ده، دا حکم د استحسان دی، او د قیاس تقاضا دا ده چي که د یوه لمانځه په ټوله وخت کي بې هوښه وو نو پر هغه قضاء واجب نه ده، همدا مسلک د امام مالک او امام شافعي رَحِمَهُ الله هم دی، حنابله وايي چي د قضاء سوو لمونځونو قضاء واجب ده، که څه هم زرو (١٠٠٠) لمونځونو ته ورسیږي. لنډه دا چي د حنابله وو په نیز د بې هوښی په وجه د د قضاء سوو لمونځونو را ګرځول واجب دي، هغه که ډېر وي، که لږ وي، او د امام شافعي او امام مالک رَحِمَهُمَا الله په نیز که بې هوښي د یوه لمانځه پوره وخت ونیوی او یو لمونځ څني قضاء سو، نو د دې یوه لمانځه قضاء هم پر واجب نه ده، نور خو لا پرېږده، یعني د بې هوښی په وجه قضاء سوي لمونځونه که ډېر وي، که لږ، د دوی په نیز یې قضاء واجب نه ده، زموږ علماؤ مینځنۍ لاره اختیار کړې ده فرمايي: که د بې هوښی په وجه قضاء سوي لمونځونه لږ وي نو د هغو قضاء واجب ده، او که ډېر وي نو قضاء یې واجب نه ده.

**د اما حنبل دلیل:** دا دی چي بې هوښي یو قسم مرض دی، او په مریض کي چي څومره لمونځونو قضاء سي د هغو قضاء راوړل واجب وي، نو په دې صورت کي به هم د قضاء سوو لمونځونو قضاء راوړل واجب وي، که څه هم ډېر ولي نه وي.

**د امام مالک او امام شافعي دلیل:** دا دی چي کله بې هوښه سړی د لمانځه په ټوله وخت کي بې هوښه سو، نو د ده په حق کي د لمانځه له اداء کولو څخه عاجزي ثابته سوه، او عاجزي د خطاب له مفهوم څخه مانع ده (یعني بې هوښه سړی د لمانځه په حکم اقیمو الصلاة نه سي پوهېدلای)، نو ځکه به پر بې هوښه سړي د لمانځه اداینه واجب نه وي، او کله چي ادانیه واجب نه سوه، نو قضاء به بیا د څه شي واجبیږي، او د بعضو په قول دا مسئله د لېونتوب سره مشابه ده، یعني څرنګه چي د لېونتوب په حالت کي پر یو سړي د لمانځه پوره وخت تېر سي نو له هغه څخه د دغه لمونځ قضاء ساقطیږي، همدارنګه دلته هم که بې هوښي د یوه لمانځه پوره وخت ونیسي نو له بې هوښه سړي څخه به هم قضاء ساقطیږي.

**زموږ دلیل:** وجه الاستحسان الخ له دې ځایه زموږ دلیل بیانیږي، زموږ دلیل دا دی چي د بې هوښی موده چي کله اوږده سي نو قضاء سوي لمونځونه ډېر سي، نو اوس که د دې ډېرو قضاء سوو لمونځونو د قضاء راوړلو حکم وسي نو سړی به په تکلیف (او حرج) مبتلا سي، او څرنګه چي په اسلام کي تکلیف (حرج) لیري سوی دی، نو ځکه به د ډېرو قضاء سوو لمونځونو قضاء واجب نه وي، او که د بې هوښی موده لږ وي نو قضاء سوي لمونځونه به هم لږ وي، او څرنګه چي د لږو قضاسوو لمونځونو په راګرځولو کي هیڅ حرج نسته، نو ځکه د لږ قضاء سوو لمونځونو د قضاء حکم وسو.

ښکاره دي وي چي د ډېر (کثیر) حد دا دی چي قضاء سوي لمونځونه تر یوې شپې او ورځي زیات سي، تر دې چي د شپږم لمانځه وخت ووځي، ځکه چي کله د شپږم لمانځه وخت ووځي نو په لمونځونو کي تکرار شروع سي، او تر تکرار وروسته بیا کثرت (ډېرښت) شروع کیږي.

**جواب:** صاحب د هدايې رَحِمَهُ الله د والجنون كالاغماء څخه د د دوی د قياس جواب ورکوي، د جواب حاصل دا دی چې بې هوښي د لېونتوب په شان نه ده، بلکې لېونتوب د بې هوښی په شان دی، يعنې که لېونتوب تر پنځو لمونځونو زيات سو، نو قضاء ساقطيږي، او که تر پنځو لمونځونو کم وو، بيا نه ساقطيږي، نو د بې هوښی مسئله پر لېونتوب قياسول صحيح نه ده، ځکه چې لېونتوب د بې هوښی په شان دی، علامه ابو سليمان جوزجاني رَحِمَهُ الله هم دغه ذکر کړي دي.

بخلاف النوام الخ فرمايي چې د خوب مسئله د بې هوښی او ليونتوب په خلاف ده، نو که خوب تر پنځو لمونځونو زيات سي، نو هم قضاء نه ساقطيږي، ځکه چې د خوب تر ډېري مودې اوږدېدل شاذ و نادر دي، نو ځکه به خوب د کوچنی مودې والا عذر سره ملحق کيږي نه د اوږدې مودې والا عذر سره.

ثم الزيادة الخ له دې ځايه دا رابښيي چې آيا د قضاسوو لمونځونو (فوائتو) د زياتوب او کثرت اعتبار په وختونو سره کيږي او که په ساعتونو سره؟ نو په دې سلسله کې د حنفي فقهاؤ اختلاف دی، د امام محمد رَحِمَهُ الله په نېز د دې د زياتوب اعتبار په وختونو سره کيږي، يعنې که له بې هوښه سړي څخه شپږ لمونځونه قضاء سوه او د شپږم لمانځه پوره وخت ووتی نو دا به ويل کيږي چې اوس قضاء سوي لمونځونه (فوائت) ډېر سوه، ځکه چې د شپږم لمانځه د وخت په وتلو سره تکرار ثابتيږي، او د فوائتو د زياتوب درا ومدار پر تکرار دی، د دې په خلاف د شيخينو رَحِمَهُمَا الله په نېز د زياتوب ثبوت په ساعتونو سره کيږي، او همدا حکم له حضرت علي او حضرت ابن عمر رَضِيَ اللهُ عَنْهُمْ څخه روايت سوی دی، يعنې که له يوې ورځې او شپې څخه يو ساعت هم زيات سي نو قضاء ساقطيږي، د دوی دليل دا دی چې په نورو ډېرو ځايونو کې هم پر ساعتونو د حکم مدار دی، علامه عبد الحي لکنوي رَحِمَهُ الله د دې يو مثال داسې بيان کړی دی چې که مثلاً يو سړی تر زوال مخکې بې هوښه سي او را روانه ورځ هغه سړی تر زوال وروسته جوړ سي، نو د شيخينو رَحِمَهُمَا الله په نېز د هغه له ذمې څخه قضاء ساقطيږي، ځکه چې بې هوښي تر يوې ورځې او شپې يو ساعت زياته راغله، لېکن د امام محمد رَحِمَهُ الله په نېز د دې سړي له ذمې څخه قضاء نه ساقطيږي، ځکه چې تر اوسه د شپږم لمانځه وخت يعنې د ماپښين وخت وتلی نه دي.



# بَابُ سُجُوْدِ التِّلَاوَةِ

## (دا) باب د سجدهٔ تلاوت (د احکامو په بیان کې) دی

**تشریح:** پکار خو دا وه چې تر سجدهٔ سهو وروسته سملستي سجدهٔ تلاوت بیان سوې وای، ځکه چې په دواړو کې سجده واجب ده. خو څرنګه چې په سهوه او مرض کې د آسماني او غیر اختیاري عارض په اعتبار سره مطابقت سته، (یعنې هېره او مرض دواړه آسماني او غیر اختیاري عوارض دي او د انسان په اختیار کې نه دي) نو ځکه یې د سجدهٔ سهو او سجدهٔ تلاوت په مینځ کې باب صلاة المریض ذکر کړی.

صاحب د عنایې رَحِمَهُ الله وایي چې د سجدهٔ تلاوت لپاره هم هغه ټوله شیان شرط دي کوم چې د لمانځه لپاره شرط دي، نو ځکه په مکروه وختونو کې سجدهٔ تلاوت صحیح نه ده. او څرنګه چې د سجدهٔ تلاوت د وجوب علت او سبب تلاوت دی، نو د سجدة التلاوة اضافة د إضافة السبب إلى السبب له قبیلې څخه دی.

### په قرآن مجید کې ټوله څومره سجدې دي او په کومو کومو سورتونو کې دي

قَالَ: سُجُوْدُ التِّلَاوَةِ فِي الْقُرْآنِ أَرْبَعَ عَشَرَةَ فرمایي: چې په قرآن کې د تلاوت سجدې څوارلس دي فِي آخِرِ الْأَعْرَافِ [۱] د سورت اعراف په آخر کې وَفِي الرَّعْدِ [۲] او په سورت رعد کې وَالنَّحْلِ [۳] او په سورت نحل کې وَبَنِي إِسْرَائِيلَ [۴] او په سورت بني اسرائیل کې وَمَرْيَمَ [۵] او په سورت مریم کې وَالْأُولَى فِي الْحَجِّ [۶] او په سورت حج کې اوله سجده وَالْفُرْقَانِ [۷] او په سورت فرقان کې وَالنَّمْلِ [۸] او په سورت نمل کې وَالم تَنْزِيلِ [۹] او په سورت الم تنزیل کې وَصَ [۱۰] او په سورت ص کې وَحم السَّجْدَةِ [۱۱] او په سورت حم سجده کې وَالنَّجْمِ [۱۲] او په سورت والنجم کې وَإِذَا السَّمَاءُ انْشَقَّتْ [۱۳] او په سورت انشقاق کې وَاقْرَأْ [۱۴] او په سورت اقرآء کې كَذَا كُتِبَ فِي مُصْحَفِ عُثْمَانَ رَضِيَ اللهُ عَنْهُ همدا رنګه د حضرت عثمان رضي الله عنه په مصحف کې لیکل سوي دي وَهُوَ الْمُعْتَمَدُ او هم هغه معتبر دی وَالسَّجْدَةُ الثَّانِيَةُ فِي الْحَجِّ لِلصَّلَاةِ عِنْدَنَا او په سورت حج کې دویمه سجده زموږ (د احنافو) په نېز د لمانځه په باره کې ده وَمَوْضِعُ السَّجْدَةِ فِي حم السَّجْدَةُ عِنْدَ قَوْلِهِ لَا يَسْأَمُونَ [فصلت: ۳۸] فِي قَوْلِ عُمَرَ رَضِيَ اللهُ تَعَالَى عَنْهُ او په سورت حم السجدة کې د سجدې ځای د حضرت عمر رضي الله عنه د قول مطابق لایسأمون دی وَهُوَ الْمَأْخُوذُ لِلِاحْتِيَاطِ او همدا قول د احتیاط په وجه اخیستل سوی دی (یعني پر همدغه په قول د احتیاط په وجه عمل کېږي).

**اللغات:** ﴿المصحف﴾ قرآن شریف، مجلد کتاب.

**تشریح:** د عبارت حاصل دا دی چې په څوارلس آیتونو کې سجدهٔ تلاوت ذکر سوې ده، او په دې څوارلس ځایونو کې زموږ په نېز پر تلاوت کونکي او اورېدونکي دواړو سجدهٔ تلاوت واجب ده، او هغه څوارلس آیتونه دا دي:

(۱)... إِنَّ الَّذِينَ عِنْدَ رَبِّكَ لَا يَسْتَكْبِرُونَ عَنْ عِبَادَتِهِ وَيُسَبِّحُونَهُ وَلَهُ يَسْجُدُونَ. ﴿سورة الاعراف: ۲۰۶ پ: ۹، رکوع: ۱۴﴾

(۲)... وَلِلّٰهِ يَسْجُدُ مَنْ فِي السَّمٰوٰتِ وَالْأَرْضِ طَوْعًا وَّكَرْهًا وَّظِلٰلُهُمْ بِالْغُدُوِّ وَالْاٰصَالِ. ﴿سورة الرعد: ۱۵ پ: ۱۳، رکوع: ۸﴾

(۳)... يَخَافُوْنَ رَبَّهُمْ مِّنْ فَوْقِهِمْ وَيَفْعَلُوْنَ مَا يُؤْمَرُوْنَ. ﴿سورة النحل: ۵۰ پ: ۱۴، رکوع: ۱۳﴾

(۴)... وَيَخِرُّوْنَ لِلْاَذْقَانِ يَبْكُوْنَ وَيَزِيْدُهُمْ خُشُوْعًا. ﴿سورة بني اسرائيل: ۱۰۹ پ: ۱۵، رکوع: ۱۲﴾

(۵)... إِذَا تُتْلٰى عَلَيْهِمْ اٰيٰتُ الرَّحْمٰنِ خَرُّوْا سُجَّدًا وَّبُكِيًّا. ﴿سورة مریم: ۵۸ پ: ۱۶، رکوع: ۷﴾

(۶)... په سورتِ حج کي اوله سجده: وَمَنْ يُّهِنِ اللّٰهُ فَمَا لَهٗ مِنْ مُّكْرِمٍ ۚ إِنَّ اللّٰهَ يَفْعَلُ مَا يَشَآءُ. ﴿سورة الحج: ۱۸ پ: ۱۷، رکوع: ۹﴾

(۷)... وَإِذَا قِيْلَ لَهُمُ اسْجُدُوْا لِلرَّحْمٰنِ قَالُوْا وَمَا الرَّحْمٰنُ أَنَسْجُدُ لِمَا تَأْمُرُنَا. ﴿سورة الفرقان: ۶۰ پ: ۱۹، رکوع: ۱۷﴾

(۸)... أَلَّا يَسْجُدُوْا لِلّٰهِ الَّذِيْ يُخْرِجُ الْخَبْءَ فِي السَّمٰوٰتِ وَالْأَرْضِ وَيَعْلَمُ مَا تُخْفُوْنَ وَمَا تُعْلِنُوْنَ. ﴿سورة النمل: ۲۶ پ: ۱۹، رکوع: ۱۷﴾

(۹)... إِنَّمَا يُؤْمِنُ بِاٰيٰتِنَا الَّذِيْنَ إِذَا ذُكِّرُوْا بِهَا خَرُّوْا سُجَّدًا وَّسَبَّحُوْا بِحَمْدِ رَبِّهِمْ وَهُمْ لَا يَسْتَكْبِرُوْنَ. ﴿سورة السجدة (الم تنزيل): ۱۵ پ: ۲۱، رکوع: ۱۵﴾

(۱۰)... وَظَنَّ دَاوٗدُ أَنَّمَا فَتَنّٰهُ فَاسْتَغْفَرَ رَبَّهٗ وَخَرَّ رَاكِعًا وَّأَنَابَ. ﴿سورة ص: ۲۴ پ: ۲۳، رکوع: ۱۱﴾

(۱۱)... فَإِنِ اسْتَكْبَرُوْا فَالَّذِيْنَ عِنْدَ رَبِّكَ يُسَبِّحُوْنَ لَهٗ بِالَّيْلِ وَالنَّهَارِ وَهُمْ لَا يَسْئَمُوْنَ. ﴿حمٓ السجدة: ۳۸ پ: ۲۴، رکوع: ۱۹﴾

(۱۲)... فَاسْجُدُوْا لِلّٰهِ وَاعْبُدُوْا. ﴿سورة النجم: ۶۲ پ: ۲۷، رکوع: ۷﴾

(۱۳)... وَإِذَا قُرِئَ عَلَيْهِمُ الْقُرْاٰنُ لَا يَسْجُدُوْنَ. ﴿سورة الانشقاق: ۲۱ پ: ۳۰، رکوع: ۹﴾

(۱۴)... وَاسْجُدْ وَاقْتَرِبْ. ﴿سورة العلق: ۱۹ پ: ۳۰، رکوع: ۲۱﴾

صاحب د هدايې رَحِمَهُ الله فرمايي چي دغه څوارلس ځايونه کوم چي د سجدۀ تلاوت په باره کي بيان سول د حضرت عثمان ﷺ د قرآن مجيد د ذکر سوو ځايونو سره برابر دي، او څرنګه چي د حضرت عثمان ﷺ قرآن پاک ډېر معتبر او معتمد قرآن دی، نو ځکه به په هغه کي بيان سوي ځايونه هم د اعتماد او اعتبار وړ وي.

والسجدة الثانية الخ صاحب د هدايې له دې عبارت څخه د سورتِ حج د سجدې په باره کي زموږ او د شوافعو د اختلاف و طرف ته اشاره کوي، فرمايي: چي د امام شافعي رَحِمَهُ الله په نېز په سورت حج کي دواړه سجدې سجدۀ تلاوت دي (په سورت حج کي دويم د سجدې آيت دا دی: يٰٓاَيُّهَا الَّذِيْنَ اٰمَنُوا ارْكَعُوْا وَاسْجُدُوْا وَاعْبُدُوْا رَبَّكُمْ وَافْعَلُوا الْخَيْرَ لَعَلَّكُمْ تُفْلِحُوْنَ [سورة الحج: ۷۷]) او د سورت صٓ سجده د امام شافعي رَحِمَهُ الله په نېز د شکر سجده ده، او د شوافعو په نېز هم د سجدو شمېر څوارلس دي، لېکن فرق دا دی چي زموږ په نېز د سورتِ حج اوله سجده سجدۀ تلاوت ده، لېکن دويمه سجده سجدۀ تلاوت نه ده، بلکي سجدۀ صلاة (يعني د لمانځه سجده) ده، او امام شافعي رَحِمَهُ الله د سورتِ حج دواړه سجدې سجدۀ تلاوت مني.

**د امام شافعي دليل:** امام شافعي رَحِمَهُ الله د عقبه بن عامر ﷺ په حديث سره دليل نيسي: أن رسول الله ﷺ قال فضلت الحج بسجدتين من لم يسجدهما لم يقرأهما، (يعني سورت حج ته د دوو سجدو په وجه فضيلت ورکول سوی دی،

که چا په دوی کي سجده نه وکړه نو ګواکي هغه ګردسره دا سجدې نه وويلې). له دې څخه معلومه سوه چي د سورت حج دواړه سجدې د سجدۀ تلاوت دي.

**زموږ دليل:** پر دې چي د سورت حج اوله سجده سجدۀ تلاوت ده هغه اثر دی کوم چي له ابن عباس او ابن عمر رَضِيَ اللهُ عَنْهُم څخه روايت سوی دی: سجدة التلاوة في الحج هي الأولى وسجدة الثانية للصلاة. (يعني د سورت حج اوله سجده خو سجدۀ تلاوت ده، او دويمه سجده سجدۀ صلاة ده، او څرنګه چي ابن عباس رئيس المفسرين دی، نو ځکه به د قرآن او د قرآن د اړوند احکامو په باره کي د هغه قول زيات معتبر وي، او د سورتِ حج د دويمي سجدې د سجدۀ صلاة پر کېدلو يو قرينه دا هم ده چي الله تعالیٰ دا سجده د رکوع سره يو ځای کړې ده يعني په وارکعوا واسجدوا سره يې د سجدې کولو حکم کړی دی، او چيري چي هم په قرآن کي سجده د رکوع سره يو ځای بيان سوې وي، له هغه څخه عموماً سجدۀ صلاة مراد وي.

**جواب:** د امام شافعي رَحِمَهُ الله د حديث تأويل دا دی چي په دې کي هم د سورتِ حج له اولي سجدې څخه سجدۀ تلاوت او له دويمي سجدې څخه سجدۀ صلاة مراد ده، او د نبي ﷺ د حديث مقصد دا دی چي خلکو ته دواړه آيتونه ويل پکار دي، او يو آيت ويل او تر بل آيت تېرېدل پکار نه دي، هکذا في الكفاية.

وموضوع السجدة الخ فرمايي چي په سورت حمٓ السجدة کي د سجدې ځای د لا يسأمون جمله ده، او همدا له حضرت عمر رَحِمَهُ الله څخه را نقل سوي دي، او پر دې په عمل کولو کي احتياط هم دی.

## سجده تلاوت پر چا واجب ده؟

وَالسَّجْدَةُ وَاجِبَةٌ اوسجده واجب ده فِيْ هٰذِهِ الْمَوَاضِعِ په دې (تيرسوو) ځايونو کي عَلَى التَّالِيْ پر تلاوت کونکي باندي وَالسَّامِعِ او پر اورېدونکي باندي سَوَاءٌ قَصَدَ سَمَاعَ الْقُرْآنِ هغه که يې د قرآن اورېدلو اراده کړې وي أَوْ لَمْ يَقْصُدْ او که يې نه وي کړې لِقَوْلِهِ عَلَيْهِ الصَّلَاةُ وَالسَّلَامُ● ځکه نبي ﷺ فرمايلي دي اَلسَّجْدَةُ عَلٰى مَنْ سَمِعَهَا سجده پر هغه چا (هم واجب) ده چي آيت د سجدې واوري وَعَلٰى مَنْ تَلَاهَا او پر هغه چا (هم واجب) ده چي آيت د سجدې تلاوت کړي وَهِيَ كَلِمَةُ إِيْجَابٍ او "على" کلمه د وجوب ده وَهُوَ غَيْرُ مُقَيَّدٍ بِالْقَصْدِ او دا په ارادې پوري مقيد نه ده.

**اللغات:** ﴿تَالِي﴾ تلاوت کونکی.

**تشريح:** امام قدوري رَحِمَهُ الله وايي: چي په دې څوارلس ذکر سوو ځايونو کي سجده کول پر تلاوت کونکي او اورېدونکي دواړو واجب ده، اورېدونکي که د اورېدلو قصد کړی وي، که نه وي، د امام مالک، امام شافعي او امام حنبل رَحِمَهُمُ الله په نيز سجدۀ تلاوت سنت ده.

**دليل:** د دې حضراتو دليل دا دی چي زيد ابن ثابت د نبي ﷺ په مخ کي سورت نجم تلاوت کړی، لېکن نه زيد بن ثابت رضي الله عنه سجده وکړه او نه نبي ﷺ سجده وکړه، نو له دې څخه ثابته سوه چي سجدۀ تلاوت واجب نه ده، بلکي سنت ده، ځکه که واجب وای نو نه به نبي ﷺ پرېښوولای او نه به زيد بن ثابت رضي الله عنه.

**زموږ دليل:** دا حديث دی: السجدة على من سمعها و على من تلاها، له دې څخه موږ دليل په دې توګه نيسو چي په حديث کي د

● تخريج: أخرجه البخاري في كتاب سجود القرآن، باب من رأى ان الله عزّوجلّ لم يوجب السجود، حديث رقم:١٠٧٧، لفظه على من استمعها.

"على" لفظ راغلی دی کوم چې پر لازموالي او واجبوالي دلالت کوي، او څرنګه چې دا حديث د قصد او ارادې په قيد سره مقيد نه دی، نو ځکه به پر هر اورېدونکي سجدهٔ تلاوت واجب وي، هغه که دا اورېدلو اراده کړې وي او که نه وي.

**جواب:** امام مالک رَحِمَهُ الله او نورو چې کوم حديث ذکر کړی دی د هغو جواب دا دی چې نبي ﷺ په هغه وخت کي فوراً (سمدستي) سجده نه وکړه، او فوراً سجده نه کول زموږ په نيز هم جائز دي، همدارنګه له فوراً سجده نه کولو څخه دا نه لازميږي چې ګرسره به يې سجده کړې نه وي، بلکي کيداى سي چي نبي ﷺ به وروسته سجده کړې وي، نو د دې احتمال په وجه د سجدهٔ تلاوت وجوب نه ختميږي.

## د امام او مقتدي لپاره د سجدې د آيت د لوستلو بېلا بېل صورتونه او د هغو حکمونه

وَإِذَا تَلَا الْإِمَامُ آيَةَ السَّجْدَةِ او که امام د سجدې آيت تلاوت کړی سَجَدَهَا نو امام دې سجده وکړي وَسَجَدَهَا الْمَأْمُومُ مَعَهُ او مقتدی دې (هم) د هغه سره سجده وکړي لِالْتِزَامِهِ مُتَابَعَتَهُ ځکه چې مقتدي پر خپل ځان د امام تابعداري لازمه کړې ده وَإِذَا تَلَا الْمَأْمُومُ او که مقتدي د سجدې آيت تلاوت کړی لَمْ يَسْجُدِ الْإِمَامُ وَلَا الْمَأْمُومُ نو نه به امام سجده کوي او نه مقتدی فِي الصَّلَاةِ وَلَا بَعْدَ الْفَرَاغِ نه په لمانځه کي او نه له لمانځه څخه تر فراغت وروسته عِنْدَ* أَبِي حَنِيفَةَ وَأَبِي يُوسُفَ (دا حکم) د شيخينو رَحِمَهُمَا الله په نيز (دی) وَقَالَ مُحَمَّدٌ: يَسْجُدُونَهَا إِذَا فَرَغُوا او امام محمد رَحِمَهُ الله فرمايي: چې امام او مقتديان به ټوله له لمانځه څخه تر فراغت وروسته سجده کوي لِأَنَّ السَّبَبَ قَدْ تَقَرَّرَ ځکه چې (د سجدې د وجوب) سبب ثابت سو وَلَا مَانِعَ او (له سجده کولو څخه) هيڅ مانع (هم) نسته بِخِلَافِ حَالَةِ الصَّلَاةِ په خلاف د لمانځه له حالت څخه لِأَنَّهُ يُؤَدِّي إِلَى خِلَافِ وَضْعِ الْإِمَامَةِ أَوِ التِّلَاوَةِ ځکه چې هغه رسوول کوي تر هغه شي پوري چې هغه خلاف دی د امامت يا تلاوت له موضوع څخه وَلَهُمَا: أَنَّ الْمُقْتَدِيَ مَحْجُورٌ عَنِ الْقِرَاءَةِ او د شيخينو رَحِمَهُمَا الله دليل دا دی: چې مقتدي له قرائت کولو څخه بند سوی دی لِنَفَاذِ تَصَرُّفِ الْإِمَامِ عَلَيْهِ ځکه چې پر هغه د امام تصرف نافذ دی وَتَصَرُّفُ الْمَحْجُورِ لَا حُكْمَ لَهُ او کوم شوک چې بند کړی سوی وي د هغه تصرف (يعني تلاوت) لره هيڅ حکم نسته بِخِلَافِ الْجُنُبِ وَالْحَائِضِ په خلاف د جنب او حائضې ښځې لِأَنَّهُمَا عَنِ الْقِرَاءَةِ مَنْهِيَّانِ ځکه چې دا دواړه (فقط) له قرائت څخه منع سوي دي إِلَّا أَنَّهُ لَا يَجِبُ عَلَى الْحَائِضِ بِتِلَاوَتِهَا خو پر حائضې ښځې د خپل تلاوت په وجه (سجده) واجب نه ده كَمَا لَا يَجِبُ بِسَمَاعِهَا لکه څنګه چې پر هغې د سجدې د آيت په اورېدلو سره (هم) سجده واجب نه ده لِانْعِدَامِ أَهْلِيَّةِ الصَّلَاةِ ځکه چې په هغې کي د لمانځه اهليت نسته بِخِلَافِ الْجُنُبِ په خلاف د جنب (ځکه چې پر هغه سجده واجب ده، او دا يا جلا خبره ده چې تر غسل وروسته به سجده کوي).

**اللغات:** ﴿مأموم﴾ مقتدی، ﴿محجور﴾ بند کړی سوی، پابند.

---

* القول الراجح: قول الشيخين رَحِمَهُمَا الله، كما قال العلامة الحصكفي رَحِمَهُ الله: ولو تلا ها المؤتم لم يسجد المصلى أصلا لا في الصلاة ولا بعدها. الدرالمختار ج:١، ص:٥۶۶. [القول الراجح ج:١، ص:١٣۶]

**تشريح:** په دې عبارت کې دوې مسئلې بيان سوي دي: (۱) اوله مسئله دا ده که د لمانځه په دوران کې امام د سجدې آيت ووايي، نو پر امام هم سجده واجب ده او پر مقتديانو هم سجده واجب ده، ځکه چې مقتديانو د امام د تابعداری التزام کړی دی، يعني د امام تابعداري يې پر ځان لازمه کړې ده (چې موږ به په هر شي کې په امام پسې اقتداء کوو)، نو هر شی چې پر امام واجب سي هغه به پر مقتديانو هم واجب او لازم وي.

(۲) دويمه مسئله دا ده که د لمانځه په دوران کې يو مقتدي د سجدې آيت تلاوت کړی، او په لوړ آواز سره يې تلاوت کړی، نو اوس په دې صورت کې د شيخينو رَحِمَهُمَا الله په نيز حکم دا دی چې پر هيچا هم سجده واجب نه ده، نه پر امام او نه پر مقتديانو، او نه دې دا خلک په لمانځه کې دننه سجده کوي او نه تر فراغت وروسته، د دې په خلاف د امام محمد رَحِمَهُ الله مسلک دا دی چې د لمانځه په دوران کې خو پر دې خلکو سجده واجب نه ده، لېکن کله چې له لمانځه څخه فارغه سي، نو پر دوی ټولو سجده واجب ده.

**د امام محمد دليل:** دا دی چې د سجدې د واجب کېدلو سبب د سجدهٔ تلاوت وجود دی، نو کله چې مقتدي د سجدې آيت تلاوت کړی نو ښکاره ده چې د سجدې د وجوب سبب موجود سو، نو ځکه به سجده واجب وي، لېکن څرنګه چې د لمانځه په حالت کې سجده کول ممکن نه دي، نو په لمانځه کې به پر دوی کول ضروري نه وي، خو تر لمانځه وروسته به پر دوی سجده کول واجب او ضروري وي، او د لمانځه په مېنځ کې ځکه سجده ضروري نه ده چې په لمانځه کې به د سجدې کولو دوه حالتونه وي: (۱) يا خو به مخکې مقتدی سجده کوي (۲) يا به امام مخکې سجده کوي، او دواړه صورتونه نا ممکن دي، ځکه که اول مقتدی سجده وکړي نو دا د امامت له موضوع څخه خلاف دي، ځکه چې د مقتدي کېدلو په حيثيت دا خبره ضروري ده چې اول به امام سجده کوي نه مقتدي، کنې د موضوع قلب او بدلون به راسي، او له متبوع څخه به تابع جوړ سي، او دا شرعاً صحيح نه دي، همدارنګه که اول امام سجده وکړي، نو دا هم شرعاً صحيح نه دي، ځکه چې د سجدې آيت مقتدي تلاوت کړی دی، نو مقتدي ته اول سجده کول پکار دي، او تاسو ته معلومه سوه چې مقتدی هم مخکې سجده نه سي کولای، نو د لمانځه په دوران کې د سجدې کولو هيڅ صورت صحيح نه دی، نو ځکه به پر دوی په لمانځه کې دننه سجده واجب نه وي، او د لمانځه تر فراغت وروسته به سجده پر واجب وي.

**د شيخينو دليل:** دا دی چې د اقتداء کولو په وجه مقتدی له قرائت او نورو اعمالو څخه بند کړی سوی دی، (يعني محجور دی)، ځکه چې د امام قرائت او د امام اعمال د مقتدي په حق کې هم د قرائت او اعمالو درجه لري، لکه څرنګه چې په حديث کې هم دا مفهوم بيان سوی دی: من كان له إمام فقراءة الإمام قراءة له. (يعني د امام قرائت د مقتدي لپاره هم قرائت دی)، نو مقتدی په لمانځه کې له قرائت څخه بالکل منع سوی دی، لهذا ده له طرفه د سجدې د آيت تلاوت کول صحيح نه دي، او کله چې د مقتدي تلاوت شرعا صحيح نه سو، نو د هغه د تلاوت به هم هيڅ حکم نه وي، او کله چې د هغه د تلاوت هيڅ حکم نسته، نو د هغه په تلاوت سره به سجده نه واجبېږي، ځکه چې د بند کړی سوي (محجور) د تصرفاتو هيڅ اعتبار نسته.

**بخلاف الجنب والحائض الخ** له دې ځايه ديو مقدّر سوال جواب ورکول سوی دی:

**سوال:** دا دی چې حائضه او جنب هم له قرائت څخه منع کړي سوي دي، (يعني ممنوع دي) لېکن که بيا هم له دوی څخه يو قرائت وکړي او بل سړي يې واوري نو پر هغه سجده واجب ده، حال دا چې په ذکر سوې مسئله کې تاسو له امام څخه هم سجده ساقطه کړه، آخر د دې وجه څه ده؟

**جواب:** دا دی چې د محجور او ممنوع په مینځ کې فرق سته، ځکه چې د محجور قول او فعل بالکل معتبر نه وي، د هغه قول او فعل تعلق که د حلالو سره وي او که د حرامو سره، د دې په خلاف د ممنوع قول او فعل معتبر وي، تر دې فرق وروسته صورت د مسئلې ته ګورئ، څرنګه چې په ذکر سوې مسئله کې مقتدی محجور دی (یعني د قرائت بندیز پر لګول سوی دی) نو ځکه د هغه قرائت بالکل معتبر نه دی، او کله چې د هغه قرائت معتبر نه سو، نو ښکاره ده چې د هغه د تلاوت په وجه پر امام هم سجده نه واجبیږي، د دې په خلاف جنب او حائضه له قرائت څخه منع کړی سوي دي، نو څرنګه چې د دوی قرائت معتبر دی، نو ځکه به د دوی په تلاوت سره پر اورېدونکو سجدهٔ تلاوت واجبیږي. نو کله چې په محجور او ممنوع کې دا فرق سته، نو یو پر بل قیاسول صحیح نه دي.

إلا إنه یجب الخ له دې ځایه د حائضې او جنب په مینځ کې فرق بیانیږي، حاصل یې دا دی چې په خپله د حائضې او جنب په مینځ کې (هم) فرق سته، هغه داسي چې پر حائضې ښځې نه د سجدې د آیت په تلاوت کولو سره سجدهٔ تلاوت واجبیږي، او نه د سجدې د آیت په اورېدلو سره، ځکه چې په دې کې لمانځه اهلیت او لیاقت نسته، او په چا کې د لمانځه اهلیت نیستي وي، پر هغه هیڅ شی هم نه لازمیږي، د دې په خلاف که جنب د سجدې آیت تلاوت کړي یا یې واوري نو په دواړو صورتونو کې سجده پر واجبیږي، ځکه چې په ده کې اهلیت سته. او په جنب کې اهلیت په دې توګه سته چې دی په خپل وخت کې دننه غسل کولای سي، نو کله چې غسل وکړي نو د سجدې اداء پر واجب سوه، کنې قضاء به یې پر واجب وي.

## تر لمانځه دباندې د بل سړي لپاره د سجدې آیت اورېدل

| |
|---|
| وَلَوْسَمِعَهَا رَجُلٌ خَارِجَ الصَّلَاةِ او که تر لمانځه دباندې یو سړي د سجدې آیت واورېدی سَجَدَهَا نو سجده دې وکړي هُوَ الصَّحِيْحُ همدا صحیح ده لِأَنَّ الْحَجْرَ ثَبَتَ فِيْ حَقِّهِمْ ځکه چې (د سجدې کولو) بندیز (صرف) د مقتدیانو په حق کې ثابت دی فَلَا يَعْدُوْهُمْ نو له هغوی څخه به تجاوز نه کوي. |

**اللغات:** ﴿حجر﴾ بندیز، ممانعت، پابندي، ﴿لایعدو﴾ د نصر له باب څخه د نفي صیغه ده: تجاوز کول.

**تشریح:** مسئله: دا ده که له امام یا مقتدي څخه ماسوا بل سړي چې هغه له لمانځه څخه خارج (دباندې) وو له مقتدي څخه د سجدې آیت واورېدی، نو پر هغه سجده کول واجب دي، ځکه چې د مقتدي په تلاوت کړی سوي آیت سره پر امام او مقتدي ځکه سجده نه واجبیږي چې شرعي مانع سته (لکه په تېره سوې مسئله کې چې تفصیل ذکر سو)، نو دا ممانعت او بندیز صرف د مقتدیانو په حق کې ثابت دی، نورو ته تجاوز نه کوي، نو ځکه به له نورو څخه سجده نه ساقطیږي، بلکې پر دوی به سجده کول واجب وي.

## که لمونځ ګزاره له خارجي (دباندېني) سړي څخه د سجدې آیت واوري نو څه حکم دی؟

| |
|---|
| وَإِنْ سَمِعُوْا وَهُمْ فِي الصَّلَاةِ سَجْدَةً او که خلکو د لمانځه په حالت کې د سجدې آیت واورېدی مِنْ رَجُلٍ لَيْسَ مَعَهُمْ فِي الصَّلَاةِ له داسي سړي څخه چې هغه د دوی سره په لمانځه کې شریک نه وو لَمْ يَسْجُدُوْهَا فِي الصَّلَاةِ نو دوی به په لمانځه کې سجده نه کوي لِأَنَّهَا لَيْسَتْ بِصَلَاتِيَّةٍ ځکه چې دا سجده د لمانځه سجده نه ده لِأَنَّ سِمَاعَهُمْ هٰذِهِ السَّجْدَةَ لَيْسَ مِنْ أَفْعَالِ الصَّلَاةِ ځکه چې د دې خلکو د سجدې د آیت اورېدل د لمانځه له افعالو څخه نه دي وَسَجَدُوْهَا بَعْدَهَا |

او تر لمانځه وروسته به سجده وکړي لِتَحَقُّقِ سَبَبِهَا ځکه د سجدې سبب متحقق سو وَلَوْسَجَدُوْهَا فِي الصَّلَاةِ او که دې خلکو په لمانځه کي سجده وکړه لَمْ يُجْزِهِمْ نو دا د دوی لپاره کافي نه ده لِأَنَّهُ نَاقِصٌ ځکه چي دا سجده ناقصه ده لِمَكَانِ النَّهْيِ ځکه چي (په لمانځه کي له سجدې څخه) منع سوې ده فَلَا يَتَأَدَّى بِهِ الْكَامِلُ نو په دې سره به کامله سجده نه اداء کېږي.

**اللغات**: ﴿تحقق﴾ د تفعّل مصدر دی: ثابتېدل.

**تشريح**: **صورت د مسئلې**: دا دی که د لمانځه په حالت کي يو څو خلکو له يو داسې سړي څخه د سجدې آيت واورېدی چي هغه د دوی سره په لمانځه کي شريک نه وو، نو دا خلک دې د لمانځه په حالت کي سجدهٔ تلاوت نه کوي، ځکه چي دا سجده د لمانځه سجده نه ده، او د لمانځه سجده ځکه نه ده چي د دې خلکو دا اورېدل د لمانځه له افعالو څخه نه دي. ځکه چي د لمانځه افعال خو يا فرض وي يا واجب يا سنت، او د دې سجدې آيت اورېدل له دې څخه يو شی هم نه دی، لنهٔ دا چي سجده د لمانځه له افعالو څخه نه ده، او کوم شی چي د لمانځه له افعالو څخه نه وي نو په لمانځه کي دننه د هغه اداء کول هم جائز نه دي، لهذا ثابته سوه چي دا خلک دې په لمانځه کي دننه سجدهٔ تلاوت نه کوي، خو تر لمانځه وروسته سجدهٔ تلاوت کول واجب دي، ځکه چي د سجدې د واجب کېدلو سبب مخکي پيدا سوی دی چي هغه د سجدې د آيت اورېدل دي، يعني څرنګه چي دوی په لمانځه کي دننه د سجدې آيت واورېدی او هلته د سجدې کول صحيح نه وو، نو ځکه به تر لمانځه وروسته دا سبب متحقق کېږي او پر دوی به سجده واجب وي.

ولو سجدوها الخ د دې حاصل دا دی چي که بيا هم دې خلکو په لمانځه کي سجدهٔ تلاوت وکړه، نو دا جائز نه دي، او تر لمانځه وروسته بيا د دې راګرځول واجب دي، ځکه که په لمانځه کي دننه د دې ادا‌ء نه جائز ومنل سي، نو دا اداء به ناقص وي، ځکه چي د لمانځه له افعالو څخه ماسوا نور افعال په لمانځه کي دننه اداء کول مشروع او صحيح نه دي، لنهٔ دا چي دا سجده به ناقص وي، او د اورېدلو په وجه چي کومه سجده واجب سوې ده هغه کامله ده، او قاعده دا ده چي کامل واجب په ناقصه تو ګه سره نه اداء کېږي، نو ځکه به د دې خلکو لپاره په لمانځه کي دننه سجدهٔ تلاوت کول صحيح نه وي.

## که په ذکر سوي صورت کي سجده وکړي نو څه حکم دی؟

قَالَ: وَأَعَادُوْهَا فرمايي: چي ټوله خلک به دا سجده را وګرځوي لِتَقَرُّرِ سَبَبِهَا ځکه چي د سجدې سبب ثابت سو وَلَمْ يُعِيْدُوا الصَّلَاةَ او لمونځ به نه راګرځوي لِأَنَّ مُجَرَّدَ السَّجْدَةِ لَا يُنَافِيْ إِحْرَامَ الصَّلَاةِ ځکه چي صرف سجده د لمانځه له احرام څخه منافي نه ده وَفِي النَّوَادِرِ أَنَّهَا تُفْسِدُ او د نوادر په روايت کي دي چي لمونځ فاسديږي لِأَنَّهُمْ زَادُوْا فِيْهَا مَا لَيْسَ مِنْهَا ځکه چي دې خلکو په لمانځه کي داسې سجده زياته کړه چي هغه له لمانځه څخه نه ده وَقِيْلَ هُوَ قَوْلُ مُحَمَّدٍ رَحِمَهُ اللهُ او بعضي حضراتو ويلي دي چي دا د امام محمد رَحِمَهُ الله قول دی.

**اللغات**: ﴿إحرام﴾ تکبير تحريمه.

**تشريح**: امام قدوري رَحِمَهُ الله وايي چي په لمانځه کي دې خلکو کومه سجده وکړه، هغه شرعاً صحيح نه ده، نو ځکه تر لمانځه وروسته دي هغه سجدهٔ تلاوت را وګرځوي، ځکه چي د سجدهٔ تلاوت سبب يعني اورېدل راغله، او څرنګه چي لمونځ فاسد سوی نه دی، نو ځکه د لمانځه د راګرځولو ضرورت نسته، او لمونځ ځکه فاسد سوی نه دی چي لمونځ خو يا

د یو رکن پرېښوولو په وجه فاسدیږي، یا په لمانځه کې د مخالف او منافي شي راتلولو په وجه فاسدیږي، او دلته دواړه خبري نسته، ځکه چې سجده له لمانځه څخه منافي نه ده.

د نوادر روایت دا دی چې په دې صورت کې لمونځ فاسدیږي، ځکه چې دې خلکو په لمانځه کې یو داسي شی زیات کړی چې هغه د لمانځه له افعالو څخه نه دی، ځیني حضراتو ویلي دي چې د لمانځه فاسدېدل د امام محمد رَحِمَهُ الله قول دی او د شیخینو رَحِمَهُمَا الله په نېز په دې صورت کې لمونځ نه فاسدیږي، د اختلاف بنیاد دا دی چې د امام محمد رَحِمَهُ الله په نېز د سجدې زیاتول لمونځ فاسدوي، او د شیخینو رَحِمَهُمَا الله په نېز په هغه زیاتوب سره لمونځ نه فاسدیږي کوم زیاتوب چې تر یو رکعت کم وي.

## د خارجي (دباديني) سړي لپاره د سجدې آیت اورېدل او بیا په لمانځه کې شرکت کول

فَإِنْ قَرَأَهَا الْإِمَامُ بیا که امام د سجدې آیت ووایی وَسَمِعَهَا رَجُلٌ لَيْسَ مَعَهُ فِي الصَّلَاةِ او یو داسي سړي واورېدی چې هغه د امام سره په لمانځه کې شریک نه وو فَدَخَلَ مَعَهُ بَعْدَمَا سَجَدَهَا الْإِمَامُ بیا د امام تر سجدې کولو وروسته هغه سړی د امام سره په لمانځه کې شریک سو لَمْ يَكُنْ عَلَيْهِ أَنْ يَسْجُدَهَا نو پر هغه سجده کول واجب نه دي لِأَنَّهُ صَارَ مُدْرِكًا لَهَا بِإِدْرَاكِ الرَّكْعَةِ ځکه چې هغه سړی د رکعت په نیولو سره د سجدې نیوونکی (هم) سو وَإِنْ دَخَلَ مَعَهُ قَبْلَ أَنْ يَسْجُدَهَا او که د امام تر سجدې کولو مخکې هغه د امام سره په لمانځه کې شریک سو سَجَدَهَا مَعَهُ نو د امام سره دې سجده وکړي لِأَنَّهُ لَوْ لَمْ يَسْمَعْهَا ځکه که ده د سجدې آیت اورېدلی هم نه وای سَجَدَهَا مَعَهُ نو (هم) به یې د امام سره سجده کولای فَهٰهُنَا أَوْلَىٰ نو دلته به په درجه اولیٰ سره سجده کوي وَإِنْ لَمْ يَدْخُلْ مَعَهُ او که دا سړی د امام سره شریک نه سو سَجَدَهَا وَحْدَهُ نو یوازې دې سجده وکړي لِتَحَقُّقِ السَّبَبِ ځکه چې (د سجدې) سبب ثابت سو.

**اللغات**: ﴿هٰهُنَا﴾ دلته، ﴿تَحَقُّق﴾ ثابتېدل.

**تشریح**: **صورت د مسئلې**: دا دی که امام په لمانځه کې د سجدې آیت تلاوت کړی او یو داسي سړي دا آیت واورېدئ چې هغه په لمانځه کې د امام سره شریک نه وو، او امام سجده وکړه، بیا دا سړی په همدغه رکعت کې د امام سره شریک سو، نو پر دې سړي جلا سجده کول واجب نه دي، ځکه چې د دې رکعت په نیولو سره دا سړی د سجدې هم نیوونکی سو، او که په دویم رکعت کې د امام سره شریک سو نو د لمانځه تر فراغت وروسته دې سجده وکړي، ځکه چې کله دې سړي هغه رکعت نه ونیوی په کوم چې د سجدې آیت ویل سوی وو نو نه یې قرائت ونیوی او نه یې د قرائت متعلقات یعني سجده ونیول، نو کله چې یې سجده نه ونیول نو تر فراغت وروسته به سجده پر واجب وي.

او که دا سړی د امام تر سجدهٔ تلاوت کولو مخکې د امام سره شریک سو، نو د امام سره دې سجده و کړي، ځکه که بالکل دې سړي د امام سجده اورېدلې نه وای، په دې توګه چې امام د سجدې آیت پټ ویلی وای نو هم به د امام سره پر ده سجده کول واجب وای، نو په دې صورت کې پر ده چې ده د سجدې آیت اورېدلای هم دی نو په درجه اولیٰ سره به پر ده سجده کول واجب وي، او که دا سړی د امام سره شریک نه سو نو له لمانځه څخه دباندي به پر ده سجده واجب وي، ځکه چې د سجدې د واجب کېدلو سبب یعني اورېدل ثابت سو (یعني د سجدې آیت خویې واورېدی).

## د لمانځه سجده تلاوت له لمانځه څخه دباندي اداء کول

وَكُلُّ سَجْدَةٍ وَجَبَتْ فِي الصَّلَاةِ او هر هغه سجدهٔ تلاوت چي په لمانځه کي واجب سي فَلَمْ يَسْجُدْهَا فِيهَا لېکن لمونځ کونکي يې په لمانځه کي اداء نه کړي لَمْ تُقْضَ خَارِجَ الصَّلَاةِ نو له لمانځه څخه دباندي به (هم) د هغې قضاء نه راوړل کيږي لِأَنَّهَا صَلَاتِيَّةٌ ځکه دا د لمانځه سجده ده وَلَهَا مَزِيَّةُ الصَّلَاةِ او دې سجدې ته د لمانځه خصوصيت حاصل دی فَلَا تَتَأَدّٰى بِالنَّاقِصِ نو په ناقصه توګه به نه اداء کيږي.

**اللغات:** ﴿مَزِيَّة﴾ فضيلت، خصوصيت، ځانګړتيا، ﴿تَتَأَدّٰى﴾ د تفعل د باب مضارع صيغه ده: اداء کيدل.

**تشريح:** په دې عبارت سره امام قدوري رَحِمَهُ الله د يوې کُلي قاعدې و طرف ته اشاره کوي، قاعده دا ده چي هره هغه سجده چي په لمانځه کي دننه د سجدې د آيت په تلاوت کولو سره واجبه سي او په لمانځه کي دننه اداء نه سي، نو له لمانځه څخه دباندي (هم) په اداء کولو سره نه اداء کيږي. دليل دا دی چي دا سجده د لمانځه سجده ده، د لمانځه د سجدې مطلب دا دی چي د کوم آيت په تلاوت سره چي دا سجده واجب سوې ده، د هغه آيت تلاوت د لمانځه له افعالو څخه دی، نو دا سجده د لمانځه سجده سو، او بيا د لمانځه په وجه سره په دې کي فضيلت راغلی، نو په لمانځه کي د سجدهٔ تلاوت واجب کېدل کامل سو، او کوم شی چي کامل واجب سوی وي، هغه په ناقصه توګه سره نه اداء کيږي، او دا خبره ښکاره ده چي له لمانځه څخه دباندي د لمانځه په څېر فضيلت نسته، نو له لمانځه څخه دباندي اداء کېدونکې سجده به ناقصه وي، نو ځکه به له لمانځه څخه دباندي صحيح هم نه وي.

## که يو آيت له لمانځه څخه دباندي هم تلاوت کړي او په لمانځه کي هم نو څه حکم دی؟

وَمَنْ تَلَا سَجْدَةً او که يو چا د سجدې آيت تلاوت کړی فَلَمْ يَسْجُدْهَا بيا يې سجده نه وکړه حَتّٰى دَخَلَ فِي صَلَاةٍ تر دې چي په لمانځه کي داخل سو فَتَلَاهَا نو هغه د سجدې آيت يې (په لمانځه کي) هم ووايی وَسَجَدَ او سجده يې وکړه أَجْزَأَتْهُ السَّجْدَةُ عَنِ التِّلَاوَتَيْنِ نو دا سجده له دواړو تلاوتونو څخه د ده لپاره کافي ده لِأَنَّ الثَّانِيَةَ أَقْوٰى ځکه چي دويمه سجده زياته قوي ده لِكَوْنِهَا صَلَاتِيَّةً ځکه چي هغه د لمانځه سجده ده فَاسْتَتْبَعَتِ الْأُولٰى نو دا سجده به اولي سجدې ته شامله وي(او که فَاسْتُتْبِعَتِ يعني په معلومه صيغه سره وويل سي نو معنیٰ يې داسي کيږي: نو اوله سجده به د دې سجدې تابع وي) وَفِي النَّوَادِرِ يَسْجُدُ أُخْرٰى بَعْدَ الْفَرَاغِ او په نوادر کي دي چي د لمانځه تر فراغت وروسته به دويمه سجده کوي لِأَنَّ لِلْأُولٰى قُوَّةَ السَّبْقِ ځکه چي اولي سجدې ته د مخکيتوب قوت حاصل دی فَاسْتَوَيَا نو دواړي سجدې برابر سوې قُلْنَا: لِلثَّانِيَةِ قُوَّةُ اتِّصَالِ الْمَقْصُودِ مونږ جواب ورکوو: چي دويمي سجدې ته د مقصود سره د متصلوالي قوت(هم) حاصل دی فَتَرَجَّحَتْ بِهَا نو د دې قوت په وجه به دويمي سجدې ته ترجيح حاصله وي.

**اللغات:** ﴿أَقْوٰى﴾ اسم تفضيل دی: زيات طاقتور، ﴿سَبْق﴾ د فتح مصدر دی: مخکي کېدل، اول کېدل.

**تشريح:** صورت د مسئلې: دا دی که يو سړي له لمانځه څخه دباندي د سجدې آيت تلاوت کړی، خو سجده يې نه وکړه، او بيا په لمانځه کي مشغول سو، او په لمانځه کي يې بيا هغه د سجدې آيت تلاوت کړی، او سجده يې وکړه، نو په دې

سجده سره د هغه دواړي سجدې اداء سوې، او تر لمانځه وروسته پر هغه بله سجدهٔ تلاوت واجب نه ده، ځکه چي دا دويمه سجده چي هغه په لمانځه کي اداء کړه د لمانځه سجده ده، نو په دې حواله دې ته څه غوندي طاقت او خصوصيت حاصل دی، نو اوله سجده د دې سجدې په ضمن کي اداء سوه، نو د جلا سجدې کولو ضرورت نسته.

وفي النوادر الخ فرمايي چي په نوادر کي دا حکم ذکر سوی دی چي پر دې سرې تر لمانځه وروسته يوه بله سجده کول واجب دي، ځکه چي له لمانځه څخه دباندي چي کومه سجده پر دې سرې واجب سوې ده، هغه د لمانځه په سجدې سره نه اداء کيږي، ځکه چي هغه مخکي ده يعني هغې ته تقدّم او سبقت حاصل دی، نو ځکه په قوت کي دواړي سجدې سره برابري دي، او کله چي دواړه برابري دي، نو يوه به د بل په ضمن کي داخليږي هم نه، او تر لمانځه وروسته به بله سجده کوي.

قلنا الخ زموږ له طرفه جواب دا دی چي دويمي سجدې ته يو بل قوت هم حاصل دی، او هغه قوت دا دی چي دا سجده د اداء سره متصله او جوخت ده، يعني څرنګه چي سجده واجب سوه، په هغه ګړي يې اداء کړه، د دې په خلاف اولي سجدې ته دا خصوصيت حاصل نه دی، ځکه چي هغه له لمانځه څخه دباندي واجب سوې ده او تر اوسه نه ده اداء سوې، نو ځکه دې سجدې ته به تر مخکنی سجدې ترجيح حاصله وي او هغه به د دې دويمي سجدې تابع وي او د دې په ضمن کي به اداء کيږي، او د جلا کولو به يې هيڅ ضرورت نه وي.

## که يو آيت له لمانځه څخه دباندي تلاوت کړي او سجده وکړي
## او په لمانځه کي بيا هغه آيت تلاوت کړي نو څه حکم دی؟

> **وَإِنْ تَلَاهَا** او که يو چا (له لمانځه څخه دباندي) د سجدې آيت تلاوت کړی **فَسَجَدَ** او (د هغه لپاره) يې سجده وکړه **ثُمَّ دَخَلَ فِي الصَّلَاةِ** او بيا په لمانځه کي داخل سو **فَتَلَاهَا** او همدغه آيت يې (بيا) تلاوت کړي **سَجَدَ لَهَا** نو د دې لپاره به (هم) سجده کوي **لِأَنَّ الثَّانِيَةَ هِيَ الْمُسْتَتْبِعَةُ** ځکه چي دويمه سجده خو (په خپله) تابع جوړونکې ده (نو د اولي سجدې به څنګه تابع سي) **وَلَا وَجْهَ إِلَى إِلْحَاقِهَا بِالْأُولَى** او د اولي سجدې سره د دې (لمانځه د) سجدې د ملحق کولو هيڅ وجه نسته **لِأَنَّهُ يُؤَدِّي إِلَى** ځکه چي دا الحاق د دې خبري وطرف ته رسول کوي **سَبْقِ الْحُكْمِ عَلَى السَّبَبِ** چي حکم به تر سبب مخکي سي.

**اللغات:** ﴿المُسْتَتْبِعَة﴾ د استفعال د باب مؤنث اسم فاعل دی: تابع جوړول، تابع کول. ﴿إلحاق﴾ د افعال مصدر دی: يو ځای کول، جوختول، مېلول.

**تشريح:** **مسئله:** دا ده که يو چا له لمانځه څخه بهر د سجدې آيت تلاوت کړی او سجده يې وکړه، بيا په لمانځه کي داخل سو، او همدغه د سجدې آيت يې تلاوت کړی، نو اوس حکم دا دی چي دا سړی دې په لمانځه کي هم سجده وکړي، او د لمانځه سجده به د اولي سجدې نه تابع کوي، (يعني داسي به نه کوي چي اوله سجده د دواړو سجدو لپاره کافي وګرځوي) ځکه چي د متبوع جوړېدلو صلاحيت په دويمه سجده کي سته، په اوله سجده کي نسته، ځکه چي دويمي سجدې ته د لمانځه د اتصال خصوصيت حاصل دی، نو کله چي دمتبوع جوړېدلو صلاحيت په دويمه سجده کي سته نو ښکاره ده چي دا به د اولي تابع نه ګرځول کيږي، کنې له تابع څخه به متبوع جوړ سي کوم چي صحيح نه دي. او که دويمه سجده د اولي سره ملحق سي نو دا خرابي هم پيښېږي چي حکم به پر سبب مخکي سي، ځکه چي کله

دويمه سجده د اولي سجدې سره ملحق کړی سي نو مطلب يې به دا سي چې د دويمي سجدې لپاره تلاوت وروسته وسو او سجده مخکي وسوه (يعني حکم کوم چې سجده ده مخکي اداء سوه او د سجدې سبب يعني آيت وروسته تلاوت کړی سو)، او دا له قاعدې څخه خلاف خبره ده، نو ځکه به د لمانځه سجده د اولي سجدې نه تابع کيږي، او په لمانځه کي به جلا سجده کوي.

## که په يوه مجلس کي د سجدې آيت څو ځله وويل سي نو څه حکم دی؟

وَمَنْ كَرَّرَ تِلَاوَةَ سَجْدَةٍ وَاحِدَةٍ فِي مَجْلِسٍ وَاحِدٍ او چا چې په يوه مجلس کي د سجدې آيت څو واره تلاوت کړی أَجْزَأَتْهُ سَجْدَةٌ وَاحِدَةٌ نو د هغه لپاره يوه سجده کافي ده فَإِنْ قَرَأَهَا فِي مَجْلِسِهِ او که (يو واريې) په خپل مجلس کي د سجدې آيت ووايي فَسَجَدَهَا او سجده يې وکړه ثُمَّ ذَهَبَ بيا ولاړی وَرَجَعَ او بيرته راغلی فَقَرَأَهَا او (دويم واريې) بيا د سجدې آيت ووايي سَجَدَهَا ثَانِيَةً نو دويمه سجده به هم کوي وَإِنْ لَمْ يَكُنْ سَجَدَ لِلْأُولَى او که د اول آيت لپاره يې سجده کړې نه وه فَعَلَيْهِ السَّجْدَتَانِ نو پر هغه به دوې سجدې وي فَالْأَصْلُ أَنَّ مَبْنَى السَّجْدَةِ عَلَى التَّدَاخُلِ دَفْعًا لِلْحَرَجِ نو اصل قاعده دا ده چې د سجدې دارومدار د تکليف ليري کولو په وجه پر تداخل باندي دی وَهُوَ تَدَاخُلٌ فِي السَّبَبِ او دا د سبب تداخل دی دُونَ الْحُكْمِ نه د حکم وَهَذَا أَلْيَقُ بِالْعِبَادَاتِ او د سبب تداخل د عباداتو سره زيات مناسب دی وَالثَّانِي بِالْعُقُوبَاتِ او دويم (يعني د حکم تداخل) د عقوباتو سره زيات مناسب دی وَإِمْكَانُ التَّدَاخُلِ عِنْدَ اتِّحَادِ الْمَجْلِسِ او د مجلس د اتحاد (يو والي) په صورت کي د تداخل امکان سته لِكَوْنِهِ جَامِعًا لِلْمُتَفَرِّقَاتِ ځکه چې مجلس بېلا بېل شيان جمع کوي فَإِذَا اخْتَلَفَ لېکن کله چې مجلس مختلف سي عَادَ الْحُكْمُ إِلَى الْأَصْلِ نو حکم د اصل و طرف ته راګرځي وَلَا يَخْتَلِفُ بِمُجَرَّدِ الْقِيَامِ او صرف په ولاړه سره مجلس نه بدليږي بِخِلَافِ الْمُخَيَّرَةِ په خلاف د اختيار ورکړل سوي ښځي لِأَنَّهُ دَلِيلُ الْإِعْرَاضِ ځکه چې د هغې ولاړېدل د اعراض دليل دی وَهُوَ الْمُبْطِلُ هُنَالِكَ او اعراض کول دلته اختيار باطلوي وَفِي تَسْدِيَةِ الثَّوْبِ يَتَكَرَّرُ الْوُجُوبُ او د کپړو (جامو) په اوودلو کي د سجدې وجوب مکرر کيږي [پوره تفصيل په تشريح کي وګوره] وَفِي الْمُنْتَقِلِ مِنْ غُصْنٍ إِلَى غُصْنٍ كَذَلِكَ فِي الْأَصَحِّ همدارنګه د صحيح قول مطابق له يوه ښاخه څخه تر بل ښاخه پوري په منتقل کېدلو کي هم د سجدې وجوب مکرر کيږي وَكَذَا فِي الدِّيَاسَةِ لِلِاحْتِيَاطِ او په غوبل کولو (غله ميده کولو) کي هم دغه حکم دی (يعني د سجدې وجوب مکرر کيږي).

**اللغات:** ﴿تَدَاخُل﴾ د تفاعل مصدر دی: يو په بل ننوتل، يو په بل کي داخلېدل او يو شی ځني جوړېدل. ﴿تَسْدِيَة﴾ د تفعيل مصدر دی: تو کر وودل (اوبدل). ﴿غُصْن﴾ ښاخ، مراد ځني هغه لرګيان دي چې جولا په هغه سره تو کر وودي. ﴿دِيَاسَة﴾ غوبل، په درمند ځای کي په غوايانو غله ميده کول.

**تشريح:** **صورت د مسئلې:** دا دی که يو سړي په يوه مجلس کي د سجدې يو آيت څو واره تلاوت کړی، نو د هغه لپاره يوه سجده کول کافي دي، او د څو واره تلاوت کولو په وجه څو سجدې نه واجبيږي، هو! که هغه د سجدې آيت تلاوت

کړي، بيا يو ځای ولاړ ي، بيرته راغلی بيا يې هغه آيت تلاوت کړی نو دويمه سجده به کوي، ځکه چې د ده مجلس بدل سو، همدارنګه که ده اوله سجده کړې نه وي، نو اوس به دوې سجدې کوي، يوه به د اول تلاوت وي، او بله به د دويم تلاوت وي.

صاحب د هدايې فرمايي: چې د قياس په تقاضا د هر آيت په ويلو سره د جلا جلا سجدې واجبېدل پکار دي، ځکه چې تلاوت د سجدې سبب دی، نو هر څومره چې سبب يعني تلاوت تکرارېږي هغومره به حکم يعني سجده مکرر کيږي، خو دلته استحساناً د حرج ليري کولو لپاره تداخل کيږي يعني د سجدې آيت چې هر څو واره په يوه مجلس کي تکرار سي هغه ټوله وارونه به په يو سجده کي داخليږي او يوه سجده به د ټولو لپاره کافي وي.

حرج او تکليف ځکه دی چې مسلمانان د قرآن د زده کړې او ښوونې (تعليم) متحاج دي، او زده کړه او ښوونه بغير له تکرار څخه نه حاصليږي، نو که په يوه مجلس کي د سجدې د يوه آيت په بار بار تکرار سره سجده لازمه کړی سي نو پر مسلمانانو به حرج سي، او په شريعت کي حرج ليري سوی دی، نو ځکه وويل سوه چې په دې صورت کي يوه سجده واجب ده.

**د تداخل قسمونه:** صاحب د هدايې رَحِمَهُ الله په دې باره کي يوه بله قاعده بيانوي فرمايي چې د تداخل دوه قسمونه دي: (١) تداخل فی السبب، (٢) تداخل فی الحکم، تداخل فی السبب دا دی چې اسباب خو متعدد وي، لېکن حکم يو وي، مثلاً د سجدې آيت ويل د سجدې سبب دی، نو که لس واره د سجدې آيت تلاوت کړي سي، نو لس سجدې سوې، او سجده کول حکم دي، نو اوس چې لس واره د آيت تلاوت يو وار تلاوت وګرځول سو نو دا په سبب کي تداخل سو، ځکه چې لس سببونه په يوه سبب کي داخل سول، او د دې په وجه سره يوه سجده لازم سوه چې هغه يو حکم دی، او د تداخل فی الحکم مطلب دا دی چې د هر هر سبب جلا جلا حکم وي خو د تداخل په وجه د هر سبب جلا جلا حکم ثابت نه سي، مثلاً يو څوک څو واره زنا وکړي نو دا زنا د څو واره حد لګولو سبب سوه، يعني هره زنا د جلا حد لګولو سبب سوه، نو سببونه جلا جلا سوه، خو د ټولو لپاره به يوه حد لګيږي نو دا د هر هر سبب په جلا جلا حکم کي تداخل سو، او بيا د عباداتو لپاره تداخل فی السبب زيات مناسب دی، او د عقوباتو لپاره تداخل فی الحکم زيات مناسب دی، تداخل فی السبب يعني په سبب کي دننه تداخل په دې وجه د عباداتو لپاره مناسب دی ځکه چې مسلمانان د قرآن د تعليم محتاجه دي، او دا خبره منل سوې ده چې د تعليم لپاره تکرار ضروري دي، ځکه چې په تکرار او بار بار کولو سره په ښه ډول خبري په ذهن کي خوندي کيږي، او بيا ژر له ذهن څخه نه وځي، حاصل دا چې د قرآن د تعليم لپاره تکرار ضروري دی، نو اوس که موږ هر وار د سجدۀ تلاوت په وجه جلا جلا سجده واجب وګرځوو نو ښکاره ده چې په دې کي ډېر تکليف او حرج دی، نو د تکليف ليري کولو لپاره په عباداتو کي تداخل فی السبب زيات مناسب دی. د دې په خلاف په عقوباتو او تعزيراتو کي تداخل فی الحکم زيات مناسب دی، ځکه چې الله رحيم ذات دی، نو سبب يعني ګناه چې هر څومره وي حکم به يو وي يعني په حکم کي به تداخل کيږي او عقاب او حد به يو وار ورکول کيږي. نو په عقوباتو کي تداخل فی الحکم زيات مناسب دی، همدا وجه ده چې په حديث کي ويل سوي دي: "ستاسو چې څومره وس وي د حد ساقطولو کوښښ کوئ".

**د تداخل شرط:** له وإمكان التداخل څخه د تداخل شرط راښيي، فرمايي چې د تداخل شرط دا دی چې آيت او مجلس به يو (واحد) وي، دليل دا دی چې حرج د مجلسِ واحده او د آيتِ واحده په صورت کي راځي، او له دې څخه ماسوا نور ټوله صورتونه به پر اصل يعني پر قياس پاته وي، بل دليل دا دی چې تداخل هغه وخت صحيح کيږي چې يو داسي جامع شی پيدا سي چې ټوله سببونه جمع کړي، او ټوله سببونه د يوه سبب په درجه کي وګرځوي، او داسي جامع شی

مجلس دی، ځکه چي مجلس جلا جلا او متفرق شیان جمع کوي، مثلاً که یو څوک جلا جلا لړ قی وکړي نو که مجلس یو وو، نو ټوله به جمع کیږي، نو له دې څخه معلومه سوه چي مجلس بیلا بیل شیان جمع کوي، همدارنګه ی مجلس یو وو او څو واره د سجدې آیت وویل سو نو بیا به هم یوه سجده لازمیږي، او که مجلس یو نه وو، نو حکم به د خپل اصل یعني د قیاس و طرف ته ګرځي، یعني دیوه آیت په بار بار تلاوت کولو سره به بار بار سجده واجبیږي.

**د مجلس اتحاد او ختلاف کله ثابتیږي:** پاته سوه دا خبره چي د مجلس بدلېدل کله متحقق کیږي، نو په دې باره کي صاحب د کفایې وایي چي که له اول مجلس څخه را پورته سي او لیري ولاړ سي نو د مجلس د بدلېدلو حکم به لګیږي، او که نژدې ولاړ سي، نو د مجلس دیو والي (اتحاد) حکم به لګیږي، او د نژدې او لیري په مینځ کي فرق دا دی چي د دوو یا دریو قدمونو په اندازه تګ کول نژدې اندازه ده، او له دې څخه زیات لیري اندازه ده، صاحب د هدایې رَحِمَهُ الله فرمایي چي صرف په ولاړېدلو سره مجلس نه مختلف کیږي، بلکې تر څو چي له دې مجلس څخه نه ووځي او ولاړ نه سي تر هغه وخته به د مجلس د بدلېدلو حکم نه کیږي، په خلاف د مخیّرې ښځي، مخیّره هغه ښځي ته ویل کیږي چي خاوند هغې ته اختیاری نفسټ وواېي او د طلاق اختیار ورکړي، نو که مخیّري ښځي د خیار الفاظ واورېدل او ولاړه سوه نو د دې خیار باطلیږي، لېکن د خیار باطلېدل یې په دې وجه نه دي چي مجلس بدل سو بلکې په دې وجه دي چي ولاړېدل د اعراض دلیل دی، او صراحةً یا دلالةً اعراض د مخیرې ښځي خیار باطلوي.

ولی تسدیة الثوب الخ فرمایي: [۱] که یو سړی د ټوکر او کپړو د اوبدلو (وودلو) کار کوی، او د کار په دوران کي د ټوکر د اوږده تار (یعني هغه تار چي د ټوکر په اوږدول کي وي او تقریباً ډېر اوږد وي) د وودلو لپاره له یوه ځای څخه بل ځای ته تلی، او د تګ او راتګ په وخت کي یې بار بار د سجدې آیت وایی، نو څومره واره چي یې آیت ویلی وي، هغومره به سجدهٔ تلاوت پر واجب وي، ځکه چي د ټوکر اوږد تار تقریباً دېرش میټره اوږد وي، نو د دې د وودلو لپاره چي له یوه ځای څخه بل ځای ته منتقل کیږي، نو په دې سره مجلس بدلیږي، او د مجلس په بدلېدلو سره حکم او سبب مکرر کیږي، نو ځکه به په دې صورت کي پر ټوکر وودونکي هغومره سجدې واجب وي څومره چي یې آیت تلاوت کړی وي. [۲] همدارنګه که یو سړی یو وار د درختي پر یوه ښاخ کښېنستی او د سجدې آیت یې تلاوت کړی او بیا پر بل ښاخ کښېنستی او همدغه آیت یې بیا تلاوت کړی، نو اوس به هم پر ده دوې سجدې واجب وي، ځکه چي د ښاخ بدلېدل د مجلس د بدلېدلو په درجه کي دي. [۳] او همدغه حکم په هغه صورت کي هم دی چي کله یو څوک په درمندځای[1] کي په غوایاتو فصل او غله (لکه اوربشي او داسي نور) میده کوي، او د درمند ځای په ګردی (ګول) دائره کي غوایان راګرځوي چي له اوربشو او داسي نورو څخه دانه را ووځي، نو دا ګردی دائره تقریباً پنځلس میټره وي. نو کله چي دی په دې دوران کي هر وار د سجدې آیت وایي، نو جلا جلا سجده به پر واجب وي، ځکه چي د غوایاتو په راګرځولو سره هم مجلس بدلیږي، او احتیاط هم په دغه کي دی چي د هر آیت لپاره جلا سجده وکړي.

## که په سامع او تالي کي د یوه مجلس بدل سي نو څه حکم دی؟

وَلَوْ تَبَدَّلَ مَجْلِسُ السَّامِعِ او که د اورېدونکي مجلس بدل سي دُونَ التَّالِي نه د تلاوت کونکي يَتَكَرَّرُ الْوُجُوبُ عَلَى السَّامِعِ نو (صرف) پر اورېدونکي وجوب مکرر کیږي لِأَنَّ السَّبَبَ فِي حَقِّهِ السَّمَاعُ ځکه چي د سجدې د وجوب

[1] درمند ځای: د غلو، دانو، حبوبو او د فصل میده کولو ځای ته ویل کوم چي ملوّر یعني ګول او ګردی وي.

سبب د اورېدونكي په حق كې د تلاوت اورېدل دي وَكَذَا إِذَا تَبَدَّلَ مَجْلِسُ التَّالِيْ دُوْنَ السَّامِعِ او همدارنګه چې كله د تلاوت كونكي مجلس بدل سي نه د اورېدونكي عَلىٰ مَا قِيْلَ څرنګه چې ويل سوي دي وَالْأَصَحُّ أَنَّهُ لَا يَتَكَرَّرُ الْوُجُوبُ عَلَى السَّامِعِ او صحيح دا ده چې پر اورېدونكي وجوب نه مكرر كيږي لِمَا قُلْنَا د هغه دليل په وجه چې موږ مخكې بيان كړی.

**تشريح: صورت د مسئلې:** دا دی كه د آيت اورېدونكي مجلس بدل سو، خو د تلاوت كونكي مجلس بدل نه سو، نو په اتفاق سر پر سامع وجوب د سجدې مكرر كيږي (يعني د چا مجلس چې بدل سي، نو په اتفاق سره پر هغه وجوب د سجدې مكرر كيږي).

**دليل:** دا دی چې د اورېدونكي په حق كې د سجدهٔ تلاوت د وجوب سبب اورېدل دي، او څرنګه چې د مجلس بدلېدلو په وجه اورېدل مكرر كيږي، نو په دې وجه به وجوب د سجدې هم مكرر وي، او كه د تلاوت كونكي مجلس بدل سو، او د اورېدونكي مجلس بدل نه سو، نو د علامه فخر الاسلام رَحِمَهُ الله د قول مطابق په دې صورت كې هم پر اورېدونكي وجوب د سجدې مكرر كيږي.

**دليل:** دا دی چې د اورېدلو بنياد پر تلاوت دی، نو كه د تلاوت كونكي مجلس مختلف سي، نو د اورېدونكي پر مجلس به هم د مجلس د اختلاف حكم لګيږي، او پر ده به هم وجوب د سجدې مكرر كيږي.

صاحب د هدايې رَحِمَهُ الله فرمايي چې صحيح خبره دا ده چې په دې صورت كې پر اورېدونكي وجوب د سجدې نه مكرر كيږي، ځكه چې د اورېدونكي په حق كې د سجدې د واجب كېدلو سبب اورېدل دي، نو تر څو چې د اورېدونكي مجلس بدل نه سي تر هغه وخته به په اورېدلو كې تكرار نه راځي، او تر څو چې په اورېدلو كې تكرار نه وي راغلی، تر هغه وخته به وجوب د سجدې هم نه مكرر كيږي.

## د سجده تلاوت طريقه

وَمَنْ أَرَادَ السُّجُوْدَ او څوك چې د سجدهٔ تلاوت كولو اراده وكړي كَبَّرَ نو هغه دې تكبير وكړي وَلَمْ يَرْفَعْ يَدَيْهِ لېكن خپل لاسونه دې نه پورته كوي وَسَجَدَ او سجده دې وكړي ثُمَّ كَبَّرَ بيا دې تكبير وكړي وَرَفَعَ رَأْسَهُ او سر دې راپورته كړي اعْتِبَارًا بِسَجْدَةِ الصَّلَاةِ د لمانځه پر سجدې په قياسولو سره وَهُوَ الْمَرْوِيُّ عَنِ ابْنِ مَسْعُوْدٍ رَضِيَ اللهُ تَعَالىٰ عَنْهُ او همدغه له ابن مسعود رَحِمَهُ الله څخه را نقل سوي دي وَلَا تَشَهُّدَ عَلَيْهِ وَلَا سَلَامَ او پر هغه نه التحيات سته او نه سلام لِأَنَّ ذٰلِكَ لِلتَّحَلُّلِ ځكه چې سلام له لمانځه څخه د وتلو لپاره وي وَهُوَ يَسْتَدْعِيْ سَبْقَ التَّحْرِيْمَةِ او له لمانځه څخه وتل د تحريمې د مخكې والي تقاضا كوي (يعني له لمانځه څخه وتل د دې خبرې تقاضا كوي چې تحريمه دې مخكې تړل سوې وي) وَهِيَ مُنْعَدِمَةٌ حال دا چې تحريمه نسته (يعني تحريمه مخكې نه ده تړل سوې).

**اللغات:** ﴿تحلل﴾ د تفعّل مصدر دی: له لمانځه څخه وتل، حلال كېدل، ﴿يستدعي﴾ د استفعال د مضارع ده: تقاضا كول، غوښتل.

**تشريح:** په دې عبارت كې د سجدهٔ تلاوت طريقه بيان سوې ده، نو طريقه يې دا ده چې پر كوم سړي سجدهٔ تلاوت واجب سي، او هغه يې د اداء كولو اراده وكړي، نو څرنګه چې د لمانځه لپاره سجده كيږي، هغه رنګه سجده دې وكړي، يعني بغير د لاسو پورته كولو څخه دې تكبير ووايي سجده دې وكړي، بيا دې تكبير ووايي سر دې راپورته كړي.

**دليل:** دا دی چې په لمانځه كې هم دغسې سجده كيږي، او له ابن مسعود ﷺ څخه د سجدهٔ تلاوت همدغه طريقه روايت سوې ده.

ولا تشهد الخ فرمايي چې پر سجده كونكي سړي نه تشهد (التحيات) ويل واجب دي، او نه سلام ګرځول، ځكه چې سلام له لمانځه څخه د وتلو او د لمانځه د ختمولو لپاره ګرځول كيږي، او له لمانځه څخه د وتلو لپاره د لمانځه شروع كول ضروري دي، او د

لمانځه د شروع کولو لپاره تحريمه ضروري ده، او دلته تحريمه نشته، نو چې تحريمه نشته، نو د لمانځه شروع کول او له لمانځه څخه وتل به هم نه وي.

**فايده:** په قدوري او هدايه کې په دې اړه څه ويل سوي نه دي، چې په سجدهٔ تلاوت کې به څه وايي، نو په دې باره کې بعضو خو دا ويلي دي چې د لمانځه په سجده کې چې څه ويل کيږي، هغه دې په سجدهٔ تلاوت کې هم وايي، او بعضي وايي چې په سجدهٔ تلاوت کې دې دا وايي: سُبْحَانَ رَبِّنَا إِنْ كَانَ وَعْدُ رَبِّنَا لَمَفْعُولًا.

## د تلاوت په دوران کې د سجدې د آيت پرېښوولو حکم

قَالَ: وَيُكْرَهُ أَنْ يَقْرَأَ السُّوْرَةَ فِي الصَّلَاةِ أَوْ غَيْرِهَا امام محمد رَحِمَهُ الله فرمايي: دا مکروه دي چې انسان په لمانځه کې يا بغير له لمانځه څخه يو سورت ووايي وَيَدَعَ آيَةَ السَّجْدَةِ او د سجدې آيت پرېږدي لِأَنَّهُ يُشْبِهُ الِاسْتِنْكَافَ عَنْهَا ځکه چې دا له دې آيت څخه د مخ اړولو سره مشابه دي (يعني په تلاوت کې د سجدې آيت پرېښوول داسې دي لکه بالکل د سجدې له آيت څخه اعراض کول) وَلَا بَأْسَ او په دې صورت کې هيڅ حرج نشته بِأَنْ يَقْرَأَ آيَةَ السَّجْدَةِ چې د سجدې آيت ووايي وَيَدَعَ مَا سِوَاهَا او له دې څخه ماسوا پرېږدي لِأَنَّهُ مُبَادَرَةٌ إِلَيْهَا ځکه چې په داسې کولو سره د سجدې و طرف ته چټکوالی (او تېزي) کول دي قَالَ مُحَمَّدٌ رَحِمَهُ اللهُ: أَحَبُّ إِلَيَّ أَنْ يَقْرَأَ قَبْلَهَا آيَةً أَوْ آيَتَيْنِ امام محمد رَحِمَهُ الله فرمايي: چې زما په نېز خوښه خبره دا ده چې تلاوت کوونکی د سجدې تر آيت مخکې يو يا دوه آيتونه (هم) ووايي دَفْعًا لِوَهْمِ التَّفْضِيلِ د سجدې د آيت د فضيلت د وهم لیرې کولو لپاره (يعني چې دا وهم رانه سي چې د سجدې آيت تر نورو آيتونو زيات فضيلت لري) وَاسْتَحْسَنُوا إِخْفَاءَهَا او فقهاؤ د سجدې د آيت په کراره ويل غوره ګرځولي دي شَفَقَةً عَلَى السَّامِعِيْنَ پر اورېدونکو د شفقت کولو لپاره، والله أعلم.

**اللغات:** ﴿يَدَعُ﴾ پرېښوول، ﴿اِسْتِنْكَافٌ﴾ اعراض کول، مخ اړول، ﴿الْمُبَادَرَةُ﴾ تېزي کول، چټکوالی کول، تلوار او چابکي کول.

**تشريح:** په دې عبارت کې امام محمد رَحِمَهُ الله د سجدهٔ تلاوت په باره کې دوه حکمونه بيان کړي دي:

(۱) اول حکم دا دی چې کوم څوک په لمانځه کې يا له لمانځه څخه علاوه يو داسې سورت ووايي چې په هغه کې د سجدې آيت وي، نو داسې دې هيڅکله نه کوي چې کله د سجدې آيت ته ورسيږي نو هغه پرېږدي، او د سجدې کولو له بيرې څخه د سجدې تر آيت واوړي، ځکه چې په داسې کولو کې د سجدې له آيت څخه د اعراض او مخ اړولو شبهه راځي، او د قرآن له هيڅ يو آيت څخه هم اعراض کول حرام دي، نو کوم شی چې د حرام سره مشابه وي، هغه که حرام نه وي، مکروه خو به ضرور وي، نو تلاوت کوونکي او تلاوت اورېدونکي ته داسې حرکت کول پکار نه دي.

(۲) دويم حکم دا دی که يو سړی صرف د سجدې آيت ووايي، شاته او مخته نور آيتونه پرېږدي، نو په دې کې هيڅ حرج نشته، ځکه چې په داسې کولو کې د سجدې د آيت و طرف ته مبادره او وړاندېتوب کول راځي، نو په دې کې د اعراض وهم او شبهه نشته، لهذا په داسې کولو کې هيڅ حرج نشته، بيا هم داسې کول ښه نه دي، ځکه چې د قرآن کريم ټول آيتونه په فضيلت او ثواب کې برابر دي، نو يو آيت ويل او نور پرېښوول مناسب نه دي، نو ځکه امام محمد رَحِمَهُ الله فرمايي چې زما په نېز د سجدې تر آيت مخکې يو يا دوه آيتونه ويل مستحب او خوښ دي، چې دا وهم پيدا نه سي چې د سجدې آيتونه تر نورو آيتونو لوړ او غوره دي.

واستحسنوا الخ فرمايي چې فقهاؤ رَحِمَهُمُ الله پر اورېدونکو (سامعينو) د شفقت او مهرباني کولو لپاره او د سجدې له تکليف څخه د خوندي کولو لپاره د سجدې آيتونه په کرار آواز ويل غوره ګرځولي دي، (ځکه چې په دې اوسني زمانه کې خلک فرائض نه اداء کوي، نو د واجباتو به څه پابندي وکړي). والله أعلم بالصواب

# بَابُ صَلَاةِ الْمُسَافِرِ

## (دا) باب د مسافر د لمانځه (د احکامو په بیان کې) دی

**تشريح:** تر دې مخکې صاحب د کتاب د سجدهٔ تلاوت احکام بیان کړل، اوس له دې ځایه د مسافر د لمانځه احکام او مسائل بیانوي، د دوی په مینځ کې د مناسبت وجه دا ده چې له دې دواړو څخه هر یو عارضي شی دی، ځکه چې نه یو انسان ټوله وخت یا د وخت زیاتره حصه سجدهٔ تلاوت کوي، او نه یو سړی ټوله وخت په سفر کې وي، لهذا په دې حواله سره د دواړو په مینځ کې اتحاد او یو والی دی، نو ځکه یو تر بل وروسته بیانوي، خو څرنګه چې د سجدهٔ تلاوت عارض په عبادت بدل سوی دی، نو په دې وجه یې د سجدهٔ تلاوت احکام د سفر تر احکامو مخکې بیان کړه، ځکه چې سفر په عبادت بدل سوی نه دی.

**د سفر لغوي او اصطلاحي معنی:** د سفر لغوي معنیٰ ده : مسافه او فاصله پرېکول، د سفر اصطلاحي معنیٰ ده: داسي کار کول چې په هغه سره احکام بدل سي، د مثال په توګه په لمانځه کې قصر، په روژو کې د افطار اجازه، د مسحې موده تر درې ورځو او درې شپو پورې رسېدل.

### د سفر شرعي مسافه (فاصله)

| |
|---|
| اَلسَّفَرُ الَّذِيْ يَتَغَيَّرُ بِهِ الْأَحْكَامُ هغه سفر چې احکام په بدلیږي دا دی أَنْ يَقْصُدَ الْإِنْسَانُ مَسِيْرَةَ ثَلَاثَةِ أَيَّامٍ وَلَيَالِيْهَا چې انسان تر درې ورځو او درې شپو پورې د تګ (مزل) اراده وکړي بِسَيْرِ الْإِبِلِ د اوښ په تګ سره وَمَشْيِ الْأَقْدَامِ (یا) د پښو په تګ سره لِقَوْلِه عَلَيْهِ الصَّلَاةُ وَالسَّلَامُ● ځکه نبي ﷺ فرمایلي دي يَمْسَحُ الْمُقِيْمُ كَمَالَ يَوْمٍ وَلَيْلَةٍ مقیم به پوره یوه ورځ او یوه شپه مسح کوي وَالْمُسَافِرُ ثَلَاثَةَ أَيَّامٍ وَلَيَالِيْهَا او مسافر به درې ورځې او درې شپې (مسح کوي) عَمَّتِ الرُّخْصَةُ الْجِنْسَ (دا) رخصت عام سو جنس (د مسافر) ته وَمِنْ ضَرُوْرَتِهٖ عُمُوْمُ التَّقْدِيْرِ او د جنس له ضرورت څخه د تقدير عموم دی (یعني د ورځو تعیین دي هم عام سي) وَقَدَّرَ أَبُوْ يُوْسُفَ رَحِمَهُ اللهُ بِيَوْمَيْنِ وَأَكْثَرِ الْيَوْمِ الثَّالِثِ (نو) امام ابو یوسف رَحِمَهُ الله د سفر اندازه دوې ورځې او د دریمي ورځې اکثره حصه متعینه کړې ده وَالشَّافِعِيُّ رَحِمَهُ اللهُ بِيَوْمٍ وَلَيْلَةٍ فِيْ قَوْلٍ او په یو قول کې امام شافعي رَحِمَهُ الله یوه ورځ او یوه شپه متعین کړې ده وَكَفٰى بِالسُّنَّةِ حُجَّةً عَلَيْهِمَا او (زموږ بیان سوی) حدیث د دواړو په خلاف د حجت لپاره کافي دی. |

**اللغات:** ﴿مَسِيْرَةَ﴾ تګ، پیمایښت، ﴿سَيْرِ﴾ تګ، چال، مزل ﴿عَمَّتْ﴾ د نصر د باب ماضي صیغه ده: عام کېدل.

**تشريح: صورت د مسئلې:** دا دی چې په کوم سفر سره احکام بدلیږي، او په لمانځه او نورو کې قصر په ثابتیږي، له هغه څخه مراد مطلق سفر نه دی، بلکې هغه سفر مراد دی چې انسان درې ورځې او درې شپې د تګ اراده وکړي، هغه که د اوښ

---

● تخريج: أخرجه ابن ماجه في كتاب الطهارة، باب ماجاء في التوقيت في المسح، حديث رقم: ۵۵۵، ۵۵۶.

په مزل(رفتار) سره تګ کوي يا ذ پياده تلونکو په رفتار سره تګ کوي، دا خبره په ذهن کي ياده ساتل پکار ده چي د هر ملک په کال کي له ټولو څخه کوچنۍ ورځ معتبره ده، همدارنګه شپه او ورځ ۴۲ ساعتونه(ګينټي) تګ کول مراد نه دي، بلکي له هري ورځي څخه تر زواله پوري تلل مرادي دي، ځکه چي ۲۴ ساعتونه تګ نه د انسان په وس کي دي، او نه د يو سپرلي په طاقت کي دي، لنډه دا چي هر روځ له سهار څخه تر زواله پوري چي په دري ورځو او شپو کي کومه مسافه پربکړل سي، هغه د سفر مسافه ده. (همدارنګه نه له سفر څخه د شپي سفر کول مراد دي، بلکي له سهار څخه تر زواله پوري....... ځکه چي شپه د آرام او استراحت لپاره ده، او له ثلاثة أيام څخه وروسته د ولياليها په زياتوب سره هم د دغه وطرف ته اشاره سوي ده. احسن الهدايه ج۲، ص: ۳۱۲)

**دليل:** د دري ورځو او دري شپو په اندازه باندي د نبي کريم ﷺ په دې حديث سره استدلال سوی دی: يمسح المقيم كمال يوم وليلة والمسافر ثلاثة أيام ولياليها، او له دې څخه استدلال په دې توګه کيږي چي د المسافر الف لام استغراقي دی، نو د مسح رخصت هر مسافر ته شامل سو، يعني هر مسافر دري ورځي او دري شپې مسح کولای سي، او هر مسافر دري ورځي او دري شپې هغه وخت مسح کولای سي، چي کله د سفر کمه موده دري ورځي او دري شپې وي، او که د سفر کمه موده له دې څخه کمه ومنل سي، نو بيا به هر مسافر دري ورځي او دري شپې مسح نه سي کولای، حال دا چي له حديث څخه د هر مسافر لپاره دري ورځي او دري شپې مسح کول ثابت دي، نو ثابته سوه چي د سفر کمه موده دري ورځي او دري شپې ده.

زموږ د مذهب تائيد په دې حديث سره هم کيږي چي: لا تسافر المرأة فوق ثلاثة أيام ولياليها إلا ومعها زوجها أو ذو رحم محرم منها، په حديث کي د فوق لفظ زائد دی، او دا خبره تسليم سوې ده چي د ښځي لپاره د سفر له مودې څخه کم بغير له محرم څخه د سفر کولو اجازه سته، نو څرنګه چي په حديث کي دري ورځي او دري شپې ښځه بغير له محرمه له سفر کولو څخه منع سوې ده، نو ځکه به د سفر موده دري ورځي او دري شپې وي.

وقدّر أبويوسف الخ فرمايي چي له حنفي علماؤ څخه د امام ابو يوسف رَحِمَهُ الله په نېز د سفر کمه موده دوې پوره ورځي او د دريمي ورځي اکثره حصه ده، او د يو قول مطابق د امام شافعي رَحِمَهُ الله په نېز يوه ورځ او يوه شپه د سفر کمه موده، امام مالک او امام احمد رَحِمَهُمَا الله فرمايي چي د سفر کمه موده څلور فرسخه ده، همدارنګه د امام شافعي رَحِمَهُ الله يو قول دی، صاحب د هدايې رَحِمَهُ الله فرمايي چي زموږ بيان سوی حديث د دوارو مخالف قولونو په خلاف حجت دی.

## د فرسخ او شرعي و انګريزي ميل په اعتبار سره د سفر موده

د شرعي ميل په اعتبار سره د سفر کمه موده اته څلويښت(۴۸) ميله کيږي، او د فرسخ په اعتبار سره شپاړس(۱۶) فرسخه کيږي، ځکه چي يو فرسخ دري شرعي ميله کيږي، او د انګريزي ميل په اعتبار سره څلور پنځوس(۵۴) ميله کيږي، ځکه چي انګريزي ميل تر شرعي ميل کوچنی دی، په يوه ورځ کي په مينځوي مزل سره عموماً شپاړس ميله مسافه قطع کيږي، نو په دري ورځو کي اته څلويښت ميله مسافه سوه، نو که يو څوک اته څلويښت ميله سفر وکړي، نو د سفر احکام به جاري کيږي. (اثمار الهدايه ج۲، ص: ۲۱۵)

## د شرعي ميل، انګريزي ميل، ميټر او کيلو ميټر اندازه د لاس او ګز په اعتبار سره

| څه شي؟ | څومره؟ | کيږي |
|---|---|---|
| يو شرعي ميل | څلور زره (۴۰۰۰) لاسه | کيږي |
| يو شرعي ميل | دوه زره (۲۰۰۰) ګزه | کيږي |
| يو شرعي ميل | تقريباً اتلس سوه اته ويشت (۱۸۲۸,۷۹۸) ميټره | کيږي |
| يو شرعي ميل | تقريباً يو (۱,۸۲۸۷۹۸) کيلوميټر | کيږي |
| يو ميټر | (۱,۰۹۳۶۱۴۳) ګزه | کيږي (يعني تقريباً له يوه ګز څخه لږ زيات کيږي) |
| يو کيلو ميټر | زر (۱۰۰۰) ميټره | کيږي |
| يو انګريزي ميل | درې زره پنځه سوه شل (۳۵۲۰) لاسه | کيږي |
| يو انګريزي ميل | اولس سوه شپيته (۱۷۶۰) ګزه | کيږي |
| ۴۸ شرعي ميله | تقريباً څلور پنځوس (۵۴,۵۴۵۲) انګريزي ميله | کيږي |
| ۴۸ شرعي ميله | تقريباً اوه اتيا (۸۷,۷۸۲) کيلو ميټره | کيږي |

## د منځنۍ درجې مزل (تګ) معتبر دی

وَالسَّيْرُ الْمَذْكُورُ هُوَ الْوَسَطُ او له ذکر سوي مزل څخه د منځنۍ درجې مزل مراد دی (يعني په مخکي عبارت کي چي د کوم مزل (او تګ) ذکر سو له هغه څخه مراد دا دي چي په منځنۍ درجه به مزل کوي) وَعَنْ أَبِي حَنِيفَةَ رَحِمَهُ اللهُ التَّقْدِيرُ بِالْمَرَاحِلِ او له امام ابو حنيفه رَحِمَهُ الله څخه روايت دی چي (د سفر د مودې) اندازه به په مرحلو (پړاونو) سره کيږي وَهُوَ قَرِيبٌ مِنَ الْأَوَّلِ او دا روايت د اول روايت سره زيات نژدې دی وَلَا مُعْتَبَرَ بِالْفَرَاسِخِ او (د سفر د مودې په اندازه کي) د فرسخونو اعتبار نسته هُوَ الصَّحِيحُ همدا صحيح ده.

**اللغات:** ﴿مَرَاحِل﴾ جمع د مرحلې ده: پړاوونه، منزلونه، رباطونه.

**تشريح:** فرمايي: په قدوري کي چي د سير الإبل يا سير الأقدام په ذريعه سره د کوم مزل ذکر سوی دی، له هغه څخه د منځوی اومتعدلې درجې مزل مراد دی، نه ډېر تېز او نه ډېر کرار، بلکي منځنۍ تګ، له امام صاحب څخه يو روايت دا دی چي د سفر کمه موده درې منزلونه (پړاوونه) دي يعني که يو چا د دريو منزلونو په اراده سفر شروع کړی، نو هغه ته شرعاً مسافر ويل کيږي، صاحب د هدايې فرمايي چي د امام صاحب دا قول د اول قول يعني ثلاثة أيام ولياليها سره نژدې دی، ځکه چي په مخکني زمانه کي به خلګو عموماً په يوه ورځ کي يو منزل سفر کوی.

ولا معتبر الخ فرمايي چي د صحيح قول مطابق به د سفر د مودې په تعيين کي د فرسخ اعتبار نه کيږي، يو فرسخ درې ميله کيږي، علمو مشائخو د فرسخ اعتبار کړی دی، لکه څرنګه چي بعضو د شپاړس فرسخو، او بعضو د پنځلس فرسخو ذکر کړی دی.

## د اوبو تګ د مځکي له تګ څخه مختلف دی

وَلَا يُعْتَبَرُ السَّيْرُ فِي الْمَاءِ او د اوبو تګ معتبر نه دی مَعْنَاهُ لَا يُعْتَبَرُ بِهِ السَّيْرُ فِي الْبَرِّ د دې معنیٰ دا ده چي د کوم تګ اعتبار چي په وچه (يې اوبو مځکه) کي کيږي په اوبو کي به د هغه اعتبار نه کيږي فَأَمَّا الْمُعْتَبَرُ فِي الْبَحْرِ نو په سمندر کي هغه تګ معتبر دی فَمَا يَلِيقُ بِحَالِهِ چي هغه د سمندر د حال سره مناسب وي كَمَا فِي الْجَبَلِ لکه څرنګه چي په غره کي (هم دغه حکم دی).

**اللغات:** ﴿بَرّ﴾ وچه، بې اوبو مځکه، ﴿جَبَل﴾ غر.

**تشريح: صورت د مسئلې:** دا دی چي په سمندري سفر کي به د هغه مسافې اعتبار کيږي چي د سمندر د حال سره مناسبه وي، يعني که هوا برابره وي، نو په سمندر کي چي په درې ورځو او درې شپو کي کښتۍ څومره اندازه مسافه پرېکړي، هغه به د سفر موده وي، لکه څرنګه چي د غرو په سفر کي د درې ورځو او درې شپو اعتبار سوی دی، که څه هم په هواره مځکه کي دومره مسافه له دې څخه په کومه موده کي پرېکيږي. او د متن د عبارت حاصل دا دی چي په سمندري سفر کي به د وچي مځکي د مزل اعتبار نه کيږي، د مثال په توګه يوه وطن ته د رسېدلو لپاره دوې لاري دي، يوه د وچي مځکي لاره ده بله د اوبو (سمندر) لاره ده، پر وچه لاره درې ورځي او درې شپې مسافه ده، او د اوبو له لاري څخه دوې ورځي مسافه ده، نو که يو سړی پر وچه لاره ولاړ سي، نو د هغه لپاره به د مسافر رخصت حاصل وي، او که د اوبو د لاري څخه ولاړ سي، نو د سفر رخصت به ورته حاصل نه وي.

## د قصر شرعي حيثيت

قَالَ: وَفَرْضُ الْمُسَافِرِ فِي الرُّبَاعِيَّةِ رَكْعَتَانِ فرمايي: چي په څلور رکعتيز لمانځه کي د مسافر فرض لمونځ دوه رکعته دی لَا يَزِيدُ عَلَيْهِمَا (او) پر دې به زياتوب نه کوي وَقَالَ الشَّافِعِيُّ رَحِمَهُ اللهُ فَرْضُهُ الْأَرْبَعُ امام شافعي رَحِمَهُ الله فرمايي: چي پر مسافر څلور رکعته لمونځ فرض دی وَالْقَصْرُ رُخْصَةٌ او (په لمانځه کي) قصر کول رخصت دي اعْتِبَارًا بِالصَّوْمِ په روژې باندي په قياسولو سره (يعني امام شافعي رَحِمَهُ الله سفر پر روژې قياسوي) وَلَنَا أَنَّ الشَّفْعَ الثَّانِيَ لَا يُقْضَى او زموږ دليل دا دی چي د دويمي شفعي نه قضاء راوړل کيږي وَلَا يُؤْثَمُ عَلَى تَرْكِهِ او نه لمونځ کونکی د هغې په پرېښودولو سره ګنهګاره کيږي وَهَذَا آيَةُ النَّافِلَةِ او دا د نفل کېدلو نښه ده بِخِلَافِ الصَّوْمِ په خلاف د روژې لِأَنَّهُ يُقْضَى ځکه چي د روژې قضاء راوړل کيږي.

**اللغات:** ﴿رُبَاعِيَّة﴾ د څلورو رکعتو والا لمونځ، څلور رکعتيز لمونځ، ﴿قَصْر﴾ مختصر کول، لنډول، لږول، ﴿شَفْع﴾ دوه رکعته، شفع ثاني: آخري دوه رکعته.

**تشريح:** امام قدوري رَحِمَهُ الله فرمايي: د اقامت په حالت کې چې کوم څلور رکعته لمونځ فرض دی، په شرعي سفر کې هغه دوه رکعته کيږي، او زموږ (د احنافو) په نيز دا فرض دي، او مسافر ته څلور رکعته جائز نه دي، خو که وې کړه او په دويم رکعت کښېنستی، نو سجدهٔ سهو به کوي، او که سجدهٔ سهو وکړي، نو لمونځ خو به يې جائز وي، ليکن ناقص به وي، ځکه چې په دې صورت کې اول دوه رکعته فرض سوه، او آخري دوه رکعته نفل سوه، او که پر دويم رکعت نه کښېني، نو ټوله رکعتونه به يې نفل سي، فرض لمونځ يې نه کيږي.

**زموږ دليلونه:** (۱) اول دليل دا دی چې که مسافر قصر وکړي، او آخري دوه رکعته پرېږدي، نو قضاء يې نه راوړل کيږي او نه د هغو په پرېښوولو سره ګنهګاره کيږي، او د قضاء نه واجبېدل او نه ګنهګاره کېدل د دې نښه ده چې دويمه شفعه نفل ده، نو ثابته سوه چې پر مسافر په څلور رکعتيز لمانځه کې فقط دوه رکعته واجب دي. (۲) زموږ دويم دليل دا دی چې له ډېرو حديثونو څخه ثابت دي چې نبي ﷺ او صحابه وو به په سفر کې څلور رکعتيز لمونځ دوه رکعته کوی، نو ځکه د سفر لمونځ دوه رکعته دی، له دې څخه زيات کول جائز نه دي. (۳) دريم دليل: په مسلم شريف کې د ابن عباس حديث دی: قال إن الله فرض الصلوة على لسان نبيكم على المسافر ركعتين وعلى المقيم أربعًا، له دې حديث څخه معلومه سوه چې په سفر کې فرض لمونځ دوه رکعته دی. (۴) څلورم دليل: په بخاري شريف کې راغلي دي: سمعت أنسًا يقول خرجنا مع النبي ﷺ من المدينة إلى مكة فكان يصلي ركعتين ركعتين حتى رجعنا إلى المدينة قلت أقمتم بمكة شيئًا قال أقمنا بها عشرًا، له دې حديث څخه هم معلومه سوه چې نبي ﷺ به په سفر کې دوه رکعته لمونځ کوی.

**د امام شافعي مسلک:** د امام شافعي، امام مالک او امام احمد رَحِمَهُمُ الله په نيز په سفر کې د قصر کولو رخصت سته، خو څلور رکعته کول افضل دي، يعني که دوه رکعته وکړي، صحيح دي، هيڅ کراهت پکښې نسته، ځکه چې په حديث سره ثابت دي، ليکن که څلور رکعته وکړي نو افضله دي، لنډه دا چې د امام شافعي رَحِمَهُ الله په نيز قصر کول فرض نه دي، بلکې صرف رخصت يې سته.

**د امام شافعي دليل** (۱) امام شافعي رَحِمَهُ الله پر روژه قياس کوي، يعني څرنګه چې د مسافر لپاره د روژې په مياشت کې د افطار اجازه (رخصت) سته او روژه نيول افضله دي، همدارنګه په څلور رکعتيز لمانځه کې د قصر اجازه ورکول سوې ده، کنې اتمام افضله دی، (۲) دويم دليل دا آيت دی: وإذا ضربتم في الأرض فليس عليكم جناح أن تقصروا من الصلوة [سورة النساء: ۱۰۱]، د دې آيت معنیٰ ده چې کله تاسو سفر کوئ نو هيڅ پروا (جناح) په دې کې نسته چې تاسو په لمانځه کې قصر وکړئ، د دې پروا (جناح) له لفظ څخه معلوميږي چې که قصر وکړي نو هم هيڅ پروا نسته، او که اتمام وکړي نو هم هيڅ خبره نه ده، نو ځکه به اتمام افضله وي، ليکن څرنګه چې قصر په حديث سره ثابت دی، نو هغه مکروه ګڼل پکار نه دي، (۳) دريم دليل: د بخاري دا حديث دی: عن عبد الله قال صليت مع النبي ﷺ بمنى ركعتين و أبي بكر وعمر و مع عثمان صدرا من امارته ثم أتمها، په دې حديث کې حضرت عثمان ﷺ اتمام کړی دی، نو له دې څخه معلوميږي چې اتمام کول هم جائز دي، (۴) څلورم دليل: په دار قطني کې حديث دی: عن عائشة رَضِيَ اللهُ عَنْهَا أن النبي ﷺ كان يقصر في السفر ويتم ويفطر ويصوم، په دې حديث کې راغلي دي چې نبي ﷺ به قصر هم کوی، او اتمام به يې هم کوی، نو ځکه اتمام کول جائز دي.

**جواب:** امام شافعي رَحِمَهُ الله فرمايلي وو: څرنګه چې په روژه کې د مسافر لپاره رخصت او اختيار سته، چې که روژه نيسي او که يې پرېږدي او وروسته يې قضاء راوړي، همدارنګه په څلور رکعتيز لمانځه کې هم مسافر ته اجازه سته، نو د دې جواب موږ داورکوو چې په لمانځه او روژو کې فرق سته، ځکه که په لمانځه کې آخري دوه رکعته مسافر پرېږدي نو پر هغه هيڅ ګناه نسته، او نه يې قضاء سته، او که روژه پرېږدي، نو د هغې قضاء سته، لهذا معلومه شوه چې روژه جلا ده، او لمونځ جلا دی، نو ځکه لمونځ پر روژه قياسول صحيح نه دي، او د امام شافعي رَحِمَهُ الله اصلي دلائل هغه حديثونه دي کوم چې پورته ذکر سول، او د هغو ټولو جوابونه په نورو شروحو کې په تفصيل سره بيان سوي دي، خو د کتاب د اوږدوالي له بيري يې موږ نه ذکر کوو.

## د قصر نه کولو حکم

وَإِنْ صَلّٰى أَرْبَعًا او که مسافر څلور رکعته لمونځ وکړی وَقَعَدَ فِي الثَّانِيَةِ قَدْرَ التَّشَهُّدِ او په دويم رکعت کې د تشهد(التحيات) په اندازه کښېنستی(مطلب دا چې قصر يې نه وکړي) أَجْزَأَتْهُ الْأُولَيَانِ عَنِ الْفَرْضِ نو اول دوه رکعته له فرضو څخه د ده لپاره کافي دي وَالْأُخْرَيَانِ لَهُ نَافِلَةٌ او آخري دوه رکعته د ده لپاره نفل دي اِعْتِبَارًا بِالْفَجْرِ د سهار پر لمانځه په قياسولو سره وَيَصِيرُ مُسِيئًا لِتَأْخِيرِ السَّلَامِ او د سلام ځنډولو په وجه به ګنهګاره وي وَإِنْ لَمْ يَقْعُدْ فِي الثَّانِيَةِ قَدْرَهَا او که په دويم رکعت کې د تشهد په اندازه نه کښېنستی بَطَلَتْ نو لمونځ يې باطل سو لِاخْتِلَاطِ النَّافِلَةِ بِهَا قَبْلَ إِكْمَالِ أَرْكَانِهَا ځکه چې د فرضو د ارکانو تر پوره کولو مخکې نفل په فرضو ګډ سول.

**اللغات:** ﴿المسيئ﴾ د افعال د باب اسم فاعل دی: ګنهګار، ګناهکار، غلط کار کونکی، ﴿الاختلاط﴾ د افتعال د باب مصدر دی: ګډېدل، يو ځای کېدل.

**تشريح:** صورت د مسئلې: دا دی که مسافر د دوو رکعتو پر ځای څلور رکعته وکړه، او د تشهد په اندازه پر دويم رکعت کښېنستی، نو اول دوه رکعته به فرض او آخري دوه رکعته به نفل شمارل کيږي، او دا مسئله د سهار په لمانځه قياس سوې ده، يعني که يو چا د سهار په لمانځه کې د دوو پر ځای څلور رکعته وکړه، او پر دويم رکعت کښېنستی، نو دوه رکعته به يې فرض او دوه رکعته به يې نفل وي، خو د سلام د ځنډولو (تأخير) په وجه به ګنهکاره وي، او که مسافر پر دويم رکعت نه کښېنستی، نو لمونځ يې باطليږي(لکه څرنګه چې شوک د سهار په لمانځه کې پر دويم رکعت نه کښېني نو هم يې لمونځ باطليږي). دليل دا دی چې په دې صورت کې به د فرضي لمانځه د ارکانو تر پوره کولو مخکې د فرضي لمانځه سره نفلي لمونځ ګډ(مخلوط) سي، او د فرضي لمانځه ارکان ځکه پوره سوي نه دي چې پر دويم رکعت ناسته کوم چې د قصر په وجه رکن ده هغه پرېښول سوه، نو د فرضي لمانځه د ارکانو تر پوره کولو مخکې په نفلو شروع وسوه، او د ارکانو تر پوره کولو مخکې نفل شروع کول او نفل په فرضو مخلوط کول لمونځ باطلوي، نو ځکه به د ده لمونځ باطل وي.

## د قصر شروع کولو ځای

وَإِذَا فَارَقَ الْمُسَافِرُ بُيُوتَ الْمِصْرِ او کله چې مسافر د ښار له کورونو څخه جلا سي صَلّٰى رَكْعَتَيْنِ نو لمونځ به دوه رکعته کوي(يعني قصر به کوي) لِأَنَّ الْإِقَامَةَ تَتَعَلَّقُ بِدُخُولِهَا ځکه چې اقامت په ښار کې د داخلېدلو سره تعلق لري فَيَتَعَلَّقُ

السَّفَرُ بِالْخُرُوجِ عَنْهَا نو سفر به له ښار څخه تر وتلو پورې تعلق لري وَفِيْهِ الْأَثَرُ عَنْ عَلِيٍّ رَضِيَ اللهُ عَنْهُ او په دې باره کې د حضرت علي رضي الله عنه اثر دی لَوْ جَاوَزْنَا هٰذَا الْخُصَّ (چې) که موږ له دې کوډلې څخه تېر سو لَقَصَرْنَا نو قصر به کوو.

**اللغات:** ﴿جاوز﴾ د مفاعلې د باب ماضي ده: جلا کېدل. ﴿الخص﴾ له خاشو څخه جوړه سوې کوچنۍ خونه. مراد ځني هغه کوډله ده چې په دښت کې د آرام لپاره جوړه سوې وي.

**تشريح:** په دې عبارت کې دا بيانيږي چې مسافر به تر سفر شروع کولو وروسته کله قصر شروع کوي. نو د دې حکم دا دی چې کله مسافر د ښار له آبادۍ څخه ووځي، نو پر هغه قصر کول واجبيږي. دليل دا دی چې کله مسافر د خپل ښار په آبادي کې داخل سي، نو د هغه سره د اقامت حکم متعلق کيږي، نو همدارنګه کله چې له دې آبادي څخه ووځي نو د سفر حکم به هم ور سره متعلق کيږي، او په دې باره کې د حضرت علي رضي الله عنه اثر هم را نقل سوی دی: لو جاوزنا هذا الخص لقصرنا، خُص وايي د بانس، لرګو، يا خاشو کوچنۍ کوډلۍ ته. حاصل دا چې حضرت علي رضي الله عنه وفرمايل: "که موږ له دې کوډلي څخه تېر سو"، نو قصر به کوو. د دې تائيد د حضرت انس رضي الله عنه په حديث سره هم کيږي: قال صليت مع رسول الله صلى الله عليه وسلم الظهر بالمدينة أربعا والعصر بذى الحليفة ركعتين، (حضرت انس رضي الله عنه فرمايي چې ما د رسول الله صلى الله عليه وسلم سره په مدينه منوره کې د ماپښين لمونځ څلور رکعته وکړی، او په ذو الحليفه کې مې د مازيګر لمونځ دوه رکعته وکړی). او ذو الحليفه د مدينې منورې له آبادۍ څخه وتلې ځای دی، نو معلومه سوه چې کله مسافر د ښار له آبادۍ او کورونو څخه ووځي نو قصر به کوي.

## د سفر انتها(پای)

وَلَا يَزَالُ عَلٰى حُكْمِ السَّفَرِ او مسافر به تر هغه وخته د سفر په حکم کې وي حَتّٰى يَنْوِيَ الْإِقَامَةَ فِيْ بَلْدَةٍ أَوْ قَرْيَةٍ خَمْسَةَ عَشَرَ يَوْمًا أَوْ أَكْثَرَ تر څو چې په يو ښار يا يو کلي (محله) کې د پنځلس ورځو يا تر دې د زياتي اقامت (پاته کېدلو) نيت وکړي وَإِنْ نَوٰى أَقَلَّ مِنْ ذٰلِكَ او که تر دې د کم نيت وکړي قَصَرَ نو قصر به کوي لِأَنَّهُ لَا بُدَّ مِنِ اعْتِبَارِ مُدَّةٍ ځکه چې (په اقامت کې) د يو مودې اعتبار کول ضروري دي لِأَنَّ السَّفَرَ يُجَامِعُهُ اللُّبْثُ ځکه چې درنګ کول (يعني پاته کېدل) د سفر لپاره جامع دي* فَقَدَّرْنَاهَا بِمُدَّةِ الطُّهْرِ نو ځکه موږ د طهر په مودې سره د اقامت د مودې اندازه ولګوله لِأَنَّهُمَا مُدَّتَانِ مُوْجِبَتَانِ ځکه چې دا دواړه مودې واجبونکي دي وَهُوَ مَأْثُوْرٌ عَنِ ابْنِ عَبَّاسٍ وَابْنِ عُمَرَ رَضِيَ اللهُ عَنْهُمْ او همدا اندازه له ابن عباس او بن عمر رضي الله عنهم څخه رانقل سوې ده وَالْأَثَرُ فِيْ مِثْلِهِ كَالْخَبَرِ او په داسې مسئله کې د صحابي قول (اثر) هم د حديث په شان وي وَالتَّقْيِيْدُ بِالْبَلْدَةِ وَالْقَرْيَةِ يُشِيْرُ إِلٰى او د ښار او کلي (محلې) قيد لګول ودې خبرې ته اشاره کوي أَنَّهُ لَا تَصِحُّ نِيَّةُ الْإِقَامَةِ فِي الْمَفَازَةِ چې په دښت (او ځنګله) کې د اقامت نيت کول صحيح نه دي وَهُوَ الظَّاهِرُ او همدا ظاهر روايت دی

* (يعني په سفر کې خو څه ناڅه پاته کېدل راځي ځکه چې مسافر يو، دوه ساعته د ځان هوسا کولو لپاره حتمًا يو ځای درېږي او لږ درېدلو او پاته کېدلو ته اقامت نه سي ويل کېدلای).

**اللغات**: ﴿بلدة﴾ ښار، ﴿قرية﴾ کلی، محله، ﴿لبث﴾ لَبث هم راځي، يعني بفتح اللا او بضم اللام دواړه صحيح دي، د سمع دباب مصدر دی: دريدل، درنګ کول، پاته کېدل، ﴿مأثور﴾ منقول، ﴿مفازة﴾ بيابيان، دښت، ځنګل.

**تشريح: مسئله**: دا ده چي د سفر حکم به تر هغه وخته پاته وي تر څو چي په يو ښار يا کلي کي د پنځلسو ورځو يا تر دې د زياتو ورځو د پاته کېدلو نيت نه وکړي، او چي د پنځلسو ورځو يا تر دې د زيات پاته کېدلو نيت وکړي، نو د سفر حکم ختميږي، او دا سړی مقيم شمارل کيږي، او که تر پنځلسو ورځو د کم پاته کېدلو نيت وکړي، نو زموږ په نېز دا سړی مقيم نه دی، بلکي قصر لمونځ به کوي، لېکن امام مالک او امام شافعي رَحِمَهُمَا الله فرمايي: چي د څلورو ورځو د پاته کېدلو په نيت سره انسان مقيم کيږي، د امام شافعي رَحِمَهُ الله يو قول دا دی چي که تر څلورو ورځو زيات پاته سو، نو هغه مقيم دی، که يې نيت کړی وي او که نه وي، لنډه دا چي زموږ او د امام شافعي رَحِمَهُ الله په مينځ کي دوه اختلافه دي: (١) اول اختلاف دا چي د مقيم کېدلو لپاره لږ تر لږه د څومره ورځو پاته کېدلو (اقامت) نيت ضروري دی؟، نو زموږ په نېز د پنځلسو ورځو په نيت سره مسافر مقيم شمارل کيږي، او د امام شافعي رَحِمَهُ الله په نېز د څلورو ورځو په نيت سره مقيم شمارل کيږي.

**د امام شافعي دليل**: د قرآن دا آيت دی: وَإِذَا ضَرَبْتُمْ فِي الْأَرْضِ فَلَيْسَ عَلَيْكُمْ جُنَاحٌ أَن تَقْصُرُوا مِنَ الصَّلَوٰةِ. په دې آيت کي الله تعالیٰ د ضرب فی الارض يعني په ځمکه کي د ګرځېدلو په وجه قصر مباح ګرځولی دی، نو د دې مخالف مفهوم دا دی چي که ضرب في الارض نه وي، نو قصر به مباح نه وي، او مسافر چي کله د اقامت نيت وکړي، نو ضرب فی الارض يې پرېښووی، او چي ضرب فی الارض يې پرېښووی، نو د ده لپاره قصر مباح پاته نه سو، خو پر دې دا سوال کيږي چي که تر څلورو ورځو د کم اقامت نيت وکړي، نو بيا هم د قصر کولو اجازه پکار نه ده، ځکه چي په دې صورت کي ضرب فی الارض (يعني په ځمکه کي تلل او ګرځېدل) نه راغله، نو د دې جواب دا دی چي که څه هم د آيت تقاضا همدغه ده چي د څلورو ورځو په اقامت سره دي هم د قصر حکم پاته نه سي، خو موږ د اجماع د دليل په وجه له څلور ورځو څخه په کم اقامت کي دا آيت پرېږدو، ځکه چي دا د هيڅ چا په نېز هم جائز نه دي چي تر څلورو ورځو د کم اقامت په نيت دي څوک مقيم وګرځيږي.

(٢) **د اقامت لپاره نيت شرط دی**: دويم اختلاف دا دی چي د اقامت لپاره زموږ په نېز نيت شرط دی، زموږ په نېز بغير د اقامت له نيت څخه مسافر نه مقيم کيږي، که څه هم د پنځلسو ورځو څخه زيات اقامت وکړي، او د امام شافعي رَحِمَهُ الله په نېز د اقامت لپاره نيت شرط نه دی.

**د امام شافعي دليل**. د حضرت عثمان ﷺ دا قول دی: من أقام أربعاً أتمّ (يعني که يو چا څلور ورځي اقامت وکړی، هغه دي پوره لمونځ کوي)، په دې قول کي د نيت ذکر نسته، نو ثابته سوه چي د اقامت لپاره نيت ضروري نه دی.

**زموږ دليل**: دا دی چي د مسافر لپاره دا ضروري نه ده چي دی دي شپه او ورځ ٢٤ ساعته روان وي، بلکي دی ډېر ولاړه دريږي هم، او تر ډېر وخته پوري د آرام او ناسي نورو لپاره دريږي، نو معلومه سوه چي سفر او لبث (دريدل) دواړه سره جمع کيږي، او دا خبره هم تر لمر سپينه ده چي د پاته کېدلو نوم اقامت او مقيم کېدل دي، خو د دې دواړو په مينځ کي د فرق کولو لپاره د يوې مودې اعتبار کول ضروري دي، نو د دې لپاره موږ د طهر پر مودې قياس وکړی، او موده د اقامت مو پنځلس ورځي وټاکله.

فقدرناها الخ پاته سوه دا خبره چي د قياس وجه څه ده؟ يعني د طهر او اقامت په مينځ کي علت مشترکه څه دی؟، نو صاحب د هدايې فرمايي چي د طهر او سفر دواړو مودې واجبوونکي دي، يعني څرنګه چي د حيض په وجه کوم لمونځ ساقط سوی وي، نو د طهر په وجه هغه لمونځ واجبيږي، همدارنګه د سفر و په وجه چي کوم لمونځ ساقط سوی وي، نو د اقامت په وجه سره هغه څلور رکعته کيږي، نو دواړه شيان د عبادت واجبوونکي سوه، نو څرنګه چي د طهر موده پنځلس ورځي ده، نو د اقامت موده به هم پنځلس ورځي وي، او تر دې به کمه نه وي، همدغه وجه ده چي د طهر د ضد يعني د حيض کمه موده درې ورځي ده، او د اقامت د ضد يعني د سفر کمه موده هم درې ورځي ده.

وهومأثور الخ صاحب د هدايې رَحِمَهُ الله فرمايي: چي د اقامت د مودې پنځلس ورځي کېدل له ابن عباس او ابن عمر رَضِيَ اللهُ عَنْهُمْ څخه را نقل سوي دي، لکه څرنګه چي مجاهد روايت کړی دی: عن ابن عباس وابن عمر رَضِيَ اللهُ عَنْهُمْ قالا: إذا أدخلت بلدة و أنت مسافر وفي عزمك أن تقيم بها خمسة عشر يوما فأكمل الصلوة وإن كنت لا تدري متى تظعن فاقصر (يعني ابن عباس او ابن عمر رَضِيَ اللهُ عَنْهُمْ فرمايي: کله چي ته يو ښار ته داخل سې، په داسي حال کي چي مسافر يې، او ستا اراده د پنځلسو ورځو د پاته کېدلو وي، نو لمونځ پوره کوه، او که معلومات درته نه وي چي کله به (بيا) سفر کوم (يعني کله به له ښار څخه وځم) نو قصر کوه)، صاحب د هدايې رَحِمَهُ الله فرمايي چي د پنځلسو ورځو تحديد او ټاکل له شرعي مقدّراتو څخه دي، او شرعي مقدّرات او د ورځو ټاکل او تحديد داسې شی دي چي د عقل هيڅ لار پکښې نسته، او قاعده دا ده چي په کوم شي کي د عقل دخل نه وي په هغه کي د صحابي اثر د حديث په منزله دی، ګواکي ابن عباس او ابن عمر رَضِيَ اللهُ عَنْهُمْ د پنځلسو ورځو تعيين له نبي ﷺ څخه اورېدلی دی، او بيا يې ذکر کړی دی.

والتقييد الخ فرمايي: په قدوري کي چي کوم په ښار او کلي کي د اقامت کولو شرط لګول سوی دی، هغه و دې طرف ته اشاره کوي چي په صحراء او بيابان کي د اقامت نيت صحيح نه دی، او که څوک په بيابان کي د اقامت په نيت سره تر پنځلس ورځو زيات د اقامت نيت وکړي، نو هم هغه سړی مقيم نه پاته کيږي، او د هغه لپاره په لمانځه کي د قصر اجازه سته، همدا ظاهر الرواية دی، کنې له امام ابو يوسف رَحِمَهُ الله څخه روايت سوی دی چي که کوچيان او شپنيان په يو بيابان او صحرا کي د پنځلسو ورځو د اقامت نيت وکړي او خېمې ودروي، نو هغوی مقيم ګرځي، او د هغوی لپاره به قصر کول صحيح نه وي، لېکن ظاهر الرواية مخکنی قول دی. (بنايه، کفايه)

**که اراده وکړي چي نن به له ښار څخه ځم لېکن تر دوو کالو پوري پاته وي نو قصر به کوي**

وَلَوْ دَخَلَ مِصْرًا عَلٰى عَزْمِ أَنْ يَخْرُجَ غَدًا أَوْ بَعْدَ غَدٍ او که يو مسافر په دې اراده سره يو ښار ته داخل سي چي سبا يا بل سبا به (بېرته له ښار څخه) وځي وَلَمْ يَنْوِ مُدَّةَ الْإِقَامَةِ او د اقامت د مودې نيت يې کړی نه وي حَتّٰى بَقِيَ عَلٰى ذٰلِكَ سِنِيْنَ تر دې چي څو کاله په دې اراده (په دغه ښار کي) پاته سي قَصَرَ نو قصر به کوي لِأَنَّ ابْنَ عُمَرَ أَقَامَ بِأَذْرَبِيْجَانَ سِتَّةَ أَشْهُرٍ ځکه چي ابن عمر رَضِيَ اللهُ عَنْهُمَا په آذربائيجان کي شپږ مياشتي پاته سو وَكَانَ يَقْصُرُ او په لمانځه کي به يې قصر کوی وَعَنْ جَمَاعَةٍ مِنَ الصَّحَابَةِ رَضِيَ اللهُ عَنْهُمْ مِثْلُ ذٰلِكَ او د صحابه وو رَضِيَ اللهُ عَنْهُمْ له يوه جماعت څخه هم دغه ډول را نقل سوي دي.

**اللغات:** ﴿سِنِيْنَ﴾ جمع د سَنَةٌ ده، مراد ځني څو کاله دي.

**تشريح:** په تېر عبارت کي ذکر سوه چي د اقامت لپاره د پنځلسو ورځو د پاته کېدلو نيت ضروري دی، نو په دې عبارت کي پر هغه خبره تفريع کوي فرمايي: که مسافر په ښار کي په دې نيت سره داخل سي چي سبا يا بل سبا به ځم، او د پنځلسو ورځو د پاته کېدلو نيت نه وکړي، تر دې چي په دغه سبا بل سبا کي څو کاله تېر سي، نو قصر به کوي او مقيم نه ورته ويل کيږي. دليل دا دی چي ابن عمر ﷺ په آذربيجان کي شپږ مياشتي په دې حال کي وو، چي نن به ځم، سبا به ځم، خو هغه په دې شپږو مياشتو کي قصر لمونځ کوی، همدارنګه په مصنف ابن شيبه کي له ډېرو صحابه وو څخه را نقل سوي دي چي هغوی به په سفر کي وه، او تر شپږو مياشتو به زيات يو ځای پاته سوه، لېکن د پنځلسو ورځو نيت به يې نه وو، نو قصر به يې کوی، لکه څرنګه چي عقلمه بن قيس ﷺ په خوارزم کي دوه کاله پاته سو، او په لمانځه کي يې قصر کوی، او سعد ابن ابی وقاص ﷺ په نيشاپور کي دوې مياشتي پاته سو او قصر يې کوی.

## په دارُ الحرب کي د اسلامي لښکر لپاره د قصر حکم

وَإِذَا دَخَلَ الْعَسْكَرُ أَرْضَ الْحَرْبِ او کله چي (اسلامي) لښکر د کافرانو ملک (دار الحرب) ته داخل سي فَنَوَوْا الْإِقَامَةَ بِهَا او هلته (د پنځلسو ورځو) پاته کېدلو نيت وکړي قَصَرُوا نو (هم) به قصر کوي وَكَذَا همدارنګه به قصر کوي إِذَا حَاصَرُوا فِيهَا مَدِينَةً أَوْ حِصْنًا چي کله په دار الحرب کي يو ښار يا يوه کلا محاصره کړي لِأَنَّ الدَّاخِلَ بَيْنَ أَنْ يُهْزَمَ فَيَقِرَّ ځکه چي (دار الحرب ته) داخلېدونکی لښکر د دوو خبرو په مينځ کي متردّد دی چي يا به ماته (شکست) وخوري او وبه تښتي وَبَيْنَ أَنْ يَهْزِمَ فَيَقِرَّ يا به دښمن ته ماته ورکړي او هلته به پاته سي فَلَمْ تَكُنْ دَارَ إِقَامَةٍ نو ځکه به دا ځای د دوی لپاره دار الاقامه نه وي.

**اللغات:** ﴿عَسْكَر﴾ لښکر، فوج، ﴿حَاصَرُوا﴾ د مفاعلې د باب ماضي ده: محاصره کول، کلا بند کول، چاپېره کېدل، ﴿يُهْزَمُ﴾ په عبارت کي اول يُهْزَم د ضرب له باب څخه د مضارع مجهوله صيغه ده چي مجهولي معنیٰ يې ده: ماته خوړل، ﴿يَهْزِمُ﴾ او دويم يَهْزِم د تفعيل له باب څخه د مضارع معلومي صيغه ده: ماته ورکول، او داسي هم کېدای سي چي دواړه د ضرب له باب څخه سي يعني اوله مجهوله سي او دويمه معلومه سي، ﴿فَيَفِرَّ﴾ د ضرب د باب مضارع ده: تښتېدل، ﴿فَيَقِرَّ﴾ دا هم د ضرب د باب مضارع ده: په يو ځای کي قرار کول، پاته کېدل.

**تشريح: صورت د مسئلې:** دا دی چي هغه اسلامي لښکر کوم چي د کفارو علاقو ته د اسلام خپرولو او پورته کولو لپاره ځي، که هغوی د کفارو د جنګ علاقو (دار الحراب) ته ورسيږي او د پنځلسو ورځو د اقامت نيت وکړي نو هم به قصر کوي، يعني پر هغوی د اقامت حکم نه جاري کيږي، همدارنګه که هغوی يو ښار يا يو کلا فتح کړي نو هم به پر هغوی د اقامت حکم نه جاريږي، ځکه چي په دار الحرب کي هغوی ته استقرار او استقلال حاصل نه دی، يعني د دوی هلته پاته کېدل او اوسېدل يقيني نه دي، ځکه چي د لښکر دوه حالتونه دي، او له دواړو حالتونو څخه يو حالت هم دوی مقيم نه سي جوړولای، ځکه چي يا خدای مه کړه دا لښکر به ماته وخوري نو ښکاره ده چي د تيښتي (فرار) لار به اختياروي، او يا به کامياب سي او کفارو ته به ماته ورکړي او استقرار او قرار به ورته حاصل سي، نو د دې فرار او قرار د شکمن کېدلو په وجه دارُ الحرب ته دارُ الاقامه نه سي ويل کېدلای، نو ځکه به په دار الحراب کي د اقامت نيت معتبر نه وي.

## په دار الاسلام کي د اسلامي لښکر د اقامت حکم

وَكَذَا إِذَا حَاصَرُوا أَهْلَ الْبَغْيِ فِي دَارِ الْإِسْلَامِ فِي غَيْرِ مِصْرٍ همدارنګه که اسلامي لښکر په دار الاسلام کي له ښار څخه ماسوا په يو بل ځای کي باغيان محاصر کړل أَوْ حَاصَرُوهُمْ فِي الْبَحْرِ يا يې په سمندر کي محاصره کړل(نو د اقامت د نيت اعتبار يې نسته) لِأَنَّ حَالَهُمْ مُبْطِلٌ عَزِيمَتَهُمْ ځکه چي د دوی حال د دوی اراده باطلوي وَعِنْدَ زُفَرَ● رَحِمَهُ اللهُ يَصِحُّ فِي الْوَجْهَيْنِ او د امام زفر رَحِمَهُ الله په نيز په دواړو صورتونو کي (د اقامت نيت) صحيح دی إِذَا كَانَتِ الشَّوْكَةُ لَهُمْ په دې شرط چي غلبه د اسلامي لښکر وي لِلتَّمَكُّنِ مِنَ الْقَرَارِ ظَاهِرًا ځکه چي (په دې صورت کي) په ښکاره توګه دوی ته د پاته کېدلو قدرت سته وَعِنْدَ أَبِي يُوسُفَ رَحِمَهُ اللهُ يَصِحُّ او د امام ابو يوسف رَحِمَهُ الله په نيز (د اقامت نيت) هغه وخت صحيح دی إِذَا كَانُوا فِي بُيُوتِ الْمَدَرِ چي کله اسلامي لښکر د خاورو په کورونو کي وي لِأَنَّهُ مَوْضِعُ إِقَامَةٍ ځکه چي دا د اقامت کولو ځايونه دي وَنِيَّةُ الْإِقَامَةِ مِنْ أَهْلِ الْكَلَأِ وَهُمْ أَهْلُ الْأَخْبِيَةِ او د وښو والاوو (ګياه دارو خلکو) د اقامت نيت کله چي هغوی د خېمو اوسېدونکي وي قِيلَ: لَا تَصِحُّ نو ويل سوي دي چي صحيح نه دی(يعني د هغو د اقامت نيت صحيح نه دی) وَالْأَصَحُّ أَنَّهُمْ مُقِيمُونَ خو صحيح قول دا دی چي هغوی مقيم دي يُرْوَى ذَلِكَ عَنْ أَبِي يُوسُفَ رَحِمَهُ اللهُ دا قول له امام ابو يوسف رَحِمَهُ الله څخه روايت سوی دی لِأَنَّ الْإِقَامَةَ أَصْلٌ ځکه چي اقامت اصل دی فَلَا تَبْطُلُ بِالِانْتِقَالِ مِنْ مَرْعًى إِلَى مَرْعًى نو ځکه به له يوې چراګاه(څر ځای) څخه تر بلي چراګاه پوري په منتقل کېدلو سره (اقامت) نه باطلېږي.

**اللغات**: ﴿عزيمة﴾ اراده، ﴿بُيُوتُ مَدَرٍ﴾ د خاورو کورونه، ﴿أَهْلُ الْبَغْيِ﴾ باغيان، بغاوت کونکي، مراد ځني هغه خلک دي چي د عادل باچا په خلاف د بغاوت او سرکښۍ بيرغ پورته کړي، ﴿أَهْلُ الْكَلَأِ﴾ د وښو پلورونکي، يا د وښو کسب کونکي، دلته مراد ځني هغه شپنيان دي، چي خېمې يې په وښو کي درولې وي، او رمه پر څري، ﴿أَخْبِيَة﴾ خيمې، ﴿مَرْعًى﴾ چراګاه، څر ځای، د رمې د څرولو ځای.

**تشريح**: صورت د مسئلې: دا دی که اسلامي لښکر په دار الاسلام کي باغيان(بغاوت کونکي) محاصره کړه، لېکن دا محاصر له آبادۍ څخه لېري په يو دښت، يا يو سمندر او جزيرې کي وسوه، او تر محاصرې کولو وروسته اسلامي لښکر هلته د پنځلس ورځو د اقامت نيت وکړی، نو د هغوی دا نيت معتبر نه دی، بلکي پر هغوی قصر ضروري دی. دليل دا دی چي اسلامي لښکر په دې صورت کي هم د قرار او فرار(تېښتي) په مېنځ کي مترډد(شکمن) دی، (لکه په مخکنۍ مسئله کي چي هم دغه صورت وو)، نو دا د تردد او شک حالت د دوی اقامت باطلوي، ځکه څرنګه چي د دوی د فتحې لو کاميابۍ امکان سته، همدارنګه يې د شکست او ماتې امکان هم سته، د علامه مرغيناني رَحِمَهُ الله له بيان سوي دليل څخه معلومېږي چي په عبارت کي د في غير مصر او في البحر قيدونه اتفاقي دي، همدا وجه ده که اسلامي لښکر د باغيانو په ښار

● القول الراجح: قول الجمهور رَحِمَهُمُ الله، كما قال العلامة عالم بن العلاء: أهل البغي اذا امتنعوا في دار البغي وحاصرناهم لاتصح منا نية الاقامة التاتارخانية ج:٢، ص:۶. [القول الراجح، ج:١، ص:١٣٨]

کي اقامت وکړي، او په کلا کي يې دننه دوی محاصره کړه، نو هم به د اسلامي لښکر د اقامت نيت صحيح نه وي، ځکه چي د باغيانو ښار تر فتحې وروسته د بيابان او دښت په څېر دی، ځکه چي اسلامي لښکر په دې کي نه پاته کيږي، بلکي واپس ځي.

وعند زفر الخ امام زفر رَحِمَهُ الله فرمايي چي کله اسلامي لښکر په دار الحرب کي کفار محاصره کړي، يا په دار الاسلام کي په يو دښت او ميدان کي کفار او باغيان محاصره کړي، په دواړو صورتو کي د اقامت نيت کول صحيح دي، لېکن دا حکم په هغه صورت کي دی چي کله په ملک (وطن) کي دننه اسلامي لښکر ته قوت او غلبه حاصله وي، ځکه چي په دې صورت کي په داګه دوی ته پر استقرار او پاته کېدلو قدرت سته، د امام ابو يوسف رَحِمَهُ الله مذهب دا دی چي په پورتني دواړو صورتونو کي د اقامت نيت کول هغه وخت صحيح دی چي تر محاصرې کولو وروسته اسلامي لښکر د خاورو په کورونو کي استوګن سي، نو بيا به د هغوی له طرفه د اقامت نيت معتبر وي، (ځکه چي په هغه زمانه کي به د خاورو کورونه د اقامت ځايونه شمارل کېدله)، او که په خېمو کي استوګن سول نو د هغوی نيت به معتبر نه وي، دليل دا دی چي د اقامت ځای او مقام کورونه او عمارتونه وي، خېمې د د اقامت ځای نه وي.

ونية الإقامة الخ صاحب د هدايې فرمايي: چي هغه خلک چي کسب او کار يې حيوانان وي، او چيري چي وابنه اوبه ووينې هلته خيمې دروي، بيا چي کله هلته وابنه ختم سي، نو له هغه ځای څخه ځي، او يو بل د موقعې ځای پيدا کوي او هلته پاته کيږي لکه کوچيان او شپنيان، نو د دوی د اقامت د نيت په صحيح کېدلو او نه صحيح کېدلو کي د علماؤ اختلاف دی، نو د بعضي علماؤ خيال دا دی چي د دې خلکو د اقامت نيت نه صحيح کيږي، ځکه چي خيمې او داسي ځايونه د اقامت ځايونه نه دي، لېکن صحيح قول دا دی چي دا خلک مقيم دي، يعني ګردسره له شروع څخه مسافرين نه دي، ځکه چي اقامت اصل دی او د اقامت د باطلېدلو او د سفر د جاري کېدلو لپاره لږ تر لږه د دريو ورځو او دريو شپو په اندازه سفر کول ضروري دي، لېکن د دوی حال دا دی چي له يوې چراګاه څخه تر بلې چراګاه پوري ځي، او بيا که په مينځ کي يو څه وابنه ووينې، نو هلته پاته کيږي، نو ځکه د هغوی په حق کي د ثلاثة أيام ولياليها مسافه ثابته نه سوه، او دا خلک د سره مسافر نه سوه، نو کله چي دا مسافر نه سوه، نو مقيم به وي.

## د مسافر لپاره د مقيم د اقتداء حکم

> وَإِنِ اقْتَدَى الْمُسَافِرُ بِالْمُقِيمِ فِي الْوَقْتِ او که مسافر په وخت کي دننه د مقيم اقتداء وکړه أَتَمَّ أَرْبَعًا نو څلور رکعته به پوره کوي لِأَنَّهُ يَتَغَيَّرُ فَرْضُهُ إِلَى أَرْبَعٍ لِلتَّبَعِيَّةِ ځکه چي د تابع کېدلو په وجه د مسافر فرض په څلورو رکعتونو بدليږي كَمَا يَتَغَيَّرُ بِنِيَّةِ الْإِقَامَةِ لکه څرنګه چي د اقامت په نيت سره (فرض) بدليږي لِاتِّصَالِ الْمُغَيِّرِ بِالسَّبَبِ وَهُوَ الْوَقْتُ ځکه چي بدلوونکي شی د سبب يعني د وخت سره متصل سو.

**اللغات:** ﴿المغير﴾ د تفعيل د باب اسم فاعل دی: بدلوونکی، دلته مراد ځني اقتداء ده، ځکه د امام اقتداء لمونځ بدلوي.

**تشريح:** په دې عبارت کي د دوو خبرو حکم بيان سوی دی: يو د مسافر په مقيم پسي د اقتداء کولو حکم، دويم د مقيم په مسافر پسي د اقتداء کولو حکم، اول صورت په وخت کي دننه جائز دی، خو د وخت تر وتلو وروسته جائز نه دی، او دويم صورت په وخت کي هم جائز دی، او تر وخت وروسته هم، امام قدوري رَحِمَهُ الله دا اول صورت تر بيانولو وروسته

فرمايي: که مسافر په وخت کي دننه په مقيم پسي اقتداء وکړي، يعني که په څلور رکعتيز لمانځه کي مسافر د مقيم اقتدا په وخت کي دننه وکړي، نو مسافر به هم څلور رکعته کوي.

دليل: دا دی چي مسافر د دې مقيم سري د متابعت(تابعداری) التزام وکړی، يعني پر ځان يې د ده تابعداري د اقتدا په ذريعه لازمه کړه، او د مقيم فرض لمونځ څلور رکعته دی، او څوک چي د هغه سړی د متابعت التزام کوي، چي د هغه فريضه څلور رکعته وي، نو د تابع کېدلو په وجه د هغه فريضه هم په څلورو رکعتونو بدلیږي، لکه څرنګه چي داقامت په نيت سره هم د مسافر فريضه په څلورو رکعتونو بدليږي.

لا تمال المغيرله دې ځايه علت جامعه بيانوي، هغه دا چي مغيّر( يعني دوه رکعته په څلورو بدلونکی) شی کوم چي اقتداء دی د سبب (يعني د وخت) سره يو ځای سوه، ځکه چي هغه د مقيم اقتداء هم وکړه او په وخت کي يې دننه هم وکړه نو دواړه سره يو ځای سوه، نو ځکه به څلور رکعته کوي، او تر وخت ختمېدلو وروسته د مسافر اقتدا په مقيم پسي جائز نه ده، ځکه چي وخت د بدلون (بدلولو) سبب دی، او کله چي وخت ختم سو نو د بدلون سبب ختم سو، فتدبر.

## د مسافر لپاره د قضا سوي لمانځه د اقتداء حکم

وَإِنْ دَخَلَ مَعَهُ فِي فَائِتَةٍ او که مسافر د مقيم سره په يو قضائي(فوت سوي) لمانځه کي داخل سو لَمْ تُجْزِهُ نو اقتداء يې جائز نه ده لِأَنَّهُ لَا يَتَغَيَّرُ بَعْدَ الْوَقْتِ ځکه چي د مسافر فرض تر وخت وروسته نه بدليږي لِانْقِضَاءِ السَّبَبِ د سبب (يعني د وخت) د تېرېدلو په وجه كَمَا لَا يَتَغَيَّرُ بِنِيَّةِ الْإِقَامَةِ لکه څرنګه چي په نيت د اقامت سره نه بدليږي فَيَكُونُ اقْتِدَاءُ الْمُفْتَرِضِ بِالْمُتَنَفِّلِ فِي حَقِّ الْقَعْدَةِ أَوِ الْقِرَاءَةِ نو په حق د قعدې(ناستي) او قرائت کي به د فرض کونکي اقتداء په نفل کونکي پسي راسي.

**اللغات:** ﴿اِنْقِضَاء﴾ د انفعال مصدر دی: ختمېدل، تېرېدل.

**تشريح: صورت د مسئلې:** دا دی که وخت تېر سي او له مسافر څخه لمونځ قضاء سي، نو اوس د مسافر لپاره د دې لمانځه په قضاء راوړلو کي د مقيم اقتداء جائز نه ده، ځکه چي د لمانځه د قضاء کېدلو په صورت کي وخت ووځي، او څرنګه چي د فرض لمانځه سبب وخت دی او مغيّر (بدلوونکی شی) يعني اقتداء چي کله د وخت سره يو ځای سي نو هلته بيا د مسافر دوه رکعتيز فرض څلورو رکعتو ته اوړي، لېکن څرنګه چي په دې صورت کي سبب يعني وخت تېر سوی دی، نو ښکاره ده چي مغيّر خپل عمل نه سي کولای، نو د مسافر فرض به په څلورو رکعتو هم نه بدليږي، او په دې صورت کي به د مسافر اقتدا هم صحيح نه وي، همدا وجه ده که يو مسافر هغه وخت د اقامت نيت وکړي چي کله د يو لمانځه وخت ووځي، نو هغه د دې لمانځه په ذريعه سره مقيم نه شمارل کيږي، ځکه چي مغيّر د سبب سره يعني د وخت سره نه دي متصل سوی.

فيكون اقتداء المفترض الخ د دې حاصل دا دی چي په قضائي لمانځه کي د مسافر لپاره د مقيم د اقتداء د نه صحيح کېدلو يو علت خو هغه دی کوم چي بيان سو، او دويم علت دا دی چي که موږ دا صورت جائز وګرځوو، نو د وخت له تېرېدلو(انقضاء) څخه به ماسوا بله خرابي هم راسي، او هغه دا چي په دې صورت کي به اقتداء المفترض خلف المتنفل فی حق القعدة راسي، يا فی حق القراءة به راسي، ځکه که مسافر په اولو دوو رکعتو کي د مقيم اقتداء وکړي نو فی حق القعدة به دا

خرابي راسي، ځکه چي مخکي موږ هم ذکر کړي دي چي د مسافر په حق کي اوله ناسته فرض ده، او د مقيم په حق کي نفل ده، او که مسافر په آخري دوو رکعتو کي د مقيم اقتدا وکړي نو اقتداء المفترض خلف المتنفل في حق القراءة به راسي، ځکه چي د مسافر په حق کي په دې رکعتونو کي قرائت کول فرض دي، او د مقيم په حق کي نفل دي، نو په دې وجه هم په ذکر سوي صورت کي اقتداء کول صحيح نه دي.

## د مسافر لپاره د مقيم د امامت حکم

وَإِنْ صَلَّى الْمُسَافِرُ بِالْمُقِيمِينَ رَكْعَتَيْنِ او که مسافر مقيمو خلکو ته دوه رکعته لمونځ ورکړي سَلَّمَ نو مسافر امام دي سلام وګرځوي وَأَتَمَّ الْمُقِيمُونَ صَلَاتَهُمْ او مقيم خلک دي خپل لمونځ پوره کړي لِأَنَّ الْمُقْتَدِيَ الْتَزَمَ الْمُوَافَقَةَ فِي الرَّكْعَتَيْنِ ځکه چي مقتدي (صرف) په دوو رکعتو کي د موافقت التزام کړی دی فَيَنْفَرِدُ فِي الْبَاقِي كَالْمَسْبُوقِ نو په پاته دوو رکعتو کي به هغه منفرد(يوازي لمونځ کونکی) وي لکه مسبوق إِلَّا أَنَّهُ لَا يَقْرَأُ فِي الْأَصَحِّ خو د صحيح روايت مطابق به قرائت نه کوي لِأَنَّهُ مُقْتَدٍ تَحْرِيمَةً ځکه چي هغه د تحريمې په اعتبار سره مقتدی دی لَا فِعْلًا نه د فعل په اعتبار سره وَالْفَرْضُ صَارَ مُؤَدًّى او فرض خو اداء سوه فَيَتْرُكُهَا احْتِيَاطًا نو ځکه به احتياطاً (دا سړی) قرائت پرېږدي بِخِلَافِ الْمَسْبُوقِ په خلاف د مبسوق لِأَنَّهُ أَدْرَكَ قِرَاءَةً نَافِلَةً ځکه چي هغه نفل قرائت ونيوی فَلَمْ يَتَأَدَّ الْفَرْضُ نو فرض اداء نه سوه فَكَانَ الْإِتْيَانُ أَوْلَى نو (د هغه لپاره) به قرائت کول غوره وي.

**اللغات:** ﴿مَسْبُوق﴾ شاته پاته کېدونکی، هغه سړی چي د لمانځه په مېنځ کي په جماعت شريک سي، يعني يو، دوه يا درې رکعته ځني تېر سوي وي.

**تشريح: صورت د مسئلې:** دا دی که يو مسافر سړي په څلور رکعتيز لمانځه کي مقيم خلکو ته لمونځ ورکړی، نو حکم دا دی چي دا مسافر امام دي پر دوو رکعتو سلام وګرځوي، او مقيم مقتديان دي سلام نه ګرځوي، بلکي د امام تر سلام ګرځولو وروسته دي خپل پاته لمونځ پوره کړي، ځکه چي دې خلکو صرف په دوو رکعتو کي د مسافر امام موافقت اومتابعت کړی دی، او څرنګه چي تر دوو رکعتو وروسته اوس هم د دوی لمونځ پاته دی، نو ځکه به په پاته لمانځه کي دا خلک مسبوق وي، او څرنګه چي مسبوق هم د امام تر لمانځه وروسته خپل تېر سوي رکعتونه پوره کوي، (يعني هغه رکعتونه پوره کوي کوم چي ځني تېر سوي وي) نو دا خلک به هم خپل لمونځ پوره کوي، خو مسبوق د تېر سوي لمانځه په پوره کولو کي قرائت هم کوي، لېکن دغه ذکر سوي مقتديان به قرائت نه کوي، همدا زياته صحيح ده، د أصح په ويلو سره يې د هغه مشائخو له قول څخه احتراز کړی دی چي هغوی وايي چي پر دې مقتديانو هم قرائت کول لازم دي، خو أصح دا ده چي نه پر دوی قرائت ضروري دی، او نه د دوی په حق کي قرائت مشروع او مستحب دی، ځکه چي دا خلک صرف د تحريمې په اعتبار سره مقتديان دي، يعني هغوی له شروع څخه د څلورو رکعتو پوره کولو تحريمه تړلې ده، نو د امام تر دوو رکعتو وروسته به هم د دوی تحريمه پاته وي، او د فعل په اعتبار سره په دې وجه مقتديان نه دي ځکه چي د اقتداء په وجه د دوی افعال د امام په افعالو کي شامل او داخل دي، او څرنګه چي امام له افعالو څخه فارغ سوی دی، نو د دې خلکو په حق کي به هم افعال ختميږي، او بيا چي څرنګه د دې خلکو له طرفه امام قرائت کړی دی، نو فرض قرائت هم اداء سو، نو ځکه په وروستني رکعتو کي احتياطاً قرائت پرېښوول غوره دي.

بخلاف المسبوق د دې په خلاف د مسبوق مسئله ده، د مسبوق په حق کې په دې وجه قرائت کول ضروري دی چې هغه په وروستني رکعتو کې د امام سره شریک سوی دی، نو فرض قرائت خو مخکې امام اداء کړی دی، نو دی په نفل قرائت کې د امام سره شریک سو، (له نفل قرائت څخه مراد په آخري دوو رکعتونو کې د سورة الفاتحه قرائت دی ځکه چې دا نفل او مستحب دی) لهذا د ده فرض قرائت اداء نه سو، نو ځکه غوره دا ده چې مسبوق به په پاته لمانځه کې قرائت کوي.

## د مسافر امام لپاره دا ویل مستحب دي: "خپل لمونځونه پوره کړئ زه مسافر یم"

قَالَ: وَيُسْتَحَبُّ لِلْإِمَامِ إِذَا سَلَّمَ فرمايي: چې د (مسافر) امام لپاره تر سلام گرځولو وروسته مستحب دي أَنْ يَقُولَ: أَتِمُّوا صَلَاتَكُمْ فَإِنَّا قَوْمٌ سَفْرٌ چې ووايي (مقتديانو ته): خپل لمونځونه پوره کړئ ځکه چې موږ مسافر خلگ يو لِأَنَّهُ عَلَيْهِ الصَّلَاةُ وَالسَّلَامُ قَالَهُ● حِينَ صَلَّى بِأَهْلِ مَكَّةَ ځکه کله چې نبي کریم ﷺ د مکې خلگو ته لمونځ ورکړی نو هم یې دغه خبره وکړه وَهُوَ مُسَافِرٌ په داسې حال کې چې نبي ﷺ مسافر وو.

**تشریح:** که امام مسافر وو نو په دویم رکعت کې به تر سلام گرځولو وروسته داسې وايي: تاسو خپل لمونځونه پوره کړئ زه مسافر یم، ځکه کله چې نبي ﷺ په مکه کې مسافر وو، او د مکې خلگو ته یې لمونځ ورکړی، نو نبي ﷺ همداسې وفرمایل چې زه مسافر یم تاسو خپل لمونځونه پوره کړئ، پوره حدیث دا دی: عن عمران بن حصين قال غزوت مع رسول الله ﷺ وشهدت معه الفتح فأقام بمكة ثماني عشرة ليلة لا يصلي إلا ركعتين ويقول يا أهل البلد صلوا أربعا فإنا قوم سفر (ابو داؤد، باب متى يتم المسافر، ص: ۱۸۰، حديث شمېره، ۱۲۲۹)، نو له دې حدیث څخه معلومه سوه چې مسافر امام به تر خپل لمانځه وروسته اعلان کوي چې زه مسافر یم، تاسو خپل لمونځونه پوره کړئ.

## په وطنِ اصلي کې د اقامت نیت ضروري نه دی

وَإِذَا دَخَلَ الْمُسَافِرُ فِي مِصْرِهِ او کله چې مسافر خپل ښار ته داخل سي أَتَمَّ الصَّلَاةَ نو خپل لمونځ به پوره کوي وَإِنْ لَمْ يَنْوِ الْمُقَامَ فِيهِ که څه هم په ښار کې یې د اقامت نیت نه وي کړی لِأَنَّهُ عَلَيْهِ الصَّلَاةُ وَالسَّلَامُ● وَأَصْحَابَهُ رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُمْ كَانُوا يُسَافِرُونَ ځکه نبي کریم ﷺ او صحابه وو به سفر کوی وَيَعُودُونَ إِلَى أَوْطَانِهِمْ او (کله چې به تر سفر کولو وروسته) خپلو کورونو ته واپس راتلل مُقِيمِينَ مِنْ غَيْرِ عَزْمٍ جَدِيدٍ نو بغیر له یو نوي ارادې (نیت) څخه به مقیم کېدل.

**اللغات:** ﴿أوطان﴾ جمع ده، واحد یې وَطنٌ دی: وطن، هیواد.

**تشریح:** صورت د مسئلې: دا دی چې کله مسافر د خپل وطنِ اصلي اراده وکړي، نو کله چې د وطن په آبادۍ کې داخل سي، مقیم گرځي، که څه هم د اقامت نیت نه وکړي. دلیل: دا دی چې نبي ﷺ او صحابه چې به کله تر سفر پوره کولو وروسته خپل وطن ته واپس راتلل نو بغیر د اقامت له نیت څخه به مقیم کېدل.

---

● تخريج: أخرجه أبو داؤد في كتاب الصلاة، باب متى يتم المسافر، حديث رقم:۱۲۲۹؛ والترمذي في كتاب الصلاة، باب:۳۹، حديث رقم:۵۴۵.

● تخريج: أخرجه البيهقي في كتاب الصلاة، باب المسافر ينزل بشي من ماله، حديث رقم:۵۴۸۳.

## د وطنِ اقامت د باطلېدلو بيان

وَمَنْ كَانَ لَهُ وَطَنٌ او د کوم سړي لپاره چې خپل وطن وو (يعني كه يو سړى اول وار په يو وطن كي وسېدى) فَانْتَقَلَ عَنْهُ (لېکن) له هغه وطن څخه منتقل سو وَاسْتَوْطَنَ غَيْرَهُ او بل ځای يې خپل وطن جوړ کړی ثُمَّ سَافَرَ بيا يې سفر وکړی وَدَخَلَ وَطَنَهُ الْأَوَّلَ او خپل اول وطن ته داخل سو قَصَرَ نو (اوس به په لمونځونو کي) قصر کوي لِأَنَّهُ لَمْ يَبْقَ وَطَنًا لَهُ ځکه چي دا اوس د ده وطن پاته نه سو أَلَا تَرَى آيا ته نه ګورې أَنَّهُ عَلَيْهِ الصَّلَاةُ وَالسَّلَامُ * بَعْدَ الْهِجْرَةِ عَدَّ نَفْسَهُ بِمَكَّةَ مِنَ الْمُسَافِرِينَ چي نبي ﷺ تر هجرت وروسته په مكه كي خپل ځان له مسافرو څخه شمار کړی وَهَذَا لِأَنَّ الْأَصْلَ او دا حكم ځكه دی چي قاعده دا ده أَنَّ الْوَطَنَ الْأَصْلِيَّ يَبْطُلُ بِمِثْلِهِ چي وطنِ اصلي په خپل مثل (يعني وطن اصلي) سره باطلېږي دُونَ السَّفَرِ نه په سفر سره وَوَطَنُ الْإِقَامَةِ يَبْطُلُ بِمِثْلِهِ او وطنِ اقامت (هم) په خپل مثل (وطنِ اقامت) سره باطلېږي وَبِالسَّفَرِ او په سفر سره (هم وطنِ اقامت) باطلېږي وَبِالْأَصْلِيِّ او په وطن اصلي سره (هم) باطلېږي.

**اللغات**: ﴿اِسْتَوْطَنَ﴾ د استفعال د باب ماضي ده: وطن جوړول.

**تشريح**: عامو مشائخو د وطن درې قسمونه بيان کړي دي: (۱) وطن اصلي، (۲) وطن اقامت، (۳) وطن سکنیٰ.

(۱) وطن اصلي د انسان د پيدايش ځای دی يا هغه ښار چي په هغه كي د ده اهل و عيال (بال بچ) اوسېږي، او له هغه څخه د ده د تللو اراده نه وي. (۲) وطن اقامت هغه ښار يا كلی دی چي په هغه كي مسافر د پنځلس ورځو پاته کېدلو اراده وکړي، د دې دويم نوم وطن سفر هم دی. (۳) وطنی سکنیٰ هغه ښار دی چي په هغه كي مسافر تر پنځلس ورځو د کم پاته کېدلو اراده وکړي. او قاعده دا ده چي وطن اصلي په وطن اصلي سره باطلېږي، او د عبارت مسئله پر يو بل اصل او قاعدې متفرع سوې ده هغه دا چي هر شی په هغه شي سره باطلېږي کوم چي له هغه څخه لوړ او اعلیٰ وي، همدارنګه په خپل مساوي (برابر) شي سره هم باطلېږي، او په خپل ضد او نقيض شي سره هم باطلېږي، لېکن په هغه شي سره نه باطلېږي کوم چي له هغه څخه کم وي.

اوس په عبارت کي د بيان سوې مسئلې حاصل دا دی چي كه يو سړی د خپل بال بچ سره له خپل وطن اصلي څخه بل ځای ته ولاړ، او هغه ځای يې خپل وطن جوړ کړی، او په هغه کي يې استوګنه اختيار کړه، لو بيا دا سړي سفر وکړی خپل مخکني وطن ته راغلی نو دا سړی به په دې وطن کي مقيم نه شمارل کېږي، بلکي مسافر به وي، او قصر به کوي، ځکه چي اوس د ده اول وطن ختم سو؛ په دې باره کي تر ټولو ښکاره دليل دا دی چي کله نبي کريم ﷺ له مکې څخه مدينې ته هجرت وکړی، او د فتح مکه پر وخت چي بيا کله مکې ته راغلی نو هغوی ﷺ خپل ځان مسافر شمار کړی، او په قصر سره يې لمونځ کوی، او بيا مورږ مخکي دا قاعده هم بيان کړه چي وطن اصلي په وطن اصلي سره باطلېږي. ځکه چي يو شی په خپل مساوي (او مشابه) شي سره باطلېږي. لېکن وطن اصلي په سفر يا وطنِ اقامت سره نه باطلېږي. ځکه چي اقامت له هغه څخه کم دی، او په سفر سره وطن اصلي په دې وجه نه باطلېږي چي نبي ﷺ او صحابه به د غزاګانو او نورو لپاره له مدينې څخه دباندې تلل، لېکن تر واپس راتلو وروسته به له نيت څخه بغير مقيم کېدل. لکه د دې تفصيل چي مخکي تېر سو.

د دې په خلاف وطن اقامت په هر شي سره باطليږي، يعني په وطن اصلي سره هم باطليږي، او په وطن اقامت او سفر سره هم باطليږي، په وطن اصلي سره په دې وجه باطليږي ځکه چې وطن اصلي له وطن اقامت څخه لوړ دی، او په وطن اقامت سره يې د باطلېدلو وجه مساوات او برابري ده، او په سفر سره په دې وجه باطليږي ځکه چې سفر د اقامت ضد دی، او يو شی په خپل ضد او نقيض سره باطلېدی سي.

## په دوو ښارونو کي د اقامت نيت کول

وَإِذَا نَوَى الْمُسَافِرُ او کله چې مسافر نيت وکړي أَنْ يُقِيمَ بِمَكَّةَ وَمِنًى خَمْسَةَ عَشَرَ يَوْمًا چې په مکه او منیٰ کي به پنځلس ورځي اقامت کوي لَمْ يُتِمَّ الصَّلَاةَ نو لمونځ به پوره نه کوي لِأَنَّ اعْتِبَارَ النِّيَّةِ فِي مَوْضِعَيْنِ يَقْتَضِي ځکه چې په دوو ځايونو کي د (اقامت) د نيت اعتبار کول د دې تقاضا کوي اعْتِبَارَهَا فِي مَوَاضِعَ چې په نورو ډېرو ځايونو کي به (هم د اقامت) د نيت اعتبار کيږي وَهُوَ مُمْتَنِعٌ او دا ناممکنه ده لِأَنَّ السَّفَرَ لَا يَعْرَى عَنْهُ ځکه چې سفر له اقامت څخه خالي نه وي إِلَّا إِذَا نَوَى الْمُسَافِرُ أَنْ يُقِيمَ بِاللَّيْلِ فِي أَحَدِهِمَا خو چې کله مسافر له دې دواړو ځايونو څخه په يوه کي د شپې د اقامت کولو نيت وکړي فَيَصِيرُ مُقِيمًا بِدُخُولِهِ فِيهِ نو هغه ځای ته په داخلېدلو سره مقيم ګرځي لِأَنَّ إِقَامَةَ الْمَرْءِ مُضَافَةٌ إِلَى مَبِيتِهِ ځکه چې د انسان مقيم کېدل د شپې د تېرولو د ځای و طرف ته منسوبيږي.

**اللغات:** ﴿مرء﴾ سړی، ﴿مبيت﴾ په دې کي دوه احتماله دي: يو دا چې دا مصدر ميمي دی نو معنیٰ به يې دا وي: شپه تېرول، او بل دا چې اسم ظرف دی نو معنیٰ به يې دا سي: د شپې تېرولو ځای.

**تشريح:** صورت د مسئلې: دا دی که مسافر په داسي دوو ځايونو کي د پنځلس ورځو د پاته کېدلو نيت وکړي چې له دواړو څخه يو مستقل نه وي، د مثال په توګه په مکه او منیٰ کي د اقامت نيت وکړي، نو دئ مقيم نه شمارل کيږي، بلکي قصر به کوي، ځکه چې په دوو ځايونو کي د نيت معتبر کېدل د دې خبري تقاضا کوي چې له دوو څخه دې په زياتو ځايونو کي هم نيت معتبر کړی سي، کنې ترجيح بلا مرجح به راسي، او د مسافر لپاره په ډېرو ځايونو کي د اقامت نيت کول ناممکنه او ممتنع دي، ځکه چې سفر په ډېرو ځايونو کي د قيام کولو څخه خالي نه وي، بلکي په ډېرو ځايونو کي قيام او اقامت کول ضروري وي، نو که په ډېرو ځايونو کي د اقامت د نيت اعتبار وکړی سي نو مطلب يې به دا سي چې انسان به هيڅ کله هم مسافر نه سي.

إلا إذا نوی الخ او که صورت دا سي وي چې په دواړو ځايونو کي د پنځلس ورځو د اقامت نيت وکړي او په دې دواړو کي په يو معلوم ځای کي د شپې تېرولو نيت وکړي، نو دا نيت به يې معتبر وي، اوس که دا سړی هغه ځای ته اول ولاړ سي په کوم ځای چې يې د ورځي تېرولو نيت وي، نو دی به مقيم نه ګرځي، او که اول هغه ځای ته ولاړ سي په کوم ځای کي چې يې د شپې تېرولو اراده او نيت کړی وي، نو دی به هغه علاقې ته په داخلېدلو سره مقيم ګرځي، او بيا به هغه علاقې ته په تګ سره مسافر نه ګرځي چې په هغه کي يې د ورځي تېرولو نيت کړی وي، ځکه چې د سړي اقامت هغه ځای ته منسوب کيږي په کوم ځای کي چې شپه تېروي، وګورئ! که له يو چا څخه پوښتنه وسي چې ته په کوم ځای کي اوسيږې!، نو دی به د هغه کلي او علاقې نوم ور ښيي چې هلته دی شپې تېروي، نه د کاروبار د ځای نوم.

## د سفر او حضر په قضاء سوو لمونځونو کي قصر او اکمال

وَمَنْ فَاتَتْهُ صَلَاةٌ فِي السَّفَرِ او که له يو سړي څخه په سفر کي يو لمونځ نوت (قضا) سي قَضَاهَا فِي الْحَضَرِ رَكْعَتَيْنِ نو په حضر کي به د هغه لمانځه دوه رکعته قضاء راوړي وَمَنْ فَاتَتْهُ فِي الْحَضَرِ او که له چا څخه په حضر کي لمونځ قضاء سي قَضَاهَا فِي السَّفَرِ أَرْبَعًا نو په سفر کي به د هغه څلور رکعته قضاء راوړي لِأَنَّ الْقَضَاءَ بِحَسَبِ الْأَدَاءِ ځکه چي قضاء به د اداء مطابق وي وَالْمُعْتَبَرُ فِي ذٰلِكَ آخِرُ الْوَقْتِ او په دې سلسله کي آخري وخت معتبر دی لِأَنَّهُ الْمُعْتَبَرُ فِي السَّبَبِيَّةِ ځکه چي آخري وخت د سببيت لپاره معتبر دی عِنْدَ عَدَمِ الْأَدَاءِ فِي الْوَقْتِ چي کله په وخت کي دننه اداء نه وسي.

**تشريح: صورت د مسئلې:** خو بالکل ښکاره دی، چي که له يو سړي څخه په سفر کي يو لمونځ قضاء سي، او هغه په حضر (يعني په حالت د اقامت) کي د هغه قضاء راوړل وغواړي، نو دوه رکعته دي وکړي، ځکه چي د قضاء وجوب د اداء په اعتبار سره دی، او څرنګه چي پر مسافر دوه رکعته اداء کول فرض دي، نو ځکه به په سفر کي څلور رکعتيز قضائي لمونځونه دوه رکعته اداء کيږي، هغه که يې په سفر کي قضاء راوړي، او که په حضر کي، او څرنګه چي د دې په خلاف پر مقيم سړي په څلور رکعتيز لمونځونو کي اتمام فرض دی، نو ځکه که له يو سړي څخه په حضر کي يو لمونځ قضاء سي، او هغه يې اداء کول وغواړي نو څلور رکعته دي کوي، هغه که يې په سفر کي قضاء راوړي او که په حضر کي.

والمعتبر الخ فرمايي چي د قضائي لمونځونو په اداء کولو کي د آخري وخت اعتبار دی، يعني په آخري وخت کي چي دا سړی څرنګه وي؟ د هغه اعتبار به کيږي، نو که په آخري وخت کي دا سړی مسافر وي، د مثال په توګه د ماپښين لمونځ په وخت کي دننه نه وکړي او د وخت تر وتلو مخکي مسافر سي يعني د ښار له آبادۍ څخه ووځي، نو د سفر لمونځ به پر واجب وي، او د دوو رکعتونو قضاء به راوړي، او که په آخري وخت کي مقيم وي نو د اقامت لمونځ به پر واجب وي، او د څلورو رکعتو قضاء به راوړي.

**فايده:** له آخري وخت څخه دومره وخت مراد دی چي په هغه کي سړی د اودس کولو سره سره تحريمه هم تړلای سي. (عنايه)

## په قصر کي به نېک او ګنهګاره سړی دواړه برابر وي، که نه؟ (د فقهاؤ قولونه)

وَالْعَاصِيْ وَالْمُطِيْعُ فِي سَفَرِهِمَا فِي الرُّخْصَةِ سَوَاءٌ ګنهګاره او فرمان بردار (دواړه) د خپل سفر د رخصت په باره کي برابر دي وَقَالَ الشَّافِعِيُّ رَحِمَهُ اللّٰهُ: سَفَرُ الْمَعْصِيَةِ لَا يُفِيْدُ الرُّخْصَةَ امام شافعي رَحِمَهُ الله فرمايي: چي د ګناه سفر د رخصت فايده نه ورکوي لِأَنَّهَا تَثْبُتُ تَخْفِيْفًا ځکه چي رخصت تخفيف (آساني) ثابتوي فَلَا تَتَعَلَّقُ بِمَا نو رخصت به د داسي شي سره نه متعلق کيږي يُوْجِبُ التَّغْلِيْظَ چي هغه سختي واجبوي وَلَنَا إِطْلَاقُ النُّصُوْصِ او زموږ دليل د نصوصو مطلق کېدل دي وَلِأَنَّ السَّفَرَ لَيْسَ بِمَعْصِيَةٍ او په دې وجه (هم) چي (بذات خود) سفر ګناه نه ده وَإِنَّمَا الْمَعْصِيَةُ مَا او ګناه خو هغه ده يَكُوْنُ بَعْدَهُ چي ترسفر وروسته وي أَوْ يُجَاوِرُهُ يا د سفر سره متصله وي فَصَلُحَ مُتَعَلِّقُ الرُّخْصَةِ نو ځکه به د رخصت د متعلق کېدلو صلاحيت (لياقت) لري، والله أعلم.

**اللغات:** ﴿عاصي﴾ د ضرب د باب اسم فاعل دی: نافرمانه، ګنهګاره. ﴿المطيع﴾ د افعال د باب اسم فاعل دی: فرمان برداره (فرمان وړونکی)، نېک، اطاعت کونکی. ﴿التغليظ﴾ د تفعيل د باب مصدر دی: سختي.

**تشريح: مسئله:** دا ده چي زموږ په نېز هر يول مسافر ته د قصر رخصت او اجازه سته، هغه که په خپل سفر کي مطيع او نېک وي، يعني د يو نېک کار لپاره سفر کوي، يا که عاصي او ګنهګاره وي يعني د ګناه او بدو کارونو لپاره سفر کوي، د دې په خلاف امام شافعي رَحِمَهُ الله فرمايي چي د سفر رخصت صرف نېک او مطيع مسافر ته سته، ګنهګاره مسافر ته نه سته.

**د امام شافعي دليل:** دا دی چي په سفر کي د رخصت مطلب دا دی چي پر مسافر آساني او تخفيف راسي، او پر ګنهګاره مسافر د تخفيف پر ځای سختي او عذاب راوېستل پکار دي، نو ځکه به ګنهګار ته د قصر اجازه نه وي.

**زموږ دليل:** د نصوصو مطلق کېدل دي، يعني په آيتو او حديثونو کي دا فرق نسته چي نېک مسافر ته به رخصت وي او نافرمانه مسافر ته به رخصت نه وي، نو د نص د مطلق والي په وجه به ټولو ته رخصت وي هغه که نېک وي او که ګنهګاره، او بل دا چي په خپله په سفر کي هيڅ ګناه نسته، ګناه خو د سفر تر ختمېدلو وروسته کيږي، لکه ډاکه او غلا چي تر سفر کولو وروسته کيږي، او کله کله داسي کيږي چي د سفر سره يو ځای ګناه کيږي، د مثال په توګه يو غلام تښتي نو د سفر سره يو ځای د تښتېدلو ګناه کيږي، خو بيا هم په سفر کي هيڅ ګناه نسته، ګناه کول له سفر څخه جلا شی دی، او رخصت خو د سفر په وجه وي، نو ځکه به ګنهګاره او نېک دواړو ته رخصت وي.



# بَابُ صَلَاةِ الْجُمُعَةِ

## (دا) باب د جمعې د لمانځه (د احکامو په بيان کې) دی

**تشريح:** تر دې مخکې صاحب د کتاب باب صلاة المسافر بيان کړی، اوس له دې ځايه باب صلاة الجمعة بيانوي، د دواړو په مينځ کې د مناسبت وجه دا ده چې د هر يوه په ذريعه نيم لمونځ ساقطيږي، لکه څرنګه چې سفر په څلور رکعتيز لمونځونو کې تنصيف کوي، يعني تول څلور رکعتيز لمونځونه نيمی کوي، همدارنګه جمعه د ماپښين په لمانځه کې تنصيف کوي، يعني د ماپښين لمونځ نيمی کوي، خو څرنګه چې د جمعې په مقابله کې د سفر تنصيف عام دی، او ټولو څلور کعتيزو لمونځونو ته شامل دی، نو ځکه يې د سفر احکام د جمعې تر احکامو مخکې بيان کړه، ځکه چې د جمعې تنصيف صرف د ماپښين سره خاص دی، او دومره خو تاسو ته هم معلومه ده چې عام تر خاص مخکې وي.

**وجه د تسميې:** الجمعة دا لفظ د جيم او ميم په ضمه سره هم ويل کيږي يعني: جُمُعَة، او د جيم په ضمه او د ميم په فتحه سره هم ويل کيږي، يعني: جُمَعَة، دا لفظ له "اجتماع" څخه مشتق دی، لکه فُرقة چې له "افتراق" څخه مشتق دی، ① او څرنګه چې د جمعې په ورځ د خلکو اجتماع کيږي يعني خلک سره راجمع کيږي، نو ځکه دې ورځې ته جمعه وايي، ② دويم قول دا دی چې جمعې ته ځکه جمعه وايي چې په دې ورځ کې الله ﷻ يې شمېره برکتونه او انوار جمع کړي دي، ③ دريم قول دا دی چې حضرت آدم ؑ خپل ځان د جمعې په ورځ سره را جمع کړي وه، نو په دې مناسبت سره دې ته جمعه وايي. (بنايه ج۳، ص۴۵۰)

**د جمعې د فرضيت دلائل:** صاحب د بنايې ليکلي دي چې د جمعې فرضيت په کتاب، سنت او اجماع ټولو سره ثابت دی، په کتاب يعني قرآن کريم کې د الله ﷻ دا ارشاد دی: يا أيها الذين آمنوا إذا نودي للصلوٰة من يوم الجمعة فاسعوا إلى ذكر الله الخ او په اتفاق د مفسرينو له ذکرُ الله څخه جمعه مراد ده، او بيا د فاسعوا امر د وجوب لپاره دی، نو له دې څخه د سعی إلى الجمعة وجوب ثابت سو، او سعی إلى الجمعة شرط دی د جمعې د لمانځه لپاره، نو کله چې يې شرط واجب سو، نو د اصل لمانځه په فرض کېدلو کې خو به هيڅ شک او شبهه نه وي.

او په حديث سره د جمعې ثبوت دا رنګه سوی دی چې حضرت جابر او ابو سعيد رضي الله عنهما فرمايي: خطبنا رسول الله ﷺ (وقال فيه) اعلموا أن الله تعالى فرض عليكم صلاة الجمعة (يعني نبي ﷺ موږ ته په خطبه کې وويل: پوه سئ چې الله تعالیٰ پر تاسو د جمعې لمونځ فرض ګرځولی دی).

او په اجماع سره د جمعې ثبوت په دې توګه دی چې د نبي ﷺ له زمانې څخه واخله تر اوسنۍ زمانې پورې له څه قيل او قال څخه بغير جمعه فرض ګڼل کيږي، دا د دې د فرضيت ښکاره دليل دی، او بيا عقلاً هم د جمعې فرضيت ښکاره کيږي ځکه چې الله تعالیٰ د جمعې د لمانځه په وجه موږ ته د ماپښين د لمانځه پرېښوولو حکم کړی دی او د ماپښين لمونځ فرض دی، او قاعده دا ده چې فرض د فرضو په وجه پرېښوول کيږي، يعني يو فرض هغه وخت ساقطيږي چې په مقابله کې يې بل فرض راسي، نو په دې حواله سره هم جمعه فرض سوه.

**تر ټولو مخکې د جمعې لمونځ کله وسو:** کله چې نبي ﷺ له مکې مکرمې څخه مدينې منورې ته هجرت وکړی، نو په قباء کې د عمرو بن عوف رضي الله عنه په کلي (محله) کې څوارلس شپې پاته سو، هم په دې وخت کې نبي ﷺ د یوه مسجد بنیاد کېښوی، چې هغه ته په اسلام کې تر ټولو اول مسجد ویل کیږي، بیا چې کله نبي ﷺ له قباء څخه د مدینې پر طرف د جمعې په ورځ روان سو، نو په لاره کې د سالم بن عوف په کلي کې د جمعې د لمانځه وخت راغلی، نبي ﷺ له سپرلي څخه را ښوه سو، او په هغه مسجد کې یې د جمعې لمونځ وکړی، کوم چې د شېلې په مېنځ کې وو (یعني په بطنُ الوادي کې وو)، نو دا په اسلام کې تر ټولو اول اداء کړی سوی د جمعې لمونځ دی، په دې جمعه کې په سلهاوو مسلمانان شریک سول، او په دې اړه پوره تفصیل په شرح سیر کبیر کې وګورئ.

**د جمعې شرطونه:** په دې باب کې د جمعې د فرضیت دوولس شرطونه بیانیږي، چې په دې دوولسو شرطونو کې شپږ داسي دي چې تعلق یې د لمونځ کونکي (مصلي) د ذات سره دی:

(۱) آزاد به وي، غلام به نه وي (۲) نارینه به وي (۳) مقیم به وي (۴) روغ به وي، مریض به نه وي (۵) پښې به یې روغي وي، ګوډ به نه وي، (۶) سترګي به یې روغي وي، ړوند به نه وي، نو له دې څخه معلومه سوه چې پر غلام، ښځه، مسافر، ناروغه، ګوډ او ړانده باندي د جمعې لمونځ فرض نه دی، او شپږ شرطونه بیا داسي دي چې د لمونځ کونکي له ذات څخه دباندي دي:

(۱) ښار به وي، نو په صحرا کې د جمعې لمونځ جائز نه دی (۲) جماعت به وي (۳) باچا یا د باچا نائب به په لمانځه کې وي (۴) د ماپښین د لمانځه وخت به وي (۵) خطبه به وي، بې له خطبې د جمعې لمونځ جائز نه دی (۶) او عامه اجازه به وي. (بنایه ج:۳، ص: ۴۷/۴۸)

## د جمعې د لمانځه د صحیح کېدلو شرطونه

لَا تَصِحُّ الْجُمُعَةُ جمعه نه صحیح کیږي إِلَّا فِي مِصْرٍ جَامِعٍ أَوْ فِي مُصَلَّى الْمِصْرِ مګر یو په جامع ښار کې یا د ښار په فناء (اطرافو) کې (دلته له مُصلیٰ څخه مراد د ښار فناء ده که څه هم مُصلیٰ عیدګاه ته ویل کیږي) وَلَا تَجُوزُ فِي الْقُرَى او جمعه جائز نه په کلي کې لِقَوْلِهِ عَلَيْهِ الصَّلَاةُ وَالسَّلَامُ • ځکه نبي ﷺ فرمایلي دي لَا جُمُعَةَ وَلَا تَشْرِيقَ وَلَا فِطْرَ وَلَا أَضْحَى إِلَّا فِي مِصْرٍ جَامِعٍ چې جمعه، تکبیر تشریق، او د کوچني اختر او لوی اختر لمونځ جائز نه دی لېکن په جامع ښار کې وَالْمِصْرُ الْجَامِعُ: • كُلُّ مَوْضِعٍ لَهُ أَمِيرٌ وَقَاضٍ او جامع ښار هر هغه ځای دی چې د هغه لپاره یو امیر او قاضي وي يُنَفِّذُ الْأَحْكَامَ وَيُقِيمُ الْحُدُودَ چې هغه احکام نافذوي او حدود جاري کوي وَهَذَا عِنْدَ أَبِي يُوسُفَ رَحِمَهُ اللهُ او دا د امام ابو یوسف رَحِمَهُ الله په نېز دي وَعَنْهُ او له امام ابو یوسف رَحِمَهُ الله څخه (دویم) روایت دا دی (چې جامع ښار هغه ته ویل کیږي) أَنَّهُمْ إِذَا اجْتَمَعُوا فِي أَكْبَرِ مَسَاجِدِهِمْ لَمْ يَسَعْهُمْ چې کله خلک تر ټولو په غټ کې مسجد کې جمع سي نو مسجد یې ځای نه

---

• تخریج: أخرجه البیهقي في سنن الکبریٰ في کتاب الجمعة، باب العدد اذا کانوا في قریة وجبت، حدیث رقم: ۵۶۱۵.

• القول الراجح: قول أبي حنیفة رَحِمَهُ الله، کما قال العلامة کمال الدین بن الهمام رَحِمَهُ الله: و قال ابو حنیفة رَحِمَهُ الله المصر کل بلدة فیها سکک و أسواق ولها رساتیق و وال ینصف المظلوم من الظالم وعالم یرجع الیه في الحوادث وهذا أخص مما اختاره المصنف رَحِمَهُ الله قیل وهو الأصح، فتح القدیر ج:۲، ص:۲۵. [القول الراجح ج:۱، ص:۱۳۹]

کړي (یعني په مسجد کې ځای نه سي، نو دې ته جامع ښار ویل کیږي) وَالْأَوَّلُ اخْتِيَارُ الْكَرْخِيِّ او اول تعریف امام کرخي رَحِمَهُ الله اختیار کړی دی وَهُوَ الظَّاهِرُ او د مذهب ظاهر هم دغه دی وَالثَّانِي اخْتِيَارُ الثَّلْجِيِّ او دویم تعریف حضرت ثلجي رَحِمَهُ الله اختیار کړی دی وَالْحُكْمُ غَيْرُ مَقْصُورٍ عَلَى الْمُصَلَّى او د جواز حکم پر عیدګاه منحصر نه دی بَلْ تَجُوزُ فِي جَمِيعِ أَفْنِيَةِ الْمِصْرِ بلکې د ښار په ټولو فناګانو کې جائز دی لِأَنَّهَا بِمَنْزِلَتِهِ فِي حَوَائِجِ أَهْلِهِ ځکه چې د ښار هره فناء د ښاریانو د اړتیاوو په حواله سره د ښار په منزله کې ده.

**اللغات:** ﴿مُصَلّٰى﴾ عیدګاه، (دلته مجازاً فناء ځني مراد ده)، ﴿تَشْرِيق﴾ په لوړ آواز سره تکبیر ویل، ﴿أَفْنِيَة﴾ جمع ده، واحد یې فناء دی: د فناء په باره کې څو قولونه دي خو معتبر قول دا دی چې له ښار څخه دباندې هغه ټولو ځایونو او میدانونو ته د ښار فناء ویل کیږي چې له هغه څخه د ښار خلک فایده اخلي مثلاً: د ځغلاستې او لوبې میدان، هدیره، پارک، د تماشې لپاره جوړ سوي میدانونه، چراګاه او داسې نور....، نور قولونه به وروسته ذکر سي.

**تشریح:** د مسئلې تر صورت مخکې باید د دریو (۳) لفظونو تشریح په ذهن کې ونیسو:

**د جامع مصر (جامع ښار) تعریف:** د جامع ښار په تعریف کې اختلاف دی، د امام ابو حنیفه رَحِمَهُ الله په نیز جامع ښار هغه دی چې په هغه کې سړکونه (عمومي لاري) او بازارونه وي، او دغه ښار خپل حاکم (واکمن) لري چې د ظالم او مظلوم په مینځ کې د انصاف پریکړه کوي، همدارنګه عالم او قاضي هم وي چې د پېښېدونکو مسئلو په اړه فتویٰ ورکوي، له امام ابو یوسف رَحِمَهُ الله څخه په دې باره کې درې روایتونه دي: (۱) یو دا چې جامع ښار هر هغه ځای دی چې په هغه کې امیر او قاضي وي چې هغوی د احکامو پر جاري کولو او د شرعي سزاګانو پر قائمولو قدرت لري، د جامع ښار په باره کې همدغه روایت ظاهر د مذهب دی او امام کرخي رَحِمَهُ الله رَحِمَهُ الله هم اختیار کړی دی، (۲) دویم روایت دا دی چې جامع ښار دومره غټ ځای ته ویل کیږي چې که د هغه ځای له مسجدونو څخه په غټ مسجد کې د هغه ځای خلک راجمع سي نو په مسجد کې ځای نه سي، بلکې مسجد په ډک سي او څه خلک زیات سي، نو دې ځای ته جامع ښار ویل کیږي، دا روایت ابو عبدالله ثلجي رَحِمَهُ الله اختیار کړی دی، (۳) دریم روایت دا دی چې هغه ښار ته جامع ښار ویل کیږي چې په هغه کې لس زره آبادي وي یعني تقریباً لس زره خلک پکښې استوګن وي، او سفیان ثوري رَحِمَهُ الله وایي چې جامع ښار هغه دی چې خلک یې د خپلو خبرو اترو په وخت کې ښار ګڼي.

**د مُصلّٰی تعریف:** د ښار عیدګاه (اختر ځای) ته مُصلیٰ ویل کیږي، یعني چیري چې د اختر لمونځ کیږي هغه ته مُصلیٰ ویل کیږي، خو دلته له مُصلیٰ څخه مراد د ښار فناء ده، او فناء د ښار هغه اطرافو ته ویل کیږي کوم چې د ښار سره جوخت وي، او د ښاریانو د فایدو او ګټو لپاره جوړ سوي وي، لکه هدیره، د لوبې او ځغلاستې میدان، چراګاه، عیدګاه، د حیواناتو د ذبح کولو ځای، د اوسنی زمانې پارکونه او داسې نور.

**د ښار د فناء څه اندازه ده؟** د ښار د فناء د اندازې په باره کې اختلاف دی: (۱) امام محمد رَحِمَهُ الله د ښار د فناء اندازه یوه غلوه ذکر کړې ده، او د یوې غلوې اطلاق له درې سوه شرعي ګزونو څخه تر څلور سوه شرعي ګزونو پوري کیږي، یعني د ښار له آبادی څخه بهر چې تر څلور سوه ګزونو پوري کومه علاقه وي هغه ته د ښار فناء ویل کیږي، (۲) امام ابو یوسف رَحِمَهُ الله د ښار د فناء اندازه یو میل یا دوه میله بیان کړې ده، (۳) بعضي علماؤ فرمایلي دي: چې د ښار اذان او غږ نعره چې تر کومه ځایه ورسیږي تر هغه ځایه پوري د ښار فناء ده.

**صورت د مسئلې:** تر دې تفصیل وروسته صورت د مسئلې دا دی: چې د جمعې لمونځ په ښار او د ښار په فناء دواړو ځایونو کې جائز دی، خو په کلي او قریه کې جائز نه دی(ښکاره دې وي چې دلته له کلي څخه مراد هغه صحرایي کلی او آبادي ده چې د ښار او د ښار له فناء څخه دباندې وي)، د امام مالک او امام شافعي رَحِمَهُمَااللہ په نیز په کلي او قریه کې هم د جمعې لمونځ جائز دی، او صاحب د بنایې د امام شافعي رَحِمَهُ‌اللہ قول داسې را نقل کړی دی چې په هر هغه ځای او کلي کې جمعه کول صحیح او جائز دي چې هلته څلوېښت آزاده خلک مقیم وي، او په ژمي او ګرمي یعني په هر موسم کې هلته اوسیږي، او د امام محمد رَحِمَهُ‌اللہ همدغه رایه ده.

**د امام شافعي او نورو دلیلونه: اول دلیل:** د دې حضراتو اوړل دلیل دا دی چې په قرآن کریم کې له دې آیت فاسعوا څخه د جمعې فرضیت ثابتیږي، او دا آیت مطلق دی، او قاعده دا ده چې المطلق یجری علی إطلاقه، نو په دې وجه به هر ځای د جمعې د جواز حکم وي، هغه که ښار وي او که د ښار فناء وي. **دویم دلیل:** د دوی دویم دلیل د ابن عباس حدیث دی: إن أول جمعة جمعت بعد جمعة فی مسجد رسول الله ﷺ فی مسجد عبد مناف بجواثا من البحرین. (یعني د نبي ﷺ له مسجد(مسجد نبوي) څخه وروسته اول د جمعې لمونځ په جواثا کې د بنو عبد مناف په مسجد کې وسو، او جواثا په بحرین کې د یو کلي نوم دی)، نو له دې حدیث څخه ثابته سوه چې په کلي کې د جمعې لمونځ جائز دی.

**زموږ دلیل:** د نبي ﷺ دا قول لا جمعة ولا تشریق.... *یعني د جمعې لمونځ، د تشریق تکبیرونه، د کوچني اختر لمونځ او د لوی اختر لمونځ صرف په ښار کې جائز دی.

**جوابونه:** د امام مالک او امام شافعي رَحِمَهُمَااللہ د اول دلیل جواب دا دی چې تاسو چې کوم دا خبره کوئ چې آیت خپل پر اطلاق پاته دی، دا خبره تاسو خپله هم ماته کړې ده، ځکه چې تاسو هم په دې آیت کې تخصیص کړی دی. لکه څرنګه چې ستاسو په نیز چې په کوم ځای کې څلوېښت خلک وي او په ژمي او ګرمي کې هلته اوسیږي، نو هلته د جمعې لمونځ صحیح دی، نو آیا دا تخصیص نه دی!، نو څرنګه چې ستا سو لپاره تخصیص صحیح دی، همدارنګه زموږ لپاره هم صحیح دی، بلکې زموږ تخصیص خو د صحابي د اثر سره برابر دی، او ستاسو تخصیص صرف عقلي او خیالي دی. **د دویم دلیل جواب:** دا دی چې په حدیث کې له قریه څخه مراد ښار دی، ځکه چې پخوا به د قریه اطلاق پر ښار کېدی، لکه په دې آیت کې وَ قَالُوْا لَوْلَا نُزِّلَ هٰذَا الْقُرْاٰنُ عَلٰى رَجُلٍ مِّنَ الْقَرْيَتَيْنِ عَظِيْمٍ په دې کې له قریتین څخه مراد مکه او طائف دي، او مکه خو په یقیني توګه ښار دی، نو ثابته سوه چې په حدیث کې له قریه څخه مراد ښار دی، دویم جواب دا دی چې جواثا په بحرین کې د یو کلا(قلعې) نوم دی، او په پخواني قلعو کې به حاکم او عالم خامخا وو، نو له دې څخه هم د دې ښار کېدل ثابت سو، همدا وجه ده چې په مبسوط کې جواثا ته د بحرین یو ښار ویل سوي دي.

والحکم غیر مقصور علی المصلی الخ مطلب یې دا دی چې څرنګه د جمعې لمونځ په عیدګاه کې جائز دی، ځکه چې عیدګاه هم د ښار فناء ده، همدارنګه د ښار په څلور سره وو اطرافو او فناګانو کې یعني چې تر کومه ځایه پورې د ښار د فناء اطلاق کیږي د جمعې لمونځ جائز دی، ځکه چې د ښاریانو د اړتیاوو د پوره کېدلو په حواله د ښار فناء هم د ښار په حکم کې ده.

---

* صاحب د اثمار الهدایې لیکلي دي چې تر لټون وروسته معلومه سوه چې دا قول د حضرت علي رَحِمَهُ‌اللہ دی (اثمار الهدایه ج:۲، ص:۲۵۳)، او صاحب د فتح القدیر هم د دې صراحت کړی دی.

## په منیٰ کي د جمعې حکم

وَتَجُوْزُ بِمِنًى او په منیٰ کي جمعه جائز ده إِذَا كَانَ الْأَمِيْرُ أَمِيْرَ الْحِجَازِ په دې شرط چي د حج امير د حجاز امير وي أَوْ كَانَ الْخَلِيْفَةُ مُسَافِرًا يا په خپله خليفه مسافر وي او هلته موجود وي عِنْدَ● أَبِيْ حَنِيْفَةَ وَأَبِيْ يُوْسُفَ رَحِمَهُمَا اللهُ (دا د جواز حکم) د شيخينو رَحِمَهُمَا الله په نېز (دی) وَقَالَ مُحَمَّدٌ رَحِمَهُ اللهُ: لَا جُمُعَةَ بِمِنًى او امام محمد رَحِمَهُ الله فرمايلي دي: چي په منیٰ کي جمعه جائز نه ده لِأَنَّهَا مِنَ الْقُرٰى ځکه چي منیٰ کلی دی حَتّٰى لَا يُعَيَّدُ بِهَا تر دې چي هلته د اختر لمونځ نه کېږي وَلَهُمَا أَنَّهَا تَتَمَصَّرُ فِيْ أَيَّامِ الْمَوْسِمِ او د شيخينو رَحِمَهُمَا الله دليل دا دی چي منیٰ د حج په موسم کي ښار جوړېږي وَعَدَمُ التَّعْيِيْدِ لِلتَّخْفِيْفِ او د اختر لمونځ نه کېدل د خلکو د آسانۍ لپاره دی وَلَا جُمُعَةَ بِعَرَفَاتٍ فِيْ قَوْلِهِمْ جَمِيْعًا او په اتفاق د فقهاؤ په عرفات کي جمعه جائز نه ده لِأَنَّهَا فَضَاءٌ ځکه چي عرفات فضا (يعني خالي ډګر) دی وَبِمِنًى أَبْنِيَةٌ او په منیٰ کي ودانۍ (او کورونه) سته وَالتَّقْيِيْدُ بِالْخَلِيْفَةِ وَأَمِيْرِ الْحِجَازِ لِأَنَّ الْوِلَايَةَ لَهُمَا د خليفه او د حجاز د امير قيد لګول د دې لپاره دي چي (د جمعې د قائمولو حق د) ولايت دواړو ته سته أَمَّا أَمِيْرُ الْمَوْسِمِ پاته سو د حج د موسم امير فَيَلِيْ أُمُوْرَ الْحَجِّ لَا غَيْرُ نو هغه صرف د حج د أمورو متولي دی نه د بل شي (يعني صرف د حج سره د اړوند أمورو او معاملو ولايت لري).

**اللغات**: ﴿تتمصر﴾ د تفعّل د باب مضارع معلومه صيغه ده: ښار جوړېدل. ﴿يعيد﴾ د تفعيل د باب مضارع مجهوله صيغه ده: د اختر جوړول، د اختر لمونځ کول. ﴿الموسم﴾ زمانه، دلته څني مراد د حج ورځي دي.

**تشريح**: **صورت د مسئلي**: دا دی چي د شيخينو رَحِمَهُمَا الله په نېز د حج په ورځو کي په منیٰ کي د جمعې لمونځ صحيح او جائز دی، خو په دې شرط چي هلته د حجاز امير موجود وي، يا په خپله د مسلمانانو خليفه د حج کولو په اراده سفر کړی وي او هلته موجود وي، د خليفه سره يې د مسافر قيد ځکه لګولی دی چي که خليفه په منیٰ کي مقيم وو نو په درجه اولیٰ به د جمعې لمونځ جائز وي، دويم د دې وهم ليري کولو لپاره چي که د حج د ورځو امير مسافر وو، نو هغه جمعه نه سي قائمولای، نو همدارنګه به خليفه هم د مسافر توب په صورت کي جمعه نه سي قائمولای. امام قدوري رَحِمَهُ الله د دې وهم د ليري کولو لپاره وفرمايل چي د حج د ورځو امير د مسافر توب په صورت کي بېله شکه جمعه نه سي قائمولای، لېکن د مسلمانانو خليفه د مسافر توب په حالت کي هم د جمعې لمونځ قائمولای سي. او له دې څخه هم دا ښکاره سوه چي که يو خليفه يا باچا د خپل ملک (هيواد) دوره کوي، نو په هر ښار کي به پر هغه د جمعې لمونځ واجب وي، لهذا په کوم ښار کي چي د جمعې ورځ تېروي، هلته به د جمعې لمونځ اداء کوي، دليل دا دی چي کله د ده په حکم سره د بل چا امام جوړېدل جائز دي، نو په خپله ده ته د جمعې د امامت کول په طريقه اولیٰ جائز دي، که څه هم مسافر وي، لنډه دا چي د شيخينو رَحِمَهُمَا الله په نېز د حج په ورځو کي په منیٰ کي د جمعې لمونځ صحيح او جائز دی، لېکن د امام محمد رَحِمَهُ الله په نېز په منیٰ کي قطعاً د جمعې لمونځ جائز نه دی.

---

● القول الراجح: قول الشيخين رَحِمَهُمَا الله، كما قال العلامة الحصكفي رَحِمَهُ الله وجازت الجمعة بمنى في الموسم فقط رد المحتار ج:١، ص:٥٩٥ [القول الراجح ج:١ ص:١٤١]

**د امام محمد دليل:** دا دی چې منیٰ خو نه ښار دی، او نه د ښار فناء ده، بلکې يوه قريه او يو کلی دی. او په کلي د جمعې لمونځ جائز نه دی، نو ځکه به په منیٰ کې د جمعې لمونځ جائز نه وي، همدا وجه ده چې په منیٰ کې دلوی اختر لمونځ نه کيږي. د امام محمد رَحِمَهُ الله په نيز منیٰ د مکې مکرمې په فنا کې ځکه داخل نه ده، چې د ده په نيز د فناء اطلاق تر څلورو سوو شرعي ګزو پورې کيږي، او منیٰ تر څلورو سوو شرعي ګزو ليرې ده.

**د شيخينو دليل:** دا دې چې بې له شکه منیٰ ښار نه دی، خو د حج په ورځو کې ښار جوړيږي. ځکه چې هلته د حج په ورځو کې دوکانونه وي، او د مستقل بازار غوندې شکل اختيار کړي، همدارنګه د حج په ورځو کې هلته باچا يا د باچا نائب او قاضي هم وي، نو ځکه منیٰ د ښار په حکم وي، نو لکه څرنګه چې په ښار کې د جمعې لمونځ جائز دی، نو په منیٰ کې به هم د جمعې لمونځ جائز وي.

**جواب:** د امام محمد د دليل جواب دا دی چې په منیٰ کې د لوی اختر لمونځ په دې وجه نه کيږي چې په دې سره پر حاجيانو تکليف راځي، نو د دوی د آسانتيا لپاره په منیٰ کې دلوی اختر لمونځ نه کيږي. کنې د ښار جوړيدلو په وجه لمونځ کيدل پکار دي، ځکه چې د حج په ورځو کې له منیٰ څخه ښار جوړيږي، لکه څرنګه چې لوس موږ ذکر کړه. دويم دا چې منیٰ په حرم کې داخله ده، نو ځکه به منیٰ د مکې شريفې له فناء څخه وي.

ولا جمعة بعرفات الخ او د عرفات په ميدان کې بالاتفاق د جمعې لمونځ جائز نه دی، ځکه چې عرفات خو فقط ميدان دی. هيڅ آبادي پکښې نسته، او د مکې شريفې په فناء کې هم داخل نه دی، نو ځکه به هلته د جمعې لمونځ جائز نه وي.

والتقييد بالخليفة الخ فرمايي: په متن کې چې کوم د حجاز د امير يا د مسلمانانو د خليفه قيد لګول سوی دی. هغه په دې وجه چې دې دواړو ته د جمعې قائمولو حق او ولايت سته، او پاته سو هغه امير چې د حج په ورځو کې صرف د حج امير وي، نو هغه ته صرف په خلکو د حج کولو کې ولايت سته، د جمعې قائمولو ولايت او حق نه لري. نو ځکه به هغه په منیٰ کې جمعه قائمولای نه سي.

## د جمعې لپاره د باچا شرط کيدل (شرطيت)

وَلَا يَجُوزُ إِقَامَتُهَا إِلَّا لِلسُّلْطَانِ او د جمعې درول جائز نه دي مګر د باچا لپاره أَوْ لِمَنْ أَمَرَهُ السُّلْطَانُ يا د هغه چا لپاره (د جمعې درول جائز دي) چې باچا حکم ورته کړی وي لِأَنَّهَا تُقَامُ بِجَمْعٍ عَظِيمٍ ځکه چې جمعه په يو غټ جماعت سره قائميږي وَقَدْ تَقَعُ الْمُنَازَعَةُ فِي التَّقَدُّمِ وَالتَّقْدِيمِ او کله کله په مخکې کيدلو يا د بل په مخکې کولو کې شخړه پيښيږي وَقَدْ تَقَعُ فِي غَيْرِهِ او کله له دې څخه ماسوا په نورو خبرو کې شخړه پيښيږي فَلَا بُدَّ مِنْهُ تَتْمِيمًا لِأَمْرِهِ نو د جمعې د پوره کولو لپاره د خليفه يا د هغه د نائب شتون ضروري دی.

**اللغات:** ﴿التَّقَدُّم﴾ د تفعّل د باب مصدر دی: خپله مخکې کيدل، دا باب لازمي دی. ﴿التَّقْدِيم﴾ د تفعيل د باب مصدر دی: بل مخته کول، او دا باب متعدي دی، ﴿تَتْمِيم﴾ د تفعيل د باب مصدر دی: يو کار پوره کول.

**تشريح: مسئله:** دا ده چې د جمعې د جائز کيدلو يو شرط دا دی چې د جمعې لمونځ به باچا يا د باچا نائب دروي. دليل دا دی چې د جمعې په لمانځه کې ډېر رش وي، او پر دې موقع هر ډول او د هر مزاج والا خلک وي، نو ځيني داسې خلک

هم وي چي د مخکي کېدلو شوق لري، او غواړي چي مخته سي، خو په هغه سره افتراق او جنګ پيښيږي، مثلاً د بعضو خلکو بل څوک خوښ وي، او ځيني يې خوښ نه وي، او کله کله دا صورت هم پيښيږي چي داسي څوک نه وي چي مخته سي او امامت وکړي، لېکن د باچا يعني د امير المؤمنين يا د امير المؤمنين د نائب په امامت کي دا يوه ستونزه هم نسته، نو ځکه به د جمعې د قائمولو لپاره امير المؤمنين يا د هغه نائب ضروري وي، خو ښکاره دي وي چي په اوسنۍ زمانه کي په ډېرو هيوادونو کي امير المؤمنين نسته، نو په دې وجه که عوام يو څوک امير وټاکي، او دغه ټاکلی امير د جمعې لمونځ قائم کړي نو جائز به وي.

## د جمعې لپاره د وخت شرط کېدل (شرطيت)

وَمِنْ شَرَائِطِهَا الْوَقْتُ او د جمعې له شرطونو څخه يو وخت دی فَتَصِحُّ فِي وَقْتِ الظُّهْرِ نو د ماپښين په وخت کي صحيح کيږي وَلَا تَصِحُّ بَعْدَهُ او تر ماپښين وروسته نه صحيح کيږي لِقَوْلِهِ عَلَيْهِ الصَّلَاةُ وَالسَّلَامُ ● ځکه نبي ﷺ فرمايلي دي إِذَا مَالَتِ الشَّمْسُ کله چي لمر زائل سي (يعني زوال وکړي) فَصَلِّ بِالنَّاسِ الْجُمُعَةَ نو خلکو ته د جمعې لمونځ ورکوه وَلَوْ خَرَجَ الْوَقْتُ وَهُوَ فِيهَا او که د ماپښين وخت ووځي او حال دا چي لمونځ کونکي لا د جمعې په لمانځه کي وي إِسْتَقْبَلَ الظُّهْرَ نو له شروع څخه دي د ماپښين لمونځ وکړي وَلَا يَبْنِيهِ عَلَيْهَا او د جمعې پر لمانځه دي د ماپښين لمونځ نه بناء کوي لِاخْتِلَافِهِمَا ځکه چي د جمعې او د ماپښين لمونځ دواړه سره مختلف دي.

**اللغات**: ﴿إِسْتَقْبَلَ﴾ د استفعال د باب ماضي ده: له سره کول، له شروع څخه کول.

**تشريح**: فرمايي چي د جمعې له شرائطو څخه وخت هم دی، يعني د جمعې لمونځ د ماپښين په وخت کي صحيح دی، تر هغه وروسته صحيح نه دی. دليل دا دی چي کله نبي ﷺ مصعب بن عمير رضي الله عنه مديني منورې ته واستوی، نو ور ته ويې فرمايل: إذا مالت الشمس فصل بالناس الجمعة، همدارنګه د بخاري په روايت کي راغلي دي: عن أنس كان النبي ﷺ يصلي الجمعة حين تميل الشمس، (يعني څه وخت چي به لمر تر سر واوښتی نو نبي ﷺ به د جمعې لمونځ کوی).

ولو خرج الوقت الخ امام قدوري رَحِمَهُ الله فرمايي: چي که امام او خلکو د جمعې لمونځ ناوخته شروع کړی، حتیٰ امام لا د جمعې په لمانځه کي مشغول وو چي د ماپښين وخت ووتی، نو د جمعې لمونځ فاسد سو، اوس د دوی لپاره حکم دا دی چي له نوي سره دي ماپښين لمونځ وکړي، او کوم لمونځ چي يې د جمعې په نيت کړی دی پر هغه دي د ماپښين د لمانځه بناء نه کوي، ځکه چي د جمعې او د ماپښين لمونځ سره جلا دي، او د دواړو په مېنځ کي څو رنګه اختلاف دی: (۱) د رکعتونو په شمېر کي يې اختلاف دی، ځکه چي د ماپښين د لمانځه رکعتونه څلور دي، او د جمعې د لمانځه رکعتونه دوه دي، (۲) د جمعې لپاره خاص شرطونه سته، او د ماپښين د لمانځه لپاره څه شرطونه نسته، (۳) د جمعې په لمانځه کي جهري قرائت کيږي، او د ماپښين په لمانځه کي سرّي قرائت کيږي او داسي نور. (بنايه ج: ۳، ص: ۶۲)

---

● تخريج: أخرجه البخاري في كتاب الجمعة، باب وقت الجمعة اذا زالت الشمس، حديث رقم: ۹۰۴.

## د جمعې لپاره د خطبې شرط ګڼل (شرطیت)

وَمِنْهَا الْخُطْبَةُ او د جمعې له شرائطو څخه خطبه (هم) ده لِأَنَّ النَّبِيَّ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ • مَا صَلَّاهَا بِدُونِ الْخُطْبَةِ فِي عُمْرِهِ ځکه نبي ﷺ په خپل ټوله عمر کې د جمعې یو لمونځ بې له خطبې نه دی کړی وَهِيَ قَبْلَ الصَّلَاةِ بَعْدَ الزَّوَالِ او خطبه د جمعې تر لمانځه مخکې او تر زوال وروسته شرط ده بِهِ وَرَدَتِ السُّنَّةُ هم په دې باره کې حدیث راغلی دی وَيَخْطُبُ خُطْبَتَيْنِ او خطیب به دوې خطبې وایي يَفْصِلُ بَيْنَهُمَا بِقَعْدَةٍ او دواړې خطبې به په ناستې سره جلا کوي بِهِ جَرَى التَّوَارُثُ هم پر دې توارث را روان دی (یعني د نبي ﷺ له زمانې څخه تر نن پورې همدغه طریقه را روانه ده).

**اللغات:** ﴿تَوَارُث﴾ د تفاعل مصدر دی: په وراثت کې تر لاسه کول. د نبي ﷺ له زمانې څخه واخله تر اوسنۍ زمانې پورې چې علماؤ کومه طریقه اختیار کړې وي هغه ته توارث ویل کیږي.

**تشریح:** د جمعې یو شرط خطبه ده، له خطبې څخه بغیر د جمعې لمونځ نه اداء کیږي. دلیل دا دی چې نبي ﷺ په خپل ټوله ژوند کې یو د جمعې لمونځ بغیر له خطبې څخه نه دی کړی، که خطبه د جمعې شرط نه وای، نو نبي ﷺ به یو ولږ ضرور د جواز ښکاره کولو لپاره پرېښوولای.

خطبه د جمعې تر لمانځه مخکې او تر زوال وروسته واجب ده، تر لمانځه مخکې په دې وجه واجب ده، ځکه چې خطبه د جمعې د لمانځه لپاره شرط ده، او تاسو ته معلومه ده چې شرط د یو شي پر شي مخکې وي، نو خطبه به هم د جمعې تر لمانځه مخکې وي، او تر زوال مخکې په دې وجه جائز نه ده ځکه چې تر زوال مخکې د جمعې وخت نه وي شروع سوی، نو ځکه به خطبه تر زوال وروسته وي، همدارنګه په حدیث کې راغلي دي، چې وروسته به ذکر سي.

ويخطب خطبتين الخ فرمایي چې د جمعې خطبه پر دوو حصو تقسیمول پکار دي، او د دواړو په مینځ کې کښېنستل او فصل کول پکار دي، په بنایه کې راغلي دي چې دا ناسته به د دریو (۳) کوچني آیتونو په اندازه وي. او بیا زموږ په نېز دا ناسته د استراحت لپاره ده، شرط او ضروري نه ده، لیکن د امام شافعي رَحِمَهُ الله په نېز شرط ده، تر دې چې د ده په نېز په یوه خطبه اکتفاء کول جائز نه دي، د امام شافعي رَحِمَهُ الله دلیل توارث دی، زموږ دلیل د جابر بن سمره رضي الله عنه حدیث دی: أن النبي ﷺ كان يخطب قائماً خطبة واحدة فلما أسن جعلها خطبتين يجلس بينهما جلسة. (یعني نبي ﷺ به په ولاړې یوه خطبه ویله، بیا چې کله د دوی ﷺ عمر ډېر سو، نو دوې خطبې به یې ویلې، او د دواړو په مینځ کې به یې ناسته کول). له دې حدیث څخه معلومه سوه چې د دوو خطبو په مینځ کې به ناسته د ډېر عمر او ضعیف والي په سبب وه. شرط او ضروري نه وه، خو څرنګه چې پر دې ناسته د صحابه وو او تابعینو او علماؤ توارث را روان دی، نو په دې وجه زموږ په نېز ښه دا ده چې کښېني.

---

• تخريج: أخرجه البخاري في كتاب الجمعة، باب أذان الجمعة، حديث: ٩١٢.

## د خطبې ادبونه

وَيَخْطُبُ قَائِمًا عَلَى طَهَارَةٍ او خطيب به خطبه په اوداسه سره په ولاړې وايي لِأَنَّ الْقِيَامَ فِيهَا مُتَوَارَثٌ ځکه چې په خطبه کې په توارث سره ولاړه را نقل سوې ده ثُمَّ هِيَ شَرْطُ الصَّلَاةِ بيا خطبه د جمعې د لمانځه لپاره شرط ده فَيُسْتَحَبُّ فِيهَا الطَّهَارَةُ كَالْأَذَانِ نو په خطبه کې طهارت(اودس) مستحب دی لکه په اذان کې (چې مستحب دی) وَلَوْ خَطَبَ قَاعِدًا او که خطيب په ناستې خطبه ووېله أَوْ عَلَى غَيْرِ طَهَارَةٍ يا بې اودسه (خطبه ووېله) جَازَ لِحُصُولِ الْمَقْصُودِ نو جائز دي ځکه چې مقصود حاصل سو إِلَّا أَنَّهُ يُكْرَهُ خو (په ناستې خطبه ويل) مكروه دي لِمُخَالَفَةِ التَّوَارُثِ د توارث د مخالفت په وجه وَلِلْفَصْلِ بَيْنَهُمَا وَبَيْنَ الصَّلَاةِ او د لمانځه او خطبې په مينځ کې د فصل راتللو په وجه.

**تشريح:** خطيب ته پکار دي چې په اودسه او په ولاړې خطبه ووايي، چې د نبي ﷺ د سنت اقتداء کونکی جوړ سي، ځکه چې نبي ﷺ به خطبه په ولاړې ويله. او تر نبي ﷺ وروسته د صحابه وو او مشرانو هم دغه معمول را روان دی، (يعني د نبي ﷺ له زمانې څخه واخله تر اوسنۍ زمانې پورې دا طريقه د صحابه وو او بزرګانو په توارث را رنه ده) لهذا هر خطيب ته پر دې طريقه عمل کول پکار دي، او څرنګه چې خطبه د لمانځه لپاره شرط ده، نو ځکه په دې کې طهارت مستحب دی، لکه څرنګه چې په اذان کې هم طهارت مستحب دی، دا حکم خو زموږ په نېز دی، کنې د دريو امامانو يعني د امام شافعي، امام مالک، امام احمد رَحِمَهُمُ الله په نېز په ولاړې او په اودسه خطبه ويل شرط او ضروري دي. نو که يو چا په ناستې خطبه ووېل، يا بې اودسه ووېل، نو زموږ په نېز مکروه دي، خو د دې حضراتو په نېز بالکل جائز نه دي، زموږ په نېز په دې معنیٰ جائز دې چې نه د خطبې لپاره ولاړه شرط ده، او نه طهارت. نو ځکه به په ناسته او بې اودسه خطبه ويلو کې د خطبې په جواز کې هيڅ حرج نه وي، ځکه چې په دې صورت کې هم مقصود حاصليږي، خو څرنګه چې په ناسته خطبه ويلو کې له توارث څخه مخالفت راځي، او په بې اودسه خطبه ويلو کې د لمانځه او خطبې په مينځ کې فصل راځي، نو ځکه به دا ضورتونه مکروه وي.

## په خطبه کې صرف پر ذکر اکتفاء کول جائز دي، که نه؟ (د فقهاؤ قولونه)

فَإِنِ اقْتَصَرَ عَلَى ذِكْرِ اللهِ او که خطيب (صرف) د الله پر ذکر اکتفاء وکړه جَازَ عِنْدَ● أَبِي حَنِيفَةَ رَحِمَهُ اللهُ نو د امام ابو حنيفه رَحِمَهُ الله په نېز جائز دي وَقَالَا: لَا بُدَّ مِنْ ذِكْرٍ طَوِيلٍ يُسَمَّى خُطْبَةً او صاحبين رَحِمَهُمَا الله فرمايي چې دومره اوږد ذکر ضروري دی چې هغه ته خطبه ووېل سي لِأَنَّ الْخُطْبَةَ هِيَ الْوَاجِبَةُ ځکه چې خطبه خو واجب ده وَالتَّسْبِيحَةُ أَوِ التَّحْمِيدَةُ لَا تُسَمَّى خُطْبَةً او تسبيح يا الحمد لله ته خطبه نه ويل کيږي وَقَالَ الشَّافِعِيُّ رَحِمَهُ اللهُ لَا تَجُوزُ حَتَّى يَخْطُبَ خُطْبَتَيْنِ امام شافعي رَحِمَهُ الله فرمايي چې خطبه نه جائز کيږي تر دې چې خطيب دوې خطبې ووايي اِعْتِبَارًا

---

● القول الراجح: قول ابى حنيفة رَحِمَهُ الله كما قال العلامة الحصكفى رَحِمَهُ الله : وكفت تحميدة او تهليلة و تسبيحة للخطبة المفروضة مع الكراهة، رد المحتار ج:١، ص:٥٩٨. [القول الراجح ج:١، ص:١٤٢]

لِلْمُتَعَارَفِ په عام عرف باندي په قياسولو سره وَلَهُ قَوْلُه تَعَالَى: فَاسْعَوْا إِلَىٰ ذِكْرِ اللَّهِ [سورة الجمعة: ٩] مِنْ غَيْرِ فَصْلٍ او د امام صاحب دليل دا دی چي الله تعالیٰ فَاسْعَوْا إِلَىٰ ذِكْرِ اللَّهِ بغير له تفصيله فرمايلي دي وَعَنْ عُثْمَانَ رَضِيَ اللهُ عَنْهُ أَنَّهُ قَالَ: الْحَمْدُ لِلَّهِ او د عثمان ﷺ په باره کي را نقل سوي دي چي هغه الحمد لله وويله فَأُرْتِجَ عَلَيْهِ* او بيا يې ژبه بنده سه (بعضو شارحينو يې دا ترجمه کړې ده: او په شک کي واقع سو) فَنَزَلَ وَصَلَّى نو له منبر څخه را شوه سو او لمونځ يې ورکړی.

**اللغات:** ﴿أُرْتِجَ﴾ د افتعال له باب څخه ماضي مجهوله صيغه ده او اِرْتَجَ يا أُرْتُجَ ويل يې غلط دي: په شک کي لوېدل، په خطبه کي بندېدل.

**تشريح: صورت د مسئلې:** دا دی چي د امام صاحب رَحِمَهُ الله په نيز که يو خطيب په خطبه کي صرف لا إله إلاّ الله ووايي، يا صرف سبحان الله ووايي، او نور شی نه ووايي، نو هم خطبه اداء سوه، او د خطبې راګرځولو ضرورت نسته. لېکن د صاحبينو رَحِمَهُمَا الله په نيز په خطبه کي دومره اوږد(طويل) ذکر ويل پکار دی چي هغه ته واقعي او په رشتيا خطبه ويل کيږي، ځکه چي خطبه واجب ده، او تسبيح يعني سبحان الله ويل يا تحميد يعني الحمد لله ويل خطبه نه ده، نو ځکه به په دې سره کار نه کيږي.

په دې لړ کي صاحب د عنايې رَحِمَهُ الله ليکلي دي چي د امام ابو بکر اعمش رَحِمَهُ الله په نيز د خطبې اندازه د تشهد(التحيات) په مقدار ده، او په ظاهر الروايه کي دي چي د دريو آيتونو په مقدار ده، او د اما شافعي رَحِمَهُ الله رايه دا ده چي د تسبيح يا تحميد په اندازه خطبه ويل بالکل جائز نه دي، ځکه چي په عام عرف کي د دوو خطبو نوم جمعه ده، چي په اوله خطبه کي به تحميد، درود، مسلمانانو ته نصيحت او وصيت وي، او د يوه آيت پر تلاوت به مشتمله وي، او په دويمه خطبه کي به د مسلمانانو لپاره دعاء او داسي نوري کلمې ويل کيږي.

**د امام صاحب دليل:** دا دی چي په کوم آيت سره خطبه واجب سوې ده يعني فاسعوا إلى ذكر الله، دغه آيت مطلق دی، او په ذکر الله کي مطلق ذکر الله ته خطبه ويل سوې ده، نو د المطلق يجرى على إطلاقه د قاعدې مطابق به دا حکم مطلق وي، او په دې کي به د دوو خطبو او داسي نورو هيڅ شرط نه لګيږي.

**دويم دليل:** دا دی چي کله عثمان ﷺ تر خليفه جوړېدلو وروسته اول وار پر منبر کښېنستی، نو د خطبې ويلو په وخت کي د هغه ﷺ ژبه ودرېدل او صرف تر الحمد لله ويلو وروسته د خطبې مضمون پر مشتبه او ګډوډ سو، او له منبر څخه را شوه سو، لمونځ يې ورکړی، يعني عثمان ﷺ صرف په الحمد لله ويلو سره خطبه اداء کړه، نو معلومه سوه چي په خطبه کي صرف پر تحميد يا تسبيح اکتفاء کول صحيح او جائز دي.

* أثر: صاحب د اثمار الهدايه ليکلي دي چي تر لټون وروسته مي هم د دې اثر حواله پيدا نه کړه.

## د جمعې لپاره د جماعت شرط کېدل (شرطيت)

وَمِنْ شَرَائِطِهَا الْجَمَاعَةُ او د جمعې له شرطونو څخه جماعت (هم) دی لِأَنَّ الْجُمُعَةَ مُشْتَقَّةٌ مِنْهَا ځکه چې لفظ د جمعې له جماعت څخه جوړ سوی دی وَأَقَلُّهُمْ عِنْدَ أَبِي حَنِيفَةَ رَحِمَهُ اللهُ ثَلَاثَةٌ سِوَى الْإِمَامِ● او د امام ابو حنيفه رَحِمَهُ الله په نېز (د جمعې جماعت لپاره) له امام څخه ماسوا لږ تر لږه درې خلک (ضروري) دي وَقَالَا: اثْنَانِ سِوَاهُ او صاحبين رَحِمَهُمَا الله فرمايي چې له امام څخه ماسوا دوه خلک (ضروري) دي قَالَ: صاحب د هدايې رَحِمَهُ الله فرمايي وَالْأَصَحُّ أَنَّ هَذَا قَوْلُ أَبِي يُوسُفَ رَحِمَهُ اللهُ وَحْدَهُ صحيح خبره دا ده چې دا قول صرف د امام ابو يوسف رَحِمَهُ الله دی لَهُ أَنَّ فِي الْمُثَنَّى مَعْنَى الِاجْتِمَاعِ د امام ابو يوسف رَحِمَهُ الله دليل دا دی چې په دوو کې (هم) د اجتماع معنیٰ سته وَهِيَ مُنْبِئَةٌ عَنْهُ او لفظ د جمعې (هم) د اجتماع خبر ورکوي وَلَهُمَا أَنَّ الْجَمْعَ الصَّحِيحَ إِنَّمَا هُوَ الثَّلَاثُ او د طرفينو رَحِمَهُمَا الله دليل دا دی چې صحيح جمع درې (خلک) وي لِأَنَّهُ جَمْعٌ تَسْمِيَةً وَمَعْنًى ځکه چې درې د نوم او معنیٰ دواړو په اعتبار سره جمع ده وَالْجَمَاعَةُ شَرْطٌ عَلَى حِدَةٍ او جماعت جلا (بېل) شرط دی وَكَذَا الْإِمَامُ او همدغه رنګه امام (جلا شرط دی) فَلَا يُعْتَبَرُ مِنْهُمْ نو ځکه به امام له مقتديانو څخه نه شمارل کېږي.

**اللغات:** ﴿مُثَنَّى﴾ دوه خلک، ﴿مُنْبِئَةٌ﴾ د افعال د باب مؤنث اسم فاعل دی: خبر ورکول.

**تشريح: مسئله:** دا ده چې د جمعې له شرطونو څخه يو شرط دا دی چې د جمعې لمونځ به په جماعت سره اداء کېږي، او د جماعت چې کوم شمېر دی، هغه به موجود وي، خو د دې شمېر په باره کې اختلاف دی، د طرفينو رَحِمَهُمَا الله په نېز له امام څخه ماسوا درې نور خلک ضروري دي، او د امام ابو يوسف رَحِمَهُ الله په نېز که له امام څخه ماسوا دوه خلک نور وي، نو هم جماعت کېږي، صاحب د هدايې رَحِمَهُ الله فرمايي چې په قدوري کې امام احمد رَحِمَهُ الله د امام ابو يوسف رَحِمَهُ الله سره يو ځای ذکر سوی دی، خو دا صحيح نه دی، بلکې صحيح دا ده چې امام محمد رَحِمَهُ الله د امام صاحب رَحِمَهُ الله سره دی.

**د امام ابو يوسف دليل:** دا دی چې جمعه له اجتماع (جمع کېدلو) څخه مشتق ده، او په دوو خلکو کې هم د اجتماع معنیٰ سته، ځکه چې په دې دواړو کې د يوه اجتماع د بل سره ده، يعني دواړه سره را جمع سوه، نو په دې اعتبار به په دوو خلکو سره هم جماعت کېږي، او د جماعت د ثبوت لپاره به له دوو څخه زيات مقدار شرط نه وي.

**د طرفينو دليل:** دا دی چې په دوو سره د اجتماع معنیٰ موږ ته هم تسليم ده، لېکن په قرآن مجيد کې چې په کوم آيت سره د جمعې فرضيت ثابت سوی دی يعني فاسعوا إلى ذكر الله، نو په دې کې فاسعوا صيغه ده امر ده، او د جمع مخاطب صيغه ده، او د حقيقي جمعې اطلاق پر درې کېږي، ځکه چې درې د نوم او معنیٰ دواړو په اعتبار سره جمع ده، نو ځکه موږ وايو چې د جماعت د ثبوت لپاره به له امام څخه ماسوا درې خلک نور وي.

والجماعة شرط على حدة الخ له دې ځايه د يو سوال جواب ورکوي.

---

● القول الراجح: قول أبي حنيفه رَحِمَهُ الله وهذا قول امام محمد رَحِمَهُ الله ايضاً، كما قال العلامة وهبة الزحيلي رَحِمَهُ الله: و أقلهم عند أبي حنيفة ومحمد رَحِمَهُمَا الله في الاصح ثلاثة رجال سوى الامام ولو كانوا مسافرين او مرضى لأن أقل الجمع الصحيح إنما هو الثلاث، الفقه الاسلامي ج:٢، ص:٢٧٥. [القول الراجح ج:١، ص:١٤٣]

**سوال:** دا دی چې د امام ابو یوسف رَحِمَهُ الله د قول مطابق هم درې خلک دي، یعني دوه مقتدیان چې دیوه امام سره یو ځای سي، نو درې سوه.

**جواب:** دا دی چې جماعت جلا او مستقل شرط دی، او امام کېدل جلا شرط دی، ځکه چې فاسعوا صیغه د جمعي ده، او جمعه د درې افرادو تقاضا کوي، او ذکر الله لپاره دیوه ذاکر (امام) وجود ضروري دی، نو له آیت څخه د څلورو خلکو وجود ثابت سو، یعني یو به امام وي، او له هغه څخه ماسوا به درې مقتدیان وي، نو ښکاره سوه چې امام به له دې درو څخه نه شمارل کیږي، بلکي له امام څخه ماسوا به درې خلک نور وي.

## د جمعې په لمانځه کې فقط د ښځو او کوچنیانو پاته کېدل

**وَإِنْ نَفَرَ النَّاسُ قَبْلَ أَنْ يَّرْكَعَ الْإِمَامُ وَيَسْجُدَ** او که خلک (مقتدیان) د امام تر رکوع او سجدې کولو مخکې وتښتېدل (ولاړل) **وَلَمْ يَبْقَ إِلَّا النِّسَاءُ وَالصِّبْيَانُ** او صرف ښځې او کوچنیان پاته سول **إِسْتَقْبَلَ الظُّهْرَ عِنْدَ● أَبِي حَنِيفَةَ رَحِمَهُ اللهُ** نو د امام ابو حنیفه رَحِمَهُ الله په نېز دي امام له شروع څخه د ماپښین لمونځ وکړي **وَقَالَا: إِذَا نَفَرُوا عَنْهُ بَعْدَمَا افْتَتَحَ الصَّلَاةَ** صاحبین رَحِمَهُمَا الله فرمایي: که د امام تر لمونځ شروع کولو وروسته خلک وتښتېدل **صَلَّى الْجُمُعَةَ** نو امام دي د جمعې لمونځ وکړي **فَإِنْ نَفَرُوا عَنْهُ بَعْدَمَا رَكَعَ رَكْعَةً وَسَجَدَ سَجْدَةً** او که د رکوع او دیوې سجدې تر کولو وروسته وتښتېدل **بَنٰى عَلَى الْجُمُعَةِ** نو امام دي د جمعې پر لمانځه بناء وکړي **خِلَافًا لِزُفَرَ رَحِمَهُ اللهُ** په خلاف د امام زفر رَحِمَهُ الله **وَهُوَ يَقُولُ: إِنَّهَا شَرْطٌ** امام زفر رَحِمَهُ الله فرمایي: چې جماعت شرط دی **فَلَا بُدَّ مِنْ دَوَامِهَا كَالْوَقْتِ** نو د وخت په څېر تر آخره پوري د جماعت پاته کېدل ضروري دي **وَلَهُمَا أَنَّ الْجَمَاعَةَ شَرْطُ الْاِنْعِقَادِ** د صاحبینو رَحِمَهُمَا الله دلیل دا دی چې جماعت د جمعې د منعقد کېدلو لپاره شرط دی **فَلَا يُشْتَرَطُ دَوَامُهَا كَالْخُطْبَةِ** نو د خطبې په څېر به تر آخره د جماعت پاته کېدل شرط نه وي **وَلِأَبِي حَنِيفَةَ رَحِمَهُ اللهُ أَنَّ الْاِنْعِقَادَ بِالشُّرُوْعِ فِي الصَّلَاةِ** د امام ابو حنیفه رَحِمَهُ الله دلیل دا دی چې د جمعې انعقاد د لمانځه په شروع کولو سره کیږي **وَلَا يَتِمُّ ذٰلِكَ إِلَّا بِتَمَامِ الرَّكْعَةِ** او دا انعقاد نه پوره کیږي مګر په یوه رکعت پوره کېدلو سره **لِأَنَّ مَا دُونَهَا لَيْسَ بِصَلَاةٍ** ځکه چې تر یوه رکعت کم لمونځ نه دی **فَلَا بُدَّ مِنْ دَوَامِهَا إِلَيْهَا** نو ځکه به تر یوه رکعت پوره کېدلو پوري د جماعت پاته کېدل ضروري وي **بِخِلَافِ الْخُطْبَةِ** په خلاف د خطبې **فَإِنَّهَا تُنَافِي الصَّلَاةَ** ځکه چې خطبه خو د لمانځه منافي ده **فَلَا يُشْتَرَطُ دَوَامُهَا** نو تر آخره به د هغې پاته کېدل شرط نه وي **وَلَا مُعْتَبَرَ بِبَقَاءِ النِّسْوَانِ وَكَذَا الصِّبْيَانِ** او د ښځو او کوچنیانو د پاته کېدلو هیڅ اعتبار نسته **لِأَنَّهُ لَا تَنْعَقِدُ بِهِمُ الْجُمُعَةُ** ځکه چې په ښځو او کوچنیانو سره جمعه نه منعقد کیږي **فَلَا تَتِمُّ بِهِمُ الْجَمَاعَةُ** نو ځکه به په دوی سره جماعت (هم) نه پوره کیږي.

● القول الراجح: قول أبي حنيفة رَحِمَهُ الله كما قال العلامة أكمل الدين البابرتي رَحِمَهُ الله: فان كان قبل التقييد الركعة بالسجدة استقبل الظهر، العناية على هامش فتح القدير ج:٢، ص:٣١. [القول الراجح ج:١، ص:١٣٣]

**اللغات**: ﴿نفر﴾ د نصر د باب ماضي صيغه ده: وتل، تښتېدل، ځغستل، (تلل)، ﴿نسوان﴾ ښځې، د إمرأة جمع ده خلاف القياس، ﴿صبيان﴾ کوچنيان، جمع د صبيّ ده.

**تشريح**: **مسئله**: دا ده که د جمعې د لمانځه تر شروع کولو مخکې خلک امام يوازې پرېږدي، او وتښتي، نو په اجماع سره به امام د ماپښين لمونځ کوي، او د جمعې د لمانځه اجازه نشته، او که د جمعې د لمانځه تر شروع کولو وروسته او د رکوع او سجدې تر کولو مخکې خلک امام پرېږدي، او وتښتي، نو د امام صاحب رَحِمَهُ الله په نيز به امام په دې صورت کې هم له سره څخه د ماپښين لمونځ کوي، او د صاحبينو رَحِمَهُمَا الله په نيز به امام د جمعې پر لمانځه بناء کوي، يعنې همدغه د جمعې لمونځ به پوره کوي، د ماپښين د لمانځه بالکل ضرورت نشته.

او که د امام تر رکوع او سجدې کولو وروسته خلک امام پرېږدي او وتښتي، نو په اتفاق سره د دريو امامانو يعنې د امام صاحب او صاحبينو به د جمعې پر لمانځه بناء کوي، يعنې د جمعې لمونځ به پوره کړي، او له سره به يې نه راګرځوي، خو د امام زفر رَحِمَهُ الله په نيز به په دې صورت کې هم د ماپښين لمونځ کوي.

**د امام زفر دليل**: دا دی چې جماعت د جمعې د اداء کولو لپاره شرط دی، لکه څرنګه چې وخت د جمعې د لمانځه لپاره شرط دی، نو څرنګه چې له اوله څخه تر آخره پورې د وخت وجود ضروري دی، همدغه رنګه له اولې تحريمې څخه د لمانځه تر آخره پورې د جماعت وجود ضروري دی، او څرنګه چې په ذکر سوي صورت کې له اول څخه تر آخره پورې جماعت موجود نه سو، بلکې په مېنځ کې جماعت پاته سو، لهذا د جمعې لمونځ فاسد سو، نو ځکه به پر امام د ماپښين لمونځ لازم وي.

**د صاحبينو دليل**: دا دی چې جماعت د جمعې د اداء کولو لپاره شرط نه دی، بلکې جماعت د جمعې د منعقد کېدلو لپاره شرط دی، نو کله چې د جمعې لمونځ منعقد(وتړل) سو، يعنې شروع سو، نو بيا د جماعت خاص ضرورت نشته. نو اوس که دا جماعت پوره هم نه سي د جمعې لمونځ کيږي، لکه څرنګه چې خطبه د جمعې د منعقد کېدلو لپاره شرط ده، نو د خطبې هم تر آخره پاته کېدل د جمعې د لمانځه لپاره ضروري نه دي.

**د امام صاحب دليل**: دا دی چې بېشکه جماعت خو د جمعې د لمانځه د منعقد کېدلو لپاره شرط دی، خو د لمانځه منعقد کېدل د لمانځه په شروع کولو سره کيږي، او د لمانځه اطلاق د يوه رکعت پر پوره کېدلو کيږي، ځکه دا خبره تسليم سوې ده چې له يو رکعت څخه کم ته لمونځ نه ويل کيږي، لنډه دا چې جماعت د جمعې د لمانځه د منعقد کېدلو لپاره شرط دی،ا و د جمعې لمونځ په شروع کولو سره منعقعد کيږي، او د لمانځه اطلاق لږ تر لږه پر يوه رکعت کيږي، نو ګواکې د جمعې لمونځ د يوه رکعت په پوره کېدلو سره شروع کيږي، لهذا تر يوه رکعت پوره کېدلو پورې به د جماعت وجود شرط وي، او رکعت په رکوع او سجده سره پوره کيږي، نو که د اول رکعت تر رکوع او سجدې پورې جماعت پاته سو، نو د جمعې لمونځ منعقد سو. اوس که د دې رکوع او سجدې تر پوره کېدلو و روسته خلک وتښتېدل. لو جماعت فوت سو، نو د جمعې لمونځ نه فوت کيږي، او که تر دې مخکې وتښتېدل، نو د جمعې لمونځ فوت کيږي، ځکه چې د جمعې د لمانځه تر منعقد کېدلو مخکې د انعقاد شرط يعنې جماعت ثابت سو، نو ځکه به د جمعې لمونځ فاسد وي، او پر امام به د ماپښين لمونځ واجب وي.

بخلاف الخطبة الخ په دې سره د صاحبينو د دليل جواب ورکوي، هغوی دا خبره کړې وه چې څرنګه د خطبې د جمعې تر آخره پاته کېدل ضروري نه دي، همدارنګه د جماعت تر آخره پاته کېدل ضروري نه دي؛ د دې جواب ورکوي چې د خطبې او لمانځه په مېنځ کې منافات دی ځکه که خطبه په لمانځه کې دننه وويل سي نو لمونځ فاسدوي، نو ځکه به تر

يوه رکعت پوره کېدلو پوري د خطبې پاتـه کېدل شرط نه وي، په خلاف د جماعت چې هغه د لمانځه سره منافي نه دی، بلکې شرط دی، نو ځکه به د يوه رکعت تر پوره کېدلو پوري د جماعت پاتـه کېدل شرط او ضروري وي.

ولا معتبر ببقاء النسوان الخ فرمايي چې که ټوله خلک تر رکوع او سجدې مخکې ولاړ سي، صرف ښځې او کوچنيان پاته سي، نو جماعت نه صحيح کيږي، د دې وجه دا ده چې پر دوی د جمعې لمونځ فرض نه دی، او نه په دوی سره د جمعې لمونځ منعقد کيږي، نو ځکه به د دوی په پاتـه کېدلو سره جماعت نه کيږي، لهذا په دې صورت کې به امام د جمعې د لمانځه پر ځای د ماپښين لمونځ کوي.

## پر کومو خلکو جمعه فرض نه ده؟

وَلَا تَجِبُ الْجُمُعَةُ عَلٰى مُسَافِرٍ او جمعه واجب نه ده پر مسافر وَلَا امْرَأَةٍ وَلَا مَرِيْضٍ او (نه واجب ده) پر ښځې او ناروغه وَلَا عَبْدٍ وَلَا أَعْمٰى او (نه واجب ده) پر غلام او ړانده سړي لِأَنَّ الْمُسَافِرَ يَحْرَجُ فِي الْحُضُوْرِ ځکه چې مسافر جمعې ته په حاضرېدلو سره په تکليفيږي وَ كَذَا الْمَرِيْضُ وَ الْأَعْمٰى همدارنګه مريض او ړوند هم (په حاضرېدلو سره په تکليفيږي) وَالْعَبْدُ مَشْغُوْلٌ بِخِدْمَةِ الْمَوْلٰى او غلام (خو) د خپل مالک په خدمت مشغول(بوخت) وي وَ الْمَرْأَةُ بِخِدْمَةِ الزَّوْجِ او ښځه (بيا) د خپل مېړه په خدمت مشغوله وي فَعُذِرُوْا دَفْعًا لِلْحَرَجِ وَ الضَّرَرِ نو د حرج او ضرر ليري کولو لپاره به دوی ټوله معذور شمارل کيږي.

**تشريح: مسئله:** دا ده چې پر مسافر ښځه، مريض، کوچني، غلام او ړانده باندې د جمعې لمونځ واجب نه دی، خو که دا خلک د جمعې لمونځ وکړي، نو اداء کيږي او د ماپښين د لمانځه په بدل کې يې د جمعې لمونځ درېږي.

**دليل:** دا دی چې مسافر، مريض او ړانده ته د جمعې په حاضرېدلو کې تکليف پېښيږي، او غلام د خپل مالک او ښځه د خپل خاوند په چوپړ کې مشغوله وي، نو د تکليف او ضرر ليري کولو لپاره به دا حضرات د جمعې له حاضرېدلو څخه معذوره ګرځول کيږي.

## معذوره خلک که د جمعې لمونځ وکړي نو څه حکم دی؟

فَإِنْ حَضَرُوْا بيا که دا معذوره خلک (جمعې ته) حاضر سي فَصَلَّوْا مَعَ النَّاسِ او د نورو خلکو سره د جمعې لمونځ وکړي أَجْزَأَهُمْ عَنْ فَرْضِ الْوَقْتِ نو د جمعې لمونځ د دوی لپاره د دغه وخت له فرضو څخه کافي سو (يعني دا د جمعې لمونځ د دوی لپاره د ماپښين د لمانځه پر ځای ودرېدی) لِأَنَّهُمْ تَحَمَّلُوْهُ ځکه چې دوی د جمعې د لمانځه حرج او مشقت برداشت کړی فَصَارَ كَالْمُسَافِرِ إِذَا صَامَ نو داسي سو لکه مسافر چې روژه ونيسي.

**تشريح: مسئله:** دا ده چې کوم خلک د جمعې له اداء کولو څخه معذور ګرځول سوي دي، که هغوی جمعې ته راسي، او د خلکو سره د جمعې لمونځ اداء کړي، نو د دوی د وخت فرض اداء سو. (يعني د ماپښين لمونځ يې اداء سو)

**دليل:** دا دی چې پر دې خلکو جمعه ځکه واجب نه وه چې دا خلک په تکليف او مشقت کې نه پرېوځي، خو کله چې دې خلکو په خپله د جمعې مشقت او تکليف وزغمی، نو ځکه به د دوی لپاره د جمعې لمونځ جائز وي، لکه څرنګه چې د مسافر لپاره د رمضان روژه فرض نه ده، لېکن که تکليف برداشت کړي او روژه ونيسي نو روژه يې صحيح ده، همداسي که دا خلک د جمعې لمونځ وکړي، نو هم صحيح کيږي.

## کوم خلک د جمعې امامت کولای سي؟

وَيَجُوزُ لِلْمُسَافِرِ وَالْعَبْدِ وَالْمَرِيضِ او جائز دي د مسافر، غلام او ناروغه لپاره أَنْ يَؤُمَّ فِي الْجُمُعَةِ چي د جمعې امامت وکړي وَقَالَ زُفَرُ رَحِمَهُ اللهُ : لَا يُجْزِئُهُ امام زفر رَحِمَهُ الله فرمايي: چي جائز نه دي لِأَنَّهُ لَا فَرْضَ عَلَيْهِ ځکه چي پر دوی جمعه فرض نه ده فَأَشْبَهَ الصَّبِيَّ وَالْمَرْأَةَ نو (له دوی ځنخه هر يو) د کوچني او ښځي سره مشابه سو وَلَنَا أَنَّ هَذِهِ رُخْصَةٌ زموږ دليل دا دی چي دا (يعني نه فرض کېدل) رخصت دي فَإِذَا حَضَرُوا يَقَعُ فَرْضًا خو کله چي دا خلک حاضر سي نو د دوی جمعه د فرضو پر ځای واقع کېږي عَلَى مَا بَيَّنَّاهُ لکه څرنګه چي موږ (لږ مخکي) بيان کړه أَمَّا الصَّبِيُّ فَمَسْلُوبُ الْأَهْلِيَّةِ هر چي کوچنی دی نو (په هغه کي) د امامت وړتيا نسته وَالْمَرْأَةُ لَا تَصْلُحُ لِإِمَامَةِ الرِّجَالِ او ښځه د خلکو د امامت صلاحيت نه لري وَتَنْعَقِدُ بِهِمُ الْجُمُعَةُ او د مسافر، غلام او ناروغ (په جماعت سره) جمعه منعقده کېږي لِأَنَّهُمْ صَلَحُوا لِلْإِمَامَةِ ځکه چي دا خلک د امامت صلاحيت لري فَيَصْلُحُونَ لِلِاقْتِدَاءِ بِطَرِيقِ الْأَوْلَى نو په طريقه اولیٰ سره به د اقتداء (هم) صلاحيت لري.

**اللغات:** ﴿يؤم﴾ د نصر د باب مضارع ده: امام جوړېدل، امامت ورکول. ﴿مسلوب﴾ د نصر اسم مفعول دی: هغه چي يو شی ځني سلب کړی سوی وي.

**تشريح: صورت د مسئلې:** دا دی چي زموږ په نېز د جمعې په لمانځه کي د مسافر، غلام، مريض او د داسي نورو امام جوړول او د دوی په اقتداء کي د جمعې لمونځ کول جائز او صحيح دي، لېکن د اما زفر رَحِمَهُ الله په نېز د دې خلکو امام جوړول جائز نه دي.

**د امام زفر دليل:** دا دی چي پر دې خلکو جمعه فرض نه ده، نو ځکه به د هغوی امام جوړول هم جائز نه وي، لکه څرنګه چي د ښځي او کوچني امام جوړول صحيح نه دي، ځکه چي پر ښځه او کوچني هم جمعه فرض نه ده.

**زموږ دليل:** دا دی چي له دې خلکو ځنخه جمعه ځکه ساقط سوې ده چي له دوی ځنخه تکليف او حرج لېري سي، خو کله چي دا معذورين په خپله تکليف برداشت کړي، او په جمعه کي شامل او شريک سي، نو دا لمونځ د دوی لپاره فرض جوړېږي، نه نفل. (يعني دا لمونځ د دوی لپاره د ماپښين د فرضي لمانځه پر ځای درېږي)، لکه مخکي چي موږ ذکر کړه.

**جواب:** د امام زفر د دليل جواب دا دی چي پر کوچني او ښځه قياس کول صحيح نه دي، ځکه په کوچني کي د امامت اهليت نسته، او د امامت اهليت ځکه پکښي نسته، چي د الله ﷻ خطاب دوی ته شامل نه دی، او پاته سوه ښځه نو په ښځه کي خو نورو ښځو ته د امامت ورکولو اهليت سته لېکن د نارينه وو د امامت اهليت پکښي نسته.

وتنعقد بهم الخ په دې جمله سره د امام شافعي رَحِمَهُ الله د مسلک جواب ورکوي، امام شافعي رَحِمَهُ الله فرمايي: چي د مسافر، غلام او مريض امامت خو صحيح دی، خو که دا خلک صرف په دومره اندازه را جمع سي، چي په هغه اندازه سره د جمعې جماعت کېږي، نو د دوی په جماعت سره به جمعه نه منعقده کېږي؛ جواب ورکوي چي که فقط څلور معذوره خلک هم جمع سي، نو جمعه منعقده کېږي، دليل دا دی چي کله په دې خلکو کي دومره طاقت سته چي د جمعې امام دي جوړ سي، نو دا طاقت هم په طريقه اولیٰ سره لري چي جمعه دي منعقده کړي، او د دوی په اقتداء کي دي د جمعې لمونځ وسي.

## بې له عذره د جمعې په ورځ د ماپښين لمونځ د جمعې تر لمانځه مخکې کول

وَمَنْ صَلَّى الظُّهْرَ فِيْ مَنْزِلِهِ يَوْمَ الْجُمُعَةِ قَبْلَ صَلَاةِ الْإِمَامِ او چا چې د جمعې په ورځ د امام تر لمانځه مخکې په خپل کور کې د ماپښين لمونځ وکړی وَلَا عُذْرَ لَهُ حال دا چې د هغه هيڅ عذر (هم) نه وو كُرِهَ لَهُ ذٰلِكَ نو د هغه لپاره داسې کول مکروه دي وَجَازَتْ صَلَاتُهُ (لېکن) د هغه لمونځ جائز دی وَقَالَ زُفَرُ رَحِمَهُ اللهُ: لَا يُجْزِئُهُ امام زفر رَحِمَهُ الله فرمايي: چې جائز نه دی لِأَنَّ عِنْدَهُ الْجُمُعَةَ هِيَ الْفَرِيْضَةُ أَصَالَةً ځکه چې د امام زفر رَحِمَهُ الله په نېز اصلي فرض (صرف) جمعه ده وَالظُّهْرُ كَالْبَدَلِ عَنْهَا او د ماپښين لمونځ د هغه د بدل په شير دی وَلَا مَصِيْرَ إِلَى الْبَدَلِ مَعَ الْقُدْرَةِ عَلَى الْأَصْلِ او پر اصل باندې د قدرت لرلو په صورت کې د بدل و طرف ته تګ نه سي کېدلای وَلَنَا أَنَّ أَصْلَ الْفَرْضِ هُوَ الظُّهْرُ فِيْ حَقِّ الْكَافَّةِ او زموږ دليل دا دی چې د ټولو په حق کې اصل فرض د ماپښين لمونځ دی هٰذَا هُوَ الظَّاهِرُ همدا ظاهر مذهب دی إِلَّا أَنَّهُ مَأْمُوْرٌ بِإِسْقَاطِهِ بِأَدَاءِ الْجُمُعَةِ خو (دا جلا خبره ده چې) هغه ته د جمعې د لمانځه په اداء کولو سره د ماپښين د لمانځه د ساقطولو حکم سوی دی وَهٰذَا لِأَنَّهُ مُتَمَكِّنٌ مِنْ أَدَاءِ الظُّهْرِ بِنَفْسِهِ دُوْنَ الْجُمُعَةِ او د ماپښين اصل کېدل په دې وجه دي ځکه چې دا سړی د ماپښين د لمانځه پر اداء کولو په خپله قدرت لري نه د جمعې پر لمانځه لِتَوَقُّفِهَا عَلَى شَرَائِطِهَا لَا تَتِمُّ بِهِ وَحْدَهُ ځکه چې جمعه پر داسې شرطونو موقوفه ده چې هغه په يوازې سړي سره نه پوره کېږي (يعني يوازې يو سړی نه سي پوره کولای او نه قدرت پر لري) وَعَلَى التَّمَكُّنِ يَدُوْرُ التَّكْلِيْفُ او پر قدرت د مکلف کېدلو مدار دی.

**اللغات:** ﴿إِصَالَةً﴾ د افعال د باب مصدر دی: اصل کېدل. ﴿مَصِيْرٌ﴾ د ضرب د باب مصدرِميمي دی: تګ کول، اختيارول. ﴿كَافَّة﴾ د ټولو لپاره. ﴿تَوَقُّف﴾ موتوف کېدل. ﴿يَدُوْرُ﴾ مدار کېدل. ﴿التَّكْلِيْف﴾ د تفعيل د باب مصدر دی: مکلف جوړول، مکلف کېدل.

**تشريح:** **صورت د مسئلې:** دا دی که يو چا د جمعې په ورځ د امام د جمعې تر لمانځه مخکې په خپل کور کې د ماپښين لمونځ وکړی، او حال دا چې هيڅ عذر يې هم نه وو، نو د هغه لمونځ خو جائز دی، لېکن مکروه دی، امام زفر رَحِمَهُ الله فرمايي چې جائز نه دی، همدا مسلک د امام مالک او امام شافعي رَحِمَهُمَا الله هم دی.

**دليل:** د دې حضراتو دليل دا دی چې په اصل کې د جمعې په ورځ د جمعې لمونځ فرض دی، او د ماپښين لمونځ د هغه بدل دی، ځکه چې د جمعې په ورځ د جمعې د لمانځه و طرف ته د سعي (تګ) امر سوی دی، او تر کومه وخته چې جمعه قضاء نه سي، تر هغه وخته د ماپښين له لمانځه څخه منعه سوې ده، نو دا د دې دليل دی چې د جمعې په ورځ د جمعې لمونځ اصلي فرض دی، او دا خبره تسليم سوې ده چې تر څو چې انسان ته پر اصل قدرت وي، تر هغه وخته به د بدل وطرف ته رجوع نه کوي، نو ځکه به د عذر د نيستوالي او د جمعې د قدرت په وخت کې د ماپښين لمونځ صحيح نه وي.

**زموږ دليل:** دا دی چې د جمعې په ورځ اصلي فرض د ماپښين لمونځ دی، لکه په نورو ورځو کې چې هم د ماپښين لمونځ فرض دی، دليل دا دی چې په حديث کې و أول وقت الظهر حين تميل الشمس مطلق ذکر سوی دی، چې هغه د جمعې او له جمعې څخه ماسوا هرې ورځې ته عام دی، او بيا دې خبره دلالت کوي چې د جمعې په ورځ هم د ماپښين

لمونځ اصل دی، خو د جمعې د فضیلت په وجه دا حکم سوی دی چې که جمعې لمونځ اداء کړی سي، نو د ماپښین لمونځ ساقطیږي، لېکن امام زفر او نورو چې کوم ضابطه بیان کړې ده په هغه کي د دې خبري وضاحت سوی دی چې تر څو پر اصل باندي قدرت وي، تر هغه وخته بدل نه سي اداء کېدلای، او څرنګه چې زموږ په نېز د ماپښین لمونځ اصل دی، او لمونځ کونکي پر همدغه قدرت لري، او پر بدل یعني پر جمعه خو هغه قدرت نه لري، ځکه چې د جمعې لپاره د امام، خطبه او جماعت او داسي نور شرطونه پکار دي، چې هغه یوازي سړی (په کور کي) نه سي پوره کولای، د دې په خلاف د ماپښین د لمانځه لپاره دا ټول شرطونه مطلوب نه دي، او انسان یوازي د ماپښین پر لمانځه قدرت لري، او څرنګه چې مکلف کېدل د وس په اندازه دي، نو ځکه به په ذکر سوې مسئله کي د دې سړي د ماپښین لمونځ صحیح وي، خو څرنګه چې د جمعې لمونځ د ماپښین تر لمانځه فضیلت لري، نو بې له عذره به له هغه څخه اعراض کول مکروه وي.

## د پورتنی مسئلې څه نور وضاحت

فَإِنْ بَدَا لَهُ أَنْ يَحْضُرَهَا بیا که د لمونځ کونکي په زړه کي دا خبره راغله (یعني دا فکرېې وکړی) چې د جمعې لمانځه ته دي حاضر سي فَتَوَجَّهَ إِلَيْهَا نو (په دغه فکر) د جمعې د لمانځه و طرف ته ولاړی وَالْإِمَامُ فِيهَا او امام (تر اوسه) د جمعې په لمانځه کي وو بَطَلَ ظُهْرُهُ عِنْدَ• أَبِي حَنِيفَةَ بِالسَّعْيِ نو د امام ابو حنیفه رَحِمَهُ الله په نېز د جمعې لمانځه ته په تګ سره د هغه د ماپښین لمونځ باطل سو وَقَالَا: لَا يَبْطُلُ حَتَّى يَدْخُلَ مَعَ الْإِمَامِ او صاحبین رَحِمَهُمَا الله فرمایي چې د ماپښین لمونځ یې نه باطلیږي تر دې چې د امام سره داخل سي لِأَنَّ السَّعْيَ دُونَ الظُّهْرِ ځکه چې د جمعې د لمانځه طرف ته تګ د ماپښین له لمانځه څخه د کمي درجې دی فَلَا يَنْقُضُهُ بَعْدَ تَمَامِهِ نو د ماپښین د لمانځه تر پوره کېدلو وروسته سعی (تګ) دا نه سي ماتولای (باطلولای) وَالْجُمُعَةُ فَوْقَهَا او د جمعې لمونځ د ماپښین له لمانځه څخه د لوړي درجې دی فَيَنْقُضُهَا نو په جمعه کي شریکېدل د جمعې لمونځ باطلوای سي وَصَارَ كَمَا إِذَا تَوَجَّهَ بَعْدَ فَرَاغِ الْإِمَامِ نو د جمعې و طرف ته تګ داسي سو لکه د امام تر فارغه کېدلو وروسته چې (د مسجد و طرف ته) ولاړ سي وَلَهُ أَنَّ السَّعْيَ إِلَى الْجُمُعَةِ مِنْ خَصَائِصِ الْجُمُعَةِ د امام صاحب رَحِمَهُ الله دلیل دا دی چې د جمعې د لمانځه و طرف ته سعی د جمعې د لمانځه له ځانګړ تیاوو څخه ده فَيُنَزَّلُ مَنْزِلَتَهَا فِي حَقِّ ارْتِفَاضِ الظُّهْرِ احْتِيَاطًا نو د احتیاط په توګه به سعی د ماپښین د لمانځه د باطلولو په حق کي د جمعې د لمانځه په درجه کي راکښته کیږي بِخِلَافِ مَا بَعْدَ الْفَرَاغِ مِنْهَا په خلاف د دې چې امام د جمعې له لمانځه څخه فارغ سي (او سعی وکړي) لِأَنَّهُ لَيْسَ بِسَعْيٍ إِلَيْهَا ځکه چې دا د جمعې د لمانځه و طرف ته سعی (تګ) نه دی.

**اللغات**: ﴿بَدَا لَهُ﴾ چې ده ته ښکاره سي، د ده په زړه کي راسي، ﴿إِرْتِفَاض﴾ پرېښوول، (باطلول).

• القول الراجح: قول أبي حنيفة رَحِمَهُ الله، كذا في رد المحتار ج:١، ص:٦٠٢. [القول الراجح ج:١، ص:١٢٥]

**تشریح: صورت د مسئلې:** دا دی که یو سړي د جمعې په ورځ بې له عذره په خپل کور کې د ماپښين لمونځ وکړی. او بیا په جمعه کې د شرکت په اراده سره د مسجد و طرف ته روان سو، او کله چې مسجد ته ورسېدی، نو امام د جمعې په لمانځه کې وو، نو د امام صاحب رَحِمَهُ الله په نېز د دې سړي د ماپښين لمونځ باطلیږي، هغه که د امام سره په لمانځه کې شریک سي او که نه سي، صاحبین رَحِمَهُمَا الله فرمایي چې که دا سړی د امام سره په لمانځه کې شریک سي نو د ماپښين لمونځ یې باطلیږي، خو که د امام سره په لمانځه کې شریک نه سي، نو په دې صورت کې صرف د جمعې لپاره په تګ لو وتلو سره د ماپښين لمونځ نه باطلیږي.

**د صاحبینو دلیل:** دا دی چې د جمعې و طرف ته تګ کول(یعني سعی کول) د ماپښين له لمانځه څخه د کمې درجې دي، ځکه چې سعی بذات خود مقصوده نه ده، بلکې د جمعې د اداء کولو وسیله او ذریعه ده، او د ماپښين لمونځ بذات خود مقصود دی، نو کله چې د ماپښين لمونځ د لوړې درجې سو، نو سعی او تګ دا نه سي باطلولای. او په خپله د جمعې لمونځ د ماپښين له لمانځه څخه د لوړې درجې دی، نو ځکه به د جمعې په لمانځه کې تر شرکت کولو وروسته د جمعې لمونځ د ماپښين لمونځ باطلوي، لکه څرنګه چې امام د جمعې لمونځ وکړي او فارغ سي. او یو سړی د جمعې د لمانځه و طرف ته روان سي(یعني تګ وکړي)، نو په دې سره د ماپښين لمونځ نه باطلیږي. همدارنګه که امام د جمعې له لمانځه څخه لا فارغ سوی نه وي، او دا سړی د جمعې د لمانځه و طرف ته روان سي، نو په دې سره هم د ماپښين لمونځ نه باطلیږي.

**د امام صاحب دلیل:** دا دی د جمعې(یعني د جمعې د لمانځه) و طرف ته تګ کول د جمعې له خصوصیاتو لو ځانګړتیاوو څخه دی، نو ځکه د جمعې و طرف ته تګ د جمعې په درجه کې سو. او هم په دې کې احتیاط دی. نو څرنګه چې د جمعې په لمانځه سره د ماپښين لمونځ باطلیږي، همدارنګه به د جمعې و طرف ته په تګ کولو سره هم باطلیږي، خو په دې شرط چې د تګ تر ختمېدلو وروسته امام د جمعې په لمانځه کې مشغوله وي.

**جواب:** له بخلاف ما بعد الفراغ څخه د صاحبینو د دلیل جواب ورکوي یعني هغو چې کوم استدلال بیان کړی یعني که امام له جمعې څخه فارغه سي، او یو سړی د امام تر فراغت وروسته د جمعې و طرف ته روان سي. نو څرنګه چې په دې سره د ماپښين لمونځ نه باطلیږي، همدارنګه به د جمعې تر فراغت مخکې په تګ سره هم د ماپښين لمونځ نه باطلیږي. د دې جواب ورکوي چې د جمعې تر فراغت وروسته تګ کول بالکل د جمعې و طرف ته تګ کول نه دي. بلکې دا خو د مسجد و طرف ته تګ کول دي، ځکه چې د جمعې و طرف ته تګ هغه وخت کیږي چې کله جمعه(یعني د جمعې لمونځ) واقعي موجود وي، او دلته جمعه ختمه سوې ده، نو اوس به د جمعې و طرف ته تګ نه وي. بلکې د مسجد و طرف ته به تګ وي، او کله چې د جمعې و طرف ته تګ نه سو، نو په دې سره به د ماپښين لمونځ څرنګه باطلیږي. لهذا د جمعې تر لمانځه وروسته به سعی او تګ د جمعې په لمانځه کې د شرکت کولو په درجه کې نه وي.

**راجح قول:** په پورتنی مسئله کې راجح قول د امام صاحب رَحِمَهُ الله دی. قال العلامة كمال الدين ابن الهمام رَحِمَهُ الله قوله بطلت ظهره عند أبي حنيفة رَحِمَهُ الله بالسعي هذا اذا كان الامام في الصلوة بحيث يمكنه أن يدركها و إن لم يدركها او كان لم يشرع بعد، لكنه لا يرجو ادراكها لبعده نحوه لا تبطل عند أبي حنيفة رَحِمَهُ الله عند العراقيين و تبطل عنده في تخريج البلخيين وهو الاصح (فتح القدير ج:٢، ص:٣٢). [القول الراجح ج:١، ص:١٢٥]

## د معذوره خلکو لپاره د جمعې په ورځ د ماپښين د لمانځه طريقه

وَيُكْرَهُ أَنْ يُصَلِّيَ الْمَعْذُورُ وْنَ الظُّهْرَ بِجَمَاعَةٍ يَوْمَ الْجُمُعَةِ فِي الْمِصْرِ او د معذوره خلکو لپاره په ښار کې د جمعې په ورځ په جماعت سره د ماپښين لمونځ کول مکروه دي وَكَذَا أَهْلُ السِّجْنِ همدارنګه د بنديانو (قيديانو) لپاره لِمَا فِيْهِ مِنَ الْإِخْلَالِ بِالْجُمُعَةِ ځکه په دې سره د جمعې په جماعت کې خلل راځي إِذْ هِيَ جَامِعَةٌ لِلْجَمَاعَاتِ ځکه چې جمعه (خو) د ټولو جماعتونو جمع کونکې ده وَالْمَعْذُوْرُ قَدْ يَقْتَدِيْ بِهِ غَيْرُهُ او د معذوره سړي اقتداء کله غير معذوره سړی (هم) کوي بِخِلَافِ أَهْلِ السَّوَادِ په خلاف د اطرافو له خلکو څخه لِأَنَّهُ لَا جُمُعَةَ عَلَيْهِمْ ځکه چې پر هغوی د جمعې لمونځ نسته وَلَوْ صَلَّى قَوْمٌ او که معذوره خلکو (په دې ورځ د ماپښين لمونځ) په جماعت سره وکړی أَجْزَأَهُمْ نو د دوی لپاره جائز دی لِاسْتِجْمَاعِ شَرَائِطِهِ ځکه چې (دلته) د ماپښين د لمانځه ټوله شرطونه جمع دي.

**اللغات**: ﴿أَهْلُ السِّجْنِ﴾ د بندي خانې (زندان) والا، يعني بنديان. ﴿إِخْلَال﴾ د افعال د باب مصدر دی: خلل اچول، کمې کول. ﴿أَهْلُ السَّوَاد﴾ له السّواد څخه مراد هغه کلي دي چې د ښار په اطرافو کې وي.

**تشريح**: **مسئله**: دا ده چې پر معذوره خلکو مثلاً پر مسافر، مريض، غلام او داسې نورو خو د جمعې لمونځ فرض نه دی، نو ځکه به د هغو پر ذمه د وخت فرض يعنې د ماپښين لمونځ فرض وي، په دې باره کې د دوی لپاره حکم دا دی چې يوازې يوازې به د ماپښين لمونځ کوي، په جماعت سره به د ماپښين لمونځ نه کوي، که په يو ښار کې دوی مقيم وه، (يعنې د معذوره خلکو لپاره د جمعې په ورځ په ښار کې دننه د ماپښين لمونځ په جماعت سره کول مکروه دي) او همدغه حکم د بنديانو لپاره هم دی، چې دوی به هم خپل لمونځونه يوازې يوازې کوي، ځکه په جماعت کولو سره د جمعې په لمانځه کې خلل واقع کيږي، ځکه چې جمعه د جماعتونو جمع کونکې ده، او که معذورين د ماپښين لمونځ په جماعت سره وکړي، نو کېداى سي چې يو نامعذوره کس به هم د دوی سره په جماعت کې شريک سي، او د جمعې د لمانځه په جماعت کې به شريک نه سي، او په دې شي سره د جمعې په لمانځه کې خلل واقع کيږي، او هر هغه شی چې په هغه سره د جمعې په لمانځه کې خلل واقع کيږي، هغه مکروه دی، نو د جمعې په ورځ به په ښار کې په جماعت سره د ماپښين لمونځ کول هم مکروه وي، دا خبره په ياد لرئ چې د في المصر قيد احترازي قيد دی، د دې مقصد دا دی چې که د (يو صحرايي) کلي خلک په کلي کې د جمعې په ورځ د ماپښين لمونځ په جماعت سره اداء کوي، نو په دې کې هيڅ حرج نسته، ځکه چې پر هغو د سره د جمعې لمونځ فرض نه دی، لهذا د دوی په جماعت سره د جمعې په لمانځه کې خلل هم نه واقع کيږي، نو د دوی دا عمل به مکروه هم نه وي.

ولو صلّى الخ فرمايي چې د معذوره خلکو لپاره خو په ښار کې په جماعت سره د ماپښين لمونځ مکروه دی، لېکن که بيا هم دې خلکو وکړی، نو د دوی د ماپښين لمونځ بېشکه صحيح او جائز دی، ځکه چې په دې صورت کې د ماپښين لمونځ د خپلو ټولو شرطو سره اداء کړی سو، او بيا د جماعت کراهت د بل شي يعنې د جمعې په وجه سره دی، نو په دې سره به په اصل لمانځه کې هيڅ فرق نه راځي.

## د جمعې د لمانځه د مسبوق حکم

وَمَنْ أَدْرَكَ الْإِمَامَ يَوْمَ الْجُمُعَةِ او څوک چې چې د جمعې په ورځ (د جمعې په لمانځه کې) امام ونیسي صَلَّى مَعَهُ مَا أَدْرَكَهُ نو کوم هغه سره چې یې څومره لمونځ نیولی وي هغه دې وکړي وَبَنَى عَلَيْهِ الْجُمُعَةَ او پر هغه دې د جمعې بناء وکړي لِقَوْلِهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ● ځکه نبي ﷺ فرمایلي دي مَا أَدْرَكْتُمْ فَصَلُّوا تاسو چې څومره لمونځ ونیسئ هغه وکړئ وَمَا فَاتَكُمْ فَاقْضُوا او څومره لمونځ چې در څخه فوت (قضا) سي د هغه قضاء راوړئ.

**اللغات:** ﴿مَسْبُوْق﴾ هغه سړی چې د لمانځه څه حصه ځني تېره سوې او څه حصه یې نیولې وي.

**تشریح:** **مسئله:** دا ده که یو سړي د جمعې په ورځ امام د جمعې په لمانځه کې تر تشهد (التحیات) مخکې په اول یا دویم رکعت کې ونیوی، نو هغه ته پکار دي چې د امام سره په لمانځه کې شریک سي، او د لمانځه کومه حصه چې یې نیولې وي هغه دې اداء کړي، او بیا چې کله امام له لمانځه څخه فارغ سي، نو دا سړی دې د فوت سوي حصې قضاء راوړي، خو داسي به نه کوي چې د جمعې د لمانځه پر ځای د ماپښین لمونځ وکړي، ځکه چې په حدیث مبارک کي دا خبره څرګنده سوې ده چې د امام د لمانځه چې کومه حصه تاسو ونیسئ هغه اداء کوئ! او کومه حصه چې فوت سي د هغه قضاء راوړئ!.

### که د جمعې په ورځ امام په تشهد (التحیات) کي ونیسي نو د جمعې لمونځ یې صحیح دی، که نه؟

وَإِنْ كَانَ أَدْرَكَهُ فِي التَّشَهُّدِ أَوْ فِي سُجُوْدِ السَّهْوِ او که یې (د جمعې په لمانځه کي) امام په تشهد یا په سجدهٔ سهو کي ونیوی بَنَى عَلَيْهَا الْجُمُعَةَ عِنْدَهُمَا● نو د شیخینو رَحِمَهُمَا الله په نېز به پر هغه د جمعې بناء کوي وَقَالَ مُحَمَّدٌ رَحِمَهُ اللهُ: إِنْ أَدْرَكَ مَعَهُ أَكْثَرَ الرَّكْعَةِ الثَّانِيَةِ او امام محمد رَحِمَهُ الله فرمایي: که یې د امام سره د دویم رکعت اکثره حصره نیولې وه بَنَى عَلَيْهَا الْجُمُعَةَ نو پر هغه به د جمعې بناء کوي وَإِنْ أَدْرَكَ أَقَلَّهَا او که تر هغه یې کمه حصه نیولې وه بَنَى عَلَيْهَا الظُّهْرَ نو پر هغه به د ماپښین د لمانځه بناء کوي لِأَنَّهُ جُمُعَةٌ مِنْ وَجْهٍ ظُهْرٌ مِنْ وَجْهٍ ځکه چې (د ده لپاره) دا لمونځ په یوه وجه سره د جمعې لمونځ دی او په یوه وجه سره د ماپښین لمونځ دی لِفَوَاتِ بَعْضِ الشَّرَائِطِ فِي حَقِّهِ ځکه چې د ده په حق کې بعضي شرطونه فوت سول فَيُصَلِّي أَرْبَعًا اعْتِبَارًا لِلظُّهْرِ نو د ماپښین د لمانځه په اعتبار کولو سره به څلور رکعته کوي وَيَقْعُدُ لَا مَحَالَةَ عَلَى رَأْسِ الرَّكْعَتَيْنِ اعْتِبَارًا لِلْجُمُعَةِ او د جمعې د لمانځه په اعتبار کولو سره به پر دویم رکعت خامخا کښېني وَيَقْرَأُ فِي الْأُخْرَيَيْنِ لِاحْتِمَالِ النَّفْلِيَّةِ او د نفلو د احتمال په وجه به په آخري دوو رکعتونو کي قرائت کوي وَلَهُمَا أَنَّهُ مُدْرِكٌ لِلْجُمُعَةِ فِي هَذِهِ الْحَالَةِ د شیخینو رَحِمَهُمَا الله دلیل دا دی چې هغه په دې حلت کي د

● تخریج: أخرجه البخاري في كتاب الاذان، باب قول الرجل فاتنا الصلاة، حديث رقم: ۶۳۵.

● القول الراجح: قول الشيخين رَحِمَهُمَا الله، كذا في رد المحتار ج:۱، ص:۶۰۵. [القول الراجح ج:۱، ص:۱۴۷]

جمعې د لمانځه نيونکی دی حَتّٰى يُشْتَرَطُ نِيَّةُ الْجُمُعَةِ تر دې چې (پر هغه) د جمعې د لمانځه نيت شرط دی وَهِيَ رَكْعَتَانِ او د جمعې لمونځ دوه رکعته دی وَلَا وَجْهَ لِمَا ذَكَرَ او کوم چې امام محمد رَحِمَهُ الله بيان کړه د هغه هيڅ وجه نسته لِأَنَّهُمَا مُخْتَلِفَانِ ځکه چې دا دواړه لمونځونه مختلف (جلا) دي فَلَا يَبْنِيْ أَحَدَهُمَا عَلٰى تَحْرِيْمَةِ الْآخَرِ نو ځکه به يو د بل پر تحريمه نه مبني کوي.

**اللغات:** ﴿لَا مَحَالَةَ﴾ خامخا، په يقين سره.

**تشريح: صورت د مسئلې:** دا دی که يو سړي امام د جمعې د لمانځه په تشهد(التحيات) کې يا په سجدهٔ سهو کې ونيوی، نو د شيخينو رَحِمَهُمَا الله په نيز به دا سړی د جمعې لمونځ پوره کوي، او امام محمد رَحِمَهُ الله فرمايي که هغه د دويم رکعت اکثره حصه ونيوله، مثلاً د دويم رکعت په رکوع کې د امام سره شريک سو، نو د جمعې لمونځ به پوره کوي، او که د دويم رکعت اکثره حصه يې نه ونيوله، مثلاً تر رکوع وروسته د امام سره شريک سو، نو د ماپښين لمونځ به پوره کوي، همدا قول د امام مالک او امام شافعي رَحِمَهُ الله دی.

**د امام محمد دليل:** دا دی چې په تشهد يا په سجده سهوه کې د امام سره د شريک کېدونکي لمونځ من وجه د جمعې لمونځ دی، او من وجه د ماپښين لمونځ دی، يعني دا لمونځ په يوه اعتبار سره د ماپښين لمونځ دی، او په يوه اعتبار سره د جمعې لمونځ دی، ځکه چې هغه د جمعې په نيت د امام سره شريک سوی دی، نو په دې اعتبار سره به د جمعې لمونځ وي، لېکن کله چې د خپل تېر سوي رکعت د پوره کولو لپاره ولاړ سي، نو يوازې لمونځ کونکي سي، او بې له جماعته دا يو رکعت اداء کوي، حال دا چې جماعت د جمعې لپاره شرط دی، نو په دې اعتبار سره به د ماپښين لمونځ وي، نو ځکه به هغه په دې لمانځه کې د جمعې د لمانځه هم رعايت کوي او د ماپښين د لمانځه به هم رعايت کوي، نو د ماپښين په رعايت کې به څلور رکعته لمونځ کوي، او د جمعې په رعايت کې به پر دويم رکعت خامخا کښېني، ځکه چې د جمعې لمونځ دوه رکعته دی، او څرنګه چې په آخري دوو رکعتو کې د نفل احتمال سته، نو ځکه به په هغو دوو کې د سورت فاتحې سره بل سورت هم يو ځای کوي، ځکه چې د نفل په آخري دوو رکعتو کې د سورت فاتحې سره بل سورت خامخا يو ځای کيږي.

**د شيخينو دليل:** د شيخينو رَحِمَهُمَا الله مسلک خو مخکې ذکر سو يعني که څوک د جمعې د لمانځه په سجدهٔ سهو يا تشهد کې د امام سره شريک سو، نو هغه به د جمعې لمونځ پوره کوي(يعني څومره لمونځ چې څني تېر سوی وي هغه به پوره کوي)، او د ماپښين لمونځ به نه کوي، دليل دا دی چې دا سړی د امام سره د جمعې د لمانځه په نيت شريک سوی دی، او د جمعې لمونځ يې نيولی دی، نو ځکه به دوه رکعته لمونځ کوي.

**جواب:** د ولا وجه الخ څخه د امام محمد رَحِمَهُ الله د دليل جواب ورکوي يعني امام محمد رَحِمَهُ الله چې کوم دا خبره وکړه: که يو چا تر رکوع وروسته د جمعې لمونځ ونيوی، نو هغه به د ماپښين لمونځ کوي، او په هغه کې به د جمعې رعايت هم کوي، او د ماپښين رعايت به هم کوي، د هغه جواب ورکوي فرمايي چې امام محمد رَحِمَهُ الله چې کوم د جمعې او د ماپښين دواړو خبره کړې ده، د هغه هيڅ اعتبار نسته، ځکه چې د جمعې او د ماپښين لمونځونه سره جلا دي، نو ځکه به يو د بل پر تحريمه نه سي بناء کېدلای، يعني د جمعې په تحريمه سره به د ماپښين لمونځ نه سي کېدلای.

## د خطبې اوریدلو ادبونه

وَإِذَا خَرَجَ الْإِمَامُ يَوْمَ الْجُمُعَةِ او کله چي امام د جمعې په ورځ (د خطبې لپاره) راووځي تَرَكَ النَّاسُ الصَّلَاةَ وَالْكَلَامَ نو خلک دي لمونځ او خبري پرېږدي حَتَّى يَفْرُغَ مِنْ خُطْبَتِهِ تر دې چي امام له خپلي خطبې څخه فارغه سي قَالَ: وَهَذَا عِنْدَ• أَبِي حَنِيفَةَ رَحِمَهُ اللهُ مصنف رَحِمَهُ الله فرمايي: چي دا حکم د امام صاحب رَحِمَهُ الله په نېز دی وَقَالَا: لَا بَأْسَ بِالْكَلَامِ إِذَا خَرَجَ الْإِمَامُ قَبْلَ أَنْ يَخْطُبَ صاحبين رَحِمَهُمَا الله فرمايي: چي کله امام د خطبې لپاره راووځي نو د خطبې تر شروع کولو مخکي خبري کول هيڅ پروا نه لري وَإِذَا نَزَلَ قَبْلَ أَنْ يُكَبِّرَ او کله چي (خطبه ووايي او له منبر څخه) را شوه سي نو (د لمانځه) تر تکبير ويلو مخکي (هم خبري کول) هيڅ پروا نه لري لِأَنَّ الْكَرَاهَةَ لِلْإِخْلَالِ بِفَرْضِ الِاسْتِمَاعِ ځکه چي کراهت (خو) د اورېدلو په فرضيت کي د خلل واقع کېدلو په وجه دی وَلَا اِسْتِمَاعَ هُنَا او دلته اورېدل نسته بِخِلَافِ الصَّلَاةِ په خلاف د لمانځه لِأَنَّهَا قَدْ تَمْتَدُّ ځکه چي لمونځ کله نا کله اوږدېږي وَلِأَبِي حَنِيفَةَ رَحِمَهُ اللهُ قَوْلُهُ عَلَيْهِ الصَّلَاةُ وَالسَّلَامُ• د امام صاحب رَحِمَهُ الله دليل د نبي ﷺ دا حديث دی إِذَا خَرَجَ الْإِمَامُ کله چي امام (د خطبې ويلو لپاره) راووځي فَلَا صَلَاةَ وَلَا كَلَامَ نو نه لمونځ سته او نه خبري مِنْ غَيْرِ فَصْلٍ (او دا حديث) بغير له څه تفصيله (وارد سوی دی) وَلِأَنَّ الْكَلَامَ قَدْ يَمْتَدُّ طَبْعًا او ځکه چي طبعاً (هم) کله نا کله خبري اوږدېږي فَأَشْبَهَ الصَّلَاةَ نو خبري د لمانځه سره مشابه سوې.

**اللغات**: ﴿اِسْتِمَاع﴾ د افتعال مصدر دی: په توجه سره اورېدل.

**تشريح**: **مسئله**: دا ده چي کله د جمعې په ورځ امام د خطبې ويلو لپاره پر منبر ودرېږي، نو د امام صاحب رَحِمَهُ الله په نېز به خلک له هغه وخت څخه تر خطبې فارغه کېدلو پوري نه لمونځ کوي، او نه به خبري کوي، خو د صحيح قول مطابق د تسبيح ويلو اجازه سته، د صاحبينو رَحِمَهُمَا الله مسلک دا دی چي کله امام راووځي نو د خطبې تر شروع کېدلو مخکي او تر خطبې وروسته له تکبير څخه مخکي لمونځ کول منع دی، لېکن خبري منع نه دي، ځکه چي پر دې موقع د خبرو او لمانځه ممانعت په دې وجه سره دی چي د لمانځه او خبرو په وجه په خطبه اورېدلو کي خلل راځي، او خطبه اورېدل واجب دي، نو ځکه به د خطبې په وخت کي خو نه د خبرو اجازه وي، او نه د لمونځ کولو، خو موږ دا وينو چي د خطبې د شروع کېدلو په وخت کي د لمانځه په وجه خو په اورېدلو کي خلل راځي، لېکن په خبرو سره خلل نه راځي، ځکه چي په عامه توګه خبري مختصري او معمولي غوندي وي، او بيا په خبرو کي دا آساني هم سته چي څرنګه امام خطبه شروع کړي، نو فوراً دي خبري بندي کړی سي، لېکن څرنګه چي د خبرو په پرتله کي لمونځ اوږد وي. او که خطبه شروع سي. نو فوراً لمونځ ختمېدلای او باطلېدلای هم نه سي، نو په دې سره د خطبې په اورېدلو کي خلل راځي، او د خطبې اورېدل واجب دي، نو د کوم شي په وجه سره چي خلل راځي د هغه پرېښوول ضروري دي. نو ځکه موږ وويل چي خاص د

● القول الراجح: قول أبي حنيفة رَحِمَهُ الله كذا في الدر المختار ج:١، ص:٦٠٦. [القول الراجح ج:١، ص: ١٣٧]

● تخريج: أخرجه موطأ في كتاب الجمعة، باب ما جاء في الإنصات يوم الجمعة؛ وبخاري معناه في كتاب الجمعة، باب ما جاء الإنصات يوم الجمعة حديث رقم: ٩٣٤.

خطبې په وخت کې خو خبري او لمونځ دواړه منع دي، لېکن تر خطبې شروع کېدلو مخکې او تر خطبې وروسته د تکبير او اقامت تر شروع کېدلو مخکې صرف د لمانځه ممانعت سته، نه د خبرو.

**د امام صاحب دليل:** هغه حديث دی کوم چې په کتاب کې ذکر سو يعني إذا خرج الإمام فلاصلاة ولا كلام. او په دې حديث سره دليل په دې توګه نيسي چې په حديث کې مطلق د امام تر راوتلو (او درېدلو) وروسته له لمانځه او خبرو څخه منع سوې ده، نو څرنګه چې د خطبې تر شروع کېدلو يا د تکبير تر شروع کېدلو مخکې د لمانځه اجازه نسته، همدارنګه به د خبرو اجازه هم نه وي.

ولأن الكلام الخ له دې ځايه د صاحبينو رَحِمَهُمَا الله د دليل جواب دی، حاصل يې دا دی چې څرنګه تاسو د لمانځه د اوږدوالي په وجه د امام د درېدلو په وخت کې لمونځ ممنوع ګرځوي، همدارنګه کله نا کله خبري هم اوږدېږي، او کله انسان غواړي چې خبري بندي کړي خو هم نه بندېږي، نو څرنګه چې لمونځ د اوږدوالي په وجه د امام د درېدلو په وخت کې ممنوع سوی دی، همدارنګه به خبري هم ممنوع کېږي، او د قبل الخطبة او د بعد الخطبة به هيڅ قيد نه اېښول کېږي.

**راجح قول:** په پورتنۍ مسئله کې راجح قول د امام صاحب رَحِمَهُ الله دی، قال العلامة عبيد الله بن مسعود صدر الشريعة رَحِمَهُ الله وإذا خرج الإمام حرم الصلوة والكلام حتى يتم الخطبة (شرح الوقاية ج:۱، ص:۲۰۱). [القول الراجح ج:۱، ص:۱۴۸]

## خرڅول او رانيول به پر اول اذان ختمېږي، که پر دويم؟

وَإِذَا أَذَّنَ الْمُؤَذِّنُونَ الْأَذَانَ الْأَوَّلَ او کله چې (د جمعې په ورځ) اذان کونکي اول اذان وکړي تَرَكَ النَّاسُ الْبَيْعَ وَالشِّرَاءَ نو خلک دي خرڅول او رانيول (پلورل او پېرودل) پرېږدي وَتَوَجَّهُوا إِلَى الْجُمُعَةِ او د جمعې د لمانځه وطرف ته دي متوجه سي لِقَوْلِهِ تَعَالَىٰ د الله د دې قول په وجه سره فَاسْعَوْا إِلَىٰ ذِكْرِ اللهِ نو تاسو وځغلئ (روان سئ) د الله د ذکر و طرف ته وَذَرُوا الْبَيْعَ [الجمعة:۹] او خرڅول او رانيول پرېږدئ وَإِذَا صَعِدَ الْإِمَامُ الْمِنْبَرَ او کله چې امام منبر ته وخېږي جَلَسَ نو (پر منبر دي) کښېني وَأَذَّنَ الْمُؤَذِّنُونَ بَيْنَ يَدَيِ الْمِنْبَرِ او اذان کونکي دي د منبر مخ ته اذان وکړي (بيا دي امام خطبه ووايي) بِذَٰلِكَ جَرَى التَّوَارُثُ هم پر دې عمل توارث راروان دی (يعني د نبي ﷺ له زمانې څخه همدغه طريقه را روانه ده) وَلَمْ يَكُنْ عَلَىٰ عَهْدِ رَسُوْلِ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ إِلَّا هَٰذَا الْأَذَانُ او د نبي ﷺ په زمانه کې به (صرف) همدغه اذان وو وَلِهَٰذَا قِيْلَ نو ځکه ويل سوي دي هُوَ الْمُعْتَبَرُ فِيْ وُجُوبِ السَّعْيِ وَحُرْمَةِ الْبَيْعِ چې د جمعې وطرف ته د تګ په واجبېدلو او د خرڅولو او رانيولو په حرام کېدلو کې همدغه اذان معتبر دی وَالْأَصَحُّ أَنَّ الْمُعْتَبَرَ هُوَ الْأَوَّلُ لېکن صحيح خبره دا ده چې اول اذان معتبر دی إِذَا كَانَ بَعْدَ الزَّوَالِ په دې شرط چې تر زوال وروسته وي لِحُصُوْلِ الْإِعْلَامِ بِهِ په هغه سره د خبرتيا د حاصلېدلو په وجه (يعني ځکه چې په اول اذان سره خلک خبرېږي چې د جمعې د لمانځه وخت داخل سو)، والله أعلم.

**اللغات:** ﴿صعد﴾ د سمع د باب ماضي ده: ختل، ﴿بَيْنَ يَدَى﴾ مخته.

**تشريح:** صورت د مسئلې: دا دی چې کله په ښار کې د جمعې په ورځ مؤذنان (اذان کونکي) اذانونه شروع کړي، نو خلکو ته پکار ده چې خرڅول او رانيول دي پرېږدي، او د جمعې وطرف ته دي متوجه سي.

دليل: د الله تعالىٰ دا قول دی: إِذَا نُودِيَ لِلصَّلٰوةِ مِنْ يَوْمِ الْجُمُعَةِ فَاسْعَوْا إِلٰى ذِكْرِ اللهِ وَ ذَرُوا الْبَيْعَ، په عبارت کې له مؤذنون څخه يا د ښار ټوله اذان کونکي مراد دي، يا په دې وجه د جمعې صيغه ذکر سوه چې د اذان په باره کې به مخکې دا عادت وو چې ډېرو اذان کونکو به پر يوه ځاى اذان کوى، د دې لپاره چې اوازونه د ښار و اطرافو ته ورسيږي.
پاته سوه دا خبره چې هغه کوم اذان دی چې تر هغه وروسته خرڅول او رانيول حراميږي، او د جمعې و طرف ته سعي(تګ) واجبيږي، نو په دې باره کې اختلاف دی، امام طحاوي رَحِمَهُ الله فرمايي: هغه اذان معتبر دی چې پر منبر باندې د امام تر کښېنستلو وروسته د امام مخته کيږي(يعني دويم اذان)، ځکه چې د نبي ﷺ، ابو بکر صديق ﷺ او حضرت عمر ﷺ په زمانه کې به د جمعې لپاره همدغه اذان اصل وو، بيا چې کله د دريم خليفه حضرت عثمان ﷺ په زمانه کې خلک ډېر سول، نو اول اذان (هم) شروع سو، همدارنګه په قرآن پاک کې چې د کوم اذان ذکر سوی دی، له هغه څخه دويم اذان مراد دی، نه اول اذان، حسن بن زياد رَحِمَهُ الله له امام صاحب رَحِمَهُ الله څخه روايت کوي چې د خرڅولو، رانيولو او د جمعې وطرف ته د تګ(سعی) کولو په سلسله کې اول اذان معتبر دی، دليل دا دی چې که يو سړی پر دويم اذان خرڅول او رانيول پر ېږدي او د جمعې و طرف ته سعی وکړي، نو د جمعې د لمانځه هغه سنتونه به څني فوت سي، کوم چې د جمعې تر لمانځه مخکې کيږي، همدارنګه به خطبه اورېدل هم څني فوت سي، او که بيا يې کور هم له مسجد څخه ليري وي نو د جمعې لمونځ هم څني فوتېدلای سي، نو ځکه به اول اذان معتبر وي، خو په دې شرط چې اول اذان تر زوال وروسته وسي، ځکه چې د اعلان مقصد هم په دې اول اذان سره حاصليږي، همدارنګه د دغه اول اذان په اورېدلو سره خلک د جمعې د لمانځه و طرف ته سعی او تګ شروع کوي. والله أعلم بالصواب



# بَابُ العِيدَيْنِ

## (دا) باب د کوچني اختر او لوی اختر د (لمونځونو په بيان کې) دی

**تشريح:** تر دې مخکې صاحب د کتاب د جمعې د لمانځه تفصيلات بيان کړل او اوس له دې ځايه د دوو اخترونو د لمانځه احکام بيانوي، د باب الجمعة او باب العيدين په مينځ کې د مناسبت وجه دا ده چې د دواړو شرطونه يو بول دي يعني کوم شرطونه چې د جمعې د لمانځه لپاره دي هغه شرطونه د اخترونو د لمانځه لپاره هم دي همدارنګه پر کوم سړي چې د جمعې لمونځ فرض وي پر هغه د اخترونو لمونځ هم واجب دی، خو څرنګه چې د اخترونو لمونځ واجب دی لېکن د جمعې لمونځ فرض دی او ښکاره ده چې فرض تر واجبو زيات قوي دي نو ځکه يې اول د جمعې د لمانځه مسئلې بيان کړې، وروسته د اخترونو د لمانځه مسئلې بيانوي.

**عيد ته ولې عيد ويل کيږي:** عيد له عود څخه را اخيستل سوی دی، او د عود معنیٰ ده: واپس راتلل، راګرځېدل، او څرنګه چې دا مقدسه ورځ هر کال واپس راځي او هر کال راګرځي، نو په دې مناسبت دې ته عيد ويل کيږي، يا دا چې په دې ورځ الله ﷻ پر خپلو بندګانو بيا احسانات راګرځوي، يعني بيا يې په خپلو احساناتو سره نازوي.

**د اخترونو مشروعيت:** د اخترونو د وجوب او ثبوت په لړ کې د حضرت انس ﷺ دا حديث زيات أهم دی، هغه فرمايي چې: قدم رسول الله ﷺ المدينة ولأهل المدينة يومان يلعبون فيهما في الجاهلية فقال رسول الله ﷺ قدمت عليكم ولكم يومان تلعبون فيهما في الجاهلية وقد أبدلكم الله خيراً منهما يوم النحر ويوم الفطر (يعني د مدينې د خلکو لپاره دوې د بازۍ (او خوشحالۍ) ورځې وې، کله چې رسول الله ﷺ مدينې منورې ته راغلی، نو ويې فرمايل: الله تعالیٰ ستاسو لپاره د دې په بدله کې دوې بهترې ورځې درکړې، چې هغه يوه د لوی اختر ورځ ده او بله د کوچني اختر ورځ ده).

همدارنګه په بل حديث کې راځي: إن لكل قوم عيدًا وهذا عيدنا (يعني هر قوم او هر ملت د اختر او د خوشحالۍ ورځ لري، او دا ورځ زموږ د اختر او د خوشحالۍ ده). (بنايه ج:۳، ص:۱۱۱)

### د اختر د لمانځه شرعي حيثيت

وَتَجِبُ صَلَاةُ الْعِيدِ عَلَى كُلِّ مَنْ او واجب دی د اختر لمونځ په هر هغه سړي باندې تَجِبُ عَلَيْهِ صَلَاةُ الْجُمُعَةِ چې پر هغه واجب وي د جمعې لمونځ وَفِي الْجَامِعِ الصَّغِيرِ: عِيدَانِ اجْتَمَعَا فِي يَوْمٍ وَاحِدٍ او په جامع صغير کې دي: (چې کله) دوه اخترونه په يوه ورځ کې جمع سي (يعني چې کله د جمعې او د اختر لمونځونه په يوه ورځ کې سره جمع سي) فَالْأَوَّلُ سُنَّةٌ نو اول سنت دی وَالثَّانِي فَرِيضَةٌ او دويم فرض دی وَلَا يُتْرَكُ وَاحِدٌ مِنْهُمَا او له دوی څخه به يو نه پرېښوول کيږي قَالَ رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ: وَهَذَا تَنْصِيصٌ عَلَى السُّنَّةِ صاحب د هدايې رَحِمَهُ الله فرمايي: چې دا جمله د اختر د لمانځه د سنتوالي صريح بيان دی (يعني په صراحت سره دا ښي څرګنديږي چې د اختر لمونځ سنت دی) وَالْأَوَّلُ عَلَى الْوُجُوبِ او اوله (يعني د متن جمله) د واجبوالي صريح بيان دی وَهُوَ رِوَايَةٌ عَنْ أَبِي حَنِيفَةَ او همدغه روايت د امام ابو حنيفه رَحِمَهُ الله دی وَجْهُ الْأَوَّلِ مُوَاظَبَةُ

النَّبِيِّ(ص) ● عَلَيْهَا د اول قول دليل دا دی چې نبي ﷺ د اختر پر لمانځه همېشتوب کړی دی وَوَجْهُ الثَّانِي قَوْلُهُ(ص) ● فِي حَدِيْثِ الْأَعْرَابِيِّ عَقِيْبَ سُؤَالِهِ: هَلْ عَلَيَّ غَيْرُهُنَّ او د دويم قول دليل د نبي ﷺ هغه فرمان دی کوم چې د صحرايي په حديث کې د صحرايي تر دې سوال وروسته راغلی دی: "آيا له دې پنځو لمونځونو څخه ماسوا بل لمونځ هم پر ما سته" فَقَالَ: لَا إِلَّا أَنْ تَطَوَّعَ نو نبي ﷺ وفرمايل: "نه! (يعني بل فرضي لمونځ پر تا نسته) خو دا چې ته نفل وکړې" وَالْأَوَّلُ أَصَحُّ (لېکن) اول قول زيات صحيح دی وَتَسْمِيَتُهُ سُنَّةً او د اختر لمانځه ته په دې وجه سنت ويل سوي دي لِوُجُوْبِهِ بِالسُّنَّةِ ځکه چې هغه په سنت (يعني په حديث) سره واجب سوی دی.

**اللغات:** ﴿عقيب﴾ وروسته، ﴿تطوع﴾ د تفعّل له باب څخه د ماضي صيغه ده: نفل کول، نېک او ښه کار کول.

**تشريح:** د امام قدوري رَحِمَهُ الله د بيان مطابق د اختر لمونځ واجب دی، ځکه امام قدوري رَحِمَهُ الله فرمايلي دي چې د اختر لمونځ پر هغه سړي واجب دی، چې پر هغه د جمعې لمونځ واجب وي، او د جامع صغير د بيان مطابق د اختر لمونځ سنت دی، ځکه امام محمد رَحِمَهُ الله فرمايلي دي: چې که په يوه ورځ کې دوه اخترونه جمع سي، يعني د جمعې په ورځ د کوچني يا لوی اختر ورځ هم وي، نو اول يعني د اختر لمونځ سنت دی، او دويم يعني د جمعې لمونځ فرض دی. ملاعلي قاري رَحِمَهُ الله په شرح نقايه کې ليکلي دي چې زيات صحيح قول دا دی چې زموږ په نېز د اختر لمونځ واجب دی، همدا د امام صاحب روايت دی، د امام مالک، امام شافعي او د بعضو احنافو په نېز د اختر لمونځ سنت دی، او د امام احمد رَحِمَهُ الله په نېز فرض کفايي دی.

**د اختر د لمانځه د واجبوالي دليل:** دا دی چې نبي ﷺ پر دې همېشتوب کړی دی بغير له پرېښوولو څخه، او بغير له پرېښوولو د نبي ﷺ همېشتوب د وجوب دليل دی، او دويم قول يعني د سنت کېدلو دليل يې دا دی چې له اهلِ نجد څخه يو صحرايي راغلی، د هغه د سفر مقصد د اسلام په باره کې معلومات ترلاسه کول وو، نو نبي ﷺ د اسلام په باره کې دا هم ورښوول چې په شپه او ورځ کې پر تا پنځه لمونځ فرض دي، د دې په اورېدلو سره صحرايي وويل: هل علي غيرهن، (آيا پر ما له دې پنځو لمونځونو څخه ماسوا بل لمونځ سته)، نبي کريم ﷺ وفرمايل: إلا أن تطوع، (نسته! خو دا چې ته د نفلو په توګه يو لمونځ وکړې [نو بيا هيڅ حرج نسته]). له دې حديث څخه معلومېږي چې له پنځو لمونځونو څخه ماسوا نور ټوله لمونځونه فرض نه دي، يعني نفل دي، لهذا د اختر د لمانځه وجوب ثابت نه سو.

**جواب:** زموږ له طرفه د دې حديث اول جواب دا دی چې دا حديث د اختر د لمانځه د حکم تر نازلېدلو مخکې دی، او قرينه دا ده چې په دې کې د وترو د لمانځه ذکر هم سوی نه دی، حال دا چې د وترو لمونځ د ټولو په نېز واجب دی. دويم جواب دا دی چې هغه سړی د صحرا اوسېدونکی وو، او پر صحرا والا د اختر لمونځ واجب نه وي، نو ځکه نبي ﷺ د هغه د حال مطابق جواب ورکړی.

---

● تخريج: أخرجه البيهقي في كتاب العيدين، باب صلاة العيدين، حديث رقم: ۶۲۳۶.

● تخريج: أخرجه المسلم في كتاب الايمان، باب بيان الصلوة، حديث رقم: ۸.

وتسميته سنةً الخ پاته سوه دا خبره چي کله داختر لمونځ واجب دی، نو په جامع صغير کي هغه ته ولي سنت ويل سوي دي؟ جواب دا دی چي سنت په دې وجه وزته ويل سوي دي چي داختر لمونځ په سنت يعني په حديث سره ثابت سوی دی، (په آيت سره نه دي ثابت سوی)، نو ځکه سنت ورته وويل سوه.

## داختر تر لمانځه مخکي سنت عملونه

وَيُسْتَحَبُّ فِي يَوْمِ الْفِطْرِ أَنْ يَطْعَمَ قَبْلَ أَنْ يَخْرُجَ إِلَى الْمُصَلَّى داختر په ورځ مستحب دا ده چي انسان دعيدګاه وطرف ته تر وتلو مخکي (څه) خوراک وکړي وَيَغْتَسِلَ وَيَسْتَاكَ وَيَتَطَيَّبَ او غسل وکړي او مسواک ووهي او عطر ولګوي لِمَا رُوِيَ ځکه روايت سوی دی أَنَّهُ عَلَيْهِ الصَّلَاةُ وَالسَّلَامُ [1] كَانَ يَطْعَمُ فِي يَوْمِ الْفِطْرِ قَبْلَ أَنْ يَخْرُجَ إِلَى الْمُصَلَّى چي نبي ﷺ به د کوچني اختر په ورځ دعيدګاه وطرف ته تر وتلو مخکي خوراک کوی وَكَانَ يَغْتَسِلُ فِي الْعِيدَيْنِ او نبي ﷺ به د اخترونو په ورځ غسل کوی وَلِأَنَّهُ يَوْمُ اجْتِمَاعٍ او ځکه چي داختر ورځ دخلکو دراجمع کېدلو ورځ ده فَيُسَنُّ فِيهِ الْغُسْلُ وَالتَّطَيُّبُ نو په دې وجه هم په دې ورځ غسل کول او عطر لګول سنت دي كَمَا فِي الْجُمُعَةِ لکه څرنګه چي په جمعه کي دي وَيَلْبَسُ أَحْسَنَ ثِيَابِهِ او (داختر په ورځ دي) خپل ښه کالي واغوندي لِأَنَّ النَّبِيَّ (ص) [2] كَانَ لَهُ جُبَّةُ فَنَكٍ أَوْ صُوفٍ ځکه چي نبي ﷺ يوه د فنک يا د وړيو چپنه لرله يَلْبَسُهَا فِي الْأَعْيَادِ چي هغه به نبي ﷺ په اخترونو کي اغوستله.

**اللغات:** ﴿يستاك﴾ د استفعال د باب مضارع صيغه ده: مسواک وهل (استعمالول)، ﴿يتطيب﴾ د تفعّل د باب مضارع صيغه ده: عطر لګول، ﴿فيُسَنُّ﴾ د نصر د باب مضارع مجهوله صيغه ده: سنت کېدل، ﴿جبة﴾ چپنه، ﴿فنك﴾ تر ګيدړي کوچنی يو ښکلی حيوان دی چي له پوست څخه به يې چپنه او پوستين جوړېدل، فَنَك هم راځي يعني د فاء او نون په فتحه سره، ﴿صوف﴾ وړی.

**تشريح:** فرمايي چي داختر په ورځ د مسلمانانو لپاره يو مستحب کار دا دی چي عيدګاه ته تر تللو مخکي څه خوړشی وخوري، د حضرت انس ﷺ حديث دی: قال كان رسول الله ﷺ لا يغدو يوم الفطر حتى يأكل التمرات ويأكلهن وترًا، (حضرت انس ﷺ فرمايي چي نبي ﷺ به د کوچني اختر په ورځ (داختر د لمانځه لپاره) تر هغه وخته نه تللی تر دې چي په طاق شمېر به يې يو څو خورماوي وخوړلې). او په ترمذي او ابن ماجه کي ذکر سوي دي: أن رسول الله ﷺ كان لا يخرج يوم الفطر حتى يأكل وكان لا يأكل يوم النحر حتى يصلي. (يعني نبي ﷺ به د کوچني اختر په ورځ بغير له څه خوراک څخه نه وتی، او د لوی اختر په ورځ به يې بغير له لمونځ کولو څخه خوراک نه کوی).

---

● تخريج: أخرجه البخاري في كتاب العيدين، باب الأكل يوم الفطر قبل الخروج.

● تخريج: أخرجه البيهقي في كتاب العيدين، باب الزينة للعيد، حديث رقم: ٦١٣٦.

وكان يغتسل الخ دويم مستحب كار غسل دى، لكه په ابن ماجه كې چې د فاكهه بن سعد حديث دى: أن رسول الله ﷺ كان يغتسل يوم الفطر ويوم النحر ويوم العرفة. (يعني نبي ﷺ به د كوچنى اختر په ورځ او د لوى اختر په ورځ او د عرفات په ورځ غسل كوى).

عقلي دليل: دا دى چې د اختر په ورځ خلك راجمع كيږي، چې د هغه په وجه د خلكو بدنونه خولې كوي، نو ځكه په دې ورځ غسل كول، او عطر لګول سنت دي، لكه څرنګه چې د جمعې په ورځ هم دا دوه عملونه سنت دي.

ويلبس الخ دريم مستحب كار دا دى چې له خپلو كالوڅخه دې ښه او ښكلي كالي واغوندي، ځكه چې نبي ﷺ يوه د ننك يا د وريو چپنه لرله، چې هغه به نبي ﷺ د اختر په ورځ اغوستله. فنك يو حيوان دى چې د هغه له پوست څخه جوړ سوى پوستين ډېر ښه ښكاري.

## د سرسايې (صدقهٔ فطر) وركولو وخت

| |
|---|
| وَيُؤَدِّيْ صَدَقَةَ الْفِطْرِ او سرسايه دې وركړي إِغْنَاءً لِلْفَقِيْرِ د محتاجه سړي د مالداره كولو لپاره لِيَتَفَرَّغَ قَلْبُهُ لِلصَّلَاةِ چې د لمانځه لپاره د هغه زړه فارغه سي وَيَتَوَجَّهُ إِلَى الْمُصَلّٰى او (بيا دې) د عيدګاه و طرف ته ولاړ سي وَلَا يُكَبِّرُ عِنْدَ أَبِيْ حَنِيْفَةَ رَحِمَهُ اللهُ• فِيْ طَرِيْقِ الْمُصَلّٰى او د عيدګاه په لاره كې به د امام اعظم رَحِمَهُ الله په نيز تكبير نه وايي وَعِنْدَهُمَا يُكَبِّرُ او د صاحبينو رَحِمَهُ الله په نيز به يې وايي اِعْتِبَارًا بِالْأَضْحٰى پر لوى اختر باندې په قياسولو سره (يعني صاحبين د كوچني اختر لمونځ د لوى اختر پر لمانځه قياسوي) وَلَهُ أَنَّ الْأَصْلَ فِي الثَّنَاءِ الْإِخْفَاءُ د امام اعظم رَحِمَهُ الله دليل دا دى چې اصل په ثناء كې پټوالى دى وَالشَّرْعُ وَرَدَ بِهِ فِي الْأَضْحٰى او د په زوره ويلو په باره كې شريعت په لوى اختر كې وارد سوى دى لِأَنَّهُ يَوْمُ تَكْبِيْرٍ ځكه چې لوى اختر د تكبير ورځ ده وَلَا كَذٰلِكَ الْفِطْرُ او د كوچني اختر ورځ داسې نه ده. |

اللغات: ﴿إِغْنَاءٌ﴾ د افعال د باب مصدر دى: مالداره كول، مړول، بې پروا كول.

تشريح: د كوچني اختر له احكامو څخه يو حكم دا دى چې وس لرونكي خلك دې عيدګاه ته تر تللو مخكې صدقهٔ فطر (سرسايه) اداء كړي، ځكه چې همدغه زموږ د نبي ﷺ معمول وو، لكه څرنګه چې ابن عمر رَضِيَ اللهُ عَنْهُمَا فرمايي: أمرنا رسول الله ﷺ يوم الفطر أن نؤديها قبل خروج الناس إلى الصلاة. (يعني نبي ﷺ موږ ته دا حكم وكړى چې عيدګاه ته تر تللو مخكې صدقهٔ فطر اداء كړو)، او د نبي ﷺ عادت خو دا وو چې تر اختر يوه يا دوې ورځې مخكې به يې صدقهٔ فطر اداء كوله؛ او حكمت په دې خبره كې چې يوه ورځ مخكې دې صدقهٔ فطر اداء كړى سي يا دې تر لمانځه مخكې اداء كړى سي، دا دى چې په دې سره به د مسكينانو او غريبانو لپاره هم د اختر په خوشحاليو كې ګډون كول او په كور كې اختر جوړول آسانه سي، ځكه كله چې غريبانو ته مخكې روپۍ او داسې نور وركړل سي، نو ښكاره ده چې هغوى به له سوال او خيرات غوښتني څخه خوندي سي، او د عامو مسلمانانو په څېر به هغوى هم د لمانځه او د اختر لپاره له مخكې څخه تياري شروع كړي، نبي ﷺ فرمايلي دي: أغنوهم عن المسألة في هذا اليوم، (يعني په دې ورځ فقيران له سوال كولو څخه بې پروا كړئ)، او ښكاره ده چې بې پروايي هغه وخت حاصليږي، كله چې د اختر تر لمانځه مخكې صدقهٔ فطر اداء كړى سي.

---

• القول الراجح: قول أبي حيفة رَحِمَهُ الله، كذا في رد المحتار ج:۱، ص: ۶۱۴. [القول الراجح ج:۱، ص: ۱۳۹]

ولا يكبّر الخ له دې ځايه دا راښيي چې د امام صاحب رَحِمَهُ الله په نيز به دکوچني اختر په ورځ عيدګاه ته د تګ په وخت کې په لاره کې په لوړ آواز سره تکبير نه وايي، لېکن د صاحبينو په نيز په لوړ آواز سره تکبيرويل سنت دي، د صاحبينو دليل قياس دی يعني کوچنی اختر پر لوی اختر قياسوي، يعني څرنګه چې په لوی اختر کې عيدګاه ته د تللو پر مهال په لوړ آواز سره تکبيرونه ويل کيږي، همدارنګه به په کوچني اختر کې هم په لوړ آواز سره تکبيرونه ويل کيږي، د امام صاحب دليل دا دی چې د الله ﷻ په ثناء او ذکر کې اخفاء اصل دی، لکه څرنګه چې الله تعالیٰ فرمايي: وَٱذْكُر رَّبَّكَ فِي نَفْسِكَ تَضَرُّعًا [الاعراف:۲۰۵]، او نبي ﷺ فرمايي: خير الذكر الخفى (بنايه ج:۳، ص:۱۲۱)، نو خپل تر وسه به په ذکر، تکبيراتو او داسې نورو کې پر اخفاء عمل کيږي، او د کوچني اختر تکبيرات به پر لوی اختر نه قياسيږي، ځکه په لوی اختر کې په لوړ آواز سره تکبيرونه اداء کول د لوی اختر سره خاص دي، ځکه د مفسرينو او فقهاوو په نيز له دې آيت وَٱذْكُرُواْ ٱللَّهَ فِيٓ أَيَّامٍ مَّعْدُودَٰتٍ [البقرة: ۲۰۳] څخه مراد د لوی اختر په ورځ جهري تکبيرونه دي، لېکن د کوچني اختر په باره کې هيڅ يو داسې نص وارد سوی نه دی، صاحب د بنايې ليکلي دي چې په لوی اختر کې د جهري تکبيراتو يوه وجه دا هم ده چې لوی اختر د حج په ارکانو کې د يوه رکن سره خاص دی، او تکبير د حج د ارکانو د اداء کولو لپاره نښه او علامه (عَلَم) کرځول سوې ده، او ښکاره ده چې دا علميت هغه وخت ثابتيږي، چې کله تکبير په لوړ آواز سره وويل سي.

**راجح قول:** په پورتنۍ مسئله کې راجح قول د امام صاحب رَحِمَهُ الله دی، قال العلامة ابن عابدين رَحِمَهُ الله بعد تفصيل المسئلة و قد ذكر الشيخ قاسم فى تصحيحه أن المعتمد قول الإمام (رد المحتار ج:۱، ص: ۶۱۲). [القول الراجح، ج:۱، ص: ۱۴۹]

## د اختر تر لمانځه مخکې او وروسته نفل کول

وَلَا يَتَنَفَّلُ فِي الْمُصَلَّى قَبْلَ الْعِيدِ او د اختر تر لمانځه مخکې به په عيدګاه کې نفل نه کوي لِأَنَّهُ عَلَيْهِ السَّلَامُ● لَمْ يَفْعَلْ ذٰلِكَ ځکه نبي ﷺ (هيڅکله) داسې نه دي کړي مَعَ حِرْصِهِ عَلَى الصَّلَاةِ سره د دې چې نبي ﷺ د لمانځه زيات حرص (شوق) درلودی ثُمَّ قِيلَ: الْكَرَاهَةُ فِي الْمُصَلَّى خَاصَّةً بيا ويل سوي دي: چې کراهت خاص په عيدګاه کې (د نفلو په کولو) کې دی وَقِيلَ: فِيهِ وَفِي غَيْرِهِ عَامَّةً او ويل سوي دي چې په عيدګاه کې او له عيدګاه څخه په ماسوا کې عام دی لِأَنَّهُ عَلَيْهِ السَّلَامُ لَمْ يَفْعَلْهُ ځکه چې نبي ﷺ داسې نه دي کړي.

**اللغات:** ﴿حِرْص﴾ شوق، خواهش، طلب.

**تشريح:** مسئله: دا ده چې د اختر په ورځ نه د اختر تر لمانځه مخکې نفل کول صحيح دي، او نه د اختر تر لمانځه وروسته، ځکه چې نبي ﷺ تر ټوله اُمّت د لمانځه زيات عاشق وو، لېکن هيڅکله هم نبي ﷺ د اختر تر لمانځه مخکې او وروسته نفل نه دي کړي، لکه څرنګه چې په بنايه او نورو کې د ابن عباس رَضِىَ اللهُ عَنْهُمَا دا حديث ذکر سوی دی: أن رسول الله ﷺ صلّى بهم العيد ولم يصل قبلها ولا بعدها. (يعني نبي ﷺ د اختر په ورځ خلکو ته لمونځ ورکړی، او نه يې تر هغه مخکې لمونځ وکړی، او نه يې تر هغه وروسته).

● تخريج: أخرجه البخاري في كتاب العيدين، باب صلاة قبل العيد وبعدها، حديث رقم: ۹۸۹.

ثم قيل الخ فرمايي چې د نفل کولو په کراهيت کې اختلاف دی، د بعضي مشائخو رايه دا ده چې د اختر تر لمانځه مخکې په کور او عيدګاه دواړو کې نفل کول مکروه دي، همدارنګه تر لمانځه وروسته په عيدګاه کې نفل کول مکروه دي، لېکن په کور کې مکروه نه دي، او د بعضي حضراتو رايه دا ده چې مطلقاً نفل مکروه دي، هغه که په کور کې وي، او که په عيدګاه کې وي.

## د اختر د لمانځه وخت

وَإِذَا حَلَّتِ الصَّلَاةُ بِارْتِفَاعِ الشَّمْسِ او کله چې په لمر راختلو سره لمونځ حلال سي دَخَلَ وَقْتُهَا إِلَى الزَّوَالِ نو د اختر د لمانځه وخت داخل سو تر زواله پورې فَإِذَا زَالَتِ الشَّمْسُ او کله چې لمر زائل سي خَرَجَ وَقْتُهَا نو د اختر د لمانځه وخت ووتی لِأَنَّهُ عَلَيْهِ السَّلَامُ كَانَ يُصَلِّي الْعِيدَ[1] ځکه نبي ﷺ به د اختر لمونځ هغه وخت کوی وَالشَّمْسُ عَلَى قِيدِ رُمْحٍ أَوْ رُمْحَيْنِ چې کله به لمر يوه يا دوې نيزې راپورته سو وَلَمَّا شَهِدُوا بِالْهِلَالِ بَعْدَ الزَّوَالِ او کله چې خلکو تر زوال وروسته د سپوږمۍ (ليدلو) ګواهي ورکړه أَمَرَ[2] بِالْخُرُوجِ إِلَى الْمُصَلَّى مِنَ الْغَدِ نو نبي ﷺ په راوانه ورځ د عيدګاه و طرف ته د وتلو حکم وکړی.

**اللغات:** ﴿حلت﴾ د ضرب له باب څخه ماضي صيغه ده: حلال کېدل، دا صيغه له حلال څخه مشتق ده، نه له حلول څخه. ﴿ارتفاع الشمس﴾ د لمر د راختلو وخت، يعني د اشراق وخت. ﴿رمح﴾ نېزه.

**تشريح:** په دې عبارت کې د اختر د لمانځه وخت بيانوي فرمايي چې کله د شوال په اوله ورځ لمر يوه يا دوې نېزې راپورته سي، نو د اختر د لمانځه وخت شروع کېږي، او د لمر تر زواله پورې پاتېږي، دليل دا دی چې نبي ﷺ به د اختر لمونځ هغه وخت شروع کوی کله چې به لمر د يوې يا دوو نېزو په اندازه را پورته سو، دويم دليل دا دی چې خاص د لمر د راختلو په وخت کې له لمونځ کولو څخه منع سوې ده، نو ځکه د لمر د راپورته کېدلو شرط ولګول سو، او تر زواله پورې د اختر د وخت د پاته کېدلو دليل دا دی چې يو وار يو څو خلکو تر زوال وروسته نبي ﷺ ته د مياشتې د ليدلو ګواهي ورکړه، نو نبي ﷺ د روژې د ماتولو او تر را رواني ورځې يعني تر دويم شواله پورې د لمانځه د ځنډلو امر وکړی، نو که تر زوال وروسته هم د لمانځه اداء کول صحيح وای، نو نبي ﷺ به تر را رواني ورځې پورې لمونځ نه ځنډولای، لهذا معلومه سوه چې د اختر د لمانځه وخت تر زواله پورې دی.

## د اختر د لمانځه طريقه

وَيُصَلِّي الْإِمَامُ بِالنَّاسِ رَكْعَتَيْنِ او امام دې خلکو ته دوه رکعته لمونځ ورکړي يُكَبِّرُ فِي الْأُولَى لِلِافْتِتَاحِ په اول رکعت کې دې د لمانځه د شروع کولو لپاره تکبير ووايي وَثَلَاثًا بَعْدَهَا او درې تکبيرونه دې تر هغه وروسته ووايي ثُمَّ يَقْرَأُ الْفَاتِحَةَ وَسُورَةً بيا دې سورت فاتحه او (بل) سورت ووايي وَيُكَبِّرُ تَكْبِيرَةً يَرْكَعُ بِهَا او تکبير دې ووايي په هغه سره دې رکوع وکړي ثُمَّ يَبْتَدِئُ فِي الرَّكْعَةِ الثَّانِيَةِ بِالْقِرَاءَةِ بيا دې دويم رکعت په قرائت سره شروع کړي ثُمَّ يُكَبِّرُ ثَلَاثًا بَعْدَهَا

---

[1] تخريج: أخرجه ابوداؤد في كتاب الصلاة، باب وقت الخروج إلى العيد، حديث رقم:١١٣٥.

[2] تخريج: أخرجه ابن ماجه في كتاب الصيام، باب ما جاء في شهادة على رؤية الهلال، حديث رقم: ١٦٥٣.

بیا دي تر هغه وروسته درې تکبیرونه ووايي وَيُكَبِّرُ رَابِعَةً يَرْكَعُ بِهَا او څلورم تکبیر دي ووايي او رکوع دي په وکړي وَهٰذَا قَوْلُ ابْنِ مَسْعُوْدٍ دا قول د ابن مسعود ﷺ دی وَهُوَ قَوْلُنَا او همدا زموږ قول دی وَقَالَ ابْنُ عَبَّاسٍ: يُكَبِّرُ فِي الْأُوْلٰى لِلْافْتِتَاحِ ابن عباس رَضِيَ اللهُ عَنْهُمَا فرمايي: چې په اول رکعت کي دي د لمانځه د شروع کولو لپاره تکبیر ووايي وَخَمْسًا بَعْدَهَا او تر هغه وروسته دي پنځه تکبیرونه ووايي وَفِي الثَّانِيَةِ يُكَبِّرُ خَمْسًا او په دويم رکعت کي دي پنځه تکبیرونه ووايي ثُمَّ يَقْرَأُ بیا دي قرائت وکړي وَفِي رِوَايَةٍ يُكَبِّرُ أَرْبَعًا او په یوه روایت کي دي چي (په دویم رکعت کي دي) څلور تکبیرونه ووايي وَظَهَرَ عَمَلُ الْعَامَّةِ الْيَوْمَ بِقَوْلِ ابْنِ عَبَّاسٍ او نن سبا د عامو خلکو عمل د ابن عباس رَضِيَ اللهُ عَنْهُمَا پر قول ښکاره دی لِأَمْرِ بَنِيْهِ الْخُلَفَاءِ ځکه چي د بنو عباس خلفاوو د دې حکم کړی وو فَأَمَّا الْمَذْهَبُ فَالْقَوْلُ الْأَوَّلُ هر چي (صحيح) مذهب دی نو هغه اول قول دی لِأَنَّ التَّكْبِيْرَ وَرَفْعَ الْأَيْدِيْ خِلَافُ الْمَعْهُوْدِ ځکه چي تکبیر ویل او لاس پورته کول له معهود څخه خلاف دي فَكَانَ الْأَخْذُ بِالْأَقَلِّ أَوْلٰى نو پر کم (شمېر) به عمل کول غوره وي ثُمَّ التَّكْبِيْرَاتُ مِنْ أَعْلَامِ الدِّيْنِ بیا تکبیرونه د دین له شعائرو (او نښو) څخه دي حَتّٰى يُجْهَرَ بِهَا همدا وجه ده چي په زوره ویل کيږي فَكَانَ الْأَصْلُ فِيْهِ الْجَمْعُ نو ځکه به اصل په دې تکبیرونو کي یو ځای والی وي وَفِي الرَّكْعَةِ الْأُوْلٰى يَجِبُ إِلْحَاقُهَا بِتَكْبِيْرَةِ الْافْتِتَاحِ او په اول رکعت کي دا تکبیرونه د تکبیرِ تحریمه سره یو ځای کول واجب دي لِقُوَّتِهَا مِنْ حَيْثُ الْفَرِيْضَةِ وَالسَّبْقِ ځکه چي تکبیر تحریمه د فرضیت او مخکي والي په وجه قوي دی وَفِي الثَّانِيَةِ لَمْ يُوْجَدْ إِلَّا تَكْبِيْرَةُ الرُّكُوْعِ او په دويم رکعت کي صرف د رکوع تکبیر سته فَوَجَبَ الضَّمُّ إِلَيْهَا نو ځکه به دا تکبیرونه د هغه سره یو ځای کول واجب وي وَالشَّافِعِيُّ رَحِمَهُ اللهُ أَخَذَ بِقَوْلِ ابْنِ عَبَّاسٍ او امام شافعي رَحِمَهُ الله د ابن عباس رَضِيَ اللهُ عَنْهُمَا قول اختیار کړی دی إِلَّا أَنَّهُ حَمَلَ الْمَرْوِيَّ كُلَّهُ عَلَى الزَّوَائِدِ خو هغه روایت سوي تکبیرونه یې ټوله پر زوائدو حمل کړي دي فَصَارَتِ التَّكْبِيْرَاتُ عِنْدَهُ خَمْسَةَ عَشَرَ أَوْ سِتَّةَ عَشَرَ نو د هغه په نېز (ټوله) تکبیرونه پنځلس یا شپاړس سول.

**تشريح**: په دې عبارت کي د اختر د لمانځه طريقه بيانيږي، همدارنګه په اخترونو کي د تکبیرونو له شمېر څخه بحث کيږي، تاسو په مختصره توګه دا خبره په ذهن کي ونيسئ چي زموږ په نېز د اختر په لمانځه کي ټوله نهه(٩) تکبیرونه دي چي له هغو څخه یو(١) تکبیرِ تحریمه دی، او دوه (٢) تکبیرونه د رکوع دي، او شپږ(٦) تکبیرونه زیات یعني زوائد دي، او د اختر د لمانځه د اداء کولو طريقه دا ده چي امام دي خلکو ته دوه رکعته لمونځ ورکړي، او تر ټولو مخکي دي اول(١) تکبیر یعني تکبیر تحریمه ووايي، تر هغه وروسته دي ثناء ووايي، او بیا دي درې زوائد تکبیرونه ووايي، او په دوو تکبیرو کي دي لاسونه تر غوږو پوري پورته کړي بیا دي یې ایله کړي، او په دریم تکبیر کي دي تر پورته کولو وروسته لاسونه وتړي (یعني نه دي یې ایله کوي)، او تر هغه وروسته دي سورت فاتحه، او یو بل سورت ووايي، او بغير له لاس پورته کولو څخه دي تکبیر ووايي، رکوع ته دي ولاړ سي، دا ډول د هغه یوه رکعت پوره سو، او په دې رکعت کي ټوله تکبیرونه پنځه (٥) سول: یو تکبیر تحریمه، درې زوائد تکبیرونه، یو د رکوع تکبیر؛ بیا چي کله هغه د اول رکعت له سجدو څخه فارغه سي، نو سیده دي ودرېږي، او تر ټولو مخکي دي قرائت وکړي، تر هغه وروسته دي درې

زوائد تکبیرونه ووايي، او په هر تکبیر کي دي لاس پورته کوي، او ایله کوي، بیا دي څلورم تکبیر ووايي رکوع ته دي ولاړ سي، او پاته لمونځ دي د نورو لمونځو په ډول پوره کړي، نو په دې رکعت کي ټوله څلور (۴) تکبیرونه سول، او د دواړو رکعتونو نهه (۹) تکبیرونه سول، د تکبیرونو دا شمېر، او د اختر د لمانځه دا طریقه د ابن مسعود ﷺ د روایت لو طریقې سره برابر دي، او همدا مسلک او مذهب د احنافو دی.

وقال ابن عباس الخ په دې لړ کي چي له ابن عباس رَضِيَ اللهُ عَنْهُمَا څخه کومه طریقه روایت سوې ده، په هغه کي د تکبیرونو شمېر دیارلس (۱۳) دی، په اول رکعت کي اووه (۷) تکبیرونه دي، او په دویم رکعت کي شپږ (۶) تکبیرونه دي، او بیا د هغو د اداء کولو طریقه هم جلا ذکر سوې ده، ځکه چي د هغه په نېز د دویم رکعت تکبیرونه هم د اول رکعت په ډول تر قرائت مخکي اداء کیږي، نو ځکه صاحب د بنايې لیکلي دي چي د ابن مسعود او ابن عباس رَضِيَ اللهُ عَنْهُم د تکبیرونو په شمېر کي هم اختلاف دی، او د اداء کولو په طریقه کي یې هم اختلاف دی. (بنايه ج:۳، ص:۱۲۷).

وظهرعمل العامة الخ فرمايي چي زموږ په زمانه کي خلک د ابن عباس رَضِيَ اللهُ عَنْهُمَا پر طریقه عمل کوي، ځکه کله چي تر بنو امیه ؤ وروسته د بنو عباس زمانه راغله، نو عبّاسي واکمنانو د خپل مشر نیکه ابن عباس رَضِيَ اللهُ عَنْهُمَا طریقه علمه کړه، او ټولو امامانو ته یې دا حکم وکړی چي هغوی به د ابن عباس پر طریقه عمل کوي، خو تر څو چي د مذهب او مسلک تعلق دی، نو هغه د ابن مسعود ﷺ د طریقې سره دی.

دلته دا خبره د یادوني وړ ده، چي مصنف د هدايې کوم د ظهر عمل العامة الخ دعوىٰ کړې ده، دا دعوىٰ د هدايې د مصنف د خپلي زمانې سره خاص ده، کنې څه وخت چي حنفي مسلک خور سو، او په زیاتره هیوادونو کي حنفي قاضیان او مفتیان و ټاکل سول نو بیا خلکو د ابن مسعود ﷺ طریقه اختیار کړه.

ورفع الأيدي خلاف المعهود الخ صاحب د هدايې د ابن مسعود ﷺ د طریقې لپاره عقلي دلیل بیانوي فرمايي چي په لمانځه کي تکبیرونه ویل او لاسونه پورته کول دا د لمانځه له معهودي طریقې څخه خلاف کار دی، (له معهودي طریقې څخه مراد هغه طریقه ده کوم چي د عامو لمونځونو په باره کي په آیت او حدیثونو کي را نقل سوې ده)، ځکه چي په لمانځه کي په سکون او اطمینان سره د دربدلو حکم سوی دی، په آیت کي راځي: قُومُوا لِلّٰهِ قَانِتِينَ [البقرة:۲۳۸]، لهذا بار بار لاسونه پورته کول ښه نه دي، نو څومره چي کم لاسونه پورته سي هغه به غوره وي، او څرنګه چي د ابن مسعود ﷺ په روایت کي په هر رکعت کي درې واره لاسونه پورته کیږي، او دا کمه اندازه ده، نو ځکه به پر کمه اندازه یعني د ابن مسعود ﷺ پر طریقه عمل کول غوره او افضله وي.

ثم التكبيرات الخ فرمايي چي د اختر تکبیرونه د دین له شعائرو څخه دي، نو څرنګه چي په دیني شعائرو کي جهر کیږي، همدارنګه به په تکبیرونو کي هم جهر کیږي، په اصل کي په دې عبارت سره موږ ته دا رابنيي چي د ابن مسعود په طریقه کي یوه مهمه فایده دا هم سته چي په دې کي زوائد تکبیرونه د تکبیرِ تحریمه او د رکوع د تکبیر سره متصل لو جمع دي، او په زائد تکبیرونو کي هم قاعده دا ده چي د اصلي تکبیرونو سره به یو ځای کیږي، نو ځکه په دې طریقه کي په اول رکعت کي تر تکبیر تحریمه وروسته سمدستي د زوائد تکبیرونو حکم سوی دی، لو تکبیر تحریمه د فرضوالي او مخکیوالي په اعتبار سره قوي ده، لهذا په دې کي د نور قوت د پیدا کولو لپاره زوائد تکبیرونه په اول رکعت کي د دې سره ملحق سول، او څرنګه چي په دویم رکعت کي تکبیر تحریمه نسته، نو ځکه په دویم رکعت کي زوائد تکبیرونه د رکوع د تکبیر سره ملحق سول.

والشافعي رَحِمَهُ اللهُ الخ د دې حاصل دا دی چې امام شافعي رَحِمَهُ الله د ابن عباس پر قول عمل کړی دی، او د ابن عباس په قول کې چې د تکبیرونو کوم شمېر را نقل سوی دی، هغه شمېر امام شافعي پر زوائدو حمل کړی دی، مطلب د اختر د لمانځه د تکبیرونو په باره کې د امام شافعي رَحِمَهُ الله دوه قوله دي: (۱) اول قول دا دی چې په دواړو رکعتو کې په مجموعي توګه دیارلس(۱۳) تکبیرونه دي: یو تکبیر تحریمه، دوه د رکوع تکبیرونه، پنځه په اول رکعت کې زوائد تکبیرونه او پنځه په دویم رکعت کې زوائد تکبیرونه، (۲) دویم قول دا دی چې دوولس(۱۲) تکبیرونه دي، یو تکبیر تحریمه، دوه د رکوع تکبیرونه، پنځه په اول رکعت کې زوائد تکبیرونه، او په دویم رکعت کې څلور زوائد تکبیرونه، نو په دې اعتبار سره به د شوافعو په نیز دوولس یا دیارلس تکبیرونه وي، لېکن بعضي خلګ په دې وهم کې لوېدلي دي چې د دوولسو او دیارلسو شمېر له تکبیرات اصلیه وو څخه ماسوا دی، یعني په دې کې تکبیر تحریمه او د رکوع دوه تکبیرونه داخل نه دي، نو کومو خلګو چې د (۱۲) سره درې یوځای کړل، د هغو په نیز د ټولو تکبیرونو شمېر پنځلس(۱۵) سو، او کومو خلګو چې د (۱۳) سره درې یوځای کړل، د هغو په نیز ټوله تکبیرونه شپاړس(۱۶) سول.

په دې باره کې له امام شافعي رَحِمَهُ الله څخه په دې وجه دوه قولونه را نقل سوي دي ځکه چې له ابن عباس رَضِيَ اللهُ عَنْهُمَا څخه په دې باره کې دوه روایتونه دي، او په دې لړ کې د امام شافعي رَحِمَهُ الله د مذهب مدار هم د ابن عباس رَضِيَ اللهُ عَنْهُمَا پر قول باندې دی.

## د اختر په تکبیرونو کې د لاسونو د پورته کولو حکم

قَالَ: وَيَرْفَعُ يَدَيْهِ فِي تَكْبِيرَاتِ الْعِيدَيْنِ فرمايي: چې د اخترونو په تکبیرونو کې دې خپل دواړه لاسونه پورته کوي يُرِيدُ بِهِ مَا سِوَى التَّكْبِيرِ فِي الرُّكُوعِ له دې څخه د امام قدوري رَحِمَهُ الله مراد د رکوع له تکبیر څخه ماسوا نور تکبیرونه دي لِقَوْلِهِ عَلَيْهِ الصَّلَاةُ وَالسَّلَامُ ● ځکه نبي ﷺ فرمايلي دي لَا تُرْفَعُ الْأَيْدِي إِلَّا فِي سَبْعِ مَوَاطِنَ لاسونه به نه پورته کیږي خو په اوو ځایونو کې وَذَكَرَ مِنْ جُمْلَتِهَا تَكْبِيرَاتِ الْأَعْيَادِ او له هغو ټولو څخه يې د اخترونو تکبیرونه (هم) ذکر کړل وَعَنْ أَبِي يُوسُفَ ❀ أَنَّهُ لَا يَرْفَعُ او له امام ابو یوسف رَحِمَهُ الله روایت دی چې لاسونه دې نه پورته کوي وَالْحُجَّةُ عَلَيْهِ مَا رَوَيْنَا (لېکن) د ده په خلاف هغه حدیث حجت دی کوم چې موږ (اوس) بیان کړی.

**تشریح: مسئله:** دا ده چې زموږ په نیز به د اختر په لمانځه کې تر غوږو پوري لاسونه پورته کیږي، همدا د امام شافعي او امام احمد مذهب دی، دلیل د نبي ﷺ دا قول دی: لا ترفع الأيدى إلا في سبع مواطن، او له دې اوو ځایونو څخه یو ځای زوائد تکبیرونه هم دي، له امام ابو یوسف رَحِمَهُ الله څخه روایت دی چې لاسونه به نه پورته کیږي.

**د امام ابو یوسف دلیل:** دا دی چې لاسونه پورته کول د لمانځه د شروع کولو لپاره سنت دي، یعني د تکبیر تحریمې لپاره لاسونه پورته کول سنت دي، او څرنګه چې په زوائد تکبیرونو سره لمونځ نه شروع کیږي، نو ځکه به لاسونه هم نه پورته کیږي، لکه څرنګه چې د رکوع په تکبیر کې لاسونه نه پورته کیږي.

---

● تخريج: أخرجه البيهقي بمعناه في كتاب العيدين، باب رفع اليدين في تكبير العيد، حديث رقم: ۶۱۸۹.

❀ القول الراجح: قول الطرفين أي يرفع يديه وهذا قول الجمهور، وقال العلامة ابن نجيم المصرى رَحِمَهُ الله قول أبي يوسف رَحِمَهُ الله ضعيف (البحر الرائق ج:۲، ص: ۱۶۲). [القول الراجح ج:۱، ص: ۱۵۰]

**جواب:** د امام ابو يوسف رَحِمَهُ الله په خلاف دا حديث يعني لا ترفع الأيدي حجت دی.

پاته سوه دا خبره چي د زوائدو تکبيرونو په مينځ کي يو سنت ذکر سته او که نسته، نو له امام ابو حنيفه څخه روايت دی چي امام دي د هرو دوو تکبيرونو په مينځ کي د دريو تسبيحاتو په اندازه چپ پاتيږي، ځکه چي د اختر په لمانځه کي ګڼه ګوڼه او ډېر خلک وي، نو که د تکبيرونو په مينځ کي وصل وسي، نو کوم خلک چي له امام څخه ليري وي، پر هغو به د امام حال مشتبه سي، چي اوس امام کوم تکبير وايي، لېکن په دومره اندازه چپ پاتېدلو سره اشتباه ليري کيږي، نو ځکه د تکبيرونو په مينځ کي د دريو تسبيحاتو په اندازه د چپ پاتېدلو حکم سوی دی.

## تر لمانځه وروسته د دوو خطبو حکم

| |
|---|
| قَالَ: **ثُمَّ يَخْطُبُ بَعْدَ الصَّلَاةِ خُطْبَتَيْنِ** فرمايي: چي د اختر تر لمانځه وروسته دي امام دوې خطبې ووايي بِذٰلِكَ وَرَدَ النَّقْلُ الْمُسْتَفِيضُ هم په دې باره کي مشهوره حديث راغلی دی **يُعَلِّمُ النَّاسَ فِيهِمَا صَدَقَةَ الْفِطْرِ وَأَحْكَامَهَا** (او امام دي) د اختر په خطبه کي خلکو ته سرسايه او د اختر احکام وربنيي لِأَنَّهَا شُرِعَتْ لِأَجْلِهِ ځکه چي خطبه همد دغه لپاره مشروع سوې ده. |

**اللغات:** ﴿المُسْتَفِيض﴾ مشهوره حديث، د حديثو يو قسم دی.

**تشريح: مسئله:** دا ده چي کله امام د اختر له لمانځه څخه فارغ سي، نو خلکو ته دي دوې خطبې ووايي، او په دې خطبو کي دي د صدقهٔ فطر او کوچني اختر احکام او مسائل بيان کړي، او د صدقهٔ فطر د اداء کولو ترغيب دي ورکړي، ځکه چي د اختر تر لمانځه وروسته خطبې ځکه شروع سوي دي چي په هغو کي د اختر او د صدقهٔ فطر احکام او مسائل بيان سي.

**فايده:** ښکاره دي وي چي د اختر د خطبې او د جمعې د خطبې په مينځ کي په دريو[۳] طريقو سره اختلاف دی: (۱) د جمعې لمونځ بې له خطبې جائز نه دی، او د اختر لمونځ بې له خطبې هم جائز دی (۲) د خطبې جمعه د جمعې تر لمانځه مخکي وي، لېکن د اختر خطبه د اختر تر لمانځه وروسته وي (۳) د جمعې خطبه ويل سنت دي، او اورېدل يې واجب دي، لېکن د اختر خطبه ويل واجب دي، او اورېدل يې سنت دي. (بنايه ج:۳، ص:۱۲۷)

## د اختر د لمانځه د قضاء راوړلو حکم

| |
|---|
| **وَمَنْ فَاتَتْهُ صَلَاةُ الْعِيدِ مَعَ الْإِمَامِ** او له چا څخه چي د اختر لمونځ د امام سره قضاء سي **لَمْ يَقْضِهَا** نو د هغه قضاء دي نه راوړي لِأَنَّ الصَّلَاةَ بِهٰذِهِ الصِّفَةِ لَمْ تُعْرَفْ قُرْبَةً ځکه چي په دې طريقه سره د اختر د لمانځه عبادتوالی پېژندل سوی نه دی إِلَّا بِشَرَائِطَ لَا تَتِمُّ بِالْمُنْفَرِدِ خو په داسي شرطونو سره چي په يوازي سړي سره نه پوره کيږي (يعني په داسي شرطونو سره د اختر د لمانځه عبادت کېدل معلوم سوي دي چي هغه په يوازي سړي سره نه سي پوره کېدلای). |

**تشريح: مسئله:** دا ده که له يو سړي څخه د اختر لمونځ قضاء سو، نو اوس د هغه لپاره يوازي د اختر د لمانځه د راګرځولو اجازه نسته، ځکه چي د اختر لمونځ اداء کول پر داسي شرطونو موقوف دی، چي هغه په يوازي سړي سره نه سي پوره کېدلای، ځکه چي د اختر د لمانځه له شرطونو څخه يو مهم شرط جماعت دی، او ښکاره ده چي په يوه سړي سره جماعت نه متحقق کيږي، نو ځکه به د امام تر فراغت وروسته د هيڅ سړي لپاره د اختر لمونځ کول صحيح نه وي (لېکن دوه رکعته د نفلو په توګه کولای سي).

## د اختر د مياشتي د پټېدلو مسئله

فَإِنْ غُمَّ الْهِلَالُ بيا كه (دا ختر) مياشته پټه سوه(يعني نه ليدل كېده) وَشَهِدُوا عِنْدَ الْإِمَامِ بِرُؤْيَةِ الْهِلَالِ بَعْدَ الزَّوَالِ او خلكو امام ته د مياشتي ليدلو ګواهي تر زوال وروسته وركړه صَلَّى الْعِيدَ مِنَ الْغَدِ نو امام دي را روانه ورځ د اختر لمونځ وركړي لِأَنَّ هَذَا تَأْخِيرٌ بِعُذْرٍ ځكه چي دا ځنډول د عذر په وجه دي وَقَدْ وَرَدَ فِيهِ الْحَدِيثُ او په دې باره كي حديث راغلى دى فَإِنْ حَدَثَ عُذْرٌ يَمْنَعُ مِنَ الصَّلَاةِ فِي الْيَوْمِ الثَّانِي او بيا كه داسي عذر پېښ سي چي په دويمه ورځ يې هم خلك د اختر له لمانځه څخه منع كول لَمْ يُصَلِّهَا بَعْدَهُ نو تر دې وروسته دي د اختر لمونځ نه كوي لِأَنَّ الْأَصْلَ فِيهَا أَنْ لَا تُقْضَى كَالْجُمُعَةِ ځكه د اختر په لمانځه كي اصل دا دى چي د جمعې د لمانځه په څېر به د هغه قضاء(هم) نه راوړل كېږي إِلَّا أَنَّا تَرَكْنَاهُ بِالْحَدِيثِ لېكن موږ دا اصل د حديث په وجه پرې اېښى دى وَقَدْ وَرَدَ بِالتَّأْخِيرِ إِلَى الْيَوْمِ الثَّانِي عِنْدَ الْعُذْرِ او د عذر په وجه تر دويمي ورځي پوري د ځنډولو په باره كي حديث راغلى دى.

**اللغات**: ﴿غُمَّ﴾ د ماضي صيغه ده: په وريځ كي پټېدل، مجازاً: په سترګو نه ليدل كېدل.

**تشريح**: **صورت د مسئلې**: دا دى كه د روژې د مياشتي پر نوښتمه (۲۹) د وريځي په وجه مياشته نه ليدل كېده، او را روانه ورځ يعني د روژې پر دېرشمه خلكو پېشلمى وكړى او روژه يې ونيول، بيا تر زوال وروسته يو څو خلك امام ته راغله او دوى په تېره ورځ كي د مياشتي ليدلو ګواهي وركړل(يعني دا يې ورته وويل چي موږ پرون لا مياشته وليدل). نو كه د دوى شهادت د منلو لائق وو، نو امام دي هغه معتبر وګڼي، او خلكو ته دي د روژې ماتولو حكم وكړي. او په دويمه ورځ دي د اختر لمونځ وكړي، ځكه چي دلته د اختر د لمانځه ځنډول د يو عذر يعني د مياشتي د نه ليدلو په وجه سره دي. او د عذر په وجه د اختر د لمانځه ځنډول په حديث سره ثابت دي، لكه څرنګه چي حديث مخكي تېر سو چي كله نبي ﷺ ته تر زوال وروسته د مياشتو ليدلو ګواهي وركړل سوه، نو نبي ﷺ د اختر د لمانځه قضاء را رواني ورځي ته وځنډوله. نو له دې څخه معلومېږي چي تر دويم شوال پوري د اختر د لمانځه قضاء راوړل صحيح دي.

فَإِنْ حَدَثَ عُذْرٌ الخ او كه په دويم شوال كي هم يو داسي عذر پيدا سو چي د اختر د لمانځه لپاره مانع وو، مثلاً تېز باران يا يو بل داسي صورت وو، نو تر دې وروسته د شوال پر دريمه د اختر د لمانځه قضاء راوړلو اجازه نسته، ځكه چي د اختر په لمانځه كي اصل دا دى چي د هغه قضاء به نه راوړل كېږي، لكه د جمعې د قضاء كېدلو په صورت كي چي د جمعې قضاء نه راوړل كېږي. خو دا اصل د حديث په وجه پرېښوول سو، او څرنګه چي په حديث كي فقط تر دويمي ورځي پوري د ځنډولو صراحت سوى دى. نو ځكه به تر دويم شواله پوري د ځنډولو اجازه وي، او تر هغه وروسته به نه وي.

## د لوى اختر د ورځي مستحبات

وَيُسْتَحَبُّ فِي يَوْمِ الْأَضْحَى او مستحب دي د لوى اختر په ورځ أَنْ يَغْتَسِلَ وَيَتَطَيَّبَ چي غسل وكړي او عطر ولګوي لِمَا ذَكَرْنَاهُ د هغه دليل په وجه كوم چي موږ بيان كړى وَيُؤَخِّرَ الْأَكْلَ حَتَّى يَفْرُغَ مِنَ الصَّلَاةِ او خوراك دي وروسته كړي تر دې چي له لمانځه څخه فارغ سي لِمَا رُوِيَ ځكه روايت سوى دى أَنَّهُ عَلَيْهِ السَّلَامُ ❶ كَانَ لَا يَطْعَمُ فِي يَوْمِ النَّحْرِ چي نبي

---

❶ تخريج أخرجه البخاري في كتاب العيدين، باب الأكل يوم الفطر، قبل الخروج، حديث رقم: ٩٥٣.

ﷺ به د لوی اختر په ورځ خوراک نه کوی حَتّٰى يَرْجِعَ تر دې چي (له عيدګاه څخه به) واپس راغلی فَيَأْكُلَ مِنْ أُضْحِيَّتِهِ بيا به يې له خپلي قرباني څخه خوراک وکړی.

**اللغات:** ﴿يَوْمِ النَّحْرِ﴾ دلوی اخترورځ، د ذو الحجي لسمه ورځ. ﴿أُضْحِيَة﴾ قربان سوی څاروی.

**تشريح:** صاحب د هدايې فرمايي چي د لوی اختر په ورځ غسل کول، او عطر لګول مستحب دي، دليل مخکي تېر سو، او دا هم مستحب دي چي خوراک دي تر لمانځه وروسته د خپلي قرباني له غوښو څخه وکړی سي، دليل د نبي ﷺ عمل دی چي نبي ﷺ به د لوی اختر په ورځ د اختر تر لمانځه وروسته خوراک کوی، او له خپلي قرباني څخه به يې کوی، او که يو څوک قرباني نه کوي، نو هغه دې هم تر لمانځه مخکي خوراک نه کوي، ځکه چي د اختر تر لمانځه مخکي خوراک نه کول جلا سنت دی، او له خپلي قرباني څخه خوړل جلا سنت دی، لېکن د صحرا د خلکو لپاره جائز دي، ځکه چي هلته لمونځ واجب نه دی.

## د عيدګاه په لاره کي د تکبير ويلو حکم

وَيَتَوَجَّهُ إِلَى الْمُصَلّٰى وَهُوَ يُكَبِّرُ او لمونځ ګزاره دې عيدګاه ته روان سي او تکبير دې وايي لِأَنَّهُ[1] عَلَيْهِ السَّلَامُ كَانَ يُكَبِّرُ فِي الطَّرِيقِ ځکه چي نبي ﷺ به په لاره کي تکبير وايي وَيُصَلِّيْ رَكْعَتَيْنِ كَالْفِطْرِ او د کوچني اختر په بڼول دې دوه رکعته لمونځ وکړي كَذٰلِكَ نُقِلَ همداسي رانقل سوي دي وَيَخْطُبُ بَعْدَهَا خُطْبَتَيْنِ او تر لمانځه وروسته دې دوې خطبې ووايي لِأَنَّهُ[2] عَلَيْهِ السَّلَامُ كَذٰلِكَ فَعَلَ ځکه چي نبي ﷺ همداسي کړي دي وَيُعَلِّمُ النَّاسَ فِيهِمَا الْأُضْحِيَةَ وَتَكْبِيرَ التَّشْرِيقِ او په دواړو خطبو کي دې خلکو ته قرباني او د تشريق تکبيرونه ور وښيي لِأَنَّهُ مَشْرُوعُ الْوَقْتِ ځکه چي دا (شيان) په دې وخت کي مشروع دي. وَالْخُطْبَةُ مَا شُرِعَتْ إِلَّا لِتَعْلِيمِهِ او خطبه هم د دغه (شيانو) د تعليم لپاره مشروع سوې ده.

**تشريح:** مسئله: دا ده چي لمونځ ګزاره دې عيدګاه ته د تللو په وخت کي په لاره کي په لوړ آواز سره تکبير وايي، ځکه نبي ﷺ به هم داسي کول، او د لوی اختر لمونځ هم د کوچني اختر د لمانځه په بڼول دوه رکعته دی. له امام صاحب څخه همدغه را نقل سوي دي، تر لمانځه وروسته دې امام دوې خطبې ووايي، او په دې خطبو کي دې خلکو ته د قرباني او د تشريق د تکبيرونو احکام ور وښيي، ځکه چي په دې ورځو کي دغه شيان مشروع دي. او خطبه هم د دغه شيانو د تعليم لپاره مشروع سوې ده.

## د يوه عذر په وجه د لوی اختر د لمانځه د قضاء کېدلو حکم

فَإِنْ كَانَ عُذْرٌ يَمْنَعُ مِنَ الصَّلَاةِ فِي يَوْمِ الْأَضْحٰى که يو داسي عذر وو چي د لوی اختر په ورځ د لمانځه لپاره مانع وو صَلَّاهَا مِنَ الْغَدِ وَبَعْدَ الْغَدِ نو په دويمه يا په دريمه ورځ دې لمونځ وکړي وَلَا يُصَلِّيْهَا بَعْدَ ذٰلِكَ او تر دې وروسته دې يې نه کوي لِأَنَّ الصَّلَاةَ مُؤَقَّتَةٌ بِوَقْتِ الْأُضْحِيَةِ ځکه چي د لوی اختر لمونځ د قرباني د ورځو سره خاص دی فَيَتَقَيَّدُ بِأَيَّامِهَا

---

[1] تخريج: أخرجه دار قطني في كتاب صلاة العيدين، باب صلاة العيدين، حديث رقم: ۱۷۰۰.

[2] تخريج: أخرجه مسلم في كتاب العيدين، باب العيدين، حديث رقم: ۸.

نو ځکه به د هغه وخت هم د قربانۍ د ورځو سره مقيد وي لَكِنَّهُ مُسِيْءٌ فِي التَّأْخِيْرِ مِنْ غَيْرِ عُذْرٍ لېکن د بې له عذره ځنډلو په وجه به امام ګنهګاره وي لِمُخَالَفَةِ الْمَنْقُوْلِ د رانقل سوي طريقې د مخالفت په وجه.

**تشريح:** **مسئله:** دا ده که د ذی الحجې په لسم تاريخ يو داسي عذر پيدا سو چي د هغه په وجه د لوی اختر لمونځ نه سو کېدلای، نو په يوولسم تاريخ دي لمونځ وسي، او که په يوولسم تاريخ کي هم عذر پاته وو، نو په دولسم تاريخ دي لمونځ وسي، او که په دې ورځ هم عذر وو، نو تر دې وروسته د ځنډلو اجازه نسته، دليل دا دی چي د لوی اختر لمونځ د قربانۍ د ورځو سره خاص دی، لهذا د لمانځه وخت به يې هم د قربانۍ د ورځو سره خاص وي، نو د قربانۍ تر دريو ورځو پوري به هُره ورځ له لمر راختلو څخه وروسته تر زواله پوري دا اختر د لمانځه وخت وي، او که بې له عذر لمونځ وځنډول سو، نو هم لمونځ جائز دی، لېکن په دې وجه به ګنهګاره وي چي بې له عذره يې لمونځ وځنډوی، ځکه چي له نبي ﷺ او له خلفاء راشدينو څخه داسي ځنډول نه دي رانقل سوي، ښکاره دي وي چي دا لمونځ که څه هم وځنډول سي نو اداء به وي، قضاء به نه وي، ځکه چي په خپل وخت کي واقع کيږي.

## د عرفات د خلکو سره د مشابهت حکم

وَالتَّعْرِيْفُ الَّذِيْ يَصْنَعُهُ النَّاسُ او د عرفات سره مشابهت کوم چي يې خلک کوي لَيْسَ بِشَيْءٍ (دا) هيڅ شی نه دی وَهُوَ أَنْ يَّجْتَمِعَ النَّاسُ يَوْمَ عَرَفَةَ فِيْ بَعْضِ الْمَوَاضِعِ او د تعريف (يعني د عرفات سره د مشابهت) مطلب دا دی چي خلک د عرفات په ورځ په يو ميدان کي سره راجمع سي تَشْبِيْهًا بِالْوَاقِفِيْنَ بِعَرَفَةَ د عرفات په ميدان کي د دريدونکو خلکو سره د مشابهت په وجه لِأَنَّ الْوُقُوْفَ عُرِفَ عِبَادَةً مُخْتَصَّةً بِمَكَانٍ مَخْصُوْصٍ ځکه چي وقوف عرفه په يو ځانګړي ميدان (ځای) کي عبادت منل سوی دی فَلَا يَكُوْنُ عِبَادَةً دُوْنَهُ نو له هغه ځانګړي ځای څخه به علاوه (بل ځای) عبادت نه وي كَسَائِرِ الْمَنَاسِكِ لکه د حج نور مناسک (چي بل ځای عبادت نه دي).

**تشريح:** دلته د تعريف مطلب په عرفات کي د دريدونکو حاجيانو سره مشابهت اختيارول دي. يعني چي د عرفات په ورځ خلک په يو بل ميدان کي سره راجمع سي، او د حاجيانو په ډول دعاء او تضرع وکړي، امام قدوري رَحِمَهُ الله فرمايي چي دا يو داسي شی نه دي چي ثواب ولري، ځکه چي وقوف عرفه (يعني په عرفات کي دريدل) يو ځانګړي لو مخصوص عبادت دی چي هغه د يو ځانګړي ميدان يعني د عرفات د ميدان سره خاص دی، لهذا د عرفات له ميدان څخه ماسوا په يو بل ميدان يا يو بل ځای کي وقوف کول او دريدل عبادت نه سي کېدلای، لکه د حج نور مناسک چي په نورو ځايونو کي نه سي اداء کېدلای، خو که دا ووېل سي چي ابن عباس رَضِيَ اللهُ عَنْهُمَا په بصره کي د عرفات په ورځ په يو ميدان کي خلک راجمع کړل، نو زمونږ له طرفه جواب دا دی چي د ابن عباس رَضِيَ اللهُ عَنْهُمَا دا عمل د دعاء لپاره وو. نه دا چي د عرفات د حاجيانو سره د مشابهت لپاره. والله أعلم بالصواب



# فَصْلٌ فِيْ تَكْبِيْرَاتِ التَّشْرِيْقِ

## (دا) فصل د تشريق د تکبيرونو (په بيان کې) دی

**تشريح:** څرنګه چې د تشريق تکبيرونه صرف د لوی اختر د لمانځه سره خاص دي، نو ځکه يې په جلا فصل کې بيانوي.

### د تشريق د تکبيرونو شرعي حيثيت

وَيَبْدَأُ بِتَكْبِيْرِ التَّشْرِيْقِ بَعْدَ صَلَاةِ الْفَجْرِ مِنْ يَوْمِ عَرَفَةَ او د عرفات په ورځ به د سهار تر لمانځه وروسته د تشريق تکبير شروع کوي وَيَخْتِمُ عَقِيْبَ صَلَاةِ الْعَصْرِ مِنْ يَوْمِ النَّحْرِ عِنْدَ أَبِيْ حَنِيْفَةَ رَحِمَهُ اللهُ او د لوی اختر د مازيګر تر لمانځه وروسته به يې ختموي د امام صاحب رَحِمَهُ الله په نيز وَقَالَا[1]: يَخْتِمُ عَقِيْبَ صَلَاةِ الْعَصْرِ مِنْ آخِرِ أَيَّامِ التَّشْرِيْقِ او صاحبين رَحِمَهُمَا الله فرمايي: چې د ايام تشريق د آخري ورځې د مازيګر تر لمانځه وروسته به يې ختموي وَالْمَسْأَلَةُ مُخْتَلِفَةٌ بَيْنَ الصَّحَابَةِ او دا مسئله د صحابه وو رَضِيَ اللهُ عَنْهُم په مينځ کې مختلف فيه ده فَأَخَذَا بِقَوْلِ عَلِيٍّ رَضِيَ اللهُ عَنْهُ أَخْذًا بِالْأَكْثَرِ نو صاحبينو رَحِمَهُمَا الله پر اکثر باندې په عمل کولو سره د حضرت علي ﷺ قول اختيار کړی دی إِذْ هُوَ الْاِحْتِيَاطُ فِي الْعِبَادَاتِ ځکه چې په عباداتو کې د اکثر په اختيارولو کې احتياط دی وَأَخَذَ بِقَوْلِ ابْنِ مَسْعُوْدٍ رَضِيَ اللهُ عَنْهُ أَخْذًا بِالْأَقَلِّ او امام صاحب رَحِمَهُ الله پر اقل (کم) باندې په عمل کولو سره د ابن مسعود ﷺ قول اختيار کړی دی لِأَنَّ الْجَهْرَ بِالتَّكْبِيْرِ بِدْعَةٌ ځکه چې په لوړ آواز سره تکبير ويل بدعت دي وَالتَّكْبِيْرُ أَنْ يَقُوْلَ مَرَّةً وَاحِدَةً: اَللهُ أَكْبَرُ اَللهُ أَكْبَرُ لَا إِلٰهَ إِلَّا اللهُ وَاللهُ أَكْبَرُ اَللهُ أَكْبَرُ وَلِلّٰهِ الْحَمْدُ او تکبير دا دی چې يو وار به دا کلمې وايي: اَللهُ أَكْبَرُ اَللهُ أَكْبَرُ لَا إِلٰهَ...الخ هٰذَا هُوَ الْمَأْثُوْرُ عَنِ الْخَلِيْلِ صَلَوَاتُ اللهِ عَلَيْهِ او همدا له حضرت ابراهيم ﷺ څخه را نقل سوي دي.

**تشريح:** صاحب د کتاب په دې عبارت کې د تشريق له تکبيرونو څخه بحث کوي. د بحث خلاصه دا ده چې د رباتره علماوو په نيز د تشريق تکبيرونه واجب دي، دليل د قرآن کريم دا آيت دی: وَاذْكُرُوا اللّٰهَ فِيْٓ أَيَّامٍ مَّعْدُوْدٰتٍ [البقره:۲۰۳].

**مسئله:** دا ده چې د تشريق د تکبيرونو د ابتداء او شروع په لړ کې خو د حنفي علماوو په نيز اتفاق دی او د ټولو په نيز د ذی الحجې د نهمې ورځې د سهار تر لمانځه وروسته د تشريق تکبيرونه شروع کيږي، لېکن د ختمېدلو په باره کې يې د حنفي فقهاوو اختلاف دی، او د دې اختلاف اصل او بنياد دا دی چې په دې لړ کې په خپله د صحابه وو په مينځ کې هم اختلاف دی، لکه څرنګه چې د ابن مسعود، حضرت علقمه، او د ابن عمر او ابن عباس رَضِيَ اللهُ عَنْهُم رايه دا ده چې د ذی

---

[1] القول الراجح: قول الصاحبين رَحِمَهُمَا الله، كما قال العلامة نجم الدين الزاهدي رَحِمَهُ الله في شرحه للقدوري والفتوى والعمل في عامة الأمصار وكافة الأعصار على قولهما (الكفاية في صدر فتح القدير ج:۲، ص: ۴۹) [القول الراجح،ج:۱، ص: ۱۵۱]

الحجې په لسمه ورځ يعني د لوی اختر په ورځ به د مازيګر تر لمانځه وروسته د تشريق تکبيرونه ختميږي، او تر دې وروسته به د هغو ويل واجب نه وي، امام اعظم رَحِمَهُ الله همدغه قول اختيار کړی دی، ځکه چې تکبير يو ډول دعاء ده، او مخکې دا خبره تېره سوه چې اصل په دعاء کې په کرار آواز سره ويل دي، لهذا په لوړ آواز سره تکبير ويل يو ډول بدعت سو، لکه په آيت کې چې راغلي دي: ٱدۡعُواْ رَبَّكُمۡ تَضَرُّعٗا وَخُفۡيَةً [الاعراف:٥٥]، نو احتياط دا دی چې څومره تکبيرونه کم وويل سي، هغومره به ښه وي. نو ځکه امام صاحب له کمو څخه کمې ورځې اختيار وي.

د دې په خلاف له ځينې صحابه وو يعني له حضرت عمر، حضرت علي، حضرت عثمان او نورو صحابه وو څخه روايت دی چې د تشريق تکبيرونه به د أيام تشريق په آخري ورځ يعني د ذی الحجې په ديارلسمه ورځ د مازيګر تر لمانځه وروسته ختميږي، صاحبينو او امام شافعي او نورو هم دا روايت اختيار کړی دی، ځکه د دې روايت مطابق د لمونځونو شمېر زيات دی، او په عباداتو کې احتياط په دې کې دی چې پر اکثر عمل وسي، او بيا په دې آيت واذكروا الله في أيام معدودات کې هم له أيام معدودات څخه په اتفاق د مفسرينو أيام تشريق (د تشريق ورځې) مراد دي، نو ځکه به تکبيرونه د ذی الحجې د ديارلسمې ورځې تر مازيګره پورې اوږديږي، او د لوی اختر په ورځ به نه ختميږي، د عقل او قياس همدغه تقاضا ده ځکه چې په أيام معدودات کې أيام د جمعې صيغه ده، او د جمعې کمه اندازه درې وي، نو له دې څخه هم د تشريق په ټولو ورځو کې د تکبير مشروعوالی فهمول کيږي.

والتكبير أن يقول الخ فرمايي تکبير دا دی چې لمونځ ګزاره تر لمانځه وروسته په لوړ آواز سره يو وار دا کلمې ووايي: اَللهُ أَكْبَرُ اَللهُ أَكْبَرُ لَا إِلٰهَ إِلَّا اللهُ وَاللهُ أَكْبَرُ اَللهُ أَكْبَرُ وَلِلّٰهِ الْحَمْدُ. صاحب د بنايې د دې قصه داسې بيانوي چې کله حضرت ابراهيم عليه السلام خپل زوی حضرت اسماعيل عليه السلام د قربانولو لپاره پر مځکه پرې ايستی، او د هغه پر غاړه يې چاړه را تېره کړه، نو حضرت جبرئيل عليه السلام له آسمانه څخه پسه را وېستی، او چې کله يې د پلار او ځوی دا قرباني وليدله. نو بې له اختياره يې تر خوله دا الفاظ را ووتل: الله أكبر الله اكبر. ابراهيم عليه السلام چې کله دا آواز واورېدی، نو د آسمان و طرف ته يې سر پورته کړی، او د پسه په راوستلو پوه سو نو هغه هم وويل: لا إله إلا الله والله أكبر. حضرت اسماعيل عليه السلام چې کله دا کلمې واورېدې، نو د هغه له ژبې څخه هم دا کلمې جاري سوې: الله أكبر ولله الحمد. او دغه حمد و ثناء د لوی څښتن الله جل جلاله دومره خوښه سوه چې تر قيامته يې واجب وګرځوله. (بنايه ج:٣، ص:١٥١)

## د تشريق د تکبيرونو د ويلو وخت

وَهُوَ عَقِيبَ الصَّلَوَاتِ الْمَفْرُوضَاتِ عَلَى الْمُقِيمِينَ فِي الْأَمْصَارِ فِي الْجَمَاعَاتِ الْمُسْتَحَبَّةِ عِنْدَ أَبِي حَنِيفَةَ او دا تکبيرونه تر فرضي لمونځونو وروسته په ښار کې پر مقيمو خلکو په مستحب جماعتونو کې د امام صاحب رَحِمَهُ الله په نېز واجب دي وَلَيْسَ عَلَى جَمَاعَاتِ النِّسَاءِ إِذَا لَمْ يَكُنْ مَعَهُنَّ رَجُلٌ او د ښځو پر جماعتونو دا تکبيرونه واجب نه دي کله چې د هغو

سره یو سری نه وي وَلَا عَلَى جَمَاعَةِ الْمُسَافِرِيْنَ إِذَا لَمْ يَكُنْ مَعَهُمْ مُقِيْمٌ او نه د مسافرانو پر جماعتونو واجب دي چې کله د هغوی سره یو مقیم نه وي وَقَالَا●: هُوَ عَلَى كُلِّ مَنْ صَلَّى الْمَكْتُوْبَةَ او صاحبین رَحِمَهُمَا الله فرمايي: چې تکبیر تشریق په هر هغه سړي باندې واجب دی چې هغه فرضي لمونځ کوي لِأَنَّهُ تَبَعٌ لِلْمَكْتُوْبَةِ ځکه چې تکبیر تشریق د فرضي لمانځه تابع دی وَلَهُ مَا رَوَيْنَا مِنْ قَبْلُ د امام صاحب دلیل هغه حدیث دی کوم چې موږ مخکې روایت کړی وَالتَّشْرِيْقُ هُوَ الْجَهْرُ بِالتَّكْبِيْرِ او د تشریق مطلب تکبیر په لوړ آواز سره ویل دي كَذَا نُقِلَ عَنِ الْخَلِيْلِ بْنِ أَحْمَدَ همدارنګه له خلیل بن احمد څخه رانقل سوي دي وَلِأَنَّ الْجَهْرَ بِالتَّكْبِيْرِ خِلَافُ السُّنَّةِ او په دې وجه هم چې په لوړ آواز سره تکبیر ویل له سنت څخه خلاف دي وَالشَّرْعُ وَرَدَ بِهِ عِنْدَ اِسْتِجْمَاعِ هٰذِهِ الشَّرَائِطِ او شریعت د تکبیر په باره کې د دې شرطونو د جمع کېدلو په وخت کې وارد سوی دی (نو ځکه به د دې شرطونو د وجود په وخت کې تکبیر ویل کیږي، کنې نه به ویل کیږي) إِلَّا أَنَّهُ يَجِبُ عَلَى النِّسَاءِ إِذَا اقْتَدَيْنَ بِالرِّجَالِ لیکن کله چې ښځې د یو سړي اقتداء وکړي نو پر ښځو (هم) تکبیر تشریق واجب دی وَعَلَى الْمُسَافِرِيْنَ عِنْدَ اِقْتِدَائِهِمْ بِالْمُقِيْمِ بِطَرِيْقِ التَّبَعِيَّةِ او پر مسافرانو (هم) د مقیم سړي د اقتداء په وخت کې تکبیر تشریق واجب دی د تابع کېدلو په توګه قَالَ يَعْقُوْبُ: صَلَّيْتُ بِهِمُ الْمَغْرِبَ يَوْمَ عَرَفَةَ امام ابو یوسف رَحِمَهُ الله فرمايلي دي: "چې ما خلکو ته د عرفات په ورځ د ماښام لمونځ ورکړی فَسَهَوْتُ أَنْ أُكَبِّرَ او تکبیر را څخه هېر سو فَكَبَّرَ أَبُوْ حَنِيْفَةَ رَحِمَهُ الله نو امام ابو حنیفه رَحِمَهُ الله تکبیر ووایی" دَلَّ دا پر دې خبره دلالت کوي أَنَّ الْإِمَامَ وَإِنْ تَرَكَ التَّكْبِيْرَ لَا يَتْرُكُهُ الْمُقْتَدِيْ چې که څه هم امام تکبیر پرېږدي نو مقتدي به یې نه پرېږدي وَهٰذَا لِأَنَّهُ لَا يُؤَدَّى فِيْ حُرْمَةِ الصَّلَاةِ او دا حکم په دې وجه دی چې تکبیر د لمانځه په تحریمه کې نه اداء کیږي فَلَمْ يَكُنِ الْإِمَامُ فِيْهِ حَتْمًا نو ځکه به په هغه کې د امام وجود ضروري نه وي وَإِنَّمَا هُوَ مُسْتَحَبٌّ بلکې د امام وجود (فقط) مستحب دي (یعني د امام په اقتداء کې ویل فقط مستحب دي)

**اللغات**: ﴿عقیب﴾ وروسته، ﴿أمصار﴾ جمع د مفرد ده: ښار، ﴿تشریق﴾ په لوړ آواز سره تکبیر ویل، ﴿حرمة الصلوة﴾ تکبیر تحریمه.

**تشریح**: د امام صاحب رَحِمَهُ الله په نیز تر هر فرض لمانځه وروسته پر خلکو تکبیر ویل واجب دي، په دې شرط چې دا خلک مقیم وي، په ښار کې دننه وي، او په مستحبه توګه سره جماعت اداء کوي، امام صاحب رَحِمَهُ الله د عقیب الفرض قید په دې وجه لګولی دی چې که تر فرضي لمانځه وروسته یو بل عمل پیدا سو، د مثال په توګه له مسجد څخه را ووتی، یا په خبرو مشغول سو، نو دا سړی به تکبیر نه وايي، او د مفروضات له قید څخه د جنازې لمونځ، د وترو لمونځ او د اختر لمونځ او نفلونه ووتل. په دې توګه چې تر دې لمونځونو وروسته تکبیر تشریق واجب نه دی. د مقیمین له قید

● القول الراجح: قول الصاحبين رَحِمَهُمَا الله، كما قال العلامة وهبة الزحيلي: والتكبير واجب عقيب الصلوات المفروضات على كل من صلى المكتوبة ولو منفردا أو مسافرا أو مقتديا لأنه تبع لها على المفتى به من قول الصاحبين (الفقه الإسلامي و أدلته ج:٢، ص: ٣٨٣). [القول الراجح، ج:١، ص: ٢٥٠]

څخه مسافر ووتی، ځکه چي پر مسافر هم تکبير نسته، د في الامصار له قيد څخه صحرا ووتل، يعني د صحرا پر خلکو تکبير تشريق واجب نه دی، د جماعة له قيد څخه منفرد ووتی، او د مستحبة له قيد څخه د ښځو جماعت ووتی په هغه وخت کي چي خالي د ښځو جماعت وي يعني امام يې نارينه نه وي، لېکن که د ښځو امام نارينه وو، او د مسافرانو امام مقيم وو، نو پر دې ښحو او مسافرانو هم تکبير واجب دی.

وقالا: وهوالخ صاحبين فرمايي چي پر هر هغه سړي تکبير واجب چي هغه فرضي لمونځ کوي، هغه که په ښار کي وي او که په صحراء کي، مسافر وي که مقيم، په جماعت لمونځ کوي او که يوازي، نارينه وي او که ښځه، همدا قول د امام مالک او امام شافعي رَحِمَهُمَا الله دی.

**د صاحبينو دليل:** دليل دا دی چي تکبير د فرضي لمانځه تابع دی، نو هر څوک چي فرضي لمونځ کوي، هغه به تکبير هم وايي.

**د امام صاحب دليل:** هغه حديث دی کوم چي مخکي ذکر سو يعني: لا جمعة ولا تشريق ولا فطر ولا أضحى إلا في مصر جامع، له دې حديث څخه د تکبيرِ تشريق لپاره د ښار شرطوالی معلوم سو، د لغتو لوی امام خليل بن احمد فرمايي: چي تشريق جهري تکبير ته ويل کيږي، **دويم دليل:** دا دی چي تکبير په زوره ويل له سنت څخه خلاف يعني بدعت دي، خو ماسوا په هغه ځای کي چيري چي شريعت وارد سوی وي، او د جهري تکبير په سلسله کي شريعت په هغه صورت کي وارد سوی دی چي کله دا ټوله شرطونه موجود وي، يعني ښار، مستحب جماعت، مقيم کېدل او داسي نور، هو! که ښځه د يو سړي اقتداء وکړي، يا مسافر د مقيم اقتداء وکړي نو پر ښځو او مسافرانو به هم تکبير واجب وي، دا وجوب به د تبعيت په توګه وي، يعني څرنګه چي امام متبوع دی او پر هغه تکبير واجب دی، نو د امام پر تابع به هم واجب وي، لکه څرنګه چي د مقيم امام په اقتداء کولو سره پر مسافر څلور رکعته لازميږي.

قال يعقوب الخ له دې ځايه دا راښيي چي پر مقتديانو د خپل امام اقتداء او اتباع صرف د لمانځه په اُمورو کي واجب ده، د لمانځه څخه ماسوا په نورو اُمورو کي د امام اقتداء واجب نه ده، لېکن مستحب ده، نو ځکه که له يو امام څخه تر لمانځه وروسته تکبير تشريق ويل هېر سي، او مقتديانو ته ياد وي، نو هغوی ته د امام انتظار کول پکار نه دي، او که امام چپ پاته سو، نو مقتديانو ته پکار ده چي په خپله تکبير شروع کړي، ځکه چي تکبير تر لمانځه وروسته ويل کيږي، نو په دې کي د امام مخالفت کول يا تر امام مخکيتوب کول هيڅ پروا نه لري، لکه څرنګه چي د امام صاحب ستر شاګرد قاضي ابو يوسف رَحِمَهُ الله فرمايي: چي يو وار ما د عرفات په ورځ خلکو ته د ماښام لمونځ ورکړی، او تکبير تشريق را څخه هېر سو، لېکن امام صاحب رَحِمَهُ الله کوم چي د مقتديانو په صف کي وو هغه تکبير شروع کړی، د امام صاحب دا عمل د دې خبري دليل دی چي که مقتدي تر امام مخکي تکبيرِ تشريق ووايي، نو هيڅ حرج نسته.



# بَابُ صَلَاةِ الْكُسُوْفِ

## (دا) باب د لمر د ترنځي د نيولو د لمانځه (په بيان کي) دی

**تشريح:** تر دې مخکي صاحب د کتاب د صلاة العيدين احکام ذکر کړل، او اوس د صلاة الکسوف احکام بيانوي، د دوی په مينځ کي د مناسبت وجه دا ده چي دواړه لمونځونه د شپې نه اداء کيږي، بلکي د ورځي کي اداء کيږي. او له اذان او اقامت څخه بغير اداء کيږي، خو څرنګه چي د صلاة الکسوف په مقابله کي صلاة العيد زيات واقع کيږي، همدارنګه صلاة العيد واجب دی، نو ځکه يې هغه تر صلاة الکسوف مخکي بيان کړی، او صلاة الکسوف نه واجب دی، او نه زيات واقع کيږي.

کُسُوف د ضرب د باب مصدر دی، معنیٰ يې ده: تاريک کېدل، کله چي د لمر و طرف ته د دې نسبت وسي، نو د ترنځي نيولو په معنیٰ سره راځي، او د دې سره بل نژدې لفظ خسوف دی، بعضي خلک دا دواړه لفظونه مترادف ګڼي، يعني د دواړو معنیٰ يوه ده، لېکن د بعضو رايه دا ده چي کسوف د لمر سره خاص دی، او خسوف د سپوږمۍ سره خاص دی. (بنايه ج۳،ص۱۵۱)

### د کُسُوف د لمانځه (صلاة کسوف) طريقه

قَالَ: إِذَا انْكَسَفَتِ الشَّمْسُ فرمايي: چي کله لمر ترنځه ونيسي صَلَّى الْإِمَامُ بِالنَّاسِ رَكْعَتَيْنِ كَهَيْئَةِ النَّافِلَةِ نو امام دي خلکو ته د نفلو په ډول دوه رکعته لمونځ ورکړي فِي كُلِّ رَكْعَةٍ رُكُوعٌ وَاحِدٌ په هر رکعت کي دي يوه رکوع وکړي وَقَالَ الشَّافِعِيُّ رَحِمَهُ اللهُ: رُكُوعَانِ امام شافعي رَحِمَهُ الله فرمايي: چي دوې رکوعي دي وکړي لَهُ[1] مَا رَوَتْ عَائِشَةُ د امام شافعي رَحِمَهُ الله دليل هغه حديث دی کوم چي حضرت عائشي رَضِيَ اللهُ عَنْهَا روايت کړی دی وَلَنَا رِوَايَةُ ابْنِ عُمَرَ[2] او زموږ دليل د عبد الله بن عمرو بن العاص رَضِيَ اللهُ عَنْهُمَا روايت دی وَالْحَالُ أَكْشَفُ عَلَى الرِّجَالِ لِقُرْبِهِمْ او (د امام سره) د خلکو د نژدېکت په وجه پر خلکو (د امام) حال زيات ښکاره وي فَكَانَ التَّرْجِيحُ لِرِوَايَتِهِ نو ځکه به د عمر بن العاص ﷺ روايت ته ترجيح حاصله وي.

**اللغات:** ﴿انْكَسَفَتْ﴾ د انفعال ماضي ده: لمر ترنځه نيول، ﴿هَيْئَة﴾ حالت، صورت، شکل، ﴿أَكْشَف﴾ د کَرُمَ له باب څخه اسم تفضيل دی: زيات ښکاره، زيات واضح.

**تشريح: مسئله:** دا ده که لمر ترنځي ونيوی، نو کوم امام چي د جمعې لمونځ ورکوي هغه دي په جامع مسجد يا عيدګاه کي خلکو ته د نفلو په ډول دوه رکعته لمونځ ورکړي، يعني څرنګه چي نفل له اذان او اقامت څخه بغير کيږي، همدارنګه به د کسوف لمونځ هم بغير له اذان او اقامت څخه ورکوي.

---

[1] تخريج: أخرجه الائمة الستة في كتبهم: البخاري في صلوٰة الكسوف، باب الصدقة في الكسوف، حديث رقم: ١٠٤٤.

[2] تخريج: أخرجه ابوداؤد في كتاب صلوٰة الاستسقاء، باب من قال يركع ركعتين، حديث رقم: ١١٩٢.

او په هر رکعت کې يوه رکوع ده، دا زموږ د احنافو مذهب دی، امام مالک، امام شافعي او امام احمد رحمهم الله فرمايي چې د کسوف د لمانځه په هر رکعت کې دوې رکوع ګانې دي.

**د امام شافعي او نورو دليل:** د حضرت عائشې رَضِيَ اللهُ عَنْهَا دا حديث: قالت خسفت الشمس في حياة رسول الله ﷺ فخرج إلى المسجد فقام وصف الناس وراءه فكبر فقرأ قراءة طويلة ثم كبر فركع ركوعاً طويلاً ثم رفع رأسه فقال: سمع الله لمن حمده ربنا ولك الحمد ثم قام فقرأ قراءة طويلة هي ادنى من القراءة الاولى ثم كبر فركع ركوعا طويلاً ثم رفع رأسه فقال: سمع الله لمن حمده ربنا ولك الحمد ثم سجد وفعل في الركعة الاخرى مثل ذلك فاستكمل اربع ركعات باربع سجدات وانجلت الشمس قبل ان ينصرف ثم قام فخطب الناس فأثنى على الله بما هو أهله ثم قال إن الشمس والقمر آيتان من آيات الله تعالى لاينخسفان لموت أحد ولا لحياته فاذا رأيتم ذلك فافزعوا إلى الصلوة. (عائشه رَضِيَ اللهُ عَنْهَا فرمايي چې د رسول الله ﷺ په ژوند کې يو ځل لمر ترنڅې ونيوی، نو نبي ﷺ مسجد ته راغلی، ودرېدی، شا ته يې خلکو صفونه جوړ کړل. بيا يې تکبير تحريمه ووايی، اوږد قرائت يې وکړی، بيا يې تکبير ووايی او اوږده رکوع يې وکړه، وروسته يې خپل سر له رکوع څخه را پورته کړی، او سمع الله لمن حمده، ربنا ولك الحمد يې ووايی، بيا نبي ﷺ ودرېدی، اوږد قرائت يې وکړی، خو دا قرائت يې له اول قرائت څخه کم وو. بيا يې تکبير ووايی، يوه اوږده رکوع يې وکړه، خو دا رکوع يې له اولې رکوع څخه کمه وه، بيا دوی ﷺ سر را پورته کړی، او سمع الله لمن حمده ربنا ولك الحمد يې ووايی، بيا يې سجده وکړه، او په دويم رکعت کې يې هم هغه عمل وکړی، نو نبي ﷺ څلور رکعته (يعني څلور رکوع ګانې) په څلورو سجدو سره پوره کړې، او د نبي ﷺ تر فراغت مخکې لمر روښانه سو، بيا ولاړ سو. خلکو ته يې خطبه ورېله، حمد او ثناء يې د الله د شان مناسب بيان کړه، او ويې فرمايل: چې لمر او سپوږمۍ د الله له نښو څخه دوې نښې دي. دا د يو چا په مرګ يا ژوند سره ترنڅه نه نيسي، او کله چې تاسو دا وويني، نو په لمانځه سره پناه اخلئ). له دې حديث څخه معلومه سوه چې نبي ﷺ د کسوف د لمانځه په يوه رکعت کې دوې رکوع ګانې کړې دي.

**زموږ دليل:** د عبد الله ابن عمرو ابن العاص رضي الله عنهما روايت دی: قال انكسفت الشمس على عهد رسول الله ﷺ فقام رسول الله ﷺ فلم يكد يركع ثم ركع فلم يكد يرفع ثم رفع فلم يكد يسجد ثم سجد فلم يكد يرفع ثم رفع فلم يكد يسجد ثم سجد فلم يكد يرفع ثم رفع وفعل في الركعة الأخرى مثل ذلك. (فرمايي چې د نبي ﷺ په زمانه کې يو وار لمر ترنڅې ونيوی. نو رسول الله ﷺ دومره اوږده ولاړه وکړه داسي معلومېده چې نبي ﷺ به رکوع نه وکړي، بيا چې يې کله رکوع وکړه. نو هغه يې هم دومره اوږده وکړه داسي معلومېده چې له رکوع څخه به سر را پورته نه کړي، او کله چې نبي ﷺ له رکوع څخه سر را پورته کړی نو ولاړه يې دومره اوږده کړه چې نبي ﷺ به سجده نه وکړي، او کله چې يې سجده وکړه نو داسي معلومېده چې له سجدې څخه به سر را پورته نه کړي. او نبي ﷺ په دويم رکعت کې هم د اول رکعت په ډول اوږده ولاړه، رکوع او سجده وکړل). له دې حديث څخه دا خبره په ډاګه ځليږي چې نبي ﷺ د کسوف په لمانځه کې په هر رکعت کې يوه رکوع وکړه. نو ځکه به د يوې رکوع اجازه وي. او دوې رکوع به د سنت خلاف وي.

والحال أكشف الخ صاحب د هدايې له دې ځايه د احنافو عقلي دليل بيانوي، حاصل يې دا دی چې په دې مسئله کې د حضرت عائشې رَضِيَ اللهُ عَنْهَا حديث او د حضرت عبد الله ابن العاص رضي الله عنهما حديث سره متعارض سول. نو په دې دواړو کې به ترجيح د ابن العاص رضي الله عنهما حديث ته وي، ځکه چې سړی د ښځې په نسبت امام ته زيات نژدې وي، ځکه د ښځو صف د نارينه وو تر صف شا ته وي. نو د امام د لمانځه د حالت او کيفيت تفصيلات چې خلکو ته څومره معلومېږي، ښځو ته هغومره نه معلومېږي. نو ځکه به د ابن عمر حديث راجح وي (ځکه چې هغه به د جماعت په لمانځه کې نبي ﷺ ته تر حضرت عائشې رَضِيَ اللهُ عَنْهَا زيات نژدې وو).

## په صلاةِ کسوف کې د قرائت تفصيل

وَيُطَوِّلُ الْقِرَاءَةَ فِيْهِمَا او امام به په دواړو رکعتونو کې قرائت اوږدوي وَيُخْفِيْ عِنْدَ ● أَبِيْ حَنِيْفَةَ او د امام صاحب رَحِمَهُ الله په نېز به په کراره قرائت کوي وَقَالَا: يَجْهَرُ او صاحبين رَحِمَهُمَا الله فرمايي: چې په لوړ آواز سره به قرائت کوي وَعَنْ مُحَمَّدٍ مِثْلُ قَوْلِ أَبِيْ حَنِيْفَةَ او له امام محمد رَحِمَهُ الله څخه يو روايت د امام اعظم رَحِمَهُ الله د قول په څېر دی أَمَّا التَّطْوِيْلُ فِي الْقِرَاءَةِ پاتې سو اوږد قرائت کول فَبَيَانُ الْأَفْضَلِ نو هغه د افضليت بيان دی وَيُخَفِّفُ إِنْ شَاءَ او که د امام خوښه وي نو مختصره قرائت به کوي لِأَنَّ الْمَسْنُوْنَ اِسْتِيْعَابُ الْوَقْتِ بِالصَّلَاةِ وَالدُّعَاءِ ځکه چې سنت د ترنګي وخت په لمانځه او دعاء سره نيول دي فَإِذَا خَفَّفَ أَحَدُهُمَا طَوَّلَ الْآخَرَ نو کله چې يو شی مختصره کړي نو دويم دي اوږد کړي وَأَمَّا الْإِخْفَاءُ وَالْجَهْرُ پاتې سوه د اخفاء او جهر مسئله فَلَهُمَا رِوَايَةُ عَائِشَةَ ● نو د صاحبينو رَحِمَهُمَا الله دليل د حضرت عائشې رَضِيَ اللهُ عَنْهَا حديث دی أَنَّهُ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ جَهَرَ فِيْهَا "چې نبي ﷺ د ترنګي په لمانځه کې په لوړ آواز سره قرائت وکړی" وَلِأَبِيْ حَنِيْفَةَ رِوَايَةُ ابْنِ عَبَّاسٍ وَسَمُرَةَ رَضِيَ اللهُ عَنْهُمْ ● او د امام ابو حنيفه رَحِمَهُ الله دليل د ابن عباس رَضِيَ اللهُ عَنْهُمَا او د سمره بن جندب رضي الله عنه روايت دی وَالتَّرْجِيْحُ قَدْ مَرَّ مِنْ قَبْلُ او ترجيح مخکې تېره سوه كَيْفَ او څرنګه به په دې لمانځه کې په لوړ آواز سره قرائت کيږي وَإِنَّهَا صَلَاةُ النَّهَارِ حال دا چې دا لمونځ د ورځې لمونځ دی وَهِيَ عَجْمَاءُ او د ورځې لمونځ خو ګونګی وي (يعني قرائت نه پکښې کيږي).

**اللغات:** ﴿يُطَوِّلُ﴾ د تفعيل د باب مضارع ده: اوږدول، زياتول. ﴿يُخْفِيْ﴾ د افعال د باب مضارع ده: په پټه ويل، په کراره ويل. ﴿اِسْتِيْعَابُ﴾ د استفعال د باب مصدر دی: يو شی پوره نيول، پوره استعمالول، (کنپباسل). ﴿عَجْمَاءُ﴾ ګونګی، سرّي لمونځ.

**تشريح: مسئله:** دا ده چې امام به د کسوف د لمانځه په دواړو رکعتونو کې اوږد قرائت کوي، په بعضو احاديثو کې راغلي دي چې اول رکعت به د سورت بقرې په اندازه وايي، او دويم رکعت به د سورت آل عمران په اندازه وايي، خو په دې کې اختلاف دی چې قرائت به جهري کوي، او که سرّي، امام صاحب رَحِمَهُ الله فرمايي: چې د کسوف په لمانځه کې به سرّي قرائت کوي، همدا مسلک د امام مالک، امام شافعي او جمهورو فقهاؤ هم دی، او صاحبين فرمايي چې جهري قرائت به کوي، دا قول د امام احمد او امام طحاوي هم دی، صاحب د هدايې رَحِمَهُ الله وايي چې له امام محمد رَحِمَهُ الله څخه يو روايت د امام ابو حنيفه رَحِمَهُ الله په څېر دی، په دې صورت کې به د طرفينو په نېز سرّي قرائت وي، او د امام ابويوسف په نېز به جهري قرائت وي، لنډه دا چې دلته دوې خبرې دي، قرائت اوږدول او په قرائت کې جهر يا اخفاء کول، نو قرائت اوږدول خو افضله دي، ځکه دا ثابته ده چې په اول رکعت کې به د رسول الله ﷺ ولاړه د سورت بقرې په اندازه وه، او په دويم رکعت کې به د سورتِ آل عمران په اندازه وه، نو د قرائت په اوږدوالي کې د رسول الله ﷺ متابعت دی. او که

---

● القول الراجح: قول أبی حنيفة رَحِمَهُ الله، كما قال العلامة إبن الهمام بعد تفصيل المسئلة وإذا حصل التعارض وجب الترجيح بأن الأصل في صلوٰة النهار الإخفاء، فتح القدير ج:٢، ص:٥٦. [القول الراجح ج:١، ص: ١٥٣]

● تخريج: أخرجه البخاری فی صلوٰة الكسوف، باب الجهر فی القرأة فی الكسوف، حديث رقم: ١٠٦٥.

● تخريج: أخرجه البيهقی فی سننه فی كتاب صلوٰة الخسوف، باب من قال يسّر بالقرأة، حديث رقم: ٦٢٤١

زړه يې وغواړي، نو په قرائت کې دې تخفيف کوي، يعني مختصره قرائت دې کوي، ځکه سنت خو دا دي چې د ترنځې نيولو ټوله وخت په لمانځه او دعاء سره ونيول سي، لهذا که په لمانځه کې تخفيف وکړي، نو په دعاء کې به اوږدوالی کوي، علامه ابن الهمام رَحِمَهُ الله فرمايلي دي: الحق أن السنة التطويل والمندوب مجرد استيعاب الوقت، (يعني حق دا دی چې قرائت اوږدول سنت دي، او د کسوف د وخت استيعاب مستحب دی)، لکه په حديث د مغيره بن شعبه کې چې راغلي دي: فإذا رأيتموها فادعوا الله وصلوا حتى تنجلي، صحيحين، (بيا چې کله تاسو دا شيان ووينئ (يعني ترنځه او داسې نور) نو له الله تعالیٰ څخه دعاء غواړئ او لمونځ کوئ تر دې چې لمر روښانه سي)، وګورئ تر لمر روښانه کېدلو پورې د لمانځه د اوږدولو حکم سوی دی، او دا هغه وخت کېدای سي چې کله قرائت اوږد کړی سي، نو معلومه سوه چې قرائت اوږدول سنت دي.

**د صاحبينو يا د امام ابو يوسف دليل:** د حضرت عائشې رَضِيَ اللهُ عَنْهَا حديث دی: قالت جهر النبي ﷺ في صلوة الخسوف بقرائته، (عائشه رَضِيَ اللهُ عَنْهَا فرمايي چې رسول الله ﷺ به د کسوف په لمانځه کې جهري قرائت کوی).

**د طرفينو يا د امام ابو حنيفه دليل:** د ابن عباس او سمره بن جندب حديث دی: عن ابن عباس صليت مع النبي ﷺ الكسوف فلم اسمع منه حرفاً من القراءة، (يعني ابن عباس رَضِيَ اللهُ عَنْهُمَا فرمايي: چې د ما د نبي ﷺ سره د کسوف لمونځ وکړی، خو له هغوی ﷺ څخه مې د قرائت يو حرف هم نه واورېدی).

والترجيح قد مرّ الخ صاحب د هدايې رَحِمَهُ الله فرمايي چې د ابن عباس او د سمره رَضِيَ اللهُ عَنْهُمَا حديث ته ترجيح حاصله ده، او وجه مخکې تېره سوه چې سړی د ښځې په نسبت امام ته زيات نژدې وي، نو ځکه به د امام د قرائت او د لمانځه د کيفيت په باره کې د سړي قول زيات راجح وي.

کيف الخ فرمايي چې پوه سه! د کسوف په لمانځه کې جهري قرائت کول له عقل څخه لوړه خبره ده، ځکه چې د کسوف لمونځ په ورځ کې اداء کېږي، او د ورځې لمونځ عجماء وي، له عمجاء څخه مراد دا دی چې د ورځې په لمونځونو کې جهري قرائت نه کېږي، نو ځکه به د کسوف په لمانځه کې هم جهري قرائت نه کېږي.

## تر صلاة کسوف وروسته د دعاء د اوږدولو حکم

| |
|---|
| وَيَدْعُو بَعْدَهَا حَتَّى تَنْجَلِيَ الشَّمْسُ او امام به تر لمانځه وروسته دعاء کوي تر دې چې لمر روښانه سي لِقَوْلِهِ عَلَيْهِ الصَّلَاةُ وَالسَّلَامُ [1] ځکه نبي ﷺ فرمايلي دي إِذَا رَأَيْتُمْ مِنْ هٰذِهِ الْأَفْزَاعِ شَيْئًا " کله چې تاسو له دې ېرونکو شيانو څخه ووينئ فَارْغَبُوا إِلَى اللهِ بِالدُّعَاءِ نو په دعاء سره د الله و طرف ته رغبت کوئ [يعني د دعاء و طرف ته متوجه کېږئ]" وَالسُّنَّةُ فِي الْأَدْعِيَةِ تَأْخِيرُهَا عَنِ الصَّلَاةِ او په دعاګانو کې سنت دا دي چې تر لمانځه وروسته کړی سي. |

**اللغات:** ﴿تنجلي﴾ د انفعال د باب مضارع ده: ځلانده کېدل، ښکاره کېدل، صفا کېدل، ﴿أفزاع﴾ جمع د فزَع ده: د بيرې شی، د پرېشانۍ او غم خبره.

---

[1] تخريج: أخرجه البيهقي في كتاب صلوة الخسوف، باب الأمر بالفزع إلى ذكر الله تعالى، حديث رقم: ٦٢٩٨.

**تشریح**: فرمايي چې امام دې د کسوف تر لمانځه وروسته دعاء وکړي. او تر هغه وخته دې دعاء کوي. تر څو چې ترنځه او تياره ليرې سي. او لمر روښانه سي. دعاء که په ولاړې کوي، او که يې په ناستي کوي، خو د خلکو و طرف ته به يې مخ وي، او د مقتديانو مخ به د قبلې پر طرف وي او د امام پر دعاء به آمين وايي، دليل د نبي ﷺ دا قول دی: إذا رأيتم من هذا الافزاع شيئاً فارغبوا إلى الله بالدعاء.

والسنة الخ صاحب د کتاب فرمايي چې په دعاګانو کې سنت طريقه دا ده چې تر لمانځه وروسته وي. له ابو امامه څخه روايت دی: قيل يا رسول الله ﷺ أی الدعاء أسمع قال جوف الليل الأخير ودبر الصلوٰة المكتوبة. (له نبي ﷺ څخه پوښتنه وسوه چې کومه دعاء زياته مقبوله ده، ويې فرمايل: چې د آخري شپې د مينځنۍ حصې، او تر فرضي لمانځه وروسته).

له دې حديث څخه فقط تر فرضي لمانځه وروسته د دعاء سنتوالي معلوميږي، همدارنګه مغيره بن شعبه وايي: چې نبي ﷺ به تر لمانځه وروسته دعاء کوله. (بخاری فی التاريخ الاوسط)

## د صلاة کسوف د امامت حقداره څوک دی؟

| وَيُصَلِّيْ بِهِمُ الْإِمَامُ الَّذِيْ يُصَلِّيْ بِهِمُ الْجُمُعَةَ او خلکو ته به د کسوف لمونځ هغه امام ورکوي کوم چې هغو ته د جمعې لمونځ ورکوي فَإِنْ لَمْ يَحْضُرْ او که هغه حاضر نه وو صَلَّى النَّاسُ فُرَادَىٰ نو خلک دې يوازي (ځان ته) لمونځ وکړي تَحَرُّزًا عَنِ الْفِتْنَةِ له فتنې څخه د خوندي کېدلو لپاره. |
|---|

**اللغات**: ﴿فُرَادَىٰ﴾ يوازي يوازي، ﴿تَحَرُّزًا﴾ د تفعّل مصدر دی: پرهېز کول، خوندي کېدل، ځان ساتل.

**تشریح**: **مسئله**: دا ده چې د کسوف په لمانځه کې به هغه سړی امام ټاکل کيږي، کوم چې د جمعې او اختر لمونځ ورکوي، او که هغه نه وو، نو خلک به يوازي لمونځ کوي، ځکه چې په دې کې د فتنې انديښنه نسته، او د جماعت په صورت کې د فتنې غالبه امکان سته، په دې توګه چې هر سړی به د امام جوړېدلو کوښښ کوي، يا به د خپلې خوښې مطابق امام مخته کوي، نو تر دې کړکيچ غوره دا ده چې يوازي لمونځونه اداء کړي.

## د خُسُوف يعني د سپوږمۍ د ترنځې په وخت کې د جماعت حکم

| وَلَيْسَ فِيْ خُسُوْفِ الْقَمَرِ جَمَاعَةٌ او د سپوږمۍ په ترنځه کې جماعت نسته لِتَعَذُّرِ الْإِجْتِمَاعِ فِي اللَّيْلِ ځکه د شپې (د خلکو) را جمع کېدل ستونزمن دي أَوْ لِخَوْفِ الْفِتْنَةِ يا د فتنې د بيرې په وجه وَإِنَّمَا يُصَلِّيْ كُلُّ وَاحِدٍ بِنَفْسِهِ او هر سړی به يوازي لمونځ کوي لِقَوْلِهِ عَلَيْهِ الصَّلَاةُ وَالسَّلَامُ ❶ ځکه نبي ﷺ فرمايلي دي إِذَا رَأَيْتُمْ شَيْئًا مِنْ هٰذِهِ الْأَهْوَالِ "کله چې تاسو له دې ډېرونکو شيانو څخه يو شی ووينئ فَافْزَعُوْا إِلَى الصَّلَاةِ نو په لمانځه سره پناه اخلئ" وَلَيْسَ فِي الْكُسُوْفِ خُطْبَةٌ او د ترنځې په لمانځه کې خطبه نسته لِأَنَّهُ لَمْ يُنْقَلْ ځکه چې هغه را نقل سوې نه ده. |
|---|

**اللغات**: ﴿الخُسُوف﴾ د سپوږمۍ ترنځه نيول، ﴿أَهْوَال﴾ جمع د هَوْلٌ ده: ډېرونکی شی، خوفناک شی. مصيبت.

﴿فَافْزَعُوْا﴾ د فتح له باب څخه د امر صيغه ده: پناه اخيستل، ډېره ليرې کول، ﴿کُسُوف﴾ د لمر ترنځه نيول.

**تشريح:** فرمايي چي د سپوږمۍ په ترنځه کي په جماعت سره لمونځ نسته، ځکه چي دا د شپې او د تياري حالت وي، او کله چي سپوږمۍ ترنځه ونيسي، نو نوره تياره خوره سي، لهذا که د سپوږمۍ د ترنځي په وخت کي جماعت لازم وګرځول سي، نو خلک به په تکليف کي مبتلاسي، او د خلکو د ډېرښت په وجه د فتني ډېره هم سته، نو ځکه به خلک د سپوږمۍ د ترنځي پر وخت په خپلو کورونو کي يوازي لمونځونه کوي.

په دې باره کي په دې حديث إذا رأيتم شيئا من الأهوال سره هم دليل نيول کېداى سي، کوم چي په کتاب کي ذکر سو، ځکه په دې حديث کي داسي الفاظ راغلي دي فافزعوا إلى الصلاة، (يعني لمونځونه وکړئ)، او د جماعت هيڅ ذکر نسته.

وليس في الكسوف خطبة الخ فرمايي چي د کسوف په لمانځه کي يعني د لمر د ترنځي په لمانځه کي خطبه نسته، همدا زموږ مسلک دی. لېکن د امام شافعي رَحِمَهُ الله په نېز په دې لمانځه کي هم خطبه سته، د امام شافعي رَحِمَهُ الله دليل د حضرت عائشې رَضِيَ اللهُ عَنْهَا حديث دی، چي په هغه کي دا جمله ذکر سوې ده : ثم قام فخطب الناس فأثنى على الله... الخ، له دې ځخه معلومېږي چي د کسوف په لمانځه کي خطبه سته.

**زموږ دليل :** دا دی چي د کسوف او خسوف په لمانځه کي د خطبې ويل په مشهوره او متواتره حديثونو کي نه دي رانقل سوي، پاته سو د حضرت عائشې رَضِيَ اللهُ عَنْهَا حديث نو د هغه جواب دا دی چي نبي ﷺ په هغه کي د کسوف په وجه خطبه نه ورېله، بلکي په دې ورځ د نبي ﷺ زوى ابراهيم وفات سو، او په خلکو کي دا آوازه سوه چي شايد د نبي ﷺ د زوى په وجه به لمر ترنځي نيولى وي، نو ځکه نبي ﷺ د کسوف تر لمانځه وروسته د دې وهم او ګومان د لېري کولو لپاره خطبه ورېله، دليل دا دی چي نبي ﷺ د هغه لپاره په خطبه کي دا جمله هم وفرمايله : إن الشمس والقمر آيتان من آيات الله لاينكسفان لموت أحد ولا لحياته... الخ (يعني لمر او سپوږمۍ د الله له نښو ځخه دوې نښې دي، چي هغه د يو چا په مرګ او ژوند سره ترنځه نه نيسي). (بنايه ج:٣، ص:١٧٢)

رَبَّنَا تَقَبَّلْ مِنَّا إِنَّكَ أَنْتَ السَّمِيعُ الْعَلِيمُ، وَتُبْ عَلَيْنَا إِنَّكَ أَنْتَ التَّوَّابُ الرَّحِيمُ، وَصَلَّى اللهُ عَلَى سَيِّدِ الْمُرْسَلِينَ وَعَلَى آلِهِ وَصَحْبِهِ أَجْمَعِيْنَ، وَمَنْ تَبِعَهُمْ بِإِحْسَانٍ إِلَى يَوْمِ الدِّيْنِ. اَللّٰهُمَّ اغْفِرْ لِشَارِحِهِ وَلِوَالِدَيْهِ وَلِأَسَاتِيْذَتِهِ وَلِمَنْ قَامَ بِنَشْرِهِ وَتَوْزِيْعِهِ.

كتبه بيمينه

أحقر حبيب الرحمن مدني

